# توضیحات

پښتو شرح د

# مشکوة شریف

تالیف

حضرت مولانا فضل محمد یوسف زئی دامت برکاتهم
استاذ حدیث جامعة علوم اسلامیة بنوری ټاؤن کراچی

پښتو ترجمه

مولانا محمد فیض الهادي "حقاني"
سابق مدرس مدرسه تعلیم القرآن والحدیث
چارسده روډ پیښاور

مکتبة الاصلاح
محله جنګي پیښاور
0314-9797200
0345-1977797

# توضیحات مشکوٰة شریف
پښتو شرح

(جلد اتم)

الشیخ حضرت مولانا فضل محمد یوسف زئی صاحب دامت برکاتهم
علامه استاذ حدیث جامعة علوم اسلامیة بنوری ټاؤن کراچی

پښتو ترجمه:
مولوي فیض الهادی حقاني

## د توضیحات پښتو شرح مشکوٰة خصوصیات:

- په اول جلد کې د اصول حدیث یوه مفیده مقدمه
- په متن باندې اعراب
- په ټیبل کې تحت السطور بامفهومه ترجمه
- هر حدیث ته مناسب عنوان ورکول
- د مشکوٰة المصابیح د احادیثو تخریج د صحاح سته وغیره کتابونو نه کول
- د مشکوٰة المصابیح د مشکلو لغاتو حل کول
- په شرحه کې هر یو ځای ته مناسب عنوان ورکول
- د ائمه اربعو د مذاهبو بیان
- د مذاهبو دلائل بیانول
- د احنافو د مذهب د ترجیح وجوهات بیانول
- په شرح کې د مرقاة او د اشعة اللمعات د عباراتو حوالې ورکول
- د کتاب د هرې صفحې په سر د کتاب او باب خودنه
- د هر کتاب په اول کې د ضروري مباحثو بیان
- بین القوسین په اضافي قیوداتو سره مزید وضاحت کول
- د مشکلو ابحاثو د سوال او جواب په ذریعه حل کول
- د جدید او قدیم بعضې مسائلو استنباط
- په احادیثو کې د تعارض په صورت کې بهترین مطابقت راوستل
- په اتم جلد کې د مشکوٰة المصابیح د حدیثو د راویانو مفصل حالات

مکتبة الاصلاح
محله جنګی پشاور
0314-9797200
0345-1977797

د کتاب نوم: توضیحات پښتو شرح مشکوة شریف (اتم جلد)

تألیف: حضرت مولانا فضل محمد صاحب دامت برکاتهم
استاذ الحدیث جامعة العلوم الاسلامیه علامه محمد یوسف بنوری ټاون کراچی

پښتو ترجمه: مولوي فیض الهادي "حقاني"
و مولوي سمیع الحق "حقاني"

تصحیح: مولوي هدایت الله صاحب

سیټینګ: الحافظ پرنټرز، پښاور
محمد فیض الهادي "حقاني" موبائل نمبر:
0332-9606473

سالِ اشاعت: ۱۴۴۲ھ موافق ۲۰۲۰ء

ناشر: مکتبة الاصلاح محله جنګي، پښاور
پروپرائیټر: عبدالله

# فهـرست

بسم الله الرحمن الرحيم

اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلٰى مُحَمَّدٍ
وَّعَلٰى اٰلِ مُحَمَّدٍ كَمَا صَلَّيْتَ
عَلٰى اِبْرَاهِيْمَ وَعَلٰى اٰلِ اِبْرَاهِيْمَ
اِنَّكَ حَمِيْدٌ مَّجِيْدٌ ۝
اَللّٰهُمَّ بَارِكْ عَلٰى مُحَمَّدٍ وَّعَلٰى
اٰلِ مُحَمَّدٍ كَمَا بَارَكْتَ عَلٰى
اِبْرَاهِيْمَ وَعَلٰى اٰلِ اِبْرَاهِيْمَ
اِنَّكَ حَمِيْدٌ مَّجِيْدٌ ۝

# باب صفة الجنة واهلها

# د جنت او د جنتیانو د حالاتو بیان

قال الله تعالى: ﴿ فَأَمَّا إِن كَانَ مِنَ الْمُقَرَّبِينَ فَرَوْحٌ وَرَيْحَانٌ وَجَنَّتُ نَعِيمٍ ﴾

جنت د باغ په معنی سره دی ، جیم او نون مشدد دي په دې کې د ستر او پټوالي معنی ده ، ددې نه ده جن او جنات ، ددې نه جنین او جنون راغلی او ددې نه جنان په معنی د زړه سره دی . جنت ته د دوو وجو نه جنت وايي ، یوه وجه داده چې دا الله تعالی په باغونو او ونو کې پټ ساتلی ، او دویمه وجه دا ده چې دا الله تعالی د خلکو د سترګو نه پټ ساتلی دی تر څو د غیب په پرده کې پاتې شي او په دې باندې ایمان بالغیب قائم او دائم پاتې شي . جنت او دوزخ دواړه الله تعالی تیار کړي دي ، د حشر نشر او حساب کتاب نه وروسته کامیاب انسان په جنت ته ځي او ناکام به دوزخ ته ځي . ګویا جنت د راحتونو د مجموعې لپاره نوم دی ، او جهنم د تکلیفونو د مجموعې لپاره نوم دی ، جنت د الهی محبوبینو لپاره د میلمستیا کور دی او دوزخ د مغضوبینو لپاره بندیخانه ده . انسان چونکه په طبعي طور باندې هغه شی کې رغبت لري کوم چې محسوس مادی او طبعی وي لهذا الله تعالی د انسان د ترغیب لپاره د خپلې رضا او خوشحالۍ سره د جنت مادی نعمتونه پیش کړي دي کوم چې انساني طبعیت یې زر فهمولی شي ، مثلا که ورته وویل شي چې تا ته به حوري درکولی شي ، غلامان به میلاویږي ، د انارو او منو او انګورو باغونه میلاویږي ، د شودو (پیو)، شهدو ، شرابو او صفا اوبو نهرونه میلاویږي نو دا انسان ژر فهمولی شي . ددې په مقابله کې د الله تعالی رضا او خوشحالی په دغه شان جذباتي انداز سره نه شي فهمولی الا ماشاء الله .

ددې مثال د يو زوی او د هغه د پلار دی ، کچیرې پلار بچي ته دا ووايي چې بچیه سکول ووايه! چې کله تا سکول ووایه او کامیاب شوې نو ته به د صحت ماشوم جوړ شې ، ډاکټر او پروفیسر به جوړ شې ، فلانی فلانی سرکاري عهده (وظیفه) به حاصله کړې ، په دې خبرو ماشوم نه پوهیږي . لیکن که دغه بچی ته پلار ووايي چې بچیه سبق ووایه ، تعلیم حاصل کړه ، چې کله ته کامیاب شوې نو زه به تا ته کوټ پتلون او بوټان واخلم، جوړه او سوټ به درته راوړم او موټر به درکړم، ددې په اوریدلو سره به بچی مکمل طور باندې متوجه شي نو په دې طریقه ماشوم بهتر پوهیږي او په شوق سره محنت کوي ، ځکه دغه شیان د بچی د طبعیت د غوښتنې مطابق دي ، بلکل د جنت معامله د الله تعالی له طرفه د انسانانو سره همدا سې ده ، دا ظاهري ترغیبات دي او اصل حقیقت او اصل جنت خو حصول د رضاء الهی دی . ورضوان من الله اکبر . الله اکبر کبیرا والحمد لله کثیرا و سبحان الله بکرة و اصیلا .

# اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

## د جنت فضیلت

| |
|---|
| ﴿۱﴾ عَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اللهُ تَعَالٰى |
| حضرت ابو هريره رضي الله عنه وايي چي رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل الله تعالى فرمايي ما تيار کړي |
| أَعْدَدْتُ لِعِبَادِيَ الصَّالِحِيْنَ مَا لَا عَيْنٌ رَأَتْ وَلَا أُذُنٌ |
| دي د خپلو نيکو بندګانو د پاره هغه شی چې تر ننه پوري نه يوې سترګې هغه شان شی ليدلی دی نه يو غوږ |
| سَمِعَتْ وَلَا خَطَرَ عَلٰى قَلْبِ بَشَرٍ |
| هغه شان اوريدلی دی او نه د يو انسان په زړه کې د هغه تصور راغلی دی که تاسو د دې خبرې تصديق کول |
| وَاقْرَءُوْا إِنْ شِئْتُمْ فَلَا تَعْلَمُ نَفْسٌ مَّا أُخْفِيَ لَهُمْ مِّنْ قُرَّةِ أَعْيُنٍ . مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.[1] |
| غواړئ نو دا آيت ووائي هيڅ سړي ته نه دی معلوم هغه شيان چې د دوی د سترګو د يخوالي لپاره پټ ساتلي شوي دي. |

**توضيح** : **مَا لَا عَيْنٌ رَأَتْ**: يعنې کومې سترګې د هغه نعمت ذات په محسوسه طريقه باندې نه دی ليدلی بلکه د هغه حسين صورت پټ دی ، **وَلَا أُذُنٌ سَمِعَتْ**: يعنې نه کوم غوږ د هغه حقيقي صفت اوريدلی دی او نه د هغه ځای ښايسته آوازونه په غوږونو لګيدلي دي .

**وَلَا خَطَرَ** : يعنې نه د هغه اصلي ماهيت او د عيش او عشرت تصور د چا په زړه باندې تير شوی دی ، مطلب دا دی چې په دنيا کې د جنت اصلي نعمتونو ته نه څوک رسيدلی شي ، نه په هغه باندې چاته احاطه شته ، هو ! هلته د ورتلو نه وروسته دا هر څه ښکاره شي .

**قُرَّةِ أَعْيُنٍ**: يعنې د سترګو کوم يخوالی چې الله تعالی د جنتيانو لپاره تيار کړی دی دا صرف د سترګو يخوالی نه دی بلکه دا يخوالی د هر قسم عيش او عشرت او خوشحالۍ نه کنايه ده ، ګويا د جنت ولاو ته به د زړه او ځان قرار حاصل شي لکه يو ستړی او کمزوری مسافر چې کور ته په رسيدلو سره آرام حاصلوي . يو چا ډير بهتر ويلي :

فالقت عصاها واستقر بها النوى     كما قرّ عينا بالأياب المسافرُ

---

(۱) اخرجه البخاري في صحيحه ۶/۳۱۸ رقم الحديث ۳۲۴۴ ومسلم في صحيحه ۴/۲۱۷۳ رقم الحديث (۲۸۲۴-۲)

## د جنت عظمت او قيمت

﴿۲﴾ وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَوْضِعُ سَوْطٍ فِي الْجَنَّةِ

او حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چي رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل په جنت کي د ديوي کوړي

خَيْرٌ مِّنَ الدُّنْيَا وَمَا فِيْهَا. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.[1]

برابر ځاي هم د دنيا او څه چي دنيا کي دي د ټولو نه بهتر. [بخاري او مسلم]

**توضيح:** (موضع سوط) يعني د يوي کوړي برابر ځاى به د دنيا او مافيها نه بهتروي. د دي وجه داده چي د جنت هر نعمت هميشه دى او د دنيا هر نعمت فاني دى، نو فاني نعمت د باقي او دائمي نعمت مقابله نه شي کولی. حضرت لبيد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ بهتر فرمايلي دي:

**الا کل شئ ما خلا الله باطل وکل نعيم لامحالة زائل**

د جنت نه مراد د الله تعالی رضامندي او خوشحالي ده، جنت د الله تعالی د رضامندئ مجموعه ده، چي کله د الله تعالی رضاء **ملاو شي** نو د باقي نعمتونو به څه وايي! د جنت نعمتونه او د هغی حاصلول الله تعلی لره الفوز الکبير دی لکه (**ذٰلِكَ الْفَوْزُ الْكَبِيْرُ**).

ياد ساتل پکار دي چي جنت يو دی مګر د هغه درجي او طبقي او دروازي اته دي. د هري طبقي بيل بيل نوم دی مثلا: (۱) جنت المأوی (۲) دار المقام (۳) دار السلام (۴) دار الخلد (۵) جنة النعيم (۶) جنة الفردوس (۷) جنة عدن (۸) طوبی.

## د جنت د حورو صفت

﴿۳﴾ وَعَنْ اَنَسٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ غَدْوَةٌ فِيْ سَبِيْلِ اللهِ

او حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چي رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. فرمايل په سهار او مابنام کي يو ځل د الله!

اَوْ رَوْحَةٌ خَيْرٌ مِّنَ الدُّنْيَا وَمَا فِيهَا وَلَوْ اَنَّ امْرَأَةً مِّنْ نِسَاءِ اَهْلِ الْجَنَّةِ

په لار کي وتل د دنيا او د دنيا د ټولو شيزونو نه بهتر دی او کچيري د جنتيانو نه د چا ښځه د ځمکي

اِطَّلَعَتْ اِلَى الْاَرْضِ اَضَاءَتْ مَا بَيْنَهُمَا وَلَمَلَأَتْ مَا بَيْنَهُمَا

طرف ته يو نظر سره وګوري د مشرق او مغرب منځ روښانه او رڼا کړي او د مشرق نه واخله مغرب پوري به ټوله فضاء

(۱) اخرجه البخاري في صحيحه ۶/۱۵ رقم الحديث ۲۷۹۶ والترمذي في السنن ۲۱۶/۵ رقم الحديث ۳۰۲۳

| |
|---|
| رِيْحًا وَلَنَصِيْفُهَا عَلَى رَأْسِهَا خَيْرٌ مِّنَ الدُّنْيَا وَمَا فِيْهَا. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ [1] |
| د خوشبوۍ نه ډكه كړي او د هغې د سريو ټادر د دې دنيا او د دنيا د ټولو ټيزونو نه بهتر دى. [بخاري] |

**توضيح**: نَصِيْفُهَا: يعني صرف په سر باندې يې چې كومه وړه لوپټه وي هغه به د دنيا و مافيها نه افضل وي. په ټول بدن باندې خوره شوې لوپټه خو به يې ډيره زياته اعلى وي. د دنيا شيان فانى دي او دا لوپټه باقي شوې ده په دغه وجه بهتره ده. د جنتي ښځو د حسن كتلو لپاره به داسې سترګې هم وركړې شي چې هغه شعاع ګانې برداشت كړې شي.

## د جنت د يوې ونې ذكر

| |
|---|
| ﴿۴﴾ وَعَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّ فِي الْجَنَّةِ شَجَرَةً |
| او حضرت ابو هريره رضي الله عنه وايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل په جنت كې يوه ونه ده كه يو |
| يَسِيْرُ الرَّاكِبُ فِيْ ظِلِّهَا مِائَةَ عَامٍ لَّا يَقْطَعُهَا |
| سور كس د هغه ونې سوري كې سل كاله روان وي بيا هم د هغه سوري مقدار به ختم نشي او په |
| وَ لَقَابُ قَوْسِ اَحَدِكُمْ فِي الْجَنَّةِ خَيْرٌ مِّمَّا طَلَعَتْ عَلَيْهِ |
| جنت كې ستاسو د ليندى كمان برابر ځاى د هغه ټولو ټيزونو نه بهتر او اعلى دى چې په هغه نمر |
| الشَّمْسُ اَوْتَغْرُبُ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. [2] |
| راخيژي يا پريوځي. [بخاري مسلم] |

**توضيح**: الراكب: يعنې دومره غټه ونه به وي چې تيز اس زغلونكى به د هغې په سوري كې سل كاله سفر وكړي بيا به هم د ونې سوري ختمه نشي، وايي دا به د طوبى ونه وي چې د هغې يو يو شاخ به د هر جنتي كور ته رسيدلى وي.

**قاب قوس**: دا لفظ (قاب) هم دى (قيب) هم دى (قاد) هم دى (قيد) هم دى د ټولو معنى مقدار ده اى مقدار قوس. د ليندې برابر ځاى مراد دى. دومره ځاى د دنيا او د مافيها نه ځكه بهتر دى چې دا دائمى دى او دنيا فانى ده.

---

(۱) اخرجه البخاري في صحيحه ۱۱/۳۱۸ رقم الحديث ۶۵۶۸ ومسلم في صحيحه رقم الحديث ۳/۱۴۴۹۹ رقم الحديث (۱۸۸۰-۱۱۲)
(۲) اخرجه البخاري في صحيحه ۱۱/۴۱۵ رقم الحديث ۶۵۵۲ ومسلم في صحيحه ۴/۲۱۷۵ رقم الحديث (۲۸۲۶-۶)

## د جنت خيمه

| |
|---|
| ﴿۵﴾ وَعَنْ أَبِيْ مُوْسٰى قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ لِلْمُؤْمِنِ فِي الْجَنَّةِ |
| او حضرت ابو موسیٰ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل مؤمن ته چې په جنت کې |
| لَخَيْمَةً مِّنْ لُؤْلُؤَةٍ وَّاحِدَةٍ مُّجَوَّفَةٍ عَرْضُهَا وَفِيْ رِوَايَةٍ |
| کومه خيمه ملاو شي هغه به پوره يوه کولاو (خالي) ملغلره [موتي] وي چې د هغې پلنوالی يو بل روايت |
| طُوْلُهَا سِتُّوْنَ مِيْلًا فِيْ كُلِّ |
| کې دي چې د هغې اوږدوالی به د شپيتو ميلو د مسافت په قدر وي د دې خيمې هر کوټ کې به د هغه |
| زَاوِيَةٍ مِّنْهَا أَهْلٌ مَّا يَرَوْنَ الْآخَرِيْنَ |
| مؤمن اهل او عيال (اهل خانه) او ديو کوټ سړي به د بل کوټ سړي نشي ليدلی دې ټول اهلِ خانو ته به |
| يَطُوْفُ عَلَيْهِمُ الْمُؤْمِنُ وَجَنَّتَانِ مِنْ فِضَّةٍ آنِيَتُهُمَا وَمَا فِيْهِمَا |
| مؤمن ځي راځي د دې نه علاوه به د مؤمن دپاره به دوه جنتونه د چاندي (سپين زر) وي چې د هغه جنتونو لوښي او |
| وَجَنَّتَانِ مِنْ ذَهَبٍ آنِيَتُهُمَا |
| څه چې به په دې جنتونو کې وي ټول به د چاندي وي او دوه جنتونه به د سرو زرو وي چې د هغه جنتونو لوښي |
| وَمَا فِيْهِمَا وَمَا بَيْنَ الْقَوْمِ وَبَيْنَ |
| او هر هغه شئ چې په دې کې دي او جنت العدن کې به د جنتيانو او د پروردګار د طرف نه د هغوئ ليدو په منځ کې به |
| أَنْ يَّنْظُرُوْا إِلٰى رَبِّهِمْ إِلَّا رِدَاءُ الْكِبْرِيَاءِ عَلٰى وَجْهِهٖ فِيْ جَنَّةِ عَدْنٍ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. [1] |
| د ذات باري تعالی د عظمت او بزرګۍ او د پردې نه علاوه بل هيڅ شی حائل (مانع) نه وي. [بخاري مسلم] |

**توضيح**: **لؤلؤة** دا ملغلرې ته ويلی کيږي چې ګرده وي چې د دې عمارت ډير زړه وړونکی وي او خيمه يې مزيداره وي. **واحدة**: يعنې د ډيرو ملغلرو د يوځای کولو نه به يو ځای جوړ شوی نه وي چې په دې کې جوړ راځي بلکې يوه غټه ملغلره به وي، ګول به وي، مينځ به يې خالی وي ډيره خوندوره به وي چې د دينه به زړه وړونکی او بې مثاله مکان جوړ شوی وي. **طولها**: يعنې د دې خيمې اوږدوالی او پلنوالی به دومره

(۱) اخرجه البخاري في صحيحه ۶/۳۱۸ رقم الحديث ۳۲۴۳ ومسلم في صحيحه ۴/۲۱۸۲ رقم الحديث (۲۸۳۸-۲۳) واحمد في المسند ۴/۴۰۰.

لوی وي چې طول به يې په شپیتو میلو باندې مشتمل وي نو ددینه اندازه لګیدلی شي چې ددې عرض به ځومره وي، او که عرض يې شپیته میله وي نو ددینه اندازه لګیدلی شي چې ددې خیمې پلنوالی والی به ځومره وسیع وي، په هر حال د روایت په دې اختلاف کې هیڅ پیچیدګي (مشکل) نشته، اصل مقصد د خیمې د پراخوالي او وسعت بیانول دي .**في كل زاوية**: یعني ددې خیمې او ددې عظیم الشان عمارت په هر کونج کې به ددغه مؤمن د کوروالا وي . **مايرون**: ما د نفي لپاره ده یعنې د یو کونج او یو طرف خلک به د بل کونج خلک لیدلی نشي. په یرون کې د جمع ضمیر اهل ته راجع دی ، معنوی طور باندې اهل هم جمع ده . **يطوف**:یعنې مؤمنان به خپل اهل وعیال ته ځي اوراځي معلومیږي چې په دغه اهل و عیال کې به د مؤمنانو بیبیانې هم وي، په **يطوفون** کې خاص اشاره ده . **وجلتان**: دا نوی کلام دی ای **وللمؤمنين جنتان** (**مابين القوم**) په دې جمله کې (**ما**) نافیه دی یعنې په کوم ځای کې یې په دې خیمه کې به د مؤمنینو لپاره د اوسیدلو ځای وي هلته به د الله تعالی په دیدار کې یواځې کبریاء پرده وي ددینه علاوه به هیڅ مانع نه وي، او دا نوراني پرده به هم حجاب نه جوړیږي بس دیدار به وي او همیشه به وي.

## د جنت نهرونه

﴿۶﴾ وَعَنْ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْجَنَّةِ
او حضرت عباده بن صامت رضي الله عنه وايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمایل په جنت سل درجې
مِائَةُ دَرَجَةٍ مَّا بَيْنَ كُلِّ دَرَجَتَيْنِ كَمَا بَيْنَ السَّمَاءِ
دي او د هردوو درجو په منځ کې دومره فاصله ده ځومره چې د آسمان او ځمکې په منځ کې ده او
وَالْاَرْضِ وَالْفِرْدَوْسُ اَعْلَاهَا دَرَجَةً
فردوس او د خپلو درجاتو په اعتبار سره د ټولو جنتونو نه اعلیٰ او اچت دی او د دې فردوس نه د
مِنْهَا تُفَجَّرُ اَنْهَارُ الْجَنَّةِ الْاَرْبَعَةُ وَمِنْ فَوْقِهَا يَكُوْنُ الْعَرْشُ فَإِذَا سَأَلْتُمُ اللهَ
جنت څلور نهرونه راوځي او د فردوس دپاسه عرشِ الٰهي دی نو هر کله چې تاسو د الله! نه جنت غواړئ
فَاسْأَلُوْهُ الْفِرْدَوْسَ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَلَمْ اَجِدْهُ فِي الصَّحِيْحَيْنِ وَ لَا فِيْ كِتَابِ الْحُمَيْدِيِّ.[1]
نو جنت الفردوس غواړئ داروایت ترمذي نقل کړی او ما داحدیث نه په صحیحینو کې پیدا کړی دی او نه کتاب حمیدي کې

---

[1] اخرجه الترمذي في السنن ۴/۵۸۳ رقم الحدیث ۲۵۳۱ وابن ماجه في السنن ۲/۱۴۴۸ رقم الحدیث ۴۳۳۱ وللبخاري نحوه ۶/۱۱ رقم: ۲۷۹۰

**توضیح**: انهار الجنة: د عرش لپاره فرش د جنت الفردوس چت دی دا د ټولو نه افضل جنت دی ، د جنت الفردوس لاندې څلور نهرونه بهيږي کوم چې په ټولو جنتونو کې چليږي .(۱) د اوبو نهر (۲) د شهدو نهر (۳) د شرابو نهر (۴) او د شودو نهر . د دينه علاوه درې قسمه نور نهرونه به هم وي د کومو ذکر چې په قرآن کريم کې هم راغلی دی. (۱) تسنيم : دا نرمي اوبه دي چې د جنت په هوا کې به جاري وي. (۲) زنجبيل او سلسبيل : دا د ګرم مزاج اوبه دي لکه څنګه چې قهوه او چائ دئ. (۳) کافور: دا دې چينې او نهر مزاج به يخ وي لکه څنګه چې يخ مشروبات وي .په قرآن کريم کې د دغه څلورو مشهورو نهرونو په باره کې دغه رنګ ارشاد دی : ﴿فِيهَا أَنْهَارٌ مِّن مَّاءٍ غَيْرِ آسِنٍ وَأَنْهَارٌ مِّن لَّبَنٍ لَّمْ يَتَغَيَّرْ طَعْمُهُ وَأَنْهَارٌ مِّنْ خَمْرٍ لَّذَّةٍ لِّلشَّارِبِينَ وَأَنْهَارٌ مِّنْ عَسَلٍ مُّصَفًّى﴾ .سبحان الله ، اللهم ارزقنا جنة الفردوس و نعيمها وانهارها و تسنيمها و زنجبيلها و سلسبيلها !!

## د جنت د يو بازار ذکر

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۷﴾ وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ فِي الْجَنَّةِ لَسُوْقًا | | | | | | |
| او حضرت انس رضي الله عنه وايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل په جنت کې يو بازار دی چې په | | | | | | |
| يَأْتُوْنَهَا | كُلَّ | جُمُعَةٍ | فَتَهُبُّ | رِيْحُ | الشِّمَالِ | |
| دغه کې هره جمعه خلق جمع کېږي او هلته به شمالي هوا چليږي چې د جنتيانو په مخونو او کپړو | | | | | | |
| فَتَحْثُوْ | فِيْ | وُجُوْهِهِمْ | وَثِيَابِهِمْ | فَيَزْدَادُوْنَ | حُسْنًا | |
| باندې به لګيږي چې هغې سره به هلته د موجوده جنتيانو حسن او جمال کې اضافه کېږي او هر کله | | | | | | |
| وَجَمَالًا | فَيَرْجِعُوْنَ | إِلٰى | أَهْلِيْهِمْ | | | |
| چې هغه خلق ډير حسين او سائسته شي او خپلو کورونو ته بيرته راشي نو د هغوی کور والا به هغوی | | | | | | |
| وَقَدِ ازْدَادُوْا حُسْنًا وَّجَمَالًا فَيَقُوْلُ لَهُمْ أَهْلُوْهُمْ وَاللهِ لَقَدِ ازْدَدْتُمْ بَعْدَنَا | | | | | | |
| ته وايي چې قسم په الله د مونږ نه جدا کېدو سره تاسو خپل حسن او جمال څو مره زيات کړی دی د دې په | | | | | | |
| حُسْنًا وَّجَمَالًا فَيَقُوْلُوْنَ وَأَنْتُمْ. وَاللهِ لَقَدِ ازْدَدْتُمْ بَعْدَنَا حُسْنًا وَّجَمَالًا. رَوَاهُ مُسْلِمٌ [1] | | | | | | |
| جواب کې به هغوئ وو ايي او قسم په الله زمونږ د تلو نه روسته تاسو هم خپل حسن او جمال زيات کړی دی [مسلم] | | | | | | |

**توضيح**: لسوقاً د بازار نه مراد د حسن او جمال د زياتوالي مركز دی چې هلته به جنتيان **خلک** هره جمعه جمع كيږي او د دوی په حسن كې به زياتوالی راځي .**فتحثو**: يعنې دغه شمالي هوا به د هغو خلكو په مخونو باندې مشک او عنبر او خوشبويې وشيندي او دې عمل ته د خوشبو سپرې هم ويلی شي.**حسناً وجمالاً**: دغه حسن او جمال د دې مشک و عنبر او خوشبو د اسپرې په وجه زياتيږي . د دې حسن د بازار لپاره به خپل يو رونق وي چې په ډې سره به د ټولو خلكو حسن زياتيږي ، دلته په كورونو كې به د ښځو حسن هم زياتيږي نو دواړه به يو بل ته د ښائسته كيدلو خوشخبري وركوي .

## د جنت د نعمتونو تفصيلي بيان

| |
|---|
| ﴿۸﴾ وَعَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ أَوَّلَ زُمْرَةٍ |
| او حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل كوم خلق چې به په جنت كې |
| يَدْخُلُوْنَ الْجَنَّةَ عَلَى صُوْرَةِ الْقَمَرِ لَيْلَةَ الْبَدْرِ |
| مخكې داخل شي هغوئ به د څوارلسمې شپې د سپوږمۍ په شان روښانه او منور وي او هغوی نه |
| ثُمَّ الَّذِيْنَ يَلُوْنَهُمْ عَلَى أَشَدِّ كَوْكَبٍ دُرِّيٍّ |
| وروسته په چې كوم خلق داخليږي هغوی به د هغه ستوري په شان روښانه وي كوم چې آسمان كې |
| فِي السَّمَاءِ إِضَاءَةً قُلُوْبُهُمْ عَلَى قَلْبِ رَجُلٍ وَاحِدٍ |
| ډير تيز ځليږي د ټولو جنتيانو زړونه به د يو جنتي د زړه په شان وي نه به د هغوی په مينځ كې څه |
| لَا اِخْتِلَافَ بَيْنَهُمْ وَلَا تَبَاغُضَ |
| اختلاف وي او نه به هغوی يو د بل سره څه بغض او عداوت لري په هغوئ كې به هر يو سړي د پاره د حور |
| لِكُلِّ امْرِئٍ مِّنْهُمْ زَوْجَتَانِ مِنَ الْحُوْرِ الْعِيْنِ يُرٰى مُخُّ سُوْقِهِنَّ مِنْ وَّرَآءِ الْعَظْمِ |
| عينو نه دوه دوه بيبياني وي چې د هغوئ د پنډيو د هډوكو مازغه به د هډوكو او غوښې نه بهر په |
| وَاللَّحْمِ مِنَ الْحُسْنِ يُسَبِّحُوْنَ اللهَ بُكْرَةً وَّعَشِيًّا لَا يَسْقَمُوْنَ وَلَا يَبُوْلُوْنَ |
| نظر راځي ټول جنتيان به سهار ماښام الله ياد وی نه به هغوی بيمار كيږي نه به تشې متيازې كوي او نه |
| وَلَا يَتَغَوَّطُوْنَ وَلَا يَتْفُلُوْنَ وَلَا يَمْتَخِطُوْنَ اٰنِيَتُهُمُ الذَّهَبُ وَالْفِضَّةُ |
| به غټې اودس ماتې كوي نه به توكې او نه به پوزه سونړ كوي د هغوئ لوښي به د سروزرو او سپينو زرو وی |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وَأَمْشَاطُهُمُ | الذَّهَبُ | وَ | قُوْدُ | مَجَا | مِرِهِمُ | الْأَلُوَّةُ |

د هغوئ ګمنځې به د سرو زرو وي او د هغوئ د د خوشبو خشاک به عود وي د هغوئ خوله به د

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَرَشْحُهُمُ | الْمِسْكُ | عَلَى | خُلُقِ | رَجُلٍ |

مشک په شان خوشبوداره وي او ټول جنتیان به د یو سړي په شان وي په عادت او سیرت کې شکل او

وَّاحِدٍ عَلَى صُوْرَةِ أَبِيْهِمُ آدَمَ سِتُّوْنَ ذِرَاعًا فِي السَّمَاءِ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.[1]

صورت کې د خپل پلار آدم شپیته ګزه اوږد قد به لري. [بخاري او مسلم]

**توضیح : علی قلب رجل واحد:** یعنې یو به د بل سره اتفاق وي اختلاف نه وي او ټول به نیکان وي. **الحور العین:** دوه حوری به د دنیا د ښځو نه وي چې د جنت د حورو نه به اعلی وي او باقی او یا حورې به د جنت وي.

**یری مخ:** یعنې دغه حوری به دومره ښایسته او صفا او شفافې وي چې د اویا جوړونو او یا د غوښو او یا د هډوکو په مینځ کې د هغوی په پنډیو کې به د جسم ماغزه (نلي) په نظر راځي، په دې کې د ښایست سره سره دیته هم اشاره ده چې دغه حورو ته په کتلو سره هیڅ کدورت او نفرت به نه پیدا کیږي بلکه رغبت به پیدا کیږي. دلته دا خبره هم عرض کومه چې الله تعالی د جنت د حورو په دغه کیفیت او صفت باندې په دنیا کې د یوه ماهی نسل پیدا کړی دی کوم ته چې شیشه ماهی ویلی کیږي، دغه ماهی ته چې د بهر نه کتونکي کله ګوري نو د هغه په خیټه کې کولمې وغیره ټول په نظر راځي، ما په خپله د کلفټن کراچی په ماهی خانه کې دغه ماهی لیدلی دی د کوم نه چې هیڅ شبه باقی نه پاتې کیږي چې د غوښې پوست او هډوکو په مینځ کې ماغزه څنګه په نظر راځي، په هر حال په نظر راتلل کوم محال شی نه دی.

**یسبحون:** په جنت کې چې خلک کوم عبادت یا تسبیح کوي دا د امور تکلیفو نه نه دي بلکه یو طبعی عمل به وي، لکه څنګه چې په ساه اخیستلو کې تکلیف نه وي دغه تسبیحات به هم دغه رنګ وي.

**لایتغوطون:** تغوط لوی اودس ماتي کولو ته ویل کیږي. **لایتفلون:** دا د تفلل نه د توکلو په معنی سره دی یعنې د خولې ټول شیان لکه بلغم او لاړې هیڅ به هم نه وي. **ولایتمخطون:** دا امتخاط د مخاط نه دی د پوزې او به خټې وغیره ته ویل کیږي. **امشاط:** دا د مشاط جمع ده ږمنځې ته وایي. **مجامر:** دا د مجمر جمع ده آنګیټې (بخاری) ته وایي. (وقود) په واو باندې زوَر دی په اور کې سوزیدونکی خشاکو ته وایي. الالوّة: اُلُوَّةُ په همزه باندې پیښ دی په لام باندې هم پیښ دی په واو باندې شد دی په آخر کې ګول تاء ده.

---

(۱) اخرجه البخاري في صحيحه ۶/۳۱۸ رقم الحديث ۳۲۴۵ ومسلم في صحيحه ۴/۲۱۷۹ رقم الحديث (۲۸۳۴-۱۵) واحمد في المسند ۳/۱۶.

(عود) ته ويل کيږي، دې ته (اگر) هم ويل کيږي، (اگربتی) چې خلک يې د خوشبويې لپاره بلوي دا د الوّتيو ه مصنوعی نمونه ده، ددې ترجمه لوبان (ديوې ونې خوشبوداره ماده ده) هم ده.

**رشحهم:** خوله مراد ده دا بدبوداره نه ده بلکه خوشبوداره د مشک او عنبر پشان به وي. **خلق رجل واحد:** که په خاء باندې ضمه وي نو دا به د اخلاقو په معنی سره وي چې ددې تذکره ددينه مخکې شوې ده. نو ځکه ملا علی القاری رحمه الله فرمايي چې دلته په خاء باندې زور زيات مناسب دی چې د تخليق په معنی سره دی، مطلب دا چې ټول اهل جنت به هم عمره وي يعنې د ۳۰ او ۳۳ کالو په عمر کې به وي او دا اهل جنت به د خپل پلار رجان حضرت آدم عَلَيْهِ السَّلَامُ په صورت کې وي يعنې د هغه د قد او قامت پشان ۶۰ گزه اوږد قد او قامت به لري، په دې طريقه به د حديث آخري جمله د حديث د اولې جملې **على خلق رجل واحد** لپاره وضاحت او تفسير جوړ شي.

| |
|---|
| ﴿۹﴾ وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ أَهْلَ الْجَنَّةِ |
| او حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل جنتي خلق به په جنت کې بهتر |
| يَأْكُلُوْنَ فِيْهَا وَيَشْرَبُوْنَ وَلَا يَتْفُلُوْنَ وَلَا يَبُوْلُوْنَ وَلَا يَتَغَوَّطُوْنَ |
| خوري او څکي به ليکن نه به توکل کوي نه به وړې بولې کوي او نه به غټ اودس ماتی او نه به پوزه |
| وَلَا يَمْتَخِطُوْنَ قَالُوْا فَمَا بَالُ الطَّعَامِ |
| سوڼ کوي بعضو صحابو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ عرض وکړو جنتي د خوراک فضله بيا څه شوه حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| قَالَ جُشَاءٌ وَرَشْحٌ كَرَشْحِ الْمِسْكِ |
| وفرمايل دخوراک فضله به اډرکی او خوله شي چې د مشکو د خوشبو په شان به وي او د جنتيانو |
| يُلْهَمُوْنَ التَّسْبِيْحَ وَالتَّحْمِيْدَ |
| په زړونو کې به تسبيح او تحميد او ذکر الهي داسې واچول شي چې هغه به د هغوئ عادت او معمول |
| كَمَا يُلْهَمُوْنَ النَّفَسَ. رَوَاهُ مُسْلِمٌ.[1] |
| جوړ شي لکه څنګه چې ساده جاري ده. [مسلم] |
| ﴿۱۰﴾ وَعَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ يَدْخُلُ |
| او حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل کوم سړی چې جنت ته |

(۱) اخرجه مسلم في صحيحه ۴/۲۱۸۰ رقم الحديث (۲۸۳۵-۱۸) والدارمي في السنن ۲/۴۳۱ رقم الحديث ۲۸۲۸ وأحمد في المسند ۳/۳۴۹.

| الْجَنَّةَ | يَنْعَمُ | وَلَايَبْأَسُ | وَلَايَبْلٰى | ثِيَابُهُ |
|---|---|---|---|---|
| داخليږي عيش او عشرت كې به وي نه به ورسره فكرا و غم وي او نه به يي كپړي خيرنيږي او نه به | | | | |
| وَلَايَفْنٰى شَبَابُهُ. رَوَاهُ مُسْلِمٌ.(۱) | | | | |
| يي ځواني فنا كيږي. [مسلم] | | | | |

**توضيح**: لايباس: يعني جنتيان به په كوم غم فكر كې نه وي او نه ورته څه فقر او لوږه رسيږي ولايبلي: د ابلی يبلی د سمع نه دی د جامو د زړيدلو په معنی دی يعني داسې به نه وي چې د جنت نعمتونه د دنيا د نعمتونو په شان زاړه او بيا ختم شي

الاكل شيئ ما خلا الله باطل　　　وكل نعيم لا محالة زائلة

| ﴿۱۱﴾ وَعَنْ أَبِيْ سَعِيْدٍ وَّأَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| او حضرت ابو سعيد خدري او حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا وايي چی رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل | | | | | | | |
| يُنَادِيْ | مُنَادٍ | إِنَّ | لَكُمْ | أَنْ | تَصِحُّوْا. | | |
| په جنت كې به يو اعلان كونكی اعلان وكړي ای جنتيانو! تاسو صحت او تندرستی سره اوسئ | | | | | | | |
| فَلَا | تَسْقَمُوْا | أَبَدًا | وَّإِنَّ | لَكُمْ | أَنْ | تَحْيَوْا | فَلَا تَمُوْتُوْا |
| تاسو ته به هيڅ كله بيماري نه لګيږي او تاسو هميشه ژوندي او سلامت اوسئ مرګ به هيڅ كله | | | | | | | |
| أَبَدًا | وَّإِنَّ | لَكُمْ | أَنْ | تَشِبُّوْا | فَلَا | تَهْرَمُوْا | أَبَدًا |
| تاسو ته نه راځي تاسو هميشه ځوانان اوسئ بوډا توب به هيڅكله درته نه راځي او تاسو د عيش | | | | | | | |
| وَّإِنَّ لَكُمْ أَنْ تَنْعَمُوْا فَلَا تَبْأَسُوْا أَبَدًا. رَوَاهُ مُسْلِمٌ(۲) | | | | | | | |
| او عشرت ژوند تيروئ هيڅ قسمه فكر وغم او رنج او درد به درته نه رسيږی. [مسلم] | | | | | | | |
| ﴿۱۲﴾ وَعَنْ أَبِيْ سَعِيْدِ نِ الْخُدْرِيِّ اَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِنَّ أَهْلَ الْجَنَّةِ | | | | | | | |
| او حضرت ابو سعيد خدري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی چی رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل جنتيان به د | | | | | | | |

(۱) اخرجه مسلم في صحيحه ۴/۲۱۸۱ رقم الحديث (۲۸۳۸-۲۱) والترمذي في السنن ۴/۵۸۰ رقم الحديث ۲۵۲۶ واحمد في المسند ۲/۳۷.

(۲) اخرجه مسلم في صحيحه ۴/۲۱۸۱ رقم الحديث (۲۸۳۷-۲۲) واخرجه الترمذي في السنن ۵/۴۳۹ رقم الحديث ۳۲۴۶ واحمد في المسند ۳/۹۵.

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| يَتَرَاءَوْنَ | أَهْلَ | الْغُرَفِ | مِنْ | فَوْقِهِمْ | كَمَا | تَتَرَاءَوْنَ | الْكَوْكَبَ |
| خپل ځان نه بره د بالاخانو والا خلق داسې وينې څرنګه چې تاسو روښانه ستوري وينئ چې د | | | | | | | |
| الدُّرِّيَّ | الْغَابِرَ | فِي | الْأُفُقِ | مِنَ | الْمَشْرِقِ | أَوِ | الْمَغْرِبِ لِتَفَاضُلِ |
| آسمان مشرقي يا مغربي افق کې وي او د هغه اوچت والي او ښه ښکاره کيدو تعلق به د مرتبو د | | | | | | | |
| مَا | بَيْنَهُمْ | قَالُوْا | يَا | رَسُوْلَ | اللهِ | | |
| فرق سره وي چې د اهلِ جنت په منځ کې به پيدا کولی شي صحابو کرامو عرض وکړو يارسول الله! دا | | | | | | | |
| تِلْكَ | مَنَازِلُ | الْأَنْبِيَاءِ | لَايَبْلُغُهَا | غَيْرُهُمْ | | | |
| بالاخاني او ښائسته محلات به آيا د انبياو وي چې هغه ته د بل چا رسيدل نه وي حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ | | | | | | | |
| قَالَ | بَلَى | وَالَّذِي | نَفْسِي | بِيَدِهِ | | | |
| وفرمايل ولې نه قسم دی په هغه ذات چې د هغه په قبضه کې ځما ساه ده هغه اوچت محلات او | | | | | | | |
| رِجَالٌ | اٰمَنُوْا | بِاللهِ | وَصَدَّقُوا | الْمُرْسَلِيْنَ. | مُتَّفَقٌ | عَلَيْهِ.[1] | |
| بالاخانو ته به د هغه خلقو رسيدل هم وي چې الله! باندې ايمان راوړي او د رسولانو تصديق وکړي. | | | | | | | |

**توضيح : يتراؤن**: يعنې اهل جنت به د خپلو ځانو نو نه بره بالاخانو ته داسې ګوري لکه څنګه چې تاسو روښانه ستوري ته ګورئ. **الغابر**: يعنې هغه ستوري چې د راختلو نه وروسته نه ډوبيږي بلکه باقي پاتې کيږي. **قال بلى**: يعنې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د صحابه کرامو په جواب کې وفرمايل چې نه نه! دا مقام صرف د انبياو پورې خاص نه دی چې نور څوک به هلته رسيدلی نشي بلکه کوم کسانو چې ايمان راوړلو او د انبياء کرامو تصديق يې وکړو هغوی به هم د غو ځايونو ته رسيږي او د دې نعمتونو نه به خوند اخلي.

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۱۳﴾ وَعَنْ | أَبِيْ | هُرَيْرَةَ | قَالَ | قَالَ رَسُوْلُ اللهِ | صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ | يَدْخُلُ الْجَنَّةَ |
| او حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل په جنت کې به د داسې خلقو | | | | | | | |
| أَقْوَامٌ | أَفْئِدَتُهُمْ | مِثْلُ | أَفْئِدَةِ | الطَّيْرِ. | رَوَاهُ مُسْلِمٌ.[2] | | |
| ډير جماعتونه داخليږي چې د هغوئ زړونه به د مارغانو په شان وي. [مسلم] | | | | | | | |

(۱) اخرجه البخاري في صحيحه ۶/۳۲۰ رقم الحديث ۳۲۵۶ ومسلم في صحيحه ۴/۲۱۷۷ رقم الحديث (۲۸۳۱-۱۱).

(۲) اخرجه مسلم في صحيحه ۴/۲۱۸۳ رقم الحديث ۲۸۴۰-۲۷) واحمد في المسند ۲/۳۳۱.

**توضیح** : افئدة الطیر : یعنې جنت ته به ډیر داسې مخلوقات هم ځي چې د هغوی زړونه به په خوف خدا او نرمۍ کې د مرغانو د زړونو پشان نرم وي، مرغان په معمولي ویرې سره تښتي ، یا په توکل او اعتماد کې به د هغوی زړونه د مرغانو د زړونو پشان متوکل وي.

## په جنت کې د الله تعالی دائمی رضا

﴿۱۴﴾ وَعَنْ أَبِيْ سَعِيْدٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ اللهَ تَعَالٰى

او حضرت ابوسعید خدري رضي الله عنه وایي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم و فرمایل الله جل جلاله به جنتیانو

يَقُوْلُ لِأَهْلِ الْجَنَّةِ يَا أَهْلَ الْجَنَّةِ فَيَقُوْلُوْنَ لَبَّيْكَ

ته اواز وکړي ای جنتیانو! ټول جنتیان به جواب ورکړي ای زمونږ پروردګاره! مونږ حاضریو ستا په

رَبَّنَا وَسَعْدَيْكَ وَالْخَيْرُ فِيْ يَدَيْكَ

خدمت کې موجود یو مکمل او پوره خیر ستا په قبضه قدرت او اراده کې دی الله جل جلاله به

فَيَقُوْلُ هَلْ رَضِيْتُمْ فَيَقُوْلُوْنَ وَمَا لَنَا

فرمایي چې آیا تاسو زما نه راضي او خوشحاله شوئ ، هغوئ به عرض وکړي چې آو مونږ به ستا نه

لَا نَرْضٰى يَا رَبِّ وَقَدْ أَعْطَيْتَنَا مَا لَمْ تُعْطِ

راضي او خوشحاله ولې نه یو تا خو مونږ ته هغه لوی نه لوی نعمت او وچتوالی راکړو چې نور مخلوق

أَحَدًا مِّنْ خَلْقِكَ فَيَقُوْلُ أَلَا أُعْطِيْكُمْ

ته دې ندی ورکړي نو الله تعالی به فرمایي آیا زه تاسي ته ددې نه بل بهترین نعمت درنکړم ؟ نو

أَفْضَلَ مِنْ ذٰلِكَ فَيَقُوْلُوْنَ يَارَبِّ وَأَيُّ شَيْءٍ

جنتیان به عرض وکړي ای پروردګاره ددې نه به بل کوم بهترین نعمت وي ، نو الله جل جلاله به وفرمایي

أَفْضَلُ مِنْ ذٰلِكَ فَيَقُوْلُ أُحِلُّ عَلَيْكُمْ رِضْوَانِيْ

بل لوی نعمت دا دی چې ما خپله رضا په تاسې خوره کړه زه ستاسو نه راضی او خوشحاله یم . او بیا

| فَلَا أَسْخَطُ عَلَيْكُمْ بَعْدَهُ أَبَدًا. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.(۱) |
|---|
| به ستا سو نه هیڅ کله ناراضه نه شم. بخاري ومسلم) |

**توضیح**: احل علیکم: یعنې زه اوس په تاسو باندې خپله رضا او خپله خوشحالي نازلومه، اوس به زه همیشه ستاسو نه راضی یمه او هیڅکله به هم ستاسو نه ناراضه کیږم، دالله تعالی ارشاد دی: ﴿وَرِضْوَانٌ مِّنَ اللَّهِ أَكْبَرُ﴾

## په جنت کې چې څه غواړئ نووي غواړئ

| ﴿۱۵﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِنَّ |
|---|
| او حضرت ابوهریره رضي الله عنه نه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل په تاسو کې چې کوم |
| أَدْنٰى مَقْعَدِ أَحَدِكُمْ مِّنَ الْجَنَّةِ |
| سړی د ټولونه د ادنٰی درجې او کمتر مقام جنتي وي دهغه به دا مرتبه وي چې الله!به هغه ته فرمایي |
| أَنْ يَّقُوْلَ لَهُ تَمَنَّ فَيَتَمَنّٰى |
| کوم خواهش چې لري هغه بیان کړه او څه چې غواړي وغواړه هغه به خپلي ارزوګانې او خواهشونه |
| وَيَتَمَنّٰى فَيَقُوْلُ لَهُ هَلْ |
| ظاهر کړي او بار بار به يې ښکاره کوي الله! به فرمايي آيا تا خپلي ارزوګانې بیان کړې هغه به عرض وکړو چې |
| تَمَنَّيْتَ فَيَقُوْلُ نَعَمْ فَيَقُوْلُ لَهُ |
| هو الله! به ورته فرمايي تا چې کومي ارزوګانې بیان کړي او څه دي وغوښتل نه صرف هغه بلکه |
| فَإِنَّ لَكَ مَا تَمَنَّيْتَ وَمِثْلَهُ مَعَهُ. رَوَاهُ مُسْلِمٌ.(۲) |
| هغو مره نور هم تاته مزید درکړی شو. [مسلم] |

## هغه څلور دریابونه چې د هغو سرچشمه (جرړه) په جنت کې ده

| ﴿۱۶﴾ وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَيْحَانُ وَجَيْحَانُ |
|---|
| او حضرت ابوهریره رضي الله عنه وايي چې حضور صلی الله علیه وسلم وفرمایل سیحان جیحان فُرات او نیل |

وَالْفُرَاتُ وَالنِّيْلُ كُلٌّ مِنْ أَنْهَارِ الْجَنَّةِ. رَوَاهُ مُسْلِمٌ.[1]

د دي ټولو دريابونو تعلق د جنت د نهرونو او چينو سره دی. [مسلم]

**توضيح**: سيحان وجيحان: دریای نیل په مصر کې دی او دریاي فرات د کوفې او بغداد سره دی، په دې کې د هیچا اختلاف نشته، هو! د جیحون دریاب او د سیحون دریاب په تعیین کې اختلاف دی، په زیر بحث حدیث کې د سیحان او جیحان دوو دریابونو چې کوم نومونه راغلي دا دواړه دریابونه په بلاد عواصم کې د مصیصه او طرطوس په مینځ کې واقع دي او د جیحون او سیحون په نوم سره مشهور دي، دواړه دریابونه د شام په څمکه کې واقع دي او د روم په بحر کې توییږي. د دې برعکس د بلخ او ترک په علاقه کې هم دوه نهرونه دي هغه هم د سیحون او جیحون په نوم سره مشهور دي، د یوه نوم نهر الترک دی او د بل نوم نهر بلخ دی، په دې حدیث کې د غه دوه نهرونه مراد نه دي بلکه د شام والا دوه غټ نهرونه مراد دي.

**من انهار الجنة**: یعنې د غه څلور نهرونه په فوائدو کې د جنت د څلورو نهرونو سره مشابه دي په د غه وجه دیته انهار الجنة ویلی شوي دي. یا مطلب دا دی چې په څمکه کې د بهیدونکو د غه څلورو نهرونو اصل ماده او مرکز په جنت د بهیدونکو څلورو نهرونو دی چې د عرش لاندې د **سدرة المنتهی** نه جاري کیږي او په جنتونو کې بهیږي بیا د هغو او به دنیا ته راغللې او د **جیحون** او **سیحون** او نیل او فرات په نومونو سره مشهور شول په د غه وجه دیته **انهار الجنة** ویلی شوي دي.

## د جنت وسعت او د خلکو کثرت

| ﴿۱۷﴾ | وَعَنْ | عُتْبَةَ | بْنِ | غَزْوَانَ | قَالَ | ذُكِرَ | لَنَا |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| او حضرت عتبه بن غزوان رضي الله عنه وايي زمونږ مخکې دا ذکر وشو چې حضور صلی الله علیه وسلم او فرمايل | | | | | | | |
| أَنَّ | الْحَجَرَ | يُلْقَى | مِنْ | شَفَةِ | جَهَنَّمَ | فَيَهْوِي | |
| که د دوزخ د غاړې نه یو کاڼی را وغورځول شي نو هغه به او یا کاله پوري لاندې روان وي او د دوزخ | | | | | | | |
| فِيهَا | سَبْعِينَ | خَرِيفًا | لَا | يُدْرِكُ | لَهَا | قَعْرًا | وَاللهِ |
| بیخ ته به ونه رسیږي قسم په الله دوزخ به ډک کړی شي او حضرت عتبه رضي الله عنه وايي زمونږ مخکې د | | | | | | | |
| لَتُمْلَأَنَّ | وَلَقَدْ | ذُكِرَ | لَنَا | أَنَّ | مَا | بَيْنَ | مِصْرَا | عَيْنِ |
| حضور دا ارشاد ګرامي هم ذکر شو چې د جنت د یوې دروازې د دواړو بازوګانو په منځ کې د | | | | | | | |

(۱) اخرجه مسلم في صحيحه ۲۱۸۳ رقم الحديث (۲۸۳۹-۲۶) واحمد في المسند ۲/۴۴۰)

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| مِنْ | مَصَارِيْعِ | الْجَنَّةِ | مَسِيْرَةُ | أَرْبَعِيْنَ | سَنَةً | وَلَيَأْتِيَنَّ. |
| څلويښت کاله مسافه او فاصله ده او يوه ورځ به داسې راشي چې جنت به د دومره وسعت باوجود | | | | | | |
| عَلَيْهَا يَوْمٌ وَّهُوَ كَظِيْظٌ مِّنَ الزِّحَامِ. رَوَاهُ مُسْلِمٌ[۱] | | | | | | |
| د خلقو نه ډک کړی شي. [روايت کړی دی مسلم] | | | | | | |

**توضيح**: كظيظ: د کوم شي دومره ډکيدل چې ساه اخيستل سخت شي ديته كظيظ ويلی کيږي، مراد زيات ډکيدل دي، دلته دا بيانول مقصود دي چې د جنت د دروازې دوه پلې د دومره پراخوالي باوجود به يوه ورځ په ده باندې داسې هم راځي چې د خلکو د ازدحام او ګڼې په وجه به دا دروازه دومره ډکه وي چې په دې کې به د خلکو ساه اخيستل سخت شي او د كظيظ صورت به پيدا شي.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِيْ

## د کائناتو د پيدا ئېښت ذکر

| | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۱۸﴾ | عَنْ | أَبِيْ | هُرَيْرَةَ | قَالَ | قُلْتُ | يَا | رَسُوْلَ | اللهِ | مِمَّ. خُلِقَ | الْخَلْقُ |
| حضرت ابوهريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي ماعرض وکړو يارسول الله! مخلوق د کوم شي نه پيداشوی دی | | | | | | | | | | |
| قَالَ | مِنَ | الْمَاءِ | قُلْنَا | الْجَنَّةُ | مَا | بِنَاءُهَا | | | | |
| حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل د اوبو نه بيا مونږ پوښتنه وکړه چې جنت د څه شي نه جوړ دی؟ | | | | | | | | | | |
| قَالَ | لَبِنَةٌ | مِّنْ | ذَهَبٍ | وَّلَبِنَةٌ | مِّنْ | فِضَّةٍ | | | | |
| وي فرمائل د جنت تعمير د خښتونه دی چې يوه خښته د سروزرو او بله خښته د سپينو زرو ده ددې | | | | | | | | | | |
| وَمِلَاطُهَا | الْمِسْكُ | الْأَذْفَرُ | وَحَصْبَاؤُهَا | اللُّؤْلُؤُ | | | | | | |
| مساله به تيز خوشبودار وي او د دې شګې او کاڼي به په رنګ او چمک کې دملغلرو او يا قوتو په | | | | | | | | | | |
| وَالْيَاقُوْتُ | وَتُرَابُهَا | الزَّعْفَرَانُ | مَنْ | يَدْخُلُهَا | يَنْعَمُ | | | | | |
| شان وي او ددې خاوره دزعفرانو ده څوک چې پکې داخل شي عيش او عشرت کې به وي هيڅ کله | | | | | | | | | | |

| |
|---|
| وَلَا يَبْأَسُ وَ يَخْلُدُ وَلَا يَمُوْتُ وَلَا تَبْلَى ثِيَابُهُمْ وَلَا |
| به غم خفګان نهويني هميشه به ژوندي وي مري به نه نه به يي لباس (جامې) زړيږي كيږي او نه به |
| يَفْنٰى شَبَابُهُمْ. رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالتِّرْمِذِيُّ وَالدَّارِمِيُّ.(1) |
| يي ځواني فناء كيږي. [احمد ، ترمذي ، دارمي] |

**توضیح** : **من الماء**: يعنې د هر شي ماده او اصل د اوبو نه دی ، د کائناتو د تخليق ابتداء څنګه وشوه؟ په دې باره کې خو د ټولو نه مخکې هغه حديث دی چې په ابن ماجه وغيره کې دی چې (**كان الله و ليس معه شئ**) يعنې صرف د الله تعالى ذات وو، نور څه نه وو. د تورات په سفر اول کې يو روايت دی چې بيا الله تعالى يو شنه ملغلره پيدا کړه او په هغې باندې يې د هيبت نظر واچولو نو هغه ويلې شوه او د هغه نه اوبه وجود ته راغلې. په قرآن کې دغه صورت داسې بيان شوی دی ﴿**وَكَانَ عَرْشُهُ عَلَى الْمَاءِ**﴾ يعنې پورته عرش وو او لاندې اوبه وې، د دينه وروسته الله تعالى په هغو اوبو باندې د هيبت او رعب نظر واچولو چې په دې سره اوبه په جوش کې راغلې او د سوزيدو سره ترينه لوګی پورته شو ، د دغه لوګی نه الله تعالى اسمانونه پيدا کړل ﴿**ثُمَّ اسْتَوَى إِلَى السَّمَاءِ وَهِيَ دُخَانٌ**﴾ کې هم دغه حقيقت ته اشاره ده ، د اوبو د سوزيدو نه وروسته لاندې د ځګ په شکل کې تلچټ (لخه) پاتې شوه چې د بيت الله په مقام باندې ډکه شوې غونډۍ وه ، د دغه تلچټ نه الله تعالى ځمکې پيدا کړې ﴿**وَالْأَرْضَ بَعْدَ ذَٰلِكَ دَحَاهَا**﴾ کې هم دغه کيفيت ته اشاره ده ، ما دغه قصه څو ځايونو کې ليکل شوې ليدلې ده ، په اشعة اللمعات ج۴ ص۴۳۹ کې هم دغه قصه ليکل شوې ده اګر چې هغه مختصره ده ، ما يې يو څه تشريح او توضيح کړې ده .

**وملاطها**: د دوو خښتو د يو ځای کولو لپاره چې کومه مسالحه استعماليږي هغې ته ملاط ويل شوی دی، نن سبا ديته پلستر وايي . **الاذفر**: زيات خوشبوداره مشک او عنبر وسره نه پلستر شوی دی .

**حصباء**: سنګريزی (واړه کاڼي) دا د ښايست او زينت لپاره وي، دا به په پرق مرق کې د ملغلرو پشان وي ، په هر حال په دې حديث کې د کائناتو د تخليق پس منظر او د جنت ټوله نقشه بيان شوې ده .

| |
|---|
| ﴿۱۹﴾وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا فِي الْجَنَّةِ شَجَرَةٌ |
| او حضرت ابوهريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل په جنت کې چې هره و نه هم |

(1) اخرجه الترمذي في السنن ۴/۵۸۰ رقم الحديث ۲۵۲۶ والدارمي ۲/۴۲۹ رقم الحديث ۲۸۲۱ وأحمد في المسند ۲/۳۰۵

| |
|---|
| إِلَّا وَسَاقُهَا مِنْ ذَهَبٍ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ (۱) |
| ده د هغې تنه د سروزرو ده. [ترمذي] |
| ﴿۲۰﴾ وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ فِي الْجَنَّةِ مِائَةَ دَرَجَةٍ |
| او حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل په جنت کې به سل درجې وي |
| مَا بَيْنَ كُلِّ دَرَجَتَيْنِ. مِائَةُ عَامٍ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ هٰذَا |
| او د هرو دوو درجو په منځ کې د سل کاله مسافت فاصله ده دا روايت ترمذي نقل کړی دی او ويلي يي |
| حَدِيْثٌ حَسَنٌ غَرِيْبٌ. (۲) |
| دي چې دا حديث غريب دی |
| ﴿۲۱﴾ وَعَنْ أَبِيْ سَعِيْدٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ فِي الْجَنَّةِ مِائَةَ دَرَجَةٍ |
| حضرت ابو سعيد خدري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل په جنت کې سل درجې |
| لَوْ أَنَّ الْعَالَمِيْنَ اجْتَمَعُوْا فِيْ إِحْدَاهُنَّ لَوَسِعَتْهُمْ. |
| دي که د تمام عالم خلق په هغه يوه درجه کې هم جمع شي نو هغه به دټولو د پاره کافي وي دا روايت |
| رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ هٰذَا حَدِيْثٌ غَرِيْبٌ. (۳) |
| ترمذيؒ نقل کړی دی او ويلي يي دي چې دا حديث غريب دی. |

## د جنت فرش

| |
|---|
| ﴿۲۲﴾ وَعَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ قَوْلِهٖ تَعَالٰى |
| او حضرت ابو سعيد خدري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د الله جَلَّ جَلَالُهُ د دې ارشاد: |
| (وَفُرُشٍ مَّرْفُوْعَةٍ) قَالَ إِرْتِفَاعُهَا لَكَمَا |
| وَفُرُشٍ مَّرْفُوْعَةٍ او لوړ لوړ فرشونه او تختونه به وي د دې په تفسير کې فرمائيلي دي چې دهغه تختونو |

(۱) اخرجه الترمذي في السنن ۴/۵۷۶ رقم الحديث ۲۵۲۵.

(۲) اخرجه الترمذي في السنن ۴/۵۸۲ رقم الحديث ۲۵۲۹.

(۳) اخرجه الترمذي في السنن ۴/۵۸۳ رقم الحديث ۲۵۳۲ واحمد في المسند ۳/۲۹

بَيْنَ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ مَسِيْرَةُ
اوچتوالی به دومره وي څومره چې د آسمان او ځمکې په منځ کې مسافت دی يعني د پنځه سوه دی د
خَمْسِمِائَةِ سَنَةٍ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ هٰذَا حَدِيْثٌ غَرِيْبٌ. (۱)
پنځو سوو کالو په اندازه دا روايت ترمذي نقل کړی دی او ويلي يي دي چې دا حديث غريب دی.

**توضيح** :**فرش مرفوعة**: د فرش نه قالين او بسترې و غيره مراد دي، د دې د اوچتوالی صورت به دا وي چې د لاندې والا خلک چې کله د اوچتو درجو بالاخانو ته ګوري نو د هغه ځای د فرشونو او د دوی په مينځ کې به دومره فاصله وي چې د پنځو (۵۰۰) سوو کلونو په اندازه به وي.

## د جنتيانو ځليدونکې مخونه

﴿۲۲﴾ وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ أَوَّلَ
او حضرت ابو سعيد خدري رضي الله عنه وايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل د قيامت په ورځ به په
زُمْرَةٍ يَدْخُلُوْنَ الْجَنَّةَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ ضَوْءُ وُجُوْهِهِمْ
جنت کې چې کوم خلق د ټولو نه مخکې داخل شي د هغوی مخونه به د څوارلسمې شپې د سپوږمۍ
عَلٰى مِثْلِ ضَوْءِ الْقَمَرِ لَيْلَةَ الْبَدْرِ وَالزُّمْرَةُ الثَّانِيَةُ
په شان روښانه او ځليدونکي وي او د دوهم جماعت خلق چې به داخليږي د هغوی مخونه به د آسمان
عَلٰى مِثْلِ أَحْسَنِ كَوْكَبٍ دُرِّيٍّ فِي السَّمَاءِ
د هغه ستورو په شان روښانه او پړقيدونکي وي چې د ټولو نه زيات چمک کوي او په هغه جنتيانو
لِكُلِّ مِنْهُمْ زَوْجَتَانِ عَلٰى كُلِّ زَوْجَةٍ سَبْعُوْنَ حُلَّةً
کې به د هر سړي د پاره دوه ښځې وي او د هرې يوې ښځې په جسم به د لباس اويا جوړې وي د هغوی
يُرٰى مُخُّ سَاقِهَا مِنْ وَّرَائِهَا. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ. (۲)
د پنډيو دننه نلی (مغز) به د اويا جوړو لاندې نه په نظر راځي دا حديث امام ترمذی روايت کړی دی

(۱) اخرجه الترمذي في السنن ۴/۵۸۶ رقم الحديث ۲۵۴۰ واحمد في المسند ۳/۷۵.
(۲) اخرجه الترمذي في السنن ۴/۵۸۴ رقم الحديث ۲۵۳۵ وابن ماجه في ۲/۱۴۴۹ رقم الحديث ۴۳۳۳ واحمد في المسند ۳/۱۶.

﴿۲۴﴾ وَعَنْ اَنَسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ يُعْطَى الْمُؤْمِنُ

او حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل په جنت کې به مؤمن ته

فِي الْجَنَّةِ قُوَّةَ كَذَا وكَذَا مِنَ الْجِمَاعِ قِيلَ يَا رَسُولَ اللهِ

د جنسي اختلاط دومره دومره قوت ورکړی شي عرض وشو یارسول الله آیا یوسړی به دومره ښځو

أَوَ يُطِيقُ ذٰلِكَ قَالَ يُعْطَى

سره د جنسي اختلاط [مباشرت] طاقت درلودلو شي حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ورته وفرمايل يوسړي ته

قُوَّةَ مِائَةٍ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.(۱)

به د سلو سړو قوت ورکولی شي [ترمذي]

## د جنت د اشياوو ذکر

﴿۲۵﴾ وَعَنْ سَعْدِ بْنِ أَبِيْ وَقَّاصٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّهُ

او حضرت سعد بن ابي وقاص رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه روايت کوي چې پيغمبر عَلَيْهِ السَّلَامُ

قَالَ لَوْ أَنَّ مَا يُقِلُّ ظُفُرٌ مِمَّا فِي الْجَنَّةِ بَدَا لَتَزَخْرَفَتْ

وفرمايل د جنت د څيزونو نه که د نوک برابر هم څه شی دنيا ته راشي نو د آسمان او ځمکې د اطرافو

لَهُ مَا بَيْنَ خَوَافِقِ السَّمٰوَاتِ وَالْاَرْضِ وَلَوْ أَنَّ رَجُلًا مِنْ أَهْلِ الْجَنَّةِ

او جوانبو پوري به د دنياپه هر شي کې رونق راشي او حقيقت دادی که په جنتيانو کې يوسړی دنيا

اطَّلَعَ فَبَدَا أَسَاوِرُهُ لَطَمَسَ ضَوْءُهُ ضَوْءَ الشَّمْسِ كَمَا تَطْمِسُ

طرف ته رابښکاره شي او د هغه د لاسونو کړې ښکاره شي نو د هغه پرق به د نمر رڼا خره کړي څرنګه

الشَّمْسُ ضَوْءَ النُّجُوْمِ : رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ هٰذَا حَدِيْثٌ غَرِيْبٌ.(۲)

چې نمر د ستورو رڼا خره وي دا روايت ترمذي نقل کړی دی او ويلي يې دي چې دا حديث غريب دی.

**توضيح** : **يقل**: دا د اقلال نه دی د پورته کولو او اوچتولو او ظاهرولو په معنی سره دی . **ظفر**: نوک ته وايي ، يعنې د جنت د نعمتونو نه کچيرې د يو نوک په اندازه هغه شی چې نوک يې اوچتوي کوم شی دنيا ته ښکاره کړی شي نو د دنيا څلور طبقې به روښانه شي.

**تزخرفت**: د ښائسته کيدلو او پړقيدلو په معنی سره دی . **خوافق**: دا جمع ده مفرد يې خافقة دی د طرف او کنارې په معنی سره دی ، مطلب دا دی چې د جنت ددې معمولی نعمت نه د ځمکې او اسمان اطراف مزين کيږي . (اساوره) دا جمع الجمع ده چې د اسورة جمع ده او اسورة د سوار جمع ده ، سوار بنګړي او لاس ته د اغوستلو والا کړيو ته وايي ، د فارس بادشاه به دا اغوستل ، د جنت بادشاه به يې هم اغوندي ، نن سبا ددې نمونه د ساعت (ګړی) په صورت کې ده . (**طمس**) د کوم شی رڼايې او پړقا کمولو او ختمولو ته طمس ويل کيږي ، مطلب دا دی چې د جنتی د بنګړی رڼا کچيرې په دنيا کې ظاهره شي نو د دنيا ټولې رڼاګانې به ختمي شي ، د باقی نعمتونو به لا څه وايي !!

## د جنت ځوانان

| |
|---|
| ﴿۲۶﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَهْلُ الْجَنَّةِ جُرْدٌ |
| او حضرت ابوهريره رضي الله عنه وايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل جنتيان به بغير د ويښتانو |
| مُرْدٌ كَحْلَى لَا يَفْنَى شَبَابُهُمْ وَلَا |
| ځوانان وي او د هغوئ سترګي به تورې وي او د هغوئ ځواني به هيڅ کله نه فناء کيږي او نه به د |
| يَبْلَى ثِيَابُهُمْ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَالدَّارِمِيُّ. (۱) |
| هغوی کپړي هيڅکله زړيږي . [ترمذي دارمي] |

**توضيح** : **جرد**: په جيم باندې پيښ دی ، راء ساکنه ده ، دا جمع ده ددې مفرد اجرد دی ، مطلب دا دی چې د جنت په ځوانانو باندې به زياتي ويښتان نه وي مثلا زيرناف ويښتان او د ږيرې ويښتان او د عام جسم ويښتان به نه وي البته د سر او وروځو ويښتان به وي.

**مرد**: په ميم باندې پيښ دی راء ساکنه ده ، د امرد جمع ده دا هغه کم عمره ځوان ته وايي چې تر اوسه يې په زنه باندې ويښتان راغلي نه وي ، په مطلق حسين باندې يې هم اطلاق کيږي . **كحلى**: كحلى كحيل په معنی

---

(۱) اخرجه الترمذي في السنن ۵/۵۸۶ رقم الحديث ۲۵۳۹ والدارمي ۲/۴۳۱ رقم الحديث ۲۸۲۵ واحمد ...

د مکحول سره دی، د تورو سترګو والا ښایسته ځوان مراد دی چې د هغه سترګې خِلقةً توري وي.

| |
|---|
| ﴿۲۷﴾عَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ |
| او حضرت معاذ بن جبل رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل جنتيان به جنت |
| يَدْخُلُ أَهْلُ الْجَنَّةِ الْجَنَّةَ جُرْدًا مُرْدًا مُكَحَّلِيْنَ أَبْنَاءَ |
| ته داسې داخليږي چې د هغوئ بدن به د ويښتانو نه صفا وي بې ږيرې ځلمي به وي د هغوی سترګې |
| ثَلَاثِيْنَ أَوْ ثَلَاثٍ وَثَلَاثِيْنَ سَنَةً. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ[1] |
| به توري وي او ديرش يا درې ديرش کاله عمر به يې وي. [ترمذي] |

**توضيح**: او ثلاثين: دا او د شک لپاره دی، راوی ته په دې کې شک دی چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دريش کاله فرمايلي وو او که يې درې ديرش کاله فرمايلي وو، په هر حال چې کوم يو وي دا عمر د انتهائی ښې ځوانۍ عمر دی او د مخ د غه منظر انتهائی زړه ورونکی وي.

| |
|---|
| ﴿۲۸﴾وَعَنْ أَسْمَاءَ بِنْتِ أَبِيْ بَكْرٍ قَالَتْ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَذَكَرَ لَهُ |
| او اسماء بنت ابي بکر رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وايي هغه وخت کله چې د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مخکې د سدرة |
| سِدْرَةُ الْمُنْتَهٰى قَالَ يَسِيْرُ الرَّاكِبُ فِيْ ظِلِّ |
| المنتهٰی ذکر وشو نو ما د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه واوريدل چې سدرة المنتهٰی يوه داسې ونه ده چې |
| الْفَنَنِ مِنْهَا مِائَةَ سَنَةٍ أَوْ يَسْتَظِلُّ بِظِلِّهَا مِائَةُ |
| يو تيز رفتار سور به د هغه د ښاخونو په سوري کې به سل کاله پوري ځي يا دايي وفرمايل د هغه په |
| رَاكِبٍ شَكَّ الرَّاوِيُّ فِيْهَا فَرَاشُ الذَّهَبِ |
| سوري کې په يو وخت سل سواره آرام وکړی شي پر دي و نه باندې به د سرو زرو ملخان وي ګويا دا دې |
| كَأَنَّ ثَمَرَهَا الْقِلَالُ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ هٰذَا حَدِيْثٌ غَرِيْبٌ.[2] |
| ميوې به د منګيو برابر وي دا روايت ترمذي نقل کړی دی او ويلي يې دي چې دا حديث غريب دی |

---

(۱) اخرجه الترمذي في السنن ۴/۵۸۹ رقم الحديث ۲۵۴۵ والدارمي ۲/۴۳۱ رقم الحديث ۲۸۲۶ واحمد في المسند ۵/۲۴۳.

(۲) اخرجه الترمذي في السنن ۴/۵۸۷ رقم الحديث ۲۵۴۱.

**توضیح**: **السدرة المنتهى**: سدرة د بیرې ونې ته وایي، په اووم اسمان باندې د عرش الهي ښي طرف ته دغه عظیم الشانه ونه ولاړه ده، ددې پاڼې د فیل (هاتي) د غوږونو پشان غټې دي او ددې میوه د غټو غټو منګیو برابر ده. **المنتهى**: د انتهاء په معنی سره دی ځکه په دې ونه باندې د لاندې مخلوق انتهاء کیږي، همدارنګه د پورته مخلوق انتهاء هم ورباندې راځي، نه د پورته مخلوق لاندې راتللی شي او نه د لاندې مخلوق پورته تللی شي، د هر نظام او هر علم او عمل او د هر کار لپاره دغه ونه حد فاصل او انتهاء ده په دغه وجه سدرة المنتهى ده. **الفنن**: دا لفظ مفرد دی د شاخ (څانګې) په معنی سره دی ددې جمع افنان راځي کقوله تعالى ﴿ذَوَاتَآ أَفۡنَانٍ﴾.

**فراش الذهب**: دا د فراشة جمع ده په فاء باندې زور دی پتنګ ته ویل کیږي، مطلب دا دی چې په دې ونه کې به د سرو زرو پتنګان وي چې د سرو زرو پشان به پرقیږي یا کیدلی شي چې دې فراش الذهب نه مراد د ملائکو یو نوعه وي چې د هغوی وزرې به د سرو زرو پشان پرقیږي، همدې ته اشاره ده د الله تعالى په دې فرمان کې ﴿إِذۡ يَغۡشَى ٱلسِّدۡرَةَ مَا يَغۡشَىٰ﴾ **قلال**: دا جمع ده ددې مفرد قلة ده منګی ته وایي، د میوو غټوالي ته اشاره ده.

## د حوض کوثر ذکر

﴿۲۹﴾ وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ سُئِلَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا الْكَوْثَرُ

او حضرت انس رضي الله عنه وايي چې د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه د کوثر باره کې پوښتنه وشوه چې هغه څه

قَالَ ذٰلِكَ نَهْرٌ أَعْطَانِيهِ اللهُ يَعْنِي فِي الْجَنَّةِ

شی دی؟ نو حضور صلى الله عليه وسلم ورته وفرمايل چې هغه یو نهر دی چې الله! ماته را کړی دی

أَشَدُّ بَيَاضًا مِنَ اللَّبَنِ وَأَحْلٰى مِنَ الْعَسَلِ

د دې نهر او به د پیو نه زياتې سپینې او د عسلو (شاتو) نه زياتې خوږې دي په دې کې داسې مارغان

فِيهِ طَيْرٌ أَعْنَاقُهَا كَأَعْنَاقِ الْجُزُرِ قَالَ عُمَرُ إِنَّ

چې د هغوی څټونه د اوښانو د څټونو په شان اوږده دي، حضرت عمر رضي الله عنه عرض وکړو چې: هغه

هٰذِهِ لَنَاعِمَةٌ فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

مارغان خو به ډیر چاغ او تندرست وي حضور صلى الله عليه وسلم ورته وفرمايل د هغه مارغانو خوړونکی

| أَكَلَتُهَا أَنْعَمُ مِنْهَا. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ (١) |
|---|
| به د هغه مارغانو نه هم زیات مظبوط او خوشحال وي . [ترمذی |

**توضیح** : **الجـزر**: دا جمع ده ددې مفرد جزور دی اوښ ته وايي او اعناق غاړو (څټونو) ته وايي يعنې ددې مرغانو غاړې (څټونه) به د اوښانو د غاړو پشان غټې او اږدې وي پخپله به هم د اوښانو پشان غټ وي . **لناعمة**: يعنې دغه مرغان به غټ چاغ او ډير ښايسته وي . **اكلتها**: د دريوا ړو حروفو په فتحاتو سره جمع ده ددې مفرد آکل دی، مطلب دا دی چې دغه مرغان اګرچې چاغ غټ او مزيداره وي ليکن ددوی خوړونکې جنتيان به ددې نه هم زيات صحتمند او چاغ او بهتر وي ، ددې جملې نه يو خيالي اعتراض هم لرې شو چې کله په جنت کې دغه رنګ چاغ مرغان وي همدا رنګه د ييرې ميوه د منګي برابر وي د انګورو دانه به هم د منګی پشان غټه وي نو د دنيا انسان به دغه څنګه خوري او په دې کې به څه خوند وي؟ جواب همدا دی چې د هغه ځای انسان به هم صحت مند او د جسامت والا وي هغوی به په آسانۍ سره دغه انګور خوري ، ددې حديث نه دغه جواب ته اشاره کيدلی شي .

## جنتيانو ته به هر هغه شی حاصليږي د کوم چې هغوی خواهش وکړي

| ﴿۳۰﴾ وَعَنْ بُرَيْدَةَ أَنَّ رَجُلًا قَالَ يَا رَسُوْلَ اللهِ هَلْ فِي الْجَنَّةِ مِنْ خَيْلٍ |
|---|
| او حضرت بريده رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی يو سړي پوښتنه وکړه يا رسول الله! آيا په جنت کې به آسونه وي؟ |
| قَالَ إِنِ اللهُ أَدْخَلَكَ الْجَنَّةَ فَلَا تَشَاءُ |
| حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ورته وفرمايل که الله ! ته په جنت کې داخل کړي او تا په آس د سورلۍ خواهش |
| أَنْ تُحْمَلَ فِيهَا عَلَى فَرَسٍ مِنْ يَاقُوتَةٍ |
| ښکاره کړو نو ته به په جنت کې د سرو ياقوتو په آس سور شي او ته چې په جنت کې چيرته غواړې |
| حَمْرَاءَ يَطِيْرُ بِكَ فِي الْجَنَّةِ حَيْثُ شِئْتَ إِلَّا فَعَلْتَ |
| نو هغه آس به تيز رفتارۍ سره تا وزغلوي او الوتو سره به تا بوځي دي نه روسته حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| وَسَأَلَهُ رَجُلٌ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللهِ هَلْ فِي الْجَنَّةِ مِنَ الْإِبِلِ ؟ فَإِنِّي أُحِبُّ الْإِبِلَ. |
| نه يو بل سړي پوښتنه وکړه يا رسول الله! آيا په جنت کې به اوښان هم وي؟ ځکه چې اوښان ځما خوښ دي |

قَالَ فَلَمْ يَقُلْ لَهُ مَا قَالَ

حضرت بریده رضي الله عنه وايي نبي عليه السلام هغه سړي ته هغه جواب ورنه کړو کوم چې نبي عليه السلام د

لِصَاحِبِهِ فَقَالَ إِنْ يُدْخِلْكَ اللهُ الْجَنَّةَ يَكُنْ

هغه ملګري ته ورکړی وو بلکه ورته يې وفرمايل چې که الله ! ته په جنت کې داخل کړې نو هغې کې به

لَكَ فِيهَا مَا اشْتَهَتْ نَفْسُكَ وَلَذَّتْ عَيْنُكَ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.(۱)

ستاليپاره هرهغه شی وي کوم چې ستا زړه غواړي او ستا سترګه يې خوښوي. [ترمذي]

﴿۳۱﴾ وَعَنْ أَبِي أَيُّوبَ قَالَ أَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَعْرَابِيٌّ

او حضرت ابو ايوب انصاري رضي الله عنه وايي د رسول الله صلى الله عليه وسلم په خدمت کې يو بانده چې راغی او

فَقَالَ يَا رَسُولَ اللهِ إِنِّي أُحِبُّ الْخَيْلَ أَفِي الْجَنَّةِ خَيْلٌ

عرض يې وکړو يارسول الله ! زما اسونه ډير خوښ دي آيا په جنت کې به اسونه هم وي؟

قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنْ أُدْخِلْتَ الْجَنَّةَ أُتِيتَ بِفَرَسٍ مِنْ يَاقُوتَةٍ

رسول الله صلى الله عليه وسلم ورته وفرمايل که په جنت کې داخل شوي نو تا ته به د يو اس ياقوتو درکړی شي

لَهُ جَنَاحَانِ فَحُمِلْتَ عَلَيْهِ ثُمَّ طَارَ بِكَ

چې د هغه به دوه وزرونه وي بيا به ته په هغه اس سور شې او ته چې چيرته تلل غواړې هغه اس به تا

حَيْثُ شِئْتَ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَ قَالَ هٰذَا حَدِيثٌ لَيْسَ

ورځولو سره بوځي دا روايت ترمذي نقل کړی دی او ويلي يې دي چې د دې حديث اسناد قوي نه دی او

إِسْنَادُهُ بِالْقَوِيِّ وَأَبُو سَوْرَةَ الرَّاوِي يُضَعَّفُ

ابو سوره چې د دې حديث راوي دی په څه سبب په فن حديث کې يا اسناد حديث کې ضعيف شميرلی شي

فِي الْحَدِيثِ وَسَمِعْتُ مُحَمَّدَ بْنَ إِسْمَاعِيلَ يَقُولُ أَبُو سَوْرَةَ هٰذَا مُنْكَرُ الْحَدِيثِ يَرْوِي مَنَاكِيرَ.(۲)

او ما د محمد بن اسماعيل بخاري نه دا اوريدلي دي چې ابو سوره منکر الحديث دی منکر حديثونه روايت کوي

---

(۱) اخرجه الترمذي في السنن ۴/۵۸۸ رقم الحديث ۲۵۴۴ واحمد في المسند ۵/۳۵۲

(۲) اخرجه الترمذي في السنن ۴/۵۸۸ رقم الحديث ۲۵۴۴ واحمد في المسند ۵/۳۴۷

## جنتیانو کې د اُمت محمدي تناسب (کمیت)

| |
|---|
| ﴿۳۲﴾ وَعَنْ بُرَيْدَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَهْلُ الْجَنَّةِ عِشْرُوْنَ |
| او حضرت بریده رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل د جنتیانو به یوسل شل صفونه وي |
| وَمِائَةُ صَفٍّ ثَمَانُوْنَ مِنْهَا مِنْ هٰذِهِ الْأُمَّةِ وَأَرْبَعُوْنَ مِنْ سَائِرِ الْأُمَمِ . |
| په هغو کې به اتیا صفونه د دې امت وي او څلویښت صفونه به د نورو امتونو د خلقو وي دا |
| رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَالدَّارِمِيُّ وَالْبَيْهَقِيُّ فِيْ كِتَابِ الْبَعْثِ وَالنُّشُوْرِ . (۱) |
| روایت ترمذيؒ او دارمي او بیهقي په کتاب البعث والنشور کې نقل کړی دی. |

**توضیح : ثمانون صفا:** په دې حدیث کې د اهل محشر د ۱۲۰ صفونو ذکر دی چې په هغو کې د دې امت د ۸۰ صفونو بیان دی چې دوه چنده زیات دي، په نورو حدیثونو کې د نصف اهل جنت ذکر دی، دا واضحه تعارض دی؟ د دې جواب دا دی چې د وحی په ذریعه اول د یو تناسب ذکر وو بیا د الله تعالی په زیاتې مهربانۍ سره اضافه شول نو د نصف نه زیات شول، او س اعتراض پاتې نشو.

| |
|---|
| ﴿۳۳﴾ وَعَنْ سَالِمٍ عَنْ أَبِيْهِ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| او حضرت سالم خپل پلار نه نقل کوي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل د جنت په کومه |
| بَابُ أُمَّتِيْ الَّذِيْ يَدْخُلُوْنَ مِنْهُ الْجَنَّةَ عَرْضُهُ مَسِيْرَةُ |
| دروازه چې څما امت داخلیږي د هغې پلنوالي د هغه سور د منډې دمسافت په اندازه به وي چې آس |
| الرَّاكِبِ الْمُجَوِّدِ ثَلَاثًا ثُمَّ إِنَّهُمْ لَيُضْغَطُوْنَ |
| تیز زغلول بهتر پیژني درې ورځې یا درې کاله بیا به هم څما د امت جنتیان په هغه دروازه داخلیدو |
| عَلَيْهِ حَتّٰى تَكَادَ مَنَاكِبُهُمْ تَزُوْلُ رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ |
| نه ډیره تنګي محسوسوي د دې پورې چې د هغوئ اوږې به د یو بل سره جنګیږي دا روایت ترمذي نقل |
| وَقَالَ هٰذَا حَدِيْثٌ ضَعِيْفٌ وَسَأَلْتُ مُحَمَّدَ بْنَ إِسْمَاعِيْلَ عَنْ هٰذَا الْحَدِيْثِ |
| کړی دی او ویلي یي دي دا حدیث ضعیف دی او ما د محمد بن اسماعیل بخاري رَحِمَهُ اللهُ نه اوریدلي دی |

---

(۱) اخرجه الترمذي في السنن ۴/۵۸۹ رقم الحدیث ۲۵۴۶ وابن ماجه ۲/۱۴۳۴ رقم الحدیث ۴۲۸۹.

فَلَمْ يَعْرِفْهُ وَقَالَ خَالِدُ بْنُ أَبِي بَكْرٍ يَرْوِي الْمُنَاكِير. (١)

چې د دي حديث راوي منكر روايتونه بيانوي

﴿۳۴﴾ وَعَنْ عَلِيٍّ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ فِي الْجَنَّةِ لَسُوقًا

او حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل په جنت کې يو بازار دی چې په

مَا فِيهَا شِرًى وَ لَا بَيْعٌ إِلَّا الصُّوَرَ مِنَ الرِّجَالِ وَالنِّسَاءِ فَإِذَا

هغه کې به آخستل او خرڅول نه ږي بلکه هلته به د سړو او ښځو قسا قسم حسين او جميل صورتونه په نظر

اشْتَهَى الرَّجُلُ صُورَةً دَخَلَ فِيهَا. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ

راځي څوک چې هلته کوم صورت خوښ کړي په هغه کې به ځاي شي دا حديث ترمذيؒ نقل کړی دی

وَقَالَ هٰذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ (٢)

او ويلي يې دي چې دا حديث غريب دی.

﴿۳۵﴾ وَعَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ أَنَّهُ لَقِيَ أَبَا هُرَيْرَةَ

او حضرت سعيد بن مسيب تابعي نه روايت دی چې يوه ورځ په بازار کې د حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د

فَقَالَ أَبُو هُرَيْرَةَ أَسْأَلُ اللهَ أَنْ يَجْمَعَ بَيْنِي وَبَيْنَكَ

هغه ملاقات وشو نو حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل زه د الله ! نه دعا غواړم چې يو ځای کړي ما او تا د

فِي سوقِ الْجَنَّةِ فَقَالَ سَعِيدٌ أَفِيهَا سُوقٌ قَالَ

جنت په بازار کې حضرت سعيدؒ په دي سره وويل آيا په جنت کې به بازار وي ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمايل

نَعَمْ أَخْبَرَنِي رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ أَهْلَ الْجَنَّةِ إِذَا دَخَلُوهَا

هو ما ته رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خو دلی وو هر کله چې جنتي خلق په جنت کې داخل شي نو د خپلو خپلو

نَزَلُوا فِيهَا بِفَضْلِ أَعْمَالِهِمْ ثُمَّ يُؤْذَنُ

اعمالو د فضيلت او برتری په لحاظ د جنت منزلونو او درجو کې داخلېږي بيا هغوئ ته به د

---

(١) اخرجه الترمذي في السنن ۴/۵۹۰ رقم الحديث ۲۵۴۸،

(٢) اخرجه الترمذي في السنن ۴/۵۹۲ رقم الحديث ۲۵۵۰ واحمد في المسند ۱/۱۵۶.

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| لَهُمْ | فِيْ | مِقْدَارِ | يَوْمِ | الْجُمُعَةِ | مِنْ | أَيَّامِ | الدُّنْيَا |

دنياوي ورځو د اعتبار سره د جمعي په ورځ اجازه ور کول شي او هغوی ټول به په هغه ورځ د خپل

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فَيَزُوْرُوْنَ | رَبَّهُمْ | وَيُبْرِزُ | لَهُمْ | عَرْشَهُ | وَيَتَبَدّٰى | لَهُمْ | فِيْ | رَوْضَةٍ |

پروردګار زيارت کوي پروردګار به د هغوی مخکې خپل عرش ظاهر کړي او د جنت يولوی باغ کې به

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| مِّنْ | رِيَاضِ | الْجَنَّةِ | فَيُوْضَعُ | لَهُمْ | مَّنَابِرُ | مِنْ | يَاقُوْتٍ |

جلوه وفرمايي نو کينبودلی به شی ورتلونکو جنتيانو ته د نور منبر ، د ملغلرو منبر د ياقوتو منبر د

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَّمَنَابِرُ | مِنْ | زَبَرْجَدٍ | وَّمَنَابِرُ | مِنْ | ذَهَبٍ | وَّمنَابِرُ | مِنْ | فِضَّةٍ |

سرو زرو منبر او د سپينو زرو منبر کېښودل شي چې په هغه به جنتی کيني چې کوم جنتي د کمې درجې وي

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَّيَجْلِسُ | أَدْنَاهُمْ | وَمَا | فِيْهِمْ | دَنِيٌّ | عَلٰى | كُثْبَانِ | الْمِسْكِ | منبرونو | وَالْكَافُوْرِ |

په هغوئ کې به څوک معمولي او ذليل نه وي هغه به د مشکو او کافورو په غونډو باندې کيني ليکن

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| مَا | يُرَوْنَ | أَنَّ | أَصْحَابَ | الْكَرَاسِيِّ | بِأَفْضَلَ | مِنْهُمْ | مَجْلِسًا |

په ډيرو باندې ناستو خلکو ته به دا احساس نه وي چې په او تختونو باندې ناست خلق د دوی نه بهتر او افضل دي

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| قَالَ | أَبُوْ | هُرَيْرَةَ | قُلْتُ | يَا | رَسُوْلَ | اللهِ | وَهَلْ | نَرٰى | رَبَّنَا |

حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي ما عرض وکړو يارسول الله! آيا مونږ به په هغه ورځ خپل پروردګار وينو؟

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| قَالَ | نَعَمْ | قَالَ | هَلْ | تَتَمَارَوْنَ | فِيْ | رُؤْيَةِ | الشَّمْسِ | وَالْقَمَرِ | لَيْلَةَ | الْبَدْرِ |

حضور عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل هو يقينًا آيا تا سو د لمر او د څوارلسمې سپوږمۍ ليدو کې څه شک کوئ؟

| | | | |
|---|---|---|---|
| قُلْنَا | لَا | قَالَ | كَذٰلِكَ |

مونږ عرض وکړو هيڅ کله نه نو وي فرمائيل دغه شان به تا سو ته په هغه ورځ د خپل پروردګار په ليدو

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| لَا | تَتَمَارَوْنَ | فِي | رُؤْيَةِ | رَبِّكُمْ | وَلَا | يَبْقٰى | فِيْ | ذٰلِكَ | الْمَجْلِسِ |

کې څه شبهه نه وي او د ديدارِ الٰهي هغه مجلس کې به هيڅ سړی داسې باقي پاتې نشي کوم سره چې د

| | | | |
|---|---|---|---|
| رَجُلٌ | إِلَّا | حَاضَرَهُ | اللهُ |

پروردګار د ټولو د حجاب د پردو او چتولو سره براهِ راست ورسره هم کلام و نه شي ددې پورې چې الله!

مُحَاضِرَةً وَحَتّٰى يَقُوْلَ لِلرَّجُلِ مِنْهُمْ يَا فُلَانَ بْنَ فُلَانٍ

به حاضرينو کې يوې و سړي مخاطب کړي ورته به وفرمايي اى فلان ابن فلان! آيا تا ته هغه ورځ ياده ده

أَتَذْكُرُ يَوْمَ قُلْتَ كَذَا وَكَذَا

کله چې تا داسې ويلي وو هغه سړى به ددې خبري اوريدو سره توقف وکړي او د خپل کړي ګناهونو اظهار

فَيُذَكِّرُهُ بِبَعْضِ غَدَرَاتِهِ فِي الدُّنْيَا

کې به سوچ وکړي نو پروردګار به هغه ته بعضې عذرونه وزياده کړي چې هغه په دنيا کې کړي وو بيا به

فَيَقُوْلُ يَارَبِّ أَفَلَمْ تَغْفِرْ لِيْ فَيَقُوْلُ

هغه سړى عرض وکړي اى ځما پروردګاره! آيا تا ځما هغه ګناهونه بخښلي نه دي الله تعالى به ورته وفرمايي

بَلٰى فَبِسَعَةِ مَغْفِرَتِيْ بَلَغْتَ

بيشکه ما ستا هغه ګناهونه بخښلي دي او ته نن ځما د وسعت فضل په برکت دې مرتبې ته رسيدلى يې

مَنْزِلَتَكَ هٰذِهِ فَبَيْنَمَا هُمْ عَلٰى ذٰلِكَ غَشِيَتْهُمْ سَحَابَةٌ

بيا به هغه خلق په هغه حالت او هغه ځاى باندې وي چې يوه وريځ به راتلو سره په هغوى وغوړيږي او په

مِنْ فَوْقِهِمْ فَأَمْطَرَتْ عَلَيْهِمْ طِيْبًا لَمْ يَجِدُوْا مِثْلَ

هغوى به داسې خوشبو ووروي چې هغوى به هغه شان خوشبو هيڅ کله په څه شي کې نه وي موندلى

رِيْحِهِ شَيْئًا قَطُّ وَيَقُوْلُ رَبُّنَا قُوْمُوْا إِلٰى

دي نه روسته به زمونږ پروردګار وفرمايي خلقو! لاړشئ او هغه شي طرف ته راشئ چې مونږ د ستاسو

مَا أَعْدَدْتُ لَكُمْ مِنَ الْكَرَامَةِ فَخُذُوْا مَا اشْتَهَيْتُمْ

د اکرام او اعزاز د پاره تيار کړى دى او تاسو د خپلې خوښې او خواهش مطابق چې څه غواړئ واخلئ

فَنَأْتِيْ سُوْقًا قَدْ حَفَّتْ بِهِ الْمَلَائِكَةُ

حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل په دې اوريدو سره به جنتيان خلق هغه بازار ته ورشي چې فرښتې به ترې نه چاپيره

فِيْهَا مَا لَمْ تَنْظُرِ الْعُيُوْنُ إِلٰى مِثْلِهِ وَلَمْ تَسْمَعِ الْآذَانُ

وي په هغه بازار کې به داسې شيان موجود وي چې هغه به نه يوې سترګې ليدلي وي نه به يو غوږ اوريدلي وي

وَلَمْ يَخْطُرْ عَلٰى الْقُلُوْبِ فَيُحْمَلُ

او نه به د چا په زړه کې د هغه تصور راغلی وي بیا به هغه بازار نه مونږ ته هغه څیزونه راکول شي د کوم

لَنَا مَا اشْتَهَيْنَا لَيْسَ يُبَاعُ فِيْهَا

چې مونږ خواهش کوو حالانکه په هغه بازار کې به د آخستلو او خرڅولو په شان کې به ټول جنتي

وَلَا يُشْتَرٰى وَفِيْ ذٰلِكَ السُّوْقِ

خلق په خپلو کې یو د بل سره ملاقات کوي حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل دیوې اوچتې مرتبې

يَلْقٰى أَهْلُ الْجَنَّةِ بَعْضُهُمْ بَعْضًا قَالَ فَيُقْبِلُ الرَّجُلُ ذُو الْمَنْزِلَةِ الْمُرْتَفِعَةِ

سړی به یو داسې سړي سره ملاقات کوي چې هغه به دده نه کمتروي لیکن په جنتیانو کې به دانه وي

فَيَلْقٰى مَنْ هُوَ دُوْنَهُ وَمَا فِيْهِمْ دَنِيٌّ فَيَرُوْعُهُ مَا يَرٰى عَلَيْهِ

چې د چا به معمولي او ذلیل خیال کولی شي بهرحال هغه اوچتې مرتبې سړي ته به هغه لباس خوښ

مِنَ اللِّبَاسِ فَمَا يَنْقَضِيْ آخِرُ حَدِيْثِهِ حَتّٰى

شي کوم چې د کمتر درجې هغه سړي اغوستی ووینې او د دواړو د خبرو سلسله به لا ختمه شوې نه وي

يُتَخَيَّلَ عَلَيْهِ مَا هُوَ أَحْسَنُ مِنْهُ وَذٰلِكَ

چې هغه کمترې مرتبې سړی به محسوس کړي چې څما لباس څما د مخاطب د لباس نه هم بهتر دی او

أَنَّهُ لَا يَنْبَغِيْ لِأَحَدٍ أَنْ يَحْزَنَ

دا ځکه چې په جنت کې به هیچاته د غمجن کېدو موقع نشي ورکولی حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل

فِيْهَا ثُمَّ نَنْصَرِفُ إِلٰى مَنَازِلِنَا

دې نه روسته به مونږ ټول جنتیان خپل خپل محلاتو او مکاناتو طرف ته بیرته راشو او هلته به زمونږ

فَيَتَلَقَّانَا أَزْوَاجُنَا فَيَقُلْنَ مَرْحَبًا

ښځې زمونږ سره یو ځای شي نو زمونږ استقبال کوي او هره ښځه به خپل خاوند ته وایي چې ته په

وَّأَهْلًا لَقَدْ جِئْتَ وَإِنَّ بِكَ مِنَ الْجَمَالِ

داسې حال کې بیرته راغلی یې چې دا وخت ستا حسن او جمال د هغه حسن وجمال نه ډیرزیات دی چې

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| أَفْضَلَ | مِمَّا | فَارَقْتَنَا | عَلَيْهِ | فَنَقُوْلُ | إِنَّا | جَالَسْنَا |
| زمونږ نه د تلو په وخت کې په تا کې وو نو مونږ به خپلو بيبيانو ته وايو چې نن مونږ د خپل رب سره د کيناستلو عزت | | | | | | |
| الْيَوْمَ | رَبَّنَا | الْجَبَّارَ | ويحِقُّنَا | أَنْ | نَنْقَلِبَ | بِمِثْلِ |
| حاصل کړئ چې د جسم او بدن او د حسن او جمال هرې کمۍ نه جوړونکی دی نو مونږ خپل دې شان | | | | | | |
| مَا | انْقَلَبْنَا | رَوَاهُ: | التِّرْمِذِيُّ | وَابْنُ | مَاجَةَ | |
| سره د بیرته راتلو لائق يو کوم شان سره چې مونږ راغلي يو دا روايت ترمذي او ابن ماجه نقل کړی دی | | | | | | |
| وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ هٰذَا حَدِيْثٌ غَرِيْبٌ. [1] | | | | | | |
| او ترمذي ويلي دي چې دا حديث غريب دی. | | | | | | |

**توضیح** : **کثبان المسک**: کثبان جمع ده په کاف باندې پيښ دی ، ثاء باندې سکون دی ددې مفرد کثيب دی غونډۍ (ډيری) ته وايي ، د مشک او عنبرو غونډۍ مراد ده . **والکافور**: دا په **المسک** باندې عطف دی يعنې د مشکو په غونډۍ ناست وي او د کافورو په غونډيو به ناست وي.

## په جنتيانو کې د اولاد خواهش

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۳۶﴾ وَعَنْ أَبِيْ سَعِيْدٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَدْنٰى أَهْلِ الْجَنَّةِ | | | | | | | |
| او حضرت ابوسعيد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل په جنتيانو کې چې د ټولو | | | | | | | |
| الَّذِيْ | لَهُ | ثَمَانُوْنَ | أَلْفَ | خَادِمٍ | وَّاثْنَتَانِ | وَسَبْعُوْنَ | زَوْجَةً |
| نه کمې مرتبې کوم سړی وي د هغه به اتيا زره خادمان او دوه اويا ۷۲ ښځې وي او دده د پاره به يوه | | | | | | | |
| وَتُنْصَبُ | لَهُ | قُبَّةٌ | مِّنْ | لُؤْلُؤٍ | وَّزَبَرْجَدٍ | وَّيَاقُوْتٍ | كَمَا |
| خيمه ودرول شي چې هغه به د ملغلرو زبرجدو او ياقوتو نه جوړه وي او ددې خيمې به دومره | | | | | | | |
| بَيْنَ | الْجَابِيَةِ | إِلٰى | صَنْعَاءَ | وَبِهٰذَا | الْإِسْنَادِ | قَالَ | مَنْ |
| اوږدوالی وي څومره فاصله په مابين د جابيه او صنعا کې ده او په دې اسناد سره په يو روايت کې دي | | | | | | | |

مَّاتَ مِنْ أَهْلِ الْجَنَّةِ مِنْ صَغِيْرٍ أَوْ كَبِيْرٍ

چې پیغمبر عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمایل هغه خلق چې هغوئ په جنت کې داخل شي په دنیا کې که لږ عمر کې

يُرَدُّوْنَ بَنِيْ ثَلَاثِيْنَ فِي الْجَنَّةِ لَايَزِيْدُوْنَ عَلَيْهَا

مړ شي یا ډیر په جنت کې به د دیرش کالو په عمر سره داخلیږي او هغوئ به هیڅ کله د دې عمر نه

أَبَدًا وَكَذٰلِكَ أَهْلُ النَّارِ وَبِهٰذَا الْإِسْنَادِ قَالَ

نه زیاتیږي دا معامله به د دوزخیانو هم وي او دي اسناد سره په یوه روایت کې دا دي چې حضور عَلَيْهِ السَّلَامُ

إِنَّ عَلَيْهِمُ التِّيْجَانُ أَدْنٰى لُؤْلُؤَةٍ مِّنْهَا لَتُضِيْءُ

وفرمایل د جنتیانو په سرونو چې به کوم تاج وي د هغه د ټولو نه معمولي ملغلره به داسې وي چې

مَا بَيْنَ الْمَشْرِقِ وَالْمَغْرِبِ وَبِهٰذَا الْإِسْنَادِ قَالَ

مشرق نه مغرب پورې به ټول روښانه کړي او دي اسناد سره په یوه روایت کې دا دي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ

اَلْمُؤْمِنُ إِذَا اشْتَهَى الْوَلَدَ فِي الْجَنَّةِ كَانَ حَمْلُهُ وَوَضْعُهُ

وفرمایل که بالفرض یو مسلمان په جنت کې د اولاد خواهشمند شي نو د بچي حمل کېدل د هغه

وَسِنُّهُ فِيْ سَاعَةٍ كَمَا يَشْتَهِيْ وَقَالَ إِسْحَاقُ بْنُ إِبْرَاهِيْمَ

ځیګېدل او د هغه د خوښې عمر ته رسیدل هر څه به یو ساعت کې وشي او حضرت اسحاق بن ابراهیم عَلَيْهِ السَّلَامُ

فِيْ هٰذَا الْحَدِيْثِ إِذَا اشْتَهَى الْمُؤْمِنُ فِي الْجَنَّةِ الْوَلَدَ

د دې آخري روایت باره کې وایي که یو مومن په جنت کې د اولاد خواهشمند شي نو خواهش به یې یو

كَانَ فِيْ سَاعَةٍ وَلٰكِنْ لَايَشْتَهِيْ . رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ

ساعت کې پوره شي لیکن حقیقت دا دی چې داسې خواهش هیڅوک نکوي دا روایت ترمذي نقل

وَقَالَ هٰذَا حَدِيْثٌ غَرِيْبٌ وَرَوَ ى ابْنُ مَاجَةَ الرَّابِعَةَ

کړی دی او ویلي یې دي چې دا حدیث غریب دی او ابن ماجه څلورم روایت نقل کړی دی او

وَالدَّارِمِيُّ الْآخِيْرَةَ(۱)

دارمي صرف دا آخري حصه نقل کړې ده.

## د حورو سندرې

﴿۳۷﴾ وَعَنْ عَلِيٍّ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ فِي الْجَنَّةِ لَمُجْتَمَعًا

او حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل په جنت کې به د حورعين د اجتماع

لِلْحُوْرِ الْعِيْنِ يَرْفَعْنَ بِأَصْوَاتٍ

يو ځاي وي او هلته به په اوچت اواز سره سندرې وايي د هغوى اوازونه به دومره حسين وي چې

لَمْ تَسْمَعِ الْخَلَائِقُ مِثْلَهَا يَقُلْنَ نَحْنُ الْخَالِدَاتُ

مخلوقاتو کې به داسې اواز چا نه وي اوريدلى هغه حورې به داسې سندرې وايي مونږ ته هميشه ژوند

فَلَا نَبِيْدُ وَنَحْنُ النَّاعِمَاتُ

حاصل دى مونږ ته به هيڅ کله مرګ نه راځي مونږ عيش او آرام سره اوسيدونکې يو مونږ به هيڅ کله

فَلَا نَبْأَسُ وَنَحْنُ الرَّاضِيَاتُ فَلَا

سختي او پريشاني نه وينو مونږ د خپل پروردګار يا د خپلو خاوندانو نه راضي او خوشحاله يو مونږ

نَسْخَطُ طُوْبٰى لِمَنْ كَانَ لَنَا

هيڅ کله ناراضه کېږو نه هر هغه سړي د پاره مبارک بادي ده چې په جنت کې زمونږ د پاره دى او مونږ

وَكُنَّا لَهُ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ. (۲)

د هغه د پاره يو. [ترمذي]

﴿۳۸﴾ وَعَنْ حَكِيْمِ بْنِ مُعَاوِيَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ فِي الْجَنَّةِ

او حکيم بن معاويه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل په جنت کې د اوبو درياب دى

بَحْرُ الْمَاءِ وَبَحْرُ الْعَسَلِ وَبَحْرُ اللَّبَنِ وَبَحْرُ الْخَمْرِ

او د شهدو درياب دى او د شيدو درياب دى او د شرابو درياب دى او بيا به هغه دريابونو نه نور

(۱) اخرجه الترمذي في السنن ۴/۵۹۹ رقم الحديث ۲۵۶۲ وابن ماجه في السنن ۲/۱۴۵۲ رقم الحديث ۴۳۳۸.
(۱) اخرجه الترمذي في السنن ۴/۶۰۰ رقم الحديث ۲۵۶۴ واحمد في المسند ۱/۱۵۶.

ثُمَّ تَشَقَّقُ الْأَنْهَارُ بَعْدُ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ و رَوَاهُ الدَّارِمِيُّ عَنْ مُعَاوِيَةَ. (۱)

نهرونه وځي [ترمذي] او دارمي دا روايت د معاويه" نه نقل کړی دی.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

### د جنت د حورو لطافت (باريکي)

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۳۹﴾ عَنْ | أَبِيْ | سَعِيْدٍ | عَنْ | رَسُوْلِ | اللهِ | صَلَّى اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ قَالَ | إِنَّ الرَّجُلَ |

حضرت ابو سعيد رضي الله عنه د حضور صلى الله عليه وسلم نه نقل کوي چې حضور صلى الله عليه وسلم وفرمايل جنتي

فِي الْجَنَّةِ لَيَتَّكِئُ فِي الْجَنَّةِ سَبْعِيْنَ مَسْنَدًا قَبْلَ أَنْ

سړی به په جنت کې د اويا تياګانو ته تکيا لګولو سره به ناست وي مخکې ددې نه چې يو اړخ نه دوهم

يَتَحَوَّلَ ثُمَّ تَأْتِيْهِ امْرَأَةٌ فَتَضْرِبُ عَلَى مَنْكِبَيْهِ

اړخ بدل کړي بيا به د جنت د ښځو نه يوه ښځه راشي او هغه به د هغه اوږه ووهي هغه سړی به هغې

فَيَنْظُرُ وَجْهَهُ فِي خَدِّهَا أَصْفَى مِنَ الْمِرْآةِ وَإِنَّ

طرف ته متوجه شي او د هغه په مخ کې به چې د آينې نه به زيات صفا او روښانه وي خپل مخ ويني

أَدْنَى لُؤْلُؤَةٍ عَلَيْهَا تُضِيءُ مَا بَيْنَ الْمَشْرِقِ

او حقيقت دادې که د هغه ښځې په زيور لګيدلې يوه معمولي شان ملغلره دنيا ته راشي نو مشرق نه

وَالْمَغْرِبِ فَتُسَلِّمُ عَلَيْهِ قَالَ

تر مغرب پورې به هر شی به روښانه او منور کړي بهرحال هغه ښځه به هغه سړي ته سلام وکړي او سړی

فَيَرُدُّ السَّلَامَ وَيَسْأَلُهَا مَنْ أَنْتِ فَتَقُوْلُ أَنَا

به د هغه د سلام جواب ورکړي او پوښتنه به ترې نه وکړي چې ته څوک يې هغه به ورته وايي چې زه

مِنَ الْمَزِيْدِ وَإِنَّهُ لَيَكُوْنُ عَلَيْهَا سَبْعُوْنَ

د مزيد نه يم او صورت حال به داوي چې د هغه ښځې په بدن به د اويا کپړو لباسونه وي او د هغه سړي

(۱) اخرجه الترمذي في السنن ۴/۶۰۳ رقم الحديث ۲۵۷۱ واحمد في المسند ۵/۰۵.

| ثَوْبًا | فَيَنْفُذُهَا | بَصَرُهُ | حَتّٰى | يَرٰى | مُخَّ |
|---|---|---|---|---|---|
| نظر به د هغه ښځي د لباس نه هم تيرشي تردي پوري چې هغه سړی به د هغه ښځي د پنډيو نلی (مغز) | | | | | |

| سَاقِهَا | مِنْ | وَّرَاءِ | ذٰلِكَ | وَإِنَّ | عَلَيْهَا | مِنَ | التِّيْجَانِ | إِنَّ | أَدْنٰى |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| هم دلباس د لاندې نه ووينې او د هغه ښځي په سر به داسې تاجونه ايښې وي چې د هغه تاجونو | | | | | | | | | |

| لُؤْلُؤَةٍ | مِّنْهَا | لَتُضِيْءُ | مَا | بَيْنَ | الْمَشْرِقِ | وَالْمَغْرِبِ. | رَوَاهُ | أَحْمَدُ[1] |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| معمولي شان ملغلره به هم داسې وي چې د مشرق نه مغربه پوري هرشی به روښانه کړي[احمد] | | | | | | | | |

**توضيح** : في خدها: خد اننګي ته وايي يعنې د جنتی حورو جسمانی لطافت به دومره زيات وي چې د خاوند مخ به د هغې د شيشې غوندې مخ کې منعکس شي خاوند به ووينې . دغه حقيقت ته يو ظريف شاعر داسې اشاره کړې ده :

رأيت الخال في خد فقلت الخال افسانا      فما كانا وما كان لعين كان انسانا

يعنې ما د خپلې محبوبې په مخ باندې يو تورټکی وليدلو نو ما وويل چې دا ټکی آيا افسانه ده ، مګر هغه افسانه نه وه بلکه زما د سترګې کسی وو .

**على منكبيه**: ددينه معلوميږي چې دغه حوره به د خپل ټولو زيوراتو او ښائست سره د جنتي د اوږو شاته په سر و دريږي او لاندې به ده ته ګوري چې د محبت نهايت زړه وړونکی منظر به وي ، يو چا په پښتو کې ويلي دي :

سترګی راپورته کړه او ګوره      د ګلو څانګه دې په سر ولاړه يمه

## په جنت کې دزراعت (کرونده) خواهش او د هغه تکميل

| ﴿۴۰﴾ وَعَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَتَحَدَّثُ وَعِنْدَهُ رَجُلٌ مِّنْ أَهْلِ |
|---|
| او حضرت ابوهريره رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ نه روايت دی چې رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره يو ديهاتي (اطرافي) مسلمان |

| الْبَادِيَةِ | أَنَّ | رَجُلًا | مِّنْ | أَهْلِ | الْجَنَّةِ | اسْتَأْذَنَ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ناست وو او حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې په جنتيانو کې به يو سړی د خپل پروردګار نه د کروندې | | | | | | |

(۱) اخرجه احمد في المسند ۳/۷۵ .

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| رَبَّهُ | فِي | الزَّرْعِ | فَقَالَ | لَهُ | أَلَسْتَ | فِيمَا | شِئْتَ |

اجازه طلب کړي الله ! به ورته فرمايي ایاته چې څه غواړي هغه موجود نه دي هغه سړی به عرض

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| قَالَ | بَلَى | وَلٰكِنِّي | أُحِبُّ | أَنْ | أَزْرَعَ |

وکړي بیشکه دلته هرڅه موجود دي لیکن ځما خواهش دادی چې زمینداري وکړم بهرحال هغه سړي

| | | | |
|---|---|---|---|
| فَبَذَرَ | فَبَادَرَ | الطَّرْفَ | نَبَاتُهُ |

ته به د زمینداري اجازت ورکړی شي هغه به په ځمکه کې تخم وکري او د سترګو رپ کې به شین بوټي

| | | | |
|---|---|---|---|
| وَاسْتِوَاؤُهُ | وَاسْتِحْصَادُهُ | فَكَانَ | أَمْثَالَ | الْجِبَالِ |

راشین شي او هرکله چې فصل پخیدو سره وریبل شي او دغر برابر انبار ولګیږي نو الله ! به هغه

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فَيَقُولُ | اللهُ | تَعَالَى | دُونَكَ | يَا | ابْنَ | آدَمَ | فَإِنَّهُ |

سړي ته فرمايې ای ابن آدم اوګوره ستا خواهش پوره شو حقیقت دادی چې ستا د حرص خیټه هیڅ

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| لَا | يُشْبِعُكَ | شَيْءٌ | فَقَالَ | الْأَعْرَابِيُّ | وَاللهِ | لَا | تَجِدُهُ | إِلَّا | قُرَشِيًّا |

شی نشي ډکولی راوي وايي هغه دیهاتي وویل قسم په الله چې هغه سړی به یقینًایا قریشي وي یا

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| أَوْ | أَنْصَارِيًّا | فَإِنَّهُمْ | أَصْحَابُ | زَرْعٍ | وَأَمَّا | نَحْنُ | فَلَسْنَا | بِأَصْحَابِ | زَرْعٍ |

انصاري ځکه چې دا خلق کرونده کوي او هرچې مونږ دصحرا خلق یو د کروندو سره هیڅ واسطه نشته

فَضَحِكَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.[1]

دې اوریدو سره حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وخندل. بخاري

## په جنت کې به د خوب ضرورت نه وي

| | | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۴۱﴾ | وَعَنْ | جَابِرٍ | قَالَ | سَأَلَ | رَجُلٌ | رَسُولَ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ |

حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي یو سړي د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه پوښتنه وکړه آیا جنتیان به اوده کیږي؟

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| أَيَنَامُ | أَهْلُ | الْجَنَّةِ | قَالَ | النَّوْمُ | أَخُو | الْمَوْتِ | وَلَا يَمُوتُ |

رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ورته وفرمایل خوب د مرګ ورور دی او ښکاره ده چې جنتیان به نه مري او

(۱) اخرجه البخاري في صحيحه ۵/۲۷ رقم الحديث ۲۳۴۸ وأحمد في المسند ۲/۵۱۱

| أَهْلُ الْجَنَّةِ . رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِيْ شُعَبِ الْإِيْمَانِ.[1] |
|---|
| هرکله چې هغوئ نه مري نو اوده کېږي به هم نه دا روايت بيهقي په شعب الايمان کې نقل کړی دی. |

**نوټ** : په آخر کې د جنت د حصول په باره کې د بنده د زړه يو آواز خو هم واورئ کوم چې د بنده په خپل انداز کې دی :

| | |
|---|---|
| خدايه جنت زما نصيب کړې | په سپينه ګيره ډير فرياد درته کومه |
| زما رحمان غفور رحيم دی | زه له هغه د مغفرت دعاء کومه |
| رسول الله ﷺ به ګټه وکړي | شيطان به پړ کړي مونږ به ټول جنت له ځونه |



**هفته ۱۵ جمادی الثاني ۱٤۱۸هـ**

(۱) رواه البيهقي في شعب الايمان ۴/۱۸۳ رقم الحديث ۴۷۲۵.

# باب رؤية الله تعالى
# د ديدار الهی بيان

قال الله تعالى: ﴿وُجُوهٌ يَوْمَئِذٍ نَاضِرَةٌ إِلَىٰ رَبِّهَا نَاظِرَةٌ﴾

د اهل السنة والجماعة متفقه عقيده ده چې په قيامت او عالم آخرت کې به مؤمنان د الله تعالى ديدار کوي او دا نه شرعا محال دی او نه عقلا محال دی لهذا بلاوجه د ديدار الهی نه انکار مکابره او مجادله ده. بل طرفته اهل اهواء خوارج او معتزله دا وايي چې د الله تعالى ليدل او په دنيا او آخرت کې د هغه ديدار محال دی لهذا رؤيت د باری تعالى به نه وي.

**سوال**: که څوک دا سوال وکړي چې د جسماني سترګې لپاره دا ضروری ده چې شئ مرئی به جسم وي چې په هغه باندې نظر ودرېږي، او دا هم ضروری ده چې د هغه شئ مرئی لپاره به جهت وي چې سترګې هغه طرفته متوجه شي او دا هم ضروری ده چې هغه شئ په کوم خاص مکان او مقام باندې موجود وي تر څو د نظرونو په ګرفت کې راشي او دا ټول شيان د الله تعالى د الوهيت او قديمی صفت منافی دي لهذا ديدار الهی ناممکن دی.

**جواب**: ددې جواب دا دی چې الله تعالى قادر مطلق ذات دی د هغه لپاره دا مشکله نده چې هغه د سر په دې موجوده سترګو کې داسې بصيرت پيدا کړي لکه څنګه چې دغه رب په زړه کې بصيرت پيدا کړی دی بيا د سترګو ددغه بصيرت په دولت دغه انسان د جسماني جسم نه بغير همدارنګه د مکان او جهت د تعيين نه بغير په دې سترګو سره د کوم شی ادراک وکړی شي نو په دې کې استحاله نشته.

**دلائل**: معتزله او خوارج په عدم رؤيت د باری تعالى باندې د قرآن کريم ددې آيت نه استدلال کوي ﴿لَا تُدْرِكُهُ الْأَبْصَارُ﴾ د دوی په نزد ددې آيت تعلق د دنيا او آخرت دواړو سره دی لهذا په قيامت کې به هم ديدار نه وي، معتزله او خوارج عقل هم په خپل استدلال کې استعمالوي او وايي چې د سترګو مخې ته د جسم وجود ضروری دی او الله تعالى د جسم او جسماني حوادثاتو نه پاک دی نو ځکه د هغه ليدل هم محال دي.

اهل سنت و الجماعة د ديدار الهی د اثبات لپاره د قرآن کريم آيت ﴿وُجُوهٌ يَوْمَئِذٍ نَاضِرَةٌ إِلَىٰ رَبِّهَا نَاظِرَةٌ﴾ په طور د استدلال وړاندې کوي او د مذکوره باب د زياتو احاديثو نه استدلال کوي. همدارنګه په ديدار الهی باندې اجماع هم منعقده ده، اهل سنت ددې آيت نه هم استدلال کوي ﴿لِلَّذِينَ أَحْسَنُوا الْحُسْنَىٰ وَزِيَادَةٌ﴾ يعنې کومو خلکو چې نيک کارونه وکړل د هغو لپاره

حسنى يعنې جنت هم دى او يو څه زياتې هم دى ، همدغه زياتى ديدار الهى دى .

اهل سنت ددې آيت نه هم استدلال كوي ﴿كَلَّا إِنَّهُمْ عَن رَّبِّهِمْ يَوْمَئِذٍ لَّمَحْجُوبُونَ﴾ طريقه د استدلال داسې چې د كفار به ديدار الهي نه په طور د سزا منع كړى شي لهذا مؤمنانو ته به دا سزا نه وي بلكه ديدار به وي . يو بزرګ يو معتزلى كس ته وويل رښتيا ووايه چې تا ته د ديدار الهى تمنا شته او كه نه ؟ هغه وويل تمنا خو شته ، بزرګ وويل بيا خو ديدار محال نه دى بلكه ممكن شو ځكه چې د محال تمنا نه كيږي بلكه د ممكن تمنا كيږي .

**جواب** : معتزلو خوارجو او مرجئو اهل باطلو چې د كوم آيت نه استدلال كړى دى د هغه يو جواب دا دى چې په دې آيت كې د ديدار د نفى تعلق د دنيا سره دى چې په دنيا كې داسې كيدلى نشي .

**دويم جواب** دا دى چې په ( **لاتدركه الابصار** ) كې د احاطه نفى ده چې په الله تعالى باندې د نظر احاطه نشي راتللى ، ليدل يو شى دى او احاطه او ادراک بل شى دى.

**دريم جواب** : دا دى چې د **لاتدركه الابصار** والا د نفى په آيت كې د ډيرو احتمالاتو ګنجائش شته او د ديدار د اثبات آيت صريح دى په دې كې احتمالات نشته . څلورم جواب په اصل كې د معتزلو او خوارجو د عقلى دليل جواب دى اګرچې د هغوى د عقلى دليل جواب ددې نه مخكې د بحث په شروع كې وركړى شوى دى ، خلاصه دا ده چې الله تعالى قادر مطلق دى كه د رؤيت لپاره جسامت ضرورى دى نو شايد دا به د دنيا د بصارت لپاره وي د آخرت په بصارت كې به نوى قوت راځي ، همدارنګه د رؤيت لپاره جهت ضرورى شى نه دى د هر جهت نه هم رؤيت كيدلى شي لكه څنګه چې علم د هر جهت نه راځي دده لپاره د كوم جهت ضرورت نشته د هر طرفنه علم راتللى شي ، همدارنګه الله تعالى چې كله چا ته ګوري نو ددې لپاره هم جهت ضرورى نه دى لهذا دغه عقلى تصور صحيح نه دى چې د ديدار الهى لپاره د جهت او مكان وجود ضرورى دى .

## د يدار الهى اقسام او مقامات

د حساب او كتاب په وخت كې به د الله تعالى يو عام ديدار كيږي چې د محشر په ميدان كې به وي په دې كې به ټول مخلوقات شامل وي كه مسلمان وي او كه غير مسلمان وي ، د نفى تعلق ددې رؤيت سره نه دى چې بيا به كله هم ديدار نه كيږي ، د نفى تعلق د ميدان محشر نه بعد ديدار سره كيدلى شي . دويم ديدار به په جنت كې وي دا د مسلمانانو سره خاص دى چې يو وار به نه وي بلكه بار بار به وي ، ددې ثبوت په قرآن او حديث كې دى ، همدارنګه راجح قول دا دى چې جنتيان ښځې به هم په ديدار كې شريكې وي ، همدارنګه د راجح قول مطابق ملائكې او جنات به هم په جنت كې په ديدار الهى سره مشرف كيږي . په دنيا كې ديدار الهى اګرچې ممكن دى مګر غير واقع دى چې كوم كس د

دیدار الهی دعوه کوي هغه به ګمراه کیږي .
اوس پاتې شوه دا خبره چې حضور صلی الله علیه وسلم د معراج په شپه د الله تعالی دیدار کړی وو او که نه ؟ نو په دې کې د حضرت عائشه او حضرت ابن مسعود او حضرت ابوهریره رضوان الله علیهم اجمعین رأیه دا ده چې دیدار شوی نه وو لیکن د حضرت ابن عباس حضرت انس او د جمهورو صحابه رأیه دا ده چې دیدار شوی وو او همدا راجح دی . د حضرت ابوذر غفاری رضی الله عنه نه د دیدار نفی او اثبات دواړه منقول دي ، د علامه طیبی رحمه الله په نزد توقف بهتر دی . د معراج متعلق احادیثو کې اګرچې د دیدار د اثبات او نفی دواړه احتماله شته مګر جمهورو صحابهؤ او جمهورو علماؤ رؤیت راجح ګرځولی دی ، د معراج د روایاتو اصل حقیقت دا دی چې د الله تعالی انوارات او تجلیات مختلف دي ، بعضې تجلیات **(قاهرة للبصر)** دي او بعضې **(غير قاهرة للبصر)** دي نو کوم تجلیات چې قاهره للبصر دي د هغوی په وجود کې خو انسان دیدار کولی نشي او بعضې تجلیات چې قاهره للبصر نه دي د هغو په موجودګۍ کې یو قسم دیدار کیدلی شي ، د معراج په شپه کې د حضور صلی الله علیه وسلم د دیدار مسئله د دغو تجلیاتو او انواراتو د تنوع او اقسامو په اعتبار سره حل کیدلی شي .لهذا عائشه رضی الله عنها چې په معراج کې د دیدار کوم انکار کړی دی نو هغه د ذات باری تعالی دیدار او د دغو خاصو تجلیاتو انکار دی چې دیته په حدیث کې داسې اشاره شوې ده **(نورانی اراه)** هغه خو یوه تجلی ده زه هغه چیرته لیدلی شم . دلته حضرت ابن عباس رضی الله عنه چې د کوم دیدار اثبات کړی دی هغه ځانته انوارات او تجلیات دي چې دیته په دې حدیث کې اشاره ده (رأیت نورا) ما یو خاص نور لیدلی وو .
د تجلیاتو او انواراتو دغه تقسیم ته په آینده حدیث نمبر ۶ کې واضحه اشاره شوې ده چې کافی او شافی ده ، په آخر کې دا خبره ذهن کې کینول پکار دي چې آیا په خوب کې د الله تعالی دیدار کیدلی شي او که نه ؟ نو علماؤ لیکلي دي چې دا ممکنه ده لیکن دا یو تخیل او تصور او علمی مشاهده ده چې په دې سره انسان تسلی حاصلولی شي نور څه کیدلی نشي . حضرت امام ابو حنیفه رحمه الله فرمایلي چې ما په خوب کې سل کرته د الله تعالی دیدار کړی دی . د امام احمد بن حنبل رحمه الله په باره کې هم دا ویلی کیږي چې هغه ویلي دي ما الله تعالی په خوب کې ولیده نو ما پوښتنه ورنه وکړه چې کوم عمل تا ته زیات خوښ دی ؟ الله تعالی وفرمایل چې تلاوت د قرآن ، امام صاحب وپوښتل چې په معانیو او مطالبو باندې پوهیدو سره او که ددې نه بغیر؟ ویې فرمایل که په معانیو باندې پوهیدو سره وي یا ددینه بغیر وي . په هر حال دا مسئله په باب الرؤیا کې په تفصیل سره لیکلی شوې ده او آینده **باب المعراج** کې به هم راشي .

## الفصل الاول

﴿۱﴾ عَنْ جَرِيْرِ بْنِ عَبْدِ اللهِ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّكُمْ

حضرت جرير بن عبد الله رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل هغه وقت راتلونکی

سَتَرَوْنَ رَبَّكُمْ عَيَانًا وَ فِيْ رِوَايَةٍ قَالَ كُنَّا

دی چې په قيامت کې به تاسو خپل پروردګار په خپلو کولاؤ (غړيدلو) سترګو سره ووينئ په يو

جُلُوْسًا عِنْدَ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

روايت کې حضرت جرير دا بيان وکړو چې يوه ورځ مونږ د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره ناست وو چې

فَنَظَرَ إِلَى الْقَمَرِ لَيْلَةَ الْبَدْرِ فَقَالَ إِنَّكُمْ سَتَرَوْنَ رَبَّكُمْ

حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د څوارلسمې شپې سپوږمۍ ته وکتل او وې فرمائيل تاسو به خپل رب داسې

كَمَا تَرَوْنَ هٰذَا الْقَمَرَ لَا تُضَامُّوْنَ فِيْ رُؤْيَتِهِ فَإِنِ

ووينئ څرنګه چې دا سپوږمۍ وينئ او د پروردګار په ليدو کې به تاسو څه بنديز نه محسوسوئ

اسْتَطَعْتُمْ أَنْ لَّا تُغْلَبُوْا عَلَى صَلَاةٍ قَبْلَ طُلُوْعِ

که تاسو کولی شئ نو هغه مونځ چې د نمر راختو نه مخکې دی يعني د سهار مونځ او هغه مونځ

الشَّمْسِ وَقَبْلَ غُرُوْبِهَا فَافْعَلُوْا

چې د نمر ډوبيدو نه مخکې دی يعني د مازيګر مونځ مه پريږدئ او ضروريې داکوئ بيايې دا

ثُمَّ قَرَءَ وَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ

آيت تلاوت کړو وَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ .. او د خپل پروردګار حمد او پاکې بيانوئ يعني مونځ کوئ د

قَبْلَ طُلُوْعِ الشَّمْسِ وَقَبْلَ غُرُوْبِهَا. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ [1]

نمر ختو نه مخکې او د نمر پريوتو نه مخکې. [بخاري مسلم]

---

([1]) اخرجه البخاري في صحيحه ۱۳۱/۴۱۹ رقم الحديث ۷۳۳۵ ومسلم ۱/۴۳۹ رقم الحديث (۶۳۳-۲۱۱)

## ديدار الهى د ټولو نه لوي نعمت دى

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۲﴾وَعَنْ | صُهَيْبٍ | عَنِ | النَّبِيِّ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ |

او حضرت صهيب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه روايت كوي چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| قَالَ | إِذَا.دَخَلَ | أَهْلُ | الْجَنَّةِ | الْجَنَّةَ | يَقُوْلُ | اللهُ تَعَالَى |

هركله چې ټول جنتيان په جنت كې خپل خپل ځاي ته ورشي نو الله ! به

| | | | |
|---|---|---|---|
| تُرِيْدُوْنَ | شَيْئًا | أَزِيْدُكُمْ | فَيَقُوْلُوْنَ |

وفرمايي د هغې نه زيات څه نور څه تا سو زمانه غواړئ جنتيان به عرض وكړي اى زمونږ پروردګاره!

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| أَلَمْ | تُبَيِّضْ | وُجُوْهَنَا | أَلَمْ | تُدْخِلْنَا الْجَنَّةَ |

آيا تا زمونږ مخونه روښانه او منور كړي نه دي آيا تا مونږ جنت ته داخل كړي نه يو آيا تا مونږ ته

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَتُنَجِّنَا | مِنَ | النَّارِ | قَالَ | فَيُرْفَعُ الْحِجَابُ |

د دوزخ د اور نه نجات نه دى راكړى حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل بيا به د حجاب پردہ پورته شي او

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| فَيَنْظُرُوْنَ | إِلَى | وَجْهِ | اللهِ | تَعَالَى | فَمَا |

جنتيان به د الله تعالى ذات اقدس طرف ته وګوري جنتيانو ته به داسې نعمت وركړى شوى نه وي

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| أُعْطُوْا | شَيْئًا | أَحَبَّ | إِلَيْهِمْ | مِنَ | النَّظَرِ | إِلَى رَبِّهِمْ |

كوم چې د پروردګار طرف ته د هغه د ليدو نه زيات ښه او پسنديده (محبوب) وي بيا حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

ثُمَّ تَلَا لِلَّذِيْنَ أَحْسَنُوا الْحُسْنٰى وَزِيَادَةٌ. رَوَاهُ مُسْلِمٌ[1]

دا آيت ولوستلو: للذين احسنوا الحسنٰى وزيادة [مسلم]

---

[1] اخرجه مسلم في صحيحه ۱/۱۶۳ رقم الحديث (۱۸۱-۲۹۷) والترمذي ۴/۵۹۳ رقم الحديث ۲۵۵۲.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِيْ

## په جنت کې به صبا او بیګا دیدار الهی وي

﴿۳﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل په جنتیانو کې د قدر او مرتبې

إِنَّ أَدْنٰى أَهْلِ الْجَنَّةِ مَنْزِلَةً لَمَنْ يَّنْظُرُ إِلٰى جِنَانِهِ

په اعتبار د ادنٰی سړي هغه مرتبه وي چې خپلو باغونو خپلو ښځو خپلو نعمتونو خپلو خدمتګارو

وَأَزْوَاجِهِ وَنَعِيْمِهِ وَخَدَمِهِ وَسُرُرِهِ مَسِيْرَةَ أَلْفِ سَنَةٍ

او د خپلي ناستي (استراحت کولو) تخت او کرسۍ باندې به نظر لري چې د زرو کالو د مسافت په

وَأَكْرَمُهُمْ عَلَى اللهِ مَنْ يَّنْظُرُ إِلٰى وَجْهِهِ غُدْوَةً وَّعَشِيَّةً

اندازه رقبه کې به خواره وي او د الله ! په نزد د لویې مرتبې سړی به هغه وي چې سهار او ماښام

ثُمَّ قَرَءَ وُجُوْهٌ يَّوْمَئِذٍ نَّاضِرَةٌ إِلٰى

د خپل پروردګار د ذات اقدس د دیدار سعادت حاصلوي بیا حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دا آیت تلاوت کړو

رَبِّهَا نَاظِرَةٌ. رَوَاهُ أَحْمَدُ وَ رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.[1]

(وُجُوهٌ) ډیر مخونه به په هغه ورځ تروتازه او خوشحاله وي د خپل پروردګار دیدار کوونکي به وي. [ترمذي]

﴿۴﴾ وَعَنْ أَبِيْ رَزِيْنِ الْعُقَيْلِيِّ قَالَ قُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللهِ أَكُلُّنَا يَرٰى

او حضرت ابو رزین عقیلي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي ما عرض وکړو یارسول الله! آیا مونږ کې هریو غیر د بل چا

رَبَّهُ مُخْلِيًا بِهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ قَالَ بَلٰى

مزاحمت نه به خپل پروردګار ویني حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل هو ابو رزین وايي ما بیا ترینه

---

[1] اخرجه احمد في المسند ۲/۶۴ والترمذي في السنن ۴/۵۹۳ رقم الحديث ۲۵۵۳.

| قَالَ | خَلْقِهِ | فِي | ذٰلِكَ | آيَةُ | وَمَا | قُلْتُ |
|---|---|---|---|---|---|---|

پوښتنه وکړه آیا د پروردګار د دیدار د دنیاوي مخلوق کې څه مثال شته؟ حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل

| لَيْلَةَ | الْقَمَرَ | يَرَى | كُلُّكُمْ | أَلَيْسَ | رَزِيْنٍ | أَبَا | يَا |
|---|---|---|---|---|---|---|---|

ای ابو رزین! آیا تاسو کې هرسړی په څوارلسمه شپه کې سپوږمۍ بغیر د مزاحمت نه نه ویني؟

| فَإِنَّمَا | قَالَ | بَلَى | قَالَ | بِهِ | مُخْلِيًا | الْبَدْرِ |
|---|---|---|---|---|---|---|

ما عرض وکړو بیشکه وینی یي نو حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل چې سپوږمۍ خو دینه علاوه نوره

| دَاوُدَ. (1) | أَبُو | رَوَاهُ | . | وَأَعْظَمُ | أَجَلُّ | وَاللهُ | اللهِ | خَلْقِ | مِنْ | خَلْقٌ | هُوَ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|

هیڅ نه ده چې هغه د پروردګار د مخلوق نه یو مخلوق دی او پروردګار ډیر لوی او اوچت او برتر دی

**توضیح** : **مخلیا**: په میم باندې ضمه ده لام مکسور دی او په یاء باندې تنوین دی د تخلیة نه دی یوائې او بلا زحمته دیدار مراد دی.

**آیة ذلک**: یعنې په دې باندې دلیل څه شی دی داسې شی شته چې مونږ یې په طور د دلیل سره پیش کړو.

**خلق**: یعنې د هغه دیدار مثال د سپوږمۍ او لمر لیدل دي چې کله دا دواړه د الله تعالی د مخلوقاتو نه مخلوق دی او تاسې بلا تکلیف او بلا مزاحمت په آسانۍ سره دا لیدلی شي نو الله تعالی خو رب العلمین دی ډیر لوی دی د هغه په دیدار کې څه تکلیف او څه مزاحمت کیدلی شي.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

| وَسَلَّمَ | عَلَيْهِ | اللهُ | صَلَّى | اللهِ | رَسُوْلَ | سَأَلْتُ | قَالَ | ذَرٍّ | أَبِيْ | عَنْ | ﴿۵﴾ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|

حضرت ابوذر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي ما د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه پوښتنه وکړه آیا تاسو په شب معراج کې

| قَالَ | رَبَّكَ | رَأَيْتَ | هَلْ |
|---|---|---|---|

خپل پروردګار لیدلی دی؟ حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل پروردګار خو یو نور دی زه هغه

---

(1) اخرجه ابوداود في السنن ۵/۹۹ رقم الحديث ۴۷۳۱ وابن ماجه ۱/۶۴ رقم الحديث ۱۸۰ واحمد في المسند ۴/۱۱.

| نُورٌ أَنّٰی أَرَاهُ. رَوَاهُ مُسْلِمٌ.[۱] |
|---|
| څرنګه لیدلی شم. [مسلم] |

**توضیح**: نور أنى اراه: که أَنّٰى اراه شي نو دا به د دیدار د یو قسم نفې شي چې د ذات او تجلیاتو خاص قسم به مراد شي . او که اِنِّيْ اراه شي نو دا به بیا د یو بل قسم تجلي اثبات شي، او کچیرې نُورَانِيٌّ اَرَاهُ شي نو بیا هم اثبات کیږي دیدار ثابتیږي .

| ﴿۶﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ مَا كَذَبَ الْفُؤَادُ مَا رَأَى |
|---|
| او حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د الله ! د دي ارشاد : مَا كَذَبَ الْفُؤَادُ الخ او د محمد زړه غلط ونه ویل |
| وَلَقَدْ رَآهُ نَزْلَةً أُخْرٰى |
| د هغه شي باره کې چې هغوئ په خپلو سترګو سره اولیدلو یعني ذاتِ اقدس تعالیٰ او حقیقت دادی |
| قَالَ رَآهُ بِفُؤَادِهِ |
| چې هغوئ پروردګار یو وار بل ولیدلي د دي په تفسیر کې وایي چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ پروردګار |
| مَرَّتَيْنِ. رَوَاهُ مُسْلِمٌ وَفِيْ رِوَايَةِ التِّرْمِذِيِّ |
| د خپل زړه په سترګو سره دوه واري اولیدلو وو [مسلم] او د ترمذي روایت کې داسې دي چې |
| قَالَ رَأٰى مُحَمَّدٌ رَبَّهُ قَالَ عِكْرِمَةُ |
| حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وویل چې محمد صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خپل پروردګار اولیدلو حضرت عکرمه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي |
| قُلْتُ أَلَيْسَ اللهُ |
| چې حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته مې وویل چې قرآن کریم کې د خپل ذات باره کې الله ! |
| يَقُوْلُ لَا تُدْرِكُهُ الْأَبْصَارُ وَهُوَ يُدْرِكُ الْأَبْصَارَ قَالَ وَيْحَكَ |
| فرمایلي دي لَا تُدْرِكُهُ الْأَبْصَارُ وَهُوَ يُدْرِكُ الْأَبْصَارَ حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وویل په تا افسوس دی |

[۱] اخرجه مسلم في صحيحه ۱/۱۵۸ رقم الحديث ( ۱۷۵-۲۸۵ ) والترمذي في السنن ۵/۳۶۹ رقم الحديث ۳۲۸۲.

| ذَاكَ | اِذَا | تَجَلّٰى | بِنُوْرِهِ | الَّذِيْ |
|---|---|---|---|---|
| دا په هغه وخت کې دی کله چې الله ! خپله تجلي ښکاره کړي او خپل هغه نور سره ښکاره شي کوم | | | | |
| هُوَ | نُوْرُهٗ | وَقَدْ | رَآٰى رَبَّهٗ | مَرَّتَيْنِ.[1] |
| چې د هغه د ذات خاص نور دی او په دي کې څه شک نشته چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خپل پروردګار دوه واره ولیدلو | | | | |

**توضیح** : رآه بفؤاده: یعنې په زړه سره يې دیدار وکړلو او دوه ځله يې وکړلو ، یو وار د سدرة المنتهی سره او دویم وار يې په عرش عظیم باندې دیدار وکړلو ، په زړه سره د دیدار دا معنی ده چې الله تعالی د نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په زړه کې د لیدلو هغه طاقت پیدا کړلو کوم يې چې په سترګو کې پیدا کړی وو ، نو حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د زړه په سترګو سره الله تعالی ولیدلو ، علم او تصور مراد نه دی ، لیدل مراد دي . د سورة نجم په آیتونو کې حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او د صحابه کرامو لوی جماعت دې ته تګ کړی چې د دې نه د الله تعالی دیدار مراد دی مګر د حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا او ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او څه صحابه کرامو خیال دی چې د دې دیدار نه د حضرت جبرائیل عَلَيْهِ السَّلَامُ لیدل مراد دي، الهی دیدار مراد نه دی ، تطبیق مخکې بیان شوی دی .

## د دیدار متعلق د حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا رایه

| ﴿۷﴾ | وَعَنِ | الشَّعْبِيِّ | قَالَ | لَقِيَ | ابْنُ | عَبَّاسٍ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| او حضرت شعبي رحمه الله وايي د عرفي په ورځ په میدان عرفات کې حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ | | | | | | |
| كَعْبًا | بِعَرَفَةَ | فَسَأَلَهُ | عَنْ | شَيْءٍ | | |
| حضرت کعب احبار رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره ملاقات وکړو او هغه نه يې پوښتنه وکړه چې آیا په دنیا کې د حق تعالی | | | | | | |
| فَكَبَّرَ | حَتّٰى | جَاوَبَتْهُ | | | | |
| دیدار ممکن دی؟ حضرت کعب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د الله اکبر نعره ووهله او د هغه د دې زور دارې نعرې | | | | | | |

| عَبَّاسٍ | ابْنُ | فَقَالَ | الْجِبَالُ |
|---|---|---|---|

دبازګشت(راتمبيدلو) نه غرونه وکړنګيدل حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ورته وويل مونږ د هاشم

| كَعْبٌ | فَقَالَ | هَاشِمٍ | بَنُو | إِنَّا |
|---|---|---|---|---|

اولاد يو حضرت كعب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ورته وويل بنه ستا د پوښتنې مقصد اوس ځماپه پوهه کې راغلو نو

| مُحَمَّدٍ | بَيْنَ | وَكَلَامَهُ | رُؤْيَتَهُ | قَسَمَ | تَعَالَى | اللهَ | إِنَّ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|

واوره! الله ! خپل ديدار او خپل كلام د حضرت محمد صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ او حضرت موسیٰ عَلَيْهِ السَّلَامُ په

| مَرَّتَيْنِ | مُوسٰى | فَكَلَّمَ | وَمُوسٰى |
|---|---|---|---|

منځ کې تقسیم کړي نو الله ! دوه واره دموسیٰ عَلَيْهِ السَّلَامُ سره کلام او حضرت محمد صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

| مَسْرُوقٌ | قَالَ | مَرَّتَيْنِ | مُحَمَّدٌ | رَآهُ | وَ |
|---|---|---|---|---|---|

دوه واره الله ! اوليدلو حضرت مسروق رحمه الله چې د حديث راوي دی او هغه نه حضرت شعبي رحمه الله

| عَائِشَةَ | عَلَى | فَدَخَلْتُ |
|---|---|---|

دا روايت نقل کوي وايي چې زه د بي بي عـائشي رَضِيَ اللهُ عَنْهَا په خدمت کې حاضر شوم او هغې ته مې

| رَبَّهُ | مُحَمَّدٌ | رَأَى | هَلْ | فَقُلْتُ |
|---|---|---|---|---|

عرض وکړو آيا حضرت محمد صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خپل پروردګار ليدلی دی؟ بي بي عـائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا

| بِشَيْءٍ | تَكَلَّمْتَ | لَقَدْ | فَقَالَتْ |
|---|---|---|---|

جواب راکړو ای مسروقه تا داسې خبرې پوښته کړيده چې هغې سره ځما په جسم ويښته ودريدل

| رُوَيْدًا | قُلْتُ | شَعْرِي | لَهُ | قَفَّ |
|---|---|---|---|---|

ما عرض وکړو لږد توقف نه کار واخلئ بيا ما د ديدارِ الٰهي ثبوت کې دا آيت ووايه: لَقَدْ رَاٰى مِنْ

| فَقَالَتْ | الْكُبْرٰى | رَبِّهِ | آيَاتِ | مِنْ | رَاٰى | لَقَدْ | قَرَأْتُ | ثُمَّ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|

آيَاتِ رَبِّهِ الْكُبْرٰى بي بي عـائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا په دې اوريدو سره وفرمايل ای مسروقه! دا آيتونه

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| أَيْنَ | يُذْهَبُ | بِكَ | إِنَّمَا | هُوَ |

تاكوم خوا بوځې؟ د لويې نښې نه مراد حضرت جبريـل ) دی کـوم سړی چې په تا سو کې دا

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| جِبْرَئِيْلُ | مَنْ | أَخْبَرَكَ | أَنَّ | مُحَمَّدًا |

وايي چې حضرت محمد ﷺ شبِ معراج كې خپل پروردګار ليدلی دی يا دا وايي چې

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| رَأٰى | رَبَّهُ | أَوْ | كَتَمَ | شَيْئًا | مِمَّا |

حضور ﷺ د هغه څيزونو نه څه پټ کړي دي چې د هغه د اظهار هغوئ ته حکم ورکړی شوی

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| أُمِرَ | بِهِ | أَوْ | يَعْلَمُ | الْخَمْسَ | الَّتِيْ |

وو يا دا وايي چې حضور ﷺ د هغه پنځه غيبي خبرو علم لرلو چې د هغې باره کې

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| قَالَ | اللهُ | تَعَالٰى | إِنَّ | اللهَ |

الله ! د قرآن آيت: إِنَّ اللهَ عِنْدَهُ عِلْمُ السَّاعَةِ وَيُنَزِّلُ الغَيْثَ الخ کې ارشاد فرمائيلی دی نو بلاشبه

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| عِنْدَهُ | عِلْمُ | السَّاعَةِ | وَيُنَزِّلُ | الْغَيْثَ |

هغه په حضرت محمد ﷺ ډير لوی تهمت بهتان وتړلو او هر چې د دې آيت مطلب دی کوم

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| فَقَدْ | أَعْظَمَ | الْفِرْيَةَ | وَلٰكِنَّهُ | رَاٰى | جِبْرَئِيْلَ |

چې تا وويله دی نو د دې مراد د دې نه علاوه نور هيڅ نه دی چې حضور ﷺ حضرت جبريل

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| لَمْ | يَرَهُ | فِيْ | صُوْرَتِهِ | إِلَّا | مَرَّتَيْنِ | مَرَّةً | عِنْدَ | سِدْرَةِ | الْمُنْتَهٰى |

د هغه په اصل صورت کې يو ځل د سدرة المنتهٰی سره نژدې ليدلی دی څرنګه چې د دې آيت: لَقَدْ رَاٰهُ

| | | | |
|---|---|---|---|
| وَمَرَّةً | فِيْ | أَجْيَادٍ | لَهُ |

نَزْلَةً أُخْرٰى عِنْدَ سِدْرَةِ الْمُنْتَهٰى) کې فرمائيل شوي دي او يو وار د مکې په اطرافو اجياد کې ليدلی وو

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| سِتُّ | مِائَةِ | جَنَاحٍ | قَدْ | سَدَّ | الْأُفُقَ | رَوَاهُ | التِّرْمِذِيُّ |

چې د هغه شپږ سوه وزرې وې او هغه پوره افق ګير کړی وو دا روايت د ترمذي دی الفاظو سره او

| | | | |
|---|---|---|---|
| وَرَوَى | الشَّيْخَانُ | مَعَ | زِيَادَةٍ |

بخاري او مسلم څه اضافي او مختلف الفاظو سره نقل کړي دي او د بخاري او مسلم په يوه

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَاخْتِلَافٍ | وَفِيْ | رِوَايَتِهِمَا | قَالَ | قُلْتُ | لِعَائِشَةَ |

روايت کې داسې دي چې مسروق رحمه الله بي بي عائشې رضي الله عنها ته وويل که حضور صلى الله عليه وسلم

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| فَأَيْنَ | قَوْلُهُ | ثُمَّ | دَنٰى | فَتَدَلّٰى | فَكَانَ | قَابَ |

الله ! نه دی ليدلی نو بيا د الله ! د دي ارشاد محمل او مصداق څه دی: ثُمَّ دَنٰى فَتَدَلّٰى فَكَانَ قَابَ

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| قَوْسَيْنِ | أَوْ | أَدْنٰى | قَالَتْ | ذَاكَ | جِبْرَئِيْلُ | عَلَيْهِ | السَّلَامُ |

قَوْسَيْنِ اَوْ اَدْنٰى بي بي عائشې رضي الله عنها جواب ورکړو د دي ټولو ضميرونو مرجع حضرت جبريل عليه السلام

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| كَانَ | يَأْتِيْهِ | فِيْ | صُوْرَةِ | الرَّجُلِ | وَإِنَّهُ | أَتَاهُ | هٰذِهِ | الْمَرَّةَ |

دی چې عام طور سره به حضور صلى الله عليه وسلم ته په انساني شکل کې راتلو او دا ځل هغه په خپل

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| فِيْ | صُوْرَتِهِ | الَّتِيْ | هِيَ | صُوْرَتُهُ | فَسَدَّ | الْأُفُقَ.[1] |

شکل او صورت کې راغلی وو کوم چې د هغه اصل صورت دی او هغه پوره اُفق ګير کړی وو

## د حضرت ابن مسعود رضي الله عنه رايه

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۸﴾ وَعَنِ | ابْنِ | مَسْعُوْدٍ | فِيْ | قَوْلِهِ | (فَكَانَ | قَابَ | قَوْسَيْنِ | أَوْ | أَدْنٰى) |

او حضرت ابن مسعود رضي الله عنه د الله ! دي ارشاد: فَكَانَ قَابَ قَوْسَيْنِ اَوْ اَدْنٰى او د الله ! د دي ارشاد

| | | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَفِيْ | قَوْلِهِ | مَا | كَذَبَ | الْفُؤَادُ | مَا | رَأَى | وَفِيْ | قَوْلِهِ | لَقَدْ | رَأَى | مِنْ آيَاتِ |

مَا كَذَبَ الْفُؤَادُ مَا رَاٰى: او د الله ! د دي ارشاد :لَقَدْ رَاٰى مِنْ آيَاتِ رَبِّهِ الْكُبْرٰى ) د دې ټولو آيتونو په

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| رَبِّهِ | الْكُبْرٰى | قَالَ | فِيْهَا | كُلِّهَا | رَأَى | جِبْرَئِيْلَ |

تفسير کې ليکي چې حضور صلى الله عليه وسلم حضرت جبريل ) د هغه اصل صورت کې اوليدلو چې

[1] اخرجه البخاري في صحيحه ۸/۴۷۲ رقم الحديث ۴۸۵۵ والترمذي ۵/۳۱۷ رقم الحديث ۳۲۷۸.

لَهُ سِتُّمِائَةِ جَنَاحٍ [مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ]

د هغه شپږ سوه وزرې وې بخاري ، مسلم او د ترمذي روایت کې داسې دی چې

وَفِي رِوَايَةِ التِّرْمِذِيِّ قَالَ مَا كَذَبَ الْفُؤَادُ مَا رَآى

حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د الله ! د دې ارشاد : مَا كَذَبَ الْفُؤَادُ مَارَاٰى په تفسیر کې وویل حضور)

قَالَ رَآى رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

حضرت جبریل عَلَيْهِ السَّلَامُ اولیدلو چې د شنو کپړو جوړه یې اغوستې وه او دآسمان او د ځمکې په منځ کې

جِبْرِيْلَ فِي حُلَّةٍ مِنْ رَفْرَفٍ قَدْ مَلَأَ مَا بَيْنَ

فضاء ترینه معموره وه او د بخاري په یوبل روایت کې داسې دي چې حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ

السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ وَلَهُ وَلِلْبُخَارِيِّ فِيْ قَوْلِهِ لَقَدْ

دالله ! ارشاد : وَلَقَدْ رَاٰى مِنْ اٰيَاتِ رَبِّهِ الْكُبْرٰى په تفسیرکې وویل چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جامه سبز

رَآى مِنْ آيَاتِ رَبِّهِ الْكُبْرٰى قَالَ رَآى رَفْرَفًا أَخْضَرَ سَدَّ أُفُقَ السَّمَاءِ [1]

پوش یعني حضرت جبرائیل یې اولیدلو کوم چې پوره آسماني اُفق یې ګیر کړی وو او د

وَسُئِلَ مَالِكُ بْنُ أَنَسٍ عَنْ قَوْلِهِ تَعَالَى إِلَى رَبِّهَا نَاظِرَةٌ

امام مالک بن انس رحمه الله نه د الله ! د ارشاد : إِلٰى رَبِّهَا نَاظِرَةٌ باره کښې پوښتنه وشو او هغوئ ته

فَقِيْلَ قَوْمٌ يَقُوْلُوْنَ إِلَى ثَوَابِهِ

وویل شوه چې څه خلق په دې آیت کې وائي چې الله ! طرف ته د کتلو نه مراد د هغه ثواب لیدل

فَقَالَ مَالِكٌ كَذَبُوْا فَأَيْنَ هُمْ

مراد دي نو امام مالک رحمه الله وفرمایل هغه خلق دروغجن دي آخر د هغوئ پو هه چیرته ولاړله

---

(1) اخرجه البخاري في صحيحه ۸/۴۷۶ رقم الحديث ۴۸۵۶ ومسلم ۱/۱۵۸ رقم الحديث ۲۸۱/۱۷۴ .

| عَنْ | قَوْلِهٖ | تَعَالٰى | كَلَّا | إِنَّهُمْ | عَنْ | رَّبِّهِمْ | يَوْمَئِذٍ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| هغوئ د الله ! دا ارشاد : كَلَّا اِنَّهُم عَن رَبِّهِم يَومَئِذٍ لَّمَحجُوبُونَ ولي نه ويني بيا امام مالک وفرمايل | | | | | | | |
| لَّمَحْجُوْبُوْنَ. | قَالَ | مَالِكٌ | اَلنَّاسُ | | | | |
| چې مسلمانان خلق به الله ! خپلو سترګو سره ويني او وې فرمايل كه دا خبره وي چې اهلِ ايمان | | | | | | | |
| يَنْظُرُوْنَ إِلَى اللهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ بِأَعْيُنِهِمْ وَقَالَ لَوْ لَمْ يَرَ الْمُؤْمِنُوْنَ رَبَّهُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ | | | | | | | |
| به د قيامت په ورځ خپل پروردګار نه ويني نو الله ! به كفاروته د ديدارِ الهي نه د محرومۍ عار | | | | | | | |
| لَمْ | يُعَيِّرِ | اللهُ | الْكُفَّارَ | بِالْحِجَابِ | فَقَالَ | كَلَّا | إِنَّهُمْ | عَنْ | رَّبِّهِمْ | يَوْمَئِذٍ |
| نه وركولى او دا به يي نه فرمائيل چې : كَلَّا اِنَّهُم عَن رَّبِّهِم يَومَئِذٍ لَّمَحجُوبُونَ دا روايت بغوي رحمه الله | | | | | | | |
| لَّمَحْجُوْبُوْنَ. رَوَاهُ فِيْ شَرْحِ السُّنَّةِ[1] | | | | | | | |
| شرح السنه كې نقل كړى دى. | | | | | | | |

## د ديدارِ الهي كيفيت

| ﴿۹﴾وَعَنْ | جَابِرٍ | عَنِ | النَّبِيِّ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ | بَيْنَا |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| او حضرت جابر رضي الله عنه د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه نقل كوي هركله چې جنتيان خپلو خاصو نعمتونو | | | | | | | | |
| أَهْلُ | الْجَنَّةِ | فِيْ | نَعِيْمِهِمْ | إِذْ | سَطَعَ | لَهُمْ | نُوْرٌ | |
| نه لذت او خوند اوچتولو كې مشغول شي نو ناڅاپه به د هغوئ مخكې يو عظيم نور راشي هغوئ | | | | | | | | |
| فَرَفَعُوْا | رُؤُوْسَهُمْ | فَإِذَا | الرَّبُّ | قَدْ | أَشْرَفَ | عَلَيْهِمْ | مِنْ | فَوْقِهِمْ |
| به خپل سرونه پورته كړي نو څه به ويني چې د هغوئ د پاسه پروردګار جلوه كړ دى او پروردګار به | | | | | | | | |

[1] اخرجه البغوي في شرح السنة ١٥/٣٣٩.

| |
|---|
| فَقَالَ السَّلَامُ عَلَيْكُمْ يَا أَهْلَ الْجَنَّةِ قَالَ وَذٰلِكَ قَوْلُهُ تَعَالٰى سَلَامٌ قَوْلًا مِّنْ رَّبٍّ رَّحِيْمٍ |
| هغوئ ته فرمايي اى جنتيانو ! السلام عليكم او دا سلام کول قرآن کريم کې د دې ارشاد : سَلَامٌ |
| قَالَ فَنَظَرَ إِلَيْهِمْ وَيَنْظُرُوْنَ |
| قَوْلًا مِّن رَّبٍّ الرَّحِيمِ نه ثابت دى حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل الله ! به جنتيانو طرف ته وګوري او |
| إِلَيْهِ فَلَا يَلْتَفِتُوْنَ إِلٰى شَيْءٍ |
| جنتيان به دالله ! طرف ته وګوري او هغوئ به ديدارِ الٰهي کې دومره محو شي چې هغه وقت به |
| مِّنَ النَّعِيْمِ مَا دَامُوْا يَنْظُرُوْنَ إِلَيْهِ حَتّٰى |
| د جنت نعمتونو کې هيڅ شي طرف ته توجه نه کوي تر دې پورې چې پروردګار به د هغوئ د نظرونو نه |
| يَحْتَجِبَ عَنْهُمْ وَيَبْقٰى نُوْرُهُ رَوَاهُ ابْنُ مَاجَةَ .[1] |
| مخفي شي او د هغه نور به باقي پاتې شي. [ابن ماجه] |



١٦ جمادى الثاني ١٤١٨هـ

---

([1]) اخرجه ابن ماجه ١/٥٦ رقم الحديث ١٨٤.

# باب صفة النار واهلها

# د دوزخ او د دوزخیانو بیان

قال الله تعالی: ﴿خُذُوهُ فَغُلُّوهُ ثُمَّ الْجَحِيمَ صَلُّوهُ ثُمَّ فِي سِلْسِلَةٍ ذَرْعُهَا سَبْعُونَ ذِرَاعًا فَاسْلُكُوهُ﴾

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

## د دوزخ د اُور ګرمي

﴿۱﴾عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ

حضرت ابو هریره رضي الله عنه نه روایت دی چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمایل ستا سو د دنیا اور د

نَارُكُمْ جُزْءٌ مِّنْ سَبْعِيْنَ جُزْءًا مِّنْ نَّارِ جَهَنَّمَ قِيْلَ يَا رَسُوْلَ اللهِ

دوزخ د اور د اویاو حصو نه یوه حصه ده عرض وشو یارسول الله د دنیا دا اورهم د عذاب

اِنْ كَانَتْ لَكَافِيَةً قَالَ فُضِّلَتْ عَلَيْهِنَّ

ورکولو د پاره کافي وو حضور صلى الله عليه وسلم وفرمایل د دوزخ اور د دنیا د اور نه یوکم اویا ۶۹

بِتِسْعَةٍ وَّسِتِّيْنَ جُزْءًا كُلُّهُنَّ مِثْلُ حَرِّهَا

حصې زیاتي شوی دی او دی یوکم اویا حصو کې هره حصه ستا سو د دنیا د اور برابره ده دا

مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ وَاللَّفْظُ لِلْبُخَارِيِّ. وَفِيْ رِوَايَةِ مُسْلِمٍ

روایت بخاري او مسلم نقل کړی دی لیکن دلته مذکوره الفاظ د بخاري دي او د صحیح مسلم

نَارُكُمْ الَّتِيْ يُوْقِدُ ابْنُ آدَمَ

روایت دا سې دی چې حضور صلى الله عليه وسلم وفرمایل ستا سو د دنیا دا اور چې ابن آدم (انسان) یي

وَفِيْهَا عَلَيْهَا وَ كُلُّهَا

بلوي د دوزخ د اور اویا (۷۰) حصو نه یوه حصه ده او د مسلم په یو روایت کې د علیهن او کلهن

بَدَلَ عَلَيْهِنَّ وَ كُلُّهُنَّ. [۱]

په ځاي د علیها او کلها الفاظ دي.

[۱] اخرجه البخاري في صحيحه ۶/۳۸۰ رقم الحديث ۳۲۶۵ ومسلم ۴/۲۱۸۴ رقم الحديث (۲۸۴۳-۳۰)

**توضیح : سبعین جزأ**: یعنې د دنیا د اور حرارت به د دوزخ د اور د حرارت په نسبت اویا یم جزء وي ، د دوزخ اور په حرارت کې ۶۹ درجې زیات دی ، ممکنه ده چې د ۷۰ عدد ذکر د تکثیر په طریقه باندې وي یعنې د دوزخ د اور حرارت د حساب نه بیرون او ډیر زیات دی ، چونکه د دوزخ په اور سره الله تعالی خپل نافرمانه بندګانو ته عذاب ورکوي او د دنیا په اور سره انسان عذاب ورکوي نو په دواړو کې همدا فرق شو ، ورنه د سوزولو لپاره خو د دنیا اور هم کافي او شافي دی ، په راتلونکي حدیث کې همدا بیان دی .

**ان کانت لکافیة**: یعنې چې په یوه درجه کې هم وي بیا هم د سوزولو لپاره د دنیا اور کافي وو بیا د ۷۰ درجو زیاتولو ضرورت څه وو؟ د دې په جواب کې نبي صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل چې د دوزخ د اور حرارت د دې لپاره زیات کړی شو چې په دې سره الله تعالی عذاب ورکوي . **علیها وکلها**: یعنې د امام مسلم رحمه الله په روایت کې د **علیهن او کلهن** په ځای د **علیها او کلها** الفاظ راغلي دي .

## د دوزخ خاص ولو ذکر

| |
|---|
| ﴿۲﴾ وَعَنِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| او حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وايي چې رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل د قیامت په ورځ به |
| يُؤْتَى بِجَهَنَّمَ يَوْمَئِذٍ لَّهَا سَبْعُوْنَ أَلْفَ زِمَامٍ مَّعَ كُلِّ زِمَامٍ |
| دوزخ راوستی شي د هغه به اویا زره واګې [ قیزي ] وي او هر واګې باندې به اویا زره فرښتې |
| سَبْعُوْنَ أَلْفَ مَلَكٍ يَجُرُّوْنَهَا. رَوَاهُ مُسْلِمٌ .[1] |
| مقررې وې چې هغه به راخکلو سره راولي . [مسلم] |

**توضیح : یؤتی بجهنم**: د قیامت په ورځ به میدان محشر ته به دوزخ راوستلی شي نو دا به په کفارو باندې سخت په غوسه وي ، په دې وجه به ملائکې دې ته د قابو ساتلو لپاره ۷۰۰۰۰ اویا زره ځنځیرونه وراچوي او د هر ځنځیر سره به اویا زره ۷۰۰۰۰ ملائکې وي ګویا څلور اربه نوي کروړه ملائکې به د دې په حفاظت باندې مأموري وي ، دا د دې لپاره چې هسې نه چې په غضب او قهر کې راشي او ټول انسانان ختم نه کړي .

---

([1]) اخرجه مسلم ۴/۲۱۸۴ رقم الحدیث ( ۲۸۴۲-۲۹) والترمذي في السنن ۴/۶۰۴ رقم الحدیث ۲۵۷۳.

## کوم شخص ته به چې په دوزخ کې د ټولو نه کم عذاب وي

| |
|---|
| ﴿۳﴾وَعَنِ النُّعْمَانِ بْنِ بَشِيْرٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| او حضرت نعمان بن بشير رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل حقيقت دی چې په |
| إِنَّ أَهْوَنَ أَهْلِ النَّارِ عَذَابًا مَّنْ لَّهُ نَعْلَانِ |
| دوزخيانو کې کوم سړی د ټولو نه سپک عذاب کې مبتلا وي هغه ته به د اور دوه څپلۍ واچول شي |
| وَشِرَاكَانِ مِنْ نَّارٍ يَّغْلِيْ مِنْهُمَا دِمَاغُهُ |
| او د هغه چپلو د تلو او تسمو د حرارت نه به د هغه دماغ داسې جوش وهي څرنګه چې ديګ جوش |
| كَمَا يَغْلِي الْمِرْجَلُ مَا يُرٰى أَنَّ أَحَدًا أَشَدُّ مِنْهُ عَذَابًا |
| وهي هغه سړی به د نورو دوزخيانو د حالت او کيفيت نه ناخبره وي ځکه دا خيال به کوي چې د هغه |
| وَّإِنَّهُ لَأَهْوَنُهُمْ عَذَابًا . مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.[1] |
| نه زيات په عذاب کې مبتلا هيڅوک نشته حالانکه هغه به د ټولو نه سپک عذاب کې مبتلا وي [بخاری، مسلم] |
| ﴿۴﴾وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ أَهْوَنَ أَهْلِ النَّارِ |
| او حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل په دوزخيانو کې د ټولو نه کم |
| عَذَابًا أَبُوْ طَالِبٍ وَّهُوَ مُنْتَعِلٌ بِنَعْلَيْنِ يَغْلِيْ مِنْهُمَا دِمَاغُهُ . رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ[2] |
| عذاب ابو طالب ته وي هغه به د اور څپلۍ اچولې وي چې په هغه سره به يې دماغ جوش وهي. [بخاري] |

**توضيح**: ابو طالب د حضور اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سکه تره وو، ده د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زيات خدمت او حمايت کړی ؤ د الله تعالی تکويني فيصله وه او دا حکمت هم ؤ چې ابو طالب د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ او د قريشو په مينځ کې د رابطې کار وکړي او د سپر پشان (ډال) کردار اداء کړي، لکه قريشو په نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ باندې يو وار لاس او چتولی نشو ځکه ابو طالب د هغوی په مذهب باندې ؤ، په اسلام

---

(۱) اخرجه البخاري ۱۱/۴۲۴ رقم الحديث ۶۵۶۲-۶۵۶۱ ومسلم ۱/۱۹۶ والترمذي ۴/۶۱۸ رقم الحديث : ۲۶۰۴.

(۲) اخرجه مسلم ۱/۱۹۶ رقم الحديث (۲۱۲-۳۶۲) واحمد في المسند ۱/۲۹۰.

باندې د زړه نه پوهيدو مګر ايمان يې رانه وړو ، په آخر وخت کې يو وار د اسلام اقرار وکړو ليکن ابو جهل لعين هغه منع کړو چونکې د ابو طالب د ظاهرى جسم سره د آنحضرت ﷺ جسم مبارک لګيدلی وو نو ځکه به د هغه په ظاهرى جسم باندې د دوزخ اور نه اچولی کيږي، البته د هغه د تليو لاندې به دوه سکروټې اينبودلی کيږي يا به د اور څپلې وراغوستلی کيږي چې د دينه به د هغه دماغ جوشيږي .

د دې حديث نه معلومه شوه چې ابو طالب مسلمان نشو ، دويمه خبره دا معلومه شوه چې په دوزخ کې به د عذاب په اعتبار سره فرق وي چاته به زيات او چاته به کم وي .

## د يو دوزخي او يو جنتي قصه

| |
|---|
| ﴿۵﴾وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| او حضرت انس رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل د قيامت په ورځ به په دوزخيانو |
| يُؤْتٰى بِأَنْعَمِ أَهْلِ الدُّنْيَا مِنْ أَهْلِ النَّارِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ |
| کې يو داسې سړى راوستل شي چې په دنيا کې به د ټولو نه زيات په عيش او ارام کې به ژوند تيروى |
| فَيُصْبَغُ فِي النَّارِ صَبْغَةً ثُمَّ يُقَالُ يَا ابْنَ آدَمَ هَلْ |
| بيا به هغه ته په دوزخ کې يوه غوپه ورکړى شي او ورته به وويل شي چې اى ابن آدم! آيا تا په دنيا |
| رَأَيْتَ خَيْرًا قَطُّ هَلْ مَرَّ بِكَ نَعِيْمٌ قَطُّ فَيَقُوْلُ لَا وَاللهِ |
| کې څه راحت ليدلى وو او څه عيش او عشرت دې کړى وو هغه دوزخى به ووائى نه په الله قسم |
| يَا رَبِّ وَيُؤْتٰى بِأَشَدِّ النَّاسِ بُؤْسًا فِي الدُّنْيَا مِنْ |
| ماته هيڅ راحت او نعمت نه وو نصيب شوى ! جنتيانو نه به يو داسې سړى راوستل شي چې په دنيا |
| أَهْلِ الْجَنَّةِ فَيُصْبَغُ صَبْغَةً فِي الْجَنَّةِ فَيُقَالُ لَهُ |
| کې د ټولو نه زيات مشقت او تکليف برداشت کونکى وو بيا به هغه ته په جنت کې يوه غوپه |
| يَا ابْنَ آدَمَ هَلْ رَأَيْتَ بُؤْسًا قَطُّ هَلْ مَرَّ بِكَ |
| ورکول شي او ورته به وويل شي چې اى بني آدمه! ايا ته په دنيا کې د کوم غم مشقت او تکليف |

| شِدَّةٌ | قَطُّ | فَيَقُوْلُ | لَا | وَاللهِ | يَا | رَبِّ | مَا | مَرَّ | بِيْ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|

سره مخ شوی وي؟ جواب به ورکړي چې نه ای ځما پروردګاره! قسم په الله ما په دنیا کې هیڅ کله

| بُؤْسٌ | قَطُّ | وَ | لَا | رَأَيْتُ | شِدَّةً | قَطُّ | . | رَوَاهُ | مُسْلِمٌ[1] |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|

خفګان او وغم نه وو لیدلی او هیڅ مشقت او تکلیف مي نه وو تیرکړی. [مسلم]

**توضیح**: صبغة: صبغ د رنګ کیدلو په معنی سره دی او صبغة د غوپې ورکولو په معنی سره دی. ددې حدیث نه معلومه شوه چې د دنیا خوشحالیانې او ددې ځای پریشانیانې ټولې عارضي دي اصل معامله د آخرت ده چې دائمي ده. بؤسا: سختی. ته بؤس ویل کیږي.

## شرک بده بلا ده

| ﴿۶﴾وَعَنْهُ | عَنِ | النَّبِيِّ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ |
|---|---|---|---|---|---|---|

او حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه روایت کوي چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل

| قَالَ | يَقُوْلُ | اللهُ | تَعَالَى | لِأَهْوَنَ | أَهْلِ | النَّارِ |
|---|---|---|---|---|---|---|

الله! به د قیامت په ورځ دوزخیانو نه یو سړي ته چې د ټولو نه به کم عذاب کې وي وفرمایي که

| عَذَابًا | يَوْمَ | الْقِيَامَةِ | لَوْ | أَنَّ | لَكَ | مَا | فِي | الْأَرْضِ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|

تا سره د ځمکې د مخ د شیزونو نه دا شیان وي نو ایا ته به یې په خپله فدیه کې ورکړې هغه

| مِنْ | شَيْءٍ | أَكُنْتَ | تَفْتَدِيْ | بِهِ | فَيَقُوْلُ | نَعَمْ | فَيَقُوْلُ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|

دوزخي به وایي چې هو الله! به ورته فرمایي ای بدنصیبه انسانه! ما خو هغه وقت هرکله چې

| أَرَدْتُ | مِنْكَ | أَهْوَنَ | مِنْ | هٰذَا | وَأَنْتَ | فِيْ | صُلْبِ | آدَمَ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|

ته د آدم په شا کې وې له دینه هم آسان شی ستا د پاره مقرر کړی وو او هغه داچې ته ما سره څه شی

| أَنْ | لَا | تُشْرِكَ | بِيْ | شَيْئًا | فَأَبَيْتَ |
|---|---|---|---|---|---|

مه شریکوه خو تا دهغې نه انکار وکړو ددې پورې چې د بتانو وغیره د عبادت او تعظیم په

[1] اخرجه مسلم ۴/۲۱۶۲ رقم الحدیث (۲۸۰۷-۵۵) واحمد في المسند ۳/۲۰۳.

| إِلَّا أَنْ تُشْرِكَ بِيْ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.[۱] |
|---|
| ذريعه دې څما سره شريک پيدا کړو [بخاري مسلم] |

**توضيح** : اردت: د حديث ظاهري الفاظ خو د ارادې لپاره دي مګر د دينه حکم ورکول مراد د دى چې ما تا ته د دينه اسانه حکم کړى وو چې کله ته د آدم عَلَيْهِ السَّلَامُ په شا کې وې مګر تا ونه منلو ، علامه طيبى رَحِمَهُ اللهُ فرمايي چې دا (عهد الست) ته اشاره ده.

## په عذاب کې تفاوت او درجات

| ﴿۷﴾وَعَنْ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدَبٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ |
|---|
| او حضرت سمره بن جندب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دى چې رسول کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل دوزخيانو |
| مِنْهُمْ مَنْ تَأْخُذُهُ النَّارُ إِلَى كَعْبَيْهِ وَمِنْهُمْ مَنْ |
| نه به څه خلق هغه وي چې د هغوى د داړو ګيټو پورې به اوروي او څه خلق به هغه وي چې د |
| تَأْخُذُهُ النَّارُ إِلَى رُكْبَتَيْهِ وَمِنْهُمْ مَنْ تَأْخُذُهُ النَّارُ إِلَى |
| هغوى د داړو زنګنونو پورې به اور وي څني خلق به هغه وي چې د هغوى د ملا پورې به اوروي |
| حُجْزَتِهِ وَمِنْهُمْ مَنْ تَأْخُذُهُ النَّارُ إِلَى تَرْقُوَتِهِ. رَوَاهُ مُسْلِمٌ.[۲] |
| او څه خلق به هغه وي چې د هغوى د مرۍ او غاړې پورې به اوروي.[مسلم] |

## د دوزخيانو غټ جسمونه

| ﴿۸﴾وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا بَيْنَ مَنْكِبَيِ الْكَافِرِ |
|---|
| او حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل په دوزخ کې به د کافر جسم |
| فِي النَّارِ مَسِيرَةُ ثَلَاثَةِ أَيَّامٍ لِلرَّاكِبِ الْمُسْرِعِ وَفِي رِوَايَةٍ |
| دومره غټ او چاغ شي چې د هغه د داړو اوږو په مينځ کې فاصله به د تيز رفتار سور د درېو |

---

(۱) اخرجه البخاري ۶/۳۶۳ رقم الحديث ۳۳۳۴ ومسلم ۴/۲۱۶۰ رقم الحديث (۲۸۰۵-۵۱)

(۲) اخرجه مسلم ۴/۲۱۵۸ رقم الحديث (۲۸۴۵-۳۳) والنسائي ۸/۱۱۲ رقم الحديث ۵۰۱۰ واحمد في المسند ۵/۱۰

| ضِرْسُ | الْكَافِرِ | مِثْلُ | أُحُدٍ | وَغِلَظُ | جِلْدِهِ | مَسِيْرَةُ | ثَلَاثٍ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ورځو د مسافت برابروي او په يوه روايت کې داسې دي چې په دوزخ کې به د کافر غاښ د اُحد د غره برابر | | | | | | | |
| رَوَاهُ مُسْلِمٌ. وَذُكِرَ حَدِيْثُ أَبِيْ هُرَيْرَةَ اِشْتَكَتِ النَّارُ إِلٰى رَبِّهَا فِيْ بَابِ تَعْجِيْلِ الصَّلٰوةِ. (۱) | | | | | | | |
| وي. [مسلم] او د حضرت ابو هريره رضي الله عنه روايت: اشتكت النار الى ربها په باب تعجيل الصلوٰة کې تير شوی دی. | | | | | | | |

**توضيح**: ضرس الكافر: ژامې ته ضرس وايي ، ددې حديث نه معلوميږي چې په قيامت کې به د کافرانو جسمونه به ډير غټ کړی شي ، ددې نه مخکې د جنت متعلق احاديثو کې دا ذکر شول چې د اهل جنت اجسام به هم په جنت کې غټيږي ددې اصل وجه دا ده چې په قيامت کې به د الله تعالی په صفاتو کې د کمال او عروج ظهور راشي نو ځکه به د اهل جنت او اهل جهنم جسمونه به کامل شي ګويا د الله تعالی صفت د تخليق به کامل شي ، دلته سوال دا دی چې په دې حديث کې د کافرانو د جسمونو غټيدلو بيان دی او په بل حديث کې دي چې د قيامت په ورځ به د متکبرينو جسم د ميږيانو په شان واړه و ذليل کړی شي دا خو تعارض دی ددې جواب څه دی ؟ نو ددې جواب دا دی چې د جسم دغه غټيدل او چاغيدل په په دوزخ کې وي تر څو اور ته صحيح خوراک حاصل شي او د جسم ورکوتي کيدلو ذلت او رسوائی به د محشر په ميدان کې وي ، نو هيڅ تعارض نشته .

## اَلْفَصْلُ الثَّانِيْ

## د دوزخ اور درې زره کاله پورې ګرم کړی شوی دی

| ﴿۹﴾عَنْ | أَبِيْ | هُرَيْرَةَ | عَنِ | النَّبِيِّ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ | قَالَ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| حضرت ابو هريره رضي الله عنه د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه روايت کوي چې حضور صلى الله عليه وسلم وفرمايل | | | | | | | | | |
| أُوْقِدَ عَلَى النَّارِ أَلْفَ سَنَةٍ حَتّٰى احْمَرَّتْ ثُمَّ أُوْقِدَ عَلَيْهَا أَلْفَ سَنَةٍ | | | | | | | | | |
| د دوزخ اور زر کاله بل شو تر دې پورې چې هغه سره سور شو بيا زر کاله نور بل شو ددې پورې | | | | | | | | | |
| حَتّٰى ابْيَضَّتْ ثُمَّ أُوْقِدَ عَلَيْهَا أَلْفَ سَنَةٍ حَتّٰى اسْوَدَّتْ | | | | | | | | | |
| چې هغه سپين شو بيا زر کاله نور بل شو تر دې پورې چې تور شو نو اوس د دوزخ اور بالکل | | | | | | | | | |

(۱) اخرجه البخاري في صحيحه ١١/٤١٥ رقم الحديث ٦٥٥١ ومسلم ٢١٨٩ رقم الحديث (٢٨٥٢-٤٥)

| فَهِيَ سَوْدَآءُ مُظْلِمَةٌ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ(۱) |
|---|
| تک تور او تياره دی. [ترمذي] |

**توضيح**: ابيضت: اور چې تر ډيره وخته بل شي نو په هغه کې د لوګی ګډوالی ختم شي نو هغه سپين شی د لوګي د ګډوالي په وخت کې او رسور وي بيا د ډير بلو لوسره تور شي د دې حديث نه معلومه شوه چې دوزخ د اوس نه تيار دی معتزله وايي چې اوس لا تيار نه دی اهل سنت وايي چې د (أُعِدَّتْ لِلْكَافِرِينَ) آيت ښايي چې تيار دی معتزله بيکاره دي بهر حال د دوزخ اور دری زره ۳۰۰ کاله ګرم شوی دی اول سور شو بيا سپين شو بيا تور او تياره شو.

| ﴿۱۰﴾وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ضِرْسُ |
|---|
| او حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چی رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل د قيامت په ورځ به په دوزخ |
| الكَافِرِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ مِثْلُ أُحُدٍ وَفَخِذُهُ |
| کې د کافر غاښ د اُحد د غره برابر وي او د هغه ورنونه به د بيضاء غر برابر وي او په دوزخ کې د هغه |
| مِثْلُ الْبَيْضَاءِ وَمَقْعَدُهُ مِنَ النَّارِ مَسِيْرَةُ ثَلَاثٍ مِثْلُ الرَّبْذَةِ. [رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ](۲) |
| د ناستې ځاي به د دريو ورځو د مسافت په قدر وي څرنګه چې ربذه ده. [ترمذي] |

**توضيح**: البيضاء په مدينه منوره کې د غر نوم دی. **مقعده** يعنې د کښيناستلو ځای به يې دومره ژور وي لکه څومره چې د مدينې منورې نه تر ربذه پورې د دريو ورځو مسافت دی.

| ﴿۱۱﴾ وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ غِلَظَ |
|---|
| او حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چی رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل د کافر دوزخي څرمن به دوه |
| جِلْدِ الْكَافِرِ اثْنَانِ وَأَرْبَعُوْنَ ذِرَاعًا وَإِنَّ ضِرْسَهُ |
| څلويښت ۴۲ لاسه پيرړه (ډبله) وي د هغه غاښ به د احد د غره برابر وي او په دوزخ کې د هغه د |

(۱) اخرجه الترمذي ۴/۶۱۲ رقم الحديث ۲۵۹۰ وابن ماجه ۲/۱۴۴۵ رقم الحديث ۴۳۲۰.

(۲) اخرجه الترمذي في ۴/۶۰۶ رقم الحديث ۲۵۷۸

| مِثْلُ أُحُدٍ وَإِنَّ مَجْلِسَهُ مِنْ جَهَنَّمَ مَا بَيْنَ مَكَّةَ وَالْمَدِيْنَةِ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ (۱) |
|---|
| ناستې ځاي به د مکې او مدينې د درمياني فاصلې برابر وي. [ترمذي] |

**توضیح**: **مابين مكة**: په دې حديث کې يې د مجلس ځای د مکې او مدينې فاصله وښودله او د دينه منځکې حديث کې يې مدينه او ربذه وښودله، ددې وجه دا ده چې د کافرانو د عذاب د تفاوت په وجه په جسم کې تفاوت راځي نو ځکه دغه فرق دی.

| ﴿۱۲﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ الْكَافِرَ |
|---|
| او حضرت ابن عمر، وايي چې رسول کريم ﷺ وفرمايل کافر به په دوزخ کې خپله ژبه درې |
| لَيَسْحَبُ لِسَانَهُ الْفَرْسَخَ وَالْفَرْسَخَيْنِ |
| درې او شپږ شپږ فرسخه يونيم ميل يا دوه ميله پورې راکاږي او خلق به هغه خپلو پښو سره |
| يَتَوَطَّاُهُ النَّاسُ . رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالتِّرْمِذِيُّ وَقَالَ هٰذَا حَدِيْثٌ غَرِيْبٌ (۲) |
| پايمال کوي يعني په هغه ژبې به ګرځي [احمد ترمذي] او ترمذي ويلي دي چې دا حديث غريب دی. |
| ﴿۱۳﴾ وَعَنْ أَبِيْ سَعِيْدٍ عَنْ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ |
| او حضرت ابو سعيد د رسول الله ﷺ نه روايت کوي چې رسول کريم ﷺ وفرمايل |
| اَلصَّعُوْدُ جَبَلٌ مِّنَ نَّارٍ يَّتَصَعَّدُ فِيْهِ |
| صَعُود چې د هغه ذکر د قرآن مجيد دې آيت: (سارهقه صعودًا) کې دی دوزخ کې يو غر دی چې |
| سَبْعِيْنَ خَرِيْفًا وَيُهْوٰي بِهِ كَذٰلِكَ |
| په هغه به کافر اويا کاله پورې خيژول کېږي، او هغه به د غه شان اويا کالو پورې به را غورځول کېږي |
| فِيْهِ أَبَدًا. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ. (۳) |
| او دغه رنګ دا سلسله به جاري وي. [ترمذي] |

---

(۱) اخرجه الترمذي في السنن ۴/۶۰۶ رقم الحديث ۲۵۷۷

(۲) اخرجه الترمذي ۴/۶۰۶ رقم الحديث ۲۵۸۰ وأحمد في المسند ۲/۹۲

(۳) اخرجه الترمذي في السنن ۴/۶۰۵ رقم الحديث ۲۵۷۶ وأحمد في المسند ۳/۷۵

په دې حديث کې د قرآن آيت ﴿سَأُرْهِقُهُ صَعُودًا﴾ ته اشاره ده .

## د دوزخيانو غذا

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۱۴﴾وَعَنْهُ | عَنِ | النَّبِيِّ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ |
| او حضرت ابوهريره , د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه روايت کوي چې رسول کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ | | | | | | |
| قَالَ فِيْ قَوْلِهٖ كَالْمُهْلِ أَيْ كَعَكَرِ الزَّيْتِ فَإِذَا | | | | | | |
| د الله ! ارشاد کې د لفظ مهل وضاحت کولو سره وويل چې هغه به د زيتون د خيرې په شان يوشی وي هر کله | | | | | | |
| قُرِّبَ إِلَى وَجْهِهٖ سَقَطَتْ فَرْوَةُ وَجْهِهٖ فِيْهِ . رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ. (۱) | | | | | | |
| چې دا مهل د دوزخي خولې ته قريب يوړل شي د خولې څرمن به يې په هغه کې راولويږي. ترمذي] | | | | | | |

**توضيح** : فروة: د مخ پوستکي ته فروه وايي ، د خولې پوستکی مراد دی ، په حديث نمبر ۱۶ کې د فروة رأسه لفظ هم راغلی دی د هغه نه د سر او تندي پوستکی مراد دی . په دې حديث کې د قرآن آيت ﴿وَإِن يَسْتَغِيثُوا يُغَاثُوا بِمَاءٍ كَالْمُهْلِ يَشْوِي الْوُجُوهَ﴾ طرف ته اشاره ده .

## د ګرمو اوبو عذاب

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۱۵﴾وَعَنْ | أَبِيْ | هُرَيْرَةَ | عَنِ | النَّبِيِّ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ قَالَ |
| او حضرت ابوهريره ,د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه روايت کوي چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل هر کله چې د | | | | | | | | |
| إِنَّ الْحَمِيْمَ لَيُصَبُّ عَلَى رُؤُوْسِهِمْ | | | | | | | | |
| دوزخيانو په سرباندې ګرمې اوبه واچول شي نو هغه ګرمې اوبه به ختته تللو سره خيټې ته | | | | | | | | |
| فَيَنْفُذُ الْحَمِيْمُ حَتَّى يَخْلُصَ إِلَى جَوْفِهٖ | | | | | | | | |
| ورسيږي او هغه څيزونه به پرې کړي کوم چې په خيټه کې وي د دې پورې چې هغه ګرمې اوبه به په | | | | | | | | |
| فَيَسْلُتُ مَا فِيْ جَوْفِهٖ حَتَّى يَمْرُقَ مِنْ | | | | | | | | |
| خيټه کې د ننه څيزونه پريکولو او ويلې کولو سره د پښو په لار بهر راووځي او د صَهر هم دا معنٰى | | | | | | | | |

| قَدَمَيْهِ وَ هُوَ الصَّهْرُ ثُمَّ يُعَادُ كَمَا كَانَ . رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.[1] |
|---|
| ده او بيا به هغه دوزخي چې هغه سره د ګرمو او بو دا عمل شوی وي هغه شان به شي څرنګه چې مخکې وو. [ترمذي] |

**توضیح**: **فیسلت**: د نصر ینصر نه د پرېکولو په معنی سره دی، يعنې د غه ګرمي او به د ننه په ټولو سره به د خیټې کولمې وغیره پرې کړي او خرابې به يې بهر ته وباسي، **یمرق**: د وتلو په معنی سره دی.

**من قدمیه**: یا به حقیقتا د قدمینو نه کولمې وځي یا د قدمینو نه مراد دبر ده دا زیات واضحه دی.

**وهو الصهر**: په دې جمله کې دې آیت ته اشاره ده ﴿يُصْهَرُ بِهِ مَا فِي بُطُونِهِمْ وَالْجُلُودُ﴾ يعنې په ګرمو او بو سره به ټول شیان ویلي کړی شي، په راتلونکي حدیث نمبر ۱۶ کې د دې زیات وضاحت را روان دی.

| ﴿۱۶﴾ وَعَنْ أَبِي أُمَامَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
|---|
| او حضرت ابو أمامة، د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه روایت کوي چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د الله ! د دې ارشاد |
| فِيْ قَوْلِهِ يُسْقَى مِنْ مَّاءٍ صَدِيْدٍ يَّتَجَرَّعُهُ قَالَ |
| يُسْقَى مِنْ مَّاءٍ صَدِيْدٍ يَّتَجَرَّعُهُ وضاحت کولو سره وفرمايل هرکله چې هغه او به د هغه دوزخي |
| يُقَرَّبُ إِلَى فِيْهِ فَيَكْرَهُهُ فَإِذَا أُدْنِيَ مِنْهُ |
| خولې ته نزدې کړې نو هغه به پوزه تروه کړي او بيا چې هغه او به د هغه په خوله کې وا چول شي نو |
| شَوٰى وَجْهَهُ وَ وَقَعَتْ فَرْوَةُ رَأْسِهِ فَإِذَا |
| د هغه د مخ غوښه به وريته کړی او د هغه د سر څرمن به ولوېږي او هرکله چې هغه دوزخي هغه |
| شَرِبَهُ قَطَّعَ أَمْعَاءَهُ حَتّٰى |
| او به وڅکي او هغه او به يې خيټې ته ورسيږي نو کولمې به يې ټکړې ټکړې کړې تر دې چې |
| يَخْرُجَ مِنْ دُبُرِهِ يَقُوْلُ اللهُ تَعَالٰى وَسُقُوْا مَآءً |
| هغه به د ده د دبرې د خوا نه ووځي لکه چې الله ! فرمايي: (وَسُقُوا مَآءً حَمِيْمًا فَقَطَّعَ اَمعَآءَهُم) |

---

(۱) اخرجه الترمذي في السنن ۴/۶۰۷ رقم الحديث ۲۵۸۲ واحمد في المسند ۲/۳۷۴

| حَمِيمًا فَقَطَّعَ أَمْعَاءَهُمْ وَيَقُوْلُ وَإِنْ يَّسْتَغِيثُوْا يُغَاثُوْا بِمَآءٍ كَالْمُهْلِ |
|---|
| دغه شان قرآن كريم كې يو بل ځاي كې يې داسې فرمايلي دي : وَإِن يَّسْتَغِيثُوا يُغَاثُوا بِمَآءٍ كَالْمُهْلِ |
| يَشْوِي الْوُجُوْهَ بِئْسَ الشَّرَابُ . رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ[1] |
| يَشْوِي الْوُجُوهَ بِئْسَ الشَّرَابُ. [روايت كړي دي ترمذي] |

## د دوزخ چار ديواري

| ﴿۱۷﴾وَعَنْ أَبِيْ سَعِيْدِنِ الْخُدْرِيِّ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: لِسُرَادِقِ النَّارِ |
|---|
| او حضرت ابوسعيد خدري، د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه روايت كوي چې حضور صلى الله عليه وسلم وفرمايل د دوزخ |
| أَرْبَعَةُ جُدُرٍ كُثُفُ كُلِّ جِدَارٍ مَسِيْرَةُ أَرْبَعِيْنَ سَنَةً . رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ[2] |
| داحاطي د پاره به چار ديواري وي چې د هغه نه د هر ديوال پلنوالى به د څلويښتو كالو د مسافت برابروي. [ترمذي] |

**توضيح** : سرادق پردو ته وايي ، خيمه هم مراد كيدلى شي چار ديوالى مراد ده . كثف د كثافت نه د ديوال پلنوالى مراد دى ، په دې حديث كې د قرآن كريم دې آيت ته اشاره ده ﴿أَحَاطَ بِهِمْ سُرَادِقُهَا﴾

| ﴿۱۸﴾وَعَنْهُ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
|---|
| او حضرت ابوسعيد ، وايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل د دوزخيانو د زخمونو نه چې كومې |
| لَوْ أَنَّ دَلْوًا مِّنْ غَسَّاقٍ يُّهْرَاقُ فِي الدُّنْيَا |
| وينې زوې اوبه بهيږي يعني خرابه وينه او نو كه د هغې نه يو بوقه په دنيا كې توى شي نو |
| لَأَنْتَنَ أَهْلُ الدُّنْيَا. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ .[3] |
| يقينًا ټوله دنيا والا به بدبويه شي . [ترمذي] |

---

اخرجه الترمذي في السنن ۴/۶۰۸ رقم الحديث ۲۵۸۴ وأحمد في المسند ۵/۲۶۵

([1]) اخرجه الترمذي في السنن ۴/۶۰۸ رقم الحديث ۲۵۸۴ واخرجه في المسند ۳/۲۹ .

([2]) اخرجه الترمذي في السنن ۴/۶۰۸ رقم الحديث ۲۵۸۴ وأحمد في المسند ۳/۲۸

([3]) اخرجه الترمذي في السنن ۴/۶۰۸ رقم الحديث ۲۵۸۴

**توضیح : غساق**: وینو او زوو ته غساق وایي ، دا به د دوزخیانو د جسم د ننه کولمې وي همدا مراد دی. **انتن**: د کوم شی د ویلي کیدلو او خرابیدلو نه وروسته چې کومه شدیده بدبویې پورته کیږي هغه ته انتن وایي ، مطلب دا دی چې ددې په وجه به ټول اهل دنیا په سخته بدبویې کې پریوځي ، په دې حدیث کې د قرآن دې آیت ﴿ هَذَا فَلْيَذُوقُوهُ حَمِيمٌ وَغَسَّاقٌ وَآخَرُ مِن شَكْلِهِ أَزْوَاجٌ ﴾ ته اشاره ده.

﴿۱۹﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَرَأَ هٰذِهِ الْاٰيَةَ اِتَّقُوا اللهَ حَقَّ

او حضرت ابن عباس , نه روایت دی یوه ورځ رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دا آیت اِتَّقُوا اللهَ حَقَّ تُقَاتِهِ وَلَا

تُقَاتِهِ وَلَا تَمُوْتُنَّ اِلَّا وَاَنْتُمْ مُّسْلِمُوْنَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

تَمُوْتُنَّ اِلَّا وَاَنْتُم مُّسْلِمُوْنَ تلاوت کړه بیایي وفرمایل که د دوزخ د زقوم ونې نه یوه قطره هم د دې دنیا

لَوْ أَنَّ قَطْرَةً مِّنَ الزَّقُّوْمِ قَطَرَتْ فِيْ دَارِ الدُّنْيَا لَأَفْسَدَتْ عَلَى اَهْلِ الْاَرْضِ

کور کې وڅڅیږي نو یقینًا د دنیا والو د ژوند سامان به خراب کړي بیا سوچ وکړئ د هغه سړي به

مَعَائِشَهُمْ فَكَيْفَ بِمَنْ يَّكُوْنُ طَعَامُهُ.

څه حال وي چې د هغه خوراک دا زقوم وي دا روایت ترمذي نقل کړی دی او ویلي یي دي چې

رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ هٰذَا حَدِيْثٌ حَسَنٌ صَحِيْحٌ. [۱]

او امام ترمذی وایي چه دا حدیث حسن صحیح دی.

**توضیح** : حق تقاته: د الله نه داسې ووېرېږئ لکه څنګه چې د هغه نه د ویریدلو حق دی او د ویریدلو دغه حق داسې اداء کیږي چې انسان د محرماتو نه مکمل اجتناب (پرهیز) وکړي او واجبات په ځای کړي دا حق تقوی ده ، حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ددې تفسیر داسې فرمایلي دي : **هو ان یطاع فلا یعصی ویشکر فلا یکفر ویذکر فلا ینسی**، په دې حدیث شریف کې د قرآن آیت : ﴿ إِنَّ شَجَرَةَ الزَّقُّومِ طَعَامُ الْأَثِيمِ ﴾ طرف ته اشاره ده.

---

(۱) اخرجه الترمذي في السنن ۴/۶۰۹ رقم الحديث ۲۵۸۴ وابن ماجه ۲/۱۴۴۶ رقم الحديث ۴۳۰۸

## د دوزخیانو د مخونو بدشکلي

| |
|---|
| ﴿۲۰﴾ وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ |
| او ابو سعید رضي الله عنه د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه روایت کوي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل د دوزخ |
| وَهُمْ فِيهَا كَالِحُونَ قَالَ تَشْوِيهِ النَّارُ فَتَقَلَّصُ شَفَتُهُ الْعُلْيَا |
| اوربه د کافر د خولې غوښه پخه کړي چې هغه سره به د هغه برنۍ شونډه پورته وخیژي تردې |
| حَتَّى تَبْلُغَ وَسْطَ رَأْسِهِ وَيَسْتَرْخِي شَفَتُهُ السُّفْلَى حَتَّى |
| پورې چې د سر مینځنۍ حصې ته به ورسیږي او لاندې شونډه به یې رازونده شي تردې پورې چې |
| تَضْرِبَ سُرَّتَهُ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ[1] |
| نامه پورې به ورسي. [ترمذي] |

**توضیح: کالحون:** کوم کس چې شونډه یې پورته شي او غاښونه یې ښکاره شي هغه ته **کالح** ویلې کیږي، داد **کالح** یو مفهوم دی، دویم مفهوم دا دی چې د دې دوزخیانو مخونه به خراب شوي وي، دریم مفهوم یې دا دی چې د چاغاښونه په د بدشکلۍ انداز سره خلاص شوي وي هغوی **کالحون** دي.

## دوزخیان به په دوزخ کې د سیلاب پشان اوښکي وبهوي

| |
|---|
| ﴿۲۱﴾ وَعَنْ أَنَسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ |
| او حضرت انس، د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه روایت کوي چې حضور صلى الله عليه وسلم وفرمايل ای خلقو ته |
| يَا أَيُّهَا النَّاسُ ابْكُوا فَإِنْ لَمْ تَسْتَطِيعُوا فَتَبَاكُوا |
| وژاړئ ځکه که تاسو له ژړا نه راځي نو په تکلف سره وژاړئ حقیقت دا دی چې دوزخیان به په |
| فَإِنَّ أَهْلَ النَّارِ يَبْكُونَ فِي النَّارِ |
| جهنم کې ژاړي او د هغوی اوښکې به ډیرې ژړیدو په وجه د هغوی په مخونو داسې رابهیږي لکه |

| حَتّٰى تَسِيْلَ دُمُوْعُهُمْ فِيْ وُجُوْهِهِمْ كَأَنَّهَا جَدَاوِلُ حَتّٰى يَنْقَطِعَ الدُّمُوْعُ |
| --- |
| هغه نالۍ (لختې) دي او هرکله چې د هغوی اوښکې ختمي شي نوويني بهيدل به شروع شي |
| فَتَسِيْلَ الدِّمَاءُ فَتَقَرَّحَ الْعُيُوْنُ |
| او سترګې به د وينو نه زخمي شي د هغوی د سترګو نه بهيدونکې وينې او اوښکې به دومره وي |
| فَلَوْ أَنَّ سُفُنًا أُزْجِيَتْ |
| که د هغوی د سترګو په اوښکو کې کشتۍ پريښودل شي نو يقينًا هغه به رواني شي دا روايت |
| فِيْهَا لَجَرَتْ. رَوَاهُ فِيْ شَرْحِ السُّنَّةِ.[1] |
| بغوي رَحِمَهُ اللّٰه خپلو اسنادو سره شرح السنه کې نقل کړی دی. |

**توضيح**: **فتباکوا**: يعني په تکلف سره د ژړا صورت جوړ کړئ.

**جداول**: دا د جدول جمع ده وړې ويالې ته ويل کيږي.

**فتقرح**: قرح زخم ته وايي دا صيغه کچيرې د باب تفعل نه د مضارع صيغه وي نو دا په اصل کې تتقرح وو يوه تاء محذوفه ده په دې صورت کې به العيون ددې لپاره فاعل وي يعنې سترګې به زخمي شي، او کچيرې دا د باب د فتح نه د مضارع صيغه وي نو العيون به ددې لپاره مفعول به وي يعنې دغه وينه به سترګې زخمي کړي. **سفنا**: د سفينة جمع ده کشتۍ ته وايي.

**ازجيت**: ازجاء د باب افعال نه دی د کشتۍ د پريښودلو او د چلولو په معنی سره دی.

## د دوزخيانو حالت

| ﴿۲۲﴾ وَعَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُلْقٰى |
| --- |
| او حضرت ابودرداء رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وايي چې رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل دوزخيانو باندې به لوږه |
| عَلٰى أَهْلِ النَّارِ الْجُوْعُ فَيَعْدِلُ مَا هُمْ فِيْهِ مِنَ الْعَذَابِ |
| داسې مسلطه شي چې د هغه لوږې تکليف به د هغه عذاب برابر وي چې په هغه کې هغه دوزخي د |

---

(۱) اخرجه ابن ماجه ۲/۱۴۴۶ رقم الحديث ۴۳۲۴.

| فَيَسْتَغِيْثُوْنَ | فَيُغَاثُوْنَ | بِطَعَامٍ | مِّنْ | ضَرِيْعٍ |
|---|---|---|---|---|
| مخکې نه گرفتار وي نو هغوی به د لوږې د تکليف نه په بې تابه کېدو سره فرياد کوي او د هغوی | | | | |
| لَا يُسْمِنُ | وَ | لَا | يُغْنِيْ | مِنْ جُوْعٍ |
| فريادرسي به د ضريع [ازغيداري ونې] د خوړلو په ذريعه کولی شي چې نه به يې غټوي چاغوي او | | | | |
| فَيَسْتَغِيْثُوْنَ | بِالطَّعَامِ | فَيُغَاثُوْنَ | بِطَعَامٍ | ذِيْ غُصَّةٍ |
| نه به يې لوږه دفع کوي بيا به هغوی د خوراک حاصليدو سره په دوهم وار فرياد کوي او دا وار به | | | | |
| فَيَذْكُرُوْنَ | أَنَّهُمْ | كَانُوْا | يُجِيْزُوْنَ | الْغُصَصَ |
| د هغوی فرياد رسي په ستوني کې د مښتونکې طعام په ذريعه کولی شي دا وخت به هغوی ته | | | | |
| فِيْ | الدُّنْيَا | بِالشَّرَابِ | فَيَسْتَغِيْثُوْنَ | |
| دا را يادشي چې په دنيا کې د طعام خوړلو په وخت د هغوی په ستوني کې چې به څه شی ونښتلو | | | | |
| بِالشَّرَابِ | فَيُرْفَعُ | إِلَيْهِمْ | | |
| نو هغوی به د څکونکي شي سره لاندي کولو نو هغوی د څه څکونکي شي التجاء او درخواست | | | | |
| الْحَمِيْمُ | بِكَلَالِيْبِ | الْحَدِيْدِ | فَإِذَا | |
| وکړي نو هغوی ته به تيزې گرمې اوبه ورکړل شي چې د انبورونو په ذريعه نيولو سره به ورپورته | | | | |
| دَنَتْ | مِنْ | وُجُوْهِهِمْ | شَوَتْ | وُجُوْهَهُمْ |
| کړی شي کله چې هغوی مخونو ته نژدی شي نو ورته به شي مخونه د هغوی او هرکله چې په هغه | | | | |
| فَإِذَا | دَخَلَتْ | بُطُوْنَهُمْ | قَطَّعَتْ | مَا فِيْ بُطُوْنِهِمْ |
| لوښو کې دننه شی د هغوی په خيټه کې داخل شي نو د خيټې د دننه څيزونه به ټکړې ټکړې کړي | | | | |
| فَيَقُوْلُوْنَ | اُدْعُوْا | خَزَنَةَ | | |
| هغه دوزخيان به جهنم باندې مقررو فرشتو ته وايي ای د دوزخ محافظانو! الله! ته دعا | | | | |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| جَهَنَّمَ | | فَيَقُوْلُوْنَ | | اَلَمْ | | تَكُ |

وغواړئ چې کم نه کم دیوې ورځې د پاره په مونږ دا عذاب سپک کړي د دوزخ محافظان به ورته

| | | | |
|---|---|---|---|
| تَأْتِيْكُمْ | رُسُلُكُمْ | بِالْبَيِّنَاتِ | قَالُوْا |

وايي آيا د الله رسولان د الله معجزو او واضحو دليلونو سره تا سو ته نه وو راغلي هغوی به ورته

| | | |
|---|---|---|
| بَلٰى | قَالُوْا | فَادْعُوْا |

وايي بيشکه راغلي وو او د هغوی تعليمات مونږ ته رسيدلي وو د دوزخ محافظان به ورته وايي

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَمَادُعَاءُ | الْكَافِرِيْنَ | اِلَّا | فِيْ | ضَلَالٍ |

بيا تاسو خپله دعا وغواړئ او د کافرانو دعا د تاوان او بې فائده ګۍ نه علاوه نور هيڅ نه ده

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| قَالَ | فَيَقُوْلُوْنَ | ادْعُوْا | مَالِكًا | فَيَقُوْلُوْنَ | يَا | مَالِكُ |

هغوی به خپلو کې وايي چې د جنت داروغه مالک ته د مدد درخواست وکړئ ای مالکه! خپل

| | | |
|---|---|---|
| لِيَقْضِ | عَلَيْنَا | رَبُّكَ |

پروردګار نه دعا وغواړه چې هغه مونږ ته مرګ راکړي چې حضور وفرمايل د دوزخيانو التجاء اوريدو

| | | |
|---|---|---|
| قَالَ | فَيُجِيْبُهُمْ | اِنَّكُمْ |

سره مالک به خپله يا د ربّ د طرف نه جواب ورکړي چې دې دوزخ نه د نجات يا د مرګ خيال

| | | |
|---|---|---|
| مَاكِثُوْنَ | قَالَ | الْأَعْمَشُ |

پرېږدئ تاسو به هميشه هميشه دلته په دې عذاب ګرفتار يې حضرت اعمش رحمه الله وايي بعضې

| | | | |
|---|---|---|---|
| نُبِّئْتُ | اَنَّ | بَيْنَ | دُعَائِهِمْ |

صحابو رضي الله عنهم ماته بيان وکړو چې مالک ته د دې دوزخيانو التجاء او د مالک د طرف نه جواب

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَإِجَابَةِ | مَالِكٍ | اِيَّاهُمْ | اَلْفَ | عَامٍ | قَالَ |

په ورکولو مينځ کې به د زر کالو وقفه وي حضور صلى الله عليه وسلم وفرمايل بيا به هغه دوزخيان وايي چې

فَيَقُوْلُوْنَ ادْعُوْا رَبَّكُمْ فَلَا
اوس مونږ ته براه راست خپل پروردګار ته د نجات او خلاصون التجاء کول پکار دي ځکه چې هغه
أَحَدٌ خَيْرٌ مِّنْ رَّبِّكُمْ
قادر مطلق دی زمونږ په حق کې خير او بهتری فيصله کونکی دی پروردګار نه بهتر بل څوک نشته
فَيَقُوْلُوْنَ رَبَّنَا غَلَبَتْ عَلَيْنَا شِقْوَتُنَا
نو هغوی به التجاء وکړي چې ای پروردګاره! زمونږ بدبختۍ مونږ ګير کړلو او په دي کې شک
وَكُنَّا قَوْمًا ضَآلِّيْنَ رَبَّنَا أَخْرِجْنَا مِنْهَا
نشته چې مونږ د توحيد د لارې نه ګمراه شوي وو اې پروردګاره! مونږ ته د دوزخ نه نجات راکړي
فَإِنْ عُدْنَا فَإِنَّا ظَالِمُوْنَ قَالَ
که مونږ دي نه روسته هم کفر او شرک طرف ته راشو نو خپل ځان باندې به ظلم کونکي يو الله!
فَيُجِيْبُهُمْ اِخْسَئُوْا فِيْهَا
به هغوی ته جواب ورکړي چې شئ کمبختو د سپو په شان ذليل او خوار اوسئ او په دې دوزخ کې
و لَا تُكَلِّمُوْنِ قَالَ فَعِنْدَ
پراته اوسئ او د خلاصون باره کې دې کې ما سره هيڅ خبره مه کوئ حضور ﷺ وفرمايل آخر هغه
ذٰلِكَ يَئِسُوْا مِنْ كُلِّ خَيْرٍ وَعِنْدَ ذٰلِكَ يَأْخُذُوْنَ فِي الزَّفِيْرِ وَالْحَسْرَةِ وَالْوَيْلِ.
دوزخيان به د هر خير نه نا اميده شي او بيا به حسرت او ژړا فرياد شروع کړي عبد الله بن عبد الرحمٰن وايي
قَالَ عَبْدُ اللهِ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ والنَّاسُ لَا يَرْفَعُوْنَ هٰذَا الْحَدِيْثَ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ. (۱)
چې علماء دا حديث مرفوع نه ګرځوي ليکن ترمذي دا حديث مرفوع نقل کړی دی

**توضيح**: فيعدل ما هم فيه: يعني د ولږې دغه عذاب به د هغه عذاب سره برابر وي کوم چې د

مخکې نه هغوی ته وو . **من ضریع**: د اغزیو والا یوه زهریله ونه ده کچیرې یو حیوان هغه وخوري نو فورا مړ کیږي . دلته د ضریع نه مراد هغه د اور اغزي دي چې په دوزخ کې به وي او د مصبر نه به زیات ترخه وي. **یجیزون**: د تیریدلو په معنی سره دی. **الغصص**: په ستونی کې د کوم شی نښلیدلو ته غصص وایې، مطلب دا دی چې کله په دنیا کې کوم شی په ستونی کې ونښلیدو نو د هغه د تیریدلو لپاره به یې اوبه څکلې، په دغه وجه به دوزخي اوبه غوښتل شروع کړي .

**بکلالیب الحدید**: یعنې په هغو اوبو کې به د اوسپنې وړې وړې پرزې او میخونه شامل کړی شوي وي . (اخسئوا) د سپی د تختبولو او شړلو لپاره په عربی کې د اخسأ لفظ استعمالیږي (یعنې کوړې سپیو ) اوس زمونږ سره خبرې مه کوئ .

## حضور صلی الله علیه وسلم خپل امت د دوزخ نه پوره طور سره خبردار کړی دی

| |
|---|
| ﴿۲۳﴾وَعَنِ النُّعْمَانِ بْنِ بَشِيْرٍ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| حضرت نعمان بن بشیر رضی الله عنه نه روایت دی وایي یوه ورځ ما د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه واوریدل |
| يَقُوْلُ أَنْذَرْتُكُمُ النَّارَ أَنْذَرْتُكُمُ النَّارَ فَمَا |
| ای خلقو! ماتاسو د دوزخ د عذاب نه ویرولئ ماتاسو د دوزخ د عذاب نه ویریولئ نبی علیه السلام دا |
| زَالَ يَقُوْلُهَا حَتّٰى لَوْ كَانَ فِيْ مَقَامِيْ |
| الفاظ بار بار فرمائیل که حضور صلی الله علیه وسلم په دی ځاي تشریف فرما وي چیرته چې دا وخت زه ناست یم |
| هٰذَا لَسَمِعَهُ أَهْلُ السُّوْقِ وَحَتّٰى سَقَطَتْ خَمِيْصَةٌ |
| نو یقینًا د حضور صلی الله علیه وسلم اواز به بازار والاو اوریدلی تردې پورې چې د هغه تعالی. وهلو په وجه |
| كَانَتْ عَلَيْهِ عِنْدَ رِجْلَيْهِ. رَوَاهُ الدَّارِمِيُّ. [1] |
| د حضور صلی الله علیه وسلم کمبله چې په اوږه یې پرته وه په پښو کې راولیدله . |

**توضیح**: **انذرتکم**: یعنې د دوزخ د اور نه ما تاسې ویرولئ .

---

[1] اخرجه الدارمي في السنن ۲/۴۲۵ رقم الحديث ۲۸۱۲ واحمد في المسند ۲۶۸.

**في مقامي هذا:** يعنې حضور ﷺ دغه الفاظ په دومره زور زور سره فرمايل کچيرې هغه ﷺ زما په دغه ځای کې وی نو د هغه ﷺ آواز به بازار ته رسيدلی وی.

**الخميصة:** منقش څادر ته خميصه وايي، شاعر وايي:

لبست الخميصة ابغى الخبيصة ‌ ‌ ‌ و انشبت شمی فی کل شيصة

شارحين د خميصه ترجمه په توري شړۍ سره کوي.

## د دوزخيانو د تړلو اوږده ځنځيرونه

﴿۲۴﴾ وَ عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ قَالَ

او حضرت عبد الله بن عمرو بن عاص رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل که د

قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَوْ أَنَّ رَصَاصَةً

قلعي يوه ګوله داسې وي او حضور ﷺ د سر طرف ته اشاره وکړه چې د کاسي په شان وي

مِّثْلَ هٰذِهِ وَأَشَارَ إِلٰى مِثْلِ الْجُمْجُمَةِ أُرْسِلَتْ

يعني د سکې هغه ګوله د کاسي په شان ګول او د درنيدو په وجه ډيره په تيزی سره رغړيونکې وي د

مِنَ السَّمَاءِ إِلَى الْأَرْضِ وَهِيَ مَسِيْرَةُ خَمْسِمِائَةِ سَنَةٍ

آسمان نه ځمکې طرف ته وغورځول شي چې د هغو په مينځ کې فاصله د پنځه سوه کاله د مسافت

لَبَلَغَتِ الْأَرْضَ قَبْلَ اللَّيْلِ

برابر ده نو يقيناً هغه ګوله به يوې شپې تيريدو نه سر نه مخکې يعني ډيره مختصره موده کې به

وَ لَوْ أَنَّهَا أُرْسِلَتْ مِنْ رَأْسِ السِّلْسِلَةِ لَسَارَتْ

ځمکې ته راورسيږي ليکن که هغه ګوله د زنځير د سر نه پريښودل شي نو څلويښت کاله پورې

أَرْبَعِيْنَ خَرِيْفًا اللَّيْلَ وَالنَّهَارَ قَبْلَ أَنْ

مسلسل ورځ او شپه رغړيدو باوجود د هغه زنځير د ويخ يعني د هغه آخري سره پورې يادايې

تَبْلُغَ أَصْلَهَا أَوْ قَعْرَهَا. [رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ] (۱)

وفرمایل د هغه تَل ته به ونه رسیږي. [ترمذي]

**توضیح** : رصاصة: یعني د قلعي یوه ټوټه چې د سر او کوپړۍ پشان وي، کچیرې دا د اسمان نه ځمکې ته راپریښودل شي نو په کم وخت کې به دا ځمکې ته را ورسیږي حالانکه د ځمکې او آسمان په مینځ کې د پنځه سوه کالو فاصله ده لیکن که دغه ټوټه د دوزخیانو د ځنځیر په یو سر کې بنده کړی شي او بیا لاندې پریښودلی شي نو دا ځنځیر دومره اوږد دی او د دوزخ ژوروالی دومره زیات دی چې څلوېښت کاله بعد به دا ټوټه لاندې ورسیږي.

## دسرکشه متکبر په دوزخ کې ځائ

﴿۲۵﴾وَعَنْ أَبِي بُرْدَةَ عَنْ أَبِيهِ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

او حضرت ابوبرده تابعي رحمه الله خپل د پلار نه نقل کوي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل په

قَالَ إِنَّ فِي جَهَنَّمَ لَوَادِيًا يُقَالُ لَهُ

دوزخ کې یوه ناله ده چې د هغه نوم هبهب دی په دې ناله کې هر هغه سړی ساتلی شي چې متکبر

هَبْهَبُ يَسْكُنُهُ كُلُّ جَبَّارٍ. رَوَاهُ الدَّارِمِيُّ. (۲)

سرکش د حق نه لري او مخلوق باندې سختي کونکی وي. [دارمي]

**توضیح** : هبهب: په جهنم کې یوه کنده ده چې په هغې کې به د دنیا متکبره او بدمعاشان خلق وي په هغې کې کلی دی چې هبهب ورته ویلی شي الله دې پرویز مشرف هغې ته واچوي چې معصوم طالبانو او طالباتو باندې ئې ظلم وکړو.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## د دوزخیانو طویل (اوګد) اوعریض (پلن) جسامت

﴿۲۶﴾عَنِ ابْنِ عُمَرَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه روایت کوي چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل

---

(۱) اخرجه الترمذي ۴/۶۱۱ رقم الحدیث ۲۵۸۸ وأحمد في المسند ۲/۱۹۷ .

(۲) اخرجه الدارمي ۲/۴۲۷ رقم الحدیث ۲۸۱۶.

قَالَ يَعْظُمُ أَهْلُ النَّارِ فِي النَّارِ حَتّٰى إِنَّ بَيْنَ

په دوزخ کې به د دوزخیانو بدن ډیر غټ غټ شي چې هغه سره به هغوی ته عذاب هم زیات معلومیږي

شَحْمَةِ أُذُنِ أَحَدِهِمْ إِلَى عَاتِقِهِ مَسِيْرَةُ سَبْعَ

ددي پوري چې د يو دوزخي د غوږ د پوستکې نه د هغه د اوږي پوري فاصله به د اوو سوو کالو

مِائَةِ عَامٍ وَ إِنَّ غِلَظَ جِلْدِهِ سَبْعُوْنَ ذِرَاعًا وَ إِنَّ ضِرْسَهُ مِثْلُ أُحُدٍ.[1]

د مسافت برابروي د هغه د څرمن پیړوالی (ډبلوالی) به اویا ګزه وي او د هغه غاښ به د احد د غره برابروي.

## د دوزخ ماران او لړمان

﴿۲۷﴾وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ الْحَارِثِ بْنِ جَزْءٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

او حضرت عبد الله بن حارث بن جزء رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وايي چې رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل په دوزخ کې

إِنَّ فِي النَّارِ حَيَّاتٍ كَأَمْثَالِ الْبُخْتِ تَلْسَعُ إِحْدٰهُنَّ اللَّسْعَةَ

د بختي اوښ برابر غټ غټ ماران دي په هغو کې يو مار هم چې څوک يو وار وچيچي نو د هغه د

فَيَجِدُ حَمْوَتَهَا أَرْبَعِيْنَ خَرِيْفًا وَإِنَّ النَّارِ فِي عَقَارِبَ

چيچلو په شدت کې به څلويښت کاله پوري مبتلا وي د غه شان په دوزخ کې چې کوم لړمانان دي

كَأَمْثَالِ الْبِغَالِ الْمُوْكَفَةِ تَلْسَعُ إِحْدٰهُنَّ اللَّسْعَةَ

هغه د پالان تړلو قچرو په شان دي او هغو نه چې يو لړم يو وار څوک وچيچي هغه به د هغه د زهرو

فَيَجِدُ حَمْوَتَهَا أَرْبَعِيْنَ خَرِيْفًا. رَوَاهُمَا أَحْمَدُ.[2]

او درد په شدت کې څلويښت کاله پوري مبتلا وي دا دواړه روايتونه احمد نقل کړي دي.

**توضيح**: حيّات: يعني ماران به وي.

---

([1]) اخرجه احمد في المسند ۲/۲۶

([2]) اخرجه احمد في المسند ۴/۱۹۱ .

**البخت** خراسانی اوښ ته البخت ویلی کیږي.

**عقارب:** د عقرب جمع ده لړم ته وايي.

**المؤکفة:** د أکاف نه دی د اسم مفعول صیغه ده یعنې زین اچول شوی قچر.

**حموتها:** حموة د تیزۍ او چیچلو سوزش ته وايي یعنې تر ځلوېښت کاله پورې به د دغه درد اثر باقي وي.

## سپوږمۍ او لمر به دواړه اور ته ځي

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۲۸﴾ | وَ | عَنِ | الْحَسَنِ | قَالَ | حَدَّثَنَا | أَبُوْ | هُرَيْرَةَ عَنْ |
| او حضرت حسن بصري رحمه الله وايي حضرت ابوهریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مونږ ته د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ | | | | | | | |
| رَسُوْلِ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَ | سَلَّمَ | قَالَ الشَّمْسُ وَ الْقَمَرُ |
| دا حدیث بیان کړو چې د قیامت په ورځ به نمر او سپوږمۍ د پنیر د دوو ټکړو په شان د دوزخ په | | | | | | | |
| ثَوْرَانِ | مُكَوَّرَانِ | فِي | النَّارِ | يَوْمَ | الْقِيَامَةِ | فَقَالَ | الْحَسَنُ |
| اور کې واچول شي حسن رحمه الله وايي ما ددې حدیث اورېدو سره د حضرت ابوهریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه | | | | | | | |
| وَمَا | ذَنْبُهُمَا | فَقَالَ | أُحَدِّثُكَ | | | | |
| پوښتنه وکړه چې لمر او سپوږمۍ څه ګناه کړېده حضرت ابوهریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ جواب راکړو ماچې څه | | | | | | | |
| عَنْ | رَسُوْلِ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ | فَسَكَتَ الْحَسَنُ. |
| بیان کړل دا د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حدیث دی حسن بصري رحمه الله دې خبرې اورېد وسره خاموش | | | | | | | |
| رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِيْ كِتَابِ الْبَعْثِ وَ النُّشُوْرِ.[1] | | | | | | | |
| شو دا روایت بیهقي په کتاب البعث والنشور کې نقل کړی دی. | | | | | | | |

**توضیح: ثوران مکوّران:** ثوران تثنیه ده ددې مفرد ثور دی، د پنیر ټکړې ته وايي، مکوّران هم د مکوّر تثنیه ده د تاوولو په معنی سره دی یعنې لمر او سپوږمۍ به د پنیرو د ټکړو په شان تاؤ کړی شي په دوزخ کې به واچولی شي تر څو د دوی په وجه د اور په تیزۍ کې د خاشاک په شان اضافه

[1] اخرجه المرقاة المفاتیح ۱۰/۳۵۵ رقم الحدیث ۵۶۹۲

راشي .او په دې وجه هم چې د دوی دواړو عبادت کېږي نو عابد او معبود دواړه به په دوزخ کې وي تر څو کافر ذليله شي ، همدارنګه دوی دواړو د دنيا او ه طبقې رونبانه کړې وې بنه شهرت يې حاصل کړی لهذا د دې شهرت يو څه سزا ادا کول پکار ده ، هسې هم دا حديث ضعيفه دی .

## په دوزخ کې به بدبخته خلک وي

| |
|---|
| ﴿۲۹﴾وَعَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| او حضرت ابوهريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل په دوزخ کې به هغه سړی |
| لَايَدْخُلُ النَّارَ إِلَّا شَقِيٌّ قِيْلَ يَا رَسُوْلَ اللهِ وَمَنِ الشَّقِيُّ |
| اچول کېږي چې شقي (يعنی بدبخته وي) پوښتنه وشوه يارسول الله شقي څوک دی ؟ حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| قَالَ مَنْ لَمْ يَعْمَلْ لِلّٰهِ بِطَاعَةٍ وَلَمْ |
| وفرمايل شقي هغه دی چې نه خو د الله ! د رضا او خوشحالولو له خاطره او طاعات اختياروي |
| يَتْرُكْ لَهُ بِمَعْصِيَةٍ. رَوَاهُ ابْنُ مَاجَةَ.[1] |
| او نه د الله رضا او خوشحالولو د پاره ګناه او معصيت ترک کوي. |



[1] اخرجه ابن ماجه في السنن ۱۴۳۶ رقم الحديث ۴۲۹۸ واحمدفي المسند ۲/۳۴۹.

# باب خلق الجنة والنار

## د جنت او دوزخ د تخليق بيان

اهل حق د (اهل سنت والجماعة) عقيده ده چې جنت او دوزخ د اوس نه تيار دي، اهل باطل وايي چې جنت منت هيڅ هم نشته او دوزخ هم نشته. مرزا غالب وايي:

ہم کو معلوم ہی جنت کی حقیقت لیکن — دل بہلانی کو غالب یہ خیال اچھا ہے

بهر حال د داسې ملحدانو اقوالو ته څه اعتبار دی درحاليکه له مسلمانانو سره قرآن پاک او حديث دي او اجماع امت او اصول دين دي لهذا غپيدونکو د غپا هيڅ پروا نشته په ذکری شوي باب کې د داسې موضوع متعلق واضح احاديث بيان شوي

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

## د جنت او دوزخ مناظره

| |
|---|
| ﴿۱﴾ عَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَحَاجَّتِ الْجَنَّةُ وَالنَّارُ |
| حضرت ابوهريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل جنت او دوزخ په خپلو کې |
| فَقَالَتِ النَّارُ أُوْثِرْتُ بِالْمُتَكَبِّرِيْنَ وَالْمُتَجَبِّرِيْنَ |
| بحث او تکرار وکړو دوزخ وويل چې زه په سرکشو متکبرو او ظالمانو د پاره جوړ شوی يم او جنت |
| وَقَالَتِ الْجَنَّةُ فَمَالِيْ لَا يَدْخُلُنِيْ إِلَّا ضُعَفَاءُ |
| وويل زه خپل باره کې څه ووايم په ماکې به هم هغه خلق داخليږي کوم چې ضعيف او کمزوري د |
| النَّاسِ وَسَقَطُهُمْ وَغِرَّتُهُمْ قَالَ اللهُ تَعَالٰى |
| خلقو په نظر کې راغلي وي او ساده سيده او دهوکه کې راتلونکي وي په دي اوريدو سره الله! |
| لِلْجَنَّةِ اِنَّمَا اَنْتِ رَحْمَتِيْ أَرْحَمُ |
| جنت ته وفرمايل ته ځما د رحمت د اظهار ذريعه او ځما د کرم ځای يي زه چې خپلو بندګانو کې |
| بِكِ مَنْ أَشَاءُ مِنْ عِبَادِيْ وَقَالَ لِلنَّارِ |
| څوک په خپل رحمت سره نازول غواړم دهغه د پاره تا ذريعه جوړوم او دوزخ ته يي وفرمايل ته |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| إِنَّمَا | أَنْتِ | عَذَابِيْ | أُعَذِّبُ | بِكِ | مَنْ | أَشَآءُ |
| ځما د عذاب د محل او مظهر کېدو نه علاوه نور هيڅ نه يې زه چې خپلو بندګانو کې چاته عذاب | | | | | | |
| مِنْ | عِبَادِيْ | وَلِكُلِّ | وَّاحِدٍ | مِّنْكُمَا | مِلْؤُهَا | |
| ورکول غواړم هغه د پاره تا ذريعه جوړوم او زه به تا سو دواړه د خلقو نه ډک کړم البته دوزخ سره | | | | | | |
| فَأَمَّا | النَّارُ | فَلَا | تَمْتَلِئُ | حَتّٰى | يَضَعَ | اللهُ |
| خو به دا معامله وي چې هغه به هغه وخته پورې نه ډکيږي د څو پورې چې پر هغه الله ! خپله | | | | | | |
| رِجْلَهٗ | يَقُوْلُ | قَطْ | قَطْ | فَهُنَا | | |
| خپه کېږدي هر کله چې الله ! خپله خپه پر کېږدي نو دوزخ به نعري کړي چې بس بس هغه وخت به | | | | | | |
| لِكَ | تَمْتَلِئُ | وَيُزْوٰى | بَعْضُهَا | إِلٰى | بَعْضٍ | |
| دوزخ د الله ! په قدرت سره ډک شي او د هغه حصې به يوه بلې ته نزدې کړي نو هغه به راټول شي | | | | | | |
| فَلَا | يَظْلِمُ | اللهُ | مِنْ | خَلْقِهٖ | أَحَدًا | |
| مطلب دا چې الله ! په خپل مخلوق کې په هيچا باندې ظلم نه کوي او د جنت معامله خو به دا وي | | | | | | |
| وَأَمَّا الْجَنَّةُ فَإِنَّ اللهَ يُنْشِئُ لَهَا خَلْقًا. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.(۱) | | | | | | |
| چې د هغه د ډکېدو د پاره به الله ! نوی خلق پيدا کړي . [بخاري مسلم] | | | | | | |

**توضيح : تحاجّت**: په شد سره دی **أی تخاصمت و تجادلت** يعنې په خپل مينځ کښې يې جګړه وکړه او مناظره او تکرار وکړو ،حجت بيانی يې وکړه او په يو بل باندې يې غټوالی بيان کړلو مګر زياته واضحه خبره دا ده چې د دواړو طرفونو نه د يو قسم شکايت اظهار دی چې دوزخ وويل زه يې يواځې په غلو ، سرکشو ، او بدمعاشانو ، کفارو اشرارو سره ولې خاص کړی شوم ؟ هر ملعون زما همسايه ولی دی ؟ جنت وويل چې ته څه شکايت کوې او ستا څه شکايت دی ماته لږ اوګوره ! هر ګمنام ، مفلس، غريب زما همسايه دی ! د دوی دواړو په دغه خبرو او شکايت اوريدلو سره الله

تعالی وفرمایل چې تاسې دواړه زما د جلال او جمال مظهر یاستئ ، تاسې دواړه برابر یئ، صرف دومره خبره ده چې په تاسو کښې د یوه سره زما عدل او انصاف تعلق لري چې دوزخ دی ، او د دویم سره زما انعام او اکرام او فضل او احسان تړلی دی چې جنت دی . **ملؤها**: یعنې زما په ذمه دا وعده ده چې زه به دواړه ډکومه ، د جنت لپاره به یو نوی مخلوق پیدا کړی شي ځکه دا به د الله تعالی انعام او احسان وي او د دوزخ لپاره به نوی مخلوق پیدا کولی نشي ځکه بلا وجه به څوک په دوزخ کښې اچولی نشي نو ځکه به په دوزخ باندې الله تعالی خپل قدم کیږدي نو دوزخ به اقرار وکړي چې زه ډک شوم بس دی بس دی **!قط قط**: ای کفی کفی کافي دی کافي دی . **یزوی**: د مجهول صیغه ده ای یضم و یجمع یعنې د دوزخ حصې به سره قریبې کړی شي نو هغه به سره یوځای کړی شي .

**فلا یظلم الله**: یعنې الله تعالی به د دوزخ د ډکولو لپاره نوی مخلوق نه پیدا کوي ځکه بغیر د ګناه نه څوک په دوزخ کښې اچول ظاهری صورت کښې د ظلم مترادف دی ، الله تعالی د ظلم نه پاک دی نو ځکه به د دوزخ په خوله باندې الله تعالی خپل قدم کیږدي نو دوزخ به د خپل ډکیدلو اقرار وکړي او په دې طریقه د دوزخ سره چې کومه وعده د ډکیدو شوې وه هغه به هم پوره شي .

## دوزخ او جنت به ډک شي

| وَسَلَّمَ | عَلَيْهِ | اللهُ | صَلَّى | النَّبِيِّ | عَنِ | أَنَسٍ | وَعَنْ | ﴿۲﴾ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| او حضرت انس رضي الله عنه د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه روایت کوي چې حضور صلى الله عليه وسلم وفرمایل | | | | | | | | |

| مَزِيْدٍ | مِنْ | هَلْ | وَتَقُوْلُ | فِيْهَا | يُلْقٰى | جَهَنَّمَ | تَزَالُ | لَا | قَالَ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| په دوزخ کې به مسلسل خلق اچول کېږي او هغه به وایي چې څه نور هم شته آخر الله عز وجل به په | | | | | | | | | |

| قَدَمَهٗ | فِيْهَا | الْعِزَّةِ | رَبُّ | يَضَعَ | حَتّٰى |
|---|---|---|---|---|---|
| هغه خپله پښه کیږدي نو د دوزخ حصې به یوه بلې ته قریبې راشي چې په هغه سره به دوزخ راټول | | | | | |

| وَكَرَمِكَ | بِعِزَّتِكَ | قَطْ | قَطْ | فَتَقُوْلُ | بَعْضٍ | إِلٰى | بَعْضُهَا | فَيَنْزَوِيْ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| شي بیا به هغه وایي بس بس ستا په عزت او کرم مې دې قسم وي زه ډک شوم د غه شان په جنت | | | | | | | | |

| اللهُ | يُنْشِئَ | حَتّٰى | فَضْلٌ | الْجَنَّةِ | فِيْ | يَزَالُ | وَلَا |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| کې به وسعت وي تر دې پورې چې الله تعالی به د جنت هغه خالي محلاتو او مکاناتو ډکولو د پاره | | | | | | | |

لَهَا خَلْقًا فَيُسْكِنُهُمْ فَضْلَ الْجَنَّةِ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. وَذُكِرَ حَدِيْثُ أَنَسٍ حُفَّتِ

نوي مخلوق پيدا كړي چې هغې كې به آباد شي . بخاري، مسلم) او حديث د انس رضي الله عنه : حُفَّت

الْجَنَّةُ بِالْمَكَارِهِ فِيْ كِتَابِ الرِّقَاقِ.[1]

الجَنَّةُ بالمكارِهِ په كتاب الرقاق كې ذكر شوى دى .

## اَلْفَصْلُ الثَّانِيْ

### جنت په مشكلاتو كې او دوزخ په خواهشاتو كې ګير شوي دي

﴿۳﴾عَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

ابو هريره رضي الله عنه د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه روايت كوي چې رسول كريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل

قَالَ لَمَّا خَلَقَ اللهُ الْجَنَّةَ قَالَ لِجِبْرَئِيْلَ اذْهَبْ

الله ! چې جنت جوړ كړه نو حضرت جبرائيل عليه السلام ته يې وفرمايل لاړ شه او جنت طرف ته

فَانْظُرْ إِلَيْهَا فَذَهَبَ فَنَظَرَ إِلَيْهَا وَ إِلَى مَا أَعَدَّ اللهُ

نظر وكړه او ګوره نو هغه لاړلو جنت او د هغه ټول شيزونه يې چې الله ! جنتيانو د پاره جوړ

لِأَهْلِهَا فِيْهَا ثُمَّ جَاءَ فَقَالَ أَيْ رَبِّ

كړي دي وليدل نو بيرته راتلو سره يې عرض وكړو اى پروردګاره ! ستا په عزت مي دې قسم وي

وَعِزَّتِكَ لَايَسْمَعُ بِهَا أَحَدٌ إِلَّا دَخَلَهَا ثُمَّ

چې څوك واوري هغه به په هغه كې د داخليدلو خواهش كوي بيا الله ! د جنت څلور طرف ته د

حَفَّهَا بِالْمَكَارِهِ ثُمَّ قَالَ يَا جِبْرَئِيْلُ

هغه شيزونو احاطه قائمه كړه كوم چې نفس ته ناخوښ دي او وي فرمائيل اى جبرائيله ! لاړ شه

---

(۱) اخرجه البخاري في صحيحه ۸/۵۹۴ رقم الحديث ۶۴۸۴ ومسلم ۴/۲۱۸۷ رقم الحديث ۲۸۴۸-۳۷

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| اذْهَبْ | فَانْظُرْ | إِلَيْهَا | قَالَ | فَذَهَبَ |

جنت دوباره اوګوره نو هغه لاړلو او په لیدو سره بیرته راغلي نو عرض يې وکړو ای پروردګاره!

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فَنَظَرَ | إِلَيْهَا | ثُمَّ | جَاءَ | فَقَالَ | أَيْ | رَبِّ | وَعِزَّتِكَ | لَقَدْ | خَشِيتُ |

ستا په عزت مې دې قسم وي ماته یره ده اوس شاید څوک هم په جنت کې د داخلیدو خواهش ونه

| | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| اَنْ | لَّا يَدْخُلَهَا | أَحَدٌ | قَالَ | فَلَمَّا | خَلَقَ | اللهُ | النَّارَ | قَالَ | يَا | جِبْرَئِيلُ |

کړي حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل دغه شان الله! چې دوزخ جوړ کړه نو جبرائیل ته يې حکم

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اذْهَبْ | فَانْظُرْ | إِلَيْهَا | قَالَ | فَذَهَبَ | فَنَظَرَ | إِلَيْهَا |

ورکړو چې لاړ شه دوزخ اوګوره حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل نو جبرائیل لاړلو او دوزخ کتلو

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| ثُمَّ | جَاءَ | فَقَالَ | أَيْ | رَبِّ | وَعِزَّتِكَ |

سره بیرته راغی نو عرض يې وکړو ای ربه! ستا په عزت او جلال مې قسم څوک چې د دوزخ باره

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| لَا يَسْمَعُ | بِهَا | أَحَدٌ | فَيَدْخُلُهَا | فَحَفَّهَا |

کې واوري هغه به هغه ته د تلو کوشش نه کوي بیا الله! د دوزخ څلور طرفه ته د نفس د

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| بِالشَّهَوَاتِ | ثُمَّ | قَالَ | يَا | جِبْرَئِيلُ | اذْهَبْ |

خواهشاتو احاطه قائمه کړه او جبرائیل ته يې وفرمایل ای جبرائیل! لاړ شه دوزخ دوباره

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| فَانْظُرْ | إِلَيْهَا | قَالَ | فَذَهَبَ | فَنَظَرَ | إِلَيْهَا |

وګوره حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل نو حضرت جبرائیل لاړلو او هغې لیدو سره بیرته راغی نو

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| فَقَالَ | أَيْ | رَبِّ | وَعِزَّتِكَ | لَقَدْ | خَشِيتُ | اَنْ |

عرض يې وکړو ای پروردګاره! ستا په عزت او جلال مې دې قسم وي ماته یره ده چې اوس به

| لَا يَبْقٰى أَحَدٌ إِلَّا دَخَلَهَا. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُوْ دَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ[1] |
|---|
| شايد څوک هم باقي بچ نشي چې دوزخ ته به لاړ نشي [ابوداؤد ترمذي نسائي] |

**توضيح** : **مكاره**: دا د **مكره** جمع ده چې معنى ده ناخوښه او درانه شيان ،شرعي طور باندې د مكاره نه مراد هغه شرعي امور دي چې د هغې د كولو يا نه كولو شريعت حكم وركړې دى چې دا امور تكليفيه دي او پابندي ورباندې ضروري ده . د **مكاره نه** مثلا دا هم ده چې په سخته يخنۍ كې په اوداسه سره لمونځ اداء كړې شي او په سخته ګرمۍ كښې روژه ونيولې شي ، ددې مشكلاتو نه په تيريدلو سره مخې ته د راحتونو والا جنت دى چې په دغو مشكلاتو كښې پټ دى .
همدارنګه د شريعت نه په آزادى او د شرابونو او كبابونو نه په تيريدلو سره مخې ته دوزخ دى چې په دغه راحتونو كښې پټ دى ، د حديث همدا مطلب دى چې جنت په مشكلاتو سره او دوزخ په خواهشاتو سره پټ كړې شوى دى .

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

| ﴿۴﴾ عَنْ أَنَسٍ أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلّٰى لَنَا يَوْمًا اَلصَّلَاةَ |
|---|
| د حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ بيان دى يوه ورځ رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مونږ ته مونځ راكړو بيا منبر ته وختلو |
| ثُمَّ رَقِيَ الْمِنْبَرَ فَأَشَارَ بِيَدِهِ |
| او د مسجد قبلې طرف ته يې خپل لاس مبارک سره اشارې كولو سره يې وفرمايل چې اوس ما تا |
| قِبَلَ قِبْلَةِ الْمَسْجِدِ فَقَالَ قَدْ أُرِيْتُ الْآنَ |
| سو ته مونځ دركړو نو ماته د دې ديوال مخامخ طرف كې جنت او دوزخ وښودل شول واقعه داده |
| مُذْ صَلَّيْتُ لَكُمُ الصَّلَاةَ اَلْجَنَّةَ وَالنَّارَ مُمَثَّلَتَيْنِ فِيْ قِبَلِ هٰذَا الْجِدَارِ |
| چې ما څومره ښه شى او څومره خراب شى نن ليدلى دى داسې ښه او خراب شيان مې دې نه |

---

(1) اخرجه ابوداود في السنن ۵/۱۰۸ رقم الحديث ۴۷۴۴ واخرجه الترمذي ۴/۵۹۸ رقم الحديث ۲۵۶۰.

فَلَمْ أَرَ كَالْيَوْمِ فِي الْخَيْرِ وَالشَّرِّ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ . [1]

مخکې هيڅ کله نه دي ليدلي. [بخاري]

**توضيح** : قبل هذا الجدار: يعني د دغه ديوال په طرف کې ما جنت او دوزخ وليدلو .

**سوال** : که څوک دا سوال وکړي چې جنت او دوزخ خو ډير وسيع او عريض دي د مسجد په محدود ديوال کښې هغه حضور اکرم ﷺ څنګه وليدل ؟

**جواب** : ددې لپاره دوه جوابه دي : يو دا چې د يو شی عکس (تصوير) د هغه شی نه ډير وړوکی وي دلته د عکس ذکر دی د اصل ذکر نه دی ، د نن سبا د ميډيا او کمپيوټر په دور کښې دغه سوال بې معنی دی . دويم جواب دا دی چې آنحضرت ﷺ د ديوال په مخامخ حصه کښې جنت او دوزخ په اصلی حالت کښې وليدل ، د لمانځه په حالت کښې به حضور ﷺ ته انکشاف تام کيده د حديث الفاظ دغه مطلب ته زيات نژدې دي .

**في الخير**: يعني په دې دنيا کښې که کوم انسان کوم ښه شي ته کتلی شي د جنت منظر د هغه نه زيات ښايسته وو او په دې دنيا کښې که يو انسان د بدو نه د بدتر منظر نظاره کولی شي نو د دوزخ منظر د دېنه هم زيات بد وو .



**۱۷ جمادی الثاني ۱٤۱۸هـ**

---

(۱) اخرجه البخاري في صحيحه ۱/۵۱۵ رقم الحديث ۴۱۹ .

## باب بدء الخلق وذکر الانبیاء علیهم الصلوة والسلام
## د کائناتو د پیدا کولو او انبیاو بیان

قال الله تعالی ﴿ وَجَعَلْنَا مِنَ الْمَاءِ كُلَّ شَيْءٍ حَيٍّ ﴾ د کائناتو تخلیق او ددې ابتداء څنګه وشوه ؟ ددې سره متعلق په باب صفة اهل الجنة حدیث نمبر۱۸ په توضیح کې په پوره تفصیل سره ما لیکل کړي دي ، خلاصه دا چې الله تعالی وو او د هغه سره کوم بل شی نه وو (کان الله ولیس معه شئ) بیا الله تعالی په خپل قدرت سره یوه شنه ملغلره پیدا کړه او هغې ته یې د غضب په نظر سره وکتل هغه ویلې شوه او اوبه ترینه وجود ته راغلې په ﴿ وَكَانَ عَرْشُهُ عَلَى الْمَاءِ ﴾ کې همدغه کیفیت ته اشاره ده ، بیا الله تعالی اوبو ته د رعب او جلال په نظر سره وکتل نو اوبه جوشیدو سره وچې شوې، لاندې تلچټ پاتې شو ، پاس لوګې پورته شو ، د همدغه لوګې نه الله تعالی اسمانونه جوړ کړل په ﴿ ثُمَّ اسْتَوَى إِلَى السَّمَاءِ وَهِيَ دُخَانٌ ﴾ کې همدغه حقیقت ته اشاره ده ،بیا الله تعالی ځمکه هواره کړه په ﴿ وَالْأَرْضَ بَعْدَ ذَٰلِكَ دَحَاهَا ﴾ کې همدغه پس منظر بیان کړی شوی دی ، د ځمکو پیدایش مخکې دی مګر خورل یې وروسته دي او د آسمانونو تخلیق د ځمکې د تخلیق نه وروسته دی مګر تزیین او برابرول یې د ځمکې د برابرولو نه مخکې دي ځکه دا قاعده ده چې د چت صفائی او ښایسته کول مخکې وي او د فرش وروسته وي، په بدائع الزهور فی وقائع الدهور نوم کتاب کې ټول تفصیلات دي،په اشعة اللمعات کې شیخ عبدالحق رح مکمل تفصیل کړی دی .

د بنی آدمو د تخلیق شروع د حضرت آدم عَلَيْهِ السَّلَام نه وشوه ټول اهل حق په دې باندې متفق دي چې دا عالم حادث دی یعنې مخکې نه وو بیا الله تعالی دېته وجود ورکړو ، لوح او قلم یې پیدا کړلو ، ځمکه او آسمان یې جوړ کړل ، په ځمکه یې غرونه نصب کړل ، عرش او کرسی یې پیدا کړله ، ملائکې او جن او انس یې پیدا کړلو بیا به یو وخت د قیامت داسې راځي چې دا ټول به فناء کیږي او صرف د الله تعالی ذات به باقی پاتې کیږي .

ألا کل شيئ ماخلا الله باطل وکل نعیم لامحالة زائل

### اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

### په ابتداء کې د الله تعالی ذات وو نور هیڅ نه وو

﴿۱﴾عَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ قَالَ إِنِّي كُنْتُ عِنْدَ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

حضرت عمران بن حصین رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي یوه ورځ زه د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره ناست وم چې د بنو

| إِذْ | جَاءَهُ | قَوْمٌ | مِّنْ | بَنِي | تَمِيْمٍ | فَقَالَ |
|---|---|---|---|---|---|---|

تمیم څه خلق د حضور ﷺ په خدمت کې حاضر شول حضور ﷺ هغوی ته وفرمایل

| اِقْبَلُوا | الْبُشْرٰى | يَا | بَنِيْ | تَمِيْمٍ | قَالُوْا | بَشَّرْتَنَا |
|---|---|---|---|---|---|---|

ای د بنو تمیم خلقو ! بشارت حاصل کړئ هغوی وویل تا سو خو د دین بشارت مونږ ته راکړی دی

| فَأَعْطِنَا | فَدَخَلَ | نَاسٌ | مِّنْ | أَهْلِ | الْيَمَنِ |
|---|---|---|---|---|---|

نو اوس څه سامان راته راکړئ بیا څه وخت روسته د یمن خلق د حضور ﷺ په خدمت کې

| فَقَالَ | اِقْبَلُوْا | الْبُشْرٰى | يَا | أَهْلَ | الْيَمَنِ |
|---|---|---|---|---|---|

حاضر شول حضور ﷺ هغوی ته وفرمایل ای د یمن خلقو ! بشارت حاصل کړئ د بنو

| إِذْ | لَمْ | يَقْبَلْهَا | بَنُوْ | تَمِيْمٍ |
|---|---|---|---|---|

تمیم خلقو خو بشارت حاصل نه کړو یمن والو عرض وکړو یارسول الله! مونږ بشارت قبلوو او

| قَالُوْا | قَبِلْنَا | جِئْنَاكَ | لِنَتَفَقَّهَ | فِي | الدِّيْنِ |
|---|---|---|---|---|---|

مونږ د دې د پاره ستا سو په خدمت کې حاضر شوي یو چې دیني معلومات او فهم حاصل کړو چې

| وَلِنَسْأَلَكَ | عَنْ | أَوَّلِ | هٰذَا | الْأَمْرِ |
|---|---|---|---|---|

د ابتدائي پیدائش او مبداء عالم باره کې پوښتنه کول غواړو چې د دې کائناتو د وجود نه مخکې

| مَا | كَانَ | قَالَ | كَانَ | اللهُ |
|---|---|---|---|---|

څه شی موجود وو؟ حضور ﷺ ورته وفرمایل صرف د الله ! ذات موجود وو په ازل کې

| وَلَمْ | يَكُنْ | شَيْءٌ | قَبْلَهُ | وَكَانَ | عَرْشُهُ | عَلَى | الْمَاءِ | ثُمَّ | خَلَقَ | السَّمٰوٰتِ | وَالْأَرْضَ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|

د هغه نه مخکې هیڅ شی موجود نه وو او د هغه عرش په اوبو وو بیا الله ! آسمان او ځمکه پیدا

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وَكَتَبَ | فِي | الذِّكْرِ | كُلَّ | شَيْءٍ | ثُمَّ | أَتَانِيْ |
| کړل او لوحِ محفوظ کې يې هرڅه وليکل د حديث راوي حضرت عمران ابن حصين وايي | | | | | | |
| رَجُلٌ | فَقَالَ | يَا | عِمْرَانُ | أَدْرِكْ | نَاقَتَكَ | فَقَدْ |
| ما د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ارشاد گرامي بس دې ځای پورې اوريدلی وو چې يو سړی ماته راغی او | | | | | | |
| ذَهَبَتْ | | | فَانْطَلَقْتُ | | | أَطْلُبُهَا |
| هغه وويل چې عمرانه! لاړ شه او خپله اوښه دې ولټوه نو هغه تختيلې دې ددې په اوريدلو سره د | | | | | | |
| وَايْمُ | | اللهِ | لَوَدِدْتُ | | أَنَّهَا | قَدْ |
| خپلې اوښې په تلاش کې ووتم او اوس زه د الله قسم کولو سره وايم او ارمان کوم چې کاش چې زه | | | | | | |
| ذَهَبَتْ | وَلَمْ | أَقُمْ. | رَوَاهُ | الْبُخَارِيُّ[1] | | |
| هغه وخت د مجلس نبوي نه نه وی تلی اگر که زما اوښه ورکه شوې هم وی. [بخاري] | | | | | | |

**توضيح: بشرتنا فاعطنا:** حضور اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د بنو تميم په راتگ باندې هغوی ته دا بشارت ورکړو چې تفقه في الدين او علمي پوهه حاصله کړئ او بيا ددې په نتيجه کې د جنت نعمتونه او د علم او عمل بشات قبول کړی، چونکې د هغوی ټول نظر او مکمل رجوع په دنيا باندې وه نو ځکه هغوی وويل چې بشارت خو تا راکړو اوس مونږ ته مال راکړه. شايد هغوی د نبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د ظاهر الفاظو (البشری) نه دنيا فهم کړې وي ځکه د هغوی نظر په فانی دنيا باندې لگيدلی وو او د دائمی آخرت نه غافله وو، بيا دغه بشارت اهل يمن والو قبول کړلو او د کائناتو د پيدا ايښت د ابتداء پوښتنه يې وکړه.

**کان الله:** يعنې الله تعالی د ازل الآزال نه وو او تر ابد الاباد پورې به وي د کائناتو خالق هغه دی، په هر حال د الله تعالی نه مخکې هيڅ هم نه وو.

**علی الماء:** ددې تشريح او تفصيل مخکې ليکل شوی دی، مراد دا نه دی چې د اوبو په سطحه باندې عرش اېښودلی شوی وو بلکه پاس عرش او لاندې اوبه وې، نور څه نه وو. **و کتب في الذکر:** د ذکر نه لوح محفوظ مراد دی او کتبَ په معنی د اثبت سره دی يعنې هرڅه يې په لوح محفوظ کې وليکل.

**ايم الله:** د قسم لپاره وضع شوی دی ای اقسم بالله.

---

(1) اخرجه البخاري ۶/۲۸۶ رقم الحديث ۳۱۹۰ والترمذي ۵/۶۸۸ رقم الحديث ۳۹۵۱ واحمدفي المسند ۴/۴۲۶.

## حضور ﷺ د ابتداء پيدائش نه د قيامت دورځې پورې احوال بيان فرمايلی وو

﴿۲﴾وَعَنْ عُمَرَ قَالَ قَامَ فِيْنَا رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

و امير المؤمنين حضرت عمر فاروق رضي الله عنه وايي يوه ورځ حضور ﷺ خطبې ورکولو د

مَقَامًا فَأَخْبَرَنَا عَنْ بَدْءِ الْخَلْقِ حَتّٰى دَخَلَ

پاره زمونږ په مخکې او دريدلو حضور ﷺ د هغه خطبې په دوران کې د ابتداء پيدائش

أَهْلُ الْجَنَّةِ مَنَازِلَهُمْ وَأَهْلُ النَّارِ مَنَازِلَهُمْ

نه جنت او دوزخ کې د داخليدو پورې ټول احوال او کيفيات ذکر کړل کوم سړي چې دا خبرې ياد

حَفِظَ ذٰلِكَ مَنْ حَفِظَهُ وَنَسِيَهُ مَنْ نَّسِيَهُ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ[1]

وساتلې هغه ته يادې دي او کوم سړي چې هيرې کړي هغه هيرې کړې. [بخاري]

## د الله تعالى د رحمت سبقت

﴿۳﴾ وَعَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

او ابوهريره رضي الله عنه وايي ما د رسول الله ﷺ نه واوريدل چې الله ! د مخلوق يعني

إِنَّ اللهَ تَعَالٰى كَتَبَ كِتَابًا قَبْلَ أَنْ يَّخْلُقَ

ځمکې آسمان پيدا کولو نه مخکې يو کتاب وليکله په هغه کې دي چې زما رحمت زما په غضب

الْخَلْقَ إِنَّ رَحْمَتِيْ سَبَقَتْ غَضَبِيْ فَهُوَ مَكْتُوْبٌ عِنْدَهُ فَوْقَ الْعَرْشِ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.[2]

سبقت کړی دی او هغه کتاب يا مذکوره عبارت د الله ! سره په عرش د پاسه ليکلی موجود دی. [بخاري مسلم]

**توضيح**: سبقت غضبي: د دې جملې لپاره دوه مفهومه دي يو دا چې رحمت د مخکې نه وو چې د دې په برکت کائنات جوړ شول او خاص رحمت موجود وو بيا چا چې سرکشي شروع کړه د هغه لپاره د غضب ظهور وشو ، د حديث همدا مطلب دی چې د رحمت لپاره په غضب باندې سبقت حاصل وو . دويم مفهوم دا دی چې رحمت خداوندي د غضب الهی نه وسيع تر دی او په هغه باندې مخکې

---

(۱) اخرجه البخاري في صحيحه ۶/۲۸۶ رقم الحديث ۳۱۹۲ أبوداود ۴/۴۴۱ رقم الحديث ۴۲۴۰.

(۲) اخرجه البخاري ۶/۲۸۷ رقم الحديث ۳۱۹۴ ومسلم ۴/۲۱۰۷ رقم الحديث (۲۷۵۱-۱۴)

شوی دی د دغه رحمت تقاضا ده چې د جنت طبقات د جهنم د طبقاتو نه زيات دي او په کائناتو باندې رحمت محيط دی.

## انسان د کوم څيز نه جوړ دی

| |
|---|
| ﴿٤﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ عَنْ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| او بي بي عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه روايت کوي چې رسول کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| قَالَ: خُلِقَتِ الْمَلَائِكَةُ مِنْ نُوْرٍ وَخُلِقَ الْجَانُّ |
| وفرمايل فرشتې د نور نه پيدا شوې دي او جنات يې د اور د شغلې نه پيدا کړي دي د کوم سره چې |
| مِنْ مَارِجٍ مِنْ نَارٍ وَخُلِقَ آدَمُ مِمَّا وُصِفَ لَكُمْ. رَوَاهُ مُسْلِمٌ. [1] |
| لوګي ګډ وډوو لوګې او آدم د هغه شي نه پيدا شوی دی چې تاسو ته ښودل شوی دی [مسلم] |

**توضيح : من نور**: يعنې ملائکې د يو قسم نور نه جوړې شوې دی دا د الله تعالى نور نه دی، کوم بل نور دی. **الجان**: د جان د لفظ معنى خو يا د جن او جناتو ده يا د جناتو د اصل او د هغوی د پلار نوم جان دی چې د هغه نه د جناتو نسل چليدلی دی.

وصف: يعنې حضرت آدم عَلَيْهِ السَّلَامُ چې د کوم شی نه پيدا شوي هغه په قرآن کې بيان شوی دی، ايت دا دی ﴿ خَلَقَهُ مِن تُرَابٍ ﴾ يعنې د خاورې نه پيدا کړی شو، په دې حديث کې په بريلويانو باندې سخت رد دی بلکه د هغوی خيالی او د دروغو عمارت دځمی سره خاورې شوی دی ځکه دلته د ملائکو د تخليق نسبت نور ته شوی دی او د انسان د تخليق نسبت خټې ته شوی دی لهذا نور او خټه دواړه يو د بل مقابل شول، اوس وو ايه چې د دغو مشرکانو او بدعتيانو د دروغو عقيده چيرته لاړه؟ دا خلک تور زړی او بدبخته دي چې قرآن هم د نظره غور ځوي کوي او احاديثو ته هم نه ګوري بلکه خپل دروغ اجتهادي بيانوي او د کفر فتواګانې لګوي.

## د آدم د شکل په باره کې د ابليس خيال

| |
|---|
| ﴿٥﴾ وَعَنْ أَنَسٍ أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَمَّا |
| او حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل هرکله چې الله! په |

---

(1) اخرجه مسلم ۴/۲۲۹۴ رقم الحديث (۲۹۹۶-۶۰) واحمد في المسند ۶/۱۶۸.

| صَوَّرَ | اللهُ | آدَمَ | فِي | الْجَنَّةِ | تَرَكَهُ | مَا | شَاءَ | اللهُ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| جنت کې د آدم جسم جوړ کړو نو تر څو پورې يې چې غوښتل په جنت کې يې وساتلو په دې موده | | | | | | | | |
| أَنْ | يَتْرُكَهُ | فَجَعَلَ | إِبْلِيسُ | | | | | |
| کې ابليس به ددې صورت نه چاپيره چکر لګوه او سوچ به يې کولو چې دا څه شی دی او څرنګه | | | | | | | | |
| يُطِيفُ | بِهِ | يَنْظُرُ | مَا | هُوَ | فَلَمَّا | رَآهُ | أَجْوَفَ | عَرَفَ |
| دی او هر کله چې هغه وليدل چې دا خاکې (خاورين) صورت د دننه نه خالي دی نو پوهه شو چې دا | | | | | | | | |
| أَنَّهُ | خُلِقَ | خَلْقًا | لَايَتَمَالَكُ. | رَوَاهُ | مُسْلِمٌ. [1] | | | |
| يو داسې مخلوق پيداشوی دی چې غير مضبوط به وي يعنی قابو کې به نه وي . [مسلم] | | | | | | | | |

**توضيح : لما صور آدم:** د حضرت آدم عَلَيْهِ السَّلَامُ دغه صورت د څو مراحلو نه په تيريدلو جوړ شوی دی، اول خټه وه بيا خميره وګرځول شوه بيا يې وچه کړه بيا يې دانچه جوړه کړی شوه چې د قالب شکل ؤ ابليس په دغه مرحله کې تلو راتلو او کتل يې .**لايتمالک:** يعني د مينځ نه خالي دی ، په ده کې به زما وساوس داخليږي خپل ځان به د خواهشاتو نه بچ کولی نشي او د يو بل په مدد سره به قوي کيدلی نشي .

## د حضرت ابرهيم عَلَيْهِ السَّلَامُ د ختنې ذکر

| ﴿۶﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَسَلَّمَ اِخْتَتَنَ |
|---|
| او حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې رسول کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل حضرت ابراهيم عَلَيْهِ السَّلَامُ |
| إِبْرَاهِيمُ النَّبِيُّ وَهُوَ ابْنُ ثَمَانِينَ سَنَةً بِالْقَدُومِ . مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. [2] |
| د اتيا کالو په عمر کې ترخذ سره خپله ختنه وکړله . [بخاري مسلم] |

**توضيح : القدوم:** قدوم ترخذ (تيشه) ته هم وايي او د يو ځای نوم هم قدوم دی ، حضرت ابراهيم عَلَيْهِ السَّلَامُ د الله تعالی په حکم سره لويه تيشه واخيستله او په مقام قدوم کې يې خپله ختنه وکړه ، بعضو شارحينو ويلي دي که قدوم مشدد وويلی شي نو ددې مصداق د يو مقام نوم او ځای دی ، او که دا غير مشدد وويلی شي نو دا تيشه او ترخذ ته ويلی کيږي ، بعضو په دواړو اعرابونو سره ويلی دی والله اعلم.

---

(1) اخرجه مسلم ۴/۲۱۱۶ رقم الحديث (۱۱۱/۲۶۱۱) واحمد في المسند ۳/۲۲۹.

(2) اخرجه البخاري ۶/۳۳۸ رقم الحديث ۳۳۵۶ ومسلم ۴/۱۸۳۹ رقم الحديث ۱۵۱/۲۳۷۰ واحمد في المسند ۲/۳۲۲

## په درېو شيانو کې د ابراهيم عَلَيْهِ السَّلَام توريه

﴿۷﴾ وَعَنْهُ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمْ

او حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې رسول کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل حضرت ابراهيم عَلَيْهِ السَّلَام

يَكْذِبْ إِبْرَاهِيْمُ إِلَّا ثَلَاثَ كَذَبَاتٍ ثِنْتَيْنِ مِنْهُنَّ

هيڅ کله دروغ نه وو ويلي علاوه د درېو دروغو نه او په هغه کې يې هم دوه دروغه د الله !

فِيْ ذَاتِ اللهِ قَوْلُهُ إِنِّيْ سَقِيْمٌ

د پاره ويلي وو په هغو کې يو خو د هغوی دا ويل وو چې نن زه ناجوړه يم دوهم يې دا ويلي وو چې

وَقَوْلُهُ بَلْ فَعَلَهُ كَبِيْرُهُمْ هٰذَا وَقَالَ

دا کار لوی بت کړی دی او حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل د حضرت ابراهيم عَلَيْهِ السَّلَام د ژبې نه چې

بَيْنَا هُوَ ذَاتَ يَوْمٍ وَسَارَةُ إِذْ أَتَى عَلَى جَبَّارٍ

کوم دريم دروغ وتلي وو هغه دا ويل وه چې دا زما خور ده او دا هغه واقعه ده هر کله چې

مِنَ الْجَبَابِرَةِ فَقِيْلَ لَهُ إِنَّ هٰهُنَا

حضرت ابراهيم عَلَيْهِ السَّلَام او د هغوی ښځه بي بي ساره رَضِيَ اللهُ عَنْهَا د هجرت په کولو سره د هغوی تيرېدل د

رَجُلًا مَّعَهُ امْرَأَةٌ مِّنْ

يو لوی ظالم حاکم په څمکه وشو هغه حاکم ته وښودل شو چې دلته يو سړی راغلی دی چې د هغه

أَحْسَنِ النَّاسِ فَأَرْسَلَ

سره يوه ډېره حسينه ښځه ده هغه حاکم په دې اوريدو سره يو کس د حضرت ابراهيم عَلَيْهِ السَّلَام د بللو

إِلَيْهِ فَسَأَلَهُ عَنْهَا

د پاره وليږلو کله چې ابراهيم عَلَيْهِ السَّلَام حاکم ته ورغلو نو هغه ترينه پوښتنه وکړه چې تا سره

مَنْ هٰذِهِ قَالَ أُخْتِيْ

دا ښځه څوک ده او ستا څه ده؟ حضرت ابراهيم عَلَيْهِ السَّلَام جواب ورکړو چې هغه زما خورده ده

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| فَأُتِيَ | سَارَةَ | فَقَالَ | لَهَا | | |

هغوى بي بي ساره رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ته بيرته راتلوسره و ويل که هغه ظالم حاکم ته دا معلومه شي چې ته

إِنَّ هٰذَا الْجَبَّارَ إِنْ يَعْلَمْ أَنَّكِ امْرَأَتِيْ

زما ښځه يي نو تا به زما نه په زبردستۍ سره واخلي نو که هغه ستا او زما د تعلق باره کښې درنه

يَغْلِبُنِيْ عَلَيْكِ فَإِنْ سَأَلَكِ فَأَخْبِرِيْهِ أَنَّكِ

پوښتنه وکړي نو هغه ته ووايه چې ته زما خوريي او په دې کې څه شبهه هم نشته چې ته د دين د

أُخْتِيْ فَإِنَّكِ أُخْتِيْ فِي الْإِسْلَامِ لَيْسَ

رشتي په اعتبار زما خور يي او دا ځکه چې په دې سرزمين باندې زما او ستا نه علاوه بل

عَلٰى وَجْهِ الْأَرْضِ مُؤْمِنٌ غَيْرِيْ وَغَيْرُكِ فَأَرْسَلَ

مؤمن نشته نو هغه ظالم د يو کس په ليږلو سره بي بي ساره رَضِيَ اللهُ عَنْهَا طلب کړه بي بي ساره رَضِيَ اللهُ عَنْهَا

إِلَيْهَا فَأُتِيَ بِهَا، قَامَ إِبْرَاهِيْمُ يُصَلِّيْ

هغه ته بوتلل شوه او حضرت ابراهيم عَلَيْهِ السَّلَامُ خپلې قيامګاه کې مونځ کولو د پاره اودريدلو

فَلَمَّا دَخَلَتْ عَلَيْهِ ذَهَبَ يَتَنَاوَلُهَا

بي بي ساره رَضِيَ اللهُ عَنْهَا چې هغه ظالم ته ورسيده نو د هغه حسن وجمال ليدو سره هغه د هوښه اووتلو

بِيَدِهِ فَأُخِذَ وَيُرْوٰى

هغه په هغه باندې لاس اچول غوښتل خو الله ! د بي بي ساره رَضِيَ اللهُ عَنْهَا مدد وکړو او هغه ظالم

فَغُطَّ حَتّٰى رَكَضَ بِرِجْلِهِ فَقَالَ

ونيول شو په يو روايت کې د فَغُطَّ لفظ هم نقل شوى دى بهرحال هغه د غذاب خداوندي په ګرفت

أُدْعِيْ اللّٰهَ لِيْ وَلَا أَضُرُّكِ

کې راتلو نه روسته ځمکه باندې پښې وهل شروع کړل بيا هغه بي بي ساره ته وويل زه د خپلې

فَدَعَتِ اللّٰهَ فَأُطْلِقَ

بدنې ارادې نه منع کيږم ته الله ! نه دعا وغواړه چې ماته دى مصيبت نه خلاصون راکړي زما

| | | |
|---|---|---|
| ثُمَّ | تَنَاوَلَهَا | الثَّانِيَةَ |

درسره وعده ده چې زه به تاته هيڅ نقصان نه رسوم نو بي بي ساره رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا دعا وکړه او هغه ظالم

| | | | |
|---|---|---|---|
| فَأُخِذَ | مِثْلَهَا | أَوْ | أَشَدَّ |

خلاصون پيدا کړ ليکن هغه دوباره لاس اوږد کړو نو بيا د مخکې په شان بلکه د هغې نه زيات سخت

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| فَقَالَ | أُدْعِي | اللهَ | لِيْ | وَلَا اضُرُّكِ |

عتاب خداوندي کې ونيول شو هغه بيا بي بي ساره ته دعا وغواړه د الله نه زه به تاته به هيڅ

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| فَدَعَتِ | اللهَ | فَأُطْلِقَ | فَدَعَا | بَعْضَ | حَجَبَتِهِ |

نقصان نه رسوم بي بي ساره د الله ! نه دعا وغوښتله او هغه ظالم خلاصون پيدا کړو دي نه روسته

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| فَقَالَ | إِنَّكَ | لَمْ | تَأْتِنِيْ | بِإِنْسَانٍ |

هغه ظالم خپلو پيره دارانو کې ثوک را وغوښتلو او هغه ته يي وويل چې تا ماته انسان نه دی

| | | | |
|---|---|---|---|
| إِنَّمَا | أَتَيْتَنِيْ | بِشَيْطَانٍ | فَأَخْدَمَهَا |

راوستلی بلکه تا خو ثوک جن ماته راوستلی دی چې قابو پيدا کېدو په ځای زه برعکس مصيبت

| | | |
|---|---|---|
| هَاجَرَ | فَـأَتَـتْهُ | وَهُوَ |

کې مبتلا کيږم دا خو تا زما د پاره د مرګ سامان تيار کړی دی بيا هغه د بي بي ساره د پاره هاجره

| | | |
|---|---|---|
| قَائِمٌ | يُّصَلِّيْ | فَأَوْمَأَ |

نوم يوه وينځه هم ورکړه بي بي ساره رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا چې حضرت ابراهيم عَلَيْهِ السَّلَام ته راغله نو هغوی په مانځه

| | | |
|---|---|---|
| بِيَدِهِ | مَهْيَمْ | قَالَتْ |

کې مشغول وو مانځه کې د خپل لاس په اشارې سره ترينه پوښتنه وکړه چې څه حال دی او په

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| رَدَّ | اللهُ | كَيْدَ | الْكَافِرِ | فِيْ نَحْرِهِ |

تاباندې څه تير شو ؟ بي بي ساره رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا وويل الله ! د هغه کافر بده اراده د هغه سيني ته واپس

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَأَخْدَمَ | هَاجَرَ | قَالَ | أَبُوْ | هُرَيْرَةَ |

کړله او هغه د خدمت د پاره هاجره هم راکړي ده حضرت ابو هريره رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ د دې حديث بيانولو نه روسته

| تِلْكَ | أُمُّكُمْ | يَا | بَنِيْ | مَاءِ | السَّمَاءِ | . | مُتَّفَقٌ | عَلَيْهِ. |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وویل ای د آسمان د اوبو ځامنو ! دغه هاجره بي بي رضي الله عنها ستاسو د ټولو مور ده. [بخاري مسلم][1] | | | | | | | | |

**توضیح : ثلاث کذبات:** انبیاء کرام د کذب او دروغو ویلو نه معصوم وي ، دا دروغ نه وو بلکه توریه وه البته ظاهری صورت ددې د دروغو وو په دغه وجه په دغه حدیث کې په دې باندې د کذب اطلاق شوی دی او که نه نو توریه وه نو توریه دیته وایي چې د ظاهری الفاظو مطلب یو شی وي لیکن ویونکی ددینه د بل څه اراده وکړي ګویا معنی قریبه یې پرېښې ده او معنی بعیده یې مراد کړې ده لکه د (رجل یهدینی السبیل) ظاهری معنی دا ده چې دا زما رهبر دی مګر ددینه د آخرت د لارې د هدایت اراده شوې ده ، دا د هغه وخت خبره ده چې کله حضرت ابوبکر رضي الله عنه د هجرت په شپه د حضور اکرم صلی الله علیه وسلم په باره کې د یو شخص په پوښتنه باندې جواب ورکړو هغه شخص وویل چې ابوبکر ! دا څوک دی ؟ حضرت ابوبکر رضي الله عنه وفرمایل (**رجل یهدینی السبیل**) .

دلته د کذب د اطلاق دویم مطلب دا دی چې اګرچې دا کذب نه وو مګر د انبیاء کرامو رتبه چونکې ډیره پورته وي نو د (**حسنات الابرار سیئات المقربین**) د قاعدې مطابق په دې باندې د کذب اطلاق وشو ، ګویا ددې ظاهری صورت هم د انبیاء کرامو د شان عالی نه لرې وګڼل شو او په دې باندې د کذب اطلاق وشو .

**اني سقیم:** سقیم مریض ته وایي ددې متبادره ( معنی ذهن ته زر راتلونکې ) د جسمانی مرض ده مګر حضرت ابراهیم علیه السلام ددینه روحانی اختلاف مراد کړلو چې زه ددې شیانو نه بیزاره یم ګویا مریض یم . علماء لیکي که د ابراهیم علیه السلام دغه کلام بالکل په ظاهر باندې حمل کړی شي نو بیا هم په دې کې هیڅ دروغ نشته څکه داسې به کوم انسان وي چې د هغه په بدن کې به بالکل هیڅ مرض نه وي . او فرض کړه که نور هیڅ مرض هم نه وي نو بیا د کفارو د کفر د اذیت نه داکومه کمه روحانی او جسمانی مرض دی ؟ یقینا لویه بیماری ده .

**بل فعله کبیرهم:** حضرت ابراهیم علیه السلام دغه جمله د بتانو د ماتولو نه وروسته د بادشاه په مخکې د تفتیش په دوران کې وفرمایله چې کله بادشاه تپوس وکړو ﴿**مَن فَعَلَ هَذَا بِآلِهَتِنَا**﴾ ګویا جواب دا وو (**فعل من فعل کبیرهم هذا**) یعنې کار کړی دی چې هر چا هم کړی ، ته ددې مشر نه پوښتنه

---

[1] اخرجه الترمذي في السنن ۴/۵۳۷ رقم الحديث ۲۴۳۴ وأحمد في المسند ۱/۲۸۱ .

وکړه چې دا چا کړی؟ دویم مطلب او جواب دا هم کیدلی شي چې حضرت ابراهیم علیه السلام د کبیرهم نه الله تعالی مراد کړی وي چې دا کار په حقیقت کې لوی رب الله تعالی کړی دی ! دریم مطلب دا اخیستل شوی دی چې ګویا حضرت ابراهیم علیه السلام وویل چې زما دعوه ده چې دا کار دغه غټ کړی دی ته په خپله دده نه پوښتنه وکړه چې دا څه وایي ، اوس دعوه کول یو شی دی او خبر ورکول بل شی دی په دعوه کې خبر نشته لهذا په دې کې دروغ نشته .

و سارة: ساره د حضرت ابراهیم علیه السلام ښځه وه هغې ته خور ویل ظاهری طور باندې صحیح نه وو مګر ظاهری معنی مراد کړی شوي نه ده بلکه د دیني ، ملي او روحاني ، مذهبي مفهوم په اعتبار سره ورته خور ویل شوې او په دې مفهوم کې ټول مسلمانان خور او ورور دی . دلته دا هم ویل کیدلی شي چې حضرت ساره رضی الله عنها د ابراهیم علیه السلام د تره لور وه په دې اعتبار دا نسبي خور وه .

**فأخذ:** یعنې ونیولی شو ، د هغه ستوني بند شو .

**فغط:** یعنې خراری یې شروع کړلو ، بې قراره شو .

**رکض برجله:** یعنې د مرګی د مریض پشان یې په ځمکه باندې د بې عقلانو په شان پښې وهلې .

**یا بنی ماء السماء:** د آسمان د اوبو د اولاد نه د عربو خلک مراد دي ځکه عرب خلک د اوبو په تلاش کې ګرځي او چې چیرته اوبه ورته حاصلیږي هلته دیره اچوي .بعضو شارحینو ویلي دي چې په دې جملې سره د عربو د نسب او حسب طهارت ته اشاره ده یعنې لکه څنګه چې د آسمان اوبه د هر قسم ګندګیو نه پاکې وي همدارنګه د عربو حسب و نسب پاک دی . بعضو ویلي دي چې دا خطاب انصارو ته دی ځکه د هغو د یو پلار لقب ماء السماء وو ، عرب ټول د حضرت هاجرې رضی الله عنها اولاد نه دی مګر د حضرت اسماعیل علیه السلام اولاد په نورو قبائلو د عربو باندې غالب راغلل نو په دغه وجه ټولو ته د حضرت ساره رضی الله عنها اولاد وویل شول لکه څنګه چې دلته حضرت ابوهریره رضی الله عنه ټول د حضرت ساره رضی الله عنها اولاد ګرځولی دی .

## پیغمبر علیه السلام په درې انبیاو باندې تبصره کړې ده

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۸﴾ وَعَنْهُ | قَالَ | رَسُوْلُ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ | نَحْنُ | أَحَقُّ |
| او حضرت ابوهریره رضی الله عنه وایي چې رسول کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل موږ د حضرت ابراهیم نه | | | | | | | | | |
| بِالشَّكِّ | مِنْ | إِبْرَاهِيْمَ | إِذْ | قَالَ | رَبِّ | أَرِنِيْ | كَيْفَ | تُحْيِ | |
| دزیات شک کولو لائق یو هرکله چې هغوی ویلي وو رَبِّ اَرِنِي كَيفَ تُحيِ المَوتىٰ ای پروردګاره! ماته | | | | | | | | | |

| الْمَوْتٰی | وَيَرْحَمُ | اللهُ | لُوْطًا | لَقَدْ | كَانَ | يَأْوِيْ | إِلٰی |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وښايه چې ته مړي څرنګه ژوندي کوې؟ او الله ! دې په حضرت لوط عَلَيْهِ السَّلَامُ رحم وکړي چې | | | | | | | |
| رُكْنٍ | شَدِيْدٍ | وَّلَوْ | لَبِثْتُ | فِي | السِّجْنِ | طُوْلَ | مَا | لَبِثَ |
| د رکن شديد پناه نيول يې غوښتل او که زه قيدخانه کې دومره اوږدې مودې پورې وی څومره | | | | | | | | |
| يُوْسُفُ | لَأَجَبْتُ | الدَّاعِيَ. | مُتَّفَقٌ | عَلَيْهِ. [1] | | | | |
| موده چې حضرت يوسف عَلَيْهِ السَّلَامُ وو نو ما به يقيناً د بلونکي دعوت قبول کړی وی [بخاري مسلم] | | | | | | | | |

**توضیح** : **نحن احق بالشک**: يعنې د رب ارنی کيف تحيي الموتی جمله د حضرت ابراهيم عَلَيْهِ السَّلَامُ له طرفه د شک په بنياد نه وه بلکه د علم اليقين او عين اليقين حاصلولو لپاره وه د هغه له طرفه شک څنګه کيدلی شو؟ هغه خو لوی نبی وو! حال دادی چې مونږ ته په دې کې شک نشته ، کچيرې په دې مسئله کې د شک ګنجائش وی نو مونږ به زيات حقدار وو په شک کولو باندې چې کله مونږ ته شک نشته نو هغه ته په طريقه اولی شک نه وو ، په هر حال د حضور اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مقصود اعتراض کول نه وو ، مفسرينو ليکلي دي چې کله د نمرود ظالم سره د حضرت ابراهيم عَلَيْهِ السَّلَامُ مناظره کيدله نو نمرود د خبرو په دوران کې ووېل : ته وايې چې ستا رب مړي ژوندي کوي آيا تا په خپله ليدلي دي؟ ددينه وروسته ابراهيم عَلَيْهِ السَّلَامُ د احياء اموات د مشاهده کولو درخواست وکړلو .

**ويرحم الله لوطا**: په دې جمله کې هم د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په حضرت لوط عَلَيْهِ السَّلَامُ باندې اعتراض کول بالکل مقصود نه دی بلکه د هغه د تنګۍ او پريشانۍ يو کيفيت يې بيان کړی دی چې قوم لوط هغی دومره تنګ کړلو چې هغه په دې ويلو باندې مجبوره شو چې کاشکې! يوه مضبوطه قلا وی يا زما سره ظاهری طاقت وی چې ما ددې قوم مقابله کولی، په دغه مجبورۍ کې د حضرت لوط عَلَيْهِ السَّلَامُ خيال مادی طاقت طرفته لاړو او که نه نو د يو نبی لپاره خو د الله تعالی ذات د ټولو نه زياته مضبوطه او محفوظه قلا ده ددېنه علاوه کومه مضبوطه قلا کيدلی شي؟

**لاجبت الداعی**: په دې جمله کې هم حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په حضرت يوسف عَلَيْهِ السَّلَامُ باندې قطعا اعتراض کړی نه دی بلکه د هغه د استقامت او صبر تعريف يې کړی دی چې د دومره اوږدې مودې د قيد نه بعد چې کله د جيل نه د ويستلو خبره راغله نو هغه ددې سره مخالفت وکړو او د خپل ذات براءت

---

[1] اخرجه البخاري في صحيحه ۶/۴۱۰ رقم الحديث ۳۳۷۲ ومسلم ۴/۱۸۳۹ رقم الحديث (۱۵۱-۱۵۲) .

ته یې ترجیح ورکړه . کچیرې ماته د دومره اوږدې مودې نه بعد دا پیشکش شوی وی نو ما به فورا د
غوښتونکي خبره منله .

## حضرت موسیٰ علیه السلام ته بني اسرائیلو آذیت ورکړی وو

﴿۹﴾ وَ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ مُوْسٰى

او حضرت ابوهریره رضي الله عنه وايي چې رسول کریم صلی الله علیه وسلم و فرمایل موسیٰ علیه السلام یو ډیر

كَانَ رَجُلًا حَيِيًّا سِتِّيْرًا لَّا يُرٰى مِنْ جِلْدِهٖ

شرم کونکی او د سختۍ پردې اهتمول کونکی وو د شرم او حیاء باندې دومره غلبه وه چې د هغه

شَيْءٌ اِسْتِحْيَاءً فَاٰذَاهُ مَنْ اٰذَاهُ مِنْ بَنِيْٓ إِسْرَائِيْلَ

د جسم د څرمن هیڅ حصه به هم نه ښکاره کېدله یو وار د بني اسرائیلو څه خلقو هغه ته تکلیف

فَقَالُوْا مَا تَسَتَّرَ هٰذَا التَّسَتُّرَ

رسول و غوښتل نو هغوی مشهوره کړه چې موسیٰ علیه السلام خپل جسم دومره احتیاط سره څکه

إِلَّا مِنْ عَيْبٍ بِجِلْدِهٖ إِمَّا بَرَصٌ اَوْ

پټ ساتي چې د هغه جسم کې څه عیب دی یا خوورته برګی مرض دی یا یې خصیتین پړسیدلي دي

أُدْرَةٌ وَّإِنَّ اللهَ أَرَادَ أَنْ

هر کله چې دا خبره ډیره خوره شوه نو الله ! اراده وفرمایله چې کوم عیب موسیٰ باندې لګولی

يُّبَرِّئَهُ فَخَلَا يَوْمًا وَّحْدَهُ

شي د هغه نه هغه محفوظ او مامون وساتي او د هغه بې عیبي ښکاره او ثابته کړي نو یوه ورځ

لِيَغْتَسِلَ فَوَضَعَ بِثَوْبِهٖ

چې موسیٰ یو پټ ځای ته د لمبلو د پاره لاړو او خپلې کپړې یې ویستلې او په یو کاڼي یې کیخوې

عَلٰى حَجَرٍ فَفَرَّ الْحَجَرُ بِثَوْبِهٖ

نو هغه کاڼي د هغه د کپړو سره وتختیده موسیٰ د دې واقعې لیدو سره د دیرې خیرانتیا او پریشانۍ

فَجَمَعَ مُوْسٰى فِيْ إِثْرِهٖ يَقُوْلُ ثَوْبِيْ يَا حَجَرُ

په حالت کې هغه کاڼي پسې دې ویلو سره ورمنډه کړه چې ای کاڼې ! زما کپړې راکړه ای کاڼیه !

ثَوْبِيْ يَا حَجَرَ حَتّٰى انْتَهٰى إِلٰى مَلَإٍ مِّنْ بَنِيْ إِسْرَائِيْلَ

زما کپړې راکړه تر دې حضرت موسیٰ عَلَيْهِ السَّلَامُ منډه ووهله چې د بني اسرائيلو يو هجوم ته

فَرَأَوْهُ عُرْيَانًا أَحْسَنَ مَا خَلَقَ اللّٰهُ

ورسيده ( هجوم ګڼي چې د حضرت موسیٰ ) بربنډ جسم اوليدلو نو په مخلوق کې يو

وَقَالُوْا وَاللّٰهِ مَا بِمُوْسٰى مِنْ بَأْسٍ وَأَخَذَ

بهترين او د بې عيبه جسم انسان يې اوليدلو بيا هغوی په يو اواز وويل قسم په الله د موسیٰ بدن

ثَوْبَهٗ وَطَفِقَ بِالْحَجَرِ ضَرْبًا فَوَاللّٰهِ إِنَّ بِالْحَجَرِ لَنَدَبًا

د هرعيب او نقصان نه پاک دی او موسیٰ کاڼي لره په همسا سره وهل شروع کړل قسم په الله د موسیٰ

مِنْ أَثَرِ ضَرْبِهٖ ثَلَاثًا أَوْ أَرْبَعًا أَوْ خَمْسًا. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. (۱)

د وهلو په وجه پر هغه کاڼي باندې نښې شوې وې درې نښې يا څلور نښې يا پنځه نښې [بخاري مسلم]

**توضيح : حَيِيًّا**: په دويمه ياء باندې شد دی او په اوله ياء باندې کسره ده د مستحيا په معنی کې د مبالغه صيغه ده يعنې ډير حياناک وو . **ستيرا**: په سين باندې زور دی د فقيرا په وزن باندې دی ، ملاعلي قاري رَحِمَهُ اللّٰهُ ليکلي چې ظاهره دا ده چې دا لفظ د سين په کسرې او په تاء مشدده سره دی دا په ساتر کې مبالغه ده يعنې ډير باپرده وو، ددغه حياء او پردې په وجه د ده قوم بنی اسرائيلو وويل چې دی زمونږ سره لوڅ ځکه نه لمبيږي چې دده په جسم کې کوم قبيح عيب دی ، دلته د الله تعالی عادت مبارکه دی چې هغه انبياء کرام کامل رجال پيدا کړي دي او د هر قبيح جسماني عيب نه يې هغوی پاک پيدا کړي دي . **أُدْرَةٌ**: په همزه باندې ضمه ده دال ساکن دی په راء باندې زور دی دا په خصيتينو کې يو مرض وي چې هغه ته **أُدْرَةٌ** وايي، قوم د همدې الزام لګولی ؤنو الله تعالی د موسی عَلَيْهِ السَّلَامُ ددې الزام نه پاکول وغوښتل نودغه واقعه پيښه شوه چې په دغه حديث کې ده .
**جمح**: د فتح يفتح نه تيزې منډې ته وايي . **من بأس**: يعنې د خصيتينو پړسوب يا کومه بله مريضي نشته . **ندبا** په نون او دال باندې زور دی تازه زخم ته وايي ، په دې کې د معجزې ظهور شوی دی .

(۱) اخرجه البخاري ۱/۳۸۵ رقم الحديث ۲۷۸ ومسلم ۴/۱۸۴۱ رقم الحديث (۳۳۹-۱۵۶) .

## دالله تعالی د نعمت قدر

﴿۱۰﴾وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَمَا
او حضرت ابو هریره رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وايي چې رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل چې حضرت ايوب عليه السلام
أَيُّوْبُ يَغْتَسِلُ عُرْيَانًا
په بربنډه غسل کولو چې الله! د هغه په کور د سروزر ملخانو ورول شروع کړل او هغه
فَخَرَّ عَلَيْهِ جَرَادٌ مِّنْ ذَهَبٍ
د سروزرو ملخان راټولول او په خپلو کپړو کې يې ايښودل شروع کړل الله هغه مخاطب کړه او
فَجَعَلَ أَيُّوْبُ يَحْثِيْ فِيْ ثَوْبِهِ فَنَادَاهُ
ورته وفرمايل ای ايوب! کوم شی چې ته وينې آيا مونږ ته د دينه بې نيازه کړی نه يې حضرت
رَبُّهُ يَا أَيُّوْبُ أَلَمْ أَكُنْ أَغْنَيْتُكَ
ايوب عَلَيْهِ السَّلَامُ عرض وکړو بيشکه ستا په عزت مې دې قسم وي تازه ددې شي نه بې پروا کړی يم
عَمَّا تَرٰى قَالَ بَلٰى وَعِزَّتِكَ وَلٰكِنْ لَّا غِنٰى بِيْ عَنْ بَرَكَتِكَ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ[1]
ليکن ستا د نعمت د کثرت او ستا د رحمت د فراخۍ نه هيڅ کله بې احتياجي نشته. [بخاري]

## د مقابلې په طور يو نبي ته به بل نبي فضيلت مه ورکوئ

﴿۱۱﴾وَعَنْهُ قَالَ اِسْتَبَّ رَجُلٌ مِّنَ الْمُسْلِمِيْنَ وَرَجُلٌ مِّنَ
او حضرت ابو هريره رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وايي په يوه موقع د يو مسلمان او يو يهودي په منځ کې بد کلامي
الْيَهُوْدِ فَقَالَ الْمُسْلِمُ وَالَّذِي اصْطَفٰى مُحَمَّدًا
(لفظي جګړه) وشوه مسلمان وويل په هغه الله قسم چې هغه حضرت محمد صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د ټول
عَلَى الْعَالَمِيْنَ فَقَالَ الْيَهُوْدِيُّ وَالَّذِي
جهان په خلقو کې غوره ګرځولی دی د دې په جواب کې يهودي دا ووېل په هغه الله مې دې قسم

(۱) اخرجه البخاري ۱/۳۸۷ رقم الحديث ۲۷۹ وابن ماجه ۲/۱۴۲۸ رقم الحديث ۴۲۷۲ .

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| اصْطَفَى | مُوسَى | عَلَى | الْعَالَمِينَ | فَرَفَعَ |

وي چې حضرت موسیٰ یي د ټول جهان په خلقو کې د ټولو نه غوره ګرځولی دی په دې هغه مسلمان

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| الْمُسْلِمُ | يَدَهُ | عِنْدَ | ذٰلِكَ | فَلَطَمَ | وَجْهَ | الْيَهُودِيِّ | فَذَهَبَ |

په قهر شو او په هغه یهودي یي لاس پورته کړو او مخ څپیړه یې ورکړه یهودي شکایت سره

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| الْيَهُودِيُّ | إِلَى | النَّبِيِّ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ | فَأَخْبَرَهُ |

رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ له ورغلو او د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مخکې یې خپله او د مسلمان پوره واقعه

| | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| بِمَا | كَانَ | مِنْ | أَمْرِهِ | وَأَمْرِ | الْمُسْلِمِ | فَدَعَا | النَّبِيُّ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |

بیان کړله رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغه مسلمان طلب کړو او هغه نه یې د صورتِ حال تحقیق وکړو

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| الْمُسْلِمَ | فَسَأَلَهُ | عَنْ | ذٰلِكَ | فَأَخْبَرَهُ |

هغه د یهودي د بیان شوې واقعې تردید ونه کړه بلکه حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته یې هغه واقعي خبره

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فَقَالَ | النَّبِيُّ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ | لَا تُخَيِّرُونِيْ | عَلَى مُوسَى |

بیان کړله رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل ماته په موسیٰ فضیلت مه راکوئ کله چې د قیامت په

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| فَإِنَّ | النَّاسَ | يُصْعَقُونَ | يَوْمَ | الْقِيَامَةِ |

ورځ د شپیلۍ په پوکلو باندې ټول خلق بیهوشه شي نو هغوی سره به زه هم بیهوشه شم بیا د

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| فَأُصْعَقُ | مَعَهُمْ | فَأَكُونُ | أَوَّلَ | مَنْ | يُفِيقُ |

ټولو نه مخکې په هوش کې راتلونکی زه یم لیکن زه چې په هوش کې راشم نو وبه وینم چې

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| فَإِذَا | مُوسَى | بَاطِشٌ | بِجَانِبِ | الْعَرْشِ |

موسیٰ عَلَيْهِ السَّلَامُ د عرش پایه نیولې ولاړ دی او زه نشم ویلې چې آیا هغه وخت به داوي چې

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| فَلَا | أَدْرِيْ | كَانَ | فِيمَنْ | صَعِقَ | فَأَفَاقَ | قَبْلِيْ |

موسیٰ عَلَيْهِ السَّلَامُ به په بیهوشه کېدونکو خلقو کې شامل وي او د هغه بیهوشي به زما نه مخکې

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| أَوْ | كَانَ | فِيمَنْ | اِسْتَثْنَى | اللهُ |

ختمه شوې وي یادا به وي چې الله ! هغه مستثنیٰ ګرځولی وي یو روایت کې دا الفاظ دي او

| | | | |
|---|---|---|---|
| وَفِيْ | رِوَايَةٍ | فَلَا | أَدْرِيْ |

ز ه نشم ويلی چې آيا هغه وخت به داوي چې په طور باندې د موسیٰ بي هوشي به د قيامت په ورځ

أَحُوْسِبَ بِصَعْقَةِ يَوْمَ الطُّوْرِ أَوْ بُعِثَ قَبْلِيْ

د دې بیهوشي حساب کې شمير شي يا دا به وي چې هغه به زما نه مخکې په هوش کې راغلی وي

وَ لَا أَقُوْلُ إِنَّ أَحَدًا أَفْضَلَ مِنْ يُوْنُسَ بْنِ مَتّٰى

بيا حضور عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل او زه خو دا هم نه وايم چې يو سړی د يونس بن متی نه افضل دی او د

وَفِيْ رِوَايَةٍ أَبِيْ سَعِيْدٍ قَالَ لَا تُخَيِّرُوْا بَيْنَ الْأَنْبِيَاءِ.

ابو سعيد په روايت کې دي چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل تاسو انبياو کې يو ته بل ترجيح مه

مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ وَفِيْ رِوَايَةٍ أَبِيْ هُرَيْرَةَ

ورکوئ (بخاري او مسلم) او د حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د روايت الفاظ داسې دي چې تاسو د

لَا تُفَضِّلُوْا بَيْنَ أَنْبِيَاءِ اللهِ.[1]

الله! په نبيانو کې يو ته په بل فضيلت مه ورکوئ.

**توضيح**: لاتخيروني: د انبياء کرامو په مينځ کې د يو نبي په بل نبي باندې داسې فضيلت ورکول جائز نه دي چې د هغه نه د يو نبي په شان کې تنقيص راتللی شي د غه تنقيص حرام او کفر دی، همدارنګه خصوصي طور باندې د کوم يو نبي نوم اخيستل دده په مقابله کې د بل نوم اخيستل او په هغه باندې فضليت او ترجيح ورکول مناسب نه دی، هو! اجمالي طور باندې کوم يو افضل ګرځول جائز دي مثلا ځوک داسې ووايي چې حضرت محمد صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په ټولو انبياو باندې افضل دی. د زير بحث حديث په تشريح کې حضرت مولانا اشرف علی تهانوی رحمه الله په خپلو ملفوظاتو کې فرمايلي دي چې: فرض کړه چې يو ځای ټول انبياء موجود دي ټول مخکې وي په دې وخت کې به کوم کس د ټولو په مخکې د يو نبي ته په بل نبي باندې د فضيلت ورکولو جرأت وکړی شي؟ که داسې کولی نشي نو بيا غائبانه طور باندې هم کول پکار نه دي، حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ چې ددې ناخوښي اظهار فرمايلی دی دا د همدې تقابل او خصومت په صورت کې وو، د جګړې صورت وو

---

(۱) اخرجه مسلم في صحيحه ۴/۱۸۴۵ رقم الحديث (۲۳۷۴-۱۶۳) وأبوداؤد ۵/۵۱ رقم الحديث ۴۶۶۸.

ې ددې نه د تحقیر صورت راتلو امکان ؤ نو حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ منع وفرمایله بیا حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ چې د خپل فضیلت په کوم بل نبی باندې د بیانولو نه کوم ممانعت فرمایلی دی دا د ه وخت خبره وه چې کله د الله تعالی له طرفنه د هغه د مطلق فضیلت وحې راغلې نه وه ، وروسته یا د هغه صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د مطلق فضیلت وحی راغله ، لهذا اوس هغه صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د کوم نبی په مقابله کې افضل او اشرف ښودل صحیح دي ، ددینه وروسته کچیرې حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د فضیلت ورکولو ه ممانعت کړی وي نو دا د هغه په تواضع باندې به حمل کولی شي ، په دې حدیث کې د حضرت وسی عَلَيْهِ السَّلَامُ جزئي فضیلت دی کلي نه دی .

## دکوم کس خپل ځان افضل ګرځول دیونس عَلَيْهِ السَّلَامُ نه جائز نه دی

| |
|---|
| ﴿۱۲﴾ وَعَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا يَنْبَغِيْ |
| او حضرت ابوهریره رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وایي چې رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل داهیڅ کله مناسب نه دی |
| لِعَبْدٍ اَنْ يَّقُوْلَ إِنِّيْ خَيْرٌ مِّنْ يُّوْنُسَ بْنِ مَتّٰى. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. وَفِيْ رِوَايَةٍ لِّلْبُخَارِيِّ |
| چې یوسړی دا ووایي چې زه د یونس بن متّٰی نه ښه یم. [بخاري مسلم] او د بخاري په یوه روایت کې دا الفاظ دي چې |
| قَالَ مَنْ قَالَ اَنَا خَيْرٌ مِّنْ يُّوْنُسَ بْنِ مَتّٰى فَقَدْ كَذَبَ. [1] |
| حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل کوم سړی چې دا ووایي چې زه د یونس بن متّٰی نه ښه یم نو هغه یقینًا دروغجن دی. |

**توضیح** : فقد كذب: یعنې په اصل نبوت کې خو ټول انبیاء کرام برابر او مساوي دي په دې کې خو هیڅ تفاضل نشته ، هو ! په درجاتو کې فرق او تفاوت دی اوس کچیرې کوم کس **انا خير من يونس** وایي نو ددې یو مطلب دا کیدلی شي چې دغه کس حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د حضرت یونس عَلَيْهِ السَّلَامُ نه افضل ښائي حالانکه په نفس نبوت کې مساوات دی لهذا دغه شخص دروغ وویل ، او کچیرې د انا خیر نه دغه کس خپل ځان د حضرت یونس عَلَيْهِ السَّلَامُ نه افضل ښایې او پخپله نبی نه دی نو دا دروغجن کذّاب دی او کذب په معنی د کفر سره دی دغه شخص کافر شو . د فضیلت په دغه میدان کې د حضرت یونس عَلَيْهِ السَّلَامُ د تخصیص وجه دا ده چې په هغه باندې یو امتحان راغلی وو چې د الله تعالی د خاص حکم د راتګ د انتظار نه مخکې د ښار او خلک و نه جدا شو او ووته چې په دې باندې الله تعالی ناراضه شو او د دې وجې نه د اولو العزم انبیاؤ په فهرست کې پاتې نشو نو ممکنه وه چې د چا په زړه کې دا خیال راشي چې په حضرت یونس عَلَيْهِ السَّلَامُ باندې به د کوم نبی فوقیت او فضیلت ورکولی شي ، نو ځکه حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خاص

---

[1] اخرجه البخاري ۶/۳۹۸ رقم الحدیث ۳۳۶۵ ومسلم ۴/۱۸۴۶ رقم الحدیث (۲۳۷۶-۱۶۶) .

طور باندې منع و فرمایله. (متّٰی) بعضو علماؤ فرمایلي دي چې متّٰی د حضرت یونس عَلَیۡهِ السَّلَامُ د پلار نوم وو، بعضو ویلي دي چې د هغه د مور نوم وو.

## د حضر عَلَیۡهِ السَّلَامُ د غلام حقیقت

| |
|---|
| ﴿۱۳﴾ وَعَنْ أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| او حضرت ابي ابن کعب رَضِیَ اللهُ عَنۡهُ وايي چې رسول الله صَلَّی اللهُ عَلَیۡهِ وَسَلَّمَ و فرمایل خضر عَلَیۡهِ السَّلَامُ چې کوم |
| إِنَّ الْغُلَامَ الَّذِيْ قَتَلَهُ الْخَضِرُ طُبِعَ كَافِرًا وَلَوْ عَاشَ |
| هلک وژلی وو هغه د کفر طبیعت اخستو سره پیدا شوی وو که هغه هلک ژوندی پاتې شوی وی |
| لَأَرْهَقَ أَبَوَيْهِ طُغْيَانًا وَّكُفْرًا. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.[1] |
| نو یقینًا خپل مور و پلار به یې کفر او سرکشۍ کې مبتلا کړي وو [بخاري مسلم] |

**توضیح: طبع کافرا:** یعنې پیدائشي او طبعي طور باندې کافر وو اګرچې هر ماشوم په اسلام باندې پیدا کیږي مګر د خضر غلام، د الله تعالی د قدرت کامله د مستثنیاتو نه وو چې الله تعالی داسې هم کولی شي. وايي چې د حضرت موسی عَلَیۡهِ السَّلَامُ په اعتراض باندې حضرت خضر عَلَیۡهِ السَّلَامُ د هغه هلک د اوږې نه خرمنه لرې کړه نو لاندې لیکل شوي وو (هذا کافر مطبوعا) یعنې دا پیدائشي او طبعي کافر دی.

## د حضرت خضر عَلَیۡهِ السَّلَامُ وجه د تسمیه

| |
|---|
| ﴿۱٤﴾ وَعَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| او حضرت ابو هریره رَضِیَ اللهُ عَنۡهُ د رسول الله صَلَّی اللهُ عَلَیۡهِ وَسَلَّمَ نه نقل کوي چې حضور صَلَّی اللهُ عَلَیۡهِ وَسَلَّمَ و فرمایل |
| قَالَ إِنَّمَا سُمِّيَ الْخَضِرُ لِأَنَّهُ جَلَسَ |
| د حضرت خضر نوم خضر (یعني) سر سبزا و شاداب په دې وجه مشهور شو چې هغه یو وچ او |
| عَلٰى فَرْوَةٍ بَيْضَاءَ فَإِذَا هِيَ تَهْتَزُّ مِنْ |
| بنجر داګه ځمکه باندې یا بالکل وچو وښو باندې کینا ستلو نو ناڅاپه هغه د هغه نه وروسته |

[1] اخرجه مسلم ۴/۱۸۵۰ رقم الحديث (۲۳۸۰-۱۷۲) وأبوداود ۵/۸۰ رقم الحديث ۴۷۰۵،

خَلْفِهٖ خَضْرَآءَ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ[1]

ځمکې حرکت وکړو او شنه (رازغونه) شوه.

## حضرت موسٰی عَلَیْهِ السَّلَامُ او د مرګ فرشته

﴿۱۵﴾ وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

او حضرت ابوهریره رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وایي چې رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل هرکله چې د حضرت موسٰی

جَاءَ مَلَكُ الْمَوْتِ إِلٰى مُوْسٰى بْنِ عِمْرَانَ

بن عمران عَلَیْهِ السَّلَامُ ته د مرګ فرشته راغله او ورته یې ؤویل د خپل پروردګار د طرف نه د اجل پیغام

فَقَالَ لَهٗ أَجِبْ رَبَّكَ قَالَ فَلَطَمَ مُوْسٰى

قبول کړه حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل حضرت موسٰی په دې سره د مرګ فرشته په څپیړه ووهله

عَيْنَ مَلَكِ الْمَوْتِ فَفَقَأَهَا قَالَ فَرَجَعَ الْمَلَكُ إِلَى اللّٰهِ تَعَالٰى

چې په هغې سره یې سترګه ووتله حضور عَلَیْهِ السَّلَامُ وفرمایل د مرګ فرشته دربار الهي ته لاړه او

فَقَالَ إِنَّكَ أَرْسَلْتَنِيْ إِلٰى عَبْدٍ لَّكَ لَا يُرِيْدُ الْمَوْتَ

عرض یې وکړو ای ربه! تا زه روح قبض کولو د پاره یو داسې بنده ته ولیږلم چې مرګ نه غواړي او

وَقَدْ فَقَأَ عَيْنِيْ قَالَ فَرَدَّ اللّٰهُ إِلَيْهِ عَيْنَهٗ

دا چې هغه څپیړې سره زما سترګه هم وېستله حضور عَلَیْهِ السَّلَامُ وفرمایل الله! د هغه سترګه روغه

وَقَالَ ارْجِعْ إِلٰى عَبْدِيْ فَقُلْ

کړه او حکم یې ورته وکړه زما بنده موسٰی عَلَیْهِ السَّلَامُ ته دوباره ورشه او زما دا پیغام ورته ورسوه

اَلْحَيَاةَ تُرِيْدُ فَإِنْ كُنْتَ تُرِيْدُ الْحَيَاةَ فَضَعْ يَدَكَ عَلٰى مَتْنِ ثَوْرٍ

چې آیا ته اوږد عمر غواړې؟ که اوږد عمر غواړې نو د یو غوائي په شا خپل لاس کېږده ستا لاس

فَمَا تَوَارَتْ يَدُكَ مِنْ شَعْرَةٍ

یا د لاندې چې څومره وېښته راشي په هغې کې به د هر وېښته په عوض کې ستا په ژوند کې د

---

[1] اخرجه البخاري ۳... ۶ رقم ... ۳۲ والترمذي ۵/۲۹۳ رقم الحديث ۳۱۵۱.

فَإِنَّكَ تَعِيشُ بِهَا سَنَةً قَالَ ثُمَّ مَهْ

یو کال اضافه وشي فرشتې دوباره حاضرېدو سره حضرت موسٰی علیه السلام ته وویل چې دې نه

قَالَ ثُمَّ تَمُوتُ قَالَ فَالْآنَ

روسته به بیا څه وي؟ فرشتې جواب ورکړو چې آخر بیا هم مرګ دی نو حضرت موسٰی علیه السلام

مِنْ قَرِيبٍ رَبِّ أَدْنِنِي مِنَ الْأَرْضِ

وویل نو بیا هغه دې نن ولې را نشي دا دعا زما ضرور ده چې رب کریم د دفن کولو د پاره ما ارض

الْمُقَدَّسَةِ رَمْيَةً بِحَجَرٍ قَالَ

مقدسه ته نزدې کړي اګر که د یو ویشتل شوي کاڼي په اندازه وي دې نه وروسته رسول الله صلی الله علیه وسلم

رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. وَاللهِ لَوْ أَنِّي عِنْدَهُ لَأَرَيْتُكُمْ

صحابه رضی الله عنهم مخاطب کړل او ورته وې فرمایل که زه بیت المقدس ته قریب وی نو تا سو ته به

قَبْرَهُ إِلَى جَنْبِ الطَّرِيقِ عِنْدَ الْكَثِيبِ الْأَحْمَرِ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. (۱)

مې د حضرت موسٰی عَلَیْهِ السَّلَامُ د قبر نښه خودلې وی چې د یوې لارې په غاړه سرې غونډۍ ته قریب دی. [بخاري مسلم]

**توضیح** : **فلطم**: په څپېړه وهلو ته لطم ویلی کیږي یعنې موسی عَلَیْهِ السَّلَامُ د مرګ ملائکه په څپېړه ووهله ، اوس دلته یو سوال او جواب ملاحظه کړئ .

**سوال** : په دې مقام کې څه باطن خرابه او منکرین حدیث او عقل پرست دا اعتراض کوي چې د مرګ ملائکې په څپېړه وهل د یو جلیل القدر نبی نه څنګه ممکن کیدلی شي، بیا د ملائکی سترګه وتل څه معنی لري لهذا د احادیثو دغه ذخیره ناقابل قبول ده صرف قرآن کریم شافي او کافي دی .

**جواب** : د ټولو نه مخکې خبره خو دا ده چې دغه ملائکه په انساني شکل کې موسی عَلَیْهِ السَّلَامُ ته راغلې وه ، یو نقصان خو دا وشو چې هغې د حضرت موسی عَلَیْهِ السَّلَامُ خلوت ځای ته د داخلیدو لپاره اجازت وانه خیستلو دغه فعل هم د موسی عَلَیْهِ السَّلَامُ د غوصې لپاره موجِب وګرځیده، دویم نقصان دا وشو چې بلاتعارفه یو انسان موسی عَلَیْهِ السَّلَامُ ته وویل چې زه ستا د روح اخیستلو لپاره راغلی یم دا خو یوه ځورنه وه چې زه به تا وژنم دا عمل هم د موسی عَلَیْهِ السَّلَامُ د غوصې لپاره سبب جوړ شو ، دریم

---

(۱) اخرجه البخاري ۶/۴۴۰ رقم الحديث ۳۴۰۷ ومسلم ۴/۱۸۴۲ رقم الحديث (۲۳۷۲-۱۵۷،۱۵۸)

نقصان دا وشو چې یو انسان دا دعوه کوي چې زه د روح قبض کولو قدرت لرم دا خلاف واقع امر وو په دغه وجه هم حضرت موسی علیه السلام ته غوصه راغله او په طور د دفاع هغه یو بی ادبه انسان ته تادیبًا یوه څپیړه رسید ورکړه ، څرنګه چې اصول دا دي چې کله ملائکه د انسان په صورت کې وي نو انساني اثرات په هغه باندې مرتب کیږي لهذا په دغه څپیړه د هغه انسان سترګه ووتله ، دغه د الله بنده اوس هم ونه ویل چې زه ملائکه یم او سیده الله تعالی ته په شکایت ولاړه ، الله تعالی موسی علیه السلام د حق په جانب وګرځولو او د طویل عمر درخواست یې ورته وکړو لیکن چې کله په آخر کې هم مرګ راتلونکی وو نو حضرت موسی علیه السلام د الله تعالی حکم ته لبیک وویلو او مرګ یې قبول کړلو . په دې ټوله قصه کې خو داسې کوم شی نشته چې د هغه په وجه د احادیث مقدسو نه انکار وکړی شي لیکن خوی بد را بهانه بسیار . چې کله په ړندو سترګو اعتراض کول وي نو د هغه لپاره څه علاج کیدلی شي .

**متن ثور**: متن ملا ته وایي او ثور غویې ته وایي یعني د غویې په شا باندې لاس کیږده . (توارت) یعنې د لاس لاندې چې څومره ویښته راغلل د هر ویښته په مقابل کې به یو کال عمر در کومه دا په لکاوو کلونه جوړیږي . (الارض المقدسة) بیت المقدس مراد دی ، بیت المقدس د بنی اسرائیلو د انبیاؤ قبله وه او مقدسه ځمکه وه لکه څنګه چې د عربو لپاره مکه مکرمه ده په دغه وجه حضرت موسی علیه السلام تمنا وکړه .

**رمیة بحجر**: یعني انسان چې کله تیږه غورځوي نو هغه دومره لرې نه ځي خو بیا هم څه نا څه ځي او په تللو کې تیزه هم وي ، حضرت موسی علیه السلام د دغه شوق اظهار وکړلو چې څه نا څه د ارض مقدسه طرفته ژر ژر ولاړ شم . (الکثیب) یعنې د لارې یو طرفته په سره غونډۍ باندې د هغه قبر دی

## د انبیاء کرامو علیهم السلام حلیې

﴿۱۶﴾ وَعَنْ جَابِرٍ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ عُرِضَ

او حضرت جابر رضی الله عنه نه روایت دی چې رسول کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل چې انبیاء زما مخې ته

عَلَیَّ الْأَنْبِيَاءُ فَإِذَا مُوْسٰى ضَرْبٌ مِّنَ الرِّجَالِ كَأَنَّهٗ مِنْ رِّجَالِ

راوستل شول نو ما ولیدل چې موسٰی د سپک بدن والادی لکه چې هغه د قبیلې بنو شنوءة یو سړی

شَنُوْءَةَ وَ رَأَيْتُ عِيْسٰى ابْنَ مَرْيَمَ فَإِذَا أَقْرَبُ مَنْ رَأَيْتُ بِهٖ

وي او ما عیسٰی ابن مریم اولیدلو نو هغه زما د لیدلو شوو په خلقو کې د عروه بن مسعو سره د

| |
|---|
| شَبَهًا عُرْوَةُ بْنُ مَسْعُوْدٍ وَ رَأَيْتُ إِبْرَاهِيْمَ فَإِذَا أَقْرَبُ مَنْ رَأَيْتُ |
| ډير مشابه په نظر راغلی او ما ابراهيم عَلَيْهِ السَّلَامُ اوليدلو نو کوم خلق چې ماليدلی دي په هغوی |
| بِهِ شَبَهًا صَاحِبُكُمْ يَعْنِيْ نَفْسَهُ وَرَأَيْتُ جِبْرَئِيْلَ فَإِذَا أَقْرَبُ |
| کې ستا سو د دوست يعني ما سره هغه ډير مشابه په نظر راغلی او ماجبرائيل) اوليدلو نو |
| مَنْ رَأَيْتُ بِهِ شَبَهًا دِحْيَةُ بْنُ خَلِيْفَةَ . رَوَاهُ مُسْلِمٌ. [1] |
| هغه په ليدل شوو په خلقوکې د د حيه بن خليفه سره ډير مشابه په نظر راغلی . [مسلم] |

## ضرب: سپک او نری بدن والا ته په عربي کې ضرب ويلی شي

| |
|---|
| ﴿۱۷﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| او حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه روايت کوي چې رسول کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| قَالَ رَأَيْتُ لَيْلَةَ أُسْرِيَ بِيْ مُوْسٰى رَجُلًا آدَمَ |
| وفرمايل ما د معراج په شپه کې موسٰی عَلَيْهِ السَّلَامُ اوليدلو هغه غنم رنګه او ږد قدو الا دنګ سړی |
| طُوَالًا جَعْدًا كَأَنَّهُ مِنْ رِجَالِ |
| وو وينښته يي ولول وو او د جسم او بدن د اعتبار نه د قبيلې دشنوءة د يو سړي په شان په نظر راتلو |
| شَنُوْءَةَ وَرَأَيْتُ عِيْسٰى رَجُلًا مَرْبُوْعَ |
| او ما عيسٰی عَلَيْهِ السَّلَامُ اوليدلو هغه خلقي طور سره د متوسط قد او قامت والا وو او نږدو نه ډير لنډ وو |
| الْخَلْقِ إِلَى الْحُمْرَةِ وَالْبَيَاضِ سَبْطَ الرَّأْسِ |
| او نه ډير پلن رنګ يې سور سپين وو او د هغه د سر وينښته سيده وو او ما د دوزخ مالک او |
| وَرَأَيْتُ مَالِكًا خَازِنَ النَّارِ وَالدَّجَّالَ |
| دجال هم وليدل او د حضور عَلَيْهِ السَّلَامُ د دې ټولو ليدل د قدرتِ الٰهي د هغو نښو او علاماتو نه وو |

[1] اخرجه مسلم في صحيحه ۱/۱۵۳ رقم الحديث (۱۶۸/۲۷۱)

| فِيْ | آيَاتٍ | أَرَاهُنَّ | اللهُ | إِيَّاهُ، | فَلَا | تَكُنْ | فِيْ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| چې الله ! حضور عَلَيْهِ السَّلَامُ ته شب معراج کې وښودل نو ای د دې حديث ويونکو په دې امر کې | | | | | | | |
| مِرْيَةٍ | مِنْ | لِقَائِهِ. | مُتَّفَقٌ | عَلَيْهِ. (۱) | | | |
| څه شک شبهه مه کوئ چې حضور عَلَيْهِ السَّلَامُ دا ټول وليدل او ملاقات يې ورسره وشو. [بخاري، مسلم] | | | | | | | |

**توضيح** : ادم: غنم رنګ . طوالا: اوږد قامت . **جعدا**: کوږې ويښته ، **ضرب** د سپک بدن والا ، مربوع: درمیانه قد والا ، **سبط الرأس**: د سيده ويښتو والا .

**اراهن الله اياه**: دا جمله د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ کلام نه دی د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ کلام د دينه وروسته د فلاتکن نه شروع کيږي يعني دغه څه چې حضور ﷺ وليدل دا د هغو علاماتو نه وو چې الله تعالى حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته د معراج په شپه ښودلي وو . **مضطرب**: يعني چست وو ، **ديماس**: حمام ته وايي، د راتلونکې حديث څو جملې د وضاحت لپاره دلته وليکل شوې .

## په شبِ معراج کې د انبياو سره ملاقات او د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د شرابو پيالې د قبلولو نه انکار

| ﴿۱۸﴾ وَعَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيْلَةَ أُسْرِيَ بِهِ | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| او حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې رسول کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل ما د معراج په شپه کې | | | | | | | |
| لَقِيْتُ | مُوْسٰى | فَنَعَتَهُ | فَإِذَا | | | | |
| حضرت موسٰى سره ملاقات وکړه دې نه روسته حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د حضرت موسٰى عَلَيْهِ السَّلَامُ | | | | | | | |
| رَجُلٌ | مُضْطَرِبٌ | رَجِلُ | الشَّعْرِ | | | | |
| خصوصياتو بيانولو سره وفرمايل چې هغه يو مضطرب سړی په نظر راغی د هغه د سر ويښته | | | | | | | |
| كَأَنَّهُ | مِنْ | رِجَالِ | شَنُوْءَةَ | وَلَقِيْتُ | عِيْسٰى | | |
| ول ول وو نه بالکل سيده او داسې لګيدل لکه چې هغه د قبيلې شنوءة يو سړی وي حضرت عيسٰى عَلَيْهِ السَّلَامُ | | | | | | | |
| رَبْعَةٌ | أَحْمَرَ | كَأَنَّمَا | خَرَجَ | مِنْ | دِيْمَاسٍ | يَعْنِي | الْحَمَّامَ |
| سره هم زما ملاقات وشو هغه د درميانه قد او د سور رنګ والا وو ديماس يعنی د حمام نه راوتلی | | | | | | | |

(۱) اخرجه البخاري ۶/۳۱۴ رقم الحديث ۳۲۳۹ ومسلم ۱/۱۵۱ رقم الحديث ۶۵/۲۶۷ وأحمد في المسند ۱/۲۳۴

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَرَأَيْتُ | إِبْرَاهِيمَ | وَأَنَا | أَشْبَهُ | وَلَدِهِ بِهِ |

وي او ما حضرت ابراهيم عَلَيْهِ السَّلَامُ هم وليدلو او زه دده په اولاد کې دده سره ډيرزيات مشابه وم،

قَالَ وَأُتِيتُ بِإِنَائَيْنِ أَحَدُهُمَا لَبَنٌ وَالْآخَرُ

حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل بيا زما مخې ته دوه پيالې راوړی شوې يوه پياله کې پی وو او په

فِيهِ خَمْرٌ فَقِيلَ لِيْ خُذْ أَيَّهُمَا شِئْتَ فَأَخَذْتُ اللَّبَنَ

بله کې شراب ماته وويل شو چې په دي کې کومه دي خوښه وي هغه واخله ما د پيو پياله واخسته

فَشَرِبْتُهُ فَقِيلَ لِيْ هُدِيتَ الْفِطْرَةَ أَمَا إِنَّكَ

او ومي څکله بيا ماته وويل فرشتو وويل چې تا سو ته د فطرت لاروښودل شوه که تا سو هغه وخت

لَوْ أَخَذْتَ الْخَمْرَ غَوَتْ أُمَّتُكَ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.[1]

شراب څکلي وی نو ستا سو امت به گمراه شوی وی. [بخاري مسلم]

## انبياء ددي دنيانه درخصتيدو نه روسته هم د خير اعمال کوي

﴿۱۹﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ سِرْنَا مَعَ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

او حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي په يو سفر کې چې د مکې او مديني په مينځ کې وو مونږ د

بَيْنَ مَكَّةَ وَالْمَدِيْنَةِ فَمَرَرْنَا بِوَادٍ فَقَالَ

رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره ملگري وو مونږ چې په يو ځنګل تيريدو نو حضور عَلَيْهِ السَّلَامُ پوښتنه وکړه

أَيُّ وَادٍ هٰذَا فَقَالُوْا وَادِي الْأَزْرَقِ

چې دا کوم ځنګل دی؟ مونږ عرض وکړو دا وادي ازرق دی حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په دي اوريدو سره

قَالَ كَأَنِّيْ أَنْظُرُ إِلٰى مُوْسٰى فَذَكَرَ

وفرمايل گويا چې زه موسٰی عَلَيْهِ السَّلَامُ وينم بيا حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د حضرت موسٰی عَلَيْهِ السَّلَامُ د

مِنْ لَوْنِهِ وَشَعْرِهِ شَيْئًا وَاضِعًا إِصْبَعَيْهِ

رنګ او ويښتانو څه ذکر يې وکړو هغه خپلي گوتي غوږونو کې ورکړي او په ژړا زاری په لوړ

---

[1] اخرجه البخاري ۶/۴۲۸ رقم الحديث ۳۳۹۴ ومسلم ۱/۱۵۴ رقم الحديث (۱۶۸/۲۷۲)

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| فِيْ | أُذُنَيْهِ | لَهُ | جُؤَارٌ | إِلَى | اللهِ | بِالتَّلْبِيَةِ مَارًّا |

اواز د خپل پروردګار په حضور کې لبيک لبيک ويلو سره حرم طرف ته ځي حضرت ابن عباس رضي الله عنه

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| بِهٰذَا | الْوَادِيْ | قَالَ | ثُمَّ | سِرْنَا | حَتّٰى | أَتَيْنَا |

وايي دي نه روسته دهغه ځای نه تيريدو سره مونږ په مخکې ولاړو او يوې غونډۍ ته ورسيدونو

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| عَلٰى | ثَنِيَّةٍ | فَقَالَ | أَيُّ | ثَنِيَّةٍ | هٰذِهِ | قَالُوْا هَرْشٰى |

حضور صلى الله عليه وسلم پوښتنه وکړه دا کوم غرا وغونډۍ ده خلقو وويل دا هرشي دی لفت غر دی

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| أَوْ | لِفْتٌ | فَقَالَ | كَأَنِّيْ | أَنْظُرُ | إِلٰى | يُوْنُسَ | عَلٰى نَاقَةٍ |

حضور صلى الله عليه وسلم په دي اوريدو سره وفرمايل ګويا زه يونس عليه السلام وينم چې په سره اوښه

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| حَمْرَاءَ | عَلَيْهِ | جُبَّةٌ | صُوْفٍ | خِطَامُ | نَاقَتِهِ | خُلْبَةٌ |

باندې سور دی او د غټو وړيو جبه يې اغوستې ده د هغه د اوښې مهار د کجورې د رسۍ دی او

مَارًّا بِهٰذَا الْوَادِيْ مُلَبِّيًا. رَوَاهُ مُسْلِمٌ.(۱)

هغه لبيک لبيک ويلو سره دې غونډۍ نه تيريږي. [مسلم]

**توضيح : جؤار**: په جيم باندې ضمه ده د هغه نه وروسته همزه ده بيا راء ده په اوچت آواز او ژړيدو سره تلبيې ويلو په معنی سره دی. **خطام**: د اوښې په پوزه کې اچول شوې مهار ته خطام ويل کيږي په وزن د زمام لفظا او معنی. **خلبة**: د کجورو د پوستکي نه جوړې شوې رسۍ ته خلبة وايي. **ملبيا**: يعنې تلبيه ويلو سره مخکې روان وو، د دې حديث نه معلومه شوه چې د مرګ نه وروسته په عالم برزخ کې هم نيکان خلک عبادت کوي اګرچې په دې عبادت سره ثواب نه حاصليږي ځکه هغه دار العمل نه دی ليکن نيک خلک د شوق پوره کولو او تسلي حاصلولو لپاره په طور د لذت په عبادت کې مشغول پاتې کيږي. د انبياء کرامو او شهيدانو جسدونه چونکې په قبرونو کې محفوظ وي نو ځکه د هغوی په باره کې خو هيڅ اشکال نشته، همدارنګه د نورو اولياء کرامو جسدونه که محفوظ وي نو هغه به هم همدارنګه په عبادت کې مشغول وي.

---

(۱) اخرجه مسلم ۱/۱۵۲ رقم الحديث (۱۶۶-۲۶۹) واخرجه أحمد في المسند ۱/۲۱۵.

## د حضرت داؤد عَلَيْهِ السَّلَامُ ذکر

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۲۰﴾ | وَعَنْ | أَبِي | هُرَيْرَةَ | عَنِ | النَّبِيِّ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| او حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د حضور عَلَيْهِ السَّلَامُ نه روایت کوي چې رسول الله عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمایل حضرت | | | | | | | | |
| قَالَ | خُفِّفَ | عَلَى | دَاوُدَ | الْقُرْآنُ | فَكَانَ | يَأْمُرُ | بِدَوَابِّهِ | |
| داود عَلَيْهِ السَّلَامُ باندې د زبور تلاوت آسان شوی وو هغه به خپلو څاروو باندې د زین تړلو حکم کوه او مخکې | | | | | | | | |
| فَتُسْرَجُ | فَيَقْرَأُ | الْقُرْآنَ | قَبْلَ | أَنْ | تُسْرَجَ | دَوَابُّهُ | | |
| ددې نه چې د زین تړلو کار پوره شي هغه به د پوره زبور تلاوت مکمل کوه او حضرت داود عَلَيْهِ السَّلَامُ | | | | | | | | |
| وَلَا يَأْكُلُ إِلَّا مِنْ عَمَلِ يَدِهِ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.[1] | | | | | | | | |
| به د خپل لاس د محنت روټئ خوړله [بخاري] | | | | | | | | |

**توضیح : فیقرأ القرآن**: قرآن په معنی د مقروء سره دی چې په معنی د لوستلی شوي سره دی ، قرآن مراد نه دی بلکه ددینه مراد د زبور لوستل دي ، په دومره مختصر وخت کې د زبور لوستل د معجزې په طور باندې وو لکه څنګه چې د طی الارض عمل وي همدا رنګه خارق العادة طی الوقت هم وي ، د معراج په شپه باندې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته طی الوقت شوی وو .

## دیوې ظالمې ښځې قصه

| | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۲۱﴾ | وَعَنْهُ | عَنِ | النَّبِيِّ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ | قَالَ | كَانَتِ | امْرَأَتَانِ |
| او حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه نقل کوي چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وویل چې دوه ښځې | | | | | | | | | | |
| مَعَهُمَا | اِبْنَاهُمَا | جَاءَ | الذِّئْبُ | | | | | | | |
| وې او هغوئ دواړو سره یو یو هلک وو یوه ورځ یو شرمخ راغی او هغوئ کې د یوې ښځې هلک یې | | | | | | | | | | |
| فَذَهَبَ | بِابْنِ | إِحْدَاهُمَا | فَقَالَتْ | | | | | | | |
| اوچت کړو او وې یې وړلو یوه بلې ته وایې چې شرمخ ستاځوی یووړلو او دوهمې وویل چې نه | | | | | | | | | | |

---

(1) اخرجه البخاري ۶/۴۵۳ رقم الحديث ۳۴۱۷ واحمد في المسند ۲/۲۱۴

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| صَاحِبَتُهَا | إِنَّمَا | ذَهَبَ | بِابْنِكِ | قَالَتِ | الْأُخْرٰى | إِنَّمَا | ذَهَبَ بِابْنِكِ |

ستائخوی يي يووړلو آخر دواړو خپله مقدمه حضرت داود ) ته يوړله حضرت موجود هلک د

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| فَتَحَاكَمَتَا | إِلٰى | دَاوُدَ | فَقَضٰى | بِهٖ | لِلْكُبْرٰى |

لوی عمر والا ښځي ته ورکړو بيا هغه دواړه ښځي حضرت سليمان ) ته راغلي او خپله پوره

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| فَخَرَجَتَا | عَلٰى | سُلَيْمَانَ | بْنِ | دَاوُدَ | فَأَخْبَرَتَاهُ | فَقَالَ |

قضيه او د حضرت داود فيصله يي ورته بيان کړله حضرت سليمان خپلو خادمانو ته وويل چې

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ائْتُونِيْ | بِالسِّكِّيْنِ | أَشُقُّهٗ | بَيْنَكُمَا | فَقَالَتِ الصُّغْرٰى |

چاړه راوړئ زه دا هلک په مينځ دوه ټکړي کولو سره په دې دواړو تقسيموم د کم عمر والا ښځي

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| لَا | تَفْعَلْ | يَرْحَمُكَ | اللّٰهُ | هُوَ | ابْنُهَا |

وويل الله ! دي په تا سو رحم وکړي داسي مه کوئ هلک د لوی عمر ښځي ته ورکړئ د دې په

فَقَضٰى بِهٖ لِلصُّغْرٰى . مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.(۱)

اوريدو سره حضرت سليمان) د کم عمر والا ښځي په حق کې فيصله وکړله .

**توضيح** : ابناهما: يعنې د حضرت داؤد عَلَيْهِ السَّلَامُ په وخت کې دوه ښځې يوځای چيرته روانې وې ، ممکنه ده چې دا دواړې په ملګرتيا کې يوځای شوې وې او دا هم ممکنه ده چې دواړې د يوځایِ اوسيدونکې وي ، دا تنازع د حضرت داؤد عَلَيْهِ السَّلَامُ په زمانه کې پيښه شوې وه ، د يوې د غيږې نه ليوه بچی تختولی وو نو د دواړو په مينځ کې جګړه شوه چې د چا بچی يې وړی دی او د چا پاتې شوی دی ، يوه د زيات عمر وه او بله د کم عمر وه ، د لوی عمر ښځې وويل چې کوم بچی يې وړی دی هغه ستا دی او چې کوم باقی دی هغه زما دی او په دې باندې يې قبضه وکړه ، دغه مقدمه د حضرت داؤد عَلَيْهِ السَّلَامُ په عدالت کې پيش شوه ، چونکې په دواړو کې د هيچا سره شاهدان نه وو او دواړه دعوه دارې وې نو حضرت داؤد عَلَيْهِ السَّلَامُ قبضې ته وکتل او د صاحب يد په حق کې يې فيصله وکړه يا د کوم بل دليل په بنياد باندې د مشرې په حق کې فيصله وشوه . مګر دا خبره معلومه ده چې د حضرت داؤد عَلَيْهِ السَّلَامُ دغه فيصله د اجتهاد په بنياد باندې وه ، آسمانی وحی نه وه او اصل حق د

---

(۱) اخرجه البخاري في صحيحه ۶/۴۵۸ رقم الحديث ۳۴۲۷ ومسلم ۳/۱۳۴۴ رقم الحديث (۲۰/۵۷۱۹)

کشرۍ وو قابضه لویه وه . حضرت سلیمان عَلَیۡهِ السَّلَامُ د حکمت او نفسیاتی طور باندې ددې تنازع معلومولو کوشش وکړلو او معلومه یې هم کړه او فیصله یې د کشرۍ په حق کې وکړه . معلومه شوه چې قاضی ته د ظاهری دلائلو سره د باطنی عواملو جائزه اخیستل هم ضروری دي تر څو حق وپیژندلی شي .

**سؤال** : حضرت داؤد عَلَیۡهِ السَّلَامُ د مشرۍ په حق کې عدالتی فیصله صادره کړې وه حضرت سلیمان عَلَیۡهِ السَّلَامُ دغه فیصله ماته کړه او د کشرۍ په حق کې یې فیصله وکړه دا څنګه جائز وو اګرچې د یو قاضی فیصله په خالص اجتهاد باندې مبنی وي بیا هم د قضاء د اصولو لاندې نافذ شده قضاء فسخ کیدلی نشي دلته څنګه داسې وشو ؟ حالانکه دا د یو نبی نافذ شده فیصله وه ؟

**جواب** : د دې یو جواب دا دی چې د حضرت داؤد عَلَیۡهِ السَّلَامُ له طرفه دا یوه فتوی وه قضاء نه وه . دویم جواب دا دی چې د حضرت داؤد عَلَیۡهِ السَّلَامُ په شریعت کې شاید ددې ګنجایش (امکان) وو چې د یو عدالت فیصله په بل عدالت کې د سره د نوی تحقیق نه وروسته کالعدم ګرځیدله ، ګویا دا د هغه د شریعت خپله معامله وه زمونږ په شریعت کې داسې کیدلی نشي .

## حضرت سلیمان عَلَیۡهِ السَّلَامُ د سلو مجاهدینو پیدا کولو تمنا کوي

| |
|---|
| ﴿۲۲﴾ وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ سُلَيْمَانُ |
| او حضرت ابو هریره رَضِیَ اللهُ عَنۡهُ وایي چې رسول الله صَلَّی اللهُ عَلَیۡهِ وَسَلَّمَ وفرمایل یوه ورځ حضرت سلیمان دا وویل |
| لَأَطُوفَنَّ اللَّيْلَةَ عَلَى تِسْعِيْنَ امْرَأَةً وَفِيْ رِوَايَةٍ |
| یعني د اعزم او اراده یې وکړله چې نن شپه به زه خپلو نوي بیبیانو سره او په یوه روایت کې دادي |
| بِمِائَةِ امْرَأَةٍ كُلُّهُنَّ تَأْتِيْ بِفَارِسٍ |
| چې د خپلو سلو ښځو سره به مباشرت کوم او په هغوئ کې به هرې ښځې نه یو سور مرد پیدا شي |
| يُجَاهِدُ فِيْ سَبِيْلِ اللهِ فَقَالَ لَهُ الْمَلَكُ قُلْ إِنْ شَاءَ اللهُ |
| چې د الله ! په لار کې به جهاد کوي د دې عزم په وخت کې فرشتې هغه ته وویل چې انشاء الله |
| فَلَمْ يَقُلْ وَنَسِيَ فَطَافَ عَلَيْهِنَّ |
| ووایي لیکن حضرت سلیمان عَلَیۡهِ السَّلَامُ نه د ان شاء الله ویل هیر شو بیا هغه د ټولو بیبیانو سره مباشرت |

| فَلَمْ | تَحْمِلْ | مِنْهُنَّ | إِلَّا | امْرَأَةٌ | وَّاحِدَةٌ |
|---|---|---|---|---|---|

وکړو او په هغوئ کې د یوې ښځې نه علاوه بله هیڅ یوه حامله نه شوه او هغه هم نیم هلک یعني

| جَاءَتْ | بِشِقِّ | رَجُلٍ | وَّايْمُ | الَّذِيْ |
|---|---|---|---|---|

ناقص الخلقت بچی راوړو حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمایي قسم دی په هغه ذات چې د هغه د په لاس کې د

| نَفْسُ | مُحَمَّدٍ | بِيَدِهِ | لَوْ | قَالَ | إِنْ | شَاءَ | اللهُ | لَجَاهَدُوْا |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|

محمد ساده سلیمان که انشاء الله ویلي وای نو یقینًا د هري ښځي نه به یي یو یو ځوی پیدا شوی وو

| فِي | سَبِيْلِ | اللهِ | فُرْسَانًا | أَجْمَعُوْنَ | . | مُتَّفَقٌ | عَلَيْهِ.[1] |
|---|---|---|---|---|---|---|---|

او ټولو به د الله ! په لار کې جهاد کولو او سواره مردان به ثابت شوي وو. [بخاري مسلم]

**توضیح : بمائة**: یعني په یوه شپه کې به د سلو بیبیانو سره جماع کومه تر څو سل مجاهدین پیدا شي او د الله تعالی په لاره کې جهاد وکړي ، ملائکې وویل انشاء الله و وایه مګر هغه ونه ویله نو یو ناقص هلک پیدا شو د دینه علاوه هیڅ رانغلل ، خادمې هغه راوړلو او په تخت سلیماني باندې یې کینبود ، سلیمان عَلَيْهِ السَّلَامُ ته تنبیه وشوله . دا حدیث د قرآن د آیت ﴿ وَأَلْقَيْنَا عَلَىٰ كُرْسِيِّهِ جَسَدًا ﴾ لپاره ښه تفسیر دی ، جناب ابو الاعلی مودودی صاحب دغه حدیث په نهایت حقارت سره د عقل په زور باندې مسترد کړی دی ، په تفهیم القرآن کې د دغه آیت لاندې وګوره ته به حیران پاتې شې ! ښه داخبره ذهن کې کینوه چې د کوم مستند استاد نه د علم نه زده کولو همدا نقصان وي .

## کسب د انبیاو عَلَيْهِمُ السَّلَامُ سنت دی

﴿۲۳﴾ وَعَنْهُ أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ كَانَ زَكَرِيَّا نَجَّارًا. رَوَاهُ مُسْلِمٌ .[2]

او حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي چې نبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل حضرت زکریا عَلَيْهِ السَّلَامُ نجار وو. [مسلم]

## د حضرت عیسٰی عَلَيْهِ السَّلَامُ او د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ باهمي قرب او تعلق

﴿۲٤﴾ وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَا أَوْلَى النَّاسِ

او ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي چې رسول کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل په دنیا او په آخرت کې

---

([1]) اخرجه البخاري ۶/۴۵۴ رقم الحديث ۲۸۱۹ ومسلم ۳/۱۲۷۶ رقم الحديث (۲۵/۱۶۵۴)

([2]) اخرجه مسلم ۴/۱۸۴۷ رقم الحديث (۱۶۹/۲۳۷۹) وابن ماجه ۲/۷۲۷ رقم الحديث ۲۱۵۰

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| بِعِيْسٰى | بْنِ | مَرْيَمَ | فِيْ | الْأُوْلٰى | وَالْآخِرَةِ | لَانْبِيَاءُ | اَ | إِخْوَةٌ |
| حضرت عيسىٰ عَلَيْهِ السَّلَامُ ته د ټولو نه زيات قريب او تعلق دارزه يم او ټول انبياء خپلو کې ميرني وروڼه دي | | | | | | | | |
| مِنْ | عَلَّاتٍ | وَأُمَّهَاتُهُمْ | شَتّٰى | وَدِيْنُهُمْ | وَاحِدٌ | وَلَيْسَ | | |
| چې د هغوئ پلار يو دى او مندې يې جدا جدا دي د دې ټولو اصل دين يو دى او زمونږ په مينځ | | | | | | | | |
| بَيْنَنَا نَبِيٌّ . مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. [1] | | | | | | | | |
| کې هيڅ نبي نشته . [بخاري مسلم] | | | | | | | | |

**توضيح** : **انا اولى الناس بعيسى:** يعنې په انسانانو کې د قرب په اعتبار سره د ټولو نه زيات زه حضرت عيسى عَلَيْهِ السَّلَامُ ته نژدې يم ، دغه قرب په څو اعتبارونو سره دى ، يو خو دا چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د حضرت عيسى عَلَيْهِ السَّلَامُ د زمانې په اعتبار سره د ټولو نه زيات قريب دى د دواړو په مينځ کې کوم نبى نشته او صرف د شپږ سوه کاله فاصله ده . دويم قرب دا دى چې حضرت عيسى عَلَيْهِ السَّلَامُ به په آخر کې د حضور اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خليفه وي . دريم قرب دا دى چې د حضرت عيسى عَلَيْهِ السَّلَامُ دين د حضور اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د دين سره متصل دى . څلورم قرب دا دى چې حضرت عيسى عَلَيْهِ السَّلَامُ د حضور اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د بعثت خصوصى بشارت ورکړى دى . پنځم قرب دا دى چې کله حضرت عيسى عَلَيْهِ السَّلَامُ وفات شي نو د حضور اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په طرف کې به دفن کيږي . شپږم قرب دا دى چې په بعضو رواياتو کې راغلي دي چې په جنت کې به د حضرت عيسى عَلَيْهِ السَّلَامُ والده حضرت مريم عليها السلام د حضور ﷺ په زوجيت کې راځي ، په هر حال قرب په دنيا کې هم شته او په آخرت کې به هم وي .

**اخوة من علاة:** يعنې ټول انبياء په خپل مينځ کې سره وروڼه دي مورګانې يې جدا جدا دي او پلار د ټولو يو دى ، دا کلام په تشبيه باندې محمول دى لهذا د پلار نه مراد د دې ټولو انبياؤ هغه دين او توحيد دى چې په هغه باندې ټول متحد او متفق راغلي دي په (**و دينهم واحد**) کې همدغه حقيقت واضحه شوى دى ، او د مورګانو نه مراد د دغو پيغمبرانو جدا جدا شريعتونه دي چې په هره زمانه کې ځانته پاتې شوي دي . ملاعلى القارى رحمه الله فرمايي : **والمعنى ان اولاد العلات امهاتهم مختلفة فكذلک الانبياء دينهم واحد و شرائعهم مختلفة** . الحمد لله دې عاجزه بنده د حديث په

---

[1] اخرجه البخاري في صحيحه ۶/۴۷۷ رقم الحديث ۳۴۴۳-۳۴۴۲، ومسلم ۴/۱۸۳۷ رقم الحديث (۲۳۶۵-۱۴۵)

پوهه او پوهه کولو کې کوشش کړی دی والحمدلله علی ذلک.

## د حضرت عیسٰی عَلَيْهِ السَّلَامُ فضیلت

| |
|---|
| ﴿۲۵﴾ وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كُلُّ بَنِيْ آدَمَ |
| او حضرت ابوهریره، وایي چې رسول کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل کله چې یو انسان پیدا کېږي نو |
| يَطْعَنُ الشَّيْطَانُ فِيْ جَنْبَيْهِ بِإِصْبَعَيْهِ حِيْنَ يُوْلَدُ غَيْرَ عِيْسٰي |
| شیطان د هغه دواړو تشو کې په ګوتو سره نوکاره ورکوي لیکن عیسٰی عَلَيْهِ السَّلَامُ د دې نه محفوظ پاتې |
| ابْنِ مَرْيَمَ ذَهَبَ يَطْعَنُ فَطَعَنَ فِي الْحِجَابِ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. [1] |
| شوی دی هغه د هغه په تشي کې هم نوکاره لګول وغوښتل خو هغه صرف پردې ته نوکاره ورکړه. [بخاري مسلم] |

## د باکماله ښځو ذکر

| |
|---|
| ﴿۲۶﴾ وَعَنْ أَبِيْ مُوْسٰى رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: |
| او حضرت ابوموسٰی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه روایت کوي چې رسول کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل |
| كَمُلَ مِنَ الرِّجَالِ كَثِيْرٌ وَلَمْ يَكْمُلْ مِنَ النِّسَاءِ إِلَّا مَرْيَمُ بِنْتُ عِمْرَانَ |
| په سړو کې خو ډیر باکماله پیدا شوي دي لیکن په ښځو کې باکماله نه شوې مګر بي بي مریم بنت عمران |
| وَآسِيَةُ امْرَأَةُ فِرْعَوْنَ وَفَضْلُ عَائِشَةَ عَلَى النِّسَاءِ كَفَضْلِ |
| او بي بي آسیه زوجه د فرعون او ټولو ښځو باندې عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ته هغه فضیلت حاصل دی څرنګه |
| الثَّرِيْدِ عَلٰى سَائِرِ الطَّعَامِ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. وَذُكِرَ |
| چې نورو طعامونو باندې ثرید وره (میده) شوې روټۍ ته حاصل دی [بخاري مسلم] او د |
| حَدِيْثُ أَنَسٍ يَا خَيْرَ الْبَرِيَّةِ وَحَدِيْثُ أَبِيْ هُرَيْرَةَ أَيُّ النَّاسِ أَكْرَمُ وَحَدِيْثُ |
| حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روایت یا خیر البریه الخ او د حضرت ابوهریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روایت ای الناس اکرم الخ او |

---

(1) اخرجه البخاري ۶/۲۳۷ رقم الحديث ۳۲۸۶ ومسلم ۴/۱۸۳۸ رقم الحديث (۲۳۶۶-۱۴۷)

| |
|---|
| ابْنِ عُمَرَ اَلْكَرِيْمُ بْنُ الْكَرِيْمِ فِيْ بَابِ الْمُفَاخَرَةِ وَالْعَصَبِيَّةِ[1] |
| د حضرت ابن عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ روایت: الکریم ابن الکریم الخ په باب المفاخرة والعصبیه کې نقل شوي دي. |

**توضیح**: الامریم: دلته سوال پیدا کیږي چې د کمال په حصول کې حضرت مریم عَلَیْهَا السَّلَام او حضرت آسیه رضي الله تعالی عنها ته اوله درجه ورکړی شوې ده نو د حضرت فاطمة الزهراء او حضرت عائشه او حضرت خدیجه رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُنَّ هغه عالیشان مقام چیرته لاړو ؟ددې جواب دا دی چې دلته د مخکنو امتونو د ښځو د کمالاتو د تکمیل ذکر دی ، د امت محمدیه د ښځو د شان بیان په ابواب مناقب کې راروان دی هلته به انشاء الله په تفصیل سره خبره کیږي لږ انتظار وکړه .

## اَلْفَصْلُ الثَّانِيْ

۱۸ جمادی الثاني ۱۴۱۸ هـ

## د تخلیق کائنات نه مخکې د الله تعالی وجود

| |
|---|
| ﴿۲۷﴾ وَعَنْ أَبِيْ رَزِيْنٍ قَالَ قُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ أَيْنَ رَبُّنَا قَبْلَ أَنْ يَخْلُقَ |
| او د حضرت ابورزین رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ بیان دی ما عرض وکړو یا رسول الله! صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ څمونږ پروردګار د مخلوقاتو |
| خَلْقَهُ قَالَ كَانَ فِيْ عَمَآءٍ مَا تَحْتَهُ هَوَاءٌ وَمَا فَوْقَهُ هَوَاءٌ |
| پیدا کولو نه مخکې کوم ځای کې وو حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل عماء کې وو نه د هغه نه لاندې هوا وه |
| وَخَلَقَ عَرْشَهُ عَلَى الْمَاءِ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ يَزِيْدُ بْنُ هَارُوْنَ |
| او نه د هغه د پاسه هغه خپل عرش او بو باندې پیدا کړو دا روایت امام ترمذي نقل کړی دی او یزید ابن هارون وضاحت |
| الْعَمَآءُ اَيْ لَيْسَ مَعَهُ شَيْءٌ.[2] |
| کړی دی چې عماء نه مراد دا دی چې هغه سره هیڅ شی نه وو. |

**توضیح** : عماء: د عماء اصلي معنی وریځ ده لیکن دلته اصلي معنی مراد نه ده بلکه د عماء معنی دلته د عدم او لیس معه شئ ده یعني الله تعالی وو او د هغه سره هیڅ شی هم نه وو ، مطلب دا چې الله تعالی په خپل ذات محضه کې وو د هغه د صفاتو ظهور تر دې وخته شوی نه وو ، ګویا یوه پټه خزانه

---

[1] اخرجه البخاري في صحيحه ۶/۴۴۲ رقم الحديث ۳۴۱۱ ومسلم ۴/۱۸۸۶ رقم الحديث (۲۴۳۱/۷۰)

[2] اخرجه الترمذي ۵/۲۶۹ رقم الحديث ۳۱۰۹ وابن ماجه في السنن ۱/۶۴ رقم الحديث ۱۸۲.

وه . ملاعلی القاری رَحِمَهُ اللهُ داسې لیکي : **في عمآء بفتح العين ممدودا اى فى غيب هوية الذات بلاظهور مظاهر الصفات كما عبر عنه بقوله كنت كنزا مخفيا فاحببت ان اعرف فخلقت الخلق ،،**

صوفيه حضراتو کرامو د عماء مفهوم دا بیان کړی دی **(العمآء هي الحضرة الاحدية)** یعنې د عماء نه مراد د الله تعالی وحده لاشریک ذات دی . په یوه نسخه او یو روایت کې عمّی په قصر سره راغلی چې د پوشیدګۍ په معنی سره دی ، ددې مطلب دا دی چې د الله تعالی ذات چې چیرته وو هلته په بنی آدم کې نه د چا عقل رسیدلو او نه د کوم عاقل سوچ هلته رسیدلی شو . علامه ازهری رَحِمَهُ اللهُ فرمایلي چې مونږ په دې ظاهری الفاظو باندې ایمان راوړو او ددې کیفیت او حقیقت ته د رسیدلو کوشش نه کوو ، ګویا دغه الفاظ د متشابهاتو څخه دي .

**ماتحته هواء:** په دې جمله کې ما نافیه ی یعنې په دې عماء کې نه لاندې هوا وه او نه پورته هوا وه ، په دې جملې سره دا بیانول مقصود دې چې وریځ چیرته وي هتله هوا هم وي ، چې کله د پاس او لاندې هوا نفی وشوله نو دا وښودل شو چې د عمآء نه مراد وریځ نه ده بلکه دا د لیس معه شئ په معنی سره دی ترڅو د الله تعالی لپاره جهت ثابت نشي چې ددینه حدوث لازمیږي .

**عرشه علی الماء:** ددې مطلب دا نه دی چې عرش الهی د اوبو په سطحه باندې ایښودلی شوی وو بلکه مطلب دا دی چې لاندې اوبه وې پاس په فضاء کې عرش وو او نور څه نه وو ددې تشریح د باب په ابتداء کې شوې ده .

## د سماوی نظام عجائبات

| |
|---|
| ﴿۲۸﴾ وَعَنِ الْعَبَّاسِ بْنِ عَبْدِ الْمُطَّلِبِ زَعَمَ اَنَّهُ كَانَ جَالِسًا فِي الْبَطْحَاءِ فِي |
| او حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ بن عبد المطلب وایي هغه یوه ورځ بطحاء مکه کې یو ځای د خلقو یو |
| عِصَابَةٍ وَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جَالِسٌ فِيْهِمْ فَمَرَّتْ بِهِمْ سَحَابَةٌ |
| جماعت سره ناست وو او رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هم په هغوئ کې تشریف فرماوو اچانک د وریځې یوه |
| فَنَظَرُوْا اِلَيْهَا فَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| ټکړه تیره شوه خلقو هغه طرف ته کتل رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د هغوئ نه پوښتنه وکړه تاسو دې وریځ ته |

مَا تُسَمُّوْنَ هٰذِهٖ قَالُوا السَّحَابَ قَالَ وَالْمُزْنَ قَالُوْا وَالْمُزْنَ

څه وایئ هغوئ جواب ورکړو چې اسحاب حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ورته وفرمایل او دې ته مزن هم وایي

قَالَ وَ الْعَنَانَ قَالُوْا وَ الْعَنَانَ

هغوئ وویل چې هو مزن هم ورته وایي بیا حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل او دې ته عنان هم وایي دوي وویل چې عنان هم

قَالَ هَلْ تَدْرُوْنَ مَا بُعْدُ مَا بَيْنَ السَّمَاءِ وَالْاَرْضِ

ورته وایي بیا نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمایل آیا تاسو خلقو ته معلومه ده چې د آسمان او ځمکې په مینځ کې څومره فاصله ده

قَالُوْا لَا نَدْرِیْ قَالَ

دا او هغه څومره اوږده ده هغوی جواب ورکړو مونږ ته معلومه نه ده حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ورته وفرمایل

إِنَّ بُعْدَ مَا بَيْنَهُمَا إِمَّا وَاحِدَةٌ وَ إِمَّا اِثْنَتَانِ أَوْ ثَلَاثٌ وَسَبْعُوْنَ سَنَةً

د ځمکې او آسمان په مینځ کې فاصله یا خو یو اویا کاله یا دوه اویا کاله یا د دری اویا کاله د مسافت په قدر ده

وَ السَّمَاءُ الَّتِیْ فَوْقَهَا كَذٰلِكَ

او دې اولني آسمان د پاسه دوهم آسمان دی او د دې دواړو په مینځ کې هم دومره فاصله ده

حَتّٰى عَدَّ سَبْعَ سَمٰوٰتٍ ثُمَّ فَوْقَ السَّمَاءِ السَّابِعَةِ بَحْرٌ بَيْنَ

ان ترد چې او ه آسمانونه یې وشمارل بیا د اووم اسمان نه بره سمندر دی چې د دواړو ترمینځ یعنې

أَعْلَاهُ وَ أَسْفَلِهٖ كَمَا بَيْنَ سَمَاءٍ إِلٰى سَمَاءٍ ثُمَّ فَوْقَ ذٰلِكَ ثَمَانِيَةُ

دهغه سمندر ریخ د سطحې فاصله د دوو اسمانونو ترمینځ فاصله ده او بیا دهغه د پاسه آته فرشتې دي مومي

أَوْعَالٍ بَيْنَ أَظْلَافِهِنَّ وَوَرِكِهِنَّ مِثْلُ مَا بَيْنَ سَمَاءٍ إِلٰى سَمَاءٍ

چې دغرونو د چیلو پشان دي چې دهغو د پښو او د کوناتو ترمینځ هم د دوو آسمانونو ترمینځ فاصلې

ثُمَّ عَلٰى ظُهُوْرِهِنَّ الْعَرْشُ بَيْنَ أَسْفَلِهٖ وَأَعْلَاهُ مَا بَيْنَ سَمَاءٍ إِلٰى سَمَاءٍ

په اندازه فاصله ده دهغوی د پاسه د الله تعالی عرش دی چې دهغه لاندینی برنی حصې ترمینځ د دوو آسمانونو ترمینځ

| ثُمَّ | اللهُ | فَوْقَ | ذٰلِكَ | رَوَاهُ | التِّرْمِذِيُّ | وَ | أَبُوْ | دَاوُدَ[1] |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| دفاصلي په اندازه فاصله ده اوبيا دهغې نه پورته دالله تعالی ذات دی. دا حديث ترمذی او ابوداود روايت کړی دی. | | | | | | | | |

**توضیح**: **زعم انه کان جالسا**: په دغه وخت کې حضرت عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مسلمان شوی نه وو چې کله حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د سماوی نظام عجائبات فرمايل چونکه دغه مجمع هم عمومی طور باندې په کفارو مشتمله وه نو حضرت عباس رضی الله عنه ددغه وخت اوریدلی شوی حدیث وروسته فرمايلی دی. **والمزن**؟: يعنې آيا تاسو سحاب ته مزن او عنان هم وايي ؟ تولو وويل هو! .

**اما واحدة او**: شک راوی ته دی او د اویا کالو ذکر د تکثیر عدد لپاره دی کوم تعیین نه دی ځکه په ډیرو احادیثو کې دا تصریح موجوده ده چې د هر دوو آسمانو په مینځ کې د پنځه سوه کلونو مسافت لاره ده لهٰذا دلته دغه عدد په تکثیر باندې محمول دی نو هیڅ تعارض نشته . **بحر**: يعنې يو سمندر دی چې د هغه پاس طرف او لاندې طرف مسافت هم همدارنګه پنځه سوه کاله دی .

**اوعال**: دا د وعل جمع ده د غره چيلو ته وايي ددې مؤنث ته اروية وايي چې ذکر يې په نورو رواياتو کې هم راغلی دی ، دې حيوان ته په پښتو کې (غرڅه) وايي ، د ډير مضبوط جسم والا وي ، داسې معلوميږي چې د دوی په پښو کې مقناطيس لګيدلی دي چې د کاڼو سره نخلي، په داسې ګرانو ځايونو کې ګرځي چې هلته يو اځې مرغان تللی شي ، د غوا نه وړوکی دی او د ګډ نه غټ ويدی ، په سر باندې يې دوه اوږده ښکرونه وي ، په منډه کې د هوا پشان تيز دی، دلته په دې حديث کې بعينه همدا حيوان مراد نه دی بلکه ملائکې مراد دي چې ددې حيوان په شکل کې وي .

**العرش**: يعنې د عرش لاندې او پاس مسافت هم د پنځه سوه کلونو دی .

**ثم الله فوق ذلک**: د نصوص قرآنيه او احاديثو نه واضحه اشارې حاصليږي بلکه تصريحات دي چې الله تعالی په آسمانونو باندې دی دلته هم دغه تفصيل دی مګر دا متشابه الفاظ دي چې ددې په باره کې امام مالک رَحِمَهُ اللهُ فرمايلي : **الاستواء معلوم والکيفية مجهولة والسؤال عنه بدعة**، د سلف صالحينو عقيده ده چې **(مايليق بشانه)** چې کوم د الله تعالی او چت شان

---

([1]) اخرجه ابوداود في السنن ٥/٩٣ رقم الحديث ٤٧٢٣ و الترمذي في سننه ٥/٣٩٥ رقم الحديث ٣٣٢٠ .

دی زمونږ په هغه باندې ايمان دی ، په هر حال په دې حديث کې د الله تعالی عظيم شان بيان شوی دی .

## د الله تعالی شان

﴿۲۹﴾ وَعَنْ جُبَيْرِ بْنِ مُطْعِمٍ قَالَ أَتَى رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَعْرَابِيٌّ

د جبير بن مطعم رضي الله عنه بيان دی يو ورځ د رسول الله صلی الله عليه وسلم په خدمت کې (بانډه چي) راغی او

فَقَالَ جُهِدَتِ الْأَنْفُسُ وَجَاعَ الْعِيَالُ وَنُهِكَتِ الْأَمْوَالُ وَهَلَكَتِ الْأَنْعَامُ

هغه وويل يا رسول الله زمونږ انسانان د قحط ښکار کېږي بال بچ (اولاد) او مال او څاروي مو هلاکېږي

فَاسْتَسْقِ اللهَ لَنَا فَإِنَّا نَسْتَشْفِعُ بِكَ عَلَى اللهِ وَنَسْتَشْفِعُ بِاللهِ عَلَيْكَ

نو تا سو د الله ! نه زمونږ د پاره باران وغواړئ مونږ د الله ! په حضور کې تا سو سفارش کونکی ګرځوو

فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سُبْحَانَ اللهِ سُبْحَانَ اللهِ

حضور صلی الله عليه وسلم په دې اوريدو سره وفرمايل د الله ! ذات پاک او منزه دی د الله ! ذات پاک او منزه دی

فَمَا زَالَ يُسَبِّحُ حَتّٰى عُرِفَ ذٰلِكَ فِيْ وُجُوْهِ أَصحابـه

نبی صلی الله عليه وسلم بار بار د تسبيح دا الفاظ فرمائيل د دې پورې چې د نبی صلی الله عليه وسلم د صحابو رضي الله عنهم د مخونو رنګ

ثُمَّ قَالَ وَيْحَكَ إِنَّهُ لَا يُسْتَشْفَعُ بِاللهِ

بدل شو بيا حضور صلی الله عليه وسلم وفرمايل ای سړيه ! په تا افسوس دی الله ! چا ته شفيع نشي مقرر کېدی

عَلٰى أَحَدٍ شَأْنُ اللهِ أَعْظَمُ مِنْ ذٰلِكَ وَيْحَكَ

او نه هغه وسيله جوړيدی شي په تا آفسوس تا ته معلومه نه ده چې د الله ! عظمت او جلالت څه دی حقيقت دا دی

أَتَدْرِيْ مَا اللهُ إِنَّ عَرْشَهُ عَلٰى سَمٰوَاتِهِ لَهٰكَذَا وَقَالَ بِأَصَابِعِهِ

چې د هغه عرش د هغه آسمانونه داسې راګير کړي دي په دې ويلو سره ئې د خپلې ګوتې د بل لاس د تلي د پاسه

مِثْلَ الْقُبَّةِ عَلَيْهِ وَإِنَّهُ لَيَئِطُّ بِهٖ

د قبې په صورت کې و خودلو د غه شان د الله ! عرش د ومره وسيع او عريض کېدو باوجود داسې چرچر کوي

| أَطِيْطَ الرَّحْلِ بِالرَّاكِبِ. رَوَاهُ أَبُوْ دَاوُدَ. [۱] |
|---|
| ځرنګه چې د اوښ پالان کته یا د آس زین د سور کس لاندي چرچر کوي. [ابو داؤد] |

**توضیح**: جهدت الانفس: یعنې انسانان د خشک سالۍ د وجې نه هلاک کیږي.

**نهکت الاموال**: یعنې مال او ځاروي تباه کیږي. **نستشفع بالله علیک**: یعنې الله تعالی ستا په حضور کې شفیع ګرځوو چې ته داسې وکړې، په دې جمله کې چونکې د الله تعالی د شان عالی بی ادبی وه په دغه وجه حضور ﷺ خفه شو او بار بار یې سبحان الله مکرر کړه او د الله تعالی تقدس یې بیان کړلو بیا د دېنه وروسته حضور ﷺ د الله تعالی ډیر لوی عظمت بیان کړلو.

**ماالله**: یعنې پوهیږم هم چې د الله تعالی شان او عظمت څومره لوی دی؟

**ان عرشه**: یعنې د الله تعالی عرش په ټولو اسمانونو باندې داسې محیط دی لکه څنګه چې یوه خیمه په کوم شي باندې محیط وي.

**هکذا**: حضور ﷺ په ګوتو سره د هغې خیمې او د هغې د احاطې مشاهداتی صورت داسې بیان کړلو چې مثلا د یو لاس تلی لاندې وي او د بل لاس ګوتې د ګنبد په شکل کې په هغه باندې د پاسه محیط وي او ټول تلی یې په احاطه کې اخیستي وي.

**لیئط**: أط یئط أطا چنګاري ته وایي، نوې کجاوه یا نوې کټ او پالنګ باندې کیناستلو سره دغه رنګ آواز هغه وخت راوځي چې کله د کیناستونکي وزن ډیر زیات وي، دلته حضور اکرم ﷺ اول د عرش وسعت او عظمت بیان کړلو او د دېنه وروسته یې د هغه عجز او تنګي او کمزوري بیان کړله چې د الله تعالی د عظمت په مخ کې د هغه نه د چنګهاري آواز وځي، دا ټول متشابهات دي، د سلف صالحینو عقیده دا ده چې: مایلیق بشانه، یعنې کوم چې د الله تعالی اوچت شان وي زمونږ پر هغه باندې ایمان دی.

## د عرش پورته کوونکو فرشتو جسامت

| ﴿۳۰﴾ وَعَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللهِ عَنْ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ |
|---|
| او حضرت جابر ابن عبد الله رضي الله عنه د رسول الله ﷺ نه روایت کوي چې رسول کریم ﷺ وفرمایل |

---

[۱] اخرجه ابوداود ۵/۹۴ رقم الحدیث ۴۷۲۶ والنسائي ۳/۱۶ رقم الحدیث ۱۵۲۸ واحمد في المسند ۳/۲۵۶.

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| أُذِنَ | لِيْ | أَنْ | أُحَدِّثَ | عَنْ | مَلَكٍ | مِنْ | مَلَائِكَةِ اللهِ |

ماته د الله ! د طرف نه دا اجازه حاصل شوې ده چې زه د الله ! د فرشتو نه د يوې فرشتې حال بيان کړم

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| مِنْ | حَمَلَةِ | الْعَرْشِ | إِنَّ | مَا | بَيْنَ | شَحْمَةِ | أُذُنِهِ | إِلٰى عَاتِقِهِ |

کومو چې عرش پورته کړی دی د هغه فرشتې د غوږ د نرمۍ نه د هغه د اوږې پورې درمياني

مَسِيْرَةُ سَبْعِمِائَةِ عَامٍ. رَوَاهُ أَبُوْ دَاوُدَ. [1]

فاصله د اووه سوه کاله د مسافت برابر ده . ابو داود

## ديدار الهي او حضرت جبريل عَلَيْهِ السَّلَامُ

﴿۳۱﴾ وَعَنْ زُرَارَةَ بْنِ أَوْفٰى أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لِجِبْرَئِيْلَ

او حضرت زراره ابن اوفی نه روايت دی چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د حضرت جبريل) نه پوښتنه وکړه آيا

هَلْ رَأَيْتَ رَبَّكَ فَانْتَفَضَ جِبْرَئِيْلُ وَقَالَ يَا مُحَمَّدُ إِنَّ بَيْنِيْ وَبَيْنَهُ

تا خپل پروردګار ليدلی دی؟ حضرت جبريل په دې اوريدو سره په رپيدو شو بيا يې وويل ای محمد !زما او د الله په مينځ کې

سَبْعِيْنَ حِجَابًا مِنْ نُوْرٍ لَوْ دَنَوْتُ مِنْ بَعْضِهَا لَاحْتَرَقْتُ

د نور اويا پردې دي که زه هغه پردو نه يوې پردې ته نزدې يوه ګوته برابر هم ورمخکې سم نو وبه سوزم په مصابيح کې

هٰكَذَا فِي الْمَصَابِيْحِ [2] وَرَوَاهُ أَبُوْ نُعَيْمٍ فِي الْحِلْيَةِ

روايت دغه شان دی البته ابو نعيم خپل کتاب حليه کې دا روايت د حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه نقل کړی دی او کيدې شي چې

عَنْ أَنَسٍ إِلَّا أَنَّهُ لَمْ يَذْكُرْ فَانْتَفَضَ جِبْرِيْلُ. [3]

حضرت زراره هم د انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه نقل کړی وي خو د ابو نعيم نقل کړه روايت کې فانتفض د حضرت جبريل) د رپيدو الفاظ نشته.

**توضيح**: سبعين حجابا: دا عدد د تکثير بيانولو لپاره دی د تحديد او تعيين لپاره نه دی ، د عدد انتخاب هم د شارع په صحيح ليدلو باندې دی . په يو روايت کې اويا زره پردو ذکر دی ، دا خبره ياد

---

(۱) اخرجه أبوداود في السنن ۵/۱۹۶ رقم الحديث ۴۷۲۷

(۲) اخرجه مصابيح السنة ۴/۳۰ رقم الحديث ۴۴۵۷

(۳) اخرجه أبونعيم في الحلية .

ساتل پکار دي چې دغه پردې د نور دي چې د کتونکو لپاره حجاب او مانع دی د الله تعالی لپاره حجاب او مانع نه دي، ځکه چې محجوب مغلوب وي الله تعالی مغلوب نه دی نو محجوب نه دی بلکه الله تعالی غالب دی نو حاجب دی.

## حضرت اسرافیل عَلَیۡہِ السَّلَامُ چې د کوم وخت نه پیدا دی دهغه وخت نه تیار ولاړ دی

| |
|---|
| ﴿۳۲﴾وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ اللهَ خَلَقَ إِسْرَافِيْلَ |
| او حضرت ابن عباس ؄ وايي چې رسول الله صَلَّی اللہُ عَلَیۡہِ وَسَلَّمَ وفرمايل الله! چې كوم وخت اسرافيل عَلَیۡہِ السَّلَامُ |
| مُنْذُ يَوْمٍ خَلَقَهُ صَافًّا قَدَمَيْهِ لَا يَرْفَعُ بَصَرَهُ |
| پيدا كړه هغه د هغه وخت نه خپلې دواړه خپې صف بسته كړي بالكل تيار ولاړ دی نظر نه پورته كوي |
| بَيْنَهُ وَبَيْنَ الرَّبِّ تَبَارَكَ وَتَعَالٰى سَبْعُوْنَ نُوْرًا مَا مِنْهَا مِنْ نُوْرٍ |
| د هغه او بزرگ او برتر پروردگار په مينځ كې د نور اويا پردې حائلې دي كه اسرافيل عَلَیۡہِ السَّلَامُ بفرض محال د هغه نور د پردو |
| يَدْنُوْ مِنْهُ إِلَّا احْتَرَقَ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَصَحَّحَهُ.[1] |
| نه يوې پردې ته نزدې شي نو وبه سوزي دا روايت ترمذي نقل كړى دی او ويلي يي دي چې دا حديث صحيح دی. |

**توضيح :صافًّا قدميه:** يعنې د كله نه چې حضرت اسرافيل عَلَیۡہِ السَّلَامُ پيدا شوی دی د هغه وخت نه يې دواړه پښې صف بسته كړي او ولاړ دی ، آخوا ديخوا نه گوري بلكه په صور باندې يې نظر لګولی دی چې كله به د الله تعالی له طرفنه د صور پوك كولو حكم كيږي او هغه په دې باندې عمل وكړي ، ددې حديث نه يوه خبره دا معلومه شوه چې په ملائكو كې څومره لوی اطاعت دی ، دويمه خبره دا معلومه شوه چې د قيامت قائميدلو لمحه د الله تعالی نه علاوه د ټول مخلوق څخه څومره پټه ساتلې شوې ده ، دريمه خبره دا معلومه شوه چې د الله تعالی د انواراتو او تجلياتو قاهرو خواته مقرب ملائكه هم نشي تللی .

## د فرشتو په مقابل كې د انسان قدر او قيمت

| |
|---|
| ﴿۳۳﴾وَعَنْ جَابِرٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَمَّا خَلَقَ اللهُ آدَمَ |
| او د حضرت جابر ؄ نه روايت دی چې رسول الله صَلَّی اللہُ عَلَیۡہِ وَسَلَّمَ وفرمايل هركله چې الله ! آدم او د هغه |

[1] اخرجه البيهقي ضمن حديث طويل في شعب الايمان ۱/۱۷۶ رقم الحديث ۱۵۷.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَذُرِّيَّتَهُ | قَالَتِ | الْمَلَائِكَةُ | يَا | رَبِّ | خَلَقْتَهُمْ |
| اولاد پیدا کړل نو فرشتو عرض وکړو ای ربه! تاخوداسې مخلوق پیدا کړه چې خوري اوڅکي او | | | | | |
| يَأْكُلُوْنَ | وَيَشْرَبُوْنَ | وَيَنْكِحُوْنَ | وَيَرْكَبُوْنَ | فَاجْعَلْ | لَهُمُ |
| واده کوزده کوي او قسم قسم سورلو باندې سورلی کوي نو څمونږ درخواست دی چې د دنیا نعمتونه | | | | | |
| الدُّنْيَا وَلَنَا | الْآخِرَةَ | قَالَ | اللهُ | تَعَالٰى لَا | أَجْعَلُ مَنْ |
| دې مخلوق ته ورکړه او د آخرت ټول نعمتونه مونږ ته راکړه الله ! ورته وفرمايل کوم مخلوق چې | | | | | |
| خَلَقْتُهُ | بِيَدَيَّ | وَنَفَخْتُ | فِيْهِ | مِنْ رُّوْحِيْ | كَمَنْ قُلْتُ |
| ما په خپل لاس سره پیدا کی او په هغه کې مي خپل روح پیدا کړی دی هغه د هغه مخلوق پشان نه | | | | | |
| لَهُ | كُنْ | فَكَانَ . | رَوَاهُ | الْبَيْهَقِيُّ فِيْ | شُعَبِ الْإِيْمَانِ.[1] |
| دی کوم ته چې ما کُن وویل نو هغه پیدا شو دا روایت بیهقي په شعب الایمان کې نقل کړی دی. | | | | | |

**توضیح** : **قالت الملائکة:** ملائکو وویل چې په دنیا کې انسانانو مزې وکړلې ، په دغه وجه دې د دوی لپاره دنیا مختص کړی شي او زمونږ لپاره دي آخرت مختص کړی شي تر څو مونږ په جدا جهان کې د دغو نعمتونو نه خوند حاصل کړو .

**قال الله:** الله تعالی ملائکو ته په جواب کې وفرمايل چې زه داسې نه کوم ، انسان ما په خپلو لاسونو باندې جوړ کړی د هغه په تخلیق کې څو مرحلې تیرې شوې دي ، ډیر محنتونه شوي او تاسې مې صرف په لفظ د (کن) سره پیدا کړي یاستئ لهذا تاسې دواړه برابرېدلی نه شئ . ددې حدیث نه د بني آدم لوی فضیلت ثابتیږي په دغه وجه ده ته اشرف المخلوقات ویلی شوی دی . چونکې ملائکې یو معصوم مخلوق دی هغوی ته د دوزخ د سزا هیڅ خطره نشته ، ددې په مقابله کې د انسان بیچاره نه د دوزخ ډکول هم دي. انسان په امور تکلیفو اوامرو او نواهیو باندې د عمل کولو څومره مکلف دی . لهذا د **الغنم بالغرم والخراج بالضمان** د اصل لاندې د انسان مقام د ملائکو نه په هر حال کې څانته دی . د جمهورو مسلک دا دی چې عام مسلمان د عام عامې فرشتې نه افضل دی او خاص مسلمان د خاص ملائکي نه افضل دی ، د عام مسلمان نه مراد د کامل درجې مسلمان دی لکه

---

خلفاء راشدين، صحابو کرام، علماء او اولياء، هر کس او ناکس د ملائکو نه افضل نه دی، او د خاص مسلمان نه مراد انبياء کرام عَلَيْهِمُ السَّلَامُ دي او د خاص ملائکو نه جبرئيل، ميکائيل، اسرافيل او عزرائيل وغيره عَلَيْهِمُ السَّلَامُ مراد دي، په راتلونکې حديث کې نور تفصيل راځي.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## فرشتو باندې د انسان فضيلت

| |
|---|
| ﴿۳۴﴾ عَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَلْمُؤْمِنُ |
| او حضرت ابوهريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې رسول کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل د کاملې درجې مؤمن يعني انبياء |
| أَكْرَمُ عَلَى اللهِ مِنْ بَعْضِ مَلَائِكَتِهِ. رَوَاهُ ابْنُ مَاجَةَ.[1] |
| او اولياء د الله ! په نزد د هغه د بعضو فرشتو نه افضل او برتر دی. [ابن ماجه] |

**توضيح**: **المؤمن اکرم**: د مؤمن نه د کاملې درجې عام مؤمنان مراد دي او د بعضو ملائکو نه عام ملائکې مراد دي، شيخ محی السنة د ﴿وَلَقَدْ كَرَّمْنَا بَنِيْ آدَمَ﴾ لاندې ليکلي دي چې بهتره دا ده چې داسې وويلی شي چې عام مؤمنان د عامو ملائکو نه افضل دي او خاص مؤمنان د خاصو ملائکو نه افضل دي، علامه طيبی رَحِمَهُ اللهُ وايي چې د مؤمنان نه عام مؤمنان مراد دي او د ملائکو نه هم عام ملائکې مراد دي. ملاعلي قاري رَحِمَهُ اللهُ د دې ټولو اقوالو د نقل کولو نه بعد خپله فيصله دا رنګه اورولې ده چې: **ولايخفی ان المراد بخواص المؤمنان الرسل والانبياء و بخواص الملائکة نحو جبريل و ميکائيل و اسرافيل و بعوام المؤمنان الکمل من الاولياء کالخلفاء وسائر العلماء و بعوام الملائکة سائرهم و هذا التفصيل اولی من اجمال بعضهم.** (مرقات، ج۹ ص۷۲۵)

## کوم کوم مخلوق په کومه ورځ پيدا شوی دی

| |
|---|
| ﴿۳۵﴾ وَعَنْهُ قَالَ اَخَذَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِيَدِيْ فَقَالَ |
| او حضرت ابوهريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي يوه ورځ حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زما لاس په نيولو سره راته وفرمايل چې |
| خَلَقَ اللهُ التُّرْبَةَ يَوْمَ السَّبْتِ وَخَلَقَ فِيْهَا الْجِبَالَ يَوْمَ الْأَحَدِ |
| الله ! خاوره د هفتې په ورځ (يعني د شنبې په ورځ) پيدا کړه او په ځمکه کې يې غرونه د اتوار يعني |

[1] اخرجه ابن ماجه ۱۳۰۱/۲ رقم الحديث ۳۹۴۷.

وَخَلَقَ الشَّجَرَ يَوْمَ الاِثْنَيْنِ وَخَلَقَ الْمَكْرُوْهَ يَوْمَ الثُّلَاثَاءِ

يکشنبې په ورځ پيدا کړل ونې يې د پير يعني دوشنبې په ورځ پيدا کړې بدي او خراب شيان يې د سه شنبې

وَخَلَقَ النُّوْرَ يَوْمَ الْأَرْبِعَاءِ وَبَثَّ فِيْهَا الدَّوَابَّ

په ورځ پيدا کړل نور او رڼا يې د چهار شنبې په ورځ پيدا کړل حيوانات يې په ځمکه کې

يَوْمَ الْخَمِيْسِ وَخَلَقَ آدَمَ بَعْدَ الْعَصْرِ مِنْ يَّوْمِ الْجُمُعَةِ فِي آخِرِ الْخَلْقِ

د زيارت يعني په پنجشنبه پيدا کړل او آدم يې د جمعې په ورځ د ماځيګر نه وروسته پيدا کړه او دا

وَآخِرِ سَاعَةٍ مِنَ النَّهَارِ فِيْمَا بَيْنَ الْعَصْرِ إِلَى اللَّيْلِ . رَوَاهُ مُسْلِمٌ.[1]

اآخري پيدائش يې د ورځې بالکل په آخري حصه کې د مازيګر نه روسته شپې پورې په مينځ کې په عمل کې راوستى.[مسلم]

**توضيح**: **يوم السبت**: په دې حديث کې په صريح عبارت سره د کائناتو د تخليق تفصيل بيان شوى دى چې کوم مخلوق په کومه ورځ پيدا شوى دى ، دلته دا سوال دى چې د کائناتو د تخليق ابتداء د يکشنبې د ورځې شخه شوې ده او انتهاء يې په جمعې باندې شوى ده حالانکه په دې حديث کې يې د هفتې ورځ د تخليق اوله ورځ ګرځولې ده . ددې جواب دا دى چې د هفتې نه مراد د هغې هغه آخرى حصه مراد ده چې اصولى طور باندې د يکشنبې شپه جوړيږي نو په حقيقت کې د کائناتو ابتداء د يکشنبې د ورځې نه شوه او په جمعه باندې يې اختتام وشو .

## د مخلوقاتو عجائب

﴿۳۶﴾ وعَنْهُ قَالَ بَيْنَمَا نَبِيُّ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جَالِسٌ وَّأَصحابو إِذْ أَتَى

حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ او صحابه کرام ناست وو چې دوريځې يوه

عَلَيْهِمْ سَحَابٌ فقَالَ النَّبِيُّ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هَلْ

تکره تيره شوه حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د وريځې هغه تکړې ته اشاره کولو سره صحابو نه پوښتنه وکړه

تَدْرُوْنَ مَا هٰذَا قَالُوْا اَللّٰهُ وَرَسُوْلُهٗ أَعْلَمُ

تاسو پيژنئ چې دا څه شى دى؟ صحابو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ د خپل عادت مطابق جواب ورکړو الله او د هغه رسول ښه پوهيږي

قَالَ هٰذِهٖ الْعَنَانُ هٰذِهٖ رَوَايَا الْأَرْضِ

حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل دا عَنَان يعني وريځ ده او دا وريځ د ځمکې روايا (اوبه کونکې) ده چې

يَسُوْقُهَا اللّٰهُ إِلٰى قَوْمٍ لَايَشْكُرُوْنَهُ وَلَايَدْعُوْنَهُ ثُمَّ قَالَ هَلْ

الله! يې هغه خلقو طرف ته شړي چې نه يې شکر اداء کوي او نه يې يادوي بيايې وفرمايل پوهيږئ

تَدْرُوْنَ مَا فَوْقَكُمْ قَالُوْا اَللّٰهُ وَرَسُوْلُهُ

چې ستاسو نه دپاسه چې کوم آسمان دی هغه څه شی دی صحابو رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمْ جواب ورکړو الله! او د هغه رسول

أَعْلَمُ قَالَ فَإِنَّهَا الرَّقِيْعُ سَقْفٌ مَّحْفُوْظٌ

ښه پوهيږي حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل ستاسو نه بره ځيز رقيع دی چې يو محفوظ چَت او نه غورځيدونکی

وَمَوْجٌ مَّكْفُوْفٌ ثُمَّ قَالَ هَلْ تَدْرُوْنَ مَا بَيْنَكُمْ وَبَيْنَهَا قَالُوْا

موج دی بيايې وفرمايل پوهيږئ چې ستاسو او د آسمان په مينځ کې څومره فاصله ده؟ صحابو رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمْ

اَللّٰهُ وَرَسُوْلُهُ أَعْلَمُ قَالَ بَيْنَكُمْ وَبَيْنَهَا

جواب ورکړه الله! او د هغه رسول ښه پوهيږي حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې ستاسي او د آسمان په مينځ کې

خَمْسِمِائَةِ عَامٍ ثُمَّ قَالَ هَلْ تَدْرُوْنَ مَا فَوْقَ ذٰلِكَ

د پنځه سوه کاله مسافت په اندازه فاصله ده بيايې وفرمايل خبر يې چې د آسمان دپاسه څه دي

قَالُوْا اَللّٰهُ وَرَسُوْلُهُ أَعْلَمُ قَالَ

صحابو رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمْ جواب ورکړو الله! او د هغه رسول ښه پوهيږي حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل د دي

سَمَاءَ انِ بُعْدُ مَا بَيْنَهُمَا خَمْسِمِائَةِ سَنَةٍ

آسمان نه علاوه بيا بره او لاندې دوه آسمانونه دي او د هغه دوو آسمانونو په مينځ کې هم د پنځه سوه کالو مسافت دی

ثُمَّ قَالَ كَذٰلِكَ حَتّٰى عَدَّ سَبْعَ سَمَاوَاتٍ

دغه شان حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يو با[illegible] پسې د هر آسمان ذکر وکړو تر دې پورې چې داوو آسمانونو باره کې يې وښودل چې

مَّا بَيْنَ كُلِّ سَمَائَيْنِ مَا بَيْنَ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ

په هغو کې د هر آسمان نه دوهم آسمان پورې فاصله هغه ده کومه چې د ځمکې او آسمان په مينځ کې ده يعني د پنځه سوه کالو

ثُمَّ قَالَ هَلْ تَدْرُوْنَ مَا فَوْقَ ذٰلِكَ

د مسافت په قدر دي نه روسته يي وفرمايل معلومه ده درته چې د آخري آسمان دپاسه څه دي؟

قَالُوا اَللّٰهُ وَرَسُوْلُهُ أَعْلَمُ قَالَ إِنَّ فَوْقَ ذٰلِكَ

صحابو رضي الله عنهم جواب ورکړو الله !او د هغه رسول ښه پوهيږي حضور صلى الله عليه وسلم وفرمايل د دي اووم

الْعَرْشُ وَبَيْنَهُ وَبَيْنَ السَّمَاءِ بُعْدُ مَا بَيْنَ

او آخري آسمان دپاسه عرش دی او د هغه عرش او د هغه نه دلاندي آسمان په مينځ کې هغه فاصله ده

السَّمَائَيْنِ ثُمَّ قَالَ هَلْ تَدْرُوْنَ مَا الَّذِيْ تَحْتَكُمْ قَالُوْا

کومه چې د دوو آسمانونو په مينځ کې ده بيايي وفرمايل پوهيږئ ستاسو لاندي څه دي صحابو رضي الله عنهم

اَللّٰهُ وَرَسُوْلُهُ أَعْلَمُ قَالَ إِنَّهَا الْأَرْضُ

عرض وکړو الله !او د هغه رسول ښه پوهيږي حضور صلى الله عليه وسلم وفرمايل د ټولو دپاسه ځمکه ده

ثُمَّ قَالَ هَلْ تَدْرُوْنَ مَا الَّذِيْ تَحْتَ ذٰلِكَ قَالُوْا اَللّٰهُ وَرَسُوْلُهُ أَعْلَمُ

بيايي وفرمايل پوهيږئ د هغه لاندي څه دی صحابو رضي الله عنهم عرض وکړو الله !او دهغه رسول ښه پوهيږي

قَالَ إِنَّ تَحْتَهَا أَرْضًا أُخْرٰى بَيْنَهُمَا

حضور صلى الله عليه وسلم وفرمايل د هغې لاندي يوه بله ځمکه ده او د دې دواړو ځمکو په مينځ کې د

مَسِيْرَةُ خَمْسِمِائَةِ سَنَةٍ حَتّٰى عَدَّ سَبْعَ أَرَضِيْنَ

پنځه سوه کالو د مسافت په قدر فاصله ده دغه شان حضور صلى الله عليه وسلم اووه ځمکې وشميرلې او وې

بَيْنَ كُلِّ أَرْضِيْنِ مَسِيْرَةُ خَمْسِمِائَةِ سَنَةٍ

ښودله چې په دې کې د هرې ځمکې نه دوهمې ځمکې پورې درميانه فاصله د پنځه سوه کالو د

ثُمَّ قَالَ وَالَّذِيْ نَفْسُ مُحَمَّدٍ بِيَدِهِ أَنَّكُمْ

مسافت ده بيايي وفرمايل قسم دی په هغه ذات چې د هغه لاس کې د محمد ساه ده که تاسو د

دَلَّيْتُمْ بِحَبْلٍ إِلَى الْأَرْضِ السُّفْلٰى لَهَبَطَ

ټولو نه لاندي ځمکې ته رسۍ زوړنده کړئ نو په الله ! باندې به ورخکته شي دې نه وروسته

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| عَلَى | اللهِ | ثُمَّ | قَرَأَ | هُوَ الْأَوَّلُ |

حضور صلی الله علیه وسلم دا آیت وو ایه (هُوَ الْأَوَّلُ.....) یعني هغه الله اول (قدیم) دی چې د هغه د پاره هیڅ ابتداء

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وَالْآخِرُ | وَالظَّاهِرُ | وَالْبَاطِنُ | وَهُوَ | بِكُلِّ | شَيْءٍ | عَلِيمٌ. |

نشته او آخر باقي دی چې د هغه د پاره څه انتهاء او اختتام نشته او د ظاهر دی او باطن دی شیان پیژني

رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالتِّرْمِذِيُّ وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ قِرَاءَةُ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

دا روایت احمد رحمه الله او ترمذي رحمه الله نقل کړی دی او ترمذي رحمه الله ویلي دي چې د رسول الله صلی الله علیه وسلم

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| الْآيَةَ | تَدُلُّ عَلَى | أَنَّهُ | أَرَادَ | الْهَبْطَ | عَلَى | عِلْمِ اللهِ |

خپل ارشاد نه روسته دا آیت ویل په دې دلالت کوي چې دالله ! د پاسه د رسۍ د خکته کیدو نه مراد

| | | | |
|---|---|---|---|
| وَقُدْرَتِهِ | وَسُلْطَانِهِ | وَعِلْمُ اللهِ | وَقُدْرَتُهُ |

دا دی چې هغه رسۍ به د الله ! په علم ور خکته شي ځکه چې د هغه علم او د هغه قدرت او د هغه حکومت په هر

وَسُلْطَانُهُ فِي كُلِّ مَكَانٍ وَهُوَ عَلَى الْعَرْشِ كَمَا وَصَفَ نَفْسَهُ فِي كِتَابِهِ[1]

ځای کې دی او هغه بذات خود پر عرش باندې دی څرنګه چې خپله هغه په خپل کتاب کې خپل وصف بیان کړی دی.

**توضیح: العنان:** حضور صلی الله علیه وسلم د سحاب دویم نوم وښودلو چې العنان دی بیا هغه صلی الله علیه وسلم ددې کار وښودلو چې دا (**روایا الارض**) ده دا د راویة جمع ده دا هغې اوښې ته ویل کیږي چې د هغې په واسطه ځمکې ته اوبه ورکول کیږي، دې وریځې ته روایا الارض ځکه ویل کیږي چې دا هم د راویة اوښې پشان اوبه د یو ځای نه بل ځای ته وړي.

لایشکرونه: یعني دغه وریځ هغو خلکو ته هم اوبه منتقل کوي کوم چې د الله تعالی د نعمتونو شکریه نه اداء کوي بلکه داسې ناشکري یې کوي چې د اوبو نسبت غیر الله ته کوي. کله په شرک کې پریوتلو سره غیر الله ته آواز کوي، کله الله تعالی پریږدي د بتانو پسې منډې وهي. ددې معاصیو تقاضا خو دا وه چې په دوی باندې اوبه بندې شوې وی لیکن د الله تعالی دسترخوان عام دی، هغه رحمان دی او ربوبیت عامه او تربیت عامه د هغه په لاس کې دی، هغه رب العلمین دی په دغه وجه ټولو ته ډوډۍ ورکوي.

---

(۱) اخرجه أبوداود في السنن ۵/۹۳ رقم الحدیث ۴۷۲۳ والترمذي ۵/۳۷۶ رقم الحدیث ۳۲۹۸.

**الرقيع:** د دنيا د آسمان نوم رقيع دی او همدا محفوظ چت دی چې د غور ځيدلو نه محفوظ دی.

**موج مکفوف:** يعنې دغه آسمان يو زبردست موج دی مګر د غورځيدو نه محفوظ دی، د اوبو موج وهونکی سمندر دی ليکن اوبه نه بهيږي، بند او محفوظ دی، ګويا دا اسمان يو موج دی چې په هوا کې معلق (زوړند) دی.

لهبط علی الله: يعنې د انسان د اوسيدلو والا ځمکې نه علاوه لاندې شپږ ځمکې نورې هم دي چې همداسې يو په بل پسې دي چې کچيرې د پاسه نه کوم کس لاندې طرف ته رسی. وغورځوي نو هغه به سيده الله تعالی ته ورسيږي، مطلب دا دی چې لکه ځنګه چې پاس په آسمانونو کې د الله تعالی ذات موجود دی همدارنګه لاندې هم د الله تعالی حکم او د هغه علم دی، داسې نه ده چې پاس خو د الله تعالی حکم چليږي او لاندې په سفلياتو کې د کوم بل چا حکم نافذ وي چې د الله تعالی د اختيار نه بيرون وي. بعضې علماء وايي لکه ځنګه چې د حضور ﷺ پاس په آسمانونو کې معراج وشو همدارنګه لاندې په اوومه ځمکه کې په سمندر کې د حضرت يونس عَلَيْهِ السَّلَامُ معراج وشو. په قرآن کې همدغه عموم قدرت او شمول الوهيت ته په دې آيت کې اشاره ده ﴿وَهُوَ الَّذِي فِي السَّمَاءِ إِلَٰهٌ وَفِي الْأَرْضِ إِلَٰهٌ﴾.

## د حضرت آدم عَلَيْهِ السَّلَامُ قد

| |
|---|
| ﴿۳۷﴾وَعَنْهُ أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ كَانَ طُوْلُ آدَمَ |
| او حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې رسول کريم ﷺ وفرمايل د حضرت آدم عَلَيْهِ السَّلَامُ |
| سِتِّيْنَ ذِرَاعًا فِيْ سَبْعِ أَذْرُعٍ عَرْضًا. (۱) |
| قد شپيته لاسه اوږد او اوه لاسه پلن وو. |

## د انبياء کرامو عَلَيْهِمُ السَّلَامُ تعداد

| |
|---|
| ﴿۳۸﴾وَعَنْ أَبِيْ ذَرٍّ قَالَ قُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللهِ أَيُّ الْأَنْبِيَاءِ كَانَ أَوَّلَ |
| او حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي ما عرض وکړو يارسول الله! د ټولو نه مخکې نبي څوک دی؟ |

---

(۱) اخرجه احمد في المسند ۲/۵۳۵

| قَالَ آدَمُ قُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللهِ وَنَبِيٌّ كَانَ قَالَ نَعَمْ نَبِيٌّ |
|---|
| حضور صلی الله علیه وسلم و فرمایل حضرت آدم ما یا پوښتنه وکړه آیا حضرت آدم نبي وو؟ وې فرمائیل هو نبي وو |
| مُكَلَّمٌ قُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللهِ |
| هغه ته الله رب العلمین سره د خبرو کولو شرف حاصل شوی دی دي نه روسته ما پوښتنه وکړه یا رسول الله! |
| كَمِ الْمُرْسَلُوْنَ قَالَ ثَلَاثُمِائَةٍ |
| انبیاوو کې رسولان څومره تیر شوې دي؟ حضور صلی الله علیه وسلم و فرمایل کافي تعداد کې دري سوه |
| وَبِضْعَةَ عَشَرَ جَمًّا غَفِيْرًا وَفِيْ رِوَايَةٍ عَنْ أَبِيْ أُمَامَةَ |
| لس نه به څه زیات تعداد کې وي او په یوه روایت کې د ابو امامه تابعي رحمه الله نه دا الفاظ منقول دي چې |
| قَالَ أَبُوْ ذَرٍّ قُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللهِ كَمْ وَفَاءُ عِدَّةِ الْأَنْبِيَاءِ |
| حضرت ابو ذر رضی الله عنه وویل ما رسول الله صلی الله علیه وسلم ته عرض وکړو یا رسول الله! د ټولو انبیاؤ تعداد څومره دی؟ |
| قَالَ مِائَةُ أَلْفٍ وَأَرْبَعَةٌ وَعِشْرُوْنَ أَلْفًا اَلرُّسُلُ مِنْ ذٰلِكَ ثَلَاثُمِائَةٍ وَخَمْسَةَ عَشَرَ جَمًّا غَفِيْرًا. [1] |
| حضور صلی الله علیه وسلم وفرمایل یو لاک څلیریشت زره په دي کې رسولان دري سوه پنځلس دي چې کافي لوی تعداد دی. |

**توضیح : مأة الف:** د انبیاء کرامو په تعداد کې د احتیاط نه کار اخیستل ضروری دي ، د بعضو حضراتو په نبی او ولی کیدلو کې اختلاف راغلی نو د حتمی عدد په ذکر کولو کې خطره ده چې چیرته کوم غیرنبی د انبیاو په صف کې داخل نشي او کوم واقعی نبی خارج نشي په دغه وجه د انبیاؤ د تعداد سره د کم او زیات لفظ لګول پکار دي مثلا یو لک او څلورویشت زره کم او زیات ویل پکار دي ، حضرت خضر او ذوالقرنین او د لقمان حکیم په نبی کیدو او نه کیدو کې اختلاف دی ، نو ځکه احتیاط ضروری دی .

## اوریدل دلیدلو په شان نه وي

| ﴿۳۹﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
|---|
| او حضرت ابن عباس رضی الله عنه وایي چې رسول کریم صلی الله علیه وسلم و فرمایل د څه شي باره کې اوریدل هغه په |

---

[1] اخرجه احمد في المسند ۵/۱۷۸

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| لَيْسَ | الْخَبَرُ | كَالْمُعَايَنَةِ | إِنَّ | اللهَ | تَعَالَى | أَخْبَرَ | مُوْسٰى | بِمَا |
| ستر کو سره د ليدو برابر کيدي نشي الله ! حضرت موسٰى عَلَيْهِ السَّلَامُ ته د هغه د قوم د هغه عمل باره کې | | | | | | | | |
| صَنَعَ | قَوْمُهُ | فِي | الْعِجْلِ | فَلَمْ | يُلْقِ | الْأَلْوَاحَ | | |
| خبر ورکړه چې هغوئ د سخي د عبادت په صورت کې کړې وو نو هغه د قهر نه تختي ونه غورځولي | | | | | | | | |
| فَلَمَّا | عَايَنَ | مَا | صَنَعُوْا | أَلْقَى | الْأَلْوَاحَ | | | |
| ليکن کوم وخت چې خپل قوم ته راغلي او خپلو ستر کو سره يې د قوم هغه عمل اوليدلو نو دومره | | | | | | | | |
| فَانْكَسَرَتْ. | رَوَى | الْأَحَادِيْثَ | الثَّلَاثَةَ | أَحْمَدُ.[1] | | | | |
| غوسه شو چې تختې يې وغورځولي او هغه ماتې شوې دا دري واړه حديثونه احمد نقل کړي دي | | | | | | | | |

**توضيح** : **ليس الخبر كالمعاينة**: يعنې په خپلو ستر کو سره د ليدلو نه پس يو طبعي اثر پيدا کيږي او که نه د رښتيا په اعتبار سره د الله تعالى د خبر ورکولو کې څه شبه پاتې کيدلې شي مګر د خبر په وخت کې په موسى عَلَيْهِ السَّلَامُ باندې هغه اثر ونشو کوم اثر چې په خپلو ستر کو د ليدلو نه بعد وشو،

نو ځکه ويلې شوي دي چې (**شنيده کې بود مانند ديده**) حضرت موسى عَلَيْهِ السَّلَامُ د تحقير او تذليل او توهين لپاره تختې ونه غورځولې بلکه د الله تعالى په دين باندې د غيرت په بنياد يې په ځمکه باندې په زور سره کيښودلې چې د هغې په وجه ماتې شولې، حضرت موسى عَلَيْهِ السَّلَامُ کوه طور ته د معراج لپاره تللى وو هلته هغه ته په تختو باندې ليکل شوې تورات ورکړې شو او همالته الله ده ته وويل چې ستا قوم سامرى د سخي په عبادت پرستې کې ګمراه کړى دى ، هلته دومره غوسه ورته رانغله مګر چې کله يې په خپله مشاهده وکړه نو د غوسې په شدت کې يې تورات په زور سره په ځمکه باندې کيښود چې د دې په وجه د تورات تختې ماتې شوې.



[1] اخرجه احمد في المسند ۱/۲۷۱.

# كتاب المناقب

علامه طيبى رَحِمَهُ اللَّهُ د كتاب الفتن نه بعد موقع په موقع د كتاب د عنوان سره څو مباحث ذكر كړي دي او دلته هغه د **كتاب الفضائل والشمائل** عنوان ايخى دى ، صاحب د مشكاة دلته د باب فضائل سيدالمرسلين عنوان ايخى دى ، ما په **كتاب الفتن** كې ديته اشاره كړې وه چې بعضو شارحينو اعتراض كړى دى چې صاحب د مشكوة د **كتاب الفتن** د عنوان لاندې فضائل او مناقب څنګه درج كړي دي؟ هلته دا جواب وركړى شوى وو چې تر كومه ځايه چې د فتنو احاديث وي تر هغه ځايه **كتاب الفتن** شامل دى مخكې فتن نشته بلكه د هغې نه بعد فضائل شروع دي ، هلته دا هم ليكل شوي دي چې د بعضو شارحينو وينا ده چې دلته د **كتاب الفتن** عنوان وو ليكن په كاتبينو كې كوم يوه دلته د **كتاب الفضائل** په ځاى **باب الفضائل** ليكلى دى . په هر حال زه دلته د **كتاب المناقب** عنوان ږدم ځكه چې د حديثو په ټولو كتابونو كې كه هغه سنن وي يا جوامع وي د **كتاب المناقب** عنوان ايښودلى شوى دى او په آينده ټولو بابونو كې د مناقب لفظ په خپله صاحب د مشكاة غوره كړى دى نو ان شاء الله د **المناقب** عنوان به بې ځايه نه وي بلكه په ځاى به وي ، خصوصا چې كله علامه طيبى رحمه الله د **كتاب الفضائل** لفظ اختيار كړى دى نو د **فضائل** لفظ په ځاى صرف مونږ ته د **المناقب** لفظ اضافه كولو زحمت پريوځي . الله تعالى دې ما په دې تصرف كې معاف كړي چې چيرته د بزرګانو په حق كې سوء ادب رانشي دلته ملا علي قاري رحمه الله هم په مرقات كې د **كتاب الفضائل** عنوان ايخى دى او بيا يې ليكلي دي چې اګرچې په اصل نسخو كې دغه عنوان نشته ليكن مونږ د احاديثو د كتابونو صحاح او سنن په نقش قدم او د ابوابو د مباحثو په پيش نظر سره داسې كړي دي .

**المناقب**: دا جمع ده د دې مفرد **منقبة** دى په اخلاق حميده او افعال مرضيه او اوصاف عاليه كماليه باندې د منقبت اطلاق كيږي ، دلته تر آخره پورې په ټولو احاديثو كې همدغه اوصاف بيانيږي ، د حضور اكرم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مناقبو نه واخله د خلفاء راشدينو او ټول صحابه او صحابيات ، اهل بيتو او عشره مبشرو او د مختلفو قبائلو او د دې امت تر مناقبو پورې ټول مناقب د دې كتاب المناقب لاندې راځي او ټوله معامله به آسانه شي .

# باب فَضَائِل سيد المرسلين صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

## د رسولانو د سردار محمد مصطفی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د فضائلو بیان

د کوم انسان په وس کې نشته چې د آنحضرت صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فضائل او مناقب او صفات حمیده کماحقه بیان کړی شي ! په کومه ژبه کې دا طاقت نشته چې د هغه صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ټول فضائل او اوصافو باندې احاطه وکړي ، خو صاحب د مشکوة د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د فضائلو سره متعلق یو څو احادیث ددې عنوان لاندې درج کړي دي ګویا دا د مشت نمونه خروار مصداق دي . کوم د الله والا شاعر صحیح نقشه پیش کړې ده او فرمایلي یې دي :

خدا در انتظار حمد ما نیست — محمد چشم بر راه ثنا نیست

خدا مدح آفرین مصطفیٰ بس — محمد حامد حمد خدا بس

محمد از تو مي خواهم خدا را — خدا یا از تو عشق مصطفیٰ را

د علماء کرامو په دې باندې اتفاق دی چې هغه صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سید البشر او سید ولد آدم دی ، د هغه صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه پس د حضرت ابراهیم خلیل الله مقام دی او بیا د حضرت موسی عَلَيْهِ السَّلَامُ مقام دی بیا علماؤ د حضرت عیسی عَلَيْهِ السَّلَامُ او بیا د حضرت نوح عَلَيْهِ السَّلَامُ درجه ښودلې ده ، دغه پنځه اولو العزم انبیاء کرام دي، د دوی نه وروسته د تعیین لپاره چا څه ویلي نه دي نو مونږ هم څه ویلی نشو .

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

## د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خانداني او نسبي فضل او شرف

| |
|---|
| ﴿۱﴾ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بُعِثْتُ مِنْ خَيْرِ قُرُوْنِ بَنِيْ اٰدَمَ |
| او ابوهریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي چې رسول کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل زه یو بل پسې د هرقرن د بني آدمو |
| قَرْنًا فَقَرْنًا حَتّٰى كُنْتُ مِنَ الْقَرْنِ الَّذِيْ كُنْتُ مِنْهُ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.[1] |
| په ښه طبقو کې منتقل کولی شوم تردې پورې چې زه دې موجوده قرن کې پیدا شوم [بخاري] |

**توضیح** : قرون: د قرن جمع ده ددې اطلاق په زماني باندې هم کیږي او د انسانانو په یوې طبقې باندې هم کیږي، په سلو کلونو ، شلویښتو کلونو او اتیا (۸۰) کلونو باندې هم د قرن اطلاق کیږي

---

[1] اخرجه البخاري في صحيحه ۶/۵۶۶ رقم الحديث ۳۵۵۷ واحمد في المسند ۲/۳۷۳ .

دلته د مختلفو زمانو مختلف طبقات مراد دي ، حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايي چې زه د بهترينو طبقو نه په تيريدلو راغلی يم ، په کومې طبقې کې چې زما آباء او اجداد وو هغه بهترينې طبقې وې چې د هغوی ذات او خانداني شرافت او طني عزت او عظمت ، تهذيب او پوهه او متانت ، قوت فيصله او جرأت او شجاعت مشهور او معروف وو ، زه او هغه خلک د معاشرې بهترين افراد شمارل کيدل . د علماؤ متفقه فيصله ده او په دې کې د هيچا کلام نشته چې په انبياء کرامو کې د ټولو نه افضل د حضور اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذات بابرکات دی ، بيا حضرت ابراهيم عَلَيْهِ السَّلَامُ افضل دی بيا د حضرت موسی عَلَيْهِ السَّلَامُ مقام دی د دينه وروسته په تفصيل کې هيڅ تفصيل نشته البته اولو العزم انبياء کرام پنځه دي :(۱) حضرت محمد مصطفی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ (۲) حضرت ابراهيم عَلَيْهِ السَّلَامُ (۳) حضرت نوح عَلَيْهِ السَّلَامُ (۴) حضرت موسی عَلَيْهِ السَّلَامُ (۵) او حضرت عيسی عَلَيْهِ السَّلَامُ

| |
|---|
| ﴿۲﴾ وَعَنْ وَاثِلَةَ بْنِ الْأَسْقَعِ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| او حضرت واثله ابن اسقع وايي ما د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه واوريدل حقيقت دا دی چې الله ! |
| يَقُوْلُ إِنَّ اللهَ اصْطَفٰى كِنَانَةَ مِنْ وُّلْدِ إِسْمَاعِيْلَ وَاصْطَفٰى قُرَيْشًا |
| د حضرت اسمٰعيل ) د اولاد نه کنانه ځنې کړل او ددې کنانه د اولاد نه يې قريش منتخب کړل |
| مِنْ كِنَانَةَ وَاصْطَفٰى مِنْ قُرَيْشٍ بَنِيْ هَاشِمٍ وَاصْطَفَانِيْ مِنْ بَنِيْ هَاشِمٍ. رَوَاهُ مُسْلِمٌ. |
| او د قريشو د اولاد نه يې بني هاشم ځنې کړل او بني هاشمو کې يې زه ځنې کړم. [مسلم] |
| وَفِيْ رِوَايَةِ التِّرْمِذِيِّ إِنَّ اللهَ اصْطَفٰى مِنْ وُّلْدِ إِبْرَاهِيْمَ |
| ترمذي رحمه الله په يوه روايت کې دا الفاظ هم دي چې الله ! د ابراهيم عَلَيْهِ السَّلَامُ په اولاد کې |
| إِسْمَاعِيْلَ وَاصْطَفٰى مِنْ وُّلْدِ إِسْمَاعِيْلَ بَنِيْ كِنَانَةَ.[1] |
| اسماعيل عَلَيْهِ السَّلَامُ انتخاب کړه او د اسمٰعيل اولاد کې يې بني کنانه انتخاب کړه . |

**توضيح** : ملاعلی قاري رحمه الله د حضور اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نسب نامه تر عدنان پورې ليکلې ده او فرمايلي يې دي چې د دينه زيات بيانول صحيح نه دي (يعني په دې کې اختلاف دی) لکه هغه فرمايي :

---

[1] أخرجه مسلم ۴/۱۷۸۲ رقم الحديث (۱. ۲۲۷۶) وأخرجه الترمذي ۵/۵۴۴ رقم الحديث ۳۶۰۵.

**هو ابو القاسم محمد بن عبدالله بن عبدالمطلب بن هاشم بن عبد مناف بن قصي بن كلاب بن مرة بن كعب بن لؤي بن غالب بن فهر بن مالك بن نضر بن كنانة بن خزيمة بن مدركة بن الياس بن مضر بن نزار بن معد بن عدنان ولايصح حفظ النسب فوق عدنان . . . (مرقات)**

**من ولد ابراهيم**: د ابراهیم عَلَیْهِ السَّلَام دوه ځامن وو یو حضرت اسحاق عَلَیْهِ السَّلَام وو د بنی اسرائیلو د انبیاؤ سلسله دده نه جاری شوې ده ، دویم حضرت اسماعیل عَلَیْهِ السَّلَام وو ، حضور اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دده په اولاد کې راغلی دی او صرف حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ درّ یتیم نبی وو ، الله تعالی د حضرت اسماعیل عَلَیْهِ السَّلَام په اولاد کې کنانه منتخب کړلو او د کنانه په اولاد کې یې قریش غوره کړل او د قریشو په اولاد کې یې بنوهاشم غوره کړل او د بنوهاشم نه یې محمد صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ غوره کړلو او هغه یې سید الاولین والآخرین وګرځولو .

## د قیامت په ورځ د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سرداري

| ﴿۳﴾ وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
|---|
| او ابوهریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې رسول کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل د قیامت په ورځ به زه د ټول اولاد |
| اَنَا سَيِّدُ وُلْدِ آدَمَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَأَوَّلُ مَنْ يَنْشَقُّ عَنْهُ |
| آدم سرداریم او د ټولو نه مخکې به د قبر نه زه را اوچتیږم او د ټولو نه مخکې به زه شفاعت کوم |
| الْقَبْرُ وَأَوَّلُ شَافِعٍ وَأَوَّلُ مُشَفَّعٍ . رَوَاهُ مُسْلِمٌ . (۱) |
| او د ټولو نه مخکې زما شفاعت به قبلیږي. [مسلم] |

**توضیح** : **سید**: سید هغه مشر ته ویل کیږي چې په ټولو صفات حمیدو کې یې په خپل قوم باندې سبقت کړی وي . **یوم القیامة**: دغه سرداری یې د قیامت په ورځ ځکه مقید کړه چې د کمال سرداری ظهور په انسانانو باندې هغه وخت راځي چې کله ټول انسانان په یو ځای جمع شي او هغوی به په قیامت کې جمع کیږي لهذا د سرداری تکمیل به په قیامت کې کیږي .

(۱) اخرجه مسلم في صحيحه ۴/۱۷۸۲ رقم الحديث (۲۲۷۸.۳) وأبوداود ۴/۵۴ رقم الحديث ۴۶۷۳.

## دپیغمبر علیه السلام دیو څو خصوصیاتو ذکر

| |
|---|
| ﴿۴﴾ وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَا أَكْثَرُ الْأَنْبِيَاءِ |
| انس رضي الله عنه وايي چې رسول کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل د قيامت په ورځ به د پيغمبرانو نه چې د |
| تَبَعًا يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَ أَنَا أَوَّلُ |
| کوم پيغمبر د منونکو تعداد د ټولو نه زيات وي هغه به زه يم او د جنت دريو ازه چې د ټولو نه مخکې |
| مَنْ يَقْرَعُ بَابَ الْجَنَّةِ . رَوَاهُ مُسْلِمٌ(۱) |
| کوم سړی ټکوي هغه به هم زه يم. [مسلم] |

**توضيح** : **تبعا**: يعنې د قيامت په ورځ به متبعين او پيروي کونکي د ټولو نه زيات د حضور اکرم صلى الله عليه وسلم وي ځکه چې د هغه معجزه قرآن دی او قرآن د عالم لپاره هادي دی نو تر څو پورې چې کائنات باقي وي قرآن به باقي وي چې په دې سره به خلک اسلام ته راځي . د دې باب په دې احاديثو کې د حضور صلى الله عليه وسلم مختلف خصوصيات بيان شوي دي ، مناسبه معلوميږي چې دغه ټول خصوصيات يو ځای وليکل شي تر څو په يادولو کې آساني وي ، د راتلونکې حديث نمبر۹ توضيح هم همدا ده .(۱) حضور صلى الله عليه وسلم د ټولو نه په ښه طبقه کې راغلی دی . (۲) د ټولو انسانانو سردار شو . (۳) د حضور صلى الله عليه وسلم متبعين به د ټولو نه زيات وي (۴) حضور صلى الله عليه وسلم به د ټولو نه مخکې د قيامت په ورځ د خپل قبر نه پورته کيږي .(۵) د ټولو نه مخکې شفاعت به هغه کوي . (۶) د ټولو نه مخکې به د جنت دروازه هغه خلاصوي(۷)حضور صلى الله عليه وسلم خاتم النبيين دی(۸) حضور صلى الله عليه وسلم ته د قرآن په صورت کې دائمي معجزه ورکړی شوه . (۹) هغه ته داسې رعب او دبدبه ورکړی شوې ده چې د دې په وجه تر يوې مياشتې مسافت پورې په دشمن باندې رعب پريوځي . (۱۰) ټوله ځمکه د هغه لپاره مسجد ګرځولی شوې . (۱۱) خاوره د هغه لپاره د طهارت تيمم ذريعه ګرځولی شوې ده . (۱۲) هغه د ټولې دنيا د ټولو انسانانو لپاره نبي ليږلی شوی دی . (۱۳) هغه ته جوامع الکلم ورکړی شوې دي . (۱۴) د غنيمت مال د هغه لپاره حلال کړی شو . (۱۵) هغه ته د ځمکې د خزانو کلياني ( چابياني) ورکړی شوې . (۱۶) ټوله ځمکه راټوله کړی شوه هغه ته وښودلی شوه . (۱۷) تر کومه ځايه چې هغه ليدلي تر هغه ځايه هغه حکومت او دين خوريږي . (۱۸) هغه ته سرې او سفينې

---

(۱) اخرجه مسلم في صحيحه ۱/۱۸۸ رقم الحديث ۱۹۶/۳۳۱.

دوه قسمه خزانې ورکړې شوې يعنې د فارس او روم فتحه (۱۹) په عامې قحطۍ او د دشمن په عمومي غلبې سره به دده امت نه تباه کيږي. (۲۰) هغه د عربو لپاره پناهګاه ليږلی شوی دی. (۲۱) د ټولو نه مخکې هغه د نبوت په انواراتو سره ونازولی شو. (۲۲) هغه د حضرت ابراهيم عَلَيْهِ السَّلَامُ د دعاء په نتيجه کې نبي راغی. (۲۳) د حضرت عيسی عَلَيْهِ السَّلَامُ د بشارت په نتيجه کې راغی. (۲۴) ټول انبياء او ټول مخلوق به د قيامت په ورځ د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د جنډې لاندې جمع کيږي. (۲۵) حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حبيب الله جوړ شوی دی. (۲۶) د محشر په ميدان کې به صرف هغه خطيب وي. (۲۷) په قيامت کې به هغه د ټول مخلوق لپاره مبشر وي. (۲۸) په محشر کې به يو زر چاغ او تکړه ښايسته خادمان د هغه سره وي. (۲۹) هغه ته به په قيامت کې حُله د کرامت واغوستلې شي او د عرش د پايې سره به ځای ورکړی شي. (۳۰) هغه ته به په جنت کې مقام وسيله ورکړی شي. (۳۱) هغه ته به خصوصي حوض کوثر ورکړی شي. (۳۲) د هغه مخکينۍ او وروستنۍ ټولې خطاګانې معاف شوي دي. (۳۳) هغه ته د ثابت مونځ عطاء کړی شو. (۳۴) که ټول مخلوق يو طرف وي او هغه صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دويم طرف وي نو د هغه صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وزن به زيات شي. خلاصه دا ده چې:

محمد سيد الکونين والثقلين ... والفريقين من عرب و من عجم

## د جنت دروازه به د ټولو نه مخکې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د پاره خلاصه شي

﴿۵﴾ وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

او انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې رسول کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل هرکله چې د قيامت په ورځ د جنت

آتِيْ بَابَ الْجَنَّةِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ فَأَسْتَفْتِحُ فَيَقُوْلُ الْخَازِنُ

دروازې باندې راشم او د هغې به خلاصول غواړم نو د جنت نګهبان به زما نه پوښتنه وکړي چې

مَنْ أَنْتَ فَأَقُوْلُ مُحَمَّدٌ فَيَقُوْلُ بِكَ أُمِرْتُ أَنْ لَا

تاسو څوک يې زه به ورته وايم چې زه محمد يم بيا به نګهبان ووايي چې ما ته حکم راکړی شوی

أَفْتَحَ لِأَحَدٍ قَبْلَكَ. رَوَاهُ مُسْلِمٌ[1]

دی چې ستا نه مخکې هيچا ته دريو ازه نه کړم خلاصه (کولاؤ). [مسلم]

---

[1] اخرجه مسلم في صحيحه ۱/۱۸۸ رقم الحديث (۳۳۳.۱۹۷) واحمد في المسند ۳/۱۳۶.

## د ټولو نه مخکې به حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شفاعت کوي

﴿۶﴾ وَعَنْهُ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَا أَوَّلُ
او حضرت انس، وايي چې رسول کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل په جنت کې به د ټولو نه مخکې سفارش

شَفِيْعٍ فِي الْجَنَّةِ لَمْ يُصَدَّقْ
کونکی زه يم يعني خپل امت جنت کې د داخلولو يا د اهل جنت د مراتبو درجات د ترقي سفارش

نَبِيٌّ مِّنَ الْأَنْبِيَاءِ مَا صُدِّقْتُ
ز، نوم په انبياو کې چې څومره تصديق زما شوی دی دومره د بل هيڅ نبي نه دی شوی يعني زما

وَإِنَّ مِنَ الْأَنْبِيَاءِ نَبِيًّا
د نبوت او رسالت تصديق کونکو او په ماباندې د ... د ... ونکو او ايمان لرونکو تعداد د ټولو

مَا صَدَّقَهُ مِنْ أُمَّتِهِ إِلَّا
نه زيات دی دغه شان د ټولو امتونو په مقابله کې زما د امت تعداد د ټولو نه لوی دی. او حقيقت

رَجُلٌ وَاحِدٌ . رَوَاهُ مُسْلِمٌ.[1]
دادی چې انبياو کې يو نبي داسې هم تير شوی دی چې د هغه تصديق صرف يوه سړي کړی دی.

**توضيح**: في الجنة: دلته د في حرف د تعليل لپاره دی ای اول شفيع لاجل الجنة ای لدخولها.

(ماصدقت) دلته ما مصدريه دی ای مقدار تصديقي يعني څومره تصديق چې زما شوی دی د ... تصديق د کوم بل نبي ندی شوی. ددې لپاره اصل وجه دا ده چې د باقي انبياؤ معجزات وختی د ... چې کله ... د دنيا نه لاړلو نو د هغوی نه وروسته د هدايت سامان نه پاتې کيده ليکن حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ... ته د قرآن معجزه ورکړی شوې ده چې تر قيامته پورې به برقراره پاتې کيږي په دغه وجه به د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ منونکي خلک زيات وي.

---

[1] ... مسلم في صحيحه ۱/۱۸۸ رقم الحديث (۱۹۶.۳۳۲) واحمد في المسند ۳/۱۴۰.

## د ختم نبوت محل

| |
|---|
| ﴿۷﴾وَعَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| او ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي چې رسول کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل زما او د نورو ټولو انبیاو مثال د |
| مَثَلِيْ وَمَثَلُ الْأَنْبِيَاءِ كَمَثَلِ قَصْرٍ أُحْسِنَ بُنْيَانُهُ |
| هغه محل په شان دی چې د هغه در او دیوار ډیر شاندار او ښه وي لیکن په هغه دیوال کې د یوې |
| تُرِكَ مِنْهُ مَوْضِعُ لَبِنَةٍ فَطَافَ بِهِ النُّظَّارُ يَتَعَجَّبُوْنَ |
| خښتې ځای خالي پاتې شوی وي او هرکله چې خلق د هغه محل چاپیره ګرځیدو سره د عمارت شان |
| مِنْ حُسْنِ بُنْيَانِهِ إِلَّا مَوْضِعَ تِلْكَ اللَّبِنَةِ فَكُنْتُ |
| وشوکت او د در او دیوار خوشنمائي به هغوئ حیرت کې واچوي خو د یوې خښتې په قدر هغه |
| أَنَا سَدَدْتُ مَوْضِعَ اللَّبِنَةِ خُتِمَ بِيَ الْبُنْيَانُ |
| خالي ځاي لیدو سره به هغوئ ته تعجب وي نو د هغه خښتې ځاي ډکونکی زه یم د هغه عمارت |
| وَخُتِمَ بِيَ الرُّسُلُ وَفِيْ رِوَايَةٍ فَأَنَا اللَّبِنَةُ |
| تکمیل زما ذات دی او د انبیاو او رسولانو د سلسلي اختتام په ما شوی دی او په یوه روایت کې |
| وَأَنَا خَاتَمُ النَّبِيِّيْنَ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.(۱) |
| دا الفاظ دي چې زه هغه خښته یم او زه د نبیانو سلسله اختتام ته رسونکی یم. [بخاری او مسلم] |

## د پیغمبر علیه السلام د ټولو نه لویه معجزه قرآن کریم دی

| |
|---|
| ﴿۸﴾وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا مِنَ الْأَنْبِيَاءِ |
| او ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي چې رسول کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل انبیاو کې هریو نبي ته د معجزاتو |

---

(۱) اخرجه البخاري ۶/۵۵۸ رقم الحديث ۳۵۳۵ ومسلم في صحيحه ۴/۱۷۹۰ رقم الحديث (۲۲۸۶-۲۱)

| مِنْ | نَبِيٍّ | إِلَّا | قَدْ | أُعْطِيَ | مِنَ | الْآيَاتِ | مَا | مِثْلُهُ | آمَنَ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| نه دومره ورکړی شوي دي چې په هغه انسان ایمان راوړی شي او کومه معجزه چې ماته حاصله | | | | | | | | | |
| عَلَيْهِ | الْبَشَرُ | وَإِنَّمَا | كَانَ | الَّذِيْ | أُوْتِيْتُ | وَحْيًا | | | |
| شوه هغه د الله ! وحې ده چې هغه يې زما طرف ته رالیږلې ده او همیشه باقي پاتې کیدونکې ده | | | | | | | | | |
| أَوْحَى | اللهُ | إِلَيَّ | فَأَرْجُوْ | أَنْ | أَكُوْنَ | أَكْثَرَهُمْ | | | |
| په دې بناء زما یقین دی چې د قیامت په ورځ به زما د منونکو تعداد د ټولو انبیاو د منونکو د | | | | | | | | | |
| تَابِعًا يَوْمَ الْقِيَامَةِ . مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ . [1] | | | | | | | | | |
| تعداد نه زیات وي. (بخاری و مسلم) | | | | | | | | | |

**توضیح : من نبی :** دلته لفظ د من زائد دی چې دا علامه روح المعانی د سیف خطیب په نوم سره یادوي تر څو ادب برقراره وي او بې ادبی رانشي ځکه د خطیب توره په کتلو کې خو توره وي لیکن د کار توره نه وي همدارنګه دا حرف هم دی.

**من الآیات:** د آیات نه معجزات مراد دي یعنې د هر نبی د نبوت د دعوې د اثبات لپاره الله تعالی مافوق العادة معجزات عطاء کړي دي.

**ما مثله:** ما موصوله دی چې د المقدار الذی په معنی سره دی، ددېنه وروسته مثله مبتدا ده او آمن علیه البشر يې خبر دی، مبتدا سره د خبر نه صله ده د موصول لپاره، موصول سره د خپلې صلې نه د اعطی لپاره مفعول ثانی شو، تقدیر د عبارت داسې دی یعنې **لیس نبی من الانبیاء الا قد اعطاه الله تعالی من المعجزات الدالة علی نبوته المقدار الذی من صفته انه اذا شوهد اضطر الشاهد الی الایمان به . (مرقات بتغییر یسیر)**

د حدیث مطلب دا دی چې الله تعالی نورو انبیاؤ ته په دومره اندازه معجزات ورکړي وو په څومره باندې چې صرف خلکو ایمان راوړی دی یعنې هغه معجزات پایداره او دائمی نه وو بلکه چې کله خلکو ولیدله او په هغه یې ایمان راوړلو نو معجزه به ختمه شوله یا به زیات نه زیات د هغه نبی تر

---

(1) اخرجه البخاري في صحيحه ۹/۳ رقم الحديث ۴۹۸۱ أخرجه مسلم في صحيحه ۱/۱۳۴ رقم الحديث (۱۵۲.۲۳۹)

ژونده هغه معجزه باقي پاتې شوې ده لکه يد بيضاء ، عصا د موسى ، دم عيسى ، او ناقه صالح وغيره، دا معجزات د دغه انبياء کرامو په دنيا کې تر موجودګۍ پورې باقي وو بيا ختم شول .
حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل ما ته چې کومه معجزه راکړل شوې هغه لوستل کيدونکي وحې ده چې د قرآن کريم په صورت کې ده دا معجزه کله هم ختميدونکې نه ده بلکه دائمي معجزه ده ، په دې باندې به خلک ايمان راوړي لهذا زما متبعين او زما د امت خلک به د ټولو نه زيات وي ځکه چې دعوت هم عام دی ، معجزه هم ژوندی او ترابده کتاب الله دی .
الله تعالى معجزات د زمانې مطابق هر نبي ته ورکړي دي، د کوم نبي په زمانه کې به چې په ماحول باندې کوم شی حاوی او قابض وو د هغه د ماتولو لپاره به نبي ته معجزه ورکول کيدله ، لکه د حضرت موسى عَلَيْهِ السَّلَامُ په زمانه کې د جادو چرچه وه نو د هغه معجزې يد بيضاء او عصا هغه جادو مات کړلو ، د حضرت عيسى عَلَيْهِ السَّلَامُ په زمانه کې د طب ډير زيات زور وو نو هغه ته د احياء اموات وغيره معجزه ورکړې شوه چې طب يې عاجزه کړلو . د حضرت صالح عَلَيْهِ السَّلَامُ په زمانه کې ټول نظام د تيږو په تراش و خراش باندې قائم وو هغوی ته معجزه هم د يوې تيږې نه د پيدا شده اوښې په شکل کې ورکړې شوه ، د حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په زمانه کې عربيت او د هغه عالمي فصاحت او بلاغت د آسمان عروج ته رسيدلی وو لهذا الله تعالى هغه ته د قرآن عظيم په شکل کې هغه فصيح او بليغ کتاب ورکړلو چې په دې سره د عربو د فصيحو فصاحت د اوچت برج نه په ځمکه راپريوتلو ، د قريشو کفار چې د فصاحت او بلاغت عالمي دعويداره وه د قرآن پاک د وړوکی سورت مقابله ونکړې شوه ، قرآن هغوی ته يو وار نه بلکه څو کرته د مقابلې چيلنج ورکړلو ليکن هغوی د ژبې مقابله ونکړې شوه او ميدانونو ته راکښته شول د تورو مقابله يې وکړه ، غاړې يې پرې کړلې او ښځې يې کونډې او ماشومان يې يتيمان کړل مګر په ژبه يې مقابله ونه کړې شوه ! دا د دې خبرې واضح دليل وو چې دا د انسان جوړ شوی کلام نه دی بلکه د رب العالمين کلام دی چې د دې د نظير راوړلو نه انسان عاجزه دی ، لکه د فصحاء عربو سره د فصاحت و بلاغت حروف او د مورنۍ ژبې ټول اسباب موجود وو بيا يې هم داسې کلام راوړلی نشو ، په همدې تناظر کې چا ويلي :

ماتحداكم به خير الانام ركب مما تركبوا الكلام

يعني محمد صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ چې د کوم کلام تاسو ته چيلنج درکړی وو د هغو حروفو نه جوړ شوی وو د کومو چې تاسو خپل کلام جوړوئ .

يو کرت حضرت علي رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ د سورت کوثر يو آيت ﴿إِنَّا أَعْطَيْنَاكَ الْكَوْثَرَ﴾ وليکلو د بيت الله په پردې باندې يې ځوړند کړلو او چيلنج يې ورکړو چې د دې سره داسې مناسب کلام وليکئ چې لفظي

او معنوی اعتبار سره مقصود حاصل شي . د فصحاء عربو يو بوډا د ډير سوچ کولو نه وروسته د شکست اعتراف کولو سره ووېل (والله ما هذا قول البشر) بوډا په حقيقت باندې لفظی طور سره خو اعتراف وکړو مګر په معنوی طور باندې يې د سورت کوثر حقيقت ته سوچ هم لانه رلو.

## د حضور ﷺ يو څو خصائص

| |
|---|
| ﴿۹﴾وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أُعْطِيْتُ خَمْسًا |
| او ابوهريره رضي الله عنه وايي چې رسول کريم ﷺ وفرمايل ماته پنځه داسي شيان راکړی |
| لَمْ يُعْطَهُنَّ أَحَدٌ قَبْلِيْ نُصِرْتُ بِالرُّعْبِ مَسِيْرَةَ |
| شويدي چې زما نه مخکې هيڅ نبي او رسول ته نه دي ورکړی شوي يو خو ماته د هغه رعب په |
| شَهْرٍ وَّجُعِلَتْ لِيَ الْأَرْضُ مَسْجِدًا وَّطَهُوْرًا |
| ذريعه نصرت راکړی شوی دی چې د يوې مياشتې د مسافت په لريوالی باندې اثر اندازکيږي |
| فَأَيُّمَا رَجُلٍ مِّنْ أُمَّتِيْ أَدْرَكَتْهُ الصَّلَاةُ |
| دوهم تهوله ځمکه زما دپاره جومات او پاکونکې ګرځول شوې ده زما دامت هرهغه سړی چې په هغه |
| فَلْيُصَلِّ وَأُحِلَّتْ لِيَ الْمَغَانِمُ وَلَمْ تَحِلَّ |
| مونځ واجب وي د مونځ وخت ورباندې راشي که اوبه نه وي نو تيمم کولو سره دې مونځ وکړي دريم |
| لِأَحَدٍ قَبْلِيْ وَأُعْطِيْتُ الشَّفَاعَةُ وَكَانَ |
| زما دپاره مال غنيمت حلال وګرځول شو چې زما نه مخکې هيچا د پاره حلال نه وو څلورم زه د |
| النَّبِيُّ يُبْعَثُ إِلٰى قَوْمِهٖ خَاصَّةً وَّبُعِثْتُ |
| شفاعت عظمیٰ عامې مرتبې باندې مشرف شوی يم او پنځم زما نه مخکې هرنبي خاص طور سره |

| إِلَى النَّاسِ عَامَّةً . مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ .[1] |
|---|
| خپل قوم ته لیږل شوی وو حال دا دی چې زه د ځمکې د مخ ټولو حلقو طرف ته رالیږل شوی یم [بخاري مسلم] |
| ﴿۱۰﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ . أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| او حضرت ابو هریره روایي چې رسول کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل ماته د شپږو مخصوصو څیزونو |
| قَالَ فُضِّلْتُ عَلَى الْأَنْبِيَاءِ بِسِتٍّ أُعْطِيْتُ |
| په ذریعه نوروانبیاو باندې فضیلت راکړی شوی دی ماته جامع کلمات راکړی شوه د دشمنانو په |
| جَوَامِعَ الْكَلِمِ وَنُصِرْتُ بِالرُّعْبِ وَأُحِلَّتْ |
| زړه کې د رعب اچولو په ذریعه ماته فتح او نصرت راکړی شو مالِ غنیمت زما د پاره حلال شو ټوله |
| لِيَ الْغَنَائِمُ وَجُعِلَتْ لِيَ الْأَرْضُ مَسْجِدًا |
| ځمکه زما د پاره مسجد او پاکونکې وګرځول شوه ټول مخلوق د پاره زه نبي راولیږل شوم او د |
| وَطَهُوْرًا وَأُرْسِلْتُ إِلَى الْخَلْقِ كَافَّةً وَخُتِمَ بِيَ النَّبِيُّوْنَ . [رَوَاهُ مُسْلِمٌ][2] |
| نبوت او رسالت سلسله په ما ختمه شوه . [روایت کړې دې مسلم] |

## د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د پاره د خزانو چابیاني

| ﴿۱۱﴾ وَعَنْهُ أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ بُعِثْتُ |
|---|
| او ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي چې رسول کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل زه جامع کلماتو سره مبعوث |
| بِجَوَامِعِ الْكَلِمِ وَ نُصِرْتُ بِالرُّعْبِ وَ بَيْنَا أَنَا |
| شوی یم د رُعب په ذریعه ماته نصرت راکړی شوی دی او یوه ورځ کله چې زه او ده وم نو ما |

---

(1) اخرجه البخاري ۱/۴۳۵ رقم الحديث ۳۳۵ ومسلم ۱/۳۷۰ رقم الحديث (۳/۵۲۱) والنسائي ۱/۲۰۹ رقم ۴۳۲.

(2) اخرجه مسلم في صحيحه ۱/۳۷۱ رقم الحديث (۵۲۳.۵) وأحمد في المسند ۲/۴۱۲.

| نَائِمٌ | رَأَيْتُنِي | أُتِيتُ | بِمَفَاتِيحِ | خَزَائِنِ | الْأَرْضِ |
|---|---|---|---|---|---|
| په خوب کې ولیدل چې د ځمکې د خزانو چابیاني ماته راکولو د پاره راوړل شوې او زما | | | | | |
| فَوُضِعَتْ فِيْ يَدِيْ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.(۱) | | | | | |
| په مخکې پیش کړی شوې. [بخاري مسلم] | | | | | |

**توضیح** : خزائن الارض: یعنې د دنیا د خزانو چابیانې زما په لاس کې کیښنودلی شوې، ددې کلام نه مقصود دا دی چې دا ټولې علاقې به فتحه شي، زما متبعین صحابه او تابعین به د دغو علاقو په فتح کولو سره خزانې حاصلي کړي، یا مطلب دا دی چې د دغو مفتوحه علاقو معدنیات به دوی ته حاصلیږي لکه دا پیش ګوئی رښتیا ثابته شوه او د مشرق او مغرب اکثره علاقې د حضرت عمر رضي الله عنه او حضرت عثمان رضي الله عنهما په دور کې او ددینه وروسته د تابعینو د خلفاؤ په لاسونو کې راغلې، نن هم د معدنیاتو اکثره خزانې د مسلمانانو په لاسونو کې دي او کچیرې مسلمان حکمرانان جهاد وکړي نو ټولې خزانې به د دوی په لاس کې راشي او دوی به د مشرق او مغرب بلکه د ټولې دنیا مالکان جوړ شي . د راتلونکې روایت او د نورو څو راتلونکو روایاتو تشریح او توضیح هم همدارنګه ده .

## اجتماعي شکل باندې به دا امت نه ختمیږي

| ﴿۱۲﴾وَعَنْ ثَوْبَانَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ اللهَ زَوٰى لِيَ | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| او ثوبان رضي الله عنه وایي چې رسول کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل الله! زما د پاره مخ د زمکې ئي | | | | | |
| الْأَرْضَ | فَرَأَيْتُ | مَشَارِقَهَا | وَمَغَارِبَهَا | وَإِنَّ | |
| راغونډ شو او بیایې ماته وخودل شوه نو ما روئي زمین د مشرق نه مغرب پورې اولیدلو او زه په | | | | | |
| أُمَّتِيْ | سَيَبْلُغُ | مُلْكُهَا | مَا | زُوِيَ | لِيْ مِنْهَا |
| یقین سره ویلی شم چې زما امت به عننزدې دریو ئي زمین د هغه ټولو علاقو بادشاهي سره سرفراز | | | | | |

(۱) اخرجه البخاري ۶/۱۲۸ رقم الحدیث ۲۹۷۷ واخرجه مسلم في صحیحه ۱/۳۷۱ رقم الحدیث (۶.۵۲۲)

| |
|---|
| وَ أُعْطِيْتُ الْكَنْزَيْنِ الْأَحْمَرَ وَ الْأَبْيَضَ |
| شي چې راته لولو سره ماته ښودل شويدي او دا هم حقيقت دی چې ماته سرې او سپينې دوه خزاني |
| وَإِنِّي سَأَلْتُ رَبِّيْ لِأُمَّتِيْ اَنْ لَّا يُهْلِكَهَا بِسَنَةٍ |
| راکړی شوې وې دی او ما خپل پروردګار ته التجاء وکړه چې زما د امت خلک عام قحط سره مه |
| عَامَّةٍ وَّاَنْ لَّا يُسَلِّطَ عَلَيْهِمْ عَدُوًّا مِّنْ |
| وژنه يعني داسې قحط وربانديې مه پر مسلط کوه چې په هغه کې مبتلا کيدو سره پوره امت هلاک |
| سِوٰى أَنْفُسِهِمْ فَيَسْتَبِيْحَ بَيْضَتَهُمْ |
| شي او دا چې زما امت باندې د مسلمانانو نه علاوه څوک غير مسلم مسلط مه کړې چې د هغوئ |
| وَإِنَّ رَبِّيْ قَالَ يَا مُحَمَّدُ إِنِّيْ إِذَا |
| اجتماعيت او د ملي نظام په مرکز قبضه وکړي نو زما رب وفرمايل اې محمد ! هرکله چې زه د |
| قَضَيْتُ قَضَاءً فَإِنَّهُ لَا يُرَدُّ وَإِنِّيْ أَعْطَيْتُكَ لِأُمَّتِكَ |
| يوې خبرې فيصله وکړم نو هغه بدليدی نشي نو زه ستا د امت په حق کې تا ته خپل دا عهد او فيصله |
| اَنْ لَّا أُهْلِكَهُمْ بِسَنَةٍ عَامَّةٍ وَّاَنْ لَّا أُسَلِّطَ عَلَيْهِمْ |
| درکوم چې مسلمانان به نه عام قحط کې هلاک کړم او نه به خپله د هغوئ نه علاوه څه بل دښمن |
| عَدُوًّا مِّنْ سِوٰى أَنْفُسِهِمْ يَسْتَبِيْحُ بَيْضَتَهُمْ |
| وربانديې مسلط کړم چې د هغوئ اجتماعيت او د ملي نظام په مرکز قبضه وکړي که څه هم هغه |
| وَلَوِ اجْتَمَعَ عَلَيْهِمْ مَّنْ بِأَقْطَارِهَا حَتّٰى يَكُوْنَ بَعْضُهُمْ |
| مسلمانانو باندې د ټول روئې زمين غير مسلم دښمن راجمع کيدو سره حمله راوړي خو دا به وي |

| يُهْلِكُ | بَعْضًا | وَ | يَسْبِيْ | بَعْضُهُمْ | بَعْضًا. | رَوَاهُ | مُسْلِمٌ[1] |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| چې ستا د امت خلق به خپلو کې يوبل قتلوي او يوبل به د قيد او بند تکليفونو کې اچوي. [مسلم] | | | | | | | |

**توضیح**: زوی: د راټولولو او يوځای کولو په معنی سره دی . د ځمکې دغه ټوليدلو او د مشرق او مغرب ښودلو نه مراد همدغه فتوحات دي، د سپينو او سرو خزانو نه مراد سپين او سره زر دي .

**سنة عامة**: عامه قحطي او عامه خشک سالي مراد ده چې په دې سره د ټول امت بيخ وځي او تباه شي داسې نه شي کيدی . **فيستبيح**: د دينه مباح کول ، حلال ګڼل او په کنټرول سره تباه کول مراد دي .

**بيضتهم**: بيضه مرکزی مقام ته وايې ، مرکزيت او اجتماعيت او انتظامي او ملي نظام مراد دی چې دا کوم دشمن ټوټه ټوټه کولی نشي.

**ولو اجتمع**: په دې کې لو وصليه دی . **باقطارها**: دا جمع ده مفرد يې قطر دی ، د دينه اطراف او جوانب مراد دي ، په دې حديث کې الله تعالی د حضور صلی الله علیه وسلم د امت د حفاظت او امن او سلامتی لپاره د دوو شيانو وعده فرمايلې ده ، يو دا دی چې دا امت به په عامه ولړه او خشک سالۍ او قحطۍ سره نه هلاکوي ، دويم دا چې د اسلام دشمن ان به په دوی باندې داسې نه مسلط کوي چې د دوی مرکزيت او اساس د سلطنت د بيخ نه او باسي اګرچې د ټولې دنيا دشمن ان سره يو ځای شي ، هو ! کچيرې په خپل مينځ کې سره وجنګيږي او بيا د بهر نه دشمن راشي او د دوی مرکز ختم کړي نو هغه ځانته خبره ده . د دې حديث نه معلومه شوه چې د دې امت په خپل مينځ کې اختلاف او نفاق هغه نقصان رسوي کوم چې د ټولې دنيا کفار يې نشي رسولی .

## د خپل امت دپاره د حضور صلی الله علیه وسلم دعا

| ﴿۱۳﴾ وَعَنْ سَعْدٍ أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَرَّ بِمَسْجِدِ |
|---|
| او سعد رضي الله عنه بيان کوي يوه ورځ رسول الله صلی الله علیه وسلم د انصارو د يوې قبيلې بني معاويه |

| بَنِيْ | مُعَاوِيَةَ | دَخَلَ | فَرَكَعَ | فِيْهِ |
|---|---|---|---|---|
| د جومات سره نزدې تير شونو د ننه مسجد ته يې تشريف ويوړو او هلته يې دوه رکعاته مونځ وکړو | | | | |

(1) اخرجه مسلم ۴/۲۲۱۵ رقم الحديث (۲۸۸۹-۱۹) وأبوداود ۴/۴۵ رقم الحديث ۴۲۵۲.

| رَكْعَتَيْنِ | وَصَلَّيْنَا | مَعَهُ |
|---|---|---|

په دي ما نځه کې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره مونږ هم شریک وو دما نځه نه روسته نبی عَلَيْهِ السَّلَام خپل

| وَدَعَا | رَبَّهُ | طَوِيْلًا | ثُمَّ |
|---|---|---|---|

پروردګار نه ډیره اوږده دعا وغوښتله یعني ډیر وخته پوري دعا کې مصروف وو بیا چې مونځ

| انْصَرَفَ | فَقَالَ | سَأَلْتُ | رَبِّيْ |
|---|---|---|---|

او دعا نه فارغه شو نو مونږ ته متوجه کیدو سره یي وفرمایل مانن خپله دعا کې دخپل پروردګار

| ثَلَاثًا | فَأَعْطَانِيْ | ثِنْتَيْنِ | وَمَنَعَنِيْ |
|---|---|---|---|

نه دري څیزونه غوښتلي وو په هغې کې دوه څیزونه خوماته راکړی شو او د یوشي منع وشوه د

| وَاحِدَةً | سَأَلْتُ | رَبِّيْ | اَنْ | لَا |
|---|---|---|---|---|

یو شي درخواست ما داکړی وو چې زما امت دعام قحط په وجه هلاک نشي او زما دا

| يُهْلِكَ | أُمَّتِيْ | بِالسَّنَةِ |
|---|---|---|

درخواست قبول شو او ما درخواست وکړو چې زما امت په غرقیدو سره مه هلاک کوه یعني څرنګه

| فَأَعْطَانِيْهَا | وَ | سَأَلْتُ | اَنْ |
|---|---|---|---|

چې د فرعون قوم دریائي نیل کې غرق کیدو سره هلاک شو یا دنوح قوم د اوبو په طوفان کې مبتلا

| لَا | يُهْلِكَ | أُمَّتِيْ | بِالْغَرَقِ |
|---|---|---|---|

کیدو سره نیست او نابود شو دغه شان زما امت په دي اوبو کې قرق کیدو سره هلاک نشي او زما دا

| فَأَعْطَانِيْهَا | وَسَأَلْتُهُ | اَنْ | لَايَجْعَلَ | بَأْسَهُمْ |
|---|---|---|---|---|

درخواست هم قبول شو دریم درخواست دا وو چې زما د امت خلک په خپلو کې لاس

| بَيْنَهُمْ | فَمَنَعَنِيهَا. | رَوَاهُ مُسْلِمٌ. [۱] |
|---|---|---|
| او کړیوان په جنګ نه وي | لیکن زما دا درخواست قبول نه شو. | |

## په تورات کې د حضور ﷺ د اوصافو ذکر

﴿۱۴﴾ وَ عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ قَالَ لَقِيْتُ عَبْدَ اللهِ بْنَ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ

او حضرت عطاء بن یسار مشهور جلیل القدر تابعي وايي زه د حضرت عبد الله بن عمرو بن العاص

قُلْتُ أَخْبِرْنِيْ عَنْ صِفَةِ

په ملاقات مشرف شوم هغوئ ته مي عرض وکړو چې [د یهودیانو آسماني کتاب] په تورات کې د

رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

رسول الله ﷺ د کومو صفاتو او خصوصیاتو ذکر دی د هغه باره کې ماته څه وښایي

فِي التَّوْرَاةِ قَالَ أَجَلْ وَاللهِ إِنَّهُ لَمَوْصُوْفٌ

حضرت عبد الله وفرمایل ضرور به درته وښایم قسم په الله په تورات کې د حضور ﷺ د بعضي هغه صفاتو

فِي التَّوْرَاةِ بِبَعْضِ صِفَتِهِ فِي الْقُرْاٰنِ

او خصوصیاتو ذکر دی چې په قرآن کریم کې مذکور دي الله! چې په تورات کې د حضور ﷺ کوم صفات

يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ إِنَّا أَرْسَلْنَاكَ شَاهِدًا

او خصوصیات ذکر کړي دي هغه په خپله ژبه او خپل اسلوب کې داسي بیا کیدی شي چې ای نبي! مونږ ته د اهلِ ایمانو دپاره شاهد

وَ مُبَشِّرًا وَ نَذِيْرًا وَ حِرْزًا لِلْأُمِّيِّيْنَ

د اجر او انعام خوشخبري ورکونکی د عذاب او عتاب نه ویرونکی او امیانو ته پناه ورکونکی جوړولو سره لیږلی یې

[۱] اخرجه مسلم في صحيحه ۴/۲۲۱۶ رقم الحديث (۲۸۹۰/۲۰.۲۱)وأحمد في المسند ۱/۱۸۲.

أَنْتَ عَبْدِيْ وَ رَسُوْلِيْ سَمَّيْتُكَ الْمُتَوَكِّلَ

اى محمد! ته زما بنده يي زما خاص رسول يي ما ستا نوم متوكل ايښى دى په دي بناء ته نه خوته

لَيْسَ بِفَظٍّ وَّلَا غَلِيْظٍ وَّلَا سَخَّابٍ فِي الْأَسْوَاقِ

بدخويه يي نه سخت ګيرا ونه سخت زړى يي او نه بازارونو کې شور کونکى يي په تورات کې

وَلَا يَدْفَعُ السَّيِّئَةَ بِالسَّيِّئَةِ

دا هم بيان شوي دي چې هغه محمد به په بدى سره بدى نه لري كوي بلكه معافي به ورته

وَ لٰكِنْ يَّعْفُوْ وَ يَغْفِرُ

كوي او احسان به ورباندې كوي چې بدي كونكې د پاره به د مغفرت دعاء كوي او الله! به د

وَ لَنْ يَّقْبِضَهُ اللهُ حَتّٰى

محمد روح هغه وخته پوري نه قبض كوي ترڅو پوري چې د هغوئ په ذريعه كوږ (كج رو) او

يُقِيْمَ بِهِ الْمِلَّةَ الْعَوْجَاءَ بِأَنْ

ګمراه قوم په سيده لار رانه ولي داسي چې د قوم خلق به اعتراف او اقرار وكړي چې الله! نه

يَقُوْلُوْا لَا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ وَ يَفْتَحَ أَعْيُنًا

ماسوا بل معبود نشته او تر هغه وخته پوري به د هغوئ روح نه قبض كيږي د څو پوري چې د

عُمْيًا وَ آذَانًا صُمًّا وَ قُلُوْبًا غُلْفًا

الله! د كلمې طيبې په ذريعه ړندې سترګې كانه غوږونه او بي حسه زړونه درست نه كړي دا

رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ [1] وَ كَذَا الدَّارِمِيُّ

روايت بخاري د عطاء ابن يسار نه نقل كړى دى او دا حديث دارمي هم د عطاء بن يسار نه نقل كړى

(1) اخرجه البخاري في صحيحه ۴/۳۴۲ رقم الحديث ۲۱۲۵ وأحمد في المسند ۲/۱۷۴.

| عَنْ | عَطَاءٍ | عَنْ | ابْنِ | سَلَامٍ |
|---|---|---|---|---|
| دی البته دارمي کې د عطاء بن یسار دا روایت د عبد الله بن عمرو بن العاص په ځاي د عبد الله بن سلام رحمه الله | | | | |
| نَحْوَهُ | وَذُكِرَ | حَدِيْثُ | أَبِيْ | هُرَيْرَةَ |
| نه منقول دی او د حضرت ابو هریره ,هغه روایت چې د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د فضائلو متعلق دی او د هغه | | | | |
| نَحْنُ | الْآخِرُوْنَ | فِيْ | بَابِ | الْجُمُعَةِ.[1] |
| ابتداء نحن الاخرون الفاظو نه کېږي باب الجمعه کې نقل شوی دی. | | | | |

**توضیح**: حرزا: د محافظ په معنی سره دی یعني حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الله تعالی د عربو لپاره پناګاه جوړ کړه، مضبوط یې کړه چې په دې سره د شیطان د ګرفت یا د عجمو د غلبې نه عرب خلک محفوظ پاتې کیږي.

**لیس بفظ**: د بداخلاقه په معنی سره دی **ای لیس بسیئ الخلق او القول** . **ولاغلیظ**: د سخت زړه او غلیظ القلب معنی اخیستل زیات مناسب دي، د (**ولو کنت فظًا غلیظ القلب**) طرفته اشاره ده.

**ولاسخاب**: په بازارونو کې د بداخلاقی په وجه آوازونو ویستلو په معنی سره دی، په دې کې (**فبما رحمة من الله لنت لهم**) طرفته اشاره ده.

**الملة العوجاء**: د ملت ابراهیمی هغه صورت مراد دی چې هغه د مکې مشرکینو کوږ ګرځولی وو، حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغه سیده کړلو او د دین اسلام په شکل کې یې پیش کړلو، والحمد لله علی ذلک.

۱۹ جمادی الثاني ۱٤۱۸هـ

## اَلْفَصْلُ الثَّانِيْ

## د مسلمانانو خپل منځي جنګونه

| ﴿۱۵﴾ عَنْ خَبَّابِ بْنِ الْأَرَتِّ قَالَ صَلّٰى بِنَا رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
|---|
| خباب بن اَرَت رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي یوه ورځ رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مونږ ته مونځ راکړه او هغه یې خلاف |

[1] اخرجه الدارمي في السنن ۱/۱۶ رقم الحدیث ۶ .

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| صَلَاةً | فَأَطَالَهَا | قَالُوا | يَا | رَسُولَ | اللهِ | صَلَّيْتَ |
| معمول کافي اوږد کړه مونږ د ما نځه نه د فارغيدو نه روسته عرض وکړو يارسول الله! نن خو تا | | | | | | |
| صَلَاةً | لَمْ | تَكُنْ | تُصَلِّيهَا | قَالَ | أَجَلْ | إِنَّهَا صَلَاةُ |
| سو دومره اوږد مونځ راکړه چې د ومره يې هيڅ کله نه وو راکړی وې فرمايل هو دا مونځ ډير زيات | | | | | | |
| رَغْبَةٍ | وَّ | رَهْبَةٍ | وَّ | إِنِّي | سَأَلْتُ | |
| اوږد په دي وجه سو چې دا د اميد او خواهش او د خوف او د هشت مونځ وو حقيقت دا دی چې ما | | | | | | |
| اللهَ | فِيهَا | ثَلَاثًا | فَأَعْطَانِيْ | اثْنَتَيْنِ | وَمَنَعَنِيْ | وَاحِدَةً |
| ما نځه کې د دريو خبرو التجاء وکړه هغې کې دوه ماته عطاء شوي او يوې نه انکار وشو ما الله ! | | | | | | |
| سَأَلْتُهُ | اَنْ | لَّا | يُهْلِكَ | أُمَّتِيْ | بِسَنَةٍ | |
| ته يوه التجاء خو دا کړي وه چې هغه زما امت په عام قحط يا داسي څه آفت او بلا کې مبتلا نه کړي | | | | | | |
| فَأَعْطَانِيهَا | وَسَأَلْتُهُ | اَنْ | لَّا | | | |
| چې هغه سره پوره امت تباه او هلاک شي زما دا التجاء پوره شوه دوهمه التجاء دا وه چې مسلمانانو | | | | | | |
| يُسَلِّطَ | عَلَيْهِمْ | عَدُوًّا | مِنْ | غَيْرِهِمْ | فَأَعْطَانِيهَا | وَسَأَلْتُهُ |
| باندې څه داسي غير مسلم دشمن مسلط نشي زما دا التجاء هم پوره شوه ما دريمه التجاء دا کړي | | | | | | |
| اَنْ | لَّا | يُذِيقَ | بَعْضَهُمْ | بَأْسَ | بَعْضٍ | |
| وه چې مسلمانان خپلو کې يو بل سره هلاکت او عقوبت کې مخ نه شي ليکن زما دا التجاء | | | | | | |

فَمَنَعَنِيهَا. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَالنَّسَائِيُّ[۱]

قبوله نه شوه. [ترمذي نسائي]

## اهل باطل اهل حق نشي ختمولی

﴿۱۶﴾ وَعَنْ أَبِي مَالِكٍ الْأَشْعَرِيِّ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ اللهَ

او ابو موسیٰ اشعري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې رسول کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل مسلمانانو الله! تاسو

عَزَّ وَجَلَّ أَجَارَكُمْ مِنْ ثَلَاثِ خِلَالٍ أَنْ لَا يَدْعُو عَلَيْكُمْ نَبِيُّكُمْ

د درېو څیزونو نه محفوظ کړي يي يو خو دا دی چې ستاسو نبي ستاسو د پاره بد دعائي نه کوي چې

فَتَهْلِكُوا جَمِيعًا وَأَنْ لَا يَظْهَرَ أَهْلُ الْبَاطِلِ عَلَى أَهْلِ الْحَقِّ وَأَنْ

هغې سره تاسو هلاک شئ دوهم دا چې باطل او ګمراه خلق به اهل حقو باندې غالب نه وي دریم

لَا تَجْتَمِعُوا عَلَى ضَلَالَةٍ. رَوَاهُ أَبُوْ دَاوُدَ.[۲]

دا چې زما ټول امت به ګمراهۍ باندې نه جمع کېږي. [ابوداؤد]

**توضیح** : ان لایظهر: یعنې اهل باطل په اهل حقو باندې داسې غالب کیدلی نشي چې د اهل حقو استیصال (بیخکندې) وشي، اهل حق به همیشه قائم او دائم پاتې کیږي اګرچې مغلوبه وي مګر د اسلام شمعه به روښانه پاتې کیږي:

نور حق ہے کفر کی حرکت پہ خندہ زن — پھونکوں سے یہ چراغ بجھایا نہ جائے گا
حاسد حسد کے آگ میں خود ہی جلا کرے — وہ شمع کیا بجھے جسے روشن خدا کرے

## جهاد امت متحد ساتي

﴿۱۷﴾ وَعَنْ عَوْفِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَنْ يَجْمَعَ اللهُ

عوف بن مالک رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې رسول کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل الله! به د دې امت خلاف

---

(۱) اخرجه النسائي في السنن ۶/۲۱۶ رقم الحديث ۱۶۳۸ وأخرجه الترمذي في السنن ۴/۴۰۸ رقم الحديث ۲۱۷۵.

(۲) اخرجه أبوداود ۴/۴۵۲ رقم الحديث ۴۲۵۳.

| عَلَى هٰذِهِ الْأُمَّةِ سَيْفَيْنِ سَيْفًا مِّنْهَا وَسَيْفًا مِّنْ عَدُوِّهَا. رَوَاهُ اَبُوْدَاوُدَ. [1] |
|---|
| دوه توري نه يو ځاي کوي يو ه توره خو خپله د مسلمانانو او دوهمه توره د هغوئ د دشمن انو. [ابوداؤد] |

**توضیح** : سيفين: يعني په يو وخت کې په دې امت باندې دوه تورې نه جمع کيږي ، کچيرې د دشمن سره جنګ او جهاد فی سبيل الله وي نو په خپل مينځ کې به جنګ نه وي (خو کچيرې د منافقينو يو جماعت د کفارو سره يو ځاي شول نو بيا دوه تورې جمع کيږي) او که د دشمن سره جنګ او جهاد نه وو نو بيا به په خپل مينځ کې جنګيږي لکه يو جاهلي شاعر ويلي :

و احيانا على بكر اخينا اذا ما لم نجد الا اخانا

ددې حديث نه مسلمانانو ته دا تعليم حاصليږي چې جهاد مقدس هميشه ژوندی او جاری ساتل پکار دي او که نه نو په خپل مينځ کې به جنګيږي .

## د حضور ﷺ نسلي او نسبي فضيلت

| ﴿۱۸﴾وَعَنِ الْعَبَّاسِ أَنَّهُ جَاءَ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَكَأَنَّهُ |
|---|
| عباس رضي الله عنه نه روايت کوي چې هغوئ يوه ورځ د کفارو نه د حضور ﷺ په شان کې |
| سَمِعَ شَيْئًا فَقَامَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى الْمِنْبَرِ |
| بدګوئي کول واوريدل نو د حضور ﷺ په خدمت کې حاضر شو حضور ﷺ منبر باندې ودريدو |
| فَقَالَ مَنْ أَنَا فَقَالُوْا أَنْتَ رَسُوْلُ اللهِ |
| اوې فرمايل تا سو خلقو ته معلومه ده چې زه څوک يم؟ صحابه وو رضي الله عنهم عرض وکړو ته د الله رسول |
| قَالَ أَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِاللهِ بْنِ عَبْدِ الْمُطَّلِبِ |
| يې حضور ﷺ وويل هو زه د الله ! رسول يم د عبد الله بن عبد المطلب ځوی محمد يم او |
| إِنَّ اللهَ خَلَقَ الْخَلْقَ فَجَعَلَنِيْ فِيْ خَيْرِهِمْ ثُمَّ |
| حقيقت دادی چې الله ! مخلوق پيدا کړل نو زه يې په دې مخلوق کې بهترين مخلوق پيدا کړم بيا |

(1) اخرجه أبوداود ۴/۴۸۵ رقم الحديث ۴۳۰۱ وأحمد في المسند ۵۷۵۶.

جَعَلَهُمْ فِرْقَتَيْنِ فَجَعَلَنِيْ فِيْ خَيْرِهِمْ فِرْقَةً ثُمَّ

د دې بهترين مخلوق الله ! او زه يې دي دواړو طبقو نه کې يې بهترينه طبقه عربو کې پيدا کړم بيا

جَعَلَهُمْ قَبَآئِلَ فَجَعَلَنِيْ فِيْ خَيْرِهِمْ قَبِيْلَةً ثُمَّ جَعَلَهُمْ بُيُوْتًا

الله ! دا بهترينه طبقه قبائل قبائل کړل او زه يې دي قبائلو نه بهترين قبيله کې پيدا کړم بيا الله ! دې قبيلې نه قريش مختلفي

فَجَعَلَنِيْ فِيْ خَيْرِهِمْ بَيْتًا

کورنۍ جوړې کړې او زه يې په دغه کورونيو کې د ټولو نه ښه کورنۍ کې پيدا کړم او زه په دې ټول نوع انساني کې

فَاَنَا خَيْرُهُمْ. نَفْسًا وَخَيْرُهُمْ بَيْتًا. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ[1]

د ټولو نه ښه او اعلیٰ يم او د خاندان او کورنۍ د اعتبار نه هم د ټولو نه لوړيم. [ترمذي]

**توضيح**: **الخلق**: د خلق نه دلته انسان او جنات مراد دې. **خيرهم**: يعنې په جناتو او انسانانو کې يې زه په بهتر مخلوق کې پيدا کړې يم چې انسان دی، د دينه معلومه شوه چې انسان د پيريانو نه افضل دی.

**(فرقتين)** د دوو فرقو نه د انسانانو دوه فرقې عجم او عرب مراد دې. **(فی خيرهم)** د دې بهتره فرقې نه مراد عرب دي، معلومه شوه چې عرب د عجمو نه بهتر دي ځکه چې د حضور ﷺ خاندان دی. چا د خپل ذوق مطابق ويلي دي:

د عاشقۍ بده دستوره مئين په يو يم      ناز د ټولو خلقو وړمه

**(جعلهم)** يعنې عرب الله تعالیٰ قبائل در قبائل تقسيم کړي دي. **(بيوتاً)** يعنې مختلف کورونه يې وکړ خول. **(بيتاً)** يعنې زه يې د ټولو نه په عمده او بهتره کور کې پيدا کړم چې د بني هاشم کور دی لهذا زه په حسب او نسب کې د ټولو نه اعلی او ارفع يم نو زما کاکا عباس هم نسلي او نسبي اعتبار سره د ټولو نه زيات عمده دی. د قبائلو په تقسيم کې دلته يو څو الفاظ ملاحظه کړئ: ۱. شعوب، دا د ټولو نه غټ وي. ۲. بيا قبائل ۳. بيا عماره ۴. بيا بطن ۵. بيا فخذ ۶. بيا فصيله، لکه خزيمه شعب دی، کنانه قبيله ده، قريش عماره ده، قصي بطن دی. بنو هاشم فخذ دی او بنو عباس فصيله ده.

[1] اخرجه الترمذي ۵ ۵۴۵ رقم الحديث ۳۶۰۷ واحمد في المسند.

## ددې مطلب چې حضور ﷺ د ټولو نه مخکې نبي جوړ شوی دی

﴿۱۹﴾ وَ عَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالُوْا يَا رَسُوْلَ اللهِ مَتَى وَجَبَتْ

او حضرت ابو هریره رضي الله عنه وايي یوه ورځ صحابو رضي الله عنهم پوښتنه وکړه یا رسول الله! نبوت د پاره تاسو

لَكَ النُّبُوَّةُ قَالَ وَآدَمُ بَيْنَ الرُّوْحِ

کوم وخت کانديد (مسمی) شوی؟ رسول الله ﷺ وفرمايل هغه وخت چې آدم د روح او

وَالْجَسَدِ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ[1]

بدن په منځ کې وو. [ترمذي]

**توضيح : متى وجبت:** سائل سوال وکړو چې يا رسول الله! د څه وخت نه ستا نبوت شروع شوی وو؟ نو هغه ﷺ وفرمايل چې زه هغه وخت نبی جوړ شوی وم چې کله آدم عليه السلام لا د روح او بدن تر مينځ وو يعنې لا د هغه په جسم کې روح اچولی شوی نه وو.

**سوال :** دلته يو ژور سوال دی، هغه دا دی چې په دنيا کې د ظهور په اعتبار سره حضور ﷺ د ټولو نه وروسته ظاهر شوی دی او د نبوت منصب چې کله انبياء کرامو ته عطاء کيده نو په هغه وخت په عالم ارواح کې ټول انبياء کرام يو ځای نبيان شوي دي نو دلته په دې حديث کې د دې جملې څه مطلب دی چې زه نبی وم او آدم عليه السلام د روح او جسد په مينځ کې وو، يعنې د پيدائش په مراحلو کې وو؟

**جواب :** ددې سوال جواب او ددې حديث مطلب دا دی چې په عالم ارواح کې خو نبوت ټولو ته يو ځای حاصل شو ليکن د نبوت د انواراتو او د هغه د برکاتو او تجلياتو راتللو سلسله د حضور ﷺ سره په عالم ارواح کې هغه وخت شروع شوه چې کله حضرت آدم عليه السلام لا په هغه وخت کې پيدا شوی نه وو، په دغه اعتبار سره حضور ﷺ په افاضه د برکاتو د نبوت کې د ټولو نه اول نبی دی او د نبوت د ظهور په اعتبار سره هغه د ټولو نه آخری نبی دی، په دغه اعتبار په بعضو رواياتو کې دي چې هر نبی په خپله خپله زمانه کې د حضور اکرم ﷺ د نبوت د نور نه استفاده کړې ده، علامه بوصيری رحمه الله همدغه حقيقت ته داسې اشاره فرمايلې ده :

وكل آى أتى الرسل الكرام بها      فانما اتصلت من نوره بهم

**منجدل:** يعنې په ځمکه باندې اچولی شوی وو، ددينه په ځمکه باندې بی روحه پاتې کيدل مراد دې.

---

[1] اخرجه الترمذي ۵/۵۴۶ رقم الحديث ۳۶۰۹.

## حضرت آمنې څه شئ لیدلی وو ؟

| |
|---|
| ﴿۲۰﴾ وَعَنِ الْعِرْبَاضِ بْنِ سَارِيَةَ عَنْ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ قَالَ إِنِّيْ |
| عرباض ابن ساریه رضی الله عنه د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه روایت کوي حضور صلی الله علیه وسلم وفرمایل زه د الله ! |
| عِنْدَ اللهِ مَكْتُوْبٌ خَاتِمُ النَّبِيِّيْنَ وَإِنَّ آدَمَ لَمُنْجَدِلٌ فِيْ طِيْنَتِهِ |
| په نز د هغه وخت نه خاتم النبیین لیکل شوی یم هر کله چې آدم خپلي اغړل شوې ختې او خاوره کې |
| وَسَأُخْبِرُكُمْ بِأَوَّلِ أَمْرِيْ دَعْوَةُ إِبْرَاهِيْمَ وَبِشَارَةُ عِيْسٰى |
| پروت وو او زه تاسو ته ښایم زما اولنی امر حضرت ابراهیم علیه السلام دعاده د حضرت عیسیٰ علیه السلام بشارت دی |
| وَرُؤْيَا أُمِّي الَّتِيْ رَأَتْ حِيْنَ وَضَعَتْنِيْ وَقَدْ |
| او زما د مور خوب دی چې هغه زما د پیدائش په وخت لیدلی وو حقیقت دادی چې زما د مور مخ |
| خَرَجَ لَهَا نُوْرٌ أَضَاءَ لَهَا مِنْهُ قُصُوْرُ الشَّامِ. رَوَاهُ فِيْ شَرْحِ السُّنَّةِ[1] |
| ته یو نور ښکاره شوی وو چې په هغه سره دې ته د شام محلات روښانه شوی وو دا روایت بغوي شرح السنه کې |
| وَرَوَاهُ أَحْمَدُ عَنْ أَبِيْ أُمَامَةَ مِنْ قَوْلِهَا سَأُخْبِرُكُمْ إِلَى آخِرِهِ. [2] |
| نقل کړی دی او امام احمد رحمه الله دا روایت ساخبرکم نه تر آخر پوري د ابو امامه ,نه نقل کړی دی. |

**توضیح** : رأت: د دې نه د خوب حالت هم مراد اخستلی شي ، مطلب به دا چې د حضور اکرم صلی الله علیه وسلم د پیدا یش لږ مخکې حضرت آمنې په خوب کې یوه فرشته لیدلې وه چې هغې ورته وویل چې ته داسې وو ایه چې زه دا ماشوم (چې زما په خیټه کې دی) د هر حسد کونکي د شر نه ورته د الله تعالی پناه غواړم . او د دې جملې نه د ویښې حالت هم مراد کیدلی شي ، د دې مطلب دا کیږي چې لکه څنګه چې په بعضو روایاتو کې راغلي دي چې حضرت آمنې د حضور اکرم صلی الله علیه وسلم د ولادت په وخت د بیداری په حالت کې د خپل جسم نه یو نور جدا کیدونکی ولیده چې هغه د شام محلونه روښانه کړل ، په دې سره دا ښودل

---

(۱) اخرجه البغوي في شرح السنة ۱۳/۲۰۷ رقم الحديث ۳۶۲۶.

(۲) اخرجه أحمد في المسند ۴/۱۲۷.

مقصود وو چې دغه پیدا کیدونکی ماشوم به په راتلونکې کې دغه علاقې فتحه کړي.

## د حضور صَلَّی اللهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ خصائص

| |
|---|
| ﴿۲۱﴾ وَعَنْ أَبِيْ سَعِيْدٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَا |
| او حضرت ابو سعید وایي چې رسول کریم صَلَّی اللهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل د قیامت په ورځ به زه د ټولو بني آدمو |
| سَيِّدُ وُلْدِ آدَمَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَ لَا فَخْرَ وَبِيَدِيْ لِوَآءُ الْحَمْدِ وَ لَا فَخْرَ |
| سرداریم او زه دا خبره د فخر په طور نه کوم د حمد جنډه به زما په لاس کې وي او زه دا خبره د فخر په طور |
| وَمَا مِنْ نَبِيٍّ يَّوْمَئِذٍ آدَمُ فَمَنْ سِوَاهُ إِلَّا تَحْتَ |
| نه کوم په هغه ورځ هر نبي که هغه آدم وي یا بل څوک وي داسي به نه وي چې زما د بیرغ لاندې رانشي |
| لِوَائِيْ وَأَنَا أَوَّلُ مَنْ تَنْشَقُّ عَنْهُ الْأَرْضُ وَ لَا فَخْرَ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ[1] |
| او د قیامت په ورځ به د ټولو نه مخکې زه د قبر چاودلو سره راولاړیږم او زه دا خبره د فخر په طور نه کوم. [ترمذي] |

## حضور صَلَّی اللهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ د الله تعالی حبیب دی

| |
|---|
| ﴿۲۲﴾ وَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ جَلَسَ نَاسٌ مِّنْ أَصْحَابِ |
| او حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي یوه ورځ د رسول الله صَلَّی اللهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ ځني صحابه په مسجد نبوي کې ناست وو |
| رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَخَرَجَ حَتّٰى إِذَا |
| په خپلو کې یې خبرې کولې حضور صَلَّی اللهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ د خپلې حجرې مبارکې نه راووتلو او هرکله چې |
| دَنَا مِنْهُمْ سَمِعَهُمْ يَتَذَاكَرُوْنَ قَالَ |
| هغوئ ته نزدې شو نو د هغوئ خبرې یې په غوږ کې وې حضور صَلَّی اللهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ یو صحابي، نه دا واورېدل |

بَعْضُهُمْ إِنَّ اللهَ اتَّخَذَ إِبْرَاهِيْمَ خَلِيْلًا وَ قَالَ آخَرُ مُوْسٰى كَلَّمَهُ اللهُ

چې الله ! حضرت ابراهیم خپل خلیل وګرځوه دوهم صحابي وویل چې حضرت موسیٰ الله ! د تکلم د خبرو

تَكْلِيْمًا وَقَالَ آخَرُ فَعِيْسٰى كَلِمَةُ اللهِ

کولو په شرافت سره ونازوه یو بل صحابي وویل چې حضرت عیسیٰ د الله ! کلمه او د هغه روح دی

وَ رُوْحُهُ وَ قَالَ آخَرُ آدَمُ اصْطَفَاهُ اللهُ

یو صحابي ، دا وویل چې الله ! حضرت آدم غوره کړی دی یعنې داول انسان کیدو د پاره هغه یې منتخب کړه

فَخَرَجَ عَلَيْهِمْ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَقَالَ قَدْ سَمِعْتُ كَلَامَكُمْ

حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د هغوئ مجلس ته ورسیده او وې فرمایل ما ستا سو خبرې اوریدلې دي تا سو

وَعَجَبَكُمْ أَنَّ إِبْرَاهِيْمَ خَلِيْلُ اللهِ

ته تعجب دی چې حضرت ابراهیم د الله ! خلیل یعنې دوست دی نو بیشکه د هغوئ دا شان دی چې

وَهُوَ كَذٰلِكَ وَمُوْسٰى نَجِيُّ اللهِ وَهُوَ كَذٰلِكَ وَعِيْسٰى رُوْحُ اللهِ

الله ! بالذات خبرې ورسره کړې وې نو بیشکه دا هم د هغوئ شان دی او حضرت عیسیٰ ) د الله ! روح

وَكَلِمَتُهُ وَهُوَ كَذٰلِكَ وَآدَمُ اصْطَفَاهُ اللهُ

او د هغه کلمه ده نو بیشکه دا هم د هغوئ شان دی او حضرت آدم الله پاک انتخاب کړه نو بیشکه دا سې ده

وَهُوَ كَذٰلِكَ أَلَا وَأَنَا حَبِيْبُ اللهِ وَلَا فَخْرَ

او دا د هغوئ شان دی لیکن تا سو ته علم پکار دی چې زه د الله ! حبیب یم او زه دا خبره د فخر په طور نه کوم

وَأَنَا حَامِلُ لِوَاءِ الْحَمْدِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ تَحْتَهُ آدَمُ فَمَنْ دُوْنَهُ

د قیامت په ورځ به د حمد جنډه زما په لاس کې وي چې د هغه لاندې به آدم ) او نور ټول نبیان او رسولان وي

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَلَا | فَخْرَ | وَاَنَا | اَوَّلُ | شَافِعٍ | وَّاَوَّلُ مُشَفَّعٍ |

او زه دا خبره د فخر په طور نه کوم د قيامت په ورځ به د ټولو نه مخکښې شفاعت کونکی زه يم او د ټولو نه مخکښې

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| يَوْمَ | الْقِيَامَةِ | وَلَا | فَخْرَ | وَ | اَنَا | اَوَّلُ | مَنْ | يُحَرِّكُ | حِلَقَ الْجَنَّةِ |

به زما شفاعت قبليږي او زه دا خبره د فخر په طور نه کوم د جنت دروازه ټکونکی به زه يم د جنت دروازه

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فَيَفْتَحُ | اللهُ | فَيُدْخِلُنِيْهَا | وَمَعِيَ | فُقَرَاءُ | الْمُؤْمِنِيْنَ | وَ | لَا فَخْرَ |

زما دپاره خلاصه کړي او د ټولو نه به مخکښې ما په جنت کې داخل کړي هغه وخت به ما سره مؤمنان فقراء وي او زه

| | | | |
|---|---|---|---|
| وَاَنَا | اَكْرَمُ | الْاَوَّلِيْنَ | وَالْآخِرِيْنَ |

دا خبره د فخر په طور نه کوم او بلا شبه په ټولو مخکښنو او وروستنيو کې چې هغوئ انبياء وي يا نور خلق د ټولو

عَلَى اللهِ وَلَا فَخْرَ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَالدَّارِمِيُّ. (۱)

نه افضل او اکرم زه يم او زه دا خبره د فخر په طور نه کوم [ترمذي دارمي]

**توضيح**: **انا حبيب الله**: د حبيب الله دغه صفت د ټولو صفاتو نه زيات جامع دی ځکه چې حبيب په معنی د محبوب سره دی او کوم چې محبوب وي هغه خليل هم وي، مکلم هم وي او مشرف او معظم هم وي.

په حبيب او خليل کې يو فرق دا هم دی چې خليل د طالب په درجه کې وي يعنې سالک او مريد وي او حبيب د مطلوب او مراد په درجه کې وي. يو فرق دا هم دی چې د خليل مغفرت د اميد او طمع په درجه کې وي او د محبوب مغفرت د يقين په درجه کې وي، **وهذا واضح فی القرآن**، وګوره د خليل په باره کې دا دي ﴿**والذی اطمع ان يغفرلی خطيئتی يوم الدين**﴾ دلته د حبيب په باره کې دا دي ﴿**ليغفر لک الله ما تقدم من ذنبک وما تأخر**﴾ په دواړو کې لوی فرق دی، په وانا حبيب الله کې دغه ټولو حقائقو ته اشاره ده.

## د حضور ﷺ اوچت شان

﴿۲۲﴾ وَعَنْ عَمْرِو بْنِ قَيْسٍ اَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ نَحْنُ

عمرو بن قيس رضی الله عنه نه روايت دی وايي چې رسول کريم ﷺ وفرمايل په دنيا کې مونږ آخريو

(۱) اخرجه الترمذي في السنن ۵/۵۴۸ رقم الحديث ۳۶۱۶ والدارمي في السنن ۱/۳۹ رقم الحديث ۴۷.

الْآخِرُوْنَ وَنَحْنُ السَّابِقُوْنَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَإِنِّيْ قَائِلٌ قَوْلًا

ليکن د قيامت په ورځ مونږ اول يو او زه تاسو ته يوه خبره کوم او د دې خبرې کولو نه د فخر اظهار مقصود

غَيْرَ فَخْرٍ إِبْرَاهِيْمُ خَلِيْلُ اللهِ وَمُوْسٰى صَفِيُّ اللهِ وَأَنَا حَبِيْبُ اللهِ

دی او هغه دا دی چې ابراهيم د الله! خليل دی موسٰی د الله! صفي دی او زه د الله! حبيب يم چې په دنيا او آخرت کې

مَعِيْ لِوَاءُ الْحَمْدِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ

زما حيثيت د محب هم دی او د محبوب هم او د قيامت په ورځ به د حمد جنډه ما سره وي او الله! زما امت ته

وَإِنَّ اللهَ وَعَدَنِيْ فِيْ أُمَّتِيْ وَأَجَارَهُمْ مِنْ ثَلَاثٍ لَايَعُمُّهُمْ

د خير کثير عطا کولو او درې څيزونو نه د بچ کولو وعده فرمايلې ده يو خو دا چې مسلمانان به عام قحط کې نه مبتلا کوي

بِسَنَةٍ وَلَايَسْتَأْصِلُهُمْ عَدُوٌّ

دوهم دا چې هيڅ دشمن به د هغوئ بيخکني نشي کولی يعني دشمنانِ اسلام به ټول مسلمانان نيست او نابود نشي کولی او دريم

وَلَا يَجْمَعُهُمْ عَلَى

دا چې ټول مسلمانان به يوې ګمراهۍ باندې اتفاق نه کوي يعني دا به ممکنه نه وي چې ټول اسلامي دنيا دې يو داسې خبرې

ضَلَالَةٍ . رَوَاهُ الدَّارِمِيُّ.(۱)

اسلامي دنيا دې يوې داسې خبرې باندې اتفاق وکړي کومه چې د ګمراهۍ باعث وي. [دارمي]

**توضيح**: نحن الآخرون: يعني په دنيا کې د ظهور او راتللو په اعتبار سره مونږ د ټولو نه په آخر کې راغلي يو ليکن په قيامت کې جنت ته د داخليدلو په اعتبار سره به مونږ د ټولو نه مخکې داخليږو.

وعدني: يعني د خير کثير او بې شماره نعمتونو وعده يې کړې ده. و اجارهم: يعني د درې خصلتونو او درې آفتونو نه الله تعالی زما امت په امن کې ساتلی دی. ۱. د عامې قحطۍ نه به نه هلاکيږي، ۲. دشمن به ټول نه هلاکوي، ۳. په ګمراهۍ باندې به ټول نه جمع کيږي، دينه امت د اجابت مراد دی، د امت دعوت يعني کفارو سره دغه وعده شوې نه ده.

(۱) اخرجه الدارمي في السنن ۱/۴۲ رقم الحديث ۵۴ . وأحمد في المسند ۲/۲۴۳.

## حضور ﷺ قائد المرسلین او خاتم النبین دی

﴿۲۴﴾ وَ عَنْ جَابِرٍ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ

او جابر رضي الله عنه روایت کوي چې رسول کریم ﷺ وفرمایل د قیامت په ورځ به زه د ټولو نبیانو

قَالَ اَنَا قَائِدُ الْمُرْسَلِيْنَ وَلَا فَخْرَ وَاَنَا

او رسولانو قائد یم چې ټول نبیان او رسولان به د حشر په میدان کې ما پسې راځي او زه دا خبره د فخر

خَاتَمُ النَّبِيِّيْنَ وَلَافَخْرَ وَاَنَا اَوَّلُ شَافِعٍ

په طور نه کوم شفاعت کونکی د ټولو نه مخکنی سړی به زه یم او د ټولو نه مخکې به زما شفاعت

وَّمُشَفَّعٍ وَلَا فَخْرَ. رَوَاهُ الدَّارِمِيُّ.[1]

قبلیږي او زه دا خبره د فخر په طور نه کوم. [دارمي]

## د قیامت په ورځ د حضور ﷺ عظمت او برتري

﴿۲۵﴾ وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

او انس رضي الله عنه وایي چې رسول کریم ﷺ وفرمایل د قیامت په ورځ چې خلق را ژوندی شي

اَنَا اَوَّلُ النَّاسِ خُرُوْجًا اِذَا بُعِثُوْا وَ اَنَا قَائِدُهُمْ

نو د ټولو نه مخکی به د قبر نه زه راوځم هرکله چې خلق بارګاه خداوندي کې وړاندې کړې نو د هغوئ

اِذَا وَفَدُوْا وَ اَنَا خَطِيْبُهُمْ اِذَا اَنْصَتُوْا وَ اَنَا

قیادت به زه کوم هرکله چې ټول خلق به خاموش وي نو زما ژبه به د ټولو ترجماني کوي او هرکله چې

مُسْتَشْفِعُهُمْ اِذَا حُبِسُوْا وَاَنَا مُبَشِّرُهُمْ اِذَا

خلق موقف کې حصار شي نو د هغوئ د خلاصون د پاره به شفاعت او سفارش زه کوم هرکله چې خلقو

يَئِسُوْا ، اَلْكَرَامَةُ وَ الْمَفَاتِيْحُ يَوْمَئِذٍ بِيَدِيْ

باندې نا امیدي او مایوسي خوره شوې وي نو اهلِ ایمانو ته به د مغفرت او رحمت بشارت ورکونکی

---

[1] اخرجه الدارمي ۱/۴۰ رقم الحديث ۴۹.

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَلِوَآءُ | الْحَمْدِ | يَوْمَئِذٍ | بِيَدِيْ | وَأَنَا | أَكْرَمُ | وُلْدِ | آدَمَ | |

زه یم د قیامت په ورځ به د جنت چابیاني زما په لاس کې وي په هغه ورځ به د پروردګار په نزد آدم

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| عَلٰى | رَبِّيْ | يَطُوْفُ | عَلَيَّ | أَلْفُ | خَادِمٍ | كَأَنَّهُمْ | بَيْضٌ |

ځامنو کې د ټولو نه بزرګ او اشرف زما ذات وي زما مخکې او روسته به زر خادمان ګرځي راګرځي

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| مَكْنُوْنٌ | أَوْ | لُؤْلُؤٌ | مَنْثُوْرٌ. | رَوَاهُ | التِّرْمِذِيُّ | وَالدَّارِمِيُّ |

لکه چې هغوئ ساتل شوي هګۍ یا خوري وري ملغلري دي دا روایت ترمذي او دارمي نقل کړې دی

وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ هٰذَا حَدِيْثٌ غَرِيْبٌ[1]

او ترمذي ویلي دي چې دا حدیث غریب دی.

**توضيح: انا خطيبهم:** په دې سره شفاعت کبری ته اشاره ده چې حضور ﷺ به هلته د الله تعالی ښه تعریف وکړي او بیا به د شفاعت کبری درخواست وکړي، همدارنګه ټول انسانان به د خبرو کولو نه چپ وي، د الله تعالی په مخکې به هیچا ته د خبرو همت نه وي په دغه وخت کې به حضور ﷺ کلام وفرمایي او د شفاعت لپاره به حمد او ثناء ووایي او د مغفرت بشارت به ورکړي.

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۲۶﴾ | وَعَنْ | أَبِيْ هُرَيْرَةَ | عَنِ | النَّبِيِّ | صَلَّى اللّٰهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ | قَالَ | فَأُكْسٰى حُلَّةً |

او ابو هریره رضي الله عنه وایي چې رسول کریم ﷺ وفرمایل د قیامت په ورځ به ما ته د جنت د جوړو

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| مِنْ | حُلَلِ | الْجَنَّةِ | ثُمَّ | أَقُوْمُ | عَنْ | يَمِيْنِ | الْعَرْشِ | لَيْسَ | أَحَدٌ |

نه یوه جوړه واغوستل شي او بیا به زه د عرش ښي طرف ته ودریږم چې هلته به زما نه ماسوا مخلوق

مِنَ الْخَلَائِقِ يَقُوْمُ ذٰلِكَ الْمَقَامَ غَيْرِيْ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَفِيْ رِوَايَةِ جَامِعِ الْأُصُوْلِ

کې بل هیڅوک ولاړ نه وي (ترمذي) او د جامع الاصول روایت کې د ابو هریره, نه داسې منقول

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| عَنْهُ | أَنَا | أَوَّلُ | مَنْ | تَنْشَقُّ |

دی چې حضور ﷺ وفرمایل د ټولو نه مخکې به زما قبر کولاؤ شي او زه به بهر راووځم

[1] اخرجه الترمذي في السنن ۵/۵۴۶ رقم الحديث ۳۶۰۱ والدارمي ۱/۳۹ رقم الحديث ۴۸.

| عَنْهُ الْأَرْضُ فَأُكْسٰى. (۱) |
|---|
| بيا به ماته يوه جنتي جوړه واغوستل شي الخ. |

## د حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د پاره د مقام وسيله دعاء

| ﴿۲۷﴾ وَعَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ سَلُوا اللّٰهَ لِيَ الْوَسِيْلَةَ |
|---|
| او ابو هريره رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وايي چې رسول كريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل زما د پاره د الله! نه وسيله غواړئ |
| قَالُوْا يَارَسُوْلَ اللّٰهِ وَمَا الْوَسِيْلَةُ قَالَ اَعْلٰى دَرَجَةٍ فِي الْجَنَّةِ |
| صحابو عرض وكړو يارسول الله! دا وسيله څه شى دى؟ حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ورته وفرمايل د جنت |
| لَا يَنَالُهَا إِلَّا رَجُلٌ وَّاحِدٌ وَّأَرْجُوْ أَنْ أَكُوْنَ |
| د ټولو نه د لوى درجې نوم دى چې صرف يو سړي ته به حاصليږي او زه اميد لرم چې هغه سړى |
| أَنَا هُوَ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ. (۲) |
| به زه يم. [ترمذي] |

**توضيح**: الوسيلة: مقام محمود او وسيله دواړه يو شى دى، د اذان نه وروسته په دعاء كې د وسيله ذكر دى، حضور اكرم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د تواضع په انداز كې كلام فرمايلى دى او كه نه نو مقام محمود او وسيلې د هغه لپاره مختص كړى شوي دي، په دې دعاء كې د امت لپاره د ثواب حاصلولو بهترينه موقع ده، د ارجو لفظ بعضو شارحينو د اتيقن په معنى سره اخيستى دى يعنې ماته يقين دى چې دغه مقام به ماته حاصليږي.

| ﴿۲۸﴾ وَعَنْ أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
|---|
| او ابي ابن كعب رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه روايت كوي چې رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل هركله چې |
| قَالَ إِذَا كَانَ يَوْمُ الْقِيَامَةِ كُنْتُ إِمَامَ النَّبِيِّيْنَ |
| د قيامت ورځ شي نو زه به او د ټولو انبيا وامام او پيشوا به جوړ شم هركله چې په هغوئ كې هيڅوك |

(۱) اخرجه الترمذي في السنن ۵/۵۴۶ رقم الحديث ۳۶۱۱

(۲) اخرجه الترمذي في السنن ۵/۵۴۶ رقم الحديث ۳۶۱۲ واحمدفي المسند ۲/۲۶۵

| | | | |
|---|---|---|---|
| وَ | خَطِيْبَهُمْ | وَ | صَاحِبَ شَفَاعَتِهِمْ |

به په ویلو-باندې قادر نه وي نو زه به د هغوئ ترجماني کوم او د ټولو شفاعت او سفارش به کوم او

غَيْرَ فَخْرٍ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.[1]

زه دا خبره د فخر په طور نه کوم. [ترمذي]

﴿۲۹﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

او عبد الله بن مسعود رضي الله عنه وايي چې رسول کريم صلی الله علیه وسلم وفرمايل د هر پيغمبر به د پيغمبرانو

إِنَّ لِكُلِّ نَبِيٍّ وُلَاةً مِنَ النَّبِيِّيْنَ وَإِنَّ

نه يو رفيق او ولي وي او پيغمبرانو کې چې کوم پيغمبر زما رفيق او ولي دی هغه زما پلار او د

وَلِيِّيْ أَبِيْ وَخَلِيْلُ رَبِّيْ ثُمَّ قَرَأَ

پروردګار خليل حضرت ابراهيم) دی دې نه روسته حضور صلی الله علیه وسلم دا آيت وواية: إِنَّ أَوْلَى النَّاسِ

إِنَّ أَوْلَى النَّاسِ بِإِبْرَاهِيْمَ

بإبراهيم الخ ترجمه. بلا شبه په ټولو په خلقو کې زيات خصوصيت لرونکی د حضرت ابراهيم سره البته

لَلَّذِيْنَ اتَّبَعُوْهُ وَهٰذَا النَّبِيُّ وَالَّذِيْنَ

هغه خلق وو چې هغوئ د هغه په زمانه کې د هغه اتباع کړې وه او دا نبي صلی الله علیه وسلم دی او هغه خلق دي

اٰمَنُوْا وَاللهُ وَلِيُّ الْمُؤْمِنِيْنَ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.[2]

چې ايمان يې راوړی او الله! د ايمان والا و حامي او کارساز دی. [ترمذي]

توضيح: ولاة: دا د ولي جمع ده د دوست په معنی سره دی يعني احباب او محبوبين او د ټولو نه نيږدې

(۱) اخرجه الترمذي في السنن ۵/۵۴۷ رقم الحديث ۳۶۱۲ واحمد في المسند ۵/۱۳۷ .

(۲) اخرجه الترمذي في السنن ۵/۲۰۸ رقم الحديث ۲۹۹۵ واحمد في المسند ۱/۴۰۱ .

خلک.(ان ولی ابی) دا نسخه صحیح ده او د ابی نه حضرت ابراهیم عَلَیْهِ السَّلَامُ مراددی، په بعضو نسخو کې د ربی لفظ دی هغه نسخه صحیح نه ده ځکه د رب معنی دلته نه صحیح کیږي.

| |
|---|
| ﴿۳۰﴾ وَعَنْ جَابِرٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِنَّ اللهَ بَعَثَنِيْ |
| او جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی وایي چې رسول کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل الله ! زه ځکه رالیږلی یم |
| مَكَارِمِ الْأَخْلَاقِ وَكَمَالِ مَحَاسِنِ الْأَفْعَالِ. رَوَاهُ فِيْ شَرْحِ السُّنَّةِ. [1] |
| چې د ښو اخلاقو تکمیل وکړم او ښه کارونه پوره کړم. [شرح السنه] |

## په تورات کې د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ او د امت محمدي د اوصافو ذکر

| |
|---|
| ﴿۳۱﴾ وَعَنْ كَعْبٍ يَحْكِيْ عَنِ التَّوْرٰةِ قَالَ نَجِدُ مَكْتُوْبًا مُحَمَّدٌ رَسُوْلُ اللهِ |
| او حضرت کعب احبار رحمه الله نقل کوي چې ما په تورات کې دالیکلي پیدا کړي دي چې محمد د الله |
| عَبْدِيَ الْمُخْتَارُ لَا فَظٌّ وَ لَا غَلِيْظٌ وَ لَا سَخَّابٌ |
| رسول او د هغه غوره شوی بنده به وي هغه به نه ترش خویه وي او نه سخت کو نه به بازارونو کې |
| فِي الْأَسْوَاقِ وَلَا يَجْزِىْ بِالسَّيِّئَةِ السَّيِّئَةَ وَلٰكِنْ يَعْفُوْ |
| شور کونکی وي او نه به د بدۍ بدله بدۍ سره اخستونکی بلکه معاف کونکی او بخښونکی به وي |
| وَيَغْفِرُ مَوْلِدُهٗ بِمَكَّةَ وَهِجْرَتُهٗ بِطَيْبَةَ |
| د هغوئ د پیدائش ځای به مکه وي او د هغوئ د هجرت ځای به طیبه مدینه وي او د هغوئ د |
| وَمُلْكُهٗ بِالشَّامِ وَأُمَّتُهُ الْحَمَّادُوْنَ يَحْمَدُوْنَ اللهَ |
| حکومت ځای به د شام ملک وي د هغه امت به د الله ډیر زیات حمد او تعریف کونکی وي چې په هر |
| فِي السَّرَّاءِ وَ الضَّرَّاءِ يَحْمَدُوْنَ اللهَ فِيْ كُلِّ |
| حالت کې غم کې به د الله ! حمد او ثناء او شکر اداکوي هغه خلق چې چیرته هم خکته کیږي یا |

---

[1] اخرجه البغوي في شرح السنة ۱۳/۲۰۲ رقم الحدیث ۳۶۲۲.

مَنْزِلَةٍ وَيُكَبِّرُوْنَهُ عَلٰى كُلِّ شَرَفٍ رُعَاةٌ

حصارېږي د الله ! حمد او شکر به په ځاي راوړي او چیرته هم چې خیژي نو الله اکبر به وایي او

لِلشَّمْسِ يُصَلُّوْنَ الصَّلَاةَ إِذَا جَاءَ يَتَأَزَّرُوْنَ

د نمر لحاظ به ساتي هرکله چې د مانځه وخت شي مونځ به کوي په خپلو ملاګانو باندې د جسم

عَلٰى أَنْصَافِهِمْ وَيَتَوَضَّئُوْنَ

اعضاوو باندې به اودس کوي یعني لاس پښې او مخ به وینځي او پوره اودس به کوي د هغوئ

عَلٰى أَطْرَافِهِمْ مُنَادِيْهِمْ يُنَادِيْ فِيْ جَوِّ السَّمَاءِ صَفُّهُمْ

منادي کونکی به د ځمکې او آسمان په منځ کې نداء کوي په جنګ کې او په مانځه کې د هغوئ صف

فِي الْقِتَالِ وَصَفُّهُمْ فِي الصَّلَاةِ سَوَاءٌ لَهُمْ

به یو شان وي یعني هغوئ به د اسلام د دشمن انو خلاف د جنګ په میدان کې هم د صف بندي اصولو

بِاللَّيْلِ دَوِيٌّ كَدَوِيِّ النَّحْلِ. هٰذَا لَفْظُ

او قواعدو پابندي کوي د شپې به د هغوئ اواز خکته وي څنګه چې د شاتو د مچو اواز وي داد

الْمَصَابِيْحِ. وَرَوَى الدَّارِمِيُّ مَعَ تَغْيِيْرٍ يَسِيْرٍ[۱]

مصابیح الفاظ دي او دارمي په څه لږ تغیر سره نقل کړې دی .

**توضیح** : کعب: دا کعب احبار تابعی دی د تورات ډیر غټ عالم وو ، د هغه ګواهی یو مستند حیثیت لري چې د حضور اکرم ﷺ د نبوت او د هغه د صفاتو لپاره یو تأیید دی .

**محمد رسول الله:** دا د حضور ﷺ مشهور نوم دی اګرچې په مخکینیو کتابونو او آسمانونو کې هغه د احمد ﷺ په نوم سره زیات مشهوره دی . **المختار:** دا د اسم مفعول صیغه ده د اختیار نه ده چې د غوره کړی شوې او خوښ کړی شوې په معنی سره دی، الله تعالی هغه غوره کړی او منتخب کړی دی ، د مختار کل معنی دا شوه چې حضور ﷺ د ټول و کائناتو نه غوره کړی شوی دی ،

(۱) أخرجه الدارمي ١/١٧ رقم الحديث ٨ .

بريلويان ددې غلطه معنى كوي چې دا د دوی د عقيدې غلط عكس ښايي . فظ: سخت كلامه او سخت خويه . غليظ: سخت زړی . سخاب: شور پورته كونكی . (مولده بمكة) د عام الفيل ۲۹ اګست ۵۷۰ عيسوی كې پيدا شو ، ۴۰ كاله د قبل النبوة زمانه يې په مكه كې تيره شوه ، بيا ۱۳ كاله دور د نبوت يې هم په مكه كې تير شو ، د ۵۳ كلو په عمر يې مدينې منورې ته هجرت وكړلو ، لس كاله يې په مدينه منوره كې جهاد مقدس وكړلو ، په ۸ هجری كې يې مكه فتحه كړله ، په ۹هجری كې د عربو عام خلک په اسلام كې داخل شول ، په ۱۰هجری كې حجة الوداع ته د يونيم لک صحابه كرامو سره راغی ، مدينې ته واپس لاړلو په ۱۲ربيع الاول ۱۰هجری كې د ۶۳كلو په عمر كې هغه انتقال وكړو ، د هغه په سر او ږيره كې صرف ۲۰ ويښتان سپين وو ، په حجره دعائشه كې دفن شو او تر ننه پورې په همدغه حجره كې مسجد نبوي كې دننه آرام فرما دی ، په طرف كې يې حضرت ابوبكر او عمر رضی الله تعالى عنهما په رفاقت كې موجود دې .

**وملكه بالشام**: د هغه ملكی او خلافتی استحكام به په شام كې وي يعنې اصل حكومت خو به يې په مدينه منوره كې وي ليكن د هغه استحكام او مضبوطی به په شام كې وي . په دې كې ديته اشاره ده چې د شام په ځمكه به لوی جهاد كيږي او د هغه په نتيجه كې به اسلامی خلافت مضبوطيږي لكه چې همداسې وشول يعنې د نبوت آثار او بركات او د اعلاء كلمة الله زمزمې او اوازې به په شام كې ظاهري شي .(**شرف**) يعنې په هر او چت ځای باندې به نعره د تكبير اوچتوي . دا به د جهاد په ميدان كې په خاص طور باندې وي او انشاء الله هميشه به وي . **رعاة للشمس**: يعنې د لمونځونو د وختونو پابندي به كوي ، لمر ته په كتلو سره به د لمانځه وخت معلوموي ګويا د لمر څارونكي به وي . **يتأزرون**: د ازار نه دی ، مراد لنګ او پرتوګ دی يعنې تر نصف ساق پورې به د هغوی پای جامې وي .

**على اطرافهم**: يعنې د جسم په اطرافو او جوانبو باندې به اودسونه كوي ، مراد د اودس نه اندامونه دي .

**ينادی في جو السماء**: يعنې د هغوی مؤذن به په اوچت ځای باندې آذانونه كوي ، د چتونو او مينارونو د پاسه به د مونځونو په اوقاتو كې آذانونه كوي ، په دښتو كې به د اذانونو شور وي نو ګويا په دښتو كې به اذان وي . **في القتال**: يعنې لكه څنګه چې په مونځونو كې صفونه تړي او مونځونه كوي همدارنګه د جهاد په ميدان كې به هم د دوی صف بندی كيږي . **دوی النحل**: يعنې د شپې د تهجد په لمونځونو او په ذكر الله او تلاوت كې به داسې بنګيدل وي لكه څنګه چې د شاتو د مچيو په آواز كې وي .

## حضرت عیسی عَلَيْهِ السَّلَام به د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خوا کې دفن کیږي

| |
|---|
| ﴿۳۲﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ سَلَامٍ قَالَ مَكْتُوبٌ فِي التَّوْرَاةِ صِفَةُ مُحَمَّدٍ. |
| او عبد الله بن سلام رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي په تورات کې د حضرت محمد صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اوصاف ذکر دي او دا |
| وَ عِيْسٰى ابْنُ مَرْيَمَ يُدْفَنُ مَعَهُ |
| هم لیکل شوي دي چې عیسیٰ ابن مریم به د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حجره اقدس کې دفن شي د |
| قَالَ أَبُوْ مَوْدُوْدٍ وَ قَدْ بَقِيَ فِي الْبَيْتِ |
| حضرت مودودؒ کوم چې د دې حدیث یو راوي دی بیان دی چې د بي بي عائشي رَضِيَ اللهُ عَنْهَا حجره مبارکه |
| مَوْضِعُ قَبْرٍ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ. [1] |
| د یو قبر ځای باقي دی. [ترمذي] |

**توضیح**: **يدفن معه**: یعنې د حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا په حجره کې د حضور اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په مقبره کې به دفن کیږي ، د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په قدمونو کې وروسته طرفته صدیق اکبر ، دی ، د صدیق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په طرف کې وروسته طرفته عمر فاروق ، دی ، او د حضرت عمر ، په طرف کې وروسته طرفته د یو قبر ځای خالي دی هلته به حضرت عیسی عَلَيْهِ السَّلَامُ دفن کیږي . چې کله حضرت عیسی عَلَيْهِ السَّلَامُ حج وکړي نو د مکې او مدینې په مینځ کې به د هغه انتقال وشي ، د هغه ځای نه به مدینې منورې ته یوړلی شي او هلته به دفن کړی شي ، ګویا د دوو نبیانو په مینځ کې به دوه شیخین وي ، تصوراتي نقشه داسې کیدلی شي ، حضرت محمد صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ، حضرت ابوبکر صدیق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ، حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ، او حضرت عیسی عَلَيْهِ السَّلَامُ .

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

### د پیغمبر صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عمومي او کلي فضیلت

| |
|---|
| ﴿۳۳﴾ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ إِنَّ اللهَ تَعَالٰى فَضَّلَ مُحَمَّدًا صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ عَلٰى |
| او حضرت ابن عباس ، نه روایت دي هغه وفرمایل الله ! حضرت محمد صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته په ټولو |

[1] اخرجه الترمذي في السنن ۵/۵۳۹ رقم الحدیث ۳۶۱۷.

الْأَنْبِيَاءِ وَ عَلَى أَهْلِ السَّمَاءِ فَقَالُوْا

انبياؤ او آسمان والاو فرشتو باندې فضيلت ورکړي دي د مجلس حاضرينو په دي اوريدو سره پوښتنه

يَا ابْنَ عَبَّاسٍ بِمَا فَضَّلَهُ اللهُ عَلَى أَهْلِ السَّمَاءِ

وکړه ای ابن عباس، اهلِ آسمان باندې حضور ﷺ ته الله ! څرنګه فضيلت ورکړی دی

قَالَ إِنَّ اللهَ تَعَالَى قَالَ لِأَهْلِ السَّمَاءِ وَمَنْ يَّقُلْ مِنْهُمْ إِنِّيْ إِلٰهٌ مِّنْ دُوْنِهٖ

حضرت ابن عباس، وويل الله ! اهـل آسمان ته داسي خطاب فرمايي: وَمَنْ يَقُلْ مِنْهُمْ الخ ... ګويا دي

فَذٰلِكَ نَجْزِيْهِ جَهَنَّمَ كَذٰلِكَ نَجْزِي الظَّالِمِيْنَ

خطاب کې نه صرف داچي د ډير سخت آنداز او رعب او د بدبي اظهار دی بلکه د سخت عذاب خبر

وَقَالَ اللهُ تَعَالَى لِمُحَمَّدٍ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

هم ورکړل شو او هرکله چې حضور ﷺ ته خطاب وفرمايل شونو حضرت محمد ﷺ ته الله !

إِنَّا فَتَحْنَا لَكَ فَتْحًا مُّبِيْنًا لِّيَغْفِرَ لَكَ

داسې وفرمايل إِنَّا فَتَحْنَا لَكَ فَتْحًا ... الخ محمد مونږ ستا د پاره د عظمتونو او برکتونو دروازې پوره طور سره

اللهُ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِكَ وَمَا تَأَخَّرَ

خلاص دی او دا ځکه دي چې الله! ستاسو وروستني مخکني او ټول ګناهونه معاف کړي. خلقو

قَالُوْا وَمَا فَضْلُهٗ عَلَى الْأَنْبِيَاءِ

عرض وکړو دا او ښايي چې حضور ﷺ ته په ټولو نبيانو الله ! څه طور سره فضيلت

قَالَ قَالَ اللهُ تَعَالَى وَمَا أَرْسَلْنَا مِنْ

ورکړی دی ابن عباس رضي الله عنه وويل : الله ! د نورو انبياو په نسبت داسي وفرمايل: وَمَا أَرْسَلْنَا مِنْ. الأية.

رَّسُوْلٍ إِلَّا بِلِسَانِ قَوْمِهٖ لِيُبَيِّنَ

مونږ هرنبي د هغه د قوم ژبې سره وليږه چې هغه د قوم مخکې د الله ! احکام او قوانين بيان کړي

لَهُمْ فَيُضِلُّ اللّٰهُ مَنْ يَّشَاءُ اَلْاٰيَةَ وَ قَالَ اللّٰهُ تَعَالٰى لِمُحَمَّدٍ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

او الله! چې څوک غواړي ګمراه کوي يې. الخ او الله! د حضرت محمد ﷺ باره کې دا وفرمايل

وَمَا أَرْسَلْنَاكَ إِلَّا كَآفَّةً لِّلنَّاسِ فَأَرْسَلَهُ

وَمَا اَرْسَلْنٰكَ اِلَّا كَآفَّةً لِّلنَّاسِ يعني اى محمد! مونږ ته دټولو خلقو د پاره رسول رالیږلی يي نو الله! حضور ﷺ

إِلَى الْجِنِّ وَالْإِنْسِ.[1]

د جنّ او انسان دواړو پغيمبر جوړولو سره راليږلی دی.

## پیغمبر ﷺ په ټولو باندې وزن دار دی

﴿۳۲﴾ وَعَنْ اَبِيْ ذَرٍّ الْغِفَارِيِّ قَالَ قُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ كَيْفَ عَلِمْتَ اَنَّكَ

او ابوذر غفاري رضي الله عنه وايي مايو وار عرض وکړو يارسول الله! تا سو ته څرنګه معلومه شوه چې تاسو

نَبِيٌّ حَتّٰى اسْتَيْقَنْتَ فَقَالَ يَا أَبَا ذَرٍّ أَتَانِيْ مَلَكَانِ وَأَنَا بِبَعْضِ

نبي يي او بيا تا سو ته د خپل نبوت يقين څرنګه وشو؟ حضور ﷺ وفرمايل اى ابوذره! زه بطحاء

بَطْحَاءِ مَكَّةَ فَوَقَعَ أَحَدُهُمَا إِلَى الْأَرْضِ وَكَانَ الْآخَرُ بَيْنَ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ

ي مکه کې وځاي کې وم ماته دوه فرشتې راغلې په هغو کې يوه فرشته د ځمکې او آسمان په منځ کې وه بيا په

فَقَالَ أَحَدُهُمَا لِصَاحِبِهِ

هغو کې يوې زما طرف ته اشاره کولو سره خپلې ملګرې فرشتې ته وويل دا هغه سړی دی چې د هغه باره کې الله!

أَهُوَ هُوَ قَالَ نَعَمْ قَالَ فَزِنْهُ بِرَجُلٍ

مونږ ته خودنه کړې ده چې زما يو پيغمبر دی هغه ته ورشئ هغه فرشتې جواب ورکړو هو دا هغه سړی دی بيا

---

[1] اخرجه الدارمي ۱/۳۸ رقم الحديث ۴۶

| فَوُزِنْتُ | بِهِ | فَوَزَنْتُهُ | ثُمَّ | قَالَ | زِنْهُ | بِعَشْرَةٍ |
|---|---|---|---|---|---|---|

مخکنۍ فرشتې دوهمې فرشتې ته وويل چې د دې پيغمبر د امت نه ديوسړي سره دَي وتلئ نو زه يي ديوسړي

| فَوُزِنْتُ | بِهِمْ | فَرَجَحْتُهُمْ | ثُمَّ | قَالَ | زِنْهُ |
|---|---|---|---|---|---|

سره وتللم او زه د هغه سړي نه دريو ند شوم بيا هغه فرشتې وويل اوس يي لس سړو سره وتلئ نو لس سړو سره

| بِمِائَةٍ | فَوُزِنْتُ | بِهِمْ | فَرَجَحْتُهُمْ | ثُمَّ |
|---|---|---|---|---|

يي وتللم نو د هغه لس سړو نه هم دريو ند سوم بيا هغه فرشتې وويل سلو سړو سره يي وتلئ نو سلو سړو سره

| قَالَ | زِنْهُ | بِأَلْفٍ | فَوُزِنْتُ | بِهِمْ | فَرَجَحْتُهُمْ |
|---|---|---|---|---|---|

يي وتللم او د هغه سلو نه هم درو ند شوم بيا د زرو سړو سره وتلل شوم او هغوئ نه هم درو ند شوم او ګويا اوس

| كَأَنِّي | أَنْظُرُ | إِلَيْهِمْ | يَنْتَثِرُوْنَ | عَلَيَّ | مِنْ |
|---|---|---|---|---|---|

هم زه هغه زر سړي وينم چې هغوئ د ترازو په کومه پله کې وو هغو زما په مقابله کې دومره سپک وختل او

| خِفَّةِ | الْمِيْزَانِ | قَالَ | فَقَالَ | أَحَدُهُمَا |
|---|---|---|---|---|

دومره پورته شول چې ماته داسې ولګيده لکه چې اوس به ټول په ما راوغورځيږي دې نه روسته هغه دواړو

| لِصَاحِبِهِ | لَوْ | وَزَنْتَهُ | بِأُمَّتِهِ |
|---|---|---|---|

فرشتو کې يوې دوهمې ته وويل که ته دا ده د ټول امت سره هم وتلې بيا به هم يقينًا د ټول امت په مقابله کې

| لَرَجَحَهَا. | رَوَاهُمَا | الدَّارِمِيُّ. [1] |
|---|---|---|

دريو ند وي دا دواړه روايتونه دارمي نقل کړي دي.

**توضيح** : ينتثرون: يعنې ماته د وزن کولو په وخت داسې معلوميده لکه د هغې پلې نه خلک په ما راغورځيږي ځکه چې د هغوی پله سپکه وه پورته کيدله او زما پله درنه وه نو هغوی ګويا د پاسه په ما

---

(1) اخرجه الدارمي في السنن ۱/۲۰ رقم الحديث ۱۴ .

باندې راغورځيږي . يو چا ډير ښه ويلي دي :

جہاں کی سارے کمالات ایک تجھ میں ہیں  تیرا کمال کسی میں نہیں مگر دو چار

## حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ باندې په هر حالت کې قرباني فرض وه

| |
|---|
| ﴿۳۵﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كُتِبَ عَلَيَّ النَّحْرُ |
| او ابن عباس رضي الله عنه وايي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل په ما په هر حالت کې قرباني فرض شوي ده |
| وَلَمْ يُكْتَبْ عَلَيْكُمْ وَأُمِرْتُ بِصَلَاةِ |
| که زه مالي استطاعت لرم يا نه لرم او حال دا چې تاسو باندې دا سې فرض نه ده او ما ته د چاشت مونځ حکم د وجوب په |
| الضُّحٰى وَ لَمْ تُؤْمَرُوْا بِهَا . رَوَاهُ الدَّارَ قُطْنِيُّ.[1] |
| طور شوي دی حال دا دی چې تا شو ته نه دی سوی بلکه دا مونځ يې تا سو د پاره صرف سنت گرځولی دی . |

**توضيح** : كتب علي: د فرض کولو په معنی سره دی يعنې که زه مالداره يم يا غير مالداره ، په هر حالت کې په ما باندې قرباني فرض ده ، او تاسې د امت والاو که مالداره نه ياست نو په تاسې باندې قرباني فرض نه ده او د څاښت مونځ په ما باندې واجب دی ، په تاسو باندې واجب نه دی .

**سوال** : دلته دا سوال پيدا کيږي چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د څاښت د مانځه پابندی کړې نه ده نو د فرض کيدلو مطلب څه دی ؟

**جواب** : ددې جواب دا دی چې په حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ باندې يو وار د څاښت مونځ فرض وو چې هغه وکړلو د هميشه لپاره فرض نه وو او په امت باندې هم فرض نه دی صرف سنت دی .



---

[1] اخرجه الدارقطني في سننه ۴/۲۸۲ رقم الحديث ۴۲ من باب الصيد

# باب اسماء النبي صلی الله علیه وسلم وصفاته

## د نبي کریم صلی الله علیه وسلم د نومونو او د صفاتو بیان

د دې عنوان دوه جزء دي په یو جزء کې د هغه د نومونو ذکر دی، په دویم جزء کې د هغه د صفاتو بیان دی، مګر دا یاد ساتل پکار دي چې د صفاتو نه د هغه اخلاق او شمائل مراد نه دي بلکه د هغه د جسماني ساخت بیان مراد دی چې دیته حلیه ویلی کیږي، نو په دې باب کې به د هغه حلیه مبارکه پیش کیږي او د دینه وروسته به د هغه د اخلاقو بیان راځي .د هغه نومونه سل دي مګر د هغه ذاتي نوم چې د هغه نیکه عبدالمطلب د هغه لپاره منتخب کړی وو هغه محمد صلی الله علیه وسلم وو، همدا زیات مشهور دی البته په سابقه ادیانو او سابقه کتابونو کې او همدا رنګه د آسمان په ملائکو کې د هغه زیات مشهور نوم احمد دی.

په عربو کې د محمد نوم ایښودلو ډیر کم رواج وو بلکه د نیست برابر وو . د هغه د نیکه نه هم پوښتنه شوې وه چې تاسو دا نوم ولې کیښودلو ؟ نو هغه وفرمایل چې ما وغوښتل چې د کائناتو ذره ذره زما د دغه ځوی تعریف او مدحه وکړي او دا د ټولو محمود جوړ شي یعنې ستوده صفات، تعریف کرده شده جوړ شي.

حضرت حسان رضی الله عنه همدې حقیقت ته اشاره کړې فرمایلي یې دي:

وضم الاله اسم النبی باسمه ... اذا قال فی الخمس المؤذن اشهد

فشق له من اسمه لیجله ... فذو العرش محمود و هذا محمد

داسې معلومیږي چې د هغه سره دغه نوم تکویني طور باندې مختص وو ، د هغه نه مخکې زیات نه زیات او و کسانو خپلو ځامنو ته د محمد نوم ایخی وو هغه هم په دې مقصد باندې چې شاید نبی آخر زمان د هغوی ځوی جوړ شي ، ځکه چې د سابقه کتابونو نه هغوی ته معلومه شوې وه چې د نبی آخر زمان نوم به محمد وي ، علامه بوصیری رحمه الله فرمایي:

محمد سید الکونین والثقلین ... والفریقین من عرب و من عجم

په هر حال باب فضائل سید المرسلین نه واخله تر باب مناقب قریش پورې په انتهائي بسط او شرحه سره او انتهایي تفصیل سره د حضور صلی الله علیه وسلم د فضائلو بیان دی ، د مظاهر حق د صفحاتو په حساب سره ۲۹۲ صفحاتو باندې مشتمله دغه عظیمه ذخیره د احادیثو صرف او صرف د حضور صلی الله علیه وسلم د مناقبو سره متعلق ده مګر بیا هم تنده وي . حقیقت دا دی چې د الله تعالی د محامدو لپاره محمد عربی صلی الله علیه وسلم کافي دی او د محمد عربی صلی الله علیه وسلم د مدائحو لپاره د الله تعالی ذات کافي دی ، مونږ خو صرف د ثواب لپاره د هغوی محامد او مدائح بار بار بیانوو ، یو چا ډیر ښه ویلي دي:

خدا در انتظار حمد ما نیست ... محمد چشم بر راه ثنا نیست

خدا مدح آفرین مصطفیٰ بس ... محمد حامد حمد خدا بس

محمد از تو میخواهم خدا را ... خدایا از تو عشق مصطفیٰ را

# اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

## د پیغمبر صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مختلف نومونه

| |
|---|
| ﴿١﴾ عَنْ جُبَيْرِ بْنِ مُطْعِمٍ قَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ اِنَّ لِيْ أَسْمَاءً |
| جبير بن مطعم رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وايي ما د رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه واوريدل چې ځما متعدد نومونه دي په هغې |
| أَنَا مُحَمَّدٌ وَأَحْمَدُ وَأَنَا الْمَاحِيْ الَّذِيْ يَمْحُو اللهُ بِيَ الْكُفْرَ |
| کې ځما مشهور نومونه محمد دی اواحمددی اوزه ماحي يم چې الله ! ځما په ذريعه کفر ختموي |
| وَ أَنَا الْحَاشِرُ الَّذِيْ يُحْشَرُ النَّاسُ عَلٰى قَدَمَيَّ وَ أَنَا الْعَاقِبُ |
| ځما نوم حاشر هم دی چې خلق به ځما په نقش قدم پورته شي او ځما نوم عاقب هم دی يعني هغه سړی |
| وَالْعَاقِبُ الَّذِيْ لَيْسَ بَعْدَهُ نَبِيٌّ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.[1] |
| چې د هغه نه روسته بل نبي نشته. [بخاري مسلم] |

**توضيح :اسماء**: يعني زما ډير نومونه دي، دحضور صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د نومونو زياتوالی دهغه په عظمت او د اوصاف حميده په کثرت باندې دلالت کوي، دحضور صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يو نوم اسم ذاتی دی چې محمد صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دی چې د هغه نيکه ايخی دی، باقی ټول صفتي نومونه دي چې ټول سل نومونه مشهور دي.

**الماحي**: د باطل ختمونکی، **الحاشر**: جمع کونکی يعني د ټولو نه مخکې به حضور صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د قبر نه پورته کيږي، د هغه په نقش قدم باندې به نور خلک پورته کيږي او د محشر په ميدان کې به جمع کيږي.

**العاقب** ددې مطلب دادی چې نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خاتم النبيين دی د هغه نه وروسته هيڅ نبي نه راځي ، حضرت عيسى عَلَيْهِ السَّلَامُ به د هغه امتي جوړيدلو سره راځي ، ددې نه علاوه دعوه کونکی به دروغجن او دجال وي.

| |
|---|
| ﴿٢﴾ وَعَنْ أَبِيْ مُوسَى الْأَشْعَرِيِّ قَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُسَمِّيْ لَنَا |
| او ابوموسی اشعري رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وايي چې رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به ځمونږ مخکې د خپل ذات مبارک |

[1] اخرجه البخاري ٦/٥٥٤ رقم الحديث ٣٥٣٢ ومسلم في ١٨٢٨ رقم الحديث (٢٣٥٤. ١٢٤) وأحمد في المسند ٤/٤٠٧.

| نَفْسَهُ | أَسْمَاءً | فَقَالَ | أَنَا | مُحَمَّدٌ | وَأَحْمَدُ | وَالْمُقَفِّي |
|---|---|---|---|---|---|---|
| متعدد نومونه بيانول يوه ورځ حضور ﷺ وفرمائيل زه احمد يم زه محمد يم زه مُقَفّي يم تمام | | | | | | |
| وَ | الْحَاشِرُ | وَ | نَبِيُّ | التَّوْبَةِ | | |
| پيغمبرانو نه روسته راتلونکی يم زه حاشر يم يعني د قيامت په ورځ د تمام خلق جمع کونکی يم زه | | | | | | |
| وَنَبِيُّ الرَّحْمَةِ. رَوَاهُ مُسْلِمٌ.[1] | | | | | | |
| د توبې نبي يم او زه د رحمت نبي يم. | | | | | | |

**توضيح**: (المقفى) من القفو بمعنى الآخر، يعنې د ټولو نه په آخر کې راتلونکی نبی، دا د عاقب په معنی سره دی، ګويا د خاتم النبيين په مفهوم سره دی. (نبی الرحمة) هغه د کائناتو لپاره رحمت جوړ شوی راغلی دی، (نبی التوبة) مطلب دا دی چې د هغه په لاس باندې ډيرو خلک و توبه وويستله، يا مطلب دا دی چې هغه په ورځ او شپه کې ډير استغفار او توبه کوله. د مسجد نبوی په محرابی ديوال باندې ددې سره **نبی السيف** هم ليکلی دی. او نبی الملاحم هم د هغه د نومونو نه يو نوم دی يعنې د غټو جنګونو والا نبی او د تورې والا نبی.

## حضور اکرم ﷺ نوم د کنځلو نه محفوظ دی

| ﴿۲﴾ وَعَنْ | أَبِي | هُرَيْرَةَ | قَالَ | رَسُولُ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ. |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| حضرت جبير بن او حضرت ابو هريره رضي الله عنهما وايي چې رسول کريم ﷺ يوه ورځ صحابو ته | | | | | | | | | |
| أَلَا | تَعْجَبُونَ | كَيْفَ | يَصْرِفُ | اللهُ | عَنِّي | شَتْمَ | قُرَيْشٍ | وَلَعْنَهُمْ | يَشْتِمُونَ |
| وفرمائيل آيا تاسو ته پدې حيرانتيا نده چې الله ! زه د قريشو مکهد کنځلو او لعنتونو نه څرنګه | | | | | | | | | |
| مُذَمَّمًا | وَيَلْعَنُونَ | مُذَمَّمًا | وَأَنَا | مُحَمَّدٌ. | رَوَاهُ | الْبُخَارِيُّ[2] | | | |
| محفوظ کړی يم هغوئ مذمم ته کنځل کوي او مذمم باندې لعنت ليږي حال دا چې زه محمد يم. [بخاري] | | | | | | | | | |

---

[1] اخرجه مسلم ۴/۱۸۲۸ رقم الحديث (۲۳۵۵.۱۲۶) وأحمد في المسند ۴/۳۹۵.

[2] اخرجه البخاري ۶/۵۵۴ رقم الحديث ۳۵۳۳ والنسائي في السنن ۶/۱۵۹ رقم الحديث ۳۴۳۸ [illegible]

| جَسَدَهُ. رَوَاهُ مُسْلِمٌ. (۱) |
|---|
| د رنګ په شان وو. مسلم |

**توضيح**: شمط: دا د ويښتانو سپينوالي ته ويل کيږي.

**شعث**: د ويښتانو وچيدلو سره تيت او پرک کيدلو ته شعث ويلی کيږي.

**مثل السيف**: څنګه چې په توره کې د ځليدلو سره اوږدوالي او بروي نو دا احتمال پيدا شو چې شايد د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مخ دا رنګه وو، ددې جواب حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ورکړو چې داسې نه وه بلکه د هغه مخ د سپوږمۍ پشان سپين او د لمر پشان روښانه وو.

**يشبه جسده**: يعنې د مهر نبوت غوښه د جسم د غوښې سره مشابه وه چې د عام جسم رنګ يې وو. حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نوعمر صحابي دی او د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حليه مبارکه کوچنيو صحابو بيان کړې ده لويو صحابو دا جرأت کولی نشو چې ددې اعتراف حضرت عمرو بن العاص رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د خپل وفات په وخت کې کړی وو چې ما کله هم په خلاصو سترګو د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ديدار کړی نه دی، ادب او رعب حائل وو.

## مهر نبوت تفصيل

| ﴿۵﴾وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ سَرْجِسٍ قَالَ رَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَكَلْتُ مَعَهُ |
|---|
| او عبد الله بن سرجس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي ما د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د زيارت ملاقات او هغوئ سره د |
| خُبْزًا وَلَحْمًا أَوْ قَالَ ثَرِيدًا ثُمَّ دُرْتُ خَلْفَهُ فَنَظَرْتُ إِلَى |
| طعام خوړلو شرف حاصل کړه طعام روټۍ او غوښه وه يا هغه دا وويل ثريد وو بيا زه د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| خَاتَمِ النُّبُوَّةِ بَيْنَ كَتِفَيْهِ عِنْدَ نَاغِضِ كَتِفِهِ الْيُسْرَى |
| شا طرف ته راغلم او مهرِ نبوت مې اوليدلو چې د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د واړو اوږو په منځ کې د ګسي اوږې |
| جُمْعًا عَلَيْهِ خِيلَانٌ كَأَمْثَالِ الثَّآلِيلِ . رَوَاهُ مُسْلِمٌ. (۲) |
| نرم هډوکی باندې وو او د هيئت د اعتبار نه د موټي په شان وو او په هغه د زخو په شان تخم وو [مسلم] |

(۱) اخرجه مسلم ۴/۱۸۲۳ رقم الحديث (۱۰۹. ۲۳۴۴) وأخرجه الترمذي في السنن ۵.۵۵۸ رقم حديث ۳۶۳۶.

(۲) اخرجه مسلم في صحيحه ۴/۱۸۲۳ رقم الحديث (۱۱۲. ۲۳۴۶) وأخرجه الترمذي في السنن ۵.۵۶۲ رقم ۳۶۵۴.

**توضیح** : **خاتم النبوة**: د ختم نبوت دغه مهر د حضور ﷺ په شا باندې د چپې اوږې لاندې وو، د نبوت حاصلیدلو نه وروسته دا پیدا شوی وو ، دا د غوښې یوه ګوله حصه وه چې ددې په باره کې په سابقه آسماني کتابونو کې د وخت انبیاؤ تفصیل ورکړی وو او د هغه د نبوت علامت ګرځولی شوی وو. په دغه وجه حضرت محمد ﷺ هر کتونکي ته دا ورښودله او نه یې پټوله ، په هغه باندې لیکل شوي وو (**وحده لاشريک له توجه حيث کنت فانک منصور**) د هغه د وفات سره مهر نبوت په جسم کې د ننه شو لاړلو.

**ناغض کتفه**: د اوږې د هډوکي نرمې او باریکې حصې ته ناغض ویلی شوي د چپې اوږې لاندې په دغه مقام کې زړه وي ګویا د زړه د پاسه مهر نبوت وو.

**جُمعاً**: د لاس د ورغوي پشان دغه مهر وو ، دا تشبیه په هیئت او کیفیت کې ده په حجم کې نه ده، په حجم کې دغه مهر د کوترې د هګۍ برابر وه ، دا خبره په ذهن کې ساتل پکار دي چې هر کتونکي د دغه مهر جوړښت په یوه اندازه سره ښودلی دی په دغه وجه مختلف الفاظ راغلي دي ، بعضو د زرکې د هګۍ بعضو د کوترې د هګۍ بعضو د منې د دانې برابر د دغه مهر ساخت بیان کړی دی او بعضو د لاس د ورغوي برابر ښودلی دی، دا ټولې اندازې دي دیته تعارض نه ویلی کیږي هر یوه خپله اندازه بیان کړې ده.

**خیلان**: دا جمع ده د دې مفرد خال دی ، دا خالونه په غوښه کې د زخو پشان موجود وو.

**ثآلیل**: د ثألول جمع ده زخي ته وایي ، د بن الاثیر په نهایه کې لیکلي دي چې دیته په فارسی کې (زخ) وایې زمونږ په پښتو ژبه کې دیته (زخه) وایي ، د توضیحات جلد اول باب احکام المیاه حدیث نمبر ۳ په توضیح کې هم د مهر نبوت په باره کې یو څه تفصیل لیکلی شوی دی.

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۶﴾ وَعَنْ أُمِّ خَالِدٍ بِنْتِ خَالِدِ بْنِ سَعِيْدٍ قَالَتْ أُتِيَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِثِيَابٍ | | | | | | | |
| او د خالد بن سعید لور اُمّ خالد وایي یوه ورځ رسول الله ﷺ ته څه کپړې راغلې په هغه کې یوه | | | | | | | |
| فِيْهَا | خَمِيْصَةٌ | سَوْدَاءُ | صَغِيْرَةٌ | فَقَالَ | ائْتُوْنِيْ | بِأُمِّ | خَالِدٍ |
| وړه کمبله هم وه حضور ﷺ وفرمائیل ام خالد ماته راولئ نو ام خالد حضور ﷺ ته راوستل | | | | | | | |
| فَأُتِيَ | بِهَا | تُحْمَلُ | فَأَخَذَ | الْخَمِيْصَةَ | بِيَدِهِ | فَأَلْبَسَهَا | |
| شوه حضور ﷺ هغه کمبله پورته کړه او خپل لاس مبارک سره یې ام خالد ته ور واغوستله او بیا | | | | | | | |
| قَالَ أَبْلِيْ | وَأَخْلِقِيْ | ثُمَّ أَبْلِيْ | وَأَخْلِقِيْ | وَكَانَ فِيْهَا | عَلَمٌ | أَخْضَرُ | أَوْ أَصْفَرُ |
| ام خالد ته یې دا دعا وکړله داکپړه زړه کړئ او بیایې زړه کړئ هغه کمبل کې شنې یا زیړې نښې | | | | | | | |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| فَقَالَ | يَا | أُمَّ | خَالِدٍ | هٰذَا | سَنَاهُ | وَهِيَ بِالْحَبَشِيَّةِ |

جوړې شوې وې حضور ﷺ وفرمائيل ام خالد ! دا جوړه خو ډيره اعلى ده او لفظ سناه د حبشي

| | | | |
|---|---|---|---|
| حَسَنَةٌ | قَالَتْ | فَذَهَبْتُ | أَلْعَبُ |

ژبې لفظ دى چې د هغې معنى ده ښه او ښائسته دي ام خالد وايي بيا زه د حضور ﷺ شا

| | | | |
|---|---|---|---|
| بِخَاتَمِ | النُّبُوَّةِ | فَزَبَرَنِيْ | أَبِيْ |

مباركې طرف ته ولاړم او د ماشومتوب د ناپوهي په بناء مهرِ نبوت سره لوبې كولې ځما پلار چې

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فَقَالَ | رَسُوْلُ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ | دَعْهَا. | رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ[1] |

دا وليدل نو زه يې ورټلم او منع يې كړم رسول الله ﷺ ورته وفرمائيل دا مه منع كوه . بخارى.

**توضيح**: ام خالد: دا وړه ماشومه وه.

**تحمل**: يعنې د كوچنيوالي په وجه به اخيستل كيدله.

**خميصة**: د وړيو نه جوړه شوې وړې ښايسته يمنى كمبلې ته ويلى كيږي چې په هغې كې ګل وي، لكه چې ويلې شوي دي :

**لبست الخميصة ابغى الخبيصة      وانشنت شعى فى كل شيصة**

**سناه**: يعنې حضور ﷺ د حبشه والاؤ لغت استعمال كړلو چې د سناه لفظ وو چې د هغه ترجمه حسنة وه يعنې ډيره ښايسته ده .

**زبرني**: يعنې د بى ادبۍ د ويرې په وجه زه خپل پلار منع كړم بلكه ويې نيولم منع يې كړم .

## د حضور ﷺ د قدو قامت او غيره ذِكر

﴿۷﴾ وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيْسَ بِالطَّوِيْلِ الْبَائِنِ وَلَا بِالْقَصِيْرِ

او انس رضي الله عنه وايي د رسول الله ﷺ قد مبارك نه ډير اوږد وو او نه لنډ رنګ مبارك يې نه

(۱) اخرجه البخاري في صحيحه ۶/۱۰۸۳ رقم الحديث ۳۰۷۱، وأبوداود ۴/۳۱۱ رقم الحديث ۴۰۲۴.

وَلَيْسَ. بِالْأَبْيَضِ الْأَمْهَقِ وَ لَا بِالْآدَمِ وَلَيْسَ بِالْجَعْدِ الْقَطِطِ وَ لَا بِالسَّبِطِ

بالكل سپين وو نه بالكل گندمي د سر مبارک ويښته يي نه بالكل گولگوتي او نه بالكل سيده وو او

بَعَثَهُ اللهُ عَلَى رَأْسِ أَرْبَعِيْنَ سَنَةً فَأَقَامَ بِمَكَّةَ عَشَرَ

الله! هغه وقت راوليږه كله چې د هغه عمر پوره څلويښت كاله شو بيا حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لس كاله مكه

سِنِيْنَ وَبِالْمَدِيْنَةِ عَشَرَ سِنِيْنَ وَتَوَفَّاهُ اللهُ عَلَى رَأْسِ سِتِّيْنَ

معظمه كې قيام وكړه اولس كاله په مدينه منوره كې او الله! حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته د شپيتو كالو په عمر

سَنَةً وَّلَيْسَ فِيْ رَأْسِهِ وَلِحْيَتِهِ عِشْرُوْنَ شَعْرَةً بَيْضَاءَ

كې وفات وركړه تر هغه وقت د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د سر مبارک او ږيرې كې صرف شل ويښته سپين وو په

وَفِيْ رِوَايَةٍ يَصِفُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ كَانَ

يو بل روايت كې انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اوصاف بيانولو سره دا وويل چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به

رَبْعَةً مِّنَ الْقَوْمِ لَيْسَ بِالطَّوِيْلِ وَلَا بِالْقَصِيْرِ أَزْهَرَ اللَّوْنِ

خلقو كې ميانه قد وو نه د نګ وو نه لنډ د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رنګ صاف وو ځلانده وو حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ

وَقَالَ كَانَ شَعْرُ رَأْسِ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى أَنْصَافِ

دا هم بيان وكړو چې د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د سر مبارک ويښته د غوږونو تر نيمايي پورې وو او په يو ه روايت

أُذُنَيْهِ وَفِيْ رِوَايَةٍ بَيْنَ أُذُنَيْهِ وَعَاتِقِهِ.

كې دا الفاظ دي چې د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د سر مبارک ويښته د غوږونو او اوږود منځه پورې اوږده وو.

مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. وَفِيْ رِوَايَةٍ لِّلْبُخَارِيِّ قَالَ كَانَ ضَخْمَ الرَّأْسِ

[بخاري مسلم] او په يو روايت د بخاري كې دى چې انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ بيان وكړو د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سر

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وَ | الْقَدَمَيْنِ | لَمْ | أَرَ | بَعْدَهُ | وَلَا | قَبْلَهُ مِثْلَهُ |
| مبارک غټ وو او پښې د غوښې نه ډکې وې ما د هغه په شان نه خو مخکې لیدلی دی او نه مې | | | | | | |
| وَكَانَ | بَسْطَ | الْكَفَّيْنِ | وَفِيْ | أُخْرٰى | لَهُ | |
| روسته او د حضور صلی الله علیه وسلم د لاس مبارک وو د بخاري په یوه روایت کې دي انس رضي الله عنه بیان | | | | | | |
| قَالَ | كَانَ | شَثْنَ | الْقَدَمَيْنِ | وَ | الْكَفَّيْنِ[1] | |
| وکړو د حضور صلی الله علیه وسلم دواړه متې [بازو] او ورغوی هوار او د غوښې نه ډک وو. | | | | | | |

**توضیح**: طویل بائن: د حد نه زیات اوږد نه وو. **الامهق**: د چونې په شان سپین نه وو. (**آدم**) یعني بلکل سور نه وو. **الجعد القطط**: ډیر کلک ویښتان یې نه وو بلکه معمولي کړکوتي وو. (**قطط**) د تأکید لپاره دی تر څو په جعد کې مبالغه راشي. (**السبط**) یعني بلکل ښوی ویښتان یې هم نه وو، مطلب دا دی چې نه بلکل د حبشو والاؤ پشان کونجي ویښتان وو او نه د انګریزانو پشان ښوی وو بلکه معمولي پیچ داره کړکوتي وو.

بمکة عشر سنین: یعني د څلویښتو کلونو په عمر نبوت ورته حاصل شو او د نبوت زمانه یې په مکه کې لس کاله وه او په مدینه کې هم لس کاله وه او د ۶۰ کالو په عمر کې د هغه وصال وشو، په دې روایت کې په مکه مکرمه کې د حضور صلی الله علیه وسلم قیام د نبوت حاصلیدو نه وروسته لس کاله ښودل شوی چې دیته په کتو د وصال عمر ۶۰ کاله جوړیږي مګر په نورو صحیح او واضحه روایاتو کې په مکه مکرمه کې قیام د نبوت نه بعد دیارلس کاله ښودل شوی، په دې طریقه ټول عمر ۶۳ کاله عمر جوړیږي. امام بخاري رح وغیره علماؤ همدا صحیح او راجح ګرځولی. په زیر بحث روایت کې د لسیزو ذکر شوی دی او کسر پریښودل شوی دی. عرب په خپله محاوره کې همداسې کوي، په بعضو روایاتو کې د حضور صلی الله علیه وسلم ټول عمر ۶۵ کاله ښودل شوی دی نو په دې کې د ولادت او وفات دوه کلونه شمیرل شوي دي، صحیح هماغه روایت دی چې په هغه کې ۶۳ کاله ذکر دي چې په هغه کې په مکه کې ۱۳ کاله او په مدینه کې لس کاله زمانه بیان شوې ده په دې طریقه ټول عمر ۶۳ کاله کیږي. ربعة: یعني د درمیانه قد والا وو، نه یې قد ډیر اوږد وو او نه ټیټ وو. لیس بالطویل ولا بالقصیر د همدغه لفظ تفسیر دی. (ازهر اللون) یعني د واضحه او صفا رنګ مالک وو. په سپین رنګ کې چې کله چمک وي همدغه مراد دی.

---

[1] اخرجه البخاري في صحيحه ۶/۵۶۲ رقم الحديث ۳۵۴۷.۳۵۴۸ ومسلم في صحيحه ۴/۱۸۲۴ رقم الحديث (۲۳۴۷.۱۱۳)

**ضخم الرأس:** يعني د اعتدال سره د هغه صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د سر حجم لوی وو، دا د عزت او عظمت او سرداری علامت وي او د عربو په نزد ډير ممدوح دی. **(شثن القدمين)** يعني د هغه صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لاسونه او پښې دواړه د غوښو نه ډک او سخت مضبوط وو دا هم په عربو کې محمود او ممدوح وو مګر په نارينو کې نه په ښځو کې، د ښځو لپاره شاعر وايي:

**وتعطو برخص غير شثن كأنها　اساريع ظبي او مساويك اسحل**

د لاسونو او پښو د اطرافو سخت کيدل د تخليق په اعتبار سره وو، نه دا چې زبره وو، د زبرو خو نفی ده.. مضبوط لاس او مضبوط قدم مراد دی. **ای غليظ الاطراف من شَثُنَ بالضم والكسر اذا غلظ (مرقات)** ګويا د سبط الكفين او شثن الكفين معنی يوه ده.

| |
|---|
| **﴿۸﴾ وَعَنِ الْبَرَاءِ قَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَرْبُوْعًا بُعَيْدَ مَا بَيْنَ الْمَنْكِبَيْنِ** |
| او براء رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وايي د رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ميانه قد وو او د دواړو اوږو په منځ کې کافي لريوالی |
| **لَهُ　شَعْرٌ　بَلَغَ　شَحْمَةَ　أُذُنَيْهِ　رَأَيْتُهُ　فِيْ　حُلَّةٍ　حَمْرَاءَ** |
| وو د حضور صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د سر مبارک ويښته د غوږونو د نرميو پوري وو او ما حضور صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سور لباس کې |
| **لَمْ　أَرَ　شَيْئًا　قَطُّ　أَحْسَنَ　مِنْهُ.　مُتَّفَقٌ　عَلَيْهِ.　وَفِيْ　رِوَايَةٍ　لِمُسْلِمٍ** |
| وليدلو ما د حضور صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه زيات حسين هيڅ شی نه دی ليدلی. [بخاري مسلم] او د مسلم په يوه |
| **قَالَ　مَا　رَأَيْتُ　مِنْ　ذِيْ　لِمَّةٍ　أَحْسَنَ　فِيْ　حُلَّةٍ** |
| روايت کې دا الفاظ دي چې حضرت براء رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ووېل ما هيڅ ويښتانو والا سړی سور لباس کې د |
| **حَمْرَاءَ　مِنْ　رَسُوْلِ　اللهِ　صَلَّى　اللهُ　عَلَيْهِ　وَسَلَّمَ　شَعْرُهُ** |
| رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه زيات حسين او وجيه نه دی ليدلی د حضور صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د سر مبارک ويښته د اوږو |
| **يَضْرِبُ　مَنْكِبَيْهِ　بُعَيْدُ　مَا　بَيْنَ　الْمَنْكِبَيْنِ** |
| پوري وه د حضور صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د دواړو اوږو په منځ کې کافي پراخوالی وو او د حضور صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |

| لَيْسَ بِالطَّوِيْلِ وَلَا بِالْقَصِيْرِ. [۱] |
|---|
| قد نه ډير دنګ او نه ټيټ وو. |

**توضيح** : يعنې دولو مينځ کې فاصله يې زياته وه دده نه دسينې کولاو والى معلوميږي چې ممدوح او ښه دى د پيغمبر عليه السلام د ويختانو مکمل تحقيق دده نه مخکې کتاب اللباس کې تيرشوى دى

| ﴿۹﴾ وَعَنْ سِمَاكِ بْنِ حَرْبٍ عَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ قَالَ كَانَ |
|---|
| او حضرت سماک بن حرب د حضرت جابر بن سمره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت کوي هغه وويل |
| رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ضَلِيْعَ الْفَمِ أَشْكَلَ الْعَيْنِ |
| رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ کولاو خولې والا وو سترګو کې يې سُرخي وه او پوندي يې کمې غوښې ولاوي راوي وايي |
| مَنْهُوْشُ الْعَقِبَيْنِ قِيْلَ لِسِمَاكٍ مَا ضَلِيْعُ الْفَمِ |
| چې حضرت سماک نه پوښتنه وشوه چې ضليع الفم نه څه مراد دى؟ نو هغه وويل لويې خولې والا |
| قَالَ عَظِيْمُ الْفَمِ قِيْلَ مَا أَشْكَلُ الْعَيْنِ قَالَ طَوِيْلُ |
| هغه نه پوښتنه وشوه چې د اَشکل العين څه معنٰى ده؟ نو جواب يې ورکړو د دې معنى ده د سترګو د دائرې |
| شَقِّ الْعَيْنِ قِيْلَ مَا مَنْهُوْشُ الْعَقِبَيْنِ قَالَ قَلِيْلُ |
| لوى والى بيا ترينه پوښتنه وشوه چې د منهوش العقبين څه معنٰى ده؟ نو جواب يې ورکړه هغه |
| لَحْمِ الْعَقِبِ. رَوَاهُ مُسْلِمٌ. [۲] |
| پوندي چې غوښې يې کمې وې. [مسلم] |

**توضيح** : (ضليع الفم) اى وسيعه يعنې د اعتدال سره د هغه خوله مبارکه پراخه وه. عرب خلک پراخه خوله خوښوي، پراخه خوله د فصاحت او بلاغت علامت دى. **(اشكل العينين) هو مافيه حمرة و بياض**

---

([۱]) اخرجه البخاري في صحيحه ۶/۵۶۵ رقم الحديث ۳۵۵۱ ومسلم في صحيحه ۴/۱۸۱۸ رقم الحديث (۹۱.۲۳۳۷)

([۲]) اخرجه مسلم في صحيحه ۴/۱۸۲۰ رقم الحديث ( ۹۷.۲۳۳۹) والترمذي في السنن ۵/۵۶۳ رقم الحديث ۳۶۴۷.

**مختلطة** یعنې غټې سترګې يې وي سپينوالى يې زيات سپين او توروالى يې زيات تور وو او په سپينوالى كې يې سره خطونه وي چې دا د نهايت ښايست علامه ده، سماک راوي چې د اشكل العينين كوم تفسير كړى دى عامو شارحينو دا غلط ګرځولى دى، هو ! د سترګو د غټوالى لپاره دا تفسير صحيح دى.

**منهوش العقبين:** عقب پوندې ته وايې او منهوش د نهش ذى نه كمې غوښې ته وايې، د پوندو باريكوالى د ښايست علامه ده.

| |
|---|
| ﴿۱۰﴾ وَعَنْ أَبِي الطُّفَيْلِ قَالَ رَأَيْتُ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| او حضرت ابو طفيل رضي الله عنه وايي ما رسول الله ﷺ اوليدلو چې سپين او خوش رنګه وو او متوسط |
| كَانَ أَبْيَضَ مَلِيْحًا مُقَصَّدًا. رَوَاهُ مُسْلِمٌ. [1] |
| القامت او متناسب الاعضاء والا وو. [مسلم] |

**توضيح:** (**مقصدا**) يعنې د افراط او تفريط نه بالاتر د هغه قد مبارک متوسط او معتدل وو، د دينه مخكې د ربعة القوم چې كوم لفظ دى د هغه معنى او د مقصدا معنى يوه ده. (**مليحا**) يو ساده سپينوالى دى هغه دومره ښايسته نه وي، د بياض سره چې د ملاحت والا نمكين رنګ وي هغه زيات او چت ښايست وي، دلته هم همدا بيانول مقصود دي، په يو حديث كې حضور ﷺ فرمايلي: **انا مليح و أخي يوسف صبيح.**

## حضور ﷺ خضاب نه دى استعمال كړى؟

| |
|---|
| ﴿۱۱﴾ وَعَنْ ثَابِتٍ سُئِلَ أَنَسٌ عَنْ خِضَابِ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| او ثابت رضي الله عنه وايي چې انس رضي الله عنه نه د رسول الله ﷺ د خضاب باره كې تپوس وشو |
| فَقَالَ إِنَّهُ لَمْ يَبْلُغْ مَا يَخْضِبُ لَوْ شِئْتُ أَنْ أَعُدَّ |
| نو هغه وفرمائيل: د حضور ﷺ عمر دومره چيرته وو چې خضاب يې استعمال كړى وى، كه ما |
| شَمَطَاتِهِ فِيْ لِحْيَتِهِ وَفِيْ رِوَايَةٍ لَوْ شِئْتُ أَنْ |
| د حضور ﷺ د ږيرې مباركې سپين ويښتان شميرل غوښتل نو يقيناً شميرلى مې شو په يوه روايت |
| أَعُدَّ شَمَطَاتٍ كُنَّ فِيْ رَأْسِهِ فَعَلْتُ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. |
| كې دا الفاظ دي كه ما د حضور ﷺ د سر مبارک سپين ويښتان شميرل غوښتلى نو شميرلى مې |

---

(1) اخرجه مسلم في صحيحه ۴/۱۸۲۰ رقم الحديث (۹۹. ۲۳۴۰) وأبوداود ۵/۱۸۶ رقم الحديث ۴۸۶۴.

| وَ فِيْ رِوَايَةٍ لِمُسْلِمٍ قَالَ اِنَّمَا كَانَ الْبَيَاضُ فِيْ عَنْفَقَتِهِ |
|---|
| شو [بخاري مسلم] او په يوه روايت کې داهم دي چې انس رضي الله عنه وويل د وينښتانو سپين والى |
| وَ فِي الصُّدْغَيْنِ وَ فِي الرَّأْسِ نَبْذٌ.[1] |
| د حضور صلى الله عليه وسلم د ږيرې مبارکې لاندې حصه کې او څنګو کې او څه سر مبارک کې وو |

**توضيح: شمطات:** د بوډاوالى په وجه چې په سر او ږيره کې څو سپين وينښتان ظاهره شي هغې ته شمطات وايي. **فعلت:** ددينه په مخکې حديث کې د لو لفظ د شرط لپاره دى د هغه جزا فعلت دى. حضرت انس رضي الله عنه دا بيانوي چې د حضور صلى الله عليه وسلم بوډاوالى هغه حد ته رسيدلى نه وو چې ټول وينښتان سپين شوي وي او هغه خضاب ته محتاج شوي وي.

## د حضور صلى الله عليه وسلم ريښمي او عنبري بدن

| ﴿۱۲﴾ وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَزْهَرَ اللَّوْنِ كَأَنَّ عَرَقَهُ اللُّؤْلُؤُ |
|---|
| او انس رضي الله عنه وايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم د بريښنيدونکي رنګ والا وو او ويې د ملغلرو په شان |
| إِذَا مَشٰى تَكَفَّأَ وَمَا مَسِسْتُ دِيْبَاجَةً وَلَا حَرِيْرًا أَلْيَنَ |
| وي حضور صلى الله عليه وسلم چې به پر لار روان وو نو مخې طرف ته به خکته کېدو سره تللو او ما هيڅ وريښم هم |
| مِنْ كَفِّ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ لَا شَمَمْتُ مِسْكًا وَ لَا عَنْبَرَةً |
| د رسول الله صلى الله عليه وسلم د ورغيو نه زيات نرم نه دي پيدا کړي او نه ما څه داسې مشک او عنبر بوى کړي دي |
| أَطْيَبَ مِنْ رَائِحَةِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ . مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ[2] |
| چې په هغه کې د رسول الله صلى الله عليه وسلم د بدن مبارک د خوشبوئي نه زياته خوشبوئي وي [بخاري مسلم] |

**توضيح:** (**ازهر اللون**) د واضحه روښانه او ځليدونکي په معنى سره دى. (**تكفأ**) په تګ کې مخکې طرفته جهکې سره تګ ته تکفاء وايي. (**ديباجة**) يو ډبل قسم ريښم دي. (**عنبرة**) د مشک او عنبر په معنى سره دى.

## أم سليم او ام حرام رضي الله عنها د حضور صلى الله عليه وعلى آله وسلم محارمې وې

| ﴿۱۳﴾ وَعَنْ أُمِّ سُلَيْمٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَأْتِيْهَا فَيَقِيْلُ |
|---|
| او ام سليم رضي الله عنها نه روايت دى چې رسول الله صلى الله عليه وسلم به هغه کره راتلو او قيلوله به يې کوله ام سليم، |

---

(1) اخرجه البخاري في صحيحه رقم الحديث ۵۸۹۵ ومسلم في صحيحه ۴/۱۸۲۱ رقم الحديث (۲۳۴۱.۱۰۵)

(2) اخرجه البخاري ۶/۵۶۶ رقم الحديث ۳۵۶۱، ومسلم ۴/۱۸۱۵ رقم الحديث (۲۳۳۰.۸۲) وأحمد في المسند ۳/۲۲۸

عِنْدَهَا فَتَبْسُطُ نِطْعًا فَيَقِيلُ

به حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د پاره د چمړې (ثرمنې) بستره غوړوله او حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به په هغې ارام کوی نبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

عَلَيْهِ وَكَانَ كَثِيرَ الْعَرَقِ فَكَانَتْ تَجْمَعُ عَرَقَهُ

باندې به خوله ډیره راتله ځکه چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ کثیر الحیاء وو ام سلیم به د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خوله جمع

فَتَجْعَلُهُ فِي الطِّيبِ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

کولو سره خپلو عطرو کې یو ځاي کوله یو ورځ حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغه خوله جمع کولو باندې ولیده نو

يَا أُمَّ سُلَيْمٍ مَا هٰذَا قَالَتْ عَرَقُكَ نَجْعَلُهُ فِي

پوښتنه یې ترینه وکړه ام سلیم دا ته څه کوې؟ ام سلیم رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وویل دا ستا سو خوله مبارکه ده چې

طِيبِنَا وَهُوَ مِنْ أَطْيَبِ الطِّيبِ

مونږ یې په خپلو خوشبویو کې ګډو وا و دا د ټولو خوشبویو نه زیاته خوشبو د اره ده او په یوه

وَفِي رِوَايَةٍ قَالَتْ يَا رَسُولَ اللهِ

روایت کې دا الفاظ دي چې ام سلیم رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وویل یارسول الله! دا خوله مبارکه مونږ خپلو بچو د پاره

نَرْجُو بَرَكَتَهُ لِصِبْيَانِنَا قَالَ أَصَبْتِ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. [1]

د برکت باعث ګڼو حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمائیل تا صحیح وویل او ښه دې وکړل. [بخاري مسلم]

**توضیح** : (نطعا) د چرم (ثرمن) دسترخوان ته وایې دلته د ثرمنې بستره مراد ده . ام سلیم رَضِيَ اللهُ عَنْهَا د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رضاعی خاله یا عمه ده ، ام حرام رَضِيَ اللهُ عَنْهَا یې هم دارنګه خپله ده ، لهذا دا دواړه ښځې د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د محارمو نه دي. (یقیل) د قیلوله نه دی د غرمې په وخت آرام او خوب کولو ته وایې.

**سوال** : دلته دا سوال دی چې ام سلیم رض او ام حرام رض د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رضاعی خاله ګاني څنګه شوې حال دا چې آنحضرت صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په مدینه منوره کې د کومې ښځې شودې څکلی نه دي او دا انصاري ښځې د مدینې منورې دي؟

**جواب** : ددې جواب دا دی چې کیدلی شي چې دوی دواړو د عبد الله صاحب سره یې رودلی وي نو دوی د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عمه ګانې شوې یا یې د حضرت آمنې سره شودې رودلي وي نو د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خاله ګانې شوې ، عبد الله صاحب او حضرت آمنه په مدینه منوره کې اوسیدل او ام سلیم رَضِيَ اللهُ عَنْهَا او ام حرام رَضِيَ اللهُ عَنْهَا په مدینه کې د بنو نجار زنانه دي ، بنو نجار د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ماماګان وو ، علامه طیبی رحمه

---

(1) اخرجه البخاري ۱۱/۷۰ رقم الحديث ۶۲۸۱ ومسلم ۴/۱۸۱۵ رقم الحديث (۸۳.۲۳۳۱) واحمد في المسند ۳/۱۳۶.

الله دغه توجيه کړې ده او فرمايلي يې دي چې يو شارح هم دې اهمې نکتې ته اشاره کړې نده ، زه الله تعالى په دې قيمتي ملغلرې سره مشرف کړم او ددې فهم يې راته عطاء کړلو ، بنده عاجز فضل محمد غفرله وايې چې واقعي علامه طيبي رحمه الله په دغه علمي جوهر باندې نازولى دى چې په دې سره لوى سوال حل شو ، د علامه طيبي رحمه الله عربي عبارت داسې دى (**والالى والله اعلم اول من وقفت لذلک فواها لها من درة كنت مستخرجها و اثر احمد على هذه الموهبة السنية**)

﴿۱۴﴾وَعَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ قَالَ صَلَّيْتُ مَعَ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلَاةَ الْأُوْلٰى

او جابر بن سمره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي يو وخت ما رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره د ماپښين مونځ وکړه مانځه

ثُمَّ خَرَجَ إِلٰى أَهْلِهِ وَخَرَجْتُ مَعَهُ فَاسْتَقْبَلَهُ

نه روسته حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خپل کورته تلو د پاره مسجد نه بهر راووتلو او حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره زه هم بهر

وِلْدَانٌ فَجَعَلَ يَمْسَحُ خَدَّيْ أَحَدِهِمْ وَاحِدًا وَّاحِدًا وَأَمَّا أَنَا

راغلم اتفاقا د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مخ ته څه ماشومان راغلل حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ميني کولو د پاره د هر ماشوم

فَمَسَحَ خَدِّيْ فَوَجَدْتُّ لِيَدِهٖ بَرْدًا

په مخ لاس راخکلو کړو او بيا يې زما په مخ لاس راخکلو هغه وقت ما د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د لاس مبارک

أَوْ رِيْحًا كَأَنَّمَا أَخْرَجَهَا مِنْ جُؤْنَةِ

داسې يخوالى او خوشبو محسوسه کړله لکه چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اوس د عطرو د شيشې نه خپل

عَطَّارٍ. رَوَاهُ مُسْلِمٌ. وَذُكِرَ حَدِيْثُ جَابِرٍ سَمُّوْا بِاسْمِيْ فِيْ بَابِ الْأَسَامِيْ[1]

لاس را اوخکلى وي [مسلم] او د حضرت جابر روايت سموا باسمي الخ باب الاسامي کې او د

وَحَدِيْثُ السَّائِبِ بْنِ يَزِيْدَ نَظَرْتُ إِلٰى خَاتَمِ النُّبُوَّةِ فِيْ بَابِ أَحْكَامِ الْمِيَاهِ.

حضرت سائب بن يزيد روايت: نظرت الى خاتم النبوة الخ باب احكام المياه کې نقل شوى دى

**توضيح** : واحدا واحدا: ما ددې ترجمه داسې کړې ده لکه څنګه چې پورته ذکر ده ، په دې طريقه حضرت جابر رض خپل فضيلت ثابتوي چې د نورو ماشومانو په يو يو باړخو (مخ) باندې لاس وګرځولو او زما په دواړو باړخوګانو باندې يې لاس وګرځولو ، په يو بل حديث کې ددې تصريح موجوده ده . (**بردا**) يخوالي ته وايې ، (**او ريحا**) دلته د او کلمه په معنى د واو سره ده يا د بل په معنى سره ده يعنې يخوالى او خوشبو يا

[1] اخرجه مسلم في صحيحه ۴/۱۸۱۴ رقم الحديث (۲۳۲۹.۸۰)

يخوالي بلکه خوشبو ، دا معنی شوه . (جعرنة عطار) د عطر فروش هغه ډبي ته جونه ويل کيږي چې په هغې کې عطر ساتي ، په جيم باندې ضمه ده د هغه نه بعد همزه ساکنه ده . (اى سلته و حقته) علامه نووي رحمه الله فرمايي چې دا خوشبو د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د جسم مبارک وه اګرچې هغه عطر هم په کثرت سره استعمالول مګر دا خوشبو د هغه ذاتي خوشبو وه ، يعنې هغه به چې کله د خپلې جيبې نه لاس راويستلو نو په هغه کې به يخوالي هم وو او خوشبو به هم وه . دواړه شيان ذاتي وو .

**۲۰ جمادی الثاني ۱٤۱۸هـ**

## اَلْفَصْلُ الثَّانِيْ

## د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حُلیه

﴿۱۵﴾ عَنْ عَلِيِّ بْنِ اَبِيْ طَالِبٍ قَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيْسَ بِالطَّوِيْلِ وَ لَا بِالْقَصِيْرِ

علي بن ابي طالب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه اوږد قد والا وو نه ټيټ قد والا او غټ

ضَخْمَ الرَّأْسِ وَ اللِّحْيَةِ. شَثْنَ الْكَفَّيْنِ وَالْقَدَمَيْنِ مُشْرَبًا حُمْرَةً

سر او ګڼې ږيرې والا وو د لاسونو تلې او پښې يې غوښنې وې رنګ يې سور او سپين وو د

ضَخْمَ الْكَرَادِيْسِ طَوِيْلَ الْمَسْرُبَةِ إِذَا

هډوکو جوړونه يې غټ وو او د سينې نه نامه پورې د ويښتانو يوه اوږده کرښه وه کوم وقت چې به

مَشٰى تَكَفَّأَ تَكَفُّأً كَاَنَّمَا يَنْحَطُّ مِنْ

حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ روان وو نو د مخې طرف ته به خکته تلو ګويا کې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د بلندۍ نه خکته ته

صَبَبٍ لَمْ أَرَ قَبْلَهُ وَلَا بَعْدَهُ مِثْلَهُ

راځي حقيقت دادی چې ما د په شان هيڅ سړی نه مخکې ليدلی دی او نه د حضور) نه وروسته

صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ

په حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دې د الله ! رحمت او سلامتي وي دا روايت ترمذي نقل کړی دی او

وَقَالَ هٰذَا حَدِيْثٌ حَسَنٌ صَحِيْحٌ. [۱]

ويلي يې دي چې دا حديث حسن صحيح دی.

**توضيح : مشربا حمرة:** يعنې د هغه سپين بدن سره اندازه سور والی ګډ شوی وو يعنې د سور او سپين رنګ

---

(۱) اخرجه الترمذي ٥/٥٥٨ رقم الحديث ٣٦٣٧ واحمد فی المسند ١/٩٦.

آمیزه وو چې نهایت ښایسته رنګ دی. د دوو مختلف رنګونو ګډوالی ته تشریب وایې ګویا یو رنګ د بل رنګ سره ملاو شوی دی.

**الكراديس:** دا د كردوس جمع ده هر هغه هډوكي ته وايې چې د بل هډوكي سره په يو جوړ باندې جمع كيږي اى عظيم الاعظاء مطلب دا دى چې د هغه د هډوكو جوړ غټ وو.

**ينحط:** دا د خكته كيدلو په معنى سره دى، **من صبب:** دا د پاسه نه د لاندې طرفته راتللو په معنى سره دى مطلب دا دى چې ګويا هغه د اوچت ځاى نه لاندې كوزيږي. دا د **تكفأ** تفسير دى.

## دحضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جامع صفات

﴿۱۶﴾ وَعَنْهُ كَانَ إِذَا وَصَفَ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

او د حضرت علي بن ابي طالب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دى كله چې به هغوى د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اوصاف بيانول

قَالَ لَمْ يَكُنْ بِالطَّوِيلِ الْمُمَغِّطِ وَلَا بِالْقَصِيرِ

نو ويل به يې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه ډير اوږد وو او نه ډير ټيټ بلكه ميانه قد په خلقو كې وو د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

الْمُتَرَدِّدِ وَكَانَ رَبْعَةً مِنَ الْقَوْمِ وَلَمْ يَكُنْ بِالْجَعْدِ

ويښتان نه ډير ولول وو نه بالكل سيده وه بلكه څه لږ وَل خوړلو سره وه مخ يې نه بالكل ګول او

الْقَطِطِ وَلَا بِالسَّبْطِ كَانَ جَعْدًا رَجِلًا وَلَمْ يَكُنْ

دروند وو او نه يې اننګې پړسيدلي وه بلكه پوره مخ او رخسار يې يو شان او برابر وو او تندى يې

بِالْمُطَهَّمِ وَلَا بِالْمُكَلْثَمِ وَكَانَ فِي الْوَجْهِ تَدْوِيرٌ

بلند وو مخ مبارك يې څه قدرې كرد كې وو رنګ يې سور سپين وو سترګې يې تورې وې بانوګان

أَبْيَضُ مُشْرَبٌ أَدْعَجُ الْعَيْنَيْنِ أَهْدَبُ الْأَشْفَارِ

يې اوږده وو د بندونو هډوكې يې راپورته او د اوږو درميانه حصه يې چيرته چې د دواړو

جَلِيلُ الْمُشَاشِ وَالْكَتِدِ أَجْرَدُ ذُو مَسْرُبَةٍ شَثْنُ

اوږو هډوكې يو ځاى كيږي مضبوط او غوښن وه په جسم مبارك يې ويښتان نه وو صرف د ويښتانو

الْكَفَّيْنِ وَالْقَدَمَيْنِ إِذَا مَشَى يَتَقَلَّعُ كَأَنَّمَا يَمْشِي

يوه كرښه وه چې سينې نه نامه پورې تلې وه لاس او پښې يې ډك يعني غوښن وو په لار چې به تللو

فِي صَبَبٍ وَإِذَا الْتَفَتَ الْتَفَتَ مَعًا بَيْنَ كَتِفَيْهِ

نو قوت سره به يې قدم پورته کوه لکه چې د اوچت ځای نه چې راکوزیږي هر کله چې به ښي یا چپ طرف ته متوجه

خَاتَمُ النُّبُوَّةِ وَهُوَ خَاتَمُ النَّبِيِّينَ أَجْوَدُ

کیده نو پوره جسم سره به متوجه کیده او د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د دواړو اوږو په منځ کې مُهرِ نبوت وو

النَّاسِ صَدْرًا وَأَصْدَقُ النَّاسِ لَهْجَةً

او حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خاتم النبيين وو حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ټولو خلقو کې د ټولو نه زيات د زړه

وَأَلْيَنُهُمْ عَرِيكَةً وَأَكْرَمُهُمْ

سخي او د ژبې ډیر ریښتنی وو د طبیعت ته ډیر نرم او د ټولو نه معزز او مکرم انسان وو کوم

عَشِيرَةً مَّنْ رَآهُ بَدِيهَةً هَابَهُ وَمَنْ

سړي چې به په مخکني وار اولیدلو نو هیبت به وربانديې راتلو او کوم سړي چې به حضور %

خَالَطَهُ مَعْرِفَةً أَحَبَّهُ يَقُولُ نَاعِتُهُ

سره واقفیت او میل جول درلودلو نو ډیر محبت به یې ورسره کوه د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ داصفات او

لَمْ أَرَ قَبْلَهُ وَلَا بَعْدَهُ

خصوصیات بیانونکی وایي چې د هغه په شان هیڅ سړی ما د هغه صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه مخکې لیدلی دی او نه

مِثْلَهُ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.[1]

روسته د الله رحمت او سلامتیا دي وي په حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

**توضیح**: **الممغط**: په میم اول باندې ضمه ده دویم مفتوح دی په غین باندې شد او کسره ده د حد نه زیات اوږد ته وایي.

**المتردد**: د حد نه زیات وړوکی قد والا ته وایې ګویا بعضې اندامونه په بعضو کې ننوتلي دي.

**ربعة من القوم**: د ماسبق لپاره تأکید دی.

**جعدا رجلا**: یعنې معمولي پیچداره ویښتان یې وه.

**بالمطهم**: دا لفظ د اضدادو نه دی د زیاتې غوښې والا چاغ ته هم وایې او د کمې غوښې والا خوار ته هم

---

(۱) اخرجه الترمذي في السنن ۵/۵۵۹ رقم الحديث ۳۶۳۸.

وايې او د پرسيدلى مخ والا ته هم ويل کيږي.

**المكلثم:** د معمولي اوږدوالى سره د ګرد مخ والا وو (د همدا وضاحت د راتلونکى عبارت دى) چې بالکل ګرد مخ يې نه وو يو څه اوږدوالى پکې وو.

**ابيض مشرب:** يعنې د هغه رنګ سپين وو چې هغه ته سوروالى ورځکول شوى وو يا سپين وو سرخۍ ته مائل وو.

**ادعج العينين:** اى اسود العينين **مع سعتهما** يعنې غټې غټې سترګې يې وې ډيرې تورې وې د هغې سره سپينوالى مخلوط وو، د **اشكل العينين** په انداز باندې په دې کلام باندې پوهيدل پکار دي.

**اهدب الاشفار:** اهدب د اوږدو او غټو په معنى سره دى، اشفار د باڼو ويښتانو ته وايې، يعنې د باڼو ويښتان يې اوږده وو.

**جليل:** د غټ په معنى سره دى. **المشاش:** هډوکى ته وايې مطلب دا دى چې د حضور صلی الله علیه وسلم د هډوکو سر او جوړلوى او مضبوط او غوښين وه، لکه څنګه چې د زنګنونو، اوږو او مړوندونو د هډوکو جوړ وي.

**الكتد:** د دواړو اوږو په مينځ کې چې کومه حصه ده هغې ته کتد ويلى شوى، يعنې شانه يې هم مضبوطه او غوښينه وه.

**اجرد:** يعنې په عام بدن باندې يې زيات ويښتان نه وو.

**ذومسربة:** د غاړې نه واخله تر نامه پورې د ويښتانو يو ښايسته خط وو، همديته مسربة ويل شوي، په ماشوموالى کې د شرح صدر نه وروسته د ملائکو د ګنډلو په نشان باندې د ويښتانو خط جوړ شوى وو د هغه ذکر دى.

**يتقلع:** يعنې د تګ په وخت کې به يې په چالاکۍ سره د ځمکې نه قدم پورته کولو سره تګ کاوه، د ښځو او سستو خلکو پشان د خپلو په راخکلو سره به يې تګ نه کولو، په دغه کيفيت کې د **يتكفأ** کيفيت هم پيدا کيږي چې ذکر يې مخکې هم شوى دى.

**التفت معا:** يعنې د متکبرو خلکو پشان به يې د سترګو په کونجونو سره نه کتل بلکه کوم طرفته به يې چې کتل نو د ټول مخ په ګرځولو سره به يې کتل.

**صدرا:** سينې ته صدر وايې دلته په زړه باندې د صدر اطلاق شوى دى يعنې د زړه په اعتبار سره د ټولو نه زيات سخى وو.

**لهجة:** په خبرو او ژبه کې ريښتونى وو، لهجه ژبې ته ويلى شوې.

**عريكة:** طبيعت او مزاج او طرف ته وايې.

**عشيرة**: زندګی او معاشرت مراد دی. **بديهة**: ناڅاپه کتلو ته بديهة ويلی شي.

**هابه**: دا د هيبت نه دی يعني هغه ته چې الله تعالی کوم قدرتی رعب ورکړی وو د هغه په وجه به نوی راتلونکی ويريده.

**خالطه**: د اختلاط نه دی.

**معرفة**: يعني د نړدې ليدلو سره واقف کيدلو باندې د هغه سره مينه کونکی جوړيده.

عقلاؤ او حکماؤ ويلي دي چې د کوم شخص ظاهری او باطنی ژوند يو قسم وي او دواړه خلاص کتابونه وي کوم طرف يې پټ نه وي د داسې شخص متعلقين د هغه نه جدا کيږي بلکه نوره مينه يې هم ورسره پيدا کيږي. د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د زندګی ټول جوانب د خلاص کتاب پشان واضحه وو، په دغه وجه چا چې د نړدې ليدلو سره قبول کړلو نو بيا به هغه شخص د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شولو، د جسم ټوټې به يې پرې کيدلې خو څوک به هم نه وروسته کيدلو ددې برعکس اکثر د هغه شخص باره کې خلک دوکه کيږي د چا چې يو جانب خوشنما ظاهره وي مګر بل جانب يې بدنما پټ وي، د نن سبا غلط قسمه خلک همداسې وي که هغه د دنيا په حواله سره غټ شوي وي يا د دين په حواله سره غټ شوي وي.

**ناعته**: د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صفت بيانونکی ته ناعت او نعت ګو ورته ويلی کيږي، دلته حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مراد دی.

## د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د جسم خوشبو

| |
|---|
| ﴿۱۷﴾ وَعَنْ جَابِرٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمْ يَسْلُكْ |
| او حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ چې به په يوه لار تير شو نو حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه وروسته |
| طَرِيْقًا فَيَتْبَعُهُ أَحَدٌ إِلَّا عَرَفَ أَنَّهُ قَدْ سَلَكَهُ |
| چې به يو سړی هغه لارې باندې تيريده هغه به د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د جسم مبارک خوشبو يا دائي وويل |
| مِنْ طِيْبِ عَرْفِهِ أَوْ قَالَ مِنْ |
| د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د خولې [پسيني] مبارکې خوشبو نه معلومو له چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په دې |
| رِيْحِ عَرَقِهِ. رَوَاهُ الدَّارِمِيُّ. [۱] |
| لار تشريف وړی دی. [دارمي] |

---

الدارمي في السنن ۱/۴۵ رقم الحديث ۶۶.

**توضیح** : الاعرف: يعنې د حضور صلى الله عليه وسلم قدرتي خوشبو به د هغه پته ورکوله . دا د هغه د جسم ذاتي خوشبو وه . ددې سره سره هغه به رياته خوشبو هم استعمالوله ، په هر حال د هغه مبارک معطر بدن به د هغه پته ورکوله ، شاعر وايي :

قلق المليحة وهي مسک هتکها      ومسيرها في الليل وهي ذكاء

واذا كتمت وشت بک الآلاء

## د حضور صلى الله عليه وسلم وجود مبارک د نمر په شان وو

| |
|---|
| ﴿۱۸﴾ وَعَنْ أَبِيْ عُبَيْدَةَ بْنِ مُحَمَّدِ بْنِ عَمَّارِ بْنِ يَاسِرٍ قَالَ قُلْتُ لِلرُّبَيِّعِ بِنْتِ مُعَوِّذِ بْنِ عَفْرَاءَ |
| ابوعبيده بن محمد بن عمار بن ياسر رضي الله عنهم وايي چې ما د معوذ بن عفراء لور بي بي ربيع صحابيه رضي الله عنها |
| صِفِيْ لَنَا رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَتْ يَا بُنَيَّ |
| ته وويل چې تا سو څما مخکې د رسول الله صلى الله عليه وسلم وصف بيان کړئ نو هغې وويل څما ځويه ! |
| لَوْ رَأَيْتَهُ رَأَيْتَ الشَّمْسَ طَالِعَةً. رَوَاهُ الدَّارِمِيُّ. (۱) |
| که تا حضور صلى الله عليه وسلم ليدلی وی نو داسې به دې ګڼل لکه چې بريښيدونکی نمر دې ليدلی دی. [دارمي] |

**توضیح** : **الشمس طالعة**: يعنې د نبی کريم صلى الله عليه وسلم مخ به داسې ځليده لکه څنګه چې لمر په نصف النهار کې ځليږي ، بعضو صحابو د هغه مخ د سپوږمۍ پشان ښودلی دی ، هر يو په خپل خپل انداز سره بيان کړی دی ، ددې سره که د تورو زلفو تذکره وشي نو بيا څه وايې ، يو شاعر وايې :

مثالی را که در شرطيه گفتند      بگو با منطقيان کان هست مردود

رخ وزلفين يارم را نظر کن      که شمس طالع والليل موجود

## د سپوږمۍ نه زيات ښائسته وو

| |
|---|
| ﴿۱۹﴾ وَعَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ قَالَ رَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| او جابر بن سمره رضي الله عنه وايي يو وخت ما د سپوږمۍ په رڼا کې حضور ته کتل او صورت دا وو |
| فِيْ لَيْلَةٍ إِضْحِيَانٍ فَجَعَلْتُ أَنْظُرُ إِلَى رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| چې کله به مې د حضور صلى الله عليه وسلم جمال عالمتاب ته کتل او کله سپوږمۍ ته هغه وقت د حضور صلى الله عليه وسلم په |

| وَإِلَى | الْقَمَرِ | وَعَلَيْهِ | حُلَّةٌ | حَمْرَاء | فَإِذَا | هُوَ | أَحْسَنُ | عِنْدِيْ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| جسم مبارک د هغه کپړي لباس وو چې په هغه کې حقیقت دا دی چې ځما په نزد د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ | | | | | | | | |
| مِنَ الْقَمَرِ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَالدَّارِمِيُّ.[1] | | | | | | | | |
| حسن او جمال د سپوږمۍ نه ډېر زيات وو. | | | | | | | | |

**توضيح**: اضحيان: د سپوږمۍ والا شپې ته وايي. حلة: جوړې ته وايي چې په هغې کې قميص او پرتوګ د يو قسم کپړې نه وي. حمراء: د سرې جوړې اغوستل ممنوع دي، دلته د حمراء نه سره جوړه مراد نه ده بلکه داسې کپړه مراد ده چې په هغې کې سره خطونه وي ټوله سره نه وی. احسن عندی: د عندی مطلب دا ندی چې زما په نيزد داسې وو او د نورو خلکو په نزد داسې نه وو بلکه مطلب دا دی چې حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د خپل ذاتی جذباتو اظهار کړی دی او د عقيدت ظاهرولو په خاطر يې داسې ويلي دي، د دينه کوم منفي جانب مقصود نه دی، حضرت حسان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايلي:

و احسن منک لم تر قط عيني — و اجمل منک لم تلد النساء

خلقت مبرأ من کل عيب — کأنک قد خلقت کما تشاء

يا صاحب الجمال و يا سيد البشر — من وجهک المنير لقد نور القمر

لايمکن الثناء کما کان حقه — بعد از خدا بزرگ توئی قصه مختصر

اوريدلي مې دي چې ابوعلی سينا د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د سيرت متعلق يو کتاب ليکلی دی په هغه کې يې ليکلي دي چې حسن د تناسب الاعضاء لپاره نوم دی او حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مکمل طور باندې متناسب الاعضاء وو، د حضرت آدم عَلَيْهِ السَّلَامُ نه واخله تر حضور اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ پورې هيڅ شخص متناسب الاعضاء پيدا شوی نه دی او نه به تر قيامته پورې پيدا شي، لهذا په حسن او جمال کې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يواځې وو.

## ګويا د پيغمبر صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په مخ کې نمر منډې وهي

| ﴿۲۰﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ مَا رَأَيْتُ شَيْئًا أَحْسَنَ مِنْ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| او ابوهريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې ما د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه زيات حسين او جميل هيڅ شی نه دی | | | | | |
| كَأَنَّ | الشَّمْسَ | تَجْرِيْ | فِيْ | وَجْهِهِ | وَمَا |
| ليدلی داسې معلوميده لکه چې يو نمر دی چې د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د مخ مبارک نه رڼا راايليږي او ما د | | | | | |

(۱) اخرجه الترمذي في السنن ۵/۱۰۹ رقم الحديث ۲۸۱۱ والدارمي في السنن ۱/۴۳ رقم الحديث ۵۷.

| رَأَيْتُ اَحَدًا أَسْرَعَ فِيْ مَشْيِهِ مِنْ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَأَنَّمَا |
|---|
| رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه زيات تيز رفتار څوک نه دی ليدلی کوم وقت چې به حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تلو نو داسي |
| الْأَرْضُ تُطْوٰى لَهُ إِنَّا لَنُجْهِدُ أَنْفُسَنَا |
| به معلوميده چې د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه مخکې ځمکه راټوليږي حقيقت دادی چې مونږ خوبه |
| وإِنَّهُ لَغَيْرُ مُكْتَرِثٍ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ. (۱) |
| سخت جد وجهد او کوشش کوی ليکن حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به په خپل بې نيازتګ تللو . [ترمذي] |

**توضيح** : الارض تطوى له: دا د هغه لپاره معجزه وه چې د هغه لپاره به ځمکه تاوول کيدله .

**لنجهد**: يعنې مونږ به په ډير جد او جهد او مشقت سره تيز تيز تللو او هغه (**غيرمكترث**) وو يعنې د خپل عادت مطابق تللو .

**اكتراث**: د كثرت نه دى د زيات تيز تللو نفي ده .

## د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سترګي توري وې

| ﴿۲۱﴾ وَعَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ قَالَ كَانَ فِيْ سَاقَيْ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
|---|
| او جابر بن سمره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ پنډۍ سپکې او نازکې وې او نبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| حُمُوْشَةٌ وَكَانَ لَايَضْحَكُ إِلَّاتَبَسُّمًا وَكُنْتُ إِذَا نَظَرْتُ |
| به عام طور سره نه خندل بلکه مسکی کېدو به او ما چې به حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ طرف ته کتل نو په زړه کې |
| إِلَيْهِ قُلْتُ أَكْحَلُ الْعَيْنَيْنِ |
| به مي ويل چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رانجه لګولي دي حالانکه حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به رانجه |
| وَلَيْسَ بِأَكْحَلَ . رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ . (۲) |
| (سرمه) نه وو لګولي. [ترمذي] |

**توضيح** : وليس باكحل: يعنې د کتلو نه به معلوميده چې آنحضرت صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رانجه استعمال کړي دي حالانکه داسې به نه وو بلکه د هغه سترګې پيدايشي توري وې ، همدارنګه حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مختون پيدا شوی دی او نوم پرې پيدا شوی وو ، دا د هغه بعضې خصوصيتونه وو .

---

(۱) اخرجه الترمذي في السنن ۵/۵۶۳ رقم الحديث ۳۶۴۸ وأحمد في المسند ۲/۳۵۰.

(۲) اخرجه الترمذي في السنن ۵/۵۶۲ رقم الحديث ۳۶۴۵ وأحمد في المسند ۵/۹۷ .

حموشة: د پښو ښايست په دې کې دی چې په دې کې نازکوالی وي، زياته غوښنه وي، د دغه مقصد لپاره د حموشة لفظ استعمال شوی دی.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث

## د حضور صلى الله عليه وسلم غاښونه مبارک

| |
|---|
| ﴿۲۲﴾ وَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ |
| ابن عباس رضي الله عنه وايي د حضور صلى الله عليه وسلم مخکني دوه غاښونه مبارک کولاؤ وو هر کله چې |
| أَفْلَجَ الثَّنِيَّتَيْنِ إِذَا تَكَلَّمَ رُئِيَ كَالنُّوْرِ يَخْرُجُ مِنْ |
| حضور صلى الله عليه وسلم به خبرې کولې نو داسې به محسوسېده چې د حضور صلى الله عليه وسلم د هغه دوه غاښونو د |
| بَيْنِ ثَنَايَاهُ. رَوَاهُ الدَّارِمِيُّ. (۱) |
| منځ نه نور وځي. [دارمي] |

**توضيح**: **افلج الثنيتين**: يعنې د ثنايا او رباعياتو چې کوم غاښونه وو د هغوی په مينځ کې پراخي وه چې دا د نهايت خوبصورتي وي.

## د حضور صلى الله عليه وسلم ځيره او که د سپوږمۍ ټکړه

| |
|---|
| ﴿۲۳﴾ وَعَنْ كَعْبِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| او کعب بن مالک رضي الله عنه وايي رسول الله صلى الله عليه وسلم چې به خوشحاله وو نو مخ مبارک به يې |
| إِذَا سُرَّ اِسْتَنَارَ وَجْهُهُ حَتّٰى كَأَنَّ وَجْهَهُ قِطْعَةُ |
| روښانه وو او داسې به معلومېده چې د حضور صلى الله عليه وسلم مخ مبارک د سپوږمۍ ټکړه ده او د دې شي |
| قَمَرٍ وَكُنَّا نَعْرِفُ ذٰلِكَ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. (۲) |
| نه به مونږ د حضور صلى الله عليه وسلم کيفيت پېژنده. |

---

(۱) اخرجه الدارمي في السنن ۱/۴۴ رقم الحديث ۵۸ والبغوي في شرح السنة ۱۳/۲۲۳ رقم الحديث ۳۶۴۴.

(۲) اخرجه البخاري رقم الحديث ۴۴۱۸ ومسلم في صحيحه ۴/۲۱۲۰ رقم الحديث ۵۳/۲۷۶۹.

## د حضور ﷺ سره د يهودو حسد

﴿۲۴﴾ وَعَنْ أَنَسٍ أَنَّ غُلَامًا يَهُودِيًا كَانَ يَخْدُمُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

او انس رضی اللہ عنہ نه روايت دی يو يهودي هلک چې د رسول الله ﷺ خدمت به يې كولو

فَمَرِضَ فَأَتَاهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَعُودُهُ

ناجوړه شو نو رسول الله ﷺ د هغه پوښتنې ته د هغه كور ته تشريف يووړلو نبی ﷺ وليده: چې

فَوَجَدَ أَبَاهُ عِنْدَ رَأْسِهِ يَقْرَأُ التَّوْرَاةَ فَقَالَ لَهُ

پلار ورته سرته ناست دی د تورات څه حصه وايې رسول الله ﷺ په دې لېدو سره هغه نه پوښتنه

رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَا يَهُودِيُّ أَنْشُدُكَ بِاللّٰهِ الَّذِيْ

وكړه زه تاته په هغه الله ! قسم دركولو سره پوښتنه درنه كوم چې هغه موسٰی ) باندې

أَنْزَلَ التَّوْرَاةَ عَلٰى مُوْسٰى هَلْ

تورات نازل كړی دی رښتيا رښتيا ووايه آيا ته په دې تورات كې ځما تعريف وتوصيف او ځما

تَجِدُ فِيْ التَّوْرَاةِ نَعْتِيْ وَصِفَتِيْ وَمَخْرَجِيْ قَالَ

د وطن نه د وتلو ذكر پيدا كوې ؟ هغه يهودي جواب وركړو نه ليكن هغه هلک ووېل هويا رسول الله !

لَا قَالَ الْفَتٰى بَلٰى وَاللّٰهِ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ إِنَّا نَجِدُ لَكَ

قسم په الله ! په دې تورات كې مونږ ستاسو تعريف او توصيف او ستاسو د وتلو ذكر پيدا كړی دی

فِيْ التَّوْرَاةِ نَعْتَكَ وَصِفَتَكَ وَمَخْرَجَكَ وَإِنِّيْ أَشْهَدُ

او زه يقيني طور سره د دې امر گواهي وركوم چې الله ! نه ماسوا بل معبود نشته او د دې امر هم گواهي

أَنْ لَّا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ وَأَنَّكَ رَسُوْلُ اللّٰهِ فَقَالَ

كوم چې تاسو بلاشبه د الله ! رسول يې حضور ﷺ د هغه هلک رشتيا وينا او د هغه

النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِأَصْحَابِهِ

اظهارِ ايمان واسلام ليدو سره خپلو صحابو رضی اللہ عنہم ته وفرمائيل چې د ده پلار د ده د سرنه

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| أَقِيْمُوا | هٰذَا | مِنْ | عِنْدِ | رَأْسِهِ | وَلُوا |

پاڅوئ او تاسو د خپل ددې ديني ورور واليان جوړ شئ او که دا هلک وفات شي نو بيا د ده د کفن

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| أَخَاكُمْ. | رَوَاهُ | الْبَيْهَقِيُّ | فِيْ | دَلَائِلِ | النُّبُوَّةِ. [۱] | |

دفن او جنازي امور تاسو سرته ورسوئ دا روايت بيهقي رحمه الله دلائل النبوت کې ذکر کړی دی

**توضيح**: ولو اخاکم: ولی ولاية د سنبالولو په معنی سره دی يعني دا مسلمان شوی دی او س خپل ورور په قبضه کې واخلئ، دا اوس سنبال وکړئ او علاج يې وکړئ او که وفات شي نو په اسلامی طريقه د هغه تجهيز او تکفين وکړئ او هغه دفن وکړئ، يهود د هغه نه پورته کړئ و ددې حديث نه معلومه شوه چې يهوديان څومره دروغ وايې او نه شرميږي، څوی د مرض په حالت کې پلار دروغجن کوي.

## د حضور ﷺ د رحمت تحفه ده

| | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۲۵﴾ | وَ عَنْ | أَبِيْ هُرَيْرَةَ | عَنِ النَّبِيِّ | صَلَّى اللهُ | عَلَيْهِ | وَ سَلَّمَ | أَنَّهُ | قَالَ | إِنَّمَا | |

او ابوهريره رضي الله عنه د رسول الله ﷺ نه روايت کوي حضور ﷺ و فرمائيل حقيقت دا دی

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| أَنَا | رَحْمَةٌ | مُهْدَاةٌ. | رَوَاهُ | الدَّارِمِيُّ | وَالْبَيْهَقِيُّ | فِيْ | شُعَبِ | الْإِيْمَانِ. [۲] |

چې زه د الله! هديه کړی شوی رحمت يم دا روايت دارمي او شعب الايمان کې بيهقي نقل کړی دی.

**توضيح**: رحمة مهداة: يعني د الله تعالى له طرفنه زه په طور د تحفې سره ليږل شوی رحمت يم لهذا چې څوک ما قبلوي هغه به د الله تعالى د رحمت په سوري کې راځي، په دې روايت کې څو الفاظ اضافه شوي هم دي، هغه الفاظ دادي: **بُعِثْتُ بِرَفْعِ قَوْمٍ وَ خَفْضِ آخَرِيْنَ** يعني چې څوک ما قبول کړي هغه به د عروج آسمان ته ورسيږي او چې څوک مخالفت وکړي هغه به د ذلت په کړنګونو کې وغورځيږی..



(۱) اخرجه البيهقي في دلائل النبوة ۶/۲۷۲.

(۲) اخرجه الدارمي في السنن ۱/۲۱ رقم الحديث ۱۵ والبيهقي في شعب الايمان ۲/۶۴ رقم الحديث ۱۴۴۶.

# باب في اخلاقه وشمائله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

## د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د اخلاقو او عاداتو بيان

(اخلاق) جمع ده ددې مفرد خُلق دی چې طبعي خصلت او باطني وصف ته ويل کيږي چې ددې لاندې د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اوصاف حميده داخل دي. (شمائل) جمع ده مفرد يې شمال دی، په شين باندې کسره ده ددې اطلاق په اخلاقو باندې هم کيږي او په سيرت باندې هم کيږي، که د سيرت په معنی سره واخيستل شي نو د يوې نوې معنی او مفهوم لپاره به عنوان مساعد شي چې دا به ډير ښه شي، په هر حال ددې باب نه په مخکې ابوابو کې د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د جسماني او شکل او شباهت ظاهري اوصاف بيان کړی شو. ددې باب په احاديثو کې به د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ باطني اوصاف او خصائل بيان کړی شي، يو څو باطني اوصاف دا دي. مثلاً شجاعت، سخاوت، رحمت او شفقت، مروت او محبت، تواضع او تحمل او حياء وغيره اوصاف مراد دي. په دې بابونو کې د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د اخلاقو او شمائلو داسې نقشه بيانيږي ګويا چې لوستونکی يې د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په ديدار سره مشرف کيږي، شاعر ښه ويلي دي:

اخلای ان شتّ الحبيب و داره     وعزّ تلاقيه و ناءت منازله

فان فاتکم ان تبصروا بعيونکم     فما فاتکم منه فهذا شمائله

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

### بې مثاله حُسن اخلاق

| |
|---|
| ﴿۱﴾ عَنْ أَنَسٍ قَالَ خَدَمْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ عَشَرَ سِنِيْنَ |
| او حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي ما د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لس کاله خدمت وکړه په دې پوره موده کې |
| فَمَا قَالَ لِيْ أُفٍّ وَلَا |
| حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ماته هيڅ کله اُف قدر هم ونه کړه او نه چېرې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دا وفرمائيل چې |
| لِمَ صَنَعْتَ وَلَا أَلَّا صَنَعْتَ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.[1] |
| تا دا کار ولې وکړو او دا کار دې ولې ونه کړو. |

**توضيح: اُف:** دا کلمه د همزې په ضمې سره ويل هم جائز دي، په زير سره ويل هم جائز دي او په زور سره ويل هم جائز دي په فاء باندې شد هم دی او سکون هم دی. علامه نووی په دې کې لس لغاته بيان کړي دي، دا

(۱) اخرجه البخاري في صحيحه ۱۰/۴۵۶ رقم الحديث ۶۰۳۸ ومسلم في صحيحه ۴/۱۸۰۴ رقم الحديث ۵۱/۲۳۰۹.

کلمه د انسان د ژبې نه هغه وخت وځي چې کله هغه د ناخوښه یا کوم تکلیف رسوونکی صورت حال نه په پریشانی کې واقع شي. حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ چې کله د مکې نه مدینې ته هجرت وکړلو نو حضرت ام سلیم رَضِيَ اللهُ عَنْهَا خپل زوی حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خدمت کې پیش کړلو او وې فرمایل: (خویدمک فادع له) دا ستا وړوکی خادم دی دا قبول کړئ او ده ته دعاء وکړئ، د حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عمر په دې وخت کې اته یا لس کاله وو. هغه تر لسو کلونو پورې د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خدمت وکړو. حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د خپل خدمت او د حضور اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د شفقت منظر پیش کوي چې د لس کاله طویل خدمت په دوران کې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه کله زورنه راکړې او نه یې کله غوسه کړې ده بلکه اُف یې هم راته ویلی نه دی او نه یې بیا دوباره داسې پوښتنه کړې ده چې دا کار دې ولې وکړو او دا دې ولې ونکړو؟ ددینه که یو خوا ته د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د اخلاقو نمونه مخې ته راځي بل خوا ته د حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د ښه کارکردګۍ او خدمت سلیقه هم معلومیږي چې هیڅ کله هم د دغسې زورنې نوبت راغلی نه دی. ملاعلي قاری رحمه الله لیکي چې د دې زورنې او پوښتنې نه کولو تعلق د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د ذاتي خدمت او آدابو سره دی او که نه نو په شرعی امورو کې به چې کله هم غلطي کیدله په هغه باندې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ کله هم خاموشي اختیار کړې نه ده.

﴿۲﴾ وَعَنْهُ قَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ أَحْسَنِ النَّاسِ

او انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د اخلاقو او عاداتو د خوبۍ په اعتبار سره د ټولو خلقو نه

خُلُقًا فَأَرْسَلَنِيْ يَوْمًا لِحَاجَةٍ فَقُلْتُ

زیات وو یو ورځ داسې وشو چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ څه کار د پاره ځما لیږل وغوښتل ما حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته

وَاللهِ لَا أَذْهَبُ وَفِيْ نَفْسِيْ أَنْ أَذْهَبَ لِمَا أَمَرَنِيْ بِهِ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ

داسې وویل قسم په الله چې زه نه ځم لیکن په زړه کې مې داوو چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ کوم حکم راکړی

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَخَرَجْتُ حَتّٰى أَمُرَّ عَلٰى صِبْيَانٍ وَّهُمْ يَلْعَبُوْنَ فِي السُّوْقِ

دی د هغه د تعمیل د پاره به ضرور ځم نو زه روان شوم په بازار کې یوځای وړو لوبې کولې زه هلته

فَإِذَا رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدْ قَبَضَ بِقَفَايَ مِنْ وَّرَائِيْ قَالَ

حصار شوم اچانک رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هلته راغی او د روسته نه یې ځما څټ اونیولو ما چې شا ته

فَنَظَرْتُ إِلَيْهِ وَهُوَ يَضْحَكُ فَقَالَ يَا أُنَيْسُ ذَهَبْتَ حَيْثُ

نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ ته وکتل نو نبی عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ خندل بیا نبی عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ راته وفرمائیل یا اُنیس! ته هلته تللي

| أَمَرْتُكَ قُلْتُ نَعَمْ أَنَا أَذْهَبُ يَا رَسُوْلَ اللهِ. رَوَاهُ مُسْلِمٌ. (۱) |
|---|
| يې كه نه چيرته چې ما ليږلى وې؟ ما عرض وكړو چې هو يارسول الله! زه اوس ځم. مسلم |

**توضيح : والله لااذهب:** حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په ژبه سره دغه كلمات اداء كړل ليكن د هغه د زړه اراده د تللو وه ، دويمه جمله **وفي نفسي** په دې باندې دال ده يعنې زما په زړه كې وو چې زه به ځمه ، اوس د حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په قول او فعل باندې هيڅ اعتراض نشته ، هسې هم چې كله دغه معامله پيښه شوې وه شايد حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دروغ ويلي وى نابالغه هم وو غير مكلف هم وو او په خدمت كې هم نوى وو تجربه هم ورته نه وه ، په دغه وجه حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د خفگان اظهار ونكړو او د محبت په طريقه يې هغه د غاړې نه ونيولو او په خندا سره په طور د شفقت يې هغه په صيغه د تصغير انيس سره ياد كړلو .

## بې مثاله تحمل او خوش اخلاقي

| ﴿۳﴾ وَ عَنْهُ قَالَ كُنْتُ أَمْشِيْ مَعَ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ وَ عَلَيْهِ |
|---|
| او حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي يوه ورځ زه د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره روان وم هغه وخت د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په |
| بُرْدٌ نَجْرَانِيٌّ غَلِيْظُ الْحَاشِيَةِ |
| جسم مبارك د يمن د نجران ښار جوړ شوى كرښې دار څادر وو چې د هغه غاړې د غټو ريښمو وې |
| فَأَدْرَكَهُ أَعْرَابِيٌّ فَجَبَذَهُ بِرِدَائِهِ جَبْذَةً شَدِيْدَةً |
| اچانك يو بانډه د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره يو ځاى شو د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ څادر نيولو سره ډو مره په زور سره |
| وَرَجَعَ نَبِيُّ اللهُ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ نَحْرِ الْأَعْرَابِيِّ حَتَّى |
| راښكلو چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ راښكلو سره د هغه سينې سره قريب ولگيدلو ما نظر او چتولو سره وكتل |
| نَظَرْتُ إِلَى صَفْحَةِ عَاتِقِ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدْ أَثَّرَتْ بِهَا حَاشِيَةُ الْبُرْدِ مِنْ |
| نو د هغه بانډه چې زور سره څادر راښكلو سره د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ غاړه مباركې باندې د څادر د غاړو |
| شِدَّةِ جَبْذَتِهِ ثُمَّ قَالَ يَا مُحَمَّدُ مُرْلِيْ مِنْ مَالِ اللهِ الَّذِيْ عِنْدَكَ |
| نښه راغله بيا هغه بانډه چې وويل اى محمد! ستا سو سره چې د الله! كوم مال دى د هغه نه |

فَالْتَفَتَ إِلَيْهِ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ ضَحِكَ

ماته ئې راکړه حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مخکې خو حیرانتیا سره هغه ته وکتل بیا د مهربانۍ له مخه مسکی شو

ثُمَّ أَمَرَ لَهُ بِعَطَاءٍ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.[1]

او هغه ته يې د څه ورکولو حکم يې وکړو. [بخاري مسلم]

**توضیح:** جبذة شديدة: سخت راخکلو او جټکه ورکولو ته ویلی کیږي.

**نحر الاعرابي:** يعنې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د دغه راخکلو په وجه د اعرابي سینې ته نژدې شو، شاید دا کوم داسې کوچی وو چې د مؤلفة القلوب نه وو، په دغه وجه حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د هغه دغه تکلیف رسول برداشت کړل او د هغه خلاف کومه کاروائي يې ونکړه او د لويو اخلاقو مظاهره يې وکړه:

**نفسی الفداء لمن اخلاقه شهدت انه خير مولود من البشر**

## د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شجاعت

﴿۲﴾ وَعَنْهُ قَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَحْسَنَ النَّاسِ

او حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د ټولو خلکو نه ښائسته وو د ټولو خلکو

وَأَجْوَدَ النَّاسِ وَأَشْجَعَ النَّاسِ وَلَقَدْ فَزِعَ أَهْلُ الْمَدِيْنَةِ

نه زیات سخي وو او د ټولو خلقو نه زیات زړه ور او بهادر وو د یوې شپې واقعه ده د مدینې خلقو یو

ذَاتَ لَيْلَةٍ فَانْطَلَقَ النَّاسُ قِبَلَ الصَّوْتِ

طرف نه د غلو ډاکو یا څه دښمن اوازه اوریدو سره پریشانه او خوفزده شو او یو بل ته اوازونه ورکول

فَاسْتَقْبَلَهُمُ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

يې شروع کړل بیا څه خلق جمع کېدو سره د هغه اواز طرف ته ورغلل هلته يې خپل مخې ته رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

قَدْ سَبَقَ النَّاسَ إِلَى الصَّوْتِ

موجود پیدا کړه حقیقت دا دی چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د ټولو نه مخکې د هغه اواز طرف ته ورغلی وو

وَهُوَ يَقُوْلُ لَمْ تُرَاعُوْا لَمْ تُرَاعُوْا

حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغه ټولو خلقو ته اطمینان ورکولو سره وفرمائیل ویریږئ مه هیڅ خطره نشته

---

(۱) اخرجه البخاري ۶/۲۵۱ رقم الحديث ۳۱۴۹ ومسلم في صحيحه ۲/۷۳۰ رقم الحديث (۱۲۸.۱۰۵۷) واحمد في المسند ۳/۲۲۳

| وَهُوَ عَلَى فَرَسٍ لِأَبِي طَلْحَةَ عُرْيٍ مَا عَلَيْهِ سَرْجٌ وَفِي |
|---|
| اونبي عليه السلام دابو طلحه رضي الله عنه په آس سورؤ چې دآس شا توره وه يعني بي زينه ؤ اود حضور صلى الله عليه وسلم |
| عُنُقِهِ سَيْفٌ فَقَالَ لَقَدْ. وَجَدْتُهُ بَحْرًا. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ[1] |
| په غاړه کې توره وه بيا حضور صلى الله عليه وسلم وفرمائيل ما دا آس د درياب په شان تيز بيا موندو. بخاري ومسلم |

**توضيح**: (اشجع الناس) د ټولو خلکو نه نبي کريم ﷺ ډير زړه ور وو، په دغه وجه خو حضرت خالد رض او نورو لويو لويو مشهورو دلاورو خلکو حضور ﷺ د خپل ځانونو نه زيات زړه ور موندلو سره نبي تسليم کړلو که حضور ﷺ د هغوی نه زيات بهادر نه وای نو هغوی به هيڅکله هم د هغه نبي منلو ته تيار نه وو ځکه چې بهادر سړی د بزدله سړی اطاعت نه کوي. (فزع) يعنې د مدينې والا ددې افواه په وجه سخت وويريدل چې دښمن په مدينه باندې ناڅاپه حمله کړې ده د يو څه شور آوازونه هم پورته شوي وو. (لم تراعوا) په يوه نسخه کې د لن تراعو الفاظ دي، لم جازمه د جحد لپاره ده ددينه مبالغه مقصود ده، لن هم د نفی د تأکيد لپاره ده، د عربی په محاوره کې لم او لن دواړه د لا په معنی سره راځي، مقصود دا دی چې هيڅ ويره نشته، هيڅ خطره نشته (ای لاتراعوا لاتراعوا). (عری) يعنې د زين نه بغير په خالی شا آس باندې سور وو.

بحرا: يعنې ما دغه آس په تګ کې د سمندر پشان وموندلو، په طور د مبالغې د تشبيه سره داسې ويل جائز دي، ددې حديث نه دا ثابته شوه چې د يو شي په کمال باندې د هغه تعريف کول جائز دي، ددې حديث نه دا هم معلومه شوه چې که د دښمن له طرفه معمولی حرکت هم محسوس شي نو مسلمان ته پکار ده چې په يواځې سر د دغه خطرې د ختمولو لپاره سبقت وکړي، نه داسې چې خپله سينه بنايې او د وهلو لپاره دښمن راغواړي! لکه څنګه چې نن سبا په ټوله دنيا کې د مسلمانانو د حکمرانانو حال دی.

## هيڅ کله يې يو سائل ته انکار نه دی کړی

| ﴿۵﴾ وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ مَا سُئِلَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شَيْئًا |
|---|
| او حضرت جابر رضي الله عنه وايي داسې هيڅ کله نه دي شوي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم نه چا سوال کړی |
| قَطُّ فَقَالَ لَا. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.[2] |
| وي او حضور صلى الله عليه وسلم هغه ته انکار کړی وي. |

---

[1] اخرجه البخاري في صحيحه ۱۰/۴۵۵ رقم الحديث ۶۰۳۳ ومسلم في صحيحه ۴/۱۸۰۲ (۲۳۰۷.۴۸)

[2] اخرجه البخاري ۱۰/۴۵۵ رقم الحديث ۶۰۳۴، ومسلم ۴/۱۸۰۵ رقم الحديث (۲۳۱۱.۵۶)

**توضیح** : **فقال**: یعنې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د یو سائل د سوال په جواب کې کله هم د (لا) کلمه د انکار لپاره استعمال کړې نه ده . په قرآن کې د ﴿لا اجد ما احملکم علیه﴾ الفاظ موجود دي چې د هغو دده د حدیث سره په ظاهره تعارض معلومیږي .

**جواب** : ابن حجر رحمه الله دده سوال جواب داسې کړی چې سائل ته د ورکولو لپاره کوم څه چې د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په اختیار کې به وو نو هغه به یې د انکار نه بغیر ورکول، او که په اختیار کې به یې هیڅ نه وو بیا به هم هغه انکار نه کولو بلکه په ښه طریقه به یې جواب ورکولو ، خلاصه دا ده چې کله ستا په اختیار کې هیڅ نه وي او ته انکار وکړې دغه انکار دلته مراد نه دی بلکه د حالت اختیار د انکار نفې ده ، فرزدق ډیر ښه ویلي دي :

**ما قال لا قط الا في تشهده — لولا التشهد لكانت لائه نعم**

## د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سخاوت

| |
|---|
| ﴿۶﴾ وَعَنْ أَنَسٍ أَنَّ رَجُلًا سَأَلَ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ غَنَمًا بَيْنَ جَبَلَيْنِ |
| او حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي یو سړي د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه دومره بزي وغوښتې چې د غرونو درمیاني شله یي |
| فَأَعْطَاهُ إِيَّاهُ فَأَتَى قَوْمَهُ |
| ډکه کړي وه نو حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغو مره بزي ورکړلو ذي نه روسته هغه سړی خپل قوم ته راغلي |
| فَقَالَ أَيْ قَوْمِ أَسْلِمُوا فَوَاللهِ إِنَّ مُحَمَّدًا لَيُعْطِي |
| او ورته یي وویل ای ځما د قوم خلقو! اسلام قبول کړئ قسم په الله محمد دومره ورکوي چې |
| عَطَاءً مَّا يَخَافُ الْفَقْرَ. رَوَاهُ مُسْلِمٌ. [1] |
| د فقر او افلاس نه هم نه ییر یږي. [مسلم] |

## خُلقِ نبوي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

| |
|---|
| ﴿۷﴾ وَعَنْ جُبَيْرِ بْنِ مُطْعِمٍ بَيْنَمَا هُوَ يَسِيرُ مَعَ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| حضرت جبیر ابن مطعم رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د هغه وقت واقعه بیانوي هر کله چې هغه رسول کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| مَقْفَلَهُ مِنْ حُنَيْنٍ فَعَلَقَتِ الْأَعْرَابُ |
| سره د غزوه حنین نه بیرته راتلو نو په لار کې یو مقام باندې څه باندې خلق حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ پورې ونښتل او |

---

(1) اخرجه مسلم في صحيحه ۴/۱۸۰۶ رقم الحديث (۵۸. ۲۳۱۲) واحمد في المسند ۳/۱۰۸.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| يَسْأَلُوْنَهُ | حَتَّى | اضْطَرُّوْهُ | إِلٰى | سَمُرَةٍ | فَخَطِفَتْ |

مال يې ترينه غوښتلو او دې حده پورې ورپسې ولګيدل چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يې د کيکر يوې ونې

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| رِدَاءَهُ | فَوَقَفَ | النَّبِيُّ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ | فَقَالَ |

ته بوتللو هلته د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ څادر د کيکر په ازغيو کې ونختو حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په ودريدو سره فرمائيل

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| أَعْطُوْنِيْ | رِدَائِيْ | لَوْ | كَانَ | لِيْ | عَدَدَ | هٰذِهِ | الْعِضَاهِ | نَعَمٌ |

راورئ څما څادر خو را کړئ که چيرته ما سره د دې ازغي دارو ونو برابر هم يعني بزې او اوښان

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| لَقَسَمْتُهُ | بَيْنَكُمْ | ثُمَّ | لَا | تَجِدُوْنِيْ | بَخِيْلًا |

وغيره وى نو ما به هغه ټول په تاسو تقسيم کړى وى او تاسو به پوهه شوي وئ چې زه بخيل نه

وَلَا كَذُوْبًا وَلَا جَبَانًا. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ. [1]

يم نه دروغو وعده کونکى يم او نه کمزوري زړه والايم. [بخاري]

**توضيح**: **مقفلة**: د غزوه نه واپس کيدلو او کورته واپس کيدلو ته قفلة او قفول وايې د همدينه مقفلة بمعنى قفلة دى.

**حنين**: مکې مکرمې ته نزدې د يوه وادى نوم دى دلته د فتح مکه نه وروسته يو زبردسته جنګ شوى وو.

**العضاة**: د غنې مضبوطې ونې ته عضاه ويلى شوى دى ديته شجرة الطرفاء هم ويلى کيږي، په ځنګل کې د يوې مضبوطې ونې نوم دى چې ديته په اردو کې د جهاؤ ونه ويلى کيږي، د حضرت بنوري رحمه الله د کلام نه معلوميږي چې دا د غز ونه ده شارحين دا د کيکر يو قسم ښايې هيڅ تعيين يې شوى نه دى، **(نعم)** حيواناتو ته ويلى کيږي.

## د نبوي اخلاقو اعلى نمونه

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۸﴾وَعَنْ | أَنَسٍ | قَالَ | كَانَ | النَّبِيُّ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ |

او حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ چې به د سحر د مانځه نه فارغه شو نو داهل مديني خدام

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| إِذَا | صَلَّى | الْغَدَاةَ | جَاءَ | خَدَمُ | الْمَدِيْنَةِ | بِآنِيَتِهِمْ | فِيْهَا | الْمَاءُ |

به خپلو خپلو لوښو کې او به اخستو سره راورسيدل نو کوم سړى چې به د او بو لوښي سره راتلو

---

(1) اخرجه البخاري في صحيحه ۶/۳۵ رقم الحديث ۲۸۲۱، والنسائي في السنن ۶/۲۶۲ رقم الحديث ۳۶۸۸.

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| فَمَا | يَاتُوْنَ | بِإِنَاءٍ | إِلَّا | غَمَسَ | يَدَهُ | فِيْهَا |
| حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به د هغه هغه لوښي کې خپل لاس مبارک اچوه اکثره به داسې کېدل چې خلق به د يخنۍ | | | | | | |
| فَرُبَّمَا | جَاءُوْهُ | بِالْغَدَاةِ | الْبَارِدَةِ | فَيَغْمِسُ | يَدَهُ | فِيْهَا. رَوَاهُ مسلم[1] |
| په موسم کې سهار سهار خپل لوښي سره راتلل او حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خپل لاس هغه لوښو کې خکته کولو [مسلم] | | | | | | |

**توضيح**: (الماء) په مدينه منوره کې د اوبو کمي وو ، د کورونو خادمانو به چې کله اوبه پوره کولې نو په اوبو کې د برکت په غرض به هغوی خپل لوښي په قطار (لين) کې ايښودل ترڅو حضور ﷺ د سهار د لمانځه نه وروسته په دغو لوښو کې خپل لاس د برکت لپاره خکته کړي ، حضور ﷺ هغوی ته د غلامانو په نظر سره کم نه دي کتلي او نه د طويل قطار په وجه يې بوج محسوس کړی دی او نه يې د سختې يخنۍ په وجه انکار کړی دی ، دا د نبوی اخلاقو اعلی نمونه ده .

## دليونو سره هم عظيم اخلاق

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۹﴾ وَعَنْهُ | قَالَ | كَانَتْ | أَمَةٌ | مِنْ | إِمَاءِ | أَهْلِ | الْمَدِيْنَةِ | تَأْخُذُ | بِيَدِ |
| او انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي د مديني والاو وينزو کې د يوې وينزو دا معامله وه چې کله به هغه ته | | | | | | | | | |
| رَسُوْلِ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ | فَتَنْطَلِقُ | بِهِ | | |
| څه پريشاني ورسيده نو د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لاس مبارک به يې او نيولو او چيرته چې به د هغه زړه | | | | | | | | | |
| حَيْثُ | شَاءَتْ. | رَوَاهُ | الْبُخَارِيُّ.[2] | | | | | | |
| غوښته حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به يې بو تلو . [بخاري] | | | | | | | | | |

**توضيح**: تأخذ بيدی: ملا علی قاري رحمه الله دغه ټول حديث په فرضی کلام باندې محمول کړی دی چې فرض کړه کچيرې کومې وينزې د نبی عليه السلام لاس نيولی او چيرته يې بيولو نو د حسن اخلاق په وجه به د هغې سره تللو ، ددې حديث دويمه توجيه دا ده چې ددې حديث او د راتلونکي بل حديث دواړو تعلق د يو داسې ښځې سره دی چې د عقل په اعتبار سره معدوم العقل وه هغې به قسما قسم خبرې او اوږده او لنډ داستانونه به يې حضور ﷺ ته اورول او هغه به د حسن اخلاق په وجه د هغې ټولې خبرې په ولاړه ولاړه اوريدلې . په راتلونکي حديث کې دي (في عقلها شيئ) په دې طريقه دغه حديث په فرضی کلام باندې د حمل

---

[1] اخرجه مسلم في صحيحه ۴/۱۸۱۲ رقم الحديث (۲۳۲۴.۷۴) وأحمد في المسند ۳/۱۳۷.
[2] اخرجه البخاری في صحيحه ۱۰/۴۸۹ رقم الحديث ۶۰۷۲.

كولو نه غوره دا ده چې دا په حقيقت باندې مبني شي او قصه د هماغې بې عقلي ښځې وي، چې د دينه د حضور ﷺ د عظيم اخلاقو پته لګيږي.

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۱۰﴾وَعَنْهُ | أَنَّ | امْرَأَةً | كَانَتْ | فِي | عَقْلِهَا | شَيْءٌ |
| او حضرت انس رضي الله عنه وايي په مدينه كې يوه ښځه وه چې د هغې په دماغو كې څه خلل وو هغې | | | | | | |
| فَقَالَتْ يَا رَسُوْلَ اللهِ إِنَّ لِيْ إِلَيْكَ حَاجَةً فَقَالَ يَا أُمَّ فُلَانٍ | | | | | | |
| يوه ورځ وويل يا رسول الله ستا سو سره ځما څه كار دى حضور صلى الله عليه وسلم ورته وفرمائيل د فلانى مورې! | | | | | | |
| اُنْظُرِيْ | أَيَّ | السِّكَكِ | شِئْتِ | حَتّٰى | | |
| ته چې كومه كوڅه او ګوره زه تا سره هلته تلو ته تيار يم ستا چې څه كار وي زه به يې ضرور وكړم | | | | | | |
| أَقْضِيَ | لَكِ | حَاجَتَكِ | | | | |
| يعني ته چې كوم تنها مقام كې ما سره خبره كول غواړې زه به هلته تلو سره ستا خبره واورم نو | | | | | | |
| فَخَلَا | مَعَهَا | فِي | بَعْضِ | الطُّرُقِ | حَتّٰى | فَرَغَتْ |
| حضور صلى الله عليه وسلم هغه سره يوې كوڅې ته تشريف يوووړلو او هلته تنهايي چې د كې هغه ښځې څه ويل | | | | | | |
| مِنْ حَاجَتِهَا. رَوَاهُ مُسْلِمٌ.[1] | | | | | | |
| او ريدل وو هغه يې وويل او واوريدل. [مسلم] | | | | | | |

## د حضور صلى الله عليه وسلم د اخلاقو يو څو مثالونه

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۱۱﴾ وَ عَنْهُ قَالَ لَمْ يَكُنْ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاحِشًا وَّلَا لَعَّانًا | | | | | |
| او حضرت انس رضي الله عنه وايي رسول الله صلى الله عليه وسلم نه خو فحش ګو وو نه لعنت كونكى نه | | | | | |
| وَّلَا | سَبَّابًا | كَانَ | يَقُوْلُ | عِنْدَ | الْمَعْتَبَةِ |
| بد كلامه وو كله چې به چاته په قهر شو نو بس دومره قدرې به يې فرمائيل په ده څه شوي دي د ده | | | | | |
| مَا لَهُ تَرِبَ جَبِيْنُهُ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ[2] | | | | | |
| تندى دې په خاوره ككړ شي. [بخاري] | | | | | |

---

[1] اخرجه مسلم في صحيحه ۴/۱۸۱۲ رقم الحديث (۷۶. ۲۳۲۶) وأبوداود في السنن ۵/۱۶۱ رقم الحديث ۴۸۱۸.

[2] اخرجه البخاري في صحيحه ۱۰/۴۵۲ رقم الحديث ۶۰۳۱ وأحمد في المسند ۳/۱۵۸ .

﴿۱۲﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قِيلَ يَا رَسُولَ اللهِ أُدْعُ

او ابو هريره رضي الله عنه وايي حضور صلى الله عليه وسلم ته عرض وشو يارسول الله! د خپلو دښمنانو کافرو په

عَلَى الْمُشْرِكِينَ قَالَ إِنِّي لَمْ أُبْعَثْ لَعَّانًا

حق کې بددعا وکړئ چې هلاک شي او بيخ يي ووځي نو وې فرمائيل زه لعنت کونکی نه يم

وَّ إِنَّمَا بُعِثْتُ رَحْمَةً. رَوَاهُ مُسْلِمٌ. (۱)

راليږل شوی بلکه زه خو رحمت جوړ شوی سره راليږل شوی يم. [مسلم]

﴿۱۳﴾ وَعَنْ أَبِي سَعِيدِ نِ الْخُدْرِيِّ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

او ابو سعيد خدري رضي الله عنه وايي رسول الله صلى الله عليه وسلم په پرده کې د پيغلې جينۍ نه هم زيات

أَشَدَّ حَيَاءً مِّنَ الْعَذْرَاءِ فِي خِدْرِهَا فَإِذَا رَآى شَيْئًا

حيادار وو هرکله چې به څه خلاف مزاج خبره پيښه شوه نو مونږ به د حضور صلى الله عليه وسلم د مخ مبارک نه د

يَّكْرَهُهُ عَرَفْنَاهُ فِي وَجْهِهِ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. (۲)

حضور صلى الله عليه وسلم ناخوښي محسوسوله. [بخاري مسلم]

## حضور صلى الله عليه وسلم به خوله خلاصولو سره نه خندل

﴿۱۴﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ مَا رَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

او بي بي عائشه رضي الله عنها وايي ما رسول الله صلى الله عليه وسلم هيڅ کله په داسې خندا نه دی ليدلی چې د

مُسْتَجْمِعًا قَطُّ ضَاحِكًا حَتّٰى أَرٰى مِنْهُ لَهَوَاتِهِ

حضور صلى الله عليه وسلم تو له خوله خلاصه شوې وي او ماته د حضور صلى الله عليه وسلم حلق تالو په نظر راغلی وي

وَإِنَّمَا كَانَ يَتَبَسَّمُ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ. (۳)

د حضور صلى الله عليه وسلم خندا بس مسکا پوري محدوده وه. [بخاري مسلم]

**توضيح : مستجمعا**: يعنې مکمل طور باندې پوره خوله خلاصولو سره چې ددينه د حلق او تالو سوری په

---

(۱) اخرجه مسلم في صحيحه ۴/۲۰۰۶ رقم الحديث (۲۵۹۹.۸۷)

(۲) اخرجه البخاري في صحيحه ۶/۵۶۶ رقم الحديث ۳۵۶۲ ومسلم في صحيحه ۴/۱۸۰۹ رقم الحديث (۶۸. ۲۳۲۰)

(۳) اخرجه مسلم في صحيحه ۲/۶۱۶ رقم الحديث (۸۹۹.۱۵) والبخاري رقم الحديث ۶۰۹۲، وأحمد في المسند ۶/۶۶.

نظر راشي په دغه طريقه هغه کله هم نه خندل! د خندلو ځو درجې دي.(۱) تبسم: حضور ﷺ به هميشه تبسم کولو دا د هغه اکثر معمول راغلی دی. (۲) ضحک: حضور ﷺ به کله کله ضحک هم فرمايلو چې په دې سره به د هغه د اطرافو غاښونه نواجذ به هم ښکاره شول مگر دا يې عام معمول نه وو کله کله به داسې کيدل.

(۳) قهقهه: حضور ﷺ هيڅکله هم په قهقهه خندلي نه دي په زير بحث حديث کې چې د کومې خندا نفې ده د دينه مراد قهقهه ده په حديث کې د دې تأييد هم شته ځکه حلق صرف د قهقهه په وخت ظاهريدلی شي، د تبسم او ضحک په وخت نه ظاهريږي.

## د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د خبرو بهترين انداز

| |
|---|
| ﴿۱۵﴾ وَعَنْهَا قَالَتْ اِنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمْ يَكُنْ يَسْرُدُ الْحَدِيْثَ |
| او بي بي عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وايي حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به تيزي تيزي او مسلسل خبرې نه کولي څنګه |
| كَسَرْدِكُمْ كَانَ يُحَدِّثُ حَدِيْثًا لَوْ |
| چې تاسو خلق مسلسل لګيا يې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به په آرام آرام خبرې کولي که چا شميرلې |
| عَدَّهُ الْعَادُّ لَأَحْصَاهُ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.[1] |
| نو شميرلی يې شوې. بخاری ومسلم |

**توضيح**: (يسرد الحديث) تيز تيز او مسلسل خبرو کولو ته سرد الحديث ويل شوی دی، د حضور ﷺ د خبرو انداز دا رنګه نه وو بلکه مزه مزه په داسې طريقه يې واضح کلام فرمايلو کچيرې چا د هغه شميرل غوښتل نو شميرلی يې شو، ګويا د مبارکې خولې نه يې ملغلرې راوتلې.

| |
|---|
| ﴿۱۶﴾ وَعَنِ الْأَسْوَدِ قَالَ سَأَلْتُ عَائِشَةَ مَا كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| او حضرت اسود رحمه الله وايي يوه ورځ ما د بي بي عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا نه پوښتنه وکړه چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| يَصْنَعُ فِيْ بَيْتِهِ قَالَتْ كَانَ يَكُوْنُ فِيْ مِهْنَةِ أَهْلِهِ تَعْنِيْ |
| به په کور کې څه څه کار کوه نو هغې وفرمائيل حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به خپل د کور کار کوه کارکوی، او |
| خِدْمَةَ أَهْلِهِ فَإِذَا حَضَرَتِ الصَّلَاةُ خَرَجَ |
| کله چې به د مانځه وقت راغی. نو د مانځه د پاره به ولاړی او هغه وقت به يې ټول کار پريخوده |

[1] اخرجه البخاري في صحيحه ۶/۵۶۷ رقم الحديث ۳۵۶۸ ومسلم في صحيحه ۴/۱۹۴۰ رقم الحديث (۱۶۰.۳۴۹۳)

إِلَى الصَّلَاةِ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.[۱]

او د کورو الاوو سره به یې هیڅ کار نه لرلو . [بخاري]

**توضیح : مهنة اهله:** مهنة خدمت او د کور کار کولو ته ویل کیږي یعني حضور ﷺ به د کور په کار کې لګیا وو لیکن چې کله به د لمانځه لپاره اذان کیدلو نو فورا به مسجد ته تللو او په کور کې به په نظر نه راتللو .

## هیڅ کله یې د چا نه ذاتي بدل نه اخسته

﴿۱۷﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ مَا خُيِّرَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَ أَمْرَيْنِ

او بي بي عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وایي رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته به چې کله هم دوه کارونو کې د یو کار کولو اختیار

قَطُّ إِلَّا أَخَذَ أَيْسَرَهُمَا مَا لَمْ يَكُنْ إِثْمًا

ورکول شو نو حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به همېشه هغه کار کوه کوم چې به آسانه وو ترڅو چې به هغه د ګناه کار

فَإِنْ كَانَ إِثْمًا كَانَ أَبْعَدَ النَّاسِ مِنْهُ وَمَا انْتَقَمَ

نه وو که کار به د ګناه موجب وونو حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به د هغه نه د ټولو نه لري او سیدونکی سړی وو او

رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِنَفْسِهِ فِيْ شَيْءٍ قَطُّ إِلَّا أَنْ

حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خپل ذات د پاره هیڅ کله د څه خبرې بدل نه اخستی . هو که څه خبره به داسې وه چې الله !

يُنْتَهَكَ حُرْمَةُ اللهِ فَيَنْتَقِمُ لِلّٰهِ بِهَا. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.[۲]

حرامه کړې وه نو بیا حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به د الله ! د حکم پیش نظر د هغه سزا ورکوله . [بخاري مسلم]

## حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هیڅ کله څوک نه دی وهلی

﴿۱۸﴾ وَعَنْهَا قَالَتْ مَا ضَرَبَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

او بي بي عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وایي حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هیڅ کله څه شی یعني یو سړی یی په خپل لاس سره نه

شَيْئًا قَطُّ بِيَدِهِ وَلَا امْرَأَةً وَلَا خَادِمًا إِلَّا

دی وهلی ښځه او خادم هم نه، علاوه د هغه صورت نه چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به د الله ! په لار کې جهاد

---

(۱) اخرجه البخاري في صحيحه ۲/۱۶۲ رقم الحديث ۶۷۶ والترمذي في السنن ۴/۵۶۴ رقم الحديث ۲۴۸۹.

(۲) اخرجه البخاري ۶/۵۶۶ رقم الحديث ۳۵۶۰ ومسلم في ۴/۱۸۱۳ رقم الحديث ۲۳۲۷.۷۷)

أَنْ يُجَاهِدَ فِي سَبِيْلِ اللهِ وَمَا نِيْلَ مِنْهُ شَيْءٌ قَطُّ

کوی او هيڅ کله داسې نه دي شوي چې د يو سړي د طرف نه حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته څه تکليف رسيدلی وي

فَيَنْتَقِمُ مِنْ صَاحِبِهِ إِلَّا أَنْ يُنْتَهَكَ شَيْءٌ

او حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د هغه تکليف رسونکي نه انتقام (بدل) اخستی وي هو که د الله! د حرام کړی

مِنْ مَحَارِمِ اللهِ فَيَنْتَقِمُ لِلّٰهِ. رَوَاهُ مُسْلِمٌ. [۱]

شوی څه شي ارتکاب به کيدی نو حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به د الله! د حکم د تعميل د پاره د هغه سزا ورکوله. [مسلم]

# اَلْفَصْلُ الثَّانِيْ

## دخپل خادم سره د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سلوک

﴿۱۹﴾ وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ خَدَمْتُ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي کوم وخت چې زه د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خدمت کې پيش شوم نو هغه وخت

وَأَنَا ابْنُ ثَمَانِ سِنِيْنَ خَدَمْتُهُ عَشَرَ سِنِيْنَ

ځما عمر اته کاله وو د هغه وقت نه مسلسل لس کاله پوري ما د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د خدمت فرائض سرته

فَمَا لَامَنِيْ عَلٰى شَيْءٍ قَطُّ أُتِيَ فِيْهِ عَلٰى يَدَيَّ

رسول په دي پوره موده کې داسې هيڅ کله نه دي شوی چې ځما د لاس نه څه شی ضائع شوی وي

فَإِنْ لَامَنِيْ لَائِمٌ مِّنْ أَهْلِهِ قَالَ

او حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زه ملامته کړی يم که د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د اهل بيتو نه به چا د څه شي په ضائع کېدو زه

دَعُوْهُ فَإِنَّهُ لَوْ قُضِيَ شَيْءٌ كَانَ.

ملامت کولم نو حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به ورته فرمائيل دا پرېږدئ مه يې ملامته کوئ حقيقت دادی چې

هٰذَا لَفْظُ الْمَصَابِيْحِ وَرَوَى الْبَيْهَقِيُّ

کومه خبره کېدونکې وي هغه ضرور کېږي د روايت دا الفاظ د مصابيح دي او بيهقي هم د دې.

| فِي شُعَبِ الْإِيْمَانِ مَعَ تَغْيِيْرٍ.[1] |
|---|
| روایت څه الفاظ تغیر او تبدیل سره شعب الایمان کې نقل کړی دی |

**توضیح : ثمان سنين**: ددینه معلومیږي چې کله حضرت ام سلیم انصاریه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په طور د خادم د حضور ﷺ په خدمت کې پیش کړلو په دغه وخت کې د حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عمر اته کاله وو.

**عشر سنين**: یعنې تر لسو کلونو ما د حضور ﷺ خدمت کړی دی او د حضور ﷺ همدومره عمر په مدینه منوره کې تیر شوی دی.

**اتى فيه**: دا د مجهول صیغه ده د ضائع کیدلو او هلاکیدلو په معنی سره ده یعنې کوم شی چې به زما په لاسونو کې ضائع شو، دا د شيئ صفت واقع شوی دی.

**يدى**: تثنیه ده دواړه لاسونه مراد دي یعنې داسې کله هم شوي نه دي چې زما د دواړو لاسونو نه کوم شی ضائع شوی وي او حضور ﷺ زما په ملامتولو سره لعن او طعن راکړی وي، نورو خلکو به چې کله زه ملامتولم نو هغه به وفرمایل چې دا پریږدئ

**لوقضى شيئ كان**: یعنې په تقدیر الهی کې چې د کوم شی فیصله شوې وي هغه به ضرور کیږي د مستقبل په اعتبار سره چې کومه خبره کیدونکې وي هغه به ضرور راحي.

## د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اوصاف حمیده

| ﴿۲۰﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ لَمْ يَكُنْ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاحِشًا وَلَا |
|---|
| او بي بي عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وايي رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه خو خلقي او طبعي طور سره فحش کوو او نه یي |
| مُتَفَحِّشًا وَلَا سَخَّابًا فِي الْأَسْوَاقِ وَلَايَجْزِيْ بِالسَّيِّئَةِ السَّيِّئَةَ |
| قصداً فحش کویي او نه بازارونو کې شور کونکی وو او نه به یې د بدی بدله بدی سره آخستله |
| وَلٰكِنْ يَّعْفُوْ وَيَصْفَحُ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.[2] |
| بلکه په زړه سره معاف کوه د عفو او درګذر معامله کوله [ترمذی] |

**توضیح : فاحشا**: یعنې د فحش خبرو کولو والا نه وو او په طبعیت کې یې دغه شی نه وو.

---

[1] اخرجه احمد في المسند ۳/۲۳۱ والبيهقي في شعب الايمان ۶/۲۵۸ رقم الحديث ۸۰۷۰.

[2] اخرجه الترمذي في السنن ۴/۳۲۴ رقم الحديث ۲۰۱۶ وابن ماجه في السنن ۱۳۹۸ رقم الحديث ۴۱۷۸.

**ولامتفحشا:** يعني په فحش كلام كې تكلف كونكى هم نه وو چې قصدا او تكلفا فحش كلام اختيار كړي.

**ولاسخابا:** چغو وهلو سره شور كونكې ته سخاب ويل كيږي.

| |
|---|
| ﴿۲۱﴾ وَعَنْ أَنَسٍ يُحَدِّثُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| او انس رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ په يوه موقع د رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ متعلق د بهترينو اخلاقو او عاداتو ذكر كولو |
| أَنَّهُ كَانَ يَعُوْدُ الْمَرِيْضَ وَيَتْبَعُ الْجَنَازَةَ وَيُجِيْبُ |
| سره بيان وكړو چې حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به د بيمار پوښتنه كوله جنازي سره به تللو د مملوك او غلام |
| دَعْوَةَ الْمَمْلُوْكِ وَيَرْكَبُ الْحِمَارَ لَقَدْ رَأَيْتُهُ يَوْمَ خَيْبَرَ |
| دعوت به يي قبلوى او په خره باندې سوريدو كې يي هم څه تكلف نه محسوسوه د غزوه خيبر په ورځ |
| عَلَى حِمَارٍ خِطَامُهُ لِيْفٌ. |
| ما حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په يو خره باندې سور اوليدلو چې د هغه واګې د كجورو د پوستكې وو دا |
| رَوَاهُ ابْنُ مَاجَةَ وَالْبَيْهَقِيُّ فِيْ شُعَبِ الْإِيْمَانِ.[1] |
| روايت ابن ماجه او شعب الايمان كې بيهقي نقل كړى دى. |

**توضيح : على حمار:** يعني په غزوه خيبر كې هغه په خر باندې سور وو ، حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په طور د تواضع په خر باندې سوارلى كړې ده ، په دې كې يو خو د حضرت عيسى عَلَيْهِ السَّلَامُ سره په انكسارۍ كې مشابهت راغى ځكه حضرت عيسى عَلَيْهِ السَّلَامُ به هيمشه د خره سوارلي غوره كوله ، دوهمه خبره دا وه چې دا جائز وګرځي چې د خره سوارلي جائز ده ، په دغه وجه د خره عزت پاک ګرځولى شوى دى ، دا د خره فائده هم شوه . دلته دا خبره ذهن نشينه كول پكار دي چې ددې خره نه د عربستان لوى سپين خر مراد دى چې آس ته قريب وي ، د افغانستان خره هم همدا رنګه د غټ قد والا وي ، ددينه هغه خر مراد نه دى چې په قد كې هم كوچنى وي چې په هغه باندې سوارلى باعث د عار (شرم) كڼلى كيږي ، د حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره به دوهم كس هم سريده ددينه هم معلومه شوه چې دا به لوى خر وو .

**خطامه:** اى لجامه او لګام د هغه.

**ليف:** يعني د قيضې رسى به د خرما (كجورې) د ونې د پوستكي نه جوړه وه.

---

(1) اخرجه ابن ماجه في السنن ۲/۱۳۹۸ رقم الحديث ۴۱۷۸ والبيهقي في شعب الايمان ۶/۲۸۹ رقم الحديث ۸۱۹۰.

## خپلې څپلې به يې په خپله ګنډلې

﴿۲۲﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كَانَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ
او بي بي عائشه رضي الله عنها وايي رسول الله صلى الله عليه وسلم به خپل پيزار ګنډل او خپله جامه به يې خپله ګنډله او

يَخْصِفُ نَعْلَهُ وَيَخِيْطُ ثَوْبَهُ وَيَعْمَلُ فِيْ بَيْتِهِ كَمَا
د خپل کور کار به يې داسې کوه څرنګه چې په تاسو کې يو سړی خپل کور کې کار کوي او بي بي

يَعْمَلُ أَحَدُكُمْ فِيْ بَيْتِهِ وَقَالَتْ كَانَ بَشَرًا
عائشې رضي الله عنها مزيد وفرمائيل حضور صلى الله عليه وسلم يو داسې انسان وو څرنګه چې نور انسانان وي

مِّنَ الْبَشَرِ يَفْلِيْ ثَوْبَهُ وَيَحْلُبُ شَاتَهُ
حضور صلى الله عليه وسلم به خپلو کپړو کې سپږې خپله کتلې د خپلې بزې پۍ به يې خپله لوشلې او خپل

وَ يَخْدِمُ نَفْسَهُ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ[1]
خدمت به يې خپله کوه يعني خپل ذاتي کار به يې خپله کوه. [ترمذي]

**توضيح**: يخصف: د څپلې ګنډلو په معنی سره دی د دينه خصاف راغلی.

بشرا: بشر انسان ته وايي، حضرت عائشه رضي الله عنها همدا بيانول غواړي چې هغه انسان وو ملائکه او پيری نه وو لهذا په هغه باندې بشری عوارض راتلل، ددې حديث نه په بريلويانو باندې يوه زبردسته علمي څپيړه پريوځي، کاشکې هغوی پوهه شي! د کفارو دا خيال وو کچيرې هغه (محمد صلى الله عليه وسلم) د الله تعالی رسول وی نو هغه به د عامو انسانانو پشان په وړو وړو کارونو کې نه مشغول کيده بلکه د بادشاهانو پشان به يې د وړو کارونو نه اجتناب کولو لکه په آيت کې دي ﴿مَالِ هٰذَا الرَّسُوْلِ يَأْكُلُ الطَّعَامَ وَيَمْشِيْ فِي الْأَسْوَاقِ﴾ ددې په جواب کې حضرت عائشه رضي الله عنها وفرمايل چې يو انسان وو او په طور د تواضع هغه د انسانانو پشان کار کولو، هغه د تکبر نه پاک وو هغه بشر وو ﴿قل انما انا بشر مثلکم﴾. (خلاصه طيبی)

**يفلی ثوبه**: فلی يفلی تفلية د باب تفعيل نه او تفلی يتفلی تفليا د باب تفعل نه په کپړو او سر وغيره کې د سپږو لټولو په معنی سره دی تر څو هغه ختمې شي.

**سوال**: مواهب لدنيه کې يې ليکلي دي چې د حضور صلى الله عليه وسلم په جسم يا کپړو کې کله هم سپږې شوې نه دي نو بيا دلته د تلاش کولو څه مطلب دی؟ همدارنګه امام فخر الدين رازی رحمه الله ليکلي دي چې د

---

[1] اخرجه أحمد في المسند ۶/۱۶۷.

حضور صلی الله علیه وسلم په جسم باندې کله هم مچ نه کښېناستلو او نه کله هم کوم ماشي د هغه جسم چیچلی دی دلته د سپږو ذکر څنګه راغلی؟

**جواب**: حضور صلی الله علیه وسلم د اظهار بشریت په غرض په طور د تواضع په خپلو کپړو کې د سپږو تلاش کړی دی، دا صرف د تلاش کولو تر حده پورې وو، د تلاش کولو نه دا نه لازمیږي چې په هغه کې سپږې موجودې وې. شیخ عبدالحق رحمه الله په اشعة اللمعات کې لیکلي دي اګرچې د حضور صلی الله علیه وسلم په جسم کې کله هم سپږې شوې نه وې لیکن چونکه د دغو موذیاتو د بدن نه علاوه د کپړو سره د بهر نه لګیدل ممکن وو په دغه وجه حضور صلی الله علیه وسلم د تلاش کولو کوشش کړی دی.

## د انسانانو سره د حضور صلی الله علیه وسلم عمومي تعلق

| |
|---|
| ﴿۲۳﴾ وَعَنْ خَارِجَةَ بْنِ زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ قَالَ دَخَلَ نَفَرٌ عَلٰى زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ |
| او حضرت خارجه ابن زید ابن ثابت وایي یوه ورځ د خلقو یو جماعت څما والد محترم حضرت زید ابن ثابت رضي الله عنه |
| فَقَالُوْا لَهُ حَدِّثْنَا أَحَادِيْثَ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| ته راغی او ورته یې وویل څمونږ مخکې د رسول الله صلی الله علیه وسلم هغه حدیثونه بیان کړه |
| قَالَ كُنْتُ جَارَهُ فَكَانَ |
| حضرت زید رضي الله عنه ورته وویل زه د حضور صلی الله علیه وسلم بالکل ګاونډ کې اوسیدم حضور صلی الله علیه وسلم باندې چې |
| إِذَا نَزَلَ عَلَيْهِ الْوَحْيُ بَعَثَ إِلَيَّ |
| کله به وحي نازلیدله نو زه به یې راغوښتلم زه به په خدمت کې حاضریدم او د حضور صلی الله علیه وسلم حکم سره |
| فَكَتَبْتُهُ لَهُ فَكَانَ إِذَا ذَكَرْنَا الدُّنْيَا ذَكَرَهَا |
| وحي به مې لیکله د حضور صلی الله علیه وسلم عادت مبارک دا وو چې کله به مونږ د دنیا ذکر کوو حضور صلی الله علیه وسلم |
| مَعَنَا وَإِذَا ذَكَرْنَا الْآخِرَةَ ذَكَرَهَا |
| به زمونږ سره دې دنیاوي ذکر کې شاملیده او کله چې به مونږ د آخرت ذکر کوه نو حضور صلی الله علیه وسلم به |
| مَعَنَا وَإِذَا ذَكَرْنَا الطَّعَامَ ذَكَرَهُ |
| هم مونږ سره د آخرت ذکر کوه او کله چې به مونږ د خوراک څکاک ذکر کوه نو حضور صلی الله علیه وسلم به هم |

| مَعَنَا فَكُلُّ هٰذَا أَحَدِّثُكُمْ عَنْ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ. [1] |
|---|
| زمونږ سره د هغې ذکر کوه دا ټولې خبرې زه تا سو خلقوته د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بنايم. [ترمذي] |

**توضیح**: (عن خارجة) خارجه بن زید بن ثابت جلیل القدر صحابی دی، انصاری دی، مدنی دی، د حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ زمانه یې موندلې ده، د خپل پلار نه یې د حضور ﷺ احادیث اوریدلي دي د مدینې منورې د فقهاء سبعه نه یو وو، د فقهاء سبعه نو مونه دا دي، یو شاعر وایې:

الا کل من لا یقتدی بأئمة فقسمته ضیزی من الحق خارجة

فخذهم عبیدالله عروة قاسم سعید ابو بکر سلیمان خارجه

**فکان**: حضور اکرم ﷺ د هر مجلس خیال ساتلی دی او د انسانانو سره یې عمومی تعلق ساتلی دی او همدا کمال بشریت وو، داسې سرزوری نه وو چې په هر مجلس کې یې خپله خبره چلوله او د بل چا به یې نه اوریدله بلکه په هغه کې جامع کمال او جمال وو، شاعر وېلي:

جہاں تک آپ کی تقلید ہی اسی حد تک سلیقہ بشریت بشر کو ملتا ہی

## مصافحه او مواجهه او په مجلس کې د ناستي طریقه

| ﴿۲۴﴾ وَعَنْ أَنَسٍ اَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ |
|---|
| او حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ چې به یو سړي سره مصافحه او ملاقات کوه نو خپل لاس |
| إِذَا صَافَحَ الرَّجُلَ لَمْ يَنْزِعْ يَدَهُ مِنْ يَدِهِ حَتّٰى |
| مبارک به یې تر هغه وقته پورې نه جدا کوه تر څو پورې چې هغه سړي به خپل لاس نه وو جدا کړی |
| يَكُوْنَ هُوَ الَّذِيْ يَنْزِعُ يَدَهُ وَلَا يَصْرِفُ وَجْهَهُ |
| او حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به خپل مخ مبارک د هغه سړي د مخ نه د هغې پورې نه اړوه تر څو پورې چې هغه سړی |
| عن وَجْهِهِ حَتّٰى يَكُوْنَ هُوَ الَّذِيْ يَصْرِفُ وَجْهَهُ عَنْ وَجْهِهِ |
| به خپل مخ د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د مخ مبارک نه وو اخوا کړی او حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هیڅ کله چا په دې حال کې |
| وَلَمْ يُرَ مُقَدِّمًا رُكْبَتَيْهِ بَيْنَ يَدَيْ جَلِيْسٍ لَهُ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ. [2] |
| نه دی لیدلی چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خپلې کونډې مبارکې د خپل همنشین مخکې کولو سره ناست وي. [ترمذي] |

---

[1] اخرجه البغوي في شرح السنة ۱۳/۲۴۵ رقم الحديث ۳۶۷۹.

[2] اخرجه الترمذي في السنن ۴/۵۶۴ رقم الحديث ۲۴۹۰ وابن ماجه ۲/۱۲۲۴ رقم الحديث ۳۷۱۶.

**توضيح**: **لم ينزع يده**: يعنې د مصافحې په وخت کې حضور صلى الله عليه وسلم خپل مبارک لاس د مصافحه کونکي د لاس نه په خپله نه وو لرې کوه تر څو پورې به چې هغه کس خپل لاس پخپله نه لرې کوه، همدا رنګه د مصافحې په وخت يا د عامو خبرو کولو په وخت تر څو پورې به چې دويم شخص خپل مخ نه ګرځولو تر هغه وخته به حضور صلى الله عليه وسلم د حسن اخلاق او مروت لاندې خپل مخ نه ګرځولو، د اخلاقو او مروت او د تواضع او انکسارۍ دا يو اعلى نمونه ده.

**ولم ير مقدما**: يعنې د حضور صلى الله عليه وسلم په عامو مجالسو کې عام عادت همدا وو چې د خلکو په مخ کې يې خپلې پښې او ځنګنونه نه غځول ځکه دا د متکبرينو عادت او علامت دی، دلته د ځنګنونو د غځولو الفاظ دي، بعضو شارحينو د رکبتين نه رجلين مراد کړي دي دا ډير واضحه او آسانه مطلب دی د ځنګنونو غځول په پوهه کې نه راځي، عرب خلک خپل طرفته د پښو غځول ډير لوی عيب ګڼي، بيت الله طرفته خو پښې غځوي ليکن د انسان طرفته په پښو غځولو باندې جنګ کوي. په هر حال په عامو مجلسونو کې د حضور صلى الله عليه وسلم عام عادت همدا وو، کچيرې په کوم خاص مجلس کې يې کله کله پښې غځولي وي نو د هغه سره يې هيڅ تعارض نشته او نه کوم فرق پريوځي.

| ﴿۲۵﴾ وَعَنْهُ أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ لَا يَدَّخِرُ شَيْئًا لِغَدٍ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.[1] |
|---|
| حضرت انس رضي الله عنه فرمايي چې نبی کريم صلى الله عليه وسلم به هيڅ شی صبا د پاره نه ذخيره کوه، ترمذی |

**توضيح**: **لا يدخر**: يعنې د خپل ذات لپاره يې کله هم د سبا لپاره ذخيره ايښې نه ده، دا د حضور صلى الله عليه وسلم خپله ذاتي معامله وه د همدې تذکره په دې حديث کې ده، ددې برعکس حضور صلى الله عليه وسلم د خپلو ازواج مطهرات لپاره ذخيره ايښې ده. د بعضو لپاره يې د يو کال انتظام فرمايلی دی ليکن د خپل ځان په باره کې يې په توکل باندې عمل کړی دی.

## د حضور صلى الله عليه وسلم خاموشي

| ﴿۲۶﴾ وَعَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ قَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ طَوِيْلَ الصَّمْتِ. |
|---|
| او جابر ابن سمره رضي الله عنه وايي رسول الله صلى الله عليه وسلم به زيات تر خاموشي اختياروله دا روايت |
| رَوَاهُ فِيْ شَرْحِ السُّنَّةِ.[2] |
| بغوي رحمه الله په شرح السنه کې نقل کړی دی. |

(1) اخرجه الترمذي في السنن ۴/۵۰۱ رقم الحديث ۲۳۶۲.

(2) اخرجه أحمد في المسند ۵/۸۶.

## د حضور صلی الله علیه وسلم د وینا انداز

﴿۲۷﴾ وَعَنْ كَعْبٍ وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ كَانَ فِيْ كَلَامِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَرْتِيْلٌ وَتَرْسِيْلٌ. رَوَاهُ أَبُوْ دَاوُدَ[1]

حضرت جابر رضي الله عنه وايي د رسول الله صلی الله علیه وسلم د الفاظو په آدائيګۍ کې به د ترتيل او ترسيل لحاظ وو. [ابوداؤد]

**توضیح**: ترتيل: حروف او کلمات ظاهرول او په دمه دمه ويلو ته ترتيل ويل کيږي چې د سرد الکلام برعکس وي چې د دې تذکره په وړسپې حديث کې شته او ممدوحه نه ده ، د ترتيل تعلق د قرآن کريم د ويلو سره دی ﴿ورتل القرآن ترتيلا﴾.

ترسيل: دا د ترسل نه دی چې په دمه دمه کلام ويلو ته ويل کيږي ، علماؤ ليکلي دي چې دا دواړه لفظونه د معنی په اعتبار سره يو شان دي البته د ترسيل تعلق د عام کلام سره دی او د ترتيل تعلق د قرآن د ويلو سره دی ، په وړسپې حديث کې د (بينه فصل) چې کوم لفظ راغلی دی هغه هم په دغه معنی سره دی چې علاحده علاحده واضح کلام به وو او هر څوک به وړباندې پوهيده.

﴿۲۸﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ مَا كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَسْرُدُ سَرْدَكُمْ هٰذَا وَلٰكِنَّهُ كَانَ يَتَكَلَّمُ بِكَلَامٍ بَيْنَهُ فَصْلٌ يَحْفَظُهُ مَنْ جَلَسَ إِلَيْهِ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ[2]

او بي بي عائشه رضي الله عنها بيان وکړو د رسول الله صلی الله علیه وسلم ګفتګو به داسې نه وه څرنګه چې تاسو خلق مسلسل خبرې کوئ کله چې به حضور صلی الله علیه وسلم ګفتګو کوله نو يو يو حرف او جمله به يې داسې په آرام آرام اداء کوله چې کوم سړی به حضور صلی الله علیه وسلم سره ناست وو نو پوره خبرې اترې به يې په ښه شان ياد ولی شوې. [ترمذي]

## په شونډو مبارکو به يې اکثره مسکاوه

﴿۲۹﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ الْحَارِثِ بْنِ جَزْءٍ قَالَ مَا رَأَيْتُ أَحَدًا أَكْثَرَ تَبَسُّمًا

او حضرت عبد الله ابن حارث ابن جزء رضي الله عنه وايي ما زيات مسکی کېدونکی هيڅوک نه دی ليدلی

(1) اخرجه أبوداود في السنن ۵/۱۷۱ رقم الحديث ۴۸۳۸.

(2) اخرجه الترمذي في السنن ۵/۵۶۰ رقم الحديث ۳۶۳۹ وأحمد في المسند ۶/۲۵۷.

| مِنْ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ [1]. |
|---|
| د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه. [ روایت کړې دې ترمذي ] |
| ﴿۳۰﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ سَلَامٍ قَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| او عبد الله بن سلام رضي الله عنه وايي رسول الله صلی الله علیه وسلم چې به خبرو کولو ته کینا سته نو اکثره به |
| إِذَا جَلَسَ يَتَحَدَّثُ يُكْثِرُ أَنْ يَرْفَعَ طَرْفَهُ إِلَى السَّمَاءِ. رَوَاهُ أَبُوْ دَاوُدَ. [2] |
| یې نظر آسمان طرف ته پورته کوه. [ روایت کړې دې ابو داؤد ] |

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## د عظیم شفقت سره عظیم اخلاق

| ﴿۳۱﴾ عَنْ عَمْرِو بْنِ سَعِيْدٍ عَنْ أَنَسٍ قَالَ مَا رَأَيْتُ |
|---|
| او حضرت عمرو ابن سعید د انس رضي الله عنه نه روایت کوي هغوئ وویل ما هیڅوک د رسول الله صلی الله علیه وسلم |
| أَحَدًا كَانَ أَرْحَمَ بِالْعِيَالِ مِنْ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ |
| نه زیات خپل اهل او عیال باندې مهربانه او مشفق نه دی لیدلی د حضور صلی الله علیه وسلم د ځوئ |
| إِبْرَاهِيْمُ ابْنُهُ مُسْتَرْضِعًا فِيْ عَوَالِي الْمَدِيْنَةِ فَكَانَ |
| ابراهیم رضي الله عنه د مدینې په پورتني اطرافو کې په یو کور کې پی ورکول کیدل حضور صلی الله علیه وسلم به اکثره |
| يَنْطَلِقُ وَنَحْنُ مَعَهُ فَيَدْخُلُ الْبَيْتَ وَإِنَّهُ |
| هغه محلې ته ورتلو مونږ به هم د حضور صلی الله علیه وسلم سره وو حضور صلی الله علیه وسلم هلته رسیدو سره د دائي کور ته |
| لَيُدَّخَنُ وَكَانَ ظِئْرُهُ قَيْنًا فَيَأْخُذُهُ |
| به یې تشریف راوړلو او هلته په هغه کور کې به لوګی وو ځکه چې د دائي (پی ورکونکي) خاوند |
| فَيُقَبِّلُهُ ثُمَّ يَرْجِعُ |
| آهینګر وو او د هغه د بټې لوګی به په کور کې ښلور طرف ته وو خو حضور صلی الله علیه وسلم به د ځوی په محبت |

(1) اخرجه الترمذي في السنن ٥/٥٦١ رقم الحديث ٣٦٤١ وأحمد في المسند ٤/١٩٠ .

(2) اخرجه أبوداود في السنن ٥/١٧١ رقم الحديث ٤٨٣٨.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| قَالَ | عَمْرٌو | فَلَمَّا | | تُوُفِّيَ | إِبْرَاهِيمُ |

کې هغه لوګي ته ډک کورته ورتلو صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بيا ابراهيم رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ به يې په غيږه مبارکه کې اخستی مينه

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| قَالَ | رَسُولُ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ |

محبت به يې ورسره کوو او بيا به خپل کورته بيرته راغلو حضرت عمرو بيان وکړو چې کوم وقت

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| إِنَّ | إِبْرَاهِيمَ | ابْنِيْ | وَإِنَّهُ | مَاتَ | فِي | الثَّدْيِ |

حضرت ابراهيم رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وفات شونو رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمائيل ابراهيم ځما ځوی دی هغه په سينه

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَإِنَّ | لَهُ | لَظِئْرَيْنِ | تُكَمِّلَانِ | رَضَاعَهُ |

کې يعني د پيو څکلو زمانه کې وفات شو د هغه د پاره دوه تی ورکونکې مقرر شوي دي چې په

فِي الْجَنَّةِ. رَوَاهُ مُسْلِمٌ.(۱)

جنت کې د هغه د پيو موده پوره کوي. [مسلم]

**توضيح** : **ارحم بالعيال**: يعنې حضور صلى الله عليه وسلم په خپل اهل او عيال باندې د ټولو نه زيات مهربانه او شفقت کونکی وو ، وړيسې تفصيل دی.

**وكان ابراهيم**: حضور صلى الله عليه وسلم چې کله د دنيا بادشاهانو ته دعوتی خطوط ليږلي وو په هغو کې د مصر عيسائی بادشاه مقوقس په نوم هم يو خط وو ، مقوقس حضور صلى الله عليه وسلم ته په طور د تحفې باندې يو آس او يوه وينځه ليږلې وه د هغې وينځې نوم ماريه قبطيه وو ، د هغې د بطن نه په مدينه منوره کې يو بچی پيدا شو چې د هغه نوم ابراهيم وو ، د شيدو ورکولو په غرض حضور صلى الله عليه وسلم خپل دغه ځوی ابراهيم په عوالی د مدينه کې د يوه آهنګر کورته ورکړلو ، د آهنګر ښځه د حضرت ابراهيم دايه جوړه شوه شودې يې ورکولې ، حضور صلى الله عليه وسلم کله کله د خپل دغه ځوی د حال اخيستلو لپاره هلته تشريف وړلو ، هغه ځای تنګ وو په نغري کې به لرګی سوځيدل نو لوګی به هم وو ، حضور صلى الله عليه وسلم به دغه ټولو مشقت برداشت کولو او په ځوی باندې به يې شفقت کولو او هلته به تللو ، اولس اتلس مياشتې بعد د حضرت ابراهيم انتقال وشو .

**عوالي**: دا د عالية جمع ده ، د مدينې اطرافو ته ويل کيږي ، بعضې عوالی څلور ميله بعضې شپږ ميله او بعضې عوالی د اته ميله په فاصله باندې پراته وو .

**ليدخن**: يعنې په دغه ځای کې به لوګی وو .

---

(۱) اخرجه مسلم في صحيحه ۱۸۰۸ رقم الحديث ۶۳/۲۳۱۶، وأحمد في المسند ۳/۱۱۲.

ظئر: په عربی کې تی ورکونکي ښځې ته ظئر ویل کیږي لیکن په دې کې نارینه او ښځه برابر دي، کچیرې کومه ښځه د چا ځوی ته شودې ورکوي او هغه ظئر جوړیږي نو د دغې ښځې خاوند هم د دغه بچي رضاعي پلار جوړیږي په عربی کې په هغه باندې هم د ظئر اطلاق کیږي د لته هم داسې شوي دي.

قين: حداد او آهنګر ته وايي، شايد داد دوکي د زياتيدو وجه بيانيږي ځکه چې د آهنګرانو سره او سپنه ګرمولی شي نو اور بليږي.

في الثدی: يعنې د رضاعت په موده کې د ننه وفات شو، د شيدو رودلو په وخت کې وفات شو، حضرت ابراهيم د اولس يا اتلس مياشتو په عمر کې وفات شوی وو په دغه وجه په جنت کې د هغه لپاره د دوو تی ورکونکو انتظام وشو.

## د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د لويو اخلاقو ظهور

﴿۳۲﴾ وَعَنْ عَلِيٍّ أَنَّ يَهُوْدِيًّا كَانَ يُقَالُ لَهُ فُلَانٌ حَبْرٌ كَانَ لَهُ عَلَى

حضرت علي کرم الله وجهه راوي دی په مدينه کې د فلان نوم يو يهودي عالم وو د هغه څو ديناره

رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَنَانِيْرُ فَتَقَاضَى النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

په حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ باندې قرض وو يوه ورځ هغه يهودي راغی رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه يې د هغه دينارو مطالبه

فَقَالَ لَهُ يَا يَهُوْدِيُّ مَا عِنْدِيْ مَا أُعْطِيْكَ

وکړله حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغه ته وفرمائيل ای يهودي! تا ته درکولو د پاره دا وخت ما سره هيڅ شی نشته

قَالَ فَإِنِّيْ لَا أُفَارِقُكَ يَا مُحَمَّدُ حَتّٰى تُعْطِيَنِيْ

يهودي وويل ای محمد! زه تر هغه وخته پورې ستا نه نه ليرې کېږم تر څو پورې چې ځما قرض اداء

فَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذًا أَجْلِسُ مَعَكَ

نکړې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جواب ورکړو ښه ده نو بيا زه تا سره کينم تر څو پورې چې ته ونه وايې ستا د

فَجَلَسَ مَعَهُ فَصَلّٰى رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الظُّهْرَ وَالْعَصْرَ

مخ نه به نه اخوا ته کېږم او په دې فرمائيلو سره حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغه سره کېنا ستو د ماپښين مازيګر

وَ الْمَغْرِبَ وَ الْعِشَاءَ الْاٰخِرَةَ وَ الْغَدَاةَ وَ كَانَ أَصْحَابُ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

ماښام ماخستن او بيا د راتلونکې سهار مونځ وکړه صحابو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ دې صورت حال ليدو سره سخت

يَتَهَدَّدُوْنَهُ وَيَتَوَعَّدُوْنَهُ فَفَطِنَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

قهر کې شول او بار بار به يې هغه يهودي ويروه رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغوی منع کړل صحابو عرض

مَا الَّذِيْ يَصْنَعُوْنَ بِهِ فَقَالُوْا يَا رَسُوْلَ اللهِ يَهُوْدِيٌّ يَحْبِسُكَ؟

وکړو یا رسول الله! دا یو یهودي کېدو سره تا سو يې پابند کړي يي او دلته په ناستي باندې يې

فَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ مَنَعَنِيْ رَبِّيْ

مجبوره کړي يي حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ورته وفرمائيل آيا تا سو ته نه ده معلومه چې الله! زه منع کړي

أَنْ أَظْلِمَ مُعَاهِدًا وَّغَيْرَهُ فَلَمَّا تَرَحَّلَ النَّهَارُ قَالَ الْيَهُوْدِيُّ

يم چې په هغه سړي ظلم وکړم هغه چې هرڅوک وي هرکله چې ورځ راوختله نو هغه يهودي وويل

أَشْهَدُ اَنْ لَّا اِلٰهَ اِلَّا اللهُ وَأَشْهَدُ أَنَّكَ رَسُوْلُ اللهِ

زه شاهدي اداکوم چې الله نه ماسوا بل معبود نشته او شاهدي اداکوم چې يقيناً ته د الله! رسول يې

وَشَطْرُ مَالِيْ فِيْ سَبِيْلِ اللهِ

یارسول الله! زه د خپل مال نیمه حصه د الله! په لار کې صدقه کوم تا سو ته دي معلومه وي

أَمَا وَاللهِ مَا فَعَلْتُ بِكَ الَّذِيْ

قسم په الله ما چې دا وخت ستا سو سره کومه سخته رويه اختيار کړه د هغه سبب د دي نه علاوه نور هيڅ نه

فَعَلْتُ بِكَ اِلَّا لِأَنْظُرَ

ووچې ما په تا سو کې هغه اوصاف امتحان کول غوښتل د کومو ذکر چې په تورات کې موجود دی

إِلٰى نَعْتِكَ فِي التَّوْرَاةِ مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللهِ

او په تورات کې هغه اوصاف داسې مذکور دي چې د هغه نوم مبارک به محمد وي د عبد الله ځوی

مَوْلِدُهُ بِمَكَّةَ وَ مُهَاجَرُهُ بِطَيْبَةَ وَ مُلْكُهُ

به وي پيدائش به يې په مکه کې وي مدينې طيبې ته به هجرت کوي د هغوئ د مملکت سرحد ونه

بِالشَّامِ لَيْسَ بِفَظٍّ وَلَا غَلِيْظٍ وَلَا سَخَّابٍ

به ملک شام او د هغه ګردونواح پورې خواره وي هغه به نه بدزبانه وي نه به سنګدل (سخت زړی)

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| فِي | الْأَسْوَاقِ | وَلَا | مُتَزَيّ | بِالْفُحْشِ وَلَا |

وي نه به بازارونو کې شور کونکی وي نه به فحش اختیارونکې وي او نه به بیهوده خبره کونکې

| | | | |
|---|---|---|---|
| قَوْلِ | الْخَنَا | أَشْهَدُ | أَنْ |

وي هغه په تورات کې مذکوره داخبر اورولو نه روسته یو وار بیا کلمه د شهادت وویله چې زه گواهي

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| لَا | إِلٰهَ | إِلَّا | اللّٰهُ | وَ | أَنَّكَ | رَسُوْلُ | اللّٰهِ | وَ | هٰذَا مَالِيْ |

ورکوم چې د الله! نه ماسوا بل معبود نشته او دا چې یقینًا تا سو د الله! رسول یاست ای د الله رسوله! دا ځما مال. خاضر دی

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فَاحْكُمْ | فِيْهِ | بِمَا | أَرَاكَ | اللّٰهُ | وَ | كَانَ | الْيَهُوْدِيُّ |

تاسو د الله! د حکم په رڼا کې د دې متعلق چې څه مناسب ګڼئ فیصله وکړئ د راوي بیان دی چې هغه یهودي

كَثِيْرَ الْمَالِ. رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِيْ دَلَائِلِ النُّبُوَّةِ. [1]

ډېر مال دار وو دا روایت بیهقي دلائل النبوة کې نقل کړی دی

**توضیح** : **فلاناً**: د یهودی د نوم نه کنایه ده، **حبر**: د دې جمع احبار ده د یهودو عالم ته ویل کیږي.

**دنانیر**: د تصغیر او تقلیل لپاره دغه لفظ راغلی دی یعنې یو څو دیناره وه معمولی قرض وو.

**ماعندی**: په دغه وخت کې د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره دغه رقم نه وو، شاید د هغه د اداء کولو وخت تر اوسه راغلی نه وو یهودی د وخت نه مخکې مطالبه وکړه او داسې معلومیږي چې د کوم صحابی سره هم څه نه وو.

**اجلس معک**: په ظاهره داسې معلومیږي چې هغه یهودی حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په مسجد نبوی کې کښېناوه او په خپله هم ورسره کېنوه.

**الغداة**: د دې نه مراد د سهار مونځ دی نو پوره پنځه مونځونه یې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ پرې خودلو.

**یتوعدونه**: ځورنې ته ویل کیږي.

**وغیرة**: دا تعمیم بعد تخصیص دی چې زه نه په کوم معاهد باندې ظلم کوم او نه د دې نه علاوه په بل چا باندې ظلم کوم، زما رب زه د ظلم نه منع کړی یم.

**کرجل النهار**: د ورځې راخکاره کیدلو او لمر پورته کیدلو ته ویل شوي.

**فظ**: د ژبې په لحاظ به بد اخلاقه نه وي. **غلیظ**: د زړه په اعتبار سره به سخت دله نه وي.

[1] رواه البیهقي في دلائل النبوة ۶/۲۸۰.

**سخاب:** په بازارونو کې به چغې وهونکی نه وي.

**ولامتزی:** یعني عملی طور باندې به د فحش ارتکاب کونکی نه وي.

**قول الخنا:** یعني د قول او زباني طور باندې به د فحش او قبیح خبرو کولو والا نه وي، په دې حدیث کې د حضور صلی الله علیه وسلم د هغو اخلاقو ظهور وشو د کومو چې تصور نشو کیدلی، یو چا ربنتیا ویلي:

نفسی الفداء لمن اخلاقه شهدت — بانه خیر مولود من البشر

لم یخلق الرحمن مثل محمد — ابدا وعلمی انه لایخلق

فاق النبیین في خلق و خلق — ولم یدانوه في علم ولا کرم

## د حضور صلی الله علیه وسلم د فقراو او غریبانو سره تعامل

﴿۲۳﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ أَبِي أَوْفَى قَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُكْثِرُ

او حضرت عبدالله ابن ابي اوفی رضی الله عنه وایي رسول الله صلی الله علیه وسلم به په ذکر کې زیات مشغول ؤ لغو [فضول]

الذِّكْرَ وَيُقِلُّ اللَّغْوَ وَيُطِيْلُ الصَّلَاةَ وَيُقَصِّرُ الْخُطْبَةَ وَلَايَأْنِفُ أَنْ يَّمْشِيَ

خبرې به یې ډیرې کمې کولې مونځ به یې طویل او خطبه به یې مختصره ویله او کونډې او مسکین

مَعَ الْأَرْمِلَةِ وَ الْمِسْكِيْنِ فَيَقْضِيْ لَهُ الْحَاجَةَ. رَوَاهُ النَّسَائِيُّ وَ الدَّارِمِيُّ.[1]

سره په تلو کې به یې څه عار نه محسوسوه او د هغوئ کار به یې کوه. [روایت کړې نسائي ودارمي]

**توضیح: الذکر:** د دینه مراد هر هغه عمل دی چې د الله تعالی د یاد سره متعلق وي، د حضور ﷺ د زندګی هره لمحه په ذکر الله باندې مشتمله وه.

**اللغو:** د دینه مراد هر هغه عمل دی چې په هغه کې نه د دنیا فائده وي او نه د آخرت فائده وي بلکه هغه عمل د ذکر الله نه علاوه محض د دنیا سره متعلق وي، امام غزالی رحمه الله د بی مقصده او بی مصلحته منطقی او فلسفی تألیفاتو متعلق ویلي دي: **ضیعت قطعة من العمر العزیز في تألیف البسیط والوسیط والوجیز**. په هر حال د ذکر حقیقی په مقابله کې د نورو امورو همدا حیثیت دی.

**ویقل:** علماؤ لیکلي چې د قلت اطلاق په عدم باندې هم کیږي دلته همدا عدم او معدوم مراد شوی دی یعني حضور ﷺ د لغوه امورو طرفته بلکل التفات نه کولو.

---

[1] اخرجه النسائي في السنن ۳/۱۰۸ رقم الحدیث ۱۴۱۴ والدارمي في السنن ۱/۴۸ رقم الحدیث ۷۴.

يانف: نه خوښولو او بد ګڼلو ته ویلی کیږي. ارملة: بې خاونده ښځې ته ویل کیږي یعنې د اعلی اخلاقو او اعلی تواضع په بنیاد باندې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د کونډې ښځې سره تلل او د غریب او غرباؤ سره راشه درشه بده نه ګڼله.

﴿۳۴﴾ وَعَنْ عَلِيٍّ أَنَّ أَبَا جَهْلٍ قَالَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

او حضرت علي کرم الله وجهه نه روایت دی چې ابو جهل رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته دا وویل ای محمد!

إِنَّا لَا نُكَذِّبُكَ وَلٰكِنْ نُكَذِّبُ بِمَا جِئْتَ بِهِ فَأَنْزَلَ

مونږ لیکن هغه شي ته دروغ وایو کوم چې تا راوړی دی نو الله! د په حق کې دا ایت نازل کړه:

اللهُ تَعَالٰى [فَإِنَّهُمْ لَا يُكَذِّبُونَكَ وَلٰكِنَّ الظَّالِمِينَ

فَإِنَّهُمْ لَا يُكَذِّبُونَكَ وَلٰكِنَّ الظّٰلِمِينَ بِآيَاتِ اللهِ يَجْحَدُونَ پس یقینا دوي تا ته دروغجن نه وایي بلکه دا ظالمان

بِآيَاتِ اللهِ يَجْحَدُونَ] رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.[1]

خو د الله د آیتونو نه انکار کوي. [ترمذي]

## سلام په هغه چا باندې چې په بادشاهۍ کې یې فقیرۍ وکړه

﴿۳۵﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. يَا عَائِشَةُ

او بي بي عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وایي یوه ورځ رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ما ته وفرمائیل ای عائشي رَضِيَ اللهُ عَنْهَا! که زه

لَوْ شِئْتُ لَسَارَتْ مَعِيَ جِبَالُ الذَّهَبِ جَاءَنِي مَلَكٌ وَإِنَّ

وغواړم نو یقینًا ما سره به د سرو زرو غرونه روان شي ما ته یوه فرشته راغله چې د ومره غټه وه چې

حُجْزَتَهُ لَتُسَاوِي الْكَعْبَةَ فَقَالَ إِنَّ رَبَّكَ يَقْرَأُ عَلَيْكَ السَّلَامَ

د هغه ملا د کعبې برابر وه هغه ما ته وویل چې ستا سو پروردګار په تا سو سلام وایي او فرمایي

وَيَقُولُ إِنْ شِئْتَ نَبِيًّا عَبْدًا وَإِنْ شِئْتَ نَبِيًّا مَلِكًا فَنَظَرْتُ

چې ته بنده پیغمبر جوړیدل غواړې که بادشاه پیغمبر جوړیدل ما پدې اوریدو سره د جبرائیل طرف

إِلٰى جِبْرَائِيلَ عَلَيْهِ السَّلَامُ فَأَشَارَ إِلَيَّ

ته سوالیه انداز کې وکتل او ګویا د هغه نه مې مشوره طلب کړه چې ته و وایه زما د پاره به کوم صورت

---

(1) اخرجه الترمذي في السنن ۵/۲۴۳ رقم الحديث ۳۰۴۶.

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| أَنْ | ضَعْ | نَفْسَكَ[1] | وَفِيْ | رِوَايَةِ | ابْنِ | عَبَّاسٍ | فَالْتَفَتَ |

بنه وي؟ نو هغه وويل خپل نفس پست کړه يعني د فقر ژوند اختيار کړه نه د عيش او راحت ژوند.

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| رَسُوْلُ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ | إِلَى | جِبْرَائِيْلَ |

او د حضرت ابن عباس رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ په روايت کې دا دي چې حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جبرائيل عَلَيْهِ السَّلَامُ ته

| | | | |
|---|---|---|---|
| كَالْمُسْتَشِيْرِ | لَهُ | فَأَشَارَ | جِبْرَئِيْلُ |

متوجه شو، او مشورې غوښتلو آنداز کې هغه طرف ته وکتل، نو جبرائيل په خپل لاس سره ځمکې

| | | | |
|---|---|---|---|
| بِيَدِهِ | أَنْ | تَوَاضَعْ | فَقُلْتُ |

طرف ته اشاره کولو سره ونبودل، چې خکته والی او انکساري اختيار کړه نو حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمائيل ما وويل

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| نَبِيًّا | عَبْدًا | قَالَتْ | فَكَانَ | رَسُوْلُ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ | بَعْدَ | ذٰلِكَ |

چې يقينا زه بنده پيغمبر جوړيدل غواړم، بي بي عائشې رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا بيان وکړو چې ددې نه روسته

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| لَا | يَأْكُلُ | مُتَّكِئًا | يَقُوْلُ | آكُلُ | كَمَا |

حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هيڅ کله تکيه لګولو سره طعام نه دی خوړلی او فرمائيل يې زه داسې طعام خورم، څرنګه

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| يَأْكُلُ | الْعَبْدُ | وَأَجْلِسُ | كَمَا | يَجْلِسُ | الْعَبْدُ. | رَوَاهُ | فِيْ | شَرْحِ | السُّنَّةِ[2] |

چې غلام يې خوري، او داسې کينم څرنګه چې غلام کيني، دا روايت بغوي په شرح السنة کې نقل کړی دی.

**توضيح**: د الله تعالى له طرفنه دغې خاصې ملائکې دغه خاص پيغام وکړو چې کچيرې حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وغواړي چې د نبوت سره بادشاهت هم وي نو الله تعالى به داسې وکړي او که وغواړي چې نبوت او عبديت وي نو دا هم د هغه اختيار دی، حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د جبرئيل عَلَيْهِ السَّلَامُ په مشوره باندې نبوت او عبديت اختيار کړلو او بادشاهت يې منع کړلو، دا په فقيرۍ کې بادشاهي ده.

سلام په هغه چا چې په بادشاهۍ کې يې فقيري وکړه.



۲۲ جمادی الثاني ۱۴۱۸هـ

[1] اخرجه البغوي في شرح السنة ۱۳/۲۴۷ رقم الحديث ۳۶۸۳.

[2] اخرجه البغوي في شرح السنة ۱۳/۲۴۸ رقم الحديث ۳۶۸۴.

# باب المبعث وبدء الوحي

## د نبوي بعثت دور او د نزول وحې بيان

قال الله تعالى ﴿اقْرَأْ بِاسْمِ رَبِّكَ الَّذِي خَلَقَ خَلَقَ الْإِنسَانَ مِنْ عَلَقٍ﴾ (العلق)

**المبعث:** دا لفظ د بعث نه دى د پورته كولو ژوندي كولو او ليږلو په معنى سره راځي دلته په همدې آخرى د ليږلو په معنى كې استعمال شوى دى. حضور ﷺ ته د ۴۰ كلونو په عمر كې نبوت وركړى شو، د نبوت حاصليدو نه درې كاله وروسته هغۀ د صفا په غونډۍ باندې وختلو او په ښكاره الفاظو كې يې د نبوت اعلان وفرمايلو، د نبوت ۱۳ كاله هغه په مكه كې تير كړل او لس كاله په مدينه منوره كې پاتې شو، په دغه طريقه چې كله ۲۳ كاله د نبوت پوره شول نو الله تعالى هغه خپل طرفته وبللو او د ۶۳ كلونو په عمر كې د هغه وصال وشو.

د مسجد نبوى سره د حضرت عائشې رضي الله عنها حجره وه په دې كې هغه په ژوند كې هم اوسيده او وصال هم همدلته وشو او قبر يې هم په همدې ځاى كې دى او تدفين يې هم همدلته وشو، اوس دغه حجره مسجد نبوى په مينځ كې راغلې ده او روضه د رسول هم په مينځ كې راغلې ده.

**بدء الوحي:** دا لفظ په همزې سره د ابتداء په معنى سره دى او كه همزه نه وي بلكه واو وي نو دا بُدُوٌّ د ظهور وحې په معنى سره راځي دلته په همزې سره راغلى دى. **(الوحى هو الاشارة الخفية)** يعنې د لغت په اعتبار سره وحې .رمز او مخفى اشاره او كنايه ده ورو خبره كول، پيغام ليږل او القاء او الهام ته ويل كيږي . په مشارق انوار كې ليكلي دي چې ملا على القارى رحمه الله د وحې اصطلاحى تعريف داسې كړى دى (و شرعا هو الاعلام بالشرع) يعنې انبياء كرامو ته د شرعى پيغاماتو رسولو نوم وحې ده، انبياء كرامو ته د وحې راتللو څو طريقې وې: (۱) كله به ملائكې د انسان په شكل كې وحې راوړله. (۲) كله كله به ملائكه په خپل اصلى صورت كې راتلله. (۳) كله به الله تعالى براه راست د نبى په زړه باندې القاء فرمايله. (۴) كله به الله تعالى د حجاب تر شا نبى سره خبرو كولو سره وحې كوله. (۵) كله به د انسلاخ بشريت په صورت كې وحې راتلله، د انسلاخ بشريت مطلب دا دى چې په حضور ﷺ به يو قسم غشى طارى كيدله، هغه ﷺ به د عالم بشريت نه عالم ملكوتيت طرفته منتقل كيده او په همدغه حالت كې به وحې راتلله، چې كله به هغه په هوش كې راغللو او د عالم بشريت طرفته به واپس راغللو نو هغه وحې به ده ته په ياد كې پاتې وه، د وحې دغه شكل به په حضور ﷺ باندې ډير دروند وو ځكه په دې كې انسلاخ بشريت وو.

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

## حضور ﷺ د څلویښت کالو په عمر کې په نبوت سره مشرف شو

﴿۱﴾ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ بُعِثَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ لِاَرْبَعِيْنَ سَنَةً

ابن عباس رضي الله عنه وايي رسول الله ﷺ د څلویښت کالو په عمر کې د رسالت منصب او نبوت

فَمَكَثَ بِمَكَّةَ ثَلَاثَ عَشَرَةَ سَنَةً يُوْحٰى اِلَيْهِ ثُمَّ

باندې فائز سو ددې نه روسته حضور ﷺ دیارلس کاله په مکه کې وو چې وحې به ورته کېدله او بیا

اُمِرَ بِالْهِجْرَةِ فَهَاجَرَ عَشَرَ سِنِيْنَ وَ مَاتَ

حضور ﷺ ته د هجرت حکم وشو د نو مکې نه یې هجرت وکړو او لس کاله په مدینه کې وو کوم

وَ هُوَ ابْنُ ثَلَاثٍ وَّ سِتِّيْنَ سَنَةً. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.[1]

وخت چې حضور ﷺ وفات شو نو عمر مبارک یې دری شپیته کاله وو. [بخاري مسلم]

**توضیح**: په دې روایت کې د حضور ﷺ د مکې زندګې ۱۳ کاله ښودل شوې ده او مدنې لس کاله ښودل شوې ده او ټول عمر ۶۳ کاله بیان شوی دی، دغه روایت بنیادي حیثیت لري همدېته امام بخاري رحمه الله ترجیح ورکړې ده، ددینه علاوه د ۶۰ کالو روایت هم شته او د ۶۵ کالو روایت هم شته، د وفات د غه دواړو روایتونو کې د تأویل ضرورت شته.

﴿۲﴾ وَ عَنْهُ قَالَ اَقَامَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ بِمَكَّةَ خَمْسَ عَشَرَةَ سَنَةً

او ابن عباس رضي الله عنه وایي رسول الله ﷺ پنځلس کاله په مکه کې وو او په ابتدائي اوه کالو

يَسْمَعُ الصَّوْتَ وَ يَرَى الضَّوْءَ سَبْعَ سِنِيْنَ وَلَا يَرٰى شَيْئًا

کې ئې اواز اوریدلو او په تیارو شپو کې به یې یوه عجیبه رڼا لیدله ددې نه علاوه بل شی ورته په نظر

وَّ ثَمَانَ سِنِيْنَ يُوْحٰى اِلَيْهِ وَ اَقَامَ بِالْمَدِيْنَةِ عَشْرًا

نه راتلو بیا د او کالو په موده کې ورباندې وحې نازلیده ددې نه روسته حضور ﷺ په مدینه کې لس

(۱) اخرجه البخاري في صحيحه ۷/۱۶۲ رقم الحديث ۳۸۵۱ ومسلم ۴/۱۸۲۶ رقم الحديث (۲۳۵۱ / ۱۱۱۷).

| وَتُوُفِّيَ | وَهُوَ | ابْنُ | خَمْسٍ | وَّسِتِّيْنَ. | مُتَّفَقٌ | عَلَيْهِ. (۱) |
|---|---|---|---|---|---|---|

کاله تېر کړل او کوم وقت چې وفات شو نو عمر يې ۶۵ کاله وو. [روايت کړې دې بخاري مسلم]

**توضيح** : خمس عشرة سنة: دلته حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د ولادت او د هجرت کالونه پوره پوره کلونه شميرلي دي چې په دې سره د مکی دور نبوت ۱۵ کاله جوړيږي نو ځکه يې د هغه ټول عمر ۶۵ کاله ګرځولی ، په پاسني روايت کې د مکی دور نبوت زندګی ۱۳ کاله ښودل شوې لهذا ټول عمر ۶۳ کاله شمېرل شوی دی هغه روايت راجح دی ، باقی هغه روايات چې په هغو کې د مکي دور لس کاله بيان شوي او هلته د يوې لسيزې نه زائد ۳ کاله کسر ګڼلو سره ندی شمېرل شوي ، عرب همداسې کوي ، مدنی دور په لس کاله باندې مشتمل دی په دې کې اختلاف نشته.

**يسمع الصوت ويرى**: په دې کې حکمت دا وو چې که په ابتداء کې يې ملائکه ليدلې وی نو شايد د وحې تحمل به مشکل شوی وای لهذا اول به يوازې آواز اوريدل کيده او بيا به يوه رڼا په نظر راتلله تر څو اول د وحې سره او د ملائکې سره يو انس او الفت پيدا شي او بيا ملائکه وحې راوړې.

**سوال**: دلته دا اشکال او سوال دی چې ددې حديث نه په واضحه طور باندې معلوميږي چې په حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ باندې د آواز اوريدلو او نور ليدلو کيفيت د نبوت حاصليدلو نه بعد په مکه مکرمه کې ظاهريده ، حالانکه د وحې راتللو نه بعد د دغه نور د ليدلو او آوازونو اوريدلو ضرورت نه وو او نه دغه قسم واقعات ښکاره شوي دي، بيا ددې حديث څه مطلب دی چې اوه کاله پورې آوازونه راتلل؟

**جواب** : ددې جواب دا دی چې د انواراتو ليدلو او د آوازونو اوريدلو دغه واقعات د نبوت حاصليدلو نه د مخکې زمانې دي ، د تاريخی واقعاتو او د احاديثو د تصريحاتو نه ثابتيږي چې د انواراتو ليدل او د آوازونو اوريدل د نبوت د حاصليدو نه د مخکې دور واقعات دي ، د زير بحث حديث په مقابله کې هغه نور احاديث قابل ترجيح دي.

**دويم جواب** دا دی چې د زير بحث حديث تعلق د هغه دور سره دی چې په هغه کې وحې منقطع شوې وه، حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به پريشانه وو ، د انقطاع وحې په دغه زمانه کې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته د تسلی ورکولو په خاطر دغه قسم غيبی آوازونه راتلل او رڼاګانې به ځليدلې تر څو هغه خپل ځان په خطره کې ونه غورځوي، مګر دغه آوازونه او رڼاګانې مسلسل نه وو بلکه کله کله به وو او تر اوو کلونو پورې دغه سلسله روانه وه ، اولنی جواب واضح او روښانه دی . (ولايری شيئا) ددې مطلب دا دی چې آوازونه او رڼاګانې خو وې ليکن ملائکې و غيره به نه ښکاره کيدل.

---

(۱) اخرجه مسلم في صحيحه ۴/۱۸۲۷ رقم الحديث (۱۲۳.۲۳۵۳) والترمذي في السنن ۵/۵۶۴ رقم الحديث : ۳۶۵۱.

﴿۱﴾ وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ تَوَفَّاهُ اللهُ عَلَى رَأْسِ سِتِّيْنَ سَنَةً . مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. [۱]

حضرت انس رضي الله عنه وايي الله ! حضور صلى الله عليه وسلم د شپيته كالو عمر پوره كېدو باندې وفات كړو. [بخاري مسلم]

## د حضور صلى الله عليه وسلم او د خلفاء اربعه عمر

﴿۲﴾ وَعَنْهُ قَالَ قُبِضَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ ابْنُ ثَلَاثٍ وَسِتِّيْنَ

حضرت انس رضي الله عنه وايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم د درى شپيتو كالو په عمر كې وفات شو

وَ أَبُوْبَكْرٍ وَ هُوَ ابْنُ ثَلَاثٍ وَ . سِتِّيْنَ وَ عُمَرُ

و حضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه هم د ۶۳ درى شپيتو كالو په عمر كې وفات شوى دى او حضرت عمر فاروق رضي الله عنه

وَهُوَ ابْنُ ثَلَاثٍ وَسِتِّيْنَ . رَوَاهُ مُسْلِمٌ. قَالَ مُحَمَّدُ ابْنُ إِسْمَاعِيْلَ الْبُخَارِيُّ [۲]

هم ۶۳ كالو په عمر كې په حق ورسيدو [مسلم] او محمد بن اسمٰعيل بخاري ويلي دي چې د

ثَلَاثٌ وَ سِتِّيْنَ أَكْثَرُ.

حضور صلى الله عليه وسلم د عمر مبارك باره كى زيات روايتونه د ۶۳ كالو دي.

**توضيح** : اكثر: يعني د حضور صلى الله عليه وسلم د عمر متعلق د ۶۳ كالو والا روايت ډير صفا او زيات مشهور دى ، او دغه قسم روايات هم زيات دي . تفصيل يې دا دى چې حضور صلى الله عليه وسلم د فيل د واقعې نه پمخوس ۵۰ ورځې وروسته او د حضرت آدم عليه السلام د جنت نه ځمكې ته كښته كيدلو نه شپږ زره يوسل او ديارلس ۶۱۱۳ كاله بعد او د حضرت عيسى عليه السلام نه بعد ۲۹ اگست ۵۷۰ع د دوشنبى ورځ ۸ ربيع الاول يا ۱۲ ربيع الاول كې په مكه مكرمه كې پيدا شو ، د څلويښتو كلونو په عمر كې په مكه كې نبوت وركړى شو ، اكثر قرآن په مكه كې نازل شو ، د نبوت حاصليدو نه بعد ديارلس كاله په مكه كې پاتې شو ، بيا يې مدينې ته په داسې وخت كې هجرت وكړو چې كله د هغه عمر ۵۳ كاله وو ، لس كاله په مدينه كې تير شول ، په ۱۲ د ربيع الاول كې د ۶۳ كلونو په عمر كې انتقال وفرمايلو او د مسجد نبوى په خوا كې په حجره عائشه كې مدفون شو ، ددې حديث نه

[۱] اخرجه البخاري في صحيحه ۱۰/۳۵۶ رقم الحديث ۵۹۰۰ ومسلم في صحيحه ۴/۱۸۲۴ رقم الحديث (۲۳۴۷.۱۱۳)

[۲] اخرجه مسلم في صحيحه ۴/۱۸۲۵ رقم الحديث (۲۳۴۸.۱۱۴) والترمذي ۵/۵۶۵ رقم الحديث ۳۶۵۳.

خکې په ۳نمبر حدیث کې د حضور ﷺ عمر ۶۰ کاله ښودل شوی دی ، په دې روایت کې کې دور د کسر پریښودلو سره لس کاله معتبر کړی شوې دي او د ولادت او هجرت کلونه ېښودل شوي دي نو پنځه کاله کم شو ، په دغه وجه شپیته کاله ذکر شوي دي ، زیر بحث روایت اجح دی ، امام بخاری رحمه الله همدا بیانوي چې د ۶۳ کالو روایت راجح دی .

## دوحې د شروع تفصیل

﴿۵﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ أَوَّلُ مَا بُدِئَ بِهِ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنَ الْوَحْيِ

او بي بي عائشه رضي الله عنها وايي رسول الله ﷺ باندې د وحې د نزول سلسله چې د کوم شي نه شروع

الرُّؤْيَا الصَّادِقَةُ فِي النَّوْمِ فَكَانَ لَا يَرٰى رُؤْيَا

شوه هغه په خوب کې د رېښتینې خوبونو په نظر راتلل وو حضور ﷺ چې به کوم خوب لیده دهغه

إِلَّا جَاءَتْ مِثْلَ فَلَقِ الصُّبْحِ ثُمَّ حُبِّبَ

تعبیر به داسې روښانه کېدو سره مخ ته راتلو لکه د سهار رڼا چې ښکاره وي دې نه روسته چې د

إِلَيْهِ الْخَلَاءُ وَكَانَ يَخْلُوْ بِغَارِ حِرَاءَ

نبوت د ظهور وخت شو نو حضور ﷺ د تنهائي شوقي جوړ شو نو حضور ﷺ په غارِ حرا کې

فَيَتَحَنَّثُ فِيْهِ، وَهُوَ التَّعَبُّدُ اللَّيَالِيَ ذَوَاتِ

ګوشه نشین شو په دې غار کې به حضور ﷺ عبادت کوه یعنې متعدد شپې به هلته په عبادت کې

الْعَدَدِ قَبْلَ أَنْ يَنْزِعَ إِلٰى أَهْلِهٖ

مشغول وو د څو پوري چې کور والو ته د ورتلو مینه به یې پیدا نه شوله حضور ﷺ به د هغه

وَيَتَزَوَّدُ لِذٰلِكَ ثُمَّ يَرْجِعُ إِلٰى

عبادت د شپو د پاره د کور نه د خوراک څکاک څیزونه وړل او هر کله چې به هغه څیزونه ختم شول نو

| | | |
|---|---|---|
| خَدِيْجَةَ | فَيَتَزَوَّدُ | لِمِثْلِهَا |

بي بي خديجې رضي الله عنها ته به راتلو او د راتلونکو شپو په قدر د څه شیانو اخستو سره به بېرته غار ته تلو

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| حَتّٰى | جَاءَهُ | الْحَقُّ | وَهُوَ | فِيْ | غَارِ | حِرَاءَ | فَجَاءَهُ | الْمَلَكُ |

تردې چې حق راغی حضور صلی الله علیه وسلم هغه وقت هم غار حراء کې وو حضور صلی الله علیه وسلم ته فرشته راغله

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| فَقَالَ | اِقْرَأْ | قَالَ | مَا | أَنَا | بِقَارِئٍ | قَالَ |

او هغه ورته وویل وو ایه حضور صلی الله علیه وسلم جواب ورکړو ماته ویل نه راځي حضور صلی الله علیه وسلم فرمایي فرشتي

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| فَأَخَذَنِيْ | فَغَطَّنِيْ | حَتّٰى | بَلَغَ | مِنِّي | الْجُهْدُ | ثُمَّ |

ځما دې جواب او ربړ و سره زه ښه په زور سره ونیولم تردې چې ماته تکلیف ورسیده بیا فرشتي زه

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| أَرْسَلَنِيْ | فَقَالَ | اِقْرَأْ | قُلْتُ | مَا | أَنَا | بِقَارِئٍ | فَأَخَذَنِيْ | فَغَطَّنِيْ |

پرېښوو م او راته یې وویل وو ایه ما ورته بیا وویل زه په ویلو نه پوهېږم حضور صلی الله علیه وسلم فرمایي فرشتي

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| الثَّانِيَةَ | حَتّٰى | بَلَغَ | مِنِّي | الْجُهْدُ | ثُمَّ | أَرْسَلَنِيْ |

به دوهم وار زه ښه زور سره ونیولم تردې چې ماته تکلیف ورسیده بیا یې زه پرېښوو م او راته یې

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فَقَالَ | اِقْرَأْ | فَقُلْتُ | مَا | أَنَا | بِقَارِئٍ | فَأَخَذَنِيْ | فَغَطَّنِي | الثَّالِثَةَ، حَتّٰى |

وویل وو ایه ما ورته بیا وویل زه ویل نه پېژنم فرشتي په دریم وار زه ښه زور سره ونیولم تردې چې

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| بَلَغَ | مِنِّي | الْجُهْدُ | ثُمَّ | أَرْسَلَنِيْ | فَقَالَ | اقْرَأْ | بِاسْمِ |

ماته تکلیف ورسیدي بیا یې زه پرېښوو م او راته یې وویل: (اِقْرَأْ بِاسْمِ رَبِّكَ الَّذِي خَلَقَ خَلَقَ الخ) یعني

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| رَبِّكَ | الَّذِيْ | خَلَقَ | خَلَقَ | الْإِنْسَانَ |

د خپل پروردګار په نوم وو ایه چې هغه هرشی یې پیدا کړه انسان یې د مور په رحم کې د کلکي شوې

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| مِنۡ | عَلَقٍ | اِقۡرَاۡ | وَ | رَبُّكَ | الۡأَكۡرَمُ | الَّذِیۡ | عَلَّمَ | بِالۡقَلَمِ |

وینې نه پیدا کړه او ووایه او ستا پروردګار ډېر لو نه بزرګ او برتر دی هغه پروردګار چې هغه د قلم

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| عَلَّمَ | الۡاِنۡسَانَ | مَا | لَمۡ | يَعۡلَمۡ | فَرَجَعَ |

په ذریعه د علم تعلیم ورکړه او انسان ته یې هرهغه شی وخوده چې هغه ورباندې نه پوهیده ددې نه

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| بِهَا | رَسُوۡلُ | اللّٰهِ | صَلَّى | اللّٰهُ | عَلَيۡهِ | وَسَلَّمَ | يَرۡجُفُ |

نه روسته فرشته خوغائبه شوه او حضور صلی الله علیه وسلم دې آیتونو سره مکې ته خپل کورته راغی هغه وخت

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| فُؤَادُهٗ | فَدَخَلَ | عَلَى | خَدِيۡجَةَ | فَقَالَ | زَمِّلُوۡنِیۡ |

یې دا حال وو چې دهشت زده وو حضور صلی الله علیه وسلم بي بي خدیجي رضي الله عنها ته رسیدو سره وویل په ما کپړه

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| زَمِّلُوۡنِیۡ | فَزَمَّلُوۡهُ | حَتّٰى | ذَهَبَ | عَنۡهُ | الرَّوۡعُ |

واچوه په ما کپړه واچوه خدیجي رضي الله عنها په حضور صلی الله علیه وسلم کپړه واچوله تردې چې هغه رُعب او هیبت ختم

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| فَقَالَ | لِخَدِيۡجَةَ | وَأَخۡبَرَهَا | الۡخَبَرَ | لَقَدۡ |

شو بیا حضور صلی الله علیه وسلم بي بي خدیجي رضي الله عنها ته پوره واقعه بیان کړه او هغه ته یې دا هم وویل چې

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| خَشِيۡتُ | عَلٰى | نَفۡسِیۡ | فَقَالَتۡ | خَدِيۡجَةُ | كَلَّا |

ما سره د خپل ځان خوف دی بي بي خدیجي رضي الله عنها تسلي ورکولو سره ورته وویل تاسو قطعًا خوف مه کوئ

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَ | اللّٰهِ | لَا | يُخۡزِيۡكَ | اللّٰهُ | أَبَدًا |

قسم په الله ځما پوره یقین دی چې الله ! به تا سو هیڅ کله رسوا او نامراده نه کړي ځکه چې تاسو

| | | |
|---|---|---|
| إِنَّكَ | لَتَصِلُ | الرَّحِمَ |

قرابت دارو سره د حسنِ سلوک او تعلق معامله کوئ که څه هم هغه قرابت دار ستا سو سره ترکِ تعلق

| وَ | تَصْدِقُ | الْحَدِيْثَ | وَ | تَحْمِلُ |
|---|---|---|---|---|
| اودبدسلوکۍ معامله کوي تاسو هيڅ کله چاته دروغ نه وايي بعضي روايتونوکې دلته دا الفاظ هم | | | | |
| الْكَلَّ | وَ | تَكْسِبُ | الْمَعْدُوْمَ | |
| دي چې: تودى الامانة يعني تاسو د امانت په اداءکولو کې کوتاهي نه کوئ او تاسو د نورو بوج | | | | |

| وَ | تَقْرِي | الضَّيْفَ | وَ | تُعِيْنُ | عَلَى |
|---|---|---|---|---|---|
| پورته کوئ تاسو غريبانو او مسکينانو باندې خرچ کوئ تاسو د ميلمنو خاطر مدارات کوئ او د | | | | | |
| نَوَائِبِ | الْحَقِّ | ثُمَّ | انْطَلَقَتْ | بِهٖ | |
| مدد کوئ او تاسو د خلقو حقيقي حادثات او مصائبو کې د هغوئ مدد کوئ ددې نه روسته | | | | | |

| خَدِيْجَةُ | اِلٰى | وَرَقَةَ | بْنِ | نَوْفَلِ | بْنِ | أَسَدِ | اِبْنِ | عَمِّ | خَدِيْجَةَ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| بي بي خديجي رضي الله عنها حضور صلى الله عليه وسلم بيولو سره د خپل تره څوی ورقه ابن نوفل ته ورسيدله او | | | | | | | | | |
| فَقَالَتْ | لَهُ | خَدِيْجَةُ | يَا | ابْنَ | عَمِّ | اِسْمَعْ | مِنِ | ابْنِ | أَخِيْكَ |
| هغه ته يې وويل اى د تره څويه! د خپل وراره قصه واوره ورقه حضور صلى الله عليه وسلم ته متوجه شو او ورته | | | | | | | | | |
| فَقَالَ | لَهُ | وَرَقَةُ | يَا | ابْنَ | أَخِيْ | مَاذَا | تَرٰى | فَأَخْبَرَهُ | |
| يې وويل ځما وراره! واوروه په تا څه تير شوه او ته څه ويني او محسوسوي؟ رسول الله صلى الله عليه وسلم د هغه | | | | | | | | | |
| رَسُوْلُ | اللّٰهِ | صَلَّى | اللّٰهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ | خَبَرَ | مَا | رَأٰى. | |
| مخکې هغه ټوله واقعه بيان کړه کومه چې حضور صلى الله عليه وسلم ته پيښه شوې وه ورقه ټولې خبرې اوريدو | | | | | | | | | |

| فَقَالَ | لَهُ | وَرَقَةُ | هٰذَا | النَّامُوْسُ | الَّذِيْ | اَنْزَلَ | اللّٰهُ | عَلٰى | مُوْسٰى | يَا | لَيْتَنِيْ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| سره وويل دا خو هغه ناموس فرشته ده چې الله! حضرت موسٰى ) ته رالېږله اى آرمان چې ستا د | | | | | | | | | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| كُنْتُ | فِيهَا | جَذَعًا | يَالَيْتَنِي | أَكُونُ | حَيًّا |

نبوت د اظهار او ستا د دعوت د اعلان په وقت زه طاقتور ځوان واى كاش چې زه هغه وخت ژوندى وى

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| إِذْ | يُخْرِجُكَ | قَوْمُكَ | فَقَالَ | رَسُوْلُ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ |

هر كله چې ستا قوم يعني قريشو نه به ستا قرابتدار تا د ښار نه بهر وباسي رسول الله ﷺ

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| أَوَ | مُخْرِجِيَّ | هُمْ؟ | قَالَ | نَعَمْ | لَمْ | يَأْتِ |

پوښتنه وكړه آيا واقعي ځما قوم به ما د ښار نه بهر وباسي ورقه ورته وويل هو ځما يقين دى چې ستا

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| رَجُلٌ | قَطُّ | بِمِثْلِ | مَا | جِئْتَ | بِهِ | إِلَّا |

قوم به تا د ښار نه بهر وباسي ځكه چې هميشه داشوي دي چې كله هم يو سړى ستا په شان د نبوت

| | | | |
|---|---|---|---|
| عُوْدِيَ | وَإِنْ | يُدْرِكْنِي | يَوْمُكَ |

او شريعت سره دې دنيا ته راغلى دى نو هغه سره دشمني شوې ده او په يوه روايت كې داسي دي

| | | |
|---|---|---|
| أَنْصُرْكَ | نَصْرًا | مُؤَزَّرًا |

كله هم چې يو پيغمبر دې دنيا ته راغلى دى نو كافرو هغه سره دشمني كړي ده كه زه هغه ورځو كې

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| ثُمَّ | لَمْ | يَنْشَبْ | وَرَقَةُ | أَنْ | تُوُفِّيَ |

ژوندى پاتې شوم نو پوره طاقت سره به ستا مدد او حمايت كوم ليكن ددې نه روسته ورقه زياتي

| | | | |
|---|---|---|---|
| وَفَتَرَ | الْوَحْيُ. | مُتَّفَقٌ | عَلَيْهِ. [1] |

ورځي ژوندى پاتې نه شو او په حضور ﷺ د وحې راتلو سلسله هم قطع شوه دا روايت

| | | |
|---|---|---|
| وَزَادَ | الْبُخَارِيُّ | حَتَّى |

تر دې ځاي پورې بخاري او مسلم دواړو نقل كړې دى ليكن ددې نه روسته بخاري دا الفاظ هم نقل كړي

---

(۱) اخرجه البخاري في صحيحه ۱/۲۳ رقم الحديث ۳ ومسلم في صحيحه ۱/۱۳۹ رقم الحديث (۲۵۲.۱۶۰)

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| حَزِنَ | النَّبِيُّ | صَلَّى | اللّٰهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ | فِيْمَا | بَلَغَنَا |

دي چې د وحې د نزول سلسله قطع شوه نو حضور ﷺ باندې غم او خفګان شو د دې ثبوت مونږ

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| حُزْنًا | غَدَا | مِنْهُ | مِرَارًا | كَيْ |

ته د هغه حدیثونو نه حاصلېږي کوم چې مونږ ته رسیدلي دي او دا غم او خفګان یې دومره شدید او

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| يَتَرَدّٰى | مِنْ | رُءُوْسِ | شَوَاهِقِ | الْجَبَلِ |

سخت وو چې څو ځلي حضور ﷺ په دې اراده سره د غرونو طرف ته به ولاړلو چې خپل ځان د پورته

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| فَكُلَّمَا | أَوْفٰى | بِذُرْوَةِ | جَبَلٍ | لِكَيْ | يُلْقِيَ |

غرونو د څوکې نه خکته را وغورځوي کله به چې حضور ﷺ د یو غرڅوکې ته ورسیدو چې خپل

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| نَفْسَهُ | مِنْهُ | تَبَدّٰى | لَهُ | جِبْرَئِيْلُ | فَقَالَ | يَا | مُحَمَّدُ |

ځان را وغورځوي نو اچانک جبرائیل) به ښکاره شو او ویل به یې ای محمد !بلاشبه تا سو د

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| إِنَّكَ | رَسُوْلُ | اللّٰهِ | حَقًّا | فَيَسْكُنُ |

الله !برحق رسول یې په دې اوریدو سره به د حضور ﷺ د زړه پریشاني او دهشت به ختم شو

لِذٰلِكَ جَاشُهُ وَتَقِرُّ نَفْسُهُ[1]

او حضور ﷺ به مطمئن شو.

**توضیح** : فلق الصبح: یعني د هغه د رښتیا خوبونو تعبیر به داسې واضحه راتللو لکه څنګه چې سهار روښانه راخیژي ، مطلب دا دی چې لکه څنګه چې د سهار راتلل یقیني وي همدارنګه د هغه ﷺ د خوبونو تعبیر به هم یقیني وو.

الخلا: یعنې طبعي طور باندې هغه ته کې کیناستل محبوب شو محبوبه شوله او هغه تنهائي غوره کړه تر څو د مخلوق نه په لریوالي کې د خالق سره د راز او نیاز رشته جوړه کړي. (بغار حراء) د مکې

(۱) اخرجه البخاري في صحيحه ۱/۲۳ رقم الحديث ۳ وأحمد في المسند ۶/۲۳۳ .

مکرمې نه د يو څو کيلو متره فاصله باندې د يوه غره په څنډه باندې دغه غر واقع دی ، دغه غره ته جبل نور ويل کيږي ، د هغه د پاسه ميدان دی چې هلته نن سبا د يوې چترۍ لاندې عارضی هوټل جوړ شوی دی ، ددې غره په خوله کې قبلې طرفته د دوو څوکو په خپل مينځ کې د يوځای کيدلو نه يوه خلا پيدا شوې ده همدا خلا غار حراء دی ، په دې کې دوه کسان کيناستلی شي ، سړی پکې اودريدلی نشي ، مخ طرفته دغه غار پراخه دی چې د هغه ځای نه بيت الله په نظر راځي ، مګر نن سبا عمارتونو بيت الله پټ کړی دی، غار حراء د جاهليت په دور کې هم د مقدسو ځايونو نه شميرل کيده . خلکو به په دې کې عبادت او رياضت کولو ، ابوطالب په خپله مشهوره قصيده لاميه کې د دې داسې ذکر کړی دی :

و ثور و من ارسی ثبيرا مکانه    وراق ليرقی فی حراء و نازل

مجذوب رحمه الله ويلي :

ہر تمنا دل سے رخصت ہو گئے    اب تو آجا اب تو خلوت ہو گی

(يتحنث) حنث ګناه ته ويل کيږي او دلته باب د تفعل د سلب مأخذ لپاره دی يعنې د ګناه ازاله ، او د ګناه ازاله عين عبادت دی لهذا د يتحنث معنی يتعبد ده چې عبادت کولو ته ويل کيږي ، په يو روايت کې يتحنف دی يعنې د ملت حنيفيه مطابق يې عبادت کولو .

(ما انا بقارئ) يعنې د کوم استاد نه مې څه ويلي نه دي ، په خپله طريقه باندې څه ويلی نشم ، جبرائيل امين د تکليف مالايطاق حکم ورته کړی نه وو بلکه د اقرأ تعليمی حکم وو لکه څنګه چې استاد ورکوټي ماشوم ته وايي وايه بچيه! نو دا تعليمی اقرأ ده ، دا امتحانی اقرأ نه وه . (فغطنی) دا زور ورکولو ته او سينې سره لګولو ته ويل کيږي ، دا يې ددې لپاره کيمنده تر څو د ملکوتيت برکات او صفات بشر ته منتقل شي ، اول وار يې زور ورکړو تر څو انس بالملک پيدا شي ،دوباره يې روز ورکړو تر څو انس بالله پيدا شي ، دريم وار يې زور ورکړو تر څو انس بالوحې پيدا شي .

(الجهد) د مشقت او محنت په معنی سره دی ، دا لفظ مرفوع دی چې فاعل واقع شوی دی ای بلغ مني الجهد مبلغة يعنې په ما کې چې څومره طاقت وو هغه خپل انتهاء ته ورسيده . په يو روايت کې الجهد منصوب دی چې مفعول واقع دی ای بلغ جبرئيلُ منی الجهدَ يعنې جبرئيل ع خپل مقدور زور ولګولو او زه يې کيمندلم ، دا يې ځکه وکړل تر څو د وحې سره انس پيدا شي او ملکوتی صفات هغه ته منتقل شي ، ملائکه چې کله د انسان په شکل کې راځي نو د يوه انسان طاقت په هغې کې وي . (ما انا بقارئ) يعنې د کوم استاذ نه مې ويلي نه دي او په خپله يې ويلی نشم . (زملونی) آنحضرت صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د محاورې په لحاظ سره د جمعې صيغه استعمال کړه ځکه د ادب په طريقه

باندې خلک د کور والا د جمعې په لفظ سره بلي اګرچې يوه ښځه ولې نه وي ، دلته يې يوائې حضرت خديجې رضی الله عنها ته د جمعې په صيغه سره د دغه قاعدې مطابق خطاب وکړلو ، يا کيدای شي چې په کور کې نور افراد هم وو په دغه وجه يې د جمعې صيغه استعمال کړله . (فرجع بها) دا ضمير آيات ته راجع کيږي ، (يرجف فؤاده) زړه ته فؤاد ويل کيږي او يرجف د لړزيدو په معنی سره دی ، حضرت سيد يوسف بنوری رحمه الله په درس بخاری کې وفرمايل چې کله زړه ته کومه خطره لاحق کيږي نو فورا جسم د هغه د حفاظت کوشش کوي او ټول حرارت د زړه شاوخوا جمع کوي ، ددينه د زړه حفاظت خو کيږي مګر په باقی بدن باندې لړزيدل واقع کيږي ، په دغه وجه په بعضې رواياتو کې د يرجف بوادره الفاظ راغلي دي ، بوادر د بادرة جمع ده د شاه غوښې ته ويل کيږي ، چې کله د شاه غوښه لړزيږي نو باقی جسم نور هم زيات لړزيږي . (الروع) د ويرې په معنی سره دې ، د يو غير جنس شی په ليدلو سره طبعا ويره راځي ، دلته ملائکه ده بيا د وحې بوج دی په دغه وجه ويره راتلل بشری او طبعی تقاضا وه .

**(لقد خشيت على نفسي)** يعنې زه د خپل ځان په تلف کيدو باندې ويريږم ، دا خوف په دې وجه نه وو چې هغه ته شک وو چې دا د کوم جن او شيطان حمله ده بلکه ددې خوف اظهار وو چې کچيرې بار بار د وحې بوج په ما باندې همدا رقم راشي نو ددې بوج نه ماته د خپل ځان د تلف کيدلو خطره ده ، دا هم ممکنه ده چې د آينده د نبوت دعوت او د ټولو عربو سره مقابله کولو طرفته اشاره وي . **(تحمل الكل)** كل هغه شخص ته وايې چې په خپل خاندان او معاشره باندې بوج وي او د هغه نه هيڅا ته فائده نه رسيږي بلکه کوم طرفته چې ځي د نقصان سره راځي لکه څنګه چې قرآن کې راغلي دي **﴿وهو كلٌّ على مولاه اينما يوجهه لايأت بخير﴾** د حديث مطلب دا دی چې تاسو د داسې بيکاره او بی ياره او مددګاره خلکو بوج پورته کوئ او د هغوی مدد کوئ مثلا د يتيمانو ، مسکينانو ، کونډو ، کمزورو او بی کسه خلکو کار جوړوئ . **(المعدوم)** داسې کس چې د هغه سره د خوراک او څښاک لپاره هيڅ نه وي ، هغه د معاشرې نه معدوم او ورک وي ، د هغوی لپاره يې ګټې او ورکوې يې . **(تقرى)** دا قری نه دی د ميلمه پالنې په معنی سره دی ، **(نوائب الحق)** يعنې د حق په حوادثو کې د حق سره ياستئ ، د هغه په مشکلاتو کې د هغه سره کومک کوئ . **(هذا الناموس)** د کوم کس راز ور کوونکي ته ناموس ويل کيږي ، اهل لغت وايې چې ناموس بر وزن جاسوس دی ، ناموس د خير په کارونو کې استعماليږي او جاسوس د شر په کارونو کې استعماليږي ، ملا علی القاری رحمه الله ليکلي چې اهل کتابو جبرئيل عليه السلام ته ناموس ويلو ، دا معنی ډيره ښه ده . **(على موسى)** ورقه

بن نوفل د حنفاؤ نه وو بیا هغه عیسائیت قبول کړلو ، هغه ته د موسی علیه السلام په ځای د عیسی علیه السلام نوم اخیستل پکار وو مګر علماؤ لیکلي دي چې چونکې حضرت موسی علیه السلام مشهور وو او اولو العزم هم وو نو ځکه ورقه د هغه نوم واخیستلو . (الا عودِیَ) یعنې ستا پشان چې چا هم د حق نعره اوچته کړې او حق یې راوړی دی نو د هغه سره دشمني شوې ده .(شواهق) دا د شاهقة جمع ده د غرا اوچتوالي او څوکې ته وایې ، همدیته ذروة الجبل هم وایې یعنې د غره په څوکه باندې وخیژي او ځان وغورځوي . غدا منه مرارا: یعنې ددغه غم په وجه څو کرته حضور صلی الله علیه وسلم سهار سهار د غره څوکي ته به لاړو تر څو خپل ځان وغورځوي . مؤزرا : د وزير نه دی پوره او مضبوط تعاون کولو ته وایې . یتردی) خپل ځان د غره نه غورځولو لپاره دا صیغه استعمالیږي .

جاشه) ای اضطرابه، د جبرائیل علیه السلام په آواز سره به د حضور صلی الله علیه وسلم تسلی کیدله او د هغه اضطراب به په سکون باندې بدلیدلو .

## د انقطاع نه روسته بیا وحي

| |
|---|
| ﴿۶﴾وَعَنْ جَابِرٍ أَنَّهُ سَمِعَ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُحَدِّثُ عَنْ فَتْرَةِ |
| او جابر رضي الله عنه نه روایت دي هغه د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه دځه ورځو د پاره د وحې قطع کېدو او بیا د |
| الْوَحيِ فَبَيْنَا أَنَا أَمْشِيْ سَمِعْتُ |
| وحې دوباره شروع کېدو حال داسي واوریده چې حضور صلی الله علیه وسلم وفرمائیل یوه ورځ زه روان وم چې |
| صَوْتًا مِّنَ السَّمَاءِ فَرَفَعْتُ بَصَرِيْ فَإِذَا الْمَلَكُ الَّذِيْ جَآءَنِيْ بِحِرَآءَ |
| ناڅاپه ځما په غوږونو کې یو آسماني اواز راغی ما چې پورته وکتل نو هغه فرشته چې غارِ حراء کې |
| قَاعِدٌ عَلَى كُرْسِيٍّ بَيْنَ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ |
| ماته راغلي وه د ځمکې او آسمان په منځ کې په یو تخت ناسته ده د هغه په نظر راتلو سره ځما په زړه |
| فَجُئِثْتُ مِنْهُ رُعْبًا حَتَّى هَوَيْتُ إِلَى الْأَرْضِ |
| کې دومره سخت رعب او خوف پیدا شو چې زه په ځمکه راولوېدم بیا زه بیرته خپل کور والوته راغلم |

| فَجِئْتُ | اِلٰى | أَهْلِيْ | فَقُلْتُ | زَمِّلُوْنِيْ | زَمِّلُوْنِيْ | فَزَمَّلُوْنِيْ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| او ورته مي وویل په ما کپړه واچوئ په ما کپړه واچوئ کوروالو په ما کپړه واچوله او زه هغه کپړه کي | | | | | | |

| فَأَنْزَلَ | اللهُ | تَعَالٰى | «يَا | أَيُّهَا | الْمُدَّثِّرُ | قُمْ | فَأَنْذِرْ | وَرَبَّكَ | فَكَبِّرْ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| پریوتم بیا الله ! دا آیت نازل کړه : يَاأَيُّهَا الْمُدَّثِّرُ.....] ای کپړه اغوستونکیه! لاړ شه او مخلوق و ویروه | | | | | | | | | |

| وَثِيَابَكَ | فَطَهِّرْ | وَالرُّجْزَ | فَاهْجُرْ» | ثُمَّ | حَمِيَ | الْوحى |
|---|---|---|---|---|---|---|
| او د خپل رب لويي بيان کړی او خپلي کپړي پاکي کړه او پليتي پرېږده . د دېنه وروسته وحي پرله | | | | | | |
| وَتَتَابَعَ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.[1] | | | | | | |
| پسې راتلله . [بخاري مسلم] | | | | | | |

**توضیح : جئثت)** د باب د سمع یسمع نه د ویریدلو په معنی سره دی د خلاف جنس شي په لیدلو سره طبعی طور باندې داسې ویره راځي .

**رعبا)** ای لاجل الرعب ، **(هویت)** د ضرب یضرب نه د غورځیدلو په معنی سره دی ، د سمع نه د محبت په معنی سره راځي ، دلته د ضرب نه دی .

**حمي الوحيُ)** یعنې د وحي بندیدلو نه بعد بیا راتلل شروع شول او ګرمه شوه یعنې مسلسل راتلل شروع شول .

## د وحي یو قسم

| ﴿۷﴾ | عَنْ | وَعَنْ | عَائِشَةَ | أَنَّ | الْحَارِثَ | بْنَ | هِشَامٍ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| او بي بي عائشي رَضِيَ اللهُ عَنْهَا نه روایت دی چې حارث ابن هشام رَضِيَ اللهُ عَنْهُ چې د ابو جهل ورور وو او د مکې د | | | | | | | |

| سَأَلَ | رَسُوْلَ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ | فَقَالَ | يَا | رَسُوْلَ | اللهِ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فتحې نه مخکې یې اسلام راوړی وو رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه یې پوښتنه وکړه یا رسول الله! تا سو ته وحي | | | | | | | | | | |

[1] اخرجه البخاري في صحيحه ۱/۲۷ رقم الحديث ۴ ومسلم في صحيحه ۱/۱۴۳ رقم الحديث (۲۵۵/۱۶۱)

| كَيْفَ | يَأْتِيْكَ | الْوَحْيُ | فَقَالَ | رَسُوْلُ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|

څرنګه راځي حضور ﷺ ورته وفرمائيل ماته وحي کله د جرس (ټلی) د اواز په شان راځي يعني د

| أَحْيَانًا | يَأْتِيْنِيْ | مِثْلَ | صَلْصَلَةِ | الْجَرَسِ | وَهُوَ | أَشَدُّهُ |
|---|---|---|---|---|---|---|

وحي الفاظ چې ماته رسولی شي د جرس د اواز په شان صوت لري اودا وحي په ما سخت ترينه وحي

| عَلَيَّ | فَيَفْصِمُ | عَنِّيْ | وَقَدْ | وَعَيْتُ | عَنْهُ | مَا | قَالَ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|

وي نو فرشته د وحي چې کوم الفاظ ماته رسوي زه هغه ډېر په محنت او توجه سره اوريدو سره يادوم

| وَأَحْيَانًا | يَتَمَثَّلُ | لِيَ | الْمَلَكُ | رَجُلًا | فَيُكَلِّمُنِيْ | فَأَعِيْ |
|---|---|---|---|---|---|---|

او کله داسي کېږي چې فرشته د انسان شکل اختيارولو سره ما سره هم خبرې کوي او څه چې وايي زه

| مَا | يَقُوْلُ | قَالَتْ | عَائِشَةُ | وَلَقَدْ | رَأَيْتُهُ | يَنْزِلُ | عَلَيْهِ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|

هغه محفوظ او يادوم بي بي عائشه رضي الله عنها دې بيانولو سره وايي ماليدلی دی چې کله به د سختی

| الْوَحْيُ | فِيْ | الْيَوْمِ | الشَّدِيْدِ | الْبَرْدِ | فَيَفْصِمُ | عَنْهُ |
|---|---|---|---|---|---|---|

يخني ورځي وي او حضور ﷺ باندې به وحي نازليدله او فرشته د وحې به ولاړه نو د

وَ إِنَّ جَبِيْنَهُ لَيَتَفَصَّدُ عَرَقًا. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.[1]

حضور ﷺ تندی مبارک به د خولې نه ډک په نظر راتلو. [بخاري مسلم]

**توضيح** : صلصلة الجرس: په مضبوطه تيږه باندې چې کله د وسپنې ځنځير راخکلی شي نو د هغه نه يو آواز پيدا کېږي هغه آواز ته صلصلة الجرس وايې ، او جرس زنګ ته وايې ، دلته د زنګ د آواز سره تشبيه ورکول مقصود دي . اوس دا خبره پاتې شوه چې دا آواز د څه وچې نه وو؟ بعضو شارحينو فرمايلي دي چې دا د الله تعالى د كلام نفسی آواز وو ، بعضې علماء فرمايي چې دا د غه قسم وحي آواز وو لکه څنګه چې د کلام د تياری لپاره اول اعلان کيږي يا د ټيليفون زنګ وهل

[1] اخرجه البخاري في صحيحه رقم الحديث ۲ ومسلم في صحيحه ۴/۱۸۱۶ رقم الحديث (۷۸.۲۳۳۳)

کیږي ، بعضو علماؤ ليکلي دي چې دا د جبرئيل امين د راتګ او د هغه د وزرو د پرقولو آواز وو ، حضرت شاه ولی الله رح فرمايي چې دا د حواسو د تعطل نه وروسته يو آواز پيدا کيده هغه مراد دی لکه څنګه چې د غوږونو د بندولو نه دننه يو آواز پيدا کيږي .

**اشده عليّ** : چونکه په دې کې انسلاخ د بشريت کيده په دغه وجه دغه قسم سخت وو . **(فيفصم)** ای ينقطع يعني چې کله به د وحې دغه کيفيت ختم شو ، **(وعيت)** د ماضی صيغه استعمال شوې ده ځکه هغه ﷺ به په خپل هوش کې نه وو ، په هوش کې راتللو نه مخکې مخکې به ټوله وحې ياده شوه نو د ماضی صيغه مناسبه شوه . **(فاعی)** دلته د مضارع صيغه استعمال شوې ده ځکه د ملائکې د اورولو نه بعد به هغه وحې محفوظ کوله نو مستقبل جوړيده . **(فيفصم عنه)** يعني د وحې دغه کيفيت به چې کله ختميده . **(ليتفصد)** په رګ باندې نشتر وهلو سره چې وينه وځي هغې ته فصد ويل کيږي ، مطلب دا دی چې د وحې د شدت په وجه به د يخنۍ په موسم کې به په تندی مبارک باندې د ملغلرو د لړۍ پشان به خوله بهيدله .

## دوحي د نزول په وقت د حضور ﷺ کيفيت او حالت

﴿۸﴾ وَعَنْ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا أُنْزِلَ

او عباده بن صامت رضی الله عنه وايي هرکله چې رسول الله ﷺ باندې به وحې نازليدله نو د هغه

عَلَيْهِ الْوَحْيُ كُرِبَ لِذَلِكَ وَتَرَبَّدَ وَجْهُهُ

په سبب به حضور ﷺ ته سخت غم رسيده او د مخ مبارک رنګ به يې متغير کيده او په يوه روايت

وَفِي رِوَايَةٍ نَكَسَ رَأْسَهُ

کې داسې دي چې کله به حضور ﷺ باندې وحې نازليده نو خپل سر مبارک به يې ښکته کوی او هغه

وَنَكَسَ أَصحابو رُءُوسَهُمْ فَلَمَّا أُتْلِيَ

وقت چې کوم صحابو رضی الله عنهم به موجود وو هغوئ به هم سرونه ښکته کول هرکله چې وحې به موقوفه

| عَنْهُ | رَفَعَ | رَأْسَهُ. | رَوَاهُ مُسْلِمٌ.[1] |
|---|---|---|---|
| شوه نو حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ او صحابو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ به خپل سرونه پورته کړل. [مسلم] | | | |

**توضیح** : کرب) یعني سخت تکلیف او بلا او مصیبت او غم به لاحق کیده . (تربد) یعني د مخ رنګ به یې متغیر کیده . (اُتلِيَ) په همزه باندې پیښ دی، تاء ساکنه ده ، په لام باندې کسره ده او په یاء باندې فتحه ده یعنې چې کله به د وحې دغه کیفیت منقطع کیده ، ای اقلع و اُکشف و اُجلی و اُزیل ، نکس رأسه) د سر ټیټولو په معنی سره دی ، حضور صلی الله علیه وسلم به د الله تعالی له طرفنه د وحې د حکم راتللو او په هغه باندې د پوهیدلو په وجه سر ټیټ کړلو او صحابو کرامو به د هغهٔ متابعت او ادب په وجه سر ټیټ کړلو .

## د صفا په غر ددین اسلام اولنۍ دعوت

| ﴿۹﴾عَنْ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ لَمَّا نَزَلَتْ وَأَنْذِرْ عَشِيْرَتَكَ الْأَقْرَبِيْنَ خَرَجَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
|---|
| او حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي کوم وقت چې دا آیت وَأَنْذِرْ عَشِيْرَ.... الخ نازل شو نو رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ او وتلو |
| حَتَّى صَعِدَ الصَّفَا فَجَعَلَ يُنَادِيْ يَا بَنِيْ فِهْرٍ يَا بَنِيْ عَدِيٍّ |
| او کوه صفا باندې وختلو او د قریشو د قبائلو بلل یې شروع کړل چې ای د فهر اولاده ! ای د عدي اولاده! |
| لِبُطُوْنِ قُرَيْشٍ حَتَّى |
| دغه شان حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د قریشو تمام ښاخونه نوم په نوم وبلل د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په دې اواز |
| اجْتَمَعُوْا فَجَعَلَ الرَّجُلُ |
| د قریشو تمام قبائل او ډلې د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ چاپیره جمع شوې د دې پوري چې کوم سړی د څه عذر او |
| إِذَا لَمْ يَسْتَطِعْ أَنْ يَخْرُجَ أَرْسَلَ |
| مجبورۍ په سبب خپله هلته ونه رسیده نو هغه دې معلوم ولو د پاره چې محمد ولې ټول بللي دي |

[1] اخرجه مسلم في صحيحه ۴/۱۸۱۷ رقم الحديث (۲۳۳۴.۸۸)

رَسُوْلاً لِيَنْظُرَ مَا هُوَ فَجَآءَ أَبُوْ لَهَبٍ

ثوک خپل نماینده به یې ولیږلو غرض دا چې هر کله چې ټول اهلِ قریش او د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تره ابولهب

وَ قُرَيْشٌ فَقَالَ أَرَأَيْتُمْ إِنْ

راغلل نو حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغوئ مخاطب کولو سره ورته وفرمائیل که زه تا سو ته دا خبر درکړم چې د

أَخْبَرْتُكُمْ أَنَّ خَيْلًا تَخْرُجُ مِنْ صَفْحِ

جنګیالیو یوه دسته د دې غرد پناه نه ښکاره شوې ده او د یو روایت الفاظ دا دي چې د سورو یوه دسته

هٰذَا الْجَبَلِ وَفِيْ رِوَايَةٍ أَنَّ خَيْلًا تَخْرُجُ

د مکې د ځنګل نه ښکاره شوې ده او د هغوئ مقصد قتل او غارتګرې د پاره د ورځې یا شپې څه

بِالْوَادِيْ تُرِيْدُ أَنْ تُغِيْرَ عَلَيْكُمْ أَكُنْتُمْ مُصَدِّقِيَّ

حصه کې په تا سو اچانک حمله کول دي نو ووائې چې آیا تا سو خلق به ځما دا خبره ریښتنې ومنئ

قَالُوْا نَعَمْ مَا جَرَّبْنَا عَلَيْكَ إِلَّا صِدْقًا

ټولو په یوه اواز وویل هو ضرور رشتیا به یې منو ځکه چې مونږ ته همیشه ریښتنې پیدا کړې یې بیا

قَالَ فَإِنِّيْ نَذِيْرٌ لَّكُمْ بَيْنَ يَدَيْ

حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ورته وفرمائیل نو واورئ زه تا سو خلق د هغه سخت عذاب نه ویروم چې دنیا یا آخرت

عَذَابٍ شَدِيْدٍ فَقَالَ أَبُوْ لَهَبٍ

کې په تا سو راتلونکې دی دا اوریدل وو چې ابولهب په قهر شو او هغه وویل هلاکت او بربادي دې

تَبًّا لَّكَ أَلِهٰذَا جَمَعْتَنَا فَنَزَلَتْ:

وې تا لره آیا تا مونږ د دې پاره جمع کړي وو په دې باره کې دا آیت نازل شو تَبَّتْ يَدَا أَبِي لَهَبٍ وَتَبَّ .

تَبَّتْ يَدَا أَبِي لَهَبٍ وَتَبَّ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. [۱]

ابولهب دې هلاک شي او هغه هلاک شو.

**توضیح**: حضور ﷺ ته چې کله د څلویښتو کلونو په عمر کې په مکه مکرمه کې نبوت ورکړی شو نو تر درې کلونو پورې هغه خفیه دعوت وچلولو ، د کور د افرادو او نزدې دوستانو نه علاوه یې هیچا ته دعوت ورنکړو ، بیا چې کله ﴿وَأَنذِرْ عَشِيرَتَكَ الْأَقْرَبِينَ﴾ آیت نازل شو نو هغه خپل نیزدې خپلوان د ډوډۍ دعوت ته راوبلل او هغوی ته یې د اسلام دعوت ورکړلو ، مګر د ابولهب د شرارت په وجه هیڅوک منلو ته تیار نشو ، د سورت ص، ابتدائی آیاتونه د دغې قصې سره متعلق دي، بیا د درې کلونو تیریدلو نه بعد دا آیت نازل شو ﴿ فَاصْدَعْ بِمَا تُؤْمَرُ وَأَعْرِضْ عَنِ الْمُشْرِكِينَ ﴾ (حجر ۹۴) یعنې د الله تعالی له طرفنه چې کوم حکم راغلی دی هغه ښکاره ښکاره بیان کړه او د مشرکینو پرواه مه کوه . په دې باندې حضور ﷺ وغوښتل چې د صفا غونډۍ چې د بیت الله په مخ کې ده په دغه ځای د دین دعوت ورکړی شي ، د عربو عادت وو چې د کوم لوی مصیبت او لویې حادثې په وخت کې به په جګ (اوچت) ځای باندې وختلو او د خپل کومک لپاره به یې خلک بلل، د همدې قاعدې مطابق حضور ﷺ د صفا غونډۍ ته راغی او دا آواز یې وکړلو (یا صباحاه واصباحاه) ای خلکو ! د سهار په وخت یو مصیبت راتلونکی دی! د همدې آواز په اوریدلو د قریشو سردارانو خصوصی توجه ورکړه ځکه حضور ﷺ تر څلویښتو کلونو پورې کله هم د خپل کومک لپاره دغسې عام اعلان کړی نه وو نو ځکه چا چې دغه آواز واوریده په منډه لاړلو یا یې خپل کوم نائب ولیږلو. حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ چونکې د صفا په اوچت ځای باندې وو نو ځکه یې وفرمایل چې ماته دواړه طرفه په نظر راځي که زه ووایم چې د شا له طرفنه یو لښکر راروان دی تاسې به یې ومنئ؟ او اول دا ووائي چې ما په تاسو کې ډیر وخت تیر کړلو آیا تاسو زه رشتني ومونډلم او که دروغجن؟ قریشو وویل مونږ ته بار بار ازمایلی یې مونږ ته رشتوني مونډلی یې ، په دې باندې هغه د توحید دعوت ورکړلو چې د هغه په وجه خلک و تښتیدل او ابولهب ګستاخی وکړه . حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ چې دا وفرمایل چې د غره ددې طرفنه دشمن حمله کول غواړي نو ددینه د ابلیس لښکر مراد وو چې په انسانانو باندې حمله کوي ، حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته د دنیا او آخرت دواړه جانبه په نظر راتلل د قریشو کفارو ته د آخرت پته نه وه نو ټولو انکار وکړو .

---

[۱] اخرجه البخاري ۸/۵۰۱ رقم الحديث ۴۷۷۰ ومسلم في صحيحه ۱/۱۹۳ رقم الحديث (۲۰۸.۳۵۵).

## د حق د دعوت په بدله کې د عمائدینِ قریش بدسلوکي او د هغوئ عبرتناک انجام

| |
|---|
| ﴿۱۰﴾وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ بَيْنَمَا رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّيْ عِنْدَ الْكَعْبَةِ |
| او عبد الله بن مسعود رضي الله عنه وايي يوه ورځ رسول الله صلى الله عليه وسلم د خانه کعبې ته قريب مونځ کوه |
| وَجَمْعُ قُرَيْشٍ فِيْ مَجَالِسِهِمْ |
| او هلته خانه کعبې سره د قريشو د عمائدينو يوې ډلې مجلس لګولی ناست وو اچانک هغوئ کې |
| إِذْ قَالَ قَائِلٌ أَيُّكُمْ يَقُوْمُ إِلٰى |
| يو سړي ووېل آيا په تاسو کې يو داسې سړی شته چې فلانی محله او قبيلې ته ورشي چيرته چې |
| جَزُوْرِ آلِ فُلَانٍ فَيَعْمِدُ إِلٰى فَرْثِهَا وَدَمِهَا |
| فلانی خاندان يو اوښ ذبح کړی دی او د هغه اوښ د غلاظت نه ډک لړی کولمې د هغه وينه او |
| وَسَلَاهَا ثُمَّ يُمْهِلُهُ حَتّٰى إِذَا سَجَدَ |
| پوستکی راوړي او هغه ټوله ګندګي او غليظ شيان کوم وخت چې محمد صلى الله عليه وسلم په سجده پريوځي |
| وَضَعَهُ بَيْنَ كَتِفَيْهِ |
| نو هغه د محمد د دواړو اوږو په منځ کې ورواچوي په دې اوريدو سره يو انتهائي درجه بدبخت |
| فَانْبَعَثَ أَشْقَاهُمْ فَلَمَّا سَجَدَ |
| سړی عقبه ابن ابى معيط د هغه څيزونو راوړلو د پاره ولاړلو کوم وخت چې حضور صلى الله عليه وسلم په سجده شو |
| وَضَعَهُ بَيْنَ كَتِفَيْهِ وَ ثَبَتَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ |
| نو هغه هغه ټوله ګندګي د حضور صلى الله عليه وسلم د دواړو اوږو په منځ باندې وغورځوله نو حضور صلى الله عليه وسلم |
| سَاجِدًا فَضَحِكُوْا حَتّٰى مَالَ بَعْضُهُمْ |
| په سجده کې پاتې شو هغه بدبختانو دې ليدو سره خندا ګانې او ټوقې مسخرې شروع کړې په دې |

عَلٰى بَعْضٍ مِّنَ الضِّحْكِ فَانْطَلَقَ مُنْطَلِقٌ إِلٰى فَاطِمَةَ

دي خندا کې دومره بدحاله شوه چې په خندا خندا کې پر یو بل ورکاږه شول بیا یو سړی بي بي فاطمه رضي الله عنها

فَأَقْبَلَتْ تَسْعٰى وَثَبَتَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

ددې حال نه خبره کړه هغه په منډه راغله اورسول الله هم تر هغه وقته پوري د هغه ګندګی لاندې په

سَاجِدًا حَتّٰى أَلْقَتْهُ عَنْهُ وَأَقْبَلَتْ عَلَيْهِمْ

سجده پروت وو بي بي فاطمه رضي الله عنها هغه تمام څیزونه د حضور صلی الله علیه وسلم د شا نه پورته کولو سره لري

تَسُبُّهُمْ فَلَمَّا قَضٰى رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الصَّلٰوةَ

وغورځول او هغه بدبختانو ته یې بد رد ویل شروع کړل کوم وقت چې رسول الله صلی الله علیه وسلم د مانځه نه

قَالَ اللّٰهُمَّ عَلَيْكَ بِقُرَيْشٍ

فارغه شو نو بد دعائي وکړه ای الله! ته دا قریش سخت ونیسي یعني مشرکین قریش هلاک او

ثَلَاثًا وَ كَانَ إِذَا دَعَا دَعَا ثَلَاثًا

برباد کړي حضور صلی الله علیه وسلم دا دعا دري واره وکړله او کله چې به یې د الله! نه څه غوښتل نو دري واره

وَ إِذَا سَأَلَ سَأَلَ ثَلَاثًا

به یې درخواست کوه بیا عمومي طور سره د قریشو په حق کې بد دعا کولو نه روسته په خاص طور سره

اللّٰهُمَّ عَلَيْكَ بِعَمْرِو بْنِ هِشَامٍ وَعُتْبَةَ بْنِ رَبِيْعَةَ

د هغه ازلي بدبختانو نومونه اخستو سره داسي بددعایې وکړله ای الله! ته عمرو ابن هشام عتبه ابن ربیعه

وَشَيْبَةَ بْنِ رَبِيْعَةَ وَالْوَلِيْدِ بْنِ عُتْبَةَ وَأُمَيَّةَ بْنِ خَلَفٍ وَعُقْبَةَ بْنِ أَبِيْ مُعَيْطٍ وَعُمَارَةَ بْنِ الْوَلِيْدِ

او شیبه ابن ربیعه ولید بن عتبه امیه ابن خلف عقبه ابن ابي معیط او عماره ابن ابي ولید سخت

| قَالَ | عَبْدُ | اللهِ | فَوَاللهِ | لَقَدْ | رَأَيْتُهُمْ | صَرْعٰى |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ونيسي حضرت عبد الله ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي ددې روايت بيانولو سره وويل قسم په الله ما د جنګ | | | | | | |
| يَوْمَ | بَدْرٍ | ثُمَّ | سُحِبُوْا | إِلَى | الْقَلِيْبِ | قَلِيْبِ بَدْرٍ |
| بدر په ورځ مذكوره كافران هلاک شده په ځمكه پراته وليدل بيا هغوئ د ميدان نه رابنكلو سره په يو كوهي كې | | | | | | |
| ثُمَّ | قَالَ | رَسُوْلُ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| چې د مقامِ بدر كوهي وو په هغه كې وغورځول شول او هغه وقت حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمائيلي وو داخلق | | | | | | |
| وَأُتْبِعَ | أَصْحَابُ | الْقَلِيْبِ | لَعْنَةً. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.[1] | | | |
| چې په كوهي كې غورځول شوي دي ملعون ګرځول شوي دي. | | | | | | |

**توضيح : قال قائل**: دا ابوجهل ملعون وو يا كوم بل بدبخته وو.

**(جزور)** شيخ عبدالحق رحمه الله په اشعة اللمعات كې ليكلي دي چې په جزور كې په جيم باندې زور دى بيا په زا باندې پيښ دى ، دا هغه اوښ ته ويل كيږي چې د ذبح كولو نه وروسته ټكړه ټكړه شوى وي ، مذبح خانه مراد ده .

**(آل فلان)** ددينه د كوم شخص اولاد مراد دى ، مقصود كومه خاصه محلّه او خاصه قبيله ده ،شايد هلته كومه مذبح خانه وه چې هلته به د ذبح شده اوښانو كولمې پرتې وې.

**(يعمد)** دا د قصد كولو په معنى سره دى .

**(فرثها)** فرث خوشيانو ته ويل كيږي ، ضمير د مؤنث جزور ته راجع دى چې ديته د مذكر او مؤنث دواړو ضميرونه راجع كيدلى شي .

**(وسلاها)** د حيوان په بچې دانۍ كې يوه باريكه پرده وي چې د ولادت سره بهر راوځي همدې رقيقې پردې ته سلا ويل كيږي .

**(فانبعث)** د پورته كيدلو په معنى سره دى .

---

[1] اخرجه البخاري في صحيحه ۱/۳۴۹ رقم الحديث ۲۴۰ ومسلم في صحيحه ۳/۱۴۱۸ رقم الحديث (۱۷۹۴.۱۰۷)

(اشقاهم) ددې مجلس ټول شريکان اشقی او بدبخته وو مګر دغه پورته کيدونکی ډير بدبخته وو ، علماؤ ليکلي دي چې ددينه مراد عقبه ابن ابی معيط دی ، دا د لويې درجې بی عقله او د ابوجهل چمچه وو ، چې څه به ابوجهل ويل ده به هغه کول ، په جنګ بدر کې دا نيول شوی وو حضور ﷺ دده د قتل حکم وکړلو نو ده وويل چې زما څه قصور دی چې د نورو قيديانو په شان ما قيدی نه ساتئ او د قتل حکم مې کوئ ؟ حضور اکرم ﷺ وفرمايل تا الله تعالی او د هغه رسول ته ايذاء رسولې ده ، بيا يو صحابی پورته شو او د هغه غاړه يې ووهله ، الحمد لله !

(لقد رايتهم ) دا د اکثر په اعتبار سره دی چې ټول په کوهی کې واچول شول حالانکه عماره په کوهي کې ونه غورځولی شو ، همدارنګه د عقبه بن ابی معيط معامله وه . (صرعی) دا د صريع جمع ده چې د مصروع په معنی سره دی په ځمکه باندې غورځولی شوی شخص ته ويل کيږي .

(القليب) قليب هغه کوهي ته ويلی کيږي چې د هغه خوله او پاسنۍ حصه جوړه شوې نه وي يعنې د هغه پښتې يې نه وي ، د بدر په مقام کې دا يو خراب او ګنده کوهی وو چې په هغه کې دغه ګنده خلک واچولی شو او د دوی د تذليل لپاره حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دغه کوهي ته راغی او هغوی يې مخاطب کړل ويې فرمايل چې زما سره چې زما رب کومه وعده کړې وه ما هغه رښتيا وموندله ، آيا ستاسو سره چې کومه وعده وه هغه تاسو وموندله او که نه ؟ د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د دربار شاعر حسان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دغه نقشه داسې بيان کړې ده :

فغادرنا اباجهل صريعا وعتبة قد ترکنا بالجبوب

ترجمه : مونږ ابوجهل غزيدلی پريښوده او عتبه مو په شګلنه ځمکه باندې مړ شوی پريښوده .

يناديهم رسول الله لما قذفناهم کباکب فی القليب

ترجمه : هغوی ته په هغه وخت کې د الله رسول آواز کولو چې کله مونږ هغوی په ګنده کوهي کې غورځولي وو .

الم تجدوا کلامی کان حقا وامر الله يأخذ بالقلوب

ترجمه: هغه ﷺ وفرمايل آيا تاسو زما خبرې حق ونه موندلې؟حالانکه د الله تعالی حکم زړونو ته کوزيږي .

فما نطقوا ولو نطقوا لقالوا صدقت وکنت ذا رأی مصيب

ترجمه: هغو خلکو جواب ورنکړو ، که جواب يې ورکړی وی نو دا به يې ويل تا رښتيا ويلي وو او ستا رأيه صحيح وه .

﴿۱۱﴾وَعَنْ عَائِشَةَ أَنَّهَا قَالَتْ يَارَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هَلْ أَتَى عَلَيْكَ

او بي بي عائشي رضي الله عنها نه روايت دى هغه يوه ورځ عرض وکړو يارسول الله آيا د اُحد نه هم زياته سخته

يَوْمٌ كَانَ أَشَدَّ مِنْ يَوْمِ أُحُدٍ فَقَالَ لَقَدْ لَقِيْتُ مِنْ قَوْمِكِ

ورځ په تا سو چيرته تيره شوې ده حضور صلى الله عليه وسلم وفرمائيل ستا د قوم د طرف نه چې کوم صورت حال

وَكَانَ أَشَدَّ مَا لَقِيْتُ مِنْهُمْ يَوْمَ الْعَقَبَةِ

پيښ شوى وو هغه د اُحد د ورځي نه ډير زيات په ما سخت وو او دا د عقبې د ورځې واقعه ده چې ما

إِذْ عَرَضْتُ نَفْسِيْ عَلَى ابْنِ

ستا د قوم د لاسه داسې سخت تکليفونه پورته کړل چې د هغه نه زيات اذيتونه د هغوئ د طرف نه په

عَبْدِ يَالِيْلَ بْنِ كُلَالٍ

ټول عمر کې ما ته هيڅ کله نه دي رسيدلي داسې وشوه چې زه په هغه ورځ ابن عبد ياليل ابن کلال ته

فَلَمْ يُجِبْنِيْ إِلَى مَا أَرَدْتُّ فَانْطَلَقْتُ وَأَنَا مَهْمُوْمٌ

ورسيدم ليکن هغه ځما تلقين ته هيڅ توجه ورنه کړه او زه ترينه خفه روان شوم او تلم تردې پورې

عَلَى وَجْهِيْ فَلَمْ أَسْتَفِقْ إِلَّا بِقَرْنِ الثَّعَالِبِ

چې قرن ثعالب ته رسيدو سره ځما حواس قابو کې را نه غلل ما خپل سر پورته کړو نو څه ګورم چې د

فَرَفَعْتُ رَأْسِيْ فَإِذَا أَنَا بِسَحَابَةٍ قَدْ أَظَلَّتْنِيْ

وريځي يوه لويه ټکړه ده چې په ما يې سورى کړي دى او بيا اچانک ځما نظر د وريځي هغه ټکړي کې

فَنَظَرْتُ فَإِذَا فِيْهَا جِبْرَئِيْلُ فَنَادَانِيْ فَقَالَ إِنَّ اللهَ

په حضرت جبرائيل) راغلي جبرائيل) زه مخاطب کړم راته يې وويل ستا سو پروردګار ستا سو

| قَدْ | سَمِعَ | قَوْلَ | قَوْمِكَ | وَمَا | رَدُّوْا | عَلَيْكَ | وَقَدْ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| د قوم خبره واوريده او د هغوئ هغه جواب يې هم واوريده چې هغوئ تا سو ته درکړی دی او اوس | | | | | | | |
| بَعَثَ | إِلَيْكَ | مَلَكَ | الْجِبَالِ | لِتَأْمُرَهُ | بِمَا | شِئْتَ | فِيْهِمْ |
| پروردګار ستا سو په خدمت کې د غرونو فرشته چې تاسو ثرنګه غواړئ حکم وکړئ حضور ﷺ | | | | | | | |
| فَنَادَانِيْ | مَلَكُ | الْجِبَالِ | فَسَلَّمَ | عَلَيَّ | ثُمَّ | قَالَ | يَا | مُحَمَّدُ | إِنَّ | اللهَ |
| فرمايي ددې نه روسته د غرونو فرشتي ماته يا محمد مخاطب کولو سره راته وويل ای محمد ! الله! | | | | | | | |
| قَدْ | سَمِعَ | قَوْلَ | قَوْمِكَ | أَنَا | مَلَكُ | الْجِبَالِ | وَقَدْ | بَعَثَنِيْ |
| ستا سو د قوم خبره اوريدلي ده زه د غرونو فرشته يم زه ستا سو پروردګار تا سو ته را ليږلی يم چې | | | | | | | |
| رَبُّكَ | إِلَيْكَ | لِتَأْمُرَنِيْ | بِأَمْرِكَ | إِنْ | شِئْتَ | أَنْ | أُطْبِقَ |
| تا سو ماته د خپلې فيصلې د تعميل حکم راکړئ که تا سو فرمائي نو زه ستا سو د قوم خلقو باندې | | | | | | | |
| عَلَيْهِمُ | الْأَخْشَبَيْنِ | فَقَالَ | رَسُوْلُ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ |
| دا دواړه غرونه اخشبين رايوځاي کوم رسول الله ﷺ و فرمائيل زه د دوی زه خو دا اميد لرم چې | | | | | | | |
| بَلْ | أَرْجُوْ | أَنْ | يُخْرِجَ | اللهُ | مِنْ | أَصْلَابِهِمْ | مَنْ | يَعْبُدُ | اللهَ |
| الله ! به د دوئ په نسل کې داسي خلق پيدا کړي چې صرف د يو الله عبادت به کوي او هيڅ شی به | | | | | | | |
| وَحْدَهُ لَا يُشْرِكُ بِهِ شَيْئًا. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. [1] | | | | | | | |
| هغه سره شريک نه ګرځوي . [بخاري مسلم] | | | | | | | |

**توضيح** : (اشد من يوم احد) په احد کې د حضور ﷺ اويا صحابو شهيدان شوي وو د هغه د تره حضرت حمزه رض د جسم تکړې د هغه په مخ کې وې ، په خپله هغه غمجن وو ، غاښ مبارک يې

[1] اخرجه البخاري في صحيحه ۶/۳۱۲ رقم الحديث ۳۲۳۱. ومسلم في صحيحه ۳/۱۴۲۰ رقم الحديث (۱۱۱.۱۷۹۵)

شهید شوی وو، ډیره سخته ورځ وه په دغه وجه حضرت عائشې رضی الله د احد د ورځې د سختۍ نه د کومې بلې ورځې د سختۍ او مصیبت پوښتنه کړې ده ، د حضرت عائشې رضی الله عنها خیال وو چې د دینه زیاته سخته ورځ کومه کیدلی نشي ، لیکن حضور ﷺ د طائف ورځ چې هغې ته یوم العقبة ویل شوي هغه یې د احد د ورځې نه زیاته سخته وښودله .

**(یوم العقبة)** عقبه په حقیقت کې غونډۍ ته ویل کیږي دلته یو مسجد دریافت شوی دی ، په همدغه ځای باندې هغه د مدینې والاؤ ته خپل ځان پیش کړلو ، په منی کې د مسجد خیف سره

**(جمرة العقبة)** همدغې غونډۍ ته منسوب ده ، په ۲۰۰۷ کې سعودی حکومت د جمراتو توسیع وکړه دلته یو مسجد دریافت شو چې د هغه نوم مسجد العقبة دی . په اصل کې د موسم حج په دوران کې به حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د عربو قبائلو ته دعوت ورکولو ، چې کله حالات خراب شول نو حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حج ته راغلیو مختلفو خلکو ته خپل ځان پیش کړلو چې ما ته تاسې پناه راکړئ ، دا په احادیثو کې په عرض نفسه علی القبائل سره یاد شوی دی ، په منی کې یې ددې شروع وکړه ، بیا په همدغه مقصد کې هغه طائف ته روان شو چې هغوی ازاد قبائل دي ، کیدای شي هغوی اسلام قبول کړي او بیا ما ته د پناه ځای پیدا شي ! دغه ټوله نقشه په یوم العقبة سره یاده شوې ده .

**(عرضت نفسی)** یعنې ما خپل ځان پیش کړلو د عربو په دریو سردارانو باندې چې په خپل مینځ کې سره ورونه وو ، د یوه نوم عبدیالیل وو ، د دویم نوم مسعود او د دریم نوم حبیب وو ، دا دریواړه ورونه د عمرو بن عُمیر ځامن وو ، په طائف کې د ټولو نه غټ سردار مسعود وو . اهل تاریخ والاؤ دلته ډیر خلط ملط نومونه ذکر کړي دي ، ما د البدایه والنهایة خبره ولیکله . ملا علی القاری رحمه الله لیکلي چې عبدیالیل کنیه ده مګر دا د هغه شخص نوم هم دی ، (یعنې د عبدیالیل سره یې خبرې وکړې) . **(مهموم)** زه د شدت غم په وجه مدهوش ومه . **(استفق)** په هوش کې راتللو ته ویل کیږي . **(قرن الثعالب)** د مخکینې طائف نه چې ووځي جبل هدی طرفته په جدید طائف کې د یو ځای نوم قرن الثعالب دی ، قرن المنازل هم په دغه ځای کې دی چې د هغه ځای نه اهل نجد احرام تړلو سره مکې ته راځي د اهل طائف میقات همدا دی .

**سوال** : په غزوه احد کې پخپله حضور ﷺ زخمی شوی وو د هغه د صحابو اویا لاشونه د ده په مخکې وو د هغه د تره حضرت حمزه رضي الله عنه ټکړه شوی لاش دده په مخ کې پروت وو ، دغه سخته صدمه حضور ﷺ د طائف د صدمې او مصیبت نه کمه ولې وګرځوله او د طائف دغه غم او مصیبت یې ولې زیات وګرځولو ؟

**جواب** : ددې جواب دا کیدلی شي چې په احد کې حضور ﷺ د مقابلې په میدان کې وو ، د ښمن

سره په مقابله کې چې څومره نقصان هم وشي د هغه دومره تکلیف نه وي ځکه د مقابلې په میدان کې فتحه او شکست دواړه راځي ، ددې برعکس په طائف کې حضور ﷺ د مقابلې په میدان کې نه وو هلته چې څه کیدل هغه ټول یو طرفه ظلم وو چې هغه حضور ﷺ په انتهایې بې پوښتنې عالم کې برداشت کول چې د هغه تکلیف ډیر زیات وو ، په دغه وجه یې د طائف تکلیف او اذیت د احد نه زیات وګرځولو .

(اطبق) یوځای کولو ته وایې . (**الاخشبین**) دا د اخشب تثنیه ده ، مضبوط غر ته اخشب وایې ، ددینه مراد د مکې مکرمې سره مخې ته دوه غرونه دي ، دا دوه غرونه د یو جانب نه خو په مکه کې دي مګر د بل جانب نه د منی سره لګیږي .

**اوس سوال** دا دی چې د حضور ﷺ سره ګستاخي اهل طائف کړې وو هغوی ظالمان وو نو بیا په اهل مکه باندې د غرونو د یوځای کولو نه څه مطلب دی ؟

**جواب** : ددې جواب دا کیدی شي چې اصل مجرم خو د مکې کفار وو د هغوی په وجه دا هر څه کیدل ، د طائف سفر هم د هغوی د مظالمو په وجه وو په دغه وجه ددغه اصل ختمولو خبره وشوله . دویم جواب دا کیدی شي چې د دغو غرونو سلسله په اهل طائف او اهل مکه دواړو باندې محیطه وه نو د دواړو ښارونو د تباهي خبره وه ، هیڅ اشکال نشته ،دغه سوال او جواب ما په کومه شرحه کې لیدلی نه دی مګر شارحینو د اخبشینو مصداق جبل ابو قبیس او قعیقعان ګرځولی دی دا دواړه غرونه په مکه کې دي په دغه وجه دا توجیهات وشول ، د محدث العصر حضرت مولانا سید محمد یوسف بنوری رحمه الله د تقریر یوه کیسټه زما سره ده هغه د اخبشین مصداق جبل ابو قبیس او جبل قعیقعان ګرځولی دی .

## غزوه اُحد کې د حضور ﷺ د زخمي کیدو ذکر

| ﴿۱۲﴾وَعَنْ | أَنَسٍ | أَنَّ | رَسُوْلَ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ | كُسِرَتْ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| او حضرت انس رضی الله عنه نه روایت دی د اُحد د جنګ په ورځ د رسول الله ﷺ هغه څلور وغاښونو کې یو | | | | | | | | | |
| رَبَاعِيَتُهُ | يَوْمَ | أُحُدٍ | وَشُجَّ | فِيْ | رَأْسِهِ | فَجَعَلَ | | | |
| غاښ مبارک مات شوی وو کوم ته چې رباعیه وایي او د حضور ﷺ سر مبارک زخمي شوی وو | | | | | | | | | |
| يَسْلُتُ | الدَّمَ | عَنْهُ | وَيَقُوْلُ | كَيْفَ | يُفْلِحُ | قَوْمٌ | شَجُّوْا | | |
| حضور ﷺ به وینه وچوله او فرمائیل به یې هغه قوم به څرنګه نجات پیدا کړی شي چې د خپل نبي | | | | | | | | | |

رَأْسَ نَبِيِّهِمْ وَكَسَرُوْا رَبَاعِيَتَهُ. رَوَاهُ مُسْلِمٌ. (۱)

سر یې زخمي کړه د هغه غاښ یې مات کی. [مسلم]

**توضیح**: یسلت: د نصر ینصر نه دی د جسم نه د وینې پاکولو ته ویل کیږي.

**شجوا**: د سر او مخ زخم ته شج ویل کیږي.

**رباعیته**: د انیاب او ثنایا تر مینځ غاښونو ته رباعی ویل کیږي، د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ غاښ بلکل ماتیدو سره غورځیدلی نه وو بلکه لږ حصه یې ماته شوې وه، د ښي طرف د لاندې غاښونو رباعی مراد ده.

**د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په لاس وژل شوی به د الله! د ټولو نه سخت عذاب کې مبتلاوي**

﴿۱۳﴾وَعَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِشْتَدَّ غَضَبُ اللهِ

او ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمائیل د الله! سخت ترین غضب په هغه قوم

عَلٰى قَوْمٍ فَعَلُوْا بِنَبِيِّهِ يُشِيْرُ إِلٰى رَبَاعِيَتِهِ

دی چې هغوئ خپل نبي سره داسي سلوک وکړي دداسي سلوک نه د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اشاره خپلو

اِشْتَدَّ غَضَبُ اللهِ عَلٰى رَجُلٍ

غاښونو طرف ته وه چې په هغو کې یو غاښ کفارو د اُحد په جنګ کې شهید کړی وو او د الله! سخت ترین غضب په هغه سړي

يَقْتُلُهُ رَسُوْلُ اللهِ فِيْ سَبِيْلِ اللهِ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. (۲) وَهٰذَا الْبَابُ خَالٍ عَنِ الْفَصْلِ الثَّانِيْ.

دی چې د الله! رسول یې د الله په لار یعني جهاد کې قتل کړي. [بخاري، مسلم] او په دې باب کی دوهم فصل نشته.

(۱) اخرجه البخاري في صحيحه ۱۰/۱۷۳ رقم الحديث ۵۷۲۲ ومسلم في صحيحه ۳/۱۴۱۷ رقم الحديث (۱۰۴.۱۷۹۱)

(۲) اخرجه البخاري في صحيحه ۷/۳۷۲ رقم الحديث ۴۰۷۳ ومسلم في صحيحه ۳/۱۴۱۷ رقم الحديث (۱۰۶.۱۷۹۳)

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## د ټولو نه مخکې کوم سورت نازل شوی وو

﴿۱۴﴾عَنْ يَحْيَى بْنِ أَبِيْ كَثِيْرٍ قَالَ سَأَلْتُ أَبَا سَلَمَةَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ

حضرت یحیٰی بن کثیر وایي ما د حضرت ابوسلمه ابن عبد الرحمٰن بن عوف، نه پوښتنه وکړه د

عَنْ أَوَّلِ مَا نَزَلَ مِنَ الْقُرْآنِ قَالَ يَا أَيُّهَا الْمُدَّثِّرُ. قُلْتُ

قرآن کریم کومه حصه د ټولو نه مخکښې نازله شوه؟ هغه جواب راکړو چې: يٰٓاَيُّهَا الْمُدَّثِّرُ! ما عرض وکړو

يَقُوْلُوْنَ إِقْرَأْ بِاسْمِ رَبِّكَ قَالَ أَبُوْ سَلَمَةَ

اکثره علماء خو دا وايي چې د ټولو نه مخکې اِقْرَاْ بِاسْمِ رَبِّكَ نازل شوی دی حضرت ابوسلمه وفرمائيل

سَأَلْتُ جَابِرًا عَنْ ذٰلِكَ وَقُلْتُ لَهُ مِثْلَ الَّذِيْ

ما د حضرت جابر، نه دا پوښتنه کړې وه نو هغه هم دا جواب راکړو کوم چې ما تاته درکړی دی نو

قُلْتَ لِيْ فَقَالَ لِيْ جَابِرٌ لَا أُحَدِّثُكَ إِلَّا بِمَا حَدَّثَنَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

نو هغوئ ماته وفرمائيل زه ستا مخکې هغه حديث بيانوم چې رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ څمونږ مخکې ارشاد

قَالَ جَاوَرْتُ بِحِرَاءَ شَهْرًا

فرمائيلی وو حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دا وفرمائيل چې زه يوه مياشت پورې په غارِ حراء کې خلوت نشين او

فَلَمَّا قَضَيْتُ جِوَارِيْ هَبَطْتُ فَنُوْدِيْتُ

معتکف وم هرکله چې څما د خلوت نشينۍ او اعتکاف موده پوره شوه او زه د غره نه راکوز شوم نو

فَنَظَرْتُ عَنْ يَمِيْنِيْ فَلَمْ أَرَ شَيْئًا وَنَظَرْتُ عَنْ شِمَالِيْ

څوک صاحب ما مخاطب کوي مابنې طرف ته وکتل نو هيڅوک مې و نه ليدل بيا ما کنږ (ګس) طرف

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فَلَمْ | أَرَ | شَيْئًا | وَنَظَرْتُ | عَنْ | خَلْفِي | فَلَمْ | أَرَ | شَيْئًا | فَرَفَعْتُ |

نو ته وکتل اخوا هم هيڅ شی په نظر رانغلو روسته مي نظر وکړه نو هيڅ مي ونه ليدل بيا چې ماپورته

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| رَأْسِي | فَرَأَيْتُ | شَيْئًا | فَأَتَيْتُ | خَدِيجَةَ |

نظر وکړه نو ماته څه په نظر راغلل يعني يوه فرشته راته ښکاره شوه بي بي خديجي رضي الله عنها ته راغلم

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| فَقُلْتُ | دَثِّرُونِي | فَدَثَّرُونِي | وَصَبُّوا | عَلَيَّ | مَاءً |

ورته مي وويل په ما باندې کپړه واچوه بي بي خديجي - سمدستي په ما يوه کپړه واچوله او يخې

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| بَارِدًا | فَنَزَلَتْ | يَا | أَيُّهَا | الْمُدَّثِّرُ | قُمْ | فَأَنْذِرْ | وَرَبَّكَ |

اوبه يې راباندې واچولي ددې نه روسته دا آيت نازل شو: يَا أَيُّهَا الْمُدَّثِّرُ ..الخ يعني کپړه اغوستونکېه!

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| فَكَبِّرْ | وَثِيَابَكَ | فَطَهِّرْ | وَالرُّجْزَ | فَاهْجُرْ | وَذٰلِكَ | قَبْلَ |

پاڅیږه او د خپل رب لويې بيان کړه او خپلي کپړې پاکې ساته او د ناپاکۍ نه پرهيز کوه او د وحې د

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| أَنْ | تُفْرَضَ | الصَّلَاةُ. | مُتَّفَقٌ | عَلَيْهِ.[1] |

نزول دا واقعه د مونځ فرض کېدو نه د مخکې ده. [بخاري مسلم]

**توضيح**: د وحې د نزول په اعتبار سره د ټولو نه مخکې د سورة علق پنځه آيتونه نازل شوي دي بيا د وحې د انقطاع زمانه راغله، د وحې د انقطاع نه بعد چې مکمل سورت نازل شوی دی هغه سورت مدثر دی چې د هغه تذکره په زير بحث حديث کې ده، نو دا د مطلق وحې خبره نه ده بلکه د کامل سورت د نزول خبره ده ګويا دا ابتداء اضافی ده چې د انقطاع وحې نه بعد د ټولو نه د مخکې وحې نه بعد نازل شوی وو.



(1) اخرجه البخاري في صحيح ۸/۶۷۶ رقم الحديث ۴۹۲۲ ومسلم في صحيحه ۱/۱۴۴ رقم الحديث (۲۵۷.۱۶۱)

# باب علامات النبوة

## د نبوت د علاماتو بیان

علامات جمع ده د دې مفرد علامة ده ، علامه نښې ته ویل کیږي دلته هغه نښو او علاماتو ته ویل کیږي چې د حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په نبوت باندې دلالت کوي . شیخ عبدالحق رَحِمَهُ اللّٰهُ په اشعة اللمعات کې لیکلي دي چې علامات د نبوت او معجزات یو شی دي په دغه وجه شراح حضرات حیران او پریشانه دي چې صاحب د مشکوة د یو مفهوم شی په دوو جدا بابونو کښې ولې ذکر کړل ؟ هیڅا هم د دې صحیح جواب ورنکړی شو انتهی کلامه.

بنده عاجز فضل محمد غفرله عرض کوي چې زه دو مره فرق بیانولی شم چې په معجزاتو کښې زیاتره د هغه شیانو بیان وي چې مقابل انسان عاجز او مجبوره کوي چې معجزه دي ولیدله اوس ایمان راوړه ! او په علاماتو د نبوت کښې داسې نه وي بلکه په هغه کې زیاتره هغه شیان بیانیږي چې فی نفسه د حضور اکرم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په نبوت باندې په طور د علامت دلالت کوي مګر چا لره په ایمان راوړو نه مجبور وي او نه عاجزه کوي .دویم فرق دا چې په علاماتو دنبوت کښې یو څه شیان هغه دي چې د هغو تعلق د نبوت د اعلان نه د مخکې واقعاتو سره دی لکه څنګه چې د دې باب په حدیث نمبر۱ حدیث نمبر۲ وغیره کې خو ظاهره ده چې هغو ته معجزه خو ویل کیدلی نشي مګر دا په نبوت باندې علامت او دلالت دي په دغه وجه باندې شاید صاحب د مشکوة دغه باب د معجزاتو نه علاحده کړی وي او د دې لپاره یې ځانته عنوان تړلی وي .

### اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

### د شق صدر واقعه

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۱﴾ عَنْ | أَنَسٍ | أَنَّ | رَسُوْلَ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ | أَتَاهُ جِبْرَئِيْلُ |
| حضرت انس رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ نه روایت دی چې حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د ماشومانو سره لوبې کولې چې حضرت جبرائیل) | | | | | | | | | |
| وَهُوَ | يَلْعَبُ | مَعَ | الْغِلْمَانِ | فَأَخَذَهُ | فَصَرَعَهُ | فَشَقَّ | | | |
| راغی حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ یې اونیولو سم یې ورجولو بیا هغه د حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زړه ته قریب سینه وڅیرله | | | | | | | | | |
| عَنْ | قَلْبِهِ | فَاسْتَخْرَجَ | مِنْهُ | عَلَقَةً | فَقَالَ | هٰذَا | حَظُّ | | |
| او د حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د زړه نه یې د جم شوي ویني یوه توره ټکره راوایستله او رته یې وویل دا ستا په | | | | | | | | | |
| الشَّيْطَانِ | مِنْكَ | ثُمَّ | غَسَلَهُ | فِيْ | طَسْتٍ | مِّنْ | ذَهَبٍ | | |
| جسم کې د شیطان حصه ده د دې نه روسته هغوي د حضو صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زړه مبارک د سرو زرو یو لګن کې | | | | | | | | | |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| بِمَاءِ | زَمْزَمَ | ثُمَّ | لَأَمَهُ | وَأَعَادَهُ | فِيْ | مَكَانِهِ |

د زمزم په اوبو سره ويئځلو او بيا زړه په خپل ځاي ايښودلو سره سينه مباركه يې برسيره نه برابره

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَجَاءَ | الْغِلْمَانُ | يَسْعَوْنَ | إِلَى | أُمِّهِ |

كړله هغه ماشومان چې د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره وو دې پوره منظر ليدو سره ويريدل او وتښتيدل او د

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| يَعْنِيْ | ظِئْرَهُ | فَقَالُوْا | إِنَّ | مُحَمَّدًا | قَدْ | قُتِلَ |

حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مور يعني يې ورکونکې حليمې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ته راغلل او ورته يې وويل چې محمد ووژل شو

| | | |
|---|---|---|
| فَاسْتَقْبَلُوْهُ | وَهُوَ | مُنْتَقَعُ |

چې خلق هغه ځاي ته ورسيدل چيرته چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ موجود وو هغوئ نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ صحيح سالم اوليدلو ليکن نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ

| | | |
|---|---|---|
| اللَّوْنِ | قَالَ | أَنَسٌ |

يې په داسې حال کې اوليدلو چې د خوف او دهشت نه د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د مخ مبارک رنګ بدل شوى وو حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ

كُنْتُ أَرَى كُنْتُ ارٰى الْمَخِيْطَ فِيْ صَدْرِهِ.[1]

دا روايت بيانولو سره وويل چې ما به د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ په سينه مبارکه د ګنډلو نښه ليدله.

**توضيح**: **فشق عن قلبه**: يعنې د زړه د پاسه يې سينه څيري کړه او بيا يې د دننه نه زړه وويسته، د زړه نه يې توره جمع شوې وينه وويسته بهر يې وغورځوله، بيا يې زړه وګنډلو او بيا يې سينه وګنډله چې په هغې کښې د ګنډلو نشان تر ټول عمر پورې پاتې شو، د شق صدر او شرح صدر واقعه د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره څلور ځل پيښه شوې ده، يو کرت خو د حضرت حليمه سعديه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا د پرورش په دوران کښې پيښه شوه چې د هغه ذکر په زير بحث حديث کښې دی په دغه وخت کې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د کم عمر وو چې کله حليمه سعديه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا د ده پرورش کولو، دويمه مرتبه د شرح صدر واقعه د لسو کلونو په عمر کښې پيښه شوه، دريمه مرتبه د ظهور نبوت په وخت کښې پيښه شوه چې کله د هغه عمر څلويښت کاله وو، څلورم ځل آسمانونو ته د معراج لپاره د تللو په وخت پيښه شوې ده چې کله د هغه عمر ۵۱ کاله وو.

---

([1]) اخرجه مسلم في صحيحه ۱/۱۴۷ رقم الحديث (۲۱۱.۱۶۲) والترمذي في السنن رقم الحديث ۳۶۲۴.

**حظ الشیطان**: یعنې د انسان په جسم او بیا په زړه کښې دننه دوه قسمه مخلوق کار کوي او خپل خپل اثر اچوي، یو مخلوق ملائکې دی دویم مخلوق شیاطین دی، په زړه کې دننه خانې جوړې شوې وې چې هلته د وینې حصې هم وي، دغه ځایونه د ملائکو د الهاماتو ځایونه هم دي او د شیاطینو د وسوسو مراکز هم دي، د دغه دوو مخلوقو نه چې د کوم مخلوق کنټرول په دغه ځایونو باندې قائم شو زړه د هغوی په لاسونو کښې چلیږي او د زړه په وجه بیا ټول جسم متأثره کیږي. که د ملائکو په قابو کښې راغی نو د ټول جسم روحانی نظام صحیح کیږي او که چیرې د شیاطینو په کنټرول کښې راغی نو د ټول جسم روحانی نظام خرابیږي، په زیر بحث حدیث کښې حظ الشیطان سره اشاره همدغه پس منظر ته ده، د حضور ﷺ قلبی روحانی نظام مکمل طور باندې د ملائکو په لاس کښې راغللو او د شیاطینو د وسوسو ګنجائش ختم شولو.

**سوال**: اوس سوال دا دی چې کله د اپریشن په ذریعه د قلب اطهر نه د هغه حصه کټ کول وو نو د تخلیق په وخت کښې هغه په قلب اطهر کښې ولې پیدا کړی شوه؟ د ابتداء نه به الله تعالی دغه حصه نه پیدا کوله نو د ویستلو ضرورت به هم نه وو.

**جواب**: الله تعالی انبیاء کرام په کامل بشریت باندې پیدا کړي دي په کوم نبی کښې یې جسمانی نقصان راویستلی نه دی که د تخلیق په وخت کښې یې دغه حصه پیدا کړې نه وای نو د حضور ﷺ په جسم اطهر کښې یو بشری نقص پاتې کیده او په کمال کښې فرق راتلو، په دغه وجه یې اول د اعلی کمال تکمیل وفرمایلو بیا یې د افریشن په ذریعه هغه وویستلو. ددې حدیث نه د انسانانو د زړه د آپریشن راهنمائی حاصله شوې، یو نیم زر کاله وروسته چې دنیا په کوم شی باندې فخر کوي د هغه ابتداء د محمد عربی ﷺ د ذات نه د بی سرو سامان په دور کښې وشوه.

**زمزم**: د جنت اوبه رانه وړلی شوې، معلومه شوه چې د زمزم د اوبو درجه د جنت د اوبو سره برابره ده یا د هغو نه بهترې دي.

**منتقع اللون**: یعنې رنګ یې متغیر شوی وو زیړ شوی وو، (**اثر المخیط**) یعنې د شرح صدر نه بعد د ګنډلو نشان د غاړې نه تر نومه پورې موجود وو په هغه باندې د وینښتانو یوه ښایسته لیکه وه. **اللهم صل علی حبیبک محمد في الاولین والآخرین وعلی آله الطاهرین واصحابه اجمعین.**

## رسول ﷺ ته د کاڼو سلام

| ﴿۲﴾ وَعَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنِّيْ لَأَعْرِفُ حَجَرًا بِمَكَّةَ |
| --- |
| او جابر ابن سمره رضی الله عنه وایي چې رسول کریم ﷺ وفرمائیل زه هغه کاڼی پیژنم چې په مکه |

كَانَ يُسَلِّمُ عَلَيَّ قَبْلَ أَنْ أُبْعَثَ إِنِّي لَأَعْرِفُهُ الْآنَ. رَوَاهُ مُسْلِمٌ.[1]

کې د نبوت د ظهور نه مخکې به يې ما ته سلام اچوه زه اوس هم هغه ښه پيژنم. [مسلم]

## د شق قمر معجزه

﴿۳﴾ وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ إِنَّ أَهْلَ مَكَّةَ سَأَلُوا رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

او انس رضي الله عنه وايي د مکې کافرو جمع کېدو سره د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه مطالبه وکړه که تا سو د

أَنْ يُرِيَهُمْ آيَةً فَأَرَاهُمُ

نبوت د عوٰی کې رېښتنی يې نو څه نښه معجزه وښايه نو حضور صلی الله علیه وسلم د خپل لاس مبارک

الْقَمَرَ شِقَّتَيْنِ حَتَّى رَأَوْا حِرَاءَ

اشاري سره د سپوږمۍ دوه ټکړې کولو سره وښودله د دې پوري چې هغه کافرو حراء غر د هغه

بَيْنَهُمَا. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.[2]

دوو ټکړو په منځ کې وليده. [بخاري مسلم]

**توضيح**: د شق قمر واقعه چونکه په شپه کښې وه په دغه وجه زياته مشهوره نشوه، بل دا چې دا مخصوصو خلکو غوښتې وه نو ضروری نه وه چې تمام اهل دنيا ته وښودلی شي، همدارنګه تمام انسانانو ته عامه هم نه وه ولې که د ټولو د غوښتنې او بيا د ټولو د ليدلو نه بعد که کفارو انکار کړی وای نو بيا عمومی عذاب راتللو لکه څنګه چې د فرمايشي معجزې نه د انکار نه وروسته راځي، په سماوی کائناتو کښې د خرق او التيام نه انکار د څو مخروق الدماغ او محروف الدماغ خلکو کار دی چې ناقابل التفات دی، د الله په حکم سره د حضور صلی الله علیه وسلم په لاس باندې د معجزې په ظهور کښې د محال راتللو ګنجائش نشته، اهل تاريخ والاؤ د شق قمر واقعه په تواتر سره نقل کړې ده په احاديثو کښې د دې ثبوت موجود دی د قرآن اعلان دی ﴿اقتربت الساعة وانشق القمر﴾ اوس انکار په کار نه دی، په وړيسې حديث کښې د فرقتين الفاظ دي د دې نه هم مراد دوه ټکړې دي.

---

(1) اخرجه مسلم في صحيحه ۴/۱۷۸۲ رقم الحديث (۲۲۷۷.۲) والترمذي في السنن ۵/۵۵۳ رقم الحديث ۳۶۲۴.

(2) اخرجه البخاري في صحيحه ۶/۳۶۱ رقم الحديث ۳۶۳۷ومسلم في صحيحه ۴/۲۱۵۹ رقم الحديث (۲۸۰۲.۴۶).

| ﴿۴﴾ وَعَنِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ اِنْشَقَّ الْقَمَرُ عَلٰى عَهْدِ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
|---|
| او ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په زمانه کې سپوږمۍ په منځ چاودلو سره شوه |
| فِرْقَتَيْنِ فِرْقَةً فَوْقَ الْجَبَلِ وَفِرْقَةً دُوْنَهُ فَقَالَ |
| چې يوه ټکړې د غر په برني باندې وه او دوهمه لاندې طرف ته رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د کافرو په طلب دې |
| رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِشْهَدُوْا. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. [1] |
| معجزې ښودلو سره هغوئ ته وفرمائيل چې ځماد نبوت يا ځما د معجزې شهادت ورکړئ. [بخاري مسلم] |

## د الله تعالى د طرف نه ابو جهل ته تنبيه

| ﴿۵﴾ وَعَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ أَبُوْ جَهْلٍ هَلْ يُعَفِّرُ |
|---|
| او حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي يو وار ابو جهل د خلقو مخکې ډير په تحقير سره ووېل ايا محمد ستاسو |
| مُحَمَّدٌ وَجْهَهُ بَيْنَ أَظْهُرِكُمْ فَقِيْلَ نَعَمْ فَقَالَ وَاللَّاتِ وَالْعُزّٰى |
| مخکې خپل مخ خاک آلود کوي يعني مونځ او سجده کوي خلقو ووېل هو ابو جهل ووېل په لات او عزٰی |
| لَئِنْ رَأَيْتُهُ يَفْعَلُ ذٰلِكَ لَأَطَأَنَّ عَلٰى رَقَبَتِهِ |
| دواړو لويو بتانو قسم که ما محمد داسې کولو نو د هغه په څټ به پښه کيږدم يو ورځ هر کله چې |
| فَأَتٰى رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ وَ هُوَ يُصَلِّيْ |
| حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مونځ کوه او سجده کې وو ابو جهل دې ناپاکې ارادې سره چې د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| زَعَمَ لِيَطَأَ عَلٰى رَقَبَتِهِ فَمَا فَجِئَهُمْ مِنْهُ |
| څټ مبارک خپلو پښو سره پامال کړي هغه د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ طرف ته مخکې کېدو کې اچانک او دريدلو او |
| اِلَّا وَهُوَ يَنْكُصُ عَلٰى عَقِبَيْهِ وَيَتَّقِيْ بِيَدَيْهِ |
| سمدستي خلقو طرف ته راتاؤ شو او داسې ښکاره کيده چې هغه په خپلو دواړو لاسونو سره څه شی |

(1) اخرجه البخاري في صحيحه ۶/۶۳۱ رقم الحديث ۳۶۳۶ ومسلم في صحيحه ۴/۲۱۵۸ رقم الحديث (۴۴.۲۸۰۰).

فَقِيْلَ لَهُ مَا لَكَ فَقَالَ إِنَّ بَيْنِيْ وَبَيْنَهُ

ابو جهل صفا وویل زه دا وینم منع کوي خلقو په دې لیدو سره ترې پو ښتنه وکړه چې آخر څه قصه ده

لَخَنْدَقًا مِّنْ نَّارٍ وَّهَوْلًا وَّأَجْنِحَةً

چې ځما او د محمد ﷺ په منځ کې د اور خندق کنده ده ډیر خوفناک منظر دی او د محافظو فرشتو وزرې او

فَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَوْ دَنَا مِنِّيْ

رسول الله ﷺ وفرمائیل که ابو جهل ماته قریب راغلی وی نو فرشتو به د هغه جسم متې دي

لَاخْتَطَفَتْهُ الْمَلَائِكَةُ عُضْوًا عُضْوًا. رَوَاهُ مُسْلِمٌ.[1]

ټکړې ټکړې کړی وای یعنی هري فرشتي به د هغه د بدن یو یو عضو تښتولی وی.

**توضیح : هل یعفر:** د تعفیر نه دی د خاک آلود کولو په معنی سره دی یعنې په ځمکه باندې سجده لګولو سره مخ خاک آلوده کوي؟ ابو جهل د انتهائی تحقیر په طور باندې داسې وویل.

**زعم: ای طمع** یعنې د غاړې د لاندې کولو په ارادې سره پُر امیده راغی.

**فما فجئهم منه: فجأة** ناڅاپه راتک ته وایې، په فجئهم کښې ضمیر ابو جهل ته راجع دی، معنی دا ده چې ابو جهل د حضور ﷺ له طرفنه خپل مجلس والاؤ ته ناڅاپه په داسې حال کښې ورسیده چې دواړه لاسونه یې پورته کړي وو په پښو باندې شاته په بد حواسۍ سره روان وو.

**خندقا:** یعنې د اور کنده وه. **وهولا: ای خوفا وامرا شدیدا. واجنحة:** یعنې د حافظو ملائکو وزرې وې

**اختطفته:** یعنې ملائکو به د هغه جسم ټکړه ټکړه کړی وو.

## یوه پیشن ګوئي چې حرف په حرف پوره شوه

﴿۶﴾ وَعَنْ عَدِيِّ بْنِ حَاتِمٍ قَالَ بَيْنَا أَنَا عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذْ

او عدي ابن حاتم رضي الله عنه وايي يوه ورځ زه د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضروم ناڅاپه

أَتَاهُ رَجُلٌ فَشَكَا إِلَيْهِ الْفَاقَةَ ثُمَّ أَتَاهُ آخَرُ

یو سړی راغی او حضور ﷺ ته یې د خپل فقر او فاقي او افلاس شکایت وکړه بیا یو بل سړی راغلي

[1] اخرجه مسلم في صحيحه ۲۱۵۴ رقم الحديث (۲۷۹۷.۳۸)

فَشَكَا إِلَيْهِ قَطْعَ السَّبِيْلِ فَقَالَ يَا عَدِيُّ هَلْ رَأَيْتَ الْحِيْرَةَ

هغه د راهزني (شوکې) شکایت وکړه نو حضور ﷺ وفرمائیل ای عدي! تا خو به حیره لیدلي وي

فَإِنْ طَالَتْ بِكَ حَيَاةٌ لَتَرَيَنَّ الظَّعِيْنَةَ تَرْتَحِلُ مِنَ الْحِيْرَةِ

که ستا عمر زیات شي نو یقینًا به ته ووینې چې یوه ښځه به تنها سوریدو سره د حیره نه روانه شي او

حَتّٰى تَطُوْفَ بِالْكَعْبَةِ لَا تَخَافُ أَحَدًا إِلَّا اللهَ

مکې ته رسیدو سره د کعبې طواف به او کړي او سو د الله نه هغه ته به د هیڅ ډاکو او غل یره نه وی

وَلَئِنْ طَالَتْ بِكَ حَيَاةٌ لَتُفْتَحَنَّ كُنُوْزُ كِسْرٰى

او که ته زیاتو ورځو پورې ژوندې پاتې شوې نو وبه وینې چې کسری د فارس د بادشاه خزانې به

وَلَئِنْ طَالَتْ بِكَ حَيَاةٌ لَتَرَيَنَّ الرَّجُلَ

مسلمانانو دپاره خلاصی شي او که ستا عمر زیات شو نو وبه وینې چې یو سړې به یو موټی برابر

يُخْرِجُ مِلْءَ كَفِّهِ مِنْ ذَهَبٍ أَوْ فِضَّةٍ يَطْلُبُ مَنْ يَقْبَلُهُ

سره زر او سپین زر خیرات کولو دپاره وخي او قبلونکی به تلاش کوی خو داسې سړې به پیدا نه کړي

فَلَا يَجِدُ أَحَدًا يَقْبَلُهُ مِنْهُ وَلَيَلْقَيَنَّ اللهَ أَحَدُكُمْ يَوْمَ

چه هغه نه د خیرات مالي واخلي او یاد لره د قیامت په ورځ به تاسو کې یو سړی د الله ! په حضور کې

يَلْقَاهُ وَلَيْسَ بَيْنَهُ وَبَيْنَهُ تَرْجُمَانٌ

داسي پیش شي چې د هغه او د الله ! پـه منځ کې به څوک ترجمان نه وي چې د هغه حال بیان کړي

يُتَرْجِمُ لَهُ فَلَيَقُوْلَنَّ أَلَمْ أَبْعَثْ

بیا به الله ! د هغه نه پوښتنه وکړي آیا ما تاته د دین احکام رسولو او د قیامت د ورځي خبر درکولو

إِلَيْكَ رَسُوْلًا فَيُبَلِّغَكَ فَيَقُوْلُ بَلٰى

دپاره رسول نه وو درلیږلی هغه سړی به وایي بیشکه تا رسول رالیږلی وو دي نه روسته به ترې نه

فَيَقُوْلُ أَلَمْ أُعْطِكَ مَالًا وَأُفْضِلْ

الله ! پوښتنه وکړي ما تاته مال او زر نه وو درکړی او آیا په تا باندې مې فضل او احسان نه وو کړی؟

| | | |
|---|---|---|
| عَلَيْكَ | فَيَقُوْلُ | بَلٰى |

هغه به وايي بيشکه تا ماته مال هم راکړی وو او په مادي فضل او احسان هم کړی وو ددي نه روسته به

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فَيَنْظُرُ عَنْ | يَمِيْنِهِ | فَلَا | يَرٰى | إِلَّا | جَهَنَّمَ | وَيَنْظُرُ |

هغه سړی خپل ښي طرف ته وګوري نو هغه ته به د دوزخ نه علاوه بل هيڅ په نظر را نشي بيا به هغه

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| عَنْ | يَسَارِهِ | فَلَا | يَرٰى | إِلَّا | جَهَنَّمَ، |

خپل ګس طرف ته وګوري نو هغه ته به د دوزخ نه علاوه بل څه په نظر رانشي نو رسول الله ﷺ تمام خلق

| | | | |
|---|---|---|---|
| اِتَّقُوا | النَّارَ | وَلَوْ | بِشِقِّ |

مخاطب کولو سره وفرمائيل چې اى خلقو! د دوزخ د اور نه د خيرات په ذريعه خپل ځان بچ کړئ

| | | |
|---|---|---|
| تَمْرَةٍ | فَمَنْ | لَمْ |

که څه هم د خرما د يوې ټکړې خيرات کولو وس ولرئ او که يو سړی د الله په نوم خرڅ کولو د پاره د

| | | |
|---|---|---|
| يَجِدْ | فَبِكَلِمَةٍ | طَيِّبَةٍ |

خرما يوه ټکړه هم نه لري نو نرمي او خوش خلقي سره خبرې کولو سره ځان دي د دوزخ د اور

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| قَالَ | عَدِيٌّ | فَرَأَيْتُ | الظَّعِيْنَةَ | تَرْتَحِلُ | مِنَ | الْحِيْرَةِ |

نه بچ کړي حضرت عدى ابن حاتم وويل ما خو دا وليدل چې په اوښه سوره ښځه د خانه کعبې

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| حَتّٰى | تَطُوْفَ | بِالْكَعْبَةِ | لَا | تَخَافُ | إِلَّا | اللهَ |

طواف کولو د پاره د حيره نه تنها سفر کوي او د الله! نه ماسوا بل هيچا نه نه ويريږي او زه

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وَكُنْتُ | فِيْمَنِ | افْتَتَحَ | كُنُوْزَ | كِسْرٰى | بْنِ | هُرْمُزَ |

خپله په هغه په خلقو کې شامل وم چې هغوئ د کسرٰى ابن هرمز بن نو شيروان د فارس د

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَلَئِنْ | طَالَتْ | بِكُمْ | حَيَاةٌ | لَتَرَوُنَّ | مَا | قَالَ | النَّبِيُّ |

بادشاه خزاني خلاصي کړي اوس که تاسو زياتي ورځې ژوندي پاتې شوئ نو د رسول الله ﷺ

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| أَبُو | الْقَاسِمِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ | يُخْرِجُ |

دا پيشن ګوئي به هم حرف به حرف پوره کېدونکې ووينئ چې يو سړی به د موتيو برابر سونا چاندي

مِلْءَ كَفِّهِ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.[1]

خيرات کولو د پاره وځي او هيڅ سړی به د هغه آخستونکی پيدا نه کړي .

## د دين د پاره مشقتونه بر داشت کول د ايمان والاؤ صفت دی

﴿۷﴾ وَ عَنْ خَبَّابِ بْنِ الْأَرَتِّ قَالَ شَكَوْنَا إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ وَهُوَ

خباب ابن ارت رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي يوه ورځ مونږ رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته چې هغه وقت حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

مُتَوَسِّدٌ بُرْدَةً لَهُ فِي ظِلِّ الْكَعْبَةِ

د خانه کعبې په سوري کې تر سر لاندې کمبل ايښی پروت وو د کفارو د سخت ترين مخالفت او د ښمنی

وَقَدْ لَقِيْنَا مِنَ الْمُشْرِكِينَ شِدَّةً

شکايت وکړ چې مونږ ته د دې خلقو نه سخت اذيت او تکليف رسيږي او عرض مو وکړو چې هر کله هغوئ د ايذا رسائي نه

فَقُلْنَا أَلَا تَدْعُو اللهَ فَقَعَدَ

نه منع کيږي نو تاسو د هغوئ په حق کې بد دعا ولې نه کوئ څو مونږ د دې خبرې اوريدو سره نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ راپورته شو

وَهُوَ مُحْمَرٌّ وَجْهُهُ وَ قَالَ كَانَ الرَّجُلُ

او مخ مبارک يې سور شو وي فرمائيل ستا سو نه مخکې چې کوم خلق تير شوي دی په هغوی کې يو هغه څوک وو

فِيمَنْ قَبْلَكُمْ يُحْفَرُ لَهُ فِي الْأَرْضِ

چې د هغه د پاره به په زمکه کې يوه کنده او کينل شوه بيا هغه سړې به په کنده کې کينول شو يا او درول شو او بيا اره

فَيُجْعَلُ فِيهِ فَيُجَاءُ فَيُوضَعُ عَلَى رَأْسِهِ فَيُشَقُّ بِاثْنَتَيْنِ

راوړلو سره د هغه پر سر به کيښول شوه او په هغه ارې سره به هغه سړې دوه ټکړې کيده ليکن دې سخت

فَمَا يَصُدُّهُ ذٰلِكَ عَنْ دِيْنِهِ وَيُمْشَطُ بِأَمْشَاطِ الْحَدِيْدِ

عذاب هم هغه د خپل دين نه نه شو ګرځولې او يو سړې هغه وو چې د هغه په جسم به د اوسپنې تيزه ګومنز او چلولې شوه

مَا دُوْنَ لَحْمِهِ مِنْ عَظْمٍ وَّ عَصَبٍ وَمَا يَصُدُّهُ

چې غوښې نه لاندې هډوکو او پلو پورې به څيره شو ليکن دې سخت ترين عذاب هم هغه د خپل

---

(1) اخرجه البخاري في صحيحه ۶/۶۱۰ رقم الحديث ۳۵۹۵ وأحمد في المسند ۴/۲۵۷.

| ذٰلِكَ عَنْ دِيْنِهٖ وَاللهِ لَيُتِمَّنَّ هٰذَا الْأَمْرُ |
|---|
| دین نه ګرځولې نه شو قسم په الله دا دین به درجه کمال ته رسیږي او تاسو به د مصیبتونو او پریشانئ ددې |
| حَتّٰى يَسِيْرَ الرَّاكِبُ مِنْ صَنْعَاءَ |
| ختمیدونکې دَور نه روسته د آسانئ او اطمینان هغه زمانه ووینئ چې یو سړې به د صنعاء نه |
| إِلٰى حَضْرَمَوْتَ لَا يَخَافُ إِلَّا اللهَ أَوْ |
| حضرموت پورې تنها سفر کوي او د الله نه علاوه به دهیچا نه نه ویریږي یا دا چې یو سړې ته به |
| الذِّئْبَ عَلٰى غَنَمِهٖ وَ لٰكِنَّكُمْ تَسْتَعْجِلُوْنَ . رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ[1] |
| دخپلو بزو باره کې د شرمخانو نه هیڅ خطره او خوف نه وي لیکن تاسو جلتي کوئ. |

**توضیح** : منشار: آرې ته منشار وایې . **(یمشط)** کمنځولو ته وایې ، د اوسپنې ګومنځه مراد ده ، **(و عصب)** پلو ته ویل کیږي یعنې د اوسپنې تیره ګومنځه به د هغه کس د هډوکو او پلو په مینځ کښې چلول کیدله چې په دې سره به غوښه ختمه شوه هډوکي به پاتې شول مګر دغه مصیبت به هغه کس په دین باندې د عمل کولو او د هغه د خپلولو نه منع نکړلو ، حضور ﷺ په دې حدیث کښې خپل امت ته په مصائبو باندې د صبر کولو او د دین لپاره د امتحانونو نه د تیریدلو تعلیم ورکړې دی او د استقامت هدایت یې کړې دی او قسم کولو سره یې وفرمایل چې د دې په برکت به یو مثالي امن راځي تاسې تلوار مه کوئ .

## یو خوب او پیشنګوئي

| ﴿۸﴾ وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَدْخُلُ عَلٰى أُمِّ حَرَامٍ بِنْتِ مِلْحَانَ |
|---|
| او حضرت انس رضي الله عنه وایي رسول الله ﷺ به اُم حرام بنت ملحان رضي الله عنها کره تلو چې د |
| وَكَانَتْ تَحْتَ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ فَدَخَلَ |
| حضرت عباده بن صامت رضي الله عنه ښځه وه یو ورځ حسبِ معمول حضور ﷺ ام حرام رضي الله عنها کره تشریف راوړو |
| عَلَيْهَا يَوْمًا فَأَطْعَمَتْهُ ثُمَّ جَلَسَتْ تَفْلِيْ رَأْسَهٗ |
| نو اُم حرام رضي الله عنها ورباندې طعام وخوړلو بیا د رسول الله ﷺ په سر مبارک کې د سپږو کتلو د پاره کیناسته په دې |

---

[1] اخرجه البخاري في صحيحه ۶/۶۱۹ رقم الحديث ۳۶۱۲ وأحمد في المسند ۶/۳۹۵.

فَنَامَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ اسْتَيْقَظَ وَهُوَ يَضْحَكُ

دوران کښې حضور ﷺ اوده شو بيا څه وقت روسته حضور ﷺ په خندا سره بيدار شو

قَالَتْ فَقُلْتُ مَا يُضْحِكُكَ يَا رَسُوْلَ اللهِ

ام حرام بيان وکړو ما چې حضور ﷺ هغه حالت کښې په خندا اوليدلو نو پوښتنه مې ترينه وکړه يارسول الله! تاسو

قَالَ أُنَاسٌ مِّنْ أُمَّتِيْ عُرِضُوْا عَلَيَّ

په څه باندې وخندل؟ وې فرمائيل په خوب کښې ځما د امت يو جماعت په داسې حال کښې ځما مخې ته راوستل شو

غُزَاةً فِيْ سَبِيْلِ اللهِ يَرْكَبُوْنَ ثَبَجَ هٰذَا الْبَحْرِ مُلُوْكًا عَلَى الْأَسِرَّةِ

چې هغوئ د الله! په لار کښې جهاد کوي او په سمندر کښې داسې سفر کوي لکه بادشاه چې په خپل تخت وي

أَوْ مِثْلَ الْمُلُوْكِ عَلَى الْأَسِرَّةِ فَقُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللهِ

يا داسې يې وفرمائيل لکه چې د بادشاهانو په شان په تخت جلوه ګر وي ما عرض وکړو يارسول الله!

أُدْعُ اللهَ أَنْ يَّجْعَلَنِيْ مِنْهُمْ

د الله! نه دعا وغواړئ چې په هغه مجاهدينو کښې چې د سمندر سينه شلولو سره د الله! په لار کښې وځي ما هم په هغوئ کښې شامله

فَدَعَا لَهَا ثُمَّ وَضَعَ رَأْسَهُ

کړي حضور ﷺ د ام حرام په حق کښې دعاء وکړله دې نه روسته حضور ﷺ په بالښت سر مبارک ايښودلو

فَنَامَ ثُمَّ اسْتَيْقَظَ وَهُوَ يَضْحَكُ فَقُلْتُ

سره بيا اوده شو څه ساعت روسته بيا حضور ﷺ په خندا سره را بيدار شو ما عرض وکړو

يَا رَسُوْلَ اللهِ مَا يُضْحِكُكَ قَالَ أُنَاسٌ

يارسول الله! تاسو اوس ولې وخندل؟ وې فرمائيل اوس بيا په خوب کښې ځما امت کښې څه خلق

مِّنْ أُمَّتِيْ عُرِضُوْا عَلَيَّ غُزَاةً

ځما مخې ته داسې حال کښې پيش شول چې هغوئ د الله ! په لار کښې جهاد کوئی څرنګه چې

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| فِيْ | سَبِيْلِ | اللهِ | كَمَا | قَالَ | فِي | الأَوْلى |

حضور ﷺ په مخکني وار فرمائيلي وودا واريې هم هغه الفاظ ارشاد وفرمائيل ما ددې خبرې

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| فَقُلْتُ | يَا | رَسُوْلَ | اللهِ | أُدْعُ | الله |

اوريد وسره دا وارهم بيا عرض وکړو يارسول الله! تاسود الله ! نه دعا وغواړئ چې هغه مجاهدينو

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| أَنْ | يَجْعَلَنِيْ | مِنْهُمْ | قَالَ | أَنْتِ | مِنَ | الأَوَّلِيْنَ | فَرَكِبَتْ | أُمُّ | حَرَامٍ |

کې ما هم شامله کړي حضور ﷺ وفرمائيل ته په مخکنی جماعت کې يې نو ام حرام د

| | | | |
|---|---|---|---|
| اَلْبَحْرَ | فِيْ | زَمَنِ | مُعَاوِيَةَ |

حضرت معاويه په زمانه کې د جهاد په غرض بحري سفر وکړو او کوم وقت چې سمندر نه راووتله

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| فَصُرِعَتْ | عَنْ | دَابَّتِهَا | حِيْنَ | خَرَجَتْ |

نو په څاروي سوره شوه نو ناڅاپه د څاروي د شا نه په ځمکه راولويده او د الله ! په لار کې يې د

مِنَ الْبَحْرِ فَهَلَكَتْ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.[1]

د شهادت مرتبه پيدا کړه ددې دنيا نه يې سفر وکړو.

**توضيح** : **(تفلى رأسه)** يعنې حضرت ام حرام بنت ملحان رضي الله عنها د حضور ﷺ په سر کې سپږې کتلې، اول دا خبره زده کړه چې حضرت ام حرام رضي الله عنها د حضور اکرم ﷺ رضاعی خاله یا عمه و. مخکې دا خبره په تفصيل سره ليکل شوې ده چې ام سليم رضي الله عنها او ام حرام رضي الله عنها دواړه انصاری ښځې وې، په مدينه منوره کښې هغوی د حضرت آمنې يا عبد الله صاحب سره شودې رودلي وې، لهذا دغه ښځې د حضور ﷺ د محارمو نه وې. د حضور اکرم ﷺ په جسم کښې به سپږې نه وې نو لټو يو شی دی او پيدا کيدل بل شی دی. **(ثبج)** د سمندر په مينځ کښې چې کومې غټې چپې وي او بی انتها اوبه وي هغې ته ثبج وايي، مراد د سمندر سينه او مينځ دی. **(او مثل الملوک)** دا شک د راوی نه راغلو يعنې په داسې حال کښې به سورېږي لکه څنګه چې بادشاهان په خپلو تختونو باندې سورېږي. **(فصرعت)** د سورلی نه غورځيدلو ته صرع ويل کيږي. **(حين خرجت)** يعنې د بحر سفر مکمل کولو باندې چې

(1) اخرجه البخاري في صحيحه ۶/۱۰ رقم الحديث ۲۷۸۸ ومسلم في صحيحه ۳/۱۵۱۸ رقم الحديث (۱۶۰ .۱۹۱۲)

ساحل ته راغله او په خپلې سورلۍ باندې سوره شوه نو د سورلۍ د ملا نه لاندې وغورځیده او شهیده شوه.
د بحری کشتۍ چلولو او په بحر کښې د جهاد کولو ابتداء سیدنا حضرت معاویه رَضِیَ اللّٰہُ عَنْہُ کړې ده فرضی الله عنه وعنا وعن جمیع الصحابة.

## د حضور صَلَّی اللّٰہُ عَلَیْہِ وَسَلَّمَ د فصاحت او بلاغت اثر

﴿۹﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ اِنَّ ضِمَادًا قَدِمَ مَكَّةَ وَكَانَ مِنْ أَزْدِ شَنُوْءَةَ

او ابن عباس رَضِیَ اللّٰہُ عَنْہُ وایي چې أَزْدِ شَنُوْءَةَ سره تعلق لرونکی یو سړی چې د هغه نوم ضماد وو د

وَكَانَ يَرْقِيْ مِنْ هٰذَاالرِّيْحِ فَسَمِعَ سُفَهَاءَ أَهْلِ مَكَّةَ

مکې ته راغی هغه به د میرګو پیریانو لرې کولو دم چُف کوه هرکله چې هغه د مکې د بیوقوفانو د ژبې نه دا واوریدل

يَقُوْلُوْنَ إِنَّ مُحَمَّدًا مَّجْنُوْنٌ فَقَالَ لَوْ أَنِّيْ رَأَيْتُ هٰذَا الرَّجُلَ

چې وائی محمد لیونی شوی دی نو هغه وویل که زه دا سړی یعني محمد ووینم نو علاج به ئې

لَعَلَّ اللّٰهَ يَشْفِيْهِ عَلٰى يَدِيْ

او کړم شاید الله! زما په علاج سره هغه ټیک کړی ابن عباس رَضِیَ اللّٰہُ عَنْہُ وائی دې نه روسته ضماد

قَالَ فَلَقِيَهُ فَقَالَ يَا مُحَمَّدُ إِنِّيْ أَرْقِيْ مِنْ هٰذَا

رسول الله صَلَّی اللّٰہُ عَلَیْہِ وَسَلَّمَ په خدمت کې راغې او هغه وویل اې محمد صَلَّی اللّٰہُ عَلَیْہِ وَسَلَّمَ! زه دم چُف په ذریعه

الرِّيْحِ فَهَلْ لَّكَ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

میرګې پیریان لرې کوم که تاسو غواړئ نو زه د خپل دَم چُف په ذریعه ستاسو علاج کوم حضور صَلَّی اللّٰہُ عَلَیْہِ وَسَلَّمَ ورته وفرمایل

إِنَّ الْحَمْدَ لِلّٰهِ نَحْمَدُهُ وَنَسْتَعِيْنُهُ مَنْ يَّهْدِهِ اللّٰهُ

تمام تعریفونه الله لره دی مونږ د هغه حمد او ثناء وایو او مدد غواړو هغه چې چاته نیغه لاره وښائی

فَلَا مُضِلَّ لَهُ وَمَنْ يُّضْلِلْ فَلَا هَادِيَ لَهُ

هغه هیڅوک ګمراه کولې نه شي او څوک چه ګمراه کړی هغه ته څوک هدایت نه شي کولې

وَأَشْهَدُ اَنْ لَّا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَحْدَهُ لَاشَرِيْكَ لَهُ

او زه ګواهي ورکوم چې د الله نه ماسوا بل معبود نشته هغه ایک یو دې هیڅوک د هغه شریک نشته

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وَاَشْهَدُ | أَنَّ | مُحَمَّدًا | عَبْدُهٗ | وَرَسُوْلُهٗ | أَمَّا | بَعْدُ. |

او زه ګواهي ورکوم چې محمد صَلَّی اللهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ د الله بنده او د الله رسول دې بیا ضما د دې نه روسته

فَقَالَ أَعِدْ عَلَيَّ كَلِمَاتِكَ هٰؤُلَاءِ فَأَعَادَهُنَّ عَلَيْهِ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

بې ساخته وویل چې دا جملې یو وار بیا زما په مخکې ارشاد او فرمایئ نبی عَلَیْهِ السَّلَامُ دا جملې بیا دوبارد

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ثَلَاثَ | مَرَّاتٍ | فَقَالَ | لَقَدْ | سَمِعْتُ | قَوْلَ الْكَهَنَةِ | وَقَوْلَ السَّحَرَةِ |

بلکې درې ځلې وفرمایلې ضماد وویل ما د کاهنانو اقوال اوریدلې دی ما د ساحرانو کلمات اوریدلې ما د

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وَقَوْلَ | الشُّعَرَاءِ | فَمَا | سَمِعْتُ | مِثْلَ | كَلِمَاتِكَ هٰؤُلَاءِ | وَلَقَدْ |

شاعرانو اشعار اوریدلې دی لیکن قسم په الله تر ننه ما ستاسو د دې کلماتو په شان کلام نه دې اوریدلې حقیقت خو دا دې

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| بَلَغْنَ | قَامُوْسَ | الْبَحْرِ | هَاتِ | يَدَكَ | أُبَايِعْكَ |

چې ستاسو دا کلمات د علم او کلام د دریاب انتهائی ژوروالی ته رسیدلې دی خپل لاس مبارک را مخکې کړئ زه د

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| عَلَى | الْإِسْلَامِ | قَالَ | فَبَايَعَهٗ. | رَوَاهُ | مُسْلِمٌ. |

اسلام بیعت کوم، ابن عباس رَضِیَ اللهُ عَنْهُ وائی ضماد د حضور صَلَّی اللهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ په لاس مبارک بیعت او کړو او مسلمان شو. [مسلم]

وَفِيْ بَعْضِ نُسَخِ الْمَصَابِيْحِ بَلَغْنَا نَاعُوْسَ الْبَحْرِ [1] وَذُكِرَ حَدِيْثَا

د مصابیح په بعضې نسخوکې د بلغن په ځاې بلغنا دی او د قاموس البحر په ځاې ناعوس البحر دې او

أَبِيْ هُرَيْرَةَ وَجَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ يَهْلِكُ كِسْرٰى وَالْآخَرُ لَتَفْتَحَنَّ عِصَابَةٌ

حضرت ابو هریره رَضِیَ اللهُ عَنْهُ روایت یهلک کسری الخ او د حضرت جابر ابن سمره رَضِیَ اللهُ عَنْهُ روایت لفتحن عصابة الخ

فِيْ بَابِ الْمَلَاحِمِ.

باب الملاحم کې نقل شوې دی.

**توضیح : ضماد:** په ضاد باندې کسره او ضمه دواړه دي ، میم ساکن دی ، په یو روایت کښې ضمام دی د دغه شخص تعلق د یمن د یوې مشهورې قبیلې (ازدشنؤه) سره وو ، دغه شخص د خپل وخت یو لوی طبیب او حکیم هم وو او د عملیاتو او دم چوب غټ ماهر هم وو ، د اسلام نه مخکې د هغه د حضور صَلَّی اللهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ سره معرفت هم وو ، چې کله حضور صَلَّی اللهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ ته نبوت ورکړی شو او دغه شخص مکې ته راغی نو اهل

---

(1) اخرجه مسلم في صحيحه ۲/۵۹۳ رقم الحديث (۴۶، ۸۶۸) واحمد في المسند ۱/۳۰۲.

مکه هغه ته په غتې پرو پیګنډې سره وویل چې (محمد) لیونی شوی دی .نو ضماد وویل کیدای شي هغه ته زما په دم و چوپ سره فائده ورسیږي ، په دغه غرض یې د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره ولیدل ، حضور اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په مختصرو الفاظو سره د هغه په مخ کښې د الله تعالی په وحدانیت باندې مشتمله خطبه

ولوسته،د خطبې په اوریدو سره دغه کس دهشت زده حیران پاتې شو او مسلمان شو .**من هذا الريح**:د جناتو د اثراتو نه چې کومه مریضتیا راشي هغې ته ریح ویل کیږي او دا هم ممکنه ده چې پخپله جنات په ریح سره یادشوي وي ځکه چې جنات هم د هوا پشان چلیدونکی مخلوق دی چې د هوا پشان په نظرهم نه راځي .

**قاموس البحر**:په بحرکې چې چیرته زیاتې اوبه وي او دېتولو نه زیات ژورمقام وي هغه زیاتواوبو ته قاموس ویل کیږي هغه د بحر د بیخ حصه وي ، په هر حال قاموس د بحر مینځ ته ویل کیږي یعنې دغه کلمات په لفظی او معنوی فصاحت او بلاغت کښې د بحر هغه ژور والي ته رسیدلي دي چې د هغه نه زیات ژوروالی هیڅ

ځای نشته.**هات**: یعنې لاس اوږد کړه او ما مسلمان کړه ، چې په دغه وخت کښې ضمام مسلمان شو ، ملا علی قاری رحمه الله لیکلي چې د نبوت د زمانې نه مخکې ضمام د حضور اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دوست وو .

**وهذا الباب خال عن الفصل الثاني**

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## دهرقل قصه

| |
|---|
| ﴿۱۰﴾ وَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ حَدَّثَنِيْ أَبُوْ سُفْيَانَ بْنُ حَرْبٍ مِنْ فِيْهِ إِلٰى فِيَّ |
| حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي ابوسفیان ابن حرب ماته مخامخ دا بیان وکړو چې د صُلح حدیبیه په |
| قَالَ انْطَلَقْتُ فِي الْمُدَّةِ الَّتِيْ كَانَتْ بَيْنِيْ وَ بَيْنَ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ |
| موده کې چې ځما او د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په منځ کې وو ما سفر وکړو او په اتفاق سره هغه وقت هرکله چې |
| قَالَ فَبَيْنَا أَنَا بِالشَّامِ إِذْ جِيْءَ بِكِتَابٍ مِّنَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ |
| د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نامه مبارکه هرقل د روم قیصر ته ورسیده زه د شام په ملک کې مقیم وم ابوسفیان |
| إِلٰى هِرَقْلَ قَالَ وَ كَانَ دِحْيَةُ الْكَلْبِيُّ جَآءَ بِهِ فَدَفَعَهُ إِلٰى |
| وویل نامه مبارکه یعني د اسلام د دعوت خط د حیه کلبي راوړی وه چې هغه د بُصرىٰ حاکم ته ورسوی |
| عَظِيْمِ بُصْرٰى فَدَفَعَهُ عَظِيْمُ بُصْرٰى إِلٰى هِرَقْلَ قَالَ هِرَقْلُ |
| او د بصرىٰ حاکم هغه دعوت نامه د هرقل په خدمت کې پیش کړه هرقل پوښتنه وکړه آیا دلته دې سړی |

| |
|---|
| هَلْ هَا هُنَا أَحَدٌ مِّنْ قَوْمِ هٰذَا الرَّجُلِ الَّذِيْ يَزْعَمُ أَنَّهُ نَبِيٌّ |
| د قوم څوک سړی دلته شته کوم چې د خپل نبي کېدو دعویٰ کوي د هغه عملي ورته وښودل هو د دي سړي د قوم سره تعلق لرونکی |
| قَالُوْا نَعَمْ فَدُعِيْتُ فِيْ نَفَرٍ مِّنْ قُرَيْشٍ |
| يو سړی شته چې دلته د تجارت په غرض راغلی دی نو زه د قريشو يو جماعت سره چې شل سړو باندې مشتمل وو د هرقل په |
| فَدَخَلْنَا عَلٰى هِرَقْلَ فَأُجْلِسْنَا بَيْنَ يَدَيْهِ فَقَالَ |
| دربار کې طلب شوم کوم وقت چې مونږ هرقل ته ورسيدو نو مونږ د هغه مخکې کېنول شو د ټولو نه مخکې هرقل پوښتنه |
| أَيُّكُمْ أَقْرَبُ نَسَبًا مِّنْ هٰذَا الرَّجُلِ الَّذِيْ يَزْعَمُ أَنَّهُ نَبِيٌّ قَالَ أَبُوْسُفْيَانَ |
| وکړه چې په تاسو کې څوک د دي سړي قريبي رشته دار شته کوم چې د نبوت مدعي دی ابوسفيان وويل |
| فَقُلْتُ أَنَا فَأَجْلَسُوْنِيْ بَيْنَ يَدَيْهِ |
| د دي سړي د ټولو نه قريبي رشته دار زه يم د دي نه روسته تنها زه د هرقل مخکې تخت شاهي ته قريب کېنول شوم |
| وَأَجْلَسُوْا أَصْحَابِيْ خَلْفِيْ ثُمَّ دَعَا بِتَرْجُمَانِهِ |
| او ځما ملګري ځما شاته کېنول شول بيا هرقل خپل مترجم طلب کړو چې عربي او رومي دواړه ژبې يې پيژندې |
| فَقَالَ قُلْ لَّهُمْ إِنِّيْ سَائِلٌ هٰذَا عَنْ هٰذَا الرَّجُلِ الَّذِيْ يَزْعَمُ |
| او هغه ته يې وويل ته د دي سړي ابوسفيان ملګرو ته ووايه چې زه د ابوسفيان نه د هغه سړي حالات معلوم وم |
| أَنَّهُ نَبِيٌّ فَإِنْ كَذَبَنِيْ فَكَذِّبُوْهُ |
| چې د نبوت دعویٰ کوي که دې ابوسفيان ما ته څه غلطه خبره وکړه نو تاسو خلق يې بې ترديد کوئ او ما ته صحيح خبره وکړئ |
| قَالَ أَبُوْ سُفْيَانَ وَايْمُ اللهِ لَوْلَا مَخَافَةُ أَنْ يُّؤْثَرَ عَلَيَّ الْكَذِبُ لَكَذَبْتُهُ |
| د ابوسفيان بيان دی قسم په الله که دا خوف نه وی چې زه به دروغ کو مشهور شم نو يقيناً ما به د هرقل مخکې دروغ ويلي وو |
| ثُمَّ قَالَ لِتَرْجُمَانِهِ سَلْهُ كَيْفَ حَسَبُهُ |
| د دي نه روسته هرقل خپل مترجم ته وويل چې ابوسفيان نه پوښتنه وکړه په ستاسو کې د دي سړي حَسب څرنګه دی؟ |

فِيْكُمْ قَالَ قُلْتُ هُوَ فِيْنَاذُوْ حَسَبٍ قَالَ

ابوسفيان وايي ما ورته وويل داسړی په مونږ کې حَسَب والادی بیا هرقل پوښتنه وکړه د دي

فَهَلْ كَانَ مِنْ آبَائِهِ مِنْ مَلِكٍ؟ قُلْتُ لَا قَالَ

سړي پلار نیکه کې څوک بادشاه تیر شوي دي ما ورته وویل هیڅ کله نه بیا هرقل پوښتنه وکړه او س چې هغه څه وايي

فَهَلْ كُنْتُمْ تَتَّهِمُوْنَهُ بِالْكَذِبِ قَبْلَ اَنْ يَّقُوْلَ مَا قَالَ قُلْتُ لَا

دي نه مخکې هم هغه چیرته داسي خبری کړي وي چې تا سو دروغ گڼلي وي ما ورته وویل نه بیا

قَالَ وَمَنْ يَّتَّبِعُهُ أَشْرَافُ النَّاسِ أَمْ ضُعَفَاؤُهُمْ

هرقل پوښتنه وکړه د هغه اتباع کونکی او په هغه ایمان راوړونکی کوم خلق دي شرفاء یا کمزوري او ضعیف خلق؟

قَالَ قُلْتُ بَلْ ضُعَفَاءُهُمْ قَالَ

ابوسفیان وویل ما جواب ورکړو د هغه پیروي کونکي کمزوري او ضعیف خلق دي هرقل پوښتنه وکړه

يَزِيْدُوْنَ أَمْ يَنْقُصُوْنَ قَالَ قُلْتُ لَا بَلْ

د دي سړي د تابعدار و تعداد ورځ په ورځ زیاتیږي یا کمیږي ابوسفیان وویل ما جواب ورکړو کمیږي؟

يَزِيْدُوْنَ قَالَ هَلْ يَرْتَدُّ أَحَدٌ مِّنْهُمْ

نه بلکه زیاتیږي بیا هرقل پوښتنه وکړه د هغه په دین کې داخلیدو نه روسته کوم کس د هغه نه خفه کیدو

عَنْ دِيْنِهِ بَعْدَ أَنْ يَّدْخُلَ فِيْهِ سَخْطَةً لَّهُ قَالَ قُلْتُ لَا

په وجه دین پریږدي هم که نه؟ ابوسفیان وویل ما جواب ورکړو نه هیڅوک د هغه دین نه پریږدي

قَالَ فَهَلْ قَاتَلْتُمُوْهُ قُلْتُ نَعَمْ قَالَ فَكَيْفَ

بیا هرقل پوښتنه وکړه آیا تا سو خلق هغه سره جنګ کوئ ما جواب ورکړو هو، بیا هرقل پوښتنه وکړه هغه سره ستاسو د

كَانَ قِتَالُكُمْ إِيَّاهُ قَالَ قُلْتُ تَكُوْنُ الْحَرْبُ بَيْنَنَا وَبَيْنَهُ

جنګ آنجام څه وي ابوسفیان وویل ما جواب ورکړو څمونږ او د هغه په منځ کې کېدونکی جنګ د

سِجَالًا يُصِيبُ مِنَّا وَ نُصِيبُ مِنْهُ قَالَ

دوو بوقو په شان وي کله مونږ هغه ته شکست ورکړو او کله هغه مونږ ته شکست راکړي بیا هرقل پوښتنه

فَهَلْ يَغْدِرُ قُلْتُ لَا وَنَحْنُ مِنْهُ فِيْ هٰذِهِ الْمُدَّةِ

وکړه آیا هغه عهد شکني کوي ماورته وویل نه البته نن صبا ځمونږ اود هغه په منځ کې چې

لَا نَدْرِيْ مَا هُوَ صَانِعٌ فِيْهَا قَالَ وَاللّٰهِ مَا

کومه صلح ده د هغه باره کې نه شو ویلی چې د هغه نتیجه به څه وي ابوسفیان وایي قسم په الله

أَمْكَنَنِيْ مِنْ كَلِمَةٍ أُدْخِلُ فِيْهَا شَيْئًا غَيْرَ هٰذِهِ

صرف دایوه خبره داسي وه چې ما د خپلو جذباتو لاندې علاوه بله څه خبره ما د خپل طرف نه ونه کړه

قَالَ فَهَلْ قَالَ هٰذَا الْقَوْلَ أَحَدٌ قَبْلَهُ

کړي وه ددي نه بهرحال بیا د هرقل سوال دا وو آیا داسي خبره دي نه مخکې هم چا کړي ده د مشهورو

قُلْتُ لَا ثُمَّ قَالَ لِتَرْجُمَانِهِ قُلْ لَهُ إِنِّيْ سَأَلْتُكَ

پیغمبرانو ما جواب ورکړو نه. نو هرقل هغه خپل مترجم ته وویل چې ته دې ابوسفیان ته وایه چې

عَنْ حَسَبِهِ فِيْكُمْ فَزَعَمْتَ أَنَّهُ فِيْكُمْ ذُوْحَسَبٍ

ما ستاسو په منځ کې ددي سړي د حَسب باره کښې ستا نه پوښتنه وکړه او تا وښودل چې هغه حسب

وَكَذٰلِكَ الرُّسُلُ تُبْعَثُ فِيْ أَحْسَابِ قَوْمِهَا وَسَأَلْتُكَ

والا دی نو حقیقت دا دی چې رسول او نبي د خپل قوم د اشرافو نه وي، بیا ما پوښتنه وکړه چې د هغه

هَلْ كَانَ فِيْ آبَائِهِ مَلِكٌ فَزَعَمْتَ أَنْ لَا فَقُلْتُ

په پلرونو او نیکونو کې څوک بادشاه وو او تا وښودل چې هیڅوک نه نو ما خپل زړه کې وویل که

لَوْ كَانَ مِنْ آبَائِهِ مَلِكٌ قُلْتُ رَجُلٌ

د ده پلرونو نیکونو کې څوک بادشاه تیر شوی وی نو ما به دا ګڼله چې دا هم یو داسي سړی دی چې

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| يَطْلُبُ | مُلْكَ | آبَائِهِ | وَسَأَلْتُكَ | عَنْ | أَتْبَاعِهِ |

د خپل پلار نيکه د حکومت طالب دی بيا ما ستا نه پوښتنه کړي وه چې د ده اتباع پيروي کوونکي

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| أَضْعَفَاؤُهُمْ | أَشْرَافُهُمْ | أَمْ | فَقُلْتَ | بَلْ | ضُعَفَاؤُهُمْ |

خلق د خپل قوم شرفاء خلق دي يا کمزوري او ضعيف؟ او تا وښودل چې کمزوري خلق د ده تابعدار

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَهُمْ | أَتْبَاعُ | الرُّسُلِ | وَسَأَلْتُكَ | هَلْ | كُنْتُمْ |

دي نو حقيقت دا دی چې د پيغمبرانو تابعداران عام طور سره کمزوري او ضعيف خلق وي او ما ستا

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| تَتَّهِمُوْنَهُ | بِالْكَذِبِ | قَبْلَ | أَنْ | يَقُوْلَ | مَا | قَالَ |

نه پوښتنه کړي وه چې دا وخت هغه څه وايي دي نه مخکې آيا تاسو ته د ده دروغ ويلو تجربه شوې ده ؟

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فَزَعَمْتَ | أَنْ | لَا | فَعَرَفْتُ | أَنَّهُ | لَمْ | يَكُنْ | لِيَدَعَ | الْكَذِبَ | عَلَى |

او تا وښودل چې نه نو زه پوهه شوم چې دا ممکنه نده چې يو سړی دې خلقوته دروغ ويلو نه پرهيز

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| النَّاسِ | ثُمَّ | يَذْهَبَ | فَيَكْذِبَ | عَلَى | اللهِ | وَسَأَلْتُكَ | هَلْ |

کوي او د الله! په نسبت دي دروغ وايي ما پوښتنه کړې وه چې د ده په دين کې داخليدونکي

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| يَرْتَدُّ | أَحَدٌ | مِنْهُمْ | عَنْ | دِيْنِهِ | بَعْدَ | أَنْ | يَدْخُلَ | فِيْهِ | سَخْطَةً |

کله د ده نه خفه کېدو سره دا دين هم پرېږدي ؟ او تا خو دلې وه چې نه نو درحقيقت د ايمان دا حال دی

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| لَهُ | فَزَعَمْتَ | أَنْ | لَا | وَكَذٰلِكَ | الْإِيْمَانُ | إِذَا | خَالَطَ | بَشَاشَتُهُ |

چې هغه کله په زړونو کې ځاي ونيسي او روح د هغه د لذت او حلاوت خوږوالي سره آشنا شي نو بيا

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| الْقُلُوْبَ | وَ | سَأَلْتُكَ | هَلْ | يَزِيْدُوْنَ | أَمْ | يَنْقُصُوْنَ |

هيڅ کله ترينه نه جدا کېږي او ما ستا نه پوښتنه کړې وه چې د دې سړي د ملګرو تعداد ورځ په ورځ

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| فَزَعَمْتَ | أَنَّهُمْ | يَزِيْدُوْنَ | وَكَذٰلِكَ | الْإِيْمَانُ | حَتّٰى |

زياتيږي او که کميږي تا وويل زياتيږي نو په حقيقت کې دا د ايمان حال دی چې آخر تکميل او اتمام

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| يَتِمَّ | وَ | سَأَلْتُكَ | هَلْ | قَاتَلْتُمُوْهُ | فَزَعَمْتَ |

ته رسي او ما ستا نه پوښتنه کړې وه چې آیا تاسو خلق د ده سره جنګ جګړه کوئ؟ او تا ویلي

أَنَّكُمْ قَاتَلْتُمُوْهُ فَتَكُوْنُ الْحَرْبُ بَيْنَكُمْ وَبَيْنَهُ

وو هو جنګ ورسره کوو او د جنګ انجام د دوو بوقو په شان دی کله هغه تاسو ته مصیبت رسوئ

سِجَالًا يَنَالُ مِنْكُمْ وَتَنَالُوْنَ مِنْهُ وَكَذٰلِكَ الرُّسُلُ تُبْتَلٰى

او کله تاسو هغه ته مصیبت رسوئ نو حقیقت دادی چې د رسولانو امتحان دغه شان اخستی شي

ثُمَّ تَكُوْنُ لَهَا الْعَاقِبَةُ

لیکن آخري انجام رسولانو او د هغوئ تابعدارو ته کامله فتحه او نصرت حاصلیږي او د هغوئ دین

وَسَأَلْتُكَ هَلْ يَغْدِرُ فَزَعَمْتَ أَنَّهُ لَا يَغْدِرُ

خوریږي. او ما ستا نه پوښتنه کړې وه چې آیا داسړی عهد شکني؟ او تا جواب راکړی وو چې نه نو

وَكَذٰلِكَ الرُّسُلُ لَا تَغْدِرُ وَسَأَلْتُكَ هَلْ قَالَ هٰذَا الْقَوْلَ أَحَدٌ

دغه شان رسولان دهوکه نه کوي او ما در نه پوښتنه کړې وه چا کړي ده یعني د نبوت دعوی یې کړي

قَبْلَهُ فَزَعَمْتَ أَنْ لَا

ده؟ او تا جواب راکړی وو چې نه نو ما خپل په زړه کې وویل چې ستا په قوم کې د ده نه مخکې داسې

فَقُلْتُ لَوْ كَانَ قَالَ هٰذَا الْقَوْلَ أَحَدٌ قَبْلَهُ قُلْتُ

خبره که د ده نه مخکې چا دغه شان د نبوت دعوی کړې وی نو کېدی شي چې دا هم د مخکني سړي

رَجُلٌ اِئْتَمَّ بِقَوْلٍ قِيْلَ قَبْلَهُ قَالَ ثُمَّ قَالَ

پیروي کې دغه شان دعوی کوي د ابوسفیان بیان دی ددې نه روسته هرقل زما نه پوښتنه وکړه چې

بِمَا يَأْمُرُكُمْ؟ قُلْنَا يَأْمُرُنَا بِالصَّلَاةِ وَالزَّكَاةِ

داسړی تاسو ته د کومې خبرې حکم درکوي؟ ما ورته وویل هغه مونږ ته وایي چې مونځ کوئ زکات

وَالصِّلَةِ وَالْعَفَافِ قَالَ إِنْ يَكُ مَا تَقُوْلُ

ورکوئ رشته دارو سره محبت او نیک سلوک کوئ او حرامو څیزونو نه بچ شئ هرقل وویل که ستا

حَقًّا فَإِنَّهُ نَبِيٌّ وَقَدْ كُنْتُ أَعْلَمُ أَنَّهُ

بیان درست وي نو یقینًا داسړی پیغمبر دی او ماته د مخکې نه معلومه وه چې په آخره زمانه کې

خَارِجٌ وَلَمْ أَكُ أَظُنُّهُ مِنْكُمْ وَلَوْ

یو پیغمبر پیدا کېدونکی دی لیکن ځما دا خیال نه وو چې هغه به ستاسو په قوم کې پیدا کېږي که زه

أَنِّيْ أَعْلَمُ أَنِّيْ أَخْلُصُ إِلَيْهِ لَأَحْبَبْتُ

پوهیدی چې زه به هغوئ ته ورسیږم نو د هغوئ په خدمت کې به حاضر شوی وی او ملاقات به مي

لِقَائَهُ وَلَوْ كُنْتُ عِنْدَهُ

ورسره کړی وو دا به زما د پاره د ټولو نه زیاته خوښوونکې خبره وه او که زه د هغوئ په خدمت کې

لَغَسَلْتُ عَنْ قَدَمَيْهِ وَلَيَبْلُغَنَّ مُلْكُهُ

حاضر شوی وی نو د هغوئ دواړه خپې به مي ینځلې وای او زه تاته بنایم چې د هغوئ د حکومت

مَا تَحْتَ قَدَمَيَّ ثُمَّ دَعَا

او اقتدار دائره به دي ځمکې د شام او روم ملک ته را ورسي کومه چې ځما د قدمونو لاندې ده بیا

بِكِتَابِ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَرَأَهُ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. [1]

هرقل د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خط مبارک را وغوښتلو او وي لوستلو.

قَدْ سَبَقَ تَمَامُ الْحَدِيْثِ فِيْ بَابِ الْكِتَابِ إِلَى الْكُفَّارِ.

او دا حدیث روسته باب الکتاب الی الکفار کې پوره نقل شوی دی.

**توضیح** : **حدثنی ابوسفیان**: ابوسفیان رضی الله عنه خپله د غه قصه د اسلام قبلولو نه وروسته د حضرت ابن عباس رضی الله عنه په مخ کې بیان کړې ده. ددې قصې پس منظر دا رنګه دی چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د نبوت

---

(1) اخرجه البخاري في صحيحه ۱/۳۰ رقم الحديث ۶ ومسلم في صحيحه ۳/۱۳۹۳ رقم الحديث (۱۷۷۳.۷۳)

حاصليدو نه وروسته ديارلس كاله په مكه كښې تير كړل، بيا هغه مدينې ته هجرت وكړلو، په مدينه كښې د جهاد حكم راغى، د حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره كفارو د بدر په مقام كې جنګ وكړلو، جنګ احد، جنګ خندق او څو نور جنګونه يې وكړل، په شپږم هجري كې حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د عمرې كولو اراده وكړه مګر د حديبيه په مقام باندې د قريشو كفارو هغه او د هغه سره يو نيم زر صحابه كرام يې مكې ته د داخليدلو نه منع كړل، بيا د صلح حديبيه په نوم د جنګ بندى يوه معاهده وشوه چې په هغې كښې دا وليكل شول چې لس كاله به په خپل مينځ كښې جنګ نه كوو، ددې صلحې په وجه چې كله حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د اهل حجاز د جنګونو نه فارغه شو نو هغه صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د بهرنيو بادشاهانو په نومونو دعوتى خطونه وليږل، په دغه وخت كښې په دنيا باندې دوه لويو طاقتونو حكومت كولو، يو د اهل فارس سپر طاقت وو چې په نيمه دنيا باندې قابض وو بل طرفته د روم د سلطنت طاقت وو چې په باقى نيمه دنيا باندې قابض وو، د دوى دواړو په مينځ كښې به مسلح جنګونه كيدل، په يو جنګ كښې د فارس والاؤ روميانو ته شكست وركړلو او هغوى يې تبوته تبوته كړل، هرقل د خپل مركز نه وتښتيده او پټ شو، په دې موقع باندې هرقل نذر ومنلو چې كچيرې زه دوباره په خپلو علاقو باندې قابض شوم نو زه به د پياده حج لپاره بيت المقدس ته ځمه، نهه كاله بعد يو بل جنګ وشو چې په هغه كښې روميان غالبه شول او فارس ته يې شكست وركړلو، هرقل د خپل نذر پوره كولو لپاره بيت المقدس ته راغلى وو چې په دغه دوران كښې هغه ته د نبى مكرم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دعوتي خط ورسيده، هغه د نبى كريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په احوالو باندې پوهيدلو لپاره خپلو جاسوسانو ته وويل چې تاسو لږ معلومات وكړئ چې ددغه مدعى نبوت د قوم كوم كس كه زمونږ علاقې ته راغلى وي نو هغه زما سره ملاؤ كړئ، په دغه وخت كښې ابوسفيان د خپلې قافلې سره د تجارت په غرض باندې بيت المقدس ته راغلى وو، خلكو هغه د خپلو ملګرو سره د هرقل مخكې پيش كړلو، هرقل د ابوسفيان نه د حضور اكرم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ متعلق تقريبا يوولس سوالونه وكړل، ابوسفيان هم صحيح صحيح جوابونه وركړل، بيا هرقل د هغه په جواباتو باندې لږ تبصره وكړه، هرقل د رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د رشتينولي او د اسلام د حقانيت اعتراف وكړلو مګر مسلمان نشو، په زير بحث حديث كښې د همدغه پس منظر تفصيلات دي. **سجال:** د كوهي نه د اوبو ويستلو په وخت بوكه كله تشه ځي او كله ډكه راځي، همدغه مفهوم ته اشاره ده چې به جنګونو كې كله مونږ غالبه او كله هغه غالب راځي د **يصيب منا الخ** جمله د همدغه سجال د وضاحت لپاره ده. **(سخطة له)** يعني په اسلام كښې د كوم عيب په پيدا كولو سره كوم كس مرتد شوى نه دى، اګرچې د خپل غرض او لالچ لپاره ډير خلك مرتد شوي دي. **لم اك اظنه منكم:** هرقل د سابقه آسمانى صحائفو عالم هم وو دا كس نجومى هم وو او د تاريخ نه واقف هم وو، ويل كيږي چې د هغه سره د ټولو انبياء كرامو تصويرونه وو او د حضور اكرم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تصوير هم وو، په دغه وجه هغه ويلې وو چې د يو پيغمبر راتلل باقى دي مګر دلته هرقل د يو څه تعصب نه كار واخيستلو چې زما په خيال كښې دا نه وو چې دا به د عربو نه وي حالانكه هغه ته ښه معلومه وه چې نبى آخر الزمان به د بنى اسماعيل نه وي، د عربو نه به وي او يا كيدلى شي چې د هغه خيال دا وو چې اكثر او بيشتر انبياء د ابراهيم عَلَيْهِ السَّلَامُ د اولاد نه په بنو اسرائيلو كښې راغلي دي نو نبى آخر الزمان به هم د هغوى نه راځي.

# باب في المعراج
# د معراج بيان

قال الله تعالى: ﴿ سُبْحَانَ الَّذِي أَسْرَى بِعَبْدِهِ لَيْلًا مِنَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ إِلَى الْمَسْجِدِ الْأَقْصَى الَّذِي بَارَكْنَا حَوْلَهُ﴾ (بني اسرائيل) وقال الله تعالى: ﴿ مَا كَذَبَ الْفُؤَادُ مَا رَأَى﴾ (سورة النجم)

سريت من حرم ليلا الى حرم    كما سرى البدر في داج من الظلم

و بت ترقى الى ان نلت منزلة    من قاب قوسين لم تدرک ولم ترم

د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د مسجد حرام نه تر مسجد اقصى پورې چې کوم سفر شوی دی هغې ته (اسراء) ويل کيږي، د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ که فضائل وي يا د علامات نبوت سره متعلق واقعات وي يا د هغه معجزات وي د معراج ددې واقعې تعلق د تمامو مضامينو سره دی، چونکې د معراج واقعه د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د زندګۍ لويه واقعه ده او د هغه د نبوت ممتاز باب دی په دغه وجه د تاريخ نه علاوه د احاديثو په کتابونو کښې محدثينو هم دا په ځانته حيثيت سره بيان کړی دی. ددې واقعې لپاره په احاديثو کښې دوه لفظه استعمال شوي دي يو لفظ د (اسراء) دی چې دا په قرآن کښې هم ذکر شوی دی، دويم لفظ (معراج) دی چې د هغه ذکر په احاديثو کښې شو کرته واقع شوی دی.

(اسراء) د سير نه دی د شپې په ځمکه باندې سفر کولو ته ويل کيږي. د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ چې کوم سفر د مسجد حرام نه مسجد اقصى ته په شپه کښې شوی دی هغې ته اسراء ويل کيږي.

(معراج) د عروج نه دی عروج د ختلو په معنی سره دی، د مسجد اقصى نه تر آسمانونو او د آسمانونو نه تر لامکان پورې چې کوم سفر شوی دی هغه ته معراج وايي، په دې اطلاق کښې کومه قانوني يا شرعي پابندي نشته د يو لفظ په بل باندې اطلاق کيدلی شي البته دا شرعي مسئله ده چې د مسجد حرام نه تر مسجد اقصى پورې د معراج واقعه د قرآن کريم نه ثابته ده ددې نه منکر کافر کيږي، او د مسجد اقصى نه تر بره پورې سفر د احاديثو نه ثابت دی چې منکر يې ګمراه او بدعتي کيږي. حضور اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په حيات طيبه کښې په ډيرو معراجونو سره مشرف شوی چې په خوب کښې شوي دي ليکن جمهور امت په دې باندې متفق دی چې د کوم معراج ذکر په سورت بني اسرائيل کښې شوی هغه معراج په جسم عنصري سره په حالت ديدارۍ کښې شوی وو.

د حضور اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عمر مبارک د ۵۱ يا ۵۲ کالو وو چې په مکه مکرمه کښې د کفارو د لاسونو نه هغه ټول تکليفونه برداشت کړې وو، د انساني تصور نه بالاتر د مظالمو غرونه د قريشو کفارو په هغه باندې مات کړی وو، په شعب ابي طالب کښې تر درې کالو قيد او بند او د سخت

بایکاټ د صعوبتونو برداشت کولو نه بعد حضور صَلَّىٰ اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په دې خاطر د طائف سفر وکړلو چې کله د طائف قبائلي سردار مسلمان شو نو حضور صَلَّىٰ اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به مسلمانان د مکې نه طائف ته منتقل کړي او دغه رنګ به د مظالمو خاتمه وشي ، لیکن د طائف سردارانو د مکې د مشرانو نه د خوف په وجه د عربو د رواج برعکس انتهائی ظالمانه سلوک وکړلو ، د خبرو کولو نه يې انکار وکړلو او ماشومان او لیونیان يې په هغه پسې کړل او هغه يې په تیږو باندې ویشتلو .

خلاصه دا چې حضور صَلَّىٰ اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د ټولو لارو نه تیر شوی وو اوس د هغه ذات بابرکات ددې لپاره بلکل تیار شوی وو چې د احکم الحاکمین سره د راز او نیاز خبرې وشي ځکه چې کله د اوسپنې نه د اعلی زیور جوړول مقصود وي نو دغه اوسپنه د ګرمو بټیو نه تیریږي ، روح انسانی چې څومره د بدنی اثراتو نه آزادیږي هماغومره د هغه پرواز اوچت وي .

د طائف د سفر نه په حضور صَلَّىٰ اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ باندې د مصائبو انتهاء شوې وه ، چې کله د دنیا یو ادنی انسان د هغه سره د خبرو کولو نه انکار وکړلو نو الله تعالی هغه خپل طرفته وبللو تر څو هغه په ټولو رفعتونو ، عظمتونو او برکتونو سره ونازوي او دنیا والاؤ ته ووایي چې د کومې هستۍ سره چې تاسې خبرې کول نه غواړئ خالق کائنات په خپله د هغه سره همکلامه کیدل غواړي ، د راجح قول مطابق ۲۷/ رجب ۱۱سنه هـ کښې د حضور ﷺ د زندګۍ دغه عظیمه واقعه پیښه شوه او د مکې مکرمې نه حضور ﷺ د جبرائیل عَلَيْهِ السَّلَامُ او میکائیل عَلَيْهِ السَّلَامُ سره په براق باندې سور اول مسجد اقصی ته ورسیدو او د هغه ځای نه آسمانونو ته لاړلو او بیا د الله تعالی سره په لامکان کښې په عرش عظیم باندې همکلامه شو . په زیر بحث باب کښې ټول شپږ احادیث دي مګر بعضې ډیر اوږده دي په هغو کې په پوره تفصیل سره د معراج واقعه بیان شوې ده . په اوو اسمانونو کښې د کومو کومو انبیاؤ سره د حضور صَلَّىٰ اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ملاقات شوی دی ددې لپاره د (اعیاهما) الفاظ مد نظر ساتل پکار دي .

ددې جملې اول حرف چې د کوم نبی د نوم اول حرف وي د هغه نبی سره به په اول اسمان کښې ملاقات شوی وي ، همدارنګه ددې جملې دویم حرف چې د کوم نبی د نوم اول حرف وي د هغه نبی سره به په دویم آسمان کښې ملاقات شوی وي ، تر اووم آسمان پورې همدا ترتیب دی .

مثلا ددې جملې اول حرف الف دی نو په اول آسمان کښې د حضرت آدم علیه السلام سره ملاقات وشو چې د هغه د نوم اول حرف هم الف دی ، همدارنګه په دې جمله کې دویم حرف عین دی نو په دویم آسمان کې د حضرت عیسی عَلَيْهِ السَّلَامُ سره ملاقات شوی دی چې د هغه د نوم اول حرف عین دی ، همدارنګه ددې جملې دریم حرف یاء ده نو په دریم آسمان کې د حضرت یوسف عَلَيْهِ السَّلَامُ سره ملاقات شوی ، څلورم حرف الف دی نو په څلورم آسمان کې د حضرت ادریس عَلَيْهِ السَّلَامُ سره ملاقات

شوی دی . پنځم حرف هاء ده نو په پنځم آسمان کښې د حضرت هارون علیه السلام سره ملاقات شوی دی . شپږم حرف میم دی نو په شپږم آسمان کښې د حضرت موسی علیه السلام سره ملاقات شوی دی . د دې جملې اووم حرف الف دی او په اووم اسمان کښې د حضرت ابراهیم علیه السلام سره ملاقات شوی چې د هغه د نوم اول حرف الف دی . د معراج په شپږو حدیثونو کښې د دې باب اول حدیث چې د حضرت انس رضي الله عنه او مالک بن صعصعه رضي الله عنه نه مروی دی د ټولو نه زیات منضبط او مرتب دی د دغه حدیث په بنیاد باندې د (اعیاهما) جملې بنیاد دی .

## د معراج په واقعه باندې د ملحدینو اعتراضات

د معراج په واقعې باندې قدیم ملحدینو فلاسفو هم اعتراضونه کړي وو جدید ملحدین فلاسفه او سائنسدانان هم اعتراضونه کوي ، یو څو اعتراضونه مع جوابات ملاحظه کړئ .

**اعتراض نمبر ۱** : د معراج واقعه په جسم عنصری سره د بیداری په حالت کښې نه وه لکه د خوب واقعه وه ، د جسد عنصری واقعه څنګه کیدلی شي حالانکه پاس طبقات زمهریریه او طبقات ناریه دي چې د هغو نه تیریدل محال دي .

**جواب** : دا اعتراض غلط دی ځکه که د معراج واقعه په خوب کې وی نو الله په قرآن کریم کښې په دومره لوی اهتمام سره ولې بیان کړه ؟ چنانچې ارشاد وشو چې (د هر قسم عجز او نقص نه پاک ذات د شپې په لږه حصه کښې خپل خاص بنده د مسجد حرام نه تر مسجد اقصی پورې بوتللو ) په خوب کښې خو هر کس د دنیا د کونج کونج سفر کوي کله په بحرونو باندې پورې وځي او کله په هوا کښې پورته کیږي ، کله اسمانونو ته ځي کله په غرونو باندې خیژي په دې کښې د تعجب څه خبره وه او په دومره اهتمام سره یې د بیانولو څه ضرورت وو؟ او په دغه وخت کې د یو څو کچه عقیدو والا مسلمانانو د مرتد کیدلو څه خبره وه ؟ او په دې کښې د حضور صلی الله علیه وسلم ددې ویلو څه ضرورت وو چې (**ثم اصبحت بمکة**) کچیرې دا د خوب معامله وی نو حضور صلی الله علیه وسلم د مکې نه کله غائب شوی وو چې بیا یې سهار په مکه کښې تیر کړو ؟ معلومه شوه چې دا جسمانی سفر وو چې په بیداری کې وو چې د هغې په وجه اهل مکو د حد نه زیات شور وکړلو او دا خبره یقینی ده چې د خوب په واقعې باندې څوک تعجب نه کوي او نه د هغه په بحث کښې څوک پریوځي او نه د پریوتلو ضرورت وي ، دلته لفظ د عبد نه یواځې روح ته ویل کیږي او نه صرف بدن ته ویل کیږي بلکه د روح او بدن پر یوځای والی باندې د عبد د لفظ اطلاق کیږي ، باقی د طبقات ناریه او زمهریریه په اعتراض کښې اشاره کول هم غلط دي ځکه چې حضور اکرم صلی الله علیه وسلم سرکاری اعزازی میلمه وو نو الله تعالی هغه د زمهریریه وغیره طبقاتو نه محفوظ تیر کړلو ، دا بې وزنه اعتراض د بې وزنه خلکو کار دی . په اعتراض نمبر ۳ کې ددې جواب را روان دی . د نن صبا په دې

ټيکنالوجی دور کې ددې اعتراض حيثيت ختم شوی دی اوس کفار هم وايي چې مونږ پاس سپوږمۍ ته ختلي يو .

**اعتراض نمبر ۲** : په معراج باندې ملحدينو دويم اعتراض دا کړی دی چې دا پاس چې اسمان په نظر راځي دا اسمان نه دی بلکه نيلا رنګ دی چې د بعد مسافت په وجه سترګو ته آسمان معلوميږي چې کله اسمان نشته نو د معراج ټوله قصه نشته .

**جواب** : د ملحدينو دغه اعتراض هم غلط دی ځکه الله تعالی بار بار انسان په دغه علوی کائناتو کښې غور کولو ته متوجه کړی دی چې دا وګوره اسمان دی ، هغه وګوره ستوری او سپوږمۍ او لمر دي چې د الله تعالی د حکم مطابق چليږي ، د آسمان اوچتوالي ته وګوره ! هيڅ څيريوالی پکښې نشته د هغه لپاره څه ستن نشته ، کچيرې دغه اسمان نه وي نو الله تعالی د غور کولو لپاره انسان کوم شي ته متوجه کړی دی ؟

همدارنګه که دا نيلا رنګ وي آسمان نه وي نو مونږ وايو چې ددې د پاسه آسمان دی ، ستاسو سره ددې د نفي لپاره کوم دليل شته؟ د نن سبا په دې ماډرن دور کښې د ملحدينو دغه اعتراض هم ختم شوی بلکه اوس خو دغه ملحد پخپله د اسمان اعتراف کوي او هغه ته د تللو او اوسيدلو فضول خبرې هم کوي .

**اعتراض نمبر ۳** : ساينس دانان وايي چې پاس آسمانونو ته هيڅوک تللی نشي ځکه چې په لاره کښې طبقه زمهريريه او طبقه ناريه ده يعنې د اور ګرمه او د واورې يخه طبقه ده ، که څوک لاړ شي هلته به مړ شي لهذا د معراج سفر ممکن نه دی .

**جواب** : الله تعالی د معراج د واقعې په ابتداء کې لفظ د (سبحان) راوړی دی يعنې هغه پروردګار چې د هر قسمه عجز او عيب او د هر قسم نقص او کمزورۍ نه پاک دی ، هغه چې څه وغواړي کولی يې شي . دويمه خبره دا ده چې نن يو کمزوری انسان د دغه طبقاتو نه د بچ کيدو لپاره داسې آلات او اسباب جوړ کړي دي چې د دوی په قول د دغو آلاتو په استعمالولو سره انسان د دغه طبقاتو نه په حفاظت سره تيريدلی شي ، کچيرې يو کمزوری مخلوق د خپلو آلاتو په ذريعه د دغو طبقاتو د مضر اثراتو نه بچ کيدلی شي نو د قادر مطلق بادشاه لپاره څه مشکل دي چې هغه خپل ميلمه د دغو ټولو طبقاتو نه په حفاظت سره تير کړي ! دا اعتراض هم د نن سبا په دور کښې مهمل پاتې شوی دی .

**اعتراض نمبر ۴** : يو اعتراض چې د قديم او جديد ملحدينو له طرفه د مخکې زمانې نه راروان دی هغه دا دی چې د مسجد حرام نه تر مسجد اقصی پورې د ځمکې لار د يوې مياشتې مسافت دی او د ځمکې نه تر اسمان پورې د پنځه سوه کالو مسافت دی ، پاس د آسمانونو مسافت په زرهاؤ کلونه دی دومره لويه مسافه په يوه شپه کې څنګه طی کړی شوه دا ناممکنه ده ؟

**جواب** : د قدیم زماني فلاسفو لیکلي دي چې د حرکت د تیزی او سرعت سیر لپاره هیڅ حد مقرر نه دی د هر سریع الحرکة شی نه بعد هم ممکنه ده چې د دینه هم د زیات تیز حرکت والا شی راشي ، د نن نه څو سوه کاله مخکې چې هوایی جهاز جوړ شوی نه وو د چا په تصور کښې نه راتلله چې دومره سریع الحرکة شی به راشي چې د هغه په ذریعه به په څو ساعتونو کې انسان د دنیا د یو کونج نه بل کونج ته په هوا لاړ شي لیکن نن د غه سفر مشاهده شوی دی او په طیارو کې هم د ترقی د پاسه ترقی روانه ده او د حرکت تیزی د تیز نه تیزیږي، همدارنګه مونږ د پې په خپل جسم کښې دننه په خپلو سترګو باندې هم غور وکړو چې د هغو سفر څومره تیز دی په یو څو سیکنډو کښې دغه نظر تر آسمانه پورې هم ځي او واپس هم راځي، په یو څو سیکنډو کښې د الله تعالی ملائکه د آسمان نه دنیا ته راځي ! چې کله د الله تعالی په حکم سره ملائکه داسې کولی شي نو د صاحب معراج لپاره څه مشکل وو چې په یو څو لمحو کښې پاس آسمانونو ته لاړ شي خصوصا چې کله په خپله شاهی میلمه هم وي ؟ په حدیث کښې دي چې د حضور ﷺ سورلی دومره تیزه وه چې چیرته به د هغې نظر لګیده هلته به یې قدم هم لګیده ، همدارنګه د لمر شعاعګانو ته هم وګوره چې د آسمان نه ښکاره کیدلو سره په څو لمحو کښې د دنیا د کوم کونج نه تر کوم کونجه پورې رسیږي . همدارنګه د بجلۍ د کرنټ نظام ته وګوره که په مشرق کښې د هغه بټن ووهلی شي نو بغیر د کومې وقفې نه په مغرب کښې ګروپ روښانه کیږي ، همدارنګه د ریډیائي لاسلکی نظام مشاهده وکړه چې د مشرق نه مغرب ته بلا وقفه آواز رسیږي ! کچیرې د سرعت سیر دغه شواهد زمونږ په مشاهده کښې شته نو بیا په دې کښې د شک کولو څه ګنجائش شته چې د سید الاولین والاخرین په دغه مبارک سفر کښې دي د رفتار څه مشکل پیدا شي .په هر حال د یورپ او مغرب تعصب ته وګورئی چې کله یې د معراج د عظیمې معجزې او اعزاز نه انکار وکړلو نو د آسمانونو نه یې هم انکار وکړلو او د طبقات ناریه او طبقات زمهریریه مسائل یې راپورته کړل ، او چې کله یې د خپل مطلب خبره راغله نو په سپوږمۍ باندې یې د پلاټ اخیستلو منصوبې جوړې کړې :

فعین الرضا عن کل عیب کلیلة　　　ولکن عین السخط تبدي المساویا

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

## د معراج د واقعې تفصیل

| ﴿۱﴾ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ عَنْ مَالِكِ بْنِ صَعْصَعَةَ |
| --- |
| حضرت قتاده تابعي رحمه الله د حضرت انس ابن مالک نه او هغه د حضرت مالک ابن صعصعه نه روایت کوی |

أَنَّ نَبِيَّ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَدَّثَهُمْ عَنْ لَيْلَةِ

کوي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د اسراء او د معراج د شپې د احوالو او واقعاتو تفصيل صحابو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ ته

أُسْرِيَ بِهِ قَالَ بَيْنَمَا أَنَا فِي الْحَطِيمِ وَرُبَّمَا قَالَ فِي الْحِجْرِ

بيانولو سره وفرمائيل نن شپه زه په حطيم کې پروت وم او په بعضې موقعو حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حجر کې د

مُضْطَجِعًا إِذْ أَتَانِيْ آتٍ فَشَقَّ

پريوتو ذکر وفرمايلو چې اچانک يو راتلونکی يعني فرشته ماته راغله او هغه ځما د جسم د دې ځاي

مَا بَيْنَ هٰذِهٖ إِلٰى هٰذِهٖ يَعْنِيْ مِنْ

نه دې ځاي پورې حصه وڅيرله راوي وايي د دې ځاي نه دې ځاي پورې د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مراد د مرۍ

ثُغْرَةِ نَحْرِهٖ إِلٰى شِعْرَتِهٖ فَاسْتَخْرَجَ

د لاندې نه زير ناف ويښتانو پورې حصه وه بيا حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمائيل هغه فرشتې دا رنګه ځما سينې

قَلْبِيْ ثُمَّ أُتِيْتُ بِطَسْتٍ مِّنْ ذَهَبٍ مَمْلُوْءٍ إِيْمَانًا

شلولو سره ځما زړه را اوښکلو دې نه روسته ځما مخکې د سروزرو لګن را وړل شو چې د ايمان نه ډک

فَغُسِلَ قَلْبِيْ ثُمَّ حُشِيَ

وو او په هغه کې ځما زړه وينځل شو بيا ځما زړه د الله ! د عظمت او محبت يا د علم او ايمان د دولت

ثُمَّ أُعِيْدَ وَفِيْ رِوَايَةٍ

نه ډک کړل شو او بيا زړه په سينه کې پر خپل ځاي کېښودل شو او په يوه روايت کې دا الفاظ دي چې

ثُمَّ غُسِلَ الْبَطْنُ بِمَاءِ زَمْزَمَ ثُمَّ مُلِئَ إِيْمَانًا وَحِكْمَةً

ځما په خيټه کې د ننه تمام څيزونه يا د زړه ځاي د زمزم په اوبو سره وينځل شو او هغه د ايمان او حکمت

ثُمَّ أُتِيْتُ بِدَابَّةٍ دُوْنَ الْبَغْلِ وَفَوْقَ الْحِمَارِ

نه بیا کړ ل شو دې نه روسته د سورلۍ یو حیوان را وستل شو چې د قچر نه کوچنی او د خره نه غټ وو

أَبْيَضُ يُقَالُ لَهُ الْبُرَاقُ يَضَعُ خَطْوَهُ عِنْدَ

دا حیوان د سپین رنګ وو او د هغه نوم بُراق وو او چې ترکومه ځایه پورې به د هغه نظر تلو د هغې

أَقْصٰى طَرْفِهِ فَحُمِلْتُ عَلَيْهِ فَانْطَلَقَ بِيْ جِبْرَئِيْلُ حَتّٰى

پورې به هغه یو قدم ایښوو ی زه پر هغه سور شوم او جبرائیل) زه روان کړم تر دې پورې چې زه د

أَتَى السَّمَاءَ الدُّنْيَا فَاسْتَفْتَحَ قِيْلَ مَنْ

دنیا آسمان ته ورسیدم جبرائیل د دروازې کولاولو غوښتل نو د پیره دارو فرشتو د طرف نه پوښتنه

هٰذَا قَالَ جِبْرَئِيْلُ قِيْلَ وَمَنْ مَّعَكَ

وشوه چې څوک یې ؟ جبرائیل) وویل زه جبرائیل یم بیا پوښتنه وشوه او ستا سره څوک دی؟

قَالَ مُحَمَّدٌ قِيْلَ وَقَدْ أُرْسِلَ إِلَيْهِ

جبرائیل جواب ورکړو محمد ﷺ دی د دې نه روسته پوښتنه وشوه د دوئ بللو د پاره څوک لیږل

قَالَ نَعَمْ قِيْلَ مَرْحَبًا بِهٖ

شوی وو جبرائیل جواب ورکړو بللو سره راغلی دی بیا هغه فرشتو وویل مونږ محمد ﷺ ته په خیر

فَنِعْمَ الْمَجِيْءُ جَاءَ فَفُتِحَ

راغلاست وایو راتلونکې ته دې راتلل مبارک وي د دې نه روسته د آسمان دروازه کولاؤه شوه او

فَلَمَّا خَلَصْتُ فَإِذَا فِيْهَا آدَمُ فَقَالَ

کوم وخت چې زه آسمان ته داخل شوم نو څه ګورم چې حضرت آدم) مخ ته ولاړ دی جبرائیل) وویل

هٰذَا أَبُوْكَ آدَمُ فَسَلِّمْ عَلَيْهِ فَسَلَّمْتُ عَلَيْهِ فَرَدَّ السَّلَامَ ثُمَّ قَالَ

دا ستا پلار ده ته سلام وکړه ما حضرت آدم) ته سلام وکړو هغوئ د سلام جواب راکړو او وې فرمايل

مَرْحَبًا بِالْاِبْنِ الصَّالِحِ وَالنَّبِيِّ الصَّالِحِ ثُمَّ صَعِدَ بِيْ حَتّٰى أَتَى السَّمَاءَ الثَّانِيَةَ

زه نيک ځوی او صالح پيغمبر ته پخير راغی وايم ددې نه روسته جبرائيل زه پورته دوهم آسمان ته راوستم

فَاسْتَفْتَحَ قِيْلَ مَنْ هٰذَا قَالَ جِبْرَئِيْلُ

جبرائيل د دروازې کولاول وغوښتل نو پوښتنه وشوه څوک دی؟ جبرائيل) وويل زه جبرائيل يم

قِيْلَ وَمَنْ مَّعَكَ قَالَ مُحَمَّدٌ قِيْلَ وَقَدْ أُرْسِلَ إِلَيْهِ

بيا پوښتنه وشوه تا سره څوک دی؟ هغه وويل محمد دی بيا پوښتنه وشوه دوئ را غوښتل شوي دي؟

قَالَ نَعَمْ قِيْلَ مَرْحَبًا بِهٖ

جبرائيل وويل هو بيا پهره دار فرشتو وويل مونږ محمد ته پخير راغلی وايو راتلونکې ته دې

فَنِعْمَ الْمَجِيْءُ جَاءَ فَفُتِحَ فَلَمَّا خَلَصْتُ

راتلل مبارک وي دې نه روسته د آسمان دروازه کولاؤه شوه کوم وقت چې زه په آسمان کې داخل شوم نو چې

إِذَا يَحْيٰى وَعِيْسٰى وَهُمَا ابْنَا الْخَالَةِ قَالَ

گورم حضرت يحيٰی عَلَيْهِ السَّلَامُ او حضرت عيسٰی عَلَيْهِ السَّلَامُ ولاړ دي چې يو د بل خاله زاد وروڼه وو جبرائيل عَلَيْهِ السَّلَامُ وويل

هٰذَا يَحْيٰى وَ هٰذَا عِيْسٰى فَسَلِّمْ عَلَيْهِمَا فَسَلَّمْتُ فَرَدَّا

دا يحيٰی عَلَيْهِ السَّلَامُ دی او دا عيسٰی عَلَيْهِ السَّلَامُ دی دوئ ته سلام وکړه ما دواړو ته سلام وکی او دواړو ځما د سلام جواب را کولو سره

ثُمَّ قَالَا مَرْحَبًا بِالْأَخِ الصَّالِحِ وَالنَّبِيِّ الصَّالِحِ ثُمَّ صَعِدَ بِيْ

وويل نيک بخت ورور او پيغمبرِ صالح ته مونږ پخير راغلاست وايو ددې نه روسته جبرائيل زه

إِلَى السَّمَاءِ الثَّالِثَةِ فَاسْتَفْتَحَ قِيْلَ مَنْ هٰذَا

آخستوسره پورته بوتلم او دریم آسمان ته راغلو هغه دروازه کولاؤولو د پاره وویل نو پوښتنه وشوه څوک دی؟

قَالَ جِبْرَئِيْلُ قِيْلَ وَمَنْ مَّعَكَ قَالَ مُحَمَّدٌ

جبرائیل عَلَیْهِ السَّلَامْ) وویل زه جبرائیل یم بیا پوښتنه وشوه تا سره څوک دی؟ هغه وویل محمد صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دی

قِيْلَ وَقَدْ أُرْسِلَ إِلَيْهِ قَالَ نَعَمْ قِيْلَ

بیا پوښتنه وشوه دوئ راغوښتل شوي دي؟ جبرائیل وویل هو بیا پیره دار فرشتو وویل مونږ محمد صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته

مَرْحَبًا بِهٖ فَنِعْمَ الْمَجِيْءُ جَاءَ فَفُتِحَ

پخیر راغلاست وایو راتلونکې ته دي راتلل مبارک وي، دي نه روسته د آسمان دروازه کولاؤه شوه

فَلَمَّا خَلَصْتُ إِذَا يُوْسُفُ قَالَ

زه چې په دریم آسمان کې داخل شوم نو چې ګورم حضرت یوسف عَلَیْهِ السَّلَامْ) مخ ته ولاړ دی جبرائیل وویل

هٰذَا يُوْسُفُ فَسَلِّمْ عَلَيْهِ فَسَلَّمْتُ عَلَيْهِ فَرَدَّ ثُمَّ قَالَ

دا یوسف دی ده ته سلام وکړه ماهغه ته سلام ووایه هغه ځما د سلام جواب راکولو سره وویل

مَرْحَبًا بِالْأَخِ الصَّالِحِ وَالنَّبِيِّ الصَّالِحِ ثُمَّ صَعِدَ بِيْ

زه نیک بخت ورور او پیغمبر صالح ته پخیر راغلئ وایم دي نه روسته جبرائیل زه پورته بوتلم

حَتّٰى أَتَى السَّمَاءَ الرَّابِعَةَ فَا سْتَفْتَحَ قِيْلَ مَنْ هٰذَا قَالَ

او څلورم آسمان ته راغلو هغه دروازه کولاؤولو د پاره وویل نو پوښتنه وشوه څوک دی؟ جبرائیل عَلَیْهِ السَّلَامْ)

جِبْرَئِيْلُ قِيْلَ وَ مَنْ مَّعَكَ قَالَ مُحَمَّدٌ قِيْلَ

وویل زه جبرائیل یم بیا پوښتنه وشوه تا سره څوک دی؟ هغه وویل محمد صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دی بیا پوښتنه وشوه

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَ | قَدْ | أُرْسِلَ | إِلَيْهِ | قَالَ | نَعَمْ | قِيْلَ | مَرْحَبًا | بِهِ |

دوئ راغوبنتل شوي دي؟ جبرائيل وويل هو بيا پيره دارو فرشتو وويل مونږ محمد صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته پخير راغلي وايو

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| فَنِعْمَ | الْمَجِيءُ | جَاءَ | فَفُتِحَ | فَلَمَّا |

راتلونکي ته دي راتلل مبارک وي دي نه روسته د آسمان دروازه کولاؤه شوه اوکله چې زه څلورم

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| خَلَصْتُ | فَإِذَا | إِدْرِيْسُ | فَقَالَ | هٰذَا | إِدْرِيْسُ |

آسمان کي داخل شوم نو حضرت ادريس عَلَيْهِ السَّلَامُ) مخ ته ولاړ دی جبرائيل عَلَيْهِ السَّلَامُ) وويل دا ادريس عَلَيْهِ السَّلَامُ) دی

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فَسَلِّمْ | عَلَيْهِ | فَسَلَّمْتُ | عَلَيْهِ | فَرَدَّ | ثُمَّ | قَالَ | مَرْحَبًا | بِالْأَخِ | الصَّالِحِ |

ده ته سلام وکړه ما هغه ته سلام وکړو اوهغه ما د سلام جواب راکولو سره وويل زه نيک ورور او پيغمبر صالح

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَالنَّبِيِّ | الصَّالِحِ | ثُمَّ | صَعِدَ | بِيْ | حَتّٰى | أَتَى | السَّمَاءَ | الْخَامِسَةَ |

ته پخير راغلی وايم د دې روسته جبرائيل پورته بوتلم او پنځم آسمان ته راغلو هغه دروازه کولاؤولو

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| فَاسْتَفْتَحَ | قِيْلَ | مَنْ | هٰذَا | قَالَ | جِبْرَئِيْلُ | قِيْلَ |

د پاره وويل نو پوښتنه وشوه څوک دی ؟ جبرائيل عَلَيْهِ السَّلَامُ) وويل زه جبرائيل يم بيا پوښتنه وشوه

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَمَنْ | مَّعَكَ | قَالَ | مُحَمَّدٌ | قِيْلَ | وَقَدْ | أُرْسِلَ | إِلَيْهِ | قَالَ | نَعَمْ |

تا سره څوک دی؟ هغه وويل محمد دی بيا پوښتنه وشوه دوئ راغوبنتل شوي دي؟ جبرائيل عَلَيْهِ السَّلَامُ وويل هو

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| قِيْلَ | مَرْحَبًا | بِهِ | فَنِعْمَ | الْمَجِيءُ |

بيا پيره دارو فرشتو وويل مونږ محمد ته پخير راغلی وايو راتلونکې ته دي راتلل مبارک وي دي نه روسته

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| جَاءَ | فَفُتِحَ | فَلَمَّا | خَلَصْتُ | فَإِذَا | هَارُوْنُ |

د آسمان دروازه کولاؤه شوه زه چې پنځم آسمان کې داخل شوم نو چې گورم حضرت هارون عَلَيْهِ السَّلَامُ) مخ ته ولاړ دی

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| قَالَ | هٰذَا | هَارُوْنُ | فَسَلِّمْ | عَلَيْهِ | فَسَلَّمْتُ | عَلَيْهِ | فَرَدَّ |
| جبرائيل وويل دا هارون دی ده ته سلام وکړه ما هغه ته سلام وکړو او هغه ځما د سلام جواب را کولو سره | | | | | | | |
| ثُمَّ | قَالَ | مَرْحَبًا | بِالْأَخِ | الصَّالِحِ | وَالنَّبِيِّ. | الصَّالِحِ | ثُمَّ | صَعِدَ | بِيْ |
| وویل زه نیک بخت ورور او پیغمبر صالح ته پخیر راغلی وایم ددي نه روسته جبرائیل زه پورته بوتلم | | | | | | | |
| حَتّٰى | أَتَى | السَّمَاءَ | السَّادِسَةَ | فَاسْتَفْتَحَ | قِيْلَ | مَنْ | هٰذَا | قَالَ | جِبْرَئِيْلُ |
| شپږم آسمان ته راغلو هغه دروازې کولا وول غوښتل نو پوښتنه وشوه څوک دی؟ جبرائیل) | | | | | | | |
| قِيْلَ | وَمَنْ | مَّعَكَ | قَالَ | مُحَمَّدٌ | قِيْلَ | وَقَدْ | |
| وویل زه جبرائیل یم بیا پوښتنه وشوه تا سره څوک دی؟ هغه وویل محمد ﷺ دی بیا پوښتنه وشوه دوئ | | | | | | | |
| أُرْسِلَ | إِلَيْهِ | قَالَ | نَعَمْ | قَالَ | مَرْحَبًا | بِهِ | |
| راغوښتل شوي دي؟ جبرائیل وویل هو بیا پیره دارو فرشتو وویل مونږ محمد ته پخیر راغلی وایو | | | | | | | |
| فَنِعْمَ | الْمَجِيءُ | جَاءَ | فَفُتِحَ | فَلَمَّا | | | |
| راتلونکې ته دي راتلل مبارک وي دي نه روسته د آسمان دروازه کولاؤه شوه کوم وقت چې شپږم | | | | | | | |
| خَلَصْتُ | فَإِذَا | مُوْسٰى | قَالَ | هٰذَا | مُوْسٰى | | |
| آسمان کې داخل شوم نو چې ګورم حضرت موسٰی عَلَیْهِ السَّلَامُ) ځما مخ ته ولاړ دی جبرائیل وویل دا موسٰی) عَلَیْهِ السَّلَامُ | | | | | | | |
| فَسَلِّمْ | عَلَيْهِ | فَسَلَّمْتُ | عَلَيْهِ | فَرَدَّ | ثُمَّ | قَالَ | |
| دی ده ته سلام وکړه ما هغه ته سلام وو ایه هغه ځما د سلام جواب راکولو سره وویل زه نیک بخت | | | | | | | |
| مَرْحَبًا | بِالْأَخِ | الصَّالِحِ | وَ | النَّبِيِّ | الصَّالِحِ | فَلَمَّا | تَجَاوَزْتُ |
| ورور او پیغمبر صالح ته پخیر راغلی وایم ددي نه روسته چې زه مخکې روان شوم نو | | | | | | | |

بَكٰى قِيۡلَ لَهٗ مَا يُبۡكِيۡكَ قَالَ أَبۡكِيۡ لِأَنَّ غُلَامًا بُعِثَ بَعۡدِيۡ

حضرت موسیٰ عَلَيۡهِ السَّلَامُ) پهژړا شو پوښتنه وشوه ته ولې ژاړې؟ حضرت موسیٰ عَلَيۡهِ السَّلَامُ ووېل يو ځلمی چې زما نه روسته

يَدۡخُلُ الۡجَنَّةَ مِنۡ أُمَّتِهٖ أَكۡثَرُ مِمَّنۡ يَدۡخُلُهَا مِنۡ أُمَّتِيۡ

رسول د نيا ته رالېږل شوی دی د هغه د امت خلق ځما د امت د خلقو نه ډېر زيات په جنت کې داخلېږي ،

ثُمَّ صَعِدَ بِيۡ إِلَى السَّمَاءِ السَّابِعَةِ

بهرحال شپږم آسمان نه تېر يدو سره جبرائيل زه پورته بوتلم او اووم آسمان ته راغلو هغه دروازې

فَاسۡتَفۡتَحَ جِبۡرَئِيۡلُ قِيۡلَ مَنۡ هٰذَا قَالَ جِبۡرَئِيۡلُ قِيۡلَ

کولا وول غوښتل نو پوښتنه وشوه څوک دی؟ جبرائيل) ووېل زه جبرائيل يم بيا پوښتنه وشوه

وَمَنۡ مَّعَكَ قَالَ مُحَمَّدٌ قِيۡلَ وَقَدۡ بُعِثَ إِلَيۡهِ قَالَ

تا سره څوک دی؟ هغه ووېل محمد دی بيا پوښتنه وشوه دوئ راغوښتل شوي دي؟ جبرائيل ووېل

نَعَمۡ قِيۡلَ مَرۡحَبًا بِهٖ فَنِعۡمَ الۡمَجِيۡءُ جَاءَ

هو بيا پيره دارو فرشتو ووېل مونږ محمد ته پخير راغلی وايو راتلونکې ته دې راتلل مبارک وي

فَلَمَّا خَلَصۡتُ فَإِذَا إِبۡرَاهِيۡمُ قَالَ هٰذَا

دې نه روسته د آسمان دروازه کولاؤه شوه او زه اووم آسمان کې داخل شوم نو چې ګورم حضرت

أَبُوۡكَ إِبۡرَاهِيۡمُ فَسَلِّمۡ عَلَيۡهِ فَسَلَّمۡتُ عَلَيۡهِ فَرَدَّ

ابراهيم ځما مخ ته ولاړ دی جبرائيل) ووېل دا ستا پلار ابراهيم دی ده ته سلام وکړه ما هغه ته

السَّلَامَ ثُمَّ قَالَ: مَرۡحَبًا بِالۡإِبۡنِ الصَّالِحِ وَالنَّبِيِّ الصَّالِحِ

سلام وکړو هغوئ د سلام جواب راکولو سره ووېل زه نيک بخت ځوی او نبي صالح ته پخير راغلی

ثُمَّ رُفِعْتُ إِلَى سِدْرَةِ الْمُنْتَهٰى فَإِذَا نَبِقُهَا

وايم دينه پس زه سدرة المنتهٰى ته ورسول شوم ما وليدل چې د هغه ميوې يعنې بيرې د مقام هجر د

مِثْلُ قِلَالِ هَجَرَ وَإِذَا وَرَقُهَا مِثْلُ آذَانِ الْفِيْلَةِ قَالَ

لويو لويو منګيو برابرې وې او د هغه پاڼې د فيل د غوږونو برابرې وې جبرائيل) هلته رسيدو سره وويل

هٰذَا سِدْرَةُ الْمُنْتَهٰى فَإِذَا أَرْبَعَةُ أَنْهَارٍ نَهْرَانِ بَاطِنَانِ وَنَهْرَانِ

دا سدرة المنتهٰى ده ماهلته څلور نهرونه وليدل دوه نهرونه خو د باطن وو او دوه نهرونه د

ظَاهِرَانِ قُلْتُ مَا هٰذَانِ يَا جِبْرَئِيْلُ قَالَ أَمَّا الْبَاطِنَانِ

ښكاره وو ماپوښتنه وكړه اى جبرائيل) ! دا دوه نهرونه څرنګه دي؟ جبرائيل وويل دا د باطن دوه

فَنَهْرَانِ فِي الْجَنَّةِ وَأَمَّا الظَّاهِرَانِ فَالنِّيْلُ وَالْفُرَاتُ ثُمَّ رُفِعَ لِيَ الْبَيْتُ الْمَعْمُوْرُ

نهرونه د جنت دي او دا دوه ښكاره نهرونه نيل او فرات دي ، بيا ماته بيت المعمور وښودل شو او

ثُمَّ أُتِيْتُ بِإِنَاءٍ مِّنْ خَمْرٍ وَّإِنَاءٍ مِّنْ لَّبَنٍ وَّإِنَاءٍ مِّنْ عَسَلٍ

د دې نه روسته يو ه پياله د شرابو يوه د شودو او يوه پياله د عسلو څما مخ ته راوړل شوه او ماته اختيار

فَأَخَذْتُ اللَّبَنَ قَالَ هِيَ الْفِطْرَةُ

راكړې شو چې دې دريواړو كې كومه پياله دې خوښه وي هغه واخله نو ما د شودو پياله واخسته

أَنْتَ عَلَيْهَا وَأُمَّتُكَ ثُمَّ

جبرائيل وويل شودو فطرت دى او يقينًا ته او ستا د امت خلق به په دې فطرت قائم وي د دې نه روسته

فُرِضَتْ عَلَيَّ الصَّلَوَاتُ خَمْسِيْنَ صَلَاةً كُلَّ يَوْمٍ

هغه مقام ته راغلې چې هلته په ما باندې په يوه ورځ او شپه كې پنځوس مونځونه فرض شوه بيا چې د

| عَلٰى | فَمَرَرْتُ | فَرَجَعْتُ |
|---|---|---|

ملاء اعلٰی سفر تمام شو اووم آسمان باندې حضرت ابراهیم ) نه رخصت کېدو سره شپږم آسمان

| قُلْتُ | أُمِرْتَ | بِمَا | فَقَالَ | مُوْسٰى |
|---|---|---|---|---|

باندې حضرت موسٰی ته راغلم هغه پوښتنه وکړه تا ته د کوم عبادت حکم شوی دی ما ورته وښودل

| أُمَّتَكَ | إِنَّ | قَالَ | يَوْمٍ | كُلَّ | صَلَاةً | بِخَمْسِيْنَ | أُمِرْتُ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|

په شپه او ورځ کې د پنځوسو مونځو نو حکم راته شوی دی حضرت موسٰی ) وویل ستا امت

| جَرَّبْتُ | قَدْ | وَاللهِ | وَإِنِّيْ | يَوْمٍ | كُلَّ | صَلَاةً | خَمْسِيْنَ | تَسْتَطِيْعُ | لَا |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|

به په شپه او ورځ کې پنځوس مونځونه به ادا نه کړي قسم په الله ما ستا نه مخکې خلق آزمائیلي

| إِسْرَائِيْلَ | بَنِيْ | وَعَالَجْتُ | قَبْلَكَ | النَّاسَ |
|---|---|---|---|---|

دي او د بني اسرائیلو د اصلاح او درستی سخت ترین کوشش مې کړی دی لیکن د هغوئ اصلاح ونه

| فَارْجِعْ | الْمُعَالَجَةِ | أَشَدَّ |
|---|---|---|

شوه باوجود د دې چې د هغوی زیات مضبوط وو ستا د امت نه نو ستا امت به څرنګه برداشت کړي

| لِأُمَّتِكَ | التَّخْفِيْفَ | فَسَلْهُ | رَبِّكَ | إِلٰى |
|---|---|---|---|---|

ته خپل پروردګار ته او لاړ شه او د خپل امت په حق کې د تخفیف او آسانی درخواست وکړه نو زه د

| عَشْرًا | عَنِّيْ | فَوَضَعَ | فَرَجَعْتُ |
|---|---|---|---|

خپل پروردګار بارګاه کې دوباره حاضر شوم او څما پروردګار څما عرض اورېدو باندې لس مونځونه

| مِثْلَهُ | فَقَالَ | مُوْسٰى | إِلٰى | فَرَجَعْتُ |
|---|---|---|---|---|

کم کړل بیا حضرت موسٰی ) ته راغلم لیکن هغه بیا هغه وویل څه چې یې مخکې ویلي وو نو زه

فَرَجَعْتُ فَوَضَعَ عَنِّيْ عَشْرًا فَرَجَعْتُ إِلٰى مُوْسٰى

دوباره بارگاه خداوندي کې حاضر شوم څلويښتو نه لس مونځونه نور هم کم شوه بيا حضرت موسٰى عَلَيْهِ السَّلَامُ

فَقَالَ مِثْلَهُ. فَرَجَعْتُ

ته راغلم هغه بيا هغه ووېل څرنگه چې يې مخکې وېلي وه نو زه بارگاه خداوندي کې حاضر شوم

فَوَضَعَ عَنِّيْ عَشْرًا فَرَجَعْتُ إِلٰى مُوْسٰى فَقَالَ مِثْلَهُ

او ديرشو نه لس مونځونه کم شول بيا زه حضرت موسٰى ) ته راغلم هغه بيا هغه ووېل څه چې يې

فَرَجَعْتُ فَوَضَعَ عَنِّيْ عَشْرًا فَأُمِرْتُ بِعَشْرِ صَلَوَاتٍ كُلَّ

مخکې وېلي وونو زه بارگاه خداوندي کې حاضر شوم نوشلو نه دلسو مونځونو حکم وشو په هره

يَوْمٍ فَرَجَعْتُ إِلٰى مُوْسٰى فَقَالَ مِثْلَهُ فَرَجَعْتُ

ورځ کې بيا حضرت موسٰى ته راغلم هغه بيا هغه ووېل څنگه چې يې مخکې وېلي وه نو زه بارگاه

فَأُمِرْتُ بِخَمْسِ صَلَوَاتٍ كُلَّ يَوْمٍ فَرَجَعْتُ

خداوندي کې حاضر شوم او د لسو نه آخر د پنځو مونځونو په شپه او ورځ کې د کولو حکم وشو بيا زه

إِلٰى مُوْسٰى فَقَالَ بِمَا أُمِرْتَ قُلْتُ أُمِرْتُ

حضرت موسٰى ته راغلم هغه پوښتنه وکړه اوس درته څه حکم شوی دی ما ورته ووېل اوس ماته په

بِخَمْسِ صَلَوَاتٍ كُلَّ يَوْمٍ قَالَ إِنَّ

شپه او ورځ کې د پنځو مونځونو حکم شوي دي حضرت موسٰى ) ووېل حقيقت دادی چې ستا د

أُمَّتَكَ لَا تَسْتَطِيْعُ خَمْسَ صَلَوَاتٍ كُلَّ يَوْمٍ وَإِنِّيْ قَدْ جَرَّبْتُ

امت اکثره خلق به په پوره پابندۍ سره شپه او ورځ کې پنځه مِنځه هم ونه کړي ما ستا سو نه مخکې

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| النَّاسَ | قَبْلَكَ | وَعَالَجْتُ | بَنِيْ | إِسْرَائِيْلَ | أَشَدَّ | الْمُعَالَجَةِ | |
| خلق آزمائیلي دي او د بني اسرائیلو د اصلاح او درست کیدو سخت کوشش مي کړی دی نو ته خپل | | | | | | | |
| فَارْجِعْ | إِلٰى | رَبِّكَ | فَسَلْهُ | التَّخْفِيْفَ | لِأُمَّتِكَ | | |
| پروردګار ته ورشه او خپل د امت د پاره پنځه مونځونو کې هم د تخفیف درخواست وکړه حضور صلی الله علیه وسلم | | | | | | | |
| قَالَ | سَأَلْتُ | رَبِّيْ | حَتّٰى | اسْتَحْيَيْتُ | | | |
| وفرمائیل ما بیا بیا خپل رب ته د تخفیف سوال کړی دی اوس ماته شرم راځي زه د خپل پروردګار | | | | | | | |
| وَلٰكِنِّيْ | أَرْضٰى | وَأُسَلِّمُ | قَالَ | فَلَمَّا | جَاوَزْتُ | نَادٰى | |
| دا حکم په رضا او رغبت سره قبلوم حضور صلی الله علیه وسلم فرمایي حضرت موسٰی سره دي ګفتګو نه روسته چې | | | | | | | |
| مُنَادٍ | أَمْضَيْتُ | فَرِيْضَتِيْ | | | | | |
| زه د هغه ځاي نه رخصت شوم نو د الله ! د طرف نه دا اواز راغی ما مخکې خو خپل فرض جاري کړل | | | | | | | |
| وَ | خَفَّفْتُ | عَنْ | عِبَادِيْ. | مُتَّفَقٌ | عَلَيْهِ.[1] | | |
| بیا د خپل خوږ رسول د پخاطر د پاره د خپلو بندګانو په حق کې مي تخفیف وکړو . [بخاري مسلم] | | | | | | | |

**توضیح** : (البراق) د رنګ پړقیدو په وجه ورته براق ویل کیږي یا د تیز رفتار په وجه ورته براق ویل شوی دی ، په پاکستان کښې په بعضو موټرو او نورو مقاماتو کښې یو تصویر وي چې د هغه عام جسم د آس پشان دی مګر د هغه لپاره وزرشته او د هغه سر د یوې ماډرن جینۍ دی ، په دغه حیوان باندې لیکل شوي وي (براق النبی ﷺ) کومو خلکو چې دغه تصویر جوړ کړی دی هغوی د کبیره ګناه ارتکاب کړی دی ، دغو بدبختانو د یوې ماډرن جینۍ تصویر جوړولو سره دا تأثر ورکړی دی چې د مسلمانانو نبی به دغه قسم سفر اختیارولو حال دا چې یو عام شریف انسان هم دغسې سورلي استعمالولی نشي .

(استفتح) ددې سوال او جواب نه معلومه شوه چې په آسمانونو باندې ډیره سخته پیره ده ! کوم

---

(۱) اخرجه البخاری فی صحیحه ۷/۲۱۰ رقم الحدیث ۳۸۸۷ ومسلم فی صحیحه ۱/۱۵۱ رقم الحدیث (۱۶۴.۲۶۵)

کفار چې دا وایي چې مونږ د آسمان نه پاس تلي یو یا تلل غواړو دا ټول دروغ وایي . (عیسی و یحیی) په آسمانونو کښې او همدارنګه په مسجد اقصی کښې چې دحضور ﷺ ملاقات د کومو پیغمبرانو سره شوی دی دا ټول د جسم مثالی سره وو ، صرف حضرت عیسی علیه السلام په خپل اصلی جسم سره وو چې په دویم آسمان باندې ورسره یوځای شوی وو . (بکی) د حضرت موسی علیه السلام ژړل د کوم حسد یا عداوت په وجه سره نه وو بلکه د شفقت په وجه دغه بې اختیاره ژړا هغې نقشې ته په کتلو سره وه او د هغه پس منظر مخې ته په راتللو سره وه چې د حضرت موسی علیه السلام څومره زیات محنتونه وو او د قوم یې څومره اوږده عمرونه وو مګر بیا هم د هغه منونکي کم وو او د حضور اکرم محمد عربی ﷺ منونکي زیات وو .

غلام دا الفاظ د تحقیر لپاره نه دی بلکه د هر نوجوان لپاره دغه الفاظ استعمالیږي . (**خمسین صلوة**) اول پنځوس لمونځونه فرض شول مګر په هغو باندې د عمل کولو نه مخکې د هغو حکم منسوخ شو البته د ثواب په اعتبار سره هماغه پنځوس اوس هم باقی دي ، په ځمکه باندې پنځه دي په اسمان کښې پنځوس دي .

**عالجت بني اسرائیل**: معالجه د مزاوله او ممارسة نه دی ، د اصلاح په غرض د آزمایلو او مشقت پورته کولو په معنی سره دی یعنې ما د بنی اسرائیلو سره د اصلاح په غرض سخت کوشش وکړو ، هغوی مې سخت امتحان کړل مګر هغوی د زیاتو طاقت پیدا نکړلو نو ستا امت به یې څنګه طاقت راوړي .

**فوضع عشرا**: سوال دا دی چې په عامو او مشهورو روایاتو کښې د پنځو پنځو لمونځونو د کمولو ذکر دی دلته د لسو لسو کمولو ذکر دی او دا تعارض دی. ددې جواب دا دی چې د اختصار لپاره د لسو لفظ ذکر شوی دی مراد پنځه پنځه دي یعنې دوه کرته پنځه پنځه کمولو ته لس ویلی شوي دي لکه په یو روایت کښې د شطرا لفظ هم راغلی دی د هغه نه هم پنځه مراد دي ، اوس سوال دا دی چې کله د الله تعالی په نزد باندې د ۴۵ لمونځونو کمول او معاف کول وو نو یو ځل یې ولې کم نکړل ، حضور ﷺ نهه ځله تګ راتګ ولې وکړلو ؟

ددې جواب دا دی چې شاید د بار بار ملاقات لپاره دا یو بهترین تدبیر وو لکه د اصل معراج او ملاقات نه وروسته نهه ځلې اضافه ملاقات وشو ، او حضور ﷺ په خپله تشریف یوړلو ، ملائکه یې واسطه جوړه نکړه ، یو شاعر ښه ویلي :

میں نے کہا میں خود جاؤں کہ نکلے مطلب دل کچھ نہ کچھ　　میرا جانا اور ہے قاصد کا جانا اور ہے

**امضیت فریضتی**: یعنې ما خپله فریضه په خپلو بندګانو باندې فرض کولو سره جاری کړې وه لیکن

خپل نبي په طفيل باندې مې په خپلو بندګانو باندې تخفيف وکړلو ، اوس په آسمانونو کښې د
واب په لحاظ سره دا پنځوس لمونځونه دي او د اداء کولو په اعتبار سره پنځه دي . اوس دلته
سوال دا دی چې د لمونځونو د کمولو تعليم او راهنمايي حضرت موسی عليه السلام څنګه وکړه
حالانکه د حضور ﷺ درجه لويه ده هغه ته په خپله دا احساس ولې ونشو؟
:دې جواب دا دی چې حضور اکرم ﷺ په انوارات الهيو کښې مستغرق وو لهذا د محبوب
له طرفنه چې څه ملاؤ شول هغه يې بلاچون او چرا قبول کړل او په حضرت موسی عليه السلام
باندې دغه استغراقي کيفيت نه وو په دغه وجه هغه دا راهنمايي وکړه ، همدارنګه د هغه واسطه د
خپل امت بني اسرائيلو سره راغلې وه ، هغه ته د الله تعالی د مخلوق عملي تجربه حاصله شوې وه په
دغه وجه يې راهنمايي وفرمايله .

## دمعراج دواقعې نور تفصيل

﴿۲﴾ وَعَنْ ثَابِتٍ نِ الْبُنَانِيِّ عَنْ أَنَسٍ أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

او حضرت ثابت بناني تابعي رحمه الله د حضرت انس رضي الله عنه نه روايت کوي چې رسول کريم ﷺ

قَالَ أُتِيْتُ بِالْبُرَاقِ وَهُوَ دَابَّةٌ أَبْيَضُ طَوِيْلٌ فَوْقَ الْحِمَارِ

وفرمائيل څما مخکښې براق راوستل شو چې د يو سپين رنګ اوږد قد والاحيوان وو د خره نه غټ او د

وَدُوْنَ الْبَغْلِ يَضَعُ حَافِرَهُ عِنْدَ مُنْتَهٰى طَرْفِهٖ

قچر نه ورکوتې وو تر کومه ځايه چې د هغه نظر رسيده ترهغه ځايه د هغه يو قدم راتلو زه په هغه

فَرَكِبْتُهُ حَتّٰى أَتَيْتُ بَيْتَ الْمُقَدَّسِ فَرَبَطْتُهُ بِالْحَلْقَةِ

سور شوم او بيت المقدس ته راغلم او ما هغه براق د مسجد په دروازه کې د هغه حلقې سره وتړه چې

الَّتِيْ يَرْبِطُ بِهَا الْأَنْبِيَاءُ قَالَ ثُمَّ دَخَلْتُ الْمَسْجِدَ

مخکښې به په هغه پورې انبياؤ خپل براقونه يا دا براق تړه حضور ﷺ وفرمائيل بيا زه مسجد اقصی

فَصَلَّيْتُ فِيْهِ رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ خَرَجْتُ فَجَآءَنِيْ جِبْرَئِيْلُ

ته داخل شوم او دوه رکعاته مونځ مې وکړو بيا زه د مسجد نه بهر را ووتم او جبرائيل) څما

إِنَاءٍ مِّنْ خَمْرٍ وَّ إِنَاءٍ مِّنْ لَّبَنٍ فَاخْتَرْتُ اللَّبَنَ فَقَالَ جِبْرَئِيْلُ

خکې یوه پیاله د شرابو او یوه پیاله د پیو راوړله ماچې د پیئو پیاله واخسته نوجبرائیل) وویل

اخْتَرْتَ الْفِطْرَةَ ثُمَّ عَرَجَ بِنَا إِلَى السَّمَاءِ

تا سو فطرت اختیار کړو او بیایې مونږ آسمان طرف ته وخیژولو ددې نه روسته حضرت انس رضي الله عنه د

وَ سَاقَ مِثْلَ مَعْنَاهُ قَالَ فَإِذَا أَنَا

حدیث هغه مضمون بیانولو سره چې په مخکې حدیث کې تیر شو وویل چې حضور صلی الله علیه وسلم وفرمائیل ما

بِآدَمَ فَرَحَّبَ بِيْ وَدَعَا لِيْ بِخَيْرٍ وَقَالَ

حضرت آدم) ولیدو هغوئ مرحبا هرکلی ووایه او زما د پاره یې دعائي خیر وکړله بیا حضور صلی الله علیه وسلم

فِي السَّمَاءِ الثَّالِثَةِ فَإِذَآ أَنَا بِيُوْسُفَ إِذَا هُوَ قَدْ أُعْطِيَ

د دوهم آسمان ذکر کولو سره وفرمائیل هلته ما حضرت یوسف) اولیدلو چې هغه ته نیم حسن

شَطْرَ الْحُسْنِ فَرَحَّبَ بِيْ وَدَعَالِيْ بِخَيْرٍ

ورکړی شوی وو هغه هم ماته مرحبا سترې مشي وویله او زما د پاره یې د خیر دعاء وکړه راوي یعني

وَلَمْ يَذْكُرْ بُكَاءَ مُوْسٰى

ثابت بناني رحمه الله د حضرت انس رضي الله عنه نه په دې روایت کې د حضرت موسٰی علیه السلام د ژړا ذکر ونه کړه او

وَقَالَ فِي السَّمَاءِ السَّابِعَةِ فَإِذَا أَنَا بِإِبْرَاهِيْمَ

حضور صلی الله علیه وسلم د اووم آسمان ذکر کولو سره ارشاد وفرمایلو چې هلته ما حضرت ابراهیم علیه السلام) اولیدلو

مُسْنِدًا ظَهْرَهُ إِلَى الْبَيْتِ الْمَعْمُوْرِ وَإِذَا هُوَ يَدْخُلُهُ

چې بیت المعمور سره یې تکیا لګولی ناست وو او بیت المعمورکې دطواف د پاره هره ورځ

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| كُلَّ | يَوْمٍ | سَبْعُوْنَ | أَلْفَ | مَلَكٍ | لَايَعُوْدُوْنَ | إِلَيْهِ |

اويا زره ۷۰۰۰۰ فرښتي داخليږي چې دوباره داخليدل ورته نصيب کيږي نه روسته زه سدرة المنتهٰی

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ثُمَّ | ذَهَبَ | بِيْ | إِلَى | السِّدْرَةِ | الْمُنْتَهٰى | فَإِذَا | وَرَقُهَا | كَآذَانِ | الْفِيَلَةِ |

ته بوتلل شوم چې اووم آسمان کې د بيرې يوه ونه ده ما وليدل چې د سدرة المنتهٰی پاڼي د فيل د

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَإِذَا | ثَمَرُهَا | كَالْقِلَالِ | فَلَمَّا | غَشِيَهَا | مِنْ | أَمْرِ | اللهِ |

غوږونو برابر او د هغه ميوې يعني بيرې د منګيو برابر وې بيا چې سدرة المنتهٰی ته د الله! په

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| مَا | غَشِيَ | تَغَيَّرَتْ | فَمَا | أَحَدٌ | مِّنْ | خَلْقِ | اللهِ |

حکم سره پټهونکی شی پټه کړله نو د هغه حالت بدل شو او حقيقت دادی چې د الله! مخلوق کې

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| يَسْتَطِيْعُ | أَنْ | يَّنْعَتَهَا | مِنْ | حُسْنِهَا | وَأَوْحٰى | إِلَيَّ | مَا |

هيڅوک هم د هغه خوبي او وصف کمال نشي بيانولی بيا الله! چې کومې وحي غوښتي زما طرف

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| أَوْحٰى | فَفَرَضَ | عَلَيَّ | خَمْسِيْنَ | صَلَاةً | فِيْ | كُلِّ | يَوْمٍ | وَّلَيْلَةٍ | فَنَزَلْتُ |

ته يې راوليږلي بيا په ما په ورځ شپه کې پنځوس مونځونه فرض شوه بيا زه هغه بلند مقام نه راکوز

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| إِلٰى | مُوْسٰى | فَقَالَ | مَا | فَرَضَ | رَبُّكَ | عَلٰى | أُمَّتِكَ | قُلْتُ |

شوم او حضرت موسٰی ته راغلم هغه پوښتنه وکړه ستا پروردګار ستا په امت څه فرض کړل؟ ما وويل

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| خَمْسِيْنَ | صَلَاةً | فِيْ | كُلِّ | يَوْمٍ | وَّلَيْلَةٍ | قَالَ | ارْجِعْ | إِلٰى |

شپه او ورځ کې پنځوس مونځونه حضرت موسٰی) ووبل خپل پروردګار ته بيرته لاړ شه او د

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| رَبِّكَ | فَسَلْهُ | التَّخْفِيْفَ | فَإِنَّ | أُمَّتَكَ | لَاتُطِيْقُ | ذٰلِكَ |

مونځونو تعداد کې تخفيف د کمی درخواست وکړه ځکه چې ستا امت دومره طاقت نه لري ما

| فَإِنِّيْ | بَلَوْتُ | بَنِيْ | إِسْرَائِيْلَ | وَخَبَرْتُهُمْ | قَالَ | فَرَجَعْتُ |
|---|---|---|---|---|---|---|

بني اسرائیل ازمائیلي دي او د هغوئ امتحان مي مخکې آخستی دی حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمائیل زه بارګاه

| إِلٰى | رَبِّيْ | فَقُلْتُ | يَا | رَبِّ | خَفِّفْ | عَلٰى | أُمَّتِيْ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|

خداوندي کې بیا حاضر شوم ما عرض وکړو ای پروردګاره! څما د امت په حق کې آساني وکړئی نو

| فَحَطَّ | عَنِّيْ | خَمْسًا | فَرَجَعْتُ | إِلٰى | مُوْسٰى |
|---|---|---|---|---|---|

الله! څما په وجه څما د امت په حق کې آساني فرمائیلو سره پنځه مونځونه کم کړل بیا زه حضرت

| فَقُلْتُ | حَطَّ | عَنِّيْ | خَمْسًا | قَالَ |
|---|---|---|---|---|

موسٰی عَلَيْهِ السَّلَامُ) ته راغلم او ورته مي وښودل چې څما په درخواست پنځه مونځونه کم شول نو

| إِنَّ | أُمَّتَكَ | لَاتُطِيْقُ | ذٰلِكَ | فَارْجِعْ | إِلٰى | رَبِّكَ |
|---|---|---|---|---|---|---|

حضرت موسٰی) عَلَيْهِ السَّلَامُ وويل ستا امت د دومره مونځونو اداکولو طاقت نه لري ته بیا خپل پروردګار ته ورشه او

| فَسَلْهُ | التَّخْفِيْفَ | قَالَ | فَلَمْ | أَزَلْ | أَرْجِعُ | بَيْنَ | رَبِّيْ | وَبَيْنَ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|

د مزید تخفیف درخواست وکړه حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمائیل دغه شان زه د خپل رب او حضرت موسٰی عَلَيْهِ السَّلَامُ په

| مُوْسٰى | حَتّٰى | قَالَ | يَا | مُحَمَّدُ | إِنَّهُنَّ |
|---|---|---|---|---|---|

منځ کې تلم راتلم تردي پوري چې آخري ځل هم تخفیف وشو نو پروردګار وفرمائیل ای محمد صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ!

| خَمْسُ | صَلَوَاتٍ | كُلَّ | يَوْمٍ | وَلَيْلَةٍ | لِكُلِّ | صَلَاةٍ | عَشْرٌ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|

شپه او ورځ کې فرض خو دا پنځه مونځونه دي لیکن په دي کې د هرمونځ ثواب د لسو مونځونو برابر

| فَذٰلِكَ | خَمْسُوْنَ | صَلَاةً | مَنْ | هَمَّ |
|---|---|---|---|---|

دی دغه شان دا پنځه مونځونه په ثواب کې د پنځوسو مونځونو برابر دي کوم سړي چې د نیکۍ قصد

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| بِحَسَنَةٍ | فَلَمْ | يَعْمَلْهَا | كُتِبَتْ | لَهُ | حَسَنَةً | فَإِنْ |

وکړو نو د هغه په حساب کې صرف د هغه قصد په وجه يوه نيکي ليکلی شي او که د قصد نه وروسته

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| عَمِلَهَا | كُتِبَتْ | لَهُ | عَشْرًا | وَمَنْ | هَمَّ | بِسَيِّئَةٍ |

هغه هغه نيکي وکړله نو د هغه په حساب کې هغه نيکي لس چنده ليکلی شي او کوم سړي چې د خراب

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| فَلَمْ | يَعْمَلْهَا | لَمْ | تُكْتَبْ | لَهُ | شَيْئًا |

کار قصد او اراده وکړه بيا هغه بد کار يې ونه کړو نو د هغه په حساب کې هغه بدي نشي ليکلی او

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| فَإِنْ | عَمِلَهَا | كُتِبَتْ | لَهُ | سَيِّئَةً | وَاحِدَةً |

که هغه د خپل قصد مطابق هغه خراب کار وکړو نو د هغه په حساب کې د هغه يوه بدي ليکلی شي

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| قَالَ | فَنَزَلْتُ | حَتَّى | انْتَهَيْتُ | إِلَى | مُوسٰى |

حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمائيل بيا زه د بارګاهِ الٰهي نه لاندې شېږم آسمان ته بيرته راغلم او حضرت موسٰى عَلَيْهِ السَّلَام ته

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| فَأَخْبَرْتُهُ | فَقَالَ | ارْجِعْ | إِلَى | رَبِّكَ |

مې صورت حال وخودو هغه بيا هغه مشوره راکړه چې خپل پروردګار ته ورشه او پنځه مونځونو کې

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فَسَلْهُ | التَّخْفِيْفَ | فَقَالَ | رَسُوْلُ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ | فَقُلْتُ |

هم د تخفيف درخواست وکړو حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمائيل ما حضرت موسٰى ته وويل زه بيا بيا

قَدْ رَجَعْتُ إِلٰى رَبِّيْ حَتَّى اسْتَحْيَيْتُ مِنْهُ. رَوَاهُ مُسْلِمٌ.[1]

خپل رب ته ورغلی يم اوس هغه ته په ورتلو کې ماته شرم راځي.

**توضيح**: عرج بنا: تر مسجد اقصى پورې سفر په براق باندې شوی دی بيا د آسمان نه د لفټ په

[1] اخرجه مسلم في صحيحه ۱/۱۵۴ رقم الحديث (۲۵۹. ۱۶۲) وأحمد في المسند ۵/۳۹۲.

شان يوه خود كاره زينه راغله په همدې كښې هغه پاس لاړو، په عرج كې همدغې زينې ته اشاره ده .

شطر الحسن: يعنې د نفس حسن نيمه حصه هغه ته وركړې شوې وه باقي نيمه حصه په ټولې دنيا باندې تقسيم كړې شوه ، يا دا مطلب دى چې د خپلې زمانې د ټولو خلكو نيم حسن حضرت يوسف عليه السلام ته وركړې شوى وو . وايې حضرت يوسف عليه السلام به خپل لاس كښې د شيشې بشان خپل مخ ليدلو مگر ددې باوجود د حضور ﷺ حسن زيات وو ځكه چې د حسن تعلق د اعضاؤ د اعتدال سره دى د اعضاؤ په اعتدال كښې هيڅوک د حضور ﷺ سره مقابله كولې نشي . همدارنگه حضور ﷺ وفرمايل (انا مليح و اخي يوسف صبيح) يعنې اصل ښايست په ملاحت كښې دى نه يواځې په صباحت كښې .

(السدرة) د بيرې ونې ته ويل كيږي ، (المنتهى) دا آخرى او انتهائى حد دى ددينه لاندې مخلوق پورته تللى نشي او د بره مخلوق لاندې نشي راتللى .

آذان الفيلة: د فيل غوږونه ډير غټ وي د دغې بيرې پاڼې همدارنگه غټې وې .

كالقلال: دا د قلة جمع ده غټ منگى ته وايي يعنې ميوه يې دومره غټه وه لكه غټ منگى چې وي .

## د معراج ذكر

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۳﴾ وَعَنِ | ابْنِ | شِهَابٍ | عَنْ | أَنَسٍ | قَالَ | كَانَ | أَبُوْ | ذَرٍّ |
| او حضرت شهاب زهري تابعي رحمه الله د حضرت انس ابن مالک نه روايت كوي هغه وويل | | | | | | | | |
| يُحَدِّثُ | أَنَّ | رَسُوْلَ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ | قَالَ فُرِجَ عَنِّيْ |
| حضرت ابوذر رضي الله عنه بيان كوى چې رسول الله ﷺ وفرمائيل زه په مكه كې خپل كوركې وم اچانک | | | | | | | | |
| سَقْفُ | بَيْتِيْ | وَأَنَا | بِمَكَّةَ | فَنَزَلَ | جِبْرَئِيْلُ | فَفَرَجَ | صَدْرِيْ | |
| د كوټې چت كولاؤ شو او حضرت جبرائيل عليه السلام نازل شولو هغه ځما سينه وشلوله او په آبِ زمزم سره هغه | | | | | | | | |
| ثُمَّ غَسَلَهُ | بِمَاءِ زَمْزَمَ | ثُمَّ | جَاءَ | بِطَسْتٍ | مِنْ | ذَهَبٍ | مُمْتَلِيءٍ | حِكْمَةً وَّإِيْمَانًا |
| وينځله بيا د سوني لگن يې راوړه چې د ايمان او حكمت نه ډک وو هغه ځما سينه كې واچول شو او | | | | | | | | |

فَأَفْرَغَهُ فِيْ صَدْرِيْ ثُمَّ أَطْبَقَهُ ثُمَّ أَخَذَ بِيَدِيْ

بيا ئې دا د سينې شليدل په يو ځاي كولو سره برابر كړو ددې نه روسته جبرائيل) ځما لاس اونيولو

فَعُرِجَ بِيْ إِلَى السَّمَاءِ فَلَمَّا جِئْتُ إِلَى السَّمَاءِ الدُّنْيَا قَالَ جِبْرَئِيْلُ

او زه يې آسمان طرف ته وخيژولم هركله چې زه د دنيا آسمان ته ورسيدم نو جبرائيل) د آسمان

لِخَازِنِ السَّمَاءِ افْتَحْ قَالَ مَنْ هٰذَا قَالَ هٰذَا جِبْرَئِيْلُ

داروغه ته ووېله دروازه كولاؤه كړه داروغه پوښتنه وكړه څوک دى؟ جبرائيل عَلَيْهِ السَّلَام) وويل زه جبرائيل

قَالَ هَلْ مَعَكَ أَحَدٌ قَالَ نَعَمْ مَعِيَ مُحَمَّدٌ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

يم بيا پوښتنه وشوه ستا سو سره نور څوک هم شته؟ جبرائيل) وويل هو ما سره حضرت محمد صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

فَقَالَ أُرْسِلَ إِلَيْهِ قَالَ نَعَمْ فَلَمَّا فَتَحَ

دى داروغه پوښتنه وكړه رابلل شوى دى؟ جبرائيل) وويل هو نو دروازه كولاؤه شوه هركله چې

عَلَوْنَا السَّمَاءَ الدُّنْيَا إِذَا رَجُلٌ قَاعِدٌ عَلَى يَمِيْنِهِ أَسْوِدَةٌ

مونږ د دنيا آسمان ته ورسيدو نو چې گورو مخ ته يو صاحب ناست دى او څه خلق د هغه ښي طرف ته

وَعَلَى يَسَارِهِ أَسْوِدَةٌ إِذَا نَظَرَ قِبَلَ يَمِيْنِهِ ضَحِكَ وَإِذَا نَظَرَ قِبَلَ شِمَالِهِ

او څه چَپ طرف ته ناست دي بيا ما داهم وليدل چې هغه خپل ښي طرف ته وگوري نو وخاندي او هركله

بَكَى فَقَالَ مَرْحَبًا بِالنَّبِيِّ الصَّالِحِ وَالْإِبْنِ الصَّالِحِ

چې چَپ طرف ته وگوري نو په ژړا سي وويل پيغمبر صالح او نيک بخت ځوی ته زه پخير راغلی وايم

قُلْتُ لِجِبْرَئِيْلَ مَنْ هٰذَا قَالَ هٰذَا آدَمُ وَهٰذِهِ الْأَسْوِدَةُ

ما جبرائيل) عَلَيْهِ السَّلَام نه پوښتنه وكړه دا څوک دى جبرائيل وويل دا آدم) دى او دا خلق چې د هغه ښي

عَنْ يَمِينِهِ وَعَنْ شِمَالِهِ نَسَمُ بَنِيهِ فَأَهْلُ الْيَمِينِ مِنْهُمْ

او چَپ طرف ته ناست دي د هغه د اولاد روحونه دي په دوئ کې چې کوم خلق ښي طرف ته ناست دي

أَهْلُ الْجَنَّةِ وَالْأَسْوِدَةُ الَّتِي عَنْ شِمَالِهِ أَهْلُ النَّارِ فَإِذَا نَظَرَ

هغه جنتيان دي او کوم خلق چې ترينه چَپ طرف ته ناست دي هغه دوزخيان دی ځکه حضرت آدم عَلَيهِ السَّلَامُ چې

عَنْ يَمِينِهِ ضَحِكَ وَإِذَا نَظَرَ قِبَلَ شِمَالِهِ بَكَى حَتَّى عُرِجَ بِيْ

ښي طرف ته وګوري نو خاندي او چَپ طرف ته چې وګوري نو ژاړي دي نه روسته جبرائيل عَلَيهِ السَّلَامُ) زه

إِلَى السَّمَاءِ الثَّانِيَةِ فَقَالَ لِخَازِنِهَا افْتَحْ فَقَالَ

آختو سره دوهم آسمان ته وختلو او هغه دروازه کولاؤولو د پاره وويل نو پيردار د هغه نه پوښتنه

لَهُ خَازِنُهَا مِثْلَ مَا قَالَ الْأَوَّلُ قَالَ أَنَسٌ فَذَكَرَ

وکړه کوم چې د مخکې آسمان داروغه کړي وه راوي وايې غرض دغه شان حضور صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

أَنَّهُ وَجَدَ فِي السَّمٰوَاتِ آدَمَ وَإِدْرِيسَ وَمُوسٰى

ټولو آسمانونو ته ورسيده او هلته حضرت آدم ) حضرت ادريس) حضرت موسی عَلَيهِمُ السَّلَامُ) او

وَعِيسٰى وَإِبْرَاهِيمَ وَلَمْ يُثْبِتْ كَيْفَ مَنَازِلُهُمْ

حضرت عيسىٰ عَلَيهِ السَّلَامُ) او حضرت ابراهيم) عَلَيهِ السَّلَامُ سره د ملاقات ذکريې وفرمايه خو د هغوي د منازلو او

غَيْرَ أَنَّهُ ذَكَرَ أَنَّهُ وَجَدَ آدَمَ فِي السَّمَاءِ الدُّنْيَا وَ

مقاماتو کيفيت او احوال يې بيان نه کړه صرف حضرت آدم عَلَيهِ السَّلَامُ ) سره مخکني آسمان باندې او

إِبْرَاهِيمَ فِي السَّمَاءِ السَّادِسَةِ قَالَ ابْنُ شِهَابٍ فَأَخْبَرَنِي ابْنُ حَزْمٍ

حضرت ابراهيم) عَلَيهِ السَّلَامُ سره شپږم آسمان باندې د ملاقات ذکريې وکړو ابن شهاب ؒ وايي ماته ابن حزم ؒ

أَنَّ ابْنَ عَبَّاسٍ وَّأَبَا حَبَّةَ الْأَنْصَارِيَّ كَانَا يَقُوْلَانِ قَالَ

وښودل چې حضرت ابن عباس رضي الله عنه او حضرت ابو حبه انصاري رضي الله عنه بيان وکړو رسول الله صلى الله عليه وسلم

النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ عُرِجَ بِيْ حَتّٰى ظَهَرْتُ لِمُسْتَوًى أَسْمَعُ فِيْهِ صَرِيْفَ

وفرمائيل بيا زه پورته بوتلل شوم تردې پورې چې يو هوار او بلند مقام ته ورسيدم هلته د قلمونو د

الْأَقْلَامِ وَقَالَ ابْنُ حَزْمٍ وَّأَنَسٌ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

ليکلو او ازونه راتلل ابن حزمؒ او حضرت انس رضي الله عنه دا بيان وکړو چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمائيل

فَفَرَضَ اللهُ عَلٰى أُمَّتِيْ خَمْسِيْنَ صَلَاةً فَرَجَعْتُ بِذٰلِكَ حَتّٰى مَرَرْتُ عَلٰى

بيا د الله ! د طرف نه ځما په امت پنځوس مونځونه فرض شوه نو زه بيرته راغلم ليکن په

مُوْسٰى فَقَالَ مَا فَرَضَ اللهُ لَكَ عَلٰى أُمَّتِكَ

حضرت موسٰى عليه السلام چې تير شوم نو هغه پوښتنه وکړه پروردګار ستا په ذريعه ستا په امت باندې څه شې فرض کړل

قُلْتُ فَرَضَ خَمْسِيْنَ صَلَاةً قَالَ فَارْجِعْ إِلٰى رَبِّكَ

ما ورته وويل پنځوس مونځونه يې فرض کړل هغه وويل خپل پروردګار ته واپس لاړ شه او په دې ځکه

فَإِنَّ أُمَّتَكَ لَا تُطِيْقُ ذٰلِكَ فَرَاجَعَنِيْ

ستا امت به دومره مونځونه اداء نه کړې شي دغه شان حضرت موسٰى عليه السلام) زه بارګاه رب العزت ته

فَوَضَعَ شَطْرَهَا فَرَجَعْتُ إِلٰى مُوْسٰى فَقُلْتُ

واپس کړم او په هغه کې د څه مونځونو کمی وشو بيا زه حضرت موسٰى عليه السلام ته راغلم او هغه ته مې

وَضَعَ شَطْرَهَا فَقَالَ رَاجِعْ رَبَّكَ

وښودل چې الله ! په هغوئ نه څه حصه معاف کړې ده حضرت موسٰى عليه السلام وويل خپل پروردګار ته بيرته

| فَإِنَّ | أُمَّتَكَ | لَا | تُطِيقُ | ذٰلِكَ | فَرَجَعْتُ | فَرَاجَعْتُ |
|---|---|---|---|---|---|---|

ورشه ځکه چې ستا امت د دومره مونځونو کولو هم طاقت نه لري زه بیا بیرته لاړم او مزید تخفیف د

| فَوَضَعَ | شَطْرَهَا | فَرَجَعْتُ | إِلَيْهِ | فَقَالَ | ارْجِعْ |
|---|---|---|---|---|---|

پاره مي عرض وکړو نو په هغه کې څه نور مونځونه کم شول د دي نه روسته بیا حضرت موسیٰ عَلَيْهِ السَّلَامُ) ته

| إِلٰى | رَبِّكَ | فَإِنَّ | أُمَّتَكَ | لَا | تُطِيقُ | ذٰلِكَ |
|---|---|---|---|---|---|---|

راغلم نو هغه وویل بیا خپل پروردګار ته ورشه ځکه چې ستا امت د دومره مونځونو کولو طاقت نه

| فَرَاجَعْتُهُ | فَقَالَ | هِيَ | خَمْسٌ | وَهِيَ |
|---|---|---|---|---|

لري نو زه بیا ولاړم او پروردګار ته نو پروردګار وفرمائیل فرض خو دا پنځه مونځونه دي لیکن د اجر

| خَمْسُونَ | لَا | يُبَدَّلُ | الْقَوْلُ | لَدَيَّ | فَرَجَعْتُ | إِلٰى | مُوسٰى |
|---|---|---|---|---|---|---|---|

او ثواب په اعتبار دا د پنځوسو مونځونو برابر دي ځما قول نه تبدیل کېږي زه بیا حضرت موسیٰ عَلَيْهِ السَّلَامُ ته

| فَقَالَ | رَاجِعْ | رَبَّكَ | فَقُلْتُ |
|---|---|---|---|

راغلم او هغه ته مي وښودل چې اوس پنځه مونځونه فرض پاتې شوي دي نو هغه بیا ماته بارګاهِ رب

| اسْتَحْيَيْتُ | مِنْ | رَبِّيْ | ثُمَّ |
|---|---|---|---|

العزت ته د ورتلو مشوره یې راکړله لیکن ما وویل اوس ماته د خپل پروردګار نه شرم راځي دي نه

| انْطَلَقَ | بِيْ | حَتّٰى | انْتَهٰى | بِيْ | إِلٰى | سِدْرَةِ | الْمُنْتَهٰى | وَغَشِيَهَا |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|

روسته حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمائیل زه سدرة المنتهیٰ ته بوتلل شوم چې په هغه دغه شان رنګ خورشوی

| أَلْوَانٌ | لَا | أَدْرِيْ | مَاهِيَ | ثُمَّ | أُدْخِلْتُ | الْجَنَّةَ | فَإِذَا |
|---|---|---|---|---|---|---|---|

وو چې د هغه باره کښې ماته هیڅ نه ده معلومه چې هغه څه شی وو دي نه روسته زه جنت ته بوتلل

فِيهَا جَنَابِذُ اللُّؤْلُؤِ وَ إِذَا تُرَابُهَا الْمِسْكُ . مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.[1]

شو م هلته ما د ملغلرو گنبده ولیده او دامي هم ولیدل چې د جنت خاوره مشکو وه.

**توضيح** : **سقف بيتي**: د حديث په رواياتو كښې اختلاف دی چې حضور صلی الله علیه وسلم د كوم ځای نه ملائكو اوچت كړی وو ، په بعضو رواياتو كښې د حطيم ذكر دی ، په بعضو كښې د زمزم ذكر دی ، په بعضو كښې د شعب ابی طالب ذكر دی . په زير بحث حديث كې د خپل كور ذكر دی نو ددې جواب دا دی چې حضور صلی الله علیه وسلم په دغه شپه د حضرت ام هانئ - په كور كښې اوده وو او دا كور په شعب ابی طالب كښې وو نو د كور د چت په لاره يې هغه پورته كړلو او په شعب ابی طالب باندې حطيم ته راوړلی شو او بيا د هغه ځای نه باب الشاميه طرفته چيرته چې زړه تركی آذان خانه ده هلته براق ولاړ وو د هغه ځای نه مسجد اقصی ته يوړلی شو نو هيڅ تعارض نشته . د تركی آذان خانې سره يوه ستن ده ، تركيانو په هغې باندې د كيكر د پاڼو نښې جوړې كړې دي ، په دې تعمير كښې دا تعبير او اشاره ده چې براق دلته تړلی شوی وو .

**اسودة**: دا د سواد جمع ده تورشي ته ويل كيږي،سواد د شخص په معنی سره دی،اسودة د اشخاصو په معنی سره دی ، مراد اولاد دی . **(فعرج بي)** يعنې د مسجد حرام نه تر مسجد اقصی پورې سفر كيدلو نه بعد د راتلونكې مرحلې د سفر لپاره د يوې خودكارې زينې انتظام وشو ، پاس اسمانونو ته سفر په همدې سره وشو د نن سبا د لفټ نظام د هغې زينې لپاره يوه ژوندۍ نمونه ده . **من هذا**: يعنې جبريل امين د آسمان څوكيدارې ملائكې ته د دروازې د خلاصولو وايي او څوكيداره ملائكه پوره تفتيش كوي ، ددينه معلومه شوه چې په آسمانونو باندې د څوكيدارۍ مضبوطه نظام دی ، اوس چې كومې سيارې د آسمان د پاسه دي هغو ته د كوم انسان رسيدل محال دي او كومې سياری چې د آسمان نه لاندې دي هغوی ته په تللو د شريعت كومه ضابطه نه ماتيږي . كه څوك دعوه كوي نو ودې كړي كه هغه دروغ وايي او كه رښتيا وايي زما زړه د ډير مخكې نه مطمئن نه وو چې دا كفار سپوږمۍ ته تللي دي مگر هغوی د خپلې ميډيا او نشرياتو په ذريعه خلك ليونيان جوړ كړل او ويې ويل چې وگورئی په خپلو سترگو يې وگورئی ! مونږ څنگه په سپوږمۍ باندې چېل قدمی كوو ! وگورې خلگ سپوږمۍ ته ورسيدل او دا مولويان د اودس او لمانځه خبرې كوي . د هغو كفارو دا وينا غلطه ده چې مسلمان وروسته پاتې شو ، مسلمان خو د لمانځه په ذريعه د اووم

---

([1]) اخرجه البخاري ۱/۴۵۸ رقم الحديث ۳۴۹ ومسلم في صحيحه ۱/۱۴۸ رقم الحديث (۲۶۳.۱۶۳)

آسمان د پاسه د عرش نه لاندې جنت الفردوس ته د تللو عزم لري، يو صحابي چې کله دا شعر وويلو :

**بلغنا السماء مجدنا و تراثنا        واننا لنرجو فوق ذلک مظهرا**

يعنې مونږ خو د آسمانونو نه پورته تلل غواړو ، نبي حضور اکرم ﷺ تپوس وکړو چې پاس کوم ځای ته تلل غواړې؟ نو صحابي وفرمايل چې جنت الفردوس ته تلل غواړم . په هر حال کفارو سپوږمۍ ته د تللو ډير غټ دروغ ويلي . ما په ١٩٩٥ کښې کوټې ته يو سفر کړی وو هلته د مشرق اخبار کښې په ٥ستمبر ١٩٩٥ کښې سپوږمۍ ته استونکې د امريکي ادارې (ناسا) متعلق يو ښکاره خبر چاپ شوی وو، د يوولس کالو پخواني دغه خبر يوه تراشه زما په بټوې کښې اوس هم موجوده ده ! زه دا ناظرينو ته هديه کوم تر څو د يورپ او مغرب دوکه مخې ته راشي ، اول د اخبار سرخيانې وواياست او بيا عام مضمون ووائي .

ناسا: د خلابازانو استولو په ډرامه کولو باندې ٣٠ کروړه ډالر وخوړل (مشرق) ، ددې مقصد لپاره حکومت ته جعلي فلم وښودل شو چې هغه په نويدا صحراء کښې جوړ شوی وو . د امريکي خلائي ادارې وينا ده چې هغو شپږ ځلې سائنس دانان سپوږمۍ ته ليږلي دي ، حکومت په ډير مهارت سره په دوکه کښې ساتل شوی دی .(کتاب تهرتي بلين سونډل کی انکشافات)

د واشنګټن (انټرنيشنل ډيسک) امريکائي خلائي تحقيقاتي ادارې ناسا د بدو عنوانونو يوه نوې بدنامي مخې ته راغلې چې د هغې مطابق د (ناسا) حکامو ٣٠ کروړه ډالر خوړلي او همداسې يولې دعوې يې بې بنياده ثابتې شوې دي چې هغوی تر اوسه پورې شپږ ځلې هوانوردان (خلابازان) شپوږمۍ ته ليږلي دي. د ترتي بلين سونډل په نوم سره شائع کيدونکي کتاب کښې انکشاف شوی دی چې ناسا حکومت ته رپوټ پيش کړی وو چې هغوی د ١٩٦٩ نه تر ١٩٧٢ په زمانه کښې شپږ ځلې خپل سائنسدانان سپوږمۍ ته ليږلي دي ، حالانکه دا مکمل يوه ډرامه وه ، ناسا چې کوم فلم پيش کړی وو هغه د نويډا په صحراء کښې جعلي طور باندې جوړ شوی دی . په ځمکه باندې د سپوږمۍ د سطحې سيټ ولګول شو او د حکومت په سترګو کښې خاورې وشيندل شوې، د رپوټ مطابق د ناسا سره سپوږمۍ ته د رسيدلو ټيکنالوجي نشته او نه هم خلائي راکټ موجود دی په دغه صورت کښې د حکومت سره د ٣٠کروړه ډالرو دوکه وشوله . (روزنامه مشرق کوئټه ٥ستمبر ١٩٩٥)

په اوس حال کې روزنامه امت او روزنامه قومي اخبار هم په خپل اشاعت کښې سپوږمۍ د تللو واقعه دوکه ګرځولې لکه روزنامه امت ليکي ، اول سرخی وواييي : (امريکائي ماهر سپوږمۍ باندې د قدم ايښودلو واقعه دوکه ګرځولېده ، د ناسا د دعوې دروغجنې ثابتولو لپاره په ميوزيم کښې مختلف شيان د نمايش لپاره پيش) .

او هائیو (امت نیوز) د آرم ایسټرونګ آیر اینډ اسپیس میوزیم ماهر تعلیم اینډ ریا واګ دعوه کړې چې په ۱۹۶۹ کښې په سپوږمۍ باندې د انسان اول پیاده تګ یوه دوکه وه. د ۱۹۶۹ نه تر ۱۹۷۲ پورې زمانه کښې جوړېدونکې دغه ټول تصاویر او ویډیوګانې ناسا په یوې مووی اسټډیو کښې تیارې کړې وې، د غیر ملکی خبر رسان ایجنسی PAP مطابق د واګ وینا ده چې د حقائقو او د سائنس په مدد سره دا ثابتول ډیر آسانه دي چې په سپوږمۍ باندې د خکته کیدلو خبره دروغ وه. هغوی د مثال په ورکولو سره ویلي چې په تصاویرو کښې خلانورد د آرم اسټرونګ او بزایلډرن په ښورولو سره د امریکی جنډې سره ښودل شوی دی حال دا چې د هوا نه بغیر د جنډې ریبېدل ممکن نه دي او د افقی تار سره منسلک د جنډې د څنډې سره لاندې مائل کیدل پکار وو، واګ د مقامی اخبار (دی لیمانیوز) سره خبرو کښې ویلي چې د نیل آرم اسټرونګ په نوم سره دغه میوزیم کې د تمامو هغه شیانو نمائش کیږي چې په سپوږمۍ باندې د خکته کیدلو دعوه دروغجنه ثابتوي او ددې نه علاوه د آرم اسټرونګ خلائی لباس او د هغه د مخکینې عمر شیان هم ایښودلی شوي دي. (روزنامه امت ۱۵اپریل ۲۰۱۹)

دا خبر د کراچۍ په یوه مقامی (قومی اخبار) کې هم شائع شوی مګر دویمه ورځ شائع شو او د هغه سرخیانې مختلفې دي مګر مضمون یې یو شان دی، د قومی اخبار صرف سرخیانې ملاحظه کړئ.
(په سپوږمۍ باندې انسانی قدم ایښودل دوکه ده). (قومی اخبار کراچی)

(په سپوږمۍ باندې د پیاده تګ ټول تصاویر او ویډیوګانې د ناسا په سټوډیو کښې جوړې شوې دي، د حقائقو او سائنس په مدد سره دا ثابتول انتهائی آسانه دي، آرم اسټرونګ امریکائی جنډه وښوروله، د هوا نه بغیر داسې ممکن نه وو، امریکی ماهر د ناسا د دعوې دورغجنې ثابتولو لپاره په میوزیم کښې مختلف شیان ایښي دي. (قومی اخبار کراچی ۱۶اپریل ۲۰۷)

په دې بین الاقوامی دروغو دې د الله تعالی لعنت وي، هغوی دنیا په څه قسمه دوکه کښې ساتلو سره ګمراه کړې ده، په دې سره هغه غلا هم ونیولی شوه چې څو کاله مخکې د امریکې سائنسدانانو د سعودی عرب شهزاده سلطان سپوږمۍ ته وخیږولو. هغه په خپله خپل بیان کښې ویلي وو چې ما ته هیڅ معلوم نه دي، دغه خلک یو ځای د جهاز نه ښکته شول او ما ته یې چای پیش کړلو، ما چای خوړلو او دغه خلک بهر ګرځیدل او ما ته یې وویل چې دا سپوږمۍ ده، دلته مسلمانانو ځوانانو ته وویل شول چې خلک سپوږمۍ ته ورسیدل او تاسې مولوی صاحبانو په اودس او لمانځه کښې مشغوله کړي یاست.

د أهل یورپ او مغرب حسد او عداوت او ضد او عناد ته اوګورئ چې کله د نبی کریم ﷺ د معراج خبره راغله نو هغوی صفا انکار وکړو چې پاس څوک تللی نشي لیکن چې کله د هغوی خپله خبره

راغله نو بیا وایي چې مونږ سپوږمۍ ته د پلاټ اخیستلو لپاره ځو ، زه وایم دوی دروغجن دي دوی دروغجن دي ، دوی دروغجن دي!!

**ظهرت: ای علوت** یعنې زه پاس وختلم ، (**لمستوی**)دا د اسم مفعول صیغه ده په دې کښې لام د علت لپاره دی یعنې د دغه اوچت ځای او هوار مقام ته د رسیدلو لپاره زه پورته لاړم او یو خلاص ځای ته ورسیدلم چې هلته د قلمونو په کاغذ باندې د لیکلو آواز راتللو .

**صریف الاقلام**: په کاغذ باندې په قلم سره د لیکلو په وخت چې د کش کش آواز راځي هغه مراد دی ، دا د لوح محفوظ نه د مقادیرو نقل کولو والا ملائکې دي ، صرف حضور ﷺ دلته تللی دی او که نه نو دا هغه لامکان دی چې دلته هیڅوک هم تللی نشي ، ملائکې د لوح محفوظ نه روزانه نافذ کیدونکې فیصلې نقل کوي ، د دې مقام پوره حقیقت د الله تعالی نه علاوه هیڅوک نه پیژني .

**جنابذ**: دا د جنبذ جمع ده کنبد او قبې ته وایي یعنې د جواهراتو گنبدې او قبې جوړې شوې وې .

## د سدرة المنتهٰی ذکر

﴿۴﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ قَالَ لَمَّا أُسْرِيَ بِرَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

او حضرت عبد الله بن مسعود رضي الله عنه وایي کوم وقت چې حضور ﷺ باندې په شپه کې د بیت المقدس

أُنْتُهِيَ بِهِ إِلٰى سِدْرَةِ الْمُنْتَهٰى وَهِيَ فِي السَّمَاءِ السَّادِسَةِ

او د آسمانونو سیل وشو نو حضور ﷺ سدرة المنتهٰی ته ورسول شو او سدرة المنتهٰی شپږم آسمان

إِلَيْهَا يَنْتَهِيْ مَا يُعْرَجُ بِهِ مِنَ الْأَرْضِ فَيُقْبَضُ

باندې ده او کوم شی چې د ځمکې نه پورته وړل کېږي هغه سدرة المنتهٰی باندې منتهي کېږي او بیا د

مِنْهَا وَإِلَيْهَا يَنْتَهِيْ مَا يُهْبَطُ بِهِ مِنْ فَوْقِهَا

ځه واسطې او ذریعې نه بغیر پورته رسولی شي دغه شان کوم شی چې د ملاءِ اعلی نه ځمکې ته را

فَيُقْبَضُ مِنْهَا قَالَ إِذْ يَغْشَى السِّدْرَةَ

خکته کولی شي هغه هم سدرة المنتهٰی نه اخستی شي دې نه روسته حضرت ابن مسعود رضي الله عنه دا آیات

| | | | |
|---|---|---|---|
| مَا | يَغْشٰى | قَالَ | فَرَاشٌ |

ووایه: اذ یَغشَی.. یعني هغه وقت چې سدره یې پټه کړه کوم شی چې پټه کړه او هغه وویل هغه شی

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| مِّنْ | ذَهَبٍ | قَالَ | فَأُعْطِيَ | رَسُوْلُ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ |

چې سدره یې پټه کړې ده د سرو زرو پتنګان دي حضرت ابن مسعود رضي الله عنه دا هم وویل چې شب معراج

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| ثَلَاثًا | أُعْطِيَ | الصَّلَوَاتِ | الْخَمْسَ | وَأُعْطِيَ | خَوَاتِيْمَ |

کې رسول الله صلی الله علیه وسلم ته دري څیزونه عطا شو ۱ د پنځه مونځونو فرضیت ورته عطا شو ۲ د

| | | | |
|---|---|---|---|
| سُوْرَةِ | الْبَقَرَةِ | وَغُفِرَ | لِمَنْ |

سورة بقرې آخري آیتونه ورته عنایت شو ۳ او د حضور صلی الله علیه وسلم په امت کې د هغه سړي ګناه کبیره

لَا يُشْرِكُ بِاللهِ مِنْ أُمَّتِهِ شَيْئًا اَلْمُقْحِمَاتُ. رَوَاهُ مُسْلِمٌ.[1]

د معافي پروانه ورته عطا شوه چې د الله! سره څوک شریک نه ګرځوي. [مسلم]

**توضيح**: (السادسة) په نورو ټولو روایتونو کښې مذکور دي چې سدرة المنتهی په اووم آسمان کې ده. دلته د شپږم آسمان ذکر دی نو ددې لپاره یو جواب دا دی چې د شپږم ذکر د کوم راوی نه په سهوې سره ذکر شوی دی.

دویم جواب دا دی چې د سدرة المنتهی ریښې په شپږم آسمان کښې دي او پخپله په اوم آسمان کښې ده، لویه ونه ده، ویل کیږي چې په ټولو آسمانونو او جنتونو باندې ددې سایه ده. (فراش) پتنګ ته وایي په یو روایت کښې جراد هم راغلی دی، د الله تعالی د انواراتو دګرد چاپیره تاویدونکي مخلوق ذکر دی چې د هغه حقیقت الله تعالی ته معلوم دی.

**المقحمات**: غټو غټو ګناهونو ته مقحمات ویل کیږي یعنې د شرک نه علاوه لوی لوی ګناهونه الله تعالی معاف کوي.

---

(۱) اخرجه البخاري في صحيحه ۳۷۴ رقم الحديث ۳۳۴۲ ومسلم في صحيحه ۱/۱۵۷ رقم الحديث (۲۷۹.۱۷۳)

## د معراج په واقعه د قریشو اعتراضات

﴿۵﴾ وَعَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَقَدْ رَأَيْتُنِيْ فِي الْحِجْرِ

او ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي چې رسول کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمائیل ما خپل ځان په حجر حطیم کې اولیدلو

وَقُرَيْشٌ تَسْأَلُنِيْ عَنْ مَسْرَايَ فَسَأَلَتْنِيْ

په داسي حال کې چې زه ولاړ وم او د مکې قریشو زمانه ځما د شبِ معراج د سفر باره کښې سوالات

عَنْ أَشْيَاءَ مِنْ بَيْتِ الْمُقَدَّسِ لَمْ أُثْبِتْهَا

کول او د بیت المقدس هغه څیزونه او نښې یې معلومولې چې ماته هغه وقت یادې نه وې پاتې شوې

فَكُرِبْتُ كَرْبًا مَا كُرِبْتُ مِثْلَهُ فَرَفَعَهُ اللهُ

زه دومره پریشان او غمجن شوم چې دې نه مخکې هیڅ کله دومره پریشانه او غمجن شوی نه وم نو

لِيْ أَنْظُرُ إِلَيْهِ مَا يَسْأَلُوْنِيْ عَنْ شَيْءٍ

الله! ځما مدد وکړو او بیت المقدس یې بلند کړو چې ځما د نظر مخکې راغی او د مکې قریش

إِلَّا أَنْبَأْتُهُمْ وَقَدْ رَأَيْتُنِيْ فِيْ جَمَاعَةٍ مِّنَ

د کوم شی باره کې پوښتنه وکړي زه هغه ورته ښایم نو هغوئ او دا حقیقت دی چې ما خپل ځان د

الْأَنْبِيَاءِ فَإِذَا مُوْسٰى قَائِمٌ يُّصَلِّيْ

انبیاء په منځ کې اولیدلو ما هغه وقت حضرت موسیٰ عَلَيْهِ السَّلَامُ اولیدلو چې ولاړ وو مونځ یې کوه

فَإِذَا رَجُلٌ ضَرْبٌ جَعْدٌ كَأَنَّهُ مِنْ رِّجَالِ شَنُوْءَةَ

حضرت موسیٰ عَلَيْهِ السَّلَامُ یو میانه قد سړی په نظر راغی لکه چې هغه د قبیله شنوء سره تعلق لرونکې یو سړی وي ما

وَ إِذَا عِيْسٰى قَائِمٌ يُّصَلِّيْ أَقْرَبُ النَّاسِ بِهِ شَبَهًا

حضرت عیسیٰ) عَلَيْهِ السَّلَامُ هم اولیدلو چې ولاړ وو مونځ یې کوه د هغه سره زیات مشابهت لرونکی سړی

| عُرْوَةُ بْنُ مَسْعُوْدٍ الثَّقَفِيُّ وَإِذَا إِبْرَاهِيْمُ قَائِمٌ يُّصَلِّيْ |
| --- |
| عروه ابن مسعود ثقفي دی بیا ما حضرت ابراهیم) عَلَيْهِ السَّلَامُ هم اولیدلو چې ولاړوو مونځ يې كوی دوئ |
| أَشْبَهُ النَّاسِ بِهِ صَاحِبُكُمْ يَعْنِيْ نَفْسَهُ |
| سره زیات مشابهت لرونکی چې کوم سړی دی هغه ستاسو دوست دی د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مراد خپل ذات |
| فَحَانَتِ الصَّلَاةُ فَأَمَمْتُهُمْ |
| مبارک وو بیا حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمائيل هركله چې د مانځه وقت شو نو زه د ټولو انبیاء عَلَيْهِمُ السَّلَامُ |
| فَلَمَّا فَرَغْتُ مِنَ الصَّلَاةِ قَالَ لِيْ قَائِلٌ |
| امام جوړ شوم او کوم وقت چې زه د مانځه نه فارغه شوم نو یو ویونکي زه مخاطب کړم راته یې |
| يَا مُحَمَّدُ هٰذَا مَالِكٌ خَازِنُ النَّارِ فَسَلِّمْ عَلَيْهِ |
| وویل ای محمد !دا د دوزخ داروغه موجود دی ته سلام وکړه نو زه سلام کولو د پاره هغه داروغه |
| فَالْتَفَتُّ إِلَيْهِ فَبَدَأَنِيْ بِالسَّلَامِ. رَوَاهُ مُسْلِمٌ.[1] |
| د دوزخ طرف ته متوجه شوم لیکن په سلام کې هغه مخکې شو. |

**توضيح** : **لم اثبتها**: یعني سفر ته د تللو په وجه ما هغه شیان یاد نکړل مګر قریشو د هغو کوچنیو کوچنیو شیانو پوښتنه وکړه مثلا چې د مسجد اقصی کړکیانې څو دي؟ او ستنې یې څومره دي؟ یو مسافر چې په لارې باندې تیریږي هغه دغه شیان چیرته شمیري او محفوظ کولو سره یاد کښې ساتي، حضور ﷺ ددې په وجه ډیر پریشانه شو.

**فکربت**: د مکې قریشو د هغه نه اوږده سوالونه شروع کړل چې اهم سوالونه وو، هغه خو صدیق اکبر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په خپله وکړل او حضور ﷺ په جواب باندې یې تصدیق کولو چې (**صَدَقْتَ يَارَسُوْلَ اللهِ**)، په دې باندې جبرئیل امین د الله تعالی له طرفنه حضرت ابوبکر صدیق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته د صدیق لقب

(١) اخرجه البخاري في صحيحه ٦/٤٢٨٠ رقم الحديث ٣٣٩٤ ومسلم في صحيحه ١/١٥٦ (١٧٢.٢٧٨).

عطاء کړلو ، په هر حال د قریشو د بیکاره سوالونو نه حضور ﷺ بی حده پریشانه شو نو الله تعالی حضور ﷺ ته د بیت المقدس نقشه مخامخ کړه حضور ﷺ به کتل او جواب به یې ورکولو ، څه خلکو اسلام قبول کړلو مګر څه کچې مسلمان خلک په شک کښې پریوتل ځکه کفارو ډیره سخته پروپیګنډه کړې وه ، دا قصه د بریلویانو په خوله باندې طمانچې ده چې د علم غیب په مسئله کښې ګړبړ کوي .

په باب المعراج کې دویم فصل نشته.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## بیت المقدس د حضور ﷺ مخې ته راوستل

| |
|---|
| ﴿۶﴾ عَنْ جَابِرٍ اَنَّهُ سَمِعَ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ لَمَّا كَذَّبَتْنِيْ |
| حضرت جابر ، نه روایت دی هغه د رسول الله ﷺ نه واوریدل هرکله چې قریشو زه دروغجن |
| قُرَيْشٌ قُمْتُ فِي الْحِجْرِ فَجَلَّى اللهُ لِيْ بَيْتَ الْمُقَدَّسِ |
| وګڼلم نو زه حجر حطیم کې ودریدم او الله ! بیت المقدس زما د پاره ظاهر کړو نو ما به بیت المقدس |
| فَطَفِقْتُ أُخْبِرُهُمْ عَنْ آيَاتِهِ وَاَنَا اَنْظُرُ اِلَيْهِ . مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ [1] |
| طرف ته کتلو کتلو سره د هغه نښې او علامات خلقو ته ښودل . |

**توضیح** : الحجر : د دې نه مراد حطیم دی دیته حجر **اسماعیل** هم وایي ، داسې ویل کیږي چې دلته د حضرت اسماعیل عَلَيْهِ السَّلَام قبر هم دی .



---

([1]) اخرجه البخاری فی صحیحه ۷/۱۹۶ رقم الحدیث ۳۸۸۶ ومسلم فی صحیحه ۱/۱۵۶ رقم الحدیث (۱۷۰.۲۷۶)

# باب في المعجزات

قال الله تعالیٰ: ﴿اقْتَرَبَتِ السَّاعَةُ وَانْشَقَّ الْقَمَرُ﴾ ﴿وَإِنْ يَرَوْا آيَةً يُعْرِضُوا وَيَقُولُوا سِحْرٌ مُسْتَمِرٌّ﴾

په معجزاتو باندې د پوهيدلو لپاره دا ضروري ده چې د دينه مخکښې څو خارق عادات شيان وپيژندل شي، په توضيحات جلد اول باب الكبائر صفحه نمبر ۲۴۸ کښې خوارق عادات شيان په تفصيل سره بيان شوي دي دلته هم د موقع او محل د مناسبت په وجه څه ليکل مناسب معلوميږي:

**خارق عادت شيان**: ټول خوارق عادت شيان اوه (۷) دي:

۱. اول ارهاصات دي: دا داسې خارق العادة افعال وي چې د کوم نبي د نبوت نه مخکښې په طور د تمهيد د نبي د راتګ د اعلان لپاره پيښيږي لکه حضور صلی الله علیه وسلم ته د نبوت نه مخکښې د کاڼو سلام کول، د وريځې سايه کول، د نبي د ولادت په وخت انقلابي واقعات پيښيدل، دا ارهاصات وو.

۲. دويم (معجزات) دي: دا داسې خارق عادت امور دي چې د کوم نبي د دعوت نبوت د اثبات او تصديق لپاره او د مخالفينو د عاجزکولو لپاره د مدعي نبوت په لاس باندې ظاهريږي لکه د حضور صلی الله علیه وسلم د لاس په اشارې سره د سپوږمۍ دوه ټوټې کيدل، او دلته په زير بحث باب کښې ۷۴ احاديثو کښې معجزات په ښه تفصيل سره راځي.

۳. دريم (کرامات) دي: دا داسې خارق عادت امور دي چې د صاحب ايمان متبع سنت شخص په لاس باندې د اعزاز او اکرام په طور باندې ظاهريږي، پيغمبر ته د خپلې معجزې علم هم وي او د معجزې د ظهور اراده هم وي مګر د ولي لپاره دا ضروري نه ده.

۴. څلورم (معونات) دي: دا داسې خارق عادت امور دي چې د کوم مسلمان د اعانت او مدد لپاره ظاهريږي لکه په حالت د مخمصه کښې د غيبو خوراک راتلل، اوبه راتلل، يا د ځمکې فاصله کميدل يا په اوبو باندې تلل وغيره وغيره دا ټول د اعانت او مدد صورتونه دي.

۵. پنځم (استدراجات) دي، دا داسې خارق عادت امور دي چې د کوم کافر يا فاسق او فاجر شخص په لاس باندې د هغه د مقصود مطابق ظاهر شي لکه د دجال په احوالو کښې د نااشنا استدراجاتو او تصرفاتو بيان شوی دی. يا د دروغجن مدعی نبوت اسود عنسی په لاس باندې عجائبات ظاهر شوي وو دا ټول د استدراج د قبيلې نه وو.

۶. (اهانات) دي، دا د داسې خارق عادت امورو نوم دی چې د کوم کافر په لاس باندې ظاهريږي ليکن د هغه د مطلوب او مقصود برعکس ظاهريږي مثلا مسيلمة الكذاب د يوې سترګې ړوند سړي په سترګه باندې لاس تير کړی وو چې دا سترګه جوړه شي مګر د هغه شخص هغه صحيح سترګه هم ړنده شوه. همدارنګه مسيلمه کذاب د خپل اودس اضافه شوي اوبه د برکت لپاره د باغ په ونو کښې

وشیندلې نو د باغ ټولې ونې وچې شوې . همدارنګه هغه غرغره وکړه او اوبه یې په کوهي کې وشیندلې تر څو هغه اوبه زیاتې شي نو کومې اوبه چې په کوهي کې وې هغه هم وچې شوې .همدارنګه هغه د یوه ماشوم په سر باندې لاس راخکلو نو د هغه ماشوم حافظې کار پرېښودلو ، دا ټول د اهانت صورتونه دي چې ټول تدبیرونه سرچپه شول .

۷.(سحر) او جادو دی : ددې یو تعریف دا دی (**کل ما لطف مأخذه و دق فهو سحر**) ، دویم تعریف یې دا دی (اخراج الحق فی صورة الباطل) ، د جادو نور تفصیل توضیحات جلد اول ۲۴۷ صفحه باندې اوګورئ ، بعضې علماؤ جادو په خارق عادت کې شمار کړی نه دی ځکه په دې کې ظاهری اسباب استعمالیږي .په هر حال دا ټول خارق عادت امور دي د هغو نه دلته د معجزې تعریف او تفصیل بیانول مقصود دي .

## د معجزې لغوی او اصطلاحی تعریف

د معجزې لغوی معنی (عاجزونکی شی) ښودل شوی دی او د معجزې اصطلاحی تعریف داسې دی (**المعجزة امر خارق للعادة یعجز البشر ان یأتوا بمثله**) یعنې معجزه د هغه امر خارق للعادة نوم دی چې انسان عاجزوي ددینه چې د هغه مثل کوم شی پیش کړی شي ، د خارق عادات د همدې بحث په ابتداء کې د معجزې جامع مانع تعریف شوی دی هلته یې اوګوره . په هر حال د معجزې دوه قسمونه دي یو قسم معجزه هغه ده چې د کوم نبی د نبوت ثابتولو لپاره د الله تعالی له طرفنه راځي او د قوم د هدایت ذریعه جوړیږي، د نبی کریم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زیاتې معجزې همدا قسم راغلي دي لیکن په هغوی کې د ټولو نه غټه او دائمی معجزه قرآن عظیم دی چې د هغه په ذریعه اربونو انسانانو ته هدایت حاصل شوی دی او حاصلیږي . دویمه معجزه فرمایشي وي چې قوم د ایمان راوړلو لپاره فرمایشی معجزه وغواړي په دې کې د نبی ازمایل مقصود وي چې آیا هغه دا کار کولی شي یا نه ؟ ددغې معجزې په غوښتلو کې خلک فضول قسم فرمایشي مطالبې لري مثلا ددې تیږې نه دې یوه بلاربه اوښه راووځي او بیا دې هغه بچی وزیږوي او مونږ ټول هغه ووینو بیا به مونږ ایمان راوړو ، یا دا مطالبه وي چې ددغه نبی دې لوی باغ وي په هغه کې دې نهرونه وي هغه باغ دې هغسې وي دغسې وي ، یا داسې مطالبه وي چې دا نبی دې آسمان ته وخیژي او د هغه ځای نه دې مونږ ته لیکلی خط راولیږي تر څو هغه مونږ ووایو او ایمان راوړو ، دغه قسم فرمایشي معجزه کچیرې الله تعالی کوم قوم ته ورکړي او قوم د هغه نه انکار وکړي او ایمان رانه وړي نو بیا د الله تعالی له طرفنه په ټول قوم باندې عمومی عذاب نازلیږي لکه څنګه چې قوم ثمود تباه شو .

د قریشو کفارو هم د نبی کریم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه بار بار فرمایشي معجزې وغوښتلې لیکن الله تعالی

ورنکړې کچیرې الله تعالی ورکړې وی او کفارو د هغو نه انکار کړی وی نو ټول به هلاکیدل حالانکه د هماغو خلک و نه زیاتره وروسته مسلمانان شول . په هر حال د معجزاتو سره متعلق په دې باب کې ۷۴ احادیثه دي چې په دې کې د هر قسم معجزاتو بیان دی . زه د ټولو لپاره ځانله ځانله عنوانونه ږدم تر څو د معجزاتو د ظهور صحیح اندازه ولګیږي .

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

## د غار ثور سره متعلق د معجزې ظهور

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۱﴾عَنْ | أَنَسِ | بْنِ | مَالِكٍ | أَنَّ | أَبَابَكْرٍ | الصِّدِّيقَ |
| حضرت انس بن مالک رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوي دی حضرت ابوبکر صدیق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمائیل کوم وخت چې مونږ په غار | | | | | | |
| قَالَ | نَظَرْتُ | إِلَى | أَقْدَامِ | الْمُشْرِكِينَ | عَلَى | رُءُوسِنَا |
| ثور کې پټ وو او ما د مشرکینو د پښو طرف ته وکتل چې ګویا څمونږ په سرونو وي نو ما عرض وکړو | | | | | | |
| وَنَحْنُ فِي الْغَارِ فَقُلْتُ يَا رَسُولَ اللهِ لَوْ أَنَّ أَحَدَهُمْ نَظَرَ إِلَى قَدَمَيْهِ أَبْصَرَنَا فَقَالَ | | | | | | |
| یارسول الله که په دوئ کې د یو نظر هم خپلو پښو طرف ته لاړ نو مونږ به ووینې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمائیل د | | | | | | |
| يَا أَبَابَكْرٍ | مَا | ظَنُّكَ | بِاثْنَيْنِ | اَللهُ | ثَالِثُهُمَا. | مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. |
| هغه دوو سړو باره کې ستا څه خیال دی چې د هغوئ دریم ملګری الله ! دی. [ بخاري ، مسلم ] | | | | | | |

**توضیح** : **في الغار**: د دې غار نه مراد غار ثور دی دا غار د مکې مکرمې نه د یو څو میلو په فاصله کې واقع دی په انتهائی اوچت غر باندې واقع دی د هغه غر نوم ثور دی پاس په څنډه باندې دوه غاره جوړ دي په هر یو باندې یې لیکلي دي چې دا غار ثور دی ، د هغو نه چې کوم زیات مشهور دی او په غره باندې د مکې طرفته واقع دی زما په خیال هغه یو چا نه یو چا په کومه زمانه کې تراش کړی دی ، اصلی غار ثور شاید نه وي ، د دې بالمقابل د جبل ثور په بل جانب یو غار دی چې د دوو غټو تیږو په بیخ کې دی د پاس طرفنه یې د خکته کیدلو لار ده، یوه تیږه بلکل د ثور یعنې غوائی پشان ده ، بعضو علماؤ ویلي دي چې ثور د یوه انسان نوم وو د هغه په نوم سره دا غار دی .

**لو نظر الی قدمه**: د دې تشریح هلته په غار ثور کې ذهن ته راځي ځکه په پاس تیږه باندې ولاړ شخص کچیرې خپلو پښو ته وګوري نو دا غار د هغه د قدمونو د لاندې نه په نظر راځي ، حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

دعاء غوښتې وه (اللهم اعمِ ابصارهم) ای الله دغه کفار رانده کړې! الله تعالى هغوی ددې کتلو نه رانده کړل نو هغوی هیڅ ونه لیدل، د غار په خوله کې کوترې هګۍ واچولې، جولا جال واچوه، په دغه طریقه الله تعالى د دوو حبیبینو حفاظت وکړلو.

علامه بوصیری رحمه الله فرمایي:

فالصدق فی الغار والصدیق لم یریا ۔۔۔ وهم یقولون ما بالغار من ارم

ظنوا الحمام و ظنوا العنکبوت علی ۔۔۔ خیر البریة لم تنسج ولم تحم

الله ثالثهما: الله تعالى خپل ذات دریم ظاهر وفرمایلو دا خالص معونت او معیت طرفته اشاره ده چې په هر حالت کې دریواړه سره یو ځای دي، ددې برعکس حضرت موسی عَلَيۡهِ‌السَّلَامُ معنا ونه ویله، په دې الفاظو کې په قوم باندې د عدم اعتماد اظهار دی، په هر حال د حضور اکرم صَلَّى‌اللّٰهُ‌عَلَيۡهِ‌وَسَلَّمَ او صدیق, بلکل ښکاره کیدلو سره کفارو ته په نظر نه راتلل معجزه وه.

## د هجرت د سفر په دوران کې د دښمن خلاف د معجزې ظهور

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۲﴾ وَعَنِ | الْبَرَاءِ | بْنِ | عَازِبٍ | عَنْ | أَبِيهِ | أَنَّهُ | |
| او حضرت براء ابن عازب رَضِيَ‌اللّٰهُ‌عَنۡهُ د خپل پلار محترم حضرت عازب رَضِيَ‌اللّٰهُ‌عَنۡهُ نه روایت کوي چې هغه د | | | | | | | |
| قَالَ | لِأَبِي | بَكْرٍ | يَا | أَبَا | بَكْرٍ | حَدِّثْنِي | كَيْفَ صَنَعْتُمَا حِينَ سَرَيْتَ |
| حضرت ابوبکر رَضِيَ‌اللّٰهُ‌عَنۡهُ نه پوښتنه وکړه ای ابوبکر! هرکله چې تا د شپې رسول الله صَلَّى‌اللّٰهُ‌عَلَيۡهِ‌وَسَلَّمَ سره سفر وکړو | | | | | | | |
| مَعَ | رَسُولِ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ | قَالَ |
| نو غار نه وتلو نه روسته تاسو ته څه څه حالات او واقعات پیښ شول حضرت ابوبکر رَضِيَ‌اللّٰهُ‌عَنۡهُ وفرمائیل | | | | | | | |
| أَسْرَيْنَا | لَيْلَتَنَا | وَمِنَ | الْغَدِ | حَتَّى | قَامَ | قَائِمُ | الظَّهِيرَةِ |
| مونږ ټوله شپه روان وو او د راتلونکې ورځ څه حصه هم په سفر کې تیره کړه تردې پورې چې پخه | | | | | | | |
| وَخَلَا | الطَّرِيقُ | لَا | يَمُرُّ | فِيهِ | أَحَدٌ | فَرُفِعَتْ | لَنَا صَخْرَةٌ |
| غرمه شوه او نمر او دریدلو او لار بلکل خالي شوه نو مونږ ته یوه چتر په نظر راغی چې د هغه لاندې | | | | | | | |

طَوِیْلَةٌ لَهَا ظِلٌّ لَمْ تَأْتِ عَلَيْهَا الشَّمْسُ فَنَزَلْنَا عِنْدَهَا

سوری ووا و نمر په هغه نه وو راغلی نو مونږ هغه چتر لاندي خکته شو او ما هلته رسول الله صَلَّی اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د

وَ سَوَّيْتُ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ مَكَانًا بِيَدَيَّ يَنَامُ عَلَيْهِ

پاره یو ځای په خپلو لاسونو سره هوار اوصاف کړو چې حضور صَلَّی اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په هغه اوده شي څرمن وغوړوله

وَبَسَطْتُ عَلَيْهِ فَرْوَةً وَقُلْتُ نَمْ يَا رَسُوْلَ اللهِ وَأَنَا أَنْفُضُ

او عرض مي وکړو یارسول الله! تا سو دلته اوده شئ زه به ستا سو اخوا دیخوا نګراني کوم چې کوم

مَا حَوْلَكَ فَنَامَ وَخَرَجْتُ

طرف نه د دښمن کوم سړی څمونږ تلاش کې خو نه دی حضور صَلَّی اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اوده شو او د هغه ځای نه د وتلو سره

أَنْفُضُ مَا حَوْلَهُ فَإِذَا أَنَا بِرَاعٍ مُقْبِلٍ

د حضور صَلَّی اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حفاظت د پاره څلور طرف ته نګراني مي کوله چې اچانک ما یو شپون اولیدلو چې

قُلْتُ أَفِيْ غَنَمِكَ لَبَنٌ قَالَ نَعَمْ قُلْتُ

مخامخ طرف نه را روان وو نو ما د هغه نه پوښتنه وکړه آیا ستا په بزو کې پئ شته؟ ما ورته ووېل

أَفَتَحْلِبُ قَالَ نَعَمْ فَأَخَذَ شَاةً فَحَلَبَ فِيْ قَعْبٍ

آیا ته به پئي لوشلو سره راکړي هغه ووېل هو بیا هغه یوه چیلۍ ونیوله او د لرګي پیاله کې یې څه

كُثْبَةً مِنْ لَبَنٍ وَمَعِيَ إِدَاوَةٌ حَمَلْتُهَا لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

لږ پئ ولوشل ما سره یو ښَتک وو چې ما د حضور صَلَّی اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د استعمال د پاره ساتلی وو په هغه کې

يَرْتَوِيْ فِيْهَا يَشْرَبُ وَيَتَوَضَّأُ فَأَتَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

به اوبه وې چې د حضور صَلَّی اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د څکلو او اودس پکار به راتلې ما پئ اخستو سره رسول الله صَلَّی اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| فَكَرِهْتُ | أَنْ | أُوقِظَهُ | فَوَافَقْتُهُ | حَتّٰى | اسْتَيْقَظَ |

راغلم هغه اوده وو ما ويښول مناسب ونه ګڼل زه هم کينا ستم تر دې پورې چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خپله بيداره شو

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| فَقُلْتُ | اشْرَبْ | يَا | رَسُوْلَ | اللهِ |

او ما په پيو کې دومره اوبه واچولې چې لاندې پورې يخې شوې بيا مې عرض وکړو يارسول الله! دا

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| فَشَرِبَ | حَتّٰى | رَضِيْتُ | ثُمَّ | قَالَ |

اوڅکئ حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغه پي. وڅکل زه ډېر خوشحاله شوم دې نه روسته حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمائيل

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| أَلَمْ | يَأْنِ | لِلرَّحِيْلِ | قُلْتُ | بَلٰى | قَالَ | فَارْتَحَلْنَا | بَعْدَمَا |

د کوچ وخت نه دې راغلې ما ووېل هو راغلې دې حضرت ابوبکر، وايې نو مونږ د نمر زوال کيدو نه

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| مَالَتِ | الشَّمْسُ | وَاتَّبَعَنَا | سُرَاقَةُ | بْنُ | مَالِكٍ | فَقُلْتُ |

روسته د هغه ځاې نه کوچ وکړو چې دورسته نه سراقه بن مالک راغلې ما سره عرض وکړو

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| أُتِيْنَا | يَا | رَسُوْلَ | اللهِ | فَقَالَ | لَا | تَحْزَنْ | إِنَّ | اللهَ | مَعَنَا |

يارسول الله د ښمن مونږ نيولو د پاره راغلې دې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمائيل مه يريږه الله! زمونږ سره

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فَدَعَا | عَلَيْهِ | النَّبِيُّ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ | فَارْتَطَمَتْ | بِهٖ | فَرَسُهٗ | إِلٰى | بَطْنِهَا |

روسته حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سراقه د پاره بد دعا وکړه نو د سراقه آس د هغه سره تر خيټې پورې په ځمکه کې

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فِيْ | جَلَدٍ | مِّنَ | الْأَرْضِ | فَقَالَ | إِنِّيْ | أَرٰكُمَا | دَعَوْتُمَا | عَلَيَّ | فَادْعُوَا | لِيْ |

دې دې نه غرق شو سراقه ووېل زه پوهېږم تا سو دواړو زما د پاره بد دعا کړې ده اوس ځما د نجات

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| فَاللهُ | لَكُمَا | أَنْ | أَرُدَّ | عَنْكُمَا | الطَّلَبَ | فَدَعَا |

او خلاصون د پاره دعا وکئ چې زه د دې ګرفت نه نجات پيدا کړم نو زه الله! ګواه جوړولو سره وعده

| لَهُ | النَّبِيُّ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ |
|---|---|---|---|---|---|
| کوم چې زه به کفار ستاسو د تعاقب کولو نه منع کوم رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د هغه د پاره دعا وکړه نو هغه | | | | | |
| فَنَجَا | فَجَعَلَ | لَا | يَلْقَى | أَحَدًا | إِلَّا قَالَ |
| د کرفت نه نجات پیدا کړو نو کوم کافر به چې د هغه سره په لار کې یو ځاي کیده نو هغه ته به یې ویل | | | | | |
| كُفِيتُمْ مَا هٰهُنَا فَلَا يَلْقَى أَحَدًا إِلَّا رَدَّهُ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. | | | | | |
| ستاد پاره ځما تلاش کول کافي دی او کوم سړی به چې ورسره مخ کیده هغه به دغه اوریدلو سره بیرته تلو. | | | | | |

**توضیح**: **فروة**: پوستین ته وایي. **انفض ما حولك**: نفض تلاش کولو ته وایي، دلته نګراني مراد ده، په فوجي اصطلاح کې دغه قسم پیره او په دښمن باندې نظر ساتلو لپاره یو خوا بل خوا ګرځیدلو ته (ګزمه) وایي، صدیق اکبر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هم د غار شاوخوا د کفارو د راتګ وغیره نګراني شروع کړې وه.

(**قعب**) د لرګی نه جوړه شوې کاسه چې ژوره وي هغې ته قعب ویل کیږي. (**كثبة**) په کاف باندې ضمه ده ثاء ساکنه ده په باء باندې فتحه ده په شئ قليل باندې یې هم اطلاق کیږي او د کې پیالې ته هم ویل کیږي. دا وزې (چیلۍ) یا خو د صدیق اکبر، وې نو ځکه یې شودې وغوښتلې، یا یې د قیمت اداء کولو په اراده وغوښتلې، یا یې د عربو د عام عادت موافق وغوښتلې چې عرب خلک مسافر کس ته د چیلو شودې ورکول ویستل خپله اهمه فریضه ګڼله. (**فوافقته**) کچیرې په وافقته کې فاء مقدمه وي نو دا د موافقت نه دی یعنې ما د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د خوب سره موافقت وکړو تر دې پورې چې هغه پخپله پورته شو، او که قاف مقدم وي نو دا به د وقوف نه وي چې د انتظار په معنی سره دی یعنې ما انتظار وکړو تر دې پورې چې هغه بیداره شو. (**اداوة**) د چمړې لوښی مراد دی چې هغې ته چاګل وایي.

**یرتوی**: ارتوی د روی نه دی د سیراب کیدلو په معنی سره دی یعنې په دغه لوښه کې به د اودس او ځښلو لپاره اوبه پرتې وې.

**الم یأن**: أي ألم يقرب وقت الرحيل یعنې د غار نه د تللو وخت نژدې شوی نه دی؟.

**سراقة بن مالك بن جعشم مدلجي**: دا کس د خپلې علاقې سردار وو د انعام په لالچ کې هغه د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ پسې شوی وو د معجزې په لیدلو سره یې معافی وغوښته، د خپل ځان لپاره یې یو کاغذ ولیکلو چې د فتح مکه په ورځ ماته امان حاصل شي، حضور اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د هغه سره د

کسری د بنګړیو وعده وکړله ، چې کله دی مسلمان شو او د کسری خزانه د عمر فاروق په دور کې مدینې ته راغی نو په مال غنیمت کې د کسری بنګړی سراقه ته ورکړی شو ، هغه واغوستل او په منبر نبوی باندې وخته خلکو ته یې وښودل .

**أُتِينا**: یعنې مونږ ونیول شولو . **(فارتطمت)** یعنې د آس پښې په شګو کې ښخې شوې . **(جَلَد)** په جیم او لام باندې زور دی سختې ځمکې ته وایي .

**فالله لكما: اى الله كفيل عليّ لكما ان لا اهم بعد ذلک لغدر كما**، یعنې د الله تعالی وعده درکوم چې ستاسو د بدخواهی اراده به نکومه .

الطلب: تعاقب او تلاش ته وایي ، ابوجهل د سلو اوښانو انعام ټاکلی وو چې محمد صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ژوندی یا مړ څوک راوړي یا د هغه خبر تر مونږ پورې ورسوي نو دا انعام به هغه ته ملاویږي ، هر طرفته دغه تلاش په همدغه وجه باندې کیده او دغه چاپې په همدغه وجه وهل کیدلې .

## د عبدالله ابن سلام د ایمان راوړلو واقعه

| |
|---|
| ﴿۳﴾ وَ عَنْ أَنَسٍ قَالَ سَمِعَ عَبْدُ اللهِ بْنُ سَلَامٍ بِمَقْدَمِ |
| او حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي عبد الله ابن سلام رَضِيَ اللهُ عَنْهُ یو ځای کې د ونو نه میوې شکولې چې هغه |
| رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ فِيْ أَرْضٍ يَّخْتَرِفُ فَأَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دمکې نه مدینې ته د راتلو خبر واوریده هغه فوراً د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خدمت کې حاضر |
| وَقَالَ إِنِّيْ سَائِلُكَ عَنْ ثَلَاثٍ لَّا يَعْلَمُهُنَّ إِلَّا نَبِيٌّ |
| شو او عرض یې وکړو زه تاسو نه د درې خبرو معلومات کول غواړم چې هغه د نبي نه ماسوا بل څوک نه پیژني |
| فَمَا أَوَّلُ أَشْرَاطِ السَّاعَةِ وَمَا أَوَّلُ طَعَامِ أَهْلِ الْجَنَّةِ |
| یو خو دا چې د قیامت مخکنۍ علامه به څه وي؟ دوهم دا چې د جنتیانو مخکنی طعام به څه وي |
| وَمَا يَنْزِعُ الْوَلَدَ إِلٰى أَبِيْهِ أَوْ إِلٰى أُمِّهِ؟ قَالَ أَخْبَرَنِيْ |
| دریم دا چې هغه کوم شی دی چې اولاد د مور او پلار مشابه کوي حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمائیل اوس |

| بِهِنَّ | جِبْرَئِيْلُ | أَمَّا | أَوَّلُ | أَشْرَاطِ | السَّاعَةِ | فَنَارٌ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| جبرائيل عَلَيْهِ السَّلَامُ د دي سوالونو د جواب نه آګاه کړی یم د قيامت مخکني علامه خو به هغه اور وي چې | | | | | | |
| تَحْشُرُ | النَّاسَ | مِنَ | الْمَشْرِقِ | إِلَى | الْمَغْرِبِ | وَأَمَّا أَوَّلُ طَعَامٍ |
| خلق به د مشرق طرف نه د مغرب طرف ته جمع کړي او جنتیان چې جنت کې د ټولو نه مخکني طعام | | | | | | |
| يَأْكُلُهُ | أَهْلُ | الْجَنَّةِ | فَزِيَادَةُ | كَبِدِ | حُوْتٍ | |
| خوري هغه به د ماهي [مهي] د جګر زائده حصه وي او هر چې په اولاد کې د مور پلار د مشابهت | | | | | | |
| وَإِذَا | سَبَقَ | مَاءُ | الرَّجُلِ | مَاءَ | | |
| سوال دی نو که د سړي او به مني د ښځې په اوبو غالبې شي نو سړی اولاد خپل مشابهت طرف ته راکاږي | | | | | | |
| وَإِذَا | الْمَرْأَةِ | نَزَعَ | الْوَلَدَ | سَبَقَ | مَاءُ | الْمَرْأَةِ |
| او که د ښځي او به د سړي په اوبو غالبې شي نو ښځه اولاد خپل مشابهت طرف ته راکاږي عبد الله بن سلام | | | | | | |
| نَزَعَتْ | قَالَ | أَشْهَدُ | أَنْ | لَّا | إِلٰهَ | إِلَّا اللّٰهُ |
| د خپلو سوالونو جوابونو نه اوریدو سره وویل زه شاهدي اداکوم چې د الله! نه ماسوا بل معبود نشته | | | | | | |
| وَأَنَّكَ | رَسُوْلُ | اللّٰهِ | يَارَسُوْلَ | اللّٰهِ | إِنَّ | الْيَهُوْدَ قَوْمٌ بُهْتٌ |
| او داچې تاسو یقیناً د الله! رسول یې عبد الله ابن سلام رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ عرض وکړو یا رسول الله دا یهودیان ډیر بهتان تراش دي | | | | | | |
| وَإِنَّهُمْ | إِنْ | يَعْلَمُوْا | بِإِسْلَامِيْ | | | |
| که ستاسو د پوښتني نه مخ کې دوئ ته ځما مسلمانيدل معلوم شي نو په ما به دروغ بهتان تړي | | | | | | |
| مِنْ | قَبْلِ | أَنْ | تَسْأَلَهُمْ | يَبْهَتُوْنِيْ | فَجَاءَتِ | الْيَهُوْدُ |
| نو اتفاقاً یا د حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په بلنه هغه وقت څه یهودیان مجلس نبوي ته راغلل او عبد الله ابن سلام یو کوټ کې پټ شو | | | | | | |

فَقَالَ أَيُّ رَجُلٍ عَبْدُ اللهِ بْنُ سَلَامٍ فِيْكُمْ

حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دهغه يهوديانو نه پوښتنه وكړه ستاسو ګمان او علم كې عبد الله ابن سلام څرنګه سړى دى؟

قَالُوْا خَيْرُنَا وَابْنُ خَيْرِنَا وَسَيِّدُنَا وَابْنُ سَيِّدِنَا

هغوئ جواب وركړو هغه په مونږ كې بهترين سړي دى په مونږ كې د بهترين سړي ځوى دى

فَقَالَ أَرَأَيْتُمْ إِنْ أَسْلَمَ عَبْدُ اللهِ بْنُ سَلَامٍ

حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ پوښتنه وكړه كه عبد الله ابن سلام مسلمان شي نو آيا تاسو به مسلمانان شئ

قَالُوْا أَعَاذَهُ اللهُ مِنْ ذٰلِكَ فَخَرَجَ عَبْدُ اللهِ

يهوديانو وويل الله! دې هغه د اسلام نه بچ كړي او خپل حفاظت كې دې وساتي نو عبد الله ابن سلام د هغوئ مخ ته راغى

فَقَالَ أَشْهَدُ اَنْ لَّا اِلٰهَ اِلَّا اللهُ وَ أَنَّ مُحَمَّدًا رَّسُوْلُ اللهِ

او هغه وويل زه ګواهي وركوم چې د الله! نه ماسوا بل معبود نشته او دا چې بلا شبه محمد د الله! رسول دى

فَقَالُوْا شَرُّنَا وَابْنُ شَرِّنَا

يهوديانو په دې او ريدو سره ويل شروع كړل چې دا سړى خو په مونږ كې ډير خراب دى او د بدترين سړي ځوى دى او په هغه

فَانْتَقَصُوْهُ قَالَ هٰذَا الَّذِيْ كُنْتُ أَخَافُ يَا رَسُوْلَ اللهِ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

كې يې قسم قسم عيبونه را اوخكل شروع كړل عبد الله ابن سلام وويل يا رسول الله! تاسو وليدل دا هغه خبره ده چې زه ترې ويريدم

**توضيح**: (الا نبي) يعني دا داسې خبرې دي چې صرف نبي يې ويلى شي، په همدې كې د معجزې ظهور شوى دى چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دغه درې خبرې د وحې په ذريعه صحيح صحيح بيان كړلې.

(اول اشراط الساعة) د قيامت نه مخكې ظاهريدونكې علاماتو پوښتنه يې ونكړه بلكې د قيامت د شرروع كيدو سوال دى ځكه چې ددغه او رنه به قيامت شروع شي، د قيامت علامات خو به ددې نه مخكې ډيرې ظاهرې شوې وې لهذا د هغو سوال نه دى. (زيادة كبد حوت) د ماهى د سينې د طرف

حصه د تهولو نه مخکې به د اهل جنت په ترکارۍ کې استعماليږي . (وما ينزع الولد) يعنې بچې کله د مور هم شکله پيدا کيږي او کله د پلار مشابهت اختيار وي داسې ولې دی؟

(سبق ماء الرجل) يعنې د مور رحم ته رسيدونکې نطفه که د نارينه غالبه شوه او د زنانه مغلوبه شوه نو بچی د نارينه مشابه پيدا کيږي ، ملا علی القاری رحمه الله د سبق ترجمه په (علا و غلب) سره کړې ده مګر شيخ عبدالحق رحمه الله په اشعة اللمعات کې ددې ترجمه په سبقت سره کړې ده او فرمايې : چون پيش ميشود آب مرد آب زن را يعنې پيشتر در رحم مى افتد ، يعنې د نارينه نطفه چې کله د مور رحم ته مخکې ورسيږي نو بچی د نارينه مشابه راځي ، په دې دواړو ترجمو کې هيڅ تضاد نشته بلکه داسې ويل کيدلی شي چې کله د پلار اوبه د مور رحم ته په رسيدلو سره د زنانه په اوبو باندې غالبه راشي نو بچی د پلار سره مشابه کيږي .

(قوم بهت) په باء باندې ضمه ده او هاء ساکنه ده دا د بهت جمع ده او مفرد يې بهوت راځي چې د مبالغې صيغه د صَبُورٌ او صَبرٌ پشان ده يعنې يهود ډير بهتان ويو ونکي خلک دي کچيرې زه اسلام قبول کړم نو هغوی به په ما باندې قسماقسم بهتانونه وتړي . حضرت عبدالله بن سلام , د يهودو ډير لوی عالم وو ، د تورات حافظ وو ، هغه خپل غلام ته ويلي وو چې کله نبی آخرالزمان د مکې نه مدينې ته راغی نو ماته اطلاع راکړه ، يوه ورځ دا په خپل باغ کې په يوې ونې باندې ختلی وو ميوه يې شکوله چې غلام د لاندې نه آواز ورکړو چې نبی آخر الزمان مدينې ته راغلی دی! په ده باندې يو هيبت او رعب طاری شو قريبه وه چې د ونې نه غورځيدلی وی خو بچ شو ، د ونې نه کوزيدو سره د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په طرف روان شو ، چې کله يې د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په نورانی مخ باندې نظر پريوتو نو وې ويل (والله ماهذا بوجه كذاب) قسم په الله دا مخ د کوم دروغجن کيدلی نشي ! بيا يې د امتحان په طريقه د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه درې پوښتنې وکړې ، حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د پخپله جواب ورکولو په ځای د جبرئيل امين انتظار وفرمايلو او بيا يې د وحې په ذريعه جواب ورکړلو ، عبدالله بن سلام رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مسلمان شو مګر اول يې په يهودو باندې د خپل عظمت اقرار وکړلو تر څو وروسته د بهتان ترلو اثر پاتې نشي .

## د جنګ بدر او مقتولينو د بدر سره متعلق د معجزاتو ښکاره کيدل

﴿۲﴾ وَ عَنْهُ قَالَ : اِنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ شَاوَرَ حِيْنَ بَلَغَنَا

او حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي يقينًا رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغه وقت چې مونږ ته د ابو سفيان د راتلو خبر وشو

إِقْبَالُ أَبِيْ سُفْيَانَ وَقَامَ سَعْدُ بْنُ عُبَادَةَ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللهِ

مدينه والاوو سره يې صلاح مشوره وكړه سعد ابن عباده اودريدلو او عرض يې وكړو يارسول الله!

وَ الَّذِيْ نَفْسِيْ لَوْ أَمَرْتَنَا

په هغه پاک ذات مې دې قسم وي چې د هغه په قبضه کې ځما ساه ده که تاسو مونږ ته د خپلو سورلو

أَنْ نُخِيْضَهَا الْبَحْرَ لَأَخَضْنَاهَا وَلَوْ أَمَرْتَنَا

د حيوانانو په سمندر کې د اچولو حکم وکړو نو بلاشبه مونږ به داسې کوو او که ستاسو حکم وي چې

أَنْ نَضْرِبَ أَكْبَادَهَا إِلٰى بَرْكِ الْغِمَادِ لَفَعَلْنَا

مونږ د خپلو اوښانو او آسونو ځګر برک غماد پورې وهو نو مونږ به بيشکه داسې کوو حضرت انس رضي الله عنه

قَالَ فَنَدَبَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

وايي دې نه روسته رسول الله صلى الله عليه وسلم ټول خلق جنګ د پاره د جوش او خروش نه ډک کړل او تيارېې کړل

النَّاسَ فَانْطَلَقُوْا حَتّٰى نَزَلُوْا بَدْرًا فَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

او ټول خلق روان شول تر دې پورې چې د بدر مقام ته ورسيدل نو رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمائيل ګورئ

هٰذَا مَصْرَعُ فُلَانٍ وَيَضَعُ

دا ځاې د فلاني سړي کافر د هلاکيدو او د هغه د جسد د غورځيدو دی دغه شان حضور صلى الله عليه وسلم د م کړو

يَدَهُ عَلَى الْأَرْضِ هَاهُنَا وَهَاهُنَا

دکفارو او اشقياو نومونه اخستل او په ځمکه باندې يو يو ځاې لاس ايخودو فرمائيل به يې چې

قَالَ فَمَا مَاطَ أَحَدُهُمْ عَنْ مَوْضِعِ يَدِ

فلانی سړی به دلته پرېوځي او د فلاني سړي بدن به دلته لويږي حضرت انس رضي الله عنه وايي

| رَسُوْلِ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ. | رَوَاهُ | مُسْلِمٌ. |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| حضور ﷺ چې چيرته لاس ايخو دلی وو د هغه ځاي نه يو سړی هم متجاوز نه شو. [مسلم] | | | | | | | |

**توضيح**: (شاور) حضور ﷺ جنګ بدر ته د رسيدلو نه مخکې د خپلو صحابه کرامو نه مشوره وغوښته چې د جنګ ميدان ته ولاړ شي او که نه ، صورت حال دا وو چې حضور ﷺ د ابوسفيان د قافلې نيولو لپاره د مدينې منورې نه د څو صحابه کرامو سره بدر ته ورسيده ، په عجلت کې د وتلو په وجه د صحابه کرامو سره اسلحه هم نه وه ، هلته د ابوسفيان قافله د شام نه واپس راغله او د لارې په بدلولو سره مکې ته ورسيدل ، اهل مکه ته پته ولګيده چې د دوی قافله لوټ شوې ده نو ابوجهل زر ۱۰۰۰ مجهز لښکر تيار کړلو او د جنګ لپاره بدر ته ورسيده ، دلته حضور ﷺ چې د انصارو نه د هجرت نه مخکې په ليلة العقبة کې کومه معاهده اخستې وه هغه دا وه چې کچيرې په حضور اکرم ﷺ باندې کوم قوم د مدينې په ښار کې حمله وکړي نو انصار به يې دفاع وکړي ليکن کچيرې حضور اکرم ﷺ د مدينې نه بهر د چا په تعاقب کې د جنګ لپاره لاړ شي نو انصار دده سره د تللو پابنده نه دي ، د دغه صورت حال په پيش نظر سره حضور ﷺ بار بار د انصارو د سردارانو نه مشوره وغوښتله چې ستاسو رايه او مشوره څه ده ، حضرت سعد بن معاذ ، سخت تقرير وکړلو او د وفادارۍ عهد يې وکړلو چې په دې باندې حضور ﷺ ډير خوشحاله شو او ميدان جنګ ته مخکې شو .

**سعد بن عبادة**: دلته د سعد بن عبادة ، نوم دی شايد د چا نه هير شوي وي ځکه چې په مشهورو رواياتو کې حضرت معاذ ، ذکر دی ، يا کيدلی شي چې دواړو دا خبره کړې وي . **ان نخيضها**: خوض په اوبو کې د ننوتلو په معنی سره دی ، دلته د باب افعال صيغه ده د ننويستلو په معنی سره دی نخيضها ها ضمير آسونو او اوښانو ته راجع کيږي اګرچې د هغو ذکر نشته ليکن د قرينه مقام نه معلوميږي چې ها ضمير دوابو ته راجع کيږي مراد آسونه او اوښان دي. **برک الغماد**: په حبشه کې يو ځای نوم دی ، بعضو ويلي دي چې په يمن کې د يو ښار نوم دی ، ملا علی القاري رحمه الله ويلي دي چې دا د لرې علاقو نه کنايه ده يعنې د دنيا کوم کونج ته چې تاسې ووايي مونږ ځو . **(مصرع)** لويدلو ځای مقتل ګاه ، **(ما ماط)** يعنې په کوم ځای باندې چې حضور ﷺ د کوم کافر د قتل کيدلو او لويدلو اشاره فرمايلې وه هغه لږ هم د هغه ځای نه آخوا ديخوا نشو بلکه په هماغه ځای په دې کې معجزه ظاهره شوه . بريلوی حضرات دا د علم غيب لپاره دليل جوړوي نو بيا به

حضرت عيسى عَلَيْهِ السَّلَامُ معجزه د مړو ژوندي کول د خدائی دليل وي ، بريلويانو ته پکار دي چې هغه ته خدای ووايي . (ای ما اخطأ و تجاوز) .

## د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دعا د جنګ بدر په ورځ

| |
|---|
| ﴿۵﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ وَهُوَ فِيْ قُبَّةٍ يَوْمَ بَدْرٍ |
| او حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د جنګ بدر په ورځ يوه خيمه کې دا دعا |
| اَللّٰهُمَّ اَنْشُدُكَ عَهْدَكَ وَوَعْدَكَ اَللّٰهُمَّ اِنْ تَشَأْ |
| غوښتله ای الله! زه ستا نه ستا آمان غواړم او ستا د وعدې پوره کول غواړم ای الله! که ته دا غواړې |
| لَا تُعْبَدْ بَعْدَ الْيَوْمِ فَأَخَذَ |
| نن نه روسته به ستا عبادت نه کيږي هر کله چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ډيرې عاجزۍ سره دا دعا غوښتله نو |
| اَبُوْ بَكْرٍ بِيَدِهٖ فَقَالَ حَسْبُكَ يَا رَسُوْلَ اللهِ |
| حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لاس مبارک ونيوه هغه وويل يا رسول الله! بس کړه دومره دعا غوښتل کافی |
| اَلْحَحْتَ عَلٰى رَبِّكَ فَخَرَجَ وَهُوَ يَثِبُ |
| دي تاسو ډير زارۍ سره خپل پروردګار نه د فتح او نصرت التجاء کړې ده دي نه روسته حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| فِي الدِّرْعِ وَ هُوَ يَقُوْلُ سَيُهْزَمُ |
| زغره اچولې وه په ډيرې تيزۍ سره د خپلې خيمې نه او وتلو او دا آيت چې هغه وقت نازل شوې وو حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| الْجَمْعُ وَ يُوَلُّوْنَ الدُّبُرَ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ |
| لوړ اواز سره ووايه: د کفارو دا جماعت به شکست وخوري او دا ټول به شاکولو سره تښتي دا روايت بخاري نقل کړی دی. |

**توضيح** : (الححت) اصرار عاجزۍ او زارۍ ته ويل کيږي يعنې تا د خپل رب نه په غوښتولو کې ډيره مبالغه او اصرار وکړلو ، دا کافی ده ! حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ چې کله وکتل چې دده يوه صحابی او امتی ته د مدد الهی د نزول شرح صدر شوئ دی نو يقينا د الله تعالی کومک رسيدلی دی ، نو هغه د

عریش نه راووتلو او د بشارت آیت یې واورولو او د معجزې ظهور وشو. (یثب) ټوپ وهلو او ټوپ وهلو سره راتللو ته ویل کیږي، د خوشحالی په وجه حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په تیزی سره بهر شولو. (فی الدرع) یعنې په داسې حال کې چې هغه د جنګ لپاره زغره اچولې وه، نن سبا د میدان بدر په دغه مقام کې یو مسجد جوړ شوی دی چې د هغه نوم مسجد العریش دی، حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خو د یو ثپرکی (چوپال) لاندې ناست وو، په هغه وخت کې نه مسجد وو او نه کومه چهار دیواري وه.

## په جنګ بدر کې د فرښتو نزول

| |
|---|
| ﴿۶﴾ وَ عَنْهُ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ قَالَ يَوْمَ بَدْرٍ هٰذَا جِبْرَئِيْلُ |
| او حضرت ابن عباس رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ نه روایت دی رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د جنګ بدر په ورځ وفرمائیل دا جبرائیل دی |
| آخِذٌ بِرَأْسِ فَرَسِهٖ عَلَيْهِ أَدَاةُ الْحَرْبِ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ |
| چې د خپل آس سر نیولو سره جنګ د پاره مستعد ولاړ دی او د جنګ سامان یې اخستی دی. [بخاري] |

**توضیح**: هذا جبرئیل: د بدر په جنګ کې د باقاعده جنګ کولو لپاره زر ۱۰۰۰ ملائکې د آسمان نه راغلې وې، پنځه سوه د حضرت جبرئیل علیه السلام او پنځه سوه د حضرت میکائیل علیه السلام سره وې. **اداة الحرب**: سامان جنګ مراد دی یعنې جبرئیل امین د سامان جنګ سره ولاړ وو. د حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جبرئیل عَلَيْهِ السَّلَامُ لیدل او بیا د هغه د مدد لپاره د یو زر ملائکو راتلل دا د معجزې ظهور دی.

| |
|---|
| ﴿۷﴾ وَعَنْهُ قَالَ بَيْنَمَا رَجُلٌ مِّنَ الْمُسْلِمِيْنَ يَوْمَئِذٍ |
| او حضرت ابن عباس رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وایې د جنګ بدر په ورځ هرکله چې یو مسلمان د یو مشرک تعاقب کولو |
| يَشْتَدُّ فِيْ أَثَرِ رَجُلٍ مِّنَ الْمُشْرِكِيْنَ أَمَامَهُ |
| چې په مخه تختیده نو اچانک هغه مسلمان په هغه مشرک باندې د چابک اواز واورېدو بیا هغه |
| إِذَا سَمِعَ ضَرْبَةً بِالسَّوْطِ فَوْقَهُ وَصَوْتَ |
| دیر سور اواز واورېدو چې دایې ویل حَیزُوم مخکې شه بیا د هغه مسلمان نظر خپل مخ کې |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| الْفَارِسِ | يَقُوْلُ | أَقْدِمْ | حَيْزُوْمُ | إِذْ | نَظَرَ | إِلَى الْمُشْرِكِ |

تښتيدونکی مشرک طرف ته لاړه نو وي ليدل چې هغه په ځمکه سم راغور ځيدلی پروت دی هغه دا

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| أَمَامَهُ | خَرَّ | مُسْتَلْقِيًا | فَنَظَرَ | إِلَيْهِ | فَإِذَا | هُوَ قَدْ |

هم وليدل چې د هغه مشرک په پوزه باندي نشان لګيدلي وو او د هغه مخ پري شوی وو چې د چابک

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| خُطِمَ | أَنْفُهُ | وَشُقَّ | وَجْهُهُ | كَضَرْبَةِ | السَّوْطِ |

د وهلو علامه وه يعني ځرنګه چې يوځاي په کامچي وغيره لګيدلو سره شين شي دغه شان د هغه د

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| فَاخْضَرَّ | ذٰلِكَ | أَجْمَعُ | فَجَاءَ | الْأَنْصَارِيُّ |

پوزي هغه حصه چې په هغه د چابک ځغه نبنه په نظر راتله شين شوی وو نو هغه انصاري مسلمان

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| فَحَدَّثَ | رَسُوْلَ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |

چې د مذکوره مشرک مذکوره حال يې ليدلی وو حضور ﷺ ته چې راغلي نو دا ټوله واقعې يې

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| فَقَالَ | صَدَقْتَ | ذٰلِكَ | مِنْ | مَّدَدِ السَّمَاءِ |

ورته بيان کړله حضور ﷺ پوره واقعه اوريدو سره ورته وفرمائيل ته رښتيا وايي هغه فرشته چې

| | | | |
|---|---|---|---|
| الثَّالِثَةِ | فَقَتَلُوْا | يَوْمَئِذٍ | سَبْعِيْنَ |

هغه مشرک يې چابک سره هلاک کړه د دريم آسمان د فوځي کومک فرشته وه د هغه ورځي په جنګ

وَ أَسَرُوْا سَبْعِيْنَ. رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

کې مسلمانانو اويا کافران قتل کړل او اويا يې ګرفتار کړي وو.

**توضيح**: (**يشتد**) تيزي منډې وهلو ته ويل کيږي. (**السوط**) سوط قمچينې (چابک) او کوړې ته ويل کيږي. (اقدم) يعنې مخې ته لاړه شه، (**حيزوم**) **اي حيزوم**! د حضرت جبرئيل يا د کومې بلې ملائکې د آس نوم حيزوم وو. (**خطم انفه**) د مخ ماتولو او دوه ځايه کولو لپاره د خطم لفظ

استعماليږي .(اخضر اجمع) يعني ټول مخ يې شين او تور ګرځيدلی وو ، چونکې دا د ملائکې د لاس کوږه وه نو ځکه يې زهريلا اثر ظاهر شو .

صدقت: يعني د صحابی کرامت د حضور اکرم ﷺ د برکت نه وو لهذا دا د حضور اکرم ﷺ په حق کې معجزه وه ، يا يې داسې وګڼه چې د ملائکو نزول د حضور اکرم ﷺ د نبوت د اثبات لپاره معجزه وه ! په دغه وجه دا حديث په معجزاتو کې راغی .

## د احد په جنګ کې د فرشتو د مدد معجزه

﴿۸﴾ وَ عَنْ سَعْدِ بْنِ اَبِيْ وَقَّاصٍ قَالَ رَاَيْتُ

او حضرت سعد ابن ابي وقاص رضي الله عنه وايي ما د احد په جنګ کې د رسول الله ﷺ نبي او چپ طرف ته

عَنْ يَّمِيْنِ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَعَنْ

سپينو جامو کې دوه سړي وليدل چې هغوئ کې يو د رسول الله ﷺ نبي طرف ته او يو چپ طرف ته

شِمَالِهٖ يَوْمَ اُحُدٍ رَجُلَيْنِ عَلَيْهِمَا ثِيَابٌ بِيْضٌ

وو او هغوئ دواړه ډېر په شدت سره ځمونږ د دښمنانو سره جنګيدل هغه دواړه نه ما مخ کې چيرته

يُقَاتِلَانِ كَاَشَدِّ الْقِتَالِ مَارَاَيْتُهُمَا قَبْلُ وَ لَا بَعْدُ.

ليدلی وو او نه مې د هغه نه روسته چيرته وليدل دي نه ثابته شوه چې هغه دواړه دراصل فرشتي يعني

يَعْنِيْ جِبْرَئِيْلَ وَ مِيْكَائِيْلَ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

حضرت جبرائيل عليه السلام او ميکائيل عليه السلام وو .

**توضيح** : (كاشد القتال) ملائکه چې کله د انسان په شکل کې راځي نو بيا د انسان په صفاتو سره متصف کيږي ، په حديث کې د سخت جنګ کولو مطلب همدا دی چې د يو انسان پشان جنګيدل او که نه نو د ملائکې اصلی طاقت خو دومره دی چې د قوم لوط کلی يې آسمان ته پورته کړي وو او په ځمکه يې ويشتل، همدارنګه جبرئيل عليه السلام په قوم ثمود باندې يو آواز وکړو چې په هغه سره ټول هلاک شول ، بيا عجيبه خبره دا ده چې د انسان په شکل کې ملائکه د انسان د حملې نشانه هم جوړيدلی شي لکه څنګه چې موسی عليه السلام د ملائکې سترګه راوويستله ، حضرت سعد رض نه

شاید حضور ﷺ پخپله ویلي وي چې دا دوه ملائکې جبرائیل او میکائیل دي، په هر حال د ملائکو راتلل او د حضور ﷺ په حفاظت کې د دفاع لپاره جنګېدل د معجزې ظهور دی.

## د ابو رافع د قتل په وخت کې د معجزې ښکاره کېدل

﴿۹﴾ وَعَنِ الْبَرَاءِ قَالَ بَعَثَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَهْطًا إِلَى أَبِي رَافِعٍ

او حضرت براء رضي الله عنه وایي رسول الله ﷺ د صحابه وو یو جماعت ابو رافع یهودي طرف ته ولیږی

فَدَخَلَ عَلَيْهِ عَبْدُ اللهِ بْنُ عَتِيكٍ بَيْتَهُ لَيْلًا وَهُوَ

نو یو صحابي عبد الله ابن عتیک رضي الله عنه د هغه خوابګاه ته په داسي حال کي چې هغه ویده وه داخل شو

نَائِمٌ فَقَتَلَهُ فَقَالَ عَبْدُ اللهِ. بْنُ عَتِيكٍ فَوَضَعْتُ السَّيْفَ

او هغه یې مړ کړلو عبد الله بن عتیق بیان کړي چې ما د ابو رافع پر خیټه توره کېښودله تر دي پورې

فِي بَطْنِهِ حَتَّى أَخَذَ فِي ظَهْرِهِ فَعَرَفْتُ أَنِّي قَتَلْتُهُ فَجَعَلْتُ

چې هغه د شا د طرف نه بهر راووتله هر کله چې زه پوهه شوم چې د هغه کار تمام شوی دی نو ما د

أَفْتَحُ الْأَبْوَابَ حَتَّى انْتَهَيْتُ إِلَى دَرَجَةٍ فَوَضَعْتُ رِجْلِي

قلعه دروازي خلاصول شروع کړل او بیا زه یوي زیني ته ورسیدم څرنګه چې ما قدم کیخوده د

فَوَقَعْتُ فِي لَيْلَةٍ مُّقْمِرَةٍ فَانْكَسَرَتْ سَاقِي فَعَصَبْتُهَا بِعِمَامَةٍ

سپوږمۍ خوره رڼا کې داسي راوغورځیدم چې ځما پنډۍ ماته شوه ما په خپلي لنګوټۍ سره پنډۍ

فَانْطَلَقْتُ إِلَى أَصْحَابِي فَانْتَهَيْتُ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

وتړله او خپلو ملګرو ته ورسیدم چې د قلعه لاندي ولاړ وه بیا زه د رسول الله ﷺ په خدمت کې

فَحَدَّثْتُهُ فَقَالَ ابْسُطْ رِجْلَكَ

حاضر شوم حضور ﷺ ته مي ټوله واقعه بیان کړه حضور ﷺ وفرمائیل خپله پښه وغزوه

| فَكَأَنَّمَا | فَمَسَحَهَا | رِجْلِي | فَبَسَطْتُ |
|---|---|---|---|

ما خپله پښه وغزوله حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ څما په پښه خپل لاس مبارک راتیر کړو نو هغه وقت څما پښه داسي روغه

| رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ | قَطُّ. | أَشْتَكِهَا | لَمْ |
|---|---|---|---|

جوړه شوه لکه چې هغې ته څه تکلیف نه وي رسیدلی.

**توضیح**: په مدینه منوره کې ابورافع یو خبیث یهودی وو، لوی تاجر وو، معاهد وو مګر هغه د مسلمانانو سره معاهده ماته کړله او د اسلام او اهل اسلام په بدګوئی کې مصروفه شو، شر او فساد یې خوروه، د مسلمانانو په مذمت کې یې قصیدې ویلې او په دې قصیدو به یې مجلسونه ګرمول او فتنه یې راپورته کوله، د هغه کنیه ابوالحقیق وو، نهایت بد باطن انسان وو، حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عبدالله بن عتیک د هغه د قتل لپاره ولیږه، حضرت عبدالله بن عتیک په یوه حیله سره د هغه قلعه ته داخل شو او چوکیدار به چې چیرته چابیاني اینبودلې هغه یې معلومې کړې او بیا یې کلیانې واخیستلې او پاس بالاخانو ته لاړلو او د ابورافع کوټې ته ورسیدلو او د خوب په حالت کې یې په هغه باندې یوه حمله وکړه چې ناکامه شوه بیا یې دویمه حمله وکړه او ابورافع یې قتل کړلو. په واپسی کې د زینو نه وغورځیده چې یوه پښه یې ماته شوه، حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته راغی هغه یې دم کړلو پښه یې بلکل صحیح شوه او د معجزې ظهور وشو.

## غزوه احزاب کې د طعام معجزه

| فَجَاءَ | شَدِيدَةٌ | كُدْيَةٌ | فَعَرَضَتْ | نَحْفِرُ | الْخَنْدَقِ | يَوْمَ | إِنَّا | قَالَ | جَابِرٍ | ﴿۱۰﴾ وَعَنْ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|

او حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي مونږ خلقو د خندق په ورځ خندق او خکو یو سخت کانړی راوخته صحابو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ

| الْخَنْدَقِ | فِي | عَرَضَتْ | كُدْيَةٌ | هٰذِهِ | فَقَالُوا | وَسَلَّمَ | عَلَيْهِ | اللهُ | صَلَّى | النَّبِيَّ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|

د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خدمت کې راغلل عرض یې وکړو چې د کیندلو په ځاي کې یو سخت کانړی راختلی

| ثُمَّ | نَازِلٌ | أَنَا | فَقَالَ |
|---|---|---|---|

دی حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمائیل زه خپله په خندق کې خکته کیدو سره کورم نو حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سمدستي

قَامَ وَبَطْنُهُ مَعْصُوْبٌ بِحَجَرٍ وَّلَبِثْنَا ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ

راپاڅيدو هغه وقت د ولږې نه د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خېټه مبارکه کاڼى تړلى وو او مونږ تول خلق درې ورځو

لَانَذُوْقُ ذَوَاقًا فَأَخَذَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمِعْوَلَ

نه په دې حال کې وو چې مونږ هيڅ نه وو خوړلي څه شى د څکلو هم نه وو حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ کولنګ په لاس

فَضَرَبَ فَعَادَ كَثِيْبًا أَهْيَلَ.

مبارک کې واخسته او د خندق کندې ته خکته کيدو سره په کاڼي يې يو داسې سخت ګذار وکړو چې

فَانْكَفَأْتُ إِلَى امْرَأَتِيْ فَقُلْتُ

هغه کاڼي د بهيدلي ريګ په شان زره زره شو حضرت جابر. وايې دې نه روسته زه خپل کورته

هَلْ عِنْدَكِ شَيْءٌ فَإِنِّيْ

راغلم او خپلې ښځې سهيله بنت معوذ انصاريه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا نه مې پوښتنه وکړه تا سره د خوراک څه شته ما

رَأَيْتُ بِالنَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَمَصًا شَدِيْدًا فَأَخْرَجَتْ

رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ باندې د ولږې سخت اثر ليدلى دى په دې اوريدو سره ځما ښځې يوه تيلى راوايستله

جِرَابًا فِيْهِ صَاعٌ مِّنْ شَعِيْرٍ وَّلَنَا بُهَيْمَةٌ

په هغې کې تقريبًا درې نيم سيره اوربشې وې او زمونږ کره د بزې (چيلى) يا کورنى ميږې يو ورکوټى

دَاجِنٌ فَذَبَحْتُهَا وَطَحَنَتِ الشَّعِيْرَ حَتّٰى جَعَلْنَا اللَّحْمَ فِي الْبُرْمَةِ

شان بچى وو ما هغه بچى ذبح کړو او ځما ښځې اوړه واغږل بيا ما غوښه په کټوى کې اچولو سره په

ثُمَّ جِئْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَسَارَرْتُهُ فَقُلْتُ

نغرې کيښود له بيا زه رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته ورسيدم او پټ مې ورته عرض وکړو يا رسول الله! مونږ د

يَا رَسُوْلَ اللهِ ذَبَحْنَا بُهَيْمَةً لَنَا وَطَحَنْتُ صَاعًا مِّنْ شَعِيْرٍ

بزي يو ورکوټی بچی ذبح کړی دی او څما ښځي تقريبًا دري نيم سيره اوربشي وړه کړي دي دغه شان

فَتَعَالَ أَنْتَ وَنَفَرٌ مَّعَكَ فَصَاحَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

څه خلقو د پاره خو ما طعام تيار کړی دی تا سو څو کسانو سره تشريف راوړی. په دي اوريدو سره

يَا أَهْلَ الْخَنْدَقِ إِنَّ جَابِرًا صَنَعَ سُوْرًا فَحَيَّ هَلًا

حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ پورته اواز سره اعلان وکړو خندق والا و! راځئ جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ستاسو د ميلمستيا د پاره

بِكُمْ فَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

طعام تيار کړی دی راځئ چې زر ورشو بيا حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ماته وفرمائيل ته لاړ شه د طعام انتظام وکړه

لَا تُنْزِلَنَّ بُرْمَتَكُمْ وَلَا تَخْبِزُنَّ عَجِيْنَكُمْ حَتّٰى

ليکن خپله کټوی د نغري نه مه خکته کوه او مه ډوډي پخوه تر څو پوري چې زه رانشم بيا حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

أَجِيْءَ وَجَاءَ فَأَخْرَجْتُ لَهُ عَجِيْنًا

زمونږ کره تشريف راوړه ما اغږلي وړه د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مخ کې کيښودل نو رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په هغه کې

فَبَصَقَ فِيْهِ وَبَارَكَ ثُمَّ عَمَدَ إِلٰى بُرْمَتِنَا

لاړې مبارکې واچولي او د برکت دعاييي وکړه بيا د کټوی طرف ته را مخ کې شو او په هغه کې يې د

فَبَصَقَ وَبَارَكَ ثُمَّ قَالَ اُدْعِيْ خَابِزَةً

خپلې خولې مبارکې لعاب واچول او د برکت دعايې وکړه بيا حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمائيل چې روټی

فَلْتَخْبِزْ مَعَكِ وَاقْدَحِيْ مِنْ بُرْمَتِكُمْ

پخونکې را وغواړه چې تا سره روټی پخوي او ماته راکوي او په څمڅۍ سره د کټوي نه ترکاري

| وَلَا | تُنْزِلُوْهَا | وَهُمْ | أَلْفٌ | فَأُقْسِمُ |
|---|---|---|---|---|
| راو باسه ليکن کتهوی دې په انغري پرته وي حضرت جابر رضي الله عنه وايي هغه وقت خندق والا زر (۱۰۰۰) | | | | |
| بِاللهِ | لَأَكَلُوْا | حَتّٰى | تَرَكُوْهُ | وَانْحَرَفُوْا |
| نفر وو او زه په الله! قسم کوم چې هغه ټولو هغه طعام په وخوړلو ليکن طعام هم هغه شان پاتې | | | | |

| وَإِنَّ | بُرْمَتَنَا | لَتَغِطُّ | كَمَا | هِيَ | وَإِنَّ | عَجِيْنَنَا |
|---|---|---|---|---|---|---|
| شو هرکله چې ټول خلق ولاړل نو کتهوئ دغه شان په انغري پخيدله څرنګه چې مخکې وه او روټۍ | | | | | | |

لَيُخْبَزُ كَمَا هُوَ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

څرنګه چې شروع کې وه. [بخاري مسلم]

**توضيح** : په کاف باندې ضمه ده او دال ساکن دی او په ياء باندې زور دی ، په ځمکه کې ښکاره کيدونکې سختې او مضبوطې تيږې ته وايي چې په هغې کې کولنګ اثر نه کوی. **(معصوب) اى مربوط بحجر** يعنې په خيټې باندې يې تيږه تړلې وه. **(ذواقا)** د څکلو لپاره هيڅ نه وو، **(المعول)** کولنګ ته وايي. **(کثيبا)** يعنې د شګو يوه ډيری جوړه شوه. **(اهيل)** د نرمو شګو د ډيری نه لاندې طرفته چې کومه شګه غورځي هغې ته اهيل وايي، په قرآن کريم کې دي (وکان الجبال کثيبا مهيلا) خلاصه دا چې د کومې تيږې د ماتولو نه چې صحابه کرام عاجزه راغلل د حضور صلى الله عليه وسلم د يو کولنګ وهلو سره هغه ريزه ريزه شو او د معجزې ظهور راغی. **(فانکفأت) اى رجعت** يعنې زه د خپلې ښځې طرفته واپس راغلم. **(خمصا) اى جوعا** يعنې په حضور صلى الله عليه وسلم باندې ما سختې ولږې اثرات ليدلی دی لکه د بدن خواريدل، کمزوری کيدل، د رنګ زيړيدل. **(بهمة)** د ميږې (ګډې) بچی ته ويل کيږي د وزې (چيلۍ) پر بچی باندې يې هم اطلاق کيږي مګر دلته د ميږې بچی مراد دی. **(داجن)** کور کې تړل شوې وزې (چيلۍ) وغيره ته داجن ويل کيږي يعنې کورنۍ. **(البرمة)** برمة د تيږې نه جوړه شوې کتهوی ته ويل کيږي بيا په مطلق کتهوې باندې ويل شوی که هغه د تيږې نه وي يا نه وي.

(فسار رته) پټو خبرو کولو ته ویل کیږي ، پټو یې ځکه کولې چې خوراک کم وو . (سورا) ای طعاما د فارسي خوراکونو کې د ضیافت یو خوراک ته سور ویل کیږي حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د دغه نوم په اخیستلو سره دې قسم خوراک ته اعزاز وبخښلو .

(فبصق فیه) د تبرک لپاره یې د خولې لاړې په هغه کې واچولې . (و بارک) یعنې د برکت دعاء یې وفرمایله . (اقدحی) یعنې په څمڅې سره ښوروا اوباسه . (تغط) د جوش وهلو په معنی سره دی یعنې په کټوۍ او خوراک کې د معجزې ظهور راغی ، نو نه اوړه ختمیدل او نه ترکارۍ ختمیدله .

## د عمار ابن یاسر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ باره کښې پشن ګوئي

| |
|---|
| ﴿۱۱﴾ وَ عَنْ أَبِيْ قَتَادَةَ أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ قَالَ لِعَمَّارٍ |
| او حضرت ابو قتاده رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی چې عمار ابن یاسر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خندق وستلو او رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د هغه |
| حِيْنَ يَحْفِرُ الْخَنْدَقَ فَجَعَلَ يَمْسَحُ رَأْسَهُ وَيَقُوْلُ بُؤْسَ بْنِ سُمَيَّةَ |
| په سر لاس مبارک ګرځولو سره د هغه د سر نه یې خاوره څنډله او دایې فرمائیل های د سمیه ځویه د |
| تَقْتُلُكَ الْفِئَةُ الْبَاغِيَةُ. رَوَاهُ مُسْلِمٌ. |
| (عمار) ابن یاسر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سختي او مصیبته تا به د باغیانو یوه ډله قتل کوي . |

**توضیح** : (بؤس عمار) بؤس او بأس د سختۍ و شدت او مصیبت په معنی سره دی . حضرت سمیه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا د حضرت عمار ، د مور نوم دی چې د اسلام اولنۍ شهیده ده . (الفئة الباغیة) یعنې د وخت د امام د اطاعت نه وتونکې فرقه به تا قتل کوي . د اطاعت نه وتونکې فرقه د حضرت معاویه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره وه چې د حضرت علی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په لاس باندې بیعت کړی نه وو او بیا د حضرت علی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په مخالفت کې راپورته شول . حضرت عمار رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د حضرت علی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره وو او د هغه د مخالفینو په لاسونو باندې شهید شو . حضرت علی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ امام برحق وو او د حضرت معاویه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه غلطي شوې وه . دا مشاجرات د صحابه کرامو معاملات دي چې کله الله تعالی زمونږ لاسونه ددغو نفوس قدسیو د وینې نه پاک کړي دي نو په مونږ باندې فرض دي چې مونږ د خپلو مسلمانو وروڼو په مینځ کې کیدونکي دغه خونریزۍ نه خپلې ژبې هم محفوظ کړو . په جنګ جمل کې نهه زره کسان مړه شوي وو . دغه جنګ د حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا او حضرت علی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په مینځ

کې د منافقینو د دوکې په وجه شوی وو، بیا د حضرت معاویه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او حضرت علی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په مینځ کې په مقام صفین کې جنګ شوی وو، په هغه کې ۷۵زره یا ۹۰ زره کسان مړه شوي وو.

حضرت معاویه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ به د (الباغیة) په الفاظو کې څه تأویل کولو. ملاعلی القاری رحمه الله لیکلي چې دغه تأویلات نقل کول پکار نه دي، د حضرت عمار رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د شهادت د پیشن ګوئی په پوره کیدلو بانديې د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د معجزې ظهور وشو.

## حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د اقدامي جهاد پیشن ګوئی وکړه

| |
|---|
| ﴿۱۲﴾وَعَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ صُرَدٍ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| او حضرت سلیمان ابن صرد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي کوم وقت چې د غزوه احزاب نه د دښمنانو لښکر وتختیده او د |
| حِيْنَ أُجْلِيَ الْأَحْزَابُ عَنْهُ اَلْآنَ نَغْزُوْهُمْ وَلَايَغْزُوْنَنَا |
| مدینې منورې محاصره لیرې شوه نو رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمائیل اوس دښمن په مونږ حمله نشي کولی |
| نَحْنُ نَسِيْرُ إِلَيْهِمْ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ. |
| هو مونږ به د هغوئ سره جهاد کوو او په هغوئ به لښکر کشي کوو. |

**توضیح**: د خوف او خطر په اعتبار بانديې غزوه خندق یعنې جنګ احزاب د ټولو نه زیات خطرناک جنګ وو لکه څنګه چې د تنګۍ او مشقت په اعتبار غزوه تبوک د ټولو نه د زیات مشقت والا غزوه وه. په جنګ احزاب کې د کفار قریش مختلف قبائل راجمع شوي وو، تر یوې میاشتې د مدینې منورې محاصره پاتې شوه په آخره کې کفار ناکامه واپس شول، د اجلی الاحزاب مطلب همدا دی چې کله محاصره ختمه شوه او احزاب واپس لاړل نو حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ پیشن ګوئي وفرمایله چې آینده به په جزیرة العرب کې په دغو کفارو بانديې مونږ اقدام کوو، دوی په مونږ بانديې اقدام کولی نشي ځکه چې د دوی طاقت اوس مات شوی دی، لکه څنګه چې د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمان رشتني ثابت شو او اقدام د مسلمانانو له طرف نه وشو او د حضور اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د معجزې ظهور وشو. په ټول اهل اسلام بانديې دا واضح کیدل پکار دي چې الله تعالی او د هغه رسول صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په آخر کې مسلمانانو ته د کفارو خلاف د اقدام حکم کړی دی لهذا د دفاعی جنګ معذرت خواهانه پوزیشن د دنیا مخې ته پیش کول په کار نه دی. همدارنګه معجزې ته علم غیب ویل د علم نه د لرې والي نتیجه ده.

## د فرشتو د مدد معجزې ښکاره کیدل

﴿۱۳﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ لَمَّا رَجَعَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنَ الْخَنْدَقِ

او دبي بي عائشي رَضِيَ اللهُ عَنْهَا بیان دی رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د غزوه خندق نه بیرته راتلو سره خپل جسم نه هتیار

وَوَضَعَ السِّلَاحَ وَاغْتَسَلَ أَتَاهُ جِبْرَئِيْلُ وَهُوَ

(اسلحه) خکته کوله او د غسل اراده یې کوله چې حضرت جبرائیل) د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خدمت

يَنْفُضُ رَأْسَهُ مِنَ الْغُبَارِ فَقَالَ قَدْ

کې راغی داسې حال کې چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د خپل سر مبارک نه گرد او غبار څنډلو او هغه ورته وویل

وَضَعْتَ السِّلَاحَ وَاللهِ مَا وَضَعْتُهُ أُخْرُجْ

تا سو خو اسلحه ایخې ده او قسم په الله ما هتیار نه دی خکته کړی اوس خو پرکافرو باندې لښکر کشي

إِلَيْهِمْ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ فَأَيْنَ فَأَشَارَ إِلَى بَنِيْ

کول دي رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عرض وکړو چې چیرته؟ حضرت جبرائیل) بني قریظه طرف ته اشاره

قُرَيْظَةَ فَخَرَجَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ . مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

وکړه نو حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د خپلو صحابو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ سره بني قریظه طرف ته روان شو [بخاري، مسلم]

وَ فِيْ رِوَايَةٍ لِلْبُخَارِيِّ قَالَ اَنَسٌ كَأَنِّيْ

او د بخاري په یو حدیث کې د حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه دا الفاظ هم منقول دي چې گویا زه هغه گرد غبار

أَنْظُرُ إِلَى الْغُبَارِ سَاطِعًا فِيْ زُقَاقِ بَنِيْ غَنَمٍ مَوْكِبَ جِبْرَئِيْلَ

اوس هم وینم چې د بنو غنم په کوڅو کې د حضرت جبرائیل عَلَيْهِ السَّلَامُ سره د تلونکو سپرو فرشتو د جماعت

حِيْنَ سَارَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ إِلَى بَنِيْ قُرَيْظَةَ.

په سبب هغه وقت پورته کیده کوم وقت چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بنو قریظه طرف ته روان وو.

**توضیح:** اتاه جبرئیل: یعنې د غزوه خندق نه فارغیدو سره حضور ﷺ د جنګ اسباب کېښودل او د غسل تیاری یې شروع کړو چې په همدې وخت کې جبرئیل علیه السلام راغلو او ګرد آلود او مسلح وو او ویې فرمایل چې تا د جنګ اسباب لرې کړل حالانکه ملائکې ترا وسه مسلح دي؟ نو د ملائکو راتلل او مسلح کیدل د حضور ﷺ مدد کول دا د معجزې ظهور وو . د غسل مطلب دا نه وو چې هغه غسل کړی وو بلکه د غسل تیاری یې کولو چې جبرئیل علیه السلام راغی .

موکب: دا لفظ منصوب بنزع الخافض دی (ای من موکب جبرئیل) یعنې د حضرت جبرئیل علیه السلام د جماعت ملائکو د تګ په وجه د بنوغنم په کوڅو کې ګرد پورته کیده ځکه چې ټولې ملائکې په آسونو سورې وې .

## د حضور ﷺ ګوتو مبارکو نه د اوبو وتلو معجزه

| |
|---|
| ﴿۱۴﴾ وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ عَطِشَ النَّاسُ يَوْمَ الْحُدَيْبِيَّةِ |
| او حضرت جابر رضي الله عنه وایي مقامِ حدیبیه کې یوه ورځ داسي وشو چې د اوبو د شدید قلت په سبب |
| وَرَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَ يَدَيْهِ رَكْوَةٌ فَتَوَضَّأَ |
| خلق سخت تږي شول هغه وقت حضور ﷺ سره یوه لوټه وه هغې نه حضور ﷺ اودس وکړو او په |
| مِنْهَا ثُمَّ أَقْبَلَ النَّاسُ نَحْوَهُ قَالُوا |
| هغې کې څه لږ اوبه پاتې شوې خلکو د حضور ﷺ په خدمت کې حاضریدو سره عرض وکړو چې |
| لَيْسَ عِنْدَنَا مَاءٌ نَتَوَضَّأُ بِهِ وَلَا نَشْرَبُ |
| په لښکر کې د څکلو او اودس کولو د پاره اوبه بالکل نشته بس هغه څه لږ اوبه دي چې ستاسو نه په |
| إِلَّا مَا فِيْ رَكْوَتِكَ فَوَضَعَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| لوټه کې پاتې شوي دي او ښکاره ده چې په دي سره د ټولو خلقو کار نه کېږي حضور ﷺ په دې |
| يَدَهُ فِي الرَّكْوَةِ فَجَعَلَ الْمَاءُ يَفُوْرُ مِنْ بَيْنِ أَصَابِعِهِ |
| اوریدو سره خپل لاس مبارک هغه لوټه کې دننه کړو نو د حضور ﷺ د ګوتو مبارکو نه اوبه داسي |

| فَشَرِبْنَا | قَالَ | الْعُيُوْنِ | كَأَمْثَالِ |
|---|---|---|---|
| جاري شوي لکه د چینې نه چې جاري شوي وي د حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ بیان دی مونږ ټولو اوبه ښه وڅکلې | | | |

| كُنْتُمْ | كَمْ | لِجَابِرٍ | قِيْلَ | وَتَوَضَّأْنَا |
|---|---|---|---|---|
| او اودس مو وکړو د حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه پوښتنه وشوه په هغه موقع تا سو څومره کسان | | | | |

| كُنَّا | لَكَفَانَا | أَلْفٍ | مِائَةَ | كُنَّا | لَوْ | قَالَ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وئی هغه وویل که مونږ یولاک کسان وئی نو هم هغه اوبه کافي کیدې هسې هغه وقت څمونږ تعداد | | | | | | |

خَمْسَ عَشْرَةَ مِائَةً. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

پنځلس سوه ۱۵۰۰ وو. [بخاري مسلم]

**توضیح** : (رکوة) د اوبو لوښي ته رکوة ویل شوې که هغه لوټه وي او که مشکیزه وي .دحضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د ګوتو نه د چینو په شان اوبه جاري شوې ، په دې سره د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د معجزې ظهور وشو ، دا د حدیبیه واقعه ده .

**خمس عشرة مأة:** په دې روایت کې د پنځلس سوه ذکر دی او په وړېسې روایت کې د څوارلس سوه ذکر دی . احناف پنځلس سوو ته ترجیح ورکوی او شوافع څوارلس سوو ته ترجیح ورکوي ځکه چې په دې عدد باندې د غزوه خیبر د مال غنیمت د تقسیم مسئله متفرع ده چې په کتاب الجهاد کې په تفصیل سره لیکل شوې ده او په دې کې د احنافو او شوافعو اختلاف دی . علامه سیوطی رحمه الله فرمایې چې دغه خلک د څوارلس سوو نه زیات وو بعضو خلک و کسر ذکر کړی نه دی او بعضو کسر پوره شمیرلی دی . د احنافو په نزد دغه مجاهدین پنځلس سوه وو چې د خیبر په جنګ کې شریک شول .

## د خولې د لاړو له برکته وچ کوهي د اوبو نه ډک شو

|  |
|---|
| ﴿۱۵﴾ وَعَنِ الْبَرَآءِ بْنِ عَازِبٍ قَالَ كُنَّا مَعَ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَرْبَعَ عَشْرَةَ مِائَةً |
| او حضرت براء ابن عازب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایې په حدیبیه کې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره مونږ څوارلس سوه افراد وو |

يَوْمَ الْحُدَيْبِيَةِ وَالْحُدَيْبِيَةُ بِئْرٌ فَنَزَحْنَاهَا فَلَمْ
په حديبيه کې يو کوهی وو چې د هغه اوبه مونږ ټولو راايستلو سره استعمال کړې وې او په هغه کې

نَتْرُكْ فِيهَا قَطْرَةً فَبَلَغَ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ
يو قطره اوبه نه وې پاتې شوې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته چې معلومه شوه نو رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ کوهي ته

فَأَتَاهَا فَجَلَسَ عَلَى شَفِيرِهَا ثُمَّ دَعَا بِإِنَاءٍ مِنْ مَّاءٍ
تشريف راوړه او د هغه په غاړه کيناسته بيا حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د اودس د اوبو لوښي غوښتلو سره اودس

فَتَوَضَّأَ ثُمَّ مَضْمَضَ وَدَعَا ثُمَّ
وکړو اودس نه روسته خولې مبارکه کې اوبه واخستې او دعاې وکړله دي نه روسته حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

صَبَّهُ فِيهَا ثُمَّ قَالَ دَعُوهَا سَاعَةً
هغه د خولې اوبه کوهي کې واچولې او وې فرمائيل يو ساعت د پاره کوهي پريږدئ بيا يو ساعت نه

فَأَرْوَوْا أَنْفُسَهُمْ وَرِكَابَهُمْ
روسته په کوهي کې دومره اوبه جمع شوې چې تمام لښکر والاو خپله هم وڅکلې د هغوئ څاروي هم

حَتَّى ارْتَحَلُوا. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ
ښه سيرابه شول او د هغه ځاي نه کوچ کولو پورې هغه کوهي نه يې اوبه اخستلې.

**توضيح**: شفير د کوهی څنډې ته ويل کيږي.

## د مشکيزې په اوبو کې د برکت معجزه

﴿۱۶﴾ وَعَنْ عَوْفٍ عَنْ أَبِي رَجَاءٍ عَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ
او حضرت عوف تابعي رحمه الله د حضرت ابو رجاء تابعي نه او هغه د حضرت عمران ابن حصين رَضِيَ اللهُ عَنْهُ صحابي

قَالَ كُنَّا فِيْ سَفَرٍ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

نه روايت کوي حضرت عمران رضي الله عنه بيان وکړو په يو سفر کې مونږ د رسول الله صلى الله عليه وسلم سره وو په يوه موقع

فَاشْتَكٰى إِلَيْهِ النَّاسُ مِنَ الْعَطَشِ

خلقو د اوبو د تنستوالي په سبب حضور صلى الله عليه وسلم ته د تندي شکايت وکړو په دې اوريدو سره حضور صلى الله عليه وسلم

فَنَزَلَ فَدَعَا فُلَانًا كَانَ يُسَمِّيْهِ

راکوز شو او فلاني سړی يې راوبللو د هغه فلاني سړي نوم ابورجاء خو بيان کړی وو ليکن هغه نه

أَبُوْ رَجَاءٍ وَنَسِيَهُ عَوْفٌ

روسته راوي عوف نه د هغه سړي نوم هير شو ځکه هغه هغه سړی په لفظ فلان سره تعبير وکړو او

وَدَعَا عَلِيًّا فَقَالَ اذْهَبَا فَابْتَغِيَا الْمَاءَ

حضور صلى الله عليه وسلم حضرت علي رضي الله عنه هم طلب کړو او دواړو ته يې حکم وکړو چې ولاړ شئ اوبه تلاش

فَانْطَلَقَا فَتَلَقَّيَا امْرَأَةً بَيْنَ مَزَادَتَيْنِ

کړئ نو هغه دواړه د اوبو تلاش کې اخوا ديخوا وګرځيدل هغوئ يو ځاي کې يوه ښځه وليده چې په

أَوْ سَطِيْحَتَيْنِ مِنْ مَّآءٍ فَجَاءَا بِهَا إِلَى

اوښ باندې زوړند د دوو مشکيزو په منځ کې ناسته وه يا داچې د اوبو دوو سطيحو په منځ کې ناسته

النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاسْتَنْزَلُوْهَا عَنْ

وه دواړو حضراتو هغه ښځه د هغه مشکيزو سره رسول الله صلى الله عليه وسلم ته راوسته بيا هغه ښځه څرنګه چې

بَعِيْرِهَا وَ دَعَا النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ بِإِنَاءٍ

بعضې حضراتو ويلي دي هغې مشکيزې يې د اوښ نه ښکته کړې رسول الله صلى الله عليه وسلم

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فَفَرَّغَ | فِيْهِ | مِنْ | أَفْوَاهِ | الْمَزَادَتَيْنِ | وَنُوْدِيَ | فِي | النَّاسِ |

سره په هغه کې د دواړو مشکيزو د خولو نه د اوبو اچولو حکم وکړو او بيا خلقو ته اواز وشو چې راځئ

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| اِسْقُوْا | فَاسْتَقَوْا | قَالَ | فَشَرِبْنَا | عِطَاشًا |

اوبه وڅکئ او په نورو باندې يې وڅکوئی ټولو خلقو اوبه وڅکلې حضرت عمران رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي غغه

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| أَرْبَعِيْنَ | رَجُلًا | حَتّٰى | رَوِيْنَا | فَمَلَأْنَا | كُلَّ | قِرْبَةٍ |

وقت مونږ خلق څلويښت کسان وو چې سخت تږي وو مونږ ټولو د هغه لوښي نه ښه په مړه خيټه اوبه

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| مَّعَنَا | وَإِدَاوَةٍ | وَّايْمُ | اللهِ | لَقَدْ | أُقْلِعَ | عَنْهَا | وَإِنَّهُ | لَيُخَيَّلُ |

وڅکلې او خپل خپل مشکونه او ښکان چې زمونږ سره وو هغه موډک کړه قسم په الله هر کله چې اوبو

إِلَيْنَا أَنَّهَا أَشَدُّ مِلْئَةً مِّنْهَا حِيْنَ ابْتَدَأَ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ

اخستو سره هغه مشکيزې نه لرې شو نو مونږ محسوسه کړه چې مشکيزه د مخ کې نه زياته ډکه وه.

**توضيح**: **مزادتين:** د توښې اينبودلو ظرف ته ويل کيږي دلته مشکيزه مراد ده. **سطيحتين:** دا هم مشکيزې ته ويل کيږي چې په هغې باندې د چرم لاندې او باندې دوه سطحې وي. **مزادة:** لويې مشکيزې ته ويل کيږي. سطيحه وړه وي، دلته د الفاظو په اداء کولو کې راوی ته شک دی، ددې ښځې قصه په بخاری او مسلم کې ډيره لويه ده مگر دلته مختصره ذکر شوې ده. ددې مشکيزې نه څلويښتو صحابو اوبه وڅکلې او ډير لوښې يې ترينه ډک کړل مگر په اوبو کې کمی رانغی بلکه د معجزې په ظهور سره اوبه اضافه شولې. **اقلع:** يعنې د اوبو اخيستلو والا صحابه چې کله د مشکيزې نه شاته شول، د مؤنث ضمير مزادة ته راجع کيږي.

## دو نو د اطاعت معجزه

﴿۱۷﴾وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ سِرْنَا مَعَ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتّٰى

او حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي يو وار مونږ د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره سفر کوی يو ځاي ته رسيدو سره يو وسيع

نَزَلْنَا وَادِيًا أَفْيَحَ فَذَهَبَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

او عریض میدان کې خکته شواو رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قضائي حاجت د پاره تشریف یوو ړلو هلته حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

يَقْضِيْ حَاجَتَهُ فَلَمْ يَرَ شَيْئًا يَسْتَتِرُ

ته د پاڼ او غونډي وغیره په شان څه شی په نظر رانغی چې د هغه په پناه کې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د خلقو د

بِهِ وَ إِذَا شَجَرَتَانِ بِشَاطِئِ الْوَادِيْ

نظر نه پټیدو سره قضائي حاجت د پاره کیني اچانک د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نظر په دوو ونو باندي راغی

فَانْطَلَقَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ إِلَى إِحْدٰهُمَا

چې د میدان په غاړه ولاړې وې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په هغو کې یوې ونې ته ورسیده او د هغه یوه څانګه

فَأَخَذَ بِغُصْنٍ مِّنْ أَغْصَانِهَا فَقَالَ اِنْقَادِيْ عَلَيَّ بِإِذْنِ اللهِ

نیولو سره یې وفرمائیل د الله! په حکم سره پناه جوړولو د پاره ځما اطاعت وکړه په دې اوریدو سره

فَانْقَادَتْ مَعَهُ كَالْبَعِيْرِ الْمَخْشُوْشِ الَّذِيْ يُصَانِعُ قَائِدَهُ

هغه ونه د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مخې ته په ځمکه داسې راتیټه شوه لکه مهار لګیدلی اوښ چې د خپل شړون

حَتّٰى أَتَى الشَّجَرَةَ الْأُخْرٰى فَأَخَذَ بِغُصْنٍ مِّنْ أَغْصَانِهَا

کې اطاعت کوي بیا حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دوهمې ونې ته ورسیده او د هغه یوه څانګه نیولو سره یې وفرمائیل

فَقَالَ اِنْقَادِيْ عَلَيَّ بِإِذْنِ اللهِ فَانْقَادَتْ مَعَهُ

د الله! په حکم سره ځما اطاعت وکړه د مخکې ونې په شان دې ونې هم فورًا اطاعت وکړو

كَذٰلِكَ حَتّٰى إِذَا كَانَ بِالْمَنْصَفِ مِمَّا

رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د هغه دواړو ونو د درمیاني فاصلې منځ ته رسیدو سره وفرمائیل اوس تا سو د

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| بَيْنَهُمَا | قَالَ | اِلْتَئِمَا | عَلَيَّ | بِإِذْنِ | اللهِ | فَالْتَأَمَتَا |

الله! په حکم سره يوځاي شئ نو هغه دواړه ونې يوځاي شوې او حضور ﷺ د هغه دواړو ونو

| | | | |
|---|---|---|---|
| فَجَلَسْتُ | أُحَدِّثُ | نَفْسِيْ | فَحَانَتْ |

پناه کې قضائي حاجت نه فارغه شو جابر رضي الله عنه وايي زه دې واقعې ليدو سره حيران وم او دې

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| مِنِّيْ | لَفْتَةٌ | فَإِذَا | أَنَا | بِرَسُوْلِ | اللهِ |

عجيبې او غريبې کرشمې متعلق مې غور او فکر کولو سره سوچ مې کولو چې الله! د خپل محبوب

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَ | سَلَّمَ | مُقْبِلًا | وَّ | إِذَا |

نبي په ذريعه دا څرنګه معجزه ښکاره کړه يا دا چې دې واقعې نه جدا زه په خپل سوچ کې غرق پروت

| | | | |
|---|---|---|---|
| الشَّجَرَتَانِ | قَدِ | افْتَرَقَتَا | فَقَامَتْ |

وم چې ناڅاپه ځما نظر يو طرف ته پورته شو نو رسول الله ﷺ مې تشريف راوړلو باندې وليدلو او

كُلُّ وَاحِدَةٍ مِّنْهُمَا عَلٰى سَاقٍ. رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

ګورم چې هغه دواړې ونې يوې بلې نه جدا کيدو سره په خپل خپل ځاي ولاړې دي.

**توضيح**: **افيح**: پراخې شيلې ته افيح ويل کيږي. **شجرتين**: منصوب دی فعل ناصب محذوف دی ای وجد شجرتين. **انقادي علي**: يعنې د پردې کولو لپاره په ما باندې راټولې شئ، زما اطاعت وکړئ راشئ او مخالفت مه کوئ، د غه رنګ د معجزې ظهور وشو او ونې راغلې.

**البعير المخشوش**: دا لفظ د خشاش نه دی. هغه کوچنی لرګی ته خشاش ويل کيږي چې د اوښ په پوزه کې اېښودل کيږي تر څو هغه مطيع پاتې شي او راخکل يې آسانه وي، د مهار کړی شوي اوښ سره تشبيه ورکړی شوې ده.

**يصانع**: د اطاعت په معنی سره دی، (**قائده**) د اوښ کشکونکي ته قائد ويل شوی دی، (**اذاکان**) د کان ضمير حضور ﷺ ته راجع کيږي.

المنتصف: په میم باندې زور دی نون ساکن دی او صاد باندې زور دی مینځ ته ویل کیږي یعنې چې کله حضور ﷺ د دواړو ونو په مینځ کې شو نو دواړو ته یې د یوځای کیدلو حکم وکړلو.

التئما: یعنې یوځای شئ. (احدث نفسی) ما د زړه سره خبرې کولې یعنې ما تعجب کولو.

فحانت: ای ظهرت (لفتة) ای التفاتة یعنې یو ناڅاپه زما نظر یو طرفته پریوتو نو ومې کتل چې حضور ﷺ راروان دی او ونې خپل ځای ته تللي دي، علامه بوصیری رحمه الله ډیر ښه ویلي:

جاءت لدعوته الاشجار ساجدة تمشي اليه على ساق بلا قدم

## دزخم متعلق معجزه ښکاره کیدل

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۱۸﴾ | وَعَنْ | يَزِيْدَ | بْنِ | أَبِيْ | عُبَيْدٍ | قَالَ | رَأَيْتُ | أَثَرَ |

او حضرت ابن ابي عبید تابعي وایي یوه ورځ ما د حضرت سلمه ابن اکوع پنډۍ باندې دزخم نښې

ضَرْبَةٍ فِيْ سَاقِ سَلَمَةَ بْنِ الْاَكْوَعِ فَقُلْتُ يَا أَبَا مُسْلِمٍ

لیدو سره د هغه نه پوښتنه وکړه چې ای ابومسلم! دزخم دا څرنګه نښه ده هغه وویل دا زخم د خیبر په

مَا هٰذِهِ الضَّرْبَةُ قَالَ ضَرْبَةٌ أَصَابَتْنِيْ يَوْمَ

جنګ کي راغلي وو او زخم هم دومره سخت وو چې خلقو کي مشهوره شوه چې د سلمه راغی یعنې

خَيْبَرَ فَقَالَ النَّاسُ أُصِيْبَ سَلَمَةُ فَأَتَيْتُ

دزخم تاب نه راوړلو سره شهید شو لیکن وشوه داسي چې زه دې زخم سره د نبي کریم ﷺ په خدمت کي

النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَنَفَثَ فِيْهِ ثَلَاثَ نَفَثَاتٍ فَمَا

حاضر شوم حضور ﷺ دا زخم دري واره دم کړه او دهغې د برکته زخم یو دم داسي ښه شو چې

اشْتَكَيْتُهَا حَتَّى السَّاعَةِ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ

بیا تر او سه پوري د دي نه ما ته هیڅ تکلیف نه دی شوی.

## دناديده واقعي خبر ورکولو واقعه

| |
|---|
| ﴿۱۹﴾ وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ نَعَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زَيْدًا وَّجَعْفَرًا وَّابْنَ رَوَاحَةَ |
| او حضرت انس رضي الله عنه وايي نبي کريم صلى الله عليه وسلم د زيد رضي الله عنه جعفر رضي الله عنه او ابن رواحه رضي الله عنه د شهادت حال |
| لِلنَّاسِ قَبْلَ أَنْ يَّأْتِيَهُمْ خَبَرُهُمْ فَقَالَ أَخَذَ الرَّايَةَ زَيْدٌ فَأُصِيبَ |
| ددي دري واړو باره کي د خبر راتلو نه مخکي خلقو ته اوروليو وو چې زيد رضي الله عنه جنډه اوچته کړه او هغه شهيد شو |
| ثُمَّ أَخَذَ جَعْفَرٌ فَأُصِيبَ ثُمَّ أَخَذَ ابْنُ رَوَاحَةَ فَأُصِيبَ |
| بيا جعفر رضي الله عنه جنډه لوړ کړي او هغه هم شهيد شو بيا ابن رواحه رضي الله عنه جنډه واخسته او هغه هم شهيد شو |
| وَعَيْنَاهُ تَذْرِفَانِ حَتّٰى أَخَذَ الرَّايَةَ |
| حضور صلى الله عليه وسلم دا بيان کاوه د سترګو نه يې اوښکي جاري وي بيا حضور صلى الله عليه وسلم وفرمائيل آخر هغه سړي جنډه |
| سَيْفٌ مِّنْ سُيُوْفِ اللّٰهِ يَعْنِيْ خَالِدَ بْنَ الْوَلِيْدِ |
| واخسته چې د الله د تورو نه يوه توره ده حضرت انس رضي الله عنه يا روسته ديو راوي بيان دی چې هغه نه د |
| حَتّٰى فَتَحَ اللّٰهُ عَلَيْهِمْ . رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ |
| حضور صلى الله عليه وسلم مراد د خالد ابن وليد رضي الله عنه ذات وو تر دي پورې چې الله تعالى مسلمانانو ته فتحه ورکړه. |

**توضيح**: دا قصه د غزوه موته سره متعلق ده، په شام کي موته د يو ځای نوم دی، په دغه ځای کې په سنه۸ھ کې يو سخت جنګ شوی وو، د دريو زرو صحابو د درې لاکه نه زيات روميانو سره مقابله راغلې وه. حضور صلى الله عليه وسلم په خپله مدينه کې وو مګر د معجزې د ظهور په طور باندې الله تعالى د ميدان جنګ حجابات لرې کړل او حضور صلى الله عليه وسلم په منبر نبوی شريف باندې کيناسته ميدان جنګ يې کتلو. حضور صلى الله عليه وسلم په ترتيب سره حضرت زيد رضي الله عنه، حضرت جعفر رضي الله عنه او حضرت عبد الله بن رواحه رضي الله عنه اميران جوړ کړي وو، دا درې واړه شهيدان شول، ددينه وروسته حضرت خالد بن وليد رضي الله عنه جنګ سنبال کړلو او د فتحې حاصلولو سره واپس راغی، فتحه داسې وه چې د کفارو د محاصرې نه مسلمانان محفوظ راووتل او کفار وروسته شول.

نعي: د يو چا د موت اطلاع او خبر ورکولو ته نعي ويل کيږي . په کتاب الجهاد کې شايد دغه واقعه ما په تفصيل سره ليکلې وي . اهل بدعت بريلويان وايي وګوره د موت نه مخکې حضور ﷺ خبر ورکړلو نو عرض دا دی چې دا د معجزې ظهور شوی دی. معجزه د يو نبي د نبوت دليل وي. معجزه د الوهيت دليل نه وي .

## دغزوه حنين معجزه

| |
|---|
| ﴿۲۰﴾ وَ عَنْ عَبَّاسٍ قَالَ شَهِدْتُ مَعَ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ حُنَيْنٍ |
| او حضرت عباس رضي الله عنه وايي زه د رسول کريم ﷺ سره غزوه حنين کې شريک وم يوه موقع باندي هر کله |
| فَلَمَّا الْتَقَى الْمُسْلِمُوْنَ وَالْكُفَّارُ وَلَّى الْمُسْلِمُوْنَ مُدْبِرِيْنَ |
| چې د مسلمانانو او کافرو په منځ کې شديد خون ريزي وشوه نو شاکولو سره مسلمانان تيښتې ته تيار |
| فَطَفِقَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَرْكُضُ بَغْلَتَهُ قِبَلَ الْكُفَّارِ |
| شول دې په دې وخت کې رسول کريم ﷺ خپلې قچرې ته پونده ورکړله او بلاخوف د کفارو طرف ته |
| وَ أَنَا آخِذٌ بِلِجَامِ بَغْلَةِ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| ورمخکې کيدل يې شروع کړل هغه وقت ما د رسول الله ﷺ د قچرې واګې نيولې وو او په دې خيال مې |
| أَكُفُّهَا إِرَادَةَ أَنْ لَّا تُسْرِعَ وَأَبُوْ سُفْيَانَ بْنُ الْحَارِثِ |
| منع کوله چې هغه تيزې سره چيرته کافرو کې ورننو ځي او د حضور ﷺ د تره زوی ابوسفيان بن الحارث |
| آخِذٌ بِرِكَابِ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| د اظهار عقيدت محبت او حفاظت په طور د حضور ﷺ رکاب ټينګ نيولی وو د دې دوران کې رسول |
| فَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ أَيْ |
| کريم ﷺ زه مخاطب کولو سره راته و فرمائيل ای عباس رضي الله عنه اصحاب سمره رضي الله عنه ته اواز وکړه |

24

عَبَّاسُ نَادِ أَصْحَابَ السَّمُرَةِ فَقَالَ عَبَّاسُ

حضرت عباس رضی اللہ عنہ چې یو بلند اوازو الا سړی وو وایي ما د حضور صلی اللہ علیہ وسلم په حکم په چغه سره وویل چیرته دي

وَكَانَ رَجُلًا صَيِّتًا فَقُلْتُ بِأَعْلَى صَوْتِيْ أَيْنَ أَصْحَابُ

اصحاب سمره رضی اللہ عنہم ایا تاسو خپل هغه بیعت هیر کړو چې تاسو د حضور صلی اللہ علیہ وسلم د مدد او حفاظت دپاره

السَّمُرَةِ فَقَالَ فَوَاللهِ لَكَأَنَّ عَطْفَتَهُمْ حِيْنَ سَمِعُوْا

دوني لاندي کړی وو حضرت عباس رضی اللہ عنہ وایي قسم په الله زما داواز اوریدو سره اصحاب سمره رضی اللہ عنہم

صَوْتِيْ عَطْفَةُ الْبَقَرِ عَلَى أَوْلَادِهَا

داسي په منډه راواپس سو څرنګه چې غواګاني د زیات محبت او شوق نه خپلو بچو طرف ته په منډه

فَقَالُوْا يَا لَبَّيْكَ يَا لَبَّيْكَ قَالَ فَاقْتَتَلُوْا

واپس راځي او هغه اصحاب سمرو ویل ای قومه مونږ حاضریو ی قومه مونږ حاضریو نو مسلمانان

وَالْكُفَّارَ وَالدَّعْوَةُ فِي الْأَنْصَارِ يَقُوْلُوْنَ

دنوي سره همت او جوش سره کافرو سره په جنګ شو او انصار صحابه رضی اللہ عنہم خپلو کي یو بل بلل او د

يَا مَعْشَرَ الْأَنْصَارِ! يَا مَعْشَرَ الْأَنْصَارِ!

حوصلي ورکولو دپاره د غازیانو په شان داسي بلنه شروع کړه چې ای د انصارو ډلي ای د انصارو ډلي

قَالَ ثُمَّ قُصِرَتِ الدَّعْوَةُ عَلَى بَنِي الْحَارِثِ بْنِ الْخَزْرَجِ

همت نه کار واخلئ او په دشمن ورپریوځئ بیا دا چغه قبیله بنو حارث بن خزرج پوري محدوده شوه

فَنَظَرَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ وَ هُوَ عَلَى بَغْلَتِهِ

دوران کي رسول کریم صلی اللہ علیہ وسلم په خپلي قچرې باندي دیو طاقتور سور په شان جمع شوی وو جنګیدونکو

كَالْمُتَطَاوِلِ عَلَيْهَا إِلَى قِتَالِهِمْ

مسلمانانو باندي نظر اچولو او بعضي حضراتو د کالمتطاول دا معنیٰ بیان کړي ده چې قچرې باندي

فَقَالَ هٰذَا حِيْنَ حَمِيَ الْوَطِيْسُ

ګردن لوړولو سره دليدونکو په شان ناست وو يعني څرنګه چې ثوک دځان نه د لرې شی ليدو

ثُمَّ أَخَذَ حَصَيَاتٍ فَرَمٰى بِهِنَّ

دپاره ګردن (څټ) لوړولو سره نظر اچوي بيا حضور ﷺ څه شګې په لاس کې او چتې کړلې او شاهت

وُجُوْهَ الْكُفَّارِ ثُمَّ قَالَ انْهَزَمُوْا وَرَبِّ مُحَمَّدٍ

الوُجُوْهُ ويلو سره هغه شګې يې د کافرو طرف ته وويشتلې و فرمائيل د محمد ﷺ په رب مې دې قسم

فَوَاللّٰهِ مَا هُوَ إِلَّا أَنْ رَمَاهُمْ بِحَصَيَاتِهِ

وې کافرو ته شکست وشو حضرت عباس رضي الله عنه وايي قسم په الله دا شکست چې کافرو ته وشو د حضور ﷺ

فَمَا زِلْتُ أَرٰى حَدَّهُمْ كَلِيْلاً

د شګې ويشتلو په سبب وشو شګو ويشتلو نه روسته آخره پورې ما برابر کتل چې د کافرو تيزي او

وَ أَمْرُهُمْ مُدْبِرًا. رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

شدت سره چليدونکې توري سپکې او پښې کيدلې او د هغوی انجام د ذلت او خوارۍ نه ډک شوی وو.

**توضیح**: د مکې د فتحې نه وروسته په سنه ۸ هـ کې د حنين غزوه پيښه شوه ، د هغه ځای خلکو وغوښتل چې په مسلمانانو باندې حمله وکړي ، حضور ﷺ مخکې والی وکړو او د دوولس زره لښکر سره اول په حنين او بيا اوطاس او بيا طائف کې وجنګيده، په وادی حنين کې ابتداءً عارضی شکست راغی ، صحابه کرام تيت او پرک شوي وو، د حضور ﷺ قريب يو څو صحابه کرام پاتې وو ، هغه يو قدم هم وروسته نشو بلکه مخکې تللو ، حضرت عباس رضي الله عنه د ودرولو کوشش کولو ، بيا د الله تعالی کومک راغی کفارو شکست وخوړو ، حضور ﷺ يو

موټي شګې په کفارو باندې وشيندلې ، په دې سره د معجزې ظهور راغی د آسمان نه ملائکې راغلې په دې سره هم د معجزې ظهور راغی ، همدا قصه حضرت عباس رضي الله عنه بيان کړې ده . (يرکض) د آس تيزولو ته رکض ويل کيږي دلته د قچر ذکر دی .

**اصحاب السمرة:** په حديبيه کې د کيکر د ونې لاندې بيعت کونکي صحابه کرام د اصحاب السمرة په نوم سره ياديږي . **(صيتاً)** يعنې عباس رضي الله عنه د اوچت آواز والا شخص وو . **(عطفة البقر)** عطفة واپس کيدلو ته ويل کيږي، په حيواناتو کې غوا په خپل اولاد باندې بلکل ليونۍ کيږي، کله کله د خپل کور والا ټول افراد وهي او په خپل بچي باندې پرته وي ، دلته د صحابه کرامو په تيزۍ سره راتلل او د حضور صلی الله علیه وسلم شاوخوا راجمع کيدل او بيا د حضور صلی الله علیه وسلم په حفاظت کې لالهانده ودريدلو تشبيه د غوا خپل بچي ته په متوجه کيدلو کې ورکړې شوې ده . **(والکفار)** دا و او په معنی د مع سره دی ، **(الدعوة فی الانصار)** يعنې صرف انصارو ته د جنګيدو لپاره دعوت ورکولی کيده چې ای انصارو مخکې ته لاړ شئ او ښه وجنګيږئ . **(قصرت الدعوة)** يعنې انصارو ته د عام دعوت ورکولو نه بعد ترتيب داسې جوړ شو چې د انصارو خاص خاص قبيلې جنګ ته راوبلل شوې مثلا بنوحارث بن خزرج پورې دا دعوت محدود شو چې تاسې رامخکې شئ او په پوره شور او زور سره وجنګيږئ . **(کالمتطاول)** د غاړې په پورته کولو سره کوم شي ته کتلو والا ته متطاول ويل کيږي ، حضور صلی الله علیه وسلم د جنګ منظر کتل غوښتل په دغه وجه يې غاړه مبارکه پورته کړه ميدان جنګ ته يې کتل شروع کړل . **(هذا حين حمی الوطيس)** وطيس تنور ته هم وايي او په هغه کې د اور شعلو ته هم وايي او حمی ګرميدلو ته وايي او هذا اشاره ده چې مبتدا ده . علامه طيبی رحمه الله فرمايي چې ددې خبر محذوف دی چې القتال دی ، عبارت داسې دی **هذا القتال حين حمی الوطيس ای هذا القتال حين اشتد الحرب**، ليکن ملا علی القاری رحمه الله فرمايي چې زيات واضحه دا ده چې هذا مبتدا شي او حين د هغه لپاره خبر وي ليکن حين مبنی علی الفتحه ګرځي ځکه چې دا مبنی اصل فعل ته مضاف دی ، حَمِيَ فعل دی او الوطيس د هغه فاعل دی ، عبارت به داسې شي ای هذا الزمان زمان اشتداد الحرب، يعنې اوس جنګ خپل ګرميدو ته رسيدلی دی ، داسې ويل کيږي چې دا جمله د ټولو نه مخکې حضور صلی الله علیه وسلم استعمال کړې ده ، عربو ته ددې علم نه وو ، د حضور صلی الله علیه وسلم د استعمال نه بعد ډيره عامه شوه . **(انهزموا و رب محمد)** يعنې د محمد په رب قسم کافرانو ته شکست راغی ، دا جمله حضور صلی الله علیه وسلم تفاؤلاً وو يله او همداسې وشول . (حدهم) يعنې د کفارو

جنګي شدت او د تورو تیزي. (کلیلا) د سستیدلو په معنی سره دی یعنې د هغوی تیزي سسته شوله. (مدبرا) یعنې د هغوی معامله د لویدلو او ذلت طرفته لاړله.

## زمونږ بهادر پیغمبر صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

﴿۲۱﴾ وَعَنْ أَبِيْ إِسْحَاقَ قَالَ قَالَ رَجُلٌ لِلْبَرَاءِ يَا أَبَا عُمَارَةَ

او حضرت ابو اسحاق روایت کوي یو سړي حضرت براء ابن عازب رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ نه پوښتنه وکړه ای ابو عماره

أَفَرَرْتُمْ يَوْمَ حُنَيْنٍ قَالَ لَا وَاللّٰهِ

آیا تاسو خلق غزوه حنین کي د دشمن دمقابلي نه تښتیدلی وئی حضرت براء رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ جواب ورکړو نه قسم په

مَا وَلَّى رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. وَلٰكِنْ خَرَجَ شُبَّانُ

الله رسول کریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هیڅ کله شانه وه ګرځولې صرف دومره شوي وو چې د حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ځو ځلمي صحابه

أَصْحَابِهِ لَيْسَ عَلَيْهِمْ كَثِيْرُ سِلَاحٍ فَلَقُوْا قَوْمًا رُمَاةً

چې هغوی سره زیات هتیار [اسلحه] نه وو اچانک یو تیر آنداز قوم بنو هوازن سره مقابله وشوه دهغه

لَا يَكَادُ يَسْقُطُ لَهُمْ سَهْمٌ فَرَشَقُوْهُمْ رَشْقًا

قوم خلق داسي خطرناک تیر آندازان وو چې دهغوی تیر به په ځمکه نه پریوتلو هغه خلقو پرځوانانو

مَا يَكَادُوْنَ يُخْطِئُوْنَ فَأَقْبَلُوْا هُنَاكَ إِلٰى

صحابو رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمْ باندي نیزي وروول شروع کړل نو دهغوی هیڅ تیر نه خطا کیده هغه وقت چې ځلمي صحابه

رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

کرامو د دشمن دمخي نه اخوا کیدو سره رسول کریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ له راغلل او حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغه وقت پرخپل

عَلٰى بَغْلَتِهِ الْبَيْضَاءِ وَأَبُوْ سُفْيَانَ بْنُ الْحَارِثِ

سپین قچر باندي سپور وو او ابو سفیان ابن حارث د قچري واګي نیولی مخکي وو حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د جنګ

| يَقُوْدُهُ فَنَزَلَ وَاسْتَنْصَرَ |
|---|
| دا پریشان کن نقشه او د خپل صحابه رضي الله عنهم پریشاني لیدو سره د قچري نه را کوز شو او الله تعالی نه یي |
| وَقَالَ اَنَا النَّبِيُّ لَا كَذِبْ اَنَا |
| دمدد او فتحې دعا وغوښتله حضور صلی الله علیه وسلم په لوړ اواز دا هم وفرمائیل زه نبي یم په دي کي څه دروغ |
| ابْنُ عَبْدِ الْمُطَّلِبْ ثُمَّ صَفَّهُمْ. رَوَاهُ مُسْلِمٌ. |
| نشته زه د عبد المطلب زوی یم نو حضور صلی الله علیه وسلم د تمامو مجاهدینو صف بندي وکړله مسلم او بخاري |
| وَلِلْبُخَارِيِّ مَعْنَاهُ وَفِيْ رِوَايَةٍ لَهُمَا قَالَ الْبَرَاءُ |
| ددي مضمون روایت نقل کړی دی او د بخاري او مسلم یو بل روایت کي دا سي دي چې براء ابن عازب رضي الله عنه |
| كُنَّا وَاللهِ اِذَا احْمَرَّ الْبَأْسُ نَتَّقِيْ بِهِ وَاِنَّ |
| وویل قسم په الله کوم وقت چي جنګ سخت شو نو حضور صلی الله علیه وسلم ته رسیدو سره خپل حفاظت به مو کوه بیشکه هغه |
| الشُّجَاعَ مِنَّا لَلَّذِيْ يُحَاذِيْ بِهِ يَعْنِي النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. |
| وقت مونږ کي زیات بهادر او شجاع به هغه سړی وو چې د رسول کریم صلی الله علیه وسلم برابر کي راتلو سره به او دریدلو. |

**توضیح** : (رشقوا) نصر ينصر رشق د غشی ويشتلو ته ويل کيږي . (انا النبى لا كذب) يعني رښتنی نبی هيڅکله نه تښتي ، زه رښتونی پيغمبر يم لهذا د تيښتي سوال نه پيدا کيږي ، همدارنګه زه د عبدالمطلب پشان سردار خاندانی فرد يم د داسې خاندان فرد کله هم نه تښتي .
(فاقبلوا) په دې جمله باندې سوال دا دی چې ددينه مخکې حديث نمبر۲۰ کې د ولى المسلمون مدبرين الفاظ دي چې مسلمانان و تښتيدل او دلته په دې جمله کې دا دي چې مسلمانان د نبی کریم صلی الله علیه وسلم طرفته متوجه شول او دا تعارض دی . ددې جواب دا دی چې په ابتداء کې نوعمر ځوانان وتښتيدل بيا د پاخه عمر والا هم وتښتيدل بيا چې کله حضور صلی الله علیه وسلم وبلل نو فورًا راغلل . نو د مدبرين وخت جدا دی او د اقبلوا وخت جدا دی لهذا تعارض نشته . (احمر البأس) اى اشتد الحرب .

په شديد حرب کې چونکې سره وينه بهيږي په دې وجه هغه ته سور ويل شوی دی ، موت ته هم په دغه وجه (الموت الاحمر) سور مرګ ويل شوی دی .(نتقی به) يعنې حضور ﷺ به مو پناهګاه جوړه او په شدت جنګ کې د خپل ځان ساتلو لپاره به د هغه شا ته ودريدلو . (يحاذيه) دا د محاذات نه دی په برابری کې ودريدلو ته ويل کيږي يعنې زمونږ نه به ډير بهادر کس هغه وو چې په ميدان جنګ کې به د نبی کريم ﷺ په برابری د دښمن په مخکې ودريده ، اللهم صل علی حبيبک اشجع الناس و اشجع العرب . د حضور ﷺ دغه بهادری وه چې د عربو لوی لوی بهادرې دده ګرويده وګرځول ، کچيرې د حضرت خالدبن الوليد رضي الله عنه او ضرار بن ازور رضي الله عنه نه حضور ﷺ زيات بهادر نه وای نو دغو بهادرو د عربو به هيڅکله هم د خپل ځانونو د کمزوري کس په لاس کې به لاس نه ورکاوه ، د هغه ﷺ يو مداح رښتيا ويلي دي :

ان الرسول لنور يستضاء به و صارم من سيوف الله مسلول

## دشګو په شيندلو کې د پيغمبر ﷺ معجزه

﴿۲۲﴾ وَعَنْ سَلَمَةَ بْنِ الْأَكْوَعِ قَالَ غَزَوْنَا مَعَ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حُنَيْنًا

او حضرت سلمه ابن اکوع رضي الله عنه وايي مونږ د رسول کريم ﷺ سره کافرو سره جهاد د پاره غزوه حنين کې

فَوَلّٰى صَحَابَةُ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمَّا غَشُوْا

شريک وو دې غزا کې چې د رسول کريم ﷺ بعضې صحابو د دشمن د مخې نه تښتيدل او کافرو رسول

رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَزَلَ عَنِ الْبَغْلَةِ ثُمَّ قَبَضَ قَبْضَةً

کريم ﷺ کير کړلو نو حضور ﷺ د خپلې قچرې نه را کوز شو او د ځمکې نه يې يو موټې خاوره او چه کړ

مِّنْ تُرَابٍ مِّنَ الْأَرْضِ ثُمَّ اسْتَقْبَلَ بِهِ وُجُوْهَهُمْ فَقَالَ

چې هغې کې شګې هم وې بيا هغه خاورې او شګې يې کافرو طرف ته وويشتلې او وې فرمائيل خراب

شَاهَتِ الْوُجُوْهُ فَمَا خَلَقَ اللهُ مِنْهُمْ إِنْسَانًا إِلَّا مَلَأ

شول د هغوی مخونه نو الله تعالى هغوی کې د اسې هيڅ انسان پيدا کړی نه وو چې د هغه دوا

| |
|---|
| عَيْنَيْهِ تُرَابًا بِتِلْكَ الْقَبْضَةِ فَوَلَّوْا مُدْبِرِيْنَ |
| سترگي الله تعالىٰ هغه يو موټي خاوري نه ډکې کړې نه وې بيا خوتهول کافر وتښتيدل او الله تعالىٰ |
| فَهَزَمَهُمُ اللهُ وَقَسَّمَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ غَنَائِمَهُمْ |
| هغوی ته شکست ورکړو ددې نه روسته رسول کريم ﷺ د هغوی مال چې بطور غنيمت حاصل شوی |
| بَيْنَ الْمُسْلِمِيْنَ. رَوَاهُ مُسْلِمٌ. |
| وو مسلمانانو کې تقسيم کړو . [مسلم] |

## په يو پيش ګوئي کې د معجزې اظهار

| |
|---|
| ﴿۲۲﴾ وَعَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ شَهِدْنَا مَعَ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حُنَيْنًا |
| او حضرت ابو هريره رضي الله عنه وايي مونږ د رسول الله ﷺ سره غزوه حنين کې شريک وو هلته جنګ شروع |
| فَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِرَجُلٍ مِّمَّنْ مَّعَهُ يَدَّعِي الْإِسْلَامَ |
| کيدو نه مخکې ميدان جنګ کې رسول کريم ﷺ د خپل لښکر په خلقو کې د يو سړي باره کې چې ځان ته |
| هٰذَا مِنْ أَهْلِ النَّارِ فَلَمَّا حَضَرَ الْقِتَالُ قَاتَلَ الرَّجُلُ مِنْ أَشَدِّ الْقِتَالِ |
| يې مسلمان ويل او فرمائيل چې دا سړی دوزخي دی بيا چې جنګ شروع شو نو هغه سړی ډيرې بهادرۍ |
| وَكَثُرَتْ بِهِ الْجِرَاحُ فَجَاءَ رَجُلٌ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللهِ |
| سره وجنګيده او د هغه جسم د زخمونو نه ډک صحابو کې يو صاحب عرض وکړو يا رسول الله ﷺ د |
| أَرَأَيْتَ الَّذِيْ تُحَدِّثُ أَنَّهُ مِنْ أَهْلِ النَّارِ قَدْ قَاتَلَ |
| هغه سړي حقيقت حال ماته وښايې چې د هغه باره کې تاسو فرمائيلي وو چې هغه دوزخي دی هغه |
| فِيْ سَبِيْلِ اللهِ مِنْ أَشَدِّ الْقِتَالِ فَكَثُرَتْ بِهِ الْجِرَاحُ |
| د الله تعالىٰ په لار کې ډيرې بهادرۍ سره جنګيدلی دی او ډير زخمونه يې خوړلي دي نه خو د هغه |

فَقَالَ أَمَا إِنَّهُ مِنْ أَهْلِ النَّارِ فَكَادَ بَعْضُ

جنتي کیدل معلومیږي حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ورته وفرمائیل یادلره هغه ددوزخیانو نه دی اوبیا قریب وه چې

الْمُسْلِمِينَ يَرْتَابُ فَبَيْنَمَا هُوَ عَلَى ذٰلِكَ

بعضي ضعیف الایمان خلق میدان جنګ کي دحضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دهغه ارشاد صداقت کي دشک شبهې ښکار

إِذْ وَجَدَ الرَّجُلُ أَلَمَ الْجِرَاحِ فَأَهْوٰى بِيَدِهِ إِلٰى

شي لیکن هغه خلقو ولیدل چې هغه سړي دخپلو زخمونو دتکلیف نه بې ارامه کیدو سره خپل لاس

كِنَانَتِهِ فَانْتَزَعَ سَهْمًا فَانْتَحَرَ بِهَا فَاشْتَدَّ رِجَالٌ مِنَ

ترکش طرف ته مخکي کړو اویو تیر رابښکلو سره خپلې سینې سره یې پیوسته کړو ددې په لیدلو ډیر

الْمُسْلِمِينَ إِلٰى رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالُوْا يَا رَسُوْلَ اللهِ

مسلمانان ویریدل اورسول کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته راغلل اوعرض یې وکړو یارسول الله الله تعالی ستاسو داخبره

صَدَّقَ اللهُ حَدِيْثَكَ قَدِ انْتَحَرَ فُلَانٌ وَقَتَلَ نَفْسَهُ فَقَالَ

رېښتیا کړله چې هغه سړی دوزخي دی هغه خپله سینه خپله شلولو سره خودکشي کړی ده رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَللهُ اَكْبَرُ اَشْهَدُ اَنِّيْ عَبْدُاللهِ وَرَسُوْلُهٗ

وفرمائیل الله تعالی ډیرلوی دی زه ګواهي کوم چې زه د الله تعالی بنده او د هغه رسول یم هغه نه

يَا بِلَالُ قُمْ فَأَذِّنْ لَا يَدْخُلُ الْجَنَّةَ إِلَّا مُؤْمِنٌ

روسته حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حکم وکړو ای بلاله لاړشه و دریږه او خلق اګاه کړه چې جنت کي به صرف مؤمن

وَإِنَّ اللهَ لَيُؤَيِّدُ هٰذَا الدِّيْنَ بِالرَّجُلِ الْفَاجِرِ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

داخلیږي او داچې الله تعالی دادین دفاسق سړي په ذریعه هم مضبوطوي.

**توضیح** : (لرجل) یعنې د یوه شخص په باره کې حضور ﷺ وفرمایل چې دا به دوزخ ته ځي حالانکه هغه د ټولو نه زیات په میدان جنګ کې د کفارو په مقابله کې جنګیده، او ریدونکو ته تردد پیدا شو چې دا به څنګه دوزخ ته ځي ، د دغه شخص نوم قزمان وو دا منافق وو او صرف د قومیت په بنیاد باندې جنګیده ، د منافق جهاد هم معتبر نه دی او د قومیت لپاره هم جهاد نه صحیح کیږي ، ددغه شخص انجام ښودلو کې د معجزې ظهور وشو . (**فانتحر**) سوال دا دی چې په یو روایت کې دي چې دغه شخص په تورې سره خپل ځان ذبح کړلو او دلته د غشي ذکر دی ، دا تضاد دی ؟ ددې جواب دا دی چې اول دغه شخص په غشي باندې خپله غاړه پریکړه مګر چې کله د هغه په موت کې تأخیر راتللو نو بیا هغه په توره باندې خپل ځان قتل کړلو ، دواړه خبرې صحیح دي هیڅ تضاد نشته .

(**بالرجل الفاجر**) یعنې الله تعالی کله کله د خپل دین کار د بې دینه کس نه هم اخلي، جهاد خو د دښمن سره د جنګیدلو نوم دی چې د هغه تعلق د جسم سره دی ، که جسماني طور باندې سړی صحیح وي نو کافر وهلی شي ، چې کافر کله مړ شي نو دین ته به غلبه حاصله شي ، اصل مقصود خو د دین غلبه ده او دا د فاسق بلکه منافق بلکه کافر په لاس هم حاصلیدلی شي، چې کله غلبه حاصله شي نو د فاسق او فاجر په لاس به د دین مدد وشي او تبلیغي حضرات به د ایمان جوړولو جوړولو کې پاتې شي .

## حضور ﷺ باندې د سحر جادو کولو واقعه

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۲۴﴾ | وَعَنْ | عَائِشَةَ | قَالَتْ | سُحِرَ | النَّبِيُّ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| او ام المؤمنین بي بي عائشه ﷺ فرمايي کوم وقت چې رسول کریم ﷺ باندې جادو وشو نو | | | | | | | | |
| حَتَّى | إِنَّهُ | لَيُخَيَّلُ | إِلَيْهِ | أَنَّهُ | فَعَلَ | الشَّيْءَ | وَمَا | فَعَلَهُ |
| د حضور ﷺ دا حالت وو چې د څه کار باره کي به د حضور ﷺ خیال وو چې کړی یې دی حالانکه هغه | | | | | | | | |
| حَتَّى | إِذَا | كَانَ | ذَاتَ | يَوْمٍ | عِنْدِيْ | | | |
| کار به یې نه وو کړی کافي ورځو پورې دا حالت وو تر دې پورې چې یوه ورځ هغه وقت چې حضور ﷺ ما سره وؤ | | | | | | | | |
| دَعَا | اللهَ | وَدَعَاهُ | ثُمَّ | قَالَ | أَشَعَرْتِ | يَاعَائِشَةُ | | |
| حضور ﷺ د الله تعالی نه دعا وغوښتله او بیا یې دعا وکړه بیا حضور ﷺ ما ته وفرمائیل ای عائشې ایا | | | | | | | | |

أَنَّ اللّٰهَ قَدْ أَفْتَانِيْ فِيْمَا اسْتَفْتَيْتُهُ جَاءَنِيْ رَجُلَانِ

تا ته معلومه ده چې الله تعالى ماته هغه خبره خو دلي ده چې ما د هغه نه دریافت کړي وه دي نه روسته

جَلَسَ أَحَدُهُمَا عِنْدَ رَأْسِيْ وَالْآخَرُ عِنْدَ رِجْلِيْ

حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بیان وکړو چې ماته د سړو په صورت کې دوه فرښتې راغلې هغوی کې یو د زما سرطرفته

ثُمَّ قَالَ أَحَدُهُمَا لِصَاحِبِهِ مَا وَجَعُ الرَّجُلِ

کښیناستله او دویمه پښو طرف ته بیا هغې کې یوې دویمې نه پوښتنه وکړه دې سړي ته څه بیماري

قَالَ مَطْبُوْبٌ قَالَ وَمَنْ طَبَّهُ

ده دویمي جواب ورکړو چې جادو پرې شوی دی بیا اولې پوښتنه وکړه چې چا ورباندې کړی دی

قَالَ لَبِيْدُ بْنُ الْأَعْصَمِ الْيَهُوْدِيُّ قَالَ فِيْمَا ذَا

دویمي جواب ورکړو چې لبید بن اعصم یهودي. اولنۍ پوښتنه وکړه په څه شي کې جادو شوي دي

قَالَ فِيْ مُشْطٍ وَمُشَاطَةٍ وَجُفِّ طَلْعَةِ

دویمي جواب ورکړې په ویښتو کې هغه ویښتو کې چې ږمونځې نه غورځېږي او د لوند و خورما په

ذَكَرٍ قَالَ فَأَيْنَ هُوَ قَالَ

پوستو کې کې دوړې چاپیره اولنۍ پوښتنه وکړه دا جادو کړی شوي شیان کوم ځای کې پراته دي؟

فِيْ بِئْرِ ذَرْوَانَ فَذَهَبَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ أُنَاسٍ

دویمي جواب ورکړو د مدینې یو کوهي ذروان کې دي نه روسته حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د خپل څو مخصوصو

مِنْ أَصْحَابِهِ إِلَى الْبِئْرِ فَقَالَ هٰذِهِ الْبِئْرُ الَّتِيْ أُرِيْتُهَا

صحابو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ سره هغه کوهي ته تشریف یوړلو او وې فرمائیل دا هغه کوهی دی چې ماته ښودل شوی

| وَكَأَنَّ | مَاءَ | هَا | نُقَاعَةُ | الْحِنَّاءِ | وَكَأَنَّ | نَخْلَهَا |
|---|---|---|---|---|---|---|
| دی ددي کوهي اوبه د نکريزو په شان سري وي او د خورما وهغه وړی چې په هغه کوهي کي اچول شوی | | | | | | |
| رُءُوسُ | الشَّيَاطِيْنِ | فَاسْتَخْرَجَهُ . مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. | | | | |
| وو داسي وو لکه د شيطانانو سرونه نو حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغه ټول څيزونه د هغه کوهي نه راوښکل. | | | | | | |

**توضيح** : (سحر رسول الله) حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ چې کله د حديبيه د صلحې نه واپس مدينې منورې ته راغلی نو په ذو الحجة سنه ۶ کې په هغه باندې جادو وشو ، د هغه جادو اثر داسې نه وو چې د هغه په وجه په شرعی احکاماتو کې خلل راتللو بلکه د هغه اثر صرف په جسمانی او دنيايې امورو کې وو ، د هغه جسم ضعيفه او ډير کمزوری به وو ، ډير وخت به هغه ته دا خيال وو چې فلانی کار ما کړی دی حالانکه هغه صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به هغه کار کړی نه وو ، ګويا په هغه باندې د دغه جادو په وجه د نسيان غلبه راغلې وه ، د يو يهودی لبيد بن اعصم لورګانو دغه جادو کړی وو . په حضور ﷺ باندې د دغه جادو اثر تر څومره وخته پورې وو ، په دې سلسله کې روايات درې قسمه دي : (۱) په بعضو رواياتو کې د تر څلويښتو ورځو پورې د اثر پاتې کيدو ذکر دی . (۲) په بعضو رواياتو کې تر شپږو مياشتو د اثر باقي پاتې کيدو ذکر دی . (۳) او په بعضو ورواياتو کې تر يوه کاله پورې د اثر پاتې کيدو ذکر دی ، په دې رواياتو کې د تطبيق صورت داسې دی چې د جادو زيات زور تر څلويښتو ورځو پورې وو او د درميانه درجې اثر تر شپږو مياشتو پورې وو او لږ لږ اثر تر يو کال پورې وو . ددې حديث نه خو يوه دا خبره هم ثابته شوه چې جادو يو واقعي حقيقت دی چې د هغه نه انکار کيدلی نشي ، دا کوم خيالی تصور نه دی بلکه ددې حقيقت نه انبياء هم متأثره کيدلی شي .معتزلـو د سحر نه انکار کړی دی ، دا د هغوی د بدعاتو نه يو بدعت دی او د هغوی د باطلو عقائدو نه يوه باطله عقيده ده، ددې حديث نه دويمه خبره دا ثابته شوه چې انبياء کرام انسانان او بشر وو ، کومه بيماری چې کوم انسان متأثره کولی شي انبياء کرام هم متأثره کولی شي البته په انبياء کرامو باندې داسې بيماری نه راځي چې د انسان لپاره باعث د عار يا باعث د نفرت او حقارت وي .ملا علی القاری رحمه الله په انبياء کرامو باندې د سحر کيدلو په باره کې فرمايې (**لان السحر انما يعمل فی ابدانهم وهم بشر يجوز عليهم من العلل والامراض ما يجوز علی غيرهم**) ملا علی القاری وريسې ليکي : **وفائدة الحلول** (ای حلول السحر) **تنبيه علی ان هذا بشر مثلكم وعلی ان السحر تأثيره حق فانه اذا اثر فی اکمل الانسان فکيف بغيره؟** (مرقات ج۱۰ ص۲۱۷)

**(و دعاه)** د تأکید لپاره دی یعنې د الله تعالی نه یې وغوښتل او مسلسل یې وغوښتل . **(مطبوب)** ای هو مسحور، یعنې په هغه باندې جادو شوی دی . **(من طبه)** یعنې دا جادو چا کړی دی ؟ مطبوب او طب، دا طب په معنی د علاج سره دی ، جادو ته طب په طور د تفاؤل سره ویل شوی دی چې د هغه علاج ګویا شوی دی لکه څنګه چې د مار چیچلی شوي کس ته سلیم ویل کیږي یعنې دا صحیح سالم او محفوظ دی . **(الیهودی)** د دغه شخص کردار به ضرور وي اصل محرک به همدا خبیث وي مګر هغه به خپلې لورګانې په دې کار باندې لګولي وي، په دغه وجه په قرآن کریم کې په **(ومن شر النفاثات)** آیت کې د جادو نسبت ښځو ته شوی دی مګر په دې حدیث کې د جادو ذمه واري په دغه شخص باندې اچول شوې ده .

**(فیما ذا)** یعنې دغه جادو په کوم شي او په کومې ذریعې سره شوی دی . **(مشط)** په میم باندې ضمه ده شین ساکن هم دی او په دې باندې ضمه هم ویل کیدلی شي ، ګومنځې ته ویل کیږي . **(مشاطة)** د ګومنځولو په وخت چې کوم ویښته لاندې پریوځي هغې ته مشاطه ویل کیږي . **(جف)** بلکل ابتداء کې چې کله د کجورو غوزه راځي نو په هغه کې غوټۍ وي او د دې سره په هغه باندې خول او غلاف هم وي نو جف همدې خول او غلاف ته وایي ، په جیم باندې ضمه ده او په فاء باندې شد دی . **(طلعة)** دا غوټۍ ته وایي ، دا غوټۍ په نر کجور کې هم وي او په زنانه کې هم وي د دغه فرق د ظاهرولو لپاره یې وویل چې د نر کجور د غوټیو په غلاف کې جادو شوی دی ، نر کجور په جادو کې استعمال شوی دی . **(بئر ذروان)** په یو روایت کې بئر ذی اروان هم دی دواړه صحیح دي ، په مدینه منوره کې د یو شخص ابو زریق په باغ کې دا کوهی وو . **وهي بئر فی المدینة فی بستان ابی زریق)** (مرقات)

(نقاعة الحناء) یعنې د دغه کوهي او به داسې سرې شوې وې لکه څنګه چې د نکریځو شیره وي چې ډیره سره وي . (نخلها) یعنې د کجورې غوزه وحشت ناکه وه ، د نخل نه د باغ د کجورو ونې مراد نه دي بلکه هماغه غوزه مراد ده چې هغه په جادو کې استعمال شوې وه . (رؤس الشیاطین) یعنې په وحشت او دهشت او کراهت او قباحت کې هغه خوشه د شیطان د سرونو پشان وه ، عرب خلک چې کله د کوم شی شدید قباحت او وحشت بیانوي نو د هغه تشبیه د شیطان د سر سره ورکوي همدارنګه د شیطان د سر اطلاق په مارانو باندې هم کیږي ، بهر حال چې هر څنګه وي مګر یو ویرونکي منظر فهمول کیږي ! په دې غوزو باندې یو خو د جادو اثر هم وو او تر ډیره په اوبو کې د ساتلو اثر هم وو نو د دغه وجه دا د کراهت او قباحت مجموعه جوړه شوې وه .

ددې واقعې متعلق د حضرت ابن عباس رضي الله عنه یو روایت هم دی په هغه کې دا تفصیل دی چې په دې کوهي باندې اطلاع حاصلیدلو سره حضور ﷺ حضرت علی رضي الله عنه او حضرت عمار بن یاسر رضي الله عنه دغه کوهي طرفته ولیږل تر څو د جادو دغه شیان را اوباسي چې کله هغوی د کجورو دغه خوشه د کوهي نه وویستله نو د هغه په غلاف کې د موم یوه مجسمه پیدا شوه ، دا د حضور ﷺ مجسمه وه په دغه مجسمه کې ستنې دننه کړی شوې وې او په هرې ستنې باندې یو تار وو چې په مجسمې باندې تاؤ کړی شوی وو چې په هغو کې یوولس غوټې وې . حضرت جبرئیل علیه السلام په دغو یوولس غوټو باندې معوذتین ویل شروع کړل ، د معوذتینو آیتونه هم یوولس دي په یو یو آیت باندې به حضرت جبرئیل علیه السلام یوه یوه غوټه خلاصوله او د مجسمې نه به یې ستنه هم ویستله په دې سره حضور ﷺ ته داسې تسکین حاصلیدلو لکه چې د یوې تړلې شوې رسۍ نه چې هغه خلاصیدلو ، وایي حضور ﷺ پخپله هم دغه کوهي ته تللی وو مگر دننه نه وو رغلی ، په یو څه فاصله باندې پاتې شو ، حضور ﷺ د هغه یهودي په خلاف هیڅ کاروائي ونکړه بلکه هغه ﷺ وفرمایل چې زه فتنه راپورته کول نه غواړم .

په دې حدیث کې د ملائکو راتلل د هغه بیمارۍ بیانول بیا د هغه کوهي نشاندهي کول یو قسم د معجزې ظهور وو ، بیا د معوذتینو نازلیدل او د جبرئیل امین دَم کول او د هغه ﷺ جوړیدل دا بل قسم د معجزې ظاهریدل وو .

## د خوارج دفرقې سره متعلق پیشنګوئي کې دمعجزې ظهور

﴿۲۵﴾ وَعَنْ أَبِيْ سَعِيْدِ نِ الْخُدْرِيِّ قَالَ بَيْنَمَا نَحْنُ عِنْدَ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

حضرت ابو سعید خدري رضي الله عنه وایي هغه وقت چې مونږ رسول کریم صلی الله علیه وسلم سره وو او حضور صلی الله علیه وسلم مال

وَهُوَ يُقَسِّمُ قَسْمًا أَتَاهُ ذُوْ الْخُوَيْصِرَةِ وَهُوَ رَجُلٌ مِّنْ بَنِيْ تَمِيْمٍ

غنیمت تقسیموه یو سړی چې د هغه نوم ذوالخویصره وو چې د بنو تمیم قبیلې سره یې تعلق لرلو د

فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللهِ اعْدِلْ فَقَالَ

حضور صلی الله علیه وسلم په خدمت کې دراتلو سره یې وویل یارسول الله مال غنیمت تقسیمولو کې دعدل او انصاف

وَيْلَكَ فَمَنْ يَّعْدِلُ إِذَا لَمْ أَعْدِلْ قَدْ خِبْتَ

نه کار واخله ! حضور صلی الله علیه وسلم وفرمائیل په تا آفسوس دی چې زه عدل او انصاف نه کوم نو څوک به یې

وَخَسِرْتَ إِنْ لَمْ أَكُنْ أَعْدِلُ فَقَالَ عُمَرُ

کوي که زه د عدل او انصاف نه کار وانخلم نو یقینًا ته به محروم شی او تاوان کي به شي حضرت عمر رضي الله عنه

ائْذَنْ لِيْ أَنْ أَضْرِبَ عُنُقَهُ فَقَالَ دَعْهُ

بارگاه رسالت کي د هغه سړي د ګستاخانه الفاظو اوریدو سره عرض وکړي یارسول الله اجازه کړئ

فَإِنَّ لَهُ أَصْحَابًا يَحْقِرُ أَحَدُكُمْ

چې سریې والوزم حضور صلی الله علیه وسلم ورته وفرمائیل نه دا په خپل حال پریږده ځکه چې ده خلق به دده تابع

صَلَاتَهُ مَعَ صَلَاتِهِمْ وَصِيَامَهُ مَعَ

وي چې دهغوی د مونځونو مقابله کي به تاسو خپل مونځونه او د هغوی د روژو مقابله کي به تاسو

صِيَامِهِمْ يَقْرَءُوْنَ الْقُرْآنَ لَا يُجَاوِزُ تَرَاقِيَهُمْ

خپلي روژي حقیري سپکي ګنئ دا خلق به قرآن وایي لیکن قرآن به ددوی حلق نه لاندي نه ځي او دوی

يَمْرُقُوْنَ مِنَ الدِّيْنِ كَمَا يَمْرُقُ السَّهْمُ مِنَ الرَّمِيَّةِ

به دین نه داسي اوځي څرنګه چې تیر ښکار شلولو سره بالکل تري اوځي که دهغه تیر څوکه وکتل شي

يُنْظَرُ إِلٰى نَصْلِهِ إِلٰى رُصَافِهِ إِلٰى نَضِيِّهِ وَهُوَ قِدْحُهُ إِلٰى

چې دهغه د پاسه حصه وي او که دهغه وزر وکتل شي چیرته هیڅ هم نه لیدل کیږي حالانکه هغه تیر د

قُذَذِهٖ فَلَا يُوْجَدُ فِيْهِ شَيْءٌ قَدْ سَبَقَ الْفَرْثَ وَالدَّمَ آيَتُهُمْ

نجاست اوويني نه تیریږي او ددي سړی ذوالخویصرة د تابعدارو د سردار علامت دادی چې هغه به

رَجُلٌ أَسْوَدُ إِحْدٰى عَضُدَيْهِ مِثْلَ ثَدْيِ الْمَرْأَةِ أَوْ مِثْلَ

د تور رنګ سړی وي چې دهغه یو اړخ کي به د ښځي تیونو په شان راپورته شوي غوښه یا د غوښي یوه

الْبَضْعَةِ تَدَرْدَرُ يَخْرُجُوْنَ عَلٰى خَيْرِ فِرْقَةٍ مِّنَ النَّاسِ قَالَ

ټکړه وي او هغه به ديوي بهترينې طبقې خلاف بغاوت کوي او حضرت ابو سعيد رضي الله عنه بيان کوي

أَبُوْ سَعِيْدٍ أَشْهَدُ أَنِّيْ سَمِعْتُ هٰذَا الْحَدِيْثَ مِنْ رَّسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

زه شهادت ورکوم او ماخپله دا حديث د رسول کريم صلى الله عليه وسلم نه اوريدلى دى دي او بيا دا شهادت ورکوم چې

وَأَشْهَدُ أَنَّ عَلِيَّ بْنَ أَبِيْ طَالِبٍ قَاتَلَهُمْ وَأَنَا

امير المؤمنين حضرت علي کرم الله وجهه د دې فرقې د خلقو سره جنګ وکړو او زه هغه جنګ کې

مَعَهُ فَأَمَرَ بِذٰلِكَ الرَّجُلِ فَالْتُمِسَ فَأُتِيَ

حضرت علي رضي الله عنه سره ملګرى وو م حضرت علي رضي الله عنه د هغه سړي د تلاش حکم يې وکړو نو مقتولينو کې

بِهِ حَتّٰى نَظَرْتُ إِلَيْهِ عَلٰى نَعْتِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

نه تلاش کولو سره حضرت علي رضي الله عنه ته هغه سړى راوړل شو نو ما وليدل چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم د هغه کوم

الَّذِيْ نَعَتَهُ وَفِيْ رِوَايَةٍ أَقْبَلَ رَجُلٌ غَائِرُ

علامات خو دلي وو په هغه کې موجود وو او په يو روايت کې حضور صلى الله عليه وسلم ته ذو الخويصره د راتګ

الْعَيْنَيْنِ نَاتِي الْجَبْهَةِ كَثُّ اللِّحْيَةِ مُشْرِفُ

ذکر په ځاى داسي مذکور دى يو سړى د حضور صلى الله عليه وسلم په خدمت کې حاضر شو چې د هغه سترګې د ننه

الْوَجْنَتَيْنِ مَحْلُوْقُ الرَّأْسِ فَقَالَ يَا مُحَمَّدُ

ننوتي وي تندى يې راپورته شوي وو ږيره يې ګڼه وه، بارخوګان يې راپورته شوي وو، سر يې خريلى

اِتَّقِ اللهَ فَقَالَ فَمَنْ يُّطِيْعِ اللهَ إِذَا عَصَيْتُهُ

وو هغه وويل اى محمده د الله نه و ويريږه حضور صلى الله عليه وسلم ورته وفرمائيل که زه د الله تعالى نافرماني وکړم نو

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| فَيَأْمَنُنِيَ | اللهُ | عَلَى | أَهْلِ | الْأَرْضِ | وَلَا |

بيا څوک به د الله تعالى اطاعت کوي زه الله تعالى د روى زمين په خلقو کي د ټولو نه لوى آمين پيږني

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| تَأْمَنُوْنِيْ | فَسَأَلَ | رَجُلٌ | قَتْلَهُ | فَمَنَعَهُ | فَلَمَّا |

دا صرف ته يي چې ما امين نه گڼي او په ما اعتماد نه کوي يو صحابي د هغه سړي د سرپرېکولو اجازه

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وَلّٰى | قَالَ | إِنَّ | مِنْ | ضِئْضِئِيْ | هٰذَا | قَوْمٌ |

وغوښتلو ليکن حضور ﷺ هغه منع کړو او هر کله چې هغه سړى بيرته ولاړلو نو وي فرمائيل ددي

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| يَقْرَءُوْنَ | الْقُرْآنَ | لَا | يُجَاوِزُ | حَنَاجِرَهُمْ |

سړي د اصل نه به يو قوم پيدا کيږي هغه خلق به قرآن کريم وايي ليکن قرآن کريم به د هغوى د حلق نه

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| يَمْرُقُوْنَ | مِنَ | الْإِسْلَامِ | مُرُوْقَ | السَّهْمِ | مِنَ | الرَّمِيَّةِ |

لاندي نه تيريږي د اسلام نه به هغوى داسي اوځي څرنګه چې تير د ښکار نه اوځي بيا به هغه خلق اهل

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| فَيَقْتُلُوْنَ | أَهْلَ | الْإِسْلَامِ | وَيَدَعُوْنَ | أَهْلَ | الْأَوْثَانِ |

اسلام خو به قتل کوي او بت پرست به د هغوى په حال پريږدي که زه هغه خلق بيا ووينم نو هغوى به

لَئِنْ أَدْرَكْتُهُمْ لَأَقْتُلَنَّهُمْ قَتْلَ عَادٍ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

داسي قتل کړم څرنګه چې د عاد قوم خلق قتل شوي وو .

**توضيح** : (يقسم) يعنې د جعرانه په مقام باندې حضور ﷺ د غزوه حنين مال غنيمت تقسيمولو .

**(اتاه ذوالخويصرة)** دا شخص کلک منافق وو د بنوتميم سره د هغه خانداني تعلق وو ، هغه د حضور ﷺ په تقسيم باندې سخت اعتراض وکړلو ، چې کله د حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په زمانه کې د خوارجو ظهور وشو او د نهروان او حروراء مقام کې ډير خوارج جمع شول بيا د غه شخص مکمل طور باندې منظر عام ته راغى ، همدغه شخص خوارج د حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په خلاف بغاوت ته وهڅول او بنيادى طور باندې همدغه شخص د خوارجو بنياد کيښود . بيا حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هغه په بې

جنګ کې قتل کړلو .

د خوارجو ظهور د حضور اکرمﷺ او خلفاء ثلثه په دور کې شوی نه وو بلکه د حضرت علی رضي الله عنه په زمانه کې وشو لهذا دا ویل صحیح نه دي چې ذوالخویصره د خوارجو سردار وو ، ځکه دا شخص اول خارجي نه وو ، هو ! کچیرې د خارجیانو د ظهور نه بعد د هغو سردار جوړ شوی وي نو جوړ شوی به وي ، دغه شخص د حضور د مال غنیمت په تقسیم باندې سخت اعتراضونه کړي وو ، کچیرې هغه قتل شوی وای نو قتل یې جائز وو ، که خارجي وای نو حضور اکرمﷺ قسم خوړلی وو کچیرې کوم خارجي ماته ملاؤ شي نو زه به هغه قتل کړم ، دا اشاره د هغه د اولادونو طرفته وه او د هغه نه وروسته راتلونکي خارجي نسل ته وه لکه څنګه چې حضرت علی رضي الله عنه کاروائی وکړه . **(خبت و خسرت)** د خطاب سره کلام دی یعنې کچیرې ستا دا عقیده وي چې زه عدل نه کوم نو ته د دې عقیدې په وجه تباه او برباد شوې ، ته خو د همیشه لپاره د عدل نه محرومه شوې ځکه که زما سره عدل نه وي نو تا ته به د کوم ځای نه عدل حاصل شي؟ په کوم بل ځای کې خو عدل نشته . **(ان اضرب عنقه)** سوال دا دی چې د حضرت عمر رضي الله عنه د اجازې غوښتلو سره حضورﷺ د ذوالخویصره د قتل نه منع وفرمایله حالانکه هغه پخپله تمنا کوي که ماته خوارج ملاؤ شي نو زه به هغه قتل کړم . د دې جواب د مخکې نه شوی دی چې ذوالخویصره په دغه وخت کې د خوارجو په صفونو کې ظاهر شوی نه وو او نه په دغه وخت کې د خوارجو زور وو ، دغه شخص پخپله خارجي هم نه وو البته د هغه د نسل نه خوارج پیدا شول بیا دا د هغو مشر جوړ شو ، د دینه وروسته د حضرت علی رضي الله عنه دور وو ، حضور اکرمﷺ په دغه وروسته راتلونکي دور کې د هغه د قتل کولو وفرمایل .

**(تراقي)** دا د ترقوة جمع ده غاړې ته وايي . **(یمرق)** د مروق نه دی د وتلو په معنی سره دی . **(الرمیة)** دا د مرمیة په معنی سره دی ښکار ته وايي . **(نصله)** د غشي څوکې ته وايي . (ینظر) دا د مجهول صیغه ده یعنې که وکتل شي نه چیرته به هم د غشي کومه حصه په کوم شي سره ککړ په نظر رانشي حالانکه هغه د وینې او خوشیانو د مینځ نه وځي نو لکه څنګه چې دغه غشی صفا وځي دغه خلک به هم د اسلام نه دغسې صفا صفا وځي . (رصافه) رصاف هغه تسمې ته وايي چې د غشي په څوکه او د هغه د لرګي په پیوند باندې تړلی کیږي . **(نضیه)** د غشي د څوکې او د هغه د پر په مینځ کې د لرګي چې کومه حصه ده هغه ته قدح ویل کیږي ګویا قدح د غشي لرګي ټولې حصې ته ویل کیږي ، وهو قدحة دا د همدې نضیة ترجمه ده ، په نضیة کې په نون باندې زور دی په ضاد باندې زیر دی او په یاء باندې شد دی . **(قذذة)** دا جمع ده د دې مفرد قُذّةٌ ده ، په قاف باندې ضمه ده او ذال باندې شد دی .

مَا أَكْرَهُ فَأَتَيْتُ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

داسي ګستاخانه خبره وکړه چې په ما سخته ناخوښه ولګیده په ژړا د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خدمت کي حاضر

وَأَنَا أَبْكِي فَقُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللهِ أُدْعُ اللهَ أَنْ

شوم او عرض مي وکړو یا رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ او س خو تاسو الله تعالیٰ ته دعا وغواړئ. چې دابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ

يَهْدِيَ أُمَّ أَبِيْ هُرَيْرَةَ فَقَالَ اَللّٰهُمَّ اهْدِ أُمَّ أَبِيْ هُرَيْرَةَ

مورته هدایت وکړي حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دعا وکړه اې الله دابو هریره مورته هدایت وکړي د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دعا

فَخَرَجْتُ مُسْتَبْشِرًا بِدَعْوَةِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

نه ډیر خوشحاله او امید سره د بارګاه نبوت نه بیرته راغلم کوم وقت چې د مور کورته راورسیدم نو څه

فَلَمَّا صِرْتُ إِلَى الْبَابِ فَإِذَا هُوَ مُجَافٌ فَسَمِعَتْ أُمِّيْ خَشْفَ قَدَمَيَّ

ګورم چې دروازه بنده ده لیکن زما مور زما د قد مونو اواز اوریدلی وو هغه ددننه نه اواز وکی

فَقَالَتْ مَكَانَكَ يَا أَبَا هُرَيْرَةَ وَسَمِعْتُ خَضْخَضَةَ الْمَاءِ قَالَ فَاغْتَسَلَتْ

ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ انتظار وکړه یا ما دابو غورځیدو اواز واوریده زما مور غسل وکړو کپړې یې واچولي

فَلَبِسَتْ دِرْعَهَا وَعَجِلَتْ عَنْ خِمَارِهَا فَفَتَحَتِ الْبَابَ ثُمَّ قَالَتْ

او په تلوار یې د پړوني اچولو بغیر دروازه خلاصه کړه او زما لیدو سره یې وویل زه ګواهي کوم چې

يَا أَبَا هُرَيْرَةَ أَشْهَدُ أَنْ لَّا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ وَأَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهُ

الله نه سوا بل معبود نشته او ګواهي کوم چې محمد صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د الله تعالیٰ بنده او رسول دی ما دې لیدو سره

وَرَسُوْلُهُ قَالَ فَرَجَعْتُ إِلَى

چې زما د خوږې مور هدایت نصیب شو او هغې اسلام قبول کړو بیرته د خوشحالۍ نه او ښکي تویولو

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| رَسُوْلِ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ | وَاَنَا | أَبْكِي | مِنَ الْفَرَحِ |

سره د رسول كريم صلى الله عليه وسلم په خدمت كي حاضر شوم حضور صلى الله عليه وسلم د الله تعالىٰ تعريف وكړو او زما د مور په

فَحَمِدَ اللهَ وَقَالَ خَيْرًا. رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

اسلام يي شكر اداء كړو او د خير خبره يي وكړه.

**توضيح** : **(مجاف)** يعني دروازه بنده وه. **(خشف)** د قدم كشهاري ته وايي. **(خضخضة الماء)** او بو ته د حركت وركولو نه چې كوم آواز پيدا كيږي هغه ته خضخضه ويل كيږي. **(عجلت)** يعني د لوپټي اغوستلو نه مخكي بيرون راغله. د حضرت ابوهريرة رضى الله عنه مور ته د هدايت دعاء وشوه او هدايت ورته حاصل شو، په دې كې د حضور ﷺ د معجزې ظهور وشو.

## د حضرت ابوهريره رضي الله عنه كثير الروايت كيدل د دعاء نبوي صلى الله عليه وسلم په طفيل دي

﴿۲۷﴾ وَعَنْهُ قَالَ اِنَّكُمْ تَقُوْلُوْنَ اَكْثَرَ

او حضرت ابوهريره رضي الله عنه يوه ورځ تابعين مخاطب كولو سره ياخو نگه چې بعضي حضراتو ويلي دي

اَبُوْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

متاخرين صحابه مخاطب كولو سره وويل تاسو چې دا وايي چې ابوهريره رضي الله عنه د حضور صلى الله عليه وسلم نه دير

وَاللهُ الْمَوْعِدُ. وَإِنَّ إِخْوَتِيْ مِنَ

زيات حديثونه نقل كوي نو مخكي په دې پوهه شئ چې د الله تعالىٰ وعده برحق ده بيا دا واورئ زه

الْمُهَاجِرِيْنَ كَانَ يَشْغَلُهُمُ الصَّفْقُ بِالْأَسْوَاقِ

د زياتو حديثونو بيانولو سبب تاسو ته بنايم چې زما مهاجر وروڼه خو بازار كي خريد او فروخت

كَانَ يَشْغَلُهُمْ عَمَلُ أَمْوَالِهِمْ وَكُنْتُ امْرَأً

مشغول كړي وو او زما انصار وروڼو ته د هغوى ځمكي او جائيداد فرصت نه وركوى او هر چې زه يم

مِسْكِيْنًا أَلْزَمُ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ

نو زه يو مفلس او مسكين سړى وم په مړه خيټه طعام پيدا كولو باندي قناعت كولو سره د رسول كريم صلى الله عليه وسلم

عَلَى مِلْءِ بَطْنِيْ وَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

په خدمت کي به پروت وم بیا یو ورځ داسي وشوه چې رسول کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمائیل که تاسو کي یو سړی

يَوْمًا لَنْ يَّبْسُطَ أَحَدٌ مِنْكُمْ ثَوْبَهُ حَتَّى أَقْضِيَ

خپله کپړه خوره کړي او هغه وقته پوري يي خوره کړي وي څو پوري چې زه خپله دعا پوره نه کړم او بیا

مَقَالَتِيْ هٰذِهِ ثُمَّ يَجْمَعُهُ إِلٰى صَدْرِهِ فَيَنْسٰى

هغه سړی خپله کپړه راغونډه ولو سره خپلي سیني سره ولګوي نو دا هیڅ کله نشي کیدی چې هغه دي

مِنْ مَّقَالَتِيْ شَيْئًا أَبَدًا فَبَسَطْتُ نَمِرَةً لَيْسَ

زما حدیث کلی طور سره یا جزوي طور سره کله هم هیر کړي نو ما فورًا خپل کسبله خوره کړه چې د

عَلَيَّ ثَوْبٌ غَيْرَهَا حَتّٰى قَضَى النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

هغه نه علاوه ما سره بله څه کپړه نه وه او هغه مي هغه وقته پوري خوره کړي وه ترڅو چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

مَقَالَتَهُ ثُمَّ جَمَعْتُهَا إِلٰى صَدْرِيْ فَوَالَّذِيْ بَعَثَهُ بِالْحَقِّ

خپله خبره پوره نه کړه او بیا هغه راغونډه ولو سره خپلي سیني سره مي ولګوله قسم دی په هغه ذات

مَا نَسِيْتُ مِنْ مَّقَالَتِهِ ذٰلِكَ

چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يي په حق سره راليږلی دی د هغه نه روسته ترننه پوري څه چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

إِلٰى يَوْمِيْ هٰذَا. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ

نه اورم هیڅ ارشاد يي نه هیروم.

**توضیح**: حضرت ابو هریرة رَضِيَ اللهُ عَنْهُ **متأخر في الاسلام** دی لیکن هغه د ټولو نه زیات احادیث بیان کړي دي، په دي باندي صحابه او تابعینو ته شبه پیدا کیدله چې دومره احادیث ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ څنګه بیان کړي دي، حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دد ډ سخت جواب ورکړی دی، هغه دوه قسمه جواب کړی دی، اول جواب دا چې انصار او مهاجرین په خپلو کارونو کي لګیا وو او ما د ولږي په تیرولو سره د

حضور ﷺ په دروازه کې به پروت وم او احاديث به مې يادول ، په دغه وجه زما حديثونه زيات شول.
دويم جواب دا دې چې يوه ورځ حضور اکرم ﷺ وفرمايل چې زه يو څه وايم د چا سره چې څادر وي هغه دې وغوړوي زه به هغه دم کړم ، هغه شخص دې دا څادر خپلې سينې سره ونکونې نو هغه به هيڅکله زما خبرې هيرې نکړي ، ما داسې وکړل نو د حضور اکرم ﷺ معجزه ښکاره شوه او زما حافظه دومره تيزه شوه چې د دينه وروسته ما د حضور ﷺ کوم حديث هيڅکله هير نکړلو .

## دحضرت جرير رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په حق کې دعاء

| |
|---|
| ﴿۲۸﴾ وَعَنْ جَرِيْرِبْنِ عَبْدِ اللهِ قَالَ قَالَ لِيْ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَلَا |
| او حضرت جرير ابن عبدالله بجلي وايي يوه ورځ رسول کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ماته وفرمائيل اياته به ذوالخلصه |
| تُرِيْحُنِيْ مِنْ ذِي الْخَلَصَةِ فَقُلْتُ بَلٰى |
| ماتولو سره ماته راحت ونه رسوي ماعرض وکړو چې ها دغه په ماتولو سره تا سو ته به ضرور راحت |
| وَكُنْتُ لَا أَثْبُتُ عَلَى الْخَيْلِ وَذَكَرْتُ |
| ورسوم ليکن زه داس په سورلي پوره طور سره قادرنه ووم او کله کله به تري را وغورځيدم ما |
| ذٰلِکَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَضَرَبَ يَدَهٗ عَلٰى صَدْرِيْ |
| نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته د دې ذکر وکړو حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دې او ريد و سره زما په سينه دومره زور سره لاس مبارک راخلکو |
| حَتّٰى رَأَيْتُ أَثَرَ يَدِهٖ فِيْ صَدْرِيْ وَقَالَ اَللّٰهُمَّ |
| چې ما د هغه اثر سينې د ننه پوري محسوس کړو او بيايي زما په حق کې د ادعا وکړله اى الله جرير |
| ثَبِّتْهُ وَاجْعَلْهُ هَادِيًا مَّهْدِيًّا قَالَ |
| ثابت او قائم لري او دا هدايت ښودونکى او هدايت پيدا کونکي جوړ کړي حضرت جرير رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وايي |
| فَمَا وَقَعْتُ عَنْ فَرَسِيْ بَعْدُ فَانْطَلَقَ فِيْ مِائَةٍ وَّ خَمْسِيْنَ |
| د ې دعا نه روسته زه هيڅ کله داس نه ونه غورځيدم او بيا دا حمس يونيم سل سورو اخستو سره |

| فَارِسًا | مِنْ | اَحْمَسَ | فَحَرَّقَهَا | بِالنَّارِ |
|---|---|---|---|---|

جرير رضي الله عنه ذو الخلصه ماتولو دپاره روان شو هلته رسيدو سره هغوی ذو الخلصه ته اور ورته کړي

وَ كَسَرَهَا. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

او هغه يي دړي وړي کړله.

**توضيح** : (الاتريحنی) آيا ددې بُت په سوځولو سره به ما ته راحت رانکړې؟ ددينه معلومه شوه چې د الله والا ته د لرې معصيت نه هم تکليف وي. **(من ذی الخلصة)** دا د خثعم قبيلې مشهوره بت خانه وه چې هغې ته به خلک و کعبة اليمامة ويله. **(فانطلق)** دا د حديث د راوی کلام دی چې جرير لاړو يا پخپله جرير خپل ځان غائب ګرځولو سره کلام کړی. **(من احمس) ای من قريش ، احمس حموسة حماسة** او **حماس** بهادر ته وايي. قريش په ټولو عربو کې زيات مشهور بهادر وو په دغه وجه دوی د احمس په نوم سره ياد شوي دي، بعضو ويلي چې دا د حضرت جرير بن عبد الله قبيله وه، هيڅ تضاد نشته.

## يو بدعائی کې د معجزی ښکاره کيدل

﴿۲۹﴾ وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ إِنَّ رَجلًا كَانَ يَكْتُبُ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَارْتَدَّ

او حضرت انس رضي الله عنه وايي يو سړی چې دنبي کريم صلى الله عليه وسلم وحي به يي ليکله مرتد شو او مشرکانو سره

| عَنِ الْإِسْلَامِ | وَلَحِقَ | بِالْمُشْرِكِيْنَ | فَقَالَ | النَّبِيُّ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|

يوځاي شو نبي کريم صلى الله عليه وسلم ته چې د هغه باره کي دا اطلاع ورسيده نو حضور صلى الله عليه وسلم و فرمائيل

| إِنَّ | الْأَرْضَ | لَا | تَقْبَلُهُ | فَأَخْبَرَنِيْ | أَبُوْ | طَلْحَةَ |
|---|---|---|---|---|---|---|

دا به ځمکه قبول نه کړي د حضرت انس رضي الله عنه فيان دی ابو طلحه رضي الله عنه چې زما د مور خاوند وو ماته وښودل کوم وخت

| أَنَّهُ | أَتَى | الْأَرْضَ | الَّتِيْ | مَاتَ | فِيْهَا | فَوَجَدَهُ |
|---|---|---|---|---|---|---|

چې حضرت ابو طلحه رضي الله عنه هغه مقام ته ورسيده کوم ځاي چې هغه سړی مړ او دفن شوی ؤ، نو وي ليدل چې هغه د

| مَنْبُوْذًا | فَقَالَ | مَا شَأْنُ | هٰذَا | فَقَالُوْا |
|---|---|---|---|---|
| قبر نه بهر پروت دی هغه د خلقو نه پوښتنه وکړه چې دا ته څه شوي دي؟ خلقو جواب ورکړو چې مونږ څوځلي دا | | | | |
| دَفَنَّاهُ | مِرَارًا | فَلَمْ | تَقْبَلْهُ | الْأَرْضُ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. |
| سړی دفن کړی دی لیکن ځمکه یې نه قبلوي هر ځلې دا سي وشي اخر تنګ راتلو سره مونږ دده ښخول پریښي دي. | | | | |

**توضیح** : (ان رجلا) ویل کیږي چې دا شخص اول عیسائی وو بیا مسلمان شو بیا مرتد شو او د مشرکینو سره یوځای شو ، حضور ﷺ وفرمایل چې ځمکه به دا شخص قبول نکړي ، شاید حضور ﷺ په دغه موقع باندې شیرې هم ورته کړې وي ،اوس د مړ کیدو نه بعد ځمکې هغه قبول نکړو ، ځمکې هغه بهر ته وغورځوه ، خلکو بار بار دفن کړلو مګر ځمکې به هغه بهر ته غورځولو بیا خلکو دفن کول پریښودل . (منبوذا) غورځول شوی بهر پروت وو ، په مستقبل کې د خبر ورکولو سره د معجزې ظهور وشو .

| ﴿۳۰﴾ وَعَنْ | أَبِيْ | أَيُّوْبَ | قَالَ | خَرَجَ | النَّبِيُّ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| او حضرت ابو ایوب انصاري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي یوه ورځ نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لمر ډوبیدو نه روسته د کور نه اووتلو | | | | | | | | | |
| وَ | قَدْ | وَجَبَتِ | الشَّمْسُ | فَسَمِعَ | صَوْتًا | فَقَالَ | يَهُوْدُ | | |
| نو یو آواز یې واوریده هغه اواز اوریدو سره یې و فرمائیل دا یهود دي یعني دا آواز د هغه یهودیانو | | | | | | | | | |
| تُعَذَّبُ فِيْ قُبُوْرِهَا. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. | | | | | | | | | |
| دی چې قبر کې عذاب ورکول کیږي . | | | | | | | | | |

یعني د قبر عذاب او د هغه احوال په حضور ﷺ باندې منکشف شول په دې کې د حضور ﷺ د معجزې ظهور وشو .

## په اخبار بالغیب کې د معجزې ښکاره کیدل

| ﴿۳۱﴾. وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ قَدِمَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ سَفَرٍ فَلَمَّا كَانَ |
|---|
| او حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي یوه ورځ نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د سفر نه مدینې ته بیرته راتلو مدینې ته چې قریب |

| |
|---|
| قُرْبَ الْمَدِيْنَةِ هَاجَتْ رِيْحٌ تَكَادُ أَنْ تَدْفِنَ الرَّاكِبَ |
| ورسیده نو سخته سیلئ راغله او سخته هم دومره چې قریب وو چې سور په ځمکه کې دفن کړي |
| فَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بُعِثَتْ هٰذِهِ الرِّيْحُ لِمَوْتِ مُنَافِقٍ |
| حضور صلی الله علیه وسلم په دې موقع وفرمائيل داسیلۍ دیومنافق د مرګ پسې رالیږل شوې ده |
| فَقَدِمَ الْمَدِيْنَةَ فَإِذَا عَظِيْمٌ مِّنَ الْمُنَافِقِيْنَ قَدْ مَاتَ. رَوَاهُ مُسْلِمٌ. |
| حضور صلی الله علیه وسلم چې مدیني ته داخل شو نو معلومه شوه چې د منافقانو یو لوی سردار مړ شوی دی . [مسلم] |

**توضیح**: (هاجت ریح) یعنې سخته طوفاني هوا وچلیدله ، داسې معلومیدله چې کومې سورلۍ والا به په سورلۍ باندې پرینږدي بلکه د سورلۍ نه به یې وغورځوي په ځمکه به یې دفن کړي . (لموت منافق) یعنې دغه سخته طوفاني هوا د یو منافق د مرګ په وجه چلیدلې ده ، هغه داسې منحوس انسان وو چې د هغه د مرګ دو جې نه د قدرت له طرفنه د بد امنۍ ، وحشت ، ګندګۍ او بدحالۍ خوریدلو قدرتي اظهار وو لکه څنګه چې د بدکرداره حاکم د راتګ په وجه د هغه په خلاف مظاهره کیږي ، ویل کیږي چې د دې منافق نوم رفاعه بن درید وو ، حضور صلی الله علیه وسلم مدینې ته د رسیدلو نه مخکې په طور د معجزې د هغه د مرګ خبر ورکړلو ، دا په اخبار بالغیب کې د معجزې ظهور وو .

یاد ساتل پکار دي چې معجزه د نبي د نبوت نښه او دلیل وي لکه څنګه چې کرامت د کوم ولي د ولایت دلیل او نښه وي ، لکه څنګه چې د یو ولي ولایت د هغه د الوهیت دلیل جوړیدلی نشي هدارنګه معجزه د کوم نبي د الوهیت دلیل جوړیدلی نشي ، بریلوي حضراتو ته علم غیب او اخبار بالغیب په مسئله کې لویه غلط فهمي شوې ده چې هغوی ټول معجزات د حضور اکرم صلی الله علیه وسلم د عالم الغیب کیدلو لپاره په طور د دلیل پیش کوي او د عوامو په مخکې یوه یوه معجزه پیش کولو سره وایي چې وګورئ ! حضور اکرم صلی الله علیه وسلم ته علم غیب وو ، بیا دغه حضرات بعضې معجزات د صفت الوهیت، مشکل کشا او حاجت روا ثابتولو لپاره هم پیش کوي ، کچیرې معجزه د صفت الوهیت، مشکل کشائی او حاجت روائی لپاره دلیل وي نو بیا خو حضرت عیسی علیه السلام په طور د معجزې مړي ژوندي کړې وو ، بیا هغه خدای ومنئ حالانکه داسې نه کوي ، بیا د حضور اکرم صلی الله علیه وسلم سره دا معامله ولې کوئ ؟

﴿۳۲﴾ وَعَنْ أَبِيْ سَعِيْدِ نِ الْخُدْرِيِّ قَالَ خَرَجْنَا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتَّى قَدِمْنَا

او حضرت ابو سعید خدري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي مونږ نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره روان شو چې مقام عسفان ته ورسيدو

عُسْفَانَ فَأَقَامَ بِهَا لَيَالِيَ فَقَالَ النَّاسُ مَا نَحْنُ هٰهُنَا فِيْ شَيْءٍ

نو حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هلته څو شپې قيام وکړو بعضي خلقو وويل مونږ دلته بيکاره ولې پراته يو هر کله چې

وَإِنَّ عِيَالَنَا لَخُلُوْفٌ مَّا نَأْمَنُ

زمونږ اهل او عيال زمونږ نه لري دهغوی په باره کي اطمينان نشته چې زمونږ د عدم موجودګۍ نه

عَلَيْهِمْ فَبَلَغَ ذٰلِكَ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

فائده اخستلو سره دښمن دهغوی لوټ مار ته راخکته نشي د خلقو دا خبره نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته هم ورسيده

فَقَالَ وَالَّذِيْ نَفْسِيْ اوده مَافِي الْمَدِيْنَةِ

حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دي اوريدو سره وفرمائيل قسم دی په هغه ذات چې دهغه قبضه کي زما ځان دی د مديني

شِعْبٌ وَ لَا نَقْبٌ اِلَّا عَلَيْهِ مَلَكَانِ يَحْرُسَانِهَا

هيڅ لار او هيڅ کوڅه داسي نشته چې په هغه دوه فرشتي مقررنه وي او هغې فرشتي به نګهباني او

حَتّٰى تَقْدَمُوْا إِلَيْهَا ثُمَّ قَالَ اِرْتَحِلُوْا

حفاظت باندي هغه وقته پوري ماموره وي څو پوري چې تاسو مديني ته ونه رسيږئ دې نه روسته

فَارْتَحَلْنَا وَأَقْبَلْنَا إِلَى الْمَدِيْنَةِ فَوَالَّذِيْ

حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دهغه ځاي نه دکوچ کولو حکم وکړو او مونږ روانيدو سره مديني ته ورسيدلو قسم دي په

يُحْلَفُ بِهٖ مَا وَضَعْنَا رِحَالَنَا حِيْنَ دَخَلْنَا الْمَدِيْنَةَ

هغه ذات چې په هغه قسم خوړل کيږي مونږ مديني ته رسيدو سره لا د خپلو اوښانو نه خپل سامان

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| حَتّٰی | أَغَارَ | عَلَيْنَا | بَنُوْ | عَبْدِ | اللهِ | بْنِ | غَطْفَانَ |
| خکته کړی نه وو چې اچانک بنو عبدالله بن عطفان پر مونږ باندي راوختل حال دا چې زمونږ دراتلو | | | | | | | |
| وَمَا | يُهَيِّجُهُمْ | قَبْلَ | ذٰلِكَ | شَيْءٌ. رَوَاهُ مُسْلِمٌ. | | | |
| نه مخکي څه داسي خبره نه وه پيښه شوي چې هغوی دي جنګ ته راوپاروي. | | | | | | | |

**توضيح**: خلوف: يعني هغه خلک خالي دي چيرته دښمن ورباندې حمله ونکړي، شعب شيلې ته ويل کيږي
تښ لاري ته وايي، بنو عبدالله د غطفان د يوې قبيلې نوم دی.

**ما يهيجهم**: يعني هغه خلک زمونږ د رسيدو نه مخکې هيڅ شی په حملې کولو باندې باعثه نکړل، دا
دحضور اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ معجزه وه.

## د باران متعلق د معجزی ښکاره کيدل

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۲۲﴾ وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ أَصَابَتِ النَّاسَ سَنَةٌ عَلٰى عَهْدِ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ | | | | | | | | |
| او حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي د رسول کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په زمانه کي يو وار دوچ کالی په وجه قحط راغی په | | | | | | | | |
| فَبَيْنَا | النَّبِيُّ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ | يَخْطُبُ | فِيْ يَوْمِ الْجُمُعَةِ | قَامَ أَعْرَابِيٌّ |
| هغه ورځو کي نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د جمعي په ورځ خطبه ورکوله چې يو بانډچي اودريدلو عرض يي | | | | | | | | |
| فَقَالَ | يَا | رَسُوْلَ | اللهِ | هَلَكَ | الْمَالُ | | | |
| وکړو يا رسول الله زمونږ مال او اسباب څاروي او د باغات داوبو نه حاصليدو په وجه برباد شول ددي | | | | | | | | |
| وَجَاعَ | الْعِيَالُ | فَادْعُ | اللهَ | لَنَا | فَرَفَعَ | | | |
| او اولادونه مووږي شول ته الله تعالى ته زمونږ دپاره د الله نه دُعا وغواړه په اوريدو سره حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ | | | | | | | | |
| يَدَيْهِ | وَمَا | نَرٰى | فِي | السَّمَاءِ | قَزَعَةً | | | |
| دعا دپاره لاس مبارک اوچت کړل هغه وقت په آسمان باندي دوريځي يوه ټکړه مونږ ته په نظر نه | | | | | | | | |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| فَوَالَّذِيْ | نَفْسِيْ | بِيَدِهٖ | مَا | وَضَعَهَا | حَتّٰى | ثَارَ |

راتله قسم دی په هغه ذات چې د هغه په قبضه کې زما ساه ده حضور ﷺ دعا ختمولو سره اوس

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| السَّحَابُ | أَمْثَالَ | الْجِبَالِ | ثُمَّ | لَمْ | يَنْزِلْ |

لاسونه مبارک لانه وو خکته کړي چې اچانک دغرونو په شان وریځ راپورته شوه او حضور ﷺ لا د

| | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| عَنْ | مِنْبَرِهٖ | حَتّٰى | رَأَيْتُ | الْمَطَرَ | يَتَحَادَرُ | عَلٰى | لِحْيَتِهٖ | صَلَّى | اللّٰهُ عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ |

منبر نه راکوز شوی نه وو ما ولیدل چې داوبو قطري د حضور ﷺ د ږیرې مبارکې نه څڅیدلې یاد

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فَمُطِرْنَا | يَوْمَنَا | ذٰلِكَ | وَ | مِنَ | الْغَدِ | وَ | مِنْ | بَعْدِ الْغَدِ |

هغه جمعې په ورځ باقي حصه کې باران وشو په دویمه ورځ وورېدلو او په دریمه ورځ او ووریدلو تر

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| حَتّٰى | الْجُمُعَةِ | الْأُخْرٰى | وَقَامَ | ذٰلِكَ |

دې پورې چې دویمې جمعې پورې د باران سلسله جاري وه نو په دویمه جمعه د حضور ﷺ د خطبې

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| الْأَعْرَابِيُّ | أَوْ | غَيْرُهٗ | فَقَالَ | يَا | رَسُوْلَ | اللّٰهِ | تَهَدَّمَ |

په دوران کې هغه دیهاتي یا یو دویم سړی اودریدلو او عرض یې وکړو یا رسول الله مکانات غور

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| الْبِنَاءُ | وَغَرِقَ | الْمَالُ | فَادْعُ | اللّٰهَ | لَنَا |

ځیږي مال او اسباب غرقیږي تاسو د الله تعالٰی نه زمونږ د پاره دعا وغواړئ چې اوس باران او دریږي

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| فَرَفَعَ | يَدَيْهِ | فَقَالَ | اَللّٰهُمَّ | حَوَالَيْنَا | وَلَا | عَلَيْنَا |

حضور ﷺ خپل دواړه لاسونه اوچت کړل او دعا یې وکړه ای الله زمونږ په اطرافو باندې یې ووروي

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فَمَا | يُشِيْرُ | بِيَدِهٖ | إِلٰى | نَاحِيَةٍ | مِّنَ | السَّحَابِ | إِلَّا | الْفَجَرَتْ |

زمونږ په اطرافو کې ووروې پیغمبر چې به کوم ځای ته اشاره کوله وریځ به هغه ځای نه لرې شوه

| |
|---|
| وَصَارَتِ الْمَدِيْنَةُ مِثْلَ الْجَوْبَةِ وَسَالَ الْوَادِيْ قَنَاةٌ شَهْرًا |
| او مدينه خالي شوه د وريځې نه او د قناة په خوړ کې يوې مياشتې پورې اوبه رواني وې او د اطرافو؟ |
| وَلَمْ يَجِئْ أَحَدٌ مِّنْ نَّاحِيَةٍ إِلَّا حَدَّثَ بِالْجَوْدِ وَفِيْ رِوَايَةٍ |
| نه به چې کوم سړی مدينې ته راغی نو د کثرت باران خبرې به يې کولې او په يو روايت کې داسې دي |
| قَالَ اَللّٰهُمَّ حَوَالَيْنَا وَ لَا عَلَيْنَا اَللّٰهُمَّ عَلَى الْآكَامِ وَالظِّرَابِ |
| چې ای الله زمونږ په اطرافو کې ووروې نه زمونږ د پاسه ای الله غونډيو باندې غرونو باندې ناليو |
| وَبُطُوْنِ الْأَوْدِيَةِ وَمَنَابِتِ الشَّجَرِ قَالَ فَأُقْلِعَتْ |
| کې د ننه او د ونو زرغونيدو په ځای کې د انس رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ بيان دی چې وريځ بالکل ختمه شوه او |
| وَ خَرَجْنَا نَمْشِيْ فِي الشَّمْسِ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ |
| مونږ په داسې حال کې بهر راووتلو چې په نمر کې روان وو. |

**توضيح**: (يتحادر) د باران اوبه چې کله په ږيره وغيره کوم شي باندې پريوځي او بهيږي نو هغه ته تحادر وايي. (اللهم حوالينا) څنګه چې دغه باران د حضور ﷺ په دعاء سره راغلی وو چې په دې کې برکت او رحمت وو نو ځکه نبی کريم ﷺ د بنديدو دعاء ونه غوښته بلکه ويې فرمايل ای الله! په اطرافو يې ووروه په مونږ نه. (مثل الجوبة) جوبه کنډې ته ويل کيږي بلکه د دينه بهتر تعبير د حوض دی چې په مدينه باندې د پاسه وريځه پاتې نشوه او په اطرافو کې وريځ وه نو پاس فضاء هم د حوض پشان وه او لاندې ځمکه هم د حوض پشان وه. (قناة) اوبه چې کله د ځمکې لاندې لاړې شي نو د نالې شکل اختيار وي ديته قناة وايي، په فارسی کې ديته (کاريز) وايي، قناة په اصل کې نيزې ته وايي دا اوبه هم د نيزې پشان سيده ځي، دلته قناة د يوه وادی نوم هم کيدلی شي. (بالجود) يعنې تولو وويل چې ډير ښه باران وشو، (الآکام) دا جمع ده مفرد يې اکمة دی غونډۍ ته وايي. (والظراب) جمع ده مفرد يې ظرب په وزن د کتف دی کوچني غره ته ويل کيږي. (بطون الاودية) د خوړونو درمياني

علاقه چې د آبادۍ نه خالي وي.

**منابت الشجر**: مراد ځنګلونه دي چې هلته ونې وي، د هغو په بيخونو کې باران وشي ترڅو ونې ښه خړوبي شي.

**فاقلعت**: يعنې وريځ لرې شوه، په دې حديث کې تصريح ده چې د دعاء په وخت کې لاسونه پورته کول ثابت دي، ابوطالب دغه منظر داسې پيش کړی دی:

**وابيض يستسقى الغمام بوجهه ثمال اليتامى عصمة للارامل**

په هر حال په دې حديث کې د باران متعلق د څو معجزاتو ظهور شوی دی.

## حنانه ستن کې د معجزې ښکاره کيدل

﴿۲۴﴾ وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا خَطَبَ

او حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ چې به مسجد نبوي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ کې خطبه ورکوله نو د کجورې هغه و

اِسْتَنَدَ إِلَى جِذْعِ نَخْلَةٍ مِّنْ سَوَارِي الْمَسْجِدِ فَلَمَّا صُنِعَ لَهُ الْمِنْبَرُ

چې تنې سره د څنګ وهلو سره به او دريدلو چې ديوې ستنې په طور مسجد کې ولاړه وه بيا چې منبر

فَاسْتَوٰى عَلَيْهِ صَاحَتِ النَّخْلَةُ الَّتِيْ كَانَ

تيار شو نو حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خطبې ويلو د پاره په هغه منبر او دريدلو نو د خورما هغه تنه چې هغې سره به

يَخْطُبُ عِنْدَهَا حَتّٰى كَادَتْ أَنْ تَنْشَقَّ

شا لګولو سره حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خطبه ورکوله په زوره زوره په ژړا شوله او قريب وه چې هغه د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

فَنَزَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتّٰى أَخَذَهَا

د فراق جدايي اذيت د شدت نه وچوي نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ منبر نه راکوز شو هغه ته ورغی ونيوله بيا د هغې

فَضَمَّهَا إِلَيْهِ فَجَعَلَتْ تَأِنُّ أَنِيْنَ الصَّبِيِّ الَّذِيْ

د تسلی د پاره هغه يې غاړې سره ولګوله د دې نه روسته هغه ستنې د هغه بچې په شان ژړا شروع

| يُسَكَّتُ | حَتَّى | اسْتَقَرَّتْ | قَالَ | بَكَتْ | عَلَى | مَا |
|---|---|---|---|---|---|---|
| کړه چې هغه چپ کولی شي او هغه ژړنه چپ کېږي اخر هغه ستني ته آرام راغې چپ شوه بیا حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ | | | | | | |
| كَانَتْ | تَسْمَعُ | مِنَ | الذِّكْرِ. | رَوَاهُ | الْبُخَارِيُّ | |
| بیان وکړو چې دي ستني په دي وجه وژړل چې د الله کوم ذکر یې اوریده د هغه نه محرومه شوه [بخاري] | | | | | | |

**توضیح** : (صاحت) د ژړا په وجه یې آواز پورته شو . (تنشق) د چاودیدو په معنی سره دی . (تأن) أنّ يأنّ ضرب يضرب نه دی ، ماشوم چې کله په ژړا ژړا سره سلګی شروع کړي هغه ته انين ويل کيږي ، په دغه ونې کې د معجزې ظهور وشو ، وایي دغه ونه به جنت ته ځي ، لږ سوچ پکار دی چې وچې ونه د حضور ﷺ په فراق کې ژاړي مګر غافل انسان په غفلت کې پروت دی .

سنگی ونباتی که درو خاصیتی نیست     به از آدمی که درو معرفتی نیست

## دروغ عذر بیانونکي دخپل لاس توانائي نه محروم شو

| ﴿۳۵﴾ عَنْ سَلَمَةَ بْنِ الْأَكْوَعِ أَنَّ رَجُلًا أَكَلَ عِنْدَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ | | | | |
|---|---|---|---|---|
| او حضرت سلمه بن اکوع رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ نه روایت دی یو سړي د رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مخکې په ګڅ لاس سره طعام | | | | |
| بِشِمَالِهِ | فَقَالَ | كُلْ | بِيَمِيْنِكَ | قَالَ لَا |
| خوړلو حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ورته نصیحت وکړو چې ښي لاس سره خوره هغه سړي جواب ورکړو چې زه ښي | | | | |
| أَسْتَطِيْعُ | قَالَ | لَا | اسْتَطَعْتَ، | |
| لاس سره نشم خوړلی حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمائیل تا ته دې ښي لاس سره خوړلو باندي هیڅ کله قدرت نه وي | | | | |
| مَا | مَنَعَهُ | إِلَّا | الْكِبْرُ | قَالَ |
| [دراصل] هغه سړی غرور کي راتلو سره ښي لاس سره یې طعام نه خوړلو راوي وایي د حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د | | | | |
| فَمَا | رَفَعَهَا | إِلَى | فِيْهِ. رَوَاهُ مُسْلِمٌ. | |
| هغه سړی خپل ښي لاس خولي پوري اوچتولو باندي هم قادر نه شو . | | | | |

## په يوې سورلۍ کې د معجزې ظهور

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۲۷﴾ وَ | عَنْ | أَنَسٍ | اَنَّ | اَهْلَ | الْمَدِيْنَةِ | فَزِعُوْا | مَرَّةً |

او حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دى يو وارد شپې اهل مدينه د غلو يا د دښمن خطرې محسوس ولو سره

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فَرَكِبَ | النَّبِيُّ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ | فَرَسًا | لِأَبِيْ | طَلْحَةَ |

ويريدل او ژړا فرياد يې شروع كړو نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د صورت حال تحقيق د پاره د ابو طلحه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په اَس

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| بَطِيْئًا | وَ | كَانَ | يَقْطِفُ | فَلَمَّا | رَجَعَ | قَالَ |

باندې چې ډير سست رفتار وو تشريف يوړلو چې روسته راغلى نو ابو طلحه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته يې وفرمائيل

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وَجَدْنَا | فَرَسَكُمْ | هٰذَا | بَحْرًا | فَكَانَ | بَعْدَ | ذٰلِكَ |

مونږ خوستا اَس د او بو په شان تيز رفتار او كشاده قدم پيدا كړو نو د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د سورلي نه روسته

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| لَايُجَارٰى | وَفِيْ | رِوَايَةٍ | فَمَاسُبِقَ | بَعْدَ |

هغه اَس دا سې تيز رفتار شو چې هيڅ اَس هغه سره تلى نه شو او په يو روايت كې دا الفاظ دي چې

| | | |
|---|---|---|
| ذٰلِكَ | الْيَوْمِ. | رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ. |

د هغه ورځې نه روسته هيڅ اَس د هغه نه مخكې كيدى نه شو.

**توضيح**: **بطيئا**: يعنې سست رفتاره آس وو.

**يقطف**: نژدې نژدې قدمونو ايښودلو سره تلونكي آس ته قطوف ويل كيږي.

**بحرا**: يعنې دا آس خو د سمندر پشان تيز تګ كوي يا د دې رفتار خو د سمندر پشان مسلسل دى كله ختميږي نه. د دې حديث نه معلومه شوه چې د يو شي په كمال باندې د هغه تعريف جائز دى او دا هم معلومه شوه چې په تعريف كې مبالغه كول هم جائز دي چې كله په محدوده دائره كې وي.

**لايجارى**: د مجارات نه دى، د مقابلې په معنى سره دى يعنې هيڅ آس د دې مقابله كولى نشي ځكه چې د حضور ﷺ په هغه باندې سوارلى كولو سره په هغه كې د معجزې ظهور راغى.

## کهجورو کې د معجزې ښکاره کيدل

﴿۳۸﴾ وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ تُوُفِّيَ أَبِي وَعَلَيْهِ دَيْنٌ

او حضرت جابر بن عبد الله رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي کوم وخت چې زما پلار وفات شو نو دهغه په ذمه ډيره قرضه وه

فَعَرَضْتُ عَلَى غُرَمَائِهِ أَنْ يَأْخُذُوا التَّمْرَ بِمَا

ما هغه قرضدارو ته پيشکش وکړو چې زمونږ سره څومره خورما دي هغه ټولې زما د پلار د قرض په

عَلَيْهِ فَأَبَوْا فَأَتَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

بدل کې واخلئ ليکن هغوی زما خبرې منلو نه انکار وکړو آخر زه د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خدمت کې حاضر

فَقُلْتُ قَدْ عَلِمْتَ أَنَّ وَالِدِي قَدِ اسْتُشْهِدَ يَوْمَ أُحُدٍ

شوم او عرض مې وکړو يا رسول الله تاسو ته معلومه ده چې زما پلار په جنګ احد کې شهيد شوی

وَتَرَكَ دَيْنًا كَثِيرًا وَإِنِّي أُحِبُّ أَنْ يَرَاكَ الْغُرَمَاءُ

دی او هغه ځان پسې ډير قرض پريښی دی زه غواړم چې قرض غوښتونکې تاسو ما سره ووينې

فَقَالَ لِي اِذْهَبْ فَبَيْدِرْ كُلَّ تَمْرٍ عَلَى نَاحِيَةٍ فَفَعَلْتُ

حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ماته وفرمائيل لاړ شه او د هر قسم کجورو جدا جدا ډهيرى ولګوه نو ما دغه شان وکړل او

ثُمَّ دَعَوْتُهُ فَلَمَّا نَظَرُوا إِلَيْهِ

دې نه روسته مې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته د تشريف راوړلو وويل قرض غوښتونکو د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تشريف راوړل

كَأَنَّهُمْ أُغْرُوا بِي تِلْكَ السَّاعَةَ

وليدل نو هغه وخت فوراً يې داسې رويه اختيار کړله لکه چې هغوی په ما حاوي شوي وي حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

فَلَمَّا رَآى مَا يَصْنَعُوْنَ طَافَ حَوْلَ أَعْظَمِهَا

چې د هغه قرض خواهانو دا رويه وليده نو هغوى ته ئه ويلو نه بغير د ټولو نه دلوى ډهيرۍ نه يې

بَيْدَرًا ثَلٰثَ مَرَّاتٍ ثُمَّ جَلَسَ عَلَيْهِ ثُمَّ قَالَ

چاپيره دري چکره ولګول او بيا هغه ډهيري باندي کينا ستلو سره ماته يې و فرمائيل خپل قرض خواه

اُدْعُ لِيْ أَصْحَابَكَ فَمَا زَالَ يَكِيْلُ لَهُمْ

راوبله نو د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په حکم سره د هغه ډهيرۍ نه په ناپ تول سره قرض خواهو ته ورکول شروع

حَتّٰى أَدّٰى اللهُ عَنْ وَالِدِيْ أَمَانَتَهُ وَأَنَا أَرْضٰى

کړل تر دې پورې چې الله تعالى زما د پلار ټوله قرضه ادا کړله اګر که زما د خوشحالۍ د پاره دا څه کم

أَنْ يُؤَدِّيَ اللهُ أَمَانَةَ وَالِدِيْ وَلَا أَرْجِعُ

نه وو چې الله تعالى زما د هغه قجورو نه زما د پلار تمامه قرضه اداء کړله که خپلو خويندو ته ورلو

إِلٰى أَخَوَاتِيْ بِتَمْرَةٍ فَسَلَّمَ اللهُ الْبَيَادِرَ كُلَّهَا

د پاره يوه قجوره هم نه وى بچ شوي ليکن الله تعالى خو د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ معجزي سره ټول ډيري محفوظ وساتل او په کوم

وَحَتّٰى إِنِّيْ أَنْظُرُ إِلَى الْبَيْدَرِ الَّذِيْ كَانَ عَلَيْهِ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

ډهيري چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ناست وو ما هغه طرف ته نظر وکړو نو داسي لګيده چې د هغه نه يوه قجوره هم نه ده کمه

كَأَنَّهَا لَمْ تَنْقُصْ

شوي او هر کله چې هغه ډهيرۍ نه هيڅ کم نه شو چې هغه نه د قرض خواهو د مطالبي په قدر ورکړل شو نو باقي ډهيري

تَمْرَةً وَاحِدَةً. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ

خوبدر جه اولى سالم او محفوظ پاته شو.

**توضیح**: (علی غرمائه) یعنې د پلار جان په قرضدارانو باندې ما خپل باغ پیش کړلو مګر هغوی کم ګڼلو سره انکار وکړو، دا قرضداران یهودیان وو، (مرقات).

**یراک الغرماء**: یعنې چې کله قرضداران تا ووینې نو لږ رعایت به وکړي. (**فبیدر**) دا د امر صیغه ده د ډیرې جوړولو په معنی سره دی، البیدر د ډیري کولو میدان ته ویل کیږي یعنې په میدان کې د خرماؤ د هر قسم ځانته ځانته ډیري جوړه کړه. (**اغروابی**) دا د اغراء نه دی د چا په خلاف د سپی غفولو ته اغراء ویل کیږي یعنې د حضور اکرم ﷺ په لیدلو سره دغه خلک په ما باندې راګرم شول او په خبرو کې یې سختي پیدا کړله چې تا د سفارش دغه صورت ولې جوړ کړلو؟ قرضداران یهود وو په دغه وجه ګرم شول چې د دومره زیات قرضدارانو لپاره دې څومره کم مال ایخی دی.

(**اعظمها بیدرا**) حضور ﷺ چې کله وکتل چې یهود بدتمیزی کوي نو هغه د غټ ډیري شاوخوا درې ځله تاؤ شو او بیا د هغې سره کیناستلو. (**اصحابک**) یعنې خپل قرضداران یهود راوغواړه چې خپل قرض واخلي. (تمرة واحدة) یعنې ټول قرض یې ورکړو مګر د خرماؤ دغه ډیرۍ داسې معلومیدله چې یو دانه خورما هم ددینه کمه شوې نه ده ځکه چې د حضور ﷺ په برکت په هغې کې د معجزې ظهور شوی وو.

## دغوړو دمشکیزې متعلق یوه معجزه

﴿۳۸﴾ وَعَنْهُ قَالَ إِنَّ أُمَّ مَالِكٍ كَانَتْ تُهْدِىْ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِىْ عُكَّةٍ

او حضرت جابر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ بیان کوي ام مالک رحمه الله به د حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خدمت کې یوې مشکیزې کې دغوړو هدیه

لَهَا سَمْنًا فَيَأْتِيْهَا بَنُوْهَا فَيَسْأَلُوْنَ الْأُدُمَ

لیږله چې کله به د ام مالک رحمه الله زامن راتلل او د خوراک د پاره به یې څه سالن او غوښتلو او د هغې سره

وَلَيْسَ عِنْدَهُمْ شَيْءٌ فَتَعْمِدُ إِلَى الَّذِىْ كَانَتْ تُهْدِىْ فِيْهِ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

به څه سالن موجود نه وو نو هغه به هغه مشکیزې ته ورتله چې په هغه کې به یې نبي کریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته غوړي

فَتَجِدُ فِيْهِ سَمْنًا فَمَا زَالَ

لیږل غوړي او د هغې نه به څه غوړي ورته حاصلیدل کافي ورځو پورې دا سلسله جاري وه چې هغه

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| يُقِيمُ | لَهَا | أُدْمَ | بَيْتِهَا | حَتَّى | عَصَرَتْهُ |
| مشکیزي سره لګیدلی غوړي پوره کور د پاره کافي کیدل بیا ام مالک رحمه الله هغه ټول راوښکل چې د | | | | | |
| فَأَتَتِ | النَّبِيَّ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ |
| هغه اثر داوسو چې هغه د هغه د برکت نه محرومه شوه او کور والو ته روټي خوړلو د پاره چې د کوم شي | | | | | |
| فَقَالَ | | عَصَرْتِيهَا | | | قَالَتْ |
| طمعوه هغه بند شو ام مالک رحمه الله د نبي کریم ﷺ په خدمت کي حاضره شوه حضور ﷺ پوښتنه ایا | | | | | |
| نَعَمْ | | قَالَ | لَوْ | | تَرَكْتِيهَا |
| تا هغه مشکیزه بالکل پخور کړې ده؟ هغې وویل چې ها نو حضور ﷺ ورته وفرمائیل که تا مشکیزه | | | | | |
| | مَا | زَالَ | قَائِمًا. | رَوَاهُ | مُسْلِمٌ. |
| داسي نه وی نچوړ کړي نو همیشه به تا ته د دې مشکیزي نه غوړي حاصلیدل. | | | | | |

**توضیح**: **عكة**: وړې مشکیزې ته هم عکه وایي او د غوړو لپاره د څرمنې نه جوړ شوې لوښي ته هم عکه وایي، ملا علی قاری رحمه الله لیکي: **هی وعاء من جلد مستدیر و یختص بالسمن والعسل**. (مرقات)

**(فتعمد)** د قصد او ارادې په معنی سره دی، ضمیر د مؤنث ام مالک ته راجع کیږي، د حدیث مطلب دا دی چې ام مالک رحمه الله به په یوه لوښي کې غوړي اېښودل او حضور ﷺ ته به یې په طور د هدیه لیږل، کله به داسې کیدل چې د ام مالک بچیان به راغلل ترکاري به یې غوښته نو ام مالک به هغه لوښي طرفته لاړه ځکه چې د ترکاري کوم بل انتظام نه وو البته په دغه لوښي کې د معجزې ظهور شوی وو نو په هغه کې به هر وخت غوړي ملاویدل، دا سلسله روانه وه تر دې پورې چې یو ځل ام مالک رحمه الله د لوښي نه ټول غوړ صفا کړل نو د برکت او معجزې دغه سلسله بنده شوه، علماؤ لیکلي دي چې معجزه یو غیبي انتظام دی هغه پټه ساتل پکار دي، د خوراک څښناک شیانو بیخ ظاهرولو سره معجزه موقوف کیږي، د خوراک او څښناک په شیانو کې خو برکت او اضافه راځي لیکن اصل ماده برقراره ساتل پکار دي. **(عصرتیها)** آیا تا هغه لوښی بلکل نچوړ کړلو ؟ په دې صیغه

کې (ی) د اشباع لپاره ده او په ترکتیبها کې هم دی، د اشباع لپاره ده ، ددې مفهوم د ترجمې کولو نه ظاهرېږي او تعلق يې د کلام د لهجې سره دی.

## په طعام کې دبرکت معجزه

﴿۲۹﴾ وَ عَنْ اَنَسٍ قَالَ قَالَ اَبُوْ طَلْحَةَ لِأُمِّ سُلَيْمٍ لَقَدْ

او حضرت انس رضی الله عنه وايي يوه ورځ ابو طلحه انصاري رضی الله عنه چې زما پلندر وو کورته راتلو سره زما مور

سَمِعْتُ صَوْتَ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ضَعِيْفًا

ام سليم رضی الله عنها ته يې وويل نن ما د رسول الله ﷺ او از کې ډيره کمزوري محسوسه کړه چې هغه سره ماته

أَعْرِفُ فِيْهِ الْجُوْعَ فَهَلْ عِنْدَكِ مِنْ شَيْءٍ فَقَالَتْ

اندازه وشوه چې حضور ﷺ وږی دی دي ايا تا سره د خوراک څه شی شته ام سليم رضی الله عنها جواب ورکړو

نَعَمْ فَأَخْرَجَتْ أَقْرَاصًا مِّنْ شَعِيْرٍ ثُمَّ أَخْرَجَتْ خِمَارًا لَّهَا

چې شته بيا هغه د اوربشو څو روټۍ راوښکلي خپل څادر يې رواخسته او د هغه يوه حصه کې يې روټۍ

فَلَفَّتِ الْخُبْزَ بِبَعْضِهٖ ثُمَّ دَسَّتْهُ تَحْتَ يَدِيْ وَلَاثَتْنِيْ بِبَعْضِهٖ

او نغښتلي او بلې حصې سره يې زما سر پټ کړو او بيا يې پړوني کې انغښتې روټۍ زما تر لاس لاندې پټې

ثُمَّ أَرْسَلَتْنِيْ إِلٰى رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ فَذَهَبْتُ بِهٖ

کړې او زه يې د رسول کريم ﷺ په خدمت کې وليږلم زه هغه وډيو سره ورسيدم رسول کريم ﷺ هغه

فَوَجَدْتُ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ فِي الْمَسْجِدِ وَ مَعَهُ النَّاسُ فَسَلَّمْتُ عَلَيْهِمْ

وقت په مسجد کې تشريف فرما وو او ډير خلق د حضور ﷺ سره ناست وو ما ټولو ته سلام وکړو

فَقَالَ لِيْ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ أَرْسَلَكَ

رسول کريم ﷺ د سلام جواب راکولو نه روسته زما نه پوښتنه وکړه ايا ته ابو طلحه رضی الله عنه راليږلی يې؟

أَبُو طَلْحَةَ قُلْتُ نَعَمْ قَالَ بِطَعَامٍ قُلْتُ نَعَمْ

اعرض وکړو چي هو حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ پوښتنه وکړه چې روټی درکړي ده را لیږلي یي ما وویل چې هو

فَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِمَنْ مَعَهُ

رسول کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زما جواب اوریدو سره هغه خلقو ته چې رسول کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره ناست وو وفرمائیل

قُوْمُوْا . فَانْطَلَقَ وَانْطَلَقْتُ بَيْنَ أَيْدِيْهِمْ

راپاځئ دابو طلحه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ کورته ورځو ددي نه روسته حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ او هغه تمام خلق دابو طلحه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دکور

حَتَّى جِئْتُ أَبَا طَلْحَةَ فَأَخْبَرْتُهُ فَقَالَ

طرف ته روان شول اوزه هم د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مخکي روان شوم ابو طلحه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته مي خبر ورکړو نو هغه

أَبُو طَلْحَةَ يَا أُمَّ سُلَيْمٍ قَدْ جَاءَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالنَّاسِ

وویل ای ام سلیم رَضِيَ اللهُ عَنْهَا رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تشریف راوړی او حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره صحابه کرام هم دي حال دا چې

وَلَيْسَ عِنْدَنَا مَا نُطْعِمُهُمْ فَقَالَتْ اَللهُ وَرَسُوْلُهُ أَعْلَمُ

زمونږ سره ددي ځو ډوډیو نه علاوه څه شی نشته ام سلیم رَضِيَ اللهُ عَنْهَا جواب ورکړو الله او د هغه رسول ښه پوهیږی یا

فَانْطَلَقَ أَبُوْ طَلْحَةَ حَتَّى لَقِيَ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

ابو طلحه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د استقبال دپاره دکور نه بهر ووتلو او حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره یي ملاقات

فَأَقْبَلَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَبُوْ طَلْحَةَ مَعَهُ

وکړو دي نه روسته رسول کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دابو طلحه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ کورته تشریف راوړو او کورته رسیدو سره یي

فَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هَلُمِّيْ يَا أُمَّ سُلَيْمٍ مَا عِنْدَكِ

وفرمائیل ای ام سلیم رَضِيَ اللهُ عَنْهَا څه چې تا سره وي هغه راوړه ام سلیم رَضِيَ اللهُ عَنْهَا هغه روټی چې هغه سره وي

فَأَتَيْتُ بِذٰلِكَ الْخُبْزِ فَأَمَرَ بِهِ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

راوړي د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مخکي يي کښيخودلي حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حکم وکړو چې هغه روټۍ ميده کړي نو هغه

فَفُتَّ وَعَصَرَتْ أُمُّ سُلَيْمٍ عُكَّةً فَأَدَمَتْهُ

ميده کړی شوي او ام سليم رَضِيَ اللهُ عَنْهَا د غوړو مشکيزه نچوړولو سره غوړي راوښکل او هغه يي د سالن

ثُمَّ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْهِ

جوړ کيخودل، روسته رسول کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د هغه روټۍ سالن (ترکاري) په باره کي هغه څه وفرمائيل

مَا شَاءَ اللهُ أَنْ يَقُوْلَ ثُمَّ قَالَ ائْذَنْ لِعَشَرَةٍ فَأَذِنَ

چې الله تعالى غوښتل بيا حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حکم وکړو چې لس سړي راوغواړه نو لس سړي راوغوښتي

لَهُمْ فَأَكَلُوْا حَتّٰى شَبِعُوْا ثُمَّ خَرَجُوْا ثُمَّ قَالَ ائْذَنْ لِعَشَرَةٍ

شول هغوی په مړه خيټه طعام وخوړلو بيا چې هغوی ولاړل نو حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمائيل لس لس کسان

لِعَشَرَةٍ فَأَكَلَ الْقَوْمُ كُلُّهُمْ

راوبللو سره پرې خوروي نو لس لس سړي بللو سره مو پرې طعام وخوړلو تر دې پوري چې هغه ټولو په

وَشَبِعُوْا وَالْقَوْمُ سَبْعُوْنَ أَوْ ثَمَانُوْنَ رَجُلًا. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. وَفِيْ رِوَايَةٍ لِمُسْلِمٍ

مړه خيټه طعام وخوړلو او دا ټول اويا يا اتيا سړی وو [بخاري ومسلم] او د مسلم يو روايت کي دا الفاظ

أَنَّهُ قَالَ ائْذَنْ لِعَشَرَةٍ فَدَخَلُوْا

دي چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمائيل لس خلق د طعام د پاره راوبلئ هر کله چې هغه لس خلق راغلل

فَقَالَ كُلُوْا وَسَمُّوا اللهَ فَأَكَلُوْا

نو حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغوی ته وفرمائيل د الله تعالى نوم آخستو سره خورئ نو هغوی د الله تعالى نوم اخستو سره طعام وخوړلو

حَتّٰى فَعَلَ ذٰلِكَ بِثَمَانِيْنَ رَجُلًا ثُمَّ أَكَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

دغه شان اتيا سړو باندي طعام وخوړل شو هر کله چې ټولو طعام وخوړلو نو آخر کي نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

وَأَهْلَ الْبَيْتِ وَتَرَكَ سُؤْرًا وَفِيْ رِوَايَةٍ لِلْبُخَارِيِّ

او د کور خلقو طعام وخوړلو او بيا هم پسخورده باقي پاتې شوه. او د بخاري يو بل روايت کي داسې دي

أَرْبَعِيْنَ ثُمَّ أَكَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

نبي صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمائيل لس کسان ماته راولئ دغه شان څلويښت کسان يې شمير کړل د هغوی نه روسته خپله نبي صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

فَجَعَلْتُ أَنْظُرُ هَلْ نَقَصَ مِنْهَا شَيْءٌ

طعام وخوړلو او ما مسلسل کتل چې د طعام نه څه کم شوي دي يا نه ليکن ماته قطعًا څه کمی په نظر نه راتلو

وَفِيْ رِوَايَةٍ لِمُسْلِمٍ ثُمَّ أَخَذَ مَا بَقِيَ فَجَمَعَهُ ثُمَّ دَعَا فِيْهِ بِالْبَرَكَةِ

او د مسلم په يو بل روايت کي دا الفاظ هم دي چې حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ پسخورده او چتولو سره جمع کړه او هغې کي د برکت دعا

فَعَادَ كَمَا كَانَ فَقَالَ دُوْنَكُمْ هٰذَا.

وکړله نو هغه هغه شان شوه څرنګه چې مخکي وه بيا حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمائيل دا وساتئ او بيا يې وخورئ.

**توضيح**: **اقراصاً**: دا د **قرص** جمع ده روټۍ ته ويل کيږي.

**خمارا**: لوپټې ته ويل کيږي، **ببعضه**: يعنې د لوپټې په يوه حصه کې يې روټۍ تاؤ کړه ويې تړله.

**و دسته**: دس يدس د نصر ينصر نه د منډلو او پټولو په معنی سره دی خاصکر په خاوره کې د پټولو لپاره استعماليږي.

**لاثتني**: د نصر ينصر نه لوث د تاوولو او عمامه جوړولو په معنی سره راځي، حضرت انس رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ دا ويل غواړي چې مور مې د خپلې لوپټې يوه حصه کې يې روټۍ وتړله زما په بغل کې يې ومنډله او د لوپټې دويمه حصه يې زما په سر باندې تاؤ کړه، داسې معلوميږي چې دا د يخنۍ موسم وو.

**بطعام**: د ويلو نه مخکې حضور ﷺ د خوراک خبره ظاهره کړه ممکنه ده چې دلته د معجزې ظهور

شوي وي .

**قوموا:** اګرچې حضور ﷺ یې کور ته غوښتی نه وو مګر حضور ﷺ مناسبه وګڼله چې هلته لاړ شي ترڅو په کور کې برکت راشي او د معجزې ظهور راشي .

**الله و رسوله اعلم:** د ام سلیم رضي الله عنها ایماني قوت ته اوګوره هیڅ پریشانه نشوه بلکه ابوطلحه رضي الله عنه ته یې تسلي ورکړه چې دا د رسول الله ﷺ ملیمانه دي هغه پوهیږي او میلمانه یې پوهیږي، مونږ ولې پریشانه شو ، یعنې د هغه ځای نه به ټول انتظام کیږي . **(ففتّ)** ډوډۍ ماته کړی شوه .

**ان یقول:** په روایاتو کې دي چې هغه دا دعاء وویله **(بسم الله اللّٰهم اعظم فیه البرکة)** .

**ائذن لعشرة:** دا د مخکې زمانې د دعوتونو رواج وو ، اوس هم په عربو او قبائلو کې بلکه زمونږ په علاقه کې هم دا رواج دی چې لسو کسانو ته په یوه لویه کاسه باندې یو ځای خوراک ورکول کیږي ، ددې مجموعې نوم (بیندړه) وي ، په هر حال د دوه څلورو کسانو خوراک اتیا کسانو وخوړو او بیا هم پاتې شو ، په دغه طریقه په دې خوراک کې د معجزې ظهور راغی .

## ګوتو مبارکو نه داوبو وتلو معجزه

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۲۰﴾ | وَعَنْهُ | قَالَ | أُتِيَ | النَّبِيُّ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ | بِإِنَاءٍ |
| او حضرت انس رضي الله عنه وايي په يوه موقع چې نبي كريم صلى الله عليه وسلم زوراء مقام كي تشريف فرماوو | | | | | | | | | |
| وَهُوَ | بِالزَّوْرَاءِ | فَوَضَعَ | يَدَهُ | فِي | الْإِنَاءِ | | | | |
| دحضور صلى الله عليه وسلم په خدمت كي داوبو يو لوښى راوړل شو حضور صلى الله عليه وسلم خپلي ګوتي مباركې هغه لوښي كي خكته | | | | | | | | | |
| فَجَعَلَ | الْمَاءُ | يَنْبُعُ | مِنْ | بَيْنِ | أَصَابِعِهِ | فَتَوَضَّأَ | الْقَوْمُ | | |
| كړې او دګوتو مباركو نه يې داوبو فواره بهيدل شروع شو پوره جماعت هغه اوبو سره اودس وكړو | | | | | | | | | |
| قَالَ | قَتَادَةُ | قُلْتُ | لِأَنَسٍ | كَمْ | كُنْتُمْ | | | | |
| حضرت قتاده رضي الله عنه وايي ما د حضرت انس رضي الله عنه نه پوښتنه وكړه په هغه موقع تاسو خلق څومره وئى ؟ | | | | | | | | | |

قَالَ ثَلَاثَمِائَةٍ أَوْ زُهَاءَ ثَلَاثَمِائَةٍ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ جواب درې سوه یا اندازًا درې سوه کسان وو. [بخاري مسلم]

﴿۲۱﴾ وَ عَنْ عَبْدِ اللهِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ كُنَّا نَعُدُّ الْآيَاتِ بَرَكَةً

او حضرت عبد الله ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی هغوی ووېل مونږ صحابه رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ خو ایات د برکت او

وَأَنْتُمْ تَعُدُّوْنَهَا تَخْوِيْفًا كُنَّا مَعَ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

خوشحالۍ سبب ګڼلو او ای خلقو تاسو يې د خلکو د وېرلو دپاره ګڼئ، چې مونږ رسول کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره

فِيْ سَفَرٍ فَقَلَّ الْمَاءُ فَقَالَ اُطْلُبُوْا فَضْلَةً

يو سفر کې وو چې په لارکې داوبو د قلت مسئله پيدا شوه حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حکم وکړو چاسره چې لوښي

مِنْ مَّاءٍ فَجَاءُوْا بِإِنَاءٍ فِيْهِ مَاءٌ

کې لږې اوبه هم بچ شوي وي هغه ماته راوړئ نو صحابو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ يو داسې لوښی راوړو چې په هغه کې

قَلِيْلٌ فَأَدْخَلَ يَدَهُ فِي الْإِنَاءِ ثُمَّ قَالَ حَيَّ

ډېرې لږې اوبه وې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خپل لاس مبارک هغه لوښي کې ختته کړو او وې فرمائيل زر راځي

عَلَى الطَّهُوْرِ الْمُبَارَكِ وَالْبَرَكَةُ مِنَ اللهِ

او دا پاکې او بابرکته اوبه حاصلې کړئ او دا برکت دی د الله تعالى د طرف نه نازل شوی دی او

وَلَقَدْ رَأَيْتُ الْمَاءَ يَنْبُعُ مِنْ بَيْنِ أَصَابِعِ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

حضرت عبد الله ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ووېل هغه وقت د رسول کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د ګوتو مبارکو نه د فوارې په شان اوبه

وَلَقَدْ كُنَّا نَسْمَعُ تَسْبِيْحَ الطَّعَامِ وَهُوَ يُؤْكَلُ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ

بهيدلې ما خپله ولیدل او همدا شان مونږ د طعام د تسبيح اواز اورېده. [بخاري]

**توضيح** : (الآيات) يعنې تاسې خو معجزات هغه ته وايې چې په هغه کې تخويف او ويرول او عذاب وي حالانکه مونږ به معجزات رحمت او برکت گڼلو ، اوس صورت حال داسې دی چې عوامو ته هماغه معجزه فائده ورکوي چې په هغه کې تخويف وي او خلک په زوره لارې ته راولي مګر د معجزې خواصو ته په کتلو خپله ځې ايمان راوړي ځکه هغوی دا برکت ګڼلو .

| |
|---|
| ﴿۴۲﴾ وَعَنْ أَبِي قَتَادَةَ قَالَ خَطَبَنَا رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ |
| او حضرت ابو قتاده رضي الله عنه بيان کوي چې رسول کريم صلى الله عليه وسلم زمونږ مخکې خطبه وويله او ارشاد يې وفرمايلو |
| إِنَّكُمْ تَسِيْرُوْنَ عَشِيَّتَكُمْ وَلَيْلَتَكُمْ وَتَأْتُوْنَ الْمَاءَ |
| چې تا سو به ددي شپې په اوله حصه کې او آخره حصه کې سفر کوئ ان شاء الله صباته به تاسو او به |
| إِنْ شَاءَ اللهُ غَدًا فَانْطَلَقَ النَّاسُ لَا يَلْوِيْ أَحَدٌ عَلَى أَحَدٍ |
| پيدا کړئ نو ټول خلق د غه شان بې پروا روان وو چا ته د چا پروانه وه بلکې هر سړی جدا جدا روان وو |
| قَالَ أَبُوْ قَتَادَةَ فَبَيْنَمَا رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَسِيْرُ حَتَّى ابْهَارَّ |
| ابو قتاده رضي الله عنه وايي په دغه شپه رسول کريم صلى الله عليه وسلم هم روان وو کوم وقت چې نيمه شپه تيره شوه نو |
| اللَّيْلُ فَمَالَ عَنِ الطَّرِيْقِ فَوَضَعَ رَأْسَهُ ثُمَّ |
| حضور صلى الله عليه وسلم د لارې يو يې غاړې باندې خکته شو او سر مبارک ايښودلو سره ځملاستو مخکې هدايت |
| قَالَ احْفَظُوْا عَلَيْنَا صَلَاتَنَا |
| يې وفرمايلو چې زمونږ د مونځ خيال ساته چې داسې نه وي ټول خلق بې خبره اوده شي او سحر وقت |
| فَكَانَ أَوَّلَ مَنِ اسْتَيْقَظَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| ستر کې نه غړيدو په سبب مونځ قضاء شي ليکن دغه شان وشوه يادتولو نه مخکې رسول کريم صلى الله عليه وسلم بيدار شو |
| وَالشَّمْسُ فِيْ ظَهْرِهِ ثُمَّ قَالَ |
| هر کله چې نمر د حضور صلى الله عليه وسلم په شا مبارکه ولګيده حضور صلى الله عليه وسلم تولو بيدار ولو سره وفرمائيل فوراً تيار |

ارْكَبُوْا فَرَكِبْنَا فَسِرْنَا

شئ اوددي ځاي نه روان شئ نو مونږ خلق په تلوار تلوار خپلو سورلو باندي كينا ستلو اود هغه ځاي

حَتّٰى إِذَا ارْتَفَعَتِ الشَّمْسُ نَزَلَ ثُمَّ

نه روان شو تردي پورې چې نمر زيات اوچت شو نو حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د سورلي نه راكوز شو بيا د اودس

دَعَا بِمِيْضَأَةٍ كَانَتْ مَعِيْ فِيْهَا شَيْءٌ مِنْ مَّاءٍ

لوښي يې وغوښتلو چې ما سره وو او په هغه كي لږ اوبه باقي وي او هغه سره حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

فَتَوَضَّأَ مِنْهَا وُضُوْءًا دُوْنَ وُضُوْءٍ قَالَ وَبَقِيَ فِيْهَا شَيْءٌ مِنْ مَّاءٍ

اودس وكړو ابو قتاده رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وايي د اودس نه روسته څه لږ اوبه هغه لوښي كي بچ پاتې شوې وې

ثُمَّ قَالَ احْفَظْ عَلَيْنَا مِيْضَأَتَكَ فَسَيَكُوْنُ لَهَا

حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمائيل ددي لوښي او به حفاظت سره وساتئ ځكه چې نزدي وخت كې به دې اوبو نه به

نَبَأٌ ثُمَّ أَذَّنَ بِلَالٌ بِالصَّلَاةِ فَصَلَّى رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

يوه لويه خبره ښكاره كيږي دي نه روسته بلال رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ ما نځه د پاره اذان وكړو او رسول كريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سنت

رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ صَلَّى الْغَدَاةَ وَرَكِبَ وَرَكِبْنَا مَعَهُ

اداكړل دوه ركعاته دسحر قضاء مونځ يې باجماعت اداء كړو روسته حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سور شو او مونږ هم

فَانْتَهَيْنَا إِلَى النَّاسِ حِيْنَ امْتَدَّ النَّهَارُ وَحَمِيَ

په خپلو سورلو كينا ستلو تر دي پورې چې مونږ د قافلي خلقو سره يوځاي شو هغه وقت نمر بره

كُلُّ شَيْءٍ وَهُمْ يَقُوْلُوْنَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ هَلَكْنَا

راختلي وو چې هغه سره هر شي ته ګرمي رسيده خلقو وويل يارسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مونږ خو هلاك كړو

عَطِشْنَا فَقَالَ لَا هُلْكَ عَلَيْكُمْ وَ دَعَا بِالْمِيْضَأَةِ

زمونږ تندي حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمائيل ستا سو د پاره هلاكت نشته بيا حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د او

فَجَعَلَ يَصُبُّ وَأَبُو قَتَادَةَ يَسْقِيهِمْ

او بو هغه لوښي طلب كړو او هغه لوښي نه يې او به اچول شروع كړل او ابو قتاده رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خلقو باندې څكول شروع كړل او

فَلَمْ يَعْدُ أَنْ رَأَى النَّاسُ مَاءً فِي الْمِيضَأَةِ

قافلې والا و چې څرنګه وليدل چې هغه لوښي نه او به غورځيدي نو دټولو نه مخكې يو دم رامات شول

تَكَابُّوا عَلَيْهَا فَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَحْسِنُوا

او يو په بل اوړيدل شروع شو . حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دهغوى بې صبرى ليدو سره وفرمائيل ښه طريقه اختيار

الْمَلَأَ كُلُّكُم سَيَرْوَى قَالَ فَفَعَلُوْا

كړئ او د اخلاقو نه كار واخلئ تا سو ټول به دې او بو سره سيراب شئ نو سمدستي خلقو ښه طريقه

فَجَعَلَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ يَصُبُّ

اختيار كړه او جدا جدا كيدو سره په وقار او قطار سره ودريدل بيا رسول كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ او به اچول او ما په

وَأَسْقِيهِمْ حَتَّى مَا بَقِيَ غَيْرِيْ وَغَيْرُ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

خلقو او به څكول شروع كړل تر دې پورې چې ټول خلق سيراب شول او زما او رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه سوا

ثُمَّ صَبَّ فَقَالَ لِي إِشْرَبْ فَقُلْتُ لَا أَشْرَبُ

هيڅوك باقي پاتې نه شول نو حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ او به و اچولې او ماته يې وفرمائيل او څكه ما عرض وكړو زه

حَتَّى تَشْرَبَ يَا رَسُوْلَ اللهِ فَقَالَ إِنَّ سَاقِيَ

هغه وقته پورې نشم څكلى څو پورې چې تاسو يې ونه څكئ رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمائيل د خلقو ساقي

الْقَوْمِ آخِرُهُمْ قَالَ فَشَرِبْتُ وَ شَرِبَ

دهغوى آخري سړى وي حضرت ابو قتاده رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي ما او به و څكلې بيا حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ او به نوش كړې

قَالَ فَأَتَى النَّاسُ الْمَاءَ جَامِّيْنَ

ابو قتاده رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وايي دي نه روسته اهل قافله داوبو ځاي ته داسي حال كي ورسيدل چې اوبه شوي ووا

رِوَاءً. رَوَاهُ مُسْلِمٌ. هٰكَذَا فِيْ صَحِيْحِهِ

راحت يي پيدا كړي وو دا روايت مسلم نقل كړي دى، او صحيح مسلم كي داسي منقول دى او كتاب

وَكَذَا. فِيْ كِتَابِ الْحُمَيْدِيِّ وَجَامِعِ الْأُصُوْلِ وَزَادَ فِي الْمَصَابِيْحِ بَعْدَ

حميدي او جامع الاصول كي هم دا روايت دې الفاظو سره منقول دى البته مصابيح كي إِنَّ سَاقِيَ الْقَوْمِ

قَوْلِهِ آخِرُهُمْ لَفْظَةَ شُرْبًا.

آخِرُهُمْ: نه روسته شربًا لفظ مزيد دى.

**توضيح**: (ابهار الليل) يعني نيمه شپه شوله، ستوري وځليدل، (ميضأة) لوتې ته وايي. (فلم يعد) يعني خلكو آخوا ديخو تجاوز ونكړو بلكه چې كله يې اوبه وليدلې نو په اوبو باندې راپريوتل.

**تكابوا**: په اوبو باندې ازدحام جوړولو سره راپريوتل.

**احسنوا الملاء**: يعني ښه اخلاق وساتئ. (اتى الناس) يعني د معجزې ظاهريدو والا اوبه يې ښه وڅښلې او بيا خلک په سفر باندې روان شول او د اوبو چينې ته ورسيدل. (جامين) يعني خلک ډېر په راحت او خوشحالۍ كې وو. (رواء) ښه سيرابه وو.

## تبوک كې د طعام د بركت معجزه

﴿۴۳﴾ وَ عَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ لَمَّا كَانَ يَوْمُ غَزْوَةِ تَبُوْكَ أَصَابَ

او حضرت ابو هريره رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وايي د غزوه تبوک په ورځ د توښې د كمي په سبب هر كله چې سختي لوږې

النَّاسَ مَجَاعَةٌ فَقَالَ عُمَرُ يَا رَسُوْلَ اللهِ أُدْعُهُمْ

خلق تنګ كړل نو حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ عرض وكړو يا رسول الله لږ ډيره توښه چې د خلقو سره بچ شوې د

بِفَضْلِ أَزْوَادِهِمْ ثُمَّ ادْعُ اللهَ لَهُمْ عَلَيْهَا بِالْبَرَكَةِ فَقَالَ

هغه راوغواړئي او بيا په هغه تو ښه هغوی د پاره الله تعالى نه د برکت دعا وکړئ حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمائيل

نَعَمْ فَدَعَا بِنِطَعٍ فَبَسَطَهُ ثُمَّ دَعَا بِفَضْلِ أَزْوَادِهِمْ

ښه بيا حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د چمړې دستر خوان راوغوښته نو هغه خور کړل شو او خلقو ته يې د بچ شوي توښي

قَالَ فَجَعَلَ الرَّجُلُ يَجِيءُ بِكَفِّ ذُرَةٍ وَيَجِيءُ الْآخَرُ بِكَفِّ

راوړلو د پاره وويل نو خلقو شيان راوړل شروع کړل چا يو موټي برابر جوار يې راوړل چا د موټي برابر

تَمْرٍ وَيَجِيءُ الْآخَرُ بِكِسْرَةٍ حَتَّى اجْتَمَعَ عَلَى النِّطَعِ شَيْءٌ يَسِيرٌ

خورما راوړي چا د روټۍ ټکړه راوړه د غه شان پر هغه دستر خوان څه لږ څيزونه جمع شول نو رسول

فَدَعَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَيْهِ بِالْبَرَكَةِ ثُمَّ قَالَ خُذُوا

کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د نزول برکت دعا وکړه بيا يې خلقو ته وفرمائيل لوښي ډک کړي نو خلقو خپلو خپلو لوښو

فِي أَوْعِيَتِكُمْ فَأَخَذُوا فِي أَوْعِيَتِهِمْ حَتَّى مَا تَرَكُوا فِي الْعَسْكَرِ وِعَاءً إِلَّا مَلَأُوهُ

آخستل شروع کړل تر دې پورې چې لښکر کې هيڅ داسې لوښي پاتې نه شو چې ډک نه شو

قَالَ فَأَكَلُوا حَتَّى شَبِعُوا وَفَضَلَتْ فَضْلَةٌ

حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي بيا ټول لښکر په ډکه خيټه طعام وخوړلو بيا هم ډير طعام پاتې شو دې نه روسته

فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ وَأَنِّي

رسول کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمائيل زه شاهدي کوم چې د الله تعالى نه سوا بل معبود نشته او دا چې بلاشبه زه

رَسُولُ اللهِ لَا يَلْقَى بِهِمَا عَبْدٌ غَيْرُ

د الله تعالى رسول يم داسې هيڅ کله نشي کيدی چې يو سړی د دې دوو ګواهيو سره چې هيڅ شک

| شَاكٍ فَيُحْجَبُ عَنِ الْجَنَّةِ. رَوَاهُ مُسْلِمٌ. |
|---|
| شبه پکي نشته دالله تعالى سره يوځاي شي او بيا هغه جنت ته د تلو نه منع کړل شي . |

**توضيح** : (نطع) د څرمنې دسترخوان ته نطع ويل کيږي . (**بكف ذرّة**) يعني کوم کس به يو موټي جوار راوړل ، (كسرة) يعني کوم کس به د روټۍ ټکړه راوړه ، چا به يو موټي کجورې راوړلې ، بيا په مندرجه بالا شيانو باندې حضور ﷺ د برکت دعاء وکړله نو د معجزې ظهور وشو او لوښي يې ډک يوړلو .

## دام المؤمنين بي بي زينب رضي الله عنها وليمه کي دبرکت معجزه؟

| ﴿۴۴﴾ وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَرُوْسًا بِزَيْنَبَ |
|---|
| اوحضرت انس رضي الله عنه وايي دنبى صلى الله عليه وسلم ام المؤمنين بي بي زينب رضي الله عنها سره نکاح وشو نو [د واده دشپې نه |
| فَعَمِدَتْ أُمِّيْ أُمُّ سُلَيْمٍ إِلَى تَمْرٍ وَسَمْنٍ وَأَقِطٍ فَصَنَعَتْ حَيْسًا |
| روسته ] زما مور ام سليم رضي الله عنها خورما ، غوړي او کورت پنير اخستو سره ماليده جوړه کړه او بيا |
| فَجَعَلَتْهُ فِيْ تَوْرٍ فَقَالَتْ يَا أَنَسُ اِذْهَبْ بِهٰذَا إِلَى رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| پياله کي واچوله او ماته يي وويل انس رضي الله عنه دا د رسول کريم صلى الله عليه وسلم په خدمت کي يوسه او ورته ووايه چې |
| فَقُلْ بَعَثَتْ بِهٰذَا إِلَيْكَ أُمِّيْ وَهِيَ تُقْرِئُكَ السَّلَامَ |
| زما مور دا حقيره شان هديه ستاسو په خدمت کي راليږلي ده او تاسو ته يي سلام عرض کړي دی او |
| وَتَقُوْلُ إِنَّ هٰذَا لَكَ مِنَّا قَلِيْلٌ يَا رَسُوْلَ اللهِ فَذَهَبْتُ |
| ويلي يي دي چې يارسول الله دا لږ هديه زمونږ د طرف نه ستاسو د پاره ده زه د حضور صلى الله عليه وسلم په خدمت کي |
| فَقُلْتُ فَقَالَ ضَعْهُ ثُمَّ قَالَ اذْهَبْ فَادْعُ |
| حاضر شوم او څه چې زما مور ويلي وو عرض مي کړل حضور صلى الله عليه وسلم وفرمائيل دا کيږده او بيا يي |

| لِيُ | فُلَانًا | وَفُلَانًا | وَفُلَانًا | رِجَالًا | سَمَّاهُمْ | وَادْعُ |
|---|---|---|---|---|---|---|

وفرمائیل فلاني فلاني فلاني سړی چې د هغوی نومونه حضور ﷺ راته وښودل ورشه رایې وله

| لِيُ | مَنْ | لَقِيْتَ | فَدَعَوْتُ | مَنْ | سَمّٰى | وَمَنْ | لَقِيْتُ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|

اوګوره لار کي چې کوم سړی درسره ملاؤ شي هغه هم دځان سره راوله نو زه لاړم او هغه خلق او کوم

| فَرَجَعْتُ | فَإِذَا | الْبَيْتُ | غَاصٌّ | بِأَهْلِهِ |
|---|---|---|---|---|

چې په لار کي راسره ملاؤ شول هغه مي راوستل کوم وقت چې زه کورته بیرته راغلم نو پوره کورد

| قِيْلَ | لِأَنَسٍ | عَدَدُ | كَمْ | كَمْ | كَانُوْا | قَالَ | زُهَاءَ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|

خلقونه ډک وو حضرت انس رضي الله عنه نه پوښتنه وشوه تاسو څومره خلق وئ حضرت انس رضي الله عنه جواب ورکړو

| ثَلَاثِمِائَةٍ | فَرَأَيْتُ | النَّبِيَّ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ | وَضَعَ | يَدَهُ | عَلَى |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|

دري سوو ته قریب بیا ما ولیدل چې نبي کریم ﷺ هغه (مالیده) باندي لاس مبارک ایښودلو سره هغه

| تِلْكَ | الْحَيْسَةِ | وَتَكَلَّمَ | بِمَا | شَاءَ | اللهُ | ثُمَّ | جَعَلَ | يَدْعُوْ | عَشَرَةً | عَشَرَةً |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|

څه وویل څه چې الله تعالی غوښتل ددي نه روسته حضور ﷺ لس لس سړي رابلل شروع کړل او هغوی

| يَأْكُلُوْنَ | مِنْهُ | وَيَقُوْلُ | لَهُمْ | اذْكُرُوْا | اسْمَ | اللهِ |
|---|---|---|---|---|---|---|

یو بل پسي راتلل او څوک چې به طعام دپاره راتلل حضور ﷺ به ورته وفرمائیل د الله تعالی نوم آخستو

| وَلْيَأْكُلْ | كُلُّ | رَجُلٍ | مِمَّا | يَلِيْهِ | قَالَ | فَأَكَلُوْا | حَتّٰى | شَبِعُوْا |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|

سره خورئ او هر سړي ته د خپلې مخې نه خوړل پکار دي حضرت انس رضي الله عنه وايي د لس سړو جماعت چې

| فَخَرَجَتْ | طَائِفَةٌ | وَدَخَلَتْ | طَائِفَةٌ | حَتّٰى | أَكَلُوْا | كُلُّهُمْ |
|---|---|---|---|---|---|---|

به طعام خوړلو نه فارغ شو نو دلسو سړو بل جماعت به راتلو تر دي پوري چې ټولو خلقو طعام وخوړلو

| قَالَ لِيْ يَا أَنَسُ اِرْفَعْ فَرَفَعْتُ فَمَا أَدْرِيْ حِيْنَ |
|---|
| بيا حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ماته وفرمائيل اى انس داکاسه اوچته کړه ماکاسه اوچته کړه زه نشم ويلی چې کوم |
| وَضَعْتُ كَانَ أَكْثَرَ أَمْ حِيْنَ رَفَعْتُ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ |
| وخت داکاسه ايښي وه هغه وقت (ماليده) زياته وه يا هغه وخت چې اوچته کړه |

**توضيح** : (حيسا) کجورې غوړي او پنير يوځای کولو سره يوې حلوی نما حريرې ته حيس وايي، ددې لپاره مختصر نوم (ماليده) دی. (**تور**) د ډبرې کټوی يا پياله، (**ومن لقيت**) يعنې د کومو خلکو نوم چې مې واخيسته هغه هم راوغواړه او د کومو سره چې ملاؤ شوې هغه هم راوغواړه.

**غاص**: يعنې د خلک و نه کوټه ډکه شوې وه. دغه لږه ماليده درې سوه خلکو وخوړه او بيا هم پاتې شوه ځکه چې په دې کې د معجزې ظهور شوی وو، د ماليدې واقعه جدا ده او د حضرت زينب رضی الله عنها د وليمې واقعه جدا ده، دا ماليده د زوم او ناوې دعوت وو چې حضرت ام سليم رضی الله عنها تياره کړې وه.

## د اوښ سره متعلق معجزه

| ﴿۴۵﴾وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ غَزَوْتُ مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
|---|
| اوحضرت جابر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وايي زه په يو سفر کې د رسول کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره ملګری وم او اوبو راويستونکي |
| وَأَنَا عَلَى نَاضِحٍ قَدْ أَعْيٰى فَلَا يَكَادُ يَسِيْرُ |
| اوښ باندې سپور وم هغه اوښ دومره زيات ستړی شوی وو چې څرنګه هغه ته تلل پکار وو هغه شان |
| فَتَلَاحَقَ بِيَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ |
| تلو باندې قادر نه وو يوځای ته رسيدو سره زه نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره ملګری شوم حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمائيل |
| مَا لِبَعِيْرِكَ قُلْتُ قَدْ عَيِيَ فَتَخَلَّفَ |
| ستا په اوښ څه شوي دي چې ښه نه ځي ما عرض وکړو ستړی شوی دی نو حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زما د اوښ نه |

رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَزَجَرَهُ فَدَعَا

شاطرفته راغلی او په څه شي سره ووهلو بیا دهغه په حق کي دتيز تلو دعا وکړه د هغه اثر داشو چې

لَهُ فَمَا زَالَ بَيْنَ يَدَيِ الْإِبِلِ قُدَّامَهَا يَسِيْرُ فَقَالَ لِيْ

زما اوښ دټولو نه مخکي شو بیا حضور ﷺ پوښتنه وکړه وایه ستا داوښ څه حال دی ماعرض وکړو

كَيْفَ تَرٰى بَعِيْرَكَ قُلْتُ بِخَيْرٍ قَدْ أَصَابَتْهُ بَرَكَتُكَ قَالَ أَفَتَبِيْعُنِيْهِ بِوُقِيَّةٍ

ستاسو ﷺ د دعا له برکته اوس هغه بنه تیزځي حضور ﷺ وفرمائیل ایا ته دا اوښ په څلوېښت درهمه

فَبِعْتُهُ عَلٰى أَنَّ لِيْ فَقَارَ ظَهْرِهِ إِلَى الْمَدِيْنَةِ

خرڅوي ماعرض وکړو زه په دې شرط باندې دا اوښ په تاسو خرڅوم چې مدینې پورې به دا اوښ

فَلَمَّا قَدِمَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ الْمَدِيْنَةَ

زما سورلی کې وي بیا رسول کریم ﷺ اومونږ مدینې ته راورسیدو نو د راتلونکي ورځ په سحر کي

غَدَوْتُ عَلَيْهِ بِالْبَعِيْرِ فَأَعْطَانِيْ

ما اوښ اخستو سره د رسول کریم ﷺ په خدمت کي حاضر شوم حضور ﷺ ماته قیمت

ثَمَنَهُ وَ رَدَّهُ عَلَيَّ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

عطاء کړو او د مهربانۍ له مخه هغه اوښ یې هم ماته عطاء کړو.

**توضیح**: (ناضح) د اوبو ویستلو او راوړلو والا اوښ ته ناضح ویل کیږي.

**قداعیٰ**: یعني د تګ نه عاجزه شوی وو. **فتلاحق**: حضور ﷺ د وروسته نه زما سره ملاؤ شو.

**فتخلف**: یعني حضور ﷺ د اوښې شا ته راغی.

**فزجره**: په آواز سره یا په قمچینې سره یې وشړلو.

**فقار ظهره**: یعني تر مدینې پورې به ماته په دې باندې د سوریدلو حق حاصل وي، دا شرط د اصول

بیع خلاف وو لیکن دا په صلب عقد کې نه وو په دغه وجه جائز شو ، یا دا د مخکې واقعه ده چې وروسته منسوخ شو ، یا حضور ﷺ د دغه محتاج صحابی په طور د عزت تعاون کول غوښتل نو صورةً یې د بیعې صورت جوړ کړلو په حقیقت کې دا هبه وه .

## د غزوه تبوک په موقع دوه نورې معجزې

﴿۳۶﴾ وَعَنْ أَبِيْ حُمَيْدِ نِ السَّاعِدِيِّ قَالَ خَرَجْنَا مَعَ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

او حضرت ابو حمید ساعدي رضي الله عنه وايي مونږ د رسول کریم صلی الله علیه وسلم سره د غزوه تبوک د پاره د مدینې نه روان

غَزْوَةَ تَبُوْكَ فَأَتَيْنَا وَادِيَ الْقُرٰى عَلٰى حَدِيْقَةٍ

شو کوم وقت چې مدینې نه د دري ورځو په مسافت کې واقع وادي القرى ته ورسیدو نو په یو باغ تیر

لِامْرَأَةٍ فَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

شو چې د يوې ښځې وو رسول کریم صلی الله علیه وسلم هغه باغ ته رسیدو سره مونږ خلقو ته وفرمائیل اندازه کولو سره

اخْرُصُوْهَا فَخَرَصْنَاهَا وَ خَرَصَهَا

وښائې چې په دې باغ کې به څو مره میوه وي مونږ ټولو خپله خپله اندازه وښودله د چا اندازه څه وه

رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَشَرَةَ أَوْسُقٍ

او د چا څه وه بیا رسول کریم صلی الله علیه وسلم هم اندازه وکړله او وې فرمائیل په دې باغ کې به لس وسقه میوه وي دې

وَ قَالَ أَحْصِيْهَا حَتّٰى نَرْجِعَ إِلَيْكِ

نه روسته هغه ښځې ته یې وفرمائیل کله چې میوه وشکوې او وزن یې کړې نو هغه وزن یاد ساته تر دې

إِنْ شَآءَ اللهُ تَعَالٰى وَانْطَلَقْنَا حَتّٰى قَدِمْنَا تَبُوْكَ

پورې چې مونږ روسته راشو انشاء الله د هغه ځاي نه روانیدو سره چې مونږ تبوک ته ورسیدو نو

| | | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فَقَالَ | رَسُوْلُ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ | سَتَهُبُّ | عَلَيْكُمُ | اللَّيْلَةَ | رِيْحٌ |

رسول کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمائیل نن شپه به په تاسو سخته سیلئ راځي هغه وقت دې هیڅ سړی د خپل ځایه نه

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| شَدِيْدَةٌ | فَلَا | يَقُمْ | فِيْهَا | أَحَدٌ |

پاځي او چاسره چې اوښ وي هغه دې په رسۍ سره مضبوط وتړي مطلب دا چې سیلۍ نه د حفاظت

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| فَمَنْ | كَانَ | لَهُ | بَعِيْرٌ | فَلْيَشُدَّ | عِقَالَهُ | فَهَبَّتْ |

پیش نظر هلته دې نه څوک سړی ګرځي راګرځي او نه دې خپل اوښ خلاص ځاي باندي پرېږدي نو دغه

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| رِيْحٌ | شَدِيْدَةٌ | فَقَامَ | رَجُلٌ | فَحَمَلَتْهُ | الرِّيْحُ | حَتَّى |

شان وشو د شپې دومره سخته سیلئ راغله چې یو سړی چې د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د هدایت خلاف ودریدلی وو

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| أَلْقَتْهُ | بِجَبَلَيْ | طَيِّءٍ | ثُمَّ | أَقْبَلْنَا | حَتَّى | قَدِمْنَا |

هغه یې والوځوه او د طی غرونو په منځ کې یې وغورځوه مونږ چې غزوه تبوک نه فارغ شو او مدیني

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَادِيَ | الْقُرٰى | فَسَأَلَ | رَسُوْلُ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ |

ته روسته راتلو او وادي قری ته راورسیدو نو رسول کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د هغه ښځي نه د باغ په باره کې پوښتنه

الْمَرْأَةَ عَنْ حَدِيْقَتِهَا كَمْ بَلَغَ ثَمَرُهَا فَقَالَتْ عَشَرَةَ أَوْسُقٍ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

وکړه چې وښایه څومره میوه وشوه هغې ووېل لس وسقه. بخاري مسلم.

**توضیح**: (جبلی طی) د دینه د آجا او سلمی دوه غرونه مراد دي چې د طی قبیلې لپاره دوه مورچې وې،

د بنو طی شاعر ویلي:

لنا الحصنان من آجا و سلمی ❊ و شرقیاهما غیر التحال

په دې حدیث کې د دوو معجزو ظهور شوی دی یو خو د باغ د میوو متعلق د هغو مقدار بیانول او دویم

د شپې طوفان راتلل چې د هغې نه هغه تباهي رامنځته شوه چې هغه یې پورته کړو او ویې غورځوه.

## د مصر د فتح پیشنګوئي

﴿۴۷﴾وَعَنْ أَبِيْ ذَرٍّ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّكُمْ سَتَفْتَحُوْنَ مِصْرَ

ابوذر رضي الله عنه وايي چې رسول کريم صلی الله علیه وسلم وفرمائيل يقيناً هغه وقت قريب دی چې تاسو به مصر فتح کړئ

وَهِيَ أَرْضٌ يُسَمّٰى فِيْهَا الْقِيْرَاطُ فَإِذَا فَتَحْتُمُوْهَا

او مصر هغه ځمکه ده چې هلته د قيراط ذکر په کثرت سره کيږي هر کله چې تاسو مصر فتح کړئ نو د

فَأَحْسِنُوْا إِلٰى أَهْلِهَا فَإِنَّ لَهَا ذِمَّةً وَّرَحِمًا أَوْ

هغه ځاي خلقو سره نيک سلوک کوئ ځکه چې هغوی ته امان دی او هغوی سره قرابت دی يا دا يي

قَالَ ذِمَّةً وَّصِهْرًا فَإِذَا رَأَيْتُمْ

وفرمائيل هغوی ته آمان دی او هغوی سره د سخر ګنی رشته ده او هر کله چې تاسو خلق وويني چې

رَجُلَيْنِ يَخْتَصِمَانِ فِيْ مَوْضِعِ لَبِنَةٍ فَاخْرُجْ مِنْهَا قَالَ

هلته دوه سړي ديوي ښختي په ځاي جګړه کوي نو تاسو د هغه ځاي نه راوځئ حضرت ابوذر رضي الله عنه وايي

فَرَأَيْتُ عَبْدَ الرَّحْمٰنِ بْنَ شُرَحْبِيْلَ بْنِ حَسَنَةَ وَأَخَاهُ رَبِيْعَةَ

ما د خپل قيام مصر په دوران کي عبد الرحمٰن بن شرحبيل ابن حسنه او د هغه ورور ربيعه ديوي ښختي په

يَخْتَصِمَانِ فِيْ مَوْضِعِ لَبِنَةٍ فَخَرَجْتُ مِنْهَا. رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

ځاي جګړه کولو وليدل نو د مصر د سرزمين نه راووتلم. [مسلم]

**توضيح** : ستفتحون مصرا: ددې پيشنګوئي مطابق مصر فتحه شو او د معجزې ظهور وشو حضرت عمرو بن العاص رضي الله عنه د ډيرو مشقتونو نه وروسته مصر فتح کړلو .

**فيها القراط**: يعني د حرص او لالچ نه ډکه علاقه ده ، هلته به د مال دومره محبت وي چې د خلکو به ژبه به د قيراط قيراط ګردان جاری وي . په دغو خلکو کې به د مال محبت انتهاء ته رسيدلی وي په هر وخت هره معامله کې به د قيراط قيراط تذکره کيږي . علامه طحاوی رحمه الله چونکې په خپله

مصري دی هغه فرمايې چې د قیراط نه کنځل مراد دي ځکه چې د **قیراط** لفظ په طور د کنځلو هم استعماليږي، د مصر خلک وايي **اعطیت فلاناً القراریط** یعنې ما فلانی ته کنځل وکړل. مطلب دا شو چې په دغو خلکو کې به کنځل او پوچ او فحش ويل وي، بد ژبانه به وي او بیکاره خلک به وي ،ددې باوجود که تاسې هغه فتحه کړئ نو زما د صلې او سخرګنۍ خیال به ساتئ، صله خو د هاجره رضي الله عنه په وجه سره ده او سخرګنۍ د ماريه قبطيه رضي الله عنها په وجه سره ده دا د حضور ﷺ وينځه وه د دې د بطن نه ابراهيم بن محمد ﷺ پیدا شوی وو.

لبنة: خښتې ته وايي یعنې چې کله د یوې خښتې سره دې د دوو کسانو جنجال ولیدلو نو د هغه ځای نه وتښته، په دې حدیث کې یو خو د مصر د فتح کیدلو خبره ده په دې کې هم د معجزې ظهور وشو، دویمه خبره حضور ﷺ د جګړې وويله هغه هم ابوذر رضي الله عنه ولیدله په دې کې دویمه معجزه ظاهره شوه، د حضرت عثمان بن عفان رضي الله عنه په دور کې د همدغه مصر نه ابن سبا په مدينه منوره باندې راغلی وو او د حضرت عثمان رض د شهید کولو منصوبه یې جوړه کړې وه. په هر حال مصر اګرچې ام الدنیا ده او د اسلام قدیم ښار دی مګر عامې فتنې د همدغه ځای نه پیدا شوي دي او پیدا کیږي به ،نن سبا مصر د امریکې غلام دی او عوام یې تباه دي.

## یوې پیشن ګوئي کې د معجزې ظهور

| |
|---|
| ﴿۲۸﴾ عَنْ جَابِرٍ اَنَّهُ . وَعَنْ حُذَيْفَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ فِيْ أَصْحَابِيْ |
| او حضرت حذيفه رضي الله عنه د نبي کريم صلى الله عليه وسلم نه روايت کوي چې حضور صلى الله عليه وسلم وفرمائيل زما صحابو کي |
| وَفِيْ رِوَايَةٍ قَالَ فِيْ أُمَّتِيْ اِثْنَا عَشَرَ مُنَافِقًا لَا يَدْخُلُوْنَ الْجَنَّةَ وَلَايَجِدُوْنَ رِيْحَهَا |
| او په يو روايت کې دا دی چې زما په امت کې دولس منافقين دي چې په جنت کې به نه داخليږي بلکې د جنت |
| حَتّٰى يَلِجَ الْجَمَلُ فِيْ سَمِّ الْخِيَاطِ ثَمَانِيَةٌ مِّنْهُمْ |
| بوی به هم ونه مومي، څو پورې چې دستنې په سوري کې اوښ تير نشي او په دې دولسو کې به اته |
| تَكْفِيْهِمُ الدُّبَيْلَةُ سِرَاجٌ مِّنْ نَّارٍ يَّظْهَرُ فِيْ أَكْتَافِهِمْ |
| منافقان خو دبيله ختم کړي يعنې هغوی به هلاک کړي او د هغوی شر او فتنه به ختمه کړي هغه [دبيله] |

| حَتّٰی | تَنْجُمَ | فِيْ | صُدُوْرِهِمْ. | رَوَاهُ | مُسْلِمٌ. | وَسَنَذْكُرُ |
|---|---|---|---|---|---|---|

به داوريوه شعله وي چې دهغوی اوږو کي به پيدا شي اوبيا به سينو يعني خيټو ته ورسيږي [مسلم]

حَدِيْثَ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ لَأُعْطِيَنَّ هٰذِهِ الرَّايَةَ غَدًا فِيْ مَنَاقِبِ عَلِيٍّ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ

او مونږ به د حضرت سهل ابن سعد روايت لَأُعْطِيَنَّ هٰذِهِ الرَّايَةَ د حضرت علي رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ په مناقبو کي اوړ

وَحَدِيْثَ جَابِرٍ مَّنْ يَّصْعَدُ الثَّنِيَّةَ فِيْ جَامِعِ الْمَنَاقِبِ إِنْ شَاءَ اللّٰهُ تَعَالٰى.

حضرت جابر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ روايت من يصدع الثنية جامع المناقب کي نقل کړو انشاء الله تعالى

**توضيح : اثنا عشر منافقا:** د غزوه تبوک نه په واپسۍ کې دولسو منافقينو د شپې حضور ﷺ ته د شهيد کولو لپاره کمين اچولی وو ، دا اشاره هغو ته ده .

**الدبيلة:** دا يوه زهريله دانه ده چې هغې ته سرخ باده او لمبه وايي .

**سراج من نار:** دا د دبيله تفسير او تعارف دی يعنې د اور د شعلې په شان به وي ، په اوږو باندې به ظاهريږي.

**تنجم:** نجم د ظهور په معنی سره دی يعنې سينې ته په تللو سره به ظاهري شي . په هر حال دا يوه طاعوني دانه ده چې يو آفت او هلاکت دی ديته په آنگريزی کې پليگ وايي ، دا پيشنگوئي چې څنگه وشوه همداسې واقعه پيښه شوه او د معجزې ظهور وشو .

## اَلْفَصْلُ الثَّانِيْ

### نبی کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته د نبوت ملاويدو مخکې د نبوت ملاويدو اشارې

| ﴿۴۹﴾عَنْ | أَبِيْ | مُوْسٰى | قَالَ | خَرَجَ | أَبُوْ | طَالِبٍ | إِلَى | الشَّامِ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|

حضرت ابو موسیٰ اشعري رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ بيان کوي يو وار ابو طالب د تجارت په غرض د شام سفر وکړو نو

وَخَرَجَ مَعَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ أَشْيَاخٍ مِّنْ قُرَيْشٍ فَلَمَّا أَشْرَفُوْا

نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هم ورسره لاړو چې هغه وقت د دولسو کالو وو دا تجارتي قافله د شام ملک يو مقام بصری

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| عَلَى | الرَّاهِبِ | هَبَطُوْا | فَحَلُّوْا | رِحَالَهُمْ | فَخَرَجَ | إِلَيْهِمُ | الرَّاهِبُ |

کي دیو راهب سره پاتې شوه او ټولو خپلې کجاوې خلاصې کړې راهب د هغوی ملاقات ته خپله

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَكَانُوْا | قَبْلَ | ذٰلِكَ | يَمُرُّوْنَ | بِهٖ | فَلَا | يَخْرُجُ | إِلَيْهِمْ |

راغی دي نه مخکي چې کله دا خلق اخوا تیریدل نو هغه راهب سره به یې قیام کوه هغه چیرته هم دهغوی

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| قَالَ | فَهُمْ | يَحُلُّوْنَ | رِحَالَهُمْ | فَجَعَلَ | يَتَخَلَّلُهُمْ |

سره ملاقات نه وو کړی راوي وایي دي خلقو خپلي کجاوي خلاصولي او راهب دهغوی په منځ کي

| | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| الرَّاهِبُ | حَتّٰى | جَاءَ | فَأَخَذَ | بِيَدِ | رَسُوْلِ | اللّٰهِ | صَلَّى | اللّٰهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ قَالَ |

څوک تلاش کولو تر دي پورې چې هغه راتلو سره د نبي کریم صلی الله علیه وسلم لاس مبارک او نیولو او هغه ویل

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| هٰذَا | سَيِّدُ | الْعَالَمِيْنَ | هٰذَا | رَسُوْلُ | رَبِّ | الْعَالَمِيْنَ |

دادی د ټولو جهانونو سردار دادی د تمامو جهانونو د پروردګار رسول چې د انسانیت عامه د هدایت

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| يَبْعَثُهُ | اللّٰهُ | رَحْمَةً | لِّلْعَالَمِيْنَ | فقالَ | لَهُ | أَشْيَاخٌ |

د پاره راغلی دا هغه سړی دی چې الله تعالی د تمام جهان د پاره د رحمت رالیږلی دی د قریشو شیخانو چې راهب نه دا

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| مِّنْ | قُرَيْشٍ | مَّا | عِلْمُكَ | فَقَالَ | إِنَّكُمْ |

وا وریدل نو یو شیخ د هغه نه پوښتنه وکړه دا ټولې خبرې د کوم ځای نه پیژنې؟ راهب جواب ورکړو هر کله چې تاسو

| | | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| حِيْنَ | أَشْرَفْتُمْ | مِّنَ | الْعَقَبَةِ | لَمْ | يَبْقَ | شَجَرٌ | وَ | لَا | حَجَرٌ | إِلَّا | خَرَّ سَاجِدًا |

د دوو غرونو د منځ واله لاري نه را وتلو سره مخ ته راغلئ نو هیڅ ونه او کاڼي داسي نه وو چې په سجده نه وي پریوتلي

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وَلَا يَسْجُدَانِ | إِلَّا | لِنَبِيٍّ | وَإِنِّيْ | أَعْرِفُهُ | بِخَاتَمِ | النُّبُوَّةِ |

او ونې او کاڼي د لویې پیغمبر نه علاوه بل چا ته سجده نه کوي او ما دا سړی د هغه مهر نبوت په ذریعه هم پیژندلی دی

أَسْفَلَ مِنْ غُضْرُوْفِ كَتِفِهِ مِثْلُ التُّفَّاحَةِ ثُمَّ رَجَعَ

چې دهغه داوږي دهډوکي لاندې دسيب (مڼې) په شان واقع دی بیاهغه راهب خپل کورته لاړو

فَصَنَعَ لَهُمْ طَعَامًا فَلَمَّا أَتَاهُمْ بِهٖ

اوقافلي والو دپاره يي طعام تيار کړو اوهرکله چې هغه طعام اخستو سره هغوی ته راغی

وَكَانَ هُوَ فِيْ رِعْيَةِ الْإِبِلِ فَقَالَ أَرْسِلُوْا إِلَيْهِ فَأَقْبَلَ

نوحضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اوښان څرول راهب قافلي والو ته وويل داسړی راوغواړئ نو کوم وقت چې

وَعَلَيْهِ غَمَامَةٌ تُظِلُّهُ فَلَمَّا

حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ راتلونود وريځي يوي ټکړي په حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سوری کړی وو بيا چې

دَنَا مِنَ الْقَوْمِ وَجَدَهُمْ قَدْ سَبَقُوْهُ

حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خلقوته را ورسيده نو وي ليدل داسي ځايونو باندې چيرته چې د ونو سوري وو

إِلَى فَيْءِ شَجَرَةٍ فَلَمَّا جَلَسَ

هغه خلقو قبضه کړي وو نو حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يوغيرسايه دارځاي باندي کيناستلو نو سمدستي

مَالَ فَيْءُ الشَّجَرَةِ عَلَيْهِ فَقَالَ:

د ونو دښاخونو په حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سوري وکړو دي ليدو سره هغه راهب قافلي والؤته وويل د

انْظُرُوا إِلَى فَيْءِ الشَّجَرَةِ مَالَ عَلَيْهِ فَقَالَ

وني سايي ته اوګورئ چې دي سړي باندي راکوزشوی دی بياهغه وويل زه تاسو خلقوته د قسم

أَنْشُدُكُمْ اللهَ أَيُّكُمْ وَلِيُّهُ قَالُوْا أَبُوْ طَالِبٍ

درکولو سره درنه پوښتنه کوم چې تاسو کي کوم سړی ددې نوعمر سرپرست دی خلقو وويل ابوطالب

| فَلَمْ | يَزَلْ | يُنَاشِدُهُ | حَتّٰى | رَدَّهُ | أَبُوْ | طَالِبٍ |
|---|---|---|---|---|---|---|

راهب ډير وخته پوري ابو طالب په دي خبره پوهولو او قسم يي ورکولو چي حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مکي ته بيرته

| وَ | بَعَثَ | مَعَهُ | أَبُوْ بَكْرٍ | بِلَالًا |
|---|---|---|---|---|

وليږي آخر ابو طالب حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مکي ته بيرته وليږلو او ابوبکر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ او بلال رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

| وَ | زَوَّدَهُ | الرَّاهِبُ | مِنَ | الْكَعْكِ | وَ | الزَّيْتِ. | رَوَاهُ | التِّرْمِذِيُّ. |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|

سره ملګري کړو او راهب د غنمو روټۍ او د روغن زيتون توښه حضور ته صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ورکړه [ترمذي]

**توضيح**: **اشرفوا**: اشراف ظاهريدلو ته ويل کيږي يعني د قريشو قافله چي کله د بحيرا راهب مخې ته راغله هماله کښته شول او کجاوې يې خلاصې کړلې.

**يتخللهم**: يعني راهب د دې قافلې په مينځ کې ګرځيده او حضور اکرم ﷺ يې تلاش کولو، د حضور ﷺ عمر په دې وخت کې د يارلس کاله وو. **غضروف**: کچې او خام هډوکي ته وايي.

**مثل تفاحة**: دا يو تمثيل دی، يو نظير دی، حقيقي کلام نه دی يعني د خاتم النبوة حجم د وړې مڼې په اندازه وو.

**ابوبكر بلالا**: يعني ابوبکر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ حضرت بلال رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ د حضور ﷺ سره مکې ته واپس روان کړلو. سوال دا دی چي حضرت ابوبکر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ د حضور ﷺ نه دوه کاله کشر دی په دغه وخت کې ابوبکر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ د يوولس کالو وو او حضرت بلال شايد بلکل پيدا شوی هم نه وو نو بيا د ليږلو او ورسره استولو د خبرې څه مطلب دی، د دې جواب دا دی چي ابن حجر رحمه الله فرمايلي چي باقي حديث صحيح دی صرف دغه جمله د کوم راوی له طرف نه مدرج ده چي مقبوله نه ده، د دې حديث او واقعې نه د مستقبل معجزه خو ثابتيدلی شي او د حضور اکرم ﷺ د نبوت طرفته اشاره کيدلی شي مګر فی الحال چي کوم خارق العادة امور پيښ شوي دي دا د ارهاصاتو له قبيلې نه دي چي د هغو ذکر شوی دی، په راتلونکي روايت نمبر ۵۰ کې هم د ارهاص ذکر دی.

﴿۵۰﴾ وَعَنْ عَلِيِّ بْنِ أَبِيْ طَالِبٍ قَالَ كُنْتُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِمَكَّةَ

او حضرت علي رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وايي زه نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره مکه کي وم يو ورځ چي مونږ د مکي اطرافو

فَخَرَجْنَا فِيْ بَعْضِ نَوَاحِيْهَا فَمَا اسْتَقْبَلَهُ جَبَلٌ وَ لَا شَجَرٌ اِلَّا وَهُوَ يَقُوْلُ اَلسَّلَامُ عَلَيْكَ

كي يو طرف ته لاړو نو كوم غر [يعني كاڼي او ونى] چې مخ ته راتلې هغي به ويل السلام عليك

يَا رَسُوْلَ اللهِ . رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَالدَّارِمِيُّ.

يارسول الله [روايت كړې دې ترمذي دارمي]

## دبراق متعلق معجزه

﴿۵۱﴾ وَعَنْ أَنَسٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أُتِيَ بِالْبُرَاقِ

او حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دى شب معراج كي چې دنبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د سورلى دپاره براق راوستل شو

لَيْلَةَ أُسْرِيَ بِهِ مُلْجَمًا مُسْرَجًا فَاسْتَصْعَبَ عَلَيْهِ

چې هغه زين شوى او قيزي لګيدلى وي او حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په هغه سپريده نو هغه شوخي كول شروع كړل

فَقَالَ لَهُ جِبْرَئِيْلُ أَبِمُحَمَّدٍ تَفْعَلُ هٰذَا فَمَا رَكِبَكَ

نو جبرائيل عَلَيْهِ السَّلَامُ هغه براق مخاطب كولو سره وويل ايا د محمد صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره دا شوخي كوي داهغه

أَحَدٌ أَكْرَمَ عَلَى اللهِ مِنْهُ قَالَ فَارْفَضَّ عَرَقًا.

ذات ګرامي دى چې د الله په نظر كي دده نه بهتر هيڅوك په تا سور شوى نه دى دراوي بيان دى براق خوله

رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ هٰذَا حَدِيْثٌ غَرِيْبٌ.

خوله شو دا روايت ترمذي نقل كړى دى او ويلي يې دي چې دا حديث غريب دى.

**توضيح** : (فارفض عرقا) يعنې ددې جملې د اوريدلو نه براق خوله خوله شو ، په دې كې د معجزې ظهور وشو ددينه مخكې خو براق سركشى كوله.

﴿۵۲﴾ . وَعَنْ بُرَيْدَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمَّا انْتَهَيْنَا إِلٰى بَيْتِ الْمُقَدَّسِ

او حضرت بريده رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې رسول كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمائيل دمعراج په شپه چې زه بيت المقدس ته

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| قَالَ | جِبْرَئِيْلُ | بِإِصْبَعِهِ | فَخَرَقَ | بِهِ | الْحَجَرَ |

ورسيدم نو حضرت جبرائيل عَلَيْهِ السَّلَامُ خپلي ګوتي سره اشاره وکړله او دهغه اشاري په ذريعه کاڼي کي

فَشَدَّ بِهِ الْبُرَاقَ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

سوری وشو او بيا ماهغه سوري کړی کاڼي سره براق وتړلو .

**توضيح**: (فخرق) چونکې سوری د خاورو په وجه سره بند شوی وو په دغه وجه یې خلاص کړلو ، کچيرې حضرت جبرائيل عَلَيْهِ السَّلَامُ په اشارې سره سوری خلاص کړی وي نو دا يوه معجزه وه چې ددې تعلق د حضور ﷺ سره کيدلی شي ، علماؤ ليکلي دي دغه ځای کې اوس د پيتلو يوه حلقه ده او دغه ځای په مسجد اقصی کې چپ طرفته واقع دی ، اوس دغه ځای زير زميني دی ، تياره وي رڼايې کولو سره نفل اداء کيدلی شي ، په دې باندې د اسرائيلو کنټرول دی ، د مسجد انتظام د مسلمانانو په لاس کې دی .

## د يو اوښ او هلک متعلق د معجزې ښکاره کيدل

﴿۵۲﴾ وَعَنْ يَعْلَى بْنِ مُرَّةَ الثَّقَفِيِّ قَالَ ثَلَاثَةُ أَشْيَاءَ رَأَيْتُهَا مِنْ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

حضرت يعلي ابن مره ثقفي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي د رسول کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ معجزاتو کي دري څيزونه وليدل هغه داسي

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| بَيْنَا | نَحْنُ | نَسِيْرُ | مَعَهُ | إِذْ | مَرَرْنَا | بِبَعِيْرٍ | يُسْنٰى | عَلَيْهِ |

چې مونږ حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره روان وو چې اچانک د او بو راويستونکي اوښ باندې تير شو هغه اوښ چې

فَلَمَّا رَآهُ الْبَعِيْرُ جَرْجَرَ فَوَضَعَ جِرَانَهُ فَوَقَفَ عَلَيْهِ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ او ليدلو نو بړبړ کولو سره خپل ګردن يې په ځمکه کيخودو نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغه سره ودريدو

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| فَقَالَ | أَيْنَ | صَاحِبُ | هٰذَا | الْبَعِيْرِ | فَجَاءَهُ فَقَالَ |

او بو بنتنه يې وکړه ددي اوښ مالک چيرته دی مالک حاضر شو نو حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ورته وفرمائيل دا اوښ

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| بِعْنِيْهِ | فَقَالَ | بَلْ | نَهَبُهُ | لَكَ | يَا | رَسُوْلَ | اللهِ |

په ماخرڅ کړه هغه عرض وکړو يا رسول الله زه دا اوښ خو خرڅولی نه شم هو ستا سو خدمت کې نذر کوم

وَإِنَّهٗ لِأَهْلِ بَيْتٍ مَا لَهُمْ مَعِيْشَةٌ غَيْرُهٗ قَالَ

هسي دی دا اوښ زما دکور والو دی چې ددي اوښ نه علاوه نورهيڅ د معاش ذريعه نشته حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمائيل

أَمَا إِذْ ذَكَرْتَ هٰذَا مِنْ أَمْرِهٖ فَإِنَّهٗ شَكَا

هر کله چې تا ددي اوښ حقيقت حال بيان کړو نو دې اوښ در حقيقت ما ته شکايت کړی دی چې دده

كَثْرَةَ الْعَمَلِ وَقِلَّةَ الْعَلَفِ فَأَحْسِنُوْا إِلَيْهِ ثُمَّ

نه کار زيات اخستل کيږي او خوراک کم ورکولی شي نو د دې سره ښه سلوک کوه دي نه روسته حضرت يعلي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ

سِرْنَا حَتّٰى نَزَلْنَا مَنْزِلًا فَنَامَ

دويمه معجزه بيان کړه چې بيا مونږ روان شو تر دې پورې چې يو ځاي کې خکته کيدو سره آرام مو کوه

النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَجَاءَتْ شَجَرَةٌ تَشُقُّ الْأَرْضَ حَتّٰى غَشِيَتْهُ

او نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اوده شو هغه وقت ما وليدل چې يوه ونه ځمکه شلولو سره او په نبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ را کوزه شوله

ثُمَّ رَجَعَتْ إِلٰى مَكَانِهَا فَلَمَّا اسْتَيْقَظَ

او بيا خپل ځاي ته بيرته لاړه کوم وقت چې راغله رسول کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بيدار شو نو ما

رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذَكَرْتُ لَهٗ فَقَالَ

حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته د هغه ونې دراتلو او بيرته تلو ذکر وکړو حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ پوره واقعې اوريدو سره وفرمائيل

هِيَ شَجَرَةٌ اِسْتَأْذَنَتْ رَبَّهَا فِيْ أَنْ تُسَلِّمَ عَلٰى

دا هغه ونه ده چې خپل پرودرګار نه يې دې باره کې اجازه غوښتې وه چې هغه رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته سلام

رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَذِنَ لَهَا

وکړي نو الله تعالىٰ هغه ته اجازه ورکړه او هغه زما په سلام کولو راغلي وه حضرت يعلى رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دريمه

قَالَ ثُمَّ سِرْنَا فَمَرَرْنَا بِمَآءٍ فَأَتَتْهُ

معجزې بيانولو سره وايي بيا مونږ مخې ته لاړو اويو داسې ابادۍ ته ورسيدو چې هلته اوبه وې هلته

امْرَأَةٌ بِابْنٍ لَّهَا بِهِ جِنَّةٌ فَأَخَذَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

يوې ښځې خپل زوی اخستو سره رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته راغله په هغه هلک ليونتوب خوروو حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

بِمَنْخِرِهِ ثُمَّ قَالَ أُخْرُجْ إِنِّي مُحَمَّدٌ رَّسُوْلُ اللهِ ثُمَّ

هغه هلک د پوزې نه نيولو سره هغه جن يا شيطان ته يې وويل او زه محمد د الله رسول يم. دې نه روسته

سِرْنَا فَلَمَّا رَجَعْنَا مَرَرْنَا بِذٰلِكَ الْمَاءِ فَسَأَلَهَا

مونږ مخته سفر پوره كړو واپسى كې هغه اوبو واله ابادۍ باندې بيا را تيريدلو نو حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د هغه

عَنِ الصَّبِيِّ فَقَالَتْ وَالَّذِيْ بَعَثَكَ

ښځې نه د هغه د زوی حال معلوم كړو هغې عرض وكړو په هغه ذات مې دې قسم وي چې تاسو يې په

بِالْحَقِّ مَا رَأَيْنَا مِنْهُ رَيْبًا

حق سره راليږلي يې مونږ ستاسو د تلو نه روسته په دې هلك كې هيڅ د پريشانۍ خبره نه ده ليدلې

بَعْدَكَ رَوَاهُ فِيْ شَرْحِ السُّنَّةِ.

او تهول بد اثرات ترې زائل شوي دي دا روايت بغوي شرح السنه كې نقل كړی دی.

**توضيح**: (يسنى) يعنې د هغه اوښ نه د اوبو راوړلو كار اخيستل كيده. (جرجر) د اوښ غرغړو ته ويل كيږي. (حرانه) غاړې ته جران ويل كيږي. (لاهل بيت) په دې سره هغه كس خپل كور والا مراد كړي دي ګويا هغه د نه خرخولو د وجهې طرفته خفيفه اشاره وكړه. چونكې د دغه اوښ متعلق د معجزې ظهور شوی وو په دغه وجه حضور ﷺ مبارك ګڼلو سره د اخيستلو اراده وكړه. (اما ما ذكرت) يعنې تا چې كومه وجه بيان كړې ده هغه معقوله ده، هغه مه خرڅوه ليكن اوښې شكايت وكړو چې كار زيات دی. وابنه كم دي، لهذا كار كم كړه او خوراكه ورزياته كړه.

تشق الارض) يعنې ځمکه يې څيرې کړه او ونه راغله ، سلام يې وکړو بيا لاړله ، علامه بوصيري رحمه الله په قصيده برده کې فرمايلي دي :

جاءت لدعوته الاشجار ساجدة تمشي اليه على ساق بلا قدم

(بمنخره) يعنې د پوزې د کرپندو کي نه نبی کریم ﷺ هغه مجنون ونيولو او جنی ته يې حکم وکړو چې ووځه . (ربيا) يعنې ددې علاج نه بعد مونږ په هغه هلک کې هيڅ د تشويش کومه خبره ونه ليدله . په دې حديث کې اوله معجزه د اوښ متعلق ظاهره شوه ، دويمه د ونې نه او دريمه د مجنون هلک متعلق ظاهره شوه نو ټولې درې معجزې ظاهرې شوې چې د هغو بيان په دې حديث کې راغی .

## د يو بل هلک شيطاني اثر نه د نجات پيدا کولو معجزه

| |
|---|
| ﴿۵۴﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ إِنَّ امْرَأَةً جَاءَتْ بِابْنٍ لَّهَا إِلَى رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| او حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي يوه ښځې خپل زوی آخستو سره د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خدمت کې حاضره |
| فَقَالَتْ يَا رَسُوْلَ اللهِ إِنَّ ابْنِيْ بِهِ جُنُوْنٌ وَإِنَّهُ لَيَأْخُذُهُ عِنْدَ غَدَائِنَا |
| شوه او هغې وويل يا رسول الله زما په دې زوی د جنون اثر دی چې د هغه دوره پرې هره ورځ د غرمې |
| وَعَشَائِنَا فَمَسَحَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| په وقت او د شپې د طعام خوړلو په وقت کې پرې راځي حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دې او ريدو سره د هغه هلک په |
| صَدْرَهُ وَدَعَا فَثَعَّ ثَعَّةً وَخَرَجَ مِنْ جَوْفِهِ |
| سينه خپل لاس مبارک کيخودو او دعايي ورته وکړله نو هغه هلک يو لوی قی وکړو چې د هغه په |
| مِثْلَ الْجِرْوِ الْأَسْوَدِ يَسْعٰى. رَوَاهُ الدَّارِمِيُّ |
| ذريعه د هغه د نس نه داسې هيبتناک شی راووتلو لکه چې منډې وهونکی تور کوترې وي . [دارمي] |

توضيح : (به جنون) د غه هلک باندې د ليونتوب دورې راتللې داسې معلوميدلې لکه چې د ميرگي دورې وي . (غدائنا) د سهار د خوراک په وخت . (عشائنا) د بيگاه د خوراک په وخت يعنې سهار او ماښام د دې ته د جنون دوره راځي يا د سهار د خوراک په وخت او د ماښام د خوراک په وخت دوره شروع

کیږي . (فثع ثعة) ای قاء قیئة هغه هلک قی کړلو ، (الجرو) د سپي بچی ته ویل کیږي یعنې د قی په ذریعه د هغه هلک د خولې نه تور کوتری ووتلو ، همدا د هغه هلک بیماری وه ، په دې واقعه کې د لوېې معجزې ظهور راغلی دی .

## دونې متعلق د معجزې ظهور

﴿۵۵﴾ وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ جَآءَ جِبْرَئِيْلُ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ جَالِسٌ حَزِيْنٌ

اوحضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ډېر غمګين اودزخمونو په وينه کي رنګ شوی ناست وو چې

قَدْ تَخَضَّبَ بِالدَّمِ مِنْ فِعْلِ أَهْلِ مَكَّةَ

اهل مکه ورته رسولی وو دي کي حضرت جبرائیل عَلَيْهِ السَّلَامُ د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خدمت کي حاضر شو او هغه

فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللهِ هَلْ تُحِبُّ أَنْ نُرِيَكَ آيَةً قَالَ نَعَمْ

وویل یارسول الله که تاسو خوښوئی تاسو ته یوه معجزه ښایم حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ورته وفرمائیل ضرور وښایي

فَنَظَرَ إِلَى شَجَرَةٍ مِّنْ وَّرَاءِهِ فَقَالَ ادْعُ

نوجبرائيل عَلَيْهِ السَّلَامُ هغه ونی طرف ته وکتل چې د هغه شاته وه بیا حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته یي وویل دا ونه را وبلئ

بِهَا فَدَعَا بِهَا فَجَاءَتْ فَقَامَتْ بَيْنَ يَدَيْهِ

حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغه ونه راوبلله نو هغه د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مخکي د تابعدارو په شان راتلو سره ودریدله

فَقَالَ مُرْهَا فَلْتَرْجِعْ فَأَمَرَهَا فَرَجَعَتْ فَقَالَ

حضرت جبرائیل عَلَيْهِ السَّلَامُ ورته وویل اوس دي ته بیرته د تلو حکم وکی حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغه ته د واپسی حکم وکړه نو

رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَسْبِيْ حَسْبِيْ. رَوَاهُ الدَّارِمِيُّ.

هغې بیرته لاړله رسول کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دي ليدو سره وفرمائيل ماته کافي ده ماته کافي ده . [دارمي].

**توضیح** : (تخضب) په وينه باندې رنګين کيدلو ته ويل کيږي .

**اهل مكة**: د اهل مکه نه د قريشو کفار مراد دي هغوی حضور ﷺ د جنګ احد په موقع باندې په وينو

رنګ کړی وو ، علامه سیوطی رحمه الله لیکلي دي چې د حضور ﷺ په مخ مبارک باندې د تورې اویا ګذاره کفارو کړي وو مګر الله تعالی د هغه حفاظت وفرمایلو ،ددې واقعې نه بعد حضور ﷺ غمجن ناست وو چې په دغه وخت کې جبرئیل علیه السلام د الله تعالی له طرف نه د تسلی ورکولو لپاره راغی او ویې فرمایل چې دغه ونه ځانته وبله ، هغه ځانته راوبلله نو ونه د هغه طرف ته راغلله بیا یې د واپس تللو ورته وویل نو واپس لاړه ، حضور ﷺ وفرمایل بس بس کافی ده تسلی وشوه ،په دې واقعه کې د حضور ﷺ د معجزې ظهور وشو . علامه بوصیری رحمه الله په قصیده برده کې فرمایې :

جاءت لدعوته الاشجار ساجدة ۔۔۔ تمشي اليه على ساق بلا قدم

## دونې متعلق یوه معجزه

|  |  |  |  |  |  |  |  |  |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۵۶﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ كُنَّا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ سَفَرٍ فَأَقْبَلَ أَعْرَابِيٌّ | | | | | | | | |
| او حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي مونږ د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره د جهاد په یو سفر کې وو چې لښکر ته یو اعرابي | | | | | | | | |
| فَلَمَّا | دَنٰى | قَالَ | لَهٗ | رَسُوْلُ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| راغی کوم وقت چې رسول کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته قریب را ورسیده نو حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ورته وفرمائیل | | | | | | | | |
| تَشْهَدُ | اَنْ | لَّا | اِلٰهَ | اِلَّا | اللهُ | وَحْدَهٗ | لَاشَرِيْكَ | لَهٗ وَأَنَّ |
| ایا ته ددې امر شاهدي کوې چې الله نه سوا بل معبود نشته چې یو دی او د هغه څوک شریک نشته او دا چې | | | | | | | | |
| مُحَمَّدًا | عَبْدُهٗ | وَرَسُوْلُهٗ | قَالَ | وَمَنْ | يَّشْهَدُ | | | |
| محمد صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د هغه بنده او رسول دی .دیهاتي وویل تا سو صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ چې څه ویلي دي ددې شهادت | | | | | | | | |
| عَلٰى | مَا | تَقُوْلُ | قَالَ | هٰذِهِ | السَّلَمَةُ | | | |
| ګواهي ورکونکی بل څوک هم شته حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ورته وفرمائیل دا د کیکر ونه چې مخې ته ولاړه ده شاهدي به وکړي | | | | | | | | |
| فَدَعَاهَا | رَسُوْلُ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ | وَهُوَ | بِشَاطِئِ الْوَادِيْ |
| بیا حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغه کیکر ونه را وبلله هغه وقت حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د یوې وادي په غاړه ایسار شوی وو ـ کیکر ونه | | | | | | | | |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| فَأَقْبَلَتْ | تَخُدُّ | الْأَرْضَ | حَتّٰى | قَامَتْ | بَيْنَ | يَدَيْهِ |

د حضور ﷺ حکم اوريدو سره ځمکه شلولو سره راغله او د حضور ﷺ مخې ته ودريده

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| فَاسْتَشْهَدَهَا | ثَلَاثًا | فَشَهِدَتْ | ثَلَاثًا | أَنَّهُ | كَمَا | قَالَ |

حضور ﷺ هغه ته دري سره ځکه ګواهي ورکړه نو هغې دري ځله ګواهي اداء کړه دي نه روسته

ثُمَّ رَجَعَتْ إِلٰى مَنْبَتِهَا. رَوَاهُ الدَّارِمِيُّ.

هغه و نه خپل ځاي ته بيرته لاړه [دارمي]

**توضيح** : (من يشهد) يعنې د معجزې او خرق عادت په طريقې کوم شی ستا د نبوت ګواهي ورکوي ؟

(هذه السلمة) هغه ونه چې د هغه پاڼو ته قرظ ويل کيږي او د پوستکي د دباغت کار ترينه اخيستل کيږي د همدغې ونې نوم سلمه دی ، ددې ترجمه د جاؤ په ونې سره هم کيدلی شي او د کيکر په ونې سره هم کيدلی شي . (شاطئ) کنارې ته وايي ، (تخد) د ځمکې په څيرلو سره راتللو ته ويل کيږي . (فاستشهد) يعنې حضور ﷺ د هغې نه ګواهی طلب کړله ، ونې درې ځله ګواهی ورکړه او واپس لاړه او د معجزې ظهور وشو .

جاءت لدعوته الاشجار ساجدة    تمشي اليه على ساق بلا قدم

## د کهجورو د خوشې متعلق د معجزې ظهور

﴿۵۷﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ جَاءَ أَعْرَابِيٌّ إِلٰى رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

او حضرت ابن عباس رضي الله عنه وايي يوه ورځ د نبي کريم ﷺ په خدمت کي يو اعرابي راغی

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| قَالَ | بِمَا | أَعْرِفُ | أَنَّكَ | نَبِيٌّ | قَالَ |

او هغه وويل زما د پاره په دي خبره د پوهيدلو ذريعه څه ده چې ته د الله نبي يې حضور ﷺ ورته وفرمائيل په

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| إِنْ | دَعَوْتُ | هٰذَا | الْعِذْقَ | مِنْ | هٰذِهِ | النَّخْلَةِ |

دې ذريعي سره چې زه اوس د خورما وو دې ونې باندي لګيدلي غنچګ را وبلم هغه به دلته راتلو سره

يَشْهَدُ أَنِّيْ رَسُوْلُ اللهِ فَدَعَاهُ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

شاهدي وكړي چې زه دالله نبي اورسول يم نو حضور ﷺ هغه غنچک دخورما وود ونو نه راوبللو هغه

فَجَعَلَ يَنْزِلُ مِنَ النَّخْلَةِ حَتّٰى سَقَطَ

په جدا كيدو سره راكوزشو اودنبي كريم ﷺ قريب په ځمكه راپريوتو اودحضور ﷺ

إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ قَالَ ارْجِعْ فَعَادَ

دنبوت اورسالت شاهدي يې وركړله بيا حضور ﷺ ورته حكم وكړو چې بيرته لاړ شه نو هغه غنچک بيرته

فَأَسْلَمَ الْأَعْرَابِيُّ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَصَحَّحَهُ.

لاړو نو هغه ديهاتي (باندہ) چې فوراً اسلام قبول كړو. دا روايت ترمذي نقل كړې اوصحيح يې ګرځولې دی

**توضيح** : (بما اعرف) يعنې ستا د كومې معجزې په بنياد باندې به زه وپيژنم چې ته د الله تعالى ن

يې. (العذق) د خرما خوشې ته عذق ويل كيږي.

## دشرمخ دويلو معجزه

﴿۵۸﴾ وَعَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ جَاءَ ذِئْبٌ إِلٰى رَاعِي غَ

او حضرت ابو هريره رضي الله عنه وايي يو شرمخ دبزو په يوه رمه كي چې دهغه شپانه هم موجود وو راننو

فَأَخَذَ مِنْهَا شَاةً فَطَلَبَهُ الرَّاعِيْ حَتّٰى انْتَزَعَهَا

اوهغه نه يې يوه بزه وتښتوله شپانه دهغه پسې شو اوآخر هغه بزه يې د شرمخ نه خلاصه ك

قَالَ فَصَعِدَ الذِّئْبُ عَلٰى تَلٍّ فَأَقْعٰى وَا

حضرت ابو هريره رضي الله عنه بيان دی بيا هغه شرمخ يوې غونډۍ ته وختلو او دواړه پښې يې ودرولې خپل

وَقَالَ عَمِدْتُ إِلٰى رِزْقٍ رَزَقَنِيْهِ اللهُ

يې ددواړو پښو په منځ كي داخله كړه او وويل ما خپل هغه رزق اخستی چې الله تعالى ما ته ع

ثُمَّ انْتَزَعْتَهُ مِنِّي فَقَالَ الرَّجُلُ تَاللهِ إِنْ رَأَيْتُ

دى ليكن تا زما رزق زما نه په زور واخست شپانه شرمخ مخاطب كولو سره ورته و ويل قسم په الله

كَالْيَوْمِ ذِئْبٌ يَتَكَلَّمُ فَقَالَ الذِّئْبُ

څرنګه عجيبه واقعه چې مانن ليدلي ده داسي مې هيڅ كله نه ده ليدلي شرمخ ورته و ويل دي نه زياته

أَعْجَبُ مِنْ هٰذَا رَجُلٌ فِي النَّخَلَاتِ بَيْنَ الْحَرَّتَيْنِ

عجيبه واقعه خود هغه سړي حضرت محمد صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حال دى چې دخورماوود و نو شاته دده دوه خوړونو په

يُخْبِرُكُمْ بِمَا مَضٰى وَمَا هُوَ كَائِنٌ بَعْدَكُمْ

منځ كي هغه سړى به تا سو ته هغه خبري وښايي چې تا سو نه مخكي تيري شوي وي او هغه خبري به

قَالَ فَكَانَ الرَّجُلُ يَهُوْدِيًّا

درته وښايي چې ستاسو نه روسته واقع كيدونكي دي. حضرت ابو هريره وايي هغه سړى چې يو يهودي وو

فَجَاءَ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَخْبَرَهُ

دشرمخ خبري په اوريدو سره د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خدمت كي حاضر شو او د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مخكي د شرمخ

وَأَسْلَمَ فَصَدَّقَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ قَالَ

واقعه بيانولو سره مسلمان شو. نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د هغه بيان كرده قصه درست تسليم كړله بيا نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّهَا أَمَارَاتٌ بَيْنَ يَدَيِ السَّاعَةِ

وفرمائيل داسي خبري د قيامت نه مخكي هغه وقت عنقريب دى چې سړى به د خپل كور نه بهر وځي

قَدْ أَوْشَكَ الرَّجُلُ أَنْ يَخْرُجَ فَلَا يَرْجِعَ حَتّٰى يُحَدِّثَهُ

او هر كله چې بيرته كور ته راشي نو د هغه پيزار او د هغه كوړه وغيره به هغه ته هغه تمامي خبري ښايي

نَعْلَاهُ وَسَوْطُهُ بِمَا أَحْدَثَ أَهْلُهُ بَعْدَهُ. رَوَاهُ فِيْ شَرْحِ السُّنَّةِ.

چې دهغه كوروالؤ دهغه په عدم موجود ګۍ كي كړي وي. [شرح السنه]

**توضيح**: (**راعي غنم**) دا شپونكى يهودي وو. (**تل**) دا مفرد دى ددې جمع تلول ده غونډۍ او اوچت ځاى ته ويل كيږي. (**فأقعى**) سپي وغيره درنده چې كله په خپل دبر باندې كښيني هغه ته اقعاء وايي په لمانځه كې دغسې كښيناستل منع دي.

**واستثفر**: د سپي وغيره درندګانو عادت دى چې كله په دبر باندې كښيني نو لكۍ د لاندې نه دپښو په مينځ كې مخې ته اوباسي همدا استثفار دى.

**فقال الذئب**: د ليوه په دغه خبره كې د حضور ﷺ معجزه ظاهره شوه چې د حضور ﷺ په باره كې ليوه د نبي كيدلو ګواهي وركوي. (**النخلات**) د مدينې منورې نخلستان مرادى دى.

**الحرتين**: د دوو شګلنو ځمكو اطرافو ته اشاره ده **اى ارض ذات حجارة سود**.

**بما مضى**: **اى بما سبق من خير الاولين من قبلكم** د قرآن كريم د واقعاتو او قصصو په ذريعه حضور ﷺ د مخكنيو قومونو احوال د خپل امت مخ ته كيښودل.

**بما هو كائن**: يعنې د راتلونكو خلكو احوال او د آخرت احوال يې د قرآن او معجزاتو په ذريعه بيان وښودل، چې كله د وحې په ذريعه حضور ﷺ وښودل نو هغه علم غيب پاتې نشو. يو طرف ته قرآن او علوم دي چې په هغه كې د مخلوق نه د علم غيب نفي شوې ده، دويم طرف ته د ليوه مجمله خبره ده اوس دي بريلوى حضرات انتخاب وكړي چې هغوى د ليوه مجمله خبره اخلي او كه د قرآن او حديث مفصله خبره اخلي.

## دطعام د كاسې متعلق د معجزې ښكاره كيدل

﴿۵۹﴾ وَعَنْ أَبِي الْعَلَاءِ عَنْ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدُبٍ قَالَ كُنَّا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

او حضرت ابو العلاء د سمره ابن جندب رضي الله عنه نه روايت كوى هغه بيان وكړو مونږ تولو نبي كريم صلى الله عليه وسلم

نَتَدَاوَلُ مِنْ قَصْعَةٍ مِنْ غُدْوَةٍ حَتَّى اللَّيْلِ

سره يوې لويې كاسې نه لس لس سړي وار په وار دسهار نه ترماښامه پورې داسې چې لس سړي به

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| يَقُوْمُ | عَشَرَةٌ | وَيَقْعُدُ | عَشَرَةٌ | قُلْنَا |

طعام خوړلو نه روسته پاسيدل اودهغوی په ځاي به نور لس سړي راتلو سره کينا ستل مونږ د

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فَمَا | كَانَتْ | تُمَدُّ | قَالَ | مِنْ | أَيِّ | شَيْءٍ | تَعْجَبُ |

سمره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه پوښتنه وکړه آخر څه شی وو چې د هغه په ذريعه مدد کيده حضرت سمره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ جواب ورکړو

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| مَا | كَانَتْ | تُمَدُّ | إِلَّا | مِنْ | هٰهُنَا |

ستا دپاره دي کي د تعجب څه خبره ده ؟ هغه پياله کي د طعام ډيريدل د هغه ځاي نه کيده دې ويلو سره

وَأَشَارَ اوده إِلَى السَّمَاءِ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَالدَّارِمِيُّ.

هغه اسمان طرف ته اشاره وکړله . [ترمذي دارمي]

**توضيح**: نتداول: د پتېولو او گرځولو په معنی سره دی ، ليکن دلته مطلب دا دی چې مونږ به د سهار نه تر ماښامه پورې د يوې کاسې شاوخوا جمع کيدلو ، لس کسانو به چې وخوړه پورته به شول نو لس کسان به نور راتلل ، دا تداول دی ، په دې باندې يو تابعی سوال وکړو چې دا اضافه خوراک به د کومه راتللو .

تمد: د همدې مدد او اضافه په معنی سره دی ، صحابو جواب ورکړو چې د آسمان نه راتللو ځکه چې د وفي السماء رزقكم وعده ده ، راجحه دا ده چې دغه سوال او جواب د صحابی او تابعی په مينځ کې راغلی ، چونکه دا واقعه د حضور اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په عهد کې وه په دغه وجه دا معجزه وګرځيده چې په دې کې د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د معجزې ظهور وشو .

## د جنګ بدر متعلق د معجزې ظهور

﴿۶۰﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَرَجَ يَوْمَ بَدْرٍ فِي ثَلَاثِمِائَةٍ

اوحضرت عبدالله ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د جنګ بدر په ورځ دري سوه

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَخَمْسَةَ | عَشَرَ | قَالَ | اَللّٰهُمَّ | إِنَّهُمْ | حُفَاةٌ |

پنځلس سړو آخستو سره ووتنو ... عايي وکړله اى الله هغه چې ستا په لار کي وتلي دي لوڅي پښي دي

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| فَاحْمِلْهُمْ | إِنَّهُمْ | عُرَاةٌ | فَاكْسُهُمْ | اَللّٰهُمَّ | إِنَّهُمْ | جِيَاعٌ |
| دوي ته سورلي ورکړه ای الله دوی بربنډ دي دوی ته لباس ورکړه ای الله دوی او وږي دي دوی ماړه | | | | | | |
| فَأَشْبِعْهُمْ | فَفَتَحَ | اللهُ | لَهُ | فَانْقَلَبُوْا | | |
| کړي نو الله تعالی حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د مکي د مشرکینو مقابله کي فتح یاب او د اسلام مجاهدین داسي حالت | | | | | | |
| وَمَا | مِنْهُمْ | رَجُلٌ | إِلَّا | وَقَدْ | رَجَعَ | بِجَمَلٍ أَوْ جَمَلَيْنِ |
| کي راواپس شول چي هغوی کي هیڅ سړی داسي نه وو چي هغه سره یو یا دوه اوښان نه وي او د ټولو | | | | | | |
| وَاكْتَسَوْا وَشَبِعُوْا. رَوَاهُ أَبُوْ دَاوُدَ. | | | | | | |
| لباس هم نصیب شو او ټول په خیټه هم ماړه شول. | | | | | | |

**توضیح**: (ثلاثمأة و خمسة عشر) په جنګ بدر کي ټول تعداد ۳۱۳ وو مګر ممکنه ده چي د خادمانو په شمیرلو سره دا تعداد ۳۱۵ شوی وي.

**حفاة**: د حافي جمع ده لوڅي پښي مراد دي. (**عراة**) لوڅ بدن، (**جیاع**) وږي خیټي، **عراة** د عاري او جیاع د جائع جمع ده، کومه دعاء چي غوښتلې شوې وه هغه قبوله شوه چي په دې کې د معجزې ظهور وشو.

## په یوې پیشنګوئی سره د معجزې ښکاره کیدل

| | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۶۱﴾ وَ | عَنَ | ابْنِ | مَسْعُوْدٍ | عَنْ | رَسُوْلِ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَ سَلَّمَ |
| او حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د نبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه روایت کوي چي نبی عَلَيْهِ السَّلَام آینده زمانه کي د واقع کیدونکو واقعاتو | | | | | | | | | | |
| قَالَ | إِنَّكُمْ | مَنْصُوْرُوْنَ | | | | | | | | |
| پیش خبري او د هغه واقعاتو په نتیجه کي د حاصلیدونکو فائدو د بشارت په توګه صحابه رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ مخاطب کولو سره وفرمائیل | | | | | | | | | | |
| وَ | مُصِيْبُوْنَ | وَ | مَفْتُوْحٌ | لَكُمْ | | | | | | |
| یقیناً تاسو ته به مدد او نصرت درکړی شي تاسو ته به د مال غنیمت صورت کي ډیر څه حاصل شي او ستاسو په لاس به ډیري لوې | | | | | | | | | | |

| مِنْكُمْ | ذٰلِكَ | أَدْرَكَ | فَمَنْ |
|---|---|---|---|

علاقې او د مال او دولت نه ډک ښارونه فتح شي نو تاسو کې چې کوم سړی دې څيزونو سره سرفرازشي هغه ته پکار دي

فَلْيَتَّقِ اللّٰهَ وَلْيَأْمُرْ بِالْمَعْرُوْفِ وَلْيَنْهَ عَنِ الْمُنْكَرِ. رَوَاهُ أَبُوْ دَاوُدَ.

چې هغه د الله تعالى نه ويره کوي خلقو ته د نيکۍ هدايت او تلقين کوي او د خرابو خبرو نه يې د بچ کولو کوشش کوي.

**توضيح** :منصورون: يعنې تاسو ته به فتوحات حاصل شي.

مصيبون: د رسيدلو او حاصلولو په معنى سره ده يعنې مالونه او غنيمتونه به حاصل شي لهذا تاسو خدای مه هيره وئ او امر بالمعروف يعنې جهاد کوئ، جهاد مه پرېږدئ. د امر بالمعروف تفسير شاه عبد القادر رحمه الله او فخر الدين رازي رحمه الله او علامه جصاص رحمه الله په خپلو تفسيرونو کې په جهاد سره کړی دی. يعنې د فتوحاتو حاصليدو نه بعد تاسې امر بالمعروف مه هيره وئ ځکه چې د فتوحاتو منشاء معروف عام کول او منكر ختمول دي، شاعر وايي:

جنگ شاہاں فتنہ وغارت گری است ... جنگ مؤمن سنت پیغمبری است

## د زهرونه ککړې غوښې متعلق د معجزې ظهور

﴿٦٢﴾ وَعَنْ جَابِرٍ أَنَّ يَهُوْدِيَّةً مِّنْ أَهْلِ خَيْبَرَ سَمَّتْ شَاةً

او حضرت جابر رضي الله عنه نه روايت دی اهل خيبر کې يوې يهودي ښځې پخه کړې بزه (چيلۍ) کې زهر

مَصْلِيَّةً ثُمَّ أَهْدَتْهَا لِرَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

يوځای کړل او بيا هغه يې د رسول کريم صلى الله عليه وسلم په خدمت کې بطور هديه پيش کړه رسول کريم صلى الله عليه وسلم د هغه

فَأَخَذَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الذِّرَاعَ فَأَكَلَ مِنْهَا وَأَكَلَ رَهْطٌ

بزې (چيلۍ) نه يو ورون اخستو سره خپله يې هم خوړل شروع کړل او حضور صلى الله عليه وسلم سره د صحابه رضي الله عنهم يو

مِّنْ أَصْحَابِهٖ مَعَهٗ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِرْفَعُوْا

جماعت هم خوړل شروع کړل بيا يو دم رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمائيل لاس ونيسئ دې نه هيڅ مه خورئ دي

| أَيْدِيَكُمْ | وَأَرْسَلَ | إِلَى | الْيَهُوْدِيَّةِ | فَدَعَاهَا | فَقَالَ |
|---|---|---|---|---|---|

نه پس حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د هغه يهودنۍ ښځې را بللو د پاره يو سړى وليږه هغه راغله نو حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ورته وفرمائيل

| لَهَا | أَسَمَمْتِ | هٰذِهِ | الشَّاةَ | فَقَالَتْ | مَنْ | أَخْبَرَكَ |
|---|---|---|---|---|---|---|

ايا تا دي چيلۍ کې زهر يو ځاي کړي دي ښځې وويل تا سو ته څرنګه معلومه شوه ستاسو الله تعالى درته خودلي

| قَالَ | أَخْبَرَتْنِيْ | هٰذِهِ | فِيْ | يَدِيْ | لِلذِّرَاعِ |
|---|---|---|---|---|---|

دي يا مخلوق کې يو چا؟ حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ورته وفرمائيل ماته دي راخو دلي دي چې زما په لاس

| قَالَتْ | نَعَمْ | قُلْتُ | إِنْ | كَانَ |
|---|---|---|---|---|

کې دى د ورون طرف ته اشاره وکړه بيا هغه ښځې وکړه هو ما دا بزه (چيلۍ) زهر الوده کړې وه او ما سوچ

| نَبِيًّا | فَلَنْ | تَضُرَّهُ | وَإِنْ | لَّمْ | يَكُنْ | نَبِيًّا |
|---|---|---|---|---|---|---|

کړى وو که محمد صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نبي وي نو زهر آلوده بزه ورته هيڅ نقصان نشي رسولى او که نبي نه وي نو د زهرو

| اسْتَرَحْنَا | مِنْهُ | فَعَفَا | عَنْهَا | رَسُوْلُ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|

اثر سره به ختم شي او مونږ ته به تري نجات او راحت حاصل شي نو رسول کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغه ښځه معاف کړله

| وَلَمْ | يُعَاقِبْهَا | وَتُوُفِّيَ | أَصْحَابُهُ | الَّذِيْنَ | أَكَلُوْا | مِنَ | الشَّاةِ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|

او هيڅ سزا يې ورنه کړله او صحابو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ کې چې چا د هغه بزې غوښه خوړلې وه هغوى کې يو صحابي

| وَاحْتَجَمَ | رَسُوْلُ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ | عَلَى |
|---|---|---|---|---|---|---|---|

حضرت بشر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ شهيد شو او رسول کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هم د هغه زهر آلود بزې (چيلۍ) غوښه خوړلې وه د هغه

| كَاهِلِهِ | مِنْ | أَجْلِ | الَّذِيْ | أَكَلَ | مِنَ | الشَّاةِ | حَجَمَهُ | أَبُوْهِنْدٍ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|

د اثر اتو دفع کولو د پاره دا وږو په منځ کې ويني ويستلو د پاره ښکر ولګوه او ابو هند رَضِيَ اللهُ عَنْهُ چې د هغه

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| بِالْقَرْنِ | وَالشَّفْرَةِ | وَهُوَ | مَوْلَى | لِبَنِي | بَيَاضَةَ مِنَ |

اصل نوم يسار حجام وو او ديو انصاري قبيلي بنو بياضه ازاد كرده غلام وو دښكر او پلني چاړه په

الْأَنْصَارِ. رَوَاهُ أَبُوْ دَاوُدَ وَالدَّارِمِيُّ.

ذريعه وينه ويستله [ابوداؤد دارمي]

**توضيح** : (ان يهودية) ددې ښځې نوم زينب بنت حارث وو، دا د مشهور پهلوان مرحب خور وه، دا د خيبر د يوه يهودي ښځه وه. (**مصلية**) په اور باندې كباب كړى شوې غوښې ته ويل كيږي. (**فعفا عنها**) حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دغه ښځه معاف كړله، اوس سوال دا دى چې په بعضو رواياتو كې ددغې ښځې د قتل ذكر دى دا خو تعارض دى! نو ددې جواب دا دى چې اول حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دغه ښځه معاف كړله ليكن چې كله بشر بن علاء رضي الله عنه ددې زهرو د خوړلو نه شهيد شو نو بيا قصاصا حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دغه ښځه قتل كړله. (**احتجم**) يعنې د زهرو د اثر ختمولو لپاره حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د اوږو په مينځ كې وينه وويستله. (**القرن**) د وينو ويستلو لپاره چې كومه آله استعماليږي هغه ته القرن ويل شوى دى. (**الشفرة**) هغه چاړه چې د وينې ويستلو لپاره په زخمي كولو كې استعمال شوې وي. (**ابوهند**) د بنو بياضه د خاندان آزاد كرده غلام وو.

## غزوه حنين كې دفتح دپيشن گويي ذكر

﴿۶۳﴾ وَعَنْ سَهْلِ ابْنِ حَنْظَلِيَّةَ أَنَّهُمْ سَارُوْا مَعَ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ حُنَيْنٍ

او حضرت سهل ابن حنظليه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دى چې دغزوه حنين په موقع حنين مقام ته تلو دپاره صحابه كرام رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| فَأَطْنَبُوا | السَّيْرَ | حَتَّى | كَانَتْ | عَشِيَّةً |

رسول كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره روان شول نو دسفر سلسله اوږده شوه تلو تر دې پورې چې شپه راغله

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| فَجَاءَ | فَارِسٌ | فَقَالَ | يَا | رَسُوْلَ | اللهِ | إِنِّي |

نو يو سور سړى د رسول كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خدمت اقدس كې حاضر شو او عرض يې وكړو يا رسول الله زه په

طَلَعْتُ عَلٰى جَبَلٍ كَذَا وَكَذَا فَإِذَا أَنَا بِهَوَازِنَ

وداسي اوداسي غراو ختلم او دد ښمن جائزه مي اخستله چې اچانک ماوليدل چې هوازن چې مشهوره

عَلٰى بَكْرَةِ أَبِيْهِمْ بِظُعُنِهِمْ وَنَعَمِهِمْ

وډيره لويه قبيله ده د خپل پلار په اوښ راغلي دي هغوی سره د هغوی ښځي هم دي او د هغوی څاروي

إِجْتَمَعُوْا إِلٰى حُنَيْنٍ فَتَبَسَّمَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

هم دي او هغوی ټول د حنين په مقام جمع شوي دي حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مسکی شو او ويې فرمائيل انشاء الله

وَقَالَ تِلْكَ غَنِيْمَةُ الْمُسْلِمِيْنَ غَدًا إِنْ شَاءَ اللّٰهُ ثُمَّ

دا ټول څيزونه به صباله د مسلمانانو مال د غنيمت وي ددي نه روسته حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تمام اهل لښکر

قَالَ مَنْ يَّحْرُسُنَا اللَّيْلَةَ قَالَ أَنَسُ بْنُ أَبِيْ مَرْثَدِ نِ الْغَنَوِيِّ

مخاطب کولو سره وفرمائيل نن شپه زمونږ دنګهباني ذمه څوک اخلي يو صحابي حضرت انس ابن ابي مرثد وويل

أَنَا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ قَالَ ارْكَبْ

دا ذمه واري زه اخلم حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دي اوريدو سره وفرمائيل ښه ده بياته سور شه انس رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ

فَرَكِبَ فَرَسًا لَّهُ فَقَالَ إِسْتَقْبِلْ هٰذَا الشِّعْبَ حَتّٰى تَكُوْنَ فِيْ

چې خپل آس باندې سور شو نو حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ورته فرمائيل ته دي غريزه لار باندې تللو سره د هغه غر

أَعْلَاهُ فَلَمَّا أَصْبَحْنَا خَرَجَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلٰى مُصَلَّاهُ

څوکي ته ورسيږه او هلته په دښمن نظر ساته بيا چې سهار شو نو رسول کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د مونځ کولو ځاي ته

فَرَكَعَ رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ قَالَ هَلْ حَسِسْتُمْ فَارِسَكُمْ

تشريف راوړلو حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د سهار سنت دوه رکعاته وکړل او وي فرمائيل ايا تاسو د خپل سور څه کش

فَقَالَ رَجُلٌ يَارَسُوْلَ اللهِ مَاحَسَسْنَا

کړپ اوریدلی دی یو سړی عرض وکړو یارسول الله په مونږ کي هیڅ اد هغه کش کړپ نه دی اوریدلی

فَثُوِّبَ بِالصَّلَاةِ فَجَعَلَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ يُصَلِّيْ

پدي کي دسهار د مونځ تکبیر وشو د رسول کریم ﷺ دمانځه په دوران کي به یي هم دستر کو په کوټو نو

يَلْتَفِتُ إِلَى الشِّعْبِ حَتَّى إِذَا قَضَى الصَّلَاةَ قَالَ أَبْشِرُوْا

ئي هغه غريزي لاري طرف ته کتل تر دي پوري چي دمانځه نه فارغ شو نو وي فرمائیل خوشحاله شئ

فَقَدْ جَاءَكُمْ فَارِسُكُمْ فَجَعَلْنَا نَنْظُرُ إِلَى خِلَالِ الشَّجَرِ فِي

ستاسو هغه سوار راروان دی چي ستا سو نګهباني یي کوله نو مونږ خلقو هغه د غريزي لاري په ونو کي

الشِّعْبِ فَإِذَا هُوَ قَدْ جَاءَ حَتَّى وَقَفَ عَلَى رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

کتل شروع کړل تر دي پوري چي هغه سور راتلونکي ولیدل شو او بیا هغه راتلو سره د رسول کریم ﷺ

فَقَالَ إِنِّي انْطَلَقْتُ حَتَّى كُنْتُ فِي أَعْلَى هٰذَا الشِّعْبِ

مخ ته او دریدلو او بیان یي وکړو چي زه دلته د روانیدو سره په غریزي لار تلو سره د غر هغه ځوکي ته

حَيْثُ أَمَرَنِيْ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمَّا أَصْبَحْتُ طَلَعْتُ الشِّعْبَيْنِ

ورسیدم چیرته دتلو چي راته رسول کریم ﷺ حکم کړی وو بیا چي سهار سو نو زه د غر په دواړو لارو

كِلَيْهِمَا فَلَمْ أَرَ أَحَدًا فَقَالَ لَهُ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هَلْ

او د هغه خوا او شا کښو ونو کي راغلم لیکن ما هلته هیڅوک ونه لیدل رسول کریم ﷺ انس بن مرثد رضي الله عنه

نَزَلْتَ اللَّيْلَةَ قَالَ لَا إِلَّا مُصَلِّيًا أَوْ قَاضِيَ حَاجَةٍ

ندیو بښتنه وکړه ایا ته د شپي د آس نه خکته شوی یي؟ هغه وویل صرف مانځه د پاره یا تقاضي د پاره

قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ فَلَا عَلَيْكَ

خکته شوی وو م ګني پوره شپه دا س په شانا ست نګراني مي کوله حضور ﷺ وفرمائيل پیاخودي کي

أَلَّا تَعْمَلَ بَعْدَهَا. رَوَاهُ أَبُوْ دَاوُدَ.

هيڅ حرج نشته چې دي شپې نه روسته هيڅ عمل ونه کړې [ابوداؤد]

**توضيح**: **على بكرة ابيهم**: على په معنى د مع سره دى اى **مع بكرة ابيهم** ،دا د عربو محاوره ده د ټولو خلک و د راتللو لپاره يې استعمالوي ، ملاعلى القارى رحمه الله فرمايې : **كلمة للعرب يريدون بها الكثرة. وقال القاضى جاء القوم على بكرة ابيهم اى جاؤا بأجمعهم** ، بكرة په اصل کې ځوانې اوښې ته وايي ، دد ې ضرب المثل سبب او شان ورود داسې دی چې د يو ځای نه عرب ووتل ، د هغوی يو فرد هم وروسته پاتې نشو تر دې پورې چې د هغوی د پلار يوه اوښه وه هغه يې هم د ځان سره وويستله نو نورو عربو وويل چې **جاءوا على بكرة ابيهم** يعنې د خپل پلار اوښه يې هم د ځان سره راوستله.

**ظعنهم**: ښځې مراد دي.

**نعمهم**: چارپايان مراد دي ، دا د افغان کوچيانو د ټرک پشان دي چې په هغه کې هر څه وړي حتى چې بيکاره سپی هم پکې وړي.

**الاتعمل بعدها**: يعنې د نن نه بعد که ته د نوافلو نه هيڅ عمل هم ونه کړې ستا هيڅ نقصان نشته ، دد ې عمل نه فرائض مراد نه دي ، نوافل مراد دي . حضور ﷺ د دغه صحابى د راتګ نه مخکې اطلاع ورکړه په دې کې د معجزې ظهور وو .

## خورماوو کې د برکت معجزه

﴿۶۴﴾ وَعَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ أَتَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِتَمَرَاتٍ

او حضرت ابوهريره رضي الله عنه وايي يوه ورځ زه رسول کريم ﷺ ته يو څو خورماوو اخستو سره ورغلم

فَقُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ أُدْعُ اللّٰهَ فِيْهِنَّ بِالْبَرَكَةِ

او عرض مي وکړو يارسول الله ﷺ ته په دي خورماوو کي د برکت دعا کړه : حضور ﷺ

نَفَضَتْهُنَّ ثُمَّ دَعَالِيْ فِيْهِنَّ بِالْبَرَكَةِ

هغه خورما (کجورې) خپل لاس مبارک کې واخستې یا دا چې په هغه یې خپل لاس مبارک کېخودو او بیا یې زما دپاره هغه

قَالَ خُذْهُنَّ فَاجْعَلْهُنَّ فِيْ مِزْوَدِكَ

خورماوو کې دبرکت دعا وفرمایله او دې نه روسته یې وفرمائیل واخله او دا خورما خپل توښه دان

كُلَّمَا أَرَدْتَّ أَنْ تَأْخُذَ مِنْهُ شَيْئًا فَأَدْخِلْ فِيْهِ يَدَكَ

کې کښېږده هرکله چې ته د دې نه څه اخستل غواړې نو توښه دان کې خپل لاس ننباسه او را اخلې یې

فَخُذْهُ وَلَا تَنْثُرْهُ نَثْرًا فَقَدْ حَمَلْتُ مِنْ ذٰلِكَ التَّمْرِ كَذَا وَكَذَا

او دا توښه دان هیڅ کله مه خلاصوه حضرت ابو هریره رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وائي چې ما دومره دومره وسقه خورماوې

مِنْ وَسْقٍ فِيْ سَبِيْلِ اللهِ فَكُنَّا نَأْكُلُ مِنْهُ وَنُطْعِمُ وَكَانَ لَا

خومې د الله تعالی په لار کې خرچ کړې او مونږ به د هغه خورماوو نه خوړلې هغه توښه دان به زما د ملا

يُفَارِقُ حَقْوِيْ حَتّٰى كَانَ يَوْمُ قَتْلِ عُثْمَانَ

سره تړلې وو هغه مې هیڅ وخت نه جدا کوه تر دې پورې چې د حضرت عثمان رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ د شهید کېدو په

فَإِنَّهُ انْقَطَعَ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

ورځ هغه توښه دان زما د ملا نه خلاصیدو سره وغورځیده او ضائع شو .

**توضیح**: (ولاتنثره) یعنې دا مه خوروه ، کڅوړه مه خالي کوه ، د معجزې ظهور دی چې د غیب نظام دې پټ یې ساتل پکار دي .

**حقوي**: نرۍ ملا ته حقوه وایي . معلومه شوه چې ډیره وړه کڅوړه وه او په دې کې تقریبًا ۲۱ دانې کجورې وې .

**یوم قتل عثمان**: یعنې چې په کومه ورځ حضرت عثمان رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ شهید شو په هماغه ورځ دغه کڅوړه خپله کټ شوه او ورکه شوه ، په خپله حضرت ابو هریره رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ په طور د افسوس به دا شعر ویلو :

للناس همٌّ ولی همّان　　　فقد جرابی و موت شیخ عثمان

د حضرت عثمان رضي الله عنه د شهادت په وجه ډیر برکتونه د امت نه پورته شول، چې د هغو برکتونو نه یو د غه تیلی و ه.

## الفصل الثالث

## دغار ثور متعلق د معجزې ښکاره کیدل

﴿٦٥﴾ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ تَشَاوَرَتْ قُرَيْشٌ لَيْلَةً بِمَكَّةَ

حضرت ابن عباس رضي الله عنه وایي دمکي قریش یو وار د شپې وقت دارالندوه کي خپل مجلس مشاورت

فَقَالَ بَعْضُهُمْ إِذَا أَصْبَحَ فَأَثْبِتُوْهُ بِالْوَثَاقِ يُرِيْدُوْنَ

منعقد کړو بعضو دا مشوره ورکړه چې سهار کیدو سره ددې سړي لاسونه وتړي دې سړي نه دهغوی

النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَقَالَ بَعْضُهُمْ بَلِ اقْتُلُوْهُ

مراد دنبي کریم صلى الله عليه وسلم ذات گرامي وو بعضو دا رایي ورکړه چې نه بلکي قتل یي کړئ او بعضو په حقارت

وَقَالَ بَعْضُهُمْ بَلْ أَخْرِجُوْهُ فَأَطْلَعَ اللهُ

سره دا وویل چې دا د خپل سر زمین نه ویستلو سره بهر کړئ الله تعالی د حضرت جبرائیل علیه السلام په

نَبِيَّهُ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلٰى ذٰلِكَ فَبَاتَ عَلِيٌّ عَلٰى فِرَاشِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

ذریعه خپل نبي صلى الله عليه وسلم نه اگاه کړو نو په دغه شپه حضرت علي رضي الله عنه د نبي کریم صلى الله عليه وسلم په بستره او ده شو

تِلْكَ اللَّيْلَةَ وَخَرَجَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتّٰى لَحِقَ بِالْغَارِ وَبَاتَ

نبي صلى الله عليه وسلم دمکي نه ووتلو او غار ثور ته ورسیدل. علی رضي الله عنه او ده شوی وو او دمکي قریشو ټوله شپه په

الْمُشْرِكُوْنَ يَحْرُسُوْنَ عَلِيًّا يَحْسَبُوْنَهُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

دي خیال چې دلته نبي صلى الله عليه وسلم او ده دی د کور نگرانی کوله تر دي پورې چې سهار شو نو دمکي قریشو

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| فَلَمَّا | أَصْبَحُوْا | ثَارُوْا | عَلَيْهِ | فَلَمَّا | رَأَوْا | عَلِيًّا |
| حمله پرې وكړله خو هغوى چې هلته د حضور ﷺ په ځاي حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ اوليدلو او | | | | | | |
| رَدَّ | اللهُ | مَكْرَهُمْ | فَقَالُوْا | أَيْنَ | صَاحِبُكَ | هٰذَا |
| الله دهغوى بدخواهي پرهغوى وروګرځوله او حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه يې پوښتنه وكړه چې ستا دوست چيرته لاړو | | | | | | |
| قَالَ | لَا | أَدْرِيْ | فَاقْتَصُّوْا | أَثَرَهُ | فَلَمَّا | بَلَغُوا |
| حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ جواب وركړو ماته نه ده معلومه د مكې قريش د حضور ﷺ د قدمونو د نښو پسې | | | | | | |
| الْجَبَلَ | اِخْتَلَطَ | عَلَيْهِمْ | فَصَعِدُوْا | الْجَبَلَ | | |
| ووتل تر دې پورې چې هغه خلق جبل ثور ته ورسيدل د هغوى ګمان وو چې حضور ﷺ به پدې غره كې | | | | | | |
| فَمَرُّوْا | بِالْغَارِ | فَرَأَوْا | عَلٰى | بَابِهِ | نَسْجَ | الْعَنْكَبُوْتِ | فَقَالُوْا |
| پټ شوى وي ليكن هغوى چې د غار په خوله د غنې جاله وليده نو هغوى وويل كه محمد ﷺ پدې غار | | | | | | |
| لَوْ | دَخَلَ | هٰهُنَا | لَمْ | يَكُنْ | نَسْجُ | الْعَنْكَبُوْتِ | عَلٰى | بَابِهِ |
| كې داخل شوى وي نو د دې پر خوله به د غنې جاله نه وى د غه شان هغه خلق د هغه ځاي نه نا اميده | | | | | | |
| فَمَكَثَ | فِيْهِ | ثَلَاثَ | لَيَالٍ | . | رَوَاهُ | اَحْمَدُ. |
| كيدو سره روسته شو او حضور ﷺ درې شپې ورځې هغه غار كې پټ وو. [احمد] | | | | | | |

**توضيح**: اثاروا عليه: يعنې حمله يې وكړه . **فاقتصوا**: يعنې قريش د حضور ﷺ د قدم د نښاناتو او علاماتو لټولو پسې شول. **نسج العنكبوت**: جولا جاله اچولې وه او كوترې هګۍ وركړې وې. علامه بوصيرى رحمه الله فرمايي:

فالصدق في الغار والصديق لم يريا — وهم يقولون ما بالغار من ارم

ظنوا الحمام وظنوا العنكبوت على — خير البرية لم تنسج ولم تحم

## د خيبر د يهوديانو متعلق معجزه

| |
|---|
| ﴿۶۶﴾ وَعَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ لَمَّا فُتِحَتْ خَيْبَرُ أُهْدِيَتْ لِرَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| او حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي كوم وقت چې خيبر فتح شو نو د رسول كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خدمت كي |
| شَاةٌ فِيْهَا سَمٌّ فَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| يو ه پخه بزه (چيلۍ) د هديې په طور پيش كړل شوه چې په هغه كي زهرا چول شوي وو رسول كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حكم |
| اِجْمَعُوْا لِيْ مَنْ كَانَ هٰهُنَا مِنَ الْيَهُوْدِ فَجُمِعُوْا لَهٗ |
| وكړو د لته خيبر كي چې څومره يهوديان دي ټول ما ته راولئ نو ټول يهوديان جمع كولو سره د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| فَقَالَ لَهُمْ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنِّيْ |
| په خدمت كي پيش كړل شو رسول كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغه يهوديانو ته وفرمائيل زه ستاسو نه ديوي خبري |
| سَائِلُكُمْ عَنْ شَيْءٍ فَهَلْ أَنْتُمْ مُصَدِّقِيَّ عَنْهُ |
| پوښتنه كوم؟ تاسو زما د سوال غلط جواب را كړئ او زه د هغه ترديد وكړم نو تاسو به زما په خبره باور |
| قَالُوْا نَعَمْ يَآ اَبَا الْقَاسِمِ فَقَالَ لَهُمْ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ |
| وكړئ يهوديانو وويل هو ابو القاسم نو رسول كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د هغوی نه پوښتنه وكړه چې ستاسو پلار |
| مَنْ أَبُوْكُمْ قَالُوْا فُلَانٌ قَالَ كَذَبْتُمْ بَلْ |
| څوك دي؟ يهوديانو وويل چې فلانی سړی دی حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ورته وفرمائيل تاسو غلط وايئ ستاسو |
| أَبُوْكُمْ فُلَانٌ قَالُوْا صَدَقْتَ وَ بَرَرْتَ قَالَ |
| پلار خو فلانی سړی دی يهوديانو وويل تاسو رښتيا وفرمائيل او په ځاي مو وفرمائيل بيا حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| فَهَلْ أَنْتُمْ مُصَدِّقِيَّ عَنْ شَيْءٍ إِنْ سَأَلْتُكُمْ عَنْهُ |
| هغوی ته وفرمائيل كه زه در نه څه بل سوال وكړم نو آيا تاسو به زما په هغه خبره باور وكړئ يهوديانو |

قَالُوا نَعَمْ يَا أَبَا الْقَاسِمِ إِنْ كَذَبْنَا عَرَفْتَ

وويل هو اى ابو القاسم كه مونږ دروغ وويل او تا سو ته زمونږ دروغ معلوم شو څرنګه چې تا سو ته

كَمَا عَرَفْتَهُ فِيْ أَبِيْنَا فَقَالَ لَهُمْ مَنْ أَهْلُ النَّارِ

زمونږ د پلار باره معلوم شوى وو نو حضور ﷺ دهغوى نه پوښتنه وكړه چې و بنايي دوزخي څوک دى؟

قَالُوا نَكُوْنُ فِيْهَا يَسِيْرًا ثُمَّ تَخْلُفُوْنَا فِيْهَا

يهوديانو جواب وركړو څو ورځي خو به مونږ خلق يو او بيا به زمونږ جانشين به تا سو خلق يئ

قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِخْسَئُوْا فِيْهَا وَاللّٰهِ لَا نَخْلُفُكُمْ

رسول كريم ﷺ ورته وفرمائيل قسم په الله مونږ به دوزخ كي هيڅ كله ستا سو جانشين نه يو دي نه

فِيْهَا أَبَدًا ثُمَّ قَالَ هَلْ أَنْتُمْ مُّصَدِّقِيَّ عَنْ شَيْءٍ إِنْ سَأَلْتُكُمْ عَنْهُ

روسته حضور ﷺ هغوى ته وفرمائيل كه زه ستا سو نه څه بل سوال وكړم نو آيا تاسو به زما د خبري باور

فَقَالُوْا نَعَمْ يَا أَبَا الْقَاسِمِ قَالَ هَلْ جَعَلْتُمْ فِيْ هٰذِهِ الشَّاةِ سَمًّا

وكړئ يهوديانو وويل هو اى ابو القاسم حضور ﷺ دهغوى نه پوښتنه وكړه. ايا تا سو دي بزي كي زهر

قَالُوْا نَعَمْ قَالَ مَا حَمَلَكُمْ عَلٰى ذٰلِكَ

اچولي دي؟ هغوى جواب وركړو هو حضور ﷺ تري پوښتنه وكړه تا سو څه شي پر دى ذليل حركت باندې

قَالُوْا أَرَدْنَا إِنْ كُنْتَ كَاذِبًا اَنْ نَّسْتَرِيْحَ

آماده كړلئ؟ هغوى وويل مونږ سوچ كړى وو كه ستا سو دعوىٰ د نبوت دروغ وي نو دا زهر به ستا سو

مِنْكَ وَإِنْ كُنْتَ صَادِقًا

دهلاكت سبب جوړ شي او مونږ به ستا سو نه نجات او راحت حاصل كړو او كه تا سو خپله دعوىٰ كي رښتيني

لَمْ يَضُرَّكَ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

يي نو دا زهر تا سو ته هيڅ ضرر نشي رسولی .

**توضيح** : (اخسئوا) دا لفظ د سپيانو د شړلو لپاره استعماليږي يعني (کوري سپيانو). حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نوم په نوم د هغو د پلرونو بيان وکړو چې په دې سره د هغه د معجزې ظهور وشو.

## قيامته پورې د پيښيدونکو تمامو اهمو واقعاتو او حوادثو خبر ورکولو معجزه

﴿۶۷﴾ وَعَنْ عَمْرِو بْنِ أَخْطَبَ الْأَنْصَارِيِّ قَالَ صَلَّى بِنَا رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمًا

حضرت عمرو بن اخطب انصاري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي يوه ورځ نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مونږ ته د سهار مونځ راکړو او بيا منبر

اَلْفَجْرَ وَصَعِدَ عَلَى الْمِنْبَرِ. فَخَطَبَنَا حَتَّى حَضَرَتِ الظُّهْرُ

ته ختلو سره زمونږ مخکي يي وعظ ارشاد وفرمايلو چې دهغه سلسله ماسپخين پورې جاري وه بيا

فَنَزَلَ فَصَلَّى ثُمَّ صَعِدَ الْمِنْبَرَ فَخَطَبَنَا حَتَّى

منبر نه خکته شو د ماسپخين يې مونځ راکړو بيا منبر ته ختلو سره وعظ يې ارشاد فرمايلو تر دې پورې

حَضَرَتِ الْعَصْرُ ثُمَّ نَزَلَ فَصَلَّى ثُمَّ صَعِدَ الْمِنْبَرَ

چې د مازيګر وخت شو نو منبر نه خکته شو د مازيګر مونځ يې راکړو بيا منبر ته ختلو وعظ يې فرمايلو او

حَتَّى غَرَبَتِ الشَّمْسُ فَأَخْبَرَنَا بِمَا هُوَ

د وعظ سلسله لمر ډوبيدو پورې جاري وه بيا ختمه شوه حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د هغه ټولو خبرو نه مونږ اګاه کړلو چې

كَائِنٌ إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ

قيامته پورې پيښيدونکي دي دې روايت بيانولو نه روسته حضرت عمرو بن اخطب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل په

قَالَ فَأَعْلَمُنَا أَحْفَظُنَا. رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

مونږ کي د دې تمامو خبرو د ټولو نه زيات يادلرونکي هغه سړی دی چې نن صبا په مونږ کي ښه عالم دی [مسلم]

| |
|---|
| ﴿۶۸﴾ وَعَنْ مَعْنِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ قَالَ سَمِعْتُ أَبِيْ قَالَ |
| او حضرت معن ابن عبد الرحمٰن وايي ما د خپل پلار حضرت عبد الرحمٰن نه واوريدل فرمائيل يي هر كله |
| سَأَلْتُ مَسْرُوْقًا مَّنْ آذَنَ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| چې ما جليل القدر تابعي حضرت مسروق نه پوښتنه وكړه چې په هغه شپه كي چې جناتو قرآن مجيد |
| بِالْجِنِّ لَيْلَةَ اسْتَمَعُوا الْقُرْآنَ فَقَالَ حَدَّثَنِيْ |
| واوريده د هغه جناتو د راتګ اطلاع نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته چا وركړې وه نو حضرت مسروق وويل ماته |
| أَبُوْكَ يَعْنِيْ عَبْدَ اللهِ ابْنَ مَسْعُوْدٍ أَنَّهُ قَالَ آذَنَتْ |
| ستا پلار يعني حضرت عبد الله ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ بيان وكړو چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته د جناتو (پيريانو) |
| بِهِمْ شَجَرَةٌ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. |
| د راتلو خبر يوې ونې وركړې وو. |

**توضیح**: (معن) معن د حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ لمسى دى، هغه د خپل والد نه بيانوي، د هغه د والد نوم عبد الرحمن دى (قال) يعنې معن وويل (سمعت ابي) يعنې د عبد الرحمن نه ما واوريدل چې زما پلار دى (قال) يعنې عبد الرحمن وويل (مسروقا) مسروق لوى تابعى دى د حضرت عائشې رضى الله عنها نه يې علم ويلى دى . (آذن) يعنې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته د جناتو په راتګ باندې چا اطلاع وركړې وه . ايذان د اطلاع په معنى سره دى.

فقال: يعنې مسروق په جواب كې وويل چې ستا اباجان ما ته ويلي وو چې يوې ونې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته اطلاع وركړې وه چې په دې كې د معجزې ظهور وشو .

## د جنګ بدر د مقتولينو متعلق د معجزې ظهور

| |
|---|
| ﴿۶۹﴾ وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ كُنَّا مَعَ عُمَرَ بَيْنَ مَكَّةَ |
| او حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي د يو سفر په موقع مونږ خلقو د حضرت عمر ابن خطاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره د مكي |

وَالْمَدِيْنَةِ فَتَرَاءَيْنَا الْهِلَالَ وَكُنْتُ

او مديني په منځ كي په يو ځاي پراو اچولی وو چې هلته مونږ د نوي مياشتي ليدلو كوشش وكړو زه يو

رَجُلًا حَدِيْدَ الْبَصَرِ فَرَأَيْتُهُ وَلَيْسَ أَحَدٌ يَزْعُمُ

تيز نظره سړی وم نو ما مياشت وليده زما نه علاوه بل سړی داسي نه وو چې هغه داويلي وی چې هغه

أَنَّهُ رَآهُ غَيْرِيْ قَالَ فَجَعَلْتُ أَقُوْلُ لِعُمَرَ أَمَا تَرَاهُ

مياشت ما ليدلي ده ما حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته د مياشتي ښودلو كوشش كولو سره هغوی ته وويل چې آيا

فَجَعَلَ لَايَرَاهُ قَالَ يَقُوْلُ عُمَرُ سَأَرَاهُ

تاس ته مياشت په نظر نه راځي ګوره ليكن هغوی مياشت نه ليده حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي هغوی وويل

وَأَنَا مُسْتَلْقٍ عَلَى فِرَاشِيْ ثُمَّ

بس پرېږده زه به عنقريب په خپله بستره پروت دا مياشت به ووينم دي نه روسته حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ زمونږ

أَنْشَأَ يُحَدِّثُنَا عَنْ أَهْلِ بَدْرٍ قَالَ إِنَّ

مخكي د كافرونه د هغو اهل بدر ذكر شروع كړو چې جنګ بدر كي وژل شوی وو او بيان يي وكړو چې

رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يُرِيْنَا مَصَارِعَ أَهْلِ بَدْرٍ

رسول كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د جنګ نه يوه ورځ مخكي د قتليدونكو مشركينو ځايونه مونږ ته وښودل حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

بِالْأَمْسِ يَقُوْلُ هٰذَا مَصْرَعُ فُلَانٍ غَدًا إِنْ شَاءَ اللهُ

يو يو ځاي طرف ته اشارې كولو سره فرمائيل چې ګورئ دا هغه ځاي دی چيرته چې به صباله انشاالله

وَهٰذَا مَصْرَعُ فُلَانٍ غَدًا إِنْ شَاءَ اللهُ

فلانی مشرک وژل كيږي او دا هغه ځاي دی چيرته چې به ان شا الله فلانی مشرک وژلی پروت وي ګويا

| قَالَ عُمَرُ وَالَّذِىْ بَعَثَهُ بِالْحَقِّ مَا أَخْطَأُوا الْحُدُوْدَ |
|---|
| بيا حضرت عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وويل قسم دى په هغه ذات چې حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يې په حق سره را اليږلى متعين كولو |
| الَّتِىْ حَدَّ هَا رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| دى رسول كريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ چې كوم ځايونه سره بيان كړي وو قتليدونكي مشركان هغه نه ذره هم اخوا ديخوا |
| قَالَ فَجُعِلُوْا فِىْ بِئْرٍ بَعْضُهُمْ عَلٰى بَعْضٍ فَانْطَلَقَ |
| نه شول بيا چې د هغه مشركانو لاشونه يو د بل د پاسه اچولو سره په يو كوهي كې وغورځول شو نو رسول |
| رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ حَتّٰى انْتَهٰى إِلَيْهِمْ فَقَالَ |
| كريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغه كوهي ته راغى او د هغه مشركانو نومونو اخستو سره يې هغوى مخاطب كړل او وي |
| يَا فُلَانَ بْنَ فُلَانٍ وَّ يَا فُلَانَ بْنَ فُلَانٍ هَلْ وَجَدْتُّمْ |
| فرمائيل اى فلان ابن فلان او اى فلان ابن فلان ايا تاسو هغه شى حق او رشتيا پيدا كړو چې د هغه |
| مَّا وَعَدَكُمُ اللهُ وَ رَسُوْلُهُ حَقًّا فَإِنِّىْ قَدْ وَجَدْتُّ مَا وَعَدَنِىَ اللهُ |
| ستا سو سره الله او د الله رسول وعده كړي وه ما خو هغه شى حق پيدا كړو چې د كوم شي ما سره زما الله |
| حَقًّا فَقَالَ عُمَرُ يَا رَسُوْلَ اللهِ كَيْفَ تُكَلِّمُ أَجْسَادًا |
| وعده كړي وه حضرت عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وويل يا رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تاسو داسي جسمونو ته څرنګه مخاطب يي |
| لَّا أَرْوَاحَ فِيْهَا فَقَالَ مَا أَنْتُمْ بِأَسْمَعَ |
| چې روحونو نه خالي دي؟ حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمائيل زه چې څه وايم د هغې تاسو د دوى نه زيات اوريدونكي |
| لِمَا أَقُوْلُ مِنْهُمْ غَيْرَ أَنَّهُمْ |
| نه يئ هو هغوى د جواب راكولو قدرت نه لري مطلب دا چې زما دا خبره څرنګه چې تا اوريدلي ده هغه |
| لَا يَسْتَطِيْعُوْنَ أَنْ يَّرُدُّوْا عَلَىَّ شَيْئًا . رَوَاهُ مُسْلِمٌ. |
| شان دوى هم اوريدلي ده بس فرق دا دى چې د جواب وركولو قدرت دوى ته حاصل نه دى. |

**توضیح** : (مستلق علی فراشي) یعنې اوس سپوږمۍ کوچنۍ ده په نظر نه راځي زه ولې محنت وکړمه ! سبا ته چې غټه شي نو زه به ملاست یم چې سپوږمۍ به مخې ته راشي ، ددې کلام د مکمل کیدو نه بعد بیا حضرت عمر رضي الله عنه د جنګ بدر قصه بیان کړه او د حضور اکرم صلی الله علیه وسلم د معجزې ظهور یې بیان کړلو . (یافلان یافلان) د بدر د مقتولینو نه ۲۱ یا ۲۲ لوی لوی صنادید د قریشو جمع کړې شوي وو او د بدر په خراب کوهي کې غورځول شوي وو . د هغوی د مزید تذلیل لپاره حضور صلی الله علیه وسلم د کوهي خولې ته راغی د هغوی سره یې خبرې وکړې ، حضرت حسان رضي الله عنه په خپلې یوې قصیدې کې دغه منظر پیش کړی دی څو ابیات ملاحظه کړئ :

| | |
|---|---|
| فغادرنا اباجهل صریعا | وعتبة قد ترکنا بالجبوب |
| ابوجهل مو غور ځیدلی پریښودلو | او عتبه مو په کاږجنه ځمکه پریخودلو |
| ینادیهم رسول الله لما | قذفناهم کباکب فی القلیب |
| د الله پیغمبر ورته آواز وکړو کله چې هغوی لره | مونږ په کوهي کې نسکور وغورځول |
| الم تجدوا کلامی کان حقا | وامر الله یأخذ بالقلوب |
| ایا تاسو زما خبره محق ونه موندله | او د الله خبره زړونو ته کوزیږي |
| فما نطقوا ولو نطقوا القالوا | صدقت وکنت ذا رأی مصیب |
| دوئ خبره ونکړه که خبره یې کړې وای نو ویل به یې | چې تا ریښتیا ویلي وو او ته د صحیح رایې مالک یې |

## د نابینا کیدلو متعلق د پیشن ګوئي معجزه

﴿۴۰﴾ وَعَنْ أُنَيْسَةَ بِنْتِ زَيْدِ بْنِ أَرْقَمَ عَنْ أَبِيهَا أَنَّ

او د حضرت زید بن ارقم رضي الله عنه لوربي بي انیسه رضي الله عنها د خپل پلار حضرت زید بن ارقم رضي الله عنه نه روایت کوي

النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَخَلَ عَلَى زَيْدٍ يَعُودُهُ مِنْ مَرَضٍ كَانَ بِهِ

چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم د زید بن ارقم عیادت پوښتنې د پاره تشریف یو وړی چې بیمار شوی وو حضور صلی الله علیه وسلم

قَالَ لَيْسَ عَلَيْكَ مِنْ مَّرَضِكَ بَأْسٌ وَلٰكِنْ

هغه ته تسلي تشفي ورکولو سره وفرمائیل ددې مرض تا ته هیڅ خوف کول نه دی پکار لیکن هغه وخت

كَيْفَ لَكَ إِذَا عُمِّرْتَ بَعْدِي فَعَمِيْتَ قَالَ

به ستا څه حال وي هر كله چې ته زما نه روسته ژوندى پاته شي او ستا بينايي ولاړه شي زيد بن ارقم رَضِيَ اللهُ عَنْهُ

أَحْتَسِبُ وَأَصْبِرُ قَالَ إِذًا تَدْخُلُ الْجَنَّةَ

عرض وكړو زه به د ثواب ارزو منديم او صابر او راضي به يم حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمائيل بيا به بي حسابه او بي

بِغَيْرِ حِسَابٍ قَالَ فَعَمِيَ بَعْدَ مَا مَاتَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

كتابه جنت ته ځې راوي بيان كړي چې زيد بن ارقم رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د وفات نه روسته ړوند شوى وو

ثُمَّ رَدَّ اللهُ عَلَيْهِ بَصَرَهُ ثُمَّ مَاتَ

بيا ډيره زمانه روسته الله تعالى دهغه بينايي دوباره كړله او بيا هغه وفات شو.

## د دروغو حديث بيانونكى باره كې عذاب

﴿۷۱﴾ وَعَنْ أُسَامَةَ بْنِ زَيْدٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ تَقَوَّلَ عَلَيَّ

او حضرت اسامه ابن زيد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي د رسول كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ارشاد دى كوم سړى چې قصداً زما طرف ته څه

مَالَمْ أَقُلْ فَلْيَتَبَوَّأْ مَقْعَدَهُ مِنَ النَّارِ

داسي خبره منسوب كړي چې ما نه وي كړي نو هغه ته پكار دى چې خپله ټيكانه دوزخ كي تياره وګڼي

وَ ذٰلِكَ أَنَّهُ بَعَثَ رَجُلًا فَكَذَبَ عَلَيْهِ

او ددي ارشاد ګرامي پس منظر دا دى چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يو سړى ليږلي ؤ هغه د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د طرف نه څه

فَدَعَا عَلَيْهِ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ

دروغ خبره جوړولو سره وكړله حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ چې ددې خبرې نه خبر شو حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د هغه سړي په حق

فَوُجِدَ مَيِّتًا وَقَدِ انْشَقَّ بَطْنُهُ وَ لَمْ تَقْبَلْهُ

كي بد دعا وكړله نو هغه سړي په داسي حال كي مړه پيدا شو چې د هغه خيټه شليدلي وه او هر كله

الْأَرْض. رَوَاهُمَا الْبَيْهَقِيُّ فِيْ دَلَائِلِ النُّبُوَّةِ.

چې هغه دفن کړل شو نو ځمکې هغه قبول نه کې دواړه روایتونه بیهقي دلائل النبوة کې نقل کړې دي.

## د برکت معجزه

﴿۷۲﴾ وَعَنْ جَابِرٍ أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

او حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی د رسول کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خدمت کې یو سړی حاضر شو او طعام یې وغوښتو

جَاءَهُ رَجُلٌ يَسْتَطْعِمُهُ فَأَطْعَمَهُ شَطْرَ وَسَقِ شَعِيْرٍ

حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغه ته نیم وسق اوربشې عطاء کړلې هغه وربشې آخستو سره کور کې کښېښخو دلې اوېیا،

فَمَا زَالَ الرَّجُلُ يَأْكُلُ مِنْهُ وَامْرَأَتُهُ وَضَيْفُهُمَا

نه صرف خپله هغه سړي بلکې د هغه ښځې او د هغوی میلمنو به هم د هغه وربشو نه خوړلې لیکن یوه

حَتَّى كَالَهُ فَفَنِيَ فَأَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

ورځ هغه وربشې تول کړلې بیا هغه ډېر ژر ختمې شوې دي نه روسته هغه سړی د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په

فَقَالَ لَوْ لَمْ تَكِلْهُ لَأَكَلْتُمْ مِنْهُ

خدمت کې حاضر شو حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ورته وفرمائیل که تا هغه وربشې نه وې تللې نو تا سو به

وَ لَقَامَ لَكُمْ. رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

همیشه د هغه وربشو نه اخستلو سره خوړلې هغه به هم هغه شان تا سره باقي پاتې وې.

## مشتبه طعام د حلق نه خکته نه شو

﴿۷۳﴾ وَعَنْ عَاصِمِ بْنِ كُلَيْبٍ عَنْ أَبِيْهِ عَنْ رَجُلٍ مِّنَ الْأَنْصَارِ قَالَ

او حضرت عاصم ابن کلیب د خپل پلار نه او هغه د یو انصاري صحابي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت کوي هغه بیان

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| خَرَجْنَا | مَعَ | رَسُوْلِ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ | فِيْ | جَنَازَةٍ |

کوي يوه ورځ مونږ رسول کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره ديوي جنازي مونځ اودفن کولو کي شرکت دپاره ولاړو قبرستان

| | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فَرَأَيْتُ | رَسُوْلَ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ | وَهُوَ | عَلَى | الْقَبْرِ | يُوْصِي الْحَافِرَ |

ته رسيدو سره مارسول کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اوليدلو چي حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دقبر په غاړه کناستلو اوګورکن ته فرمايي

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| يَقُوْلُ | أَوْسِعْ | مِنْ | قِبَلِ | رِجْلَيْهِ | أَوْسِعْ | مِنْ | قِبَلِ | رَأْسِهِ | فَلَمَّا |

چي پښو طرف ته قبر کولاو کړه اوسر جانب ته يي نور کولاو کړه بيا چي حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بيرته تلو نومخ ته

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| رَجَعَ | اِسْتَقْبَلَهُ | دَاعِيْ | امْرَأَتِهِ | فَأَجَابَ |

ورته يو سړی راغی حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته يي دمړي دښځي دطرف نه دطعام دعوت ورکړو چي حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قبول

| | | | |
|---|---|---|---|
| وَنَحْنُ | مَعَهُ | وَجِيْءَ | بِالطَّعَامِ |

کړو او مونږ هم ورسره شو حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هر کله چي طعام راوړل شو نو حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ طعام طرف ته لاس

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فَوَضَعَ | يَدَهُ | ثُمَّ | وَضَعَ | الْقَوْمُ | فَأَكَلُوْا | فَنَظَرْنَا | إِلَى |

ور مخکي کړو او طعام خوړل يي شروع کړل بيا مونږ هم طعام خوړل شووع کړل مونږ رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| رَسُوْلِ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ | يَلُوْكُ | لُقْمَةً | فِيْ | فِيْهِ |

اوليدلو چي حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ کومه اولنۍ مړۍ خولې مبارکې کي اچولي وه هغه يي ميده کوله يعني خپله

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ثُمَّ | قَالَ | أَجِدُ | لَحْمَ | شَاةٍ | أُخِذَتْ | بِغَيْرِ |

خوله مبارکه کي ښخوا اديخوا تاووله حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمائيل زه داغوښه ديوي داسي بزي محسوسوم

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| إِذْنِ | أَهْلِهَا | فَأَرْسَلَتِ | الْمَرْأَةُ | تَقُوْلُ |

چي دمالک داجازي نه بغير اخستل شوي ده هغه ښځي سړی ليږلو سره صورت حال عرض کړو چي

يَا رَسُوْلَ اللهِ إِنِّيْ أَرْسَلْتُ إِلَى النَّقِيْعِ وَهُوَمَوْضِعٌ يُبَاعُ فِيْهِ

یارسول الله ما د بزي (چیلۍ) دپاره یو سړی نقیع ته لیږلي وو نقیع دیو ځاي نوم دی چیرته چې دبزو

الْغَنَمُ لِيُشْتَرٰى شَاةٌ فَلَمْ تُوْجَدْ فَأَرْسَلْتُ إِلٰى جَارٍ لِّيْ

خرید و فروخت کیږي لیکن هلته بزه پیدا نه شوه نوما خپل همسایه ته سړی ولیږه چې هغه یوه

قَدِ اشْتَرٰى شَاةً أَنْ يُرْسِلَ بِهَا إِلَيَّ بِثَمَنِهَا

بزه (چیلۍ) ورکړي او ورته مي وویل چې هغه په کوم قیمت بزه آخستي ده په هغه قیمت دي هغه بزه

فَلَمْ يُوْجَدْ فَأَرْسَلْتُ إِلَى امْرَأَتِهِ فَأَرْسَلَتْ

په ما خرڅه کړي لیکن هغه همسایه هم خپل کور کي نه وو بیا ما د هغه همسایه ښځي ته سړی ولیږلو

إِلَيَّ بِهَا فَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَطْعِمِيْ هٰذَا الطَّعَامَ الْأَسْرٰى.

او هغي د غه بزه ماته را ولیږله نو رسول کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمائیل دا طعام قیدیانو باندي وخوره.

رَوَاهُ أَبُوْ دَاوُدَ وَالْبَيْهَقِيُّ فِي دَلَائِلِ النُّبُوَّةِ

دا روایت ابو داؤد او دلائل النبوة کي بیهقي نقل کړی دی.

**توضیح**: (داعی امرأته) یعني د میت د کور نه د هغه د ښځي قاصد ډوډۍ ته د دعوت ورکولو لپاره راغی. حضور اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هم لاړلو او څه صحابه هم لاړل، حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خوله کي مړۍ واچوله او ژوول یې شروع کړل مګر تیرولی یې نه شو او ویې فرمایل چې دا غوښه د داسي ګډۍ ده چې د مالک د اجازت نه بغیر حاصل شوی دی د کور د ښځي نه معلومات واخیستل شو نو هغې د عدم اجازت اعتراف کولو سره وجه هم بیان کړله. په دې طریقه د حضور اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د معجزي ظهور وشو.

## د دریمې وغیره حکم

**سؤال**: دلته سوال دا دی چې په امرأته کې چې کوم ضمیر راجع کیږي دا مړي طرفته راجع کیږي د مړي ښځي په همدغه ورځ په کومه ورځ چې د هغه د خاوند انتقال شوی وو د خوراک اهتمام

وكړلو حالانكه فقهاؤ د مړي د كور خوراک خوړل مكروه ليكلي دى او ظاهره ده چې مكروه تحريمي به وي ، ملاعلي القاري رح ليكي چې د مړي د خوراک په باره كې چې د فقهاء كرامو كوم اقوال دي هغه ددې حديث خلاف دي او دا حديث په ظاهره د هغو اقوالو خلاف دى مثلا په بزازيه كې ليكلي دي چې د ميت د ورځو د جانب نه اوله ورځ يا دريمه ورځ او اوومه ورځ خوراک وركول مكروه دي ، همدارنگه په خلاصة الفتاوى كې دي چې دريمه ورځ د خوراک اهتمام كول او خلک ډوډۍ ته راغوښتل مباح نه دي ، زيلعي ويلي دي چې تر دريو ورځو پورې د غمرازۍ كولو لپاره كيناستلو كې هيڅ مضائقه نشته په دې شرط چې د ممنوع شيانو ارتكاب نه وي لكه د قالينو خورول او د ضيافت اهتمام كول ، همدارنگه ابن همام هم ليكلي دي چې د اهل بيت ضيافت كول مكروه دي ، ابن همام دا هم ليكلي دي چې دغه ضيافت بدعت سيئه دى ، د حضرت جرير بن عبدالله په روايت كې صفا ذكر دي چې د ميت ضيافت مونږ د نوحه پشان حرام گڼلو ، يو طرف ته د فقهاؤ دغه فتواگانې دي چې د ميت د كور خوراک وركول منع كوي او دويم طرف نه د زير بحث حديث نه د جواز اشاره معلوميږي ددې لپاره څه جواب دى ؟

**جواب** : ددې حديث واضح جواب دا دى چې دا زنانه د هغه مړي ښځه نه وه بلكه د جنازې نه په واپسۍ كې د كومې بلې ښځې قاصد راغلى وو د ميت د ښځې نه وو ، لكه په ابوداؤد جلد ۲ ص ۱۱۷ كې د **داعى امرأة** لفظ دى چې د يوې ښځې قاصد راغلى وو لهذا د مشكوة په دې روايت كې د كوم كاتب نه لږ سهوه شوې ده چې په دې سره د اهل بدعاتو خوشحاليانې د خاورو سره خاورې شوې چې ددې روايت نه شومه دريمه ثابتوي ، اكابرو ليكلي دي چې (**طعام الميت يميت القلب**) .

الاسرى: دا قيديان چونكې كفار وو لهذا په هغوى باندې يې خوړل مناسب وو معلومه شوه چې ، دريمه ، او اومه د مسلمان د خوراک شى نه دى .

## دام معبد رضي الله عنها بزې (چيلۍ) سره متعلق ديوې معجزې ظهور

| |
|---|
| ﴿۴۷﴾ وَ عَنْ حِزَامِ بْنِ هِشَامٍ عَنْ أَبِيْهِ عَنْ جَدِّهِ حُبَيْشِ بْنِ خَالِدٍ وَّ هُوَ |
| او حضرت حزام ابن هشام د خپل پلار حضرت هشام نه او هغه د حزام د نيكه نه حبيش رضي الله عنه نه چې د |
| أَخُ أُمِّ مَعْبَدٍ أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِيْنَ أُخْرِجَ مِنْ مَكَّةَ |
| ام معبد ورور دى روايت كوي چې رسول كريم صلى الله عليه وسلم ته د مكې د پريښودو حكم وشو او هجرت د پاره |

خَرَجَ مُهَاجِرًا إِلَى الْمَدِيْنَةِ هُوَ وَأَبُو بَكْرٍ وَمَوْلَى أَبِي بَكْرٍ

مدیني ته روان شو نو حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره حضرت ابو بکر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ او د حضرت ابو بکر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ ازاد کړه غلام

عَامِرُ بْنُ فُهَيْرَةَ وَدَلِيْلُهُمَا عَبْدُ اللهِ اللَّيْثِيُّ مَرُّوْا

عامر ابن فهیره رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ او دي دواړو ته لار ښوونکی عبد الله لیثي دا دي څلورو تیریدل د مدیني په لار

عَلَى خَيْمَتَيْ أُمِّ مَعْبَدٍ فَسَئَلُوْهَا لَحْمًا وَتَمْرًا لِيَشْتَرُوْا

یو ځای دام معبد په دوو خیمو وشول دي حضراتو دا هل خیمه نه څه غوښه او خورما اخیستل وغوښتل

مِنْهَا فَلَمْ يُصِيْبُوْا عِنْدَهَا شَيْئًا مِّنْ ذٰلِكَ وَكَانَ

لیکن دواړو حضراتو ته دام معبد سره هیڅ شی پیدا نکړل ځکه چې په هغه زمانه کي عام طور سره

الْقَوْمُ مُرْمِلِيْنَ مُسْنِتِيْنَ فَنَظَرَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

خلق د قحط زدګي او بی سرو ساماني ښکاروو دي کي اچانک د رسول کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نظر په یوي بزي

إِلَى شَاةٍ فِي كَسْرِ الْخَيْمَةِ فَقَالَ مَا هٰذِهِ

(چیلی) ولګیده چې د خیمي یو جانب ته تړلې ولاړه وه حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ پوښتنه وکړه چې ام معبد دي

الشَّاةُ يَا أُمَّ مَعْبَدٍ قَالَتْ شَاةٌ خَلَّفَهَا الْجَهْدُ

بزي څه شوي دي ام معبد جواب ورکړو ددي کمزوري دا درمي نه جدا کړي ده حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ پوښتنه

عَنِ الْغَنَمِ قَالَ هَلْ بِهَا مِنْ لَّبَنٍ. قَالَتْ هِيَ

ورنه وکړه ایا دا شوده کوي ام معبد وویل کوم مصیبت کي چې دا مبتلاده په هغه کي پئی د کوم

أَجْهَدُ مِنْ ذٰلِكَ قَالَ أَتَأْذَنِيْنَ لِيْ أَنْ أَحْلِبَهَا قَالَتْ

ځایه دي حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ورته وفرمائیل ماته اجازه را کوي چې زه ددي پئی ولوشم ام معبد رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا وویل

بِأَبِي أَنْتَ وَأُمِّي إِنْ رَأَيْتَ بِهَا حَلَبًا فَاحْلُبْهَا

زما مور او پلار دي په تا سو ﷺ قربان وي که تا سو ﷺ ته په دې کي پئى معلومیږي نو ضرور وي یې

فَدَعَا بِهَا رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَمَسَحَ

ولوشئ رسول کریم ﷺ دې او رید و سره بزه را وغوښتله بیا حضور ﷺ د هغه په غلانزه خپل لاس

يَدَهُ ضَرْعَهَا وَسَمَّى اللهَ تَعَالَى وَدَعَا لَهَا فِيْ شَاتِهَا

مبارک را خکلو بسم الله یې وویله او ام معبد رضي الله عنها د پاره د هغه بزې په حق کې د برکت دعا وکړله نو بزې

فَتَفَاجَّتْ عَلَيْهِ وَدَرَّتْ وَاجْتَرَّتْ فَدَعَا

پئى ورکولو د پاره خپلې پښې د حضور ﷺ مخکې خلاصې کړلې بیا هغه بزې پئى بهيول او شخوند

بِإِنَاءٍ يُرْبِضُ الرَّهْطَ فَحَلَبَ فِيْهَا

وهل شروع کړل حضور ﷺ یو دومره لوی لوښی وغوښتی چې دیو جماعت خیټه به مړه کړې او هغه

ثَجًّا حَتّٰى عَلَاهُ الْبَهَاءُ

لوښی کې بنه بهیدونکي پئى ولوشل تر دې پورې چې د شیدو زګ د لوښي په سر را غلی دې نه

ثُمَّ سَقَاهَا حَتّٰى رَوِيَتْ وَسَقٰى أَصْحَابَهُ

روسته حضور ﷺ پئى مخکې ام معبد رضي الله عنه باندې وڅکلې چې هغې ښه ډیرې وڅکلې بیا یې په هغه

حَتّٰى رَوُوْا ثُمَّ شَرِبَ آخِرَهُمْ

ملګرو باندې وڅکلې هغوی هم په ښه شان ماړه شول او بیا د تولو نه روسته حضور ﷺ په خپله وڅکلې

ثُمَّ حَلَبَ فِيْهِ ثَانِيًا بَعْدَ بَدْءٍ حَتّٰى مَلَأَ الْإِنَاءَ

بیا په اولنی وار د لوشلو نه روسته حضور ﷺ دوباره هغه لوښي کې بزه ولوشله چې هغه لوښي د

| ثُمَّ | غَادَرَهُ | عِنْدَهَا | وَبَايَعَهَا. | وَارْتَحَلُوْا |
|---|---|---|---|---|

شیدو نه ډک شو او هغه پئی یې ام معبد سره پرېښودلي بیا حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ام معبد مسلمانه کړه او دهغې

عَنْهَا رَوَاهُ فِيْ شَرْحِ السُّنَّةِ وَابْنُ عَبْدِ الْبَرِّ فِي الْإِسْتِيْعَابِ وَابْنُ الْجَوْزِيِّ

نه روان شو دا روایت بغوي شرح السنه کي ابن عبدالبر استیعاب کي او ابن جوزي کتاب الوفاء کې

فِيْ كِتَابِ الْوَفَاءِ وَفِي الْحَدِيْثِ قِصَّةٌ

نقل کړی دی او حدیث کي دواقعي نورهم تفصیل شته.

**توضیح : ام معبد:** د یوې ښځې کنیه ده چې د هغې خوا ته حضور اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د هجرت په سفر کې د غار ثور نه بعد ورغلی وو او د هغې په چیلو کې د معجزې ظهور وشو.

**مسنتين:** یعنې په خشک سالی کې مبتلا قحط زده وو.

**مرملين:** د چا چې د سفر توښه ختمه وي هغه مرمل وي.

**خلفها الجهد:** یعنې په خپله د کمزورۍ په وجه د باقي وزو نه پاتې شوې ده په دې کې به شودې کوم ځای نه شي؟

**تفاجت:** د شودو ورکولو لپاره یې دواړې پښې آزادې کړې.

**درت:** زیاتې شودې ورکولو ته وایي.

**واجتر:** شخوند یې شروع کړو.

**يربض:** دومره غټ لوښی چې د دریو نه تر نهو کسانو پورې د څښلو لپاره کافي وي.

**ثجا:** په زور داره طریقه سره د شودو ویستلو ته ویل کیږي.

**البهاء:** د شودو ویستلو په وخت چې شودو د پاسه ځګ راځي هغه مراد دی.

**رويت:** د سیراب کیدلو په معنی سره دی.

**غادره:** ای ترکه د پرېښودلو په معنی سره دی، د برکت لپاره یې دوباره معجزاتی شودې وویستلې هغوی سره یې پرېښودلې، ام معبد مسلمانه شوه. خاوند یې چې کله راغی په کور کې یې شودې

ولیدلې نو ویې پوښتل دا څه دي؟

ام معبد قصه ورته واوروله نو هغه وویل قسم په الله ! دا په مکه کې ښکاره شوی پیغمبر دی ، ما اراده کړې وه چې د هغه سره ملګری شم مګر هغه وخت ونه شو .

اوس کڅیرې هغه ومومم نو په هغه باندې به ایمان راوړم ، هلته د اهل مکه مخته یو غیبي هاتف په زور زور سره اشعار وویل چې اهل مکهو واو ریدل .

## د ام معبد رَضِيَ اللهُ عَنهَا په واقعې باندې د غيبي هاتف منظوم کلام

حضور اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ چې کله د حضرت صدیق رَضِيَ اللهُ عَنهُ سره د مکې نه مدینې ته هجرت وفرمایلو او د اهل مکو تفتیش ناکامه شو نو په مکه مکرمه کې د جبل ابو قبیس نه په اوچت آواز سره غیبي هاتف ډېر معنی خیز او عمده اشعار وویل ! زه بلاترجمه هغه نقل کوم ، ملا علي القاري رحمه الله هغه په مرقات کې ذکر کړي دي :

جزى الله رب الناس خير جزائه — رفيقين حلا خيمتي ام معبد

هما نزلا بالهدى واهتدت به — فقد فاز من امسى رفيق محمد

ليهن بني كعب مقام فتاتهم — ومقعدها للمؤمنين بمرصد

سلوا اختكم عن شاتها وانائها — فانكم ان تسئلوا الشاة تشهد

د جناتو دغه قصیده چې کله د مکې مسلمانانو واوریده نو هغو ته یقین راغی چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ مدینې منورې ته هجرت فرمایلی دی .

د هجرت واقعې او د ام معبد قصې ته حضرت حسان رَضِيَ اللهُ عَنهُ هم اشاره کړې ده ، یو څو اشعار ملاحظه کړئ :

لقد خاب قوم غاب عنهم لبيهم — وقدس من يسرى اليهم ويغتدى

لقد نزلت منه على اهل يثرب — ركابُ هدى حلت عليهم بأسعد

نبى يرى مالا يرى الناس حوله — ويتلوا كتاب الله فى كل مسجد

ليهن ابابكر سعادة جده — بصحبته من يسعد الله يسعد

ليهن بنى كعب مقام فتاتها — ومقعدها للمؤمنين بمرصد

ددې عاشقانه اشعارو په پیش نظر او د معجزاتو د اختتام نه بعد مناسبه معلومیږي چې د حضرت لعل شهباز قلندر رحمه الله فارسي کلام د عشق او فدائیت او جوش او فنائیت په حوالې سره پیش کړی شي . لکه هغه فرمایي :

زعشق دوست هر ساعت درون نار می رقصم
گهی در خاک می غلطم گهی بر خار می رقصم

نمی دانم چون مستانه دم دیدار می رقصم
مگر نازم بدین ذوقی که پیشِ یار می رقصم

تو آن قاتل که از بهر تماشه خونِ من ریزی
من آن بسمل که زیر خنجر خونخوار می رقصم

اگرچے قطره شبنم نه پوید بر سر خارے
منم آن قطره شبنم به نوکِ خار می رقصم

شدم بدنام در عشقش بیا ای پارسا اکنون
نمی ترسم زِرسوائی سر بازار می رقصم

منم عثمان مروندی که یارِ خواجه منصورم
ملامت می کند خلقی ومن بر دار می رقصم

اللّٰهم صل علی حبیبک و نبیک محمد صلی اللہ علیہ وسلم





# باب الکرامات
## د کرامتونو بیان

قال الله تعالى: ﴿وَهُزِّىٓ إِلَيۡكِ بِجِذۡعِ ٱلنَّخۡلَةِ تُسَٰقِطۡ عَلَيۡكِ رُطَبٗا جَنِيّٗا﴾ (سورة مريم)

وقال الله تعالى: ﴿قَالَ ٱلَّذِي عِندَهُۥ عِلۡمٞ مِّنَ ٱلۡكِتَٰبِ أَنَا۠ ءَاتِيكَ بِهِۦ قَبۡلَ أَن يَرۡتَدَّ إِلَيۡكَ طَرۡفُكَ﴾ (سورة النمل)

کرامات جمع ده ددې مفرد کرامة دی چه د اکرام او تکریم په معنی سره دی ، په لغت کې کرامت د عزت او عظمت او توقیر په معنی سره دی لیکن په اصطلاح کښې کرامت د هغه خارق عادت کار نوم دی چه د یو نیک کاره او پرهیزګاره موو من په لاس باندې ظاهر شي لیکن هغه د نبوت دعویدار نه وي بلکه متبع سنت وي . د اهل سنت والجماعة په دې باندې اتفاق دی چه د اولیاء الله کرامت حق دی ، البته معتزله د کرامت د ظهور څخه انکار کوي . په قرآن کریم کښې الله تعالی د غیر انبیاوو کرامتونه ذکر کړي دي لکه د حضرت خضر کرامات دي په دې شرط چه هغه نبی نه وي او که نه نو هغه به معجزه وي ، واضحه دا ده چه خضر علیه السلام د یوه خفیه نظام نبی وو . همدارنګه د آصف بن برخیا کرامت دی ، همدارنګه د حضرت مریم کرامت او د ذوالقرنین کرامات دي ، د اصحاب کهف کرامات دي ، همدارنګه په زیر بحث احادیثو کښې د صحابه کرامو د کراماتو بیان دی . کرامت د یو ولی د ولایت علامت وي ، د هغه د الوهیت نښه نه وي لکه څنګه چه اهل بدعت کرامات د اولیاوو د الوهیت په طریقه باندې پیش کوي ، همدارنګه کرامت د کوم ولی په اختیار کښې نه وي ، کله کله خو یو ولی ته د خپل کرامت پته هم نه وي ، د بعضو علماوو خیال دی چه ممکنه ده چه کله کوم کرامت د یو ولی په اختیار کښې وي مګر عام طور باندې داسې نه وي . په هر حال اهل بدعت بریلویان لکه څنګه چه د حضور صلی الله علیه وسلم د معجزاتو په وجه د علمی غلطی ښکار شوي دي او هغه یې د الوهیت په طریقه زده کړي دي همدارنګه هغوی ته په کراماتو کښې هم غلطی شوې ده او هغوی هر کرامت د ولی لپاره د صفت الوهیت دلیل ګڼي .

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ
### د دوو صحابه کرامو کرامت

| ﴿۱﴾عَنْ | أَنَسٍ | أَنَّ | أُسَيْدَ | بْنَ | حُضَيْرٍ | وَ | عَبَّادَ | بْنَ | بِشْرٍ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| حضرت انس رضي الله عنه فرمایی: | | | | | | | | | |
| حضرت انس رضي الله عنه بیان کوي یوه ورځ دوه جلیل القدر صحابه حضرت أسید بن حُضیر رضي الله عنه او حضرت عبّاد بن بشر رضي الله عنه | | | | | | | | | |
| تَحَدَّثَا | عِنْدَ | النَّبِيِّ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ | فِيْ | حَاجَةٍ | لَهُمَا |
| دنبي کریم صلی الله علیه وسلم په خدمت کي ناست وو خپلي اهمي معاملي کي یې خبری کولي او هغه خبري | | | | | | | | | |

حَتّٰى ذَهَبَ مِنَ اللَّيْلِ سَاعَةٌ فِيْ لَيْلَةٍ

دو مره اُوږدې شوې چه د هغه سلسله ډير ساعت يعني د شپې تر ډيرې حصې پورې جارې وه او هغه

شَدِيْدَةِ الظُّلْمَةِ ثُمَّ خَرَجَا مِنْ عِنْدِ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

شپه هم ډيره تياره [وه كله چه دا دواړه حضرات خپلو كورونو ته د بيرته تلو د پاره د نبي كريم ﷺ

يَنْقَلِبَانِ وَبِيَدِ كُلِّ وَاحِدٍ مِّنْهُمَا عُصَيَّةٌ فَأَضَاءَتْ عَصَا

نه پاسيدو سره د باندې ووتل نو هغه وقت د هغو دواړو سره د هر يو په لاس كې همسا وه هغو دواړو نه

أَحَدِهِمَا لَهُمَا حَتّٰى مَشَيَا فِيْ ضَوْئِهَا حَتّٰى إِذَا افْتَرَقَتْ

ديوه په لاس كې همسا روښانه شوه او د هغې په رڼا كې هغوى تلل تر دې پورې چه د دواړو لارې جدا

بِهِمَا الطَّرِيْقُ أَضَاءَتْ لِلْآخَرِ عَصَاهُ فَمَشٰى كُلُّ وَاحِدٍ

شوې نو د هغه دويم همسا هم روښانه شوه بيا هغوى دواړه د خپلې خپلې امسا په رڼا كې تلو سره خپل

مِّنْهُمَا فِيْ ضَوْءِ عَصَاهُ حَتّٰى بَلَغَ أَهْلَهُ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

اهل او عيال يعني خپلو كورونو ته ورسيدل. [بخاري]

**توضيح** : ينقلبان: يعنې د حضور ﷺ د مجلس نه واپس كور ته تلل، تر څو پورې چه د يوې آمسا په رڼا باندې كار كيدلو نو په دويمې كښې رڼا نه وه، دا دې خبرې ته اشاره ده چه اسراف جائز نه دى ليكن چه كله جدا كيدل نو اوس د بلې د رڼا ضرورت پيښ شو نو د هغه په آمسا كښې هم رڼايي راغله او كرامت ظاهره شو. كرامت د يو ولي د ولايت او عظمت دليل وي، نه د هغه د خدايي.

## د جابر رضي الله عنه پلار چې څه ويلي ؤ هغه رنګ وشول

﴿۲﴾ وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ لَمَّا حَضَرَ أُحُدٌ دَعَانِيْ أَبِيْ مِنَ اللَّيْلِ

او حضرت جابر رضي الله عنه وايي، كوم وقت چې جنګ احد پيښ شو، نو د شپې زه خپل پلار را وغوښتلم او

فَقَالَ مَا أُرَانِيْ إِلَّا مَقْتُوْلًا فِيْ أَوَّلِ مَنْ يُّقْتَلُ مِنْ أَصْحَابِ

هغه راته وويل، زما خيال دى، چې په دې جنګ كې د نبي كريم ﷺ كوم صحابه وژل كيږي په هغوى

النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَإِنِّيْ لَا أَتْرُكُ بَعْدِيْ

كې د ټولو نه اول وژل شوى سړى به زه يم او په دې كې شک نشته چې زه په ځان پسې هيڅ داسې سړى نه پريږدم

| |
|---|
| أَعَزَّ عَلَيَّ مِنْكَ غَيْرَ نَفْسِ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| چې ما ته د تا نه زيات عزيز وی، په غير د رسول کريم ﷺ د ذات گرامي نه، نو تا ته ويل غواړم چې |
| وَ إِنَّ عَلَيَّ دَيْنًا فَاقْضِ وَ اسْتَوْصِ |
| څما په ذمه ډيره قرضه ده هغه زر تر زره اداء کړه، او د خپلو خويندو په حق کې څما دا وصيت واوره چې د |
| بِأَخَوَاتِكَ خَيْرًا فَأَصْبَحْنَا فَكَانَ أَوَّلَ قَتِيْلٍ |
| هغوی سره ښه سلوک کوه جابر ﷛ وايي د هغه شپې نه روسته چې سهار شو نو څما پلار شهيد کيدونکو کې اول سړی و |
| وَدَفَنْتُهُ مَعَ آخَرَ فِيْ قَبْرٍ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ. |
| او ما هغه ديو بل سړی سره په قبر کې يو ځاي د فن کړو. |

**توضیح**: اول من يقتل: يعنې د شپې د حضرت جابر ﷛ والد صاحب حضرت عبد الله ﷛ خپل ځوی ته وويل چه د سبا په مقتولينو کښې به د ټولو نه اول زه يم او همداسې وشول، په دې جمله کښې کرامت ظاهر شو ځکه کوم څه يې چه ويلي وو هماغسې وشول.

## په طعام کې د زيات والي کرامت

| |
|---|
| ﴿۳﴾ وَعَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ أَبِي بَكْرٍ قَالَ إِنَّ أَصْحَابَ الصُّفَّةِ كَانُوْا أُنَاسًا فُقَرَاءَ |
| او حضرت عبد الرحمٰن ابن ابي بکر ﷠ وايي چه اصحاب صفه ﷡ مفلس خلق وو يوه ورځ |
| وَ إِنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ كَانَ عِنْدَهُ طَعَامُ اثْنَيْنِ |
| رسول الله ﷺ صحابو ﷡ ته وفرمائيل کوم سړي سره چې دوو کسانو طعام وي هغه دې |
| فَلْيَذْهَبْ بِثَالِثٍ وَمَنْ كَانَ عِنْدَهُ طَعَامُ أَرْبَعَةٍ فَلْيَذْهَبْ بِخَامِسٍ |
| دريم سړی د اصحاب صفه نه بوځي او کوم سړی سره چه د څلورو کسانو طعام وي هغه دې پنځم سړي |
| أَوْ سَادِسٍ وَ إِنَّ أَبَا بَكْرٍ جَاءَ بِثَلَاثَةٍ وَانْطَلَقَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| يا شپږم سړی نه بوځي حضرت ابوبکر صديق ﷛ دري کسان بوتلل او نبي کريم ﷺ |
| بِعَشَرَةٍ وَأَبَابَكْرٍ تَعَشَّى عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ لَبِثَ |
| لس ۱۰ کسان بوتلل او ابوبکر، د نبي ﷺ سره طعام وخوړلو وروسته د حضور ﷺ په خدمت کې حاضر وو |

حَتّٰى صُلِّيَتِ الْعِشَاءُ ثُمَّ رَجَعَ فَلَبِثَ حَتّٰى

تردي چه د ماخستن مونځ وشو روسته هم د حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ کورته راغی او هغه وقته پوري خدمت اقدس کي

تَعَشّٰى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَجَاءَ

حاضر وو ترڅو چې نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ طعام نه وو خوړلی دغه شان حضرت ابوبکر چې خپل کورته اورسيدو

بَعْدَ مَا مَضٰى مِنَ اللَّيْلِ مَا شَاءَ اللّٰهُ

نو د شپې څو مره حصه چه الله ! غوښته تيره شوې وه او تر هغه وقته پوري نه صرف د هغه اهل او

قَالَتْ لَهُ اِمْرَأَتُهُ وَمَا حَبَسَكَ عَنْ

عيال بلکه د هغه ميلمنو هم کورکي انتظار کولو د داخليدو سره ښځي ورته وويل څه شی ته د خپلو

اَضْيَافِكَ قَالَ اَوَمَا عَشَّيْتِيهِمْ قَالَتْ

ميلمنو نه منع کړئ حضرت ابوبکر, وويل آيا تا تر اوسه پوري ميلمنو ته ډوډي نه ده ورکړي ښځي وويل

اَبَوْا حَتّٰى تَجِيءَ فَغَضِبَ

دې ميلمنو ستاراتلو پوري د خوړلو نه انکار کړی وو حضرت ابوبکر, سخت غوسه شوځکه چه د هغوئ

وَ قَالَ وَ اللّٰهِ لَا اَطْعَمُهُ اَبَدًا

دا خيال راغی چه د کوروالو کوتاهي ده نو هغوئ وويل قسم په الله زه دا طعام هيڅ کله نه خورم بيا

فَحَلَفَتِ الْمَرْاَةُ اَنْ لَّا تَطْعَمَهُ وَحَلَفَ الْاَضْيَافُ

د هغه ښځي هم قسم وخوړلو چه هغه هم هيڅ کله دا طعام نه خوري او ميلمنو هم قسم وکړو چه هغوئ هم

اَنْ لَّا يَطْعَمُوْهُ قَالَ اَبُوْبَكْرٍ كَانَ هٰذَا مِنَ

هغه طعام نه خوري بيا څو لمحو نه روسته ابوبکر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وويل زما داسي غوسه کيدل او قسم خوړل

الشَّيْطَانِ فَدَعَا بِالطَّعَامِ فَاَكَلَ وَاَكَلُوْا

د شيطان د وسوسي په سبب وه هغه طعام راوغوښته او بيا ټولو خلقو طعام وخوړو حضرت ابوبکر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ

فَجَعَلُوْا لَا يَرْفَعُوْنَ لُقْمَةً اِلَّا رَبَتْ مِنْ اَسْفَلِهَا اَكْثَرَ مِنْهَا فَقَالَ

او د هغوی ميلمنو چې به لوښي نه خولي ته مړی اوچتوله د هغې په ځاي به طعام نور زياتيدلو حضرت ابوبکر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| قَالَتْ | هٰذَا | مَا | فِرَاسٍ | بَنِيْ | يَاأُخْتَ | لِامْرَاَتِهٖ |

خپله ښځه مخاطب كولو سره ووېل اى دبنو فراس خور! لږاو ګوره دا څه عجيبه معامله ده ښځې ورته ووېل

| | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| مِرَارٍ | بِثَلَاثِ | ذٰلِكَ | قَبْلَ | مِنْهَا | لَاَكْثَرُ | الْآنَ | اِنَّهَا | عَيْنِيْ | وَقُرَّةِ |

دخپلو ستركو په يخوالى دا دطعام لوښي څو مره چه مخكې ډك وو هغې نه درې چنده اوس زيات ډك دي

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَسَلَّمَ | عَلَيْهِ | اللهُ | صَلَّى | النَّبِيِّ | اِلَى | بِهَا | وَبَعَثَ | فَاَكَلُوْا |

بهر حال ټولو طعام وخوړه بيا حضرت ابوبكر ,هغه طعام د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خدمت كې هم ولېږه

| | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| مَسْعُوْدٍ | بْنِ | اللهِ | عَبْدِ | حَدِيْثُ | وَذُكِرَ | عَلَيْهِ. | مُتَّفَقٌ | مِنْهَا. | اَكَلَ | اَنَّهٗ | فَذُكِرَ |

اوبيان كېږي چه حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هم د هغې طعام نه وخوړلو. [بخاري و مسلم] او د حضرت عبدالله ابن. مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ

كُنَّا نَسْمَعُ تَسْبِيْحَ الطَّعَامِ فِي الْمُعْجِزَاتِ.

روايت: كُنَّا نَسْمَعُ تَسْبِيْحَ الطَّعَامِ: باب المعجزات كې نقل شوى دى

**توضيح**: **اصحاب الصفة**: دا د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د مدرسې د طالب علمانو تعارف دى ،نن سبا په مسجد نبوى كښې يو مربع شكل ځاى دى د هغه نوم صفه دى ، دا ځاى د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د روضې شاته دى ، دا مدرسه د مختلفو اغراضو لپاره قائم شوې وه ، په ايمرجنسى كښې دا جهادى مدرسه وه . طالبان به جهاد ته وتل ، ګويا دا د محاذ جنګ لپاره قطعه منتظره وه ، كچيرې د جنګ زمانه به نه وه نو دغو طالبانو به د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ څخه علم زده كولو ، د خپلې خېټې پاللو لپاره به يې د ځنګل نه لرګي راوړل او په بازار كښې به يې خرڅول ، ددې طالبانو تعداد به كله ۸۰ او كله به د ۴۰۰ پورې رسيده ، حضرت ابوهريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دلته طالب العلم وو . حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د كلى په خلكو باندې ددوى خوراك مقرر كړى وو چه په كوم كور كښې د څومره كسانو خوراك تيارېږي هغه دې د اصحاب صفه نه يو طالب العلم هم د ځان سره بوځي او ډوډۍ دې پرې وخوري، په زير بحث قصه كښې حضرت ابوبكر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خپل ځان سره درې كسان بوتلل او نبى كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لس بوتلل، د نن سبا د طالبانو د وظيفو جمع كولو او د كورونو څخه د راوړلو فى الجمله ثبوت ملاوېږي لكه څنګه چه په صوبه سرحد وغيره كښې دي ، اګرچه اصحاب صفه يې كورونو ته بيول ليكن په كليوالو باندې د هغوى وظيفه مقرر وه ، په هر حال يو څه ثبوت ملاوېږي چه دا كافى ده .

**اوماعشيتهم**: يعني تر اوسه پورې دې د ماښام ډوډۍ ورباندې خوړلې نه ده ؟

**ابوا:** یعني میلمنو انکار وکړو چه تر څو پورې ته راغلی نه یې دوی ډوډۍ نه خوري.

**لا اطعمه:** یعني ابوبکر رضي الله عنه قسم وخوړ او ویې ویل چه زه به اوس د دوی سره ډوډۍ نه خورم، ام رومان رضي الله عنها هم وویل چه قسم په الله زه به هم ډوډۍ نه خورم، ملیمنو هم د نه خوړلو قسم وکړو.

**ربت:** یعني د پاسه نه مونږ خوړلو او لاندې به ډوډۍ پیدا کیدله.

**یا اخت بنی فراس:** حضرت ام رومان رضي الله عنها د ابوبکر صدیق رضي الله عنه بی بی وه او د حضرت عائشې رضي الله عنها مور وه او د بنی فراس قبیلې سره د هغې تعلق وو په دغه نسبت سره ابوبکر صدیق رضي الله عنه ورته آواز وکړو، په دې قصه کښې کرامت ظاهره شو.

## د نجاشي په قبر د نور کرامات ظاهر شو

| |
|---|
| ﴿۴﴾عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ لَمَّا مَاتَ النَّجَاشِيُّ كُنَّا نَتَحَدَّثُ أَنَّهُ لَايَزَالُ |
| بي بي عائشه رضي الله عنها وايي دنجاشي د وفات نه روسته زمونږ په منځ کې د دې خبرې چرچا وه چه د |
| يُرٰى عَلٰى قَبْرِهٖ نُوْرٌ. رَوَاهُ أَبُوْدَاوُدَ. |
| نجاشي په قبر همیشه نور ښکاریږي. |

**توضیح:** نجاشی د حبشې بادشاه وو، مسلمان شوی وو د صحابو خدمت یې کړی وو. په وفات کیدو باندې یې حضور صلی الله علیه وسلم جنازه وکړه، ملائکو یې جنازه د هغه مخې ته ایښې وه یا حجابات لرې شوي وو، د هغه د وفات کیدو نه بعد د هغه د قبر نه شعلې پورته کیدلې، د مدینې منورې خلکو په تلو راتلو کښې دغه نور ولیدلو، همدا حضرت عائشې رضي الله عنها بیانوي، په دې کښې کرامت ظاهر شو.

## جسد اطهر ته غسل ورکونکو ته د غیب نه رهنمایي

| |
|---|
| ﴿۵﴾ وَعَنْهَا قَالَتْ لَمَّا أَرَادُوْا غُسْلَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالُوْا |
| او بي بي عائشه رضي الله عنها وايي چې د نبي کریم صلی الله علیه وسلم جسد اطهر ته د غسل ورکولو اراده وکړې شوه نو هلته |
| لَا نَدْرِيْ أَنُجَرِّدُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ ثِيَابِهٖ |
| دا سوال راپورته شو چه آیا د رسول الله صلی الله علیه وسلم کپړې دې هم داسې وایستل شي لکه څرنګه چه مونږ |
| كَمَا نُجَرِّدُ مَوْتَانَا أَمْ نَغْسِلُهٗ وَعَلَيْهِ ثِيَابُهٗ فَلَمَّا اخْتَلَفُوْا أَلْقَى اللّٰهُ |
| کله چه دې سوال باندې صحابه، کې د اختلاف رایی اظهار وشو، نو الله تعالی هغه ټولو |

عَلَيْهِمُ النَّوْمَ حَتّٰى مَا مِنْهُمْ رَجُلٌ إِلَّا وَذَقَنُهُ فِيْ صَدْرِهِ

خلقو باندي خوب راوسته تردي پوري چه هلته هيڅ یو سړی پاتې نه شو چه د هغه زنه د هغه سینه

ثُمَّ كَلَّمَهُمْ مُّكَلِّمٌ مِّنْ نَّاحِيَةِ الْبَيْتِ لَا يَدْرُوْنَ

باندي نه وي راغلي او بيا خلقو د کور د یو ګوټ نه داسي آواز واوریده چه هغه نه خلق بالکل نا واقف

مَنْ هُوَ اِغْسِلُوا النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَعَلَيْهِ ثِيَابُهُ

وو هغه وويل نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته کالو کي د ننه غسل ورکړئ نو ټول خلق د دې آواز اوریدو سره هوښیار

فَقَامُوْا فَغَسَلُوْهُ وَعَلَيْهِ قَمِيْصُهُ يَصُبُّوْنَ

شو او راپاڅیدل او د نبي عَلَيْهِ السَّلَام جسم مبارک ته یې کپړو کي د ننه داسي غسل ورکړلو چه هغه وقت

الْمَاءَ فَوْقَ الْقَمِيْصِ وَيَدْلُكُوْنَهُ بِالْقَمِيْصِ.

جسم اطهر باندي کوم قمیص وو په هغه به یې اوبه اچولي او په قمیص به یې بدن مبارک مښلو دا

رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِيْ دَلَائِلِ النُّبُوَّةِ.

روایت بیهقي د لائل النبوة کي نقل کړی دی

**توضیح** : (اغسلوا) کوم شخص چه په غائبانه طور باندې راهنمائی کړې وه علماوو لیکلي دي چه حضرت خضر علیه السلام وو، په صحابه کرامو باندې د خوب طاری کیدل او د کور د کونج نه وازراتلل دا ټول کرامات دي، که ددې نسبت حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته وکړې نو دا د هغه معجزه ده او که ددې نسبت صحابه کرامو ته وکړې نو دا کرامت دی.

علماوو لیکلي دي چه د امت د یو فرد نه د کرامت ظاهریدل د نبي لپاره د معجزې حیثیت لري، په زیر بحث حدیث کښې تصریح ده چه حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته د کپړو سره غسل ورکړی شو اګرچه علامه نووی رحمه الله لیکلي دي د کپړو سره حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته غسل ندی ورکړی شوی زیر بحث حدیث ضعیف دی، په هر حال دا د علامه نووی رحمه الله خیال دی او د هغوی تحقیق دی. ملا علی قاری رحمه الله وغیره په دې باندې هیڅ لیکلي نه دي.

## د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د آزاد کرده غلام سفینه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ کرامت

﴿٦﴾ وَعَنِ ابْنِ الْمُنْكَدِرِ أَنَّ سَفِيْنَةَ مَوْلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

حضرت ابن منکدر رَحِمَهُ اللهُ بیان کوي یو وار د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ آزاد کرده غلام حضرت سفینه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ

أَخْطَأَ الْجَيْشَ بِأَرْضِ الرُّومِ أَوْ أُسِرَ فَانْطَلَقَ هَارِبًا

رومي علاقه کي دلښکر لار تري غلطه شوه يا د دښمن په لاس ونيول شو بيا هغه د دښمن د قبضي نه

يَلْتَمِسُ الْجَيْشَ فَإِذَا هُوَ بِالْأَسَدِ

وتختيدو او د خپل لښکر په تلاش پسي شو دي دوران کي [يو ځنګل کي] هغه يو لوئی زمري سره

فَقَالَ يَا أَبَا الْحَارِثِ

مخ شو هغه نه صرف دا چې خپل کيفيت يي بحال وساته بلکه د کنيت په ذريعه وويل ای ابو حارث!

أَنَا مَوْلَى رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ مِنْ أَمْرِيْ كَيْتَ وَكَيْتَ

زه د رسول الله ﷺ آزاد کړده غلام يم او ماته دا واقعه پيښه شوې ده چه زمانه د خپل لښکر لار

فَأَقْبَلَ الْأَسَدُ لَهُ بَصْبَصَةٌ حَتَّى قَامَ إِلَى جَنْبِهِ كُلَّمَا

ورکه شوی ده زمرې د دي اوريدو سره لکئ و خوځوله راغی د هغه سره اودريدلو بيا چه ديو

سَمِعَ صَوْتًا أَهْوٰى إِلَيْهِ ثُمَّ أَقْبَلَ يَمْشِيْ

طرف نه به د څه خوفناک درنده وغيره آواز راغی نو زمري به د هغه آواز طرف ته ورغروهل او بيا به

إِلَى جَنْبِهِ حَتَّى بَلَغَ الْجَيْشَ

وروسته راتلو دغه شان هغه زمری د سفينه, سره ښخنک په ښخنک ورسره تلو تر دي چه سفينه رضی الله عنه

ثُمَّ رَجَعَ الْأَسَدُ. رَوَاهُ فِيْ شَرْحِ السُّنَّةِ.

خپل لښکر ته ورسيده او زمری بيرته ترينه لاړو.

**توضيح**: سفينة: د حضرت ام سلمه رضی الله عنها يو غلام وو ، ام سلمه رضی الله عنها وغوښتل چه هغه آزاد کړئ مګر شرط يې دا کيښودو چه د حضور ﷺ په خدمت کښې به پاتې کيږي ، هغه وويل چه تاسو ما آزاد کړی او شرط مه لګوئ د شرط نه بغير به د حضور ﷺ په خدمت کښې پاتې کيږم ، هغه غلام حضرت سفينه رضی الله عنه وو ، په هر حال حضرت سفينه رضی الله عنه ته آزادی ملاوو شوه ، بيا په شام کښې د صحابه کرامو سره په يوه جهاد کښې د هرقل فوجيانو د يو څو صحابه کرامو سره يو ځای بندی کړو ، د شپې حضرت سفينه رضی الله عنه په څه طريقه د کفارو د قيد نه آزاد شو او د مسلمانانو د کيمپ په طرف روان شو ، د شپې تياره وه لاره ترينه غلطه شوه هلته ورته د ځناورو خطره لاحقه شوه نو حضرت سفينه رض د زمری سره کلام وکړو او صورت حال يې ورته ووېلو ، چه

ای ابوالحارث ! زه د رسول الله صلی الله علیه وسلم غلام یم لاره مې هیره کړې ده ، په دې سره زمرې لکۍ وخوځوله او د هغه د حفاظت لپاره یې پیره شروع کړله ،کله به مخکې تللو او کله به وروسته شولو تر څو کوم ځناور ورته نقصان ونه رسوي تر دې چه هغه یې فوجي کیمپ ته ورسولو چه پدې سره د حضور اکرم صلی الله علیه وسلم د آزاد کرده غلام حضرت سفینه رضی الله عنه کرامت ظاهره شو .

د حضرت سفینه رضی الله عنه اصلي نوم هیچا ته معلوم نه دی د جهاد په یو سفر کښې هغه د خپل سامان سره د ملګرو سامان هم پورته کړلو او بیا یو د ملګري مخې ته راتللو او خپل سامان به یې په ده باندې راوړلو او ده به پورته کولو ، په دغه حالت کښې حضور صلی الله علیه وسلم و فرمایل (الت السفینة) یعنې په سامان پورته کولو کښې خو ته کشتۍ یې ، د همدې وخت نه د هغه نوم غائب شو او همدا لقب مشهوره شو ، تبلیغي حضرات په خپلو بیانونو کښې وایې چه حضرت سفینه رضی الله عنه د تبلیغ لپاره تللی وو او وګورئ د تبلیغ په لاره کښې ځناور څرنګه کومک کوي ؟ د دغو حضراتو دا بیان غلط دی هغوی ته په حدیث کښې تحریف کول پکار نه دي او که نه نو د الله په حضور کې به د غلط بیانۍ جواب ورکوي او جواب جوړېدلی نشي . په حدیث کښې د لشکر ذکر دی .

له بصبصة: سپی یا زمری یا ځناور چه کله د اطاعت او خوشحالۍ اظهار کوي نو هغه لکۍ خوځوي همدې ته بصبصة وایې ، یعنې زمری لکۍ خوځوله او راغی او هغه یې په حفاظت سره ښار ته ورساوه ، علامه بوصیری رحمه الله په قصیده برده کښې فرمایې :

ومن تکن برسول الله نصرته ان تلقه الاسد فی آجامها تجم

## د حضور صلی الله علیه وسلم د روضې نه کرامت ظاهر شو

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۷﴾ وَعَنْ | اَبِي | الْجَوْزَاءِ | قَالَ | قُحِطَ | أَهْلُ | الْمَدِيْنَةِ | قَحْطًا شَدِيْدًا |
| او ابو الجوزاء وایي یو ځل د خشک سالۍ په وجه مدیني والا سخت قحط کي مبتلا شو نو هغوی | | | | | | | |
| فَشَكَوْا | إِلَى | عَائِشَةَ | فَقَالَتِ | انْظُرُوْا | قَبْرَ | | |
| اُم المومنین بي بي عائشي رضی الله عنها ته د خپل مُصیبتونو او پریشانیو ذکر او کړ بي بي عائشي ورته | | | | | | | |
| النَّبِيِّ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ | فَاجْعَلُوْا | مِنْهُ | كُوًى |
| وویل چه تاسو د نبي کریم صلی الله علیه وسلم قبر مبارک ته رجوع وکړئ او د حجري د بام نه څه سوری [سوراخ] | | | | | | | |
| إِلَى | السَّمَاءِ | حَتَّى | لَايَكُوْنَ | بَيْنَهُ | وَبَيْنَ | السَّمَاءِ | |
| آسمان طرف ته داسي خلاص پرېږدئ چه د قبر شریف او آسمان په منځ کي بام حائل نشي نو خلقو د | | | | | | | |

سَقْفٌ فَفَعَلُوْا فَمُطِرُوْا مَطَرًا حَتّٰى نَبَتَ الْعُشْبُ
بي بي عائشي رضي الله عنها دوينا مطابق عمل وکړو، بيا چه باران وشو نو دومره شينکې راشنه شوه [چه بنه
وَسَمِنَتِ الْإِبِلُ حَتّٰى تَفَتَّقَتْ مِنَ الشَّحْمِ
ډيرو خوړلو سره] او ښان ښاربه شول تردي پورې چه دوازګې د زياتي په وجه د هغوى تشي اوپړسيدل
فَسُمِّيَ عَامَ الْفَتْقِ. رَوَاهُ الدَّارِمِيُّ.
او دهغه کال نوم [فتق] کيخودل شو.

**توضيح**: (کوى) ورکوتې کړکۍ ته وايې، حضور اکرم صلى الله عليه وسلم د حضرت عائشې - په حجره کښې مدفون دى، د حجرې لپاره چت دى په دغه چت کښې يوه وړوکې کړکۍ خلاصه شوې وه تر څو د آسمان او قبر تر مينځ کوم حائل نه وي، د حضرت عائشې رضي الله عنها مطلب يا خو دا وو چه کله آسمان د حضور صلى الله عليه وسلم قبر وګوري نو وبه ژاړي نو باران به وشي چه ديته د (**فمابکت عليهم السماء**) څخه اشاره ملاويږي چه په انبياوو او صلحاوو باندې آسمان ژړيږي. يا د حضرت عائشې رضي الله عنها مطلب دا وو چه حضور صلى الله عليه وسلم به د هغه په ژوند کښې په طور د سفارش پيش کولى شو نو باران به کيده اوس په طور د شفاعت قبر چه کله ظاهر کړى شي نو باران به وشي، لکه همداسې وشول، په دې کښې د حضرت عائشې رضي الله عنها کرامت هم دى، د روضه اطهر کرامت هم دى چه په حقيقت کښې د نبى معجزه وي.

(**تفتقت**) فتق چاودېدلو او خوريدلو ته ويل کيږي، د زياتو شنو خوړلو په وجه د حيواناتو خيټې پړسيږي ګويا هغه چوي، بيا د دغه کال نوم هم په دغه وجه عام الفتق شو.

## د روضه اطهر نه يو بل کرامت ښکاره شوى ده

﴿۸﴾ وَعَنْ سَعِيْدِ بْنِ عَبْدِ الْعَزِيْزِ قَالَ لَمَّا كَانَ أَيَّامُ الْحَرَّةِ لَمْ يُؤَذَّنْ فِيْ مَسْجِدِ
او حضرت سعيد ابن عبد العزيز رحمه الله بيان کوي چه د واقعه حرّه ورځو کې درې ورځو پورې مسجد
النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثَلَاثًا وَلَمْ يُقَمْ وَلَمْ يَبْرَحْ
نبوى صلى الله عليه وسلم کې نه اذان وشو او نه تکبير وشو او نه حضرت سعيد ابن مسيب رحمه الله مسجد نه د باندې
سَعِيْدُ ابْنُ الْمُسَيِّبِ الْمَسْجِدَ وَكَانَ لَا يَعْرِفُ وَقْتَ الصَّلَاةِ إِلَّا بِهَمْهَمَةٍ
راوتلاى شو حضرت سعيد ابن مسيب رحمه الله به د مونځ وخت صرف هغه کرار [آهسته] ګنې ګنې په

| يَسْمَعُهَا مِنْ قَبْرِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. رَوَاهُ الدَّارِمِيُّ . |
|---|
| شان آواز نه شناخت کوه چه د حضور ﷺ د قبر مبارک داخل نه راتلو سره به یي اوریده .[ دارمی ] |

**توضیح** : (ایام الحرة) یزید بد قسمته د شام نه یو لښکر لیږلی وو تر څو د اهل مدینه څخه د یزید لپاره بیعت واخلي او که نه نو په هغو باندې به حمله کوي او مدینه به تاراج کوي ، د حره په واقعه کښې د اهل مدینه سره د شامیانو سخت جنګ وشو او د مدینې لوی لوی صحابه شهیدان شول . په دغه موقع باندې مدینه په تاریکیو کښې ډوبه شوه ، نه به د ورځې پته لګیدله او نه د شپې ، په دې کښې د لمونځونو د اوقاتو مسئله پیدا شوله نو د روضه اطهر نه به د لمانځه په وخت کښې به د فریاد آواز پورته کیده چه د دینه به پته لګیدله چه د لمانځه وخت شو .

**همهمة**: کمزوري آواز ته ویل کیږي یعنې د فریاد پشان آواز به کیدلو .علامه الوسی رحمه الله په خپل تفسیر روح المعانی کښې پاره ۲۶ ص ۷۲ باندې د یزید مظالم ذکر کړي دي او په کربلا کښې د شهیدانو سرونه په شام کښې یزید ته لیږل او د یزید خوشحالیدل بلکه کلمه د کفر ویل په دې شان بیان شوي دي ، یو څو اشعار ملاحظه کړئ :

**لما بدت تلک الحمول و اشرفت تلک الرووس علی شفا جیرون**

ترجمه : چه کله د جیرون علاقې په کناره باندې دغه سوارلی او په هغو باندې راوړلی شوی سر ظاهره شو .

**لعب الغراب فقلت قل او لا تقل فقد اقتضیت من الرسول دیونی**

ترجمه : نو کارغه کاغ کاغ شروع کړو ، ماهغه ته وویل که ته کاغ کاغ کوې یا نه ما د رسول څخه د خپلو مقتولینو بدله واخیستله .

د علامه آلوسی رحمه الله خیال دی چه دا اشعار ثابت دي لهذا یزید کافر دی لیکن د جمهورو علماوو په نزد یزید کافر نه دی ، فاسق او فاجر دی ، دا اشعار یې په تفسیر مظهری جلد ۵ صفحه ۲۷ کښې هم لیکلي دي .

د قسطنطنیه په جهاد کښې حضرت معاویه ، یزید ولیږلو مگر هغه بهانه وکړه او ویې ویل چه زه مریض یم ، هلته لښکر ته سخت تکلیف ورسیده نو یزید په طور د خوشحالۍ دا اشعار وویل :

**لست ابالی بما لاقت جموعهم بفرقدونة من حُمّی و من موم**

ترجمه : په مقام فرقدونه کښې چه مجاهدینو ته کومه تبه ورسیده او د هغوی شونډې وچاودې ما ته د هغې هیڅ پرواه نشته .

اذا جلست علی الانماء متکأ　　بدیر مروان عند ام کلثوم

ترجمه : چه کله زه په دیر مروان کښې په قالینونو باندې د ام کلثوم سره تکیه کونکی کینم .

حضرت معاویه , ته چه کله معلومه شوه چه هغه په دوکې سره پاتې شوی دی نو هغه دوباره حکم جاری کړلو او هغه یې په دغه غزوه کښې ولیږه ، دا امیر هم پاتې شو مګر اعتبار آخری انجام ته دی ! هغه ته څه حق حاصل وو چه د حضرت حسین , په شهادت رسولو سره حکومت وکړي او په بیت الله باندې بمباري کولو سره حکومت حاصل کړي . د حره دغه واقعه په سنه ۶۳ھ کښې پېښه شوې وه او څه وخت بعد یزید مړ شو ، یو څه تفصیلات په آینده کښې د فضائل حسین , لاندې راځي .

## د حضرت انس رضی الله عنه نه کرامت ښکاره شو

| |
|---|
| ﴿۹﴾ وَعَنْ أَبِيْ خَلْدَةَ قَالَ قُلْتُ لِأَبِي الْعَالِيَةِ سَمِعَ أَنَسٌ |
| او حضرت ابو خلده رحمه الله وایي ما د حضرت ابو العالیه رحمه الله نه پوښتنه وکړه آیا حضرت انس رضی الله عنه |
| مِنَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ؟ قَالَ خَدَمَهُ |
| د نبي کریم صلی الله علیه وسلم نه حدیثونه آوریدلي دي؟ حضرت ابو العالیه رحمه الله جواب راکړو، حضرت انس رضی الله عنه |
| عَشْرَ سِنِيْنَ وَدَعَا لَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| ته د حضور صلی الله علیه وسلم په خدمت کي د لس ۱۰ کاله پاتي کیدو شرف حاصل شوی دي او هغه ته د حضور صلی الله علیه وسلم |
| وَكَانَ لَهُ بُسْتَانٌ يَحْمِلُ فِيْ كُلِّ سَنَةٍ اَلْفَاكِهَةَ مَرَّتَيْنِ |
| دُعا قبوله شوې ده د هغه چه کوم باغ وو هغه به په کال کي دوه واره میوه کوله او هغه باغ کي چه کوم |
| وَكَانَ فِيْهَا رَيْحَانٌ يَجِيْءُ مِنْهُ رِيْحُ الْمِسْكِ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ |
| ګلونه وو هغه نه به د مشکو په شان خوشبویي راتله دا روایت ترمذی رحمه الله نقل کړی دی او ویلي |
| وَقَالَ هٰذَا حَدِيْثٌ حَسَنٌ غَرِيْبٌ. |
| یي دي چه دا حدیث حسن غریب دی. |

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## د حضرت سعید ابن زید رضی الله عنه کرامت

| |
|---|
| ﴿۱۰﴾ وَعَنْ عُرْوَةَ بْنِ الزُّبَيْرِ أَنَّ سَعِيْدَ بْنَ زَيْدِ بْنِ عَمْرِو |
| حضرت عروه ابن زبیر بن العوام بیان کوي چه اروی بنت اُوس ته حضرت سعید ابن زید بن عمرو |

31

بْنِ نُفَيْلٍ خَاصَمَتْهُ أَرْوٰى بِنْتُ أَوْسٍ إِلٰى مَرْوَانَ بْنِ الْحَكَمِ

بن نفیل رَضِیَ اللّٰہُ عَنْهُ سره جګړه وشوه نو د هغه خلاف فریاد اخستلو سره د مروان ابن حکم عدالت ته ورغله

وَادَّعَتْ أَنَّهُ أَخَذَ شَيْئًا مِّنْ أَرْضِهَا فَقَالَ سَعِيْدٌ

اروٰی دعوه وکړه چه سعید ابن زید رَضِیَ اللّٰہُ عَنْهُ زما یوه ټوټه ځمکه په زور لاندې کړې ده حضرت سعید رَضِیَ اللّٰہُ عَنْهُ

أَنَا كُنْتُ آخُذُ مِنْ أَرْضِهَا شَيْئًا بَعْدَ الَّذِيْ سَمِعْتُ مِنْ رَّسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

دې دعوې آوریدو سره وویل د رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د ارشاد آوریدو نه روسته دا څرنګه کیدی شي چه

قَالَ مَاذَا سَمِعْتَ مِنْ رَّسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

زه د دې ښځې ځمکه لاندې کړم مروان پوښتنه وکړه تا د رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه څه اوریدلي دي

قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ مَنْ أَخَذَ شِبْرًا

حضرت سعید رَضِیَ اللّٰہُ عَنْهُ ورته بیان وکړو ما د رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه دا آوریدلي دي که یو سړي د چا یوه لویشت اندازه

مِّنَ الْأَرْضِ ظُلْمًا طُوِّقَهُ إِلٰى سَبْعِ أَرَضِيْنَ

ځمکه هم په زور سره ونیسي نو الله تعالٰی د هغه ځمکې د اوو (۷) طبقو طوق جوړولو سره د هغه سړې

فَقَالَ لَهُ مَرْوَانُ لَا أَسْئَلُكَ بَيِّنَةً بَعْدَ هٰذَا

په غاړه کې واچوی مروان حضرت سعید رَضِیَ اللّٰہُ عَنْهُ ته وویل دې دلیل نه روسته زه د دې څه ضرورت نه

فَقَالَ سَعِيْدٌ اَللّٰهُمَّ إِنْ كَانَتْ كَاذِبَةً فَاَعْمِ بَصَرَهَا

لرم چه ستا نه نوره ګواهي طلب کړم او هغه وویل ای الله! که دا ښځه دروغجنه وي نو بینایي یې

وَاقْتُلْهَا فِيْ أَرْضِهَا قَالَ فَمَا مَاتَتْ حَتّٰى ذَهَبَ بَصَرُهَا

واخله او د دې په ځمکه کې مرګ ورکړې حضرت عروه رَحِمَهُ اللّٰهُ بیان کوي د مرګ نه مخکې هغه ښځه

وَبَيْنَمَا هِيَ تَمْشِيْ فِيْ أَرْضِهَا إِذْ وَقَعَتْ فِيْ حُفْرَةٍ فَمَاتَتْ.

ړنده شوې وه یوه ورځ مذکوره ځمکه کې روانه وه اچانک یوه کنده کې وغورځیده او هم هلته مړه

مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. وَفِيْ رِوَايَةٍ لِّمُسْلِمٍ عَنْ مُّحَمَّدِ بْنِ زَيْدِ بْنِ عَبْدِ اللهِ

شوه. [بخاری و مسلم] او مسلم یو روایت کې چه حضرت محمد صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بن زید بن عبد الله

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| بْنِ | عُمَرَ | بِمَعْنَاهُ | وَإِنَّهُ | رَآهَا |

ابن عُمر نه دا روايت هم معنیٰ منقول دی داسي چه محمد رَحِمَهُ اللّٰهُ ابن زيد يوه ورځ وليدل چه

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| عَمْيَاءَ | تَلْتَمِسُ | الْجُدُرَ | تَقُولُ | أَصَابَتْنِي | دَعْوَةُ | سَعِيدٍ |

هغه ښځه ړنده شوې وه او ديو ديوال په سهاره روانه وه او ويل يي چه ماته د سعيد ابن زيد رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ بد دُعا

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَأَنَّهَا | مَرَّتْ | عَلَى | بِئْرٍ | فِي | الدَّارِ | الَّتِي | خَاصَمَتْهُ |

رسيدلي ده او بيا داسي وشو چه يوه ورځ هغه هغه کوهي [يعني ژوري کندې] سره تيريدله چه

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| فِيهَا | فَوَقَعَتْ | فِيهَا | فَكَانَتْ | قَبْرَهَا. |

هغه مذکوره ځمکه کي واقع وو ناڅا په هغه کي ولويده او هغه کوهي د هغي قبر جوړ شو.

**توضيح**: حضرت سعيد بن زيد رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ شان والاصحابی دی، دعشره مبشره څخه دی، مذکوره ښځې په هغه باندې دعوه کړې وه چه ده زما ځمکه قبضه کړې ده. **لااسئلک بينة**: يعني زه منمه چه ددې حديث يادساتلو سره تاځمکه قبضه کړې نه ده (ليکن دقانون کاروائی ضروری ده يا به ګواه وي يا به قسم وي) په دې باندې حضرت سعيد بن زيد رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ ځمکه ترک کړه او دغې بد قسمته ښځې ته يې بښيراو کړه، نتيجه يې داشوه چه هماغه ځمکه دهغې ښځې لپاره قبرشو او بی ګور و کفنه ړنده په يوې ګنده کندې کې ولويده او مړه شوه. علامه طيبی رحمه الله چونکې شافعی دی هغه فرمايې چه کله د حضرت سعيد رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ سره ګواه نه وو نو د هغه نه قسم وغوښتلی شو او مروان وويل چه اوس بينه نشته نوصرف قسم کافی دی، په هرحال خبره هماغه ده چه حضرت سعيد رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قصه ختمه کړه، هائ افسوس! مروان حاکم دی او صحابي چې دعشره مبشره څخه دی دعدالت په ځای کې ولاړدی.

## د حضرت عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ کرامت

| | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۱۱﴾ وَعَنِ | ابْنِ | عُمَرَ | أَنَّ | عُمَرَ | بَعَثَ | جَيْشًا | وَأَمَّرَ | عَلَيْهِمْ | رَجُلًا | يُدْعٰى |

اوحضرت ابن عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ راوی دي چه حضرت عمر, کوم لښکر ليږلي وو د هغه دفوج سپه سالار

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| سَارِيَةُ | فَبَيْنَمَا | عُمَرُ | يَخْطُبُ | فَجَعَلَ |

ساريه نومي يو سړی جوړ کړی وو [يوه ورځ] چه فاروق اعظم رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ [مسجد نبوی صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ کي] خطبه

| | | | |
|---|---|---|---|
| يَصِيحُ | يَا | سَارِيَ | الْجَبَلَ |

ارشاد فرمائيله نو هغوئ [دوران خطبه کي] اچانک په چغه ويل شروع کړل چه ساريه! دغره طرف

| الْجَيْشِ | مِّنَ | رَسُوْلٌ | فَقَدِمَ |
|---|---|---|---|

ته ولاړ شه دې آوريدو سره خلقوته ډير تعجب وشو اوبيا چې کله د لښکر نه يو قاصد راغی او هغه

| عَدُوَّنَا | لَقِيْنَا | الْمُوومِنِيْنَ | أَمِيْرَ | يَا | فَقَالَ |
|---|---|---|---|---|---|

وويل چه اميرالموو منين! دښمن خو مونږ راګير کړي وو او مونږ شکست سره مخ کيدونکي وو چه

| الْجَبَلَ | يَاسَارِيَ | يَصِيْحُ | بِصَائِحٍ | فَإِذَا | فَهَزَمُوْنَا |
|---|---|---|---|---|---|

اچانک زمونږ په غوږونو کې د يو سړي آواز راغی چه په چغه يې وويل ساريه! دغره طرف ته ولاړ شه

| الْجَبَلِ | إِلَى | ظُهُوْرَنَا | فَأَسْنَدْنَا |
|---|---|---|---|

مونږ خپله مورچه پريښو ده او غره طرف ته تللو سره غرمو خپل پشت پناه جوړ کړلو او بيا الله تعالی

| فَهَزَمَهُمُ اللهُ. رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِيْ دَلَائِلِ النُّبُوَّةِ. |
|---|

دشمنانو ته شکست ورکړلو . دا روايت بيهقي د لائل النبوة کې نقل کړی دی.

**توضيح** : **ياساري**: د دغه صحابی نوم سارية وو ليکن دلته د ترخيم المنادی په طور باندې د هغه نوم ياساري اخيستل شوی دی . **الجبل**: يعنې د غره خواته شه ، غر د شا خواته کړئ ، د فارس په معرکو کې د قادسيې معرکه او د نهاوند معرکه د مشهور ترينو معرکو څخه دي ، د نهاوند په معرکه کښې دښمن د شا له طرفنه حمله کولو والا وو چه حضرت عمر , د خطبې په دوران کښې په منبر نبوی باندې آواز وکړو چه د غره خواته شا کړئ يا يې وفرمايل د غره لخوا خطره ده ، خلک د دې بې جوړه خبرې نه حيران شول چه د جمعې په خطبه کښې د دې کلام څه مطلب دی ؟ ليکن چه کله د هغه ځای نه خلک راغلل او په ميدان جنګ کې يې د آواز اوريدلو قصه بيان کړه نو بيا په حقيقت باندې پوهه شو . په دې يوه واقعه کې د حضرت عمر رضي الله عنه څو کرامات ظاهره شو ، اول کرامت دا چه هغه په نهاوند کښې د ميدان جنګ نقشه د زړه او ميله لرې نه وليده ، دويم کرامت دا چه د مدينې څخه د هغه آواز دومره لرې ورسيده ، دريم کرامت دا چه د جنګ نقشه هغه د مدينې منورې نه بدله کړه چه د هغې په برکت سره الله تعالی فتحه عطاء کړه . معلومه شوه چه د مسلمانانو عبادت لکه څنګه چه لمونځ ، روژه او حج دي همدارنګه جهاد هم سنت پيغمبری او عبادت دی ، يو چا ښتيا ويلي :

جنګ شاہاں فتنہ وغارت گری است　　　جنګ مومن سنت پیغمبری است

## د حضرت کعب احبار رضی اللہ عنہ کرامت

| |
|---|
| ﴿۱۲﴾ وَ عَنْ نُبَيْهَةَ بْنِ وَهْبٍ أَنَّ كَعْبًا دَخَلَ عَلَى عَائِشَةَ |
| او حضرت نبیهه بن وهب بیان کوي چه یوه ورځ حضرت کعب احبار د اُم المو منین بي بي عائشي رضی اللہ عنہا |
| فَذَكَرُوْا رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ فَقَالَ كَعْبٌ |
| په خدمت کي حاضر شو او هر کله چه هغه مجلس کي د رسول الله صلی اللہ علیہ وسلم ذکر وشو نو حضرت کعب ووېل |
| مَا مِنْ يَوْمٍ يَطْلَعُ إِلَّا نَزَلَ سَبْعُوْنَ أَلْفًا مِّنَ الْمَلَائِكَةِ |
| هیڅ ورځ داسي نه تیرېږي مګر نمرختو سره اویا زره ۷۰۰۰۰ فرشتي د آسمان نه راخکته کیږي |
| حَتَّى يَحُفُّوْا بِقَبْرِ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ |
| او هغه فرشتي د رسول الله صلی اللہ علیہ وسلم قبر شریف باندي راکوزې شي قبر په خپله دائره کې واخلي |
| يَضْرِبُوْنَ بِأَجْنِحَتِهِمْ وَ يُصَلُّوْنَ عَلَى رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ |
| او خپلو وزرونو سره قبر وهي او رسول الله صلی اللہ علیہ وسلم باندې درود شریف وایي تردي پورې چه |
| حَتَّى إِذَا أَمْسَوْا عَرَجُوْا وَهَبَطَ مِثْلُهُمْ فَصَنَعُوْا مِثْلَ ذٰلِكَ |
| مابنام شي نو هغه فرشتي آسمان ته ولاړې شي او [د هغوئ په شان اویا زره ۷۰۰۰۰] نوري فرشتي |
| إِذَا انْشَقَّتْ عَنْهُ الْأَرْضُ خَرَجَ فِيْ سَبْعِيْنَ أَلْفًا |
| راخکته کیږي چه د هغه ورځي واله فرشتو په شان سحر پوري دغه شان کوي دا سلسله به هغه وقته پورې وي چې |
| مِّنَ الْمَلَائِكَةِ يَزِفُّوْنَهُ . رَوَاهُ الدَّارِمِيُّ. |
| شریف وچوي او حضور صلی اللہ علیہ وسلم د قبر نه راپورته کیږي او اویا زره ۷۰۰۰۰ فرشتي محبوب حبیب ته ورسوي. |

**توضیح : فقال کعب:** کعب احبار رضی اللہ عنہ د تورات حافظ او د یهودو لوی عالم وو بیا د حضور صلی اللہ علیہ وسلم د وفات نه وروسته مسلمان شوی ؤ لهذا تابعی دی صحابی نه دی، کچیرې کعب احبار ته د کشف په ذریعه د دغو ملائکو پته لګیدلې وي نو دا د هغه کرامت دی او کچیرې د سابقه آسماني کتابونو څخه ورته معلومه شوې وي نو بیا کرامت نه دی بلکه علم دی . ددې روایت د کراماتو په باب کې د ذکر کولو نه معلومه شوه چه کعب رضی اللہ عنہ ته په کشف سره معلومه شوه . **يزفوله:** یعني لکه څنګه چه یو محبوب بل محبوب ته د جلوس په شکل کې وړلی کیږي همدارنګه به ملائکې د قیامت په ورځ حضور صلی اللہ علیہ وسلم د الله تعالی طرفته په د وقار نه ډک جلوس کښې وړي .

# باب وفات النبي صلى الله عليه وسلم

## د نبي كريم صلى الله عليه وسلم دوفات بيان

دلته دا باب د عنوان نه بغير ابښودلى شوى دى . صاحب د مشكوة كله كله داسې كوي ، دغه قسم بلاعنوان باب اكثر او بيشتر د سابقه باب په ذيلي مضمون باندې مشتمل وي ليكن دلته دې باب ته د سابقه باب ذيلي مضمون ويل كيدلى نه شي ځكه سابقه باب په كرامتونو باندې مشتمل دى او دا باب د وفات النبى صلى الله عليه وسلم په احاديثو باندې مشتمل دي لهذا تمامو شارحينو ويلي دي چې ددې بلاعنوان باب عنوان يقينا همدا دى باب وفات النبي صلى الله عليه وسلم ، ددينه وروسته هم يو باب بلاعنوان راځي ليكن د هغه عنوان پخپله احاديثو ته په كتلو سره فهميږي چې ددې باب عنوان باب تركة النبى صلى الله عليه وسلم دى لهذا هغه باب ددې مذكوره باب سره بالكل ملحق او مناسب دى ، د هغه تمام احاديث د تركې سره متعلق وي ،هغه باب د سابقه باب لپاره د ذيل په طريقه دى .

## د نبي مكرم عليه السلام دوفات تاريخي پس منظر

۲۸ د صفر سنه ۱۱ هجرى كې د حضور صلى الله عليه وسلم دبيمارۍ ابتداء وشوه او څوارلس ورځې بيمار وو ۱۲ د ربيع الاول د دوشنبې په ورځ د هغه وصال وشو ، په دې تاريخ كې هيڅ اختلاف يا هيڅ تردد نشته،په دغه وجه د ربيع الاول نوم مخكينو خلكو كې په باره وفات باندې مشهور وو . د حضور صلى الله عليه وسلم د ولادت باسعادت تاريخ ۸ربيع الاول دى، بعض اهل تحقيق علماوو ۹ ربيع الاول ښودلى، ۹ربيع الاول د تاريخ سند په لحاظ سره اګرچې راجح دى ليكن د عوام الناس عمل ۱۲ربيع الاول متعين كړى دى ولې په تاريخي لحاظ باندې دا تاريخ كمزورى دى مګر وفات او ولادت كه په يو تاريخ باندې شي نو په دې سره شايد امت مسلمه ته دا پيغام وركول مقصود وي چې نه به دا ورځ په طور د ماتم لمانځل كيږي او نه به په طور د جشن لمانځل كيږي ځكه كوم شخص چې د حضور صلى الله عليه وسلم په وفات باندې ماتم كول غواړي هغه ته به وويل شي چې ماتم مه كوه په دې ورځ خو د حضور صلى الله عليه وسلم د ولادت خوشحالى هم ده ، او كوم شخص چې جشن لمانځل غواړي هغه ته به وويل شي چې جشن مه لمانځه ځكه په دې ورځ كې خو د حضور صلى الله عليه وسلم انتقال هم شوى دى . په هر حال د بيمارۍ په دغو ورځو حضور صلى الله عليه وسلم په خپله لمونځونه ورنكړل بلكه حضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه د امامت لپاره مقرر كړو ، د ۱۷لمونځونو امامت حضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه وكړو .د وفات نه مخكې حضور صلى الله عليه وسلم د غزواتو په سلسله كې اخرى لښكر جيش اسامه روان كړو او په خپل لاس سره يې د هغه جنګي جنډا وتړله.د امت لپاره د حضور صلى الله عليه وسلم آخرى جمله د لمانځه متعلق دا وه (الصلوة وماملكت ايمانكم) يعنې د لمانځه پابندى كوئ او په ماتحتو باندې ظلم مه

کوئ، ددېنه وروسته حضور صلى الله عليه وسلم د خپل رب سره مناجات وکړلو او ويې فرمايل : اللّهم الرفيق الاعلى، دا د هغه د مبارکې ژبې نه آخري وتونکې کلمه ده . د هغه د وصيتونو څخه آخري درې وصيتونه دا وو : (۱) د جزيرة العرب څخه يهودان وباسئ .(۲)جيش اسامه روان کړئ . (۳) وفد په داسې اعزاز او اکرام سره واپس کوئ لکه څنګه چې يې زه واپس کوم ، هغه ته په درېو سپينو کپړو کې کفن ورکړی شو او دفن کړی شو ،د دوشنبې او سې شنبې دوه ورځې د جنازې کولو اهتمام وشو او د چې ارشنبې په شپه هغه صلى الله عليه وسلم قبر شريف ته خکته کړی شو ، د هغه قبر د لحد په صورت کې وو، په حجره عائشه کې چېرته چې وفات شو هملته دفن کړی شو ، د هغه په جنازه کې کوم امام مقرر نکړی شو بلکه هغه پخپله امام وو خلک به راتلل او انفرادي طور باندې به يې جنازه لوستله او تلل . د ټولو نه مخکې ملائکې راغللې بيا انسانانو جنازه وکړه ، جناتو هم جنازه ولوستله او بيا دفن کړی شو.

الا انما كانت وفات محمد دليل على ان ليس لله غالب

جگہ جی لگانے کی دنیا نہیں ہے یہ عبرت کی جا ہے تماشا نہیں ہے

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

## د حضور صلى الله عليه وسلم په راتګ باندې د اهل مدينو خوشحالي

| | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۱﴾عَنِ | الْبَرَاءِ | بْنِ | عَازِبٍ | قَالَ | أَوَّلُ | مَنْ | قَدِمَ | عَلَيْنَا | مِنْ | أَصْحَابِ |
| حضرت براء ابن عازب رضي الله عنه وايي د رسول الله صلى الله عليه وسلم صحابو کي چې کوم حضرات د ټولو نه مخکې | | | | | | | | | | |
| رَسُوْلِ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ | مُصْعَبُ | بْنُ | عُمَيْرٍ | وَابْنُ | أُمِّ مَكْتُوْمٍ |
| مونږ ته راغلل هغه حضرت مصعب ابن عمير رضي الله عنه او حضرت ابن أم مکتوم رضي الله عنه وو دواړو حضراتو | | | | | | | | | | |
| فَجَعَلَ | يُقْرِئَانِنَا | الْقُرْآنَ | ثُمَّ | جَاءَ | عَمَّارٌ | وَبِلَالٌ | | | | |
| راتلو سره مونږ ته د قرآن تعليم راکول شروع کړی وو بيا حضرت عمار ابن ياسر رضي الله عنه حضرت بلال ابن رباح رضي الله عنه | | | | | | | | | | |
| وَسَعْدٌ | ثُمَّ | جَاءَ | عُمَرُ | بْنُ | الْخَطَّابِ | | | | | |
| او حضرت سعد ابن ابی وقاص رضي الله عنه راغلل او بيا حضرت عمر ابن خطاب رضي الله عنه د نبی کريم صلى الله عليه وسلم | | | | | | | | | | |
| فِيْ | عِشْرِيْنَ | مِنْ | أَصْحَابِ | النَّبِيِّ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ | | |
| شل صحابو رضي الله عنهم سره تشريف راوړه دوئ نه روسته نبی کريم صلى الله عليه وسلم راوړه حقيقت دادی | | | | | | | | | | |

ثُمَّ جَآءَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَمَا رَأَيْتُ أَهْلَ الْمَدِيْنَةِ

په هغه ورځ چې د اهل مدینه نصیب ویښ شوی وو ما مدینې والهٔ د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په تشریف آوري

فَرِحُوْا بِشَيْءٍ فَرَحَهُمْ بِهِ

خومره خوشحاله لیدلي وو دومره خوشحالی د څه لوی خوشحالی په موقع هم ورته نه وه حاصله شوې

حَتّٰى رَأَيْتُ الْوَلَائِدَ وَالصِّبْيَانَ يَقُوْلُوْنَ هٰذَا

ما دي پوري ولیدل چې وړو وړو هلکانو او انجونو ډیري خوشحالۍ نه دا نعري وهلي دا د الله !

رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدْ جَاءَ فَمَا جَاءَ

رسول دی چې زمونږ کلي ته یې تشریف راوړی دی او ما د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د تشریف اورئ نه مخکې

حَتّٰى قَرَأْتُ سَبِّحِ اسْمَ رَبِّكَ الْأَعْلٰى فِي سُوَرٍ مِثْلِهَا مِنَ الْمُفَصَّلِ . رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ

د مفصل [یعني اوساط مفصل] هم مثلو سورتونو نه سورة سبح اسم ربک الاعلی زده کړی وو [بخاري]

**توضیح** : (الولائد) د ولیدة جمع ده ماشومانو ته وایې . په خوشحالۍ کې عامو خلکو د (جاء رسول الله هذا رسول الله قد جاء) په الفاظو سره استقبال کولو ، ماشومان به هم ورسره وو او ټولو به دا اشعار ویلو :

طلع البدر علینا من ثنیات الوداع — وجب الشکر علینا ، ما دعا لله داع

ایها المبعوث فینا — لقد جئت بالامر المطاع

بعضو ماشومانو به دا ویل :

نحن جوار من بنی النجار — یا حبذا محمدا بجار

## صدیق اکبر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د ټولو نه زیات علم والا وو

﴿۲﴾ وَعَنْ أَبِيْ سَعِيْدِنِ الْخُدْرِيِّ أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جَلَسَ عَلَى الْمِنْبَرِ

او حضرت ابو سعید خدری رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ منبر باندې تشریف کیناستلو او مونږ

فَقَالَ إِنَّ عَبْدًا خَيَّرَهُ اللهُ بَيْنَ أَنْ يُّؤْتِيَهُ مِنْ

ته یې وفرمائیل الله تعالی یو بنده ته د دوو ۲ څیزونو په منځ کې اختیار ورکړی دی که هغه د دې

زَهْرَةِ الدُّنْيَا مَا شَاءَ وَبَيْنَ مَا عِنْدَهُ فَاخْتَارَ مَا عِنْدَهُ

دنيا زيب او زينت اختيار کړي يا هغه شي اختيار کړي چې د الله تعالی سره دی حضرت ابوبکر رضي الله عنه

فَبَكَى أَبُوْ بَكْرٍ قَالَ فَدَيْنَاكَ

يو دم په ژړا شو او عرض يي وکړو يا رسول الله! که زمونږ نذرانه څه په کار راتلی شي مونږ او

بِآبَائِنَا وَ أُمَّهَاتِنَا فَعَجِبْنَا لَهُ

زمونږ مور او پلار دي په تا سو قربان وي نو مونږ ته په حضرت ابوبکر رضي الله عنه سخت تعجب وشو ځني

فَقَالَ النَّاسُ انْظُرُوْا إِلَى هٰذَا الشَّيْخِ يُخْبِرُ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

خلقو يو بل ته وويل لږ دي مشر سړي ته وګورئ چې رسول الله صلى الله عليه وسلم خو ديو بنده حال بيانوي چې

عَنْ عَبْدٍ خَيَّرَهُ اللهُ بَيْنَ أَنْ يُّوتِيَهُ مِنْ زَهْرَةِ الدُّنْيَا

الله تعالى هغه ته د دوه څيزونو اختيار ورکړی دی که د دنيا بهار اختيار کړي که د الله تعالى سره

وَبَيْنَ مَا عِنْدَهُ وَهُوَ يَقُوْلُ فَدَيْنَاكَ بِآبَائِنَا وَأُمَّهَاتِنَا

نعمتونه او دا مشر سړی وايي چې يا رسول الله مونږ او زمونږ مور او پلار دي په تا سو قربان وي

فَكَانَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هُوَالْمُخَيَّرَ

ليکن روسته رسول الله صلى الله عليه وسلم وو بلاشبه حضرت ابوبکر رضي الله عنه زمونږ ټولو خلقو نه زيات پوهه وو

وَ كَانَ أَبُوْ بَكْرٍ أَعْلَمَنَا . مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

(هغه په دي راز پوهيدو چې کوم بنده ته اختيار ورکړل کيږي هغه آنحضرت صلى الله عليه وسلم دی).

**توضيح**: د سوره نصر په نزول سره حضور صلى الله عليه وسلم وفرمايل چې الله تعالى يو بنده ته په دنيا کې د پاتې کيدو يا د تللو اختيار ورکړی دی دا حضور صلى الله عليه وسلم خپل متعلق فرمايل، عامو صحابو دا وګڼل چې د کوم بل بنده ذکر کوي مګر په اصل کې د سوره نصر نزول دې خبرې ته اشاره کوله چې د حضور صلى الله عليه وسلم دعوتي مشن په جزيره عرب کې تکميل ته ورسيده او س هغه ته په ځمکه باندې د پاتې کيدو په ځای آسمانونو ته پورته کول پکار دي ترڅو رفيق اعلى سره ملاقات وشي. دغه اشاره او دقيق او عميق علم حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه وپيژنده لهذا په ژړا شو، په دې سره صحابو ته معلومه شوه چې په دوی کې ابوبکر صديق رضي الله عنه د زيات علم والا دی.

## آخري مونځ او آخري خطاب

| |
|---|
| ﴿۳﴾ وَ عَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ قَالَ صَلّٰى رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ |
| او حضرت عقبه ابن عامر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وايي چې رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ديو داسي سړي په شان چې ژوندو |
| عَلٰى قَتْلٰى أُحُدٍ بَعْدَ ثَمَانِ سِنِيْنَ كَالْمُوَدِّعِ لِلْأَحْيَاءِ وَالْأَمْوَاتِ ثُمَّ طَلَعَ الْمِنْبَرَ |
| او مړو ته رخصت کيږي د اُحد شهيدانو باندې دهغوی دتدفين نه اته ۸ کاله روسته مونځ وکړو بيا منبرته |
| فَقَالَ إِنِّيْ بَيْنَ أَيْدِيْكُمْ فَرَطٌ وَأَنَا عَلَيْكُمْ شَهِيْدٌ |
| ختو سره مونږ ته فرمائيل زه ستا سو مخکې ستا سو امير منزل يم زه ستا سو شاهد يم ستا سو سره |
| وَإِنَّ مَوْعِدَكُمُ الْحَوْضُ وَإِنِّيْ لَأَنْظُرُ إِلَيْهِ |
| کړې وعدې پوره کولو ځاي حوض کوثر دی او يقين وکړئ زه داوقت هم خپل منبر باندې ناست |
| وَ أَنَا فِيْ مَقَامِيْ هٰذَا وَإِنِّيْ قَدْ أُعْطِيْتُ مَفَاتِيْحَ خَزَائِنِ الْأَرْضِ وَإِنِّيْ لَسْتُ |
| حوض کوثر وينم او دي کې څه شک شبه نشته چې ماته دځمکې دخزانو چابيانې راکړی شوې دي |
| أَخْشٰى عَلَيْكُمْ أَنْ تُشْرِكُوْا بَعْدِيْ وَلٰكِنِّيْ |
| او زه دي خبري نه خونه ييريږم چې تا سو به زما نه روسته کفر او شرک اختيار کړئ البته ما سره دا |
| أَخْشٰى عَلَيْكُمُ الدُّنْيَا أَنْ تَنَافَسُوا فِيْهَا وَزَادَ |
| ويره ضرور ده چې دُنيا کې به ستا سو دلچسپي زياته شي بعضي راويانو دلته دا الفاظ هم نقل |
| بَعْضُهُمْ فَتَقْتَتِلُوْا فَتَهْلِكُوْا كَمَا هَلَكَ |
| کړي دي چې تا سو به ديو بل قتلول شروع کړئ او بيا به داسي دهلاکت او تباهي ښکار شئ څرنګه |
| مَنْ كَانَ قَبْلَكُمْ . مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. |
| چې مخکنی خلق هلاک او تباه شوی وو . |

**توضيح : صلى على قتلى:** د تدفين نه بعد د دريو ورځو نه زيات تيريدلو نه بعد د چا په قبر باندې جنازه نه کيږي ، همدارنګه د چا په قبر باندې چې جنازه شوې وي د هغه په قبر باندې هم جنازه نه کيږي ، دلته چې څه شوي دي دا د حضور صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د خصوصياتو څخه دي . بعضو صلى په معنى د دُعا سره اخسيتى دى بيا خو هيڅ خبره نشته .

کالمودع: د ژوندیو رخصتول خو واضحه دي او د مړو رخصت کولو مطلب دا دی چې د مړو قبرونو ته راتلل او هغوی ته دعاء کول دا سلسله اوس ختمه شوه ګویا هغه دا ټول رخصت کړل.

فرط: هغه شخص ته ویل کیږي چې د راتلونکې لپاره د مخکې نه د ځای او سامان تیارولو سره انتظام وکړي. حضور صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د ټول امت لپاره په طور د شفیع المذنبین مخکې لاړه.

شهید: د دې معنی د حاضر ناظر نه ده بلکه دا امت چې کله په سابقه امتونو باندې ګواهي وکړي نو هغوی به جرحه وکړي او وبه وایې چې دا خلک خو زمونږ په زمانه کې نه وو، په مونږ باندې د دوی ګواهي غلطه ده، د دغې جرحې د تزکیې لپاره به حضور اکرم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ګواهي ورکوي چې زما امت صحیح ویلي لکه په قرآن کې چې دي ﴿ لِتَكُونُواْ شُهَدَاء عَلَى النَّاسِ وَيَكُونَ الرَّسُولُ عَلَيْكُمْ شَهِيدًا ﴾ کچیرې د شهید معنی د حاضر او ناظر وي نو بیا به دا امت د خپل نبی نه زیات حاضر ناظر شي ځکه امت خو په ټولو انسانانو باندې ګواه دی او نبي مکرم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صرف په خپل امت باندې ګواه دی. خزائن الارض: یعنې د دنیا خزانې به زما امت ته حاصلې شي ځکه دوی به جهاد کوي نو خزانې به ورته ملاو وشي، مال غنیمت به لاس ته ورشي.

## د حضور اکرم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ژوند مبارک وروستني لمحات

| |
|---|
| ﴿۴﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ إِنَّ مِنْ نِعَمِ اللهِ تَعَالَى عَلَيَّ أَنَّ |
| او بي بي عائشه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا وایي الله تعالی چې خپلو کومو انعاماتو سره زه خصوصي طور سره ونازولم |
| رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تُوُفِّيَ فِيْ بَيْتِيْ |
| هغه کې یو دا هم دی چې رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زما کور کې او زما د واره په ورځ وفات شو، حضور صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زما |
| وَفِيْ يَوْمِيْ وَبَيْنَ سَحْرِيْ وَنَحْرِيْ وَأَنَّ اللهَ |
| د سینې او اوږې په منځ کې خپل ځان حق تعالی ته وسپاره او الله تعالی د حضور صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د وفات په |
| جَمَعَ بَيْنَ رِيْقِيْ وَرِيْقِهِ عِنْدَ مَوْتِهِ |
| وقت زما او د حضور صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لعاب لاړې جمع کړې وې چې هغه آخري لمحاتو کې زما ورور روح |
| دَخَلَ عَلَيَّ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ اَبِيْ بَكْرٍ وَ بِيَدِهِ سِوَاكٌ |
| مبارک یې پرواز وکړو عبد الرحمن ابن ابي بکر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ چې ماته راغلي نو د هغه لاس کې مسواک وو |

وَ أَنَا مُسْنِدَةٌ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ فَرَأَيْتُهُ يَنْظُرُ

او رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زما سيني سره تکيه لګولي ناست وو ما وليدل چې د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نظر بار بار

إِلَيْهِ وَ عَرَفْتُ أَنَّهُ يُحِبُّ السِّوَاكَ فَقُلْتُ

عبدالرحمٰن طرف ته يا د هغه د مسواک طرفته پورته کيده زه په دي خبره پوهيدم چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به

آخُذُهُ لَكَ فَأَشَارَ بِرَأْسِهِ أَنْ نَعَمْ

مسواک ډير خوښوه ما وويل آيا عبدالرحمٰن نه دا مسواک ستا سو دپاره واخلم حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

فَتَنَاوَلْتُهُ فَاشْتَدَّ عَلَيْهِ

د سر په اشارې سره وښودل چې هو را وائې خله ما د عبدالرحمٰن نه مسواک واخستلو او هغه ته مې

وَ قُلْتُ أُلَيِّنُهُ لَكَ

ورکړو حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وهل وغوښتل او د مشکل احساس يې وکړو ما عرض وکړې آيا نرم يې

فَأَشَارَ بِرَأْسِهِ أَنْ نَعَمْ فَلَيَّنْتُهُ فَأَمَرَّهُ وَ بَيْنَ

[پوست] اکړم حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د سر په اشاره سره يې اجازه راکړه نو ما مسواک نرم کړو او حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

يَدَيْهِ رَكْوَةٌ فِيهَا مَاءٌ فَجَعَلَ

هغه مسواک خپلو غاښونو مبارکو باندې راتيروه د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مخ ته د اوبو لوښي ايښودل

يُدْخِلُ يَدَيْهِ فِي الْمَاءِ فَيَمْسَحُ بِهِمَا وَجْهَهُ

شوی وو هغه ابو کي به يې خپل دواړه لاسونه مبارک لمده ول او په خپل مخ مبارک راتير ول او

وَيَقُوْلُ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ إِنَّ لِلْمَوْتِ سَكَرَاتٍ ثُمَّ نَصَبَ

فرمائيل به يې: لا اله الا الله: د مرګ په وقت سختي وي بيا حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د دُعا دپاره لاس مبارک يې

يَدَهُ فَجَعَلَ يَقُوْلُ فِي الرَّفِيْقِ الْأَعْلٰى حَتّٰى قُبِضَ

پورته کړو او دا ويل يې شروع کړه اى الله ! ما رفيق اعلىٰ کي شامل کړه تر دي حاله چې روح يې

وَ مَالَتْ يَدُهُ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ

پرواز وکړو او لاس مبارک يې لاندې وغورځيدل

**توضيح** : حضرت عائشه رضي الله عنها په دې باندې فخر کوي چې د حضور صلى الله عليه وسلم د حيات آخري لمحات او آخري خدمات حضرت عائشې رضي الله عنها سرته ورسول .

**في بيتي**: يعنې په حجره د عائشه رضي الله عنها کې يې انتقال وشو .

**يومي**: يعنې زما په وار کې يې انتقال وشو ، د حضور اکرم صلى الله عليه وسلم په خوښه ازواج مطهرات خپل نوبتونه حضرت عائشې رضي الله عنها ته ورکړل مګر د الله تعالى خوښه داسې وه چې د حضور صلى الله عليه وسلم انتقال په هغو ورځو کې وشو چې د حضرت عائشه رض نوبت راغی .

**بين سحري و نحري**: سحر سينې ته وايې او نحر غاړې ته وايې ، مطلب دا دی چې الله تعالى د حضور صلى الله عليه وسلم آخري لمحاتو کې ماته د هغه سره هغه قرب عطاء کړلو چې زما د سينې په مينځ کې هغه صلى الله عليه وسلم آرام فرمايلو ، د غاړې هډوکې ته نحر ويل شوی دی ، غاړه مراد ده .

**ريقي**: د جسماني قرب سره الله تعالى روحاني قرب عطاء کړلو چې زما لاړې او د حضرت لاړې يې د مسواک په واسطه جمع کړلې . **امرّه**: په خوله کې يې مسواک وګرځولو . استعمال يې کړلو .

## انبياو ته د مرګ نه مخکې اختيار

﴿۵﴾ وَعَنْهَا قَالَتْ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ مَا مِنْ نَّبِيٍّ يَّمْرَضُ

بي بي عائشه رضي الله عنها وايي ما د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه دا واوريدل هر نبي ته د هغه په مرض الموت کې د دنيا

إِلَّا خُيِّرَ بَيْنَ الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ وَكَانَ فِيْ شَكْوَاهُ الَّذِيْ

او آخرت په منځ کې اختيار ورکول کيږي بيا چې حضور صلى الله عليه وسلم په مرض الموت مبتلا شو او آواز يې

قُبِضَ أَخَذَتْهُ بُحَّةٌ شَدِيْدَةٌ فَسَمِعْتُهُ يَقُوْلُ مَعَ

سخت درونډ شونو هغه وقت ما واوريدل چې د حضور صلى الله عليه وسلم په ژبه مبارکه دا الفاظ و والهٰی! ما په هغه

الَّذِيْنَ أَنْعَمْتَ عَلَيْهِمْ مِّنَ النَّبِيِّيْنَ وَالصِّدِّيْقِيْنَ وَالشُّهَدَاءِ وَالصَّالِحِيْنَ

خلقو کې شامل کړې چې تا پرې فضل او انعام کړی دی چې هغه انبياء صديقين شهداء او صالحين

فَعَلِمْتُ أَنَّهُ خُيِّرَ . مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ .

دې دې دُعائيه الفاظو نه زه پوهه شوم چې حضور صلى الله عليه وسلم ته اختيار ورکړی شوی دی .

**توضيح** : **خير**: دنيا ته چې څومره انسانان راغلي دي د ټولو نه د مرګ په وخت کې ملائکه روح اخلي او هيڅ مهلت نه ورکول کيږي ، صرف انبياء کرامو ته دا اعزاز حاصل دی چې د مرګ نه

مخکې هغه ته ملائکه د الله تعالی پیغام راوړي چې د نبی څه خیال دی ، زما طرفته راځي او که په دنیا کې پاتې کیدل غواړي؟ تولو انبیاوو الله تعالی طرفته تلل غوره کړي دي ، دا اجازت صرف یو اعزاز او اکرام دی ، همدا معامله د حضور صلى الله عليه وسلم سره هم وشوه لکه څنګه چې په آینده حدیث کې به راشي.

بحة: په باء باندې ضمه ده په حاء باندې شد دی ټوخي ته هم وایې او په ستوني کې د تکلیف په وجه آواز کې غټوالی راتللو ته هم ویل کیږي.

## د حضور صلى الله عليه وسلم په وفات باندې د بي بي فاطمه رضي الله عنها غم

﴿٦﴾ وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ لَمَّا ثَقُلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

او حضرت انس رضي الله عنه بیان کوی کله چې نبي کریم صلى الله عليه وسلم حالت ډیر بدل شو او د مرض د سختۍ نه به

جَعَلَ يَتَغَشَّاهُ الْكَرْبُ فَقَالَتْ فَاطِمَةُ وَا كَرْبَ أَبَاهُ

په هغه بیهوشي راتله نو بي بي فاطمي رضي الله عنها به دا ویل های زما بابا جان څرنګه سختۍ نیولی دی

فَقَالَ لَهَا لَيْسَ عَلَى أَبِيكِ

حضور صلى الله عليه وسلم د هغې مخاطب کولو سره وفرمائیل د نن ورځې نه روسته ستا بابا جان ته

كَرْبٌ بَعْدَ الْيَوْمِ

هیڅ سختی نشته مطلب دا وو چې سختۍ د مرض د شدت دوجې نه ده او د دې سختۍ احساس او اظهار جسم سره د تعلق

فَلَمَّا مَاتَ قَالَتْ

لرلو په سبب دی لیکن د نن ورځې نه روسته هر کله چې دې جسم سره تعلق ختم شي او صرف روحاني او معنوي علاقې پاتې شي نو

يَا أَبَتَاهُ أَجَابَ رَبًّا دَعَاهُ

بیا به سکون او سکون وي او بیا چې نبي عليه السلام وفات شو نو د بي بي فاطمي رضي الله عنها د ژبې نه دا الفاظ ووتل ای زما بابا جانه!

يَا أَبَتَاهُ مِنْ جَنَّةِ الْفِرْدَوْسِ

الله! ته ځان ته وبللي او تا سو خپل پروردګار ته ولاړې ای زما بابا جانه! ای هغه مقدس ذاته! چې د هغه مستقر جنت الفردوس

مَأْوَاهُ يَا أَبَتَاهُ إِلَى جِبْرَئِيلَ نَنْعَاهُ

دې ای زما بابا جانه ! مونږ ستا سو د وفات خبر جبرایل علیه السلام ته رسوو روسته چې

| فَلَمَّا | دُفِنَ | قَالَتْ | فَاطِمَةُ | يَا | أَنَسُ | أَطَابَتْ | أَنْفُسُكُمْ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| حضور صلى الله عليه وسلم د فن کړل شو نو بي بي فاطمي رضي الله عنها بي اختياره کيدو سره وويل اى انس رضي الله عنه تاسو | | | | | | | |
| أَنْ تَحْثُوا عَلَى رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ التُّرَابَ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ. | | | | | | | |
| خلقو دا څرنګه برداشت کړه چې رسول الله صلى الله عليه وسلم باندې مو خاورې واچولې. | | | | | | | |

**توضيح : يتغشاه الكرب**: کرب ناقابل برداشت سخت غم ته ويل کيږي دلته بيهوشه کيدل مراد دي او **يتغشى** د راګيرولو په معنى سره دى . په حضور صلى الله عليه وسلم باندې به چې کله د مرض دشدت په وجه غشي طارى کيدله نو فاطمة الزهراء رضي الله عنها به فرياد شروع کړلو او ويل به يې : واکرب اباه ، هائ د اباجان مصيبته! حضرت فاطمة رضي الله عنها په دريو مرحلو کې د حضور صلى الله عليه وسلم نه په جدا جدا اندازکې د غم اظهار فرمايلى دى ،يو د مريضتيا په مرحله کې ، دويم د وفات نه بعد ، او دريم د تدفين نه بعد ، په دريو واړو مرحلو کې يې د انتهائى درد انداز سره د غم اظهار کړى دى .

**ليس على ابيك**: حضور صلى الله عليه وسلم حضرت فاطمه رضي الله عنها ته تسلي ورکړه چې د نن نه بعد به ستا په اباجان باندې هيڅ تکليف نه وي ، دا جسمانى بوج دى چې کله ختم شي نو د هميشه لپاره به ختم شي .

**يا ابتاه**: په دې جمله کې الف د ندبې لپاره دى يعنې هائ زما خوږه پلاره ! **(الى جبرئيل ننعاه)** يعنې ستا د موت خبر مونږ جبرئيل امين ته ورکوو څکه په دنيا کې دغه دواړه محبوبه يو د بل په غم کې سره شريک وو .

**اطابت انفسكم**: يعني اى انس رضي الله عنه! ستاسو زړونو دا څنګه قبوله کړه چې په خپلو لاسونو باندې مو د حضور صلى الله عليه وسلم په قبر باندې خاورې واچولې . وايې حضرت فاطمه رضي الله عنها د حضور صلى الله عليه وسلم د تدفين نه بعد قبر ته لاړه او په ژړا ژړا يې دا اشعار وويل :

ماذا على من شم تربة احمد ان لايشم مدى الزمان غواليا

صبت على مصائب لو انها صبت على الايام صرن لياليا

وايې د حضرت فاطمه رضي الله عنها په دغه سخت غم باندې د حضور صلى الله عليه وسلم د تره زوى ابوسفيان بن حارث په طور د تسلى حضرت فاطمه رضي الله عنها ته دا سې تعزيت ورکړو :

افاطم ان جزعت فذاک عذر وان لم تجزعي ذاک السبيل

فقبر ابيک [illegible] کل قبر وفيه سيد الناس الرسول

يو عاشق رسول روضه اقدس ته حاضری ورکړه نو د حضور صلی الله علیه وسلم په مخاطب کولو سره يې وويل، ترڅنه پورې دغه اشعار په روضه اقدس باندې ليکلي دي، د ترجمې سره يې ملاحظه کړئ:

**يا خير من دفنت بالقاع اعظمه فطاب من طيبهن القاع والاکم**

ترجمه: ای رسول صلی الله علیه وسلم! د چا جسد مبارک چې په خلاص ميدان کې دفن شوی دی، چې د هغه د خوشبو نه ميدان او غونډۍ خوشبوداره شوي دي.

**نفسي الفداء لقبر انت ساکنه فيه العفاف وفيه الجود والکرم**

ترجمه: زما نفس دې په هغه قبر باندې قربان وي په کوم کې چې ته آرام کوې. ګويا په قبر کې شرافت و سخاوت او عظمت موجود دی.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِيْ

### داهل مدينه لپاره د حضور اکرم صلی الله علیه وسلم د راتګ خوشحالی او دوفات غم

﴿۷﴾ عَنْ أَنَسٍ قَالَ لَمَّا قَدِمَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمَدِيْنَةَ لَعِبَتِ الْحَبَشَةُ

حضرت انس رضی الله عنه وايي کله چې رسول الله صلی الله علیه وسلم په مدينه کې نزول اجلال فرمائيلي وونو حبشيانو

بِحِرَابِهِمْ فَرَحًا لِقُدُوْمِهِ رَوَاهُ أَبُوْ دَاوُدَ وَفِيْ رِوَايَةِ الدَّارِمِيِّ

د نيزبازۍ کرتب خو دلي وو دا روايت ابوداود نقل کړی دی او دارمی چې کوم روايت نقل

قَالَ مَا رَأَيْتُ يَوْمًا قَطُّ كَانَ أَحْسَنَ

کړی دی هغه کې داسې دي چې حضرت انس رضی الله عنه وويل ما دهغه ورځې نه زياته حسينه

وَلَا أَضْوَءَ مِنْ يَوْمٍ دَخَلَ عَلَيْنَا فِيْهِ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

او روښانه ورځ هيڅ کله نه وه ليدلي په کومه ورځ چې مدينه کې زمونږ په منځ رسول الله صلی الله علیه وسلم

وَمَا رَأَيْتُ يَوْمًا كَانَ أَقْبَحَ وَأَظْلَمَ مِنْ يَوْمٍ

تشريف راوړو او ما دهغه ورځې نه زياته خرابه او تياره [تاريکه] ورځ بله نه وه ليدلې په کومه ورځ

مَاتَ فِيْهِ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَفِيْ رِوَايَةِ التِّرْمِذِيِّ قَالَ لَمَّا كَانَ الْيَوْمُ

چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفات شو او د ترمذی روايت کې دي حضرت انس رضی الله عنه وويل هر کله چې

الَّذِيْ دَخَلَ فِيْهِ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمَدِيْنَةَ أَضَاءَ مِنْهَا كُلُّ شَيْءٍ

هغه ورځ راغله چې حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مديني ته تشريف راوړو نو د مديني هر شی باندې نور وغوړيده او

فَلَمَّا كَانَ الْيَوْمُ الَّذِيْ مَاتَ فِيْهِ أَظْلَمَ كُلُّ شَيْءٍ

هر کله چې هغه ورځ راغله چې حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفات شو نو هر شی تياره [تاريکی] کې غرق شو او د.

وَمَا نَفَضْنَا أَيْدِيَنَا عَنِ التُّرَابِ وَإِنَّا

حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د دفن کولو نه روسته مونږ خپلو لاسونو نه خاوري هم لا نه وي څنډلي بلکه د حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

لَفِيْ دَفْنِهِ حَتّٰى أَنْكَرْنَا قُلُوْبَنَا.

دفن کولو کي مشغول وو چې خپلو زړونو کي مو ديوبل نه نا آشنايي محسوسه کړې وه

**توضيح** : د حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په وفات سره د ومره روحاني اثر وشو چې د خاورو نه د لاسونو د ټک وهلو نه مخکې مخکې د ژونديو خلکو په زړونو باندې اثر وشو او د مخکې پشان روحانيت پاتې نشو نو نن سبا يونيم زر کاله وروسته به د خلکو څه حال وي ... ؟

## د حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د تدفين ځای د الله تعالى خوښ وو

﴿۸﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ لَمَّا قُبِضَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اخْتَلَفُوْا فِيْ دَفْنِهِ

او بي بي عائشه رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا وايي رسول الله چې وفات شو او د حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د تدفين باره کښې د صحابو

فَقَالَ أَبُوْ بَكْرٍ سَمِعْتُ مِنْ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

په منځ کي اختلاف راپيدا شو نو ابوبکر صديق رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وفرمائيل چې ما په خپله د رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه يوه

شَيْئًا قَالَ مَا قَبَضَ اللّٰهُ نَبِيًّا إِلَّا فِي الْمَوْضِعِ

خبره آوريدلې وه حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمائيلي وو الله تعالى د هر نبي روح هغه ځاي کي قبض کوي چيرته

الَّذِيْ يُحِبُّ أَنْ يُدْفَنَ فِيْهِ اِدْفِنُوْهُ

چې هغه نبي وغواړي نو حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغه ځاي کي دفن کول پکار دي چيرته چې حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د

فِيْ مَوْضِعِ فِرَاشِهِ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

مرګ په بستره باندې وو او چيرته چې حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفات شوی دی.

**توضيح** : اختلفوا: يعنې د حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د تدفين په باره کې د صحابه کرامو رضی الله عنهم به

مینځ کې اختلاف راغی، بعضو وویل چې حضور صَلَّی اللهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ دې په مکه مکرمه کې دفن کړی شي، بعضو په بیت المقدس کې د دفن کولو مشوره ورکړه، بعضو په مدینه کې په بقیع غرقد کې د دفن کولو وویل، بیا صحابه کرامو د صدیق اکبر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه پوښتنه وکړه نو هغه حدیث ورته واورولو . . .

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

### د حضور صَلَّی اللهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ د ژوند آخرنۍ خبره

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۹﴾ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كَانَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ وَهُوَ صَحِيْحٌ | | | | | | | | |
| دبي بي عائشي رَضِيَ اللهُ عَنْهَا یان دی د رسول الله صَلَّی اللهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ د خپلې تندرستۍ په زمانه کې به یې فرمائیل د | | | | | | | | |
| إِنَّهُ | لَنْ | يُقْبَضَ | نَبِيٌّ | حَتّٰى | يُرٰى | مَقْعَدَهُ | مِنَ | الْجَنَّةِ |
| هیڅ نبي روح هغه وقته پورې نه قبض کیږي څو پورې چې جنت کې د هغه مستقر ښودلو سره هغه ته | | | | | | | | |
| ثُمَّ | يُخَيَّرُ | قَالَتْ | عَائِشَةُ | فَلَمَّا | نَزَلَ | بِهِ | | |
| اختیار ورنه کړی شي دده نه روسته بي بي عائشي رَضِيَ اللهُ عَنْهَا بیان وکړو هر کله چې مرض الموت کې د | | | | | | | | |
| وَرَأْسُهُ | عَلٰى | فَخِذِيْ | غُشِيَ | عَلَيْهِ | | | | |
| حضور صَلَّی اللهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ د وفات وخت نژدې راغی د حضور صَلَّی اللهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ سر مبارک زما پر ورانه وو او هغه صَلَّی اللهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ بار | | | | | | | | |
| ثُمَّ | أَفَاقَ | فَأَشْخَصَ | بَصَرَهُ | إِلَى | السَّقْفِ | ثُمَّ | قَالَ | |
| باریهوشه کیدو یو وار چې هوش کې راغی نو حضور صَلَّی اللهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ چت طرف ته نظر پورته کړو وې فرمائیل | | | | | | | | |
| اَللّٰهُمَّ | الرَّفِيْقَ | الْأَعْلٰى | قُلْتُ | إِذَنْ | لَا | يَخْتَارُنَا | قَالَتْ | وَعَرَفْتُ |
| الهٰی! زه رفیق اعلیٰ خوښوم ما وویل اوس حضور صَلَّی اللهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ زمونږ یعني د دُنیا ژوند ناخوښه کړو ځکه | | | | | | | | |
| أَنَّهُ | الْحَدِيْثُ | الَّذِيْ | كَانَ | يُحَدِّثُنَا | بِهِ | وَهُوَ | صَحِيْحٌ | |
| چې ماته هغه ارشاد گرامی را یاد شو چې حضور صَلَّی اللهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ د تندرستۍ په زمانه کې فرمائیلي وو چې د | | | | | | | | |
| فِيْ قَوْلِهِ | أَنَّهُ | لَنْ | يُقْبَضَ | نَبِيٌّ | قَطُّ | حَتّٰى | يُرٰى | مَقْعَدَهُ مِنَ الْجَنَّةِ ثُمَّ |
| هیڅ نبي روح هغه وقته پورې نه قبض کیږي څو پورې چې جنت کې د هغه مستقر ورته ښودلو سره | | | | | | | | |
| يُخَيَّرُ قَالَتْ عَائِشَةُ فَكَانَتْ آخِرُ كَلِمَةٍ تَكَلَّمَ بِهَا النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ | | | | | | | | |
| اختیار ورنه کړی شو بي بي عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا بیان کوي د نبي کریم صَلَّی اللهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ د ژبې مبارکې نه چې کوم آخری | | | | | | | | |

قَوْلُهُ اَللّٰهُمَّ الرَّفِيْقَ الْأَعْلٰى. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

الفاظ وختل هغه دا اللهم رفيق الاعلىٰ الفاظ وو.

**توضيح**: (افاق) په هوش کې راتللو ته افاقه ويل کيږي. (**اشخص بصره**) چت چونکې د آسمان په جهت کې وو ځکه يې هغه ته وکتل ولې مقصود د آسمان طرف ته نظر پورته کولو سره کتل وو، په دې حديث کې د هغه آخري کلمه ذکر ده، په بل روايت کې يوه کلمه د امت لپاره ده چې لمونځ کوئ او په ماتحت خلکو باندې ظلم مه کوئ، د پيدا کيدو په وخت هغه اوله کلمه الله اکبر اداء کړې وه او په عهد د الست کې ټولو نه مخکې هغه د (بلى) لفظ اداء کړلو او يوه کلمه يې د خپل رب لپاره ده چې په دې حديث کې ده.

## مرض وفات کې د زهرو اثر ښکاره شو

﴿۱۰﴾ وَعَنْهَا قَالَتْ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ فِيْ مَرَضِهِ الَّذِيْ مَاتَ فِيْهِ

او بي بي عائشه رضي الله عنها وايي رسول الله صلی الله علیه وسلم به خپل د وفات مرض کي [ماته] فرمائيل

يَا عَائِشَةُ مَا أَزَالُ أَجِدُ أَلَمَ الطَّعَامِ الَّذِيْ أَكَلْتُ بِخَيْبَرَ وَهٰذَا أَوَانُ

ای عائشي رضي الله عنها! خيبر کي چې ما کوم زهر آلود طعام خوړلی وو اوس دي مرض کي راته داسي

وَجَدْتُ انْقِطَاعَ أَبْهَرِيْ مِنْ ذٰلِكَ السُّمِّ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

معلوميږي چې د هغه زهرو د اثر نه به زما د زړه رګ پريکړل شي.

**توضيح**: (الم) درد او تکليف ته الم ويل کيږي.

**بخيبر**: د جنګ خيبر په موقع باندې يوې يهودۍ ښځې د ګډ په غوښه کې د زهرو په ګډولو سره حضور اکرم صلی الله علیه وسلم باندې خوړلی وو، الله تعالى زهرو ته د اثر نه کولو حکم وکړلو نو د هغه تر يو مقرر وخته پورې په يوې محدودې پيمانې باندې موقوفه شو مګر چې کله د هغه د ژوند ورځې پوره شولې نو الله تعالى د هغه زهرو پوره اثر ظاهره کړلو چې د دې په وجه د هغه رګ کټ شو او وفات شو. همدارنګه د خاموش زهرو په وجه د صديق اکبر رضي الله عنه مرګ هم واقع شو، دا که رفاقت ته اشاره ده.

**أَبْهَرِيْ**: دا د هغه رګ نوم دی چې د هغه تعلق د زړه سره دی د دې په کټ کيدلو سره انسان مړ کيږي ديته رګ جان وايي، ملا علي قاري رحمه الله د دې رګ دويم تفسير دا کړی دی چې دا رګ په ځنګ کې تر قدمه پورې تللی دی بيا د دينه واړه واړه رګونه په ټول بدن کې خواره شوي دي، دا رګ کله په دماغو کې وي نو ديته (نامه) وايي، او چې کله دا رګ غاړې ته راځي نو ديته (وريد) وايي

، چې کله دغه رګ د غاړې نه لاندې سینې ته رسيږي نو هغه ته (ابهر) ويل کيږي، او چې کله دغه رګ لاندې پونده ته ځي نو هغه ته ضافن ويل کيږي . بعضو ويلي دي چې دغه رګ چې کله په غاړه کې وي نو ديته ابهر ويل کيږي ، چې کله په لاس کې وي نو هغه ته اکحل ويل کيږي او چې کله په پنډۍ کې وي نو هغه ته عرق النساء ويل کيږي ، په هر حال دغه رګ جان دی .

## د حديث قرطاس قصه

﴿۱۱﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ لَمَّا حُضِرَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

او حضرت ابن عباس رضي الله عنه وايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم د وفات وقت قريب شو او کور کې د حضور صلى الله عليه وسلم

وَفِي الْبَيْتِ رِجَالٌ فِيهِمْ عُمَرُبْنُ الْخَطَّابِ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د مرض د بسترې ته نژدې حضرت عمر خطاب رضي الله عنه سره ډير خلق موجود وو نبي کريم صلى الله عليه وسلم وفرمائيل

هَلُمُّوْا أَكْتُبْ لَكُمْ كِتَابًا لَنْ تَضِلُّوْا بَعْدَهُ

راوړئ چې زه ستا سو د پاره يو تحرير وليکم چې د دې نه روسته ستا سو د ګمراهۍ څه سوال پيدا

فَقَالَ عُمَرُ قَدْ غَلَبَ عَلَيْهِ الْوَجَعُ

نشي حضرت عمر رضي الله عنه هلته موجود خلقو ته وويل دا وخت حضور صلى الله عليه وسلم باندې د مريضتيا شديده

وَعِنْدَكُمُ الْقُرْآنُ حَسْبُكُمْ كِتَابُ اللهِ

غلبه ده تا سو خلقو سره قرآن مجيد شته او تا سو ته د الله تعالى دا کتاب ډير کافي دی ليکن هغه خلق

فَاخْتَلَفَ أَهْلُ الْبَيْتِ وَاخْتَصَمُوْا فَمِنْهُمْ مَنْ

چې د اهل بيتو نه هم وو او د نورو صحابوو رضي الله عنهم نه هم بحث مباحثه کول يې شروع کړل، هغو کې ځنې

يَقُوْلُ قَرِّبُوْا يَكْتُبْ لَكُمْ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

خلقو دا خبره کوله چې د ليکلو سامان راوړلو سره مخې ته اېښودل پکار دي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم

وَ مِنْهُمْ مَنْ يَقُوْلُ مَا قَالَ عُمَرُ فَلَمَّا

ستا سو د پاره څه او څه خلقو هغه خبره کوله کومه چې حضرت عمر رضي الله عنه کړې وه او بيا چې د هغه خلقو

أَكْثَرُوا اللَّغَطَ وَ الْاِخْتِلَافَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ

د اختلاف رايه اظهار زياتيده او کافي شور جوړ شو نو حضور صلى الله عليه وسلم وفرمائيل بنه اوس تا سو خلق

قُوْمُوْا عَنِّيْ قَالَ عُبَيْدُ اللهِ فَكَانَ ابْنُ عَبَّاسٍ يَقُوْلُ إِنَّ الرَّزِيَّةَ كُلَّ الرَّزِيَّةِ

زمانه ولاړ شي عبيدالله رَحِمَهُ اللهُ وائي چې ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ به ویل مصيبت دی پوره مصيبت چې د دي

مَا حَالَ بَيْنَ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَبَيْنَ أَنْ يَكْتُبَ لَهُمْ ذٰلِكَ الْكِتَابَ

خلقو د اختلاف او شور په صورت کې د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ او د هغوی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د وصیت نامې لیکلو

لِاخْتِلَافِهِمْ وَلَغَطِهِمْ وَفِيْ رِوَايَةِ سُلَيْمَانَ بْنِ أَبِيْ مُسْلِمٍ الْأَحْوَلِ

د ارادې په منځ کې حائل شوی وو او د سیلمان ابن مسلم احول رَحِمَهُ اللهُ روایت کې داسې دي چې

قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ يَوْمُ الْخَمِيْسِ وَمَا يَوْمُ الْخَمِيْسِ

حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وویل آه د جمعرات ورځ هغه د زیارت ورځ څه عجیبه وه هر کله چې یو ه زبردسته الميه

ثُمَّ بَكٰى حَتّٰى بَلَّ دَمْعُهُ الْحَصٰى

واقع شوی وه او دی ویلو سره هغه په ژړا شو او دونه یې وژړل چې هلته پرتې شګې هم د هغه په اوښکو

قُلْتُ يَا ابْنَ عَبَّاسٍ وَمَا يَوْمُ الْخَمِيْسِ

سره لمدې شوې ما عرض وکړو [راوی وایي] ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ! د زیارت په هغه ورځ څه شوی وو

قَالَ اشْتَدَّ بِرَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَجَعُهُ

حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ و فرمائیل هر کله چې د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مریضتیا ډیر خطرناک صورت حال

فَقَالَ ائْتُوْنِيْ بِكَتِفٍ أَكْتُبْ لَكُمْ كِتَابًا

اختیار کړی وو. او حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمائیلی وو، ماته داوږې هډوکی راوړئ چې زه ستاسو دپاره یوه

لَا تَضِلُّوْا بَعْدَهٗ أَبَدًا فَتَنَازَعُوْا

داسې څه ولیکم چې د هغه نه روسته تاسو هیڅ کله ګمراه نه شئ موجود خلقو اختلاف او نزاع اظهار

وَلَا يَنْبَغِيْ عِنْدَ نَبِيٍّ تَنَازُعٌ فَقَالُوْا

شروع کړو حالانکه دیو نبی په مخکې د اختلاف او نزاع اظهار مناسب نه دی هغوی کې څه خلقو ویلی وو

مَا شَأْنُهٗ أَهَجَرَ اسْتَفْهِمُوْهُ

چې خبره د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د کوم حالت غمازه ده؟ آیا حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دُنیا پریږدي او بیا هغوی

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فَذَهَبُوْا | يَرُدُّوْنَ | عَلَيْهِ | فَقَالَ | دَعُوْنِيْ | | | |
| كي بعضي خلقو حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره تكرار شروع كړی وو. آخر رسول اكرم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمائيل ما په خپل | | | | | | | |
| ذَرُوْنِيْ | فَالَّذِيْ | أَنَا | فِيْهِ | خَيْرٌ | مِمَّا | تَدْعُوْنَنِيْ | إِلَيْهِ |
| حالت پرېږدئ ځكه چې دا وقت زه كوم حالت كي يم د هغه حالت نه بهتر او افضل دی چې هغه طرف | | | | | | | |
| فَأَمَرَهُمْ | بِثَلَاثٍ | فَقَالَ | أَخْرِجُوْا | الْمُشْرِكِيْنَ | | | |
| ته تاسو ما متوجه كوی دي نه روسته حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ورته د دري خبرو حكم وكړو يو خو دا چې مشركان | | | | | | | |
| مِنْ | جَزِيْرَةِ | الْعَرَبِ | وَأَجِيْزُوا | الْوَفْدَ | بِنَحْوِ | مَا | |
| د جزيره عرب نه وباسئ دويم دا چې د نورو ملكونو او حكومتونو كوم قاصدان راشي نو هغه سره د | | | | | | | |
| كُنْتُ | أُجِيْزُهُمْ | وَسَكَتَ | عَنِ | الثَّالِثَةِ | | | |
| عزت او احترام سلوك كوئ څرنګه چې به ما كوه. او دريمه خبره باندي ابن عباس رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ خاموشي اختيار | | | | | | | |
| أَوْ | قَالَهَا | فَنَسِيْتُهَا | قَالَ | سُفْيَانُ | هٰذَا | مِنْ | |
| كړه يا دا چې هغه دريمه خبره هم بيان كړې وه ليكن ما نه هېره شوه سفيان ابن عيينه رَحِمَهُ اللّٰهُ وايي | | | | | | | |
| قَوْلِ سُلَيْمَانَ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. | | | | | | | |
| دا الفاظ د سليمان احول رَحِمَهُ اللّٰهُ دي. | | | | | | | |

**توضيح** : **اكتب لكم كتاباً**: يعني يو كاغذ راوړئ چې زه تاسو ته يو تحرير تيار كړم تر څو تاسو گمراه نشئ، دا مشهور حديث دی چې د حديث قرطاس په نوم سره مشهور دی ، اوس سوال دا دی چې دا تحرير د كوم شی سره متعلق وو ؟ په دې كې ډير اقوال دي مګر په خلكو كې مشهوره دا ده چې دا تحرير د خلافت سره متعلق وو اګرچې ملاعلی القاری ديته ډيره بعيده ويلې ده .

**سوال** : شيعه شنيعه زيات شور كوي چې دلته د حضرت علی رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ لپاره د خلافت وصيت ليكل كيده مګر عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ پرې نخودو .

**جواب(۱)** : ددې جواب دا دی چې شيعه خو وايې چې حضرت علی رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ ته په غدير خم كې خلافت ملاو شوی وو بيا دلته كوم خلافت ورته ملاويده چې شيعه ورباندې ژاړي ؟

**جواب (۲)** : دا دی چې څه په دغه وخت حضرت عمر فارق رض د ليكلو نه منع كړلو نو ددينه بعد خو هم تر دريو ورځو رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په دنيا كې موجود وو بيا كوم شی د ليكلو نه مانع شو ،

دا واقعه د پنجشنبې ده او حضور صلى الله عليه وسلم درې ورځې بعد د دوشنبې په ورځ وفات شوی دی کچیرې دا کوم ضروری او واجب حکم وای نو حضور صلى الله عليه وسلم به وروسته لیکلو .

**جواب (۳)**: دا دی چې دا د خلافت د لیکلو معامله وه مګر د حضور صلى الله عليه وسلم رأیه بدله شوه او دا د خلافت لیکلو اراده د حضرت علی رضي الله عنه لپاره نه وه بلکه د حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه لپاره وه چې په هغه باندې ډیر روایات واضح دلالت کوي لکه **یأبی الله والموو منون الا ابابکر**، کچیرې حضور اکرم صلى الله عليه وسلم د حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه لپاره د خلافت تحریر لیکلو او د هغه نه بعد شیعه ګانو انکار کولی نو شیعه به ډېل کافر کیدل ، شیعه روافضو ته خو د عمر فاروق رضي الله عنه شکریه اداء کول پکار وو چې هغوی یې د ډېل کافر کولو نه بچ کړل ، اوس دوی سنګل کافر پاتې شول ! په هر حال د صحابه کرامو په رأیې سره د حضور صلى الله عليه وسلم رأیه بدله شوه ، هسې هم موافقات عمر خو مشهور دي ، دا هم د موافقات عمر نه یو دی ، چونکې الله تعالی ته دا منظوره وه چې د خلافت معامله داسې حل شي چې په آزادانه طور باندې په خپله مسلمانان د هغه فیصله وکړي او ابوبکر صدیق مسلمانان په خپله منتخب کړي ، پخپله حضور صلى الله عليه وسلم وفرمایل چې الله تعالی او مسلمانان د ابوبکر صدیق نه علاوه کوم بل څوک نه منتخب کوي .

**څلورم جواب** دا دی چې ددې تحریر په منع کولو کې حضرت عمر رضي الله عنه یوائې نه وو په کور کې د اهل بیتو نه نور خلک هم وو نو یوائې حضرت عمر رضي الله عنه ولې نشانه جوړول کیږي . د حضرت عمر فاروق رضي الله عنه خیال خو دا وو چې شریعت مکمل شوی دی ، قرآن نازل شوی دی ، د احادیثو ذخیره موجوده ده ، اوس کوم ضروری کار هم باقی نه دی چې د هغه لیکل په دې وخت کې ضروری دي، د لته حضور صلى الله عليه وسلم ته تکلیف وو ، دیته په کتلو سره حضرت عمر فاروق رضي الله عنه منع وکړه ، په دې نیکه اراده کې په هغه باندې طعن ویل داسې دی لکه چې شاعر ویلي :

**فعین الرضا عن کل عیب کلیلة ولکن عین السخط تبدی المساویا**

ترجمه : یعنې چې کله نیت ښه وي نو سترګې د هرې بدۍ نه ړندې کیږي لیکن کچیرې نیت بد وي نو د سترګو مخ ته صرف بدۍ وي .

**سوال** : د حضور اکرم صلى الله عليه وسلم چې کله حکم وو نو عمر فاروق رضي الله عنه انکار ولې وکړو ؟ آیا داسې کول ناجائز نه دي ؟

**جواب** : حضرت عمر فاروق رضي الله عنه د حضور اکرم صلى الله عليه وسلم د راحت په غرض انکار وکړو او منع یې وکړه کچیرې دا نقصان وي او ناجائز وي نو په صلحه د حدیبیه کې چې کله حضرت علي رضي الله عنه ته حضور اکرم صلى الله عليه وسلم د معاهدې د تحریر نه د څه الفاظو ختمولو وویل نو حضرت علي رضي الله عنه

ولې انكار وكړو ؟ هغه انكار خو ددې انكار نه زيات وو ، د شيعو په نزد باندې خو هلته هيڅ نه وو شوي او دلته هر څه كيږي دا بغض او عناد ولې دی ؟باقي د حضرت ابن عباس رضي الله عنه ژړا د حضور ﷺ د آخري ورځو په ياد راتللو باندې وه ، په دې باندې نه وه چې ليكل يې ولې ونه كړل، او كيدلی شي چې د كومې بلې وجهې نه يې ژړلي وي، د ژړا اسباب خو مختلف وي .

**الرزية كل الرزية**: مصيبت ته رزية وايې يعنې مكمل مصيبت په دغه وخت راغلی وو .

**ما حال**: يعنې چې كله خلك سره مختلف شول .

**لغطهم**: دا هغه شور ته ويل كيږي چې د هغه په مفهوم باندې سړی نه پوهيږي صرف د شور آوازونه اوريدل كيږي . **(بل دمعه الحصی)** بل لمديدلو ته ويل كيږي ، دمع اوښكو ته ويل كيږي ، او الحصی شګو ته ويل كيږي يعنې د هغه په اوښكو باندې شګې لمدې شوې .

**كتف**: په هغه زمانه كې به كاغذ نه وو په څرمني يا د ونې په پوستكي يا تيږې يا هډوكي باندې به ليكل كيدل دلته همدا هډوكی مراد دی د ګډ د مخې خپې هډوكی برداره وي چې د ليكلو لپاره مناسب وي د شانې بل هډوكی هم مراد كيدلی شي .

**اهجر استفهموه**: د اهجر په لفظ كې صحيح روايت همدا دی چې همزه د استفهام موجوده ده ، په دې باندې فتحه ده ، په هاء باندې هم زور دی او په جيم او راء باندې هم فتحه ده ، په دې لفظ باندې پوهيدلو او پوهولو كې ډير دقت مخې ته راځي ، چونكې دلته د حضرت عمر فاروق رضي الله عنه نوم راغلی دی په دغه وجه شيعه شنيعه ددې حديث نه د خپلو مذمومو اغراضو او مقاصدو راويستلو او د نيل بغض او عداوت ظاهرولو لپاره پوره پوره كوشش كوي ، په كوم صحيح محمل باندې حمل كولو په ځای هغه په داسې محمل باندې حمل كوي چې په دې سره په صحابه كرامو بالخصوص حضرت عمر فاروق رضي الله عنه باندې د طعن كولو موقع په لاس كې راځي حالانكه په دې ټوله قصه كې اهل بيت هم شريک دي . دغه لفظ په غلط مفهوم باندې حمل كولو سره دا مطلب بيانولی شي چې خلكو وويل چې آيا حضور ﷺ لغويات ويل؟ په كوم بحراني كيفيت كې مبتلا دی ؟ په كوم هذيان كې مصروف دی ؟ دا مفهوم د نبی معصوم په باره كې بلكل غلط دی او نه داسې نسبت كوم مسلمان خپل نبی ته كولی شي چې ددې څه ځای دی چې په سيدنا عمر فاروق رضي الله عنه باندې دا الزام ولګولی شي يا په كوم بل صحابی باندې بهتان وتړلی شي .

دويم مفهوم دا دی چې دا كلام په استفهام انكاری باندې محمول دی او ددې كلام ويونكی هغو خلكو ته تنبيه او توبيخ وركوي او وايې چې آيا نبی مكرم كومه غلطه خبره كوي يا د كوم بحراني

کیفیت خبره کوي؟ یا کومه فضوله خبره کوي؟ داسې نه ده بلکه دا د نبی معصوم خبره ده دا واورئ! او په دې باندې د پوهیدو کوشش وکړئ.

دریم مفهوم دا دی چې دا د عربو د محاورې او د عربو د دستور مطابق کلام دی چې په هغه کې خو خبرې کیږي مګر په پوهه کې نه راځي په دغه قسم کلام کولو کې د مریض هیڅ توهین نه وي بلکه د تبې د شدت په وجه کله کله مریض داسې کلام کوي، دیته په پښتو کې (ګاګیرې) وایې. مطلب دا دی چې ویونکی وایې چې لږ د پوهیدو کوشش وکړه آیا نبی مکرم (کاکیرې) وایې. ملاعلی قاري رحمه الله په مرقات کې لیکلي دي (**والمراد به هنا مایقع من کلام المریض مما لا ینتظم**) دا کلام په حقیقت کې د قاضی عیاض دی اګرچې دا هم رد کړی شوی دی مګر زه پوهیږم چې د دې توجیه نه بهتره کومه توجیه نشته په دې باندې قبائل خلک ښه پوهیږي. د (**استفهموه**) مطلب دا دی چې په دې خبره ځان پوهه کړئ او د پوهیدلو کوشش وکړئ. (**یردون علیه**) یعنې صحابه او اهل بیت چې په دې کور کې موجود وو هغوی د حضور صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ کلام په هغه باندې واپس کولو چې د دې کلام ضرورت نشته. واخله وروره! دا د عامو اهل بیتو او په کور کې موجوده صحابه کرامو خبره ده په دې کې خو تصریح ده حال دا چې حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ صرف اشاره کړې ده.

## خلفاء راشدینو د حضور صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د متعلقینو خیال ساتلو

| ﴿۱۲﴾ وَ عَنْ أَنَسٍ قَالَ أَبُوْبَكْرٍ |
|---|
| او حضرت انس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ بیان کوي د رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د وفات نه روسته یوه ورځ حضرت ابوبکر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ |
| لِعُمَرَ بَعْدَ وَفَاةِ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته وویل راځه چې أم ایمن رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا ته ورشو څرنګه چې رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به د |
| انْطَلِقْ بِنَا إِلَى أُمِّ أَيْمَنَ نَزُوْرُهَا كَمَا كَانَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| هغه ملاقات ته تشریف وړلو نو مونږ دری واړه (یعني زه او حضرت ابوبکر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ او حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ) |
| يَزُوْرُهَا فَلَمَّا انْتَهَيْنَا إِلَيْهَا بَكَتْ فَقَالَا لَهَا مَا |
| أم ایمن رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا ته ورسیدو هغه زمونږ لیدو سره په ژړا شوه حضرت ابوبکر او حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ دواړو |
| يُبْكِيْكِ أَمَا تَعْلَمِيْنَ أَنَّ مَاعِنْدَ اللهِ خَيْرٌ لِرَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| ورته وویل ولې ژاړې آیا تا ته معلومه نه ده چې د الله! د رسول صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د پاره د الله! په نزد چې |

| فَقَالَتْ اِنِّيْ لَاأَبْكِيْ أَنِّيْ لَا أَعْلَمُ أَنَّ مَا عِنْدَ اللهِ |
|---|
| څه دي هغه بهتر نه بهتر دي أم يمن رضي الله عنها وويل زما د ژړا سبب دا نه دی چې زه دي خبري نه لاعلمه |
| خَيْرٌ لِّرَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَلٰكِنْ أَبْكِيْ |
| يم چې د الله ! په نزد رسول الله صلی الله علیه وسلم دپاره چې څه دي هغه بهتر نه بهتر دي بلکه زه ځکه ژاړم |
| أَنَّ الْوَحْيَ قَدِ انْقَطَعَ مِنَ السَّمَاءِ فَهَيَّجَتْهُمَا عَلَى الْبُكَاءِ |
| چې آسمان نه دوحي راتلو سلسله ختمه شوی ده د أم ايمن رضي الله عنها دې الفاظو حضرت ابوبکر رضي الله عنه او |
| فَجَعَلَا يَبْكِيَانِ مَعَهَا. رَوَاهُ مُسْلِمٌ. |
| حضرت عمر رضي الله عنه باندې هم رقت وغوړوی او هغه دواړه حضرات هم په ژړا شول. [مسلم] |

**توضيح** : **نزورها**: ام ايمن رضی الله عنها د نبی مکرم صلی الله علیه وسلم رضاعی مور ده او د حضرت اسامه رضي الله عنه والده ده ، دا د عبدالله صاحب وينځه وه . چې کله د بی بی آمنې انتقال وشو نو د مدينې منورې څخه حضور صلی الله علیه وسلم ام ايمن د خپل ځان سره مکی مکرمې ته راوسته ، د ام ايمن اصلی نوم برکة وو، دا حضور صلی الله علیه وسلم ته په طور د ميراث ورسيده نو هغه دا آزاده کړه . حضور صلی الله علیه وسلم به د هغې ډير تعظيم او توقير او عزت او احترام کولو ،د هغه احترام په وجه حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه او حضرت عمر فاروق رضي الله عنه د هغې احترام کولو او کله کله به د هغې د زيارت لپاره تللو ، په زير بحث حديث کې د همدې بيان دی ، حضرت ام ايمن رضي الله عنها داسې دردناکه جمله وفرمايله چې دواړه خلفاء يې بنه وژړول او پخپله هم وژړيده .

## په منبر نبوي باندې د نبي کريم صلی الله علیه وسلم آخرنی خطبه

| ﴿۱۲﴾ وَعَنْ أَبِيْ سَعِيْدِنِ الْخُدْرِيِّ قَالَ خَرَجَ عَلَيْنَا رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
|---|
| او حضرت ابوسعيد خدری رضي الله عنه وايي رسول الله صلی الله علیه وسلم د وفات په مرض کې د خپلې حجرې نه وتلو |
| فِيْ مَرَضِهِ الَّذِيْ مَاتَ فِيْهِ وَنَحْنُ فِي الْمَسْجِدِ |
| سره مسجد نبوی صلی الله علیه وسلم ته تشريف راوړو چيرته چې مونږ ناست وو هغه وقت حضور صلی الله علیه وسلم خپل سر |
| عَاصِبًا رَأْسَهُ بِخِرْقَةٍ حَتّٰى أَهْوٰى نَحْوَ الْمِنْبَرِ فَاسْتَوٰى |
| مبارک په کپړه تړلی وه بيا حضور صلی الله علیه وسلم منبر طرف ته ولاړه او په هغه باندې او دريدلو حضور صلی الله علیه وسلم |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| عَلَيْهِ | وَاتَّبَعْنَاهُ | قَالَ | وَ | الَّذِیْ | نَفْسِیْ |

سره مونږ هم حضور صلی الله علیه وسلم مخ ته کینا ستلو هغه وقت حضور صلی الله علیه وسلم وفرمائیل قسم دی په هغه ذات

بِيَدِهٖ إِنِّیْ لَأَنْظُرُ إِلَى الْحَوْضِ مِنْ مَقَامِیْ هٰذَا ثُمَّ

چې د هغه قبضه کي زما ساه ده زه دا وقت پردي خپل ځاي باندې ولاړ حوضِ کوثر وینم بیایي

قَالَ إِنَّ عَبْدًا عُرِضَتْ عَلَيْهِ الدُّنْيَا وَزِيْنَتُهَا

وفرمائیل یو بنده دی چې د هغه مخکي دنیا زیب اوزینت پیش شو لیکن هغه دُنیا باندې د آخرت

فَاخْتَارَ الْآخِرَةَ قَالَ فَلَمْ يَفْطَنْ لَهَا أَحَدٌ غَيْرَ أَبِیْ بَكْرٍ

نعمتونو ته ترجیح ورکړه حضرت ابو سعید رضی الله عنه وایي د دي ارشاد گرامی په راز باندې د ابوبکر رضی الله عنه

فَذَرَفَتْ عَيْنَاهُ فَبَكٰى ثُمَّ قَالَ

نه سوا بل څوک پوه نه شو نو د ابوبکر رضی الله عنه د سترګو نه وښکي جاري شوی او په ژړا شو بیایي

بَلْ نَفْدِيْكَ بِآبَائِنَا وَ أُمَّهَاتِنَا وَ أَنْفُسِنَا وَ أَمْوَالِنَا

وویل [نه] داسي دلسوزه خبره مه کوي] مونږ خپل پلرونه خپلي میندی خپل ځانونه او خپل مالونه

يَا رَسُوْلَ اللهِ قَالَ ثُمَّ هَبَطَ فَمَا قَامَ عَلَيْهِ

په تا سو صلی الله علیه وسلم صدقه کوو و حضرت ابو سعید رضی الله عنه وایي دي نه روسته حضور صلی الله علیه وسلم منبر نه خکته

حَتّٰى السَّاعَةِ . رَوَاهُ الدَّارِمِیُّ.

کیدو سره تشریف یوړلو او تر دي وخته پوري بیا هیڅ کله په دي منبر ونه دریده .

**توضیح** : عاصبا رأسه: مریض چې کله په سر باندې د سر د درد په وجه پلنه ټوټه وتړي هغې نه عصابه ویل کیږي ، عاصب د اسم فاعل صیغه ده چې په سر باندې کپړه تړونکي شخص ته ویل کیږي .

اهوی: د متوجه کیدلو په معنی سره ده .

حتی الساعة: یعنې د هغه نه وروسته تر اوسه پورې حضور اکرم صلی الله علیه وسلم په منبر باندې ونه دریده ، په دې صورت کې به د الساعة ترجمه په یو ساعت سره کیږي ، یا مطلب دا دی چې د دینه بعد به تر قیامته حضور صلی الله علیه وسلم په منبر باندې ونه دریږي ، دا د هغه آخری قیام او خطبه وه .

## بي بي فاطمي رضي الله عنها د حضور صلی الله علیه وسلم د خپل وفات کیدو خبر ور کړی وو

(۱۴) وَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ لَمَّا نَزَلَتْ إِذَا جَاءَ نَصْرُ اللهِ

او حضرت ابن عباس رضي الله عنه بیان کوي کوم وقت چې سورة اذا جا نصر الله و الفتح نازل شو نو

وَالْفَتْحُ دَعَا رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاطِمَةَ قَالَ نُعِيَتْ

رسول الله صلی الله علیه وسلم بي بي فاطمه رضي الله عنها را وغوښته او ورته یې وفرمائیل ماته زما د مرګ خبر را کول شوی

إِلَيَّ نَفْسِيْ فَبَكَتْ قَالَ لَا تَبْكِيْ فَإِنَّكِ

دی بي بي فاطمه رضي الله عنها په ژړا شوه حضور صلی الله علیه وسلم ورته وفرمائیل ژاړه مه زما په اهل بیتو کي به

أَوَّلُ أَهْلِيْ لَاحِقٌ بِيْ فَضَحِكَتْ فَرَآهَا بَعْضُ أَزْوَاجِ

د ټولو نه مخکي ته زما سره یو ځای شي فاطمه رضي الله عنها په خندا شوه بعضي ازواج مطهراتو چې

النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُلْنَ يَا فَاطِمَةُ

بي بي فاطمه رضي الله عنها د غسي ولیده نو پوښتنه یې تري وکړه چې فاطمي ! دا څه خبره وه چې مونږ ته مخکي

رَأَيْنَاكِ بَكَيْتِ ثُمَّ ضَحِكْتِ قَالَتْ إِنَّهُ أَخْبَرَنِيْ

په ژړا او بیا په خندا ولیدلې بي بي فاطمې رضي الله عنها ورته وویل حضور صلی الله علیه وسلم مخکي ماته دا وښودل چې

أَنَّهُ قَدْ نُعِيَتْ إِلَيْهِ نَفْسُهُ فَبَكَيْتُ

حضور صلی الله علیه وسلم ته د مرګ خبر ور کول شوی دي آوریدو سره زه په ژړا شوم او بیا راته حضور صلی الله علیه وسلم

فَقَالَ لِيْ لَا تَبْكِيْ فَإِنَّكِ أَوَّلُ أَهْلِيْ لَاحِقٌ بِيْ فَضَحِكْتُ

وفرمائیل چې ژاړه مه زما اهل بیتو کي به ته د ټولو نه مخکي زما سره یو ځای شي نو زه په خندا شوم

وَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ إِذَا جَاءَ نَصْرُ اللهِ وَالْفَتْحُ، وَجَاءَ أَهْلُ الْيَمَنِ

او رسول الله صلی الله علیه وسلم و فرمائیل هر کله چې د الله تعالی مدد او د مکي فتح حاصله شوه او د یمن خلق

هُمْ أَرَقُّ أَفْئِدَةً وَالْإِيْمَانُ يَمَانٍ وَالْحِكْمَةُ يَمَانِيَةٌ. رَوَاهُ الدَّارِمِيُّ.

راغلل چې په زړونو نرم دي ایمان یمنی دی او حکمت هم یمنی دی. [دارمی رحمه الله روایت کړي دي]

**توضیح**: یعنې ما ته زما د مرګ خبر راکړل شوی دی. **بعض ازواج**: ددینه حضرت عائشه رضي الله عنها

مراد ده . **فقلن:** ددینه هم حضرت عائشه رضي الله عنها مراد ده مګر جمع د احترام او اکرام په طور ده . دا احتمال هم شته چې نور ازواج هم هلته موجودې وې . **والایمان یمان:** یعنې ایمان خو د اهل یمن دی . د اهل یمن څخه کوم خلک مراد دي او دا مدحه د کومو خلکو ده په دې کې څو اقوال دي : (۱) یو قول دا دی چې ددینه د یمن خلک مراد دي په دوی کې څه خصوصیات دي د دغو خصوصي امتیازاتو په وجه د دوی د ایمان صفت شوی، مګر یاد ساتل پکار دي چې دا د هغې زمانې د یمن د مسلمان خلکو مدحه ده تر قیامته پورې د راتلونکي اهل یمن والا تعریف نه دی . (۲) دویم قول دا دی چې د اهل یمن څخه مراد اهل مکه دي او چونکې دا حدیث حضور صلى الله عليه وسلم د تبوک په مقام باندې فرمایلی وو او د یمن طرفته یې اشاره هم وفرمایله هغه طرفته مکه او مدینه واقع دي نو د یمن هیرولو سره مکه او مدینه مراد کړی شوي دي، هسې هم یمان جانب یمین ته وایې او مکه او مدینه په جانب یمین کې وو، په دغه وجه د یمان څخه اهل مکه او اهل مدینه مراد دي ، په دې توجیه سره د هغه حدیث مطلب هم په پوهه کې راځي او تعارض هم ختمیږي په کوم حدیث کې چې دا الفاظ دي :**الایمان فی الحجاز**. (۳) دریم قول دا دی چې د یمان څخه د مدینې انصار مراد دي ځکه چې د هغوی نسل او د هغوی اصل د یمن څخه دی ګویا دا د انصارو تعریف دی ، په هر حال اول قول حقیقت دی باقي مجاز دي . په یمن کې خیر دی ، نن سبا اسامه بن لادن حفظه الله هم د یمن دی .

**والحکمة:** د مستقبل په باره کې په سوچ کولو سره فیصلې کولو ته حکمت وایې . حکمت د دانشمندۍ عقل او تدبر نوم دی او د حقائقو بیخ ته د رسیدلو او د علم او معرفت نوم دی ، د یمن په خلکو کې دا شیان زیات دي .

## مرض وفات کې د حضرت ابوبکر رضي الله عنه د خلافت باره کښې وصیت

| ﴿۱۵﴾ وَ | عَنْ | عَائِشَةَ | اَنَّهَا | قَالَتْ | وَارَأْسَاهُ |
|---|---|---|---|---|---|
| او حضرت عائشې رضي الله عنها نه روایت دی چې هغه د رسول الله صلى الله عليه وسلم سره ناسته وه د سر درد د سختې اظهار | | | | | |
| فَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ | ذَاكِ | لَوْ | كَانَ | وَ | اَنَا حَيٌّ |
| یې وکړو رسول الله صلى الله عليه وسلم ورته وویل که هغه مرګ دا سې صورت کې راغی چې زه ژوندی پاتې شوم | | | | | |
| فَأَسْتَغْفِرُ | لَكِ | وَ | أَدْعُوْلَكِ | | |
| نو ستا د پاره به د مغفرت او بخشش دعا غواړم او ستا د درجاتو د بلندۍ د پاره به هم دعا کوم | | | | | |

| |
|---|
| فَقَالَتْ عَائِشَةُ وَاثُكْلِيَاهُ وَاللهِ إِنِّي لَأَظُنُّكَ تُحِبُّ مَوْتِي |
| بي بي عائشي رضي الله عنها وويل های زما د سر د درد مصيبته! قسم په الله زما خو خيال دی چې تا سو زما |
| فَلَوْ كَانَ ذٰلِكَ لَظَلِلْتَ آخِرَ يَوْمِكَ مُعَرِّسًا بِبَعْضِ أَزْوَاجِكَ |
| مرګ خوښوئ که داسې وشو نو تاسو صلى الله عليه وسلم به د هغه ورځې آخرى حصه کې خپلې يوې بي بي.... |
| فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَلْ أَنَا وَارَأْسَاهُ لَقَدْ هَمَمْتُ أَوْأَرَدْتُ |
| شپه تيرول وفرمايې نبى کريم صلى الله عليه وسلم ورته وفرمائيل. بلکه زما د سر درد افسوس دی زما قصد |
| أَنْ أُرْسِلَ إِلٰى أَبِي بَكْرٍ وَابْنِهِ وَأَعْهَدَ |
| يا اراده وه چې زه ستا پلار ابوبکر رضي الله عنه او د هغه زوی را وغواړم او د هغوی په حق کې وصيت وکړم |
| أَنْ يَقُوْلَ الْقَائِلُوْنَ أَوْ يَتَمَنّٰى الْمُتَمَنُّوْنَ |
| چې يا څوک ويونکي هيڅ ونه وايې يا حضور صلى الله عليه وسلم دا وفرمائيل چې متمنى خلق د آرزو اظهار ونه کړي يا ما په |
| ثُمَّ قُلْتُ يَأْبَى اللهُ وَيَدْفَعُ الْمُؤْ مِنُوْنَ |
| خپل زړه کې وويل چې خپله به الله تعالى منظور نه کړي او مسلمانان به هم مدافعت کوي يا حضور صلى الله عليه وسلم |
| أَوْ يَدْفَعُ اللهُ وَيَأْبَى الْمُؤْمِنُوْنَ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ. |
| داسې وفرمائيل چې خپله به الله تعالى مدافعت کوي او مسلمانان به هم بل څوک نه مني. [ بخاري ] |

**توضيح**: (وارأساه) های زما سر خو د درد له لاسه چوي. (واثکلياه) ثکل موت او هلاکت ته هم ويل کيږي او د بچي يا محبوب ورکيدلو ته هم ويل کيږي، مطلب دا دی چې های زما مصيبته، دا کلمه د مصيبت په وخت کې ويل کيږي. (معرسا) دا د عروس څخه دی يعنې زما خو خيال دی کچيرې زه مړه شم نو د ورځې په آخرى حصه کې به ته د کومې بى بى سره واده برابروې. (بل وانا وارأساه) حضور صلى الله عليه وسلم وفرمايل چې په حقيقت کې زما سر د درد نه چوي، په دې کې يو وپټه اشاره ده چې په حقيقت کې مرګ زما په سر باندې ولاړ دی، په راتلونکې حديث کې ددې تفصيل دی. ملاعلى قاري رحمه الله ليکلي دي چې د حضور صلى الله عليه وسلم او د حضرت عائشه رضي الله عنها د سر درد يو ځای شروع کيدلو کې د دواړو په مينځ کې کمال محبت ته اشاره ده چې د يو په سر کې د درد په وجه د بل په سر کې هم درد پيدا شو، دا داسې وشول لکه څنګه چې په کمال محبت کې د مجنون د جسم نه پخپله وينه وبهيده کله چې ليلى د خپل جسم نه رګ

وهلو سره وينه وويسته لکه څنګه چې په عوامو کې مشهوره ده.

(واعهد) يعنې د صديق اکبر رضي الله عنه لپاره د خلافت وصيت وکړم بيا ما سوچ وکړو چې الله تعالى او بيا مسلمانان به د ابوبکر نه علاوه کوم بل څوک خليفه جوړ نکړي.

ان يقول: دلته لا محذوفه دى اى لئلا يقول القائلون او لئلا يتمنى المتمنون.

## د مرض وفات ابتداء

﴿۱٦﴾ وَعَنْهَا قَالَتْ رَجَعَ إِلَيَّ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذَاتَ يَوْمٍ مِّنْ جَنَازَةٍ

او بي بي عائشه رضي الله عنها وايي تشريف راوړو ماته يوه ورځ رسول الله صلى الله عليه وسلم د يوې جنازې دفن کولو نه

مِنَ الْبَقِيْعِ فَوَجَدَنِيْ وَأَنَا أَجِدُ صُدَاعًا وَأَنَا أَقُوْلُ وَارَأْسَاهُ

وروسته په بقيع کې نو زه يې دې حالت کې وليدم چې زه د سر په درد مبتلا وم او ما ويل هاى زما سر

قَالَ بَلْ أَنَا يَا عَائِشَةُ!

چوى حضور صلى الله عليه وسلم زه دې حالت کې ليدو او زما دې الفاظ اوريدو سره وفرمائيل اى عائشي رضي الله عنها زه

وَارَأْسَاهُ قَالَ وَمَا ضَرَّكِ لَوْ مِتِّ قَبْلِيْ

وايم چې زما سر درد کوي حضور صلى الله عليه وسلم وويل دې کې نقصان څه دى که ته زما نه مخکې مړه شوې

فَغَسَّلْتُكِ وَكَفَّنْتُكِ وَصَلَّيْتُ عَلَيْكِ وَدَفَنْتُكِ

نو زه به غسل درکړم او کفن به درکړم او د جنازې لمونځ به درباندې وکړم او دفن به دې کړم، دې

قُلْتُ لَكَأَنِّيْ بِكَ وَاللهِ لَوْ فَعَلْتَ

اوريدو سره ما وويل قسم په الله دا خو ماته ستا سو باره کې داوس نه په نظر راځي که تاسو داسې

ذٰلِكَ لَرَجَعْتَ إِلٰى بَيْتِيْ

وکړل او تاسو زما تجهيز او تکفين او تدفين وغيره وکړو نو تاسو دې اُمورو نه فارغيدو سره زما

فَعَرَّسْتَ فِيْهِ بِبَعْضِ نِسَائِكَ

کورته واپس بلې ښځې سره به شپه تيره کړئ حضور صلى الله عليه وسلم زما دې الفاظو آوريدو سره چې زما

فَتَبَسَّمَ رَسُوْلُ اللهِ ثُمَّ بُدِئَ فِيْ وَجَعِهِ الَّذِيْ

غيرت او حميت باندې دلالت کوي په خندا شو او بيا د حضور صلى الله عليه وسلم د مرضتيا سلسله شروع شوه

مَاتَ فِيْهِ. رَوَاهُ الدَّارِمِيُّ.

چې هغې کې حضور صلى الله عليه وسلم وفات شو.

## دوصال نبوي صلى الله عليه وسلم نه وروسته د حضرت خضر رضي الله عنه تعزيت

﴿۱۷﴾ وَعَنْ جَعْفَرِ بْنِ مُحَمَّدٍ عَنْ أَبِيْهِ أَنَّ رَجُلًا مِّنْ قُرَيْشٍ

او حضرت امام جعفر صادق ابن محمد رحمه الله د خپل والد نه روايت کوي چې قريشو نه يو سړی د هغه

دَخَلَ عَلَى أَبِيْهِ عَلِيِّ بْنِ الْحُسَيْنِ

والد حضرت امام علي زين العابدين ابن حسين رحمه الله په خدمت کې حاضر شو نو حضرت امام علي زين العابدين رحمه الله

فَقَالَ أَلَا أُحَدِّثُكَ عَنْ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ

هغه ته يې ووېل آيا زه ستا مخکې د رسول الله صلى الله عليه وسلم حديث بيان کړم هغه سړي ووېل هو

بَلٰى حَدِّثْنَا عَنْ أَبِي الْقَاسِمِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ

زمونږ مخکې د حضرت ابو القاسم حديث ضرور بيان کړه نو امام علي زين العابدين رحمه الله ورته

لَمَّا مَرِضَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَتَاهُ جِبْرَئِيْلُ

بيان وکړی کوم وقت چې رسول الله صلى الله عليه وسلم مريض سو نو حضرت جبرائيل عليه السلام حضور صلى الله عليه وسلم

فَقَالَ يَا مُحَمَّدُ إِنَّ اللهَ أَرْسَلَنِيْ إِلَيْكَ تَكْرِيْمًا لَّكَ

ته راغی او عرض يې وکړو ای محمد صلى الله عليه وسلم الله تعالى ستا سو د تکريم او تعظيم د پاره زه ستا سو

وَتَشْرِيْفًا لَّكَ خَاصَّةً لَّكَ يَسْئَلُكَ

په خدمت کې رالیږلی يم او دا صرف ستا د پاره مخصوص دی الله تعالى ستا نه د هغه شي پوښتنه

عَمَّا هُوَ أَعْلَمُ بِهِ مِنْكَ يَقُوْلُ كَيْفَ تَجِدُكَ قَالَ

چې هغه يې ستا نه زيات پېژني هغه پوښتنه کوي چې تا سو خپل ځان څرنګه پيدا کړو؟ حضور صلى الله عليه وسلم

أَجِدُنِيْ يَا جِبْرَئِيْلُ مَغْمُوْمًا وَّ أَجِدُنِيْ يَا جِبْرَئِيْلُ

وفرمائيل جبرائيل! زه خپل ځان غم زده پيدا کونکي وينم او اى جبرائيل! زه خپل ځان مضطرب او

مَكْرُوْبًا ثُمَّ جَاءَهُ الْيَوْمَ الثَّانِيَ

پریشانی کي وينم حضرت جبرائیل بيا په دويمه ورځ د حضور صلى الله عليه وسلم خدمت کي حاضر شو او هغه

فَقَالَ لَهُ ذٰلِكَ فَرَدَّ عَلَيْهِ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَمَا

الفاظ يي وويل کوم چې په اولنی ورځ يي ويلي وو نبی کریم صلى الله عليه وسلم هم جواب کي هغه خبره وکړه کومه

رَدَّ أَوَّلَ يَوْمٍ ثُمَّ جَاءَهُ الْيَوْمَ الثَّالِثَ

چې يي مخکي کړې وه په دریمه ورځ حضرت جبرائیل علیه السلام بيا د حضور صلى الله عليه وسلم په خدمت کي

فَقَالَ لَهُ كَمَا قَالَ أَوَّلَ يَوْمٍ وَرَدَّ عَلَيْهِ

حاضر شو او هغه الفاظ يي وويل کوم چې يي مخکي ويلي وو نبی کریم صلى الله عليه وسلم هم هغه خبره وکړه کومه

كَمَا رَدَّ عَلَيْهِ وَجَاءَ مَعَهُ مَلَكٌ يُقَالُ لَهُ إِسْمَاعِيلُ

چې يې مخکي کړې وه او په هغه ورځ يا د هغه نه روسته حضرت جبرائیل سره يوه بله فرشته اسمٰعیل

عَلٰى مِائَةِ أَلْفِ مَلَكٍ كُلُّ مَلَكٍ عَلٰى مِائَةِ أَلْفِ

هم وه چې داسي ديو لاکه فريشتو افسره ده چې په هغوکي يوه يوه فريشته د يو يو لاکه فريشتو

مَلَكٍ فَاسْتَأْذَنَ عَلَيْهِ فَسَأَلَهُ عَنْهُ

افسره وه هغه اسمٰعیل فریشتي د حضور صلى الله عليه وسلم خدمت کي د حاضريدو اجازت وغوښته حضور صلى الله عليه وسلم

ثُمَّ قَالَ جِبْرَئِيْلُ هٰذَا مَلَكُ الْمَوْتِ

اسماعیل فريشتي ته د حاضريدو اجازت ورکړو او بيا حضرت جبرائیل وويل دا دمرګ فريشته

يَسْتَأْذِنُ عَلَيْكَ مَا اسْتَأْذَنَ عَلٰى آدَمِيٍّ قَبْلَكَ

[عزرایل] هم حاضر دی او د حاضريدو اجازت غواړی حالانکه هغه فريشتې د مرګ نه د حضور صلى الله عليه وسلم

وَلَا يَسْتَأْذِنُ عَلٰى آدَمِيٍّ بَعْدَكَ

نه مخکي اجازت غوښتي او نه به دينه روسته د هيڅ چانه اجازه وغواړی نورو خلقو خو اچانک

فَقَالَ ائْذَنْ لَهُ فَأَذِنَ لَهُ

راځي او روح يې قبض کوي حضور صلى الله عليه وسلم وفرمائيل هغه ته اجازه ورکړه نو حضرت جبرائیل علیه السلام

فَسَلَّمَ عَلَيْهِ ثُمَّ قَالَ يَا مُحَمَّدُ

ملک الموت د دې اجازت نه خبر کړو او هغه د حاضرېدو سره سلام عرض کړو او وويل ای محمد صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

إِنَّ اللهَ أَرْسَلَنِيْ إِلَيْكَ فَإِنْ أَمَرْتَنِيْ أَنْ أَقْبِضَ

الله تعالى زه ستا سو خدمت کې را لېږلې يم که تا سو د روح قبض کولو حکم را کوئ نو قبض به يې

رُوْحَكَ قَبَضْتُ. وَ إِنْ أَمَرْتَنِيْ أَنْ أَتْرُكَهُ تَرَكْتُهُ فَقَالَ

کړم او که تا سو دا حکم را کوئ چې زه تا سو پرېږدم نو زه مو پرېږدم حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ورته و فرمائيل

وَ تَفْعَلُ يَا مَلَكَ الْمَوْتِ قَالَ نَعَمْ بِذٰلِكَ

ای د مرګ فرېښتې! آيا ته به هغه کوې څه چې زه در ته حکم درکړم د مرګ فرېښتې جواب ورکړو

أُمِرْتُ وَ أُمِرْتُ أَنْ أُطِيْعَكَ قَالَ

بېشکه ما ته خو حکم دا را کړی شوی چې تا سو اختيار درکړم او څه چې تا سو فرمايئ د هغه اطاعت

فَنَظَرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلٰى جِبْرَئِيْلَ

کوم امام علی زين العابدين رَحِمَهُ اللّٰهُ وايي نبی کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د جبرائيل طرف ته وکتل حضرت جبرائيل عَلَيْهِ السَّلَامُ

فَقَالَ جِبْرَئِيْلُ يَا مُحَمَّدُ إِنَّ اللهَ قَدِ اشْتَاقَ إِلٰى لِقَائِكَ

عرض وکړو ای محمد صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ! حقيقت خو دا دی چې الله تعالی ستا سو د ملاقات مشتاق دی

فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ لِمَلَكِ الْمَوْتِ اِمْضِ لِمَا

حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ چې دا واورېدل نو بلا تأمل د مرګ فرېښتې ته وفرمائيل د کومې خبرې چې تا ته

أُمِرْتَ بِهِ فَقَبَضَ رُوْحَهُ فَلَمَّا تُوُفِّيَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

حکم شوی دی په هغه عمل وکړه نو فرېښتې د حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ روح قبض کړو کله چې د رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

وَ جَاءَتِ التَّعْزِيَةُ سَمِعُوْا صَوْتًا مِّنْ نَّاحِيَةِ الْبَيْتِ

وصال وشو خلقو د کور د يو ګوټ نه آواز را تلو سره واورېدل چې يو سړی وايي ای اهل بيتو! کوم

اَلسَّلَامُ عَلَيْكُمْ أَهْلَ الْبَيْتِ وَ رَحْمَةُ اللهِ وَ بَرَكَاتُهُ

خلق چې دلته موجود دي په تا سې دې سلامتيا وي او د الله تعالی رحمت دې وي او د هغه برکتونه دې

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| إِنَّ | فِي | اللهِ | عَزَاءً | مِّنْ | كُلِّ | مُصِيبَةٍ | وَخَلَفًا | مِّنْ | كُلِّ هَالِكٍ |

وي بيشکه د الله تعالى په يادولو کي تسلي ده د هر مصيبت نه او الله تعالى د هر هلاک کيدو شي

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَدَرَكًا | مِّنْ | كُلِّ | فَائِتٍ | فَبِاللهِ |

بدله ورکونکی او د هر فوت کيدونکی شي تدارک کونکي دي هر کله چې صورت دادی نو د الله

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فَاتَّقُوا | وَإِيَّاهُ | فَارْجُوا | فَإِنَّمَا | الْمُصَابُ | مَنْ | حُرِمَ | الثَّوَابَ |

مدد سره تقوىٰ حاصله کړئ هغه نه اُميد ساتئ مصيبت زده حقيقت کي هغه سړی دی چې دثواب نه

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فَقَالَ | عَلِيٌّ | أَتَدْرُونَ | مَنْ | هٰذَا؟ | هُوَ | الْخَضِرُ | عَلَيْهِ السَّلَامُ. |

محروم کړی شي حضرت علي رضي الله عنه وويل تا سو خلق پوهيږئ دا سړی څوک دی دا حضرت خضر عليه السلام

رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي دَلَائِلِ النُّبُوَّةِ

دی دا روايت بيهقي د لائل النبوة کي نقل کړی دی.

**توضيح : کيف تجدک:** يعنې ته خپل ځان په دې مريضتيا کې څنګه مومې؟ **(اجدني)** يعنې خپل ځان مغموم او محزون مومم ليکن دا شکايت د الله تعالى په مخ کې کوم **(إِنَّمَا أَشْكُو بَثِّي وَحُزْنِي إِلَى اللهِ)** بيا هم په هر حال کې د الله تعالى شکر اداء کوم او وايم **الحمدلله**.

**هذا ملک الموت:** يعنې د ارواحو قبض کولو باندې مقرو ملائکو نه يوه عظيم الشانه ملائکه ده چې ددينه مخکې هيچا ته راغلې نه ده او نه به آينده چا ته راشي او نه هغې د چا نه د راننوتلو اجازه غوښتې ده او نه به په آينده کې د چا نه اجازت غواړي صرف ستا نه د راتللو اجازه غواړي.

**و تفعل؟: اى اوتفعل؟** يعنې کوم حکم چې زه درکوم ته به هغسې وکړې؟ ملائکې ووېل چې هو ماته د غسې حکم شوی دی.

**ان في الله عزاء:** يعنې د الله تعالى په دين او د هغه په شريعت کې د هر مصيبت په وخت کې د تسلي او تسکين سامان شته.

**و خلفا:** خلف قائم مقام ته وايې او عوض ته هم وايې دلته عوض مراد دی يعنې الله تعالى بدله عطاء کونکی دی.

**و درکا: اى تدارکا** دا د موندلو په معنى سره دی يعنې الله تعالى د هر فوت کيدونکي شي تدارک

کولو والا دی.

**فبالله:** یعنې د الله تعالی په مدد سره تقوی اختیار کړه.

**المصاب:** یعنې مصیبت زده په حقیقت کې هغه شخص دی چې د ثواب نه محروم کړی شو.

**فقال علی:** ددینه زین العابدین هم مراد کیدلی شي او حضرت علی مرتضی رضي الله عنه هم مراد کیدلی شي ثانی زیات واضحه دی چې حضرت علي رضي الله عنه مراد دی.

**هو الخضر:** علامه طیبی رحمه الله لیکلي **فیه دلالة بینة علی ان الخضر موجود.** (مرقات جلد ۱۰ص۳۲۵)
د حضرت خضر په حیات او ممات کې د امت د علماوو اختلاف دی، د عامو مشائخو او صوفیو په نزد هغه ژوندی دی مګر نور علماء د هغه د موت قائل دي، دواړو طرفته دلائل دي، د زیر بحث حدیث نه واضحه کیږي چې حضرت خضر ژوندی دی او هغه د رجال الغیب د افرادو څخه دی، د تکوینی نظام سره متعلق دی په هغه باندې ظاهری نظام او د ظاهری شریعت احکام نافذ کیدلی نشي.کوم علماء چې د هغه د وفات قائل دي هغوی وایې کچیرې هغه ژوندی وای نو د حضور ﷺ سره به یې ملاقات شوی وو، په هغه باندې به یې ایمان راوړو او په غزواتو کې به شریکیده، همدارنګه په یو حدیث کې دي چې حضور ﷺ وفرمایل چې نن د ځمکې په مخ چې کوم ژوندی دی هغه به سل کاله بعد ختمیږي، خضر که په هغه وخت کې ژوندی.وو نو یقینا سل کاله بعد به هغه مړ شوی وي.
صوفیاء کرام جواب وړکوي چې وګوره وروره د حضرت خضر د ظاهری نظام سره هیڅ تعلق نشته هغه د باطنی او تکوینی نظام سړی دی، په هغه باندې ظاهری نصوص نه نافذیږي.
زدوایم چې ډیر مخلوق وفات شوی دی کچیرې حضرت خضر ته الله تعالی یو طویل عمر عطاء کړی وي تر څو د الله تعالی د قدرت یو نمونه جوړه شي نو په دې کې هیڅ استبعاد نشته، همدارنګه د هغه د وفات لپاره د دلائلو د تلاش کولو څه ضرورت دی، کوم خلک چې وفات شوي دي د هغو لپاره استغفار کول پکار دي.
الله تعالی لکه څنګه چې **قادر علی الاماتة** دی همدارنګه **قادر علی ابقاء الحیاة** هم دی، ملاعلی قاری رحمه الله لیکلي چې څلور انبیاء په دې وخت کې ژوندي دي، دوه په آسمانونو کې دي یعنې حضرت عیسی او حضرت ادریس علیهما السلام او دوه په ځمکه باندې دي یعنې حضرت الیاس او حضرت خضر علیهما السلام.



## باب ترکة النبي صلى الله عليه وسلم

## د حضور اکرم صلى الله عليه وسلم د ترکې په بیان کې

دلته دا باب د عنوان نه بغیر دی ګویا دا د باب وفات النبی صلى الله عليه وسلم لپاره په طور د تابع او په طورد تکمیل دی لیکن په دې باب کښې چه څومره احادیث دي د هغو ټولو تعلق د حضور صلى الله عليه وسلم د ترکې سره دی په دغه وجه شارحینو دلته د باب ترکة النبی صلى الله عليه وسلم باب تړلی دی ، ما هم داسې وکړل ، په دې باب کښې فصل ثانی او فصل ثالث نشته .

### اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

### حضور صلى الله عليه وسلم هیڅ مالی وصیت نه دی کړی

| |
|---|
| ﴿۱﴾ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ مَا تَرَكَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ دِيْنَارًا وَلَا |
| بي بي عائشه رضي الله عنها وايي رسول الله صلى الله عليه وسلم د خپل وفات نه روسته نه څه دينار پريښودل نه څه |
| دِرْهَمًا وَ لَا شَاةً وَ لَا بَعِيْرًا وَ لَا أَوْصٰى بِشَيْءٍ . رَوَاهُ مُسْلِمٌ. |
| درهم نه څه چیلۍ پریښودلې او نه اوښ او نه حضور صلى الله عليه وسلم د څه شي وصیت وکړو [مسلم] |

**توضیح** : ولا اوصی: یعنې حضور صلى الله عليه وسلم کوم داسې وصیت ندی کړی چه د هغه تعلق د مال او جایداد سره وي ، هو! د دین سره متعلق هغه په آخری وخت کښې وصیتونه فرمایلي دي ، چونکې هغه د خپل ځان سره کوم مال ایخی نه وو په دغه وجه د وصیت ضرورت نه وو ، کوم څه چه د هغه سره وو هغه یې په خپل ژوند کښې صدقه کړي وو، صرف څو جهادی سلاح ګانې یې پریښودې . همدارنګه حضور صلى الله عليه وسلم د خپل وفات نه بعد کوم څوک وصي مقرر کړی نه وو او نه یې د خلافت لپاره غوره کړی وو ، په دې جملې سره د شیعه ګانو هغه غلطه عقیده رد کول مقصود دي چه په هغې کښې شیعه وایي چه حضرت علی رضي الله عنه د حضور اکرم صلى الله عليه وسلم مالی وصی وو او د خلافت وصیت هم د هغه لپاره شوی وو لکه څنګه چه شیعه په خپلو آذانونو کښې د دغې غلطې عقیدې ترویج کوي او وایې اشهدان علیاً ولی الله و وصی رسول الله (علی الرافضة لعنة الله).

### حضور صلى الله عليه وسلم د جهادی اسلحې نه علاوه هیڅ ترکه [میراث] نه دی پریښی

| |
|---|
| ﴿۲﴾ وَعَنْ عَمْرِو بْنِ الْحَارِثِ اَخِيْ جُوَيْرِيَةَ قَالَ مَا تَرَكَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| او حضرت عمرو ابن حارث چه د ام المؤمنین بي بي جویریه رضي الله عنها ورور دی وايي رسول الله صلى الله عليه وسلم |

| عِنْدَ مَوْتِهِ دِيْنَارًا وَلَا دِرْهَمًا وَّلَا عَبْدًا وَلَا أَمَةً وَلَا |
|---|
| د خپل وفات په وقت نه څه دینار او درهم پرېښودل نه څه غلام او وینزې یې پرېښودې او نه څه بل |
| شَيْئًا إِلَّا بَغْلَتَهُ الْبَيْضَاءَ وَسِلَاحَهُ وَأَرْضًا |
| شی البته د حضور صلی الله علیه وسلم یوه سپینه قچره وه د حضور صلی الله علیه وسلم څه هتیار وو او څه ځمکه وه چه |
| جَعَلَهَا صَدَقَةً. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ. |
| هغه هم حضور صلی الله علیه وسلم صدقه کړې وه [بخاری] |

**توضیح**: ارضاً: دا وقفي ځمکه وه چه د فدک او بنونضير په علاقه کښې وه چه د هغې نه د هغه د اهل او عيال خرچه وتله.

## د حضور صلی الله علیه وسلم په ترکې کې میراث نه چلیږي

| ﴿۳﴾وَعَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا يَقْتَسِمُ وَرَثَتِي |
|---|
| او حضرت ابو هريره رضی الله عنه نه روایت دی رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمائیل زما د وفات نه روسته زما وارثان |
| دِيْنَارًا، مَّا تَرَكْتُ بَعْدَ نَفَقَةِ نِسَائِيْ وَمَئُوْنَةِ |
| به دینار نه تقسیموي زما چه څه میراث وي هغه به د ښځو د خرڅ او د عامل د اُجرت نه روسته باقي |
| عَامِلِيْ فَهُوَ صَدَقَةٌ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. |
| ټول صدقه وي. [بخاری او مسلم] |

**توضیح**: نفقة نسائي: حضور صلی الله علیه وسلم په فدک کښې او همدارنګه د بنونظير په علاقه کښې څه ځمکه اخيستې وه چه د هغې نه به د هغه د اهل او عيال خرچه کيدله او د هغې نه به چه څه پاتې کيدل هغه به په مسلمانانو باندې تقسيميدله، د هغه صلی الله علیه وسلم د ازواجو لپاره د هغه د وفات نه بعد نکاح کول منع وو ځکه چه د حضور صلی الله علیه وسلم د حيات برزخي اثر په دنيا باندې پريوځي لهذا د ازواج مطهرات حيثيت داسې وو چه ګويا هغوی په عدت کښې ناستې دي نو ځکه د هغوی خرچه د ده په ذمه باندې وه. **مؤنة عاملي**: مؤنة بوج ته وايي او د عامل نه مراد د حضور صلی الله علیه وسلم نه وروسته خلفاء دي لکه ابوبکر صديق رضی الله عنه د حضور صلی الله علیه وسلم د دغې وقفي ځمکې سرپرستي

وکړه ، بیا حضرت عمر فاروق رضي الله عنه سرپرستي وکړه ، بیا حضرت عثمان رض د هغه تولیت مروان ته حواله کړو ، بیا په دې کې څه ذاتي قبضه راغله ، بیا حضرت عمربن عبدالعزیز دغه قبضه لرې کړه او وقفي یې وګرځوله ، هر څه چه وشول هغه الله تعالی ته معلوم دي ، ددې حدیث نور تفصیل به انشاء الله په مناقب عمر رضي الله عنه کښې راشي .

## د نبي علیه السلام په ترکه کې میراث نه جاري کیږي

| |
|---|
| ﴿۴﴾ وَ عَنْ أَبِيْ بَكْرٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ |
| او حضرت ابوبکر رضي الله عنه وایي رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمائیل مونږ انبیاء] چه څه څمکه |
| لَا نُوْرَثُ مَا تَرَكْنَاهُ صَدَقَةٌ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. |
| جائیداد پریږدو هغه کي میراث نه جاري کیږي بلکه هغه صدقه ده. [بخاری و مسلم] |

**توضیح** : لانورث: یعنې مونږ د انبیاؤ جماعت نه د چا وارث کیږو چه د میراث مال واخلو او نه څوک زمونږ وارث کیدلی شي چه زمونږ د مال څخه د میراث حصه واخلي ، مونږ چه کومه ترکه پریښودله هغه د عامو مسلمانانو لپاره وقفي صدقه ده ، حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه دغه حدیث په طور د دلیل بیان کړی وو چه کله حضرت فاطمه رضي الله عنها د حضور صلی الله علیه وسلم د فدک د باغ او بنو نظیر د مالونو مطالبه وکړه ، د حضرت صدیق رضي الله عنه دغه فیصله د هغه خپله ذاتی رأیه نه وه بلکه د صحابه کرامو جم غفیر دغه فیصله منظور کړې وه او حدیث په دې باندې دلالت کولو .

ملا علی قاری رحمه الله په مرقات کښې چیرته لیکلي چه د حضور صلی الله علیه وسلم په مال کښې میراث د دې لپاره نه چلیږي چه هغه صلی الله علیه وسلم ژوندی دی ګویا د هغه د لاس نه مال وتلی نه دی ، همدا وجه وه چه د ازواج مطهراتو سره نکاح کول حرام وو .ملا علی قاری رحمه الله دا بحث هم چیړلی دی چه آیا دا حکم د ټولو انبیاؤ دی او که تر حضور اکرم صلی الله علیه وسلم پورې خاص دی راجح او معتمد قول همدا دی چه دا د ټولو انبیاؤ لپاره عام حکم دی ، علماؤ لیکلي دي چه د حضور اکرم صلی الله علیه وسلم په مال کښې میراث ددې لپاره هم نه جاری کیده تر څو کوم شخص د نبی په مرګ باندې ددې لپاره خوشحالی ونکړي چه هغه ته به د نبی د مال څخه میراث ملاؤ شي .

## د امت نه مخکې د نبي وفات د امت لپاره بهتر وي

| |
|---|
| ﴿۵﴾ وَعَنْ أَبِيْ مُوْسٰى عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| او حضرت ابوموسی اشعری رضي الله عنه د نبی کریم صلی الله علیه وسلم نه روایت کوي چه حضور صلی الله علیه وسلم |

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| قَالَ | إِنَّ | اللهَ | إِذَا | أَرَادَ | رَحْمَةَ | أُمَّةٍ | مِنْ عِبَادِهِ |

و فرمائيل الله تعالى چه خپلو بندګانو کي د کوم اُمت باره کې د خپل رحمت او مهرباني اراده وکړي

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| قَبَضَ | نَبِيَّهَا | قَبْلَهَا | فَجَعَلَهُ | لَهَا | فَرَطًا | وَسَلَفًا | بَيْنَ |

نو د هغه اُمت نبی د اُمت نه مخکي پورته کوي دغه شان الله تعالى هغه نبی د اُمت امير منزل او پيش

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| يَدَيْهَا | وَإِذَا | أَرَادَ | هَلَكَةَ | أُمَّةٍ | عَذَّبَهَا | وَنَبِيُّهَا |

رو جوړوي او هر کله چه الله تعالى يو اُمت هلاکول غواړي نو هغه اُمت باندي د هغه نبي په ژوند کي

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| حَيٌّ | فَأَهْلَكَهَا | وَهُوَ | يَنْظُرُ | فَأَقَرَّ | عَيْنَيْهِ |

عذاب مسلط کوي نو هغه اُمت د هلاکت او تباهي ښکار کيږي او هغه نبی د خپل اُمت هلاکت او

| | | |
|---|---|---|
| بِهَلَكَتِهَا | حِيْنَ | كَذَّبُوهُ |

تباهي په خپلو سترګو سره ويني او خپلي سترګي پري يخوي يعني خوشحاليږي ځکه چه هغه اُمت

وَ عَصَوْا أَمْرَهُ. رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

به خپل نبي دروغجن کولو او د هغه نافرماني به يې کوله. [مسلم]

## ذات رسالت سره په امت کې دعقيدت او محبت پيشن ګوئي

﴿۶﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالَّذِي

او حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمائيل قسم دی په هغه ذات چه د هغه په

نَفْسُ مُحَمَّدٍ بِيَدِهِ لَيَأْتِيَنَّ عَلَى أَحَدِكُمْ يَوْمٌ وَلَا يَرَانِي

قبضه کي د محمد صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ساه ده. يو ورځ به په تاسو باندي داسي راشي چه کوم سړی ما ونه ويني

ثُمَّ لَأَنْ يَرَانِي أَحَبُّ إِلَيْهِ مِنْ أَهْلِهِ وَمَالِهِ مَعَهُمْ. رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

او بيا هغه ته به دهغه د مال او اهل او عيال نه ډير خوښ وي. [مسلم]

**توضيح**: ليأتين: دا خطاب صحابه کرامو ته دی او بيا ټول امت ته هم دی يعني يوه زمانه به داسې راشي چې زما د وفات نه وروسته زما سره محبت کونکي به داسې خلک وي چې دا خبره به خوښوي

چې د هغوی اهل او عیال او مال او منال ټول قربان شي مګر د حضور صلی الله علیه وسلم دیدار هغوی ته نصیب شي.

**معهم**: دا لفظ يې په طور د تأکید لګولی دی یعنې د اهل او عیال سره به مال هم قربان کړي، په دې سره موجوده صحابو ته ترغیب ورکول دي چه ددې دولت کبری او نعمت عظمی نه پوره پوره فائده واخلئ ! او سستي مه کوئ ! ولې سبا ته به پښیمانه یاستئ .

یو شاعر ویلي دي :

**تمتع من شمیم عرار نجد　　فما بعد العیشة من عرار**

ترجمه : د نجد د ګلستان د عرارنامو د ګلابو د بویولو نه فائده پورته کړه ځکه د ماښام نه وروسته چه کله سفر وشي بیا به دا نه پیدا کیږي .

زه حقیر بنده عاجز چه کله خپل زړه ته ګورمه نو زه دغه سودا باعث د سلو افتخارونو ګڼم .

**فلیتک تحلو والحیات مریرة　　ولیتک ترضی والانام غضاب**

که چا وویل چه جانان راغی

که مې پانسي کړي سلامی له به یې ځمه



# باب مناقب قريش وذکر القبائل

قال الله تعالى: ﴿يَا أَيُّهَا النَّاسُ إِنَّا خَلَقْنَاكُمْ مِنْ ذَكَرٍ وَأُنْثَى وَجَعَلْنَاكُمْ شُعُوبًا وَقَبَائِلَ لِتَعَارَفُوا إِنَّ أَكْرَمَكُمْ عِنْدَ اللهِ أَتْقَاكُمْ﴾ (الحجرات)

[وهذا الدرس كتبت بعد رجوعي من بلدتي وقريتي راشنگ من مضافات بتگرام الائي وفي غرة رجب ١٤١٨ سنة ٢ نوفمبر ١٩٩٧ء، وقعت واقعة فاجعة و حدثت حادثة كارثة في الجامعة حين استشهد رئيس الجامعة مولانا حبيب الله المختار ومعه متاع الجامعة وناظمها المفتي عبدالسميع رحمهما الله رحمة واسعة ووقفت الدراسة طيلة الاسبوع وهذا اوان بداية الدراسة ٧ رجب ١٤١٨هـ]

**مناقب قريش:** مناقب د منقبة جمع ده، منقبت هغه فضيلت او برتري او بزرګۍ ته ويل کيږي چه د هغه په ذريعه انسان د الله تعالى په نزد د عظمت او شرافت والا جوړ شي او د مخلوق خدا په نزد هم عزت، کاميابي، رفعت او بلندي داصله کړي. کوم شخص چه د الله تعالى په نزد د عزت او شرافت مقام پيدا کوي هغه د مخلوق په نزد هم لوی مقام داصلوي، البته د مخلوق سره معزز کيدل د الله تعالى سره د مقبول کيدلو دليل نه دی بلکه چه کله د الله تعالى سره د قبوليت مقام پيدا شي نو د مخلوق سره به هم د مقبوليت اعتبار وي او که نه نو نه به وي. قريش د عربو د يوې مشهورې او معروفې قبيلې نوم دی، په حقيقت کې (قريش) د بحر هغه لوی ماهی ته ويل کيږي چه په بحر کې په ټولو ماهيانو باندې غالب پاتې کيږي دا قبيله هم په ټولو قبيلو باندې غالبه وه، لفظ د قريش د نضر بن کنانه لقب وو د هغه په اولاد کې چه څومره قبائل وو په هغو باندې د قريش اطلاق وشو، کوم عرب چه د نضر بن کنانه په اولاد کې نه دي هغه قريش نه دي.

**وذکر القبائل:** قبائل جمع ده مفرد يې قبيلة دی دلته په دې باب کې د آدم عَلَيْهِ السَّلَامُ د اولاد مختلفو قبائلو خصوصيات او امتيازات، نيکي او بدي اجمالي طور باندې بيان شوي دي. چونکې د هرې قبيلې لپاره مشر وي او هغه د خپل ماتحت لپاره قواعد او قوانين او طريقې مقرروي لکه شاعر وايي:

من معشر سنت لهم آباء هم ولکل قوم سنة و امامها

په دغه اعتبار سره هره قبيله خپل مشر پلار ته منسوبيږي او د دغه قسم خصوصياتو بيان کيږي.

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

## په قيادت او سيادت کې د قريشو فضيلت

| |
|---|
| ﴿۱﴾ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اَلنَّاسُ تَبَعٌ لِقُرَيْشٍ |
| حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روايت دی نبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمائيل په دې خبره کې خلق د قريشو تابع |

فِيْ هٰذَا الشَّأْنِ مُسْلِمُهُمْ تَبَعٌ لِمُسْلِمِهِمْ وَكَافِرُهُمْ تَبَعٌ لِكَافِرِهِمْ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

دي غیر قریشي مسلمانان د قریشي مسلمانانو او غیر قریشي کافران د قریشي کافرانو تابع دي. [ بخاری ، مسلم]

**توضیح** :الناس تبع: یعنې ټول خلک د قریشو تابع دي د قریشو مسلمان د غیر قریشو مسلمانانو سردار او خلیفه دی او د قریشو کافر د هغو د کافرانو سردار دی ، د دې مطلب دا دی چه کله قریشو اسلام قبول کړی نه وو نو عرب په دې انتظار کې وو چه آیا قریش به اسلام قبول کړي او که نه ، چه کله قریشو اسلام قبول کړلو او مکه فتحه شوه نو ټول عرب په اسلام کې داخل شول ، د دینه معلومه شوه چه قریش په حالت کفر کې هم مشران دي ګویا د قیادت او سیادت او د حکومت او خلافت صلاحیت او استعداد الله تعالی په قریشو کې ایخی دی لهذا ټول غیر قریش د دوی تابع دي، په دې حدیث کې امامت کبری یعنې حکومت او خلافت ته اشاره ده چه په دې کې به خلک د قریشو تابع وي، حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه د انصارو په مخ کې په دغه حدیث سره د قریشو په قیادت باندې استدلال فرمایلی وو چه الائمة من قریش. په دې حدیث کې د قریشو د تقدم او مقدم کولو ترغیب دی چه خلکو ته پکار دي چه د قریشو د قیادت خیال وساتي ، کچیرې چا د دې خصوصیت خیال ونه ساتلو نو د دې مطلب دا نه دی چه د غیر قریشی قیادت صحیح نه دی ، قیادت او خلافت صحیح دی البته د کومو خصوصیاتو حامل چه یو قریشی کیدلی شي غیر قریشی کیدلی نشي.

نو په دې حدیث کې د قریشو خصوصیات ، امتیازات او د لیاقت ذکر دی او د قریشو د اهمیت او اهلیت او د هغوی د صفاتو ذکر دی ، د دې مطلب دا نه دی چه غیر قریش دې د هغه اهل ونه ګڼل شي بلکه په حدیث کې د قریشو د یو استحقاق او ترجیح ذکر دی چه کچیرې دوه کسان هم په دنیا کې قریش پاتې شي نو یو دې امیر جوړ شي او دویم دې مامور جوړ شي دا هم د دغه حدیث یوه تشریح ده، مګر نورو علماوو او فقهاوو لیکلي دي چه د خلیفه لپاره قریشي کیدل لازم دي د غیر قریشی بادشاه جوړول د مسلمانانو لپاره جائز نه دي ځکه په دې باندې اجماع شوې ده ، صحابه کرامو داسې فیصله کړې ده فقهاوو هم همداسې لیکلي دي لهذا د قریشی په وجود کې غیر قریشی صحیح نه دی، هو ! کچیرې قریشی موجود نه وو نو بیا دې د کنانه څخه کوم فرد خلیفه جوړ کړی شي، او کچیرې هغه پیدا نشو بیا به په عربو بنو اسماعیل کې کوم یو خلیفه ګرځول شي ، کچیرې د هغوی نه څوک پیدا نشو نو بیا به کوم عجمی کس راوړلی شي .په هر حال د خلیفة المسلین لپاره د قریشی کیدلو شرط په ټولو کتابونو او احادیثو کې شته البته بعضو شیعو ،متعزلو ،مبتدعینو ،مودودینو ، د دغه شرط نه انکار کړی دی .

## قریش سرداران دي

﴿۲﴾ وَعَنْ جَابِرٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اَلنَّاسُ تَبَعٌ

او حضرت جابر رضی الله عنه نه روایت دې چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم وفرمائیل چه خلق په خیر او شر کې د

| لِقُرَيْشٍ فِي الْخَيْرِ وَالشَّرِّ. رَوَاهُ مُسْلِمٌ. |
|---|
| قريشو تابع دي. دا حديث مسلم روايت كړى |

## د خلافت حق قريشو ته حاصل دى

| ﴿۳﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَايَزَالُ هٰذَا الْأَمْرُ فِيْ قُرَيْشٍ |
|---|
| او حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دى نبى كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمائيل دا امر يعني خلافت به هميشه قريشو |
| مَا بَقِيَ مِنْهُمُ اثْنَانِ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. |
| كې وي څو پورې چه هغوى كې دوه خلق هم پاتې وي. [بخارى مسلم] |

## د امير اطاعت د نفاذ شريعت سره مشروط ده

| ﴿۴﴾ وَعَنْ مُعَاوِيَةَ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ إِنَّ هٰذَا الْأَمْرَ |
|---|
| او حضرت امير معاويه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي ما د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه دا واوريدل بلا شبه دا امر يعني منصب |
| فِيْ قُرَيْشٍ لَّا يُعَادِيْهِمْ أَحَدٌ إِلَّا كَبَّهُ اللهُ عَلٰى وَجْهِهٖ |
| خلافت به قريشو كې وي څو پورې چه هغوى په دين قائم وي او كوم سړى چه د قريشو سره دښمني |
| مَا أَقَامُوا الدِّيْنَ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ. |
| او عداوت لري الله تعالى به هغه پر مخې وغورځوي [بخارى] |

**توضيح**: (**ما اقاموا الدين**) يعنې د قريشو استحقاق خلافت د دې خبرې سره مشروط دى چه هغوى به تنفيذ د شريعت كوي، د دين د حدودو حفاظت به كوي ځكه د خلافت اصل مقصود د دين تنفيذ او د اسلام بيرغ پورته كول دي كچيرې قريشو دا كار پرېښودو نو بيا د خلافت مستحق نه پاتې كيږي بلكه واجب العزل به وي، په بعضو رواياتو كې د **ما اقاموا الصلوة** الفاظ راغلي دي لهذا شارحينو ليكلي دي كچيرې كوم بادشاه په خپله لمونځ نه كولو او د لمانځه لپاره يې كوم نظام هم نه قائمولو نو هغه هم واجب العزل دى، نو تنفيذ شريعت او اقامت الصلوة كچيرې په كوم بادشاه كې نه وي نو هغه واجب العزل دى او د هغه په خلاف خروج او بغاوت ضرورى دى، نن سبا مسلمانان حكمرانان اقامة الصلوة خو څه كوي لمونځ كونكي د لمانځه څخه منع كوي د داسې منافقينو او معاندينو په خلاف د بغاوت بيرغ اوچتول په مسلمانانو باندې لازم دي مگر مسلمانان كمزوري شوي دي. (**لايعاديهم**) دا د عداوت او دښمنى په معنى سره دى.

(کبه الله) پړمخې په دوزخ کې غورځولو او د سرچپه ځوړندولو په معنی سره دی.

## قريشو نه د دولس ۱۲ خلفاوو د راتګ مطلب

| |
|---|
| ﴿۵﴾ وَعَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ |
| او حضرت جابر ابن سمره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي ما د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه واوريدل اسلام ته به دولس ۱۲ خلفاوو |
| لَايَزَالُ الْإِسْلَامُ عَزِيْزًا إِلَى اثْنَيْ عَشَرَ خَلِيْفَةً كُلُّهُمْ مِّنْ قُرَيْشٍ وَفِيْ رِوَايَةٍ |
| پورې قوت او غلبه حاصليږي او ټول به قريشو نه وي يو روايت کې داسې دي د نظام کار سلسله به |
| لَا يَزَالُ أَمْرُ النَّاسِ مَاضِيًا مَّا وَلِيَهُمْ اِثْنَا عَشَرَ رَجُلًا كُلُّهُمْ مِّنْ قُرَيْشٍ |
| هغه وقته پورې قائمه وي څو پورې چه د هغوي دولس حاکمان وي او د هغوي ټولو تعلق به د قريشو |
| وَفِيْ رِوَايَةٍ لَّا يَزَالُ الدِّيْنُ قَآئِمًا حَتّٰى تَقُوْمَ السَّاعَةُ أَوْ يَكُوْنَ |
| سره وي او يو روايت کې داسې دي دين به برابر قائم وي تر دې چه قيامت راشي او يا په خلقو د دې |
| عَلَيْهِمْ اثْنَا عَشَرَ خَلِيْفَةً كُلُّهُمْ مِّنْ قُرَيْشٍ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. |
| دولسو خليفه ګانو حکومت قائم وي چه هغه به قريشو نه وي. [بخاري ومسلم] |

**توضيح**: (اثنی عشر خليفة) يعنې قيامت تر هغه وخته پورې نه راځي تر څو چه د قريشو دولس خليفه ګان ظاهر نشي، په دې حديث باندې پوهيدل او د دې مصداق متعين کول ډير مشکل دی په دغه وجه لږ د تفصيل ضرورت شته، لهذا پوهيدل پکار دي چه په دې حديث کې د مذکوره دولس خليفه ګانو نه دا مراد نه دی چه هغوی به د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ پسې متصل پی درپی راځي ځکه د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه بعد متصل خلافت علی منهاج النبوة خو د حديث د پيشنګوئی مطابق صرف دېرش کاله پاتې شوی دی، د هغه نه بعد د خلافت علی طريق العموم سلسله شروع شوی وو ،لهذا په دې حديث کې د دولس خليفه ګانو نه داسې خلفاء مراد دي چه تر قيامته پورې به په مختلفو اوقاتو کې راځي چه د هغوی د عدل او انصاف چرچه به وي. په همدې تناظر کې دلته د دې حديث په تشريح کې څو اقوال دي:

اول قول: قاضی عياض مالکلي فرمايې چه د دوولس خليفه ګانو نه مراد هغه خلفاء دي چه د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه بعد واخله د بنواميه تر دورې پورې دولس خليفه ګان جوړ شوي دي د هغوی مجموعی حالات ښه وو اګرچه په هغو کې بعضې خراب راغلي دي ليکن هغو ته اعتبار نشته .دويم قول: دويم قول دا دی چه د دې دوولس خلفاوو څخه هغه خلفاء مراد دي چه عادلان متقيان پرهيزګاران به وي، په تسلسل سره به نه وي بلکه تر قيامته پورې به دغه رنګه دوولس

خلفاء پوره کیږي، د پوهې په اعتبار دا قول آسانه دی. دريم قول: دريم قول دا دی چه د دې دوولس خلفاوو نه هغه خلفاء مراد دي چه د امام مهدی نه بعد به شروع کیږي د مهدی په اولاد کې به وي او تر يونيم سل کاله پورې به په نهايت عدل و انصاف سره حکومت قائموي ګويا دا د قيامت د علاماتو څخه يوه علامه ده چه د قرب قيامت په وخت کې به ظاهريږي. څلورم قول: څلورم قول دا دی چه د دې دوولس خلفاوو نه د يوې زمانې داسې خلفاء مراد دي چه په مختلفو بلاد اسلاميو کې به حاکم وي د هغوی وجود به باعث د اتفاق او اتحاد نه وي بلکه باعث د شورش او نزاع به وي، د حديث مطلب به داشي چه د هغوی د راتګ نه مخکې به عدل او انصاف وي مګر د هغوی د راتګ نه بعد به د ملوک الطوائفي دور شروع شي او اختلافات به وي.

اوس سوال دا دی چه شيعه حضرات چه خپل دوولس امامان د دې حديث مصداق ښايي آيا هغه صحيح ده؟ د دې جواب دا دی چه شيعه ګان غلط وايي، په حديث کې د دوی دوولس امامانو ته اشاره هم نشته، صرف د اثنا عشر لفظ دی دوی خپل ځان ته اثنا عشري ويل او د دې ويې پارتي (ډلي) بنياد يې کېښود، دغه خلک په دې حديث کې تحريف کوي او ظلم کوي، تعجب خو په دې باندې دی چه د دوی په دوولسو امامانو کې د حضرت علی رضی الله عنه او حضرت حسن رضی الله عنه نه علاوه څوک خليفه شوی نه دی، کوم شخص چه يوه ورځ هم خلافت کړی نه دی هغه ته خليفه ويل څومره غټ دروغ دي، که حقيقت ته وکتلی شي نو د روافضو د مذهب بنياد په دروغو باندې کې خودلی شوی دی، د کومو خلکو قرآن چه تر اوسه غائب دی نو د هغو دين به چيرته وي؟ (او يکون عليهم) دلته او په معنی د واو سره دی د عطف لپاره دی ای ويکون عليهم الخ.

## د څو عربو د څو قبائلو ذکر

| |
|---|
| ﴿۲﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ غِفَارٌ |
| او حضرت ابن عمر رضی الله عنه وايي رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمائيل [قبيله] غفار ته دي الله تعالی |
| غَفَرَ اللهُ لَهَا وَأَسْلَمُ سَالَمَهَا اللهُ وَعُصَيَّةُ عَصَتِ |
| مغفرت وفرمايي او قبيله اسلم دي الله سلامته ولري عصيه [ خو هغه قبيله ده] چه د الله! او د الله |
| اللهَ وَ رَسُوْلَهُ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. |
| د رسول الله صلی الله عليه وسلم معصيت کې مبتلا شوه. |

**توضيح**: (**غفار غفرها الله**) **غفار** په غين باندې کسره ده د عربو يوه مشهوره قبيله ده چه په هغې کې يو مشهور صحابی ابوذر غفاري رضی الله عنه پيدا شوی وو، حضور صلی الله عليه وسلم د دې قبيلې د نوم مبدء اشتقاق غفران ته په کتو هغوی ته د مغفرت دعاء وفرمايله. (**اسلم**) اسلم هم د عربو يوه مشهوره قبيله ده دې قبيلې د جنګ نه بغير اسلام قبول

کړی وو، حضور ﷺ د دوی د نوم مبدأ اشتقاق ته وکتل د هغوی لپاره یې د سلامتیا دعاء وفرمایله.

(عصية) دا د هغې بدبختې قبیلې نوم دی چه هغوی او یا صحابه قاریان په بئر معونه کې په چل او دوکې سره شهیدان کړي وو. حضور ﷺ د دوی د نوم مبدأ اشتقاق ته وکتل د هغوی لپاره یې د معصیت په وجه بد دعائی وفرمایله.

## د څو قبایلو فضیلت

﴿۷﴾ وَعَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قُرَيْشٌ وَّالْأَنْصَارُ وَجُهَيْنَةُ

او حضرت ابوهریره رضي الله عنه وایي رسول الله ﷺ وفرمائیل قریش انصار او قبیله جهینه [مسلمانان]

وَمُزَيْنَةُ وَأَسْلَمُ وَغِفَارٌ وَّأَشْجَعُ مَوَالِيَّ لَيْسَ لَهُمْ مَوْلًى

او قبیله اسلم او قبیله غفار او قبیله اشجع [مسلمانان] زما دوستان او مدد ګاران دي د هغوی مدد

دُوْنَ اللهِ وَرَسُوْلِهِ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

ګار او دوست د الله! او د رسول الله ﷺ نه ماسوا بل څوک نشته. [بخاری و مسلم]

**توضيح:** (قریش) یعنې د قریش قبیلې چه کوم مسلمانان دي. (الانصار) د دینه د مدینې انصار مراد دي. (موالي) یاء د متکلم ته مضاف دی دا د مولی جمع ده د دوست په معنی سره یعنې دغه قبائل زما دوستان دي او د هغوی دوست یوازې الله او د هغه رسول دی.

﴿۸﴾ وَعَنْ أَبِيْ بَكْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَسْلَمُ وَغِفَارٌ وَّمُزَيْنَةُ وَجُهَيْنَةُ

او حضرت ابوبکره رضي الله عنه وایي چې رسول الله ﷺ وفرمائیل اسلم غفار مزینه او جهینه دا ټولې

خَيْرٌ مِّنْ بَنِيْ تَمِيْمٍ وَّمِنْ بَنِيْ عَامِرٍ وَّالْحَلِيْفَيْنِ بَنِيْ أَسَدٍ وَّغَطْفَانَ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

قبیلې د بنو تمیم او بنو عامر رضي الله عنه دواړو حلیفو قبیلو یعنې بنو اسد او غطفان نه بهتر دي. [بخاری مسلم]

**توضيح: ومن بني عامر:** یعنې د بنو تمیم او بنو عامر دواړو قبیلو نه اسلم او غفار او جهینه او مزینه قبیلې بهترې دي همدارنګه په خپل مینځ کې چه دوه قبیلې حلیفې جوړې شوې یعنې بنو اسد او غطفان د هغه نه هم دغه مندرجه بالا څلور قبیلې ښې دي ځکه هغوی د اسلام په قبلولو کې سبقت اختیار کړی دی او د هغوی د مستقبل احوال به هم ښه پاتې کیږي.

**من بني اسد و عطفان:** من د بیان لپاره دی چه د الحلیفین لپاره بیان واقع شوی دی، په زمانه د جاهلیت کې د بنو اسد او غطفان معاهده وه لهذا د الحلیفین څخه بنو اسد او غطفان مراد دي.

## د بنو تميم درې خصوصيات

| |
|---|
| ﴿۹﴾ وَ عَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ مَا زِلْتُ أُحِبُّ بَنِيْ تَمِيْمٍ مُنْذُ |
| او حضرت ابو هريره رضي الله عنه فرمايي زه بنو تميم د هغه وقت نه هميشه عزيز او دوست لرم هر کله چه ما |
| ثَلَاثٍ سَمِعْتُ مِنْ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| دهغوى د درې خاصو خوبيانو ذکر د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه آوريدلی دی حضور صلی الله علیه وسلم نه مي دا واوريدل |
| يَقُوْلُ فِيْهِمْ سَمِعْتُهُ يَقُوْلُ هُمْ أَشَدُّ أُمَّتِيْ عَلَى الدَّجَّالِ |
| چه زما په اُمت کې بنو تميم هغه خلق دي چه د دجال مقابله کې به د ټولو نه زيات سخت او زړور ثابت |
| قَالَ وَجَاءَتْ صَدَقَاتُهُمْ فَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هٰذِهِ |
| شي د بنی تميمو صدقات راغلل نو رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمائيل دا زمونږ د قوم د طرف نه راغلی |
| صَدَقَاتُ قَوْمِنَا وَكَانَتْ سَبِيَّةٌ مِّنْهُمْ عِنْدَ عَائِشَةَ |
| صدقات دي او بنو تميم سره تعلق لرونکې يوه وينزه بي بي عائشي رضي الله عنها سره وه د هغې باره کې |
| فَقَالَ أَعْتِقِيْهَا فَإِنَّهَا مِنْ وُّلْدِ |
| حضور صلی الله علیه وسلم بي بي عائشې رضي الله عنها ته وفرمائيل چه دا وينزه آزاده کړه ځکه چه دا د |
| إِسْمَاعِيْلَ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. |
| حضرت اسمٰعيل علیه السلام د اولاد نه ده. |

**توضيح:** (من ولد اسمعيل) ټول عرب د حضرت اسماعيل عليه السلام د اولاد څخه دي مګر د بنو تميم د قدر او منزلت د ظاهرولو په غرض حضور اکرم صلی الله علیه وسلم هغو ته **(من ولد اسمعيل)** وفرمايلو.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِيْ

## د قريشو بي عزتي مه کوئ ذليله به شی

| |
|---|
| ﴿۱۰﴾ وَعَنْ سَعْدٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ يُّرِدْ هَوَانَ |
| حضرت سعد رضي الله عنه د نبی کريم صلی الله علیه وسلم نه روايت کوي چې نبی کريم صلی الله علیه وسلم وفرمائيل کوم سړی چه |

| قُرَيْشًا | هَانَهُ | اللهُ. | رَوَاهُ | التِّرْمِذِيُّ |
|---|---|---|---|---|
| د قريشو ذلت او سپکاوی وغوښته الله تعالی به هغه ذليل او خوار کړي. [ترمذی] | | | | |

**توضيح:** **من يرد:** دا اراده د باب افعال څخه دی او د شرط په وجه مضارع مجزوم ده يعنې د قريشو تذليل او اهانت مه کوئ که هغه حاکم وي يا محکوم وي، کچيرې تاسو د هغوی تذليل وکړئ نو الله تعالى به ناراضه شي او تاسې به ذليله او رسوا کړي.

## د قريشو په حق کې د رسول الله ﷺ دعا

| ﴿۱۱﴾ وَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ اَللّٰهُمَّ | | |
|---|---|---|
| او حضرت ابن عباس رضي الله عنه وايي رسول الله ﷺ داسې دعا وکړه ای الله تا قريشو باندې ابتداء کې | | |
| أَذَقْتَ | أَوَّلَ | قُرَيْشٍ |
| د غزوه بدر او غزوه احزاب په موقع د شکست او تباهی] عذاب او څکولو [خو اوس چه هغوی اسلام | | |
| نَكَالًا | فَأَذِقْ | آخِرَهُمْ |
| قبلولو سره او ستا د رسول الله ﷺ اطاعت اختيار ولو سره دين او مسلمانانو ته تقويت او مدد | | |
| نَوَالًا. | رَوَاهُ | التِّرْمِذِيُّ. |
| رسولی دی نو آخر کې هغوی په عطاء او بخشش سره ولمانځه. [ترمذی] | | |

**توضيح:** **اول قريش:** د قريشو ابتدائی خلک او ابتدائی حصه د هغو خلکو وه چه بدر ته راغلل او هغوی ته عبرتناکه سزا ملاو شوه. **نكالا:** نکال بلا و مصيبت او عبرتناکې سزا ته ويل کيږي په قحط سالۍ او د شيانو په قلت باندې هم اطلاق کيږي، دا ټولې سزاګانې قريشو ته رسيدلي وې. **نوالا:** عطايا او انعامات او فتوحات مراد دي، د قريشو آخری حصې ته دغه نعمتونه د اسلام د غلبې په وجه حاصل شوي وو، قريش چونکې د بيت الله متوليان وو په دغه وجه د دوی لپاره يو مقام وو چه کله د کفر څخه تائب شول نو د دعاء مستحق شول.

## د اشعريه قبيلې فضيلت

| ﴿۱۲﴾ وَعَنْ أَبِيْ عَامِرِ نِ الْأَشْعَرِيِّ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نِعْمَ الْحَيُّ الْأَسْدُ |
|---|
| او حضرت ابو عامر اشعری رضي الله عنه بيان کوي چې رسول الله ﷺ وفرمائيل أسد او اشعری ډيری ښې |

| هُمْ | وَلَا يَغُلُّوْنَ، | الْقِتَالِ | فِي | لَا يَفِرُّوْنَ | وَالْأَشْعَرُوْنَ |
|---|---|---|---|---|---|

قبيلې دي دا دواړه قبيلې نه د كفارو مقابله كې د جنګ نه تښتي او نه مال غنيمت كې خيانت كوي هغوى

| مِنِّيْ | وَأَنَا | مِنْهُمْ. | رَوَاهُ | التِّرْمِذِيُّ | وَقَالَ | هٰذَا | حَدِيْثٌ | غَرِيْبٌ. |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|

زما نه دي او زه د هغوى نه يم دا روايت ترمذى نقل كړى دى او ويلي يي دي چه دا حديث غريب دى.

**توضيح**: الاسد والاشعرون: د يمن د يوې قبيلې د لوى سردار نوم اسد وو، د همدغه شخص په نوم سره د اسد قبيله متعارف او مشهوره شوه. همدې قبيلې ته ازد هم ويل كيږي او ازدشنوئة هم ويل كيږي، د مدينې د انصارو تمامو عربو تعلق د همدې قبيلې سره وو، په همدې قبيلې كې يو بل سردار وو چه د هغه نوم عمرو بن حارثه وو او لقب يې اشعر وو، همدغه اشعر ته منسوبو خلكو ته اشعرى، اشعرون او اشعريون ويل كيږي، حضرت ابو موسى اشعرى رضي الله عنه همدې قبيلې څخه وو، ګويا اسد، ازد، ازدشنوئة، ازدالله او اشعرون ټول د يوې قبيلې نومونه دي.

**لايغلون**: په مال غنيمت كې يې خيانت نه كولو.

## أزد أزدُ الله ! دي [يعني د الله لښكر دى]

| ﴿۱۳﴾ وَعَنْ | أَنَسٍ | قَالَ | رَسُوْلُ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ | اَ لْاَ زْدُ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|

او حضرت انس رضي الله عنه وايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمائيل د قبيله ازد خلق د ځمكې په مخ باندې

| أَزْدُ | اللهِ | فِي | الْأَرْضِ | يُرِيْدُ | النَّاسُ | أَنْ | يَضَعُوْهُمْ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|

د الله ازد [يعني د الله لښكر او د هغه د دين معاون او مدد ګار] دي خلق دا قبيله ذليل او خوار كول غواړي

| وَيَأْبَى | اللهُ | إِلَّا | أَنْ | يَرْفَعَهُمْ | وَلَيَأْتِيَنَّ | عَلَى | النَّاسِ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|

او الله تعالى د هغوى بر خلاف د دې قبيلې خلقو ته عزت او بلندى وركول غواړي يقينًا خلقو باندې

| زَمَانٌ | يَقُوْلُ | الرَّجُلُ | يَا | لَيْتَ | أَبِيْ | كَانَ | أَزْدِيًا | وَيَا | لَيْتَ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|

هغه زمانه راتلونكې ده هر كله چه سړى به دې ويلو باندې په نظر راځي چه ارمان چې زما پلار آزدي

| أُمِّيْ | كَانَتْ | أَزْدِيَّةً. | رَوَاهُ | التِّرْمِذِيُّ | وَقَالَ | هٰذَا | حَدِيْثٌ | غَرِيْبٌ. |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|

وى او ارمان زما مور د قبيله ازد نه وى دا روايت ترمذى نقل كړى دى او ويلي يي دي چه دا حديث غريب دى.

## د دري قبیلو باره کې د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دنا خوښۍ اظهار

| |
|---|
| ﴿۱۴﴾ وَعَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ قَالَ مَاتَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ يَكْرَهُ ثَلَاثَةَ أَحْيَاءٍ |
| او حضرت عمران ابن حصين رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د دریو قبیلو ثقیف، بنو حنیفه او بنو امیه نه |
| ثَقِيفٍ وَبَنِي حَنِيفَةَ وَبَنِي أُمَيَّةَ . رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ هٰذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ. |
| ناراضه د دې دنیا نه تشریف یوړو دا روایت ترمذی نقل کړی دی او ویلي یې دي چه دا حدیث غریب دی. |

**توضیح** : **ثقیف**: په دې قبیله کې مشهور ظالم حجاج بن یوسف پیدا شوی وو چه هغه یو لک شل زره بې ګناه انسانان ترلې قتل کړي وو، او س آینده کې د هغه حالات راتلونکي دي.

**بنو حنیفة**: په دې قبیلې کې مشهور کذاب او په دروغه دنبوت دعویدار مسیلمة الکذاب پیدا شوی وو. **بنوامیة**: په دې قبیلې کې عبد الله بن زیاد او یزید او نور کذابین پیدا شوي دي، د دغو ناخوښو افرادو په وجه حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته دغه قبائل ناخوښه وو.

## د ثقیف بدي او د حجاج احوال

| |
|---|
| ﴿۱۵﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: فِي ثَقِيفٍ |
| او حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمائیل د ثقیف قبیله کې به د انتها درجې یو |
| كَذَّابٌ وَمُبِيرٌ قَالَ عَبْدُ اللهِ بْنُ عِصْمَةَ |
| دروغجن سړی پیدا شي او دیو انتها درجې مفسد او هلاکو حضرت عبید الله ابن عصمه تابعي رَحِمَهُ اللهُ |
| يُقَالُ الْكَذَّابُ هُوَ الْمُخْتَارُ بْنُ أَبِي عُبَيْدٍ وَالْمُبِيرُ |
| وایي چه د علماوو وینا ده: چه د دروغجن سړي نه مراد مختار ابن ابي عبید دی او د مفسد او |
| هُوَ الْحَجَّاجُ بْنُ يُوسُفَ وَقَالَ هِشَامُ بْنُ حَسَّانٍ |
| هلاکو نه مراد حجاج ابن یوسف دی او د هشام ابن حسان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ بیان دي چه حجاج ابن یوسف چه |
| أَحْصَوْا مَا قَتَلَ الْحَجَّاجُ صَبْرًا فَبَلَغَ |
| ثو مره خلق دغه شان نیولو نیولو سره او قید خانه کې اچولو سره قتل کړي دي د هغوی تعداد خلقو |

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| مِائَةَ | أَلْفٍ | وَعِشْرِيْنَ | أَلْفًا. | رَوَاهُ | التِّرْمِذِيُّ | وَرَوٰى | مُسْلِمٌ |
| شمیرلی دی چه یو لاک شل زره [۱۲۰۰۰۰] دي دا روایت ترمذی نقل کړی دی او امام مسلم رَحِمَهُ اللهُ | | | | | | | |
| فِي الصَّحِيْحِ | حِيْنَ | قَتَلَ | الْحَجَّاجُ | عَبْدَ | اللهِ | بْنَ | الزُّبَيْرِ |
| خپل صحیح کې دا روایت نقل کړی دی چه کومه ورځ حجاج ابن یوسف حضرت عبدالله ابن زبیر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ | | | | | | | |
| قَالَتْ | أَسْمَاءُ | إِنَّ | رَسُوْلَ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ |
| شهید کړی نو بي بي اسماء [چه د حضرت عبدالله ابن زبیر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مور وه ویل مونږ ته رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ | | | | | | | |
| حَدَّثَنَا | أَنَّ | فِيْ | ثَقِيْفٍ | كَذَّابًا | وَمُبِيْرًا | | فَأَمَّا |
| بیان کړی وو چه بنو ثقیف کې به د انتها درجې یو دروغجن سړی پیدا کې ږي او یو لوی مفسد او | | | | | | | |
| الْكَذَّابُ | فَرَأَيْنَاهُ | وَأَمَّا | الْمُبِيْرُ | فَلَا | إِخَالُكَ | إِلَّا | إِيَّاهُ.. |
| هلاکو هر چه دروغجن سړی دی نو هغه مونږ اولیدلو اوس پاتې شو د مفسد او هلاکو خبره نو زما | | | | | | | |
| وَسَيَجِيْءُ | تَمَامُ | الْحَدِيْثِ | فِيْ | الْفَصْلِ | الثَّالِثِ | | |
| خیال دی چه ای حجاج! هغه مفسد او هلاکوته یې دا پوره حدیث دریم فصل کې را روان دي. | | | | | | | |

**توضیح** : **المختار**: د مختار بن عبید ثقفی تفصیل د دینه مخکې په ملاحمو کې تیر شوی دی .او حجاج بن یوسف د ثقیف قبیلې سره تعلق لرلو ، اول دا د عبدالملک بن مروان ګورنر وو . عراق او خراسان د هغه ماتحت وو بیا په حجاز کې هم دا ګورنر شو ، د عبدالملک نه وروسته د ولیدبن عبدالملک په بادشاهت کې هم حجاج ګورنر پاتې شو او ظلم یې کولو ، بیا په سنه۷۵ھ کې د ۵۴ کلونو په عمر کې د هغه انتقال وشو . وایې چه کله حجاج پیدا شو نو هغه د مور شودې نه څکلې ،ابلیس د یو حکیم په شکل کې راغی او د هغه مور ته یې وویل چه یوه توره وزه (چیلۍ) ذبحه کړه او د هغې په وینو کې حجاج لت پت کړه او یو څه وینه ورباندې وڅټه بیا به دا شودې وڅښي، مور یې هم داسې وکړل چه د دې په وجه سره حجاج د انساني وینې تږی شو ، پخپله به یې ویل چه ما ته خوراک هغه وخت مزه راکوي چه مخکې څوک قتل کړم ، یو ځل په مسجد کې یو کس پروت وو حجاج د هغه په سینې باندې کښیناسته او هغه یې ذبحه کړلو ، هغه کس وویل چه په قیامت کې به د الله په مخکې څه جواب ورکوې ، حجاج د یوې لمحې لپاره شاته شو او سوچ یې وکړو بیا راغی او

ويې ويل چه زه به الله ته وو ايم چه دې شخص په مسجد کې خوب کولو چه ګناه ده دا يې وويل او هغه يې ذبحه کړو، دا شخص پخپله ډير بې زړه وو مګر ډير ظالم وو . په قرآن کريم باندې د اعراب او رکوعاتو لګولو لپاره هغه علماء مأمور کړل په هغې کې يې هم خلک قتل کړل، يو کرت يې يو عالم ته وويل چه د (غرفة) په غين باندې څو اعرابه راتللي شي، هغه وويل ماته مهلت راکړه، حجاج وويل درې ورځې مهلت دې جواب راکړه او که نه نو مرګ دې، هغه شخص د ښتي ته لاړلو تر څو د دغه اعراب تلاش وکړي، په ځنګل کې يو شپونکي دا شعر ويلو :

ربماتكره النفوس من الامر لها فرجة كحل العقال

هغه عالم د دغه خالص بدوي نه پوښتنه وکړه چه په دې شعر کې د فرجة په فاء باندې څو حرکات راتللي شي هغه وويل چه د فعلة په وزن باندې چه کومه کلمه وي د هغه په فاء کلمه باندې درې واړه حرکات راتللي شي، عالم ډير خوشحاله شو او بيا يې پوښتنه وکړه چې دا شعر ولې وويلو ؟ هغه کس وويل چه دا اوس اوس خبر راغی چه حجاج مړ شو، ما په دغه مناسبت دا شعر وويلو چه کله کله يو انسان په انتهائی کرب او غم کې مبتلا پاتې کيږي ليکن ناڅاپه د مصيبت نه داسې خلاص شي لکه څنګه چه د اوښ د ځنګون نه رسۍ خلاصه شي، هغه عالم وويل چه ما ته معلومه نشوه چه د دې لغت په پيدا کيدو زيات خوشحاله شوم او که د حجاج په مرګ زيات خوشحاله شوم .

يو ځل حجاج بن يوسف د خليفه عبد الملک سره په کمره کې يو ځای ناست وو، د خليفه عبد الملک ښځې خپل خاوند وغوښته او د خطرې اظهار يې وکړو ، عبد الملک وويل هيڅ خطره نشته د خپل کس حجاج سره ناست يم، ښځې يې وويل چه ماته د عزرائيل سره په ناسته کې دومره خطره نه وي څومره خطره چه د حجاج بن يوسف سره په يو ځای ناسته کې وي . حجاج بن يوسف يو لک شل زره بيګناه افراد مړه کړي دي چه هغوی يې اول په جيل کې بندي کړل او بيا به يې لاسونه او پښې ورله وتړل او قتل به يې کړل، د حجاج د جيل لپاره به چت نه وو بلکه په ګرمی او يخنی کې به قيدی د آسمان لاندې ژوند تيرولو، په جنګونو کې چه حجاج څومره خلک وژلي دي د هغو حساب لګول مشکل دی ، وايې ابو مسلم خراسانی شيعه شپږ لکه انسانان بيګناه قتل کړي وو ليکن [illegible] حوالې سره حجاج د هغه نه زيات وو . ويل کيږي چه د حجاج د جيل نه د پنځه [illegible] زره کسانو لاشونه صرف په يو وخت کې وتلي وو . دغه کس ډير صحابه کرام هم شهيد [illegible] کړي وو او د سيد التابعين حضرت سعيد بن جبير رضي الله عنه د قتل واقعه خو مشهوره ده . حضرت ابن عمر رضي الله عنه چه کله په دار باندې د زوړند شوي حضرت عبد الله بن زبير رضي الله عنه د لاش تعزيت وکړلو نو حجاج غوسه شو او په چل کې يې حضرت ابن عمر رضي الله عنه شهيد کړلو . د ابن زبير رضي الله عنه د شهادت نه وروسته حجاج حضرت اسماء بنت ابی بکر رضي الله عنها ته کس وليږه چه زما دفتر ته راشه ، هغې انکار وکړو ، بيا

حجاج په خپله لاړو او ویې ویل چه ما ستا بچي څنګه قتل کړلو ؟ هغې په جواب کې ورته وویل چه تا زما د بچي دنیا برباده کړه او زما بچي ستا آخرت برباد کړلو او بیا یې زیر بحث حدیث واورو . نور تفصیل د فصل ثالث په حدیث نمبر ۲۴ کې دی .

چه کله حجاج مریض شو نو د هغه په خیټه کې به سوزش وو ، هغه طبیبان راوغوښتل ، یو طبیب په تار پورې غوښه څوړنده کړه او د هغه خیټې ته یې کوزه کړه ، چه کله یې هغه راوویسته نو د هغې سره چینجي نښتي وو ، طبیب ورته وویل چه دا ستا مرض دی ، بیا به حجاج خپله خیټه اور ته نیږدې کوله تر څو ګرمه شي او چینجي و تښتي ، یو ځل حسن بصري رَحِمَهُ اللّٰهُ د هغه خوا ته لاړلو او هغه ته یې وویل چه ما ته منع کړې وې چه صحابه کرام به نه تنګوې ! اوس ستا عذاب شروع شو ، د مرګ نه وروسته د هغه جنازه چا نه ورکوله ، صرف حسن بصري رَحِمَهُ اللّٰهُ د جنازې ورکولو ته تیار شو او ویې فرمایل چه د موت په وخت کې هغه استغفار ویلی دی ، څه بعیده ده چه بالآخر الله تعالی هغه معاف کړي ، وایې د موت په وخت کې هغه د الله تعالی سره عجیب مناجات وکړو ، په جرم باندې اعتراف کولو سره یې د الله تعالی نه بخنه غوښته ، د مرګ نه وروسته چا په خوب کې ولیدلو او پوښتنه یې ترینه وکړه چه الله تعالی ستا سره څه معامله وکړه ؟ په جواب کې هغه وویل چه د هر مقتول په بدل کې یو یو وار زه قتل کیږم لیکن د سعید بن جبیر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ په بدله کې یې اویا ځله قتل کړلم او بیا ژوندی شوم ، سوال کونکي پوښتنه وکړه چه ستا څه ګمان دی ، ویې ویل چه امید لرم چه په آخر کې به زما رب ما وبخښي . په هر حال د حجاج خاتمه که په ایمان باندې شوې وي نو په آخر کې به کامیابه کیږي . علامه ابی رَحِمَهُ اللّٰهُ د مسلم په شرحه کې څه داسې جملې نقل کړي دي چه د هغو نه د حجاج انجام خطرناکه معلومیږي . په سنن ابی داوود کې هم د حجاج متعلق تفصیل مذکور دی ، په دې باب کې هم راتلونکي حدیث نمبر ۲۴ لاندې کافي تفصیل دی .

## د ثقیف لپاره د هدایت دُعاء

﴿۱۶﴾ وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ قَالُوْا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ أَحْرَقَتْنَا نِبَالُ ثَقِيْفٍ

او حضرت جابر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وایي یوه ورځ خنې صحابو رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمْ عرض وکړو یا رسول الله ! د قبیله ثقیف

فَادْعُ اللّٰهَ عَلَيْهِمْ قَالَ اَللّٰهُمَّ

غشو مونږ وسوځولو د هغوی دپاره د الله ! نه بد دُعا وغواړه حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمائیل ای الله !

اهْدِ ثَقِيْفًا. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

قبیله ثقیف ته د هدایت او توفیق ورکړې . [ ترمذی ]

(دغزوه حنین نه بعد د طائف قلعه محاصره شوې وه د دننه نه د ثقیف والاوو غشي ویشتل)

# قبیلهٔ حمیر دپاره دُعاء

﴿۱۷﴾وَعَنْ عَبْدِ الرَّزَّاقِ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ مِيْنَاءَ

او حضرت عبد الرزاق ابن همام رَحِمَهُ اللهُ خپل والد مکرم نه او هغه د حضرت میناء رَحِمَهُ اللهُ نه او هغه د

عَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ كُنَّا عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه نقل کوی چه هغوی بیان وکړو چې مونږ خلق د نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په مجلس

فَجَاءَ رَجُلٌ أَحْسِبُهُ مِنْ قَيْسٍ

مبارک کې حاضر وو یو سړی حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته راغی زما ګمان دی چه د هغه قبیله قیس سره تعلق

فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللهِ اِلْعَنْ حِمْيَرًا

لرلو هغه وویل یا رسول الله ! قبیله حمیر باندې لعنت ووایه یعني د هغوي په حق کې بد دُعا وکړه

فَأَعْرَضَ عَنْهُ ثُمَّ جَاءَهُ مِنَ الشِّقِّ الْآخَرِ

حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د هغه سړی نه مخ واړوه هغه سړی بیا دبل طرف نه د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مخ ته راغی

فَأَعْرَضَ عَنْهُ ثُمَّ جَاءَهُ مِنَ الشِّقِّ الْآخَرِ فَأَعْرَضَ

حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د هغي خوا نه هم مخ واړوه بیا هغه سړی دویم طرف نه د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مخ ته رالي نو

عَنْهُ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَحِمَ اللهُ حِمْيَرًا

حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د هغه طرف نه هم مخ واړوه او بیا حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمائیل الله تعالی دي حمیر باندې

أَفْوَاهُهُمْ سَلَامٌ وَأَيْدِيْهِمْ طَعَامٌ وَهُمْ أَهْلُ أَمْنٍ

خپل رحمت نازل کړي د هغوی خولې سلام دي د هغوی لاسونه طعام دي او هغوی اهل امن هم

وَإِيْمَانٍ رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ هٰذَا حَدِيْثٌ غَرِيْبٌ

دي او اهل ایمان هم دا روایت ترمذی رَحِمَهُ اللهُ نقل کړی دی او ویلي یې دي چه دا حدیث غریب دی دا

| لَا نَعْرِفُهُ اِلَّا مِنْ حَدِيْثِ عَبْدِ الرَّزَّاقِ وَيُرْوٰى عَنْ مِيْنَاءَ |
|---|
| روايت مونږ ته د عبد الرازق ابن همام رَحِمَهُ اللهُ نه علاوه بل هيڅ ذريعي سره معلوم نه دی او ميناء رَحِمَهُ اللهُ |
| هٰذَا اَحَادِيْثُ مَنَاكِيْرُ. |
| نه نقل کې دونکی روايتونه منکر دي |

**توضيح** :(افواههم سلام) يعنې د دوی په ژبو به هر وخت د سلام چرچه وي او په لاسونو به يې د ډوډۍ ورکولو دسترخوانونه هواريږي او په زړونو کې به يې د ايمان څراغ روښانه وي ، لهذا دوی د ښيرو مستحق نه دي .

## حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او د هغوی قبيله دوس

| ﴿۱۸﴾ وَعَنْهُ قَالَ قَالَ لِيَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِمَّنْ أَنْتَ |
|---|
| حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي نبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زما نه پوښتنه وکړه ته د کومې قبيلې نه يې ما عرض |
| قُلْتُ مِنْ دَوْسٍ قَالَ مَا كُنْتُ أُرٰى أَنَّ فِيْ دَوْسٍ |
| وکړو دوس سره تعلق لرم حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمائيل ما ته ګمان هم نه وو چه قبيله دوس کې څوک داسې |
| أَحَدًا فِيْهِ خَيْرٌ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ. |
| هم کې دی شي چه هغه کې خير او نيکی وي . [ ترمذی |

**توضيح** : يعنې ای ابو هريرة! تا ته په کتلو سره ما ته دا اندازه وشوه چه د دوس په قبيله کې څه ناڅه خير شته ولې د دينه مخکې زما دا خيال وو چه په دې خلکو کې هيڅ خير او ښيګړه نشته .

## د عربو سره بغض او عداوت د ايمان زوال دی

| ﴿۱۹﴾ وَعَنْ سَلْمَانَ قَالَ قَالَ لِيْ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
|---|
| او حضرت سلمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ماته وفرمائيل زما سره د ښمنی مه ساته کنې ته به خپل |
| لَا تُبْغِضْنِيْ فَتُفَارِقَ دِيْنَكَ قُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللهِ |
| دين نه جدا شي ما عرض وکړو يا رسول الله ! دا څرنګه کې دی شي چه زه ستا سو سره دښمني څه |

| | | | |
|---|---|---|---|
| کیفَ | أُبْغِضُكَ | وَبِكَ | هَدَانَا |

چه د دښمنۍ تصور هم او ساته په داسې حال کې چې الله ستاسو په ذریعه باندې مونږ ته

| | | | |
|---|---|---|---|
| قَالَ | تُبْغِضُ | الْعَرَبَ | فَـ |

او ښودله حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمائیل که ته د عربو سره د ښمني کوي نو لکه ته چې زما سره د ښمن

رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ هٰذَا حَدِيْثٌ حَسَنٌ غَرِيْبٌ.

دا روایت ترمذی رَحِمَهُ اللهُ نقل کړ دی او ویلي یي دي چه دا حدیث غریب دی.

**توضیح**: چونکې حضرت سلمان فارسی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د فارس ؤ او د فارس د ژبې او وطنیـ
چه د عربو سره د هغوی بغض او عداوت پیداشي که هغه په مستقبل کې ولې نه وي، یا د
ده چه په حضرت سلمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ کې څه شائبه لیدل شوې وي، په دې باندې حضور صَلَّى
عربو سره بغض او عداوت د ایمان د زوال ذریعه وښودله ، د حدیث نه دا معلومه شو
سره بغض د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره بغض دی لهذا هر مسلمان ته د عربو احترام کول
راقم الحروف عرض کوي چه ما لیدلي دی چه کوم خلک د دین اسلام د ښمنان وي ها
خلاف په بدګوئی کې مصروفه وي ، نن سبا عرب پناه اخیستونکي په وزیرستان او د
نورو علاقو کې شته ،تجربه ګواه ده چه کوم خلک بې ایمانه وي هغوی د دې عربو سره بـ

## د عربو سره دوکه کول لوی جرم دی

﴿۲۰﴾ وَعَنْ عُثْمَانَ بْنِ عَفَّانَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ غَـ

او حضرت عثمان بن عفان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمائیل کوم سړی چه عربو

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| لَم | يَدْخُلْ | فِيْ | شَفَاعَتِيْ | وَلَمْ | تَنَلْهُ |

او دهوکه بازی کوي هغه به زما شفاعت کې نه داخلیږي او نه به هغه ته زما د دوستی سعا

رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ هٰذَا حَدِيْثٌ غَرِيْبٌ لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ حَدِيْثِ

شي دا روایت ترمذی رَحِمَهُ اللهُ نقل کړی دی او ویلي دي چه دا حدیث غریب دی دا روایت مو

بْنِ عُمَرَ وَلَيْسَ هُوَ عِنْدَ أَهْلِ الْحَدِيْثِ بِذٰكَ الْقَوِيِّ. رَوَاهُ الـ

ابن عمر نه علاوه بل هیڅ ذریعي سره نه پیژنو او د محدثینو په نزد د دې درجي قوي نه دی

**توضيح** : (غش) دوکې او فريب او چلبازۍ ته غش ويل کيږي، د عربو سره دوکه دا ده چه د هغوی سره ذاتي طور باندې خيانت وکړی شي يا اجتماعی طور باندې د هغوی سره خيانت وکړی شي ، د هغوی خارجه پاليسی بدله کړی شي د کافرو تابع وګرځولی شي يا د هغوی په داخله پاليسۍ کې رد و بدل کولو سره د کفارو همنوا وګرځولی شي يا داسې بين الاقوامی معاهدې وشي چه په هغو سره عرب د غلامۍ په ځنځيرونو کې وتړل شي ، يا عرب په قالبونو باندې تقسيم کړی شي چه څه د امريکی په قالب کې راشي او څه د روس په قالب کې شامل شي لکه څنګه چه د روس حکمرانانو داسې وکړل ، بيا د فلسطين قيادت داسې خيانت وکړو او تر اوسه جاری دی . د (**غش**) مطلب دوکه او فريب هم کيدلی شي او بغض او عداوت هم کيدلی شي ، د عجمو نه علاوه خلک عرب دي که هغه په ښارونو کې اوسيږي يا په دشتو کې وي . (**بذلک القوی**) يعنې د محدثينو په نزد دا حديث زيات قوی نه دی بلکه ضعيفه دی ، علماوو ليکلي دي چه په فضائل اعمالو کې ضعيف حديثونه قبول دي . همدارنګه ملاعلی قاری رَحِمَهُ اللهُ ليکلي چه د عربو سره د محبت ساتلو متعلق ډير حديثونه دي چه د هغو په وجه دا حديث د حسن په درجه کې قوی کيږي . مثلا په مستدرک د حاکم کې دي ( **حب القريش ايمان وبغضهم کفر و حب العرب ايمان وبغضهم کفر فمن احب العرب فقد احبنی و من ابغض العرب فقد ابغضنی** ) .

په طبرانی کې يو حديث دی (**احبوا قريشا فانه من احبهم احبه الله**) او يو مشهور حديث دی (**احبوا العرب لثلاث**) چه په آينده حديث نمبر ۲۷ کې راځي . لهذا ملاعلی قاری رَحِمَهُ اللهُ د زير بحث حديث په باره کې فرمايي **واقل مرتبة اسانيده ان يکون حسنا فالحديث حسن لغيره** . (مرقات ج۱ ص۳۴۶)

## د عربو تباهی د قرب قيامت نښه ده

| |
|---|
| ﴿۲۱﴾ وَعَنْ أُمِّ حَرِيْرٍ مَوْلَاةِ طَلْحَةَ بْنِ مَالِكٍ قَالَتْ سَمِعْتُ مَوْلَايَ |
| او بي بي أم حرير چه د يو صحابي حضرت طلحه ابن مالک رَضِيَ اللهُ عَنْهُ آزاد کرده وينزه ده وايي ما د خپل |
| يَقُوْلُ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ اِقْتِرَابِ السَّاعَةِ |
| آقا (حضرت طلحه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ) نه واوريدل چې د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ارشاد ګرامي دی د قرب قيامت د |
| هَلَاكُ الْعَرَبِ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ. |
| اهل عربو هلاک کې دل دي [ترمذی] |

## د عربو په قبائلو باندې د مناصبو تقسیمول

| |
|---|
| ﴿۲۲﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَلْمُلْكُ فِيْ قُرَيْشٍ |
| او حضرت ابو هریره رضي الله عنه وایي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمائیل خلافت او بادشاهي قریشو کې ده |
| وَالْقَضَاءُ فِي الْأَنْصَارِ وَالْأَذَانُ فِي الْحَبَشَةِ وَالْأَمَانَةُ فِي الْأَزْدِ |
| قضاء انصارو کې ده آذان حبشانو کې دی او امانت په ازد [یعني ازد شنوه] کې دی د اَزد نه د |
| يَعْنِي الْيَمَنَ وَفِيْ رِوَايَةٍ مَوْقُوْفًا |
| حضور صلی الله علیه وسلم مراد ټول اهل یمن وو یو روایت کې داحدیث د حضرت ابو هریره رضي الله عنه موقوف حدیث |
| رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَ قَالَ هٰذَا أَصَحُّ. |
| په طور منقول دی او ترمذی رحمه الله دي ویلي دي دا خبره زیاته صحیح ده. |

**توضیح** :الملک في قریش: حکومت په قریشو کې دی، صحابه وو همداسې فیصله وکړه او حکومت یې ابوبکر صدیق رض ته حواله کړو چه د قریشو څخه وو. (قضاء او عدالت په انصارو کې دی) صحابه وو همداسې وکړه او حضرت معاذ بن جبل د یمن قاضي مقرر شو چه انصاري وو. (آذان په حبشه کې دی) صحابه وو همداسې وکړل او حضرت بلال رض د آذان په منصب باندې مقرر شو چه حبشي وو. (امانت په ازد کې دی) ازد قبیله د یمن مشهوره قبیله ده، ددینه مراد اهل یمن دي او د یمن دیانت مشهوره دی.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## د قریشو باره کې یو حکم

| |
|---|
| ﴿۲۳﴾ عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مُطِيْعٍ عَنْ أَبِيْهِ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| حضرت عبدالله ابن مطیع تابعي رحمه الله خپل پلار حضرت مطیع روایت کوي چې ما د رسول الله صلی الله علیه وسلم |
| يَقُوْلُ يَوْمَ فَتْحِ مَكَّةَ لَا يُقْتَلُ قُرَشِيٌّ صَبْرًا بَعْدَ هٰذَا |
| نه د مکې د فتح په ورځ آوریدلي دي چه نن نه روسته د قیامت د ورځې پورې هیڅ قریشي به |
| الْيَوْمِ إِلَىٰ يَوْمِ الْقِيَامَةِ. رَوَاهُ مُسْلِمٌ. |
| حبس او قیدولو سره نه شي ووژل [ مسلم |

**توضیح** : صبرا: یعنې کوم قریشي به تړل شوی نه قتل کیږي نو ځکه د نن فتحه مکې نه بعد تر قیامته کوم قریشي به صبرا نه قتل کیږي ، ددې روایت یو مطلب علامه طیبی رحمه الله بیان کړی دی هغه دی چه دلته نفی د نهی په معنی سره ده یعنې چه کوم قریشی په جیل کې اول بندی کړی شي داسې اوبیا تړلو سره قتل کړی شي داسې به نه کوی . ملاعلی قاری رحمه الله په دې توجیه باندې سخت اعتراض کړی دی او بیا یې د حدیث دا مطلب بیان کړی دی چه په دې حدیث کې حضور صلی الله علیه وسلم یوه پیشنګوئي بیان کړې ده چه داسې به اوس نه کیږي چه کوم قریشي اسلام ته د راتګ نه وروسته مرتد شي او د ارتداد نه وروسته هغه قید کړی شي او صبرا قتل کړی شي داسې به نه کیږي ، ملاعلی قاری رحمه الله دا مطلب ځکه اختیار کړی دی چه په تاریخ کې دا خبره په کثرت سره پیدا کیږي چه قریشي تړلی قتل کړی شوی وي مګر دا خبره نه پیدا کیږي چه د اسلام نه بعد قریشي مرتد شوی وي او بیا هغه تړلی شوي وي او قتل کړی شوی وي . په هر حال په ظاهره د علامه طیبی رحمه الله خبره حدیث ته زیاته قریبه معلومیږي ، د ملا علی قاری رح خبره بعیده معلومیږي.

## د حجاج بن یوسف ظلم او دحضرت اسماء جرأت

﴿۲۲﴾ وَعَنْ أَبِي نَوْفَلٍ مُعَاوِيَةَ بْنِ مُسْلِمٍ قَالَ رَأَيْتُ عَبْدَ اللهِ بْنَ الزُّبَيْرِ

حضرت ابونوفل معاویه ابن مسلم رحمه الله بیان کوي ما د حضرت عبدالله ابن زبیر رضي الله عنه د مدینې

عَلَى عَقَبَةِ الْمَدِينَةِ قَالَ فَجَعَلَتْ قُرَيْشٌ تَمُرُّ عَلَيْهِ

لارکې [تختدار باندې سولی ] ولیده ابونوفل رحمه الله وایي قریشو هغه لاش ته تلل راتلل کړه او

وَالنَّاسُ حَتَّى مَرَّ عَلَيْهِ عَبْدُ اللهِ بْنُ عُمَرَ فَوَقَفَ عَلَيْهِ

نورخلق هم ورتلل تردې چه حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنه هم هلته راغی او د لاش مخکې ودریدو

فَقَالَ اَلسَّلَامُ عَلَيْكَ أَبَا خُبَيْبٍ اَلسَّلَامُ عَلَيْكَ أَبَا خُبَيْبٍ اَلسَّلَامُ عَلَيْكَ أَبَا خُبَيْبٍ

او داسې وویل السلام علیک ای ابو خبیب! السلام علیک اي ابو خبیب! السلام علیک اي ابو خبیب!

أَمَا وَاللهِ لَقَدْ كُنْتُ أَنْهَاكَ عَنْ هٰذَا أَمَا وَاللهِ لَقَدْ كُنْتُ أَنْهَاكَ عَنْ هٰذَا

خبر شه قسم په الله ما ته ددې کار نه منع کولې خبر شه قسم په الله ما ته ددې کار نه منع کولې بلاشبهه

أَمَا وَاللهِ لَقَدْ كُنْتُ أَنْهَاكَ عَنْ هٰذَا أَمَا وَاللهِ إِنْ كُنْتَ مَا عَلِمْتُ صَوَّامًا قَوَّامًا

ته هغه سړی وې چه ما پیژندلې چه ته ډیر زیات روژې نیونکی وې ډیر زیات شب بیداري کونکې

وَصُوْلًا لِلرَّحِمِ أَمَا وَاللهِ لَأُمَّةٌ أَنْتَ شَرُّهَا لَأُمَّةٌ

او اهل قرابت سره ډیر زیات احسان او سلوک کونکی وې خبر شه په الله قسم چه هغه ډله چه د عغه په

سُوْءٍ وَفِي رِوَايَةٍ لَأُمَّةٌ خَيْرٍ

نظر کې ته ډیر خراب یې یقیناً یوه خرابه او بدتره ډله ده او یو روایت کې [لامة سوء] په ځای لامة خیر

ثُمَّ نَفَذَ عَبْدُ اللهِ بْنُ عُمَرَ فَبَلَغَ الْحَجَّاجَ

الفاظ دي دي نه روسته حضرت ابن عمر رضي الله عنه هغه ځای نه ولاړ یا چه دا خبره حجاج ته ورسیدله چه

مَوْقِفُ عَبْدِ اللهِ وَقَوْلُهُ فَأَرْسَلَ إِلَيْهِ فَأُنْزِلَ

عبدالله ابن عمر رضي الله عنه د ابن زبیر د نفس خواته داسي داسي ویلي دي نو هغه فوراً یو سړی ولیږه او لاش

عَنْ جِذْعِهِ فَأُلْقِيَ فِي قُبُوْرِ الْيَهُوْدِ ثُمَّ

یې د هغه لرګي نه خکته کولو سره د یهودیانو په قبرستان کې وغورځوه بیا حجاج د ابن زبیر رضي الله عنه

أَرْسَلَ إِلَى أُمِّهِ أَسْمَاءَ بِنْتِ أَبِي بَكْرٍ فَأَبَتْ أَنْ

والده بي بي اسماء رضي الله عنها ته یو سړی ورولیږی بي بي اسماء هغه ته د ورتللو نه انکار وکړو حجاج

تَأْتِيَهُ فَأَعَادَ عَلَيْهَا الرَّسُوْلَ لَتَأْتِيَنِّي أَوْ لَأَبْعَثَنَّ

دوهم وار بیا سړی ورولیږه ورته یې وویل یا خو سمدستي په سمه راشه ګني زه به یو داسي سړی

إِلَيْكِ مَنْ يَسْحَبُكِ بِقُرُوْنِكِ قَالَ فَأَبَتْ

درولیږم چه هغه به دې د سرد کمڅو نه نیولي په راښکلو راښکلو به دې دلته راولي ابو نوفل رحمه الله

وَقَالَتْ وَاللهِ لَا آتِيْكَ حَتّٰى تَبْعَثَ

وایي بي بي اسماء رضي الله عنها بیا انکار وکړو او حجاج ته یې جواب ولیږه چه قسم په الله زه تاته هیڅ کله

إِلَيَّ مَنْ يَسْحَبُنِيْ بِقُرُوْنِيْ قَالَ

نه درځم اوس ته یو داسي سړی پیدا کړه چه هغه ما د سرد کونڅو نه نیولي درولي راوي وایي حجاج

فَقَالَ أَرُونِي سِبْتَيَّ فَأَخَذَ نَعْلَيْهِ

چه دا واوریدل نو وویل زما پیزار را اوړئ او زما په مخ کې یې کې بړدی بیا هغه خپل پیزار په پښو

ثُمَّ انْطَلَقَ يَتَوَذَّفُ حَتَّى دَخَلَ عَلَيْهَا فَقَالَ كَيْفَ

کړو واچول او په کِبر سره تیز تیز تللو بي بي آسماء ته ورسیدو او هغې ته یې وویل تا زه څنګ

رَأَيْتِنِي صَنَعْتُ بِعَدُوِّ اللهِ قَالَتْ

الله د دښمن (یعني خپل زوئ ابن زبیر) سره څنګه سلوک کولو والا ولیدم؟ حضرت آسماء ورته رضي الله عنها

رَأَيْتُكَ أَفْسَدْتَ عَلَيْهِ دُنْيَاهُ وَأَفْسَدَ عَلَيْكَ آخِرَتَكَ بَلَغَنِي

وویل زه خو تا داسې وینم چه تا د هغه دنیا تباه کړه او هغه ستا آخرت تباه کړو او ماته معلومه ده

أَنَّكَ تَقُولُ لَهُ يَا ابْنَ ذَاتِ النِّطَاقَيْنِ أَنَا وَاللهِ ذَاتُ النِّطَاقَيْنِ

چې زما ځوی ابن زبیر د کمربند والا ښځې ځوی سره مخاطب کوي نو واوره قسم په الله چې زه

أَمَّا أَحَدُهُمَا فَكُنْتُ بِهِ أَرْفَعُ طَعَامَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

بیشکه دوه کمربند والا ښځه یم داسې دوه کمربنده چې یو د هغه په سبب آنحضرت صلی الله علیه وسلم او

وَطَعَامَ أَبِي بَكْرٍ مِنَ الدَّوَابِّ وَأَمَّا الْآخَرُ فَنِطَاقُ الْمَرْأَةِ الَّتِي

حضرت ابوبکر رضي الله عنه خوراک له ځناورو محفوظ ساتلو او دویم کمربند د ښځې هغه کمربند دی چې له هغه

لَا تَسْتَغْنِي عَنْهُ أَمَا إِنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَدَّثَنَا

نه هیڅ ښځه بې پروا کیدای نشي او یاد لره ماته رسول الله صلی الله علیه وسلم دا حدیث ارشاد فرمائیلی وو چې

أَنَّ فِي ثَقِيفٍ كَذَّابًا وَمُبِيرًا فَأَمَّا الْكَذَّابُ

په ثقیف قبیله کې به یو نهایت دروغ جن سړی پیدا کیږي او یو نهایت مفسد او قاتل بهر حال د روغجن

| فَرَأَيْنَاهُ | وَأَمَّا | الْمُبِيْرُ | فَلَا | إِخَالُكَ | إِلَّا | إِيَّاهُ | قَالَ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| خو مونږ ولیده چې ابو عبید ثقفي وو او مفسد او قاتل نو هغه زما خیال دی چې ته یې د راوی ابو نوفل | | | | | | | |
| فَقَامَ | عَنْهَا | فَلَمْ | يُرَاجِعْهَا. | رَوَاهُ مُسْلِمٌ. | | | |
| بیان دی چې حجاج د اسماء بی بی نه پاسیدو او هغې ته هیڅ جواب ورنکړو | | | | | | | |

**توضیح**: (عقبة المدینة) ددینه هغه لاره مراد ده چه د مکې نه مدینې ته ځي دا ځای په مکه کې دی په مدینه کې نشته . (لامة سوء) یعنې (لامة انت شرها) یعنې هغه خلک چه د هغه په نظر کې ته ډیر بد سړی وې هغه خلک ډیر بد دي یعنې د حجاج بن یوسف خلکو ته ډیر بد ګڼلې مګر هغوی خپله بد دي، په یو روایت کې د (لامة خیر) الفاظ راغلي دي یعنې کوم خلک چه تا بد سړی ګڼي هغوی ډیر ښه خلک دي یعنې حجاج بن یوسف او د هغه ډله ، په دې کلام کې حضرت ابن عمر رضی الله عنه په حجاج باندې سخریه کول غواړي چه ابن زبیر رضی الله عنه داسې بد سړی وو چه هغه ژوندی پریښودل پکار نه وو او چه کوم خلکو قتل کړی دی هغوی خو ډیر متقیان خلک دي

(جذعة) د ونې تنې ته ویل کیږي چه په هغې باندې حضرت عبدالله بن زبیر رضی الله عنه په دار کړی شوی وو ، ددغو خبرو په وجه حجاج بن یوسف د حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنه په لاره کې زهر آلود خنجر کیښودو ده هغه یې شهید کړلو .

قبور الیهود: ددینه مراد هغه قبرونه دي چه په هغو کې به په هغه زمانه کې یهود دفن کیدل، د اسلام د راتګ نه وروسته هلته یهود پاتې نشول ، مسلمانانو وروسته عبدالله بن زبیر رضی الله عنه د هغه ځای نه وویسته په جنت المعلا کې یې دفن کړو ، د هغه د والدې حضرت اسماء رضی الله عنها قبر هم د هغه سره دی . قرون: د قرن جمع ده مراد د سر د ویښتانو کوڅې دي . (یسحبک) د ویښتانو په نیولو سره راخکلو ته ویل کیږي . (سبتی) دا د سبتیة تثنیه ده هغې څپلۍ ته ویل کیږي چه د دباغت شده څرمنې څخه جوړه شوې وي، سبت د ویښتانو ازالې ته ویل کیږي ، مضاف دی د یاء متکلم طرفته څپلیو ته ویل کیږي . (یتوذف) ای یسرع نزدي نزدې قدم ایښودلو سره تیز تللو ته یتوذف وایې ، وقیل یتبختر یعنې په غرور غرور سره تګ کولو ته یتوذف وایې .

(یا ابن ذات النطاقین) یعنې ما ته معلومه شوې چه ته زما ځوی په ذات النطاقین د ښځې ځوی سره

اواز ورته کوي؟ نطاق کمربند ته وايي ، په عربو کې به دغه رقم دوه کمربنده ښځو تړل چه د بل چا خادماني به وي ، د حجاج مطلب همدا وو مګر حضرت اسماء رضي الله عنه د اصل مطلب وضاحت وکړلو چه په دې کې د هغې اعزاز وو ، په دې باندې به عبدالله بن زبير رضي الله عنه فخر کولو او ويل به يې :

اِيـــهَـــا وَ الْإِلَـــــهِ تِلْكَ شَكَاةٌ ظَاهِرٌ عَنْكَ عَارُهَا

## په عام شورش کې د شرکت کولو نه د عبدالله بن عمر رضي الله عنه انکار

﴿۲۵﴾ وَعَنْ نَافِعٍ أَنَّ ابْنَ عُمَرَ أَتَاهُ رَجُلَانِ فِي فِتْنَةِ ابْنِ الزُّبَيْرِ

او حضرت نافع رحمه الله روايت کوي چه حضرت عبدالله ابن زبير رضي الله عنه سره متعلق د هنګامه آرائي

فَقَالَا إِنَّ النَّاسَ صَنَعُوْا مَاتَرٰى وَأَنْتَ ابْنُ عُمَرَ

زمانه کې دوه کسان حضرت عبدالله ابن عمر رضي الله عنه ته راغلل او ويل چه خلقو چه څه کړي دي هغه

وَصَاحِبُ. رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَمَا

تاسو وليدل تاسو د حضرت عمر رضي الله عنه زوی يې او ته د رسول الله صلى الله عليه وسلم صحابي هم يې يا څه مانع

يَمْنَعُكَ أَنْ تَخْرُجَ فَقَالَ يَمْنَعُنِيْ أَنَّ

دي چه تاسو خروج نه کوئ حضرت عبدالله ابن عمر رضي الله عنه ورته وفرمائيل کوم شی چه زما دپاره مانع

اللّٰهَ حَرَّمَ عَلَيَّ دَمَ أَخِيْ الْمُسْلِمِ

دی هغه زما داعلم دی چه د مسلمان ورور وينه تويول الله تعالى زما د پاره حرام کړې دي هغه

قَالَا أَلَمْ يَقُلِ اللّٰهُ تَعَالٰى وَقَاتِلُوْهُمْ حَتّٰى لَا تَكُوْنَ فِتْنَةٌ

دواړو وويل آيا الله تعالى دانه دي فرمائيلي چې: خلقو سره تر دي حاله پوري جنګيږئ تر څو فتنه

فَقَالَ ابْنُ عُمَرَ قَدْ قَاتَلْنَا حَتّٰى لَمْ تَكُنْ فِتْنَةٌ وَكَانَ

ختمه شي حضرت ابن عمر رضي الله عنه ورته وفرمائيل : موږ و جنګيدو تردې پوري چه فتنه يعني د کفر

الدِّيْنُ لِلّٰهِ وَأَنْتُمْ تُرِيْدُوْنَ أَنْ تُقَاتِلُوْا حَتّٰى تَكُوْنَ فِتْنَةٌ

اوشرک خاتمه وشوه او صرف د الله دين اسلام پاتې شو او اوس تاسو داغواړئ چه تاسو جنګ

| وَيَكُوْنَ | الدِّيْنُ | لِغَيْرِ | اللهِ. | رَوَاهُ | الْبُخَارِيُّ |
|---|---|---|---|---|---|
| وجدال كوئ تر دي چه په مسلمانانو كې فتنه خوره شي او د غير الله دين قائم شي. بخارى. | | | | | |

**توضيح**: ان تخرج: دا د خروج څخه دى د بغاوت په معنى سره دى ، په حقيقت كې د حضرت عبدالله بن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په موجودګۍ كې عبدالملك بن مروان خليفه وو او د هغه له طرفه حجاج بن يوسف ګورنر مقرر وو ، صحابه كرامو او تابعينو حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته مشوره وركړه چه ددې ظالم حجاج بن يوسف په مقابله كې ته ولې خروج نه كوې؟ ستا په خروج سره به د حجاج ظلم ختم شي او د عبدالملك په ځاى به ته خليفه جوړ شې، حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په دوو الفاظو كې جواب وركړو چه داسې كيدلى نشي، د هغه نظريه دا وه چه د كور مخې ته چه كله جنګ راشي نو بيا دفاع وكړه او بس، څه صحابه داسې وو چه د دفاع قائل هم نه وو ، او څه صحابه د حق سره ميدان جنګ ته د وتلو قائل وو، د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په مختلفو فرمانونو باندې صحابه كرامو عمل كولو ، تفصيل ليكل شوى دى.

**صنعوا ما ترى**: د زير بحث حديث خلاصه دا ده چې خلكو حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته وويل چې په خلكو كې چې كومه فتنه راولاړه شوې ده او مسلسله تنازعه چليږي هغه ته وينې ، بيا ته د حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ځوى يې ، ته د عبدالله بن زبير رضى الله عنه د خلافت حمايت ولې نه كوې؟ او د حجاج په خلاف خروج ولې نه كوې؟ حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دا معذرت وكړو چه دا د مسلمانانو په خپل مينځ كې جګړې دي زه د كوم مسلمان قتل نه خوښوم ، چې كله د كفارو فتنه وه هغه مونږ ختمه كړه !او س تاسې ځكه جنګيږئ چې فتنه نوره هم راپورته شي او دين د الله په ځاى د غير الله لپاره شي.

## د قبيله دوس په حق كې دُعا

| ﴿۲۶﴾ وَعَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ جَاءَ الطُّفَيْلُ بْنُ عَمْرِو نِ الدَّوْسِيُّ إِلَى رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| اوحضرت ابوهريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چه طفيل بن عمرو دوسي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خدمت كې حاضر | | | | | | | | |
| فَقَالَ | إِنَّ | دَوْسًا | قَدْ | هَلَكَتْ | وَعَصَتْ | وَأَبَتْ | فَادْعُ | اللهَ |
| شو او عرض يې وكړو يا رسول الله! ماته يقين دى چه قبيله د دوس هلاكه شوه نوتاسو دې قبيلې | | | | | | | | |
| عَلَيْهِمْ | فَظَنَّ | النَّاسُ | أَنَّهُ | يَدْعُوْ | عَلَيْهِمْ | | | |
| دپاره بد دُعا وكړئ خلقو دا آوريدو سره خيال وكړو چه حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به دي قبيلې دپاره بد دُعا | | | | | | | | |

| فَقَالَ | اَللّٰهُمَّ | اهْدِ | دَوْسًا | وَّأْتِ |
|---|---|---|---|---|
| وکړي ليکن حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دُعا وفرمائيله چه الٰهي! قبيله دوس ته سيدها لار وښائي او د دي قبيلي | | | | |
| بِهِمْ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. | | | | |
| خلق مديني جانب ته راولي : | | | | |

## د عربو سره د محبت کولو وجه

| ﴿۲۷﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَحِبُّوا الْعَرَبَ | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| او حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمائيل د دري اسبابو په بناء تاسو ته د عربو سره | | | | | | |
| لِثَلَاثٍ | لِأَنِّي | عَرَبِيٌّ | وَالْقُرْآنُ | عَرَبِيٌّ | وَكَلَامُ | أَهْلِ |
| محبت ساتل پکار دي يو خو په دي وجه چه زه د عربو نه يم دويم په دي وجه چه قرآن عربي ژبه کې | | | | | | |
| الْجَنَّةِ | عَرَبِيٌّ. | رَوَاهُ | الْبَيْهَقِيُّ | فِيْ | شُعَبِ | الْإِيْمَانِ. |
| دی او دريم په دي وجه چه د جنتيانو ژبه عربي ده [ دا روايت بيهقي شعب الايمان کې نقل کړی دی . | | | | | | |



# باب مناقب الصحابة رضي الله عنهم

## د صحابه کرامو رضي الله عنهم د مناقبو بیان

قال الله تعالى: ﴿مُحَمَّدٌ رَّسُولُ اللهِ وَالَّذِينَ مَعَهُ أَشِدَّاءُ عَلَى الْكُفَّارِ رُحَمَاءُ بَيْنَهُمْ تَرَاهُمْ رُكَّعًا سُجَّدًا يَبْتَغُونَ فَضْلًا مِنَ اللهِ وَرِضْوَانًا سِيمَاهُمْ فِي وُجُوهِهِمْ مِنْ أَثَرِ السُّجُودِ﴾ (سورة الفتح)

**مناقب:** جمع ده دديې مفرد منقبة ده ، منقبت د هغه فضيلت او ښه خصلت نوم دی چه د هغه په واسطه انسان ته د خالق او مخلوق په نزد عزت و شرف او منزلت او رفعت حاصليږي، ليکن دا خبره ملحوظ کول پکار دي چه دغه شرف او عزت او دغه منقبت او رفعت ته هغه وخت اعتبار شته چه د الله تعالی په نزد دغه مقام هغه شخص ته حاصل وي، کچيرې د الله تعالی په نزد هغه ته دغه مقام حاصل نه وي نو صرف د مخلوق په نزد دغه شرف او مقام ته هيڅ اعتبار نشته. بيا دا خبره هم ضروري ده چه ددغه منقبت او شرف او منزلت تعيين حضور صلی الله عليه وسلم فرمايلی وي چه دا کار باعث د فضيلت دی ، د عوام الناس تعيين ته هيڅ اعتبار نشته ، ددينه مخکې باب مناقب قريش کښې تفصيل ليکل شوی دی.

**الصحابة:** دا جمع ده مفرد يې صحابی دی او صحابی هغه وي چه هغه په حالت د بيدارۍ کښې حضور اکرم صلی الله عليه وسلم ليدلی وي او بيا تر وفاته پورې په ايمان باندې قائم پاتې شوی وي ، تابعی هغه وي چه هغه په دغه حالت کښې صحابی ليدلی وي او تبع تابعی هغه وي چه هغه په دغسې حالت کښې تابعی ليدلی وي. صحابه ټول عادلان دي او د انجام په اعتبار سره ټول مأمون او محفوظ او اهل جنت دي. د الله تعالی او د هغه د رسول په نزد او د قرآن او حديث د تعليماتو مطابق د هغوی لپاره ډير لوی شان دی . د ټولو نه افضل حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه دی ، بيا خلفاء راشدين دي، بيا عشره مبشره دي، بيا اهل بدر دي، بيا د بيعت رضوان حديبيه والا دي ، بيا اهل قبلتين دي، بيا د فتح مکه نه مخکې اسلام قبلونکي صحابه دي.

د السابقون الاولون والا هم د شان والا صحابه دي ، په صحابه کرامو کښې السابقون الاولون څوک دي؟ نو يو قول دا دی چه د بيعت عقبه والا دي، دويم قول دا دی چه د بدر د واقعې نه مخکې صحابه دي، دريم قول دا دی چه د فتح مکه نه مخکې والا صحابه دي، څلورم قول دا دی چه ټول صحابه کرام سابقين اولين دي. صحابه کرام ټول عادلان دي او زمونږ د دين ګواهان دي، د دوی په واسطه مونږ ته کلمه طيبه او قرآن رسيدلی دی ، کچيرې صحابه کرامو ته خراب يا العياذ بالله ګمراه وويل شي نو ټول قيامته به ټول خلک خراب او ګمراه شي ، ځکه د حوض اوبه کچيرې خرابې شي نو په نيالیو کښې خرابې اوبه راځي، د قرآن په نقل کولو کښې د صحابو ټوله طبقه شريکه ده ، کچيرې د صحابو طبقه

بې اعتماده شي نو په قرآن باندې به اعتماد ختم شي، د څو کسانو په ګواهۍ باندې د قرآن اعتماد نه بحال کیږي. صحابه کرام براه راست د حضور صلی الله علیه وسلم شاګردان دي، کچیرې صحابو ته خراب وویل شي نو دا په حضور صلی الله علیه وسلم باندې اعتراض دی که په ۲۳ کاله کښې حضور صلی الله علیه وسلم قابل اعتماد شاګرد پیدا نه کړې شو، په دې وجه د اهلسنت والجماعة عقیده ده چه صحابه کرام د هدایت منارې او د امت لپاره د حق معیار ول، د صحابو سره چه د چا بغض پاتې شوی هغوی کفار وو، یو چا ډیر ښه ویلي دي:

حب النبي رسول الله مفترض ... وحب اصحابه نور ببرهان
من كان يعلم ان الله خالقه ... لا يرمين ابابكر ببهتان
ولا اباحفص الفاروق صاحبه ... ولا الخليفة عثمان بن عفان
اما علي فمشهور فضائله ... والبيت لا يبتني الا باركان

باقي د صحابو په مینځ کښې اختلاف هم راغلی دی، جنګونه هم شوي دي داد صحابو مشاجرات دي د هر فریق نیت ښه وو، ګویا د دوو ورونړو اختلاف ؤ، د کوم دریم کس په مینځ کښې راتلل او د یوه ورور حمایت او د بل مخالفت غیر معقول دی، بل داچې په اجتهادی غلطۍ باندې مؤاخذه نه کیږي که یوه ډله په حق باندې وه نو بله دا جتهادی غلطۍ ښکار شوې وه، د جمهور اهل حق همدا مسلک دی باقي د صحابه کرامو په شرعي مسائلو کې هم اختلاف راغلی دی، دا اختلاف باعث د رحمت دی قابل د ګرفت نه دی، د صحابو بزرګي صرف د امت مسلمه لپاره نه ده بلکه په کائناتو کښې مسلمه ده شاعر ښه ویلي:

فلو ان السماء دنت لمجد ... ومكرمة دنت لهم السماء

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

### صحابو رضي الله عنهم ته د کنځلو کولو شرعي حکم

| |
|---|
| ﴿۱﴾ عَنْ أَبِيْ سَعِيْدِ نِ الْخُدْرِيِّ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تَسُبُّوْا أَصْحَابِيْ |
| حضرت ابو سعید خدری رضي الله عنه وايي رسول الله صلی الله علیه وسلم و فرمائیل تاسو زما صحابو ته بد مه وائي |
| فَلَوْ أَنَّ أَحَدَكُمْ أَنْفَقَ مِثْلَ أُحُدٍ ذَهَبًا |
| حقیقت دا دی که په تاسو کې یو سړی د احد د غره برابر سونا [سره زر] د الله په لار کي مصرف کړي نو د هغه ثواب |
| مَا بَلَغَ مُدَّ أَحَدِهِمْ وَ لَا نَصِيْفَهُ . مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. |
| زما صحابو دیو صاع څلورمي حصي د ثواب برابر هم نشي رسیدی او نه د صاع د نیمایي حصي ثواب ته. [بخاري و مسلم] |

**توضیح** : (لاتسبوا اصحابي) دا خطاب د صحابو رضي الله عنهم جماعت ته هم کیدلی شي چه په تاسو کښې بعضې پورته شي بعضو نورو صحابو ته بد مه وائي . وایې چه حضرت عبدالرحمن بن عوف رضي الله عنه ته حضرت خالد رضي الله عنه یو ځل ډیر سخت کلمات وویل په هغه باندې حضور صلی الله علیه وسلم دا ممانعت وفرمایلو . لیکن راجح او واضحه دا ده چه دا خطاب د صحابه کرامو نه بعد راتلونکي ټول امت ته عام دی چه تاسې زما صحابو ته بد مه وائي ! ځکه چه د صحابو شان ډیر اوچت دی . د حضور صلی الله علیه وسلم د ارشاد په رڼایې کښې د حدیث شارحینو لیکلي دي چه صحابه کرامو ته بد ویل حرام او د لویو فواحشو څخه دی ، د جمهورو علماؤ دا مذهب دی چه کوم شخص صحابه کرامو ته کنځل وکړي هغه ته به په طور د تعزیر سزا ورکولی کیږي ، بعضو مالکیو ویلي چه هغه به قتل کیږي ، علامه طیبی رحمه الله هم داسې لیکلي ، قاضی عیاض مالکی رحمه الله ویلي چه هر صحابی ته بد ویل ګناه کبیره او حرام دي دغسې شخص ته به سخته سزا ورکولی کیږي .د احنافو بعضو علماؤ ویلي دي چه کوم شخص شیخینو ته کنځل وکړي هغه واجب القتل دی ، په الاشباه والنظائر کښې یې لیکلي دي چه کوم شخص شیخینو ته کنځل کوي یا په هغوی باندې لعنت وایې هغه کافر دی او کوم شخص چه حضرت علی, ته په شیخینو فضیلت ورکوي هغه مبتدع دی ، په الاشباه والنظائر کښې یې دا هم لیکلي چه کوم کافر هم د خپل کفر نه توبه کوي نو د هغه توبه مقبوله ده لیکن کوم شخص چه یو نبی یا شیخینو ته د کنځلو په وجه کافر شوی وي د هغه توبه قبوله نه ده او نه د هغه د معافی لپاره کوم صورت شته.
(کذا فی المرقات بتغییر)

د ائمه احنافو او جمهورو فقهاؤ دا مسلک دی چه صحابه کرامو ته کنځل کونکي شخص ته به د تعزیراتو لاندې سزا ورکول کیږي او د تعزیر نوبت تر قتل پورې هم رسیدلی شي ، په اجمالی طور باندې ددې روایاتو ذکر د ملاعلی قاری رحمه الله په کتاب مرقات کښې هم شته . دار قطنی کښې یو حدیث منقول دی چه د هغه الفاظ داسې دي : **وعن علي عن النبي صلى الله عليه وسلم قال سيأتي من بعدي قوم يقال لهم الرافضة فان ادركتهم فاقتلهم فانهم مشركون قال قلت يا رسول الله ما العلامة فيهم قال يفرطونك بما ليس فيك ويطعنون على السلف . (دارقطني) وفي رواية و ذلك يسبون ابابكر و عمر ومن سب اصحابي فعليه لعنة الله والملئكة والناس اجمعين . (دار قطني)**

حضرت شاه عبدالعزیز رحمه الله لیکلي چه په دې کښې هیڅ شبه نشته چه د فرقه امامیه خلک د حضرت ابوبکر صدیق د خلافت څخه منکر دي او د فقهې په کتابونو کې لیکلي دي چه کوم شخص د خلافت صدیق نه انکار وکړي هغه د اجماع قطعی منکر ګرځي او د اجماع قطعی منکر کافر کیږي لکه په فتاوی عالمګیریه کښې دا رنګه فتوی ده : **الرافضي اذا كان يسب الشيخين ويلعنهما و العياذ بالله**

فهو کافر وان کان یفضل علیاً علی ابی بکر لایکون کافرا لکنه مبتدع ولو قذف عائشة کفر بالله تعالی.
(فتاوی عالمگیریه)

ابن عساکر دا روایت نقل کړی دی (ان رسول الله صلی الله علیه وسلم قال حب ابی بکر و عمر ایمان و بغضهما کفر)، اما ابوزرعه رازی رحمه الله فرمایي کچیرې کوم شخص د رسول الله صلی الله علیه وسلم د صحابو څخه د کوم یو تنقیص او توهین وکړي نو بلاشبه هغه زندیق دی. د حضرت عبدالله تستری رحمه الله قول دی چه کوم شخص د صحابو تعظیم او توقیر ونکړي هغه شخص ته پر نبی کریم صلی الله علیه وسلم باندې ایمان راوړونکی نه ویل کیږي.

په محیط کتاب کښې د امام محمد رحمه الله دا قول منقول دی چه د رافضو پسې لمونځ کول جائز نه دی ځکه چه هغوی د ابوبکر صدیق رضی الله عنه د خلافت څخه منکر دي. په خلاصة الفتاوی کښې لیکلي دي: من انکر خلافة الصدیق فهو کافر. قاضی عیاض رحمه الله په شفاء کښې لیکلي دي چه د امام مالک رحمه الله مسلک دی چه من ابغض الصحابة و سبهم فلیس له فی فیئ المسلمین حق. یعنې کوم شخص چه د صحابو سره بغض وساتي او هغوی ته کنځل وکړي نو د مسلمانانو په بیت المال او مال غنیمت کې د هغه حق نشته. قاضی عیاض رحمه الله نور لیکي چه د امام مالک رحمه الله قول دی چه: من غاظه اصحاب محمد صلی الله علیه وسلم فهو کافر قال الله تعالی لیغیظ بهم الکفار. د امام مالک رحمه الله یوه فتوی داسې هم ده: فان قال (قائل) کانوا علی ضلال او کفر قتل. دا ټول تفصیلات او د هغه حواله جات په مظاهر حق جدید کې شته.

مد احدهم: مُد د یوې پیمانې نوم دی لکه څنګه چه نن سبا کیلو ده. نصیفه: یعنې نیم مد او نیم سیر.

## د صحابه رضی الله عنهم وجود د امت لپاره رحمت دی

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۲﴾ وَ عَنْ أَبِیْ بُرْدَةَ عَنْ أَبِیْهِ قَالَ رَفَعَ یَعْنِیْ النَّبِیَّ صَلَّی اللهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ | | | | | | | |
| اوحضرت ابوبرده خپل والد حضرت ابوموسٰی اشعري رضی الله عنه نه روایت کوي چه هغوی یعني | | | | | | | |
| رَأْسَهُ | إِلَی | السَّمَاءِ | وَکَانَ | کَثِیْرًا | مِمَّا | | |
| حضرت ابوموسٰی بیان وکړو چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم اسمان طرف ته سرمبارک اوچت کړو او حضور صلی الله علیه وسلم به | | | | | | | |
| یَرْفَعُ | رَأْسَهُ | إِلَی | السَّمَاءِ | فَقَالَ | اَلنُّجُوْمُ | أَمَنَةٌ | لِلسَّمَاءِ |
| اکثر اسمان طرف ته کتل او فرمائیل به یې ستوري د اسمان د پاره د امن او سلامتیا باعث دي کوم وقت | | | | | | | |

فَإِذَا ذَهَبَتِ النُّجُومُ أَتَى السَّمَاءَ مَا تُوعَدُ وَأَنَا أَمَنَةٌ لِأَصْحَابِي

چه داستوري لاړشي نو اسمان ته به هغه شی راشي چه موعود او مقدر دی او زه د خپلو صحابو رضي الله عنهم

فَإِذَا ذَهَبْتُ أَنَا أَتَى أَصْحَابِي مَا

د پاره دامن او سلامتیا باعث یم کله چه ددې دنیا نه لاړشم نو زما صحابو رضي الله عنهم ته به هغه شي راشي

يُوعَدُونَ وَأَصْحَابِي أَمَنَةٌ لِأُمَّتِي فَإِذَا ذَهَبَ

چه ددوي سره وعده شوې ده او زما صحابه زما دامت د پاره دامن او سلامتیا باعث دي هر کله چه زما

أَصْحَابِي أَتَى أُمَّتِي مَا يُوعَدُونَ. رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

صحابه رخصت شي نو زما امت باندې به هغه شی راشي چه هغوي لپاره موعود او مقدر دی [مسلم]

## دصحابو رضي الله عنهم په برکت سره علاقې فتحه کیدلې

﴿۳﴾ وَعَنْ أَبِي سَعِيدِنِ الْخُدْرِيِّ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَأْتِي عَلَى النَّاسِ زَمَانٌ

او حضرت ابوسعيد خدري رضي الله عنه وايي چې رسول کريم صلی الله علیه وسلم وفرمائیل په خلقو به یوه داسي زمانه راشي

فَيَغْزُوْ فِئَامٌ مِّنَ النَّاسِ فَيَقُوْلُوْنَ هَلْ فِيكُمْ

چې د خلقو یو جماعت به جهاد د پاره ووزي او بیا به هغه خلق یو بل نه پوښتنه کوي ایا تاسو کي څوک

مَّنْ صَاحَبَ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

داسي سړی هم موجود دي چه هغه ته د رسول الله صلی الله علیه وسلم د صحبت شرف حاصل وي هغوی به جواب کي

فَيَقُوْلُوْنَ نَعَمْ فَيُفْتَحُ لَهُمْ ثُمَّ يَأْتِي عَلَى النَّاسِ

وايي چه هو شته نو هغه خلقو د پاره به د قلعه او ښار دروازي خلاصي شي بیا به په هغوی داسي

زَمَانٌ فَيَغْزُوْ فِئَامٌ مِّنَ النَّاسِ فَيُقَالُ

زمانه راشي چه د خلقو یو جماعت به جهاد د پاره ووزي او هغوی خپلو کي یو بل نه پوښتنه کوي ایا

هَلْ فِيكُمْ مَّنْ صَاحَبَ أَصْحَابَ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

ستاسو منځ کي څوک داسي سړی موجود دي چه هغه ته د رسول کريم صلی الله علیه وسلم د صحابو رضي الله عنهم د صحبت

| فَيَقُوْلُوْنَ | نَعَمْ | فَيُفْتَحُ | لَهُمْ | ثُمَّ |
|---|---|---|---|---|

شرف حاصل شوی وي هغوی به جواب کي وايي هو شته نو د ښار او قلعه دروازي خلاصي شي بيا

| يَأْتِيْ | عَلَى | النَّاسِ | زَمَانٌ | فَيَغْزُوْ | فِئَامٌ | مِّنَ | النَّاسِ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|

به داسي زمانه راشي چه د خلقو يو جماعت به جهاد د پاره ووزي هغوی به خپلو کي يو بل نه پوښتنه

| فَيُقَالُ | هَلْ | فِيْكُمْ | مَّنْ | صَاحَبَ | مَنْ | صَاحَبَ | أَصْحَابَ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|

کوي ايا ستاسو منځ کي څوک داسي سړی هم شته چه هغه د حضور صلی الله علیه وسلم د صحابو د تربيت يافته

| رَسُوْلِ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ | فَيَقُوْلُوْنَ |
|---|---|---|---|---|---|---|

حضراتو تابعينو د صحبت شرف حاصل کړی وي چه هغه ته تبع تابعين وايي هغوی به جواب ورکړي

| نَعَمْ | فَيُفْتَحُ | لَهُمْ. | مُتَّفَقٌ | عَلَيْهِ. | وَفِيْ | رِوَايَةٍ | لِمُسْلِمٍ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|

چه هو هغه خلقو د پاره د قلعه او ښار دروازي خلاصي شي. [بخاري مسلم] او د مسلم يو روايت کي داسي

| قَالَ | يَأْتِيْ | عَلَى | النَّاسِ | زَمَانٌ | يُبْعَثُ | مِنْهُمْ |
|---|---|---|---|---|---|---|

دي چه حضور صلی الله علیه وسلم و فرمائيل په خلقو به يو داسي زمانه راشي چه هغه وقت به د خلقو نه يو

| الْبَعْثُ | فَيَقُوْلُوْنَ | أُنْظُرُوْا | هَلْ |
|---|---|---|---|

لښکر د جنګ لپاره وليږل شي او بيا به هغه اهل لښکر خپلو کي يو بل نه پوښتنه کوي لږ وګوری چه

| تَجِدُوْنَ | فِيْكُمْ | أَحَدًا | مِّنْ | أَصْحَابِ | رَسُوْلِ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|

ستاسو منځ کي د رسول کريم صلی الله علیه وسلم د صحابو رضي الله عنهم نه څوک موجود دي يا نه؟ روسته

| فَيُوْجَدُ | الرَّجُلُ | فَيُفْتَحُ | لَهُمْ | ثُمَّ |
|---|---|---|---|---|

معلومه شي چه لښکر کي يو صحابي رضي الله عنه موجود دي نو هغه لښکر ته فتح حاصله شي د دي نه پس يوه

| يُبْعَثُ | الْبَعْثُ | الثَّانِيْ | فَيَقُوْلُوْنَ | هَلْ | فِيْهِمْ |
|---|---|---|---|---|---|

زمانه کي به يو دويم لښکر وليږلی شي او بيا به هغه اهل لښکر خپلو کي يو بل نه پوښتنه کوي لږ

| مَنْ | رَآى | أَصْحَابَ | النَّبِيِّ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وګورئ ستاسو منځ کې څوک موجود دی يا نه چه هغه صحابه رضي الله عنهم ليدلي وي تلاش کولو باندې به | | | | | | | |
| فَيُوْجَدُ | فَيُفْتَحُ | لَهُمْ | ثُمَّ | يُبْعَثُ | الْبَعْثُ | الثَّالِثُ | |
| معلومه شي چه موجود دی بيا به لښکر ته فتح حاصله شي بيا دې نه روسته به يو دريم لښکر | | | | | | | |
| فَيُقَالُ | أُنْظُرُوْا | هَلْ | تَرَوْنَ | فِيْهِمْ | مَنْ | رَآى | |
| وليږل شي او بيا به هغه اهل لښکر خپلو کې يو بل ته وايي لږ وګورئ ستاسو منځ کې څوک داسې | | | | | | | |
| مَنْ | رَآى | أَصْحَابَ | النَّبِيِّ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ |
| موجود دي يا نه چه هغه يو داسې سړی ليدلی وي چه هغه د رسول کريم صلى الله عليه وسلم صحابه رضي الله عنهم ليدلي وي | | | | | | | |
| ثُمَّ | يَكُوْنُ | الْبَعْثُ | الرَّابِعُ | | | | |
| چې معلومه شي چه يو داسې سړی موجود دی نو هغه لښکر ته به فتح حاصله شي بيا يو څلورم لښکر | | | | | | | |
| فَيُقَالُ | انْظُرُوْا | هَلْ | تَرَوْنَ | فِيْهِمْ | أَحَدًا | | |
| وليږلی شي او اهل لښکر خپلو کې يو بل ته وايي لږ وګورئ ستاسو منځ کې څه داسې سړی موجود | | | | | | | |
| رَآى | مَنْ | رَآى | أَحَدًا | رَآى | أَصْحَابَ | النَّبِيِّ | صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| دي يا نه چه هغه سړي يو داسې سړی ليدلی وي چه هغه د رسول کريم صلى الله عليه وسلم صحابه رضي الله عنهم ليدونکی څوک | | | | | | | |
| فَيُوْجَدُ | الرَّجُلُ | فَيُفْتَحُ | لَهُمْ | بِهِ. | | | |
| سړی ليدلی وي بيا به معلومه شي چه لښکر کې يو داسې سړی شته نو هغه لښکر ته فتح حاصله شي | | | | | | | |

**توضيح:** (فئام) په فاء باندې زير دی په همزه باندې زور دی د انسانانو لوی جماعت ته ويل کيږي، په دې حديث کښې د صحابو د دور بيا د تابعينو بيا د تبع تابعينو د دور برکت او فضيلت بيان دی، د دينه بعد به اهل خير عموما نادره شي په دغه وجه د هغو ذکر نشته.

**البعث:** د فوج يوه دسته (جماعت) چه د ښمن طرفته استولی کيږي، پاس د واړو روايتونو کښې دومره فرق دی چه په اول روايت کښې د دريو قرنونو ذکر دی او په دويم روايت کښې د څلورم قرن ذکر هم دی، مګر ياد ساتل پکار دي چه پدې کښې خير او برکت د نادر په درجه کښې وو په دغه وجه په اول روايت

کښې د دريو قرنونو په بيان باندې اکتفاء شوې ده او دغه نادره ذکر شوې نه ده او دا زيات واضح دی، د مسلم دغه روايت شاذ دی قال ابن حجر.

## د دريم قرن نه وروسته به فساد راشي

﴿٤١﴾ وَ عَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَيْرُ اُمَّتِيْ

او حضرت عمران ابن حصين رضي الله عنه وايي چې رسول کريم صلى الله عليه وسلم وفرمائيل زما د امت بهترين خلق زما د

قَرْنِيْ ثُمَّ الَّذِيْنَ يَلُوْنَهُمْ ثُمَّ الَّذِيْنَ يَلُوْنَهُمْ

پيړۍ خلق دي بيا هغه خلق چه هغوی ته متصل دي بيا هغه خلق چه هغوی ته متصل دی او بيا د دي

ثُمَّ اِنَّ بَعْدَهُمْ قَوْمٌ يَّشْهَدُوْنَ

پيړيو نه روسته چه د کومو خلقو زمانه راځي هغوی. کي به داسي خلق هم وي چه خپله به ګواهي

وَ لَا يُسْتَشْهَدُوْنَ وَيَخُوْنُوْنَ

ورکوي او خوک به د هغوی ګواهي نه غواړي داسي خلق به هم وي چه خيانت به کوي او د هغوی په

وَلَا يُؤْتَمَنُوْنَ وَيَنْذُرُوْنَ وَلَا يَفُوْنَ

ديانت او امانت به اعتماد نه کيږي داسي خلق به هم وي نذر به مني او خپل نذر به نه پوره کوي او

وَيَظْهَرُ فِيْهِمُ السِّمَنُ وَفِيْ رِوَايَةٍ

هغوی کي به چاغ والی پيدا کيږي او يو روايت کي دا هم دي او داسي خلق به وي چه بلاضرورته او

وَيَحْلِفُوْنَ وَ لَا يُسْتَحْلَفُوْنَ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

بلاوجهي به قسمونه خوري حالانکه هغوی نه به قسم نوي اخستل شوی. [بخاري مسلم] او د مسلم

وَفِيْ رِوَايَةٍ لِمُسْلِمٍ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ ثُمَّ يَخْلُفُ

په يو روايت کي چه د حضرت ابو هريره رضي الله عنه نه منقول دی دا الفاظ دي چه بيا د هغه خلقو نه روسته به

قَوْمٌ يُحِبُّوْنَ السَّمَانَةَ

داسي خلق پيدا شي چه چاغ والی او غټ والی به خوښوي

**توضیح** : (قرنی) قرن عهد یا زمانې ته ویل کیږي ، د قرن مقدار د بعضو علماؤ په نزد څلویښت کاله دی ، بعضو اتیا کاله ښودلی دی ، بعضو سل کاله ښودلی دی ، مګر د بعضو علماؤ خیال دی چه په قرن کښې هیڅ تحدید نشته بلکه د یو دور نوم قرن دی ، نو د حضور صلی الله علیه وسلم د قرن نه مراد هغه زمانه ده چه په هغې کښې آخری صحابی موجود وو ، هغه تر ۱۲۰ هجری پورې عهد دی ، ددینه بعد دویم قرن د تابعینو دی چه د ۱۲۰هجری نه تر ۱۷۰ هجری پورې زمانې باندې مشتمل وو ، بیا دریم قرن د تبع تابعینو وو چه د ۱۷۰ هجری څخه شروع تر ۲۲۰ هجری پورې زمانې باندې مشتمل وو ، ددینه وروسته د عمومی خیر او برکت زمانه ختمه شوه او د بدعتونو او بدعقیدګۍ دور شروع شو ، په دې کښې د خوارجو او معتزلو زور شو ، د عقل پرستو واک شو او باطلو فلسفو دنیا راګیر کړله ، د خیریوائې نوم پاتې شو ، دروغجن خلک پیدا شول او په خیټه مین خلکو دین مسخ کړلو .

(یشهدون) یعنې د شاهدۍ لپاره به بغیر د راغوښتلو نه راځي ، په دې جمله باندې دا اعتراض دی چه په یو حدیث کښې پخپله شاهدۍ ته د مخکې کیدلو والا ډیر لوی فضیلت بیان شوی دی او دلته مذمت دی دا خو ښکاره تعارض دی ، ددې جواب دا دی چه کچیرې د یو چا حق ختمیږي او د یوه کس سره د ریښتیا شاهدی وي هغه راشي او ګواهي ورکړي چه په دې سره د غریب حق د ضائع کیدلو نه بچ شي د دغسې ګواهۍ تعریف شوی دی ، لیکن چه کوم ګواه په دروغه ګواهي ورکوي او د کوم حقدار حق ضائع کوي نو د هغه لپاره همدا وعید دی چه په زیر بحث حدیث کښې دی .

(السمانة) چاغوالي ته سمانة ویل شوی دی ، ددینه د عیش او تنعم او د سستی و مستۍ ژوند مراد دی ، یو چاغوالی خلقی او طبعي وي هغه مذموم نه دی دویم چاغوالی د ناز او تنعم او عیش او عشرت په وجه پیدا کیږي دلته همدا مراد دی چه په دې سره انسان د سستۍ ښکار کیږي ، د حماقت او بلادت په ګرفت کښې راځي ، د دغسې چاغوالي په باره کښې حضور صلی الله علیه وسلم یو یهودی عالم ته وفرمایل ان الله یبغض الحبر السمین الله تعالی چاغ ملا نه خوښوي ، په هر حال چاغوالی د قیامت د علاماتو نه یو علامت دی ، نن سبا علماء هم ددې ښکار شوي دي ، د تبلیغ والا هم په دې کښې اخته دي ، عوام الناس هم په دې مرض کښې مبتلاء دي ، په عربی دنیا باندې ددې تباهۍ لویه حمله راغلې ده .

## الفصل الثاني

## دصحابو رضي الله عنهم تعظیم او تکریم په امت باندې لازم دی

| |
|---|
| ﴿۵﴾ عَنْ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَكْرِمُوْا أَصْحَابِيْ |
| حضرت عمر رضي الله عنه وايي چې رسول کريم صلی الله علیه وسلم وفرمائيل زما داصحابو رضي الله عنهم تعظيم او تکريم کوئ |

فَإِنَّهُمْ خِيَارُكُمْ ثُمَّ الَّذِيْنَ يَلُوْنَهُمْ

ځکه چه هغوی ستاسو برګزیده او بزرګترین خلق دي بیا هغه خلق چه هغوی ته قریب دي یعني تابعین او بیا

ثُمَّ يَظْهَرُ الْكَذِبُ حَتّٰى إِنَّ

هغه خلق چه تابعینو ته قریب دي یعني تبع تابعین دي نه روسته به دروغ ظاهر شي تر دې پورې چې

الرَّجُلَ لَيَحْلِفُ وَلَا يُسْتَحْلَفُ وَيَشْهَدُ

یو سړی به قسم خوري حالانکه هغه نه به د قسم خوړلو مطالبه نه وي شوي او ګواهي به ورکوي حالانکه

وَلَا يُسْتَشْهَدُ أَلَا مَنْ سَرَّهُ بُحْبُوحَةُ الْجَنَّةِ

هغه ته به د ګواهۍ کولو د پاره نوي ویل شوي یاد لرئ کوم سړی چه بالکل د جنت په منځ کي چه د

فَلْيَلْزِمِ الْجَمَاعَةَ فَإِنَّ الشَّيْطَانَ مَعَ

جنت بهترین ځای دی او سیدل غواړی نو هغه ته پکار دي چه جماعت لازم ونیسي ځکه چه شیطان د

الْفَذِّ وَهُوَ مِنَ الْإِثْنَيْنِ أَبْعَدُ

هغه سړي ملګری جوړیږي چې د جماعت نه جدا او تنهاوي شیطان خو د دوو کسانو نه هم لري تختي

وَلَا يَخْلُوَنَّ رَجُلٌ بِامْرَأَةٍ فَإِنَّ

او خبردار هیڅ سړی دي د یو ي اجنبي ښځي سره په تنهایي کي هیڅ کله نه او سیږي ځکه چه د هغوی

الشَّيْطَانَ ثَالِثُهُمْ وَمَنْ سَرَّتْهُ حَسَنَتُهُ وَسَاءَتْهُ سَيِّئَتُهُ

دریم ملګری شیطان وي او کوم سړي ته چه د هغه نیکی خوشحالي او اطمینان و بخښي او د هغه

فَهُوَ مُؤْمِنٌ . رَوَاهُ النَّسَائِيُّ وَإِسْنَادُهُ صَحِيْحٌ وَرِجَالُهُ

بدی یي غمګین او مضطرب کړي هغه مؤمن دی . نسائي او اسناد د دي حدیث صحیح دی او د دي

رِجَالُ الصَّحِيْحِ إِلَّا إِبْرَاهِيْمَ بْنَ الْحَسَنِ الْخَثْعَمِيَّ . لَمْ يُخْرِجْ عَنْهُ الشَّيْخَانِ

راویان د بخاري او مسلم راویان دي صرف ابراهیم بن الحسن چه دی د هغه نه شیخینو روایت نه

| وَهُوَ ثِقَةٌ ثَبْتٌ |
|---|
| دی کړی خو ثقه او مضبوط دی، |

**توضيح**: الفذ: د تنها او جدا په معنی سره دی یعنې د اهل حق د رأیې څخه یې جدا رأیه قائمه کړې ده.

بحبوحة: وسط الجنة مراد دی، عمده تر جنت مراد دی یعنې که څوک بهترینه او عمده جنت غواړي نو هغه ته پکار دي چه د اهل حقو سره وابسته پاتې شي.

## د صحابو او تابعينو فضيلت

| ﴿۶﴾ وَعَنْ جَابِرٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا تَمَسُّ النَّارُ |
|---|
| او حضرت جابر رضي الله عنه د نبي کريم صلى الله عليه وسلم نه روايت کوي چې حضور صلى الله عليه وسلم وفرمائيل هغه مسلمان |
| مُسْلِمًا رَآنِي أَوْ رَآى مَنْ رَآنِي. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ. |
| ته به د دوزخ اور نه رسیږي چاچي زه لیدلی یم یا هغه سړي یي لیدلی وي چه هغه زه لیدلی یم [ترمذي] |

## د صحابو رضي الله عنهم سره بغض او محبت د رسول الله صلى الله عليه وسلم سره د بغض او محبت نتيجه ده

| ﴿۷﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مُغَفَّلٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَللهَ |
|---|
| او حضرت عبد الله ابن مغفل رضي الله عنه وايي رسول کريم صلى الله عليه وسلم وفرمائيل الله نه ويريږئ بيا الله نه ويريږئ |
| اَللهَ فِي أَصْحَابِي اَللهَ اَللهَ فِي أَصْحَابِي - لَا تَتَّخِذُوْهُمْ غَرَضًا |
| زما د صحابو رضي الله عنه په حق کې زما نه روسته صحابو رضي الله عنهم د ملامتيا نښه مه جوړوئ، يا د لرئ کوم سړی |
| مِنْ بَعْدِي فَمَنْ أَحَبَّهُمْ فَبِحُبِّي أَحَبَّهُمْ وَمَنْ |
| چه هغوی مينه کوي نو زما په وجه يي ورسره مينه کوي او څوک چه ورسره دشمني کوي نو ما سره |
| أَبْغَضَهُمْ فَبِبُغْضِي أَبْغَضَهُمْ وَمَنْ آذَاهُمْ |
| د دشمنئ په سبب يي ورسره دشمني ساتي او کوم سړی چه هغوی ته تکليف رسوي هغه ګويا ماته |
| فَقَدْ آذَانِي وَمَنْ آذَانِي فَقَدْ آذَى اللهَ وَمَنْ |
| تکليف ورسوه او چاچي ماته تکليف ورسوه هغه ګويا الله ته تکليف ورسوي او کوم سړی چه الله ته |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| آذی | الله | فيُوْشِكُ | أَنْ | يَّأْخُذَهٗ. | رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ |
| تکلیف ورسوي نو هغه ورځ لري نه ده چه الله به هغه ونیسي دا روایت ترمذي نقل کړی دی ویلي يي | | | | | |
| وَقَالَ هٰذَا حَدِيْثٌ غَرِيْبٌ. | | | | | |
| دي چې دا حدیث غریب دی. | | | | | |

**توضیح:** الله الله: ای اتقوا الله اتقوا الله یعنې زما د صحابو په باره کښې د الله تعالی څخه وویرېږئ

غرضاً: غرض نشانې ته ویل کیږي یعنې هغوی د اعتراض لپاره نشانه مه کرځوئ.

فببغضي ابغضهم: یعنې اول زما سره بغض ساتي د هغه عکس او نتیجه دا وځي چه زما د صحابو سره بغض ساتي، نو د صحابه کرامو سره بغض ساتل دا د حضور صلی الله علیه وسلم سره د بغض ساتلو نتیجه او اثر دی.

## صحابه کرام رضي الله عنهم د أمت لپاره په منزله د مالګې دي

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۸﴾ وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَثَلُ أَصْحَابِيْ فِيْ أُمَّتِيْ | | | | | | |
| اوحضرت انس رضي الله عنه وايي چې رسول کریم صلی الله علیه وسلم وفرمائیل زما د امت په منځ کي زما د صحابو رضي الله عنهم | | | | | | |
| كَالْمِلْحِ | فِيْ | الطَّعَامِ | لَا | يَصْلُحُ | الطَّعَامُ | إِلَّا بِالْمِلْحِ |
| مثال په طعام کي د مالګي په شان دی طعام هغه وقته پوري ښه خوږ نه شي چه هغه کي مالګه نمک نه وي | | | | | | |
| قَالَ | الْحَسَنُ | فَقَدْ | ذَهَبَ | مِلْحُنَا | فَكَيْفَ | |
| حضرت حسن بصري دې حدیث اوریدو سره وفرمائیل چه زمونږ نمک لاړلو نو بیا مونږ به ښه څرنګه | | | | | | |
| نَصْلُحُ. رَوَاهُ فِيْ شَرْحِ السُّنَّةِ. | | | | | | |
| شو دا روایت بغوي خپل اسناد سره شرح السنه کي نقل کړی دی. | | | | | | |

## دقیامت په ورځ چې کوم صحابي د کوم ځایه پورته کیږي دهغه ځای خلک به جنت ته بوځي

| |
|---|
| ﴿۹﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ بُرَيْدَةَ عَنْ أَبِيْهِ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| اوحضرت عبد الله ابن بریده رضي الله عنه د خپل پلار نه نقل کوي هغوی بیان وکړو چه رسول الله صلی الله علیه وسلم |

مَامِنْ أَحَدٍ مِنْ أَصْحَابِيْ يَمُوْتُ بِأَرْضٍ

وفرمائيل زما صحابو رضي الله عنهم کي چې کوم سړی کومه ځمکه کي وفات شي هلته به په داسي حال کې

إِلَّا بُعِثَ قَائِدًا وَنُوْرًا لَهُمْ

رااوچتول کيږي دخپل قبرنه چه د هغه ځمکې خلق به جنت طرف ته بوځي اوهغوی لپاره به نور وی

يَوْمَ الْقِيَامَةِ رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ هٰذَا حَدِيْثٌ غَرِيْبٌ.

دقيامت په ورځ دا روايت ترمذي نقل کړی دی او ويلي يي دي چه دا حديث غريب دی او د

وَذُكِرَ حَدِيْثُ ابْنِ مَسْعُوْدٍ [لَا يُبَلِّغُنِيْ

حضرت ابن مسعود رضي الله عنه روايت شوی حديث: لايبلغني احدٌ : چه هغه کي دصحابو رضي الله عنهم ذکر دی

أَحَدٌ] فِيْ بَابِ [حِفْظِ اللِّسَانِ].

اوصاحب مصابيح هغه باب کي نقل کړی ؤ وروسته باب حفظ اللسان کي نقل شوی دی.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

### صحابو رضي الله عنهم ته بدويونکي مستوجب لعنت دی

﴿۱۰﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا رَأَيْتُمُ الَّذِيْنَ

حضرت ابن عمر رضي الله عنه وايي چې رسول کريم صلی الله علیه وسلم وفرمائيل هرکله چه تاسو هغه خلق ووينئ چې زما

يَسُبُّوْنَ أَصْحَابِيْ فَقُوْلُوْا لَعْنَةُ اللهِ عَلٰى شَرِّكُمْ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

صحابو رضي الله عنهم ته بد وايي نوتاسو ووائی چه ستاسو پربدترين دې دالله لعنت وي [ترمذي]

### په خپل مينځ کې د اختلاف باوجود دصحابو رضي الله عنهم اقتداء د هدايت ذريعه ده

﴿۱۱﴾ وَعَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

اوحضرت عمر ابن الخطاب رضي الله عنه وايې مادرسول الله صلی الله علیه وسلم نه واوريدل چه وي فرمائيل

يَقُوْلُ سَأَلْتُ رَبِّيْ عَنْ اِخْتِلَافِ أَصْحَابِيْ

چې ما د خپل پروردګار نه د صحابو رضي الله عنهم په منځ کي د اختلاف باره کي پوښتنه وکړه چه د شريعت په فروعي

مِنْ بَعْدِيْ فَأَوْحٰى إِلَيَّ يَا مُحَمَّدُ

مسائلو کي زمانه روسته واقع کيږي نو الله تعالى د وحي په ذريعه زه خبر کړم چه اى محمد صلى الله عليه وسلم

إِنَّ أَصْحَابَكَ عِنْدِيْ بِمَنْزِلَةِ النُّجُوْمِ فِي السَّمَاءِ

حقيقت دا دى چه ستا صحابو رضي الله عنهم زما په نزد داسي دي لکه آسمان کي ستوري څرنګه چه هغه ستورو

بَعْضُهَا أَقْوٰى مِنْ بَعْضٍ وَلِكُلٍّ نُوْرٌ

کي اګرکه بعضي زيات قوي يعني زيات روښانه دي ليکن رڼا په هر يو کي ده نو کوم سړى چې

فَمَنْ أَخَذَ بِشَيْءٍ مِمَّا هُمْ عَلَيْهِ مِنْ اِخْتِلَافِهِمْ فَهُوَ عِنْدِيْ عَلٰى هُدًى

علمي او فقهي مسائلو کې د هغه اختلاف نه څه شى هم اختيار کړل زما په نزد هغه په هدايت دى

قَالَ وَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَصْحَابِيْ كَالنُّجُوْمِ

حضرت عمر رضي الله عنه وايي او رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمائيل چې زما صحابو رضي الله عنهم د ستورو په شان دي نو تاسو

فَبِأَيِّهِمُ اقْتَدَيْتُمْ اِهْتَدَيْتُمْ. رَوَاهُ رَزِيْنٌ.

د هغوى پيروي کوئ هغوى کي چه د کوم يو تاسو پيروي کوئ هدايت به پيدا کوئ [رزين]

**توضيح : عن اختلاف اصحابي:** حضور صلى الله عليه وسلم ته د صحابو رضي الله عنهم په خپل مينځ کښې د اختلاف نه زيات تشويش وو ، بيا هم په دې باره کښې هغه د خپل رب نه سوال کړى دى چې دا به څه جوړيږي؟ الله تعالى وفرمايل چې ستا صحابه د ستورو پشان دي چې د بعضو ستورو نور د بعضو نه تيز وي د دينه په ظاهره اختلاف په نظر راځي ليکن نور په ټولو کښې شته ، لهذا د خپل مينځي جنګونو باوجود صحابه د هدايت مينار وه ، د دوى دغه جنګ نه په بدنيتۍ باندې مبنى نه وو ، اجتهادى اختلاف دى چې معاف دى ، کوم بغض او عداوت او عناد نه دى.

مثلا ټوله ورځ حضرت ابو هريرة رضي الله عنه د حضرت علي رضي الله عنه سره يوځاى د حضرت معاويه رضي الله عنه په خلاف جنګيږي او ماښام د حضرت معاويه رضي الله عنه دسترخوان ته ځي ، حضرت معاويه رضي الله عنه

ویې وښتل چې ابوهریره ! دا څه کوې؟ هغه جواب ورکړو چې دا جنګ د کوم عداوت و عناد په بنیاد باندې نه دی، زه چونکې حضرت علي رضي الله عنه په حقه ګڼم نو د هغه سره یم، لیکن ډوډی د دلته ستا ښه ده نو ځکه دلته راځمه.

همدارنګه حضرت علي رضي الله عنه او حضرت عائشه رضي الله عنها په جنګ جمل باندې ټول عمر ژړل.

همدارنګه چه د روم بادشاه د حضرت علي رضي الله عنه په خلاف د حضرت معاویه رضي الله عنه مدد کول غوښتل نو حضرت معاویه رضي الله عنه خط ولیکلو او ویې ویل چې ای د روم سپیانو ! که تا په حضرت علي رضي الله عنه باندې حمله وکړه نو ستا په خلاف د حضرت علي رضي الله عنه د لښکر اول عسکر به معاویه وي او زه به تا ونیسم په ځنګل کښې د خنزیر د بچیانو په فرورش باندې به دې مقرر کړم، یاد ساته چې علي زما ورور دی ! زمونږ دغه جنګ یو اجتهادي جنګ دی، د دوو وروڼو تنازع ده، خبردار! مینځ ته مه راځه.

واضحه دې وي چې د اصحابي کالنجوم والاحدیث ته عامو علماؤ ضعیف ویلی دی او بعضو قابل قبول ویلی دي.



## باب مناقب ابي بكر رضي الله عنه

## دحضرت ابوبکر رضي الله عنه دمناقبو اوفضائلو بیان

قال الله تعالى: ﴿وَسَيُجَنَّبُهَا الْأَتْقَى الَّذِي يُؤْتِي مَالَهُ يَتَزَكَّىٰ﴾ . (الليل: ۱۷ – ۱۸)

وقال الله تعالى: ﴿مُحَمَّدٌ رَّسُولُ اللَّهِ وَالَّذِينَ مَعَهُ أَشِدَّاءُ عَلَى الْكُفَّارِ رُحَمَاءُ بَيْنَهُمْ﴾ (الفتح: ۲۹)

**نوم او نسب** : د حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه نوم عبدالله دی ، لقب يې صدیق او عتیق دی دواړه لقبونه حضور اکرم صلی الله علیه وسلم ورکړي وو ، د هغه کنیت ابوبکر دی ، په اتم پشت کې يې نسب د حضور اکرم صلی الله علیه وسلم سره یو ځای کیږي ، هغه تیمی دی د حضور صلی الله علیه وسلم نه دوه کاله کشر ؤ همدغه دوه کاله د حضور صلی الله علیه وسلم نه بعد ژوندی وو او د ۶۳ کلونو په عمر کې وفات شو .

د هغه رنګ : سپین او په جسم خوار وو ، په باړخوګانو باندې يې غوښه کمه وه تندی يې راوتلی وو ، زيات بردباره او نرم زړه والا وو ، د ټولو نه زيات د حضور اکرم صلی الله علیه وسلم سره په رفاقت کې پاتې شو ، په ژوند باندې د حضور صلی الله علیه وسلم وزير وو او د وفات نه وروسته د هغه خليفه شو ، د خليفه رسول خطاب هغه ته حاصل شو ، دوه کاله درې مياشتې نهه ورځې يې خلافت وکړو ، سنه ۱۳ ه ۲۲ جمادی الثانی کې د ماښام او ماسخوتن په مينځ کې د دار فنا نه رخصت شو او د خپل محبوب په قدمونو کې تر قيامته آرام فرما شو .

هغه د قريشو د اشرافو نه وو ، د عربو په معاشره کې هرچا ته خوښ وو ، د اهل عربو د انسابو ماهر وو ، د لويې پايې تاجر وو ، نهايت فصيح او بليغ وو ، په زمانه د جاهليت کې يې هيڅکله هم شراب ونه څښل او نه يې کله بت پرستي کړې ، د وړوکوالي نه يې د حضور صلی الله علیه وسلم سره فدايانه محبت وو ، د ټولو نه يې مخکې په حضور صلی الله علیه وسلم باندې ايمان راوړلو او تر آخری ساه پورې يې د مال او جان قرباني ورکړه .

په ټولو غزواتو کې د حضور صلی الله علیه وسلم سره شريک شوی وو او د حضور صلی الله علیه وسلم د وفات نه وروسته يې دا امت سنبال کړلو ، د مرتدينو سرکوبي يې وکړه او د دروغو مدعيان د نبوت يې ختم کړل ، بيا يې د فارس او روم په خلاف په دوو محاذونو باندې د جهاد آغاز وکړو ، په حيات او ممات کې د حضور صلی الله علیه وسلم سره په هر عمل کې مماثلت حاصل کړلو ، يار غار پاتې شوی دی ، په هجرت کې يې د سفر ملګری وو ، حضرت حسان رضي الله عنه فرمايلي :

ثانی اثنين فی الغار المنيف وقد     طاف العدو به اذ صعد الجبلا

وكان حب رسول الله قد علموا     خير البرية لم يعدل به الرجلا

قال الشاعر:

من كان يعلم ان الله خالقه لا يرمين ابابكر ببهتان

فرضي عنه وعنا وعن جميع الصحابة.

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

## د حضرت ابوبكر رضي الله عنه مقام

﴿۱﴾ عَنْ أَبِي سَعِيْدِنِ الْخُدْرِيِّ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِنَّ مِنْ أَمَنِّ النَّاسِ عَلَيَّ فِي صُحْبَتِهِ وَمَالِهِ أَبُو بَكْرٍ وَعِنْدَ الْبُخَارِيِّ أَبَا بَكْرٍ وَلَوْ كُنْتُ مُتَّخِذًا خَلِيْلًا لَاتَّخَذْتُ أَبَا بَكْرٍ خَلِيْلًا وَلٰكِنْ أُخُوَّةُ الْإِسْلَامِ وَمَوَدَّتُهُ لَاتُبْقَيَنَّ فِي الْمَسْجِدِ خَوْخَةٌ إِلَّا خَوْخَةَ أَبِي بَكْرٍ وَفِي رِوَايَةٍ لَوْ كُنْتُ مُتَّخِذًا خَلِيْلًا غَيْرَ رَبِّي لَاتَّخَذْتُ أَبَابَكْرٍ خَلِيْلًا. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

حضرت ابوسعيد خدري رضي الله عنه د نبي كريم صلى الله عليه وسلم نه روايت كوي حضور صلى الله عليه وسلم وفرمائيل انسانانو كې كوم سړی چې ما سره ملګرتيا وكړله او زما په خدمت كې او زما په خوشحالولو كې يې خپل وخت او خپل مال هرڅه يې زيات ولګول هغه ابوبكر رضي الله عنه دی او د بخاري د روايت مطابق ابابكر رضي الله عنه دي كه ما يو څوك خپل خليل يعني ريښتني ځاني دوست جوړول غوښتلی نو يقينًا ابوبكر رضي الله عنه به مي داسي دوست جوړ كړی وو خو اسلامي اخوت او محبت په خپل ځای بلند تر دی مسجد نبوي صلى الله عليه وسلم كې د ابوبكر د كور دكړكۍ يا د روشندان نه علاوه دي بله څه كړكۍ يا روشندان باقي پرې نه ښودل شي او يو روايت كې دا الفاظ دي چې حضور صلى الله عليه وسلم وفرمائيل كه ما د الله نه سوا بل څوك خپل خليل جوړولو نو يقينًا ابوبكر رضي الله عنه به مي خليل جوړ كړی وای. [بخاري مسلم]

**توضیح**: (امن الناس) دا اسم تفضیل صیغه ده یعني زما سره د ټولو نه زیات احسان کونکی شخص ابوبکر رضي الله عنه دی.

(ابابکر) لفظ د ابوبکر چونکې د ان لپاره اسم واقع کیږي نو ځکه منصوب کیدل پکار دي لکه د امام بخاری په روایت کې منصوب راغلی چې د قاعدې مطابق دی، لیکن دلته په مشکوة کې لفظ د ابوبکر مرفوع واقع دی شاید دا د کتابت غلطي وي او که نه نو په دې کې لوی اشکال دی.

(خلیلا) د خلیل د لفظ مبدأ اشتقاق مختلف دی، دا لفظ د خلة یعني دوستی نه هم مشتق دی چې معنی یې داسې قلبی تعلق وي چې د انسان زړه ته سرایت وکړي او د هغه د قلب په ظاهری او باطنی احساساتو او خیالاتو باندې قابض شي، د خلة دغه معنی د الله تعالی نه علاوه د کوم بل چا لپاره مناسب نه ده، په دغه وجه حضور صلی الله علیه وسلم ابوبکر صدیق رضي الله عنه نه ددې نفی وفرمایله هو! دایې وفرمایله چې اسلامی اخوت، د صدیق سره په درجه کمال موجود دی، کچیرې لفظ د خلیل خلة د خاء په فتحې سره وي او د همدې مادې نه مشتق وي نو دا به د احتیاج او اعتماد په معنی سره وي، مطلب به داشي چې کچیرې ما څوک خپل داسې دوست جوړولو چې هغه ته ما په خپلو حاجتونو او ضرورتونو کې رجوع کوله او په خپلو ټولو مهماتو او تمام معاملاتو کې مې په هغه باندې اعتماد کولو نو هغه به ما ابوبکر ګرځولو لیکن په داسې امورو او معاملاتو او مهماتو کې زما کامله بروسه او اعتماد صرف د یو الله په ذات باندې وي او زما مرجع صرف هغه الله دی په دغه وجه ما په دې معنی سره ابوبکر خلیل جوړنکړو، هو! اسلامی اخوت د هغه سره په درجه د کمال موجود دی. **لا تبقین**: دا د مجهول صیغه ده یعنې هیڅکله دې پاتې نه کړی شي.

**خوخة**: روښندان ته هم ویل کیږي او هغې وړې دروازې ته هم ویل کیږي چې د هغې نه سړی صرف بل طرفته تیر شي، د مسجد نبوی سره د صحابه کرامو کورونه متصل وو، په ابتداء کې صحابه کرامو د مسجد طرفته روښندانونه پریښې وو تر څو د حضور صلی الله علیه وسلم د راتګ پته ولګیږي او د هغه دیدار وشي او که وړه دروازه وي نو په هغې سره رفت او آمد وشي، حضور صلی الله علیه وسلم په مرض وفات کې د داسې ټولو کړکیو د بندولو حکم وکړو صرف د ابوبکر صدیق رضي الله عنه کړکۍ خلاصې پریښودلو اجازت یې ورکړو چې د هغې نشان تر اوسه پورې موجود دی او په مسجد نبوی کې د باب السلام سره باب رحمت دی د هغه د پاسه د دیوال په اوږدو لیکلي (هذه خوخة ابی بکر) په دې ارشاد عالی سره د صدیق اکبر رضي الله عنه د شان اظهار هم مقصود وو او دا اشاره هم وه چې حضرت ابوبکر رضي الله عنه به د حضور اکرم صلی الله علیه وسلم نه وروسته خلیفه هم وي.

**سوال**: اوس دلته یو سوال راپورته کیږی چې د حضرت سعد بن ابی وقاص په حواله سره یو روایت

نسائي او مسند احمد نقل کړې دي چې د هغه مفهوم دا دی چې حضور صلى الله عليه وسلم د ټولو صحابو روشن دانونه او کړکيانې بندې کړلې چې د مسجد نبوی طرفته وې صرف د حضرت علی رضي الله عنه کړکۍ يې پرېښودہ ، همدا رنګه يو روايت د حضرت ابن عباس رضي الله عنه او حضرت ابن عمر رضي الله عنه نه هم مسند احمد او نسائي نقل کړې د کثرت طرق په وجه حديث صحيح هم دی لهذا په زير بحث حديث او د نسائي او احمد په حديث کې تعارض راغی چې آيا دا خصوصی حکم د صديق لپاره وو او که د حضرت علی رضي الله عنه لپاره وو ؟

**جواب** : علامه ابن حجر عسقلانی رحمه الله په دې باندې طويل کلام فرمايلی دی او د دواړو حديثونو صحيح تسليمولو نه بعد يې دا جواب ورکړی دی چې د دې دواړو روايتونو زمانه جدا جدا ده ، د حضرت علی رضي الله عنه په باره کې چې کوم حديث دی هغه بلکل د ابتدائی دور خبره وه چې کله حضرت حمزه رضي الله عنه ژوندی وو ،حضرت حمزه رضي الله عنه د حضور اکرم صلى الله عليه وسلم ته ګيله هم وکړه چې تاسو کاکا ته اجازت ورنکړه او د تره ځوی ته مو اجازت ورکړو ، حضور اکرم صلى الله عليه وسلم وفرمايل چې ما هر څه د الله تعالی په حکم سره کړي ، د دينه بعد حضور صلى الله عليه وسلم په مرض وفات کې د انتقال نه درې ورځې مخکې بيا حکم صادر کړلو او د صديق اکبر رضي الله عنه نه علاوه يې هيچا ته مسجد طرف ته د کړکۍ پرېښودلو اجازت ورنکړو لهذا دا خصوصيت صرف د حضرت ابوبکر رضي الله عنه لپاره دی چې په دې کې خلافت طرفته اشاره ده ، په مظاهر حق کې تفصيل موجود دی .

## حضرت ابوبکر رضي الله عنه افضل د صحابو رضي الله عنهم وو

| |
|---|
| ﴿۲﴾ وَ عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ |
| او حضرت عبدالله ابن مسعود رضي الله عنه د نبي کريم صلى الله عليه وسلم نه روايت کوي چې حضور صلى الله عليه وسلم وفرمائيل که |
| لَوْ كُنْتُ مُتَّخِذًا خَلِيْلًا لَاتَّخَذْتُ أَبَا بَكْرٍ خَلِيْلًا وَّلٰكِنَّهُ أَخِيْ |
| ماځوک خليل جوړولای نو ابوبکر به مي خپل خليل جوړ کړی وی ليکن هغه زما ورور دی او زما |
| وَصَاحِبِيْ وَقَدِ اتَّخَذَ اللهُ صَاحِبَكُمْ خَلِيْلًا. رَوَاهُ مُسْلِمٌ. |
| رفيق او ملګری دی او حقيقت دا دی چې ستاسو صاحب يعني زه الله خپل خليل جوړ کړی يم [مسلم] |

**توضيح** : (لکنه اخی) د مسند احمد په يو روايت کې دي : **لکنه اخی فی الدين و صاحبی فی الغار**. د حضرت ابن عباس رضي الله عنه يو روايت په مسند ابويعلی کې داسې منقول دی : **ابوبکر صاحبی** د

مؤنسي فى الغار سدوا كل خوخة فى المسجد غير خوخة ابي بكر. (مسند ابويعلى)

## د حضرت ابوبکر رضي الله عنه په حق کې د خلافت وصیت

| |
|---|
| ﴿۲﴾ وَ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ قَالَ لِيْ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ مَرَضِهٖ |
| اوام المؤمنین بي بي عائشه رضي الله عنها وايي چې رسول کریم صلی الله علیه وسلم خپل مرض وفات کې يوه ورځ ماته |
| اُدْعِيْ لِيْ اَبَابَكْرٍ اَبَاكِ، وَاَخَاكِ، حَتّٰى اَكْتُبَ كِتَابًا |
| وفرمائیل خپل پلار ابوبکر او خپل ورور عبدالرحمٰن ماته راوغواړه چې زه یو تحریر ولیکم. دراصل |
| فَاِنِّيْ اَخَافُ اَنْ يَّتَمَنّٰى مُتَمَنٍّ |
| ماته اندیښنه ده که ماد ابوبکر د خلافت باره کې ونه لیکل) نو چیرته د خلافت څوک ارزومند ارزو |
| وَيَقُوْلَ قَائِلٌ: اَنَا، وَلَا، وَيَاْبَى اللهُ وَالْمُؤْمِنُوْنَ |
| ونه کړي او څوک ویونکی دا ونه وایي چې د خلافت مستحق زه یم او د ابوبکرنه علاوه د بل چا |
| اِلَّا اَبَا بَكْرٍ. رَوَاهُ مُسْلِمٌ وَفِيْ كِتَابِ الْحُمَيْدِيِّ |
| خلافت به نه الله وغواړي اونه څوک اهل ایمان به یي تسلیم کړي [مسلم] اوکتاب حمیدي کې |
| اَنَا اَوْلٰى بَدَلَ اَنَا وَلَا. |
| د اَنَا وَلَا په ځاي اَنَا اَوْلٰى د خلافت د ټولو نه لوی مستحق زه یم الفاظ دی. |

**توضیح**: (انا و لا) یعنې خپل پلار او ورور راوغواړه تر څو زه یو تحریر ولیکم چې بیا زما د وفات نه بعد د ابوبکر رضي الله عنه په مقابله کې د خلافت کوم دعوه داره دا دعوه ونکړي چې زه د خلافت لپاره زیات حقدار یم ، شاید حضور صلی الله علیه وسلم دا اراده فرمایلې وي مګر بیا یې معامله الله تعالی او مسلمانانو ته پریښوده ، ددې حدیث نه معلومه شوه چې په واقعه د قرطاس کې هم د حضور صلی الله علیه وسلم مقصد د حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه د خلافت تحریر لیکلو وه بیا د هغه اراده بدله شوه ، دا حدیث نص صریح دی چې خلافت بلافصل حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه ته حاصل شوی وو ، په دې باندې د صحابو اجماع هم راغلې وه او تر دوو کلونو پورې حضرت ابوبکر رضي الله عنه خلافت هم وکړو او حضرت علی رضي الله عنه د هغه په لاس باندې بیعت هم وکړو ، د هغه پسې

يې لمونځونه هم وکړل، هغه يې د خليفه په نوم سره تسليم هم کړلو او په دغه نوم سره يې هغه بللو هم او د خپل خلافت دعوه يې هم ونکړله، اظهار يې هم ونکړو، د هغه نه د کوم خفيه وصيت پوښتنه هم وشوه نو هغه وفرمايل ماته هيڅ وصيت شوی نه دی، د دينه وروسته هم که شيعه ګان شور کوي چې خلافت د حضرت علی رضي الله عنه حق وو او هغه وصی جوړ شوی وو، هغه خليفه بلا فصل وو نو دا د دغو حضراتو بی عقلی ده، په ظاهره خو د حضرت علي رضي الله عنه سره هيڅ هم نه وو که په باطن کې څه وو نو شيعه دي هغه وښائي، هسې د کافر جوړيدلو څه ضرورت دی چې د صحابو د اجماع نه انکار کوي او د دغو احاديثو تکذيب کوي.

ولا: دا يو لغت دی چې د اولی په معنی سره دی يعنې زه زيات مستحق يم، لکه د حميدی په کتاب کې د انا اولی صريح الفاظ هم راغلي دي.

## دحضرت صديق اکبر رضي الله عنه خلاف طرف ته واضحه اشاره

﴿۴﴾ وَعَنْ جُبَيْرِ بْنِ مُطْعِمٍ قَالَ أَتَتِ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ امْرَأَةٌ

او حضرت جبير ابن مطعم وايي يوه ورځ دنبي کريم صلی الله عليه وسلم په خدمت کې يوه ښځه حاضره شوه او څه

فَكَلَّمَتْهُ فِيْ شَيْءٍ فَأَمَرَهَا أَنْ تَرْجِعَ إِلَيْهِ

معامله کې يې دحضور صلی الله عليه وسلم سره خبري وکړي حضور صلی الله عليه وسلم هغې ته حکم وکړو چې څه بل وخت هغه ته

قَالَتْ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ أَرَأَيْتَ إِنْ جِئْتُ وَلَمْ

راشي هغه ښځي عرض وکړو يا رسول الله ځکه که روسته زه راشم او تاسو پيدا نکړم نو بيا به څرنګه

أَجِدْكَ كَأَنَّهَا تُرِيْدُ الْمَوْتَ قَالَ فَإِنْ لَمْ

خبره جوړيږي راوي دي ويلو نه دهغه ښځي مقصد د حضور صلی الله عليه وسلم وا يو فات طرف ته اشاره کول وو

تَجِدِيْنِيْ فَأْتِيْ أَبَا بَكْرٍ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

حضور صلی الله عليه وسلم هغې ته وفرمائيل که ته ما پيدا نه کړې نو بيا ابوبکر ته ورشه. [بخاري، مسلم]

**توضيح: فأتي ابابکر:** يعنې زما نه وروسته به ابوبکر رضي الله عنه خليفه وي، مسئول به هغه وي ته هغه ته لاړه شه، تا ته به ستا حق ملاؤ شي، دا روايت ګويا صريحی نص دی چې د حضور صلی الله عليه وسلم نه وروسته به د هغه جانشين حضرت ابوبکر رضي الله عنه وي. امام نووی رح فرمايي چې په دې حديث کې د خلافت هيڅ تصريح نشته، هو! دا اخبار بالغيب او د مستقبل پيشنګوئي ده، مګر ملا علی قاری

رَحِمَهُ اللهُ فرمايلي دي چې دا حديث خلافت ته اشاره ده بلکه په يو روايت کې تصريح ده، هغه داسې ده چې يو ځل يوه ښځه راغله او د حضور اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه يې څه وغوښتل، حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ورته ووئيل چې وروسته راشه! هغې ووئيل چې يارسول الله! کچيرې په هغه وخت کې ته نه وې، هغې د به ته اشاره کوله چې ته به وفات شې نو بيا به څه کيږي؟ حضور اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې کچيرې تا زه ژوندی ونه موندلم نو ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته راشه! هغه به زما نه بعد زما خليفه وي.

ملا علی قاری رَحِمَهُ اللهُ يو بل حديث هم دلته ليکلی دی چې د هغه خلاصه داسې ده چې يو کوچې د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په لاس څه اوښان خرڅ کړل او قيمت يې پاتې شو، حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ کوچي ته ووئيل چې لاړ شه د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه پوښتنه وکړه چې که ته موجود نه وې نو دا قرض به څوک اداء کوي؟ حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د بانډه چې په جواب کې ووئيل چې ابوبکر به يې اداء کړي، حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دوباره بانډه چې وليږه چې کچيرې ابوبکر پاتې نه وو نو څوک به قرض اداء کوي؟ ويې فرمايل چې عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته راشه هغه به يې اداء کړي، حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ بيا بانډه چې وليږه چې که عمر نه وو بيا به يې څوک اداء کوي؟ حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته راشه هغه به يې اداء کړي، حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ بيا بانډه چې وليږه چې کچيرې د عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ موت واقع شي بيا به يې څوک اداء کوي؟ حضور اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې کله د ابوبکر و عمر و عثمان موت واقع شي نو بيا ته هم مړ شه ستا څه کار دی؟ دغه روايت اسماعيلی رَحِمَهُ اللهُ په خپل معجم کې نقل کړی دی. (مرقات ج۱۰ ص۳۷۴)

په خلاصة الفتاوی کې يې ليکلي دي: **من انكر خلافة الصديق فهو كافر**. په هر حال د عام امت د علماؤ دا فتوی ده چې د ابوبکر صديق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په خلافت باندې اجماع راغلې ده لهذا د اجماع منکر کافر دی نو صديق د خلافت منکر کافر دی، شيعه خو ددې انکار نه علاوه د نورو په سوونو عقائدو په وجه هم کافر دي مګر هغوی خپلو ځانو نو ته مؤمنان وايې او عامو مسلمانانو ته منافقان وايې.

## خلقو کې د ټولو نه زيات محبت د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره وو

﴿۵﴾ وَعَنْ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

او حضرت عمرو ابن العاص رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی چې رسول کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغه د يو لښکر

بَعَثَهُ عَلَى جَيْشِ ذَاتِ السَّلَاسِلِ قَالَ فَأَتَيْتُهُ

امير قومندان جوړ او لو سره ذات السلاسل ته وليږه هغه بيان کوي چې روستمزه د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خدمت کې حاضر

فَقُلْتُ ۔ أَيُّ النَّاسِ أَحَبُّ إِلَيْكَ قَالَ

شوم نو ما پوښتنه وکړه چې ستا سو د ټولو نه زيات د چا سره محبت دی؟ حضور صلی الله علیه وسلم وفرمائيل د

عَائِشَةُ قُلْتُ مِنَ الرِّجَالِ قَالَ أَبُوهَا

عائشي رضي الله عنها سره ما عرض وکړو زما سوال د سړو باره کې وو حضور صلی الله علیه وسلم وفرمائيل د عائشي پلار

قُلْتُ ثُمَّ مَنْ؟ قَالَ عُمَرُ فَعَدَّ

ما پوښتنه وکړه هغوی نه روسته حضور صلی الله علیه وسلم وفرمائيل عمر دي نه روسته زما د پوښتني مطابق

رِجَالًا فَسَكَتُّ مَخَافَةَ أَنْ يَجْعَلَنِي

حضور صلی الله علیه وسلم د متعددو خلقو ذکر وکړو او بيا د دې خوف نه خاموش شوم چې چيرته زما نوم د ټولو

فِي آخِرِهِمْ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

نه آخر کې را نشي. [بخاري مسلم]

**توضيح**: حضرت عمرو بن العاص رضي الله عنه حضور صلی الله علیه وسلم په غزوه ذات السلاسل کې د لښکر امير کړځولی وو، په واپسۍ کې هغه په طبقه د صحابو کې خپل مقام معلوم ول غوښتل نو د حضور صلی الله علیه وسلم نه يې داسې سوال وکړو لکه څنګه چې پدې حديث کې دي، چې کله هغه ته داسې جواب ملاؤ شو نو دا چپ شو.

## د ابوبکر صديق رضي الله عنه د افضليت شهادت د حضرت علي رضي الله عنه د ژبې نه

﴿۶﴾ وَعَنْ مُحَمَّدِ بْنِ الْحَنَفِيَّةِ قَالَ قُلْتُ لِأَبِي أَيُّ

او حضرت محمد ابن حنفيه د خپل والد ماجد حضرت علي رضي الله عنه نه پوښتنه وکړه چې نبي کريم صلی الله علیه وسلم نه

النَّاسِ خَيْرٌ بَعْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

روسته کوم سړی د ټولو نه بهتر او افضل دی نو هغوی وفرمائيل حضرت ابوبکر رضي الله عنه بيا ترې ما

قَالَ أَبُو بَكْرٍ قُلْتُ ثُمَّ مَنْ؟ قَالَ

پوښتنه وکړه چې حضرت ابوبکر رضي الله عنه نه روسته څوک د ټولو نه بهتر او افضل دی وي فرمائيل

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| عُمَرُ | وَخَشِيْتُ | اَنْ | يَقُوْلَ | عُثْمَانُ |

حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ ! ما سره خدشه شوه که ما پوښتنه وکړه د چيرته هغوی دا ونه وايي چې حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنهُ

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| قُلْتُ | ثُمَّ | أَنْتَ | قَالَ | مَا | أَنَا | إِلَّا | رَجُلٌ |

نو ما داسي وويل چې بيا د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ نه روسته د ټولو نه بهتر او افضل تاسو يې هغوی دي

| | | | |
|---|---|---|---|
| مِّنَ | الْمُسْلِمِيْنَ. | رَوَاهُ | الْبُخَارِيُّ. |

خبري او ريد و سره و فرمائيل زه خو بس د مسلمانو يو فرديم [بخاري]

**توضيح** : د صديق اکبر رَضِيَ اللهُ عَنهُ د فضيلت اعتراف په خپله حضرت علی رَضِيَ اللهُ عَنهُ کوي ، د دينه وروسته د شيعو د پښو برقراره پاتې کيدو هيڅ موقع نشته ، حضرت علی رَضِيَ اللهُ عَنهُ دا هم وفرمايل چې کله رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حضرت ابوبکر صديق رَضِيَ اللهُ عَنهُ زمونږ د دين امام وګرځولو نو اوس زمونږ د دنيا امام هم دی .

## صحابو رَضِيَ اللهُ عَنهُم د صديق د افضليت اقرار کړی وو .

| | | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۷﴾ | وَعَنِ | ابْنِ | عُمَرَ | قَالَ | كُنَّا | فِيْ | زَمَنِ | النَّبِيِّ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |

او حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ وايي مونږ د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زمانه کې صحابو رَضِيَ اللهُ عَنهُم کې هيڅوک د

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| لَانَعْدِلُ | بِأَبِيْ | بَكْرٍ | أَحَدًا | ثُمَّ | عُمَرُ | ثُمَّ |

حضرت ابوبکر برابر نه ګڼلو د هغوی نه روسته د حضرت عمر برابر مو هيڅوک نه ګڼلو او هغوی نه روسته

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| عُثْمَانُ | ثُمَّ | نَتْرُكُ | أَصْحَابَ | النَّبِيِّ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ |

د حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنهُ برابر مو هيڅوک نه ګڼلو او بيا د حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنهُ نه روسته د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| لَانُفَاضِلُ | بَيْنَهُمْ. | رَوَاهُ | الْبُخَارِيُّ | وَفِيْ | رِوَايَةٍ |

صحابه رَضِيَ اللهُ عَنهُم به مو په خپل حال پريښودل چې د هغوی منځ کې چاته په چا مو فضيلت نه ورکولو [بخاري] او د

| | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| لِأَبِيْ | دَاوُدَ | قَالَ | كُنَّا | نَقُوْلُ | وَ | رَسُوْلُ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |

ابوداؤد په روايت کې داسي دي چې حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ وويل مونږ د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حيات مبارک

| حَيٌّ أَفْضَلُ أُمَّةِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعْدَهُ |
|---|
| کې ويل چې دنبي کريم صلی الله عليه وسلم امت کې د حضور صلی الله عليه وسلم نه روسته دټولو نه افضل |
| أَبُوْ بَكْرٍ ثُمَّ عُمَرُ ثُمَّ عُثْمَانُ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ . |
| حضرت ابوبکر رضي الله عنه دی بيا عمر رضي الله عنه او بيا حضرت عثمان رضي الله عنه . |

# الفصل الثاني

## پيغمبر عليه السلام د صديق احسان دټولو نه زيات ښودلی دی

| ﴿۸﴾ وَعَنْ أَنَسٍ عَن أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
|---|
| حضرت ابوهريره رضي الله عنه وايي چې رسول کريم صلی الله عليه وسلم وفرمائيل داسي هيڅ سړی نشته چې هغه مونږ ته څه |
| مَا لِأَحَدٍ عِنْدَنَا يَدٌ إِلَّا وَقَدْ كَافَيْنَاهُ مَا خَلَا أَبَا بَكْرٍ فَإِنَّ |
| راکړي وي يا زمونږ امداد يي کړی وي او مونږ د هغه بدله نه وي ورکړي علاوه د ابوبکر نه دا حقيقت |
| لَهُ عِنْدَنَا يَدًا يُكَافِيْهِ اللهُ بِهَا يَوْمَ الْقِيَامَةِ |
| دی چې ابوبکر رضي الله عنه زمونږ سره د عطا کوم عظيم الشان سلوک کړی دی د هغه بدله به د قيامت په |
| وَمَا نَفَعَنِيْ مَالُ أَحَدٍ قَطُّ مَا نَفَعَنِيْ مَالُ |
| ورځ الله تعالی هغوی ته عطا کوي د هيڅ سړي مال ماته دومره فائده نه ده رسولي څومره چې د |
| أَبِيْ بَكْرٍ وَلَوْ كُنْتُ مُتَّخِذًا خَلِيْلًا لَاتَّخَذْتُ أَبَا بَكْرٍ |
| ابوبکر مال راته رسولي ده که ما څوک خپل خليل يعني خالص دوست جوړولای نو يقيناً ابوبکر رضي الله عنه |
| خَلِيْلًا أَلَا وَإِنَّ صَاحِبَكُمْ خَلِيْلُ اللهِ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ |
| به مي خليل جوړ کړی وای ياد لرئ ستاسو صاحب د الله حقيقي دوست دي [ترمذي] |

## د حضرت عمر رضي الله عنه اعتراف

﴿۹﴾ وَعَنْ عُمَرَ قَالَ: اَبُوْبَكْرٍ سَيِّدُنَا وَخَيْرُنَا

او حضرت عمر فاروق رضي الله عنه نه روایت دی هغوی وفرمائیل حضرت ابوبکر رضي الله عنه زمونږ سردار دی د

وَاَحَبُّنَا اِلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

زمونږ ټولو نه افضل دی او رسول کریم صلی الله علیه وسلم ته د ټولو نه زیات خوښ دی [ترمذي]

## د صدیق رضي الله عنه یو اعزاز

﴿۱۰﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا «عَنْ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لِاَبِيْ بَكْرٍ

او حضرت ابن عمر رضي الله عنه نه روایت دی چې رسول کریم صلی الله علیه وسلم حضرت ابوبکر رضي الله عنه ته داسي وفرمائیل

اَنْتَ صَاحِبِيْ فِي الْغَارِ وَصَاحِبِيْ عَلَى الْحَوْضِ . رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

ته زما یارِ غار یعني د غار رفیق او ملګری یې او حوض کوثر باندي یې به زما مصاحب یې [ترمذي]

## ابوبکر صدیق رضي الله عنه د امت امام دی

﴿۱۱﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَايَنْبَغِيْ لِقَوْمٍ فِيْهِمْ اَبُوْ بَكْرٍ

او بي بي عائشه وایي چې رسول کریم صلی الله علیه وسلم وفرمائیل کوم قوم او جماعت کې ابوبکر موجود وي

اَنْ يَّؤُمَّهُمْ غَيْرُهُ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ

هغوی د پاره موزون نه دی چې د هغوی امامت د ابوبکر نه علاوه بل سړی وکړي دا روایت ترمذي

وَقَالَ هٰذَا حَدِيْثٌ غَرِيْبٌ.

نقل کړی دی او ویلي یې دي چې دا حدیث غریب دی .

## د حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه نه بل څوک نشي اوچتیدلی

﴿۱۲﴾ وَعَنْ عُمَرَ قَالَ اَمَرَنَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنْ نَّتَصَدَّقَ

او حضرت عمر فاروق رضي الله عنه بیان کوي نبي صلی الله علیه وسلم د صدقې کولو مونږ ته حکم وکړو او د نبي صلی الله علیه وسلم

| اَلْيَوْمَ | فَقُلْتُ | مَالًا | عِنْدِيْ | ذٰلِكَ | وَوَافَقَ |
|---|---|---|---|---|---|

داحكم د مال د اعتبار نه زما موافق پريوته نو ماخپل زړه كې و ويل كه زه په څه ورځ د ابوبكر نه

| قَالَ | يَوْمًا | سَبَقْتُهُ | إِنْ | بَكْرٍ | أَبَا | أَسْبِقُ |
|---|---|---|---|---|---|---|

مخكې شم نو هغه نن ورځ ده چې دې معامله كې به هغوى روسته پريږدم حضرت عمر رضي الله عنه وايي

| وَسَلَّمَ | عَلَيْهِ | اللهُ | صَلَّى | اللهِ | رَسُوْلُ | فَقَالَ | مَالِيْ | بِنِصْفِ | فَجِئْتُ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|

ماخپل نيم مال راوړلو سره د نبى صلى الله عليه وسلم خدمت كې پيش كړلو نبى صلى الله عليه وسلم زما نه پوښتنه وكړه

| مِثْلَهُ | فَقُلْتُ | لِأَهْلِكَ | أَبْقَيْتَ | مَا |
|---|---|---|---|---|

په كوركي دې څه پريښې دي ؟ ماوويل ددې په اندازه مي كور والو دپاره پريښي دي دي نه

| عِنْدَهُ | مَا | بِكُلِّ | أَبُوْبَكْرٍ | وَأَتٰى |
|---|---|---|---|---|

روسته حضرت ابوبكر رضي الله عنه راغى او هغوى سره چې څه وو هغه ټول يې راوړو د حضور صلى الله عليه وسلم خدمت

| فَقَالَ | لِأَهْلِكَ | أَبْقَيْتَ | مَا | بَكْرٍ | أَبَا | يَا | فَقَالَ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|

كې پيش كړل حضور صلى الله عليه وسلم تري پوښتنه وكړه كور والو دپاره دي څه پريښي دي حضرت ابوبكر رضي الله عنه

| قُلْتُ | وَرَسُوْلَهُ | اللهَ | لَهُمْ | أَبْقَيْتُ |
|---|---|---|---|---|

عرض وكړو هغوى دپاره مي الله او د هغه رسول پريښي دي حضرت عمر رضي الله عنه وايي ما په خپل زړه

لَا أَسْبِقُهُ إِلٰى شَيْءٍ أَبَدًا. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُوْ دَاوُدَ.

كې وويل په ابوبكر رضي الله عنه زه هيڅ كله فضيلت نشم وړلى . [ترمذي ابوداؤد]

## صديق رضي الله عنه ته د نجات پروانه ملاو شوې ده

﴿۱۳﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ أَنَّ أَبَا بَكْرٍ دَخَلَ عَلٰى رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

اوبي بي عائشي رضي الله عنها نه روايت دى يوه ورځ حضرت ابوبكر رضي الله عنه د رسول كريم صلى الله عليه وسلم په خدمت كې

فَقَالَ أَنْتَ عَتِيْقُ اللّٰهِ مِنَ النَّارِ فَيَوْمَئِذٍ

حاضر شو نو حضور صلی الله علیه وسلم هغوی ته وفرمائیل ته د دوزخ د عذاب نه دالله تعالی ازاد کړه یې نو دهغه

سُمِّيَ عَتِيْقًا. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

ورځې نه دهغوی نوم عتیق وګرځول شو. [ترمذي]

## حضور صلی الله علیه وسلم نه روسته به حضرت ابوبکر رضي الله عنه د ټولو نه مخکې دقبر نه پورته کیږي

﴿۱۴﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَا أَوَّلُ

او حضرت ابن عمر رضي الله عنه وايي چې رسول کريم صلی الله علیه وسلم وفرمائیل دي خلقو کې به د ټولو نه اولنی سړی زه

مَنْ تَنْشَقُّ عَنْهُ الْأَرْضُ ثُمَّ أَبُوْبَكْرٍ ثُمَّ

يم چې د ځمکې نه به راپورته کيږم زما نه روسته به ابوبکر رضي الله عنه اوهغوی نه روسته به

عُمَرُ ثُمَّ آتِيْ أَهْلَ الْبَقِيْعِ فَيُحْشَرُوْنَ

حضرت عمر رضي الله عنه د خپلو خپلو قبرونو نه راپورته کیږي بیا به زه د بقیع قبرستان د دفن شوو ته راشم اوهغوی

مَعِيَ ثُمَّ أَنْتَظِرُ أَهْلَ مَكَّةَ حَتّٰى أُحْشَرَ

به د خپلو قبرونو نه راپورته کولو سره به ما سره جمع شي او بیا به زه د اهل مکه انتظار کوم تر دي پورې

بَيْنَ الْحَرَمَيْنِ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

چې زه به د حرمینو یعني د اهل مکه او اهل مدینه په منځ کې میدان حشر ته ورسول شم [ترمذي]

## دپیغمبر صلی الله علیه وسلم نه وروسته به د ټولو نه مخکې ابوبکر رضي الله عنه جنت ته داخليږي

﴿۱۵﴾ وَعَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَتَانِيْ جِبْرَئِيْلُ

او حضرت ابو هریره رضي الله عنه وايي یوه ورځ رسول کريم صلی الله علیه وسلم وفرمائیل جبرائیل علیه السلام ماته راغی

فَأَخَذَ بِيَدِيْ فَأَرَانِيْ بَابَ الْجَنَّةِ الَّذِيْ

اوزما لاس یې په خپل لاس کې اونیولو او بیا ماته یې د جنت هغه دروازه وښودله چې په هغه به زما د

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| يَدْخُلُ | مِنْهُ | أُمَّتِيْ | فَقَالَ | أَبُوْبَكْرٍ | يَا | رَسُوْلَ | اللهِ |

اُمت خلق جنت کې داخلیږي حضرت ابوبکر رضي الله عنه ارشاد اوریدو سره عرض وکړو یارسول الله صلی الله علیه وسلم

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وَدِدْتُّ | أَنِّيْ | كُنْتُ | مَعَكَ | حَتّٰى | أَنْظُرَ | إِلَيْهِ |

زما زړه کې د حسرت نه ډک دا خواهش ګرځي چې کاش هغه وقت زه ستا سو سره وای نو زما به

| | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فَقَالَ | رَسُوْلُ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ | أَمَا | إِنَّكَ | يَا | أَبَا بَكْرٍ |

هم د جنت دروازه لیدل نصیب شوې وی حضور صلی الله علیه وسلم ورته وفرمائیل ای ابوبکر خبر شه چې زما په

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| أَوَّلَ | مَنْ | يَدْخُلُ | الْجَنَّةَ | مِنْ | أُمَّتِيْ. | رَوَاهُ | أَبُوْ | دَاوُدَ. |

اُمت کې کوم خلق جنت کې داخلیږي هغوی کې به د ټولو نه اولنی سړی ته یې [ابوداؤد]

## دحضرت ابوبکر رضي الله عنه دوه عملونه چې دنور ژوند په ټولو اعمالو باندي درانه دي؟

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۱۶﴾ وَ | عَنْ | عُمَرَ | ذُكِرَ | عِنْدَهُ | أَبُوْ | بَكْرٍ |

سیدنا عمر رضي الله عنه نه روایت دي یوه ورځ دهغوی مخکې د حضرت ابوبکر رضي الله عنه ذکر وشو نو هغه

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| فَبَكٰى | وَقَالَ | وَدِدْتُّ | أَنَّ | عَمَلِيْ | كُلَّهُ | مِثْلُ |

په ژړا شو بیا یې وویل زما ارزو ده چې کاش زما د پوره ژوند اعمال د حضرت ابوبکر رضي الله عنه صرف د

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| عَمَلِهٖ | يَوْمًا | وَّاحِدًا | مِّنْ | أَيَّامِهٖ |

هغه ورځي د عمل برابروي چې د حضور صلی الله علیه وسلم د زمانه حیات دورځو نه یوه ورځ ده یا د هغوی د هغه

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَلَيْلَةً | وَّاحِدَةً | مِّنْ | لَيَالِيْهِ | أَمَّا لَيْلَتُهٗ |

یوې شپې چې د حضور صلی الله علیه وسلم د زمانه حیات د شپو نه یوه شپه وه نو دا د هغه شپې ذکر دی چې په هغې

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فَلَيْلَةً | سَارَ | مَعَ | رَسُوْلِ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |

کې هغوی رسول کریم صلی الله علیه وسلم سره سفر هجرت باندې روان شو او غار ثور دهغوی اولنی منزل جوړ

إِلَى الْغَارِ فَلَمَّا انْتَهَيَا إِلَيْهِ قَالَ وَاللهِ

شوی وو هر کله چې نبی ﷺ ابوبکر رضي الله عنه غار ته ورسیدل او نبی ﷺ غار کې داخلیدل وغوښتل

لَا تَدْخُلُهُ حَتَّى أَدْخُلَ قَبْلَكَ

حضرت ابوبکر رضي الله عنه ورته وویل قسم په الله تا سو به غار کې نه داخلیږئ تر دې پورې چې مخکې

فَإِنْ كَانَ فِيهِ شَيْءٌ أَصَابَنِي دُونَكَ

زه دننه ورشم که دې کې څه موذي شی وي نو ما ته به ضرر ورسوي نه تاسو ته او دې ویلو سره

فَدَخَلَ فَكَسَحَهُ وَوَجَدَ فِي جَانِبِهِ

حضرت ابوبکر رضي الله عنه مخکې غار کې داخل شو او هغه یې څنډلو سره صافا کړو هغوی د غار یو کونج

ثُقُبًا فَشَقَّ إِزَارَهُ وَسَدَّهَا بِهِ وَبَقِيَ

کې څو سوري هم لیدلی وو هغه کې زیات سوري یې په خپل تهبند شلولو سره بند کړل او دوه

مِنْهَا اثْنَانِ فَأَلْقَمَهُمَا رِجْلَيْهِ

سوري په دې وجه باقي پاتې شوې وو شوې د هغو خولو کې د خپلو دواړو پښو پوندی کیښو

ثُمَّ قَالَ لِرَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

دلې چې د څه زهریلا او موذي څناور د راوتلو څه لار باقي پاتې نشي بیا هغوی رسول کریم ﷺ

اُدْخُلْ فَدَخَلَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

ته عرض وکړو چې اوس دننه تشریف راوړئ نو نبي کریم ﷺ غار کې داخل شو او خپل

وَوَضَعَ رَأْسَهُ فِي حِجْرِهِ وَنَامَ فَلُدِغَ

سر مبارک یې د حضرت ابوبکر رضي الله عنه په غیږ کې ایخودو سره اوده شو دې دوران کې د غار دننه نه مار

أَبُوبَكْرٍ فِي رِجْلِهِ مِنَ الْجُحْرِ وَلَمْ يَتَحَرَّكْ

حضرت ابوبکر رضي الله عنه په پښه وچیچې لیکن هغوی د غه شان ناست وو او د دې ویرې نه خپل ځای نه یې

مَخَافَةَ أَنْ يَنْتَبِهَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

حركت هم ونه كړو چې چيرته حضور صلى الله عليه وسلم راويښ نشي آخر شدت تكليف نه د هغوى د سترګو نه

فَسَقَطَتْ دُمُوْعُهُ عَلَى وَجْهِ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

بي اختياره اوښكي ووتلي چې د رسول چې د هغوى سترګو كې اوښكې وليدي نو پوښتنه يې وكړه

فَقَالَ مَالَكَ يَا أَبَا بَكْرٍ قَالَ لُدِغْتُ فِدَاكَ أَبِيْ وَأُمِّيْ

ابوبكر په تا څه شوي دي؟ هغوى عرض وكړو زما مور او پلار دې په تا سو قربان وي څه زهريلا

فَتَفَلَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

شي چيچلى يم او ريدو سره د خپلي خولي لاړي مباركي د هغوى په پښه ولګولي نو كوم تكليف

فَذَهَبَ مَا يَجِدُهُ ثُمَّ انْتَقَضَ عَلَيْهِ وَكَانَ

چې هغوى ته محسوسيده هم سمدستي دفع شو د هغه مار هغه زهر وو چې په حضرت ابوبكر رضي الله عنه

سَبَبَ مَوْتِهِ وَأَمَّا يَوْمُهُ فَلَمَّا قُبِضَ

دوباره اثر انداز شو او د هغه په سبب د هغوى مرګ واقع شو او د هغوى هغه ورځ وه چې رسول الله صلى الله عليه وسلم

رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ارْتَدَّتِ الْعَرَبُ وَقَالُوْا

د دې دنيا نه رحلت وفرمايلو او بعضي عرب قبائل مرتد شوې وو او د هغه قبائلو خلقو ويلي وو چې

لَا نُؤَدِّيْ زَكَاةً فَقَالَ لَوْ مَنَعُوْنِيْ عِقَالًا

مونږ زكاة نه ادا كوو په دې موقع د حضرت ابوبكر رضي الله عنه وينا وكړه كه دا خلق زكاة كې د اوښ د پښې

لَجَاهَدْتُهُمْ عَلَيْهِ فَقُلْتُ

تړلو په قدر رسۍ راكولو نه هم انكار كوي نو يقينًا زه به ورسره جهاد كوم ما ورته عرض كړى وو

يَا خَلِيْفَةَ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَأَلَّفِ النَّاسَ

اى خليفه د رسول الله صلى الله عليه وسلم دا ډيره نازكه موقع ده تا سو ته د خلقو سره محبت او نرم سلوك كول پكار

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وَأَرْفُقْ | بِهِمْ | فَقَالَ | لِيْ | أَجَبَّارٌ | فِيْ | الْجَاهِلِيَّةِ |

دي حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ماته جواب راکړو ایاته په زمانه جاهلیت کې غیور اوبهادر اوقوي او غسه

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وَخَوَّارٌ | فِيْ | الْإِسْلَامِ | إِنَّهُ | قَدِ | انْقَطَعَ | الْوَحْيُ |

وروي او اوس په زمانه اسلام کې بزدله او پست همته شوې دا حقیقت مه هیروه چې دوحي سلسله

| | | |
|---|---|---|
| وَتَمَّ | الدِّيْنُ | أَيُنْقَصُ |

منقطع شوي ده اودین کامل شوی دی په دې صورت کې چې دین دې کمزوری اوناقص شي داسي

وَ أَنَا حَيٌّ. رَوَاهُ رَزِيْنٌ.

زه ځیل ژوند کې هیڅ کله کونکی نه یم [ارزین]

**توضیح** : (الی الغار) ددې غار نه مراد غار ثور دی چې د مکې مکرمې نه په زیاته فاصله باندې یو مشکل ترین اوچت غر باندې دی ، ما دغه غار لیدلی دی بلکه په دې غر باندې دوه غاره دي : یو د مکې طرفته په غره باندې واقع دی مشهور همدا دی مګر یو غار بل جانب ته په همدې غر باندې واقع دی چې دوو لویو تیږو کې دننه دی او د پاسه نه لاندې کښته کیدل راځي چې هلته دوه کسان په مشکله سره کښیناستلی شي ، په دې غار باندې یوه لویه تیږه بلکل د غوایي په شان ده شاید ددغې وجهې نه ورته غار ثور وایي ، ثور په عربي کې غوایي ته وایي ، د مکې نه د هجرت په شپه حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دغه غار ته راغی تر دریو ورځو پټ ؤ ، زما په خیال دغه دویم غار غار ثور دی ، اولنی مصنوعی تراش شوی معلومیږي .

فکسحه: جارو کولو او صفا کولو ته کسحه ویلی شوی دی ، (ثقباً) سورو ته ثقب ویل شوی دی .

(القمهما) یعنې د پښو ګوتې یې لقمه وګرځولې په دغو دوو سورو کې تر څو سوري بند شي .

(مالک) یعنې ولې ژاړې؟ د سترګو نه اوښکې ولې توییږي ؟ (فتفل) هغه صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د خولې لاړې په چیچل شوي ځای باندې ولګولې . (ثم انتقض) یعنې د زهرو اثر ظاهر شو او حضرت ابوبکر صدیق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د دغو زهرو په وجه وفات شو ، د صدیق اکبر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عجیب شان ته وګوره چې د حضور اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره کامل رفاقت او موافقت دی تر دې چې د موت په کیفیت کې هم موافقت راغی .

**عقالا**: رسی ته عقال ویل کیږي ، په یو روایت کې د عناقا لفظ دی یعنې د وزې بچې که منع کړی شو هم به زه د هغوی سره جهاد کومه . د حضور اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د وفات نه بعد په جزیره عرب کې تقریبا اویا فیصده خلک د اسلام نه واپس شوي وو ، په هغو کې مختلف قسم خلک وو ، یو قسم خو هغه خلک وو چې هغوی دین پرېښودو او کافر کیدلو سره د کافرانو سره یوځای شول ، دویم قسم خلک هغه وو چې هغوی د دروغو مدعیانو د نبوت تابعداري وکړه او مرتد شول ، دریم قسم خلک هغه وو چې هغوی د زکوة د اداء کولو نه انکار وکړو بلکل منکر شول یا صدیق اکبر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته یې ورکول نه غوښتل ، د دغسې قسم خلک و په باره کې د حضرت عمر فاروق رض او حضرت صدیق اکبر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ اختلاف راغی ، حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ و فرمایل چې دغه خلک کلمه وایي ، لمونځ اداء کوي ، دین مني ، صرف زکوة نه ورکوي ، ته نرمي وکړه ، حضرت صدیق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل کوم شخص چې د لمانځه او زکوة په مینځ کې فرق وکړي زه به د هغه خلاف توره اوچتومه او جنګیږم به ، صدیق اکبر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته زورنه ورکړه او د بی زړه کیدلو طعنه یې ورکړه .

**اجبار في الجاهلية**: یعنې د اسلام د قبلولو نه مخکې ته ډیر دلاوره او باهمته وې .

**وخوار**: یعنې اوس د اسلام قبلولو نه بعد ته بزدله او کمزوری او بی همته جوړیږې؟ د وحی سلسله د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په وفات سره منقطع شوې ده ، د دین تکمیل شوی دی ، اوس چې خلک د اسلام یو حکم هم ماتوي او زه ژوندی یم داسې به نه کیږي ، که زما سره څوک نه ځي نو زه به د مرتدینو سره د جنګ کولو لپاره یواځې لاړ شم ، صدیق اکبر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د مرتدینو خلاف غټه کاروائی وکړه او تقریبا د یو کال په موده کې د اسلام دین په جزیره عرب کې بیا هغسې قائم شو لکه څنګه چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ پریخی وو .

حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمایې چې مونږ په ابتداء کې د حضرت ابوبکر صدیق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خبره عجیبه وګڼله لیکن په آخره کې مونږ د همدې رأیې تعریف وکړو . حضرت ابوهریرة رَضِيَ اللهُ عَنْهُ به فرمایل چې د مرتدینو په مقابله کې صدیق اکبر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د انبیاؤ په مقام کې ودریدلی ؤ چې یواځې وو مګر مقابله یې وکړه (قام في الردة مقام الانبياء) . حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا به فرمایل چې د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د وفات نه بعد زما په پلار باندې دومره لوی مصیبتونه راغلل کچیرې هغه په غر باندې راغلي وای نو غر به ریزه ریزه شوی وو ، یو چا ښه ویلي :

من كان يعلم ان الله خالقه — لا يرمين ابا بكر ببهتان

فلو ان السماء دنت لمجد — و مكرمة دنت لهم السماء

# باب مناقب عمر رضي الله عنه

## دحضرت عمر رضي الله عنه دمناقبو اوفضائلو بیان

قال الله تعالی: ﴿ مُحَمَّدٌ رَّسُولُ اللَّهِ وَالَّذِينَ مَعَهُ أَشِدَّاءُ عَلَى الْكُفَّارِ رُحَمَاءُ بَيْنَهُمْ ﴾

حب النبی رسول الله مفترض — و حب اصحابه نور ببرهان
من کان یعلم ان الله خالقه — لایرمین ابابکر ببهتان
ولا اباحفص الفاروق صاحبه — ولا الخلیفة عثمان بن عفان
اما علیٌ فمشهور فضائله — والبیت لایبتنی الا بارکان
فلو ان السماء دنت لمجد — و مکرمة دنت لهم السماء

*خود نہ تھی جو راہ پر اوروں کے ہادی بن گئے — کیا نظر تھی جس نے مردوں کو مسیحا کردیا*

**نوم او نسب**: د هغه مبارک نوم عمر دی ، لقب یې فاروق دی او کنیت یې ابو حفص دی ، لقب او کنیت دواړه د حضور صلی الله علیه وسلم څخه ورته عطاء شوي دي ، په نهم پشت کې د هغه نسب د حضور اکرم صلی الله علیه وسلم سره یوځای کیږي ،په نهم پشت کې د کعب دوه ځامن وو یو مرّه او دویم عدی ، حضور اکرم صلی الله علیه وسلم د مره په اولاد کې دی او حضرت عمر رضي الله عنه د عدی په اولاد کې دی په دغه وجه هغه عدوی دی .

د حضرت عمر رضي الله عنه ولادت د واقعه فیل نه دیارلس کاله وروسته شوی، ۱۳کاله د حضور اکرم صلی الله علیه وسلم څخه کشر وو ، په شپږم هجری نبوی کې مشرف په اسلام وګرځیده ، د ده نه مخکې څلویښت نارینو او یوولس زنانو اسلام قبول کړی وو .

حلیه مبارکه : د هغه رنګ سپین مائل سرخۍ ته وو ، په رخسارونو باندې یې غوښه کمه وه ، قد مبارک یې اوږد وو زیات بهادر او طاقتور وو ، د اسلام نه مخکې لکه څنګه چې یې شدت په کفر کې وو د اسلام نه بعد هماغسې شدت د اسلام لپاره وو، د هغه په اسلام قبلولو سره مسلمانانو ته ډیر قوت حاصل شو ، د نبی مکرم صلی الله علیه وسلم په عهد کې په منصب د وزارت باندې وو ، په عهد صدیقی کې د وزارت سره د قضاء په منصب باندې هم فائز شو ، د صدیق اکبر رضي الله عنه د وفات نه وروسته د مسلمانانو خلیفه شو ، انتخاب یې پخپله صدیق اکبر رضي الله عنه وکړو ، د خلافت په دوران کې چې څومره قدری خدمت او اشاعت ده وکړو کوم بل چا کړی نه دی ، او څومره اندازه فتوحات چې ده ته حاصل شوي وو د هغه لپاره نظیر په اسلام کې نه پیدا کیږي . د شام نه واخله تر مصر پورې او د مصر نه واخله تر دیار بکر پورې او د دیار بکر څخه واخله تر عراق و ایران او فارس پورې د مشرق او مغرب او

جنوب او شمال ټولو علاقو باندې يې د الله تعالى د دين بيرغ ورپاوه.
۱۰۳۶ لوى ښارونه سره د مضافاتو يې فتحه کړي، کومه علاقه چې به د اسلام لاندې راغله فورا به يې حکم وکړو چې په هغې کې دې مسجد جوړ کړى شي، په دغه طريقه هغه څلور زره عام مسجدونه جوړ کړل او نهه سوه جامع مسجدونه يې قائم کړل، په عدل او انصاف کې هغه ضرب المثل وو، د نادارانو، محتاجو، مظلومو او بى کسه خلکو د خبر اخيستلو لپاره به يې د شپې ګشت کولو او په موقع باندې به يې امداد فرمايلو.
په بيت المال کې به يې داسې احتياط کولو چې د هغه نظير په دنيا کې نه ملاويږي. د حضور اکرم ﷺ سره په ټولو غزواتو کې شريک شوى وو، هغه د تکوين د خلکو څخه وو کوموته چې براه راست د الله تعالى له طرفه الهامات کيدل، هغه په کشف او کراماتو کې مشهوره وو، د هغه خلافت د اسلام او مسلمانانو لپاره باعث د برکت او ذريعه د رحمت وو. د حضرت عمر رضي الله عنه موافقات تر ۲۰ پورې دي، لس کاله شپږ مياشتې او پنځه ورځې يې خلافت وکړو او بيا د سهار به مانځه کې د مسجد نبوى په محراب کې د ۲۷ ذى الحجة په سهار د مغيره بن شعبه رضي الله عنه غلام ابولؤلؤه مجوسى ايرانى په هغه باندې حمله وکړه چې د هغې نه زيات سخت زخمى شو، او په اول د محرم الحرام ۲۴ھ کې د ۶۳ کالو په عمر باندې ددې دار فانى نه دار بقاء ته رخصت شو او د حضور ﷺ او حضرت ابوبکر رضي الله عنه په قدمونو کې مدفون شو.

## الفصل الاول

### حضرت عمر رضي الله عنه مُلهَم او محدَّث وو

﴿۱﴾ عَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَقَدْ

حضرت ابوهريره رضي الله عنه وايي چې رسول کريم ﷺ و فرمائيل ستاسو نه مخکې د سابقه امتونو خلقو کې

كَانَ فِيْمَا قَبْلَكُمْ مِنَ الْأُمَمِ مُحَدَّثُوْنَ فَإِنْ يَكُ أَحَدٌ

به محدث وو که زما امت کې څوک سړى محدث وي نو هغه به بس عمر رضي الله عنه وي. [بخاري، مسلم]

فِيْ أُمَّتِيْ فَإِنَّهُ عُمَرُ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

محدث ويل کيږي هغه انسان ته چې څه د خير خبرى متعال پروردګار په ذهن کې الهام په طريقه اچوى

**توضيح**: (محدثون) اى مُلهمون و مکلّمون، محدّث د باب تفعيل نه د اسم مفعول صيغه ده دلته د ملهم په معنى سره دى چې د الهام څخه دى يعنې هغه شخص چې د هغه په زړه کې د الله تعالى له طرفه براه

راست نيکه خبره اچول کيږي بيا هغه شخص د نور ايماني په ذريعه دغه خبره تر نورو پورې رسوي، بعضې حضرات وايي چې محدث هغه شخص ته ويل کيږي چې د هغه ظن او گمان په يوه اختلافي نزاعي مسئله کې هغه جانب اختياروي چې هغه صحيح وي يعنې د هغه رأيه هميشه د حق طرفته ځي او د حق سره پاتې کيږي .بعضې حضراتو ليکلي دي چې د محدّث اطلاق په هغه شخص باندې کيږي چې د هغه سره ملائکې خبري کوي د وحې په طور باندې نه بلکه د خبرو تر حده پورې کلام کوي . په بعضو رواياتو کې د محدثون په ځاى باندې د متکلمون لفظ ددې تأييد کوي، په دغو دريو واړو معناگانو کې چې کومه معنى واخلې حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ د هغه مصداق وو ، د باطن علماء وايي چې حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ د رجال تکوين څخه وو ، مطلب دا چې په تکوينياتو باندې هغه ته لوى لاس رسى حاصل وو يعنې د غيب نظام د افرادو څخه وو لکه څنگه چې حضرت خضر او د هغه د جماعت خلک د رجال تکوين څخه وو .

د حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ په باره کې د حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دا ارشاد چې عمر محدّث دى او زما نه بعد که نبى واى نو عمر به وو همدې رجال تکوين ته اشاره ده ، عملى طور باندې هم عمر فاروق رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ په تکوينياتو کې د عمل دخل مظاهر کړې ده .

د مصر بحيره قلزم ته خط ليکل او په نهاوند کې ساريه کماندړ ته د مسجد نبوى څخه د ياسارية الجبل نعره کول او شل موافقات عمر ظاهريدل او د حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دا فرمايل چې الله تعالى د عمر په ژبه او زړه باندې حق جاري کړى دى او شيطان د عمر څخه تښتي او د صحابو دا عقيده ساتل چې سکينه د حضرت عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ په ژبه باندې کلام کوي دا ټولې اشارې دي چې حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ د رجال تکوين څخه وو او هغه موفّق من الله وو ، د الله تعالى توفيق د هغه سره شامل حال وو چې په هره لمحه کې يې د هغه راهنمائى کوله .

فان يک: ددې کلام نه ظاهرى طور باندې تردد او شک مترشح کيږي مگر ياد ساته! دا کلام په طور د شک سره نه دى بلکه په دې کې د حضرت عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ په باره کې مبالغه او تأکيد دى چې په دې امت کې ملهمين زيات دي مگر عمر فاروق رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ ته په دې کې خصوصي امتياز حاصل دى ، دا کلام په داسې طرز باندې دى لکه يو څوک ووايي چې که په انسانانو کې زما کوم دوست وي نو هغه فلانى دى، په دې سره د نورو نفى مقصود نه وي بلکه د مذکوره شخص اختصاص مقصود وي.

## د حضرت عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ مخې ته شيطان نشي راتلى

| ﴿۲﴾ وَعَنْ سَعْدِ بْنِ اَبِيْ وَقَّاصٍ قَالَ اِسْتَأْذَنَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ |
|---|
| او حضرت او حضرت سعد ابن ابي وقاص رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ بيان کوي يو ورځ حضرت ... خطاب رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ د حجره |

عَلَى رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

نبوي په دروازه ودريدو سره د رسول کريم صلی الله عليه وسلم خدمت کي د حاضريدو اجازت يي طلب کړو هغه وقت

وَعِنْدَهُ نِسْوَةٌ مِّنْ قُرَيْشٍ يُكَلِّمْنَهُ

حضور صلی الله عليه وسلم سره د قريشو ښځي يعني ازواج مطهرات ناستي وې خبري يي کولي دهغوی دخبرو

وَيَسْتَكْثِرْنَهُ عَالِيَةً أَصْوَاتُهُنَّ فَلَمَّا

موضوع هغه خرچې کي د اضافي مطالبه وه او هغوی خبري هم په زور زور سره کولي هر کله چې

اسْتَأْذَنَ عُمَرُ قُمْنَ فَبَادَرْنَ الْحِجَابَ

حضرت عمر رضي الله عنه اجازت طلب کولو سره دننه داخليده نو هغه ښځي پټيدو د پاره حضور صلی الله عليه وسلم نه پاسيدلو

فَدَخَلَ عُمَرُ وَرَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَضْحَكُ

سره دپردي تر شا شوې حضرت عمر رضي الله عنه چې دننه داخل شو نو وي ليدل چې رسول کريم صلی الله عليه وسلم مسکی

فَقَالَ أَضْحَكَ اللهُ سِنَّكَ يَا رَسُوْلَ اللهِ

کيده حضرت عمر رضي الله عنه حضور صلی الله عليه وسلم په مسکا ليدو سره وويل الله دي ستاسو غاښونه هميشه په

فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

خندا لري هغه کومه خبره ده چې تاسو يي په خندا کړی يي؟ حضور صلی الله عليه وسلم ورته وفرمائيل ماته په دي

عَجِبْتُ مِنْ هٰؤُلَاءِ اللَّاتِيْ كُنَّ عِنْدِيْ فَلَمَّا

خبره خندا راغله چې هغه ښځي اول خوما سره ناستي وي شور يي کوه او چې کله ستا اوازيې

سَمِعْنَ صَوْتَكَ ابْتَدَرْنَ الْحِجَابَ

واوريده نود ويرې نه دپردي شاته وتښتيدي حضرت عمر رضي الله عنه چې دا واوريدل نو هغو ښځو مخاطب

وَلَا تَهَبْنَ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ عُمَرُ يَا عَدُوَّاتِ

کولو سره يي وويل ای دخپل ځان دشمنو ښځو دا څرنګه چپه خبره ده چې زما نه خودومره ويريږئ

| | | |
|---|---|---|
| أَنْفُسِهِنَّ | أَتَهَبْنَنِيْ | فَقُلْنَ |
| او د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه يوه ذره هم نه ويېرئ چې ورسره ناستي وئ شور موجوړ کړې وو هغه ښځو | | |
| نَعَمْ | أَنْتَ أَفَظُّ | وَأَغْلَظُ |
| جواب ورکړو هو ستا نه خو ويرېدل پکار دي ځکه چې ته ډېر سخت خويه ډېر سخت ګويه يې | | |

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فَقَالَ | رَسُوْلُ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ | إِيْهٍ | يَاابْنَ | الْخَطَّابِ |
| رسول کريم صلى الله عليه وسلم ورته وفرمائيل ابن خطاب دوي پرېږده بله څه خبره مکوه هغه ښځو چې کوم جواب | | | | | | | | | |

| | | |
|---|---|---|
| وَالَّذِيْ | نَفْسِيْ | بِيَدِهٖ |
| درکړي دی هغه ته د اهميت ورکولو څه ضرورت نشته قسم دی په هغه ذات چې د هغه په لاس کې | | |

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| مَا | لَقِيَكَ | الشَّيْطَانُ | سَالِكًا | فَجًّا | قَطُّ | إِلَّا | سَلَكَ | فَجًّا | غَيْرَ |
| زما ساه ده ته هغه سړی يي که شيطان تا ووينې نو هغه دلار نه اخوا کيدو سره دويمه لار به اختيار | | | | | | | | | |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| فَجِّكَ. | مُتَّفَقٌ | عَلَيْهِ. | وَقَالَ | الْحُمَيْدِيُّ | زَادَ | الْبَرْقَانِيُّ |
| کړې په کومه چې ته ځې [بخاري مسلم] او حميدي ويلي دي چې برقاني د حضرت عمر رضي الله عنه دا الفاظ | | | | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| بَعْدَ | قَوْلِهٖ | يَا | رَسُوْلَ | اللهِ، | مَا أَضْحَكَكَ. |
| هم نقل کړي دي چې يا رسول الله صلى الله عليه وسلم کوم شي تاسو خندولی يې ؟ | | | | | |

**توضيح:** (**عداوات انفسهن**) يعنې د خپلو ځانونو دښمنانې! (**اتهبنني**) يعنې زما څخه ويرېږئ او تښتې پټېږئ او د حضور اکرم صلى الله عليه وسلم څخه خوف نه کوئ او شور کوئ؟ (**انت افظ و اغلظ**) افظ د سخت خُلق او سخت خويه په معنى سره دی. اغلظ دا د سخت ګويه په معنى سره دی يعنې ته سخت خويه هم يې او سخت ګويه هم يې او رسول الله صلى الله عليه وسلم داسې نه دی. اوس سوال دا دی چې دغو ښځو په فظاظت او غلاظت کې د اسم تفضيل صيغه استعماله کړه ددينه معلوميږي چې د رسول الله صلى الله عليه وسلم په خوی او کلام کې هم څه سختي وه حالانکه د قرآن د اعلان مطابق حضور صلى الله عليه وسلم نهايت نرم خويه وو؟ ددې آسانه جواب دا دی چې دلته دا اسم تفضيل صيغه د اصل فعل په معنى سره استعمال شوې ده، د حضور صلى الله عليه وسلم سره ددې تقابل نشته يعنې فظاظت او سختي په تا کې ده په حضور صلى الله عليه وسلم کې نشته. اسم تفضيل په اصل فعل کې استعماليږي لکه **العسل احلى من الخل**.

الصيف احر من الشتاء حالانکه په سرکه کې هيڅ خوږوالی نه وي او دژمي په موسم کې هيڅ گرمی نه وي (ايه) دا لفظ د همزې په کسرې سره دی او ياء ساکنه ده او په هاء باندې د زير په صورت کې تنوين دی. کله په هاء باندې سکون هم وي او دا کلمه ايها هم ويلی شوې ده لکه عبد الله بن زبير رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايلي:

**ايـــهـــا و الالـــه لکه شکاة ظاهر عنک عارها**

ملاعلی قاری رَحِمَهُ اللهُ په مرقات کې ليکلي دي چې ددې کلمې ترجمه دارنګه ده (**حدث حديثا ولاتلتفت الی جوابهن**)، ملا علی قاری رَحِمَهُ اللهُ ددې نه بعد ليکلي دي چې، **وقيل هو اسم فعل يطلب له الزيادة ای استزد علی ما انت عليه من التصلب**، د ملا علی قاری د مخکيني عبارت مطلب دا دی چې حضور اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته وفرمايل چې عمره! ددې ښځو په جواب باندې پروا مه کوه! او مه هغې ته توجه کوه بلکه کومه بله خبره وکړه! د ملا علی قاری رَحِمَهُ اللهُ د دويم عبارت مطلب دا دی چې حضور اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته وويل چې کوم کلام تا دغو ښځو ته وکړو هغه جاري وساته او په هغې باندې اضافه وکړه ځکه ستا شان دومره عاليشان دی چې په کومه لاره باندې ته ځې په هغې لاره باندې شيطان تللی نشي بلکه هغه بله لاره اختياروي. ابوزيد سروجی دغه لفظ د ائت په معنی سره استعمال کړی دی لکه هغه وايي **ايه بلاتمويه ای ائت بلا کذب**. په قاموس الوحيد کې يې د دغه لفظ اسم فعل ګرځولو سره معنی دا ليکلې ده (هو خبرې کوه) ليکن کچيرې دا لفظ ايهًا وي نو دا د کف کف منع کولو لپاره استعماليږي، علامه فرمايي چې په زير بحث حديث کې لفظ د ايهًا کيدل پکار دي چې د بس بس په معنی سره کيږي ای کف يا ابن الخطاب، د علامه توربشتی رَحِمَهُ اللهُ انداز بهتره معلوميږي.

## په جنت کي د عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ محل

﴿٣﴾ وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

او حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ بيان کوي رسول کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمائيل د معراج په شپه کي هر کله چې زه جنت ته

دَخَلْتُ الْجَنَّةَ فَإِذَا أَنَا بِالرُّمَيْصَاءِ امْرَأَةِ

داخل شوم نو اچانک مي وليدل چې رميصاء زوجه د ابو طلحه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ موجود ده بيا ما دقدمونو اواز

أَبِي طَلْحَةَ وَسَمِعْتُ خَشْفَةً فَقُلْتُ مَنْ هٰذَا فَقَالَ هٰذَا بِلَالٌ

واوريده پوښتنه مي وکړه دا څوک دی چې د هغه د تلو اواز راځي ماته وښودل شو چې دا بلال دی

| بِفِنَائِهِ | قَصْرًا | رَأَيْتُ | وَ |
|---|---|---|---|
| دي نه روسته يو ځاي ته رسيدو سره مايو عاليشان محل اوليدلو چې دهغه يو کوټ کي ياصحن کي | | | |

| فَقَالُوْا | هٰذَا | لِمَنْ | فَقُلْتُ | جَارِيَةٌ |
|---|---|---|---|---|
| يوه ځوانه ښځه يعني دجنت حوره ناسته ده ماپوښتنه وکړه دامحل دچا دی ماته جنتيانو وښودل چې | | | | |

| أُدْخُلَهُ | أَنْ | فَأَرَدْتُ | الْخَطَّابِ | بْنِ | لِعُمَرَ |
|---|---|---|---|---|---|
| دامحل دعمر ابن خطاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دی دي اوريدو سره ما وغوښتل چې محل ته ورشم او د دننه نه يي هم | | | | | |

| فَقَالَ | غَيْرَتَكَ | فَذَكَرْتُ | إِلَيْهِ | فَأَنْظُرَ |
|---|---|---|---|---|
| وګورم ليکن بيا ماته ستا دغيرت خيال راغی حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ چې دا واوريدل نو عرض يې وکړو | | | | |

| عَلَيْهِ. | مُتَّفَقٌ | أَغَارُ؟ | عَلَيْكَ | اللهِ | رَسُوْلَ | يَا | وَأُمِّيْ | بِأَبِيْ | عُمَرُ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| يارسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زما مور پلار دي په تاسو قربان وي ايا زه به ستا سو په مقابل کی غيرت کوم؟[بخاري، مسلم] | | | | | | | | | |

**توضیح**: (رميصاء) ام سليم رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته رميصاء ويل کيږي او غميصاء هم ورته ويل کيږي، دا د حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مور ده، اول د مالک بن نضر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په نکاح کې وه چې د هغه نه حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ پيدا شو، په احد کې چې کله حضرت مالک بن نضر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ شهيد شو نو بيا حضرت ابوطلحه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د هغې سره نکاح وکړه، د لوی شان والا ښځه ده، د حضور اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رضاعی خاله وه.

## د دين په اعتبار سره د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ شان

| وَسَلَّمَ | عَلَيْهِ | اللهُ | صَلَّى | اللهِ | رَسُوْلُ | قَالَ | سَعِيْدٍ | اَبِيْ | وَعَنْ | ﴿۴﴾ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| اوحضرت ابوسعيد خدري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې رسول کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمائيل يوه ورځ هر کله چې زه اوده ووم | | | | | | | | | | |

| وَعَلَيْهِمْ | عَلَيَّ | يُعْرَضُوْنَ | النَّاسَ | رَأَيْتُ | نَائِمٌ | بَيْنَا اَنَا |
|---|---|---|---|---|---|---|
| خوب کي وينم چې زما دامت څه خلق زما مخکي پيش کړی کيږي هغوی ته لو قميصونه اغوستي | | | | | | |

| دُوْنَ | مَا | وَمِنْهَا | الثَّدْيَ | يَبْلُغُ | مَا | مِنْهَا | قُمُصٌ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| دي چې هغوی کي دبعضو قميصونه خودهغوی سيني پوري وو او د بعضو قميصونه دهغه نه هم | | | | | | | |

| ذٰلِكَ | وَعُرِضَ | عَلَيَّ | عُمَرُ | بْنُ | الْخَطَّابِ | وَعَلَيْهِ |
|---|---|---|---|---|---|---|

واړه وه بيا چې عمر بن خطاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ زما مخ ته پيش شو نو د هغه قميص دومره اوږد وو چې د زمکې

| قَمِيْصٌ | يَجُرُّهُ | قَالُوْا | فَمَا | أَوَّلْتَ | ذٰلِكَ | يَا | رَسُوْلَ | اللهِ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|

سره يې را خکلو بعضو صحابو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ دې خبرې اوريدو سره پوښتنه وکړه يا رسول الله د عمر د دې اوږد

| قَالَ | الدِّيْنُ. | مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. |
|---|---|---|

قميص تعبير تاسو څه بيان کړې دی فرمائيل دين او مذهب. [بخاري مسلم]

**توضيح**: (الدين) په عالم مثال کې د قميص مثال دين دی، د حضرت عمر رض زمانه د خلافت اوږده وه په دغه وجه د دين خدمت د ټولو نه زيات ده کړې دی نو ځکه د هغه دين زيات وو او قميص يې اوږد وو، دغه قسم فضائل جزئي وي کلي نه وي.

## د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ علمي بزرګي

| ﴿۵﴾ | وَعَنِ | ابْنِ | عُمَرَ | قَالَ | سَمِعْتُ | رَسُوْلَ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|

او حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي ما د رسول کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه واوريدل زه اوده وم چې خوب کې د شيدو نه

| يَقُوْلُ | بَيْنَا | أَنَا | نَائِمٌ | أُتِيْتُ | بِقَدَحِ | لَبَنٍ | فَشَرِبْتُ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|

ډکه پياله ماته را کړې شوه ما هغه پئ وڅکل بيا ما وليدل چې د ډير والي په سبب د هغه پيو ترو

| حَتّٰى | إِنِّيْ | لَأَرَى | الرِّيَّ | يَخْرُجُ | فِيْ | أَظْفَارِيْ | ثُمَّ | أَعْطَيْتُ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|

تازګي زما د نوکانو نه راوځي بيا ما خپل پاتې شوي پي، عمر بن خطاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته د څکلو د پاره ورکړل

| فَضْلِيْ | عُمَرَ | بْنَ | الْخَطَّابِ | قَالُوْا | فَمَا | أَوَّلْتَهُ | يَا | رَسُوْلَ | اللهِ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|

بعضو صحابو دې خبرې اوريدو سره عرض وکړو يا رسول الله د دې پيو تعبير کې تاسو څه فرمايي؟

قَالَ الْعِلْمُ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

وې فرمائيل علم [بخاري ومسلم]

**توضيح**: الري: سيرابه کيدو ته ری ويل کيږي. (العلم) په عالم مثال کې د علم مثال د شودو دی دغه قسم فضيلت شارحين جزئي فضيلت ګرځوي، کلي فضيلت د حضرت ابوبکر صديق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دی.

## دحضرت عمر فاورق رضي الله عنه متعلق دحضور صلى الله عليه وسلم یوخوب

﴿۶﴾ وَ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ

اوحضرت ابوهريره رضي الله عنه وايي مادرسول الله صلى الله عليه وسلم نه واوريدل زه اوده ووم چې په خوب کې مې وليدل

يَقُوْلُ بَيْنَا اَنَا نَائِمٌ رَاَيْتُنِيْ عَلٰى قَلِيْبٍ عَلَيْهَا

چې زه بغير غاړې يو کوهي باندې يم چې هلته يوه بوقه هم ايښودل شوې ده مادبوقې په ذريعه هغه

دَلْوٌ فَنَزَعْتُ مِنْهَا مَا شَآءَ اللّٰهُ ثُمَّ أَخَذَهَا ابْنُ

کوهي نه اوبه راوښکلې څومره چې الله تعالى وغوښتلې زمانه روسته ابن ابي قحافه يعني ابوبکر رضي الله عنه

أَبِيْ قُحَافَةَ فَنَزَعَ مِنْهَا ذَنُوْبًا أَوْ ذَنُوْبَيْنِ وَفِيْ

بوقه واخسته او کوهي نه يې اوبه راوښکلې ليکن هغوى يوې يا دوو بوقو نه زياتې اوبه راونه خکلې

نَزْعِهِ ضَعِيْفٌ وَّاللّٰهُ يَغْفِرُ لَهٗ ضُعْفَهٗ ثُمَّ

هغه سست او کمزوری شو او دهغه سستي او کمزوري دې الله تعالى معاف کړي بيا هغه بوقه په يوه

اسْتَحَالَتْ غَرْبًا فَأَخَذَهَا ابْنُ الْخَطَّابِ

غټه بدله شوه او عمر ابن خطاب رضي الله عنه هغه واخسته حقيقت دادی چې ما هيڅ ځوان او قوي د هغه په

فَلَمْ أَرَ عَبْقَرِيًّا مِّنَ النَّاسِ يَنْزِعُ نَزْعَ عُمَرَ

شان ندی ليدلی چې دهغه غټې بوقې په ذريعه اوبه راوکاږي نو هغه دومره اوبه راوښکلې چې نه

حَتّٰى ضَرَبَ النَّاسُ بِعَطَنٍ وَفِيْ رِوَايَةِ

صرف تمام خلق ورباندې اوبه شول او هغوى اوښان هم اوبه کړل بلکې خلقو داوبو د فراخۍ په سبب

ابْنِ عُمَرَ قَالَ ثُمَّ أَخَذَهَا ابْنُ الْخَطَّابِ

هغه ځای کې داوښانو دناستې ځای جوړ کړو اودابن عمر رضي الله عنه روايت داسې دی چې بيا د ابوبکر رضي الله عنه

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| مِنْ | يَدَاَيِّ | بَكْرٍ | فَاسْتَحَالَتْ | فِيْ | يَدِهِ |
| دلاس نه هغه بوقه عمر ابن خطاب رضي الله عنه واخسته چې دهغوی لاس ته رسیدو سره ترې غټه بوقه جوړه | | | | | |
| غَرْبًا | فَلَمْ | أَرَ | عَبْقَرِيًّا | يَفْرِيْ | |
| شوه حقیقت دادی چې ماهیڅ ځوان اوقوي سړی داسي ندی لیدلی چې د اوبو راویستلو په دي کار | | | | | |
| فَرِيَّهُ | حَتّٰى | رَوِيَ | النَّاسُ | | |
| کي دعمر رضي الله عنه په شان چست او چالاک او کاروالا وي نو هغوی دومره اوبه راوښکلي چې خلق يې | | | | | |
| وَضَرَبُوْا | بِعَطَنٍ. | مُتَّفَقٌ | عَلَيْهِ. | | |
| اوبه کړل او داوبو د فراخۍ په سبب خلقو هغه ځاي داوښانو دناستي ځاي جوړ کړو. [بخاري مسلم] | | | | | |

**توضیح**: (قلیب) د غاړې نه بغیر چې کوم کوهي وي هغه ته قلیب ویل کیږي یعنې خراب کوهی، دلته مطلق کوهی مراد دی یا د خرابه کوهی په ذکر کولو سره دیته اشاره ده چې اهل عزم او حوصلې والا خلک خرابه مقام آبادولو سره ډیر څه حاصلولی شي. (ذنوبا) د اوبو ویستلو ډولچې ته ذنوب ویل کیږي په ذال باندې زور دی.

**او ذنوبین**: یایې دوه ډولچې وویستلې، دا شک د راوی له طرف څخه دی یا د (او) لفظ د بل په معنی سره دی، په دې جمله کې د حضرت صدیق اکبر رضي الله عنه دوه کاله خلافت ته اشاره ده.

**(وفی نزعه ضعف)** په دې جملې سره د حضرت صدیق اکبر رض تنقیص مقصود نه دی او نه په هغه باندې د حضرت عمر فاروق رض فضیلت بیانول مقصود دي بلکه اصلا د صدیق اکبر رض د خلافت زمانې قلت ته اشاره ده او د حضرت عمر فاروق رض د خلافت د مدت کثرت او طوالت ته اشاره ده، ددې جملې دویم مطلب دا دی چې په دې کې دیته اشاره ده چې د صدیق اکبر رض په زمانه خلافت کې به د خلکو د ارتداد فتنه راشي چې په دې سره د دین او حکومت کمزورۍ ته اشاره وشوه. په هر حال د حضرت عمر رض د دور خلافت دوه چونکې طویله وه نو ځکه په هغه کې د مخلوق خدا او دین اسلام ډیر زیات خدمت وشو. (غربا) په غین باندې زور دی په راء باندې سکون دی لویې ډولچې ته ویل کیږي چې د غوایې د پوستکي نه جوړیږي، هغه ته چرس هم ویل کیږي، په دې جملې سره د حضرت عمر فاروق رض

د خلافت استحکام او د دين مضبوطۍ ته اشاره ده او د مخلوق خدا خدمت ته اشاره ده.

(عبقريا) قوي او پهلوان نابغه روزګاره شخص ته عبقري ويل کيږي. (بعطن) د نصر او ضرب څخه عطن د اوښانو د څوکولو ځای ته ويل کيږي چې هلته اوښان په اوبو باندې سيرابه سيرابه کيدو سره د آرام لپاره څوکړې شي يا د اوبو څښلو لپاره کيني. (اعطان الابل) د اوښانو د اوسيدو ځای ته ويل کيږي يعنې دومره زياتې اوبه راغلې چې خلکو د دغه کوهي سره د اوښانو د اوسيدو ځايونه جوړ کړل چې د اوبو د زياتوالي په وجه اوس دغه ځای د اوسيدو لپاره قابل دی.

(يفري فريه) اى يعمل عمله د ضرب يضرب څخه دی، په فريه کې په فاء باندې فتحه ده او راء ساکنه ده او په ياء باندې فتحه ده تعجبي او حيرت انګيز کار ته ويل کيږي، په راء باندې کسره او په ياء باندې شد هم ويل شوی دی، د همدې څخه دا آيت دی (لقد جئت شيئا فريا) اى عجيبا، مطلب دا دی چې ما د اوبو ويستلو په کار کې د عمر په شان نابغه روزګاره شخص او د حيرت انګيز کار کولو والا هيڅوک ليدلی نه دی.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي

## د حضرت عمر رضي الله عنه په ژبه او زړه د حق ښکاره کيدل

﴿۷﴾ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ اللهَ جَعَلَ

حضرت ابن عمر رضي الله عنه وايي چې رسول کريم صلى الله عليه وسلم وفرمائيل الله تعالى د عمر په ژبه او

الْحَقَّ عَلَى لِسَانِ عُمَرَ وَقَلْبِهِ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَفِيْ رِوَايَةِ

دهغوی په زړه باندي يې حق او صداقت جاري کړی دی [ترمذي] او دابوداؤد يو روايت کې چې

أَبِيْ دَاوُدَ عَنْ أَبِيْ ذَرٍّ قَالَ إِنَّ اللهَ وَضَعَ الْحَقَّ

حضرت ابوذر رضي الله عنه نه دی داسې دي چې حضور صلى الله عليه وسلم وفرمائيل الله تعالى د عمر رضي الله عنه په

عَلَى لِسَانِ عُمَرَ يَقُوْلُ بِهِ.

ژبه حق اينبی دی ځکه هغه حق خبره کوي حق نه علاوه بله څه خبره دهغوی دژبې نه نه وزي.

**توضيح:** (على لسان عمر) يعنې حضرت عمر فاروق رضي الله عنه د رجال تکوين څخه وو په تکويني امورو کې هغه ته لوی لاس رسي حاصله وه لکه څنګه چې الله تعالى د هغه په ژبه او زړه باندې حق جاري کړی وو، د حق ټکانه يې د هغه په ژبه او قلب او دماغ کې اينبې وه.

ددې نه حديث نه وروسته والا حديث کې هم د دغه قسم تکوين خبره شوې ده . لکه حضرت علي رضي الله عنه فرمايې چې مونږ به دا خبره لرې نه ګڼله چې کومه ملائکه د حضرت عمر رضي الله عنه په ژبه باندې خبرې کوي ، حضرت ابن مسعود رضي الله عنه فرمايې چې ما حضرت عمر رضي الله عنه ته وکتل نو داسې محسوسه شوه چې کومه ملائکه د عمر رضي الله عنه د دواړو سترګو په مينځ کې ناسته ده چې ده ته د صحيح لارې راهنمائی کوي.

(سکينة) د دينه پرسکونه او مدلل قابل اطمينان کلام هم مراد کيدلی شي ، د عمر رضي الله عنه په خبره به مکمل اعتماد او تسلی راتلله.

## پيغمبر صلى الله عليه وسلم حضرت عمر رضي الله عنه د الله پاک نه غوښتی وو

﴿۸﴾ وَعَنْ عَلِيٍّ قَالَ مَا كُنَّا نُبْعِدُ أَنَّ السَّكِيْنَةَ تَنْطِقُ عَلَى لِسَانِ عُمَرَ. رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِيْ دَلَائِلِ النُّبُوَّةِ

او حضرت علي کرم الله وجهه فرمايي مونږ به دا خبره بعيده نه ګڼله چې د حضرت عمر رضي الله عنه په ژبه. سکينه او طمانيه جاري کيږي دا روايت بيهقي دلائل النبوة کي نقل کړی دی

﴿۹﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اَللّٰهُمَّ أَعِزَّ الْإِسْلَامَ بِأَبِيْ جَهْلِ بْنِ هِشَامٍ أَوْ بِعُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ فَأَصْبَحَ عُمَرُ فَغَدَا عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَسْلَمَ ثُمَّ صَلَّى فِي الْمَسْجِدِ ظَاهِرًا. رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالتِّرْمِذِيُّ.

او حضرت ابن عباس رضي الله عنه د نبي کريم صلى الله عليه وسلم نه روايت کوي يوه شپه حضور صلى الله عليه وسلم دعا وکړله الهي د ابو جهل ابن هشام يا د عمر بن الخطاب په ذريعه اسلام سربلند او غالب کړي يعني دې دواړو کي يو ته د مسلمان جوړيدو توفيق عطا کړي چې دهغه په سبب د اسلام دين ته طاقت نصيب شي نو په بله ورځ چې سحر سو عمر ابن الخطاب رضي الله عنه د رسول کريم صلى الله عليه وسلم خدمت کي حاضر يدو سره مسلمان شو او بيا حضور صلى الله عليه وسلم مسجد حرام کي علانيه مونځ وکړو [احمد ترمذي]

## د آسمان د لاندې عمر رضي الله عنه د ټولو نه افضل دی

| |
|---|
| ﴿۱۰﴾ وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ قَالَ عُمَرُ لِأَبِيْ بَكْرٍ يَا |
| او حضرت جابر رضي الله عنه وايي يوه ورځ سيدنا عمر فاروق رضي الله عنه ابوبکر صديق رضي الله عنه په دې الفاظو |
| خَيْرَ النَّاسِ بَعْدَ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| سره مخاطب کړو ای هغه ذاته چې د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه روسته د ټولو انسانانو نه بهترين |
| فَقَالَ أَبُوْبَكْرٍ أَمَا إِنَّكَ إِنْ قُلْتَ ذٰلِكَ فَلَقَدْ سَمِعْتُ |
| سيدنا ابوبکر صديق رضي الله عنه دې اوريدو سره ورته وفرمائيل عمر که ته زما باره کې دا وايي چې نبي علیه السلام نه روسته |
| رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ مَا طَلَعَتِ الشَّمْسُ |
| د ټولو نه بهتر انسان زه يم نو ته خپله باره کې هم پوهه شه ما د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه دا اوريدلي دي نمر په يو |
| عَلٰى رَجُلٍ خَيْرٍ مِّنْ عُمَرَ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ هٰذَا حَدِيْثٌ غَرِيْبٌ. |
| داسې سړي نه دی راختلی چې د عمر نه بهتروي دا روايت ترمذي نقل کړی دی او ويلي يي دي چې دا حديث غريب دی. |

**توضيح**: د دې حديث نه معلوميږي چې د آسمان لاندې حضرت عمر فاروق رضي الله عنه د ټولو نه افضله دی حالانکه د امت اجماع ده چې **افضل البشر بعد الانبياء بالتحقيق ابوبکر الصديق** رضي الله عنه دی؟ د دې اشکال يو جواب دا دی چې دا فضيلت د حضرت صديق رضي الله عنه د دور نه بعد د حضرت عمر رضي الله عنه د دور سره متعلق دی ګويا عمر رضي الله عنه په خپل دور کې د ټولو نه افضل وو. دويم جواب دا دی چې د حضرت عمر رضي الله عنه دغه فضيلت د هغه د عدالت او سياست او تدبير او تدبر سره متعلق دی ګويا دا جزئی فضيلت دی د صديق اکبر رضي الله عنه فضيلت کلي دی.

## د حضرت عمر رضي الله عنه انتهائي منقبت

| |
|---|
| ﴿۱۱﴾ وَعَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَوْكَانَ بَعْدِيْ نَبِيٌّ لَّكَانَ |
| او حضرت عقبه ابن عامر رضي الله عنه وايي چې رسول کريم صلی الله علیه وسلم وفرمائيل که زما نه روسته بل څوک |
| عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ. وَقَالَ هٰذَا حَدِيْثٌ غَرِيْبٌ. |
| نبي وی نو هغه به عمر رضي الله عنه وو دا روايت ترمذي نقل کړی دی او ويلي يي دي چې دا حديث غريب دی. |

**توضيح**: (لکان عمر) لکه څنګه چې مخکې تفصيل ليکل شوی دی چې حضرت عمر فاروق رضي الله عنه د

غیبي نظام او د تکوینیاتو سړي وو ، دلته د هغه چې کوم منقبت بیان شوی دی په دې کې همدې ته اشاره کیدلی شي چې د استعداد په حواله سره حضرت عمر رَضِیَ اللهُ عَنْهُ د نبوت د وادی کس وو مګر نوی نبوت ختم شوی دی نو ځکه نبی راتللی نشي او چې کله حضرت عمر رَضِیَ اللهُ عَنْهُ د حضور صَلَّی اللهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ څخه وروسته پیغمبر جوړیدلی نشي نو د کوم بل یو څو سوال نه پیدا کیږي لهذا غلام احمد قادیانی دروغجن دجال دی.

## دحضرت عمر رَضِیَ اللهُ عَنْهُ رعب او دبدبه

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۱۲﴾ وَعَنْ بُرَيْدَةَ قَالَ خَرَجَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ بَعْضِ مَغَازِيْهِ | | | | | | | |
| اودحضرت بریده رَضِیَ اللهُ عَنْهُ بیان دی یو وار رسول کریم صَلَّی اللهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ جهاد ته تشریف وړی وو کوم وقت چې | | | | | | | |
| فَلَمَّا | انْصَرَفَ | جَاءَتْ | جَارِيَةٌ | سَوْدَاءُ | فَقَالَتْ | | |
| حضور صَلَّی اللهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ بیرته تشریف راوړو نو یوه توررنګې انجلۍ خدمت اقدس کې حاضره شوه او وویل | | | | | | | |
| يَا | رَسُوْلَ | اللهِ | إِنِّيْ | كُنْتُ | نَذَرْتُ | إِنْ | رَدَّكَ | اللهُ | صَالِحًا |
| یارسول الله ما نذر منلی دی که الله تعالی تا سو دجهاد د سفرنه فتح او سلامتي سره بیرته راوستئ | | | | | | | |
| أَنْ | أَضْرِبَ | بَيْنَ | يَدَيْكَ | بِالدُّفِّ | وَأَتَغَنَّى | فَقَالَ | لَهَا |
| نوزه به ستا سو په مخکي دریا (تمبل) وهم سندري به وایم حضور صَلَّی اللهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ هغې ته وفرمائیل که تا واقعي | | | | | | | |
| رَسُوْلُ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ | إِنْ | كُنْتِ | نَذَرْتِ | فَاضْرِبِيْ |
| نذر منلی دی نو دریا (تمبل) وږغوه ګني داسې مه کوه هغې جینۍ واقعي نذر منلی وو ځکه دریا | | | | | | | |
| وَإِلَّا فَلَا | فَجَعَلَتْ | تَضْرِبُ | فَدَخَلَ | أَبُوْ | بَكْرٍ | وَهِيَ | تَضْرِبُ |
| (تمبل) وهل شروع کړل دي کې ابوبکر رَضِیَ اللهُ عَنْهُ داخل شو لیکن هغه جیی دریا (تمبل) وهلو کي مشغوله | | | | | | | |
| ثُمَّ | دَخَلَ | عَلِيٌّ | وَهِيَ | تَضْرِبُ، ثُمَّ | دَخَلَ | عُثْمَانُ | |
| و، بیا علي رَضِیَ اللهُ عَنْهُ راغی او هغې هغه وقت هم دریا (تمبل) وږغولو بیا عثمان رَضِیَ اللهُ عَنْهُ راغی بیا هم هغې خپل | | | | | | | |
| وَهِيَ | تَضْرِبُ | ثُمَّ | دَخَلَ | عُمَرُ | فَأَلْقَتِ | الدُّفَّ | |
| دریا (تمبل) وږغول جاري وساتلو بیا چي عمر رَضِیَ اللهُ عَنْهُ راغی نو هغې د هغه دهیبت نه دریا (تمبل | | | | | | | |

| |
|---|
| تَحْتَ اِسْتِهَا ثُمَّ قَعَدَتْ عَلَيْهَا فَقَالَ |
| خپلو کوناتو لاندې کړه او دکوتو په زور داسي کیناسته چې دریا (تمبل) لاندې پټه شي په دي |
| رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ الشَّيْطَانَ لَيَخَافُ |
| رسول کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل عمر ستا نه خو شيطان هم خوفزده وي دي جينۍ زما په موجودګۍ کي |
| مِنْكَ يَا عُمَرُ إِنِّيْ كُنْتُ جَالِسًا وَهِيَ تَضْرِبُ فَدَخَلَ أَبُوْ بَكْرٍ وَهِيَ تَضْرِبُ ثُمَّ دَخَلَ عَلِيٌّ |
| دريا (تمبل) وهل بيا ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راغی نو هغه وقت يي هم وهلو بيا علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راغي نو هغه وقت يي |
| وَهِيَ تَضْرِبُ ثُمَّ دَخَلَ عُثْمَانُ وَهِيَ تَضْرِبُ فَلَمَّا دَخَلْتَ أَنْتَ يَا عُمَرُ |
| هم دريا (تمبل) وهلو بيا عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راغی نو هغه وقت يي هم دريا (تمبل) وهلو خو ای عمره |
| أَلْقَتِ الدُّفَّ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ. وَقَالَ |
| هرکله چې ته راغلي نو دي جينۍ دريا (تمبل) پټه کړو دا روايت ترمذي نقل کړی دی او ويلي |
| هٰذَا حَدِيْثٌ حَسَنٌ صَحِيْحٌ غَرِيْبٌ |
| يي دي چې دا حديث غريب دی . |

**توضيح** : (الدف) په فصيح لغت کي د دَفٌ په دال باندې زور ويل کيږي او فاء ساکنه ده دلته ددې حديث د مضمون څخه دوه سواله پيدا کيږي .

**سوال (۱)** : اول سوال دا دی چې دريا وهل عبادت نه دی ددې نذر څنګه ومنل شو؟ نذر خو د هغه شی منل کيږي چې د هغه نظير په عباداتو او مأموراتو کې موجود وي .

**جواب** : ددې سوال جواب دا دی چې چونکې دا معامله د جهاد وه نو جهاد ته تلل ، فتحه حاصلول ، دښمن وهل او تښتول ، د الله تعالی په ځمکه باندې د الله تعالی قانون نافذ کول ، دا ټول عبادات دي په دغه وجه د هغې نذر صحيح وګرځولی شو او تر يوه حده د دريا (تمبل) وهلو او نذر پوره کولو برداشت وکړی شو ، دا معامله د ناجائز څخه وته د مباح په ډله کې راغله .

**سوال (۲)** : اوس سوال دا دی چې دريا وهل په لهو او لغوه کارونو کې شميرل کيږي نو د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په مخ کې دريا څنګه ووهل شوه؟

**جواب** : ددې سوال جواب دا دی چې د جهاد په خوشحالۍ کې همدارنګه د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په

صحیح او سالم واپس کیدلو او د فتحې حاصلولو په خوشحالۍ کې دریا(وهل) وهل د لهو او لعب څخه خارج شوله او هغې وینځې په یو ښه بنیاد او اخلاص سره دا کار وکړو ، په دغه وجه تر یو حده پورې یې برداشت وشو لیکن د حضرت عمر فاروق رضي الله عنه د راتللو په وخت شاید د دغه اباحت وخت ختم شوی وو نو ځکه حضور صلی الله علیه وسلم د حضرت عمر رضي الله عنه په شان کې وویل چې ستا نه شیطان خوفزده کیدلو سره دویمه لاره غوره کوي.

## جلال فاروقي رضي الله عنه

| |
|---|
| ﴿۱۳﴾ وَ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كَانَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جَالِسًا فَسَمِعْنَا |
| او بي بي عائشه رضي الله عنها وايي رسول کريم صلی الله علیه وسلم ما سره ناست وو اچانک يو د شور نه ډک اواز زمونږ |
| لَغَطًا وَصَوْتَ صِبْيَانٍ فَقَامَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| غوږونو ته راغی بیامونږ د بچو شور واوریدلو نبی صلی الله علیه وسلم اودریدلو نبی صلی الله علیه وسلم ولیدل چې |
| فَإِذَا حَبَشِيَّةٌ تَزْفِنُ وَالصِّبْيَانُ حَوْلَهَا |
| بهر یوه حبشي ښځه ټوپونه وهي رقص کوي او د هغه څلور طرف ته بچي ولاړ دي تماشه کوري نبی صلی الله علیه وسلم |
| فَقَالَ يَا عَائِشَةُ تَعَالِيْ فَانْظُرِيْ فَجِئْتُ |
| زما مخاطب کولو سره و فرمائیل ای عائشې راشه دا تماشه ته هم او ګوره نوزه راپا څیدم نبی صلی الله علیه وسلم |
| فَوَضَعْتُ لَحْيَيَّ عَلَى مَنْكِبِ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| سره ودریدم او خپل اننګي مي د حضور صلی الله علیه وسلم او وږي اینښودلو سره د نبی صلی الله علیه وسلم د اوږي او د سر په منځ کي |
| فَجَعَلْتُ أَنْظُرُ إِلَيْهَا مَا بَيْنَ الْمَنْكِبِ إِلَى |
| مي د هغه ښځي تماشه کتله لږ لږ ساعت روسته به نبی صلی الله علیه وسلم زما نه پوښتنه کوله ایا ته مړه شوې نه |
| رَأْسِهِ فَقَالَ لِيْ أَمَا شَبِعْتِ أَمَا شَبِعْتِ |
| يې ايا اوس لا ستا زړه مور شوې نه دی او ما به جواب ور کوی نه اوس لا زه نه يم مړه شوې دراصل ما |
| فَجَعَلْتُ أَقُوْلُ لَا لِأَنْظُرَ مَنْزِلَتِيْ عِنْدَهُ |
| دا معلومول غوښتل چې د حضور صلی الله علیه وسلم په زړه کي زما څه مقام دی او حضور صلی الله علیه وسلم ما سره څومره محبت |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| إِذْ | طَلَعَ | عُمَرُ | فَارْفَضَّ | النَّاسُ | عَنْهَا | فَقَالَ |
| کوی بیا اچانک عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راښکاره شو نو هغه خلق چې دهغي ښځي تماشه يي کتله محض دهغه د | | | | | | |
| رَسُوْلُ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ | إِنِّيْ |
| هيبت نه يا دهغه د يري نه چې عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ به دا تماشه کتل خوښه نه کړي دهغه ليدو سره تس نس شول | | | | | | |
| لَأَنْظُرُ | إِلَى | شَيَاطِيْنِ | الْجِنِّ | وَالْإِنْسِ | | |
| دي ليدو سره رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمائيل زه وينم چې دانسانانو او جناتو شيطانان دعمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دخوف نه | | | | | | |
| قَدْ | فَرُّوْا | مِنْ | عُمَرَ | قَالَتْ | فَرَجَعْتُ. | |
| ځرنګه اخوا ديخوا تښتي بي بي عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وايي دي نه روسته زه هم دهغه ځايه ليري شوم دا | | | | | | |
| رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ هٰذَا حَدِيْثٌ حَسَنٌ صَحِيْحٌ غَرِيْبٌ. | | | | | | |
| روايت ترمذي نقل کړی دی او ويلي يي دي چې داحديث حسن صحيح غريب دی . | | | | | | |

**توضيح**: (لغطا) داسې زور داره او دشور نه ډک آواز ته لغط ويل کيږي چې دهغه نه هيڅ خبره نه فهميږي صرف شور وي .

**حبشية: اى امرأة منسوبة الى الحبش** يوه تکه توره حبشی ښځه وه .

**تزفن**: د ضرب يضرب ځخه د مؤنث صيغه ده لوبو کولو ته زفن ويل کيږي او رقص کولو ته هم ويل کيږي مګر د رقص کولو معنی دلته نه صحيح کيږي . په دې حديث کې چې ځه بيان شوي دي ممکنه ده چې د حد جواز په درجه کې کومه تماشا وه يا د جهاد مشق وو نو ځکه نبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هم وکتلو او حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ته يې هم وښودلو ، په حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ باندې د جمال او کمال رنګ غالبه وو نو تماشه روانه وه ، په حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ باندې رعب او جلال غالبه وو او هسې هم دغه ساتيری د ضرورت نه زياتيدله نو ځکه د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په راتګ باندې ټول تيت او پرک شول .

**فارفض الناس**: ارفضاض تيښتي او تيت او پرک کيدلو او منتشر کيدلو سره خپلو ځايونو نه تيښتي کوا ته ويل کيږي .

# الفصل الثالث

## دعمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ موافقات

﴿۱۴﴾ عَنْ أَنَسٍ وَّ ابْنِ عُمَرَ أَنَّ عُمَرَ قَالَ

حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمائيل دري

وَافَقْتُ رَبِّيْ فِيْ ثَلَاثٍ قُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللهِ

خبرو کي زماد پرودرگار حکم زما درايي مطابق نازل شو اولنی خو داچي ماعرض کړی وو يارسول الله که

لَوِاتَّخَذْنَا مِنْ مَّقَامِ إِبْرَاهِيْمَ مُصَلًّى

مقام ابراهيم دمونځ کولو ځاي جوړ کړل شي نوبهتربه وي نو دا آيت نازل شو [وَاتَّخِذُوا مِن مَّقَامِ إِبْرَاهِيمَ مُصَلًّى]

فَنَزَلَتْ وَاتَّخِذُوْا مِنْ مَّقَامِ إِبْرَاهِيْمَ مُصَلًّى وَقُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللهِ

اومقام ابراهيم دمونځ کولو ځاي جوړ کړئ او دويمه خبره داچي ماعرض کړی وو يارسول الله دازواج

يَدْخُلُ عَلٰى نِسَائِكَ الْبَرُّ وَالْفَاجِرُ

مطهراتو مخکي نيک اوبد هر قسم خلق راځي که تاسو ازواج مطهراتو ته پرده کي د اوسيدو حکم

فَلَوْ أَمَرْتَهُنَّ يَحْتَجِبْنَ فَنَزَلَتْ آيَةُ الْحِجَابِ

ورکړئ نوبهتربه وي نو زما په دي عرض کولو د پردي آيت نازل شو او دريمه خبره دا چي کوم وقت

وَاجْتَمَعَ نِسَاءُ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْغَيْرَةِ

دنبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بيبيانو درشک او غيرت واله معامله باندي اتفاق کړی وو نوماهغوی ټولي مخاطب

فَقُلْتُ عَسٰى رَبُّهُ إِنْ طَلَّقَكُنَّ أَنْ

کولو سره ورته ويلي وو که حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تاسو له طلاق درکړی نو دهغوی پروردگار به ډير ژر ستاسو

يُّبْدِلَهُ أَزْوَاجًا خَيْرًا مِّنْكُنَّ فَنَزَلَتْ كَذٰلِكَ

بدله کي هغوی ته ستا سو نه ښي بيبياني ورکړي نو زما دي الفاظو او مفهوم کي آيت نازل شو او د

| دَ | فِيْ | رِوَايَةٍ | لِابْنِ | عُمَرَ | قَالَ | عُمَرُ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| حضرت ابن عمر رضي الله عنه یو بل روایت کي داسي دي دهغوی بیان دی چي حضرت عمر رضي الله عنه و فرمائیل | | | | | | |
| وَافَقْتُ | رَبِّيْ | فِيْ | ثَلَاثٍ | فِيْ | مَقَامِ | إِبْرَاهِيْمَ | وَفِيْ |
| دري خبرو کي زما د پروردګار حکم زما د رايي مطابق نازل شو يو خو مقام ابراهيم باره کي دويم د | | | | | | | |
| الْحِجَابِ | وَ | فِيْ | أُسَارٰى | بَدْرٍ | مُتَّفَقٌ | عَلَيْهِ. | |
| حضور صلی الله علیه وسلم د بيبيانو د پردي باره کي او دريم د بدر د قيديانو باره کي. [بخاري ومسلم] | | | | | | | |

**توضیح :وافقت ربي:** د موافقت مطلب دا دی چي کومه خبره او کوم حکم د الله تعالی په نزد د غیب په پرده کي مقرره وو او د الله تعالی د مرضی او ارادي موافق وه د هغي د ظاهريدو نه مخکي د حضرت عمر رضي الله عنه په زړه باندي د هغي ظهور وشو او حضرت عمر رضي الله عنه د هغي اظهار او مطالبه وکړه بيا الله تعالی د حضرت عمر رضي الله عنه د مرضی مطابق هغه حکم د وحی په ذریعه په حضور صلی الله علیه وسلم باندي ظاهر و فرمايلو ، د دي معاملي نه هم ظاهريږي چي حضرت عمر رضي الله عنه د تکوينياتو د خلکو څخه وو ، دلته که د حضرت عمر رضي الله عنه ادب ته وکتلي شي نو عقل حيرانه پاتي کيږي ځکه هغه وافقني ربی ونه ويل حالانکه حقيقت همداسي وو مګر په طور د ادب يي وفرمايل چي وافقت ربی يعني ما په څو امورو کي د خپل رب د مرضی مطابق خبره وکړه او زما رأيه زما د رب د رأيي سره موافقه شوه .

**في ثلاث:** دلته د دري خبرو ذکر دی په دي سره د حصر بيانول مقصود نه دي بلکه په دې حديث کي د موقع او محل په اعتبار سره د دريو بيانول مطلوب ؤ ځکه چي موافقات عمريه د پنځلسو نه زيات دي ، دامت علماؤ په موافقات عمر باندي ډير کتابونه ليکلي دي ، علامه سيوطی رحمه الله شل موافقات عمر ذکر کړي دي. **في الغيرة:** په دې لفظ کي د شهدو واقعي ته اشاره ده چي مشهوره واقعه ده ، په دې کي د سورة تحريم ابتدائی آياتونه نازل شول ، حضرت عمر رضي الله عنه چي د آيتونو د نزول نه مخکي د ازواج مطهراتو په مخ کي څه اوروليي وو وروسته د قرآن آيت هماغسي نازل شو همدارنګه په واقعه د افک کي حضرت عمر رضي الله عنه وويل (سبحانک هذا بهتان عظيم) وروسته په قرآن کي آيت همداسي نازل شو .

## هغه څلور خبري چي هغې کي حضرت عمر رضي الله عنه ته فضيلت حاصل شو

| ﴿۱۵﴾ | وَعَنِ | ابْنِ | مَسْعُوْدٍ | قَالَ | فُضِّلَ | النَّاسَ | عُمَرُ | بْنُ | الْخَطَّابِ | بِأَرْبَعٍ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| اوحضرت ابن مسعود رضي الله عنه وايي حضرت عمر ابن خطاب رضي الله عنه ته په نورو خلکو د څلور خبرو په سبب | | | | | | | | | | |

بِذِكْرِ الْأُسَارٰى يَوْمَ بَدْرٍ أَمَرَ بِقَتْلِهِمْ فَأَنْزَلَ

فضیلت حاصل دی یوه خبره خود جنګ بدر د قیدیانو باره د هغوی رایې وه د هغوی داوینا وه چې هغه

اللهُ تَعَالٰى لَوْلَا كِتَابٌ مِنَ اللهِ سَبَقَ لَمَسَّكُمْ

قیدیان دې قتل کړی شي او الله تعالی داآیت نازل کړو [ لَوْلَا كِتَابٌ مِنَ اللهِ سَبَقَ لَمَسَّكُمْ فِيمَا أَخَذْتُمْ

فِيمَا أَخَذْتُمْ عَذَابٌ عَظِيمٌ وَبِذِكْرِهِ

عَذَابٌ عَظِيمٌ ] که الله تعالی یوه نوشته مقرر کړې نه وی چې د اجتهادي خطا مرتکب به مستوجب

الْحِجَابَ أَمَرَ نِسَاءَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

عذاب نه وي نو په تاسو څه لویه سزا واقع کیده دویمه خبره د پردې باره کې د هغوی مشوره ورکول

أَنْ تَحْتَجِبْنَ فَقَالَتْ لَهُ زَيْنَبُ وَإِنَّكَ

وو هغه د نبي کریم صَلَّی اللّٰہُ عَلَیۡہِ وَسَلَّمَ ازواج مطهرات پرده کې او سیدو ته متوجه کړی وو ام المؤمنین بي بي زینب رَضِیَ اللّٰہُ عَنۡہَا

عَلَيْنَا يَا ابْنَ الْخَطَّابِ وَالْوَحْيُ يَنْزِلُ

هغه ته ویلي وو چې ای عمر ابن خطاب رَضِیَ اللّٰہُ عَنۡہُ پرده کې د اوسیدو خبره ته مونږ ته کوي حالانکه وحي

فِي بُيُوتِنَا فَأَنْزَلَ اللهُ تَعَالٰى وَإِذَا سَأَلْتُمُوهُنَّ مَتَاعًا

زمونږ کور کې نازلیږي او بیا الله تعالی دا وحي نازله کړه [وَ إِذَا سَأَلْتُمُوهُنَّ مَتَاعًا فَاسْأَلُوهُنَّ مِنْ وَرَاءِ حِجَابٍ

فَاسْأَلُوهُنَّ مِنْ وَرَاءِ حِجَابٍ

او هر کله چې تاسو د ازواج مطهراتو نه څه شی غواړئ نو د پردې نه یې آخوا غواړئ دریمه خبره هغه

وَبِدَعْوَةِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَللّٰهُمَّ أَيِّدِ

دعاوه چې د هغه په حق کې نبي کریم صَلَّی اللّٰہُ عَلَیۡہِ وَسَلَّمَ غوښتلې وه چې الهي د عمر په ذریعه اسلام ته تقویت عطا

الْإِسْلَامَ بِعُمَرَ وَبِرَأْيِهِ فِي أَبِي بَكْرٍ كَانَ أَوَّلَ

کړې او څلورمه خبره د ابوبکر رَضِیَ اللّٰہُ عَنۡہُ په حق کې د هغوی رایه وه چې هغوی د ټولو نه مخکې د هغه په

النَّاسِ بَايَعَهُ. رَوَاهُ أَحْمَدُ.

لاس بیعت وکړو [احمد]

**توضیح**: اساری یوم بدر: په سنه ۲ھ کې د بدر واقعه پیښه شوه نو الله تعالی مسلمانانو ته عظیمه فتحه ورکړه، لوی لوی اویا کافران مړه شواو اویا بندیان شول، په مدینه منوره کې حضور ﷺ د دغو قیدیانو په باره کې د صحابه کرامو څخه مشوره وغوښته چې د هغو نه فدیه واخیستلی شي پرېښودل شي او که قتل کړی شي، حضرت عمر فاروق رضي الله عنه وفرمایل چې یارسول الله دغه خلک د کفر مشران دي، ته زما د خاندان خلک زما په لاسونو کې راکړه تر څو زه هغوی قتل کړم بلکه د هر خاندان والا دې خپل خپل رشته داران قتل کړي په دې طریقه به په کفارو باندې د اسلام رعب کېنې او د کفر جرړې به کټ کړی شي. د حضرت عمر فاروق رضي الله عنه د رأیې برعکس د عامو صحابو او د حضور اکرم ﷺ رأیه دا وه چې د هغو نه دې فدیه واخیستلی شي پرې دې یخودلی شي، الله تعالی په فدیه اخیستلو او قتل کولو کې حضور اکرم ﷺ ته اختیار ورکړی ؤ مګر دا شرط ؤ چې په آینده کال کې به ستاسو نه اویا کسان شهیدانیږي، په دې باندې حضرت عمر رضي الله عنه سخت ناراضه وو مګر د عامو خلکو په رأیه باندې عمل وشو چې په دې باندې الله تعالی د سختې ناخوښۍ اظهار وفرمایلو او د حضرت عمر رضي الله عنه د رأیې موافق حکم یې ولیږلو چې داسې کول پکار وو. حضور ﷺ وفرمایل کچیرې عذاب راتلی نو د عمر نه علاوه به هیڅوک نه بچ کیدو. **کتاب من الله:** یعنې په لوح محفوظ کې یې لیکلي وو چې د مجتهد په غلطۍ باندې مؤاخذه نه وي، یا دا چې اهل بدر د مخکې نه معاف دي د هغوی مؤاخذه نه کیږي، یا دا چې د دواړو خبرو اجازه الله تعالی ورکړې وه چې فدیه واخلئ یا قتل وکړئ. په دغه وجه عذاب بند شو او که نه نو عذاب ښکاره شوی وو. د قرآن آیت دی ﴿ مَا كَانَ لِنَبِيٍّ أَنْ يَكُونَ لَهُ أَسْرَى حَتَّى يُثْخِنَ فِي الْأَرْضِ ﴾ الی ان قال ﴿ لَوْلَا كِتَابٌ مِنَ اللَّهِ سَبَقَ لَمَسَّكُمْ فِيمَا أَخَذْتُمْ عَذَابٌ عَظِيمٌ ﴾. **و برأیه:** یعنې د عمر فاروق رضي الله عنه رأیه دا وه چې د حضور ﷺ نه پس د هغه خلیفه دي ابوبکر صدیق رضي الله عنه شي هغه په سقیفه بني ساعده کې څو دلائل ورکړل او بیا یې د ابوبکر صدیق رضي الله عنه لاس ونیوه او بیعت یې ورسره وکړو بیا ټولو بیعت وکړلو.

## حضرت عمر رضي الله عنه به جنت کې بلند ترین مقام پیدا کوې

| |
|---|
| ﴿۱۶﴾ وَعَنْ أَبِيْ سَعِيْدٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذٰكَ الرَّجُلُ |
| او حضرت ابو سعید خدري رضي الله عنه وايي چې رسول کریم ﷺ وفرمائیل دغه سړی زما په امت کې |
| أَرْفَعُ أُمَّتِيْ دَرَجَةً فِي الْجَنَّةِ قَالَ أَبُوْ سَعِيْدٍ وَاللهِ |
| د جنت بلند ترمقام او مرتبه لرونکی دی د ابو سعید رضي الله عنه بیان دی چې په الله قسم چې زمونږ خیال دي نه |

| |
|---|
| مَا كُنَّا نَرٰى ذٰلِكَ الرَّجُلَ اِلَّا عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ حَتّٰى |
| علاوه بل څه نه وو چې دي نه د حضرت عمر رضي الله عنه ذات مراد دی او حضرت عمر رضي الله عنه چې څو پوري دي |
| مَضٰى لِسَبِيْلِهٖ. رَوَاهُ ابْنُ مَاجَةَ. |
| دنيا کي وو مونږ په دي خيال قائم وو. [ابن ماجه] |

## نيکو کارونو کي د عمر رضي الله عنه چستي

| |
|---|
| ﴿۱۷﴾ وَعَنْ اَسْلَمَ قَالَ سَاَلَنِي ابْنُ عُمَرَ |
| او حضرت اسلم چې د حضرت عمر فاروق رضي الله عنه ازاد کړه غلام او تابعي دی وايي چې حضرت ابن عمر رضي الله عنه |
| بَعْضَ شَاْنِهٖ يَعْنِيْ عُمَرَ فَاَخْبَرْتُهٗ فَقَالَ |
| يوه ورځ زمانه د حضرت عمر فاروق رضي الله عنه څه احوال او خصائل معلومول وغوښتل نو ما هغوی ته |
| مَا رَاَيْتُ اَحَدًا قَطُّ بَعْدَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| ډيري خبري وښودلې نو هغه وويل چې د رسول اکريم صلی الله عليه وسلم د رحلت نه روسته ما د حضرت عمر رضي الله عنه |
| مِنْ حِيْنَ قُبِضَ كَانَ اَجَدَّ وَاَجْوَدَ حَتّٰى |
| نه زيات هيڅ سړی نه دی ليدلی چې د خپل ژوند آخري لمحو پوري نيکو کارونو کي د ټولو نه زيات |
| انْتَهٰى مِنْ عُمَرَ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ. |
| سرګرم (چست) او د ټولو نه زيات نيک وي [بخاري] |

**توضيح** : **اسلم:** حضرت اسلم رضي الله عنه د حضرت عمر رضي الله عنه غلام او خاص خادم وو په دغه وجه حضرت ابن عمر رضي الله عنه د هغه څخه د خپل پلار جان عمر رضي الله عنه د خصوصي احوالو معلومول وغوښتل ځکه ډير کرته خادم ته هغه څه معلوميږی چې ځوی ته نه معلوميږي. **فقال:** د دې قال فاعل اسلم دی او دا جمله د اخبرته تفصيل دی، په بعضو نسخو کې قال دی کچيرې دا لفظ فقلت وای نو دا به آسانه وو، په هر حال ټول بيان د اسلم دی. **اجد:** يعنې په دين کې د زيات جد او جهد کولو والا نور څوک نه وو حضرت عمر رض د ټولو نه زيات جدو جهد کونکی وو. **و اجود:** ای احسن په طلب اليقين يعنې په نيکو کارونو کې يې په محنت باندې عمده يقين ساتلو، په محنت سره او شوق او چستۍ سره يې نيک اعمال کولو. **حتى انتهى من عمر:** په دې جمله باندې د پوهيدو ليپاره اصل عبارت کتل پکار دي، اصل

بارت داسې دی: ما رأيت احدا اجد و اجود من عمر حتى انتهى عمر اى مضى لسبيله .ياد ساتل پکار ي چې د حضرت عمر رضي الله عنه دغه فضيلتونه د هغې زمانې سره تعلق لري چې کله د حضرت ابوبکر ىديق رضي الله عنه انتقال شوی وو ، (قال السيوطي اى في زمن خلافته ليخرج ابوبکر) .
يم جواب دا دی چې دا تمام فضائل جزئيه دي ، جزئي فضيلت د عمر فاروق رضي الله عنه دی او عام ضيلت د حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه لپاره دی .

## د حضرت عمر رضي الله عنه شهادت

﴿۱۸﴾ وَعَنِ الْمِسْوَرِبْنِ مَخْرَمَةَ قَالَ لَمَّا طُعِنَ عُمَرُ

حضرت مسور ابن مخرمه رضي الله عنه وايي حضرت عمر فاروق رضي الله عنه زخمي شو نو دبې آرامی اظهار يې

جَعَلَ يَأْلَمُ فَقَالَ لَهُ ابْنُ عَبَّاسٍ وَكَأَنَّهُ

کوه نو حضرت عبد الله ابن عباس رضي الله عنه گويا د حضرت عمر رضي الله عنه ته تسلي او تشفي ورکړله او ورته يې

يُجَزِّعُهُ يَا أَمِيرَ الْمُؤْمِنِيْنَ وَلَا كُلُّ ذٰلِكَ

وويل امير المؤمنين د دې بې قرارۍ او بې ارامۍ اظهار ستا سو د شان سره مناسب نه دی تاسو خو

لَقَدْ صَحِبْتَ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

ننه هستي يې چې د رسول الله صلى الله عليه وسلم صحبت او رفاقت شرف درته حاصل او ډير ښه صحبت درته حاصل

فَأَحْسَنْتَ صُحْبَتَهُ ثُمَّ فَارَقَكَ

شوی دی تاسو د رفاقت رسول کامل حق ادا کړی دی او رسول کريم صلى الله عليه وسلم داسې حالت کې ستاسو نه

وَهُوَ عَنْكَ رَاضٍ ثُمَّ صَحِبْتَ أَبَا بَكْرٍ

جدا شو چې ستاسو نه خوشحاله وو بيا د ابوبکر رضي الله عنه رفاقت ملګرتيا او مجالست تاسو ته نصيب

فَأَحْسَنْتَ صُحْبَتَهُ ثُمَّ فَارَقْتَهُ

شو او هغوی سره هم ستاسو ملګرتيا ډيره ښه وه تردې پورې چې هغوی ستاسو نه جدا شول نو

وَهُوَ عَنْكَ رَاضٍ ثُمَّ صَحِبْتَ الْمُسْلِمِيْنَ

ستاسو نه خوشحاله وو او بيا د خپل خلافت په زمانه کې تاسو ته د مسلمانانو د خدمت او رفاقت

فَأَحْسَنْتَ صُحْبَتَهُمْ وَلَئِنْ

موقع حاصله شوه او دهغوی دخدمت او رفاقت فریضه هم تاسو ډیره ښه شان سره ادا کړله او س که

فَارَقْتَهُمْ لَتُفَارِقَنَّهُمْ وَهُمْ عَنْكَ رَاضُوْنَ

د مسلمانانو نه جدا کیږې په داسي حال کي جدا کیږې چې مسلمانان تاسو نه راضي او خوشحاله دي

قَالَ أَمَّا مَا ذَكَرْتَ مِنْ صُحْبَةِ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَرِضَاهُ

فاروق اعظم رَضِيَ اللهُ عَنهُ وفرمائیل تا د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د صحبت او د هغوی د رضا او خوشحالي چې کوم

فَإِنَّمَا ذٰلِكَ مَنٌّ مِّنَ اللهِ مَنَّ بِهِ عَلَيَّ

ذکر کړي دی نو بلا شبه دا د الله تعالی یو ډیر لوی احسان دی چې هغه محض خپل فضل او کرم سره

وَأَمَّا مَا ذَكَرْتَ مِنْ صُحْبَةِ أَبِي بَكْرٍ وَرِضَاهُ

په ما کړي دی د غه شان تا د حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنهُ د صحبت او رفاقت او د هغوی د رضا چې کوم ذکر

فَإِنَّمَا ذٰلِكَ مَنٌّ مِّنَ اللهِ مَنَّ بِهِ عَلَيَّ

کړی دی نو هغه هم د الله تعالی یو لوی احسان دی چې د هغه په ذریعه هغه محض خپل فضل او کرم

وَأَمَّا مَا تَرَى مِنْ جَزَعِي فَهُوَ مِنْ أَجْلِكَ وَأَجْلِ

سره زه سرفراز کړم پاتې شوه زما بي صبري او بي قراري چې ته وینې نو د دي تعلق د رحقیقت د استا

أَصْحَابِكَ وَاللهِ لَوْ أَنَّ لِيْ طِلَاعَ الْأَرْضِ ذَهَبًا

او ستا د دوستانو په سبب دی قسم په الله که ما سره د ټولي ځمکي برابر سونا سره زر وي زه به هغه د

لَافْتَدَيْتُ بِهِ مِنْ عَذَابِ اللهِ قَبْلَ أَنْ أَرَاهُ . رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ

الله تعالی دعذاب بدل کي قربان کړم دي نه مخکي چې زه الله یا د الله عذاب ووینم. صحیح البخاری.

**توضیح : لما طعن:** یعني چې کله حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنهُ په نیزه ووهلی شو ، مختصره قصه داسې ده چې په مدینه منوره کې د مغیره بن شعبه رَضِيَ اللهُ عَنهُ یو مجوسی غلام وو چې د هغه نوم فیروز وو او کنیه یې ابولؤلؤ وه ، هغه شکایت کړی وو چې زما مولی مغیره بن شعبه رَضِيَ اللهُ عَنهُ په ما باندې

زيات تيكس لګولی دی، حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د هغه څخه پوښتنه وکړه چې ستا کسب څه شی . . . هغه خو کسبونه او هندونه وښودل، عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمايل چې دا تيكس خو دومره نه دی، ته خو ډير ماهره کاريګريې، ستا ګټه زياته ده، ما اوريدلي دي چې ته ډيرې ښې ژرندې جوړوې زما لپاره يوه ژرنده جوړه کړه، ابولؤلؤه چونکي په غصه کې وو نو ويې ويل چې صحيح ده زه به تاته داسې ژرنده تياره کړمه چې دنيا به يې يادوي، حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ چې کله دا واوريدل نو ويې فرمايل: هددني العبد دې غلام خو ما ته د مرګ زورنه راکړه، بيا د سهار په لمانځه کې ابولؤلؤ په حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ باندې حمله وکړه، دا د چې ارشنبې ورځ وه او د ذوالحجه ۲۷ سنه ۲۳ هـ تاريخ وو، تر دريو ورځو پورې هغه زخمي وو او په اول د محرم الحرام سنه ۲۴ هـ کې هغه د شهادت جام نوش کړلو، په دغه وخت کې د هغه عمر ۶۳ کاله وو.

**يألم:** الم درد ته ويل کيږي يعني حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د زخم په وجه د شديد کرب او فرياد اظهار کولو، عامو شارحينو همدا مطلب بيان کړی دی زه هم دا منم ليکن د دغه ټول حديث د کتلو او د هغه په مضمون کې د غور کولو نه معلوميږي چې حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د خلافت په امورو او د حقوق الله او حقوق العباد په باره کې د بی صبری اظهار کولو، حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هغه ته په صحيح طريقه تسلی ورکړه.

**وکأنه يجزعه:** عام شارحين ليکي چې حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په دغه تکليف او درد باندې ملامتولو مګر شيخ عبد الحق رَحِمَهُ اللهُ د دې مطلب دا بيان کړی دی چې حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ څخه درد او پريشاني لرې کوله او تسلي يې ورکوله، دا مطلب زيات واضحه دی او د دې حديث سره بلکل موافق دی او د يألم مطلب چې ما بيان کړی دی د دې سره عين مطابق دی، راتلونکي ټولې جملې په همدې باندې موافق راځي.

**ولا کل ذلک:** يعني ای امير المؤمنين! د دې ټولو پريشانيانو هيڅ ضرورت نشته او نه دا بی قراری او د مستقبل دومره خوف ستا د شان سره مناسب دی، ته خو هغه هستي يې چې د حضور پاک صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره دې رفاقت کړی دی، د حضرت ابوبکر صديق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره دې رفاقت کړی دی هغه دواړه ستا نه خوشحاله وو، بيا تا د مسلمانانو خدمت وکړلو، د انتقال نه بعد به ان شاء الله ټول مسلمانان هم ستا نه راضی او خوشحاله وي لهذا د پريشانی ضرورت نشته.

**منٌ من الله:** يعني د حضور اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خدمت يا د ابوبکر صديق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خدمت دا خو د الله تعالی له طرفنه محض احسان وو چې په ما باندې شوی وو، زما سره چې کومه پريشاني ده هغه ستاسو د خلکو په وجه ده.

**من اجلک:** عامو شارحينو ليکلي دي چې حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايلي چې زما د وفات نه وروسته به د فتنو دروازې خلاصې شي لهذا ما ته د ستاسو فکر لاحق دی په دغه وجه زه د بې صبرۍ او اضراب په کيفيت کې يم چې ستاسو به څه حال وي؟
د شارحينو ليکل په خپل ځای دي مگر ما ددې حديث په پوهيدو کې د ابتداء نه چې کوم کوشش کړی دی د هغه مطابق مطلب دا دی چې حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د خلافت د امورو په باره کې بې صبري ظاهروله او په دې جمله کې يې هم هماغه ظاهره کړې ده چې د خلافت په امورو کې چيرته په حقوق الله او حقوق العباد کې کومه کوتاهي راغلې نه وي، لکه په نورو رواياتو کې راغلي چې ده وفرمايل چې په دې خلافت کې په ثواب او عتاب کې چې معامله سر په سر شي نو دا به زما لپاره ښه وي، لالی و لا علی نه ما ته ثواب حاصل شي او نه عذاب حاصل شي.

**طلاع الارض:** دا د طلوع څخه دی يعنې زما سره دومره سره زر وي چې په هغې سره د ځمکې سر ډک شي زه هغه د عذاب الهی د کتلو نه مخکې مخکې خرچ کړم مگر د عذاب شکل ونه گورم. ملاعلی قاری رَحِمَهُ اللهُ ليکلي چې د حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سر د هغه د ځوی په سينه باندې وو او هغه د الله تعالی سره په مناجات کې دا شعر ويلو:

ظَلُوْمٌ لِنَفْسِيْ غَيْرَ اَنِّيْ مُسْلِمٌ  اُصَلِّيْ صَلٰوةً كُلَّهَا وَ اَصُوْمُ

ترجمه: ما په خپل ځان باندې ډير ظلم کړی دی مگر بيا هم زه مسلمان يم، خپل ټول لمونځونه کوم او روژه نيسم.
حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د خوف او رجاء نمونه وه، فرمايل به يې چې کچيرې په قيامت کې دا اعلان وشي چې ټول انسانان به جنت ته ځي او يو کس به دوزخ ته ځي نو ما ته به خطره وي چې چيرته هغه زه نه يم، او کچيرې دا اعلان وشي چې ټول خلک به دوزخ ته ځي صرف يو کس به جنت ته ځي نو زما به اميد وي چې هغه يو کس به زه يم. شيعه او روافضو د حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د دغه خوف او رجاء جذبې او دغه اخلاص ته په غلط نظر سره کتلي دي او د هغه د مورد طعن گرځولو کوشش يې کړی دی، ربښتيا دي:

فعين الرضاء عن کل عيب کليلة  ولکن عين السخط تبدی المساويا

ترجمه: سړی چې کله د يو چا نه خوشحاله وي نو سترګې يې هر وخت د عيب نه ړندې پاتې کيږي مګر ناراضه سترګې ته صرف بد په نظر ورځي.



# باب مناقب ابي بكر و عمر رضي الله عنهما

## د حضرت ابوبكر او حضرت عمر رضي الله عنهما مناقب

د صاحب مشكوة دا طريقه پاتې شوې ده چه هغه انفرادي مناقب د متعلقه صحابي سره بيان كړي دي ليكن د مناقبو احاديث مشتركه هم وي، صاحب د مشكوة مشتركه مناقب په جدا بابونو كې جمع كړي دي، نو د صديق اكبر او عمر فاروق رضي الله عنهما د انفرادي مناقبو نه فارغيدو نه پس اوس د دواړو مشتركه مناقب بيانوي، دا ښه ترتيب دی.

### اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

### د حضور اكرم صلى الله عليه وسلم په صديق او عمر رضي الله عنهما باندې اعتماد

| |
|---|
| ﴿۱﴾عَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنْ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ بَيْنَمَا |
| حضرت ابو هريره رضي الله عنه وايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم و فرمائيل يو سړی خپلې غوا شړلو سره بوتله تلو |
| رَجُلٌ يَسُوْقُ بَقَرَةً إِذْ أَعْيَيٰ فَرَكِبَهَا فَقَالَتْ إِنَّا لَمْ نُخْلَقْ |
| كې چه هغه ستړی شو نو غوا باندې سور شو غوا ورته وويل زمونږ تخليق دی كار د پاره نه دی شوی |
| لِهٰذَا إِنَّمَا خُلِقْنَا لِحِرَاثَةِ الْأَرْضِ فَقَالَ النَّاسُ سُبْحَانَ اللهِ |
| مونږ خو د زراعت او كاشتكاري كار د پاره پيدا شوي يو خلقو د اظهار تعجب په طور وويل سبحان الله |
| بَقَرَةٌ تَكَلَّمُ فَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| غوا هم خبرې كوي په دې وخت كې رسول كريم صلى الله عليه وسلم و فرمائيل زه په دې خبره ايمان راوړم |
| فَإِنِّيْ أُوْمِنُ بِهٖ أَنَا وَأَبُوْ بَكْرٍ وَّعُمَرُ |
| او ابوبكر او عمر هم ايمان راوړي او حضرت ابوبكر رضي الله عنه او حضرت عمر رضي الله عنه هغه مجلس كې موجود نه وو |
| وَمَا هُمَا ثَمَّ. وَقَالَ بَيْنَمَا رَجُلٌ فِيْ غَنَمٍ |
| او حضرت ابو هريره رضي الله عنه بيان وكړو چه يو سړی د خپلو چيليو درمې منځ كې وو اچانک يو شرمخ راغی |
| لَهٗ إِذْ عَدَا الذِّئْبُ عَلٰى شَاةٍ مِّنْهَا فَأَخَذَهَا |
| او د رمې نه يې يوه بزې وتښتوله د چيليو مالک د شرمخ تعاقب كولو سره خپله چيلۍ يې د هغه نه |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| فَأَدْرَكَهَا | صَاحِبُهَا | فَاسْتَنْقَذَهَا | فَقَالَ | لَهُ | الذِّئْبُ |

خلاصه کړله شرمخ هغه ته وویل تاخو خپله چیلۍ زمانه خلاصه کړه لیکن دا راته ووایه چه دسبع

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فَمَنْ | لَهَا | يَوْمَ | السَّبُعِ | يَوْمَ | لَا | رَاعِيَ | لَهَا | غَيْرِيْ |

په ورځ چیلیو حفاظت کونکی به څوک وي زمانه علاوه خلقو دي واقعه اوریدو سره اظهار تعجب

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| فَقَالَ | النَّاسُ | سُبْحَانَ | اللهِ | ذِئْبٌ | يَتَكَلَّمُ | فَقَالَ |

وکړو او هغوی وویل سبحان الله شرمخ او خبري وکړي حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمائیل زه په دي ایمان راوړم

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| أُوْمِنُ | بِهِ | أَنَا | وَأَبُوْ | بَكْرٍ | وَعُمَرُ |

او ابوبکر او عمر هم ایمان راوړي حالانکه هغه وقت حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ کي

وَمَا هُمَا ثَمَّ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

هیڅوک هم هلته موجود نه وو. [بخاري مسلم]

**توضیح**: اعيې: یعنې چه کله هغه سړی ستړی شو نو په غوا باندې سور شو، غوا انکار وکړو او خبرې یې وکړې، خلکو تعجب وکړو. **فاني اومن**: دا په شرط محذوف باندې متفرع ده چه جزاء واقع ده یعنې کچیرې خلک د غوا په خبرو باندې تعجب کوي نو ودي یې کړي، زه او ابوبکر او عمر فاروق په دې خبرو باندې ایمان لرو چه معجزه ظاهره شوه، حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د خپل یقین سره د شیخینو یقین یو ځای کړو د انهایت قرب او قوت ایمان او اطمینان او اعتماد ته اشاره ده او په همدې سره د شیخینو فضیلت دی. **عدا الذئب**: دا د عدوان او تجاوز څخه دی یعنې لیوانو په ګډو باندې حمله وکړه. **یوم السبع**: په دې کلمه کې په باء باندې پیش هم دی او سکون هم، که پیش وي نو ددې ورځې نه مه داسې د فتنې ورځ مراد ده چه په هغې کې به انسان د فتنو په وجه سره خپل مال او څریدونکې حیوانات پریږدي او وبه تښتي او ټول حیوانات به د لیوانو رحم او کرم ته پاتې شي، یا ددینه کومه داسې ورځ مراد ده چه په هغې کې به ټول خلک مړه شي او ګډې به یوائې پاتې شي، یا ددینه د قیامت ابتدائی احوال مراد دي چه د هغو د خوف په وجه به انسانان او حیوانات سره یو ځای شي په واذا النفوس زوجت کې همدیته اشاره ده، ملا علی قاری رحمه الله دغه توجیه کمزورې ګرځولې

بعضو ویلي چه السبع داهل جاهلیت دا خترونو څخه دا ختر یوه ورځ وه چه په هغې کې به خلک اختر ته وتل حیوانات به یې یوائې پریښودل، په دې صورت کې د سبع په باء باندې سکون هم ویلې شي .

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۲﴾وَعَنِ | ابْنِ | عَبَّاسٍ | قَالَ | إِنِّيْ | لَوَاقِفٌ | فِيْ | قَوْمٍ |
| او حضرت ابن عباس رضي الله عنه وايي چه د حضرت عمر فاروق رضي الله عنه د وفات په ورځ هغه وقت زه هم د هغه | | | | | | | |
| فَدَعَوْا | اللهَ | لِعُمَرَ | وَقَدْ | وُضِعَ | عَلٰى | سَرِيْرِهٖ | |
| خلقو منځ کې ولاړ وم هر کله چه د حضرت عمر رضي الله عنه جسد خاکې لمبولو د پاره تخته مرګ باندې ایښودل | | | | | | | |
| إِذَا | رَجُلٌ | مِّنْ | خَلْفِيْ | قَدْ | وَضَعَ | | |
| شوی وو او خلق ولاړ وو او د هغه په حق کې یې دعا د خیر او مغفرت غوښتلو اچانک ما محسوس کړه | | | | | | | |
| مِرْفَقَهٗ | عَلٰى | مَنْكِبِيْ | يَقُوْلُ | يَرْحَمُكَ | اللهُ | | |
| چه زما شانه ولاړ یو سړي خپله زنه زما په اوږه ایښې ده هغه سړي ویل شروع کړل د الله تعالٰی رحمت | | | | | | | |
| إِنِّيْ | لَأَرْجُوْ | أَنْ | يَّجْعَلَكَ | اللهُ | مَعَ | صَاحِبَيْكَ | |
| دې په تاسو نازل شي بیشکه زه پوره امید لرم چه الله تعالٰی به تا سو د خپلو دواړو دوستانو سره یو ځای | | | | | | | |
| لِأَنِّيْ | كَثِيْرًا | مَّا | كُنْتُ | أَسْمَعُ | رَسُوْلَ | اللهِ | صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| لري ځکه چه ما به د رسول الله صلی الله علیه وسلم د ژبې مبارکې نه اکثر دا الفاظ اوریدل چه زه فلانی ځای وم | | | | | | | |
| يَقُوْلُ | كُنْتُ | وَأَبُوْبَكْرٍ | وَعُمَرُ | وَفَعَلْتُ | وَأَبُوْبَكْرٍ | وَعُمَرُ | |
| او ابوبکر او عمر هم ما سره وو ما فلانی کار وکړو او ابوبکر او عمر هم زما شریک کار وو زه فلانی مقام | | | | | | | |
| وَانْطَلَقْتُ | وَأَبُوْ | بَكْرٍ | وَعُمَرُ | وَدَخَلْتُ | وَأَبُوْبَكْرٍ | وَعُمَرُ وَخَرَجْتُ | وَأَبُوْبَكْرٍ وَعُمَرُ |
| ته ولاړم او ابوبکر او عمر هم ما سره وو زه فلانی مکان یا فلانی ځای نه بهر راووتم او ابوبکر او عمر هم ما سره | | | | | | | |
| فَالْتَفَتُّ | فَإِذَا عَلِيُّ | بْنُ | أَبِيْ | طَالِبٍ | مُتَّفَقٌ | عَلَيْهِ | |
| وو ما چې روسته تاوید سره او کتل نو د دې الفاظ ویونکی علی ابن ابی طالب رضي الله عنه وو. [بخاری و مسلم] | | | | | | | |

**توضيح:** (فدعوا الله) يعنې خلكو انفرادي طور باندې د عمر رضي الله عنه لپاره دعاګانې غوښتلې.

(كنت و ابوبكر و عمر) په دې ټولو جملو كې د اسم ظاهر عطف په اسم ضمير باندې راغلى دى حالانكه نحويان په ضمير متصل باندې د اسم ظاهر عطف ته بغير د تأكيد نه به منفصل سره جائز نه وايي بلكه هغه ته ضعيف وايي، هو! په اشعارو كې ګنجائش شته، ددې جواب دا دى چه علامه مالكى رحمه الله فرمايي چه د غسې عطف په نظم او نثر دواړو صورتونو كې د راجح قول مطابق جائز دى. (مرقات)

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي

| |
|---|
| ﴿۳﴾عَنْ أَبِي سَعِيدِنِ الْخُدْرِيِّ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِنَّ أَهْلَ الْجَنَّةِ لَيَتَرَاءَوْنَ |
| حضرت ابو سعيد خدري رضي الله عنه وايي چې رسول كريم صلى الله عليه وسلم و فرمائيل جنتي خلق به عليين والا ډيرې |
| أَهْلَ عِلِّيِّينَ كَمَا تَرَوْنَ الْكَوْكَبَ الدُّرِّيَّ فِي أُفُقِ السَّمَاءِ وَإِنَّ أَبَا بَكْرٍ |
| بلندئ باندې داسې وينې څرنګه چه تا سو دآسمان په غاړه ډير روښانه ستوري وينئ او ابوبكر |
| وَعُمَرَ مِنْهُمْ وَأَنْعَمَا. رَوَاهُ فِي شَرْحِ السُّنَّةِ |
| او عمر په عليين والاؤ كې دي بلكې دخپل اعزاز او رتبې داعتبار نه هغوى نه زيات دي دا روايت بغوي خپل |
| وَرَوَى نَحْوَهُ أَبُو دَاوُدَ وَالتِّرْمِذِيُّ وَابْنُ مَاجَةَ. |
| اسناد سره شرح السنه كې نقل كړې دى او دغه شان روايت ابو داؤد ترمذي او ابن ماجه هم نقل كړى دى |

**توضيح:** وانعما: يعنې په اعلى عليين كې به دواړه د ټولو نه مخكې په اعلى مقام باندې فائز وي، يا مطلب دا دى چه دا دواړه به د جنت په نعمتونو كې داخليږي (اى دخلا في النعيم) لكه څنګه چه عرب وايي اشأم اى دخل في الشام.

## ابوبكر او عمر رضي الله عنهما به د جنت سرداران وي

| |
|---|
| ﴿۴﴾وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَبُو بَكْرٍ وَعُمَرُ سَيِّدَا كُهُولِ |
| او حضرت انس رضي الله عنه وايي چې رسول كريم صلى الله عليه وسلم و فرمائيل جنت كې چه څومره هم پوخ عمر والاوي |
| أَهْلِ الْجَنَّةِ مِنَ الْأَوَّلِينَ وَالْآخِرِينَ إِلَّا النَّبِيِّينَ وَالْمُرْسَلِينَ. |
| بنايي هغه مخكنو كې وي يا وروستنو كې دهغوى ټولو سرداران به ابوبكر او عمر وي سوا د نبيانو |

| رَوَاهُ | التِّرْمِذِيُّ | وَرَوَاهُ | ابْنُ | مَاجَةَ | عَنْ | عَلِيٍّ. |
|---|---|---|---|---|---|---|

اورسولانو نه .[ترمذي] ابن ماجه دارروايت دحضرت علي رضي الله عنه نه نقل کړې دی.

**توضيح**: (كهول) په كاف او هاء باندې ضمه ده ، دا جمع ده مفرد يې كهل دی ، د ۳۰ كلو نه چه كوم كس زيات شي هغه ته كهل ويل كيږي د زيات عمر خلك مراد دي .

اوس سوال پيدا كيږي چه په جنت كې خو به ټول خلك ځوانان وي نو د هغوی د سردار كيدلو مطلب څه دی ؟ددې جواب دا دی چه د زيات عمر والاؤ څخه هغه خلك مراد دي چه ددې دنيا نه په زيات عمر كې رخصت شوي وي ، ابوبكر صديق او عمر فاروق رضي الله عنهما به د دې ټولو سردار وي ، ددينه معلومه شوه چه كوم خلك په ځوانۍ كې ددې دنيا نه تللي وي نو شيخين به په طريق اولی د هغوی سرداران وي .

من الاولين: ددينه د سابقه امتونو دغه قسم خلك مراد دي او د (الاخرين) څخه ددې امت خلك مراد دي بغير د انبياء كرامو نه كه هغه د سابقه امتونو انبياء كرام وي يا آينده راتلونكی حضرت عيسی عليه السلام وي .

## دحضرت ابوبكر رضي الله عنه او حضرت عمر رضي الله عنه خلافت طرف ته اشاره

﴿۵﴾وَعَنْ حُذَيْفَةَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

اوحضرت حذيفه رضي الله عنه وايي چې رسول كريم صلى الله عليه وسلم وفرمائيل ماته نه ده معلومه چه ستاسو منځ كې زما

إِنِّيْ لَا أَدْرِيْ مَا بَقَائِيْ فِيْكُمْ فَاقْتَدُوْا بِالَّذِيْنَ مِنْ بَعْدِيْ

ژوند اوس څومره باقي پاتې شوی نو لهذا تاسو خلق زما نه روسته ددې دوو خلقو پيروي كوي چه

أَبِيْ بَكْرٍ وَعُمَرَ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

يوبل نه روسته به زما جانشين او خليفه ګان وي او هغه ابوبكر او عمر دي . [ترمذي]

## د حضرت ابوبكر رضي الله عنه او حضرت عمر رضي الله عنه يوبل خصوصيت

﴿۶﴾وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا دَخَلَ الْمَسْجِدَ

اوحضرت انس رضي الله عنه بيان كوي رسول كريم صلى الله عليه وسلم چه به مسجد ته دا خليدو هيڅ يو به خپل سر نه شو لوړ

لَمْ يَرْفَعْ أَحَدٌ رَأْسَهُ غَيْرَ أَبِي بَكْرٍ وَعُمَرَ كَانَا

ولای سوا دابوبکر او عمر رضي الله عنهما نه صرف دادوه صحابه رضي الله عنهم وه دي ادواړه به حضور صلی الله علیه وسلم لیدو سره

يَتَبَسَّمَانِ إِلَيْهِ وَيَتَبَسَّمُ إِلَيْهِمَا رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

مسکي کیدل او حضور صلی الله علیه وسلم به دهغوی لیدو سره مسکي کیدو دا روایت ترمذي نقل کړی دی او ویلي

وَقَالَ هٰذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ.

یي دي چه دا حدیث غریب دی.

﴿۷﴾وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَرَجَ ذَاتَ يَوْمٍ وَدَخَلَ الْمَسْجِدَ

حضرت ابن عمر رضي الله عنه روایت کوي نبي کریم صلی الله علیه وسلم خپلي حجري شریفي نه راووتلو مسجد نبوي کې داسي.

وَأَبُوبَكْرٍ وَعُمَرُ أَحَدُهُمَا عَنْ يَمِينِهِ وَالْآخَرُ عَنْ شِمَالِهِ

داخل شو چې ابوبکر او عمر دحضور صلی الله علیه وسلم نبي طرف ته وو او دویم صاحب يې چپ طرف ته ووا و

وَهُوَ آخِذٌ بِأَيْدِيهِمَا فَقَالَ هٰكَذَا نُبْعَثُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ.

حضور صلی الله علیه وسلم ددواړو لاسونه خپلو لاسونو کې نیولي وو هغه وقت حضور صلی الله علیه وسلم وفرمائیل دقیامت په ورځ

رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ هٰذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ.

به مونږ دغه شان ولاړیږو دا روایت ترمذي نقل کړی دی او ویلي یي دي چه دا حدیث غریب دی.

﴿۸﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ حَنْطَبٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَأَى أَبَا بَكْرٍ

او حضرت عبدالله ابن حنطب تابعي روایت کې دي چه یو وورځ نبي کریم صلی الله علیه وسلم حضرت ابوبکر رضي الله عنه او

وَعُمَرَ فَقَالَ هٰذَانِ السَّمْعُ وَ الْبَصَرُ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ مُرْسَلًا.

حضرت عمر رضي الله عنه لیدو سره وفرمائیل دادواړه په منزله دغوږ او سترګي دي دا روایت ترمذي په طریقې ارسال نقل کړی دی.

**توضیح** : (هذان السمع والبصر) شارحینو ددې څو مطلبونه بیان کړي دي ، یو دا لکه څنګه چه د جسم په اعضاؤ کې د ټولو نه عمده عضوه سترګه او غوږ دی همدا رنګه د دین اسلام لپاره ابوبکر صدیق او عمر فاورق رضي الله عنهما په منزله د سترګی او غوږ عمده او مفید ثابتیږي ګویا په دین کې د دوی حیثیت په جسم کې د سترګې او غوږ پشان دی . دویم مطلب دا دی چه دا دواړه زما لپاره

ستركې او غوږ دي، زه د هغوی په ذريعه اوريدل كوم او كتل كوم يعنې دا زما لپاره مطيع او فرمانبرداره وزيران او مشيران دي، دا مطلب زيات واضحه دی ، محاوره هم همداسې ده . دريم مطلب دا دی چه ابوبكر صديق او عمر فاروق كائناتو كې غور كولو سره حق اوري او د حق مشاهده كوي.

## دوه وزيران په اسمان كې او دوه په ځمكه كې

| |
|---|
| ﴿۹﴾وَعَنْ أَبِي سَعِيدِنِ الْخُدْرِيِّ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا مِنْ نَبِيٍّ |
| حضرت ابو سعيد خدري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمائيل هيڅ نبي داسې نه دی تير شوی چه |
| إِلَّا وَلَهُ وَزِيرَانِ مِنْ أَهْلِ السَّمَاءِ وَوَزِيرَانِ مِنْ أَهْلِ الْأَرْضِ فَأَمَّا وَزِيرَايَ |
| د هغه دوه وزيران اسمان والاؤ نه او دوه وزيران ځمكې والاؤ نه نه وي نو آسمان والاؤ نه زما دوه |
| مِنْ أَهْلِ السَّمَاءِ فَجِبْرَئِيلُ وَمِيكَائِيلُ وَأَمَّا وَزِيرَايَ مِنْ أَهْلِ الْأَرْضِ فَأَبُوبَكْرٍ |
| وزيران خو جبرائيل عَلَيْهِ السَّلَامُ او ميكائيل عَلَيْهِ السَّلَامُ دي او ځمكې والاؤ نه زما دوه وزيران ابوبكر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ |
| وَعُمَرُ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ. |
| او عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دي [ترمذي] |

## د خلافت على منهاج النبوة موده

| |
|---|
| ﴿۱۰﴾ وَعَنْ أَبِي بَكْرَةَ أَنَّ رَجُلًا قَالَ لِرَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَأَيْتُ |
| او حضرت ابي بكره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی چې د رسول كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خدمت كې حاضر يدو سره يو سړي عرض |
| كَأَنَّ مِيزَانًا نَزَلَ مِنَ السَّمَاءِ فَوُزِنْتَ أَنْتَ |
| وكړو يا رسول الله ما خوب ليدلی دی چه ګويا يو ترازو تله آسمان نه راكوز شوه او هغه ترازو كې تاسو |
| وَأَبُو بَكْرٍ فَرَجَحْتَ أَنْتَ وَوُزِنَ أَبُو بَكْرٍ وَعُمَرُ فَرَجَحَ أَبُوبَكْرٍ |
| او ابوبكر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وتلل شوئ نو ستاسو وزن زيات شو بيا ابوبكر او عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا وتلل شول نو د ابوبكر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ |
| وَوُزِنَ عُمَرُ وَعُثْمَانُ فَرَجَحَ عُمَرُ ثُمَّ رُفِعَ الْمِيزَانُ |
| وزن زيات شو بيا عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وتلل شول نو د عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وزن زيات شو دي نه روسته ترازو |

فَاسْتَآءَ لَهَا رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَعْنِيْ فَسَآءَهُ ذٰلِكَ فَقَالَ خِلَافَةُ

او چت كړى شوه، رسول كريم صلى الله عليه وسلم د هغه سړي دي خوب سره غمجن شو حضور صلى الله عليه وسلم و فرمائيل دا خلافت

نُبُوَّةٍ ثُمَّ يُؤْتِي اللهُ الْمُلْكَ مَنْ يَّشَآءُ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُوْ دَاوُدَ.

نبوت دى دي نه روسته چه الله تعالى څوک غواړي ملک به ورته عطا کوي. [ترمذي وابوداؤد]

**توضيح**: فساء: د خوب ليدونكي د خوب نه معلومه شوه چه د خلافت على منهاج النبوة دور به د عمر فاروق رضي الله عنه په وفات او شهادت باندې ختم شي په دې باندې حضور صلى الله عليه وسلم خفه شو، او په دې باندې هم خفه شو چه د عمر فاروق رضي الله عنه د شهادت نه بعد به د فتنو دور شروع شي. د خلفاء راشدينو د خلافت لپاره شاه ولى الله رحمه الله دا اصطلاح فرمايلې ده چه د حضور صلى الله عليه وسلم عهد يې په عهد نبوت سره ياد كړى دى ،د هغه د وفات نه بعد د حضرت ابوبكر صديق او عمر فاروق رضي الله عنهما دور يې په خلافت على منهاج النبوة بطريق خاص سره ياد كړى دى او د حضرت عثمان رضي الله عنه او د حضرت على رضي الله عنه خلافت يې په خلافت على منهاج النبوة بطريق عام ياد كړى دى ليكن د دينه وروسته يې په ملک عضوض سره ياد كړى دى ، د دغه ملک عضوض څخه يې د حضرت معاويه رض خلافت او بيا د عمر بن عبد العزيز خلافت مستثنى كړى دى. په دې حديث كې د خلافت د الفاظو څخه د حضرت صديق او حضرت عمر فاروق رضي الله عنهما خلافت على منهاج النبوة ته اشاره ده.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

### د حضرت ابوبكر رضي الله عنه او حضرت عمر رضي الله عنه د جنتي كيدو بشارت

﴿۱۱﴾ عَنِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ يَطَّلِعُ عَلَيْكُمْ

حضرت ابن مسعود رضي الله عنه نه روايت دى چې نبي كريم صلى الله عليه وسلم يو ورځ و فرمائيل گورئ اوس به ستاسو

رَجُلٌ مِّنْ أَهْلِ الْجَنَّةِ فَاطَّلَعَ أَبُوْبَكْرٍ ثُمَّ قَالَ يَطَّلِعُ عَلَيْكُمْ رَجُلٌ مِّنْ أَهْلِ

مخكې يو جنتى سړى راشي نو ابوبكر راغى بيا يې و فرمائيل اوس به ستاسو مخ ته يو جنتى سړى

الْجَنَّةِ فَاطَّلَعَ عُمَرُ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ هٰذَا حَدِيْثٌ غَرِيْبٌ.

راشي نو بيا حضرت عمر راغى. دا روايت ترمذي نقل كړى دى او ويلي يې دي چه دا حديث غريب دى

## د حضرت ابوبکر رضي الله عنه او حضرت عمر رضي الله عنه نیکۍ

| |
|---|
| ﴿۱۲﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ بَيْنَا رَأْسُ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| او ام المؤمنین بي بي عائشه رضي الله عنها یان کوي د سپوږمۍ یوه شپه کې چه د حضور صلی الله علیه وسلم سر مبارک زما په |
| فِيْ حَجْرِيْ فِيْ لَيْلَةٍ ضَاحِيَةٍ إِذْ قُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللهِ هَلْ يَكُوْنُ لِأَحَدٍ |
| غیږ کې وو ما عرض وکړو یارسول الله ایا د چا دومره نیکۍ هم شته څومره چه د آسمان ستوري دي |
| مِنَ الْحَسَنَاتِ عَدَدَ نُجُوْمِ السَّمَاءِ قَالَ نَعَمْ عُمَرُ قُلْتُ |
| حضور صلی الله علیه وسلم و فرمائیل هو هغه عمر دی چه د هغه نیکۍ د آسمان دستورو برابر دي بیا ما عرض وکړو او د |
| فَأَيْنَ حَسَنَاتُ أَبِيْ بَكْرٍ قَالَ إِنَّمَا جَمِيْعُ حَسَنَاتِ عُمَرَ كَحَسَنَةٍ |
| ابوبکر رضي الله عنه د نیکۍ و څه حال دی حضور صلی الله علیه وسلم و فرمائیل د عمر تمامي نیکۍ د ابوبکر د نیکۍ و نه |
| وَّاحِدَةٍ مِّنْ حَسَنَاتِ أَبِيْ بَكْرٍ. رَوَاهُ رَزِيْنٌ. |
| دیوې نیکۍ برابر دي [روایت کړې دې رزین] |



## باب مناقب عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ
# د حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د مناقبو بيان

حب النبي رسول الله مفترض | وحب اصحابه نور ببرهان
من كان يعلم ان الله خالقه | لايرمين ابابكر ببهتان
ولا ابا حفص الفاروق صاحبه | ولا الخليفة عثمان بن عفان
اما علي فمشهور فضائله | والبيت لايبتنى الا باركان
فلو ان السماء دلت لمجد | ومكرمة دلت لهم السماء

**نوم او نسب**: نوم يې عثمان دی ، د پلار نوم يې عفان دی ، لقب يې ذوالنورين دی ، په پنځم پښت کې يې د نبی اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره نسب يوځای کيږي ،هغه د نبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نزدې رشته دار وو .

**حليه مبارکه**: د هغه ولادت د فيل د واقعې نه شپږ کاله وروسته وشو ، د صديق اکبر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په محنت سره په اسلام باندې مشرف شو ، د هغه قد متوسط وو او رنګ يې سپين مائل زيړوالي ته وو، په مخ باندې يې د دانو يو څو نښانه وو، د هغه سينه خلاصه او ږيره يې ګڼه وه ، د اسلام نه مخکې هم په قريشو کې لوی معزز ګڼل کيدلو . په حياء کې يې نظير پخپله دی وو، په سخاوت کې هغه ضرب المثل وو، د نبی مکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دوه لورګانې حضرت رقيه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا او حضرت ام کلثوم رَضِيَ اللهُ عَنْهَا يو د بل پسې دده په نکاح کې راغلې ،د حضرت عمر فاورق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه بعد هغه د خلافت لپاره منتخب کړی شو او دوولس ورځې کم دوولس کاله مسند د خلافت ته د رونق ورکولو نه بعد په ۱۸ذوالحجة سنه ۳۵ھ کې په ډير مظلوميت سره د باغيانو په لاس شهيد کړی شو او د مدينې منورې په مشهور قبرستان بقيع غرقد کې دفن کړی شو ، د هغه قبر بلکل ښکاره په نظر راځي ، هر زائر د هغه زيارت کولی شي .

**يو څه حالات**: د اسلام د قبلولو نه مخکې يې کله هم شرابو ته لاس وروړی نه دی ، نه يې کله زنا کړې او نه يې کله د بت مخې ته سجده لګولې ده ، د حيا غلبه وهورباندې ، د غسل لپاره به يې چې کپړې لرې کولې نو کمره به يې بنده کړه په ناسته به يې په غسل خانه کې غسل کولو ، د ودريدو جرأت به يې کولی نشو ، په بيعت اسلام کې يې چې کله د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره لاس ولګيدلو نو مرګه پورې يې هغه لاس شرمګاه سره ونه لګولو . په ټولو غزواتو کې د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره شريک پاتې شوی، د بدر په جنګ کې د حضور اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په حکم وروسته پاتې شو مګر

بدري شمار کړی شو ، په اسلام باندې يې خپل ذاتي مال بې دريغه خرچ کړلو ، د مسجد نبوي په
توسيع او د بئر رومه په اخيستلو او د جيش عسره په تيارۍ کې يې خپل ډير مال د الله تعالی په رضا
کې مصرف کړلو ، د فاروق اعظم نه وروسته يې د اسلام دين سنبال کړلو او د فارس په اطرافو او د
افريقه په حدودو کې يې لويې غزاګانې وکړې او ډيرې علاقې د اسلام د بيرغ لاندې راغلې، د
ايران بادشاه يزدګرد دده په عهد کې قتل کړی شو ، هغه په عشره مبشرو کې حسابيږي ،د هغه
خلافت په ابتدائی شپږو کلونو کې په سکون سره روان وو ، بيا د عبد الله بن سبا يهودي په منافقانه
پروپيګنډو سره د مصر خلک راغلل او داعتراض کونکو يوه ډله مدينې منورې ته راغله ، څلويښت
ورځې يې د هغه کور محاصره کړلو او بيا په ۸ ذوالحجة سنه ۳۵ ه کې په کور کې د ۸۸ کالو په عمر
د غاړې له طرفه ذبح کړی شو چې په دې سره د الله تعالی د غضب توره د پوښ نه بهر شوله چې تر
اوسه په امت کې چليږي ۔

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

﴿۱﴾ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كَانَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُضْطَجِعًا فِيْ بَيْتِهِ

ام المؤمنين بي بي عائشه رضي الله عنها بيان کوي يو ورځ رسول کريم صلی الله عليه وسلم خپل کور کې خپل ونونه يا

كَاشِفًا فَخِذَيْهِ أَوْ سَاقَيْهِ فَاسْتَأْذَنَ أَبُوْبَكْرٍ

پونډۍ خلاصې پروت وو چې حضرت ابوبكر رضي الله عنه د حاضريدو اجازت وغوښتو حضور صلی الله عليه وسلم هغه

فَأَذِنَ لَهُ وَهُوَ عَلَى تِلْكَ الْحَالِ فَتَحَدَّثَ

دننه راوغوښته او هغه حالت کې پروت وو حضرت ابوبكر رضي الله عنه څه وخته پورې ناست وو خبرې يې

ثُمَّ اسْتَأْذَنَ عُمَرُ فَأَذِنَ لَهُ وَهُوَ كَذٰلِكَ

کولې بيا حضرت عمر رضي الله عنه د حاضريدو اجازت وغوښته حضور صلی الله عليه وسلم هغه دننه را وبللو او هغه شان

فَتَحَدَّثَ ثُمَّ اسْتَأْذَنَ عُثْمَانُ فَجَلَسَ

پروت وو حضرت عمر رضي الله عنه د حضور صلی الله عليه وسلم سره خبرې کولې بيا حضرت عثمان رضي الله عنه حاضريدو اجازت

رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَسَوّٰى ثِيَابَهُ

وغوښته نو رسول کريم صلی الله عليه وسلم راپورته کيدو شه او کيناسته او خپلې کپړې يې سمې کړلې

خَرَجَ قَالَتْ عَائِشَةُ دَخَلَ أَبُوبَكْرٍ فَلَمْ تَهْتَشَّ

بي عائشي رضي الله عنها عرض وكړو يا رسول الله حضرت ابو بكر دننه راغی نو تا سونه څه حركت وكړو او نه

وَلَمْ تُبَالِهِ ثُمَّ دَخَلَ عُمَرُ فَلَمْ تَهْتَشَّ

ود هغوی پروا وكړه دغه شان حضرت عمر رضي الله عنه دننه راغی نو تا سو هغه وقت هم نه حركت وكړو

لَهُ وَلَمْ تُبَالِهِ ثُمَّ دَخَلَ عُثْمَانُ فَجَلَسْتَ

او نه مو د هغه پروا وكړه خو څه وقت چې حضرت عثمان رضي الله عنه دننه داخل شو نو تا سو فورًا پورته كيدو

وَسَوَّيْتَ ثِيَابَكَ فَقَالَ أَلَا أَسْتَحْيِي مِنْ رَجُلٍ

سره كيناستئ او خپلي كپړي مو درستي كړلي حضور صلى الله عليه وسلم و فرمائيل ايا زه د هغه سړي نه حيا ونه كړم

تَسْتَحْيِي مِنْهُ الْمَلَائِكَةُ. وَ فِي رِوَايَةٍ قَالَ إِنَّ

چې د هغه نه فريشتي هم حيا كوي او يو روايت كي دا الفاظ دي چې حضور صلى الله عليه وسلم و فرمائيل حقيقت

عُثْمَانَ رَجُلٌ حَيِيٌّ وَ إِنِّي خَشِيتُ إِنْ أَذِنْتُ

دا دی چې عثمان رضي الله عنه ډير حيا دار سړی دی ما محسوسه كړه كه عثمان رضي الله عنه دي حالت كي راوبلم هغه

لَهُ عَلَى تِلْكَ الْحَالَةِ أَنْ لَا يَبْلُغَ إِلَيَّ

به زما نه خپل مقصود پوره نه كړي يعني كه هغه ما دي حالت كي ووينې نو د غلبه ادب شرم او حيا نه

فِي حَاجَتِهِ. رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

به ما سره نه كينې او كوم مقصد د پاره چې راغلی دی د هغه پوره كولو نه بغير به بيرته لاړ شي [مسلم]

**توضيح**: كاشفا عن فخذيه: دا بی تكلفه كيناستلو ته اشاره ده، ددې مطلب دا نه دی چې د حضور صلى الله عليه وسلم ورنونه بلكل ښكاره وو، هغه صلى الله عليه وسلم پخپله ورنونو ته عورت ويلو سره د پټولو حكم كړی دی.

تهتش: ای لم تتحرک لاجله يعني تا هيڅ اهتمام ونكړو لكه څنګه چې په بی تكلفانه انداز كې وې هماغسې پاتې شو. بعضو ددې لفظ ترجمه په هشاش بشاش سره كړې ده يعني د هغو لپاره هشاش

بشاش نه شو ولم تباله: یعني هیڅ پروا او اهتمام دي ونکړو.

تستحیي منه الملائکة: وایي یو ځل په مدینه منوره کې د یوې قضیې په موقع باندې د حضرت عثمان رضي الله عنه سینه خلاصه شوه نو ملائکي وروسته شوې، حضور صلی الله علیه وسلم حضرت عثمان رضي الله عنه ته د سینې پټولو حکم وکړو نو ملائکي واپس راغلې، د حضور اکرم صلی الله علیه وسلم په پوښتنې باندې ملائکو وویل چې د هغه د سینې خلاصیدو په وجه د هغه نه د حیاء په بناء باندې مونږ وروسته شو، د حضور صلی الله علیه وسلم د اهتمام یوه وجه خو همدا د عثمان رضي الله عنه حیاء وه، دویم مطلب دا چې حضرت عثمان رضي الله عنه د کوم حاجت لپاره راغلی وو، کچیرې حضور صلی الله علیه وسلم همداسې بی تکلفه پاتې شوی وای نو حضرت عثمان رضي الله عنه خپل خواست (غوښتنه) پیش کولی نشو.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِيْ

## حضرت عثمان رضي الله عنه د حضور صلی الله علیه وسلم رفیق جنت دی

| |
|---|
| ﴿۲﴾ عَنْ طَلْحَةَ بْنِ عُبَيْدِ اللهِ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| حضرت طلحه ابن عبید الله رضي الله عنه وايي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمائیل د هر نبي یو رفیق یعني مهربان |
| لِكُلِّ نَبِيٍّ رَفِيْقٌ وَرَفِيْقِيْ يَعْنِيْ فِي الْجَنَّةِ عُثْمَانُ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ |
| ملګری او دوست وي او زما رفیق یعني په جنت کې عثمان رضي الله عنه دی دا روایت ترمذي نقل کړی دی |
| وَرَوَاهُ ابْنُ مَاجَةَ عَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ هٰذَا حَدِيْثٌ |
| او ابن ماجه هم دا روایت د حضرت ابو هریره رضي الله عنه نه نقل کړی دی او ترمذي ویلي دي چې دا حدیث |
| غَرِيْبٌ وَلَيْسَ إِسْنَادُهُ بِالْقَوِيِّ وَهُوَ مُنْقَطِعٌ. |
| غریب دی او د دې اسناد قوي نه دی او دا منقطع دی. |

**توضیح**: حضرت عثمان رضي الله عنه کچیرې د حضور صلی الله علیه وسلم په رفاقت کې په جنت کې وي نو دا د هغه لوی ذاتي اعزاز دی، د دې مطلب دا نه دی چې د حضور صلی الله علیه وسلم به کوم بل رفیق نه وي دا د اعزازاتو او نوازشاتو د تحفو ځانته ځانته تقسیم دی یوه تحفه د بلې تحفې منافي نه ده:

یہ رتبہ بلند ملا جس کو مل گیا — ہر مدعی کے واسطے دار و رسن کہاں؟

## دجهاد په لار کې مالي قرباني

﴿۲﴾ وَعَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ خَبَّابٍ قَالَ شَهِدْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

اوحضرت عبدالرحمٰن بن خباب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ بيان کوي هغه وقت زه هم دنبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مجلس مبارک کې

وَهُوَ يَحُثُّ عَلَى جَيْشِ الْعُسْرَةِ

حاضروم کوم وقت چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دجيش عسره دمالي امداد دپاره خلقوته جذبه ورکوله

فَقَامَ عُثْمَانُ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللهِ عَلَيَّ مِائَةُ

حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ اودريدلو اوعرض يې وکړو يارسول الله دالله تعالٰى په لار کې په کار راتلو دپاره سل

بَعِيْرٍ بِأَحْلَاسِهَا وَأَقْتَابِهَا فِيْ سَبِيْلِ اللهِ ثُمَّ

اوښان سره دهغوی دجهولونو اوپالانونو زه په خپله ذمه اخلم حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بيا خلق هغه جنګ دپاره

حَضَّ عَلَى الْجَيْشِ فَقَامَ عُثْمَانُ فَقَا

دامداد اومعاونت طرف ته متوجه اوراغب کړل نوحضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ اودريدلو اوعرض يې وکړو

عَلَيَّ مِائَتَا بَعِيْرٍ بِأَحْلَاسِهَا وَأَقْتَابِ

چې دمخکنو سل اوښانو نه علاوه مزيد دوه سوه اوښان دهغوی دجهولونو اوپالانونو يعني پوره

فِيْ سَبِيْلِ اللهِ ثُمَّ حَضَّ عَلَى الْجَيْ

سازاوسامان سره دالله په لار کې په خپله ذمه اخلم بيا دريمه موقع هم داسې وه چې نبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خلقو

فَقَامَ عُثْمَانُ فَقَالَ عَلَيَّ ثَلَاثُ مِائَةِ بَ

ترغيب ورکاوه نوبيا حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ اودريدلو اوعرض يې وکړو چې درې سوه اوښان سر

بِأَحْلَاسِهَا وَأَقْتَابِهَا فِيْ سَبِيْلِ اللهِ

هغوی دجهولونو اوپالانونو دالله په لار کې پخپله ذمه اخلم عبدالرحمٰن بن خباب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي

| رَأَيْتُ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَنْزِلُ عَنِ الْمِنْبَرِ |
|---|
| لیدل چې رسول کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ منبر نه خکته شو وي فرمائیل یې چې د دې عمل نه روسته چې عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ |
| وَهُوَ يَقُوْلُ مَا عَلَى عُثْمَانَ مَا عَمِلَ بَعْدَ هٰذِهِ مَا عَلَى عُثْمَانَ |
| څه کوي د هغه نه به ورته هیڅ نقصان نه وي د دې نه وروسته چې عثمان څه کوي کوم نقصان به |
| مَا عَمِلَ بَعْدَ هٰذِهِ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ. |
| ورته نه وي . [روایت کړې دې ترمذي] |

**توضیح** : **جیش العسرة**: جیش لښکر ته ویل کیږي او العسرة تنګۍ ته ویل کیږي د دینه غزوه تبوک مراد ده چې د یوې میاشتې په مسافت باندې وه ، د سختې ګرمۍ موسم وو ، لرې سفر وو ، په مدینه کې د میوو او فصلونو د کټ کولو زمانه وه ، نفیر عام هم وو ، د دیرش زره لښکر ، د سوارلیو مسئله وه ، د څپلیو مسئله وه ، د خوراک د شیانو مسئله وه ، هلته د جنګیدونکي درې لکه رومی عسکرو سره مقابله وه په دغه وجه حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په ډیر اهتمام سره د چندې بار بار ګذارش وکړو او حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ اعزاز حاصل کړلو . **(احلاس)** د حلس جمع ده د اوښ پالان او د کجاوې نه لاندې چې کومه پرده وي هغه مراد ده .

**اقتاب**: د قتب جمع ده پالان ته ویل کیږي اوښ سره د ساز و سامان مراد دی .

**علي**: دا د نذر لپاره استعمالیږي چې په ما باندې نذر ده چې دومره به ورکوم ، ابوعمرو فرمایلي چې حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په دې غزوه کې نهه سوه پنځوس اوښان ورکړل او پنځوس آسونه یې ورکړل ترڅو زر پوره شي .

**ما علی عثمان**: دا د دربار نبوی نه حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته اعزازی تحفه ملاؤ شوه چې د نن نه بعد که حضرت عثمان هیڅ عمل هم ونکړي نو هغه ته به هیڅ نقصان نه وي یعنې د عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ټول سابقه او لاحقه خطاګانې معاف دي ، په دې کې د حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د حسن خاتمه او جنتي کیدلو بشارت دی . علماؤ لیکلي دي چې د دې اعمالو نه د نوافلو اعمال مراد دي چې د فرائضو نه علاوه که حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ تر مرګه پورې کوم نفلي نیک کار ونکړي نو پرواه نشته ، دغه نیکي د ټولو نوافلو قائم مقام ده . صحابه کرام د دې اعزازاتو نه وروسته کمزوري شوي نه دي بلکه د هغوی اعمال به نور هم تیز شولو ، د دې حدیث ته په کتلو د هغو خلکو سترګې خلاصیدل پکار دي

چې په حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ باندې هر قسم اعتراضونه کوي حالانکه د حضرت عثما
خطاګانې د مخکې نه کالعدم ګرځول شوي دي ، په خلافت او ملوکيت کې ابوالاعلی مو
صاحب د حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په خلاف سخت قلم استعمال کړې دی ، په راتلونکي حديث
دغسې اعزازي جمله ده په هغه حديث کې دي چې حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ يو زر اشرفۍ ورکړې

## دعثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ایثار او قرباني

﴿۴﴾ وَعَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ سَمُرَةَ قَالَ جَاءَ عُثْمَانُ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ
او حضرت عبد الرحمٰن بن سمره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي هغه وقت چې جيش عسره دجهاد سامان تيار اوج
بِأَلْفِ دِيْنَارٍ فِيْ كُمِّهِ حِيْنَ جَهَّزَ جَيْشَ الْعُسْرَةِ فَنَ
کيده حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ يو هزار دينار دخپل قميص په لستوڼي کې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته راوړل
فِيْ حَجْرِهِ فَرَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُ
حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په غيږ کې يې کيخودل ما وليدل چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغه دينار خپلې غيږې کې اړول
فِيْ حَجْرِهِ وَهُوَ يَقُوْلُ مَا ضَرَّ عُثْمَانُ مَا
اړولو سره کتل او فرمائيل يې د نن ورځ دې مالي ايثار نه روسته که عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه څه ګناه و
بَعْدَ الْيَوْمِ مَرَّتَيْنِ . رَوَاهُ أَ
نو هغه ته به څه نقصان نه وي دا الفاظ حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دوه واره ارشاد وفرمائيل [ا

## د حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ بيعت رضوان اعزاز

﴿۵﴾ وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ لَمَّا أَمَرَ رَسُوْلُ اللهِ بِبَيْعَةِ الرِّ
او حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي کوم وقت چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صحابو رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته د بيعة الرضوان حکم و
كَانَ عُثْمَانُ رَسُوْلَ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى
نو هغه وقت حضرت عثمان د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د خصوصي نماينده په حيثيت سره مکې ته تل
فَبَايَعَ النَّاسَ فَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ
حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د خلقو نه د ځان قربانولو بيعت اخستلو او هر کله چې تمامو مسلمانانو بيعت وکړ

إِنَّ عُثْمَانَ فِيْ حَاجَةِ اللهِ وَحَاجَةِ رَسُوْلِهِ

حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هلته موجود نه وو نو رسول کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمائيل عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دالله د دين او د الله

فَضَرَبَ بِإِحْدٰى يَدَيْهِ عَلَى الْأُخْرٰى فَكَانَتْ يَدُ

د رسول په کار باندې تلی دی او دې ويلو سره خپل يو لاس يې بل لاس باندې ووهلو نو د رسول

رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِعُثْمَانَ خَيْرًا

کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغه لاس چې د حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د طرف نه وو د باقي تمامو صحابو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ د لاسونو نه

مِنْ أَيْدِيْهِمْ لِأَنْفُسِهِمْ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

زيات بهتر او افضل وو کوم چې د هغوی د خپل طرف نه وو .[ترمذي]

**توضيح**: په صلحه د حديبيه کې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په طور د سفير قريشو ته ليږلی وو ، قريشو هغه د څه وخت لپاره محبوس وساته ، دلته مشهوره شوه چې عثمان شهيد کړی شو د دې بدل اخيستلو لپاره حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د کيکر يوې ونې لاندې د يونيم زر صحابه کرامو نه بيعت واخيستلو ،حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ چونکې نه وو حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د هغه لپاره هم بيعت واخيستلو مګر خپل يو لاس يې د حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ لاس وګرځولو او بيعت يې واخيسته حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ لپاره د غه بيعت ځکه واخيستلو چې د هغه ډير لوی فضيلت راتلونکی وو . حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په دې احتمال بيعت واخيستلو چې کچيرې هغه ژوندی وي نو هغه هم په دې بيعت کې شريک شي او د بيعت رضوان فضيلت پيدا کړي لکه همداسې وشوه ، يو صحابی فرمايي چې مونږ د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په لاس باندې د مرګ بيعت کړی وو .

## د دار په واقعه کې د عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ جرأت

﴿۶﴾ عَنِ وَعَنْ ثُمَامَةَ بْنِ حَزْنِ نِ الْقُشَيْرِيِّ قَالَ شَهِدْتُ الدَّارَ

او حضرت ثمامه ابن حزن قشيري بيان کوي زه هغه وقت د حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په مکان کې موجود

حِيْنَ أَشْرَفَ عَلَيْهِمْ عُثْمَانُ فَقَالَ أَنْشُدُكُمْ اللهَ وَالْإِسْلَامَ

وم کله چې هغه د باغيانو ته مخاطب وو او ورته يې و فرمائيل زه د الله او اسلام واسطه ورکولو سره

هَلْ تَعْلَمُوْنَ أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

ستا سو نه پوښتنه کوم ایا تا سو ته معلومه ده چې کله رسول الله صلی الله علیه وسلم د مکي نه په هجرت کولو

قَدِمَ الْمَدِيْنَةَ وَلَيْسَ بِهَا مَاءٌ يُسْتَعْذَبُ غَيْرَ بِئْرِ

مدیني ته تشریف راوړی وونو هغه وقت مدینه کي د رُومه کوهي نه علاوه د خوږو اوبو کوهی نه وو

رُوْمَةَ فَقَالَ مَنْ يَشْتَرِيْ بِئْرَ رُوْمَةَ يَجْعَلُ دَلْوَهُ

او بیا چي حضور صلی الله علیه وسلم وفرمائیل کوم سړی دی چې رومه کوهي واخلي او خپله بوقه د مسلمانانو بوقي

مَعَ دِلَاءِ الْمُسْلِمِيْنَ بِخَيْرٍ لَّهُ مِنْهَا فِي

سره جوړه کړی د دي نیکۍ او بهتر اجر په بدله کې چې دا کوهي خرید کولو او وقف کولو والا ته به

الْجَنَّةِ فَاشْتَرَيْتُهَا مِنْ صُلْبِ مَالِيْ

د دي کوهي په سبب جنت حاصلیږي نو هغه زه وم چې په خپل اصل او خالص مال باندي مي دا کوهی

وَأَنْتُمُ الْيَوْمَ تَمْنَعُوْنِيْ أَنْ أَشْرَبَ مِنْهَا حَتّٰى

واخسته او نن تا سو ما د دي کوهي د اوبو څکلو نه منع کوئ د دي پوري چې زه د سمندر یعني د

أَشْرَبَ مِنْ مَّاءِ الْبَحْرِ فَقَالُوْا اَللّٰهُمَّ نَعَمْ

سمندر په شان ترخي اوبو څکلو باندي مجبور کیږم خلقو وویل ( هو ای الله مونږ ته د دي علم دی

فَقَالَ أَنْشُدُكُمُ اللهَ وَالْإِسْلَامَ هَلْ

بیا حضرت عثمان رضي الله عنه وفرمائیل زه د الله او اسلام واسطه درکولو سره ستا سو نه پوښتنه کوم ایا

تَعْلَمُوْنَ أَنَّ الْمَسْجِدَ ضَاقَ بِأَهْلِهِ

تا سو ته معلومه ده چې کوم وقت مسجد نبوي صلی الله علیه وسلم د مونځ کونکو د زیاتیدو په سبب تنګیدلو نو

فَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ يَشْتَرِيْ بُقْعَةَ آلِ فُلَانٍ

رسول کریم صلی الله علیه وسلم وفرمائیل کوم سړی دی چې د فلاني سړي د اولاد نه ځمکه خرید کړی او د هغه په

فَيَزِيْدُهَا فِي الْمَسْجِدِ بِخَيْرٍ لَّهُ مِنْهَا فِي الْجَنَّةِ

ذریعه مسجد له توسیع ورکړي وقف کونکي ته به ددي ځمکی په سبب جنت حاصلیږي نو دازه

فَاشْتَرَيْتُهَا مِنْ صُلْبِ مَالِيْ فَأَنْتُمُ الْيَوْمَ

وم چې هغه ځمکه مي په خپل اصل او خالص مال سره خرید کړله اونن تا سو ما مسجد کې ددوه

تَمْنَعُوْنَنِيْ أَنْ أُصَلِّيَ فِيْهَا رَكْعَتَيْنِ فَقَالُوْا اَللّٰهُمَّ نَعَمْ

رکعاته مونځ کولو نه منع کوی خلقو دي اوریدو سره وویل هو (ای الله مونږ ته ددي علم دی) بیا

قَالَ أَنْشُدُكُمُ اللّٰهَ وَالْإِسْلَامَ هَلْ

حضرت عثمان رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وفرمائیل زه د الله او اسلام واسطه درکولو سره ستا سو نه پوښتنه کوم ایا تاسو

تَعْلَمُوْنَ اَنِّيْ جَهَّزْتُ جَيْشَ الْعُسْرَةِ مِنْ مَالِيْ

ته معلومه ده چې هغه زه وم چې د جیش عسرة تیاري مي په خپل مال سره کړی وو او خلقو دي

قَالُوْا اَللّٰهُمَّ نَعَمْ قَالَ أَنْشُدُكُمُ اللّٰهَ

اوریدو سره وویل (هو ای الله مونږ ته معلومه ده) بیا حضرت عثمان رضي الله عنه وفرمائیل زه د الله او

وَالْإِسْلَامَ هَلْ تَعْلَمُوْنَ أَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

اسلام واسطه درکولو سره ستا سو نه پوښتنه کوم ایا تا سو ته دا معلومه ده چې یو ورځ رسول کریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

كَانَ عَلٰى ثَبِيْرِ مَكَّةَ وَمَعَهُ أَبُوْبَكْرٍ وَّعُمَرُ وَأَنَا

د مکي په ثبیر غره ولاړ وو او حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره حضرت ابوبکر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ حضرت عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ او زه هم وم او

فَتَحَرَّكَ الْجَبَلُ حَتّٰى تَسَاقَطَتْ حِجَارَتُهُ بِالْحَضِيْضِ فَرَكَضَهُ بِرِجْلِهٖ

دغه خوزیدو سره کاڼي لاندي طرف ته اورغړیدل په غورځیدو سو نو حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ غره ته لغته

قَالَ اسْكُنْ ثَبِيْرُ فَإِنَّمَا عَلَيْكَ نَبِيٌّ وَّصِدِّيْقٌ

ورکړه ورته یې وفرمائیل په آرام شه حرکت مه کوه داوقت پر تا باندي یو نبي دی یو صدیق دی او دوه

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وَشَهِيْدَانِ | قَالُوْا | اَللّٰهُمَّ | نَعَمْ | قَالَ | اَللّٰهُ | اَكْبَرُ |
| حقيقي شهيدان دي خلقو وويل هو (اى الله مونږ ته دد دي علم دى) حضرت عثمان رضي الله عنه دا الله اكبر | | | | | | |
| شَهِدُوْا | وَرَبِّ | اَلْكَعْبَةِ | اِنِّيْ | شَهِيْدٌ | | |
| نعره ولګوله او وي ويل دي خلقو زما د خبرو تصديق کړى د کعبي په رب قسم زه يقينًا شهيدېم | | | | | | |
| ثَلَاثًا. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَالنَّسَائِيُّ وَالدَّارَقُطْنِيُّ. | | | | | | |
| دا الفاظ هغوى دري واره وفرمائيل. [ترمذي نسائي دارقطني] | | | | | | |

**توضيح**: (الدار) د حضرت عثمان رضي الله عنه اول شپږ کاله ډير ښه تير شول بيا د هغه نه هغه ګوته په بير ادريس کې وغورځيده چې د نبى کريم صلى الله عليه وسلم وه او د حضراتو شيخينو نه بعد د حضرت عثمان رضي الله عنه ته لاس کې راغلې وه ،د خلافت په باقى شپږ کلونو کې قسما قسم شورشونه شروع شول ، عبد الله بن سبا به د :روغو الزاماتو په لګولو سره د هغه د جنرالانو نه خلک بدګمانه کول، په مکه او مدينه کې د هغه پرپيګنډه ناکامه شوه نو شام ته لاړه بيا کوفې ته لاړه مګر په يو ځاى کې هم ده ته په زړه پورې کاميابى ملاؤ نشوه ، بيا دا خبيث مصر ته لاړه او هلته دده پروپيګنډه کاميابه شوه ، هغه يوه ډلګۍ تياره کړه او مدينې ته يې روانه کړه ، د اعتراض کونکو دغه ډله کې محمد بن ابى بکر هم وو ، اول مذاکرات وشول او کاميابه شول ، د مصر ګورنر عبد الله بن ابى سرح لرې کړى شو او د ګورنرۍ واک د محمد بن ابى بکر په لاس کې ورکړى شو چې د هغه په رسيدلو به هغه د مصر ګورنر مقرر کيږي ، دلته مروان بن حکم يو سازشي سړى وو ، هغه د حضرت عثمان رضي الله عنه په آس باندې د هغه غلام سپور کړو او مصر ته يې روان کړلو او د مصر د ګورنر عبد الله بن ابى سرح په نوم يې خط وليکلو چې څنګه محمد بن ابى بکر مصر ته ورسيږي نو هغه قتل کړه . په لاره کې دغه غلام ونيول شو په تفتيش باندې د هغه د لاس نه يو خط ووته چې په هغه باندې د حضرت عثمان رضي الله عنه د ګوتې مهر وو ، محمد بن ابى بکر خپلو ملګرو ته وويل چې اوس واپس لاړ شئ ددې خبرې تحقيق وکړئ ، نو دغه معترضين مدينې ته واپس راغلل او د حضرت عثمان رضي الله عنه نه يې پوښتنه وکړه چې دا آس د چا دى؟ هغه وفرمايل زما دى ! دا مهر د چا دى؟ ويې فرمايل چې زما د ګوتې دى! دا خط د چا دى؟ ويې فرمايل چې په الله قسم ماته معلومه نه ده چې دا خط د چا دى؟ چې کله د مدينې د خلکو د خطونو نمونې حاصلې کړى شوې نو معلومه شوه چې دا خط مروان بن حکم ليکلى دى ، اعتراض کونکو وويل چې مروان مونږ ته حواله کړه ، حضرت عثمان رضي الله عنه نرم مزاجه وو ، ويې فرمايل چې داسې کولى نشم ، په دې باندې اعتراض کونکو د هغه کور محاصره

کړو ، تر څلویښتو ورځو پورې یې خوراک او اوبه بندي کړې او محاصره یې جاري وساتله ، په دغه دوران کې حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ څو کرته د معترضینو او نورو خلکو سره د کور د کړکۍ نه خطاب وکړلو او په ده باندې د لګیدلو الزاماتو معقول جوابونه یې ورکړل ، زیر بحث حدیث د دغه خطاب یوه حصه ده مګر په دې کې حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خپل منقبت ، بشارت او خپل حیثیت او بیا شهادت واضحه کړې دی ، بیا هم بلواګرو او باغیانو هغه محصور وساتلو او د څلویښتو ورځو محاصرې نه بعد محمد بن ابی بکر او نورو معترضینو د کور د شا دیوال کې سورې کولو سره دننه داخل شول او هغه یې شهید کړلو .

بئر رومة: دا په وادی عقیق کې د مسجد قبلتین سره یو لوی کوهی وو چې د یو یهودي ؤ ، حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هغه واخیسته او د مسلمانانو لپاره یې وقف کړلو ، یهودي به د هغه کوهي اوبه په مسلمانانو باندې په ګرانه خرڅولې .

## حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په حق باندې ؤ

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ﴿۷﴾ وَ عَنْ مُرَّةَ بْنِ كَعْبٍ قَالَ سَمِعْتُ مِنْ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ | | | | |
| او حضرت مره ابن کعب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي ما د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغه ارشادات اوریدلي چې واقع کیدونکو | | | | |
| وَ | ذَكَرَ | الْفِتَنَ | فَقَرَّ | بَهَا |
| فتنو نه د ډکو حادثاتو پیشنګوئي ذکر فرمائیلې وو د هغه فتنو تعلق یې بالکل قریبي زمانه کې | | | | |
| فَمَرَّ | رَجُلٌ | مُقَنَّعٌ | فِيْ | ثَوْبٍ |
| قائم کړو دي او دې وقت چې د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د دې ارشاداتو سلسله جاري وه یو سړي پر سر کپړه اچولې | | | | |
| فَقَالَ | هٰذَا | يَوْمَئِذٍ | عَلَى | الْهُدٰى |
| مخ ته تیر شو نو حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمائیل دا سړی به دې پر فتن او پر اشوب ورځو کې پر حق باندې | | | | |
| فَقُمْتُ | إِلَيْهِ | فَإِذَا | هُوَ | |
| وي حضرت مره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دې الفاظو اوریدو سره زه پاڅیدم او هغه سړی طرف چې | | | | |
| عُثْمَانُ | بْنُ | عَفَّانَ | قَالَ | فَأَقْبَلْتُ | عَلَيْهِ |
| وکورم دا سړی حضرت عثمان بن عفان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دی د حضرت مره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ بیان دی بیا ما د حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ | | | | |

| | | | |
|---|---|---|---|
| بِوَجْهِهٖ | فَقُلْتُ | هٰذَا | قَالَ |

مخ تاوولو سره حضور صلی الله علیه وسلم ته وښودلو او پوښتنه مي وکړه چې دا صاحب دی حضور صلی الله علیه وسلم و فرمائیل

نَعَمْ . رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَابْنُ مَاجَةَ وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ ذَا حَدِيْثٌ حَسَنٌ صَحِيْحٌ.

هو . دا روایت ترمذي او ابن ماجه نقل کړی دی او ترمذي ویلي دي چې دا حدیث حسن صحیح دی.

## د خلافت نه پریخودل

﴿۸﴾ وَ عَنْ عَائِشَةَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ قَالَ يَا عُثْمَانُ

او ام المؤمنین بي بي عائشه رضي الله عنها وایي یو ورځ رسول کریم صلی الله علیه وسلم و فرمائیل ای عثمان! دي کې

إِنَّهُ لَعَلَّ اللهَ يُقَمِّصُكَ قَمِيْصًا فَإِنْ أَرَادُوْكَ

شک نشته چې الله تعالی به شاید تاته یو قمیص یعني قمیص د خلافت واغوندي که خلق ستا هغه

عَلٰى خَلْعِهٖ فَلَا تَخْلَعْهُ لَهُمْ.

قمیص او خکل غواړي او تا په دي مجبوروي نو د هغوی په وجه هغه قمیص هیڅ کله مه او باسه دا

رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَابْنُ مَاجَةَ وَ قَالَ التِّرْمِذِيُّ فِي الْحَدِيْثِ قِصَّةٌ طَوِيْلَةٌ.

روایت ترمذي او ابن ماجه نقل کړی او ترمذي ویلي دي د دي حدیث ضمن کي یو طویله قصه ده

﴿۹﴾ وَ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ ذَكَرَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ فِتْنَةً

او حضرت ابن عمر رضي الله عنه وایي یو ورځ رسول کریم صلی الله علیه وسلم مستقبل قریب کې د واقع کیدونکو پرفتن

فَقَالَ يُقْتَلُ فِيْهَا هٰذَا مَظْلُوْمًا لِعُثْمَانَ .

حادثاتو ذکر وکړو او د حضرت عثمان رضي الله عنه په حق کي یي و فرمائیل چې دا سړی به هغه حادثاتو کي

رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَ قَالَ هٰذَا

مظلومانه طور سره ووژلی شي ( شهید شي ) دا روایت ترمذي نقل کړی دی او ویلي یې دي چې

حَدِيْثٌ حَسَنٌ غَرِيْبٌ إِسْنَادًا.

دا حدیث د اسنادو د اعتبار نه حسن غریب دی .

## زه به صبر کوم

| |
|---|
| ﴿۱۰﴾ وَعَنْ أَبِي سَهْلَةَ قَالَ لِي عُثْمَانُ يَوْمَ الدَّارِ إِنَّ |
| ابو سهله فرمایي چې عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هغه ورځ چې په کومه ورځ هغه شهید کړی شو وفرمائیل |
| رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدْ عَهِدَ إِلَيَّ عَهْدًا وَأَنَا |
| حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ماته یو صیت کړی وو یعنی دایی ویلی وو چې خلافت ترک نه کړي او زه پر هغه وصیت |
| صَابِرٌ عَلَيْهِ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ هٰذَا حَدِيْثٌ حَسَنٌ صَحِيْحٌ. |
| صبر کولو والایم ترمذي وایي چې دا حدیث حسن صحیح دی. |

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## یو مصري ته دابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خوله ماتوو کونکي جواب

| |
|---|
| ﴿۱۱﴾ عَنْ عُثْمَانَ ابْنِ عَبْدِاللهِ ابْنِ مَوْهَبٍ قَالَ جَاءَ رَجُلٌ مِّنْ أَهْلِ مِصْرَ يُرِيْدُ حَجَّ |
| او حضرت عثمان ابن عبد الله ابن موهب بیان کوي چې یو مصري سړی د حج بیت الله شریف په |
| الْبَيْتِ فَرَآى قَوْمًا جُلُوْسًا فَقَالَ مَنْ هٰؤُلَاءِ الْقَوْمُ |
| اراده مکي ته راغی هغه یو ځای کي څه خلق ناست ولیدل نو پوښتنه یي وکړه دا کوم خلق دي هغه |
| قَالُوْا هٰؤُلَاءِ قُرَيْشٌ قَالَ فَمَنِ الشَّيْخُ فِيْهِمْ قَالُوْا |
| ته وښودل شوه چې دا اکابر قریش دي بیا هغه پوښتنه وکړه د دوی شیخ څوک دی؟ خلقو جواب |
| عَبْدُ اللهِ بْنُ عُمَرَ قَالَ يَا ابْنَ عُمَرَ إِنِّيْ سَائِلُكَ عَنْ |
| ورکړو عبد الله ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ بیا هغه مصري شخص وویل ای ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ زه ستا سو نه څو سوالات |
| شَيْءٍ فَحَدِّثْنِيْ هَلْ تَعْلَمُ أَنَّ عُثْمَانَ فَرَّ يَوْمَ أُحُدٍ |
| کول او دهغه جواب غواړم ایا تاسو ته معلومه ده چې عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دا حد د جنګ په ورځ تښتیدلي وو |
| قَالَ نَعَمْ قَالَ تَعْلَمُ أَنَّهُ تَغَيَّبَ عَنْ بَدْرٍ |
| بیا هغه سړی پوښتنه وکړه ایا تاسو ته معلومه ده چې عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د بدر په جنګ کي غائب وو او معرکه |

وَلَمْ يَشْهَدْهَا قَالَ نَعَمْ قَالَ تَعْلَمُ

کي شريک نه شو حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ جواب ورکړو هو بيا هغه سړي وويل اياتا سو ته معلومه ده

أَنَّهُ تَغَيَّبَ عَنْ بَيْعَةِ الرِّضْوَانِ فَلَمْ يَشْهَدْهَا

چې عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حديبيه کي د بيعت رضوان په موقع غائب وو او هغه بيعت کي شريک نه شو

قَالَ نَعَمْ قَالَ اللهُ أَكْبَرُ قَالَ ابْنُ عُمَرَ

حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ورته وويل هو هغه سړي وويل الله اکبر نو حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ورته وفرمائيل

تَعَالَ أُبَيِّنْ لَكَ أَمَّا فِرَارُهُ يَوْمَ أُحُدٍ

راشه زه يې تا ته په وضاحت سره بنايم د جنګ احد په ورځ د عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د تښتيدو باره کي خو زه

فَأَشْهَدُ أَنَّ اللهَ عَفَا عَنْهُ وَأَمَّا تَغَيُّبُهُ عَنْ بَدْرٍ

ګواهي ورکوم چې د هغوی دا خبره الله تعالی معاف کړې ده او جنګ بدر کي چې عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ شريک

فَإِنَّهُ كَانَتْ تَحْتَهُ رُقَيَّةُ بِنْتُ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

شوی نه وو نو د هغه وجه دا پېښه شوې وه چې بي بي رقيه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا بنت رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د هغوی نکاح کي

وَكَانَتْ مَرِيْضَةً فَقَالَ لَهُ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

وه او هغه ورځو کي هغه سخته ناروغه وه نو رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ جنګ بدر ته د تلو نه منع کړی

إِنَّ لَكَ أَجْرَ رَجُلٍ مِّمَّنْ شَهِدَ بَدْرًا وَسَهْمَهُ

وو او هغوی ته يې فرمائيلي وو چې تا ته به هم هغه شان ثواب او حصه حاصليږي کوم چې دي جنګ

وَأَمَّا تَغَيُّبُهُ عَنْ بَيْعَةِ الرِّضْوَانِ فَلَوْ كَانَ أَحَدٌ

کي شريکيدونکي يو سړي ته حاصليږي او س پاتې شو بيعة الرضوان کي د عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه شريکيدل

أَعَزَّ بِبَطْنِ مَكَّةَ مِنْ عُثْمَانَ لَبَعَثَهُ فَبَعَثَ

نو مخکي دا حقيقت په نظر کي وساته که صحابو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ کي بل سړی د عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه زيات عزت

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| رَسُوْلُ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَ | سَلَّمَ |

اواثر لرونکي ځوک واي نو حضور صلی الله علیه وسلم به يقينا هغه ته ليږلي وو ځکه رسول کريم صلی الله علیه وسلم

عُثْمَانَ وَكَانَتْ بَيْعَةُ الرِّضْوَانِ بَعْدَ مَا ذَهَبَ عُثْمَانُ إِلَى مَكَّةَ

عثمان رضي الله عنه مکي ته وليږه او د عثمان رضي الله عنه مکي ته تلو نه روسته د بيعت رضوان واقعه پيښه شوه بيا د بيت الرضوان

فَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِيَدِهِ الْيُمْنٰى هٰذِهٖ

په وقت رسول کريم صلی الله علیه وسلم خپل ښي لاس طرف ته اشارې کولو سره فرمائيلي وو چې زما دا لاس د

يَدُ عُثْمَانَ فَضَرَبَ بِهَا عَلٰى يَدِهٖ

عثمان رضي الله عنه د لاس قائم مقام دی او بيا حضور صلی الله علیه وسلم خپل هغه ښي لاس خپل چپ لاس باندي وهلو سره

وَقَالَ هٰذِهٖ لِعُثْمَانَ فَقَالَ لَهٗ ابْنُ عُمَرَ اِذْهَبْ

وفرمائيل دا بيعت د عثمان رضي الله عنه د طرف نه دی دي نه روسته حضرت ابن عمر رضي الله عنه هغه مصري سړي

بِهَا الْاٰنَ مَعَكَ . رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

ته وويل ستا د سوالاتو جواب کي اوس چې ماخه ويلي دي هغه ځان سره يوسه.

## ځان يي ورکړو خو د حضور صلی الله علیه وسلم د وصيت نه يي انحراف ونه کړو

﴿۱۲﴾ وَ عَنْ أَبِيْ سَهْلَةَ مَوْلٰى عُثْمَانَ قَالَ جَعَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ

او د حضرت عثمان رضي الله عنه ازاد کرده غلام حضرت ابو سهله رضي الله عنه وايي نبي کريم صلی الله علیه وسلم حضرت عثمان رضي الله عنه

يُسِرُّ إِلٰى عُثْمَانَ وَ لَوْنُ عُثْمَانَ يَتَغَيَّرُ فَلَمَّا كَانَ

سره پټې پټې خبري کولي او د حضرت عثمان رضي الله عنه د مخ رنګ به متغير کيده هرکله چې د کور د محاصري

يَوْمُ الدَّارِ قُلْنَا أَلَا

ورځ راغله نو مونږ حضرت عثمان رضي الله عنه ته عرض وکړو چې آيا مونږ لره مناسب نه دي چې مونږ دي

نُقَاتِلُ قَالَ لَا إِنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ

خلقو سره جنګ وکړو حضرت عثمان رضي الله عنه جواب راکړو نه ځکه چې رسول الله صلی الله علیه وسلم ماته د يوي خبري

عَهِدَ إِلَيَّ أَمْرًا فَأَنَا صَابِرٌ نَفْسِي عَلَيْهِ

وصيت کړی وو اوزه د حضور صلى الله عليه وسلم هغه وصيت باندي صابر او شاكريم.

## د حضرت عثمان رضي الله عنه د اطاعت حكم

﴿۱۲﴾ وَعَنْ أَبِي حَبِيبَةَ أَنَّهُ دَخَلَ الدَّارَ وَعُثْمَانُ

او حضرت ابو حبيبه رضي الله عنه نه روايت دی چې هغه حضرت عثمان رضي الله عنه ته هغه وقت ورغلی وو كوم وقت

مَحْصُورٌ فِيهَا وَأَنَّهُ سَمِعَ أَبَا هُرَيْرَةَ يَسْتَأْذِنُ

چې هغه كوركي محصور کړی شوی وو هغه واوريدل چې حضرت ابو هريره رضي الله عنه د حضرت عثمان رضي الله عنه

عُثْمَانَ فِي الْكَلَامِ فَأَذِنَ لَهُ فَقَامَ

نه د څه خبرو كولو اجازت غوښتی حضرت عثمان رضي الله عنه اجازت وركړو نو ابو هريره رضي الله عنه اودريدلو هغه

فَحَمِدَ اللهَ وَأَثْنَى عَلَيْهِ ثُمَّ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د الله تعالى حمد او ثنا بيان کړه او بيايي وويل يوه ورځ ما د رسول الله نه واوريدل چې زما نه روسته

يَقُولُ إِنَّكُمْ سَتَلْقَوْنَ بَعْدِي فِتْنَةً وَاخْتِلَافًا أَوْ

به تاسو خلق د فتنو او د باهمی اختلافاتو ازمائش سره مخ شئ يا حضور صلى الله عليه وسلم مخكي د اختلافاتو او

قَالَ اِخْتِلَافًا وَ فِتْنَةً فَقَالَ لَهُ قَائِلٌ مِنَ النَّاسِ

بيا د فتنو لفظ ارشاد وفرمايلو هغه ارشاد اوريدو سره هلته موجود خلقو كي يو سړي پوښتنه وکړه

فَمَنْ لَنَا يَا رَسُولَ اللهِ أَوْ مَا تَأْمُرُنَا بِهِ قَالَ

يا رسول الله د هغه د فتنو او اختلافاتو زمانه كي مونږ له څه كول پكار دی حضور صلى الله عليه وسلم ورته وفرمائيل

عَلَيْكُمْ بِالْأَمِيرِ وَ أَصْحَابِهِ وَ هُوَ يُشِيرُ إِلَى عُثْمَانَ

امير او د هغه جماعت لازم ونيسئ او امير لفظ باندي زور وركولو سره يې حضرت عثمان رضي الله عنه طرف

بِذٰلِكَ. رَوَاهُمَا الْبَيْهَقِيُّ فِي دَلَائِلِ النُّبُوَّةِ.

ته اشاره وکړه دا دواړه روايتونه بيهقي دلائل النبوة كي نقل کړي دي.

## باب مناقب هؤلا الثلاثة رضي الله عنهم

## د درې واړو خلفاء رضي الله عنهم د مناقبو بيان

ما ددينه مخکښې هم ليکلي دي چه بعضې احاديث هغه دي چه په هغو کښې د مشترکه مناقبو بيان دی، صاحب د مشکوة کمال کړی دی چه خلط ملط مناقب يې جمع کړي نه دي بلکه اول يې انفرادی ذاتي مناقب بيان کړل او بيا يې مشترکه مناقب ذکر کړل لکه په زير بحث باب کښې هم دغه رنګ د حضرت ابوبکر صديق او حضرت عمر او حضرت عثمان رضي الله عنهم خلفاء ثلاثه ؤ د مناقب مشترکه ؤ احاديث جمع کړي دي چه پيش خدمت دي.

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

## دريواړو خلفاؤ ته د جنت بشارت

﴿۱﴾ عَنْ اَنَسٍ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَعِدَ اُحُدًا وَّاَبُوْبَكْرٍ وَّعُمَرُ وَعُثْمَانُ فَرَجَفَ بِهِمْ فَضَرَبَهُ بِرِجْلِهِ فَقَالَ اُثْبُتْ اُحُدُ فَاِنَّمَا عَلَيْكَ نَبِيٌّ وَّصِدِّيْقٌ وَّشَهِيْدَانِ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ

حضرت انس رضي الله عنه روايت کوي چې يوه ورځ نبي کريم صلی الله عليه وسلم حضرت ابوبکر رضي الله عنه حضرت عمر رضي الله عنه او حضرت عثمان رضي الله عنه احد ته وختل نو په خوزيدو شو حضور صلی الله عليه وسلم پر هغه خپله پښه مبارکه ووهله او ورته يې وفرمائيل [اُثْبُتْ اُحُدُ فَاِنَّمَا عَلَيْكَ نَبِيٌّ وَصِدِّيْقٌ وَشَهِيْدَانِ رَوَاهُ] اې احد په رام شه مه ښوره پرتا باندې خوزيږه په يو نبي دی يو صديق دی او دوه شهيدان دي [بخاري]

## درې واړو ته د جنت بشارت

﴿۲﴾ وَعَنْ اَبِيْ مُوْسَى الْاَشْعَرِيِّ قَالَ كُنْتُ مَعَ النَّبِيِّ صلی الله عليه وسلم فِيْ حَائِطٍ مِّنْ حِيْطَانِ الْمَدِيْنَةِ

او حضرت ابو موسى اشعري رضي الله عنه وايي يوه ورځ زه د نبي کريم صلی الله عليه وسلم سره د مديني يو باغ کې وم

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فَجَاءَ | رَجُلٌ | فَاسْتَفْتَحَ | فَقَالَ | النَّبِيُّ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ | |

اچانک يو سړی د بهر نه راغی بيا هغه د باغ دروازې د خلاصولو غوښتنه وکړه نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ماته وفرمائيل

اِفْتَحْ لَهُ وَبَشِّرْهُ بِالْجَنَّةِ فَفَتَحْتُ لَهُ فَإِذَا أَبُوبَكْرٍ

ورشه دروازه کولاوه که او راتلونکي سړي ته دجنت بشارت ورکړه زما ورتلو سره دروازه مي.

فَبَشَّرْتُهُ بِمَا قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

خلاصه کړه څه گورم چه هغه ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دي ما د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دوينا مطابق هغوی ته دجنت بشارت

فَحَمِدَ اللهَ ثُمَّ جَاءَ رَجُلٌ فَاسْتَفْتَحَ

واو روه او هغوی د الله شکر ادا کړو روسته بيا يو سړی راغی دروازې کولاويدو د پاره يې وويل

فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِفْتَحْ لَهُ وَبَشِّرْهُ بِالْجَنَّةِ

رسول کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ماته وفرمائيل ورشه دروازه کولاوه کړه او راتلونکي سړي ته دجنت خوشخبري ورکړه

فَفَتَحْتُ لَهُ فَإِذَا هُوَ عُمَرُ فَأَخْبَرْتُهُ بِمَا قَالَ

ورتلو سره ما دروازه کولاؤه کړه نو مي ليدل چه هغه عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وو ما د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دوينا مطابق

النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَحَمِدَ اللهَ ثُمَّ

هغوی ته دجنت زيري ورکړو او هغوی هم د الله تعالی شکر ادا کړو بيا لږ وخت روسته يو بل سړي

اسْتَفْتَحَ رَجُلٌ فَقَالَ لِيَ افْتَحْ لَهُ

دروازې د کولاويدو د پاره وويل رسول کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمائيل ورشه دروازه کولاوه کړه او راتلونکي

وَبَشِّرْهُ بِالْجَنَّةِ عَلَى بَلْوَى تُصِيْبُهُ

سړي ته د هغه عظيم آفات او مصائبو نه روسته دجنت بشارت ورکړه چې د هغه خپل ژوند کي مبتلاوي

فَإِذَا عُثْمَانُ فَأَخْبَرْتُهُ بِمَا قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

ما دروازه کولاو کړه نو مي ليدل چې هغه حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وو ما ورته هغه خبر واورولو چې

| فَحَمِدَ | اللهَ | ثُمَّ | قَالَ |
|---|---|---|---|
| نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمائيلي وو حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دالله تعالى شكريه اداكړه او بيايي وويل د الله نه | | | |
| اَللهُ | اَلْمُسْتَعَانُ. | مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. | |
| مدد طلب كول پكار دي يعني زه دالله نه دمدد طلبگاريم. | | | |

## اَلْفَصْلُ الثَّانِيُ

### زمانه نبوت كي ددي دري واړو ذكر په كوم ترتيب سره كيده

| ﴿٢﴾ عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ كُنَّا نَقُوْلُ وَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
|---|
| حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ بيان كوي چي د رسول كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په حيات كي به مونږ داسي ويل |
| حَيٌّ أَبُوْبَكْرٍ وَّعُمَرُ وَعُثْمَانُ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ |
| ابوبكر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ الله دي دهغوى نه راضي وي [ترمذي] |

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

### دخلفاء ثلاثه رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ دخلافت ترتيب خلافت غيبي اشاره ده

| ﴿٣﴾ عَنْ جَابِرٍ اَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اُرِيَ |
|---|
| حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دى يوه ورځ نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمائيل نن شپه يو نيك سړى ته خوب |
| اللَّيْلَةَ رَجُلٌ صَالِحٌ كَاَنَّ اَبَا بَكْرٍ نِيْطَ بِرَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| كي وښودل شو چي څرنګه ابوبكر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ رسول كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره پيوست شوى دى دغه شان عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ |
| وَنِيْطَ عُمَرُ بِأَبِيْ بَكْرٍ وَنِيْطَ عُثْمَانُ بِعُمَرَ قَالَ |
| ابوبكر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره پيوست لګيدلى دى او عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره پيوست لګيدلى دى حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ |

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| جَابِرٌ | فَلَمَّا | قُمْنَا | مِنْ | عِنْدِ | رَسُوْلِ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |

وايي هركله چه مونږ خلقو دي خبري اوريدو سره د رسول كريم ﷺ د مجلس مبارك نه لاړلو نو د خپل

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| قُلْنَا | أَمَّا | الرَّجُلُ | الصَّالِحُ | فَرَسُوْلُ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ |

اجتهاد او ظن مطابق مونږ خپلو كي وويل چه نيک سړي نه مراد خو خپله د رسول كريم ﷺ ذات گرامي

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَأَمَّا | نَوْطُ | بَعْضِهِمْ | بِبَعْضٍ | فَهُمْ وُلَاةُ |

دي او پاته شوه د بعضو بعضو سره پيوست لګيدل نو دا دي طرف ته اشاره ده چه دا دري واړه حضرات

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| الْأَمْرِ | الَّذِيْ | بَعَثَ | اللهُ | بِهِ |

به د مذكوره ترتيب مطابق يو بل پسي د هغه مِشن سربراه وي چه هغه د پاره الله تعالى خپل

نَبِيَّهُ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. رَوَاهُ أَبُوْ دَاوُدَ.

نبي كريم ﷺ دي دنيا ته رااليږلى دى .[ابو داود]

**توضيح** : نِيط: پيوسته كيدلو ته نيط ويل شوى دى . دا ترتيب د خلافت ته اشاره ده .



# باب مناقب علي بن ابي طالب رضي الله عنه
# د حضرت علي رضي الله عنه د مناقبو بيان

علي فمشهور فضائله والبيت لايبتنى الا بأركان ، يعني د حضرت علي رضي الله عنه فضائل خو ډير
مشهوره دي او د ايمان عمارت د خلفاؤ د څلورو ستنو نه علاوه او دريدلى نشي.

نوم او نسب: د څلورم خليفه مبارک نوم علي رضي الله عنه دى او کنيه يې ابوالحسين او ابوتراب دى او
لقب يې اسد الله او حيدر او المرتضى دى ، د ابوتراب لقب د حضور صلى الله عليه وسلم څخه ورته عطاء شوى
دى ، د هغه نسب حضور صلى الله عليه وسلم ته ډير نږدې دى ځکه چه د رسول الله صلى الله عليه وسلم د تره زوى دى
او د ابوطالب ځوى دى ، هغه د پلار او مور دواړو له جانب څخه هاشمى دى ، د هغه والد ابوطالب خو
مسلمان نشو ليکن د هغه مور محترمه فاطمه بنت اسد مسلمانه شوې وه او مدينې طرفته يې هجرت
هم کړى وو . حضرت علي رضي الله عنه د وړوکوالى نه د حضور صلى الله عليه وسلم په پرورش او تربيت کې پاتې
شوى وو ، حضور صلى الله عليه وسلم هغه د ځوى پشان وپاله او بيا يې حضرت فاطمه رضي الله عنها هغه ته په نکاح
کړه د زومتوب شرف يې هم ورته وبخښه ، حضرت علي رضي الله عنه په صحابو کې د ټولو نه زيات فصيح او
د اعلى درجې خطيب وو او په شجاعت او بهادرۍ کې د ټولو نه ښکاره منلى کيده . په ۳۵ سنه هـ کې د
حضرت عثمان رضي الله عنه د شهادت نه بعد په مسند د خلافت باندې فائز شو او درې ورځې کم پنځه کاله
په مسند خلافت باندې پاتې کيدو سره د ۶۳ کلو په عمر کې ۱۸ د رمضان ۴۰ سنه هـ کې د عبدالرحمن
بن ملجم خارجي په لاس سره په کوفه کې د سهار په وخت د شهادت جام نوش کړلو او د هميشه لپاره يې
خلافت راشده رخصت کړلو . د کوفې په مقام نجف کې د هغه قبر ښودل کيږي، په نجف کې اګرچه د
هغه مزار جوړ شوى دى مګر د هغه حقيقت همدومره دى چه په حيوة الحيوان کې يې ليکلى دي چه يو
ځل هارون الرشيد په دغه ځاى باندې تيريده چه يو بوډا سړى د قبر سره ناست دى او ژاړي ، هارون
الرشيد پوښتنه وکړه نو بوډا وويل چه دا د حضرت علي رضي الله عنه قبر دى ، هارون الرشيد د هغه د مرمت
کولو او حفاظت حکم وکړلو . د خوارجو شاعر عمران بن حطان د حضرت علي رضي الله عنه د قاتل
عبدالرحمن بن ملجم خارجي په مدحه کې يو قصيده ويلې وه چه د هغې په جواب کې د اهل سنتو يو
شاعر زبردسته جواب ورکړى وو ، د دواړو له طرفه يو څو اشعار ملاحظه کړئ:

يَا ضَرْبَةً من تقى ما أَرَادَ بِهَا إلا ليبلغ من العرش رضوانا

إِنِّي لَأَذْكُرُهُ يَوْمًا فَأَحْسِبُهُ اوفى البرية عند الله ميزانا

اكرم بقوم بطون الارض اقبرهم لم يخلطوا دينهم بغياً و عدوانا

فأجابه القاضی ابو طیب الطبری رحمه الله من اهل السنة:

انی لأبرأ مما انت قائله فی ابن ملجم ن الملعون بهتانا

انی لاذکره یوما فالعنه دینا والعن عمران بن حطانا

علیک ثم علیه الدهر متصلا لعائن الله اسرارا و اعلانا

فانتم من کلاب النار جاء لنا نص الشریعة برهانا و تبیانا

حلیه: د هغه قد خکته وو، جسم یې چاغ وو، ږیره یې لویه او ګڼه وو، ټوله سینه به یې د ږیرې لاندې راتلله، غنم رنګه وو، د حضرت فاطمې رضي الله عنها په ژوند کې یې بله نکاح ونکړه، د حضرت فاطمه رضي الله عنها څخه دده دوو ځامن حسن او حسین رضي الله عنهما وو او دوو لورګانې یې وې، د غزوو تبوک نه علاوو په ټولو غزاګانو کې د نبی کریم صلی الله علیه وسلم سره وو او ډیرې لویې کارنامې یې انجام کړلې، حضور صلی الله علیه وسلم ته حضرت علی رضي الله عنه غسل ورکړلو، د حضرت ابوبکر رضي الله عنه په دور خلافت کې د هغه وزیر او مشیر پاتې شو او په قضاء اسلامی باندې فائز شو، د خپلې لور ام کلثوم نکاح یې د حضرت عمر فاروق رضي الله عنه سره وکړه او په خپل دور خلافت کې یې دا فرمان جاری کړلو چه کوم شخص ما ته په ابوبکر صدیق او عمر فاروق رضي الله عنهما باندې فضیلت راکوي نو زه به په هغه باندې د بهتان تړلو حد جاری کوم. په حضرت عثمان رضي الله عنه باندې چه کله باغیانو حمله وکړه نو حضرت علی رضي الله عنه مکمله دفاع وکړه او حضرات حسنین رضي الله عنهما یې په حفاظت باندې مأمور کړل، دده په دور خلافت کې د داخلی جنګونو په وجه د کفارو سره بیرونی جنګونه موقوف شول، هغه به دې ټولو جنګونو کې په حق باندې وو، د طرف مقابل نه اجتهادی غلطی وشوو چه ان شاء الله معاف کیږي به، هو خوارج خو باغیان اهل النار وو، هغه لوی زاهد، تهجد ګزاره او پرهیزګاره وو، شپه به یې رونوله او په ژړا ژړا کې به یې شپه تیروله.

خپله ږیره به یې ونیوله او وبه یې ویل چه ای دنیا! ته غداره یې، زما مخې ته سفر ډیر اوږد دی، هائ افسوس! سفر اوږد دی او د سفر خرچه کمه ده په همدې حالت کې به سهار شو. هغه د عشره مبشرو څخه وو، یو ځل حضرت معاویه رضي الله عنه دده ته یو خط راولیږه چه په هغه کې حضرت معاویه رضي الله عنه په خپل فضیلت کې د حضور اکرم صلی الله علیه وسلم سره خپل قرب بیان کړی وو. دده هغه ته په اشعارو کې جواب ورکړو، د ناظرینو د لطف لپاره یې هدیه کوم:

حکی ان معاویة کتب إلي علي فقال یا ابا الحسین ان لي فضائل. انا صهر رسول الله و کاتبه للوحي فقال علي والله ما اکتب الیه الا شعرا فکتب:

محمّد النّبيّ أخي وصهري    وحمزة سيّد الشّهداء عمّي
وجعفرنا الّذي يمسي ويضحي    يطير مع الملائكة ابن أمّي
وبنت محمّد سكني وعرسي    توسط لحمها بدمي ولحمي
وسبطا أحمد ولديّ منها    فأيّكم له قسم كقسمي
سبقتكم إلى الإسلام طرًّا    صغيرا ما بلغت أوان حلمي

نقال اخفوا هذه الاشعار من اهل الشام لئلا يميلوا الى علي. (شرح وقايه، جلد۲ ص۳۲۰)

په هر حال د حضرت علي رضي الله عنه فضائل ډير زيات دي، ددې لپاره دوو وجهي دي، يوو دا چه د حضرت علي رضي الله عنه په شان کښې خوارجو وغيره غلط قسم خبرې وکړې، قسماقسم طعنونه يې پرې ولګول په دغه وجه صحابو د هغه ټول فضائل واضحه کړل او عام يې کړل نو احاديث محفوظه شول. دويمه وجه دا ده چه شيعو روافضو د هغه په فضائلو کښې د دروغو روايتونه ونويستل، په هر حال په ماشومانو کښې د ټولو نه مخکښې حضرت علي رضي الله عنه د اتو کالو په عمر اسلام قبول کړلو.

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

## له رسول الله صلى الله عليه وسلم سره په قرب منزلت کښې تشبيه

| |
|---|
| ﴿۱﴾عَنْ سَعْدِ بْنِ اَبِيْ وَقَّاصٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| حضرت سعد بن ابي وقاص رضي الله عنه وايي رسول كريم صلى الله عليه وسلم حضرت علي رضي الله عنه ته وفرمائيل ته زما |
| لِعَلِيٍّ أَنْتَ مِنِّيْ بِمَنْزِلَةِ هَارُوْنَ مِنْ مُوْسٰى اِلَّا |
| دپاره داسي يې شرنگه چه موسٰى عليه السلام دپاره هارون عليه السلام وو بس فرق دادی چه زما نه روسته به |
| أَنَّهُ لَا نَبِيَّ بَعْدِيْ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. |
| څوک نبي نه وي. [بخاري مسلم] |

**توضيح**: (بمنزلة هارون) حضور اكرم صلى الله عليه وسلم چه كله د تبوک لپاره روان شو نو حضرت عبد الله بن ام مكتوم يې په مدينه باندې خپل نائب مقرر كړلو، چونكې د تبوک سفر اوږد وو نو ځكه د حضور صلى الله عليه وسلم د اهل او عيال د نګرانۍ ضرورت وو، حضور صلى الله عليه وسلم د خپل اهل او عيال د نګرانۍ لپاره حضرت علي رضي الله عنه مقرر كړلو، په دې باندې منافقينو دا اعتراض وكړو چه علي رضي الله عنه يې د وړوروالي په وجه وروسته پريښودو تر څو د سفر د مشقت نه بچ شي، بل دا چه د مرګ د خطرې نه

محفوظ پاتې شي ، چه کله حضرت علی رضي الله عنه ته ددې علم وشو نو هغه پریشانه شو ، هسې هم هغه پریشانه وو چه د جهاد د میدان څخه وروسته پاتې شو ، هغه فرمایې چه زه به کله په مدینه منوره کې وتلم نو یا به معذور خلک په نظر راتلل یا به ښځې او ماشومان وو یا به منافق خلک ګرځیدل ،د دغه حالت نه پریشانه حضرت علی رضي الله عنه په ژړا څضور صلی الله علیه وسلم ته لاړو ، حضور صلی الله علیه وسلم د مدینې نه لږ بهر په مقام جرف کې افواج اسلامیه ته په ترتیب ورکولو کې مصروفه وو ، حضرت علی رضي الله عنه د خپلې پریشانۍ اظهار یې وکړو ، په دې باندې حضور صلی الله علیه وسلم حضرت علی رضي الله عنه ته تسلي ورکړه او په جواب کې یې وفرمایلو چه آیا ته په دې خوشحاله نه یې چه ته زما نه شاته پاتې کیدلو کې داسې یې لکه څنګه چه حضرت موسی علیه السلام د معراج الهی لپاره تللی وو او حضرت هارون علیه السلام یې وروسته پریخی وو ، په دې کلام کې د حضرت علی رضي الله عنه هغه فضیلت ته اشاره ده چه په قرب منزلت کې حضور صلی الله علیه وسلم حضرت علی رضي الله عنه خپل وررور ګرځولی دی او دا تشبیه په دغه قرب منزلت کې ده مګر په دې کې هم تشبیه کیدلی شو و چه حضرت علی رضي الله عنه هم د حضرت هارون علیه السلام پشان نبی جوړ شي ، ددغه وو م د لرې کولو لپاره حضور صلی الله علیه وسلم ارشاد وفرمایلو چه دا تشبیه صرف په اخوت کې ده په نبوت کې نه ده څکه چه زما نه وروسته هیڅ نبی نشته.

سوال : ددې حدیث نه شیعو شنیعه او رافضه مرفوضه په ډیر زور او شور سره دا استدلال کوي چه په دې کې د حضرت علی رضي الله عنه د خلافت خبره شوې ده چه د حضور صلی الله علیه وسلم نه بعد علی رضي الله عنه با خلیفه بلافصل وي، نورو خلفاؤ د حضرت علی رضي الله عنه څخه خلافت غصب کړلو ،امت مزاحمت ونکړ لهذا ټول ګمراه شول ، علی رضي الله عنه خو د تقیه څخه کار واخیستلو باقی ټول کافر شول .

جواب : ددې بی ځایه سوال جواب دا دی چه شیعو خو وایې چه حضرت علی رضي الله عنه ته په غدیر خ کې خلافت سپارل شوی وو ، په دغه وخت کې هغه خلیفه جوړ شوی وو ، چه کله هغه ته د مخکې خلیفه وو نو په دې موقع باندې هغه ته کوم خلافت ورکړی شو ؟ معلومه شوو چه شیعو دروغجن دي دویم جواب دا دی چه دلته تشبیه صرف په قرب منزلت کې ده ، نه په نبوت کې ده او نه په خلافت کې ځکه چه حضرت هارون علیه السلام د حضرت موسی علیه السلام نه څلویښت کاله مخکې انتقال شو وو ،حضرت هارون علیه السلام چه کله وروسته پاتې نشو ، او نه د یوې لمحې لپاره خلیفه جوړ شو نو دې سره د حضرت علی رضي الله عنه خلافت ته څنګه اشاره کیدلی شي ، معلومه شوو چه رافضي دروغجن دي .

دریم جواب دا دی چه ددې حدیث د ارشاد فرمایلو نه بعد حضور صلی الله علیه وسلم تر زیات وخته پورې دنیا کې حیات وو ، د هغه صلی الله علیه وسلم په ژوند کې نه حضرت علی رضي الله عنه خلیفه شو او نه کیدلی شو معلومه شوه چه شیعو دروغجن دي .

ځلورم جواب دا دی چه کچیرې دغه قسم د خلافت تصریح او وصیت د حضرت علی رضی الله عنه لپاره وای نو هغه ته د حضور صلی الله علیه وسلم نه وروسته د هغه دعوو کول پکار وو او عوامو ته ویل پکار وو چه خلافت زما حق دی ،تاسې زما نه زما حق مه غصب کوئ او که نه نو زه به ستاسو سره په خپل حق باندې جنګ وکړم، چه کله د حضرت علی رضی الله عنه څخه په خاص یا عام مجلسونو کې دغې خبرې ته اشاره هم شوې نه ده نو نن سبا شیعو دغه عظیم بهتان او لوی طوفان په سر باندې ولې پورته کوی ؟ معلومه شوو چه شیعو دروغجن دي! کچیرې شیعو دا وایې چه حضرت علی رضی الله عنه تقیه وکړه نو عرض دا دی چه په دومره لویه مسئله کې او د شریعت دومره لوی حکم که حضرت علی رضی الله عنه د ویرې په وجه پټ کړی وو او په ژبې سره د خپلو ملګرو په حلقه کې هم د هغه اظهار کولی نشو نو دا سې علی خو بیا د خلافت مستحق هم نه وو او معاذ الله هغه د لویې ګناه مرتکب هم شو ، بیا کچیرې داسې وو نو حضرت علی رضی الله عنه د خپل خلیفه برحق کیدلو په زمانه کې ولې تقیه ونکړه او د حضرت عثمان بن عفان رض نه وروسته چه کله هغه برحق څلورم خلیفه جوړ شو نو هغه په دغه حق باندې جنګ جمل ولې وکړو ؟ او هغه په دغه حق باندې جنګ صفین ولې وکړو چه په هغه کې په زرهاؤ انسانان ختم شول ؟ !! معلومه شوو چه شیعو شیطانان دي او صرف د شیطان لپاره شیطانی کوي.

ملا علی قاری رحمه الله د دغه حدیث په شرحه کې لیکلي دي چه د شیعو روافضو دغه اعتراض د دې قابل نه دی چه جواب یې وشي او د دغه حدیث په بنیاد باندې شیعو ګانو ټولو صحابو ته کافر ویلي دي لهذا د شیعو په کافر کیدلو کې هیڅ شک نشته . عبارت ملاحظه کړئ : **ولاشك في تكفير هؤلاء لان من كفر الامة كلها والصدر الاول خصوصاً فقد ابطل الشريعة وو دم الاسلام ولا حجة في الحديث لهم.** (مرقات جلد نمبر ۱۰ ص ۴۵۵)

## د حضرت علي رضی الله عنه سره محبت د ایمان نښه ده

| |
|---|
| ﴿۲﴾ وَعَنْ زِرِّ بْنِ حُبَيْشٍ قَالَ قَالَ عَلِيٌّ وَالَّذِيْ فَلَقَ الْحَبَّةَ وَبَرَأَ النَّسَمَةَ |
| اوحضرت زرّبن حبیش وایي سیدنا علي وفرمائیل قسم دی په هغه ذات چه دانه یې چولې ده راشنه |
| إِنَّهُ لَعَهِدَ النَّبِيُّ الْأُمِّيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ إِلَيَّ أَنْ لَا يُحِبَّنِيْ |
| کړې یې ده او ذی روح یې پیدا کړي ده درحقیقت نبي امي صلی الله علیه وسلم ما ته یقین راکړی وو چه څوک کامل |
| إِلَّا مُؤْمِنٌ وَلَا يُبْغِضَنِيْ إِلَّا مُنَافِقٌ. رَوَاهُ مُسْلِمٌ. |
| مؤمن وي هغه به ما سره او څوک چه منافق وي هغه به ما سره عداوت ساتي. [مسلم] |

**توضیح**: (فلق) د دانې چولو او د هغې نه غوټۍ راویستلو په معنیٰ سره دی. **(برأ)** د پیدا کولو په معنی سره دی. (نسمة) روح ته ویل کیږي **(انه)** یعنې شان دا دی **(عهد)** تأکیدی حکم او پخې خبرې ته ویل کیږي. **(ان لایحبنی)** د حضرت علی رضي الله عنه معامله عجیبه پیچیده پاتې شوې او تر ننه پورې همداسې پیچیده ده او هغه داسې چه د انسانانو یو فریق هغه د خپل مقام نه لاندې راوغورځاوو او هغه ته یې سب و شتم وکړل او یو فریق هغه دومره پورته کړلو چه هغه یې د خدای په مقام باندې ودرولو، عامو منافقینو خو د صحابو سره حسد ساتلو مګر د حضرت علی رضي الله عنه سره یې یو څه زیاتی کولو. بیا خوارج چه د منافقینو یو قسم دی هغو حضرت علی رضي الله عنه ته تر کافره پورې وویل او کنځل یې ورته وکړل، هلته بل جانب ته د حضرت علی رضي الله عنه په وفادارانو کې یوه ډله داسې پیدا شوله چه هغو هغه د خدائی مقام ته ورسولو چه نن سبا هغوی د شیعو او روافضو په نوم سره پیژندل کیږي، شریعت مطهره د هغه په باره کې معتدله لاره وښودله چه د هغه سره دې محبت وساتلی شي او هغه ته دې کنځل بد و رد نه ویلی شي، په زیر بحث حدیث کې د افراط او تفریط تر مینځ د درمیانه لارې نشاندهی شوې ده، په دې باب کې مخکې حدیث نمبر ۱۶ راځي په هغه کې خو په واضح طوږ باندې حضور اکرم صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي چه ای علی! ستا مثال د حضرت عیسی علیه السلام پشان دی چه په هغه باندې یهودو بهتان وتړلو سب او شتم یې ورته وکړلو او نصاراؤ هغه دومره لوی کړلو چه د خدائی مقام ته یې ورسولو، په دې احادیثو کې د حضرت علی رض سره د محبت ساتلو ترغیب، د اعتدال لاره خپلولو او د مخالفت او عداوت نه د بچ کیدلو ترغیب دی چه خارجي او ناصبي مه جوړیږه! د اهل سنت پشان پاتې شه. شیعو او رافضیه د حضرت علی رضي الله عنه سره د محبت ساتلو دغه ترغیب ته هم غلط رنګ ورکړی دی او هغوی ګمان کوي چه د حضرت علی رضي الله عنه سره د محبت چه کوم ترغیب په احادیثو کې دی دا د نورو صحابو سره د بغض او عداوت دعوت دی، دا د هغوی شیطانی خیال دی او که نه نو د محبت دغه ترغیب د نورو صحابو لپاره هم دی، ابن عساکر یو حدیث نقل کړی دی چه د هغه الفاظ دا دي. د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روایت دی چه حضور صلی الله علیه وسلم وفرمایل: **حب ابی بکر و عمر من الایمان و بغضهما کفر و حب الانصار من الایمان و بغضهم کفر و حب العرب من الایمان و بغضهم کفر و من سب اصحابي فعلیه لعنة الله.** (ابن عساکر)

یاد ساتئ! محبت یو شی دی او د رتبې اوچتوالی بل شی دی، د حضرت علی رضي الله عنه د محبت مطلب دا نه دی چه نورو صحابوو ته کنځل وکړه، یا د ابوبکر او عمر رتبه کمه کړه.

# د غزوه خيبر په ورځ د حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ اعزاز

﴿۲﴾ وَعَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ يَوْمَ خَيْبَرَ

او سهل بن سعد ساعدي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دى چې رسول كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د غزوه خيبر په ورځ وفرمائيل

لَأُعْطِيَنَّ هٰذِهِ الرَّايَةَ غَدًا رَجُلًا ، يَفْتَحُ اللهُ عَلٰى

صبا به زه دا بيرغ يو داسې سړى ته وركوم چه د هغه په لاس به الله تعالىٰ فتح راكړي او هغه سړى الله

يَدَيْهِ يُحِبُّ اللهَ وَرَسُوْلَهٗ وَيُحِبُّهُ اللهُ وَرَسُوْلُهٗ

او د الله د رسول دوست لري، او الله او د هغه رسول هغه دوست لري، نو تمامو صحابو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ دي

فَلَمَّا أَصْبَحَ النَّاسُ غَدَوْا عَلٰى

انتظار او شوق كې ټوله شپه په ويښه تيره كړه چه ګورو صبا له به دا سرفرازي د چا په حصه كې راځي

رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كُلُّهُمْ يَرْجُوْنَ

كله چې سهار شو نو هر سړى دې ارزو سره د رسول كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خدمت كې حاضر شو چه جنډه به هغه

أَنْ يُعْطَاهَا فَقَالَ أَيْنَ عَلِيُّ بْنُ أَبِيْ طَالِبٍ

ته حاصليږي نبى صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ټولو صحابو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ باندې نظر اچولو سره وفرمائيل علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ابن ابي طالب

فَقَالُوْا هُوَ يَا رَسُوْلَ اللهِ يَشْتَكِيْ

چيرته دى صحابو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ عرض وكړو يا رسول الله د ستر ګو خوږ هغه پريشان كړى دى او ددې عذر

عَيْنَيْهِ قَالَ فَأَرْسِلُوْا إِلَيْهِ فَأُتِيَ

په بنا دلته موجود نه دى حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمائيل هغه را وغواړئ نو حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ را وستل شو

بِهٖ فَبَصَقَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ عَيْنَيْهِ

رسول كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خپل لعاب دهن د هغوى په ستر ګو كې واچول نو د هغوى ستر ګې يو دم داسې ښې

فَبَرَأَ كَأَنْ لَمْ يَكُنْ بِهٖ وَجَعٌ فَأَعْطَاهُ الرَّايَةَ

شوې لكه چه په هغې كې څه تكليف او خرابي د سره نه وه دې نه روسته حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغوى ته جنډه

فَقَالَ عَلِيٌّ يَا رَسُوْلَ اللهِ أُقَاتِلُهُمْ حَتّٰى

وركړه حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل يا رسول الله زه به هغه خلقو د ښمنانو سره هغې پورې جنګيږم څو پورې

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| يَكُوْنُوْا | مِثْلَنَا | قَالَ | انْفُذْ | عَلٰى | رِسْلِكَ |

چه هغوی زمونږ په شان مسلمانان نشي حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمائيل ځه خونرمي او بردباري سره د دښمنانو

حَتّٰى تَنْزِلَ بِسَاحَتِهِمْ ثُمَّ ادْعُهُمْ إِلَى الْإِسْلَامِ وَأَخْبِرْهُمْ

علاقي ته ورشه بيا دتهولو نه مخکي هغوی ته د اسلام دعوت ورکړه او هغوی ته د الله هغه حقوق

بِمَا يَجِبُ عَلَيْهِمْ مِنْ حَقِّ اللهِ فِيْهِ فَوَاللهِ لَأَنْ يَهْدِيَ اللهُ

وښايه چه اسلام يې په هغوی عائد کوي ای علي قسم په الله که الله تعالى ستا په ذريعه يو سړي ته

بِكَ رَجُلًا وَّاحِدًا خَيْرٌ لَّكَ مِنْ أَنْ يَّكُوْنَ لَكَ حُمْرُ النَّعَمِ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

هم هدايت وکړي زياته بهتر دي. [بخاري مسلم] نو ستا د پاره د حاصليدونکو سرو اوښانو نه او

وَذُكِرَ حَدِيْثُ الْبَرَاءِ قَالَ لِعَلِيٍّ أَنْتَ مِنِّيْ وَأَنَا مِنْكَ

حديث د براء رَضِيَ اللهُ عَنْهُ چې نبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته و فرمائيل ته زما نه يې او زه ستا نه يم په

فِيْ بَابِ بُلُوْغِ الصَّغِيْرِ.

باب بلوغ الصغير کي ذکر شوي دی.

**توضيح**: (يوم خيبر) په سنه ۵۷ هـ کې د غزوو خيبر واقعه پيښه شوې وه، پينځلس سوو صحابو کرامو په هغې غزوو کې حصه اخيستې وه، په خيبر کې د يهودو شو مضبوطې کلاګانې او مضبوط ځايونه وو، تر يوې مياشتې پورې حضور اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ او صحابو کرام په مورچو کې وو، په دې قلعه ګانو کې کې د قموص يوو مضبوطه قلعه وو، ځو کرته صحابو کرامو د هغې د ماتولو کوشش وکړو مګر قلعه فتحه نشوله، په دغه موقع باندې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل چه زه به سبا ته بيرغ د هغه چا په لاس کې ورکړم چه د هغه په لاس باندې به الله تعالى فتحه راولي، هغه شخص به د الله تعالى سره مينه ساتي او الله تعالى به د هغه سره مينه ساتي، هر صحابی د بيرغ حاصلولو تمنا لرله مګر حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دغه اعزاز د حضرت علی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په لاس کې ورکړو، حضرت علی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هغه قلعه قموص فتحه کړه او د فاتح خيبر په لقب سره ملقب شو.

**(يکونوا مثلنا)** ددې مطلب دا دی چه هغه خلک زمونږ په شان مسلمانان شي، يهوديت پريږدي مسلمانان شي، په مثلنا کې تشبيه صرف په مسلمان کيدو کې ده، په ايماني کيفيت کې نه ده ځکه چه ددغه کيفيت تعلق د انسان د خپل خپل اخلاص سره دی، د تبليغي جماعت خلک دا دليل ګرځوي چه په ايماني کيفيت کې تر څو پورې خلک د صحابو په معيار باندې رانشي تر هغه وخته به جهاد نه کيږي، د

. هغوی دا خيال غلط دی ځکه غير صحابی کله هم د کوم صحابی د ايمان کيفيت حاصلولی نشي او که نه نو بيا د صحابی شان چيرته پاتې شو ؟

د تبليغی جماعت خلک ددې حديث نه دا استدلال هم کوي چه دعوت ورکول او د يو چا په هدايت باندې راتلل د سرو اوښانو نه بهتر دي لهذا دعوت ورکوئ ، د جهاد خبره پريږدئ ، د دې خلکو دغه خيال هم غلط دی ځکه حضرت علی رَضِيَ اللهُ عَنهُ يوو ساعت مخکې دعوت ورکړو او بيا فورا وجنګيده ، هغه رَضِيَ اللهُ عَنهُ جهاد پريښودو سره د دعوت په اميد باندې اويا کاله کښيناستلی نه وو لکه څنګه چه د تبليغی جماعت والا ناست دي او دا واقعه د جهاد منسوخ کيدلو لپاره بيانوي . د حضرت علی رَضِيَ اللهُ عَنهُ په دې جمله کې دا اراده وکړه چه د دعوت ورکولو نه بغير په توره چلولو سره تږول مړه کړم او ترڅو پورې چه هغوی مسلمانان شوي نه وي نه به وروسته کيږم ، يعنې په توره سره دعوت وي په ژبه سره نه وي ، حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په جواب کې وفرمايل (ثم ادعهم) يعنې اول د اسلام دعوت ورکړه ، که قبول يې نکړلو نو بيا د جزيې دعوت ورکړه ، که قبول يې نکړه نو بيا په ميدان کې د جنګيدو لپاره تيار شه ، بيا حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د دعوت فائده بيان کړله چه کچيرې يو کس هم ستا په لاس باندې هدايت ته راشي دا به ستا لپاره د سرو اوښانو نه زيات بهتره وي .

هر مسلمان ته په دې باندې پوو يدل پکار دي چه د خيبر يهودو ته د اسلام دعوت ددينه مخکې رسيدلی وو ، د جهاد په ميدان کې د نوی سر نه دغه قسم دعوت ورکول د مستحب په درجه کې دی چه دا د جهاد د آدابو څخه دی ، حضرت علی رَضِيَ اللهُ عَنهُ چونکې د يو وار حمله کولو جذبه ظاهره کړې وو په دغه وجه حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغه ته د جهاد د آدابو څخه د دعوت ادب بيان کړلو ، کچيرې دلته دعوت واجب وای نو حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خيبر کې تقريبا ۲۵ ورځې وجنګيده هغه صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دا دعوت ولې مخکې نه ورکولو ؟ چه نن حضرت علی رَضِيَ اللهُ عَنهُ ته د دعوت ورکولو حکم کولی کيږي ، اصل حقيقت هماغه دی چه د خيبر يهودو ته واجب دعوت رسيدلی وو دا استحبابی دعوت وو کله به ورکولی کيده او کله به نه ورکولی کيده باقی د تبليغی جماعت والاؤ د دعوت د جهاد د دعوت سره څه کار دی ، د هغوی د دعوت خو اول دعوت نه دی بلکه التماس دی چه د مسلمانانو سره خاص دی په دې باندې جهاد موقوف نه دی ، د جهاد نه مخکې چه کوم دعوت وي د هغه درې جملې دي : (۱) مسلمانان شئ (۲) جزيه قبوله کړی (۳) ميدان ته راشئ وجنګيږئ . په دې حديث کې شيعو هم غلطی کوي چه خيبر صرف حضرت علی رَضِيَ اللهُ عَنهُ فتحه کړلو ! دا غلطه ده! حضرت علی رَضِيَ اللهُ عَنهُ صرف يوو اهمه قلعه قموص فتحه کړله باقی يو نيم زر صحابو کرامو تر يوې مياشتې پورې جنګ وکړو ، زخميان او شهيدان شوي وو ، بيا هغوی ته مال غنيمت حاصل شوی وو ، دا څنګه ويل کيدلی شي چه صرف حضرت علی رَضِيَ اللهُ عَنهُ خيبر فتحه کړو ، حضرت علی رض خو په احد کې هم وو هلته عارضی شکست ولې راغی ؟

همدارنګه د حنین په جنګ کې هم وو هلته عارضي شکست ولې راغی؟ غلطه خبره مه کوي! د حضرت علي رضي الله عنه لوی شان دی مګر هغه ته خدای مه وایې، د الله بنده ورته ووایاست!.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِيْ

## د نبي کریم صلی الله علیه وسلم سره د حضرت علي رضي الله عنه کمال قرب حاصل ؤ

| |
|---|
| ﴿۴﴾ عَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِنَّ |
| حضرت عمران ابن حصین رضي الله عنه نه روایت دی چې رسول کریم صلی الله علیه وسلم وفرمائیل حقیقت دادی چه |
| عَلِيًّا مِنِّيْ وَأَنَا مِنْهُ وَهُوَ وَلِيُّ كُلِّ مُؤْمِنٍ . رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ. |
| علي رضي الله عنه زما نه دی او زه د علي رضي الله عنه نه یم او هغه علي رضي الله عنه د تمام اهل ایمان دوست او مددګار دی [ترمذي] |

**توضیح**: (وانا منه) په دې جملې سره حضور صلی الله علیه وسلم د حضرت علي رضي الله عنه سره د کمال قرب او تعلق او اخلاص او اتفاق او په نسب او حسب کې اشتراک طرفته اشاره کړې ده ، مطلب دا دی چه د علي رضي الله عنه سره زما قرابت هم دی مصاهرت هم دی ، محبت هم دی ، بیا یاد ساتل پکار دي چه دغه جمله حضور صلی الله علیه وسلم یوائې د حضرت علي رضي الله عنه لپاره فرمایلې نه ده بلکه د سلمان فارسي رضي الله عنه لپاره شته (سلمان مني وانا منه) (عباس مني وانا منه) وغیره وغیره.

و هو ولي: د ولی څو معناګانې راځي چه په هغو کې یوو د محبوب معنی هم ده ، د حضرت علي لپاره همدا معنی استعمال شوې ده ، په راتلونکي حدیث کې هم دغه لفظ د همدې محبوب په معنی کې استعمال شوی دی ، ددې باب په حدیث نمبر ۱۷ کې ددې تفصیل ان شاء الله راځي.

## زه چه د چا محبوب یم علي د هغه محبوب دی

| |
|---|
| ﴿۵﴾ وَعَنْ زَيْدِ بْنِ أَرْقَمَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ |
| حضرت او زید بن ارقم رضي الله عنه نه روایت دی نبي کریم صلی الله علیه وسلم وفرمائیل زه چه د چا دوست یم |
| كُنْتُ مَوْلَاهُ فَعَلِيٌّ مَوْلَاهُ. رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالتِّرْمِذِيُّ. |
| علي رضي الله عنه هم د هغه دوست دی [احمد او ترمذي] |

## زما معاهدات به حضرت علي رضي الله عنه پوره کوي

| |
|---|
| ﴿۶﴾ وَعَنْ حُبْشِيِّ بْنِ جُنَادَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلِيٌّ مِنِّيْ |
| او حضرت حبشي بن جناده رضي الله عنه وايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمائيل علي رضي الله عنه زما نه دی |
| وَاَنَا مِنْ عَلِيٍّ وَلَا يُؤَدِّيْ عَنِّيْ اِلَّا اَنَا اَوْ عَلِيٌّ. |
| او زه د علي رضي الله عنه نه یم زما د طرف نه د نبذ عهد ذمه واري دي هيڅوک نه ادا کوي علاوو زما او د علي رضي الله عنه نه |
| رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَرَوَاهُ اَحْمَدُ عَنْ اَبِيْ جُنَادَةَ. |
| ترمذي او احمد د اروايت د ابو جناده نه نقل کړی دی. |

**توضيح : ولايؤدی عنی:** په دې حديث کې هم حضور صلى الله عليه وسلم د حضرت علی رضي الله عنه سره خپل کمال قرب بيان کړی دی او په لايؤدی سره هغه حقيقت ته اشاره ده کوم چه د عربو دستور وو چه کوم شخص به کومه معاهده يا معامله کوله نو هغه به په خپله هغه شخص ختمولی شوله يا د هغه کوم نږدې رشته دار به ختمولی شوه ، حضور صلى الله عليه وسلم د خپلو معاملاتو او معاهداتو جوړولو او ماتولو ذمه واری په حضرت علي رضي الله عنه باندې اچولې وو لکه د هجرت په شپه چه حضور صلى الله عليه وسلم حضرت علي رضي الله عنه خپل په ځای پريخی وو تر څو د اماتونو د سپارلو معاملات ختم کړي ، بيا د قريشو سره چه کومې معاهدې شوي وې د هغو د ختمولو يا تجديدولو د اعلان لپاره يې حضرت علي رضي الله عنه د صديق اکبر رضي الله عنه پسې ليږلی وو.

په دې سفر کې حضرت علی رضي الله عنه **امير الحج** نهٔ بلکه صرف د اعلان کولو لپاره مکې ته راغلی وو، امير الحج خو قانوني صديق اکبر رضي الله عنه وو ، په زير بحث حديث کې هم حضور صلى الله عليه وسلم واضحه کړه چه زه او علی يو شان يو ، زما معاملات او معاهدات زما او د علی نه سوا بل څوک اداء کولی نه شي ، د مولی د لفظ تفصيل په آينده حديث نمبر ۱۷ کې راځي.

| |
|---|
| ﴿۷﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ آخٰى رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| او حضرت ابن عمر رضي الله عنهما بيان کوي چه رسول کريم صلى الله عليه وسلم د خپل صحابو رضي الله عنهم په منځ کي ورورولي قائمه |
| بَيْنَ اَصْحابو فَجَآءَ عَلِيٌّ تَدْمَعُ عَيْنَاهُ فَقَالَ آخَيْتَ |
| کړه نو حضرت علي رضي الله عنه حضور صلى الله عليه وسلم ته راغی او سترګو نه يې اوښکي روانې وې او عرض يې وکړو |

بَيْنَ أَصْحَابِكَ وَلَمْ تُوَاخِ بَيْنِي وَبَيْنَ أَحَدٍ فَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

یارسول الله تاسو دخپلو صحابو رضي الله عنهم منځ کي وروروولي قائمه کړه لیکن زما وروروولي مو دچاسره

أَنْتَ أَخِي فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ.

قائمه نه کړه دي اوریدو سره رسول کریم صلی الله علیه وسلم هغوی ته وفرمائیل ته زما وروریې په دنیا کي هم او آخرت

رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ هٰذَا حَدِيْثٌ حَسَنٌ غَرِيْبٌ.

کي هم دا روایت ترمذي نقل کړی دی او ویلي یي دي چه دا حدیث حسن غریب دی.

## حضرت علي رضي الله عنه د الله محبوب ؤ

﴿۸﴾ وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ كَانَ عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ طَيْرٌ

او حضرت انس رضي الله عنه بیان کوي چې یوه ورځ د نبي کریم صلی الله علیه وسلم مخ ته پخه کړي مرغۍ ایښودل شوي وو

فَقَالَ اَللّٰهُمَّ ائْتِنِيْ بِأَحَبِّ خَلْقِكَ إِلَيْكَ يَأْكُلُ مَعِيَ

حضور صلی الله علیه وسلم دعا وغوښتله ای الله ستا مخلوقاتو کي چه څوک تاته زیات محبوب وي هغه ماته را ولیږی

هٰذَا الطَّيْرَ فَجَاءَهُ عَلِيٌّ فَأَكَلَ مَعَهُ.

چه ما سره د دي مرغۍ غوښه وخوري نو حضرت علي رضي الله عنه راغی او هغوی حضور صلی الله علیه وسلم سره هغه مرغۍ

رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ هٰذَا حَدِيْثٌ غَرِيْبٌ.

وخوړه دا روایت ترمذي نقل کړی دی او ویلي یي دي چه دا حدیث غریب دی.

**توضیح** : (بأحب خلقک) محبوب کیدل یو شی دی او د مقام او چتوالی بل شی دی ، د حضرت علي رضي الله عنه د محبوب کیدلو مطلب دا نه دی چه د هغه نه علاوه د بل چا خلیفه جوړول منع وو ، دا شیعو شنیعه د خرافاتو څخه دي، آخر دا حدیث خو هم دی چه به انسانانو کې حضور صلی الله علیه وسلم ته حضرت عائشه رضي الله عنها محبوبه وو او په سړیو کې هغه ته د هغې پلار صدیق اکبر رضي الله عنه محبوب وو.

﴿۹﴾ وَعَنْ عَلِيٍّ قَالَ كُنْتُ إِذَا سَأَلْتُ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

او حضرت علي رضي الله عنه وایي ما چي رسول کریم صلی الله علیه وسلم نه کله هم څه شی غوښتی دی نو ماته یي راکړی دی

| | | |
|---|---|---|
| أَعْطَانِيْ | وَإِذَا سَكَتُّ | اِبْتَدَأَنِيْ. |
| او کله چه به زه خاموش وم یعني غوښتلو نه به مې حجاب کولو نو حضور صلی الله علیه وسلم به خپله راکولو | | |
| رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ هٰذَا حَدِيْثٌ حَسَنٌ غَرِيْبٌ. | | |
| دا روایت ترمذي نقل کړی دی او ویلي یې دي چه دا حدیث غریب دی. | | |

## حضرت علي رضي الله عنه د علم دروازه وه

| |
|---|
| ﴿۱۰﴾ وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَا دَارُ الْحِكْمَةِ وَعَلِيٌّ بَابُهَا. |
| او حضرت علي رضي الله عنه وايي در سول کریم صلی الله علیه وسلم ارشاد دی زه د حکمت کور یم او علي د دي کور دروازه ده |
| رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ. وَقَالَ هٰذَا حَدِيْثٌ غَرِيْبٌ وَقَالَ رَوٰى بَعْضُهُمْ |
| دا روایت ترمذي نقل کړی دی او ویلي یې دي چه دا حدیث غریب دی هغوی دا هم وویل چه بعضي |
| هٰذَا الْحَدِيْثَ عَنْ شَرِيْكٍ وَلَمْ يَذْكُرُوْا فِيْهِ عَنِ الصُّنَابِحِيِّ |
| راویانو دا حدیث د شریک تابعي نه نقل کړی دی لیکن د هغوی د دي حدیث اسنادو کي د صنابحي ذکر نشته څرنګه |
| وَ لَا نَعْرِفُ هٰذَا الْحَدِيْثَ عَنْ اَحَدٍ مِنَ الثِّقَاتِ غَيْرَ شَرِيْكٍ. |
| چه هغوی د نورو روایتونو سلسله اسناد کي د هغه د نوم ذکر راځي او دا روایت د شریک نه علاوه د بل چا نه مونږ نه پیژنو |

**توضیح : وعليٌّ بابها:** په دې حدیث کې د حضرت علی رضي الله عنه فضیلت بیان شوی دی، په علم او قضاء کې الله تعالی حضرت علی رضي الله عنه ته اعلی مقام ور کړی وو لیکن د دې مطلب دا نه دی چه حضرت علي رضي الله عنه یوو دروازه وو او باقی د هیڅ ځای نه د علم د حصول لپاره کومه لاره نه وو ځکه چه د علم لپاره یوو دروازه نه ده ډیرې دروازې کیدلی شي په هغو کې حضرت علی رضي الله عنه هم یوو وو او نور صحابو هم وو، آخر حضرت ابن مسعود او حضرت معاذ او حضرت ابی بن کعب هم د قرآن په اعلی ماهرینو کې شمیرل شوي دي.

د حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه په باره کې دي (وکان اعلمنا) یعنې د ټولو نه لوی عالم ابوبکر صدیق رضي الله عنه وو، حضور اکرم صلی الله علیه وسلم وفرمایل : **اصحابي کالنجوم فبأيهم اقتديتم اهتديتم** ددینه معلومه شوو چه د علم ډیرې دروازې دي یوو دروازه نه ده. د جنت اته دروازې دي نو د علم هم ډیرې دروازې راتللی شي هر صحابی به د علم او هدایت روښانه مناره وو، محدثینو د زیر بحث حدیث نه

تفصيل کې دا الفاظ هم نقل کړي دي : حضور صلی الله علیه وسلم و فرمايل : (اَنَا مَدِيْنَةُ الْعِلْمِ وَاَبُوْبَكْرٍ اَسَاسُهَا وَعُمَرُ حِيْطَانُهَا وَعُثْمَانُ سَقْفُهَا وَعَلِيٌّ بَابُهَا)
يعني زه د علم ښار يم او ابوبکر د هغه بنياد دی ، عمر يې څلور ديوارې ده ، عثمان يې چت دی او علی د هغه دروازه ده.

| |
|---|
| ﴿۱۱﴾ وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ دَعَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلِيًّا يَوْمَ |
| او حضرت جابر رضي الله عنه بيان کوي د غزوو طائف په ورځ رسول الله صلى الله عليه وسلم حضرت علي رضي الله عنه را وبللو |
| الطَّائِفِ فَانْتَجَاهُ فَقَالَ النَّاسُ لَقَدْ طَالَ نَجْوَاهُ مَعَ |
| او د هغه سره يې په غوږ کې خبرې شروع کړې يعني داسې په نظر راتلو چه څه خاص مسئله بانديې يې هغه سره |
| ابْنِ عَمِّهٖ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| پټې پټې خبرې کولې خلقو وويل د خپل اکا د زوی سره خو رسول الله ډير وخته پورې په غوږ کې خبرې |
| مَا انْتَجَيْتُهٗ وَ لٰكِنَّ |
| وکړې رسول الله صلى الله عليه وسلم چه دا واؤ ريدل نو وې فرمائيل چه د علي سره پټې خبرې نه دي کړې بلکې |
| اللّٰهَ انْتَجَاهُ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ. |
| الله تعالى ورسره کړې دي [ترمذي] |

## خصوصي فضيلت

| |
|---|
| ﴿۱۲﴾ وَعَنْ أَبِيْ سَعِيْدٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِعَلِيٍّ يَا عَلِيُّ |
| او حضرت ابو سعيد رضي الله عنه وايي چې رسول کريم صلى الله عليه وسلم حضرت علي رضي الله عنه ته فرمائيلي وو ای علي زما او |
| لَا يَحِلُّ لِأَحَدٍ يُجْنِبُ فِيْ هٰذَا الْمَسْجِدِ غَيْرِيْ وَغَيْرُكَ قَالَ |
| ستا نه سوا چاله جائز نه دي چه هغه د جنابت حالت کې مسجد نبوي صلى الله عليه وسلم ته راشي د علي ابن منذر بيان |
| عَلِيُّ بْنُ الْمُنْذِرِ فَقُلْتُ لِضِرَارِ بْنِ صُرَدٍ مَا مَعْنٰى هٰذَا |
| دی چه ما د ضرار ابن صرد نه پوښتنه وکړه د دې حديث څه مطلب دی نو وغوی راته وښودل د دې معنٰى |

الْحَدِيْثُ قَالَ لَا يَحِلُّ لِأَحَدٍ يَسْتَطْرِقُهُ جُنُباً غَيْرِيْ

داده چه زما او ستا نه سوا هیڅ سړي دپاره جائز نه دي چه هغه د جنابت په حالت کي مسجد ګزرګاه

وَغَيْرِكَ . رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ هٰذَا حَدِيْثٌ حَسَنٌ غَرِيْبٌ.

جوړ کړي او دهغه د ننه ځي راځي دا حديث ترمذي نقل کړی دی او ويلي يي دي چه دا حديث غريب دی

**توضیح**: (لايحل) مطلب دا دی چه د جنابت په حالت کښ صرف زه او علی د مسجد په لاره تیریدلی شو کوم بل شخص ته حلال نه دي چه د جنابت په حالت کښ په مسجد نبوی کښ تیر شي، چونکښ د حضور اکرم ﷺ او د حضرت علی رضي الله عنه د تیریدو لاره په مسجد کښ وو د باقی خلکو نه وو په دغه وجه دا خصوصی اجازت ورکړی شو ، همدا وجه ده چه اجازت يې صرف په مسجد نبوی پورې خاص کړ او مسجدی يې و فرمایل بل کوم مسجد ته تګ جائز نه وو ځکه دا مجبوری په بل ځای کښ نه وو .

## د پیغمبر علیه السلام د حضرت علي رضي الله عنه سره خاص محبت

وَعَنْ أُمِّ عَطِيَّةَ قَالَتْ بَعَثَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جَيْشًا فِيْهِمْ

بي بي ام عطيه رضي الله عنها وايي يو وار رسول کريم ﷺ څه جنګي مهم باندي يو لښکر وليږه چه هغه کي

قَالَتْ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

حضرت علي رضي الله عنه هم شامل وو د بي بي ام عطيه رضي الله عنها بيان دی په هغه موقع چه حضور ﷺ لښکر

رَافِعٌ يَدَيْهِ يَقُوْلُ

ګويا د لښکر د واپسي ورځ قريب وو ما رسول کريم ﷺ لاس اوچتولو سره دا دعا کول

لَا تُمِتْنِيْ حَتّٰى

وريدل الهي ماته هغه وقت ته پوري مرګ مه راولي خو پوري چه ته علي رضي الله عنه سلامتيا سره بيرته

تُرِيَنِيْ عَلِيًّا. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ

راتلو سره ماته ونه ښايې [ترمذي]

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره محبت د ايمان نښه ده

| |
|---|
| ﴿۱۴﴾ عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ قَالَتْ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَايُحِبُّ عَلِيًّا مُنَافِقٌ |
| بي بي ام سلمه وايي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمائيل علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره منافق محبت نه لري او کامل |
| وَّلَا يُبْغِضُهُ مُؤْمِنٌ. رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالتِّرْمِذِيُّ |
| مؤمن علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره بغض او دښمني نه لري دا روايت احمد او ترمذي نقل کړی دی او ترمذي |
| وَقَالَ هٰذَا حَدِيْثٌ حَسَنٌ غَرِيْبٌ إِسْنَادًا |
| ويلي دي چه دا حديث په اعتبار د اسنادو سره غريب دی. |

**توضيح** : (مؤمن) يعنې د حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره محبت ساتل د هر مسلمان د ايمان علامت دی، دلته دا خبره ملحوظ نظر ساتل پکار دي چه د محبت ساتلو لپاره شريعت يو معيار مقرر کړی دی، په دغه معيار باندې چه کوم محبت وي هغه به د ايمان علامت وي، هغه محبت هرګز مطلوب نه دی چه د شريعت د قواعدو منافي وي لکه څنګه چه د شيعو روافضو مصنوعی محبت وي چه حضرت علی رض د الوو يت په درجه باندې فائز کوي، د هغه نه مدد غواړي بلکه هغه د انبياؤ څخه اعلی مني، هغه وصی رسول الله مني او نور نور خرافات وايې او د هغه په نقش قدم يعنې شريعت باندې تګ نه کوي، د روافضو لوی لوی امامان او حجت الله بړيږي کموي، چه کله د دوی د امامانو دا حال دی نو د مقتديانو به يې څه حال وي.

## حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته کنځل کول حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته کنځل کول دي

| |
|---|
| ﴿۱۵﴾ وَعَنْهَا قَالَتْ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ سَبَّ عَلِيًّا |
| او بي بي ام سلمه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وايي چې رسول کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمائيل کوم سړی چه د علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته بد وويل |
| فَقَدْ سَبَّنِيْ. رَوَاهُ أَحْمَدُ. |
| هغه در حقيقت ما ته بد وويل [احمد] |

**توضيح** : (سبنی) يعنې حضرت علی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته کنځل کول حضور اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته د کنځل کولو مترادف دي او حضور اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته کنځل کول کفر دی لهذا علی رض ته کنځل کول کفر دی،

کچیرې څوک دغه کنځل حلال وګڼي نو دا کفر دی او که ګناه یې ګڼي نو دا ګناه کبیره ده بیا دا کلام په وعید شدید او تغلیظ او تشدید باندې محمول دی، په یو بل حدیث کې دي (مَنْ سَبَّ اَصْحَابِيْ فَعَلَيْهِ لَعْنَةُ اللهِ وَالْمَلَائِكَةِ وَالنَّاسِ اَجْمَعِيْنَ) او په یو حدیث کې دي (مَنْ سَبَّ الْاَنْبِيَاءَ قُتِلَ وَمَنْ سَبَّ اَصْحَابِيْ جُلِدَ).

## د حضرت علي رضي الله عنه یو مثال او یوه پیشنګویي

| |
|---|
| ﴿۱۶﴾ وَعَنْ عَلِيٍّ قَالَ قَالَ لِيْ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْكَ مَثَلٌ مِّنْ عِيْسٰى |
| او حضرت علي رضي الله عنه وايي رسول الله صلى الله عليه وسلم ماته وفرمائيل په تاکې د عیسی علیه السلام سره یو قسم مشابهت |
| أَبْغَضَتْهُ الْيَهُوْدُ حَتّٰى بَهَتُوْا أُمَّهُ |
| دی یهودیانو دهغه سره بغض او عناد وساته نو دومره زیات یې وساته چه دهغه مور باندې بهتان وتړه |
| وَأَحَبَّتْهُ النَّصَارٰى حَتّٰى أَنْزَلُوْهُ بِالْمَنْزِلَةِ |
| او عیسایانو هغه سره محبت او تعلق قائم کړه نو دومره زیات او دغلو سره یې قائم کړه چه هغه یې |
| الَّتِيْ لَيْسَتْ لَهُ ثُمَّ قَالَ يَهْلِكُ |
| هغه مقام ته ورسولو چه هغه دپاره ثابت نه ده دې حدیث بیانولو نه روسته حضرت علي رضي الله عنه وویل |
| فِيَّ رَجُلَانِ مُحِبٌّ مُفْرِطٌ يُقَرِّظُنِيْ |
| دوو سریو یعنې دوو ډلې داسې هلاک شي چه هغوی کې به یو خو زما سره محبت لرې او هغه محبت کې |
| بِمَا لَيْسَ فِيَّ وَمُبْغِضٌ يَحْمِلُهُ |
| به د حد نه متجاوز شي ما به دهغه خوبیانو او لوییو حامل ګرځوي چې په ماکې به نه وي او یوه ډله |
| شَنَآنِيْ عَلٰى أَنْ يَبْهَتَنِيْ. رَوَاهُ أَحْمَدُ. |
| به ما سره بغض او عناد لرې زما دښمنۍ نه مغلوب کیدو سره په ما به بهتان تړي [روایت کړې دې احمد] |

**توضیح**: (محب مفرط) محبت هغه معتبر دی چه معتدل وي او د قاعدې او قانون مطابق وي، د بعضو شخصیاتو سره خلکو داسې معامله کړې چه یو فریق د محبت په جوش کې هغه د عابد د مقام څخه پورته کړی د معبود په مقام باندې یې درولی او دویم فریق د عداوت په جذبه کې د عابد او بندګۍ د درجې نه هم غورځولی، د حضرت عیسی علیه السلام سره یهود او نصاری همداسې د افراط تفریط

معامله وکړه ، بیا د حضرت علی رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ سره شیعو او خوارجو همداسې د افراط او تفریط معامله وکړه ، په زیر بحث حدیث کې حضور صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ همدې حقیقت ته اشاره فرمایلې ده چه د حضرت علی رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په باره کې به دوو فریقه وي لکه څنګه چه د حضرت عیسی علیه السلام په باره کې دوو فریقه شول ، دواړو د افراط او تفریط نه کار واخیستلو او ګمراه شول ، حضرت علی رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ پخپله ددې نور وضاحت فرمایلی دی چه زما په باره کې به دوو فریقه هلاک شي ، د هغو څخه یوو یې شیعو روافض دي چه د محبت نعره لګولو کې ګمراه او هلاک شول ، دوو م خوارج او ناصبه دي چه په بغض او عداوت کې ګمراه شول ، اهل سنت والجماعة په لاره د اعتدال باندې محفوظ او سالم پاتې شول .

(**یقرظنی**) دا د باب تفعیل تقریظ څخه دی ای یمدحنی یعنې د حد نه زیات زما تعریف کولو والا به وي او زما شان به د انبیاؤ او عامو صحابو څخه لوی پیش کونکي یا ما به د الوو یت درجې ته رسونکي وي کوم شیان چه زما د شایان شان سره لائقه نه وي هغه به ما ته منسوبوي . (**شنآنی**) یعنې په زړه کې زما سره نفرت او بغض ساتلو والا حتی چه په ما باندې بهتان تړلو والا وي . په مسند احمد کې امام احمد رَحِمَهُ اللَّهُ یو روایت نقل کړی دی چه د هغه الفاظ دا دي : قال علی یحبنی اقوام حتی یدخلوا النار فی حبی و یبغضنی اقوام حتی یدخلوا النار فی بغضی ، د حضرت علی رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ یو دعاء هم امام احمد رَحِمَهُ اللَّهُ داسې نقل کړې ده : **قال علی اللهم العن کل مبغض لنا و کل محب لنا غال** ، په دې روایاتو سره به شیعو په ډیر مشکل کې پریوځي کچیرې هغوی عقل لري .

## د غدیر خم واقعه

﴿۱۷﴾ وَعَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ وَزَيْدِ بْنِ أَرْقَمَ أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمَّا نَزَلَ بِغَدِيْرِ

حضرت براء بن عازب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ او زید بن ارقم رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُم روایت دی رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ چه غدیر خم کې پړاؤ واچوو

خُمٍّ أَخَذَ بِيَدِ عَلِيٍّ فَقَالَ أَلَسْتُمْ

نو حضور صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ لاس خپل لاس کي ونیوه او وي فرمایل ای زما اصحابو په دې خو

تَعْلَمُوْنَ أَنِّيْ أَوْلٰى بِالْمُؤْمِنِيْنَ مِنْ أَنْفُسِهِمْ قَالُوْا

تاسو پوهیږئ چه د اهل ایمانو په نزد زه د هغوی د ځانونو نه هم ورته زیات عزیزیم ټولو عرض وکړو

بَلٰى قَالَ أَلَسْتُمْ تَعْلَمُوْنَ أَنِّيْ أَوْلٰى بِكُلِّ مُؤْمِنٍ

چه هو دي نه روسته حضور صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ داسي وفرمائیل تاسو پوهیږی چه زه دیو یو مؤمن په نزد د هغه د ځان

| مِنْ | نَفْسِهِ | قَالُوْا | بَلٰى | فَقَالَ | اَللّٰهُمَّ | مَنْ | كُنْتُ | مَوْلَاهُ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| نه هم زيات عزيز يم صحابو رضي الله عنه عرض وكړو چه هو يا حضور صلى الله عليه وسلم وفرمائيل اى الله د كوم سړي چه زه | | | | | | | | |
| فَعَلِيٌّ | مَوْلَاهُ | اَللّٰهُمَّ | وَالِ | مَنْ | وَالَاهُ | وَعَادِ | مَنْ | عَادَاهُ |
| دوست يم علي رضي الله عنه د هغه دوست دى الٰهي ته هغه سړى دوست وساتي چه علي رضي الله عنه دوست لري وته | | | | | | | | |
| فَلَقِيَهُ | عُمَرُ | بَعْدَ | ذٰلِكَ | فَقَالَ | هَنِيْئًا | | | |
| هغه سړي خپل دښمن وګرځوي چه علي رضي الله عنه سره دښمني ساتي دې واقعې نه روسته حضرت عمر رضي الله عنه | | | | | | | | |
| يَا | ابْنَ | أَبِيْ | طَالِبٍ | أَصْبَحْتَ | وَأَمْسَيْتَ | | | |
| چې حضرت علي رضي الله عنه سره يو ځاي شو نوو غوى ته يي وويل اى ابن ابي طالب مبارک دي وي ته خو | | | | | | | | |
| مَوْلٰى | كُلِّ | مُؤْمِنٍ | وَمُؤْمِنَةٍ. | رَوَاهُ | أَحْمَدُ. | | | |
| سهار وخت كي هم او مابنام وقت كي هم د هر مسلمان سړي او ښځي دوست او محبوب يي. [احمد] | | | | | | | | |

توضيح: (بغدير خم) د مكې او مدينې په مينځ كې يو ځاى جحفه دى چه هغه ته نن سبا رابغ وايې، دې رابغ سره يو ځاى دى هغه ته (غدير خم) وايې، دا د شارع قديم بدر په لاره چه تير شي مكه مكرمه ته تقريبا د ۹۰ كلو ميټر په فاصله باندې واقع دى. **(من كنت مولاه فعليٌّ مولاه)** دغه قسم الفاظ د دينه مخكې حديث نمبر ۵ كې هم تير شوي، دا حديث د حضرت على رضي الله عنه په فضيلت كې دى، په دې كې يو لفظ (اولى) او بل لفظ (مولى) دى.

**سوال:** شيعه په دې روايت كې لفظ د مولى د اولى بالخلافة او د خليفه په معنى سره اخلي، هغوى وايې چه حضرت على رض خليفه هم وو يعنې د حضور صلى الله عليه وسلم نه بعد د هغه خلافت وو خلفاء ثلاثو او صحابو د هغه نه دغه حق غصب كړلو، شيعه وايې چه دغه حديث د على رضي الله عنه په خلافت باندې نص صريح او دليل قاطع دى آيا واقعي هم همداسې ده؟

**جواب:** د شيعه د دغه غلط سوچ يو جواب دا دى چه د مولى لفظ په ډيرو معناګانو كې استعماليږي مثلا مالك، ناصر، محب، رب، آقا، دوست، آزاد شوى غلام، او د تره په ځوى باندې هم د مولى د لفظ اطلاق كيږي، اوس دلته په دې حديث كې د دغو معانيو څخه د محب او محبوب معنى اخيستل زيات واضحه او د حديث سياق او سباق ته نږدې دى او د نورو رواياتو سره هم موافقه ده چيرته چه د حضرت على رضي الله عنه سره د محبت ساتلو حكم دى، مطلب دا شو چه حضور صلى الله عليه وسلم فرمايې چه

کوم شخص زما سره محبت ساتي هغه دي د علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره هم محبت وساتي ، اى الله ! چه څوک د علي سره محبت ساتي ته هم د هغه سره محبت وساته او څوک چه د علي سره بغض ساتي ته هم د هغه سره بغض وساته . په دې مطلب کې د چا اختلاف کيدی شي ؟

**دويم جواب** دا دی چه د ولايت علي د ثبوت لپاره د شيعو د اصولو او قواعدو مطابق د نص قطعي او حديث متواتر ضرورت وي حالانکه دا حديث متواتر نه دی او نه قطعي نص دی ځکه چه د اهل لغت والاؤ څخه هيڅ هم د مولى معنى خلافت اخيستى نه دی .

**دريم جواب** دا دی چه ځه فرضه کړه چه د مولى معنى د حاکم او خليفه ده نو بيا د دې حديث دا معنى کول پکار دي چه حضور اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايې چه زه د چا خليفه يم علي هم د هغه خليفه دی ، اى الله ! ته هم د هغه شخص والي جوړ شه څوک چه د علي والي او حاکم وي ، حالانکه دا ترجمه غلطه ده ، د نقصان ددينه راغی چه مولى د حاکم او خليفه په معنى سره واخستلی شو ، کچيرې مولى د محب او محبوب په معنى سره واخيستلی شي نو د ټول حديث مطلب صحيح کيږي .

**څلورم جواب** دا دی چه کله په دې لفظ کې د علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د ولايت او حاکميت تصريح وو نو حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د خلفاء ثلثو په دور کې په دې سره د خپل خلافت لپاره استدلال ولې ونکړو؟ حالانکه د حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره خو په شورى کې باقاعده منتخب شوی وو ، په دغه وخت کې د دې حديث د پيش کولو ضرورت خو هم وو او بل مانع هم موجود نه وو ، معلومه شوو چه په لفظ د مولى کې د خلافت مفهوم نشته البته د محبت او محبوب معنى په دې کې شته او د همدې محبت تذکره حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ کړې ده ځکه په آينده کې راتلونکي واقعاتو کې د حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ذات متنازع جوړيدونکی وو او د خوارجو او منافقينو له طرفه د هغه سره د عداوت فضاء پيدا کيدونکې وو چه ديته په کتلو حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د مخکې نه تنبيه وفرمايله . په هر حال د اسلام په باره کې د شيعو ګانو علم غلط شوی دی او د علم غلط کيدو سره انسان ګمراه کيږي حالانکه په عملي ګناه سره انسان صرف ګناهګار جوړيږي .

## د فاطمې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا سره د حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نکاح

﴿۱۸﴾ وَعَنْ بُرَيْدَةَ قَالَ خَطَبَ أَبُو بَكْرٍ وَعُمَرُ فَاطِمَةَ فَقَالَ

او حضرت بريده رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فاطمې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا سره د نکاح پيغام

رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّهَا صَغِيْرَةٌ

ورکړو نو رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ورته وفرمائيل چه هغه کم عمره ده او بيا چې حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فاطمې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ثم | خَطَبَهَا | عَلِيٌّ | فَزَوَّجَهَا | مِنْهُ. | رَوَاهُ | النَّسَائِيُّ. |

سره د خپلي نکاح پيغام ورکړو نو حضور صلی الله علیه وسلم هغوی سره د فاطمې رضي الله عنها نکاح وکړله [نسايي]

توضيح : په تفصيلي رواياتو کې دي چه کله د حضرت فاطمه رض رشته د حضرت ابوبکر او عمر فاروق رضي الله عنهما سره ونشوه نو دوی دواړو حضرت علی رضي الله عنه آماده کړلو چه ته لاړ شه د نکاح پيغام ورکړه ، حضرت علی رضي الله عنه چه کله د نکاح پيغام ورکړو نو حضور اکرم صلی الله علیه وسلم وفرمايل چه د الله تعالی هم همدا حکم دی چه زه د فاطمې نکاح د علی سره وکړم ،بيا هغه صلی الله علیه وسلم د دواړو نکاح وتړله ، په دې حديث کې د حضرت علی رضي الله عنها د فضيلت او شان بيان دی ، په بعضو رواياتو کې دي چه ام ايمن حضرت علی رضي الله عنه ته ترغيب ورکړلو ، په هرحال د الله تعالی همدا حکم وو چه د فاطمه رضي الله عنها نکاح د حضرت علی رضي الله عنه سره وشي.

## مسجد کې د حضرت علي رضي الله عنه دروازه

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۱۹﴾ وَعَنِ | ابْنِ | عَبَّاسٍ | أَنَّ | رَسُولَ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ أَمَرَ |
| او حضرت ابن عباس رضي الله عنه نه روايت دی رسول الله صلی الله علیه وسلم مسجد نبوي کې دننه د حضرت علي رضي الله عنه | | | | | | | | | |
| بِسَدِّ | الْأَبْوَابِ | إِلَّا | بَابَ | عَلِيٍّ. | رَوَاهُ | التِّرْمِذِيُّ | وَقَالَ | | |
| د دروازې نه علاوه نوري ټولي دروازې بندي کړلي دا روايت ترمذي نقل کړی دی او ويلي يې دي | | | | | | | | | |
| هٰذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ. | | | | | | | | | |
| چه دا حديث غريب دی. | | | | | | | | | |

توضيح : د دينه مخکې په مناقب ابی بکر کې د غه قسم يو حديث تير شوی دی چه حضور صلی الله علیه وسلم د حضرت ابوبکر رضي الله عنه نه علاوه د نورو ټولو هغو دروازو بندولو حکم وکړلو کومې چه مسجد ته خلاصيدلې ، صرف د حضرت ابوبکر رضي الله عنه دروازه يې باقی پاتې کړه ، دلته په دې حديث کې د حضرت علی رضي الله عنه په باره کې دي چه د هغه د دروازې نه علاوه دي ټولې بندي شي په دواړو حديثونو کې دا واضح تضاد دی. مګر علماؤ دا جواب ورکړی دی چه د زير بحث حديث تعلق د مخکې زمانې سره دی او د دينه بعد په مرض وفات کې يې چه هغه نوی حکم وفرمايلو نو په هغه کې يې د حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه د دروازې نه علاوه د ټولو د بندولو حکم وفرمايلو ، بل دا هم ممکنه ده چه په يوو زمانه کې د حضرت علی رضي الله عنه د دروازې خلاصي پريښودو اجازت شوی وي هغه اجازت باقی وو چه حضرت ابوبکر رضي الله عنه ته هم اجازت ورکړی شو نو د دې نوي اجازت تعارض د هغه

ښکني اجازت سره نشته، دواړه اجازتونه په خپل خپل ځای باندې وو هیڅ تعارض نشته.

## دقربت او بې تکلفي خصوصي مقام

﴿۲۰﴾ وَعَنْ عَلِيٍّ قَالَ كَانَتْ لِيْ مَنْزِلَةٌ مِنْ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمْ

اوحضرت علي رضي الله عنه نه روایت دی هغوی بیان وکړو چې د رسول الله صلی الله علیه وسلم په نظر کې ماته یو داسې قدر

تَكُنْ لِأَحَدٍ مِنَ الْخَلَائِقِ آتِيْهِ بِأَعْلٰى سَحَرٍ

اومنزلت حاصل وو چه خلقت کې بل چاته حاصل نه وو زه به حضور صلی الله علیه وسلم ته سحر دوخته بالکل تیاره

فَأَقُوْلُ اَلسَّلَامُ عَلَيْكَ يَا نَبِيَّ اللهِ فَإِنْ

کې ورتلم ویل به مې السلام علیک یانبي الله که حضور صلی الله علیه وسلم به زما سلام اوریدو سره غاړه تازه کړله

تَنَحْنَحَ انْصَرَفْتُ إِلٰى أَهْلِيْ

نو مابه دې ګڼلو سره چې داوقت حضور صلی الله علیه وسلم څه مشغولیت کې دی نو کورته به بیرته راتلم اوکه

وَإِلَّا دَخَلْتُ عَلَيْهِ. رَوَاهُ النَّسَائِيُّ.

حضور صلی الله علیه وسلم به غاړه تازه نه کړله نوزه به بې تکلفه حضور صلی الله علیه وسلم ته ورتلم. [نسایي]

﴿۲۱﴾ وَعَنْهُ قَالَ كُنْتُ شَاكِيًا فَمَرَّ بِيْ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

اوحضرت علي رضي الله عنه بیان کوي چې یو وار زه سخت مریض شوم حضور صلی الله علیه وسلم په ماتیریدلو هرکله چې

وَأَنَا أَقُوْلُ اَللّٰهُمَّ إِنْ كَانَ أَجَلِيْ قَدْ حَضَرَ فَأَرِحْنِيْ

مرض دشدت نه بې تابه کیدو سره په لوړ اواز دادعا مې کوله الهي که زما د مرګ وخت راغلی وي

وَإِنْ كَانَ مُتَأَخِّرًا فَارْفَعْنِيْ وَإِنْ كَانَ بَلَاءً فَصَبِّرْنِيْ

نو ماته نجات اوابدي سکون راته عطا کړې اوکه اوس وخت نه دی راغلي نو صحت بحال کولو سره

فَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَيْفَ

ماته راحت اوآرام راکړې اوکه دابیماري امتحان اوازمائش دي نو ماته دصبر او آزمائش برداشت

قُلْتَ قَالَ فَأَعَادَ عَلَيْهِ مَا قَالَ قَالَ

کولو قوت راکړې چه زه دبې تابۍ اوبې قرارۍ اظهار ونه کړم رسول الله صلی الله علیه وسلم چې زما نه داد

| فَضَرَبَهُ | بِرِجْلِهِ | وَقَالَ |
|---|---|---|
| واوريده نو وي فرمائيل چې تا څه دعا غوښته ما د دعا الفاظ د حضور ﷺ مخکې بيا راوګرځول | | |

| اَللّٰهُمَّ | عَافِهِ | أَوْ | اشْفِهِ | شَكَّ |
|---|---|---|---|---|
| حضور ﷺ د دعا الفاظ اوريدو نه روسته خپلې پښې سره علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته ديکه ورکړه او بيا داسې | | | | |

| الرَّاوِيُّ | قَالَ | فَمَا | اشْتَكَيْتُ |
|---|---|---|---|
| دعايي وفرمائيله الٰهي علي ته عافيت عطا کړې يادايي وفرمائيل چه ده ته شفا ورکړي دا راوي | | | |

| وَجَعِيْ | بَعْدُ. | رَوَاهُ | التِّرْمِذِيُّ |
|---|---|---|---|
| اظهار شک دی حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي د حضور ﷺ نه روسته بيا ما ته هغه بيماري هيڅ | | | |

| وَقَالَ | هٰذَا | حَدِيْثٌ | حَسَنٌ | صَحِيْحٌ |
|---|---|---|---|---|
| کله لاحق نشوو دا روايت ترمذي نقل کړې دی او ويلي يې چه دا حديث حسن صحيح دی. | | | | |

حب النبي رسول الله مفترض — و حب اصحابو نور ببرهان

من كان يعلم ان الله خالقه — لا يرمين ابا بكر ببهتان

ولا ابا حفص الفاروق صاحبه — و لا الخليفة عثمان بن عفان

اما علي فمشهور فضائله — والبيت لا يبتنى الا باركان



# باب مناقب العشرة المبشرة رضي الله عنهم
## د عشره مبشرو د مناقبو بيان

العشرة لسو ته ويل كيږي او المبشرة د بشارت او خوشخبرۍ په معنی سره دی ، مطلب دا دی چې هغه لس خوش قسمته او خوش نصيبه نفوس قدسيه چې هغو ته د هغوی په ژوند كې حضور ﷺ د جنت خصوصي بشارت اوروليي وو ، په دې سلسله كې صاحب د مشكوة ټول احاديث جمع كړي دي او د يو عنوان لاندې يې درج كړي دي چې ډير عمده انداز دی ، په دې ترتيب كې دا خفي اشاره پرته ده چې د صحابو په جماعت كې د ټولو نه افضل خلفاء راشدين دي او بيا عشره مبشره دي ، د دغو نفوس قدسيو نومونه په راتلونكي حديث نمبر ۱۱ كې په دې ترتيب سره ذكر دي (۱) حضرت ابوبكر (۲) حضرت عمر فاروق (۳) حضرت عثمان (۴) حضرت علی (۵) حضرت طلحه (۶) حضرت زبير (۷) حضرت عبد الرحمن بن عوف (۸) حضرت سعد بن ابی وقاص (۹) حضرت سعيد بن زيد (۱۰) حضرت ابو عبيده بن الجراح رضی الله عنهم.

### اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ
### د حضرت عمر رضي الله عنه نه وروسته د خلافت قابل خلك

| |
|---|
| ﴿۱﴾ عَنْ عُمَرَ قَالَ مَا أَحَدٌ أَحَقَّ بِهٰذَا الْأَمْرِ مِنْ هٰؤُلَاءِ |
| حضرت عمر فاروق رضي الله عنه روايت دی هغوی فرمائيلي وو دي امر يعني د منصب خلافت د دي خلقو |
| النَّفَرِ الَّذِيْنَ تُوُفِّيَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ عَنْهُمْ رَاضٍ |
| نه زيات ثوک مستحق نه دی چې هغوی نه رسول الله ﷺ راضي او خوشحاله د دي دنيا نه تشريف |
| فَسَمّٰى عَلِيًّا وَعُثْمَانَ وَالزُّبَيْرَ وَطَلْحَةَ وَسَعْدًا |
| يو وړو او بيا حضرت عمر رضي الله عنه د انو مونه واخستل [۱] علي [۲] عثمان [۳] زبير [۴] طلحه [۵] سعد |
| وَعَبْدَ الرَّحْمٰنِ . رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ . |
| [۶] عبد الرحمٰن رضي الله عنه [بخاري] |

**توضيح** : په حضرت عمر فاروق رضي الله عنه باندې چې كله قاتلانه حمله وشوله نو هغه د ځان نه وروسته د خلافت لپاره د شپږو اشخاصو يوه شورا جوړه كړه چې د دوی نه دې يو خليفه جوړ كړی شي ځكه د دغو خلكو نه نبي كريم ﷺ راضی ؤ ، هغه خپل ځوی عبد الله بن عمر په طور د مبصر

دکيناستلو اجازت وفرمايلو مګر د چا د رأيې اخيستلو يا ورکولو يا د انتخاب په کومه معامله کې د هغه شرکت منع کړی وو، هغه څو مسلح افراد د شورى د کوټې نه بهر او درول او ويې فرمايل چې تر څو پورې د خلافت کار تمام شوی نه وي چا ته د بهر وتلو اجازت ورنه کړئ.

## دحضرت طلحه رضي الله عنه جانثاري

| |
|---|
| ﴿۲﴾ وَعَنْ قَيْسِ بْنِ حَازِمٍ قَالَ رَأَيْتُ يَدَ طَلْحَةَ شَلَّاءَ |
| اوحضرت قيس بن ابي حازم رضي الله عنه وايي مادحضرت طلحه رضي الله عنه هغه لاس اوليدلو چې هغه بالکل |
| وَقَى بِهَا النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ أُحُدٍ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ. |
| بيکاره او شل وو هغه په دې لاس دغزوه احد په ورځ نبي کريم صلى الله عليه وسلم د کفارو نه بچ کړی وو [بخاري] |
| ﴿۳﴾ وَعَنْهُ وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| اوحضرت جابر رضي الله عنه وايي دغزوه احزاب يعني غزوه خندق په موقع يوه ورځ نبي کريم صلى الله عليه وسلم و فرمائيل |
| مَنْ يَأْتِيْنِيْ بِخَبَرِ الْقَوْمِ يَوْمَ الْأَحْزَابِ قَالَ الزُّبَيْرُ أَنَا فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| کوم سړی دی چې د دښمن خلقو خبر ماته راوړي زبير رضي الله عنه وويل زه به يې راوړم بيا نبي کريم صلى الله عليه وسلم |
| إِنَّ لِكُلِّ نَبِيٍّ حَوَارِيًّا وَحَوَارِيَّ الزُّبَيْرُ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. |
| وفرمائيل دهرنبي حواري وي اوزما حواري زبير رضي الله عنه دی [بخاري ومسلم] |

**توضيح**: (يوم الاحزاب) ددينه د جنګ خندق واقعه مراد ده، د قريش کفارو تقريبا تر يوې مياشتې مدينه منوره محاصره کړې وه، حضور ﷺ وغوښتل چې کوم صحابي لاړ شي او د کفارو خفيه خبر راوړي تر څو مونږ ته معلومه شي چې د هغوی څه اراده ده، هغه د دې مقصد لپاره اعلان وفرمايلو چې څوک تللو ته تيار دی، د سختې يخنۍ ورځې وې، د شپې وخت وو، تياره وه، د دښمن خطره وه نو په بار بار اعلان باندې به صرف حضرت زبير رضي الله عنه پورته کيده او د تګ لپاره به تياريده، د حضور ﷺ اراده د کوم بل چا د ليږلو وه نو حضرت زبير رض به يې کيناوه بيا به يې اعلان وکړو، په آخر کې هغه د حضرت حذيفه بن يمان نوم واخيستلو او هغه يې روان کړلو او د حضرت زبير رضي الله عنه په تعريف او اعزاز کې وفرمايل چې دا زما حواري دی، حواري خاص دوست ته ويل کيږي، د حضرت عيسى عليه السلام خاصو ملګرو ته حواريون ويل کيږي، حضرت زبير رضي الله عنه په جنګ جمل کې شهيد شوی وو او په بصره کې د هغه قبر دی، ابن جرموز ملعون هغه شهيد کړو.

﴿۴﴾ وَعَنِ الزُّبَيْرِ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ يَّأْتِيْ بَنِيْ قُرَيْظَةَ

او حضرت زبیر رضی الله عنه وايي چي رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمائیل څوک دی چي د بني قریظه یهودیانو ته لاړ شي

فَيَأْتِيْنِيْ بِخَبَرِهِمْ فَانْطَلَقْتُ فَلَمَّا رَجَعْتُ جَمَعَ لِيْ

او دهغوی باره کي ضروري معلومات ماته راوړي نود حضور صلی الله علیه وسلم دي ارشاد اوريدو سره زه روان شوم

رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَبَوَيْهِ

او هر کله چي دهغوی په باره کي معلوماتو حاصلولو سره بيرته راغلم نو رسول الله صلی الله علیه وسلم خپل مور او

فَقَالَ فِدَاكَ أَبِيْ وَأُمِّيْ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

پلار دواړه په ما جمع کړل حضور صلی الله علیه وسلم وفرمائيل زما مور پلار دي په تا قربان وي. [بخاري و مسلم]

**توضيح:** (فانطلقت) د بنو قریظه په واقعه کي حضرت زبیر رضی الله عنه خبر راوړلو لپاره تللی وو لیکن په غزوه احزاب کي حضرت حذیفه رضی الله عنه تللی وو، حضرت زبیر رضی الله عنه ته حضور اکرم ﷺ اجازت ورکړی نه وو، د بنو قریظه سره د جنګ واقعه د جنګ خندق نه وروسته پیښه شوي وه.

## دحضرت سعد رضی الله عنه فضيلت

﴿۵﴾ وَعَنْ عَلِيٍّ قَالَ مَا سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جَمَعَ أَبَوَيْهِ

او حضرت علي کرم الله وجهه وايي ما دنبي کریم صلی الله علیه وسلم نه دچا دپاره خپل مور پلار جمع کول نه دي

لِأَحَدٍ إِلَّا لِسَعْدِ بْنِ مَالِكٍ فَإِنِّيْ سَمِعْتُهُ يَقُوْلُ يَوْمَ

اوريدلي علاوه دسعد بن مالک رضی الله عنه نه چنانچي دجنګ احد په ورځ ما دحضور صلی الله علیه وسلم نه دا فرمائيل

أُحُدٍ يَاسَعْدُ ارْمِ فِدَاكَ أَبِيْ وَأُمِّيْ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

واؤريدل سعد تير چلوه زما مور پلار دي په تا صدقه وي. [بخاري و مسلم]

## دالله په لار کي دټولو نه مخکي تير حضرت سعد چلولی وو

﴿۶﴾ وَعَنْ سَعْدِ بْنِ أَبِيْ وَقَّاصٍ قَالَ إِنِّيْ لَأَوَّلُ الْعَرَبِ رَمٰى بِسَهْمٍ

او حضرت سعد بن ابي وقاص رضی الله عنه وايي زه اولنی عرب مسلمان یم چا چي دالله تعالی په لار کي

فِيْ سَبِيْلِ اللهِ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

تیر ويشتلی دی. [بخاري و مسلم]

**توضیح**: حضرت سعد بن ابی وقاص رضی الله عنه د عشره مبشره څخه دی ، د عراق فاتح دی ، د کوفې ګورنر وو ، یو څو خلکو په هغه باندې بې ځایه اعتراضونه وکړل ، حضرت عمر رضی الله عنه تفتیش لپاره راوغوښته ، هغه د خپل ځان څو خصوصیات ذکر کړل ، د هغو خصوصیاتو نه یو دا وو چې زه اول هغه شخص یم چې په جهاد فی سبیل الله کې په کفارو باندې ما غشی استعمال کړلو ، مونږ د اسلام لپاره ډیر مشقتونه تیر کړي دي نن دغه خلک په ما باندې د اسلام په باره کې د کوتاهۍ الزام لګوي ، کچیرې داسې وي بیا خو زما تباهی ده . په هر حال په سنه ۱ھ کې د عبیدبن حارث سریه د اسلام اوله سریه وه ، حضور اکرم صلی الله علیه وسلم په خپل لاس د هغو لپاره جنګی بیرغ وتړلو او شپیته کسان یې د جهاد لپاره ولیږل ، په هغې کې حضرت سعد رضی الله عنه اول غشی په کفارو باندې وچلولو .

**فداک ابي و امي**: حضور صلی الله علیه وسلم د بعضو صحابو لپاره د فداک ابی لفظ استعمال کړی دی لیکن د امی لفظ یې استعمال کړی نه دی ، د حضرت سعد رضی الله عنه او حضرت زبیر رضی الله عنه لپاره یې د امی لفظ هم استعمال کړی دی ، په دغه وجه به دغو حضراتو دا د خپل ځان لپاره لوی اعزاز ګرځولو .

| |
|---|
| ﴿۷﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ سَهِرَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَقْدَمَهُ الْمَدِيْنَةَ |
| او بي بي عائشه رضی الله عنها بیان کوي رسول کریم صلی الله علیه وسلم یو وار یو غزا نه مدینې ته بیرته راتلو سره د دین د |
| لَيْلَةً فَقَالَ لَيْتَ رَجُلًا صَالِحًا يَحْرُسُنِيْ |
| دښمنانو نه د خطرې په سبب د شپې اوده نه شو او بیا حضور صلی الله علیه وسلم وفرمائیل کاش چې یو نیک بخت |
| إِذْ سَمِعْنَا صَوْتَ سِلَاحٍ |
| سړی نن شپه زما څوکیدار کړي وی حضور صلی الله علیه وسلم دا فرمائیلي وو چې اچانک مونږ د اسلحو اواز |
| فَقَالَ مَنْ هٰذَا قَالَ أَنَا سَعْدٌ قَالَ |
| واوریدو حضور صلی الله علیه وسلم پوښتنه وکړه څوک دی؟ جواب وشو زه سعد رضی الله عنه یم حضور صلی الله علیه وسلم پوښتنه ورنه |
| مَا جَاءَ بِكَ قَالَ وَقَعَ فِيْ نَفْسِيْ خَوْفٌ عَلٰى رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| وکړه دلته ته څرنګه راغلې؟ سعد رضی الله عنه وویل زما زړه کې د رسول الله صلی الله علیه وسلم په نسبت خوف پیدا شو نو زه |
| فَجِئْتُ أَحْرُسُهُ فَدَعَا لَهُ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ |
| دلته حاضر شوی یم چې ستاسو څوکیداري وکړم دي او ریدو سره حضور صلی الله علیه وسلم سعد رضی الله عنه ته دعا کاني وکړې |
| ثُمَّ نَامَ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. |
| او اطمینان سره اوده شو . |

﴿۸﴾ وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِكُلِّ أُمَّةٍ أَمِيْنٌ وَأَمِيْنُ هٰذِهِ الْأُمَّةِ
او حضرت انس رضي الله عنه وايي چي رسول كريم صلى الله عليه وسلم وفرمائيل د هر امت يو امين وي او د دي امت امين
أَبُوْ عُبَيْدَةَ بْنُ الْجَرَّاحِ. رَوَاهُ مُسْلِمٌ.
ابو عبيده بن الجراح دى. [بخاري و مسلم]

**توضيح**: د حضرت ابو عبيده نوم عامر بن عبد الله بن الجراح دى، په رشته كې د حضور صلى الله عليه وسلم ماما دى، خپل پلار يې په جنګ بدر كې قتل كړى وو په دې باندې هغه ته د امين هذه الامة لقب وركړلى شو، د عمر رضي الله عنه په دور كې په شام كې په طاعون عمواس كې وفات شو.

﴿۹﴾ وَعَنِ ابْنِ أَبِيْ مُلَيْكَةَ قَالَ سَمِعْتُ عَائِشَةَ وَسُئِلَتْ
او حضرت ابن ابي ملكيه وايي ما د بي بي عائشي رضي الله عنها نه هغه وقت واوريدل كله چې هغه نه پوښتنه
مَنْ كَانَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُسْتَخْلِفًا لَوِ
وشوه چې فرض كه كه رسول الله صلى الله عليه وسلم خلافت د پاره صراحةً څوك كانديد كولى نو ستا نظر انتخاب
اسْتَخْلَفَهُ قَالَتْ أَبُوْ بَكْرٍ فَقِيْلَ ثُمَّ مَنْ بَعْدَ أَبِيْ بَكْرٍ؟
به په چا پريوته بي بي عائشي رضي الله عنها جواب كي وويل په حضرت ابو بكر رضي الله عنه بيا پوښتنه وشوه د ابو بكر رضي الله عنه
قَالَتْ عُمَرُ قِيْلَ مَنْ بَعْدَ
نه روسته به يي څوك كانديد فرمائيل بي بي عائشي رضي الله عنها وويل په عمر رضي الله عنه بيا پوښتنه ورنه وشوه
عُمَرَ؟ قَالَتْ أَبُوْ عُبَيْدَةَ إِبْنُ الْجَرَّاحِ. رَوَاهُ مُسْلِمٌ.
د حضرت عمر رضي الله عنه نه روسته د چا نمبر راځي؟ بي بي عائشي رضي الله عنها وويل د ابو عاوده بن الجراح رضي الله عنه [مسلم]

## د حرا په غر باندې نبي او شهيدان

﴿۱۰﴾ وَعَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ عَلَى حِرَاءٍ هُوَ وَأَبُوْبَكْرٍ وَعُمَرُ
او حضرت ابو هريره رضي الله عنه روايت دى يو ورځ رسول كريم صلى الله عليه وسلم حضرت ابو بكر رضي الله عنه عمر فاروق رضي الله عنه
وَعُثْمَانُ وَعَلِيٌّ وَطَلْحَةُ وَالزُّبَيْرُ فَتَحَرَّكَتِ
حضرت عثمان رضي الله عنه حضرت علي رضي الله عنه حضرت طلحه رضي الله عنه و حضرت زبير رضي الله عنه حرا غر باندي ولاړ وو
الصَّخْرَةُ فَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اهْدَأْ
چې دهغوى د پښو لاندي كاڼي حركت شروع كړو رسول كريم صلى الله عليه وسلم هغه كاڼي مخاطب كولو سره ورته

فَمَا عَلَيْكَ إِلَّا نَبِيٌّ أَوْ صِدِّيْقٌ أَوْ شَهِيْدٌ وَزَادَ بَعْضُهُمْ

وفرمائيل قرار شه پرتا باندي څوک نور ولاړ نه دي يانبي دى ياصديق دى ياشهيد دى او بعضو

وَسَعْدُ بْنُ أَبِيْ وَقَّاصٍ وَلَمْ يَذْكُرْ عَلِيًّا. رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

راويانو دسعد بن ابي وقاص رضي الله عنه اضافه کړي ده او دحضرت علي رضي الله عنه ذکر يې نه دى کړى [مسلم]

## اَلْفَصْلُ الثَّانِيْ

## دعشره مبشرو ترتيب

﴿۱۱﴾ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ عَوْفٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ:

حضرت عبدالرحمٰن بن عوف رضي الله عنه روايت دي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم وفرمائيل

أَبُوْبَكْرٍ فِيْ الْجَنَّةِ وَعُمَرُ فِيْ الْجَنَّةِ وعُثْمَانُ فِيْ الْجَنَّةِ

[۱] ابوبكر رضي الله عنه جنت کي دى [۲] عمر رضي الله عنه جنت کي دى [۳] عثمان رضي الله عنه جنت کي دى

وَعَلِيٌّ فِيْ الْجَنَّةِ وطَلْحَةُ فِيْ الْجَنَّةِ وَالزُّبَيْرُ فِيْ الْجَنَّةِ

[۴] علي رضي الله عنه جنت کي دى [۵] طلحه رضي الله عنه جنت کي دى [۶] زبير رضي الله عنه جنت کي دى

وَعَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ عَوْفٍ فِيْ الْجَنَّةِ وَسَعْدُ بْنُ أَبِيْ وَقَّاصٍ فِيْ الْجَنَّةِ

[۷] عبدالرحمٰن بن عوف رضي الله عنه جنت کي دى [۸] سعد بن ابي وقاص رضي الله عنه جنت کي دى

وَسَعِيْدُ بْنُ زَيْدٍ فِيْ الْجَنَّةِ وَأَبُوْ عُبَيْدَةَ بْنُ الْجَرَّاحِ فِيْ الْجَنَّةِ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ

[۹] سعيد بن زيد رضي الله عنه په جنت کي دى، [۱۰] او ابوعاوده بن الجراح رضي الله عنه په جنت کي دى. [ترمذي]

وَرَوَاهُ ابْنُ مَاجَةَ عَنْ سَعِيْدِ بْنِ زَيْدٍ.

او ابن ماجه دا روايت دسعيد بن زيد رضي الله عنه نه نقل کړى دى.

## دڅو صحابو رضي الله عنهم دخصوصي امتيازاتو ذكر

﴿۱۲﴾ وَعَنْ أَنَسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ

او حضرت انس رضي الله عنه نبي کريم صلى الله عليه وسلم نه روايت کوي چې حضور صلى الله عليه وسلم وفرمائيل

أَرْحَمُ أُمَّتِيْ بِأُمَّتِيْ أَبُوْبَكْرٍ

زما په امت کي ابوبكر رضي الله عنه زما دامت دخلقو په حق کي دټولو نه زيات مهربان او دټولو نه لوى درد مند دى او زما د

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَأَشَدُّهُمْ | فِيْ | أَمْرِ | اللهِ | عُمَرُ |
| امت په خلقو کي عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د الله د دين په معاملاتو کي د ټولو نه زيات سخت دی چې ډيري سختۍ او مضبوطۍ سره | | | | |
| وَ | أَصْدَقُهُمْ | | حَيَاءً | عُثْمَانُ |
| امر بالمعروف او نهي عن المنكر فريضه انجام کوي او زما دامت خلقو کي عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ټولو نه زيات رشتني حيادار دي | | | | |
| وَ | أَفْرَضُهُمْ | زَيْدُ | بْنُ | ثَابِتٍ |
| اوزما دامت خلقو کي د ټولو نه زيات په ميراث پوهه زيد بن ثابت دی اوزما امت کي د | | | | |
| وَ | أَقْرَأُهُمْ | أُبَيُّ | بْنُ | كَعْبٍ |
| ټولو نه زيات قرآن ويونکي او د ټولو نه لوی ماهر تجويد قرآن کي ابي ابن کعب دی اوزما امت کي | | | | |
| وَ أَعْلَمُهُمْ بِالْحَلَالِ وَ الْحَرَامِ مُعَاذُبْنُ جَبَلٍ وَ لِكُلِّ أُمَّةٍ أَمِيْنٌ وَ أَمِيْنَ هٰذِهِ الْأُمَّةِ | | | | |
| حلال وحرام د ټولو نه زيات پيژندونکی معاذ بن جبل دی او د هر امت يو امين وي او د دي امت امين | | | | |
| أَبُوْ عُبَيْدَةَ بْنُ الْجَرَّاحِ. رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالتِّرْمِذِيُّ وَقَالَ هٰذَا حَدِيْثٌ حَسَنٌ صَحِيْحٌ | | | | |
| ابو عبيده بن الجراح رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دی احمد او ترمذي، او ترمذي ويلي دي چې دا حديث حسن صحيح دی او دا حديث | | | | |
| وَ رُوِيَ | عَنْ | مَعْمَرٍ | عَنْ قَتَادَةَ | مُرْسَلًا |
| معمر هم قتاده نه بطريق ارسال نقل کړی دی او د معمر دې روايت کي دا الفاظ هم شته چې زما دامت | | | | |
| وَ فِيْهِ | وَ أَقْضَاهُمْ | عَلِيٌّ. | | |
| په خلقو کي د حق مطابق فيصله کونکی علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دی | | | | |

**نوټ**: په دې حديث کې چې د کومو صحابه کرامو ذکر دی د هغو نه بعضې د عشره مبشره څخه نه دي مګر د خصوصي امتيازاتو په وجه د هغو نوم په دې باب کې راغلی دی.

## حضرت طلحه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د پاره د جنت بشارت

| |
|---|
| ﴿۱۳﴾ وَ عَنِ الزُّبَيْرِ قَالَ كَانَ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ يَوْمَ أُحُدٍ دِرْعَانِ، |
| او حضرت زبير رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي د جنګ احد په ورځ د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په جسم مبارک دوه زغرې وې د |

| الصَّخْرَةِ | إِلَى | فَنَهَضَ |
|---|---|---|
| جنګ د دوران په موقع حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ یو ګاټي باندي ختل وغوښتل چې د دښمن د لښکر جائزه واخلي او د | | |
| فَقَعَدَ | يَسْتَطِعْ | فَلَمْ |
| اسلام مجاهدینو ته د بلندۍ نه ښکاره شي لیکن د د واړو زغرو د بوج په وجه پورته ختلو کي کامیاب نه شو. | | |

طَلْحَةُ تَحْتَهُ حَتَّى اسْتَوَى عَلَى الصَّخْرَةِ فَسَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

طلحه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته لاندي کیناستو چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د هغه پر شا ختلو سره کاڼړي

| التِّرْمِذِيُّ. | رَوَاهُ | طَلْحَةُ. | أَوْجَبَ | يَقُوْلُ |
|---|---|---|---|---|
| ته ورسیدو او بیا رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه دا فرمائیل واوریدل طلحه جنت واجب کړو [ترمذي] | | | | |

## د حضرت طلحه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فضیلت

﴿۱۴﴾ وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ نَظَرَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى طَلْحَةَ بْنِ عُبَيْدِ اللهِ

او حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي يوه ورځ رسول کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ طلحه بن عبید الله رَضِيَ اللهُ عَنْهُ طرف ته وکتل

قَالَ مَنْ أَحَبَّ أَنْ يَّنْظُرَ إِلَى رَجُلٍ يَّمْشِيْ عَلَى وَجْهِ الْأَرْضِ وَقَدْ

او وي فرمائیل د کوم سړي چې خواهش وي چې هغه انسان وویني چې ځمکه باندي ګرځي لیکن حقیقت

قَضٰى نَحْبَهُ فَلْيَنْظُرْ إِلَى هٰذَا وَفِيْ رِوَايَةٍ مَّنْ سَرَّهُ أَنْ

کي هغه خپل وخت پوره کړی دی نو هغه ته پکار دي چې هغه هغه انسان طلحه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وویني او یو

يَّنْظُرَ إِلَى شَهِيْدٍ يَّمْشِيْ عَلَى وَجْهِ الْأَرْضِ فَلْيَنْظُرْ

روایت کي داسي دی چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمائیل څوک چې د داسي شهید دیدار کول غواړي

إِلَى طَلْحَةَ بْنِ عُبَيْدِ اللهِ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

چې په ځمکه ګرځي نو هغه دي طلحه بن عبید الله رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته وګوري [ترمذي]

**توضیح** : وقد قضی نحبه: یعنې په حقیقت کې هغه مړ دی هغه خپل مطلوب چې شهادت دی هغه یې موندلی دی یعنې چې کوم شخص یو ژوندی شهید ته کتل غواړي هغه دي طلحه ته وګوري، چونکې په جنګ احد کې د حضرت طلحه په جسم باندې دومره زخمونه لګیدلي وو چې د جسم کومه وړوکي یا غټه حصه یې سالمه پاتې شوې نه وه، په دومره کثرت سره زخم لګیدلو نه بعد ګویا هغه ژوندی تلونکی او ګرځیدونکی شهید دی، حضرت طلحه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په جنګ جمل کې شهید شوی وو.

﴿۱۵﴾ وَعَنْ عَلِيٍّ قَالَ سَمِعَتْ أُذُنِيْ مِنْ فِيْ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ طَلْحَةُ وَالزُّبَيْرُ

او حضرت علي رضي الله عنه وايي زما غوږونو د رسول الله صلى الله عليه وسلم د خولي مبارکي نه واوريدل طلحه رضي الله عنه

جَارَايَ فِي الْجَنَّةِ . رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ هٰذَا حَدِيْثٌ غَرِيْبٌ.

او زبير به جنت کي زما همسايه ګان وي دا روايت ترمذي نقل کړی او ويلي يي دي چې دا حديث غريب دی

## حضرت سعد رضي الله عنه فضيلت او خصوصيت

﴿۱۶﴾ وَعَنْ سَعْدِ بْنِ أَبِيْ وَقَّاصٍ أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ يَوْمَئِذٍ

او حضرت سعد بن ابي وقاص رضي الله عنه نه روايت دی چې رسول الله صلى الله عليه وسلم د هغه په حق کي

يَعْنِيْ يَوْمَ أُحُدٍ اَللّٰهُمَّ اشْدُدْ رَمْيَتَهُ

د غزوه احد په ورځ داسي دعا وکړله خداونده د سعد رضي الله عنه تير آندازی کي شدت او قوت عطا کړې

وَأَجِبْ دَعْوَتَهُ. رَوَاهُ فِيْ شَرْحِ السُّنَّةِ.

او د هغه دعا قبوله کړي [شرح السنه] .

﴿۱۷﴾ وَعَنْهُ أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اَللّٰهُمَّ

او حضرت سعد رضي الله عنه بن ابي وقاص نه روايت دی رسول کريم صلى الله عليه وسلم دعا فرمائيلي وه خداونده

اسْتَجِبْ لِسَعْدٍ إِذَا دَعَاكَ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

سعد رضي الله عنه چې ستا نه دعا وغواړي نو هغه قبوله کړي. [ترمذي]

﴿۱۸﴾ وَعَنْ عَلِيٍّ قَالَ مَا جَمَعَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَبَاهُ وَأُمَّهُ

او حضرت علي رضي الله عنه وايي رسول کريم صلى الله عليه وسلم خپل مور پلار د سعد رضي الله عنه نه علاوه بل هيڅ چا د پاره نه

إِلَّا لِسَعْدٍ قَالَ لَهُ يَوْمَ أُحُدٍ اِرْمِ فِدَاكَ أَبِيْ وَأُمِّيْ

دي جمع کړي د غزوه احد په ورځ هغه مخاطب کولو سره ورته فرمائيلي وو تير چلوه زما مور پلار دي په تا صدقه

وَقَالَ لَهُ اِرْمِ أَيُّهَا الْغُلَامُ الْحَزَوَّرُ . رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ .

وي او به هغه ورځ سعد رضي الله عنه مخاطب کولو سره يي ورته داسي فرمائيلي وو تير چلوه ای طاقتور ځوانه [ترمذي]

**توضيح** : الغلام الحزور: د ځوان هلک په معنی سره دی ، چست او چالاکه او هوښيار ځوان ته حَزَوَّر ويل کيږي ، د احد په ورځ حضور صلى الله عليه وسلم حضرت سعد رض ته فداک ابی و امی فرمايلي وو .

**سوال** : دلته دا سوال دی چې رسول کریم ﷺ د فداک ابی و امی الفاظ حضرت زبیر رضي الله عنه ته هم فرمايلي دي بيا دلته يې د نورو څخه نفی شوې ده ؟

**جواب** : ددې يو جواب دا دی چې حضرت علی رضي الله عنه دا خبره د خپل سماع او خپل معلوماتو په بنياد کړې ده ، دويم جواب دا دی چې د احد په ورځ حضور ﷺ دغه الفاظ صرف د سعد لپاره جمع کړي وو ، د حضرت زبير رضي الله عنه لپاره يې په جنګ بنوقريظه کې جمع کړي وه لکه څنګه چې ددې باب په حديث نمبر ۵ کې دي .

## د حضور اکرم ﷺ ماما

| | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۱۹﴾ | وَعَنْ | جَابِرٍ | قَالَ | أَقْبَلَ | سَعْدٌ | فَقَالَ | النَّبِيُّ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |

او حضرت جابر رضي الله عنه وايي يو ورځ سعد بن ابي وقاص رضي الله عنه حضور ﷺ مجلس مبارک ته راغی

هٰذَا خَالِي فَلْيُرِنِي امْرُؤٌ

نو نبي کريم ﷺ د هغه طرف ته اشاره کولو سره و فرمائيل دا زما ماما دی که څوک دا سي ماما لري

خَالَهُ رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ كَانَ سَعْدٌ مِنْ بَنِي زُهْرَةَ

نو ماته دي وښائي دا روايت ترمذي نقل کړی دی او ويلي يې دي چې سعد رضي الله عنه د قريشو د يوي قبيلي بني زهره

وَكَانَتْ أُمُّ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ بَنِي زُهْرَةَ فَلِذٰلِكَ

نه وو او د حضور ﷺ صاحب مور محترمه هم د بني زهرو نه وه په دې اعتبار حضور ﷺ

قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هٰذَا خَالِي وَفِي الْمَصَابِيحِ

د هغوی باره کې و فرمائيل چې دا زما ماما دی او مصابيح کې د فليرني نو هغه دې ماته وښائي په ځای فليکرمن نو هغه دې د

فَلْيُكْرِمَنَّ بَدَلَ فَلْيُرِنِي.

خپل د ماما ت کريم کوي الفاظ نقل کړی دی ليکن ابن حجر دی تبديلۍ ته تصحيف ويلي دي (۱)

بلکي ملا علي قاري رحمه الله خو تحريف ګرځولی دی .

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## اسلام کي د ټولو نه اولنی تير حضرت سعد رضي الله عنه و چلوه

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۲۰﴾ عَنْ | قَيْسِ | بْنِ | حَازِمٍ | قَالَ | سَمِعْتُ | سَعْدَ | بْنَ | أَبِي | وَقَّاصٍ |

حضرت قيس بن ابي حازم رضي الله عنه وايي ما د حضرت سعد بن ابي وقاص رضي الله عنه نه واوريدل يقينا زه په

يَقُوْلُ إِنِّيْ لَأَوَّلُ رَجُلٍ مِّنَ الْعَرَبِ رَمٰى بِسَهْمٍ فِيْ سَبِيْلِ اللهِ
عربو كي اولنى سړى يم چاچي دالله په لاركي اولنى تيرو چلوه او مونږ هغه زمانه ليدلي ده كله چې مونږ به
وَرَأَيْتُنَا نَغْزُوْ مَعَ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ
رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره په جهاد كي مصروف وو او زمونږ سره به د خوراك هيڅ شى نه وو صرف د
وَمَا لَنَا طَعَامٌ إِلَّا الْحُبْلَةُ وَوَرَقُ السَّمُرِ وَإِنْ كَانَ
كيكرپلى او دكيكر پاڼي به حاصليدې چې مونږ به خوړلي او دي كي څه مبالغه نشته چې مونږ به دبزي
أَحَدُنَا لَيَضَعُ كَمَا تَضَعُ الشَّاةُ مَالَهُ خِلْطٌ ثُمَّ
دپچو په شان وچې تقاضا كوله چې هغه كي به دلوندوالي نوم هم نه وو او س هغه زمانه هم وينو چې
أَصْبَحَتْ بَنُوْ أَسَدٍ تُعَزِّرُنِيْ عَلَى الْإِسْلَامِ
بنو اسد ماته د اسلام يعني مونځ باره كي نصيحت يا تنبيه كوي او زه او س هم د بنو اسد د نصيحت محتاج
لَقَدْ خِبْتُ إِذًا وَضَلَّ عَمَلِيْ
او د دين په باره كي د هغوى نه كمتريم نو بيا دي كي خو څه شك شبه نشته چې زه بيا نامراد شوم او زما
وَكَانُوْا وَشَوْا بِهِ إِلَى عُمَرَ وَقَالُوْا
كړي اعمال برباد شول د اصل كي دوي حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته د سعد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خلاف چغل خوري او شكايت
لَا يُحْسِنُ يُصَلِّيْ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.
كړى وو او ورته يي ويلي وو چې هغه مونځ په ښه طريقه نه كوي . [بخاري و مسلم]

**توضيح** :**رمى بسهم**: دا د عبيد بن حارث سريې ته اشاره ده ، دا د اسلام اوله ډلګۍ وه چې حضور اكرم ﷺ په سنه ۱ھ كې د ابوسفيان په قافلې باندې د حملې كولو لپاره ليږلې وه ، حضور ﷺ په خپلو مباركو لاسونو باندې بيرغ وتړلو . په ۶۰ سړيو باندې مشتمله دغه سريه كې حضرت سعد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هم وو ، په دې موقع باندې د كفارو سره باقاعده جنګ خو ونشو مګر حضرت سعد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د اسلامى تاريخ او جهاد في سبيل الله په ميدان كې په كفارو باندې اول غشى وچلولو ، د همدې خصوصيت تذكره هغه دلته كوي ، ددينه مخكې مې هم اشاره كړې ده دلته څه تفصيل ليكم چې

حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حضرت سعد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د كوفې والي مقرر كړى وو، د كوفې د خلكو لخوا په حضرت سعد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ باندې څه اعتراضات شوي وو، په باطن كې دا خراب خلك وو، هغوى وويل چې سعد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په لمونځونو كې سستي كوي، د غنيمت مال په تقسيم كې انصاف نه كوي، جهاد ته نه ځي، حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هغه مدينې ته راوغوښته ورته يې وفرمايل چې سعد! ستا شكايتونه شته تر دې چې د لمانځه شكايت هم راغلى دى؟ حضرت سعد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په خپله تزكيه كې خپلې څو كارنامې ذكر كړلې او بيا يې وويل كچيرې ددې خلكو الزامات صحيح وي نو بيا خو زما اعمال ضائع شول، حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ورته وفرمايل چې ستا په باره كې زما ګمان داسې وو لكه څنګه چې ته خپله صفائي پيش كوې ليكن د اهل كوفه څخه به زما نماينده كور په كور پوښتنه كوي تر څو حقيقت حال واضحه شي، نو دوه سركاري كسان د حضرت سعد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره كوفې ته روان شول او د كور كور نه يې د حضرت سعد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ متعلق پوښتنه وكړه، ټولو د حضرت سعد رض تعريف وكړلو مګر يو بوډا وويل چې كله تاسې په قسم وركولو سره پوښتنه كوئ نو زه به ووايم چې سعد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په لمونځونو او د مالونو په تقسيم كې ګړبړ كوي، په دې باندې حضرت سعد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل كچيرې تا دا اعتراض د شهرت حاصلولو لپاره كړى وو نو ستا لپاره په بددعائى كې وايم چې اى الله! ددې شخص عمر زيات كړې، او په تنګ دستۍ كې يې مبتلا كړې او خوار او ذليل يې كړې! دا درې واړه بددعائى د هغه شخص په حق كې قبولې شوې، عمر يې دومره اوږد شو چې وريځې يې په سترګو راپرېوتې چې كله به يې د چا سره خبره كولې نو په لاسونو به يې وريځې پورته كړې او وبه يې كتل، په غربت او تنګدستۍ كې به يې ورځې تيرېدلې، مرګ نه ورته راتللو، مګر په هسې حالت كې به يې ماشومانې نجونې نيولې او په ځان پورې به يې منښلې او ذليل او خوار به شو چې كله به د هغه څخه چا پوښتنه وكړه چې شرم وكړه دا څه كوې؟ نو ويل به يې چې څه وكړم؟ د سعد بددعائى راباندې لګيدلې ده. په زير بحث حديث كې د (**فاصبحت بنو اسد تعزرني**) الفاظو كې هسې قصې ته اشاره ده، تعزرني د زجر او توبيخ په معنى سره دى. عام مسلمانانو ته پكار دي چې هغه بلا وجه د مساجدو په امامانو باندې اعتراضات ونكړي، د بعضو د زړه آزارولو سره تباهي راځي.

**الحبلة:** د كيكر په ونه كې يو قسم بيكاره پلي وي چې د انسان د خوراك لپاره نه وي هغه مراد دي او د ورق السمر څخه د همدې كيكر پاڼې مراد دي، د الزام لرې كولو لپاره خپل فضائل بيانول جائز دي.

**ورق السمر:** په دې الفاظو سره سريه خبط ته اشاره ده چې په هغې كې صحابه كرامو پاڼې خوړلې وې او د پاخانې په ځاى به د ګډو پشان پچې كيدلې.

خلط: پیوست او قوام ته ویل کیږي، چې کله په غذا کې چکناهټ (تلاصق) نه وي نو پاخانه یوځای کیږي نه بلکه د پچو پشان پاخانه راځي.

| |
|---|
| ﴿۲۱﴾ وَعَنْ سَعْدٍ قَالَ رَأَيْتُنِيْ وَأَنَا ثَالِثُ الْإِسْلَامِ |
| او حضرت سعد رضی الله عنه وویل زه د خپل ځان باره کي د نورو نه زیات پوهیږم د اسلام فهرست کي زما لمبر دریم دي |
| وَمَا أَسْلَمَ أَحَدٌ إِلَّا فِي الْيَوْمِ الَّذِيْ أَسْلَمْتُ فِيْهِ |
| په کومه ورځ چې ما اسلام راوړلو په هغه ورځ هیڅ کس دائره اسلام کي داخل شوی نه وو |
| وَلَقَدْ مَكَثْتُ سَبْعَةَ أَيَّامٍ وَإِنِّيْ لَثُلُثُ الْإِسْلَامِ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ. |
| او بیا اوه ورځو پوري زه د اسلام دریمه حصه جوړ شوی وم [بخاري] |

**توضیح**: د حضرت سعد رضی الله عنه نه مخکې حضرت خدیجه رض او صدیق اکبر رضی الله عنه اسلام قبول کړی وو، حضرت سعد رضی الله عنه دریم کس وو چې اسلام یې قبول کړلو او بیا تر اوو ورځو پورې کوم بل یو مسلمان نشو، ګویا حضرت سعد ثلث اسلام یعنې د اسلام دریمه حصه وه. حضرت سعد رضی الله عنه د خپلو معلوماتو په بناء داسې وویل او د احرارو په اعتبار سره یې داسې وفرمایل او که نه نو دده نه مخکې څو غلامان هم مسلمانان شوي وو بیا خو دده نمبر دریم نه جوړیده، او دا هم ممکنه ده چې حضرت عمار وغیره احرار هم دده نه مخکې مسلمانان شوي وي لهذا بیا هماغه جواب کیږي چې هغه د خپل علم په بناء چې څه فرمایلي هغه یې صحیح فرمایلي.

## د حضرت عبدالرحمن بن عوف رضی الله عنه مالي قرباني

| |
|---|
| ﴿۲۲﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَقُوْلُ لِنِسَآئِهِ |
| او بي بي عائشه رضی الله عنها وایي [یوه ورځ] رسول صلی الله علیه وسلم خپلو بیبیانو ته وفرمائیل ستاسو معامله څه دې |
| إِنَّ أَمْرَكُنَّ مِمَّا يَهُمُّنِيْ مِنْ بَعْدِيْ وَلَنْ يَّصْبِرَ عَلَيْكُنَّ |
| نوعیت ده، چې ما څما د وفات نه روسته په فکر کي اچوي او ستاسو خرچې باندې هغه کسان صبر کوي |
| إِلَّا الصَّابِرُوْنَ الصِّدِّيْقُوْنَ قَالَتْ عَائِشَةُ يَعْنِيْ |
| چې صابرین دي او صدیقین دي، بي بي عائشه رضی الله عنها وایي، چې [صابرینو او صدیقینو نه [د |
| الْمُتَصَدِّقِيْنَ ثُمَّ قَالَتْ عَائِشَةُ |
| حضور صلی الله علیه وسلم مراد هغه خلق دي چې صدقه ورکونکي او د خیر کار کونکي دي، بیا بي بي عائشې رضی الله عنها، |

| الرَّحْمٰنِ . | عَبْدِ | بْنِ | سَلَمَةَ | لِأَبِي |
|---|---|---|---|---|
| دحضرت عبدالرحمن بن عوف رَضِيَ اللهُ عَنْهُ زوی دحضرت ابوسلمه تابعی مخکې وویل الله تعالی دی | | | | |

| قَدْ | عَوْفٍ | ابْنُ | وَكَانَ | الْجَنَّةِ | سَلْسَبِيْلِ | مِنْ | أَبَاكَ | اللهُ | سَقَى |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ستا پلار دجنت دسلسبیل نه سیراب کړی ، او حضرت عبدالرحمن بن عوف رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دحضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ | | | | | | | | | |

| رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ. | أَلْفًا . | بِأَرْبَعِيْنَ | بِيْعَتْ | بِحَدِيْقَةٍ | الْمُؤْمِنِيْنَ | أُمَّهَاتِ | عَلَى | تَصَدَّقَ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| دازواج مطهراتو دخرچې دپاره یو باغ ورکړی وو ، چې په څلوېښت زره [۴۰۰۰۰] دیناره خرڅ شوی وو . | | | | | | | | |

**توضیح**: **الصدیقون**: یعنې صدقه کونکې خلک مراد دي ، دا لفظ د صدقې څخه دی د صدق څخه نه دی . **سلسبیل الجنة**: د جنت د نهرونو څخه د یو نهر نوم دی ، حضرت عبدالرحمن بن عوف رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ډیر لوی تاجر او لوی فیاض، تارک الدنیا صحابی وو ، د حضور صلی الله علیه وسلم د وفات نه بعد یې په ازواج مطهرات باندې په خلاص زړه سره لوی مال خرچ کړلو ، د څلوېښت زره دینارو قیمت والا باغ یې ازواج مطهرات ته ورکړو بلکه په ترمذی کې دي چې د څلور لکه درهمو یا دینارو باغ هغه د ازواج مطهراتو د مصارفو لپاره وقف کړی وو ، په یو روایت کې دي چې د حضور اکرم صلی الله علیه وسلم په زمانه کې حضرت عبدالرحمن بن عوف یو ځل خپل د ټول مال نیمه او د نقدو څخه یې څلور زره دینار یا درهم د حضور صلی الله علیه وسلم مخې ته پیش کړل بیا یې څلور زره دیناره ورکړل بیا یې پنځه آسونه په جهاد کې ورکړل بیا یې په جهاد فی سبیل الله کې یونیم زر اوښان پیش کړل، په یو روایت کې دي چې یو ځل هغه یونیم لک دینار په صحابه کرامو باندې تقسیم کړل .

یا چې کله شپه شوه نو هغه قلم او کاغذ راواخیسته د خپل مال یو فهرست یې جوړ کړلو چې دا مال د انصارو او مهاجرینو لپاره دی چې کله د مال حساب وشو نو هغه د خپل بدن د کپړو باره کې لیکلي دي چې قمیص دي فلانی ته ورکړی شي ، عمامه دي فلانی ته ورکړی شي په دغه طریقه هغه ټول مال د الله د رضاء لپاره حساب کړلو او ویده شو ، سهار چې کله د لمانځه لپاره لاړلو نو حضور صلی الله علیه وسلم ته جبرئیل امین راغی او ویې فرمایل چې یا رسول الله ! الله تعالی فرمایي چې عبدالرحمن بن عوف ته زما سلام وایه او د هغه نه هغه فهرست واخله قبول یې کړه کوم چې هغه د شپې جوړ کړی دی او بیا دغه فهرست هغه ته واپس کړه او ورته ووایه چې الله تعالی ستا مال قبول کړلو ، اوس ته په دې مال باندې نگران او وکیل شه چیرته چې دي خوښه وي هلته یې خرچ کړه ، او هغه ته د جنت بشارت واوروه ، حضرت عبدالرحمن بن عوف دیرش زره غلامان آزاد کړي وو ، د دغه سخا او جود په وجه حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا حضرت عبدالرحمن بن عوف ته دعاء کوي او حضور

اکرم ﷺ خاصه دعاء وفرمايله چې په راتلونکي حديث کې ذکر ده . (يحثوا) د سخاوت کولو په معنی سره دی ، دا د راتلونکي روايت لفظ دی .

| |
|---|
| ﴿۲۳﴾ وَعَنْ أُمِّ سَلَمَةَ قَالَتْ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ لِأَزْوَاجِهٖ |
| اوبي بي ام سلمه رضي الله عنها وايي مادرسول کريم ﷺ نه خپلو بيبيانو ته دا فرمائيل واوريدل حقيقت دا دی |
| إِنَّ الَّذِيْ يَحْثُوْ عَلَيْكُنَّ بَعْدِيْ هُوَ الصَّادِقُ الْبَارُّ اَللّٰهُمَّ |
| چې زما دوفات نه روسته چې کوم سړی چې موتي ډکولو سره په تاسو به خرچ کوي يعني په پوره |
| اسْقِ عَبْدَ الرَّحْمٰنِ بْنَ عَوْفٍ مِنْ |
| فراخه زړه اوکامل سخاوت سره ستا سو اخراجاتو کي خپل مال خرچ کوي هغه صادق الايمان |
| سَلْسَبِيْلِ الْجَنَّةِ. رَوَاهُ أَحْمَدُ. |
| صاحب احسان دی خداونده عبدالرحمن بن عوف رضي الله عنه جنت دنهر سلسبيل نه شيراب کړی [احمد] |

## دحضرت ابوعاوده رضي الله عنه فضيلت

| |
|---|
| ﴿۲۴﴾ . وَعَنْ حُذَيْفَةَ قَالَ جَآءَ أَهْلُ نَجْرَانَ إِلٰى رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| اوحضرت حذيفه بن اليمان رضي الله عنه وايي دنجران خلقو درسول کريم ﷺ خدمت کي حاضرېدو سره |
| فَقَالُوْا يَا رَسُوْلَ اللهِ ابْعَثْ إِلَيْنَا رَجُلًا أَمِيْنًا |
| عرض وکړو يارسول الله ﷺ مونږ ته يوداسي سړی راوليږه چې امانتداروي يعني زمونږ حقوقو کي |
| فَقَالَ لَأَبْعَثَنَّ إِلَيْكُمْ رَجُلًا أَمِيْنًا |
| څه خيانت نه کوي حضور ﷺ ورته وفرمائيل يقيناً زه به يو داسي سړی حاکم او قاضي جوړولو |
| حَقَّ أَمِيْنٍ فَاسْتَشْرَفَ لَهَا |
| سره تاسو ته دراوليږم چې امين دی او ددي لائق دی چې هغه ته امانت دار وويل شي دي اوريدو |
| النَّاسُ قَالَ فَبَعَثَ |
| سره خلقو ددي شرف دحصول تمنا او انتظار کولو حضرت حذيفه رضي الله عنه وايي چې حضور ﷺ |
| أَبَا عُبَيْدَةَ بْنَ الْجَرَّاحِ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. |
| ابوعبيده بن الجراح رضي الله عنه وليږه . [بخاري و مسلم] |

## د خلافت لپاره موزون ترين صحابه

﴿۲۵﴾ وَ عَنْ عَلِيٍّ قَالَ قِيْلَ يَا رَسُوْلَ اللهِ مَنْ نُؤَمِّرُ بَعْدَكَ قَالَ إِنْ

او حضرت علي رضي الله عنه وايي چا سوال وکړو يا رسول الله صلى الله عليه وسلم ستاسو نه روسته مونږ څوک خپل امير

تُؤَمِّرُوْا أَبَا بَكْرٍ تَجِدُوْهُ أَمِيْنًا زَاهِدًا فِي الدُّنْيَا رَاغِبًا

او سربراه جوړ کړو؟ حضور صلى الله عليه وسلم ورته وفرمائيل که تاسو زمانه روسته ابوبکر رضي الله عنه خپل امير او سربراه

فِي الْآخِرَةِ وَإِنْ تُؤَمِّرُوْا عُمَرَ تَجِدُوْهُ قَوِيًّا

جوړ کړئ نو هغه به امانت دار دنيا نه بې پروا او آخرت طرف ته راغب پيدا کوئ که عمر رضي الله عنه خپل امير

أَمِيْنًا لَا يَخَافُ فِي اللهِ لَوْمَةَ لَائِمٍ وَإِنْ

او سربراه جوړ کړئ نو هغه به بارِ امانت اوچتولو کې ډير مضبوط او د ملامتيا کونکو د ملامت نه نه

تُؤَمِّرُوْا عَلِيًّا وَلَا أُرَاكُمْ فَاعِلِيْنَ

ويريږي او که علي رضي الله عنه خپل امير او سربراه جوړ کړئ خو زما په خيال کې به تاسو هغه خپل امير او

تَجِدُوْهُ هَادِيًا مَهْدِيًّا يَأْخُذُ بِكُمُ

سربراه جوړونکي نه يئ خو که جوړيې کړئ نو هغه به سيده لار ښودونکی يعني مکمل مرشد هم

الطَّرِيْقَ الْمُسْتَقِيْمَ. رَوَاهُ أَحْمَدُ.

پيدا کوئ او کامل هدايت يافته هم چې تاسو به په صراط مستقيم روان کړي [احمد]

**توضيح:** ولا اراکم فاعلين: ددې جملې ترجمه خو دا ده چې زه نه وينمه چې تاسې به داسې وکړئ، په دې جمله کې د حضرت علي رضي الله عنه په خلافت باندې تبصره ده او مطلب دا دی چې تاسو به حضرت علي رضي الله عنه د نزاع نه بغير خليفه جوړ نه کړئ لکه ددې په ضمن کې د حضرت عثمان رضي الله عنه خلافت ته اشاره راغله چې د حضرت علي او حضرت عثمان د خلافت د انتخاب په موقع باندې به تاسې علي رضي الله عنه خليفه جوړ نه کړئ بلکه عثمان به خليفه جوړ کړئ. ددې جملې دويم مطلب دا هم کيدلی شي چې تاسې به زمانه بعد متصل بلافصل حضرت علي رضي الله عنه خليفه جوړ نه کړئ ځکه چې په تقدير الهی کې داسې مقرره ده چې ابوبکر صديق رضي الله عنه او عمر فاروق رضي الله عنه به اول خليفه ګان کيږي، ځکه که حضرت علي رضي الله عنه اول خليفه جوړ شي نو د هغه عمر اوږد دی

هغه به تر هغه وخته خليفه وي چې ابوبكر صديق او عمر فاروق او عثمان رَضِيَ اللهُ عَنهُم به وفات شي نو د هغوی د خلافت موقع به پیدا نشي حالانکه د هغوی خلافت مقرر شوی دی لهذا زما خیال نه دی بلکه یقین دی چې تاسې به علی رَضِيَ اللهُ عَنهُ مخکې خلیفه نه جوړوئ ، لهذا خلیفه بلا فصل به ابوبکر صدیق رَضِيَ اللهُ عَنهُ وي ، د هغه نه بعد به حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنهُ خلیفه جوړیږي ، بیا به حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنهُ خلیفه کیږي او په آخر کې به حضرت علی رَضِيَ اللهُ عَنهُ ته خلافت رسیږي .

## د څلورو خلفاؤ رَضِيَ اللهُ عَنهُم فضائل

﴿٢٦﴾ وَ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ رَحِمَ اللهُ أَبَا بَكْرٍ

او حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنهُ وايي رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ وفرمائيل الله تعالى دي ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنهُ باندي خپل رحمتونه

زَوَّجَنِي ابْنَتَهُ وَحَمَلَنِي إِلَى دَارِ الْهِجْرَةِ وَصَحِبَنِي

نازل کړي هغه د خپلي لور عائشې نکاح ما سره وکړله خپلي اوښې باندي سورولو سره زه يې دار هجرت

فِي الْغَارِ واَعْتَقَ بِلَالًا مِنْ مَالِهِ

مديني ته راوستم د هجرت د سفر په دوران کي د ثور غار کي ما سره وو او خپل مال سره بلال رَضِيَ اللهُ عَنهُ

رَحِمَ اللهُ عُمَرَ يَقُوْلُ الْحَقَّ وَإِنْ كَانَ مُرًّا

ئې واخستلو او ازادیي کړو الله تعالى دي په عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ رحمتونه نازل کړي هغه چې کوم خبره کوي اګر

تَرَكَهُ الْحَقُّ وَ مَالَهُ مِنْ صَدِيْقٍ

که په چا ترخه لګیږي او حق ګويي هغه دي حد ته ورسولو چې د هغه هيڅوک دوست نشته الله تعالى

رَحِمَ اللهُ عُثْمَانَ يَسْتَحْيِيْ مِنْهُ الْمَلَائِكَةُ

دي په عثمان رَضِيَ اللهُ عَنهُ خپل رحمتونه نازل کړي هغه نه خو فرشتي هم حيا کوي او الله تعالى دي په

رَحِمَ اللهُ عَلِيًّا اَللّٰهُمَّ أَدِرِ الْحَقَّ مَعَهُ حَيْثُ دَارَ.

علي رَضِيَ اللهُ عَنهُ رحمتونه نازل کړي اى الله علي رَضِيَ اللهُ عَنهُ د حق سره لري چې چيرته علي وي هلته حق وي

رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَ قَالَ هٰذَا حَدِيْثٌ غَرِيْبٌ

دا روايت ترمذي نقل کړی دی او ويلي يي دي چې دا حديث غريب دی.

**توضيح** : د حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په ژوند کې څو نزاعی صورتونه پیښ شوي دي : اول صورت : جنګ جمل دی په دې کې حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په حق باندې وو ، په طرف مقابل کې یې لوی لوی صحابه په اجتهادی خطاء باندې وه ، بیا د جنګ صفین واقعه پیښه شوه په هغې کې هم حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په حق باندې وو د طرف مقابل خلک په اجتهاد باندې وو ، بیا د خوارجو سره د اوږدو جنګونو سلسله پاتې شوې ده په هغو کې هم حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په حق باندې وو او طرف مقابل خوارج په باطل باندې وو . په زیر بحث حدیث کې لکه څنګه چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د حضرت علی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ لپاره دعاء فرمایلې ده هماغسې د هغه ژوند پاتې شوی و په دې حدیث کې د حضرت علی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حقانیت په عجیبه مؤثر انداز سره بیان شوی دی ، دا یې ونه ویل چې علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ به د حق سره ګرځي بلکه دا یې وفرمایل چې چیرته علی وي هلته به حق د هغه سره ګرځي ! سبحان الله څومره لوی اعزاز دی .

یو ویونکي حق ویلي دی :

اما علي فمشهور فضائله والبيت لا يبتنى الا بأركان



## باب مناقب اهل بیت النبي صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

## د نبي کریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د کور والاوو د مناقبو بیان

قال الله تعالی ﴿إِنَّمَا يُرِيدُ اللّٰهُ لِيُذْهِبَ عَنكُمُ الرِّجْسَ أَهْلَ الْبَيْتِ وَيُطَهِّرَكُمْ تَطْهِيرًا﴾ (الاحزاب ۳۳)

قال الامام الشافعي رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ:

لو کان رفضا حب آل محمد فلیشهد الثقلان انی رافض

یاد ساتل پکار دي چې صاحب د مشکوة د مذکوره عنوان لاندې د عموم او خصوص دواړو ځنګه کار اخیستی دی ، بعضې روایات هغه دی چې د هغو نه معلومیږي چې بنوهاشم په اهل بیت نبی کې داخل دي همدارنګه ددې باب لاندې یې هغه یو څو هغه احادیث نقل کړي دي چې خصوصی طور باندې صرف د حضرت علی رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ حضرت فاطمه رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا ، حضرت حسن رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ ، او حضرت حسین رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ پورې خاص دي ، ددینه دا اندازه کیږي چې اهل بیت صرف همدا څلور افراد دي ، عام بنوهاشم نه دي ، د همدې عنوان لاندې صاحب د مشکوة د حضرت زید او حضرت اسامه ذکر هم کړی دی ، ددینه معلومیږي چې په اهل بیت النبی صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ کې ډیر وسعت دی او اهل محبت او اهل قرابت هم په دې کې داخل دي ، ددې سره سره صاحب د مشکوة د زاواج مطهراتو لپاره یې ځانته عنوان قائم کړی دی او د هغو ی یې ځانته تذکره کړې ده ، ددې ټول متفرقاتو او د ځه تضاداتو یو ځای کولو لپاره علماؤ ویلي دي چې د لفظ بیت درې حیثیتونه دي او درې اطلاقات دي :(۱)اول بیت نسب دی . (۲) دوهم بیت ولادت دی ، (۳) او دریم بیت سکنی دی .

ددې تفصیل داسې دی چې د بنوهاشم یعنې عبد المطلب اولاد د حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لپاره اهل بیت نسب دی چې دې ته کورنۍ او خاندان ویل کیږي ، ددینه وروسته د حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اولاد ته اهل بیت ولادت ویل کیږي چې په هغو کې حضرت علی رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ حضرت فاطمه رض حضرت حسن رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ او حضرت حسین رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ سرفهرست دي ، اګرچې حضرت علی رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ په اهل بیت نسب کې هم راځي لیکن علماؤ هغه په اهل بیت ولادت کې شمار کړی دی ، دا سلسله د ولادت ده ، یاد ساتل پکار دي چې د شهرت په وجه دوی ته د څلورو نوم په خصوصی طور باندې په سلسله ولادت کې اخیستلی کیږي او که نه نو د حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نورې درې لورګانې وغیره ټول په اهل بیت ولادت کې داخلې دي لکه حضرت زینب رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا ، حضرت رقیه رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا ، او حضرت ام کلثوم رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا دي . بیا ددینه بعد ازواج مطهراتو د حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته اهل بیت سکنی ویل کیږي چې دویته اهل خانه ویل کیږي ، ټول ازواج مطهرات په دغه بیت سکنی کې داخل دي ، اګرچې د اهل بیت اول مصداق ازواج مطهرات او اهل خانه وي لیکن په دغه تقسیم سره په قرآن

كريم او احاديثو كښ استعمال شده لفظ اهل البيت مفهوم په آسانئ سره فهميږي .

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

## د مباهلې دعوت

| |
|---|
| ﴿۱﴾ عَنْ سَعْدِ بْنِ أَبِيْ وَقَّاصٍ قَالَ لَمَّا نَزَلَتْ هٰذِهِ الْآيَةُ فَقُلْ تَعَالَوْا نَدْعُ أَبْنَآءَنَا وَأَبْنَاءَكُمْ |
| حضرت سعد ابن ابي وقاص رضي الله عنه بيان كوي كوم وقت چې دا آيت [قُلْ تَعَالَوا نَدعُ اَبنَاءَنَا وَاَبنَاءَكُم] |
| دَعَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلِيًّا وَّفَاطِمَةَ وَحَسَنًا وَّحُسَيْنًا |
| نازل شو نو رسول الله ﷺ علي رضي الله عنه فاطمه رضي الله عنها حسن رضي الله عنه و حسين رضي الله عنه را وبلل |
| فَقَالَ اَللّٰهُمَّ هٰؤُلَاءِ أَهْلُ بَيْتِيْ . رَوَاهُ مُسْلِمٌ. |
| او وي فرمائيل خداونده دا زما اهل بيت دي [مسلم] |

**توضيح** : (ثم نبتهل) ابتهل د ابتهال څخه دی په زاريو سره دعاء غوښتلو ته ويل كيږي او باهل د مباهله څخه دی يو په بل باندې د لعنت ليږلو په معنی سره دی ، د عربو رواج وو چې كله به په يوه معامله كښ تنازع راغله نو طرفينو به خپلې خپلې ښځې او بچيان د كور څخه وويستل كولا و ميدان ته به يې راويستل او يو په بل باندې به يې د هلاكت دعاء غوښتله . د حضور ﷺ په زمانه كښ د نجران نه څه عيسائی پادريان د حضور ﷺ سره د بحث او مباحثې لپاره مدينې منورې ته راغلل ، تر څو ورځو پورې بحث روان وو ، په همدې دوران كښ الله تعالى د مباهلې آيت نازل كړلو او حضور اكرم ﷺ ته يې حكم وكړلو چې دغه عيسائيانو ته د مباهلې دعوت وركړه ، نو حضور ﷺ د خپل كور نه حضرت حسن او حسين رضى الله عنهما او حضرت فاطمه رضي الله عنها او حضرت علی رضي الله عنه د ځان سره كړل او هغوی ته يې د مباهلې دعوت وركړلو ، د هغوی پادريان هم ميدان ته راغلل مگر د حضور ﷺ سره يې چې كله دغه نوارنی مخونه وليدل نو د هغوی مشر وويل چې خبردار مباهله ونكړی، ځكه دغه خلك كچيرې د الله نه دا وغواړي چې فلانی غر د خپل ځای نه لرې شي نو غر به تكړه تكړه شي، كوشش وكړئ چې معاهده وشي . جزيه قبوله كړئ او واپس لاړ شی او همداسې وشو ، عيسائيانو جزيه قبوله كړه او واپس لاړل ، حضور اكرم ﷺ وفرمايل كچيرې دغه خلكو مباهله كړې وای نو ټول به مسخ شوي وو او اور به دوی سوزولي وو خاوري شوي به وو .

د همدې مباهلې په موقع باندې حضور ﷺ حضرت حسن او حضرت حسين او حضرت علي او فاطمه رضي الله عنهم ته په اشارې كولو سره وفرمايل چې دا زما اهل بيت دي ، پاس چې وليكل شول

چې د اهل بیت درې اطلاقات دي نو دا د اهل بیت ولادت والا اطلاق دی صحیح یې زده کړه!

## د اهل بیت ولادت یو بل اطلاق

﴿۲﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ خَرَجَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ غَدَاةً
اوبي بي عائشه رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا یان کوي یوه ورځ په سهار کي حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ را ووتلو هغه وقت د

وَعَلَيْهِ مِرْطٌ مُرَحَّلٌ مِنْ شَعْرٍ أَسْوَدَ
حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په بدن مبارک دتورو وبښتو یو کمبل وه چې په هغه داوښ د کجاوو تصویرونه جوړ شوي وو

فَجَاءَ الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ فَأَدْخَلَهُ ثُمَّ جَاءَ الْحُسَيْنُ فَأَدْخَلَ مَعَهُ
دي کې حسن بن علي رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ راغی او حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغه خپل کمبل کي دننه کړو بیا حسین رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ راغی

ثُمَّ جَاءَتْ فَاطِمَةُ فَأَدْخَلَهَا
حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغه هم حسن رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ سره کمبل کړو دننه کی بیا فاطمه رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا راغله هغه یې هم هغوی سره

ثُمَّ جَاءَ عَلِيٌّ فَأَدْخَلَهُ ثُمَّ قَالَ
کمبل کي دننه کړه بیا علي رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ راغی هغه یې هم هغوی سره کمبل کې دننه کړو بیا حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دا آیت ووایه

إِنَّمَا يُرِيدُ اللهُ لِيُذْهِبَ عَنْكُمُ الرِّجْسَ
إِنَّمَا يُرِيدُ اللهُ لِيُذْهِبَ عَنْكُمُ الرِّجْسَ أَهْلَ الْبَيْتِ وَيُطَهِّرَكُمْ تَطْهِيرًا [ایت] یعني ای اهل بیتو الله تعالی غواړي چې

أَهْلَ الْبَيْتِ وَيُطَهِّرَكُمْ. تَطْهِيرًا. رَوَاهُ مُسْلِمٌ
تا سو د ګناهونو او دبدیو د پلیتئ نه بچ کړي ځرنګه چې پاک صاف کیدل پکار دي. [مسلم]

## ابراهیم بن محمد صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شان

﴿۳﴾ وَعَنِ الْبَرَاءِ قَالَ لَمَّا تُوُفِّيَ إِبْرَاهِيمُ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ
اوحضرت براء بن عازب رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وایي کوم وقت چې ابراهیم وفات شو نو رسول کریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمائیل

إِنَّ لَهُ مُرْضِعًا فِي الْجَنَّةِ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ
جنت کي هغه دپاره یوه پیۍ ورکونکي یعنې دایه مقرر شوي ده چې د هغه د شیدو ورکولو زمانه به پوره کوي. [بخاري]

**توضیح** : حضرت ابراهیم د ماریه قبطیه د خیټې څخه پیدا شوی وو، حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته د مصر بادشاه مقوقس په طور د عطیه یوه وینځه ورکړې وه د هغې نوم ماریه قبطیه وو، د دې د بطن څخه ابراهیم پیدا شوی وو، د شپاړلس اولس میاشتو په عمر کې د هغه انتقال شوی وو، د هغه متعلق حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمایې چې چونکې د هغه د شودو خوړلو زمانه وه لهذا الله تعالی د هغه لپاره

شوده ورکونکې مقرره کړه چې ابراهيم ته په جنت کې شودې ورکوي، ددې حديث نه معلومه شوه چې جنت د اوس څخه موجود دی او پاکيزه خلک اوس هم جنت ته داخلولی شي.

## دبي بي فاطمي رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فضيلت

| |
|---|
| (۴) وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كُنَّا أَزْوَاجَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عِنْدَهُ |
| او بي بي عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وايي چې دنبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بيبياني دحضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره ناستې وو |
| فَأَقْبَلَتْ فَاطِمَةُ مَا تَخْفَى مِشْيَتُهَا مِنْ مِشْيَةِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| چې فاطمه (راغله دهغه دتګ وضع او هيئت د رسول کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دتګ دوضع او هيئت نه ذره هم مختلف نه وو |
| فَلَمَّا رَآهَا قَالَ: مَرْحَبًا بِابْنَتِي |
| بهر حال حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ چې فاطمه (راتلونکې وليده نو وې فرمائيل زما لورې په خير راغلې بيا |
| ثُمَّ أَجْلَسَهَا ثُمَّ سَارَّهَا فَبَكَتْ |
| حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغه خپله خواکې کينوله او پټې پټې يې هغه سره خبرې وکړې دې کې فاطمه (په ژړا شوه |
| بُكَاءً شَدِيدًا فَلَمَّا رَأَى حُزْنَهَا سَارَّهَا الثَّانِيَةَ |
| او په زوره زوره يې وژړل حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وليدل چې فاطمه (ډيره غمجنه شوې ده نو بيا يې هغې سره غوږکې |
| فَإِذَا هِيَ تَضْحَكُ فَلَمَّا قَامَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَأَلْتُهَا |
| خبرې وکړې نو فاطمه يو دم په خندا شوه بيا چې رسول الله نوما د فاطمې نه پوښتنه وکړه چې ستا سره |
| عَمَّا سَارَّكِ قَالَتْ مَا كُنْتُ لِأُفْشِيَ |
| حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ پټې پټې څه خبرې کولې فاطمې (جواب راکړو د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ راز زه ښکاره کونکې |
| عَلَى رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سِرَّهُ فَلَمَّا تُوُفِّيَ قُلْتُ |
| نه يم کله چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفات شو ددې دنيا نه پرده وفرمائيله نو ما فاطمې (ته وويل چې زما په |
| عَزَمْتُ عَلَيْكِ بِمَا لِي عَلَيْكِ مِنَ الْحَقِّ |
| تا کوم حق دی دهغه واسطه او قسم درکوم چې زه ستا نه ددې نه علاوه نور هيڅ نه غواړم چې ما ته د |
| لَمَا أَخْبَرْتِنِي قَالَتْ أَمَّا |
| هغه غوږ کې دخبرو باره کې وښايه چې په هغه ورځ حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ستا سره کړې وې فاطمې (وويل |

الْآنَ فَنَعَمْ أَمَّا حِيْنَ سَارَّنِيْ فِي الْأَمْرِ الْأَوَّلِ فَإِنَّهُ أَخْبَرَنِيْ

هو اوس زه درته ښايم چې حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په اولنی وار ماسره غوږ کي خبري کړي وي نو ماته يې دا

أَنَّ جِبْرَئِيْلَ كَانَ يُعَارِضُنِيْ الْقُرْآنَ كُلَّ سَنَةٍ مَرَّةً وَإِنَّهُ عَارَضَنِيْ

فرمائيل چې جبرائيل عَلَيْهِ السَّلَامُ به ما سره کالو سر کي يو وار دقرآن دوره کوله ليکن سږ کال هغه ما سره

بِهِ الْعَامَ مَرَّتَيْنِ وَلَا أُرَى الْأَجَلَ إِلَّا قَدِ اقْتَرَبَ

دوه واره دوره وکړه او ددي مطلب ما دا راويستلو چې زما دمرګ وخت قريب راغلی دی نو ای فاطمه!

فَاتَّقِي اللّٰهَ وَاصْبِرِيْ فَإِنَّ نِعْمَ السَّلَفُ أَنَا لَكِ

(زه تاته وصيت کوم چې الله نه ويره کوه صبر کوه بلاشبه زه ستا دپاره بهتر مخکي تلونکی يم

فَبَكَيْتُ فَلَمَّا رَآى جَزَعِيْ سَارَّنِيْ الثَّانِيَةَ

دې سره زه په ژړا شوم او بيا چې حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زه زياته پريشانه وليدم نو دوباره يې ما سره غوږ کي

قَالَ يَا فَاطِمَةُ أَلَا تَرْضَيْنَ أَنْ تَكُوْنِيْ سَيِّدَةَ نِسَاءِ

خبري وکړي دا يې وفرمائيل ای فاطمې رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا ايا ته په دي خبره خوشحاله نه يې چې ته به جنت کې

أَهْلِ الْجَنَّةِ أَوْنِسَاءِ الْمُؤْمِنِيْنَ وَفِيْ رِوَايَةٍ

دتمامو ښځو يا خاص طور سره ددې امت دښځو سرداره جوړه شې او يو روايت کي د بي بي فاطمې

فَسَارَّنِيْ فَأَخْبَرَنِيْ أَنَّهُ

(دا الفاظ منقول دي چې حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په اولنی وار ما سره غوږ کي خبري وکړي نو هغې کي

يُقْبَضُ فِيْ وَجَعِهِ فَبَكَيْتُ

يې دا فرمائيلي وه چې حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به په دي بيمارۍ کي وفات کيږي او دي اوريدو سره زه په ژړا شوم

ثُمَّ سَارَّنِيْ فَأَخْبَرَنِيْ أَنِّيْ أَوَّلُ

بيا په دويم وار چې حضور ما سره غوږ کي خبري وکړي نو هغې کې يې ماته دا خو دلي وه چې د

أَهْلِ بَيْتِهِ أَتْبَعُهُ

حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په اهل بيتو کي به دټولو نه مخکي زه حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره يو ځای کيږم نو دي

| فَضَحِكْتُ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ |
|---|
| . اوریدو سره زه په خندا شوم. |

**توضیح**: (سارها) یعني په پټه یې په غوږ کې خبره ورته وکړه (سره) یعني حضور ﷺ چې کله په غوږ کې خبره ورته وکړه نو دا د راز خبره جوړه شوه او د راز افشاء کول جائز نه دي.

**عزمت علیك**: یعني زه تاته په الله قسم درکوم او د مور کیدلو واسطه هم درکوم چې ما ته ووایه چې حضور ﷺ څه فرمایلي وو، اوس خو د حضور ﷺ د وفات نه وروسته راز خو راز پاتې شوی نه وو.

**فنعم**: یعني د حضور ﷺ د وفات نه وروسته یې اوس درته وایم اوس راز پاتې نشو.

**(سیدة نساء اهل الجنة)** د حضرت فاطمې رضي الله عنها او حضرت عائشې رضي الله عنها او بیا حضرت خدیجة الکبری رضي الله عنها په خپل مینځ کې د فضیلت په باره کې د علماؤ اقوال مختلف دي چې په دوی کې علی الاطلاق کومه افضله ده؟ علامه سیوطی رحمه الله لیکلي دي چې د حضرت فاطمې رضي الله عنها او حضرت عائشې رضي الله عنها په افضلیت کې د علماؤ درې مسلکه دي، د ټولو نه راجح مسلک دا دی چې حضرت فاطمې رضي الله عنها د حضرت عائشې رضي الله عنها څخه افضله ده، بعضې علماؤ د دواړو رتبه یوه ګرځولې او بعضې علماؤ په دې باره کې سکوت اختیار کړی، د امام مالک رحمه الله څخه چې کله د دغه افضلیت په باره کې پوښتنه وشوه نو هغه وفرمایل چې فاطمې رضي الله عنها د پیغمبر د غوښې ټکړه ده او زه د پیغمبر په ټکړې باندې هیچا ته فضیلت ورکولی نشم.
علامه سبکی رحمه الله او نورو علماؤ ددغو ښځو په باره کې لیکلي دي چې معتبر مسلک دا دی چې حضرت فاطمه رضي الله عنها د ټولو نه افضله ده بیا حضرت خدیجه رضي الله عنها ده او بیا حضرت عائشه رضي الله عنها ده. بعضو نورو علماؤ ډیره ښه خبره لیکلې ده چې په اصل کې حیثیات او اعتبارات مختلف دي د دغه حیثیاتو او اعتباراتو په بنیاد فضیلت ورکولو کې تعبیرات مختلف راغلي دي، حضرت خدیجه رضي الله عنها اقدم ایمانا ده، حضرت عائشة رضي الله عنها اشدها حبا ده، او حضرت فاطمه رضي الله عنها بضعة جسدا ده.
په هر حال د حضرت فاطمه رضي الله عنها نکاح په ۲ سنه هـ کې شوې وه او حسن او حسین او زینب او رقیه او ام کلثوم د هغې د بطن څخه پیدا شوي وو، وروسته د ام کلثوم نکاح د حضرت عمر رضي الله عنه سره وشوه، نو حضرت عمر رضي الله عنه د حضرت علي رضي الله عنه زوم دی اګرچې شیعه ګان په سوزي.

## چاچي فاطمه خفه کړه هغه زه خفه کړم

| |
|---|
| ﴿۵﴾ وَعَنِ الْمِسْوَرِبْنِ مَخْرَمَةَ أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ فَاطِمَةُ بِضْعَةٌ |
| او حضرت مسور ابن مخرمه نه روايت دى چې رسول كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمائيل فاطمه ځما د غوښې |
| مِنِّيْ فَمَنْ أَغْضَبَهَا أَغْضَبَنِيْ |
| ټکړه ده چاچي فاطمه خفه کړه هغه زه خفه کړم او په يوه روايت کي دا الفاظ هم دي کوم شي چې |
| وَفِيْ رِوَايَةٍ يُرِيْبُنِيْ مَا أَرَابَهَا وَيُؤْذِيْنِيْ |
| فاطمي ته بد معلوميږي هغه ماته هم بد معلوميږي او کوم شي چې فاطمي ته تکليف ورکوي هغه] |
| مَا آذَاهَا. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. |
| ماته هم تکليف راکوي. [بخاري مسلم |

**توضيح**: حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د ابوجهل د لور سره د نکاح کولو اراده کړې وه، په دې باندې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په عامه خطبه کې دا کلام فرمايلى وو، دا نکاح منعه نه وه مګر حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې د الله د دښمن لور او د الله د رسول لور يوځاى په يوه نکاح کې جمع کول مناسب نه دي او په دې کې د فاطمې په فتنه او امتحان کې پريوتلو خطره ده، د حضور اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زړه ته د درد رسيدلو خطره ده، نو د دغه عارضى امورو په وجه حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ منع وفرمايله او که نه نو په اسلام کې منع نه وه.

## كتاب الله او اهل بيت مظبوط ونيسئ

| |
|---|
| ﴿۶﴾ وَعَنْ زَيْدِ بْنِ أَرْقَمَ قَالَ قَامَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمًا فِيْنَا |
| او حضرت زيد بن ارقم وايي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يوه ورځ د مکې او مدينې په منځ کې اوبو والا |
| خَطِيْبًا بِمَاءٍ يُدْعٰى خُمًّا بَيْنَ مَكَّةَ |
| مقام باندې چې هغه ته يې خم ويل خطاب عام د پاره ځمونږ مخکې ودريدو سره د الله تعالى حمد او |
| وَالْمَدِيْنَةِ فَحَمِدَ اللهَ وَأَثْنٰى عَلَيْهِ وَوَعَظَ وَذَكَّرَ |
| ثناء وکړه بيا خلقو ته يې د ښو خبرو او نيکو خبرو او نيکو اعمالو نصيحت وفرمايه هغوى ته يې د الله |
| ثُمَّ قَالَ أَمَّا بَعْدُ آلَا أَيُّهَا النَّاسُ فَإِنَّمَا أَنَا |
| د ثواب او عذاب ياد ورکړو او د غفلت او کوتاهى خلاف ئې آګاه کړل بيايي وفرمائيل اى خلقو! زه |

بَشَرٌ يُوْشِكُ أَنْ يَّأْتِيَنِيْ رَسُوْلُ

ستاسو په شان يو انسان يم هغه وقت قريب دى چې ځما د پروردګار استازي راشي او زه د خپل

رَبِّيْ فَأُجِيْبَ وَأَنَا تَارِكٌ فِيْكُمْ ثَقَلَيْنِ

پروردګار حكم قبول كړم زه ستاسو په منځ كي هغه عظيم او نفيس شيان پرېږدم چې په هغه كي

أَوَّلُهُمَا كِتَابُ اللهِ فِيْهِ الْهُدٰى وَالنُّوْرُ

يو كتاب الله دى چې په هغه كي هدايت او نور دى نو تاسو كتاب الله مضبوط ونيسئ غرض

فَخُذُوْا بِكِتَابِ اللهِ وَاسْتَمْسِكُوْا بِهِ

داچې حضور ﷺ خلقو ته د كتاب الله په حقله ښه جذبه وركړه او هغه طرف ته يې راغب كړل بيا يې

فَحَثَّ عَلٰى كِتَابِ اللهِ وَرَغَّبَ فِيْهِ ثُمَّ

وفرمائيل او دي دوه عظيم څيزونو كي دوهم شى ځما اهل بيت دى زه تاسو ته د الله هغه عذاب يادوم

قَالَ وَأَهْلُ بَيْتِيْ أُذَكِّرُكُمُ اللهَ

چې ځما د اهل بيتو د حقوقو په آدائيګي كي د كوتاهۍ او تقصير په سبب به وي زه دوباره تاسو ته د

فِيْ أَهْلِ بَيْتِيْ أُذَكِّرُكُمُ اللهَ

الله هغه عذاب را يادوم چې ځما د اهل بيتو د حقوقو په آدائيګي كي د كوتاهي په سبب به وي او په

فِيْ أَهْلِ بَيْتِيْ وَفِيْ رِوَايَةٍ

يوه روايت كي چې په هغه كي د كتاب الله په ځاي دا الفاظ دي كتاب الله د الله رسۍ ده كوم سړى

كِتَابُ اللهِ هُوَ حَبْلُ اللهِ مَنِ اتَّبَعَهُ

چې د كتاب الله اطاعت كوي يعني په هغه ايمان راوړي هغه يادوي اخلاص سره د هغه علم حاصلوى

كَانَ عَلَى الْهُدٰى وَمَنْ تَرَكَهُ كَانَ

او په هغه عمل كوي، نو هغه به پر حق وي او كوم سړى چې هغه پرېږدي يعني نه وربانديې ايمان راوړي

عَلَى الضَّلَالَةِ. رَوَاهُ مُسْلِمٌ

نه يې يادوي نه د هغه علم او عمل كي مخلص وي نو هغه به ګمراه وي.

## د حضرت جعفر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ لقب

| |
|---|
| ﴿۷﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّهُ إِذَا سَلَّمَ عَلَى ابْنِ جَعْفَرٍ قَالَ اَلسَّلَامُ عَلَيْكَ |
| حضرت ابن عمر، وايي چې هغه به کله د حضرت جعفر بن ابي طالب ځوی عبد الله ته سلام کولو |
| يَا ابْنَ ذِي الْجَنَاحَيْنِ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ |
| نو داسي به يې ويل ای د دوو وزرو والا ځويه! په تا دي سلامتيا وي. |

**توضیح**: د روميانو سره په سنه۸ھ کې په مقام موته باندې جنګ موته شوی دی، په دې مشهور جنګ کې د حضرت زيد بن حارثه، د شهادت په وجه وروسته د امير کيدلو په حيثيت سره جنګي بيرغ د حضر جعفر. په لاس کې وو، يو کافر په هغه باندې حمله وکړه او لاس يې ترينه پرې کړلو، په بل لاس کې يې ونيوله هغه يې هم پرې کړلو. هغه بيا بيرغ په خوله او سينه ونيولو هغه کافر دده په ملا باندې حمله وکړه ذ هغه جسم يې دوه ټکرې کړو او شهيد يې کړلو، الله تعالى هغه ته دوه وزرې په جنت کې عطاء کړلې چې د هغو په واسطه دا پورته کيږي، په دغه اعتبار سره ده ته ذوالجناحين يعني د دوو وزرو والا ويل کيږي، دلته د جعفر ځوی عبدالله مراد دی.

## د حضرت حسن او حسين رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا فضيلت

| |
|---|
| ﴿۸﴾ وَعَنِ الْبَرَاءِ قَالَ رَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ |
| او حضرت براء رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي ما يوه ورځ حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ داسي حال کي اوليدلو چې حسن ابن علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ |
| عَلَى عَاتِقِهِ يَقُوْلُ اَللّٰهُمَّ إِنِّيْ |
| حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په اوږه سورووو او حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمائيل ای الله! زه ده سره ډير محبت کوم ته |
| أُحِبُّهُ فَأَحِبَّهُ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. |
| هم ده سره محبت وکړه. |

## د حضرت حسن سره د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تعلق داري

| |
|---|
| ﴿۹﴾ وَعَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ خَرَجْتُ مَعَ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| او حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي زه د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره د ورځي يوه حصه کي ووتم هر کله چې |
| فِيْ طَائِفَةٍ مِّنَ النَّهَارِ حَتّٰى أَتٰى خِبَاءَ فَاطِمَةَ فَقَالَ أَثَمَّ |
| حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د بي بي فاطمي رَضِيَ اللهُ عَنْهَا کورته ورسيده نو پوښتنه يې وکړه آيا دلته کوچني ماشوم شته آيا |

| لُكَعُ | أَثَمَ | لُكَعُ | يَعْنِيْ | حَسَنًا | فَلَمْ | يَلْبَثْ | أَنْ | جَآءَ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|

دلته ككي شته؟ د حضور ﷺ مراد حضرت حسن وو چې د هغه تلاش كولو ته حضور ﷺ راغلی

| يَسْعٰى | حَتّٰى | اعْتَنَقَ | كُلُّ | وَاحِدٍ | مِّنْهُمَا |
|---|---|---|---|---|---|

وو اوس لا حضور ﷺ څو لمحې تيرې كړې وې چې حسن په منډه راغلی بيا حسن حضور ﷺ سره

| صَاحِبَهُ | فَقَالَ | رَسُوْلُ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ | اَللّٰهُمَّ | إِنِّيْ | أُحِبُّهُ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|

او حضور ﷺ هغه سره غاړه په غاړه شول بيا رسول الله ﷺ وفرمائيل خدايه! زه د ده سره محبت كوم

| فَأَحِبَّهُ | وَأَحِبَّ | مَنْ | يُّحِبُّهُ. | مُتَّفَقٌ | عَلَيْهِ. |
|---|---|---|---|---|---|

ته هم د ده سره محبت وكړې او هغه سړي سره هم محبت وكړې چې د ده سره محبت كوي. [بخاري مسلم]

**توضيح**: لكع: د اصل لغت په اعتبار سره خو لكع د لام په ضمه او د كاف په زور سره غلام ته ويل كيږي، بيا په احمق او خسيس باندې يې اطلاق وشو، بيا په وړو ماشومانو كې هم استعمال شو، دلته په طور د شفقت د وړكوټي ماشوم لپاره استعمال شوی دی يعنې دلته وړوكی شته؟ دلته مُنّا شته؟

| ﴿۱۰﴾ وَعَنْ | اَبِيْ | بَكْرَةَ | قَالَ | رَأَيْتُ | رَسُوْلَ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|

او حضرت ابو بكره رضي الله عنه بيان كوي يو ورځ ما رسول الله ﷺ په داسې حال كې په منبر باندې خطبې

| عَلَى | الْمِنْبَرِ | وَالْحَسَنُ | بْنُ | عَلِيٍّ | إِلٰى | جَنْبِهِ | وَهُوَ | يُقْبِلُ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|

ويلو سره اوليدلو چې حسن ابن علي د حضور ﷺ نبي يا څېه اړخ كې وو كله به حضور ﷺ په وعظ او

| عَلَى | النَّاسِ | مَرَّةً | وَّعَلَيْهِ | أُخْرٰى | وَيَقُوْلُ | إِنَّ | ابْنِيْ | هٰذَا |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|

نصيحت كې مخاطب كولو سره خلقو طرف ته كتل او كله به د ميني محبت نه ډك نظر سره حسن بن علي طرف ته كتل

سَيِّدٌ وَلَعَلَّ اللهَ أَنْ يُّصْلِحَ بِهِ بَيْنَ فِئَتَيْنِ عَظِيْمَتَيْنِ مِنَ الْمُسْلِمِيْنَ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

او فرمائيل يې څما دا ځوی سيد دی اميد دی چې الله د ده په ذريعه د مسلمانانو دوو لويو ډلو كې صلح وكړي. [بخاري]

**توضيح**: (ان يصلح) دا د صلح څخه اخيستل شوی دی، د حضور ﷺ د ارشاد مطلب دا دی چې حسن كومه معمولي هستي نه ده، دا لوی سردار دی، د ده په وجه به ان شاء الله د مسلمانانو د دوو لويو جماعتونو په مينځ كې صلحه راځي او دا به خپله صلحه وكړي، دا پيشن ګوئي هغه وخت پوره شوه چې كله حضرت علي رضي الله عنه شهيد كړی شو او حضرت حسن رضي الله عنه خلافت سنبال

کړلو ، تقريبا تر شپږو مياشتو هغه خليفه پاتې شو بيا هغه د حضرت معاويه رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ سره صلحه وکړه او د خلافت څخه يې لاس واخيستلو او مسلمانان تر يوه بيرغ لاندې جمع شول ، د حضرت حسن رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ سره څلويښت زره مسلح مسلمانان ودريدلي وو او د هر قسم جنګ او مقابلې عهد يې کړی وو ليکن حضرت حسن رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وفرمايل چې ددې امت د يوې قطرې وينې تويول هم نه غواړم ، بغير د کومې مجبوری او بغير د کوم لالچ نه هغه خلافت پريښودلو او مسلمانان يې سره متحد کړل ، اګرچې د هغې زمانې منافق رقمه خلک و دغه اقدام ته د نفرت په نظر سره وکتل او حضرت حسن رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ ته يې بد رد وويل او د هغه په مخ کې يې وويل (السلام عليک يا عار المؤمنين) حضرت حسن رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ په نهايت صبر او تحمل سره وفرمايل : اختار العار على النار! نن شيعه ددغه معاهدې په وجه د حضرت حسن رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ څخه ناراضه دي او شايد ددغې معاهدې په نتيجه کې شيعه ګانو هغه ته زهر ورکولو سره شهيد کړی وي او تر ننه پورې د هغه په حمايت کې يو جلوس ونه وتلو ځکه دننه دوی په دې باندې خوشحاله دي. په دې حديث کې د حضرت علي او حضرت معاويه دواړه جماعتونه د مسلمانانو لوی جماعتونه وګرځول ، ددې څخه دا اندازه کيږي چې دواړه جانبه مسلمانان وو ، حضرت علي رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ په حق باندې وو او حضرت معاويه رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ په اجتهادی خطاء باندې وو.

## حسن او حسين ځما د دنيا دوه ګلان دي

| ﴿۱۱﴾ وَعَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ أَبِي نُعْمٍ قَالَ سَمِعْتُ |
|---|
| حضرت عبد الرحمٰن بن ابي نعم وايي ما د حضرت عبد الله ابن عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ نه واوريدل هر کله چې |
| عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ عُمَرَ وَسَأَلَهُ رَجُلٌ عَنِ الْمُحْرِمِ قَالَ |
| اهل کوفې نه يو سړي د محرم باره کښې پوښتنه کړې وه دا روايت حضرت عبد الرحمٰن نه روايت کونکی |
| شُعْبَةُ أَحْسِبُهُ يَقْتُلُ الذُّبَابَ قَالَ: أَهْلُ الْعِرَاقِ |
| راوي حضرت شعبه وايي ځما خيال دی چې پوښتنه کونکی د مچ وژلو حکم دريافت کړی وو په دې |
| يَسْأَلُوْنِيْ عَنِ الذُّبَابِ وَقَدْ قَتَلُوا |
| حضرت ابن عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وفرمائيل د عراق يعني کوفي خلق زما نه د مچ وژلو باره کښې شرعي حکم |
| ابْنَ بِنْتِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| دريافت کوي حالانکه دوی د رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د لور ځوی وژلي چې د هغه متعلق رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |

هُمَا رَيْحَانَايَ مِنَ الدُّنْيَا. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ

دا فرمائيلي وو چې دا دواړه ځما د دنيا دوه ګلان دي. [بخاري]

## رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره د حسنينو جسماني مشابهت

﴿۱۲﴾ وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ لَمْ يَكُنْ أَحَدٌ أَشْبَهَ بِالنَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنَ الْحَسَنِ بْنِ عَلِيٍّ

حضرت انس رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وايي د رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره د ټولو نه زيات مشابهت لرونکی د حسن بن علي رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ نه

وَقَالَ فِي الْحُسَيْنِ أَيْضًا كَانَ أَشْبَهَهُمْ

علاوه بل څوک نه وو او حضرت انس رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ د حضرت حسين رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ باره کښې هم وويل چې هغه هم

بِرَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

د رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره زيات مشابه وو. [بخاري]

## حضرت ابن عباس رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ د پاره د علم و حکمت دعا

﴿۱۳﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ ضَمَّنِيَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى صَدْرِهِ فَقَالَ

حضرت ابن عباس رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا بيان کوي رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زه خپلې سينې مبارکې سره ولګوم او وې فرمائيل

اَللّٰهُمَّ عَلِّمْهُ الْحِكْمَةَ وَفِيْ رِوَايَةٍ

خداونده! ده ته حکمت عطاء کړې او په يوه روايت کې د دعا دا الفاظ راغلي دي چې خداونده! ده

عَلِّمْهُ الْكِتَابَ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ

ته د کتاب الله علم عطاء کړې. [بخاري]

## سيدنا ابن عباس ته د حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دُعا

﴿۱۴﴾ وَعَنْهُ قَالَ إِنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَخَلَ الْخَلَاءَ

او دوئ ابن عباس رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ نه روايت دی چې رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بيت الخلاء ته داخل شو نو ما د حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

فَوَضَعْتُ لَهُ وَضُوْءً فَلَمَّا خَرَجَ قَالَ مَنْ وَضَعَ هٰذَا

او دس د پاره او به کېښودلې بيا چې حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بهر راووتلو نو وې فرمائيل دا او به چا اېښې دي

فَأُخْبِرَ فَقَالَ اَللّٰهُمَّ فَقِّهْهُ فِي الدِّيْنِ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خبر شو نو وې فرمائيل اې الله! ده ته د دين پوهه عطاء کړه. [بخاري، مسلم]

# د حضرت اسامه بن زيد رضي الله عنه فضيلت

﴿۱۵﴾ وَعَنْ أُسَامَةَ بْنِ زَيْدٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ كَانَ يَأْخُذُهُ وَالْحَسَنَ

اسامه بن زيد رضي الله عنه نه منقول دي چې حضور صلى الله عليه وسلم اسامه رضي الله عنه او امام حسن رضي الله عنه نيولى وو

فَيَقُوْلُ اَللّٰهُمَّ أَحِبَّهُمَا فَإِنِّيْ أُحِبُّهُمَا وَفِيْ رِوَايَةٍ قَالَ كَانَ

او فرمايل به يې اې الله دې دواړو سره محبت وکړې چې زه هم دې دواړو سره محبت کوم او په يوه روايت

رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَأْخُذُنِيْ فَيُقْعِدُنِيْ عَلٰى فَخِذِهٖ وَيُقْعِدُ

کې دي چې اسامه وويل رسول الله صلى الله عليه وسلم به زه ونيولم او په خپل ورون مبارک به يې کينولم او

الْحَسَنَ بْنَ عَلِيٍّ عَلٰى فَخِذِهِ الْأُخْرٰى ثُمَّ يَضُمُّهُمَا ثُمَّ يَقُوْلُ اَللّٰهُمَّ ارْحَمْهُمَا

حضرت حسن بن علي به يې دوهم ورون مبارک باندې کينولو فرمائيل اى الله! په دې دواړو رحم وکړې

فَإِنِّيْ أَرْحَمُهُمَا . رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ

زه هم په دوئ مهربانه يم. [بخاري]

﴿۱۶﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ إِنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

حضرت عبد الله بن عمر رضي الله عنه نه روايت دى حضور صلى الله عليه وسلم يو فوج وليږه او په هغه يې

بَعَثَ بَعْثًا وَّأَمَّرَ عَلَيْهِمْ أُسَامَةَ بْنَ زَيْدٍ فَطَعَنَ بَعْضُ النَّاسِ فِيْ إِمَارَتِهٖ

اسامه بن زيد رضي الله عنه امير لښکر جوړ کړو ځني خلقو د هغه په امارت اعتراض وکړه

فَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنْ كُنْتُمْ

رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمائيل که تاسو خلقو د دې اسامه په امارت معترض شوي نو دې نه مخکې تاسو

تَطْعَنُوْنَ فِيْ إِمَارَتِهٖ فَقَدْ كُنْتُمْ تَطْعَنُوْنَ فِيْ إِمَارَةِ أَبِيْهِ مِنْ قَبْلُ وَأَيْمُ اللهِ إِنْ كَانَ لَخَلِيْقًا

د ده د پلار زيد په امارت هم اعتراض کړې وو او قسم په الله هغه زيد د امارت قابل هم وو او تمامو خلقو نه ماته

لِلْإِمَارَةِ وَإِنْ كَانَ لَمِنْ أَحَبِّ النَّاسِ إِلَيَّ وَإِنَّ هٰذَا لَمِنْ أَحَبِّ النَّاسِ إِلَيَّ بَعْدَهٗ.

زيات محبوب او عزيز تر هم وو او هغه نه روسته دا اسامه هم ماته د تمامو خلقو نه زيات محبوب او عزيز تر دى.

مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. وَفِيْ رِوَايَةٍ لِّمُسْلِمٍ نَّحْوَهٗ وَفِيْ آخِرِهٖ

[بخاري مسلم] او د مسلم په يوه روايت کې داسې دي او د هغه په آخر کې دومره اضافه هم چې خلقو

| |
|---|
| أُوصِيكُمْ بِهِ فَإِنَّهُ مِنْ صَالِحِيكُمْ. |
| زه تا سو ته وصيت کوم چې يقيناً دا ستا سو د نيکو خلقو نه دی. |

**توضيح**: حضرت زيد بن حارثه رضي الله عنه ظالمانو د والدينو نه غلا کولو سره غلام ګرځولی وو او په مکه کې يې خرڅ کړی وو چې کله د حضرت خديجې رضي الله عنها په لاس کې راغلو نو هغې په طور د تحفې حضور اکرم ﷺ ته ورکړلو ، هغه د حضور ﷺ په خدمت کې وو چې د هغه رشته دارانو ته معلومه شوه ، هغوی راغلل او د حضور اکرم ﷺ څخه يې وغوښتلو چې دا غلام نه دی بيا هم مونږ به تاسو ته معاوضه درکړو ، ته دا پريږده ، حضور ﷺ وفرمايل که هغه پخپله ځي نو زما اجازت دی ،مفت يې بوځئ مګر زه په هغه باندې جبر کولی نشم . حضرت زيد خپلو خپلوانو ته وويل چې زه نه ځم ، هغوی ورته وويل چې دلته په غلامۍ باندې راضي يې هلته آزادي ده او والدين دې څه خبره کوې؟ هغه وويل چې د حضور اکرم ﷺ غلامی د بادشاهت نه بهتره ده ، هغه خلک لاړل ، د حضرت زيد رضي الله عنه څخه حضور ﷺ دومره خوشحاله شو چې هغه يې آزاده هم کړو او خپل ځوی يې وګرځولو او هميشه به يې هغه د جهاد امير جوړولو سره رخصت کولو . په سنه ۸ ه کې يې هغه امير وګرځولو غزوه موته ته يې واستولو ، هغه هلته شهيد شولو . د هغه ځوی اسامه وو ، هغه يې د موته مقام ته د روميانو سره د جهاد کولو لپاره امير وګرځولو او ويې ليږه ، په دې باندې بعضو خلک و اعتراض وکړو چې دا کشر هم دی او ناتجربه کار هم دی هغه يې په مشرانو خلک و باندې څنګه امير جوړ کړلو ، په دغه موقع باندې حضور ﷺ وفرمايل (ان کنتم تطعنون) يعني که نن تاسو ته د هغه په امارت او قيادت باندې اعتراض دی نو دده د پلار په امارت باندې هم تاسو اعتراض کړی وو ، اسامه د امارت قابل دی او زما د هغه سره محبت دی ، په راتلونکي حديث نمبر ۴۰ کې پوره تفصيل را روان دی ، په دغه وخت کې د حضرت اسامه رضي الله عنه عمر ۱۷ کاله وو .

| |
|---|
| ﴿۱۷﴾ وَعَنْهُ قَالَ إِنَّ زَيْدَ بْنِ حَارِثَةَ مَوْلَى رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا كُنَّا نَدْعُوْهُ |
| د عبد الله بن عمر رضي الله عنه نه روايت دی وايي مونږ به هغه ته زيد بن محمد ويلو سره بللي ددي |
| إِلَّا زَيْدَ بْنَ مُحَمَّدٍ حَتّٰى نَزَلَ الْقُرْآنُ أُدْعُوْهُمْ لِآبَائِهِمْ» |
| پورې چې په قرآن کريم کې دا آيت نازل شو تاسو هغه د هغه د پلار د نوم نسبت سره بولې. |
| مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ وَ ذُكِرَ حَدِيْثُ الْبَرَاءِ قَالَ لِعَلِيٍّ |
| ابخاري مسلم]او د. حضرت براء حديث چې په هغه کې حضور ﷺ حضرت علي رضي الله عنه ته وفرمائيل |

أَنْتَ مِنِّيْ فِيْ بَابِ بُلُوْغِ الصَّغِيْرِ وَحِضَانَتِهِ.

اَنتَ منّي ته زما نه يي باب لوغ الصغير وحضانته كي تير شوى دى

## اَلْفَصْلُ الثَّانِيْ

## كتاب الله او زما اهل بيت مظبوط ونيسئ

﴿۱۸﴾ عَنْ جَابِرٍ قَالَ رَأَيْتُ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ حَجَّتِهِ يَوْمَ عَرَفَةَ

حضرت جابر رضي الله عنه نه منقول دى هغوى وويل ما د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه د حج په موقعه د عرفي په ورځ

وَهُوَ عَلَى نَاقَتِهِ الْقَصْوَاءِ يَخْطُبُ فَسَمِعْتُهُ يَقُوْلُ يَا أَيُّهَا النَّاسُ إِنِّيْ قَدْ تَرَكْتُ

خپلي د قصواء نوم اوښي باندې خطبې وركولو سره واوريدل وي فرمائيل خلقو! زه ستاسو په منځ

فِيْكُمْ مَا إِنْ أَخَذْتُمْ بِهِ لَنْ تَضِلُّوْا كِتَابَ اللهِ

كي هغه شى پريږدم كه تاسو دا مضبوطې سره ونيسئ نو هيڅ كله به ګمراه نه شئ يعني د الله كتاب

وَعِتْرَتِيْ أَهْلَ بَيْتِيْ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ

او ځما اولاد ځما اهل بيت. [ترمذي]

﴿۱۹﴾ وَعَنْ زَيْدِ بْنِ أَرْقَمَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

حضرت زيد بن ارقم رضي الله عنه نه روايت دى هغوئ وويل چي رسول الله صلى الله عليه وسلم و فرمائيل زه په تاسو كي

إِنِّيْ تَارِكٌ فِيْكُمْ مَا إِنْ تَمَسَّكْتُمْ بِهِ لَنْ تَضِلُّوْا بَعْدِيْ

دوه څيزونه پريښودلو سره د رنه ځم زما نه روسته چې د ځوپوري تاسو هغه نيولي وي هيڅ كله به ګمراه نشي

أَحَدُهُمَا أَعْظَمُ مِنَ الْآخَرِ كِتَابُ اللهِ حَبْلٌ مَمْدُوْدٌ مِنَ السَّمَاءِ

هريو په هغه كي د دوهم نه عظيم تر دى يو خو د الله كتاب دى د آسمان نه ځمكي طرف ته راخكته شوي

إِلَى الْأَرْضِ وَعِتْرَتِيْ أَهْلُ بَيْتِيْ وَلَنْ يَتَفَرَّقَا حَتَّى يَرِدَا عَلَيَّ

رسي دا او دوهم ځما اولاد ځما كور والا دى او هغوئ به جدا جدا نه وي د دې پورې چې حوضِ كوثر باندې ماته

الْحَوْضَ فَانْظُرُوْا كَيْفَ

راورسي نو تاسو خلق سوچ وكړئ چې تاسو به زما نه روسته هغړى سره څه معامله كوئ او څرنګه

| تَخْلُفُوْنِيْ فِيْهِمَا. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ |
|---|
| به ورسره پيش راځئ. [ترمذي] |

## د ځلور تنو دښمن ګويا د حضور صلى الله عليه وسلم دښمن دى

| ﴿۲۰﴾ وَعَنْهُ أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لِعَلِيٍّ وَّفَاطِمَةَ وَالْحَسَنِ وَالْحُسَيْنِ |
|---|
| حضرت زيد بن ارقم رضي الله عنه روايت دى چې رسول الله صلى الله عليه وسلم د علي فاطمه حسن او حسين رضي الله عنهم |
| أَنَا حَرْبٌ لِمَنْ حَارَبَهُمْ |
| په حق كي وفرمائيل چاچي د دوئ سره جنګ وكړو زه به هغه سره جنګ كوم او چاچي دوئ سره |
| وَسِلْمٌ لِمَنْ سَالَمَهُمْ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ |
| مصالحت وساته زه به د هغه سره مصالحت ساتم. [ترمذي] |

## د حضرت علي رضي الله عنه او بي بي فاطمې (رضي الله عنها) سره د نبي كريم صلى الله عليه وسلم محبت

| ﴿۲۱﴾ وَعَنْ جُمَيْعِ بْنِ عُمَيْرٍ قَالَ دَخَلْتُ مَعَ عَمَّتِيْ عَلَى عَائِشَةَ |
|---|
| او حضرت جميع بن عمير وايي يوه ورځ زه خپلي عمې سره د ام المؤمنين بي بي عائشه رضي الله عنها په خدمت |
| فَسَئَلْتُ أَيُّ النَّاسِ أَحَبُّ إِلٰى رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| كي حاضر شوم نو ما ترينه پوښتنه وكړه رسول الله صلى الله عليه وسلم د ټولو نه زيات محبت چاسره درلودلو؟ |
| قَالَتْ فَاطِمَةُ فَقِيْلَ مِنَ الرِّجَالِ |
| بي بي عائشې رضي الله عنها جواب راكړو فاطمې سره بيامي ترينه پوښتنه وكړه او په سړو كي يې د ټولو نه زيات |
| قَالَتْ زَوْجُهَا. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ. |
| محبت چاسره وو بي بي عائشې رضي الله عنها وفرمائيل د فاطمې خاوند علي مرتضىٰ سره. [ترمذي] |

**توضيح**: قالت فاطمة: د حضرت عائشه رضي الله عنها د منصف مزاج كيدلو اندازه ولګوئ چې حضرت فاطمه رضي الله عنها او حضرت علي رضي الله عنه يې حضور صلى الله عليه وسلم ته تر ټولو زيات محبوب وګرځول حالانكه هغې دا هم ويلى شو چې حضور اكرم صلى الله عليه وسلم ته تر ټولو زياته محبوبه زه يم او زما پلار وو او دا خبره په خپل ځاى صحيح هم وه ځكه په صحيح حديث كې همداسي وارد شوي دى مګر حضرت عائشې رضي الله عنها د نهايت انصاف او وسعت قلبى مظاهره وكړه او د دغه اعزاز مستحق يې حضرت علي رضي الله عنه او حضرت فاطمې رضي الله عنها وګرځول.

اوس سوال دا دی چې ددې حدیث او د هغه حدیث په مینځ کې تعارض دی چې په هغه کې د سوال کونکي په جواب کې حضور ﷺ و فرمایل : ما ته په زنانو کې تر ټولو محبوب عائشه ده او په نارینو کې د هغې پلار محبوبه دی !

ددې جواب دا دی چې اصل خبره خو د حضور پاک ﷺ ده ، حضرت عائشې رضي الله عنها خو په خپل انداز سره فرمایلي دي ، هغې ته همداسې ویل پکار وو ، لهذا په دې کې هیڅ تعارض نشته . باقي د چا محبوب کیدل یو شی دی او د مقام او رتبې والا کیدل بل شی دی ، ډیر خلک محبوب وي مګر رتبه د نورو لویه وي .

## دحضرت عباس رضي الله عنه فضیلت

| |
|---|
| ﴿۲۲﴾ وَعَنْ عَبْدِ الْمُطَّلِبِ بْنِ رَبِيْعَةَ أَنَّ الْعَبَّاسَ دَخَلَ عَلَى رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| حضرت عبد المطلب بن ربیعه بیان کوي یوه ورځ د رسول الله ﷺ په خدمت کي ناست وم چې |
| مُغْضَبًا وَّأَنَا عِنْدَهُ فَقَالَ مَا أَغْضَبَكَ |
| حضرت عباس رضي الله عنه د قهرنه ډک راغلو حضور ﷺ ترینه پوښتنه وکړه څه خبره ده چې هغه ته |
| قَالَ يَارَسُوْلَ اللهِ مَا لَنَا وَلِقُرَيْشٍ إِذَا |
| دومره په قهر کړی یې حضرت عباس وویل ای د الله رسوله! څه دي مونږ او قریشو لره چې هرکله |
| تَلَاقَوْا بَيْنَهُمْ تَلَاقَوْا بِوُجُوْهٍ مُّبْشِرَةٍ وَّإِذَا لَقُوْنَا |
| هغوئ قریش خپلو کي یو ځاي کیږي نو په رونړ تندي سره یو ځاي کیږي او هرکله چې زمونږ سره |
| لَقُوْنَا بِغَيْرِ ذٰلِكَ فَغَضِبَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| یو ځاي کیږي نو هغه شان نه یو ځاي کیږي رسول الله ﷺ سخت په قهر شو ددې پوري چې د قهر د |
| حَتّٰى احْمَرَّ وَجْهُهُ ثُمَّ قَالَ |
| شدت نه د حضور ﷺ مخ مبارک سور شو بیا حضرت عباس رضي الله عنه مخاطب کیدو سره یې وفرمائیل |
| وَالَّذِيْ نَفْسِيْ بِيَدِهٖ لَا يَدْخُلُ قَلْبَ رَجُلٍ الْإِيْمَانُ |
| قسم دی په هغه ذات چې د هغه په لاس کي ځما ځان دی د یو سړي په زړه کي ایمان نه داخلیږي چې |
| حَتّٰى يُحِبَّكُمْ لِلّٰهِ وَلِرَسُوْلِهٖ ثُمَّ قَالَ يَا أَيُّهَا النَّاسُ مَنْ |
| هغه تاسو سره د الله او د الله د رسول لپاره محبت ونه ساتي بیا یې وفرمائیل خلقو ! پوهه شئ کوم سړی |

| أَبِيهِ | صِنْوُ | الرَّجُلِ | عَمُّ | فَإِنَّمَا | آذَانِيْ | فَقَدْ | عَمِّيْ | آذٰى |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|

چې خصوصًا ځما تره ته تکلیف ورکوي هغه ګویا ماته تکلیف راکوي ځکه چې تره د پلار په مثل

رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَفِي الْمَصَابِيحِ عَنِ الْمُطَّلِبِ.

دی (ترمذي) او مصابیح کې مطلب بن ربیعه دی .

## د حضرت عباس رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ فضیلت

﴿۲۳﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَلْعَبَّاسُ مِنِّيْ

او حضرت ابن عباس رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وايي چې رسول کریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمائیل عباس زما نه دی

وَأَنَا مِنْهُ . رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ

او زه د هغه نه یم. [ترمذي]

## د حضرت عباس رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ او اولاد عباس د پاره دُعاء

﴿۲۴﴾ وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِلْعَبَّاسِ

او حضرت ابن عباس رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وايي يوه ورځ رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ځما پلار حضرت عباس ته وفرمائیل

| حَتّٰى | وَوَلَدُكَ | أَنْتَ | فَأْتِنِيْ | الْاِثْنَيْنِ | غَدَاةَ | كَانَ | إِذَا |
|---|---|---|---|---|---|---|---|

چې د پیر دوشنبې په ورځ ته خپل اولاد سره ماته راشه چې زه ستا سو د پاره دعا وکړم چې د هغه په

| وَوَلَدَكَ | بِهَا | اللّٰهُ | يَنْفَعُكَ | بِدَعْوَةٍ | لَكُمْ | أَدْعُوَ |
|---|---|---|---|---|---|---|

سبب الله تعالی تا ته او ستا اولاد ته نفع ورسوي نو دوشنبې ورځ چې راغله د سهار په وقت کې

| كِسَاءَهُ | وَأَلْبَسَنَا | مَعَهُ | وَغَدَوْنَا | فَغَدَا |
|---|---|---|---|---|

حضرت عباس او هغه سره مونږ ټول د هغه اولاد د حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خدمت کې حاضر شو حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

| ظَاهِرَةً | مَغْفِرَةً | وَوَلَدِهِ | لِلْعَبَّاسِ | اغْفِرْ | اَللّٰهُمَّ | قَالَ | ثُمَّ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|

خپل څادر مبارک مونږ ټولو باندې واچوه او بیا دعایې وفرمائیله خداونده! عباس او د هغه اولاد وبخښې او

| فِيْ | احْفَظْهُ | اَللّٰهُمَّ | ذَنْبًا | تُغَادِرُ | لَا | وَبَاطِنَةً |
|---|---|---|---|---|---|---|

د ظاهر او باطن داسې بخشش ورته عطاء کړې چې هیڅ ګناه ورباندې نه پریږدي الٰهی عباس د

وَلَدِهِ . رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَزَادَ رَزِينٌ وَاجْعَلِ الْخِلَافَةَ

هغه اولاد کي قائم او محفوظ ولري [ترمذي] او رزین د دي دعاء په آخر کي دا الفاظ هم نقل کړي

بَاقِيَةً فِي عَقِبِهِ وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ هٰذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ.

دي چې امارت او بادشاهي هم د هغه په اولاد کي باقي وساتي ترمذي ويلي دي دا حديث غريب دی

﴿۲۵﴾ وَعَنْهُ أَنَّهُ رَآى جِبْرَئِيلَ مَرَّتَيْنِ وَدَعَا لَهُ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روايت دی هغه دوه واره حضرت جبرائيل عَلَيْهِ السَّلَامُ وليدلو او رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د

مَرَّتَيْنِ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ

هغه په حق کي دوه واره دعا وفرمائيله. [ترمذي]

## حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته د عطائي حكمت دُعا

﴿۲۶﴾ وَعَنْهُ أَنَّهُ قَالَ دَعَا لِي رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يُؤْتِيَنِيَ اللهُ

حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روايت دی هغه بيان وکړو چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زما د پاره

الْحِكْمَةَ مَرَّتَيْنِ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ

دوه واره دا دعا وکړه چې الله ما ته حکمت عطاء کړي. [ترمذي]

## د حضرت جعفر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ کُنيت

﴿۲۷﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ كَانَ جَعْفَرٌ يُحِبُّ الْمَسَاكِينَ وَيَجْلِسُ

او حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې جعفر بن ابي طالب به مساکينو سره ډير زيات محبت درلودلو

إِلَيْهِمْ وَيُحَدِّثُهُمْ وَيُحَدِّثُونَهُ

د هغوئ سره به کيناستلو او پاڅيدلو او د هغوئ سره به يي د دلجوئي او غم خوارئ خبري کولي او

وَكَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

مساکينو به هغه ته د خپل غم درد خبري کولي او رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په دي بناء د هغه کنيت

يُكَنِّيهِ بِأَبِي الْمَسَاكِينِ . رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

ابو المساکين اينبی وو. [ترمذي]

﴿۲۸﴾ وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَأَيْتُ جَعْفَرًا يَطِيْرُ فِي الْجَنَّةِ

حضرت ابو هریره رضی الله عنه وايي چې رسول کریم صلی الله علیه وسلم وفرمائیل ما جعفر په جنت کې فرشتو

مَعَ الْمَلَائِكَةِ . رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ هٰذَا حَدِيْثٌ غَرِيْبٌ.

سره الوتونکی لیدلی دی دا روایت ترمذي نقل کړی دی او ویلي یې دي چې دا حدیث غریب دی.

## د جنت د ځوانانو سردار

﴿۲۹﴾ وَعَنْ أَبِيْ سَعِيْدٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَلْحَسَنُ وَالْحُسَيْنُ

او حضرت ابو سعید رضی الله عنه وايي چې رسول کریم صلی الله علیه وسلم وفرمائیل حسن او حسین دواړه د

سَيِّدَا شَبَابِ أَهْلِ الْجَنَّةِ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ

جنت د ځوانانو سرداران دي. ترمذی.

**توضیح** : **سیدا شباب اهل الجنة**: عام خیال هغه طرفته ځي چې کوم خلک په ځوانی کې شهیدان کیږي حسن او حسین رضی الله عنهما به په جنت کې د هغوی سرداران وي، علامه طیبی هم دا خبره لیکلې ده مګر بعضې نور علماء فرمايي چې د حدیث مطلب دا دی چې په جنت کې به ټول خلک ځوانان وي د دغو ټولو اهل جنتو سرداران به حسن او حسین وي، دا خبره ډیره ښه ده مګر په دې باندې دا اعتراض دی چې حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه او عمر فاروق رضی الله عنه هم د اهل جنت د زیات عمر والاؤ سرداران ګرځولی شوي دي نو اوس تضاد پیدا شو چې څوک به سردار وي. د دې لپاره جواب دا دی چې دا اعزازات دي ډیرو خلک و ته به اعزازات ورکولی کیږي لهذا په سلهاؤ خلک هم سرداران کیدلی شي، دا هم سرداران دي او هغوی هم سرداران دي هیڅ منافات نشته.

## حسن او حسین ځما د دنیا دوه ګلان دي

﴿۳۱﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِنَّ الْحَسَنَ

او حضرت ابن عمر رضی الله عنهما روایت دی چې رسول کریم صلی الله علیه وسلم وفرمائیل حقیقت دا دی چې حسن

وَالْحُسَيْنَ هُمَا رَيْحَانَايَ مِنَ الدُّنْيَا. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَدْ سَبَقَ فِي الْفَصْلِ الْأَوَّلِ.

او حسین ځما د دنیا دوه ګلان دي. [ترمذي] دا روایت اول فصل کې تیر شوی دی.

## حسين سره محبت او تعلق

﴿۳۱﴾ وَعَنْ أُسَامَةَ بْنِ زَيْدٍ قَالَ طَرَقْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

حضرت اسامه بن زيد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي زه يو وارد شپې خپل څه ضرورت د پاره د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

ذَاتَ لَيْلَةٍ فِيْ بَعْضِ الْحَاجَةِ فَخَرَجَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ

په خدمت کي حاضر شوم نو حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د خپل کور د ننه نه داسي حال کي دباندې تشريف راوړه چي

وَهُوَ مُشْتَمِلٌ عَلٰى شَيْءٍ لَا اَدْرِيْ مَا هُوَ فَلَمَّا فَرَغْتُ مِنْ

څه شی يې ځان نه چاپيره کړي وو او زه نه پوهيدم چې هغه څه شی وو بيا چې ما خپل ضرورت حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته

حَاجَتِيْ قُلْتُ مَا هٰذَا الَّذِيْ أَنْتَ مُشْتَمِلٌ عَلَيْهِ

عرض کړو نو پوښتنه مي وکړه چې دا څه شی دی چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ځان نه چاپيره کړي دی حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

فَكَشَفَهُ فَإِذَا حَسَنٌ وَالْحُسَيْنُ

هغه شی خلاص ولو څه گورم چې هغه حسن او حسين دی چې د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په دواړو ورنونو مبارکو

عَلٰى وَرِكَيْهِ فَقَالَ هٰذَانِ اِبْنَايَ

وو يعني حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغوئ دواړه غيږ کي اخستو سره څادر کي پټ کړي وو بيا حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمائيل

وابْنَا ابْنَتِيْ اَللّٰهُمَّ إِنِّيْ أُحِبُّهُمَا فَأَحِبَّهُمَا

دا دواړه حکمًا ځما ځامن دي او حقيقتًا ځما د لور ځامن دی خداونده! زه دا دواړه محبوب لرم ته هم

وَ أَحِبَّ مَنْ يُحِبُّهُمَا. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

دوئ محبوب لري. او څوک چې ددي دواړو سره محبت کوي هغه سره محبت وکړه [ترمذي]

## د أم سلمه خوب او د حسين رَضِيَ اللهُ عَنْهُ شهادت

﴿۳۲﴾ وَعَنْ سَلْمٰى قَالَتْ دَخَلْتُ عَلٰى أُمِّ سَلَمَةَ

او حضرت سلمٰی بيان کوي يوه ورځ زه د ام المؤمنين حضرت ام سلمه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا په خدمت کي حاضره شوم

وَهِيَ تَبْكِيْ فَقُلْتُ مَا يُبْكِيْكِ قَالَتْ رَأَيْتُ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

څه گورم چې هغه ژاړي ما ترينه پوښتنه وکړه ولي ژاړې هغې جواب راکړو ما رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

| |
|---|
| تَعْنِيْ فِي الْمَنَامِ وَعَلٰى رَأْسِهٖ وَلِحْيَتِهِ التُّرَابُ فَقُلْتُ. |
| په خوب کي اوليدلو چې د هغوئ سر مبارک او ږيره ګرد آلود وه ما پوښتنه وکړه يارسول الله! |
| مَالَكَ يَا رَسُوْلَ اللهِ قَالَ شَهِدْتُّ. |
| تاسو ګرد الود ولي ياست؟ وي فرمائيل زه اوس د حسين قتل ګاه کي موجود وم او هلته مي ليدل |
| قَتْلَ الْحُسَيْنِ آنِفًا. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ |
| چې ځما د جګر ټکړه يعني لمسی ظالمانو څومره بې دردۍ سره شهيد کړو دا روايت ترمذي نقل کړی دی |
| وَقَالَ هٰذَا حَدِيْثٌ غَرِيْبٌ |
| او ويلي يي دي چې دا حديث غريب دی. |

دحسين رضي الله عنه د شهادت تفصيل به راتلونکی حديث نمبر ۴۶ کې راځي

## دحسينينو سره حضور صلى الله عليه وسلم محبت

| |
|---|
| ﴿۲۳﴾ وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ سُئِلَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَيُّ أَهْلِ بَيْتِكَ |
| حضرت انس رضي الله عنه بيان کوي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم نه پوښتنه وشوه اهلِ بيتو کي څوک تاسو |
| أَحَبُّ إِلَيْكَ قَالَ الْحَسَنُ وَالْحُسَيْنُ وَ يَقُوْلُ لِفَاطِمَةَ |
| ته زيات عزيز او محبوب دی حضور صلى الله عليه وسلم وفرمائيل حسن او حسين فاطمي رضي الله عنها ته ئي فرمائيل |
| أُدْعِيْ لِيَ ابْنَيَّ فَيَشُمُّهُمَا وَيَضُمُّهُمَا إِلَيْهِ. |
| چې ځما دواړه ځامن راو غواړه بيا به د هغه دواړو جسمونه بُويول او هغوئ به يي خپلي غاړي سره لګول |
| رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ هٰذَا حَدِيْثٌ غَرِيْبٌ. |
| ترمذي دا روايت نقل کړی دی او ويلي يي دي چې دا حديث غريب دی. |
| ﴿۲۴﴾ وَعَنْ بُرَيْدَةَ قَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَخْطُبُنَا |
| او حضرت بريده رضي الله عنه بيان کوي يوه ورځ رسول الله صلى الله عليه وسلم څمونږ مخکي خطبه ارشاد فرمائيله |
| إِذْ جَاءَ الْحَسَنُ وَالْحُسَيْنُ وَعَلَيْهِمَا قَمِيْصَانِ أَحْمَرَانِ يَمْشِيَانِ |
| چې اچانک حسن او حسين راغلل دواړو سره قميصو نه اغوستي وو داسي راتلل چې په ځمکه به |

وَيَعْثُرَانِ فَنَزَلَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنَ الْمِنْبَرِ فَحَمَلَهُمَا وَوَضَعَهُمَا

غورځيدل پاسيدل حضور صلى الله عليه وسلم د هغوئ په ليدو سره د منبر نه راكوز شو او هغوئ دواړه خپل په غيږ

بَيْنَ يَدَيْهِ ثُمَّ قَالَ صَدَقَ اللهُ إِنَّمَا أَمْوَالُكُمْ وَ أَوْلَادُكُمْ

كي آخستو سره يي كينول بيايي وفرمائيل الله تعالى حق فرمائيلى دي چي: (إِنَّمَا أَمْوَالُكُمْ وَأَوْلَادُكُمْ

فِتْنَةٌ فَنَظَرْتُ إِلَى هٰذَيْنِ الصَّبِيَّيْنِ يَمْشِيَانِ

فِتْنَةٌ) ما دا دواړه بچي وليدل چې تلى نشي او غورځيدو پاسيدو سره راځي نو د هغوئ محبت كې

وَيَعْثُرَانِ فَلَمْ أَصْبِرْ حَتّٰى قَطَعْتُ حَدِيْثِيْ

زما نه صبر ونه شو او ما خپله خبره ديني وعظ او نصيحت او د بيان احكام و مسائلو سلسله منقطع

وَرَفَعْتُهُمَا. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُوْ دَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ.

كړله او منبر نه راخكته كيدو سره مي دوى په غيږ كي واخستل. [ترمذي ابوداود نسائي]

**توضيح**: (فِتْنَةٌ) د فِتْنَةٌ اطلاق په څو معناګانو باندې كيږي ، د محبت په طور باندې په اولاد باندې هم كيږي لكه دلته چې شوى دى . (**يعثران**) مخې خواته غورځيدلو ته عثر ويل كيږي دلته همدا مراد دى ، يعنې كله راروان شي او كله وغورځيږي لكه څنګه چې ماشوم وي .

﴿۳۵﴾ وَعَنْ يَعْلَى بْنِ مُرَّةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حُسَيْنٌ مِّنِّيْ وَأَنَا مِنْ حُسَيْنٍ

حضرت يعلى ابن مره وايي چې رسول كريم صلى الله عليه وسلم وفرمائيل حسين زما نه دى او زه د حسين نه يم

أَحَبَّ اللهُ مَنْ أَحَبَّ حُسَيْنًا حُسَيْنٌ سِبْطٌ مِّنَ الْأَسْبَاطِ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ .

ربه دي هغه چا سره محبت وساتى چاچي حسين سره محبت وساتو حسين د اسباطو نه يو سبط دى. [ترمذي]

**توضيح**: (سبط) په سين باندې زير دى او باء ساكنه ده شاخ ته هم وايې او اولاد ته هم ويل كيږي ، قبيلې ته هم ويل كيږي ، ټول امت ته هم ويل كيږي يعنې حسين اګرچې يو دى ليكن هغه د امتونو څخه يو امت دى ، د هغه نسل به خور شي ، دلته دغه معنى ډيره راجحه معلوميږي .

## د حسنينو د حضور صلى الله عليه وسلم سره مشابهت

﴿۳۶﴾ وَعَنْ عَلِيٍّ قَالَ الْحَسَنُ أَشْبَهَ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا بَيْنَ

او حضرت علي كرم الله وجهه نه روايت دى هغوئ وويل حسن خو د رسول كريم صلى الله عليه وسلم د سر نه واخله

الصَّدْرِ إِلَى الرَّأْسِ وَالْحُسَيْنُ أَشْبَهَ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د سيني حصي پورې مشابه دی او حسين د رسول الله صلى الله عليه وسلم سره سيني نه لاندې د جسم باقي

مَا كَانَ أَسْفَلَ مِنْ ذٰلِكَ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ

حصې يعني د پنډې او پښو وغيره كې مشابه دی. [ترمذي]

**توضيح**: (اشبه) د باب افعال څخه د ماضي صيغه ده چې د شابه په معنی سره ده يعني حضرت حسن رضي الله عنه چونكې مشر وو نو په مشابهت كې هغه ته پورتنۍ حصه ملاؤ شوه او حضرت حسين رضي الله عنه كشر وو نو هغه ته لاندې حصه د پښو پونډيو مشابهت حاصل شو ، ددينه معلومه شوه چې دواړه ورونه د خپل مور او پلار سره مشابه نه وو بلكه د نيكه سره مشابه وو .

## د بي بي فاطمي رضي الله عنها او حسينو فضيلت

﴿۲۷﴾ وَعَنْ حُذَيْفَةَ قَالَ قُلْتُ لِأُمِّي دَعِينِي آتِي النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

او حضرت حذيفه بن اليمان رضي الله عنه بيان كوي يوه ورځ ما خپلي مورته وويل كه ماته اجازه راكوئ نو

فَأُصَلِّيَ مَعَهُ الْمَغْرِبَ وَأَسْأَلُهُ

زه به نن ما ښام مونځ د رسول الله صلى الله عليه وسلم سره وكړم او بيا به حضور صلى الله عليه وسلم ته درخواست وكړم

أَنْ يَسْتَغْفِرَ لِي وَلَكِ فَأَتَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

چې هغوئ زما او ستا دپاره د بخښش او مغفرت دعا وغواړي نو ځما مور ماته اجازه راكړه او زه د رسول الله صلى الله عليه وسلم

فَصَلَّيْتُ مَعَهُ الْمَغْرِبَ فَصَلَّى حَتَّى صَلَّى الْعِشَاءَ ثُمَّ انْفَتَلَ

په خدمت كې حاضر شوم او د ما ښام مونځ مې وسره وكړو حضور صلى الله عليه وسلم ما ښام ما سخته نه روسته نفلونه

فَتَبِعْتُهُ فَسَمِعَ صَوْتِي فَقَالَ

دل ددې پورې چې د ماخستن مونځ يې وكړو او كوم وخت چې حضور صلى الله عليه وسلم ما سخته نه فارغ شو سره

مَنْ هٰذَا؟ حُذَيْفَةُ؟ قُلْتُ نَعَمْ

كور طرف ته روان شو نو زه ور پسې شوم حضور صلى الله عليه وسلم ځما اواز او ازهم واوريده نو پوښتنه يې وكړه څوك دی؟

قَالَ مَا حَاجَتُكَ غَفَرَ اللهُ لَكَ وَلِأُمِّكَ إِنَّ هٰذَا مَلَكٌ لَمْ يَنْزِلِ الْأَرْضَ قَطُّ قَبْلَ

چې دا وخت خپل كور ته د تلو په ځای په ما پسې راروان دی الله دې تا او ستا د مور عفو او بخښش وكړي.

| | | | |
|---|---|---|---|
| هٰذِهِ | اللَّيْلَةِ | اِسْتَأْذَنَ | رَبَّهُ |

ګوره دا یوه فرښته ده چې ددي شپې نه مخکې هیڅ کله ځمکې ته نه وه راکوزه شوې دي فرښتي د

| | | | |
|---|---|---|---|
| أَنْ | يُسَلِّمَ | عَلَيَّ | وَيُبَشِّرَنِيْ |

خپل پروردګار نه د دي خبري اجازت اخستی دی چې ځمکې ته راخکته کیدو سره ما ته سلام وکړي

بِأَنَّ فاطِمَةَ سَيِّدَةُ نِسَآءِ أَهْلِ الْجَنَّةِ وَأَنَّ الْحَسَنَ والْحُسَيْنَ سَيِّدَا شَبَابِ

او ما ته دا خوشخبري واوروي چې فاطمه د جنتیانو ښځو سرداره ده او حسن او حسین د جنتیانو ځوانانو سرداران دي

أَهْلِ الْجَنَّةِ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ هٰذَا حَدِيْثٌ غَرِيْبٌ.

دا روایت ترمذي نقل کړی دی او ویلي یې دي چې دا حدیث غریب دی

## ښه سور لي ښه سور

﴿۳۸﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَامِلَ الْحَسَنِ بْنِ عَلِيٍّ عَلَى عَاتِقِهِ

او حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا بیان کوي یوه ورځ رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حسن بن علي په خپلي اوږي باندې

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| فَقَالَ | رَجُلٌ | نِعْمَ | الْمَرْكَبُ | رَكِبْتَ | يَاغُلَامُ | فَقَالَ |

کینولی وو چې یو سړي وویل ای خوش نصیبه ماشومه! څرنګه ښې سورلۍ باندې سپور یې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَنِعْمَ الرَّاكِبُ هُوَ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

په دي اوریدو سره وفرمائیل او هغه سور هم څومره ښه دی. [ترمذي]

**توضیح**: (ونعم الراكب) ویونکي کس فضیلت د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره خاص کړلو چې دا مرکب او سورلۍ ډیره ښه ده ځکه دا د الله رسول دی چې په هغه باندې ای حسنه ته سور یې، حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د غه فضیلت تر حضرت حسن رَضِيَ اللهُ عَنْهُ طرفته منتقل کړلو او ویې فرمایل چې د مرکوب سره سره د غه راکب حسن هم بهترین او ډیر ښه دی.

## د حضرت اسامه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فضیلت

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۳۹﴾ | ووَعَنْ | عُمَرَ | أَنَّهُ | فَرَضَ | لِأُسَامَةَ | فِيْ | ثَلٰثَةِ | آلَافٍ |

او حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی هغوئ په خپله زمانه خلافت کي د اسامه بن زید سالانه تنخواه دري زره

وَخَمْسِ مِائَةٍ وَفَرَضَ لِعَبْدِ اللهِ بْنِ عُمَرَ فِيْ ثَلَاثَةِ آلَافٍ فَقَالَ عَبْدُ اللهِ بْنُ عُمَرَ لِأَبِيْهِ

پنځه سوه ۳۵۰۰ درهم مقرر کړي وه او د خپل فرزند عبد الله يې درې زره ۳۰۰۰ درهم، په دې عبد الله خپل پلار ته عرض و کړو

لِمَ فَضَّلْتَ أُسَامَةَ عَلَيَّ

تاسو اسامه ته په ما ولې ترجيح ورکړه چې ځما تنخواه د هغه نه پنځه سوه درهمه کمه مقرره کړله

فَوَاللهِ مَا سَبَقَنِيْ إِلٰى مَشْهَدٍ قَالَ

حالانکه په الله قسم چې اسامه هيڅ ميدان کې په ما سبقت او بازي نه ده حاصله کړي حضرت عمر رضي الله عنه ورته و فرمائيل

لِأَنَّ زَيْدًا كَانَ أَحَبَّ إِلٰى رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ أَبِيْكَ

د دې وجه داده چې د اسامه پلار زيد رسول الله ﷺ ته ستا تر پلار يعني ځما نه زيات عزيز او محبوب وو

وَكَانَ أُسَامَةُ أَحَبَّ إِلٰى رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْكَ فَآثَرْتُ

او خپله اسامه رسول الله ﷺ ته ستا نه زيات عزيز او محبوب وو نو ما د رسول الله ﷺ

حِبَّ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. عَلٰى حِبِّيْ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ

محبوب اسامه ته پر خپل محبوب يعني په تا باندې ترجيح ورکړله. [ترمذي]

## د حضرت زيد بن حارثه رضي الله عنه فضيلت

﴿۲۰﴾ وَعَنْ جَبَلَةَ بْنِ حَارِثَةَ قَالَ قَدِمْتُ عَلٰى رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُلْتُ

او حضرت جبله بن حارثه رضي الله عنه بيان کوي زه د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضر يدو سره عرض مې وکړو

يَا رَسُوْلَ اللهِ اِبْعَثْ مَعِيَ أَخِيْ زَيْدًا قَالَ

يا رسول الله! ځما ورور زيد ما سره وليږئ حضور ﷺ ورته و فرمائيل دا زيد موجود دی

هُوَ ذَا فَإِنِ انْطَلَقَ مَعَكَ لَمْ أَمْنَعْهُ قَالَ زَيْدٌ

او د خپلې مرضۍ مختار دی که تا سره تلل غواړي نو زه يې له دينه منع کوم زيد په دې اوريدو

يَا رَسُوْلَ اللهِ وَاللهِ لَا أَخْتَارُ عَلَيْكَ

سره و ويل يا رسول الله! قسم په الله زه ستا سو صحبت او په خدمت کې د پاتې کيدو په سعادت چا ته

| أَحَدًا | قَالَ | فَرَأَيْتُ | رَأْيَ | أَخِيْ |
|---|---|---|---|---|
| ترجیح نه ورکوم که هغه ورور وي یا والدین وي جبله وایي ماچي د زید دا مضبوطه فیصله واوریده | | | | |
| أَفْضَلَ | مِنْ | رَأْيِيْ. | رَوَاهُ | التِّرْمِذِيُّ. |
| نو ومی منله چې ځما د ورور عقل ځما د عقل نه زیات دی. [ترمذي] | | | | |

**توضیح**: ددېنه مخکې د حدیث نمبر ۱۶ لاندې هم د حضرت زید رضي الله عنه متعلق څه لیکل شوي بیا په اشاره وکړم چې حضرت زید رضي الله عنه د یمن او سیدونکی وو، په ورکوتې والي کې د اتو کالو په عمر خلکو هغه غلا کړو د مکې په بازار کې یې غلام ګرځولو سره خرڅ کړلو. د حضرت خدیجې رضي الله عنها وراره حکیم بن حزام د حضرت خدیجې رضي الله عنها لپاره واخیسته، چې کله د حضرت خدیجې رضي الله عنها نکاح د حضور صلی الله علیه وسلم سره وشوه نو هغې په طور د خادم حضرت زید رضي الله عنه د حضور اکرم صلی الله علیه وسلم په خدمت کې پیش کړلو، حضرت زید بن حارثه رضي الله عنه د حضور صلی الله علیه وسلم په خدمت کې د غلامی ژوند تیرولو او د هغه والدین د هغه لپاره بې انتهاء ژړیدل، هغوی ته معلومه نه وه چې زید چیرته دی؟

د حضرت زید رضي الله عنه والد ثابت په طور د فریاد یوه قصیده وویله یو څو اشعار ملاحظه کړئ:

بَكَيْتُ عَلَى زَيْدٍ وَلَمْ أَدْرِ مَا فَعَلَ     أَحَيٌّ فَيُرْجَى أَمْ أَتَى دُوْنَهُ الْأَجَلُ

ترجمه: زه په زید باندې ژړیږم مګر ماته معلومه نه ده چې هغه ژوندی دی او که مړ دی.

فَوَاللهِ مَا أَدْرِيْ وَإِنِّيْ لَسَائِلٌ     أَغَالَكَ بَعْدِي السَّهْلُ أَمْ غَالَكَ الْجَبَلُ

ترجمه: په الله قسم! ماته هیڅ معلومه نه ده مګر زه پوښتنه کوم چې تا ته په میدانې علاقه کې موت راغلی او که په غره کې مرګ راغلی دی.

وَيَا لَيْتَ شِعْرِيْ هَلْ لَكَ الدَّهْرُ أَوْبَةٌ     فَحَسْبِيْ مِنَ الدُّنْيَا رُجُوْعُكَ لِيْ بَجَلْ

ترجمه: ای کاشکې! ماته دا معلومه شي چې په ژوند کې کله هم ته راځې نو ماته د دنیا په ټولو نعمتونو کې ستا ژوندي راتلل کافي دي.

د پلار دغه اشعار چې کله زید وو اوریدل نو په جواب کې ده دغه مندرجه ذیل اشعار وویل:

أَحِنُّ إِلَى أَهْلِيْ وَإِنْ كُنْتُ نَائِيًا     بِأَنِّيْ قَعِيْدُ الْبَيْتِ عِنْدَ الْمَشَاعِرِ

ترجمه: زه اګر چې لرې یم او د بیت الله سره مقیم یم مګر بیا مې هم د کور والا یادیږي.

فَإِنِّيْ بِحَمْدِ اللهِ فِيْ خَيْرِ أُسْرَةٍ     كِرَامُ مَعْدٍ كَابِرًا بَعْدَ كَابِرٍ

ترجمه: د الله تعالی په فضل سره زه د معد بن عدنان په بهترینه او معززه کورنی کې مقیم یم

فَكُفُّوا مِنَ الْوَجْدِ الَّذِي قَدْ شَجَاكُمْ وَلَا تَعْلَمُوا فِي الْأَرْضِ نَصَّ الْأَبَاعِرِ

ترجمه: نو تاسې د هغه غم كولو نه واپس شئ په كوم كې چې تاسې مبتلا ياست او په ځمكه كې زما د تلاش لپاره اوښ مه ځغلوئ. د الله كول داسې وو چې دا اشعار د هغه والد ته ورسيدل. په اشعارو كې هغه ويلي وو چې زه د حرم سره اوسيږم، بيا د حضرت زيد وروړ جبله بن حارثه مكې ته راغلی او حضرت زيد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ يې وغوښته لكه مخكې چې مې وليكل، حضرت زيد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د تللو څخه انكار وكړو، حضور اكرم ﷺ هغه خپل ځوئ جوړ كړلو او د حضرت زينب رَضِيَ اللهُ عَنْهَا سره يې د هغه نكاح وتړله. هغه رشته ماته شوه بيا حضور ﷺ د هغه نكاح د ام ايمن سره وتړله د هغې د بطن نه حضرت اسامه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ پيدا شو، بيا حضور ﷺ حضرت زيد امير جوړ كړلو غزوه موته ته يې واستولو. هلته حضرت زيد په سنه ٨ هـ كې د 55 كلونو په عمر شهيد كړی شو.

## د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د اسامه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره محبت

﴿٢١﴾ وَعَنْ أُسَامَةَ بْنِ زَيْدٍ قَالَ لَمَّا ثَقُلَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

او حضرت اسامه بن زيد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ بيان كوي هغه وړځو كي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مرض وفات كي ډير

هَبَطْتُ وَهَبَطَ النَّاسُ الْمَدِيْنَةَ

زيات كمزوری شوی وو زه او نور خلق په مدينه كي خكته شو زه د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خدمت كي

فَدَخَلْتُ عَلَى رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

حاضر شوم هغه وقت حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ باندې خاموشي خوره وه يعني د شدت مرض او ضعف په

وَقَدْ أُصْمِتَ فَلَمْ يَتَكَلَّمْ فَجَعَلَ

سبب د يې د خبرو طاقت باقي نه وو پاتې شوی نو ځما په ليدو سره حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ژبې مباركي سره هيڅ

رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَضَعُ يَدَيْهِ عَلَيَّ

ونه ويل بيا هم رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دا ضرور وكړل چې خپل دواړه لاسه به يې په ما اېښودل بيا به يې

وَيَرْفَعُهُمَا فَأَعْرِفُ أَنَّهُ يَدْعُوْ لِيْ.

اوچتول د نورِ ولايت او ظهورِ فراست په سبب زه پوهه شوم چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ځما په حق كي دعا

رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ هٰذَا حَدِيْثٌ غَرِيْبٌ

فرمايي دا روايت ترمذي نقل كړی دی او ويلي يې دي چې دا حديث غريب دی.

**توضیح**: **ثقل**: د مرض الموت شدت ته اشاره ده.

**هبط**: د ملاقات او عیادت لپاره راتللو او خکته کیدلو به معنی سره دی.

**اصمت**: یعني د شدت مرض په وجه هغه د بی هوشئ په حالت کې وو او خبرې یې بندې شوي وي، دا د یوه حالت واقعه ده او که نه نو په بل حالت کې حضور صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د حضرت اسامه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ لپاره جنګی بیرغ تړلی وو او رخصت کړی یې وو او دا آخری ملاقات وو، لیکن شیخ عبدالحق رَحِمَهُ اللَّهُ په اشعة اللمعات کې لیکلي دي چې کله د حضرت اسامه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ لښکر د مدینې څخه بهر پړاؤ اچولی وو او د حضور صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په مرض کې شدت راغی نو په دغه وخت کې حضرت اسامه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د عیادت لپاره حاضر شوی وو، دا د هغه وخت خبره ده چې د مرض د شدت په وجه حضور صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خبره نشوې کولی.

**یرفعها**: یعني لاس یې د آسمان طرفته پورته کولو او اشاره یې کوله چې ددینه ما اندازه ولګوله چې حضور اکرم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ماته دعاء کوي.

| ﴿۴۲﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ أَرَادَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يُنَحِّيَ مُخَاطَ أُسَامَةَ |
|---|
| او ام المؤمنین بي بي عائشه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا بیان کوي چې یوه ورځ رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د اسامه په ماشوم توب |
| قَالَتْ عَائِشَةُ دَعْنِيْ حَتّٰى أَنَا الَّذِيْ أَفْعَلُ |
| کې د هغه پوزه صاف کول او نو ما عرض وکړو یا رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تا سو دا کار پریږدئ دا به زه وکړم نو |
| قَالَ يَا عَائِشَةُ أَحِبِّيْهِ فَإِنِّيْ أُحِبُّهُ . رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ |
| حضور صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمائیل ای عائشه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا! ته اسامه سره محبت سا ته ځکه چې زه دي عزیز او محبوب لرم. [ترمذي] |

(مخاط) ګړنګو [خټو] ته مخاط ویل کیږي.

| ﴿۴۳﴾ وَعَنْ أُسَامَةَ قَالَ كُنْتُ جَالِسًا إِذْ جَآءَ عَلِيٌّ وَالْعَبَّاسُ |
|---|
| او حضرت اسامه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ بیان کوي چې زه ناست وم چې حضرت علي او حضرت عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا راغلل د |
| يَسْتَأْذِنَانِ فَقَالَا لِأُسَامَةَ |
| حضور صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خدمت کې د حاضرۍ د اجازت طلبګار وو هغو دواړو اسامه ته وویل چې هغه ورځو کې |
| اسْتَأْذِنْ لَنَا عَلٰى رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللهِ عَلِيٌّ |
| د لږ عمر وو چې ته زمونږ د پاره د حاضرۍ اجازت طلب کړه ما عرض وکړو یا رسول الله! حضرت علي |

وَالْعَبَّاسُ يَسْتَأْذِنَانِ فَقَالَ

او حضرت عباس د حاضری د اجازت طلبګار دي حضور ﷺ زمانه پوښتنه وکړه تاته معلومه ده

أَتَدْرِي مَا جَاءَ بِهِمَا قُلْتُ لَا قَالَ

چې هغه دواړه کوم مقصد دپاره راغلي دي؟ ما عرض وکړو ماته معلومه نه ده حضور ﷺ وفرمائیل

لٰكِنِّي أَدْرِي ائْذَنْ لَهُمَا فَدَخَلَا فَقَالَا يَا رَسُولَ اللهِ

لیکن زه پوهیږم ورشه هغوئ دننه راوله دواړه حضرات دننه راغلل او هغوئ وویل یارسول الله!

جِئْنَاكَ نَسْأَلُكَ أَيُّ أَهْلِكَ أَحَبُّ

مونږ ستاسو په خدمت کې دې سوال راوړلو سره راغلي یو چې ستاسو اهل بیتو کې کوم سړی ستاسو په

إِلَيْكَ قَالَ فَاطِمَةُ بِنْتُ مُحَمَّدٍ

نزد زیات محبوب دی حضور ﷺ وفرمائیل څما لور فاطمه بنت محمد ﷺ ماته زیاته

قَالَا مَا جِئْنَاكَ نَسْأَلُكَ

عزیزه او محبوبه ده هغه دواړو حضراتو عرض وکړو څمونږ د سوال تعلق ستاسو کوروالاوو یعني

عَنْ أَهْلِكَ قَالَ أَحَبُّ أَهْلِي

ستاسو اولاد او ازواجو سره نه دی حضور ﷺ وفرمائیل څما کوروالاوو نه هغه سړی څما په نزد

إِلَيَّ مَنْ قَدْ أَنْعَمَ اللهُ عَلَيْهِ

زیات عزیز او محبوب دی چې الله ورباندې خپل انعام او فضل کړی دی په ایمان سره او ماهم

وَأَنْعَمْتُ عَلَيْهِ أُسَامَةُ بْنُ زَيْدٍ

په هغه انعام او احسان کړی دی په آزادولو سره او هغه اسامه بن زید دی حضرت علي رضي الله عنه او

قَالَا ثُمَّ مَنْ؟ قَالَ

حضرت عباس پوښتنه وکړه اسامه نه روسته څوک زیات محبوب او عزیز دی حضور ﷺ وفرمائیل

عَلِيُّ ابْنُ أَبِي طَالِبٍ فَقَالَ الْعَبَّاسُ يَا رَسُولَ اللهِ جَعَلْتَ عَمَّكَ

بیا علي رضي الله عنه بن ابي طالب په دې اورید و سره حضرت عباس وویل یارسول الله! تاسو خپل تره یعني

| آخِرَهُمُ | قَالَ | إِنَّ | عَلِيًّا | سَبَقَكَ | بِالْهِجْرَةِ. |
|---|---|---|---|---|---|
| زه خپل کورو الو کي په آخر کي وا چولم حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ورته وفرمائیل علي په هجرت کي په تا سبقت | | | | | |
| رَوَاهُ | التِّرْمِذِيُّ | وَذُكِرَ | أَنَّ | عَمَّ | الرَّجُلِ صِنْوُ أَبِيهِ |
| کړی دی. [ترمذي] او روایت: انّ عمّ الرّجل صنو ابیه: د حضرت عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ منقبت کي مخکي په | | | | | |
| فِيْ | كِتَابِ | الزَّكَاةِ. | | | |
| کتاب الزکوة کي نقل شوی دی. | | | | | |

**توضیح** : **(ماجئناك نسألك)** یعنې موږ ستا څخه ستا د اولاد د محبوبیت په باره کې سوال نه کوو بلکه ستا د نورو اقاربو او رشته دارانو په باره کې معلومات کوو چې په هغو کې تا ته تر ټولو زیات محبوب څوک دي ؟ حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل اسامه او بیا علی ، په دې باندې حضرت عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل چې تا خپل تره وروسته کړلو ، حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل چې علی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ستا نه مخکې هجرت کړی دی په دغه وجه یې سبقت کړی دی ، همدې سبقت ته حضرت علی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ داسې اشاره کړې ده :

سبقتكم الى الاسلام طرا — زمانا ما بلغت اوان حلمی

# الفصل الثالث

## حضرت حسن د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره ډېر مشابه وو

| ﴿۴۴﴾ عَنْ | عُقْبَةَ | بْنِ | الْحَارِثِ | قَالَ | صَلَّى | أَبُوْبَكْرٍ | الْعَصْرَ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| حضرت عقبه بن حارث بیان کوي چې حضرت ابوبکر صدیق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د مازیگر مونځ کولو سره بهر راووتلو | | | | | | | |
| ثُمَّ | خَرَجَ | يَمْشِيْ | وَمَعَهُ | عَلِيٌّ | فَرَأَى | | |
| او چیرته تلو د پاره روان شو هغه وقت د هغوئ سره حضرت علي هم وو په لار کي حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ | | | | | | | |
| الْحَسَنَ | يَلْعَبُ | مَعَ | الصِّبْيَانِ | فَحَمَلَهُ | عَلَى | عَاتِقِهِ | |
| چې حسن اولیدلو چې د ورو سره یې لوبي کولې نو او چتولو سره یې خپله اوږه باندې کینولو او د | | | | | | | |
| وَقَالَ | بِأَبِيْ | شَبِيْهٌ | بِالنَّبِيِّ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ |
| خوش طبعي له مخه یې وویل څما پلار دي په تا قربان شي دا حسن د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره ډېر مشابه | | | | | | | |

| لَيْسَ شَبِيهًا بِعَلِيٍّ وَعَلِيٌّ يَضْحَكُ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ |
|---|
| دی علي سره نه دی په دي اوریدو سره حضرت علي د اظهار خوشۍ په طور وخندل. [بخاري] |

**توضیح**: لیس شبیها بعلي: یعني حضرت حسن رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د خپل نیکه محمد صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره مشابه دی، د حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره مشابه نه دی، ددینه معلومه شوه چې د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ او حضرت علی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په مینځ کې مشابهت جسماني نه وو لهذا په دې حدیث سره د شیعه شنیعه په فرقه غرابیه باندې رد راغی چې هغوی وایې چې حضور اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ او حضرت علی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په خپل مینځ داسې سره مشابه وو لکه څنګه چې یو کارغه د بل کارغه سره مشابه وي، په دغه وجه جبرئیل عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ فرق نشو کولی او وحی به یې د علی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په ځای محمد صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته راوړله او نبوت دې طرفته لاړو، بعضې بدبخته شیعه دا هم وایې چې حضور اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د خپلې لور فاطمې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا نکاح د حضرت علی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره وکړه او د دې په بدله کې یې د هغه څخه نبوت واخیستلو، **فلعنة الله علی هؤلاء الکفرة الفجرة لعنًا کبیرًا و دمرهم تدمیرا**.

## دقاتل حسین حضرت حسین رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او یزید حیثیت د ابن زیاد بدبختي

| ﴿٢٥﴾ وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ أُتِيَ عُبَيْدُ اللهِ بْنُ زِيَادٍ بِرَأْسِ الْحُسَيْنِ |
|---|
| او حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ بیان کوي کوم وقت چې د حضرت حسین سرمبارک د عبید الله بن زیاد مخې |
| فَجُعِلَ فِيْ طَسْتٍ فَجَعَلَ يَنْكُتُ وَقَالَ فِيْ حُسْنِهِ شَيْئًا |
| ته یولګن کې کیخودل شو نو هغه بدبخت خپلې لښتي سره د هغه سرمبارک وهل شروع کړل بیا هغه |
| قَالَ أَنَسٌ فَقُلْتُ وَاللهِ إِنَّهُ كَانَ |
| د هغوئ د حسن باره کې څه وویل حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي ما وویل قسم په الله دا هغه مقدس انسان دی |
| أَشْبَهَهُمْ بِرَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| چې اهل بیتو کې د ټولو نه زیات د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مشابه وو هغه وقت د حضرت حسین رَضِيَ اللهُ عَنْهُ |
| وَكَانَ مَخْضُوْبًا بِالْوَسْمَةِ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ وَفِيْ رِوَايَةِ التِّرْمِذِيِّ قَالَ |
| سرمبارک وسمې سره رنګ شوی وو [بخاري] او د ترمذي په روایت کې داسې دي حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ |

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| كُنْتُ | عِنْدَ | ابْنِ | زِيَادٍ | فَجِيْءَ | بِرَأْسِ | الْحُسَيْنِ | فَجَعَلَ | يَضْرِبُ | بِقَضِيْبٍ |
| بيان وكړو چې هغه وقت زه ابن زياد سره موجود وم چې د حضرت حسين سرمبارك د هغه مخ ته | | | | | | | | | |
| فِيْ | أَنْفِهِ | وَيَقُوْلُ | مَا | رَأَيْتُ | مِثْلَ | هٰذَا | حُسْنًا | فَقُلْتُ | |
| راوړل شو ابن زياد به هغه په پوزه باندې په لښتې سره وهلو او ويل به يې داسې حسن ما هيڅ كله نه | | | | | | | | | |
| أَمَا | إِنَّهُ | كَانَ | مِنْ | أَشْبَهِهِمْ | بِرَسُوْلِ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| دى ليدلى ما ورته وويل تا ته معلومه ده دا هغه سړى دى چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره د ټولو نه زيات | | | | | | | | | |
| وَقَالَ | هٰذَا | حَدِيْثٌ | صَحِيْحٌ | حَسَنٌ | غَرِيْبٌ. | | | | |
| مشابه وو ترمذي ويلي دي دا حديث صحيح حسن غريب دى. | | | | | | | | | |

**توضيح** : (عبيدالله بن زياد) د يزيد له طرفه عبيدالله بن زياد د بصرې والى وو مګر يزيد د حضرت حسين رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د مقابلې لپاره په خاص طور عبيد الله بن زياد فورا د بصرې څخه لرې كړو او د كوفې والى يې مقرر كړلو تر څو ابن زياد په ذاتي دلچسپۍ سره حسين رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قتل كړي ، دا بدبخته كوفې ته راغلو ، اول هغه مسلم بن عقيل شهيد كړلو او په قصر امارت باندې يې قبضه وكړه او د هغه نه وروسته يې د فوج قيادت په خپل لاس كې واخيسته حضرت حسين رَضِيَ اللهُ عَنْهُ يې د كربلا په ميدان كې شهيد كړلو ، د حضرت حسين رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سر يې د تن څخه جدا كړلو او په كاسه كې كيښودلى شو او په ابن زياد باندې پيش كړى شو ، ددې بدبخته په لاس كې يوه امسا وه هغه يې د حضرت حسين رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په پوزه او سترګه كې وهله او په طور د استهزاء يې ويلو چې څومره ښايسته دى ؟ حسين ډير ښايسته دى؟ ښه دا ښايسته دى؟ په دې باندې حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هغه ته زورنه وركړه . (في حسنه شيء) ددې لفظ همدا مطلب دى چې په طور د استهزاء هغه د حسين په حسن كې بد رد ويل ، ويل كيږي چې څه وخت بعد مختار بن عبيد ابن زياد لره قتل كړلو او د هغه سر يې راوړو د همدې مسجد په برنډه كې كيښوده ، ناڅاپه شور شو چې راغى راغى! چې كله وكتل شو نو يو مار راغى او د ابن زياد په پوزه كې ننوته او بيا ووتو ، دوه درې ځله داسې وشول او خلكو تنبتيدل . په حضرت حسين رَضِيَ اللهُ عَنْهُ باندې واركو ونكي شخص نوم سنان بن انس نخعى دى ، دغه بدبخت چې كله د حسين رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سر د ابن زياد په مخ كې كيښوده نو دا شعر يې وويلو :

اوقر ركابي فضة و ذهبا

انى قتلت الملک المحجبا

قتلت خير الناس اما و ابا

ترجمه : زما سورلۍ د سرو او سپينو څخه ډکه کړئ، ما ډير محفوظ بادشاه قتل کړلو چې په حسب او نسب کې د ټولو نه بهتر وو .

وايې چې کله د حضرت حسين رضي الله عنه سر د يزيد په مخ کې کيښودلی شو نو يزيد دا شعر وويلو :

نفلق هاما من رجال اعزة　　علينا وكانوا اعق و اظلما

ترجمه : مونږ د باعزتو خلکو کوپړۍ جدا کوو ، ځکه چې هغوی زموږ په حق کې ډير نافرمانه او لوی ظالمان وو .

## د يزيد په باره کې د صاحب روح المعاني علامه آلوسی رحمه الله تحقيق

د سورة محمد د آيت نمبر ۲۳ په تفسير کې علامه روح المعانی د يزيد او قاتلانو د حسين رضي الله عنه په باره کې ډير څه ليکلي دي ، لکه هغه ليکلي دي چې د امام احمد بن حنبل رحمه الله ځوی عبد الله د خپل پلار نه پوښتنه وکړه چې په يزيد باندې لعنت ويل څنګه دي؟ امام احمد رحمه الله په جواب کې وفرمايل چې په کوم شخص باندې چې الله تعالی په خپل کتاب کې لعنت ويلی په هغه دي ولې لعنت ونه ويلی شي ، ځوی يې وويل چې پلاره ما خو ټول قرآن ويلی په دې کې خو چيرته هم په يزيد باندې لعنت نشته ، امام احمد رحمه الله وويل چې د الله تعالی فرمان دی : فَهَلْ عَسَيْتُمْ إِنْ تَوَلَّيْتُمْ أَنْ تُفْسِدُوا فِي الْأَرْضِ وَتُقَطِّعُوا أَرْحَامَكُمْ ) أُولَئِكَ الَّذِينَ لَعَنَهُمُ اللَّهُ فَأَصَمَّهُمْ وَأَعْمَى أَبْصَارَهُمْ . په دې آيت کې الله تعالی په فساد کونکي او صله رحمي کټ کونکي باندې لعنت فرمايلی دی او يزيد چې کوم څه د حضرت حسين رضي الله عنه سره وکړل د هغه نه غټ فساد څه کيدلی شي او ددينه زيات صله رحمی کټ کول چيرته راتللی شي . (روح المعانی جلد ۹ صفحه ۷۲)

علامه روح المعانی بيا ليکي چې ددينه معلومه شوه چې په يو شخص باندې معين کولو او نامزد کولو سره لعنت ويل جائز دي مګر په دې کې يو څه اختلاف شته ، نو د جمهورو په نزد په کوم معين شخص باندې لعنت ويل جائز نه دي که هغه فاسق وي يا غير فاسق او که هغه ژوندی وي يا وفات شوی وي چې کله د هغه کفر يقيني نه وي . هو ! د چا چې مرګ يقيني طور په کفر باندې راغلی وي په هغه باندې لعنت ويل جائز دي لکه ابو جهل وغيره ، مګر شيخ الاسلام علامه بلقينی رحمه الله ديته تللی دی چې په يو يقينی فاسق فاجر شخص باندې هم لعنت ويل جائز دي ، په ډيرو احاديثو کې ددې شواهد موجود دي .

علامه روح المعانی ليکي چې مونږ به د علامه بلقينی د تحقيق په رڼا کې په يزيد باندې لعنت ويلو کې هيڅ تردد ونکړو ځکه چې د يزيد صفات خبيثه او د کبائرو ارتکاب د حد نه زيات دي ،

هغه چې په خپل دور اقتدار کې د اهل مکه او اهل مدینه سره کوم څه وکړل ، د حسین رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په قتل باندې د کومې خوشحالی اظهار وکړو د هغه د کور والاؤ یې چې کوم توهین وکړو دا د هغه د لعنت لپاره کافي دي . علامه بیا لیکي چې په یزید باندې لعنت ویلو او د هغه په کفر باندې د علماؤ د یوه جماعت تصریحات موجود دي ، د هغوی نه حافظ ابن الجوزی رَحِمَهُ اللَّهُ دی او د هغه نه مخکې قاضی ابویعلی رَحِمَهُ اللَّهُ دی .

علامه تفتازانی لیکلي دي چې موږ د یزید په لعنت کې بلکه د هغه په ایمان کې هیڅ توقف نه کوو ، په هغه او د هغه په اعوانو دې د الله تعالی لعنت وي، علامه الوسی بیا لیکي چې د یزید په لعنت باندې د علامه سیوطی تصریح هم موجوده ده ، او د ابن وردی په تاریخ کې او په کتاب الوافی بالوفیات کې لیکلي دي چې کله د عراق څخه د حضرت حسین رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ پس ماندګان ښځې او ماشومان قید کړی شول او یزید ته ورسول شول نو یزید د هغو د کتلو لپاره تر مقام جیروان پورې بهر راغی ، د حضرت حسین او علی بن حسین ماشومان او ښځې ګرفتار وو ، د حسین او د هغه د ملګرو سرونه په نیزو باندې پورته کړی شوي وو چې یوه کارغه د کاغ کاغ آوازونه شروع کړل ، په دې باندې یزید دا شعر وویلو :

لما بدت تلک الحمول و اشرفت تلک الروس علی شفا جیرون

ترجمه : چې کله دغه سورلې نږدې ښکاره شوې او د مقام جیرون څنډو ته په نیزو پورته کړی شوي سرونه راغلل .

نعب الغراب فقلت قل او لاتقل فقد اقتضیت من الرسول دیونی

ترجمه : نو یوه کارغه د نحوست آواز وکړو ، ما کارغه ته وویل ته آواز کوه یا مه کوه ما د رسول څخه د خپلو مقتولینو بدله واخیستله .

علامه روح المعانی رَحِمَهُ اللَّهُ فرمایي چې د بدر په جنګ کې د یزید نیکه عتبه غیره قتل کړی شوي وو ، یزید په دغو اشعارو کې د همدې بدلې ذکر کړی دی ، علامه لیکي کچیرې دغه اشعار صحیح ثابت شي نو په دې سره به یزید کافر شي ، همدارنګه څو نور اشعار هم یزید ویلي دي په هغو سره هم د یزید کافر کیدل ثابتیږي .

په هر حال د جمهورو علماؤ د اهلسنت موقف دا دی چې د یزید په کفر باندې مړ کیدل یقیني نه دي لهذا په هغه باندې د مرګ نه وروسته لعنت ویل جائز نه دي ، لکه علامه روح المعانی په خپل تحقیق کې بیا فرمایي چې بل طرفته امام غزالی رَحِمَهُ اللَّهُ دیته تګ کړی چې په یزید باندې لعنت ویل حرام دي بلکه د مسلمانانو دعاګانې هغه ته شاملي دي ځکه هغه مسلمان وفات شوی دی .

علامه سفارینی رَحِمَهُ اللَّهُ د امام غزالی قول رد کړی دی ، علامه روح المعانی د علامه سفارینی قول

غوره کړی دی چې په هغه کې ده د امام غزالی قول رد کړی دی ، شيخ الاسلام علامه ابن تيميه رَحِمَهُ اللّٰهُ ليکلي دي چې د امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ اللّٰهُ په نزد په يزيد باندې لعنت ويل مکروه دي، هلته ابوبکر بن العربی المالکی د يزيد ډير حمايت کړی دی او ليکلي يې دي چې **( ان الحسين قتل بسيف جده )** يعنې د حضور ﷺ د فرمان مطابق د بغاوت لاندې حسين رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قتل کړی شو ، د دغه کلام په وجه علامه آلوسی رَحِمَهُ اللّٰهُ په يزيد باندې د تنقيد نه زيات په سخت انداز کې په ابن عربی باندې تنقيد کړی دی ( ابن عربی د دغه تنقيد مستحق هم دی ) .

علامه آلوسی د دغه ټول اختلاف خلاصه دا رنګه ويستلې ده چې کوم څه د يزيد په باره کې ويل شوي دي د هغه خلاصه دا ده چې بعضې حضرات د يزيد په باره کې وايې چې هغه مسلمان دی په هغه باندې لعنت ويل صحيح نه دي خو بيا هم هغه د اهل بيتو په باره کې د معصيت مرتکب شوی دی هغه د دې مجرم دی. د علماؤ دويمه طبقه وايې چې يزيد مسلمان دی مګر سره د کراهت نه په هغه باندې لعنت ويل جائز دي يا بغير د کراهت نه هم جائز دی . دريمه طبقه وايې چې يزيد کافر او ملعون دی په هغه باندې لعنت ويل جائز دي . څلورمه طبقه وايې چې يزيد پاک او صفا دی هغه چې څه کړي دي هغه ګناه نه وه .

علامه آلوسی بغدادی رَحِمَهُ اللّٰهُ ليکي چې زه خو دا وايم چې زما په غالب ګمان سره يزيد خبيث د رسول کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د رسالت تصديق کړی نه وو او هغه چې د کوم مکروه افعالو ارتکاب کړی وو لکه د بيت الله او د هغه د اوسيدونکو سره يې چې څه وکړل او د مدينې او اهل مدينو سره يې چې څه وکړل او د نبی پاک صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د اهل بيتو سره يې چې څه وکړل او ذاتی طور باندې چې هغه د کومو قبائحو مرتکب کيده دا د هغه په عدم تصديق باندې د دېنه لوی دليل دی چې څوک د قرآن پاک اوراق په ګندګۍ او غلاظت کې وغورځوي او کافر شي ، ما ته هيڅ شک هم نشته بلکه يقين دی چې د يزيد د دغه کافرانه افعال د هغه زمانې په بزرګانو او لويو مسلمانانو باندې پټ نه وو ليکن هغوی په دې وجه صبر وکړو چې هغوی مجبور او مغلوب وه او هغوی د صبر نه علاوه هيڅ کولی نشو تر څو د الله تعالی مقرر کړه حکم خپل انجام ته ورسيږي .

او که دا تسليم کړی شي چې يزيد خبيث مسلمان وو او کافر نه وو نو هغه داسې مسلمان وو چې خپل په ځان باندې يې دومره ګناهونه انبار کړي وو چې د هغو بيانول د بيان په احاطه کې نه راځي . زه خو په ښکاره په يزيد د لعنت قائل يم او په هغه باندې په خصوصی تعيين سره لعنت جائز ګڼم او ظاهره همدا ده چې يزيد د دغه کبائرو د ارتکاب نه بعد کومه توبه هم کړې نه ده او د هغه د توبې احتمال د هغه د ايمان د احتمال څخه زيات کمزوری دی ، په دې لعنت کې د يزيد سره ابن زياد او

ابن سعد او د هغه جماعت برابر شريک دي ، **فلعنة الله عزوجل عليهم اجمعين و على انصارهم و اعوانهم و شيعتهم و من مال اليهم الى يوم الدين.** (روح المعاني جلد ۹ صفحه ۷۲)
علامه روح المعاني نور ليکي چې که کوم شخص په يزيد باندې خصوصيت سره لعنت ويلو نه ويريږي نو هغه دي اجمالي طور باندې داسې لعنت وليږي چې : لعن الله من رضى بقتل الحسين و من آذى عترة النبي صلى الله عليه وسلم ، دغه قسم عمومي لعنت ويلو کې د هيچا اختلاف هم نشته او يزيد به د دغه عموم اول مصداق جوړ شي .
د علامه روح المعاني تحقيق د ناظرينو مخ ته دی په دې باندې د کومې تبصرې ضرورت نشته ، البته دوه خبرو ته اشاره کومه : يوه دا چې د مرګ نه وروسته په چا باندې لعنت ويل يا نه ويل د هغه متعلقه شخص په خاتمې باندې مبني ده، کچيرې هغه شخص په کفر باندې مړ شوی وي نو په هغه باندې لعنت ويل جائز دي او که په ايمان باندې مړ شوی وي نو لعنتورباندې جائز نه دی ، جمهور امت په دې باندې قائم دی چې د يزيد خاتمه په کفر باندې يقيني نه ده لهذا لعنت ورباندې ويل صحيح نه دي . دويمه دا خبره په ذهن کې ساتل پکار دي چې د کوم شخص په کافر کيدلو او نه کيدلو کې د علماؤ اختلاف وي نو د هغه شخص فاسق او فاجر کيدل يقيني کيږي د يزيد معامله همداسې ده ، ددې نظير دا پيش کولی شي چې د کوم شخص په نبي کيدلو يا نه کيدلو کې د علماؤ اختلاف راشي نو هغه شخص په کامل طور باندې ولي ګرځي لکه څنګه چې د حضرت لقمان معامله ده لهذا د يزيد فاجر او فاسق کيدل يقيني دي او د حضرت لقمان ولي کيدل يقيني دي .
**سوال** : دلته يوه دا شبه کيږي چې يزيد د حضرت معاويه رضی الله عنه ځوی دی ، حضرت معاويه رضی الله عنه هغه ولي عهد جوړ کړی وو لهذا يزيد ته بد ويل جائز نه دي ؟
**جواب** : دا شبه غلطه ده ځکه چې ډير داسې انبياء تير شوي دي چې د هغوی ځامن کافر شوي وو په دې سره د هغه په پلار باندې کوم طعن راتللی نشي لکه څنګه چې د حضرت نوح عليه السلام ځوی کنعان کافر وو او کافر مړ شوی دی ، يزيد به مخکې ښه وو د بادشاه جوړيدو نه وروسته به خراب شوی وي ، په دې کې د حضرت معاويه رضی الله عنه څه قصور دی ؟ دويمه شبه دا پيش کولی شي چې د بخاری شريف په يو حديث کې په غزوه قسطنطينيه کې شرکت کونکو لپاره د مغفرت بشارت ورکړی شوی دی حال دا چې په هغه غزا کې يزيد شريک وو لهذا د هغه لوی مقام دی .
ددې جواب دا چې ددې حديث بشارت په دغه غزا کې د شريک کيدونکو مجاهدينو په مستقبل کې د صالح او متقي پاتې کيدو پورې مشروط دی او که نه نو فرض کړه چې کوم شخص په دغه غزا کې شريک شو او بيا وروسته مرتد شو نو آيا هغه به او س په مغفورلهم کې شميرل کيږي ؟

دي سوال يو جواب دا هم دی چې کله حضرت معاويه رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ د قسطنطينيه لښکر روان کړلو نو يزيد ته يې حکم وکړلو چې ته هم لاړ شه ! هغه بهانه وکړه چې زه مريض يم او ولاړ نشو ، وروسته چې کله لښکر والاؤ ته تکليف ورسيدو نو يزيد په خوشحالی کې دا اشعار وويلو :

لست ابالي بما لاقت جموعهم بفرقدونة من حمى و حوم

ترجمه :ماته هيڅ پرواه نشته چې د مجاهدينو دغه جماعت باندې د فرقدونه په مقام کې تبه راغله او په جسم کې دانې راووتلې .

اذا جلست على الانماء متكأ بدير مران عند ام كلثوم

ترجمه : چې کله زه په دير مران مقام کې د ام کلثوم سره په بالښتونو باندې تکيه کونکی ناست يم .

يزيد دغه اشعار چې کله حضرت معاويه رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ ته ورسيدل نو هغه په زوره يزيد په دغه غزا کې د شرکت لپاره روان کړلو ، ګويا يزيد غزوه قسطنطينيه ته د تللو قائل هم نه وو نو بشارت به څنګه ورته حاصل شي؟ په هر حال په کربلا کې چې د حضرت حسين رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ څه وشو هغه د اسلام په سپين څادر باندې يو تور داغ دی چې ددينه يزيد بری الذمه کيدلی نشي ، نن نه يزيد شته او نه د هغه حکومت شته ! او د حسين رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ د قتل وينه د هغه په غاړه باندې ده ،د رسول ﷺ لمسي که حکومت هم غوښتلو نو د يزيد څه حق وو چې هغه په حکومت باندې قائم پاتې کيږي ! دا د يزيد لويه غلطی وه ، علامه اقبال ويلي دي :

قتل حسين اصل ميں مرگ يزيد ہے اسلام زندہ ہوتا ہے ہر کربلا کے بعد

## د شهادت حسين رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ سره متعلق يو خوب او يو پيشنګوئي

﴿۴۲﴾ وَعَنْ أُمِّ الْفَضْلِ بِنْتِ الْحَارِثِ أَنَّهَا دَخَلَتْ عَلَى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

او ام فضل بنت حارث چې د حضرت عباس زوجه او د حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د تره ښځه ده روايت کوي چې

فَقَالَتْ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ إِنِّيْ رَأَيْتُ حُلْمًا مُنْكَرًا اَللَّيْلَةَ قَالَ

هغه د حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خدمت کي يوه ورځ حاضريدو سره ووېل يارسول الله ! نن شپه ما يو ويره ونکی

وَمَا هُوَ قَالَتْ إِنَّهُ شَدِيْدٌ قَالَ وَمَا هُوَ قَالَتْ رَأَيْتُ كَأَنَّ

خوب ليدلی دی رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ پوښتنه وکړه هغه څه دی ام فضل عرض وکړو سخت ويره ونکی

قِطْعَةً مِّنْ جَسَدِكَ قُطِعَتْ وَ وُضِعَتْ فِيْ حِجْرِيْ

دی حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ورته وفرمائيل ماته خو يي وا وروه آخر هغه څه دی ام فضل ووېل ما وليدل چې

فَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَأَيْتِ

ګویا ستاسو د جسم مبارک نه یوه ټکړه پرې شوې ده او څما په غیږ کې ایښودل شوې ده په دې

خَيْرًا تَلِدُ فَاطِمَةُ إِنْ شَآءَ اللهُ غُلَامًا يَكُوْنُ فِيْ

او ریدو سره رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمائیل تا ډیر ښه او مبارک خوب لیدلی دی د دې تعبیر دا دی چې

حِجْرِكِ فَوَلَدَتْ فَاطِمَةُ الْحُسَيْنَ وَكَانَ فِيْ حِجْرِيْ

انشاء الله د فاطمې به یو ځوی پیدا شي او هغه هلک به ستا په غیږ کې درکولی شي نو د فاطمې ځوی

كَمَا قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَدَخَلْتُ

حسین پیدا شو او څرنګه چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمائیلي وو هغه هلک څما په غیږ کې راکړل شو بیا

يَوْمًا عَلٰى رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَوَضَعْتُهُ

یوه ورځ زه رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته ورغلم او حسین د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په غیږ کې ورکولو سره ډېر د هم طرف ته

فِيْ حِجْرِهٖ ثُمَّ كَانَتْ مِنِّيْ اِلْتِفَاتَةٌ فَإِذَا عَيْنَا رَسُوْلِ

متوجه شوم او بیا راتاویدو سره چې ما حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ طرف ته نظر وکړو نو څه ګورم چې د

اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تُهْرِيْقَانِ الدُّمُوْعَ قَالَتْ فَقُلْتُ

رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د سترګو مبارکو نه اوښکې جاري دي ام فضل وايي ماترې پوښتنه وکړه

يَا نَبِيَّ اللهِ بِأَبِيْ أَنْتَ وَأُمِّيْ مَالَكَ قَالَ أَتَانِيْ

ای د الله نبي! څما مور او پلار دې په تاسو قربان يي تاسو ته څه وشوه چې ژاړئ حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمائیل

جِبْرَئِيْلُ عَلَيْهِ السَّلَامُ فَأَخْبَرَنِيْ أَنَّ أُمَّتِيْ سَتَقْتُلُ

اوس ما ته جبرائیل عَلَيْهِ السَّلَامُ راغلی وو هغه ما ته وښودل چې څما امت عنقریب قتل کړي ما ډیر په حیرت سره

ابْنِيْ هٰذَا فَقُلْتُ هٰذَا قَالَ نَعَمْ وَأَتَانِيْ

پوښتنه وکړه آیا دا ځوی؟ حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمائیل هو دا ځوی بلکه جبرائیل ما ته د هغه خاورې

بِتُرْبَةٍ مِنْ تُرْبَتِهٖ حَمْرَآءَ.

راخستو سره راغلی وو او هغه خاوره سره وه.

**توضیح**: حلما: خوب ته حلم ویل کیږي خصوصا چې کله خوب ګډوډ وي.

منکرا: ویرونکی، هیبتناک خوب مې لیدلی دی.

انه شدید: یعنې دومره ویرونکی او سخت دی چې زه یې بیانولی نشم.

حجري: سینې ته حجر ویل کیږي، د پرورش په معنی سره هم راځي دلته سینه مراد ده، په راتلونکي لفظ کې د واړه معنا ګانې اخیستل کیدلی شي.

التفاتة: یعنې زما نظر بل طرفته لاړلو.

تهریقان: یعنې دواړو سترګو یې اوښکې تویولې.

(ستقتل ابنی) د حضور ﷺ دغه پیشګوئی حرف بحرف پوره شوه او د یزید په حکم عبیدالله بن زیاد د بصرې نه فورا راغی او د کوفی والی جوړ شو او هغه د ذاتی دلچسپی او بغض او عداوت په بناء باندې حضرت حسین رضی الله عنه شهید کړلو، د هغه ۸۰ ملګري په مقام کربلا کې د هغه سره شهیدان کړی شو، د اسلام په سپین څادر باندې د حسین رضی الله عنه قتل یو بدرنګه تور داغ دی چې د یزید په غاړه باندې پروت دی.

قتل حسین اصل میں مرگ یزید ہے اسلام زندہ ہوتا ہے ہر کربلا کے بعد

د شهادت حسین نه بعد یو غیبی هاتف دا اشعار واورول:

مَاذَا تَقُوْلُوْنَ اِنْ قَالَ الرَّسُوْلُ لَكُمْ مَاذَا فَعَلْتُمْ وَاَنْتُمْ آخِرُ الْاُمَمِ

ترجمه: که ستاسو نه رسول الله ﷺ دا سوال وکړي چې تاسو د حسین سره دا څه وکړل حالانکه تاسې په بهترین امت کې وئ.

بِعِتْرَتِيْ وَاَوْلَادِيْ بَعْدَ مُفْتَقَدِيْ مِنْهُمْ اُسَارٰى وَمِنْهُمْ ضَرَجُوْا بِدَمِ

ترجمه: زما د وفات نه بعد تاسو زما د اهل بیت او زما د اولاد سره څه وکړل؟ چې د هغو نه څه قیدیان دي او څه په وینو کې لت پت پراته دي.

## شهادت حسین رضی الله عنه او د ابن عباس رضی الله عنه خوب

﴿۴۷﴾ وَعَنْهُ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ اَنَّهُ قَالَ رَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

او حضرت ابن عباس نه روایت دی د هغوئ بیان دی یوه ورځ په غرمه کې ما رسول الله صلی الله علیه وسلم داسې

فِيْمَا يَرَى النَّائِمُ ذَاتَ يَوْمٍ بِنِصْفِ

اولیدلو لکه څوک اوده چې څوک وینې یعنې په خوب کې مې اولیدلو چې د حضور صلی الله علیه وسلم وینښته

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| النَّهَارِ | أَشْعَثَ | أَغْبَرَ | بِيَدِهِ | قَارُورَةٌ |
| مبارک پریشانه او گرد آلود دي او د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په لاس مبارک کي یو بوتل دی چې د وینو نه ډک دی | | | | |
| فِيهَا | دَمٌ | فَقُلْتُ | بِأَبِي | أَنْتَ |
| ماعرض وکړو ځما مور پلار دي په تا سو قربان وي دا څه دي یعني څه حادثه پیښه شوي ده چې تاسو | | | | |
| وَأُمِّي | مَا | هٰذَا | قَالَ | هٰذَا |
| دومره پریشانه حاله او گرد آلود یې او یو بوتل د ویني نه ډک دی حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمائیل دا د | | | | |
| دَمُ | الْحُسَيْنِ | وَأَصْحَابِهِ | | |
| حسین او د هغه د ملگرو وینه ده چې زه یې نن قتل گاه حسین نه د سهار نه ترا و سه پوري په یوه بوتل | | | | |
| وَلَمْ | أَزَلْ | أَلْتَقِطُهُ | مُنْذُ | |
| کي جمع کوم حضرت ابن عباس وایي چې د دي خوب نه روسته زما سترگي راوغړیدی او بیا ما دا | | | | |
| الْيَوْمِ | فَأُحْصِيَ | ذٰلِكَ | | |
| وخت یاد ساته کوم وقت چې ما دا خوب لیدلی وو هرکله چې د قتل حسین خبر راغلي نو ماولیدل | | | | |
| الْوَقْتَ | فَأُجِدُ | قُتِلَ | ذٰلِكَ | الْوَقْتُ.. |
| چې د شهادت حسین المیه په هغه ورځ او هغه وقت پیښه شوي وه هرکله چې ما مذکوره خوب | | | | |
| رَوَاهُمَا | الْبَيْهَقِيُّ | فِي | دَلَائِلِ | النُّبُوَّةِ | وَأَحْمَدُ | الْأَخِيرَ |
| لیدلی وو دا دواړه روایتونه بیهقي دلائل النبوت کي او دا دوهم روایت احمد هم نقل کړی دی. | | | | |

**توضیح : فاحصی ذلک الوقت:** دا د حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ کلام دی ،هغه فرمایې چې کوم وخت ما خوب لیدلی وو د هغه تاریخ ما یاد کړلو بیا چې کله د حضرت حسین رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د شهادت خبر راغلو نو معلومه شوه چې په همدغه تاریخ کې هغه شهید کړی شوی وو په کوم وخت کې چې ما خوب لیدلی وو.

**التقطه:** دا د حضور ﷺ کلام دی چې په خوب کې شوی دی.

**فاجد:** د مضارع صیغه یې راوړه ترڅو د دینه یو غریب او عجیب کیفیت مخې ته راشي.

## د الله او رسول صلى الله عليه وسلم او د اهل بيتو سره محبت وساتئ

﴿۴۸﴾ وَ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ أَحِبُّوا اللهَ لِمَا

او حضرت ابن عباس رضي الله عنه وايي چې رسول كريم صلى الله عليه وسلم وفرمائيل تاسو د الله سره محبت ساتئ ځكه

يَغْذُوْكُمْ مِنْ نِعْمَةٍ وَأَحِبُّوْنِيْ لِحُبِّ اللهِ وَأَحِبُّوا

چې هغه تاسو ته د خپلو نعمتونو نه رزق رسوي او ستاسو پرورش كوي او په دې بناء تاسو د رسول الله صلى الله عليه وسلم

أَهْلَ بَيْتِيْ لِحُبِّيْ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

سره محبت لرئ او ځما اهل بيت ځما د محبت په وجه عزيز او محبوب لرئ. [ترمذي]

**توضيح : يغذوكم** : اى يرزقكم هغه تاسو ته رزق دركوي، د انسان سره چې كله بل انسان احسان كوي نو د هغه غلام جوړيږي همدارنګه د الله تعالى احسان منل پكار دي.

**لحب الله**: يعني د الله تعالى سره د محبت په بنياد زما سره محبت وساتئ ځكه زه د هغه رسول يم، او زما سره د محبت په وجه زما د اهل بيتو سره محبت ساتئ ځكه زه ستاسو رسول يم.

## اهل بيتو مثال د نوح كشتئ پشان دى

﴿۴۹﴾ وَ عَنْ أَبِيْ ذَرٍّ أَنَّهُ قَالَ وَهُوَ آخِذٌ بِبَابِ الْكَعْبَةِ سَمِعْتُ

او حضرت ابوذر رضي الله عنه روايت دى چې يوه ورځ هغه د كعبې دروازې نيولو سره دابيان وكړو ما د]

النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ أَلَا إِنَّ مَثَلَ أَهْلِ

رسول الله صلى الله عليه وسلم نه دا واوريدل ياد لرئ ستاسو په حق كې ځما د اهل بيتو هغه اهميت دى كوم چې

بَيْتِيْ فِيْكُمْ مَثَلُ سَفِيْنَةِ نُوْحٍ مَنْ رَكِبَهَا نَجَا

د نوح عليه السلام د كشتئ دى چې څوك د نوح كشتئ كې سورشو هغه نجات خلاصون پيدا كړو

وَ مَنْ تَخَلَّفَ عَنْهَا هَلَكَ. رَوَاهُ أَحْمَدُ.

او كوم سړى چې د هغه په كشتئ كې سور يدو نه پاتې شو هغه هلاک شو.

**توضيح : مثل سفينة نوح**: د اهل بيت تشبيه د نوح عليه السلام د كشتئ سره ځكه وركړى شوه چې د حضرت نوح عليه السلام كشتئ ټول سواره د الله تعالى په حكم سره بچ كړل او د كشتئ مخالفين ټول غرق شول، دلته هم چې كوم خلک چې د اهل بيت سره عقيدت ساتي هغه به بچ كيږي

او څوک چې د عقیدت په دغه کشتۍ کې نه کښیني هغه به غرق شي لیکن دلته د اهل بیت سره د محبت او تعلق ساتلو مطلب دا دی چې د دین اسلام د حکم مطابق تعلق وي ، د خپلو خواهشاتو مطابق تعلق نه وي لکه څنګه چې د شیعو محبت دی چې په حقیقت کې محبت او عقیدت نه دی بلکه یو قسم عداوت دی ، د ټول شریعت انکار یې وکړو او د اهل بیتو محبت یې ددې لپاره ډال وګرځولو . حضور اکرم صلی الله علیه وسلم د اهل بیت تشبیه د نوح علیه السلام د کشتۍ سره ورکړې دی او د صحابو تشبیه یې د ستورو سره ورکړې ده ، په دې کې اشاره ده چې کشتۍ په صحیح سمت باندې هغه وخت تللی شي چې کله د ستورو څخه راهنمائی حاصله شي یعنې د اهل بیتو او صحابو دواړو سره محبت وساتئ .
هلته د تبلیغی جماعت والا هم وایې زموږ جماعت د نوح علیه السلام د کشتۍ پشان دی څوک چې دیته راغی هغه بچ شو او که نه نو هغه غرق شو ، د دوی دا خبره غلطه ده ځکه دوی پخپله د نوح علیه السلام کشتۍ جوړ شوي نه دي ، کوم قرآن او حدیث دویته سفینه نوح ویلي ؟ دا خو صرف د هغوی تمناګانې دي او بیځایه خپل تعریفونه دي حقیقت بل څه دی .
د ملاعلی قاری څو الفاظ ملاحظه کړئ چې هغه ددې حدیث په تشریح کې لیکلي دي ، فرمایې :
**و توضیحه ان من لم یدخل السفینة کالخوارج هلک مع الهالکین في اول وهلة ومن دخلها ولم یهتد بنجوم الصحابة کالروافض ضل ووقع فی ظلمات لیس بخارج منها .** یعنې ددې حدیث وضاحت دا دی چې کوم خلک په دې کشتۍ کې سواره نشول هغوی هلاک شول ، مګر کوم خلک چې د اهل بیتو په کشتۍ کې سواره شول مګر د صحابو د ستورو نه یې راهنمائی حاصله نکړه نو هم په داسې تیارو کې ډوب شول چې وتل یې ممکن نه دي .



# باب مناقب ازواج النبي صلى الله عليه وسلم

## د نبي کريم صلى الله عليه وسلم د ازواج مطهراتو د مناقبو بيان

قال الله تعالى: ﴿اَلنَّبِيُّ اَوْلٰى بِالْمُؤْمِنِيْنَ مِنْ اَنْفُسِهِمْ وَاَزْوَاجُهٗ اُمَّهٰتُهُمْ﴾ (الاحزاب:٦)

ازواج مطهرات د اهل سکنی قسم اهل بیتو کې داخلې دي، صاحب د مشکوة د مناقب اهل بیتو نه بعد په مستقل باب کې د ازواج مطهراتو ذکر کړی دی، ددې مطلب دا نه دی چه ازواج مطهرات د اهل بیت څخه خارجې دي، د اهل بیت اول مصداق خو ازواج مطهرات دي لیکن د ازواجو د مناقبو سلسله ډیره اوږده وه ځانته احادیث یې وو په دغه وجه صاحب د مشکوة په اهتمام سره د ځانته عنوان لاندې هغه ذکر کړل.

حضور صلى الله عليه وسلم ډیرې ښځې کړې وې او خپل امت ته یې د څلورو ښځو اجازت ورکړی دی لهذا په دې امت کې د ښځو د حقوقو وضاحت او د هغه اهتمام د ټولو امتونو څخه زیات دی. حضرت عیسی علیه السلام واده کړی نه وو لهذا د هغه په مذهب کې د ښځو د حقوقو هغه تفصیل نه ملاویږي کوم تفصیل چه د حضور اکرم صلى الله عليه وسلم په امت کې ملاویږي.

### د ازواج مطهرات تعداد او نومونه:

د حضور صلى الله عليه وسلم د ټولو بیبیانو تعداد یوولس وو او د هغه د وفات په وخت ۹ نهه بیبیانې موجودې وې، د هغه ټولې ښځې یوولس وې چه د هغو نومونه دا دي:

﴿۱﴾ حضرت خدیجه رضي الله عنها، د هغې سره د حضور صلى الله عليه وسلم نکاح په مکه مکرمه کې شوې وه، د هجرت نبوی څخه درې کاله مخکې په مکه کې د هغې انتقال وشو.

﴿۲﴾ حضرت سوده رضي الله عنها، د هغې سره په مکه کې د حضور صلى الله عليه وسلم نکاح وشوه، په ۵۴ سنه هـ کې د هغې انتقال وشو.

﴿۳﴾ حضرت عائشه رضي الله عنها، د هجرت نه یو نیم کال مخکې ورسره د حضور صلى الله عليه وسلم په مکه مکرمه کې نکاح وشوه او په سنه ۲هـ کې ورسره یوځای شو، په ۵۷هـ کې په مدینه منوره کې د هغې انتقال وشو، حضرت عائشة رضي الله عنها د سیدنا ابوبکر رض لور وه.

﴿۴﴾ حضرت حفصه رضي الله عنها، د هغې سره د حضور صلى الله عليه وسلم نکاح په سنه ۳هـ کې په مدینه منوره کې وشوه او په سنه ۴۵هـ کې د هغې انتقال وشو.

﴿۵﴾ حضرت زینب بنت خزیمه رضي الله عنها، د هغې سره د حضور صلى الله عليه وسلم نکاح په سنه ۳هـ کې وشوه، څو میاشتې بعد د هغې انتقال وشو.

﴿۶﴾ حضرت ام سلمه رضی الله عنها، ددې سره د حضور صلی الله علیه وسلم نکاح په سنه ۴ھ کې وشوه او د هغې انتقال په سنه ۵۹ھ کې وشو او د یو قول مطابق په سنه ۶۲ھ کې وشو.

﴿۷﴾ حضرت زینب بنت جحش رضی الله عنها، د هغې سره د حضور صلی الله علیه وسلم نکاح په سنه ۵ھ کې وشوه او د هغې انتقال په سنه ۲۰ھ کې وشو.

﴿۸﴾ حضرت ام حبیبه بنت ابی سفیان رضی الله عنها، د هغې سره د حضور صلی الله علیه وسلم نکاح په حبشه کې د نجاشي بادشاه په ذریعه وشوه، نجاشي ۴۰۰۰ درهم ورکړل او نکاح يې ولوستله، په سنه ۴۴ھ کې په مدینه منوره کې د هغې انتقال وشو.

﴿۹﴾ حضرت جویریه رضی الله عنها، په غزوه بني المصطلق کې په قید کې راغله، په سنه ۶ھ کې دغه غزوه وشوه، حضور صلی الله علیه وسلم هغه آزاده کړه او په سنه ۶ھ کې يې د هغې سره نکاح وکړه، د هغې د خاندان په سلګونو خلک غلامان وو صحابه کرامو ټول آزاد کړل چه دا خلک اوس د حضور صلی الله علیه وسلم خسرګنۍ جوړ شول، په سنه ۵۶ھ کې د حضرت جوریریه رض انتقال شوی.

﴿۱۰﴾ حضرت میمونة رضی الله عنها، د حضرت ابن عباس رضی الله عنه خاله وه، په سنه ۷ھ کې حضور صلی الله علیه وسلم د هغې سره نکاح وکړه، د مکې او مدينې په مينځ کې د وادی فاطمه سره په مقام سرف کې نکاح وشوه، په همدې ځای کې يې د واده شپه وه، په همدې ځای کې يې په سنه ۶۱ھ کې د هغې انتقال وشو او په همدې ځای کې د سړک په غاړه د هغې قبر جوړ شوی دی، بنده عاجز د هغې د قبر زیارت کړی دی.

﴿۱۱﴾ حضرت صفیه بنت حیی بن اخطب رضی الله عنها، په سنه ۷ھ کې په غزوه خیبر کې قید شوله او حضور صلی الله علیه وسلم هغه آزاده کړه او بیا يې د هغې سره د خیبر نه په واپسۍ په لاره کې نکاح وکړه، په سنه ۵۲ھ کې د هغې انتقال وشو.

ددې یوولس ازواج مطهراتو څخه صرف د دوو یعني خدیجة الکبری او زینب بنت خزیمة انتقال د حضور صلی الله علیه وسلم په موجودګۍ کې شوی، د باقي نهو انتقال د حضور صلی الله علیه وسلم نه بعد شوی دی، د ازواج مطهرات نه علاوه د حضور صلی الله علیه وسلم څلور وینځې هم وې د هغو نه د یوې نوم حضرت ماریه قبطیه وه، د دویمې نوم حضرت ریحانه وه او دوه نورې وې.

## د ازواجو د تعدد حکمت:

د حضور صلی الله علیه وسلم په کثرت ازواجو باندې هم اعداء الاسلام او ملحدین اعتراض کوي چه دومره زیات ودونه کول د دنیا د محبت او د عیش او عشرت علامه ده، د یو نبي لپاره دا څه مناسبه ده چه دومره زیات ودونه وکړي؟ ددې یو جواب دا دی چه حضور صلی الله علیه وسلم چه څومره زیات ودونه کړي دي هغه يې صرف د خپل نفسي خواهش لاندې کړي نه دي بلکه ددې نور نیک مقاصد وه،

کچیرې هغه صرف د خپل نفسي خواهش لپاره ودونه کول نو هغه صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به د خپلې ځوانۍ په عمر کې اول واده د داسې ښځې سره نه کولو چه د هغې عمر څلویښت کاله وو او دوه ځلې کونډه شوې وه، بیا تر څو پورې چه هغه ژوندۍ وه حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بل واده کړی نه دی، د هغې د وفات نه وروسته هم حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دویم واده د یوې کونډې سره وکړو تر دې پورې چه د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د یوولس بیبیانو نه صرف یوه زوجه محترمه پیغله وه چه د هغې نوم عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وو.

دویم جواب دا دی چه د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د ځوانۍ او پیغمبرانه طاقت تقاضا خو دا وه چه هغه ددینه زیات ودونه کړي وی ځکه چه الله تعالی هغه ته د څلویښتو جنتیانو طاقت ورکړی وو، ددې باوجود هغه د څو کونډو ښځو سره په اوسیدو اکتفاء وکړه دا د هغه لویه قرباني وه، یهودیانو خو په حضرت داؤد او حضرت سلیمان علیهما السلام باندې اعتراض ونکړو چه هغو د سلو سلو ښځو سره ودونه کړي وو او د محمد عربي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په یو څو ودونو باندې اعتراض کوي حال دا چه په عربو کې د د غسې ودونو عام رواج وو.

دریم جواب دا دی چه حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د عربو د کومې قبیلې څخه واده وکړو هغه قبیله به اسلام نږدې شوه او د اسلام او مسلمانانو سره به د هغو د عداوت کمی راغلو او ډیر به مسلمانان شول، د حضرت جویریه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا په نکاح سره د هغې د خاندان درې سوه غلامان آزاد کړی شول.

څلورم جواب دا دی چه حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ یو عظیم پیغمبر وو، د هغه تعلیمات عام وو، د کورني تعلیماتو پیش کولو لپاره د ازواج مطهراتو ضرورت وو تر څو د ازدواجي زندګۍ د مخفي جوانب متعلق عائلي شرعي نظام او د تدبیر منزل سره متعلق ټول جوانب بیروني معاشرې ته په آسانۍ سره ورسیږي او چونکه دغه کار اسلامي نظام او د هغه په مسائلو باندې مشتمل ډیر لوی کار وو چه دا یوې یا دوو ښځو سرانجام کولی نشو په دغه وجه عقلي او شرعي تقاضا وه چه ددې کار د سنبالولو لپاره خاص یو ښه جماعت وي، ددغه مقصد او دغه حکمت لپاره حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زیات ودونه وکړل او الحمد لله دغه کار په ډیر ښایسته طریقه باندې اختتام او تکمیل ته ورسیده حال دا چه ددې ټول مبارک نظام څخه عیسائي او مسیحي اقوام محروم دي، د هغوی سره نه د ښځو د حقوقو کوم تعیین شته او نه ښځو متعلق د حیض او نفاس او طلاق او نکاح او عدت او نفقات زوجات کوم معقول نظام شته ځکه چه د هغوی نبي حضرت عیسی علیه السلام کوم واده کړی نه وو لهذا هغه ددغه نظام عملي نمونه د خپل امت مخې ته پیش نکړی شوه، د تعلیماتو تذکره به څه وي مګر نن هغه هم د عیسائیانو په لاسونو کې نشته، په دغه وجه هغوی دغه قوانین د خپل ځان نه جوړ کړي

دي . مونږ د خپل مبارک پیغمبر صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په دغو مبارکو طریقو باندې د ټولې دنیا په مخ کې فخر کوو او وایو چه : تر کومه ځایه چه ستا تقلید دی تر هغه حده د بشریت سلیقه بشر ته حاصلیږي.

# اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

## د بي بي خديجة الكبرى رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا فضيلت

| |
|---|
| ﴿۱﴾ عَنْ وَعَنْ عَلِيٍّ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ خَيْرُ |
| حضرت علي رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وايي ما د رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه واوریدل مریم بنت عمران د خپلې زمانې او د خلقو د |
| نِسَائِهَا مَرْيَمُ بِنْتُ عِمْرَانَ وَخَيْرُ نِسَائِهَا خَدِيْجَةُ بِنْتُ خُوَيْلِدٍ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. |
| ټولو نه بهتره ښځه ده او خدیجه بنت خویلد په دې امت کې د ټولو نه بهتره ښځه ده [بخاري مسلم] |
| وَفِيْ رِوَايَةٍ قَالَ أَبُوْ كُرَيْبٍ وَأَشَارَ |
| او په یوه روایت کې ابو کریب دا بیان وکړو چې آسمان او ځمکې طرف ته اشاره کولو سره یې وښودل |
| وَكِيْعٌ إِلَى السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ. |
| چه د دې حدیث مطابق دا دواړه ښځې خپلو خپلو امتونو کې د ټولو د ښځو نه اشرفې او افضلې دي. |

**توضيح** : (خير نسائها مريم) دلته په مضاف اليه کې د مؤنث ضمير دی چه مرجع يې مخکې نشته نو دا اضمار قبل الذکر دی ، د دې لپاره څه جواب دی ؟ د ملا علی قاری رَحِمَهُ اللّٰهُ د کلام څخه د دې دوه جوابه معلومیږي :

اول جواب دا دی چه دا ضمير دنيا ته راجع دی او دنيا د هغو الفاظو څخه ده چه د هغو طرفته اضمار قبل الذکر جائز دی نو اصل عبارت داسې دی : **خير نساء الدنيا ای فی زمانها مريم** ، د خپلې زمانې په ښځو کې حضرت مريم د دنيا د ټولو ښځو نه افضله وه . ملا علی قاری د دينه وروسته دويم جواب دا ورکړی دی چه **خير نسائها** خبر مقدم دی او مريم مبتداء مؤخره ده ، اصل عبارت داسې دی (**مريم خير نساء زمانها**) په دې طريقه د اضمار قبل الذکر اعتراض ختم شولو ، ملا علی قاری دا غوره کړی دی ، په دې سره هغه سوال هم ختم شو چه کله حضرت مريم ته د ټولې دنيا په ښځو باندې فضيلت ورکړی شو نو د حضرت خديجة الکبری فضيلت چيرته لاړو ؟ ځکه چه کله د خپلې خپلې زمانې خبره شوه نو هيڅ اعتراض پاتې نشو . ملا علی قاری د دې ښځو په مينځ کې د فضيلت فيصله په يو روايت سره هم کړې ده ، هغه روايت دا دی : **خديجة خير نساء عالمها و مريم خير نساء**

**عالمها وفاطمة خير نساء عالمها.** (ترمذی و نسائی مرسلا) یعنې خدیجة رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په خپله زمانه کې د ټولو نه بهتره وه او فاطمه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په خپلې زمانه کې د ټولو نه بهتره ده.

**واشار وکیع الی السماء والارض:** په دې سره راوی د دغه اشکال لرې کولو ته اشاره کړې ده چه وکیع آسمان او ځمکې ته اشاره وکړه چه د دا ضمیر آسمان او ځمکې یعنې دنیا او زمانې ته راجع کیږي.

﴿۲﴾ وَعَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ أَتَى جِبْرَئِيْلُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللهِ

او ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي چه حضرت جبرائیل رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته راغلي او هغه وویل یارسول الله!

هٰذِهِ خَدِيْجَةُ قَدْ أَتَتْ مَعَهَا إِنَاءٌ فِيْهِ إِدَامٌ

اوس خدیجه راځي هغې سره یو لوښی دی چه په هغه کې ترکاري او خوراک هرکله چه هغې تاسو

وَطَعَامٌ فَإِذَا أَتَتْكَ فَأَقْرَأْ عَلَيْهَا السَّلَامَ مِنْ رَبِّهَا

ته راورسیږي نو تاسو د هغه د پروردګار د طرف نه او ځما د طرف نه هم هغه ته سلام ووایې او

وَمِنِّيْ وَبَشِّرْهَا بِبَيْتٍ فِي الْجَنَّةِ مِنْ قَصَبٍ

هغه ته په جنت کې د یو محل خوشخبري واوروئ چه د ګول ملغلري دی او په هغه محل کې نه شور

لَا صَخَبَ فِيْهِ وَلَا نَصَبَ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

شته نه تکلیف او نه ستړیوالی. [بخاري مسلم]

**توضیح:** (قصب) ای لؤلؤ مجوف واسع کالقصر المنیف یعنې د یو عالیشانه محل بشارت ورکړه چه د ګول ملغلرې نه جوړ شوی دی.

**لاصخب:** چغو او شور ته صخب ویل کیږي.

**ولانصب:** ستړتیا ته نصب ویل کیږي، دا شیان به هلته نه وي.

﴿۳﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ مَا غِرْتُ عَلَى أَحَدٍ مِنْ نِسَاءِ

او بي بي عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وایي د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بیبیانو کې چه څومره غیرت او رشک ما

النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا غِرْتُ عَلَى خَدِيْجَةَ وَمَا رَأَيْتُهَا

بي بي خدیجې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا سره کوه دومره مې بل هیڅ بي بي سره نه کوه حالانکه ما بي بي خدیجه لیدلې هم نه وه

وَلٰكِنْ كَانَ يُكْثِرُ ذِكْرَهَا وَرُبَّمَا ذَبَحَ الشَّاةَ

البته حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به هغه ډیره یادوله اکثره به داسې کیدل چه حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به چیلی ذبحه

ثُمَّ يُقَطِّعُهَا أَعْضَاءً ثُمَّ يَبْعَثُهَا فِي صَدَائِقِ

کړه او هغه به يې ټکړې ټکړې کړه نو بيا به يې هغه غوښه هغه ښځو ته ليږله چه د بي بي خديجې ملګرې به

خَدِيْجَةَ فَرُبَّمَا قُلْتُ لَهُ كَأَنَّهُ لَمْ تَكُنْ فِي الدُّنْيَا

وې اکثره وختونو کې به ما حضور صلى الله عليه وسلم ته ويل چه تا سو د بي بي خديجې په حقله دومره محبت کوئ

امْرَأَةٌ إِلَّا خَدِيْجَةُ فَيَقُوْلُ إِنَّهَا كَانَتْ

لکه چه په دنيا کې يوې خديجې نه علاوه دومره خو بيوو الابله ښځه نه وه حضور صلى الله عليه وسلم به ځما دې

وَكَانَتْ وَكَانَ لِيْ مِنْهَا وَلَدٌ . مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

خبرې په جواب کې فرمائيل هغه خو واقعي داسې وه او بيا ځما اولاد هم د هغې نه وو. [بخاري مسلم]

**توضيح : ماغرت:** غيرت د ذلت کارونو نه د انکار کولو په معنی سره دی .

**ماغرت على خديجة:** په اوله جمله کې چه کوم لفظ د (**ما**) دی هغه د نفی په معنی سره دی او په دويمه جمله کې (**ما**) موصوله يا مصدريه دی (**اى ماغرت مثل الذى غرتها او مثل غيرتي عليها**).

**صدائق:** د صديقة جمع ده ملګرې ته ويل کيږي .

**انها كانت و كانت:** يعني خديجه همداسې وه ،د هغې به څه درته ووايم ، ته چه څه وايې هغه همداسې وه ، حضور صلى الله عليه وسلم دا جمله د تأکيد لپاره مکرره راوړه اى كانت صوّامة قوامة محسنة مشفقة.

**منها ولد:** په دې جمله په نفسياتی انداز سره حضور صلى الله عليه وسلم حضرت عائشې رضي الله عنها ته جواب ورکړی دی چې هر څه وي د خديجې نه زما اولاد شته ، ستا خو هيڅ اولاد نشته ، د حضور صلى الله عليه وسلم ټول اولاد د حضرت خديجې رضي الله عنها د بطن څخه وو .

## د بي بي عائشې رضي الله عنها فضيلت

﴿۴﴾ وَعَنْ أَبِيْ سَلَمَةَ أَنَّ عَائِشَةَ قَالَتْ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

او حضرت ابوسلمه نه روايت دی ام المؤمنين بي بي عائشې صديقې رضي الله عنها وويل يو ورځ ماته

يَا عَائِشُ هٰذَا جِبْرَئِيْلُ يُقْرِئُكِ السَّلَامَ قَالَتْ وَ عَلَيْهِ

رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمائيل اى عائشې دا جبرائيل دی په تا سلام وايي عائشې رضي الله عنها د هغه سلام

السَّلَامُ وَرَحْمَةُ اللهِ قَالَتْ وَهُوَ

جواب کې وويل وعليه السلام ورحمة الله وې بي بي عائشې رضي الله عنها وايي حضور صلى الله عليه وسلم هغه

| يَرٰى مَا لَا أَرٰى. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. |
|---|
| ليدلو او ما هغه نه ليده. |

**توضيح**: (هذا جبرائيل يقرئک السلام) حضور اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د دې سلام لپاره واسطه جوړ شو دا ځانته مصلحت دی، او حضرت جبرئيل عَلَيْهِ السَّلَامُ سلام کونکی جوړ شو دا ځانته فضيلت دی، حضرت خديجه رض ته جبرئيل عَلَيْهِ السَّلَامُ په خپله سلام ونکړلو بلکه پيغام يې ورکړلو، ظاهره همدا ده چه د الله تعالى له طرفنه به جبرئيل امين ته د سلام کولو حکم ملاؤ شوی وي، د دينه اندازه لګول کيدی شي چه د حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا څومره لوړ مقام دی. (هو يری) يعنې حضور اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغه څه ګوري چه زه يې کتلی نشم.

## د بي بي عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا باره کې د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خوب

| ﴿۵﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ قَالَ لِيْ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أُرِيْتُكِ |
|---|
| او بي بي عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا بيان کوي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يوه ورځ ماته وفرمائيل درې شپې |
| فِي الْمَنَامِ ثَلَاثَ لَيَالٍ يَجِيْءُ بِكِ الْمَلَكُ |
| مسلسل ته ماته په خوب کې راوستل شوې د هغه صورت دا وو چه يوې فرښتې به د ريښمي شاندارې |
| فِيْ سَرَقَةٍ مِّنْ حَرِيْرٍ، فَقَالَ لِيْ هٰذِهٖ اِمْرَأَتُكَ |
| کپړې کې ستا تصوير ځما مخ ته راوستلو او ماته به يې ويل دا تصوير ستا د کيدونکې ښځې دی او |
| فَكَشَفْتُ عَنْ وَجْهِكِ الثَّوْبَ فَإِذَا أَنْتِ |
| هرکله چه به ما د هغه تصوير پرده اوچتولو سره ستا مخ ليده نو هو بهو به ستا مخ وو بيا به ما د هغه |
| هِيَ فَقُلْتُ إِنْ يَّكُنْ هٰذَا مِنْ |
| فرښتې په جواب کې ويل که دا خوب د الله د طرف نه وی نو هغه به خپله دا پوره کوي يعنې دا معامله |
| عِنْدِ اللهِ يُمْضِهٖ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. |
| به تکميل ته هم هغه ورسوي او دي ښځې سره به ځما د نکاح اسباب پيدا کړي. [بخاري مسلم] |

**توضيح**: (اريتک) يعنې درې شپې مسلسل ته ماته په خوب کې وښودل شوې.

**في سرقة من حرير**: په سرقة کې په سين، راء، او قاف درېواړو حروفو باندې زور دی، د ريښمي کپړې يوې ټوټې ته ويل کيږي.

**فقال لي**: يعنې ملائکې ما ته وويل چه دا په دنيا او آخرت کې ستا ښځه ده.

**فاذا انت هي:** يعنې يو تصوير ما ته په ريښتمی کپړې کې راکړلی شو ، چه کله ما کپړه خلاصه کړه نو هغه تصوير ستا وو .

**يمضه:** يعنې ما ملائکي ته وويل چه کچيرې دا خوب د الله له طرفه وي نو الله تعالى به دغه خوب پوره کړي او دا نکاح به وشي لکه همدا سې وشول .

## د ازواجو مطهراتو رَضِيَ اللهُ عَنْهُنَّ دوه ډلې

﴿٦﴾ وَعَنْهَا قَالَتْ إِنَّ النَّاسَ كَانُوا يَتَحَرَّوْنَ

او بي بي عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا بيان کوي خلقو به دي خبري ته ترجيح ورکوله چه هغوئ خپلي هديي او

بِهَدَايَاهُمْ يَوْمَ عَائِشَةَ يَبْتَغُوْنَ بِذٰلِكَ

تحفي په هغه ورځ پيش کولې هرکله چه د بي بي عائشي رَضِيَ اللهُ عَنْهَا د وار ورځ وي او دي نه د هغوئ

مَرْضَاةَ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَقَالَتْ

مقصد صرف د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خوشحالي وه بي بي عائشه وايي د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

إِنَّ نِسَاءَ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كُنَّ حِزْبَيْنِ

بيبياني دوو ډلو کي تقسيم وي او په هغه کي هر يو ټولي يوشان مزاج يوشان رايه او يوشان طرز

فَحِزْبٌ فِيْهِ عَائِشَةُ وَحَفْصَةُ وَصَفِيَّةُ

معاشرت او اختلاط لرونکو بيبيانو باندي مشتمل وو يو ټولي خو هغه وو چه په هغه کي عائشه حفصه صفيه رَضِيَ اللهُ عَنْهُنَّ

وَسَوْدَةُ وَالْحِزْبُ الْآخَرُ أُمُّ سَلَمَةَ وَسَائِرُ

او سوده رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وي او دويم ټولي هغه وو چه په هغه کي ام سلمه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا او د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

نِسَاءِ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَكَلَّمَ حِزْبُ أُمِّ سَلَمَةَ فَقُلْنَ لَهَا

باقي تمامي بيبياني وي نو دام سلمه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ډلي يوه ورځ ام سلمه سره خبري وکړي او ورته يي وويل

كَلِّمِيْ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

چه ته رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته عرض وکړه چه تاسو خلقو ته دا وفرمائې که څه هديه او تحفه پيش

يُكَلِّمُ النَّاسَ فَيَقُوْلُ مَنْ أَرَادَ أَنْ يُّهْدِيَ إِلَى رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

کول وي که تاسو کوم ځاي کي يي خواه هغه د عائشي کور وي يا د بلي بي بي چه د عائشي رَضِيَ اللهُ عَنْهَا

فَلْيُهْدِهِ إِلَيْهِ حَيْثُ كَا

او نورو بيبيانو په منځ کي هغه امتياز ليري شي چه د هغه بيبيانو ته غيرت محسوس کيږي

فَكَلَّمَتْهُ فَقَالَ لَهَا لَا تُؤْذِيْنِي

بي بي ام سلمه په دي باره کي حضور صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره خبره وکړه نو حضور صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ورته وفرمائيل ته ماته د

فِي عَائِشَةَ فَإِنَّ الْوَحْيَ لَمْ يَأْتِنِي

عائشي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا باره کښې تکليف مه رسوه ته شايد نه پوهيږي چه هغه وقت ماته وحي نه راځي کله

وَأَنَا فِي ثَوْبِ امْرَأَةٍ إِلَّا عَائِشَةَ قَالَتْ

چه زه د يوې بلې بي بي لحاف يا څادر کي يم ماسوا د عائشي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا نه په دي بي بي ام سلمه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا وويل

أَتُوْبُ إِلَى اللهِ مِنْ ذَاكَ يَا رَسُوْلَ اللهِ

يارسول الله! زه د الله په حضور کي دي خبري نه توبه کارم چه تا سو ته تکليف ورسوم بيا د ام سلمه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا

ثُمَّ إِنَّهُنَّ دَعَوْنَ فَاطِمَةَ فَأَرْسَلْنَ

د دلي ښځو فاطمه را وغوښتله او هغه يې د رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خدمت کي وليږله نو فاطمي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا

إِلَى رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضور صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره خبره وکړه او کيدی شي چې هغه نا خبره وه چه دي نه مخکي ام سلمه د حضور صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

فَكَلَّمَتْهُ فَقَالَ يَا بُنَيَّةُ

په خدمت کي حاضره شوي ده او حضور صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغه ته کومو الفاظو کي جواب ورکړی بهرحال حضور صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

أَلَا تُحِبِّيْنَ مَا أُحِبُّ

د فاطمي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا خبري واوريدو سره هغه ته وفرمائيل ای ځما لوري! آيا ته هغه چاسره محبت نه ساتی چاسره

قَالَتْ بَلَى قَالَ فَأَحِبِّيْ هٰذِهِ

چه زه محبت ساتم هغې وويل ولي نه حضور صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل بيا ته عائشي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا سره

مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. وَ ذُكِرَ حَدِيْثُ

محبت ساته او د څه د اسې خبري مه کوه چه هغه عائشي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا ته نا خوښه وي. [بخاري مسلم]

| أُنَسٍ | فَضْلُ | عَائِشَةَ | عَلَى | النِّسَاءِ | فِيْ | بَابِ | بَدْءِ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| او د حضرت انس رضی الله عنه روايت كړه حديث: فضل عائشة على النساء كفضل الثريد على سائر الاطعمة باب | | | | | | | |
| الْخَلْقِ | بِرِوَايَةِ | أَبِيْ | مُوْسٰى. | | | | |
| بدء الخلق كې د ابو موسٰى علیه السلام روايت نه نقل شوى دى. | | | | | | | |

**توضيح : يتحرون: تحرّي** سوچ او د بهتر شي طلب ته ويل كيږي ، مراد انتظار دى چه عامو خلكو به د خپلو تحفو په ليږلو كې د حضرت عائشې رضی الله عنها د نوبت انتظار كولو تر څو حضور صلی الله علیه وسلم زيات خوشحاله شي .

حزبين: حزب گروه او ډلې ته ويل كيږي، مطلب دا دى چه د ميلان طبع او هم مزاجه كيدو په اعتبار سره د ازواج مطهراتو دوه فريقه وو ، دا د كوم عداوت او حسد په بنياد باندې نه وو بلكه د دينى او دنيوى فوائدو د حصول لپاره پخپله دغسې تقسيم جوړ شوى وو او چونكه ازواج مطهرات په صفت د بشريت سره متصف وې او په خپل مينځ كې سره بنې وې نو كه بشريت كوم شى وي او هغه نظر انداز كيدلى نشي نو په كورنى نظام كې دغسې دوه فريقه جوړيدل هم كوم عيب نه دى لكه څنگه چه په فريق اول كې حضرت عائشه ، حضرت حفصه ، حضرت سوده او حضرت صفيه رضی الله عنهن وې ، په دوى كې د حضرت عائشه رضی الله عنها حيثيت ښكاره وو ، او په فريق ثانى كې حضرت ام سلمه ، حضرت زينب، حضرت ام حبيبه ، حضرت ميمونة ، او حضرت جويريه رضی الله عنهن وې چه په دوى كې حضرت ام سلمه رضی الله عنها ظاهرى طور باندې ښكاره وه مگر اصل خبره به د زينب رضی الله عنها سره كيدله

وسائر نساء: سائر د باقى او نورو په معنى سره دى ، د باقى ازواج مطهراتو تعداد پنځه وو ليكن په دوو فريقينو كې حضرت زينب بنت حزيمه شريكه نه وه د هغې انتقال هم ژر شوى وو لهذا د سائر نساء څخه د فريق ثانى ازواج مراد دي . ددې حديث د ظاهر نه چه څه معلوميږي هغه دا دي چه د فريق ثانى مطالبه دا وو چه خلك دي خپل هدايا د حضرت عائشې رضی الله عنها په نوبت پورې نه خاص كوي ځكه په دې كې د باقى ازواج مطهرات په قدر او قيمت باندې څه ناځه اثر پريوځي ، همدارنگه د كمترى احساس كې د پريوتو خطره هم ده ليكن حضور صلی الله علیه وسلم د دغه ټول مفروضات رد كړل او د حضرت عائشې رضی الله عنها عظيم فضيلت يې وفرمايلو چه دا دومره پاكيزه ښځه ده چه ددې سره په يوه بستره كې ما ته وحى راځي .

## اَلْفَصْلُ الثَّانِيْ

## ددنیا په ښځو کې افضل ترین ښځې

﴿۷﴾ عَنْ أَنَسٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ

حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی چه رسول کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمائیل د تمام جهان په ښځو کې د څلورو

حَسْبُكَ مِنْ نِّسَاءِ الْعَالَمِيْنَ مَرْيَمُ بِنْتُ عِمْرَانَ

ښځو مناقب پیژندل ستا د پاره کافي دي او هغه دي ۱ مریم بنت عمران یعني د حضرت عیسیٰ عَلَيْهِ السَّلَامُ مور محترمه

وَخَدِيْجَةُ بِنْتُ خُوَيْلِدٍ وَفَاطِمَةُ بِنْتُ مُحَمَّدٍ وَآسِيَةُ امْرَأَةُ فِرْعَوْنَ . رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ

۲ خدیجه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا بنت خویلد ۳ فاطمه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا بنت محمد صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ۴ بي بي آسیه د فرعون ښځه. [ترمذي]

**توضیح**: مریم: دلته یو ه مسئله د هغه فضیلت ده چه د دنیا د ټولو ښځو په مینځ کې دی چه په هغو کې د ټولو نه افضله څوک ده؟ بیا دوهمه مسئله د هغه فضیلت ده چه په ازواج مطهرات کې د ټولو نه افضله څوک ده؟ علامه سیوطی رَحِمَهُ اللهُ په نقایه کې لیکي چه زموږ دا عقیده ده چه د ټول جهان د ښځو نه په ټولو کې افضله حضرت مریم او حضرت فاطمه دي او په ازواج مطهرات کې د ټولو نه افضله حضرت خدیجه او حضرت عائشه دي بیا د دوی نه په خپل مینځ کې کومه افضله ده؟ نو یو قول دا دی چه حضرت خدیجه د ټولو نه افضله ده، دویم قول دا دی چه حضرت عائشه افضله ده، دریم قول دا دی چه په دې مسئله کې سکوت اختیارول بهتره دي، د صحیح بخاری ج۱ ص۵۳۲ په حاشیه کې یې همدا سې لیکلي دي.

شیخ عبد الحق رَحِمَهُ اللهُ په لمعات کې لیکلي دي چه د حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا او حضرت خدیجې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا تر مینځ په فضیلت کې او بیا د حضرت فاطمه او حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا په فضیلت کې د علماؤ اختلاف دی، امام مالک رَحِمَهُ اللهُ خو مطلقا حضرت فاطمه افضله ګرځولې ده، د امام سبکی رَحِمَهُ اللهُ نه چا پوښتنه وکړه نو هغه وفرمایل چه زما عقیده او اختیار کړه قول دا دی چه د ټولو نه افضله حضرت فاطمه ده بیا حضرت خدیجه ده او بیا حضرت عائشه ده، د بخاری محشي ویلي دي چه زه خو دا وایم چه په دې مسئله کې سکوت بهتره دی، ځکه دلته کوم قطعي دلیل نشته، چه کوم دي هغه ظنیات دي چه متعارض دي لهذا فیصله کول مشکل دي، دا مسئله ما مخکې په صفحه ۳۷۹ باندې هم لیکلې ده هسې هم افضل او غیر افضل یو ه نوعه ده د دې لاندې ډیر افراد راتللی شي، وایې په جنت کې به حضرت مریم د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په نکاح کې راځي.

## د بي بي عائشي رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا فضيلت

﴿۸﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ أَنَّ جِبْرَئِيْلَ جَاءَ بِصُوْرَتِهَا فِيْ خِرْقَةِ حَرِيْرٍ

او د بي بي عائشي رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا بيان دی چه حضرت جبرائيل عَلَيْهِ السَّلَامُ شين وريښمي کپړه باندي د هغي

خَضْرَاءَ إِلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ هٰذِهٖ

بي بي عائشه رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا تصوير رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته په خوب کي ښودلو د پاره راوړه او ورته يي وويل دا

زَوْجَتُكَ فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

ستا سو زوجه ښځه ده په دنيا کي هم او په آخرت کي هم. [ترمذي]

## د بي بي صفيه رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا فضيلت

﴿۹﴾ وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ بَلَغَ صَفِيَّةَ أَنَّ حَفْصَةَ قَالَتْ

او حضرت انس رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ بيان کوي يو وار ام المؤمنين بي بي صفيه ته معلومه شوه چه ام المؤمنين بي بي حفصه رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا

بِنْتُ يَهُوْدِيٍّ فَبَكَتْ فَدَخَلَ عَلَيْهَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

حفصي هغه ته د يهودي لور ويلي دي نو هغه په ژړا شوه کوم وقت چه رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغه ته تشريف

وَهِيَ تَبْكِيْ فَقَالَ مَا يُبْكِيْكِ فَقَالَتْ قَالَتْ لِيْ

راوړو نو هم هغي ژړل حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ځني پوښتنه وکړه ولي ژاړئ؟ هغي ورته وويل ځما باره کښي

حَفْصَةُ إِنِّي ابْنَةُ يَهُوْدِيٍّ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

حفصي رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا ويلي دي چه زه د يهودي لور يم په دي اوريدو سره رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ورته وفرمائيل ته

إِنَّكِ لَابْنَةُ نَبِيٍّ وَإِنَّ عَمَّكِ لَنَبِيٌّ وَإِنَّكِ لَتَحْتَ نَبِيٍّ

د هغه په وينا غم مه کوه حقيقت خو دا دی چه ته د پيغمبر لور يي ستا اکا هم پيغمبر وو او اوس د

فَفِيْمَ تَفْخَرُ عَلَيْكِ ثُمَّ قَالَ

يو پيغمبر يعني ځما ښځه يي بيا هغه په تا باندي په څه فخر کوي بيا حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حفصه متنبه کړه چه

اِتَّقِي اللّٰهَ يَا حَفْصَةُ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَالنَّسَائِيُّ.

ای حفصه د الله نه ويريږه. [ترمذي ونسائي]

**توضيح : بنت يهودي:** حضرت صفيه رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا په جنګ خيبر کي د حضور په لاس کي راغلي وه، حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغه آزاده کړه او په ازواجو کي يي داخله کړه، د بنو په مينځ کي کشمکش په هر حال يو د غير اختياري بشري معامله ده، حضرت حفصه رض هغي ته بنت يهودي وويل ځکه د هغي پلار حيي بن اخطب يو مشهور سردار يهودي وو چه د حضرت هارون عليه السلام په اولاد کي

ولکه څنګه چه حضرت صفیه د خپل ذات په اعتبار سره د یوه سردار خاندان معززه ښځه وه،
همدارنګه حضرت صفیه په دیني اعتبار سره هم د یو جامع شخصیت مالکه وه، د حضرت حفصې
په نسبي طعن ورکولو باندې حضور صلی الله علیه وسلم د حضرت صفیه د خاطرداری لپاره وفرمایل چه
ستا سره خو هغه اعزازات شته چه د بل چا سره نشته، ته یو د نبي هارون علیه السلام لورېې، دویم
د نبي موسی علیه السلام وریره یې، دریم د نبي محمد صلی الله علیه وسلم ښځه یې، اوس هغې ته په تا
باندې کوم فخر پاتې شو؟ وایې حضرت صفیه رضی الله عنها په ترکاری پخولو کې هوښیاره وه.

## فاطمه رضی الله عنها د جنت د ښځو سرداره ده

﴿۱۰﴾. وَعَنْ أُمِّ سَلَمَةَ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَعَا
او د بي بي ام سلمه رضی الله عنها بیان دی چه د مکې د فتح په موقع یوه ورځ رسول الله صلی الله علیه وسلم

فَاطِمَةَ عَامَ الْفَتْحِ فَنَاجَاهَا فَبَكَتْ ثُمَّ حَدَّثَهَا فَضَحِكَتْ
بي بي فاطمه رضی الله عنها خپل قریب وبلله او هغې سره یې پټې پټې څه خبرې وکړې فاطمې هغه خبرې

فَلَمَّا تُوُفِّيَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَأَلْتُهَا
اوریدو سره په ژړا شوه بیایې په غوږ کې د خبرو په انداز کې خبرې وکړې نو هغه په خندا سوه

عَنْ بُكَائِهَا وَضِحْكِهَا فَقَالَتْ أَخْبَرَنِي رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ
بیا چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفات شو نو یوه ورځ ما د هغې نه د ژړا او بیا د خندا سبب دریافت کړو

أَنَّهُ يَمُوتُ فَبَكَيْتُ ثُمَّ أَخْبَرَنِي
نو هغې وویل مخکې خو رسول الله صلی الله علیه وسلم د خپل مرګ باره کې زه آګاه کړم چه د هغې اوریدو سره زه

أَنِّي سَيِّدَةُ نِسَاءِ أَهْلِ الْجَنَّةِ إِلَّا مَرْيَمَ ابْنَتَ عِمْرَانَ
په ژړا شوم بیا حضور صلی الله علیه وسلم ماته وښودل چه زه د مریم بنت عمران نه ماسوا د جنت د ټولو ښځو

فَضَحِكْتُ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ
سرداره یم نو زه په خندا شوم. [ترمذي]

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## د بي بي عائشې رضی الله عنها علمي فضیلت

﴿۱۱﴾ عَنْ أَبِي مُوسَى قَالَ مَا أَشْكَلَ عَلَيْنَا أَصْحَابَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ
حضرت ابوموسٰی اشعري رضی الله عنه وایي مونږ اصحابِ رسول الله صلی الله علیه وسلم ته به چه کله د یو

| عَائِشَةَ | فَسَأَلْنَا | قَطُّ | حَدِيثٌ |
|---|---|---|---|
| حديث یا دیني مسائلو سره متعلق څه خبره کي څه اشکال پیښ شو نو مونږ به بي بي عائشه رضي الله عنها ته رجوع | | | |

| عِلْمًا. | مِنْهُ | عِنْدَهَا | وَجَدْنَا | إِلَّا |
|---|---|---|---|---|
| کوله او مونږ ته به د هغه حدیث یا مسئلي متعلق کافي علم دبي بي عائشي رضي الله عنها نه حاصلیدی | | | | |

| غَرِيبٌ. | صَحِيحٌ | حَسَنٌ | حَدِيثٌ | هٰذَا | وَقَالَ | التِّرْمِذِيُّ | رَوَاهُ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| دا روایت ترمذي نقل کړی دی او ویلي یي دي چه دا حدیث حسن صحیح غریب دی | | | | | | | |

## د بي بي عائشي رضي الله عنها نه زیات فصیح مو هیڅوک نه دی لیدلی

| عَائِشَةَ | مِنْ | أَفْصَحَ | أَحَدًا | رَأَيْتُ | مَا | قَالَ | طَلْحَةَ | بْنِ | مُوسَى | وَعَنْ | ﴿۱۲﴾ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| او حضرت موسیٰ بن طلحه تابعي وایي ما د عائشي رضي الله عنها نه زیات فصیح هیڅوک نه دی لیدلی | | | | | | | | | | | |

| غَرِيبٌ. | صَحِيحٌ | حَسَنٌ | حَدِيثٌ | هٰذَا | وَقَالَ | التِّرْمِذِيُّ | رَوَاهُ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| دا روایت ترمذي نقل کړی دی او ویلي یي دي چه دا حدیث حسن صحیح غریب دی. | | | | | | | |



# باب جامع المناقب
## داجتماعي مناقبو بيان

يعنې د کوم شخص چې کومه خوبي هم وي هغه به په دې باب کې بيانولی شي لکه بغير د کوم خاص تخصيص نه په دې باب کې د مهاجرينو د فضيلت خبره کيږي ، د انصارو د فضيلت بيان کيږي ، د عشره مبشرو او خلفاء راشدينو او اهل بيتو او ازواجو مطهراتو او د نورو مشهورو صحابو تذکره به کيږي ، گويا د تمام صحابو او اهل بيتو د اجتماعي مناقبو بيان دی ، دا باب ډير اوږد دی او په دې کې ټول ۷۰ احاديث جمع دي.

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّل

### د حضرت عبد الله بن عمر رضي الله عنهما فضيلت

| |
|---|
| ﴿۱﴾عَنْ عَبْدِ اللهِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ رَأَيْتُ فِي الْمَنَامِ كَأَنَّ فِيْ يَدِيْ سَرَقَةً مِّنْ حَرِيْرٍ |
| حضرت عبد الله ابن عمر رضي الله عنه وايي ما يوه ورځ په خوب کې وليدل چې گويا ځما په لاس کې د وريښمو |
| لَا أَهْوِي بِهَا إِلٰى مَكَانٍ فِي الْجَنَّةِ إِلَّا طَارَتْ |
| د کپړې يوه ټکړه ده او زه د هغه ريښمي کپړې په ذريعه د جنت کوم محل طرف ته چې تلل غواړم |
| بِيْ إِلَيْهِ فَقَصَصْتُهَا عَلٰى حَفْصَةَ فَقَصَّتْهَا حَفْصَةُ عَلَى |
| هغه ټکړه ما آولوځولو سره هلته رسوي بيا ما دا خوب خپلې خور ام المؤمنين بي بي حفصې ته بيان |
| النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ إِنَّ أَخَاكِ رَجُلٌ |
| کړو او هغې د دې ذکر رسول الله صلى الله عليه وسلم ته وکړو نو حضور صلى الله عليه وسلم وفرمائيل حقيقت دا دی چې ستا |
| صَالِحٌ أَوْ إِنَّ عَبْدَ اللهِ رَجُلٌ صَالِحٌ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. |
| ورور نيک سړي دی يا دا الفاظ يي وفرمائيل چې عبد الله نيک سړي دی. [بخاري مسلم] |

### د حضرت عبد الله بن مسعود رضي الله عنه فضيلت

| |
|---|
| ﴿۲﴾ وَعَنْ حُذَيْفَةَ قَالَ إِنَّ أَشْبَهَ النَّاسِ دَلًّا وَسَمْتًا وَهَدْيًا |
| او حضرت حذيفه وايي چې په وقار ، ميانه روی او درست روئ کې د رسول الله صلى الله عليه وسلم سره د ټولو نه زيات مشابهت |
| بِرَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَابْنُ أُمِّ عَبْدٍ مِّنْ حِيْنَ |
| لرونکی سړی د ام عبد ځوی دی دهغه وقت نه چې دخپل کور نه بهر راوځي او تر هغه وقته پورې |
| يَخْرُجُ مِنْ بَيْتِهِ إِلٰى أَنْ يَّرْجِعَ إِلَيْهِ لَا نَدْرِيْ |
| چې خپل کور ته ځي د کور والو په منځ کې يعني په کور کې دا اهل او عيال سره هغه کوم حال کې |

| مَا يَصْنَعُ فِي أَهْلِهٖ إِذَا خَلَا . رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ . |
|---|
| وي دا مونږ ته معلومه نه ده. [بخاري] |

**توضیح** : **اشبه الناس**: یعني د حضور اکرم صَلَّی اللّٰہُ عَلَیْہِ وَسَلَّمَ سره د ټولو نه زیات مشابه وو.

**دلا**: په دال باندې زور دی په لام باندې شد دی په اصل کې خوی او عادت ته ویل کیږي. قاضی عیاض رَحِمَہُ اللّٰہُ فرمایي چې دلته د سنجیدګۍ او وقار په معنی سره دی.

**سمتا**: په سین باندې زور دی میم ساکن دی سیرت او عادت ته ویل کیږي مګر د قاضی عیاض د قول مطابق دلته د دینه په ټولو امورو کې میانه روی مراد ده.

**هدیا**: سیرت او حالت او هدایت و راهنمائی ته ویل کیږي، د قاضی عیاض د قول مطابق دلته دا لفظ د حسن سیرت سره په سیده لارې باندې تللو په معنی سره دی، شارحین د حدیث لیکي چې دا درې واړه الفاظ د معنی او مفهوم په اعتبار سره یو بل ته قریب دي او عام طور باندې د یو په بل باندې اطلاق کیږي.

**لابن ام عبد**: د حضرت عبد الله بن مسعود رَضِیَ اللّٰہُ عَنْہُ د مور نوم ام عبد وو، د ابن ام عبد څخه عبد الله بن مسعود مراد دی. د (لابن) په لفظ کې لام ابتدائیه د تأکید لپاره دی. **(من حین یخرج)** دا جار مجرور د دینه مخکې د اشبه لفظ سره متعلق دي، په دې جملې سره حضرت حذیفه رَضِیَ اللّٰہُ عَنْہُ دا ویل غواړي چې په دغو صفاتو کې د حضور صَلَّی اللّٰہُ عَلَیْہِ وَسَلَّمَ سره د هغه مشابهت تر هغه وخته پورې مسلسل جاری پاتې کیږي تر څو پورې به چې هغه زمونږ په مخ کې وو او تر څو پورې به چې هغه کورته داخل شوی نه وو، لیکن چې کله به خپل کور ته داخل شو او خالی به پاتې شو نو د دینه وروسته به مونږ نه پوهیدلو چې هغه په خپل کور کې د ننه څنګه اوسیږي؟ آیا په دې صفاتو باندې باقی پاتې کیږي او که نه؟ دا د غیب خبره ده په دې باندې الله نه پوهیږي مګر ظاهري ژوند د هغه ډیره ښه او پاکیزه وو او د نبی سره مشابه وو.

| ﴿۳﴾ وَعَنْ أَبِيْ مُوْسَى الْأَشْعَرِيِّ قَالَ قَدِمْتُ أَنَا وَأَخِيْ مِنَ الْيَمَنِ فَمَكَثْنَا |
|---|
| او حضرت ابو موسٰی اشعري رَضِیَ اللّٰہُ عَنْہُ وایي چې زه او څما ورور د یمن نه مدینې منورې ته راغلو نو |
| حِيْنًا مَا نَرٰى إِلَّا أَنَّ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ مَسْعُوْدٍ رَجُلٌ |
| دلته دربار نبوت باندې یوه موده مقیم وو په دې دوران کې مونږ همیشه دا خیال کولو چې عبد الله ابن مسعود رَضِیَ اللّٰہُ عَنْہُ |
| مِنْ أَهْلِ بَيْتِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِمَا نَرٰى مِنْ دُخُوْلِهٖ |
| د رسول الله صَلَّی اللّٰہُ عَلَیْہِ وَسَلَّمَ د کور والو نه یو سړی دی ځکه چې مونږ به هغه او د هغه والده |
| وَ دُخُوْلِ أُمِّهٖ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ . مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. |
| مور د رسول الله صَلَّی اللّٰہُ عَلَیْہِ وَسَلَّمَ په خدمت کی وخت بې وقته تلونکی راتلونکی لیدل. [بخاري مسلم] |

## هغه څلور صحابه رضي الله عنهم چې هغوئ نه د قرآن د زده کولو حکم وو

﴿۴﴾وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِسْتَقْرِءُوا

او حضرت عبد الله بن عمرو بن العاص نه روايت دى چې رسول كريم صلى الله عليه وسلم وفرمائيل قرآن د دې

الْقُرْآنَ مِنْ أَرْبَعَةٍ مِنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُودٍ وَسَالِمٍ مَوْلَى أَبِي حُذَيْفَةَ

څلورو سړو نه حاصلوئ او د دوئ نه يې وايې ۱ د عبد الله ابن مسعود رضي الله عنه ۲ د ابو حذيفه د آزاد كرده غلام سالم نه

وَأُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ وَمُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

۳ د ابي بن كعب نه ۴ او د معاذ بن جبل نه. [بخاري مسلم]

## د ابن مسعود رضي الله عنه عمار رضي الله عنه او حذيفه رضي الله عنه فضيلت

﴿۵﴾ وَعَنْ عَلْقَمَةَ قَالَ قَدِمْتُ الشَّامَ

او حضرت علقمه بيان كوي زه چې د شام ملک ته ورسيدم او د دمشق جامع مسجد كې حاضر شوم

فَصَلَّيْتُ رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ قلتَ اَللّٰهُمَّ يَسِّرْ لِي جَلِيسًا صَالِحًا

نو هلته مې دوه ركعاته مونځ وكړو بيا مې دعا وغوښتله چې اى الله! ماته يو نيک همنشين (ملگرى)

فَأَتَيْتُ قَوْمًا فَجَلَسْتُ إِلَيْهِمْ فَإِذَا شَيْخٌ قَدْ جَاءَ حَتَّى جَلَسَ إِلَى

ميسر كړې بيا زه يو مسجد كې ناست وم چې اچانک يو بزرگ راغى او څما په خواكې كې ناسته

جَنْبِي قُلْتُ مَنْ هٰذَا قَالُوا أَبُو الدَّرْدَاءِ

ما خلقو نه پوښتنه وكړه دا بزرگ څوک دى هغوئ راته وښودل دا مشهور صحابي حضرت ابو درداء رضي الله عنه

قُلْتُ إِنِّي دَعَوْتُ اللهَ أَنْ يُيَسِّرَ لِي

دى په دې او ريدو سره د خوشحالى نه حضرت ابو درداء ته مې وويل چې ما د الله تعالى نه دعا غوښتې

جَلِيسًا صَالِحًا فَيَسَّرَكَ لِي

وه چې ماته يو نيک همنشين ميسر كړي نو الله ستا سو په شان نيک همنشين راته ميسر كړو په

فَقَالَ مَنْ أَنْتَ قُلْتُ

حضرت ابو درداء رضي الله عنه ما نه پوښتنه وكړه ته څوک يې او د كوم ځاى نه راغلى يې؟ ما جواب وركړو زه د

مِنْ أَهْلِ الْكُوفَةِ قَالَ أَوَلَيْسَ عِنْدَكُمْ

كوفې او سيدونكى يم او د هغه ځاى نه راغلى يم حضرت ابو درداء وويل آيا ستا سو سره په كوفه كې

ابْنُ أُمِّ عَبْدٍ صَاحِبُ النَّعْلَيْنِ وَالْوِسَادَةِ

ابن ام عبد يعني عبد الله ابن مسعود نشته چې هغه ته د رسول الله صلى الله عليه وسلم د پېزار تكيه او بتک ساتلو

وَالْمُطَهَّرَةِ وَفِيْكُمُ الَّذِيْ أَجَارَهُ اللهُ مِنَ الشَّيْطَانِ
شرف حاصل وو آيا ستا سو سره هغه صاحب نشته چې هغه ته الله د خپل پيغمبر په ژبه مبارکه د شيطان
عَلٰى لِسَانِ نَبِيِّهِ يَعْنِيْ عَمَّارًا أَوْ لَيْسَ فِيْكُمْ
نه پناه او امان عطاء کړی يعني عمار او آيا تاسو کې هغه صاحب نشته چې هغه ته د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ
صَاحِبُ السِّرِّ الَّذِيْ لَا يَعْلَمُهُ غَيْرُهُ يَعْنِيْ حُذَيْفَةَ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ
د هغه صاحب راز کې دو شرف حاصل دی چې هغه نه ماسوا بل چا ته نه دی معلوم يعني حذيفه. [بخاري]

**توضيح**: (من انت) ای من این انت ته د کوم ځای څخه راغلی یې او ته څوک یې؟

**اوليس فيکم**: حضرت ابو الدرداء په خپل جواب کې هغه سائل ته وويل چې په کوفه کې دومره غټې هستۍ موجودې دي، د هغوی په موجودګۍ کې زما مجلس غنيمت ګڼل په عقل کې نه راځي، هغوی خو ډير غټ خلک دي، تا ته د هغوی څخه فيض حاصلول پکار دي، په دې جواب کې د متعلم لپاره دا ادب بيان شوی دی چې هغه د ټولو نه مخکې د خپل کلي او د خپل ښار د لوی عالم نه علم حاصل کړي او بيا بل ځای ته سفر وکړي.

## د حضرت بلال رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او د ام سليم رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فضيلت

﴿۶﴾ وَعَنْ جَابِرٍ أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ أُرِيْتُ الْجَنَّةَ
او حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی چې رسول کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمائيل ما ته جنت وښودل شو نو ما په
فَرَأَيْتُ امْرَأَةَ أَبِيْ طَلْحَةَ وَسَمِعْتُ خَشْخَشَةً
هغه کې د ابو طلحه ښځه وليده بيا ما ځان نه مخکې د قدمونو اواز واوريده څه ګورم چې بلال دی
أَمَامِيْ فَإِذَا بِلَالٌ. رَوَاهُ مُسْلِمٌ.
چې مخکې مخکې په جنت کې روان دی. [مسلم]

## کوم مسلمان ته به د حقارت په نظر سره نشي کتلی

﴿۷﴾ وَعَنْ سَعْدٍ قَالَ كُنَّا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سِتَّةَ
او حضرت سعد بن ابي وقاص چې عشره مبشرو نه دی بيان کوي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره مونږ شپږ
نَفَرٍ فَقَالَ الْمُشْرِكُوْنَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ
سړي وو د مکې مشرکې نو کې بعضې سردارانو د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه مطالبه وکړه چې تاسو دا خلک
أُطْرُدْ هٰؤُلَاءِ لَا يَجْتَرِءُوْنَ عَلَيْنَا قَالَ وَكُنْتُ
لرې کړئ دې لپاره چې دغه خلک په مونږ جرئ اوزړه ور نشي حضرت سعد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي هغه شپږ سړو

أَنَا وَابْنُ مَسْعُوْدٍ وَرَجُلٌ مِّنْ هُذَيْلٍ وَبِلَالٌ وَرَجُلَانِ
کې يو خو زه وم يو عبد الله بن مسعود وو يو سړی د قبيلې هذيل وو او دوه سړي نور وو چې د هغوئ
لَسْتُ أُسَمِّيْهِمَا فَوَقَعَ فِيْ نَفْسِ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ
نومونه زه نه ښايم بهرحال د هغه سردارانو مطالبې اوريدو سره د رسول الله ﷺ په خيال کې هغه
مَا شَاءَ اللهُ أَنْ يَّقَعَ فَحَدَّثَ نَفْسَهُ
خبره راغله کومه چې الله غوښتله چې راشي بيا رسول الله ﷺ په دې باره کې په سوچ کې وو چې
فَأَنْزَلَ اللهُ. وَلَا تَطْرُدِ الَّذِيْنَ يَدْعُوْنَ رَبَّهُمْ بِالْغَدَاةِ وَالْعَشِيِّ
دا آيت نازل شو: {وَلَا تَطْرُدِ.} يعنې دا خلق د ځان نه مه لرې کوه چې سهار ماښام خپل رب يادوي
يُرِيْدُوْنَ وَجْهَهُ. رَوَاهُ مُسْلِمٌ.
او ددې عبادت او ذکر نه د دوئ مقصد د خپل رب خوشنودي نه ماسوا نور هيڅ نه دي. [مسلم]

**توضيح:** اطرد: دا امر صيغه ده د شړلو په معنی سره دی.

**لايجترؤن:** يعنې ستا په مجلس کې کچيرې دغه خلک وي او مونږ ستا سره د ايمان متعلق خبري وکړو نو دا خلک به هم خبري وکړي، که خبري هم ونکړي بيا به هم زمونږ سره په مجلس کې برابر ناست وي، مونږ نه غواړو چې دغه حقير خلک په خبره کولو يا مجلس کې زمونږ سره د يوځای کيناستلو جرأت وکړي.

**ورجلان لست اسميهما:** يعنې دوه کسان نور هم وو مګر زه د هغو نوم اخيستل نه غواړم، علماؤ ليکلي دي چې دغه دوه کسان حضرت خباب او حضرت عمار وو، حضرت سعد د کوم مصلحت په وجه د هغو د نوم اخيستلو نه پرهيز وفرمايلو.

**فحدث:** يعنې د حضور اکرم ﷺ په قلب مبارک کې دا خيال تير شو چې کچيرې ددې فقيرانو په لرې کولو او شړلو سره د کفارو مشران مسلمانان کيدی شي نو آيا هغوی د مجلس نه ليرې کيدلی شي او که نه؟ او داسې کول پکار دي او که نه؟ په دغه موقع باندې د قرآن دا آيا تونه نازل شول ﴿ولاتطرد الذين يدعون ربهم بالغداة والعشي يريدون وجهه الخ﴾.

## د حضرت ابوموسی اشعري رضي الله عنه خوش اوازي

﴿۸﴾ وَعَنْ أَبِيْ مُوْسٰى أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَهُ يَا أَبَا مُوْسٰى
او حضرت ابو موسیٰ اشعري نه روايت دی چې رسول الله ﷺ هغه ته وفرمائيل ای ابو موسیٰ رضي الله عنه تاته
لَقَدْ أُعْطِيْتَ مِزْمَارًا مِّنْ مَزَامِيْرِ آلِ دَاوُدَ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.
داسې خوش اوازي عطاء شوې ده چې د داؤد عليه السلام د خوش اوازي يوه حصه ده. [بخاري مسلم]

**توضیح : مزمار:** په اصل کې مزمار د سرود هغه ساز ته ویل کیږي چې د دریا او طنبور سره وي مګر دلته صرف خوش آوازي او خوش الحاني مراد ده .

**من آل داؤد:** په دې جمله کې د آل لفظ زائد دی چې دیته مقحم ویل کیږي ، ځکه چې خوش آوازي الله تعالی حضرت داؤد عَلَیْهِ السَّلَامُ ته ورکړې وه آل داؤد ته یې نه وه ورکړې .

## د قرآن حافظان صحابه رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ

| |
|---|
| ﴿۹﴾ وَعَنْ اَنَسٍ قَالَ جَمَعَ الْقُرْآنَ عَلٰى عَهْدِ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَرْبَعَةٌ : |
| او حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په زمانه کې چې کومو څلورو صحابو قرآن جمع کړو |
| أُبَيُّ بْنُ كَعْبٍ وَمُعَاذُ بْنُ جَبَلٍ وَزَيْدُ بْنُ ثَابِتٍ وَأَبُوْ زَيْدٍ |
| یعني پوره قرآن یې حفظ یاد وو هغه دادي: ۱ ابي بن کعب ۲ معاذ بن جبل ۳ زید بن ثابت ۴ او ابوزید |
| قِيْلَ لِأَنَسٍ مَنْ أَبُوْ زَيْدٍ قَالَ أَحَدُ عُمُوْمَتِيْ . مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. |
| حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه پوښتنه وشوه چې ابوزید څوک دی نو هغه وویل ځما په ترونو کې یو دی. [بخاري مسلم] |

**توضیح : جمع القرآن:** یعني چې قرآن یې مکمل طور باندې حفظ کړی وو هغه څلور کسان وو، دا دیو خاص شهرت په وجه سره ویل شوي دي ولې د حضور اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په زمانه کې د صحابه کرامو لوی تعداد د قرآن حافظان وو، په دې کلام کې حصر هم نشته او نه د دې مفهوم مخالف اخیستل کیدلی شي چې بل کوم حافظ نه وو . د صحیح احادیثو څخه ثابت دي چې کوم اویا صحابه او قراء چې په بیر معونه کې شهیدان کړی شول هغوی د قرآن حافظان وو ، په جنګ یمامه کې په سلهاؤ صحابه د قرآن حافظان شهیدان شوي وو ، همدارنګه خلفاء راشدین حافظان قرآن وو لهذا دلته حصر نشته .

**عمومتي:** عم طرفته منسوب دی مراد کاکا دی .

## د مصعب بن عمیر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فضیلت

| |
|---|
| ﴿۱۰﴾ وَعَنْ خَبَّابِ بْنِ الْاَرَتِّ قَالَ هَاجَرْنَا مَعَ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَبْتَغِيْ وَجْهَ اللهِ تَعَالٰى |
| او حضرت خباب بن ارت رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره ځمونږ هجرت کول د الله تعالی د رضا |
| فَوَقَعَ أَجْرُنَا عَلَى اللهِ |
| او خوشحالۍ د جذبې نه علاوه نور څه مقصد نه لرلو ځمونږ د دې عمل اجر او ثواب د الله تعالی په نزد |
| فَمِنَّا مَنْ مَضٰى لَمْ يَأْكُلْ مِنْ أَجْرِهٖ شَيْئًا |
| ثابت او قائم شو په مونږ کې بعضي خلق خو هغه دي چې د دنیا څه اجر او انعام پیدا کیدو نه بغیر |
| مِنْهُمْ مُصْعَبُ بْنُ عُمَيْرٍ قُتِلَ يَوْمَ أُحُدٍ |
| د دنیا نه رخصت شول چې په هغوئ کې یو مصعب بن عمیر دی هغه د احد په ورځ شهید شو او د هغه |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| فَلَمْ | يُوْجَدْ | لَهُ | مَا | يُكَفَّنُ | فِيْهِ |

د پاره څه داسې کپړه میسر نه شوه چې په هغه کې هغه پوره طور سره کفن شي د هغه په جسم د پړانګ

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| إِلَّا | نَمِرَةٌ | فَكُنَّا | إِذَا | غَطَّيْنَا |

د څرمن په شان سپینو او تورو کرښو والا صرف یو کمبل وو او هغه هم دومره مختصر چې مونږ به

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| رَأْسَهُ | خَرَجَتْ | رِجْلَاهُ | وَإِذَا | غَطَّيْنَا | رِجْلَيْهِ |

هغه کمبل سره د کفن کولو په وخت د مصعب سر پټولو نو پښې به یې ښکاره پاتې کیدې او که پښې

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| خَرَجَ | رَأْسُهُ | فَقَالَ | النَّبِيُّ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ |

به موږ پټولې نو سر به یې بربنډ پاتې کې دې نو رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمائیل چې کمبل سره

| | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| غَطُّوْا | بِهَا | رَأْسَهُ | وَاجْعَلُوْا | عَلَى | رِجْلَيْهِ | مِنَ | الْإِذْخِرِ | وَمِنَّا | مَنْ | أَيْنَعَتْ لَهُ |

یې سر پټ کړو او پښو باندې ورته اذخر واښه واچوئ او په مونږ کې بعضې خلق هغه دي چې د هغوی

ثَمَرَتُهُ فَهُوَ يَهْدِبُهَا. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

میوه پخه شوه او هغوئ هغه میوه شوکوي. [بخاري مسلم]

**توضیح**: اینعت: د باب افعال څخه ایناع د میوو پخیدلو ته ویل کیږي، مراد د فوائدو او منافعو حصول دی. یهدبها: د ضرب او نصر څخه د میوو شلولو او په انتخاب سره کټ کولو ته ویل کیږي.

حضرت مصعب بن عمیر قریشی، عبدری. د اکابر صحابه کرامو څخه وو، بلکل په ابتداء کې یې اسلام قبول کړی وو، حبشې ته یې هجرت وکړلو بیا یې دویم هجرت مدینې منورې ته وفرمایلو د حضور ﷺ په حکم سره مدینې منورې ته لاړو او هلته یې د اسلام دین خور کړلو، د حضور ﷺ د راتګ نه مخکې یې اول په مدینه منوره کې د جمعې لمونځ اداء کړلو، په مکه کې به یې شاهانه لباس اغوستلو، د اسلام د قبلولو نه وروسته یې فقیرانه زندګي غوره کړه. په جنګ احد کې د حضور ﷺ په دفاع کې ولاړ وو چې شهید شو.

الاذخر: دا یو قسم بوټی دی چې هغه اهنګر په خپلې پټۍ کې ږدي او اورورباندې بلوي، خلک یې په قبرونو کې د مړي لاندې اچوي او په مسجدونو کې یې د لمونځ ګذارو لپاره اچوي، په پښتو کې دیته (بروزه) وایې شاید هغه وي په کالا ډاکه کې ما دا واښه لیدلي دي، دا د بروزې سره مشابه یو قسم واښه دي (از راقم).

## د حضرت سعد بن معاذ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فضیلت

﴿۱۱﴾ وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ اهْتَزَّ الْعَرْشُ لِمَوْتِ سَعْدِ بْنِ مُعَاذٍ وَفِيْ

او حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي ما د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه واوریدل د سعد بن معاذ په مرګ عرش وخوزیدی

| رِوَايَةٍ اِهْتَزَّ عَرْشُ الرَّحْمٰنِ بِمَوْتِ سَعْدِبْنِ مُعَاذٍ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. |
|---|
| او په یوه روایت کې داسې دي چې د سعد بن معاذ په مرګ د رحمٰن عرش وخوزیده. [بخاري مسلم] |

**توضیح :** اهتز عرش الرحمن: اهتزاز خوزیدو ته ویل کیږي، د حضرت سعد رضي الله عنه په شهادت باندې عرش د خوشحالۍ نه خوزیدو چې اوس به د سعد مبارک روح پاس آسمانونو ته راځي، د دینه د حضرت سعد رضي الله عنه لویه شان معلومیږي، هغه د انصارو سردار وو، په جنګ خندق کې په هغه باندې غشی لګیدلی وو د بنو قریظو په باره کې حضرت سعد رضي الله عنه فیصله کړې وه، په سنه ۵ هـ کې شهید شو او په بقیع غرقد کې دفن کړی شو، د هغه په جنازه کې اویا زره ملائکې راغلې وې.

| ﴿۱۲﴾ وَعَنِ الْبَرَاءِ قَالَ أُهْدِيَتْ لِرَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حُلَّةُ حَرِيْرٍ |
|---|
| او حضرت براء بن عازب رضي الله عنه بیان کوي چې د رسول الله صلی الله علیه وسلم په خدمت کې د یوې ریښمي کپړې |
| فَجَعَلَ أَصْحَابُهُ يَمَسُّوْنَهَا |
| جوړه بطور هدیه پیش شوه نو د حضور صلی الله علیه وسلم صحابو رضي الله عنهم په هغه جوړې لاس ګرځولو دا ګرځولو |
| وَيَتَعَجَّبُوْنَ مِنْ لِيْنِهَا فَقَالَ أَتَعْجَبُوْنَ |
| سره د هغه نرم والي او پوست والي باندې د تعجب او حیرانتیا اظهار کول شروع کړل حضور صلی الله علیه وسلم |
| مِنْ لِيْنِ هٰذِهٖ لَمَنَادِيْلُ |
| هغوئ ته وفرمائیل تا سو د دې کپړې په نرمي او پوست والي څه تعجب کوئ په جنت کې چې |
| سَعْدِ بْنِ مُعَاذٍ فِي الْجَنَّةِ خَيْرٌ مِّنْهَا وَأَلْيَنُ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. |
| سعد رضي الله عنه ته کوم دسمالونه حاصل شوي دي هغه دې نه زیات نرم او پاسته دي. [بخاري مسلم] |

## د حضرت انس رضي الله عنه په حق کې مستجابه دعا

| ﴿۱۳﴾ وَعَنْ أُمِّ سُلَيْمٍ أَنَّهَا قَالَتْ يَا رَسُوْلَ اللهِ أَنَسٌ خَادِمُكَ |
|---|
| او بي بي ام سلیم رضي الله عنها یارسول الله! دا انس دی چې ستاسو خادم جوړ ولو دپاره یې ستا سو |
| اُدْعُ اللهَ لَهُ قَالَ اللّٰهُمَّ أَكْثِرْ مَالَهُ وَوَلَدَهُ وَبَارِكْ لَهُ فِيْمَا |
| خدمت اقدس کې پیش کوم ده ته دعا وفرمایي نو حضور صلی الله علیه وسلم ورته دا دعا وفرمائیله خدایه! د |
| أَعْطَيْتَهُ قَالَ أَنَسٌ فَوَاللهِ إِنَّ مَالِيْ لَكَثِيْرٌ |
| انس رضي الله عنه مال زیات کړې دده اولاد زیات کړې او د خپل طرف نه چې کوم نعمتونه تا ده ته عطاء کړې |
| وَإِنَّ وَلَدِيْ وَوَلَدَ وَلَدِيْ لَيَتَعَادُّوْنَ عَلَى. |
| دي په هغه کې برکت واچوې انس رضي الله عنه وایي قسم په الله د حضور صلی الله علیه وسلم د دعاء په سبب |

| نَحْوِ | الْمِائَةِ | الْيَوْمَ. | مُتَّفَقٌ | عَلَيْهِ |
|---|---|---|---|---|
| څما مال ډير زيات دی او څما اولاد او څما د اولاد اولاد نن سلو نه زيات دي . [بخاري مسلم] | | | | |

**توضيح**: ليتعادون: د تجاوز په معنی سره دی.

**على نحو المأة اليوم**: يعني نن زما اولاد د سلو نه څه زيات دي، حضرت انس رضي الله عنه چې څه وخت دا تعداد بيان کړی دی د هغه نه وروسته هم د هغه د اولاد سلسله جاري وه لکه هغه خپله په يو روايت کې فرمايي چې الله تعالى ماته کوم صلبي اولاد عطاء کړی دی د هغو تعداد يو سل پنځه ويشت ۱۲۵ دی د دينه علاوه دوه بچيان دي، په يو بل روايت کې حضرت انس رضي الله عنه فرمايي چې په بصره کې د حجاج بن يوسف د راتګ نه مخکې مخکې ما د خپل اولاد څخه ۱۲۰ په خپل لاس دفن کړي وو، او د مال د کثرت په باره کې هغه فرمايي چې د ميوو دومره کثرت وو چې زما باغونو به په کال کې دوه ځلې ميوه ورکوله. د حضرت انس رضي الله عنه د اولاد د تعداد په باره کې د راويانو په مينځ کې اختلاف دی په دغه وجه د پريشانۍ ضرورت نشته.

## د حضرت عبد الله بن سلام رضي الله عنه فضيلت

| ﴿۱۴﴾ وَعَنْ سَعْدِ بْنِ أَبِيْ وَقَّاصٍ قَالَ مَا سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ |
|---|
| او حضرت سعد بن ابي وقاص رضي الله عنه وايي ما د عبد الله بن سلام رضي الله عنه نه علاوه د يو بل سړي باره کې چې په |
| لِأَحَدٍ يَمْشِيْ عَلَى وَجْهِ الْأَرْضِ إِنَّهُ مِنْ أَهْلِ الْجَنَّةِ إِلَّا لِعَبْدِ اللهِ بْنِ سَلَامٍ . مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. |
| ځمکه باندې ګرځي د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه دا فرمائيل نه دي اوريدلي چې هغه جنتي دی. [بخاري مسلم] |

**توضيح**: **يمشي على وجه الارض**: يعني چې په دې وخت کې ژوندی وي او د ځمکې په مخ ژوندی ګرځي.

**الا لعبد الله بن سلام**: يعني د عبد الله بن سلام نه علاوه ژوندی ګرځيدونکی کس په دې وخت کې نشته چې هغه ته حضور ﷺ د جنت بشارت ورکړی وي. دلته دا سوال راپورته کيږي چې د عبد الله بن سلام نه علاوه ډير صحابه داسې دي چې هغو ته د جنت بشارت د هغو په ژوند کې ورکړی شوی وو، خاصکر عشره مبشره خو مشهور وو نو حضرت سعد رضي الله عنه په عبد الله بن سلام کې حصر کولو سره نورولې ذکر نکړل؟ د دې جواب دا دی چې شايد په دغه وخت کې عشره مبشرو ته د جنت زيری ورکړی شوی نه وو او عبد الله بن سلام ته ورکړی شوی وو. دويم جواب دا دی چې د عبد الله بن سلام د جنت بشارت اجمالی او استنباطی دی، دا د عشره مبشره پشان صريحی بشارت نه دی د راتلونکي حديث په قصه کې د استنباطی بشارت تفصيل دی لهذا د عشره مبشره د بشارت سره يې تعارض نشته.

دريم جواب دا دی چې حضرت سعد د خپل سماعت نفی کړې ده، په دې سره د نورو د بشارت نفی نه راځي.

## د حضرت عبد الله بن سلام رضي الله عنه خوب او هغه ته د جنت بشارت

﴿۱۵﴾ وَ عَنْ قَيْسِ بْنِ عُبَادٍ قَالَ كُنْتُ جَالِسًا فِي مَسْجِدِ الْمَدِيْنَةِ
او حضرت قیس بن عباد بیان کوي زه یوه ورځ د مدینې په مسجد کې ناست وم یو صاحب مسجد ته
فَدَخَلَ رَجُلٌ عَلَى وَجْهِهِ أَثَرُ الْخُشُوْعِ فَقَالُوْا هٰذَا رَجُلٌ
راغلي چې د هغه د مخ نه خشوع ښکاره وه کې بعضو وویل چې دا صاحب د جنت والؤ نه دی هغه
مِنْ أَهْلِ الْجَنَّةِ فَصَلّٰى رَكْعَتَيْنِ تَجَوَّزَ فِيْهِمَا ثُمَّ خَرَجَ
دوه رکعاته مونځ وکړو او دواړه رکعاته یې مختصر وکړل بیا د مسجد نه بهر اووتلو زه هم د مسجد
وَتَبِعْتُهُ فَقُلْتُ إِنَّكَ حِيْنَ دَخَلْتَ الْمَسْجِدَ
نه وتلو سره هغه پسې روسته روان شوم او یو ځاي ته رسیدو سره هغه ته مې وویل چې کوم
قَالُوْا هٰذَا رَجُلٌ مِنْ أَهْلِ الْجَنَّةِ
وقت تا سو په مسجد کې داخل شوی وې نو بعضې خلقو ویلي وه چې دا صاحب جنتي دی هغه
قَالَ وَاللهِ مَا يَنْبَغِيْ لِأَحَدٍ اَنْ يَقُوْلَ مَا لَا يَعْلَمُ
صاحب وویل په الله قسم چې زه د دې تصدیق نشم کولی ځکه چې یو سړي د پاره دا مناسب نه دي
فَسَأُحَدِّثُكَ لِمَ ذَاكَ رَأَيْتُ رُؤْيَا عَلٰى عَهْدِ
چې هغه هغه خبره وکړي چې هغې باندې نه پوهیږي او زه تا ته د دې وجه ښایم د حضور صلی الله علیه وسلم په
رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَصَصْتُهَا عَلَيْهِ
زمانه کې یوه ورځ ما یو خوب لیدلی وو او هغه خوب ما رسول الله ! ته بیان کړی وو ما په خوب کې
وَرَأَيْتُ كَأَنِّيْ فِيْ رَوْضَةٍ ذَكَرَ مِنْ سَعَتِهَا وَخُضْرَتِهَا
لیدلي وو چې زه ګویا یو باغ کې یم بیا هغه صاحب د هغه باغ د کشادګي او تروتازګي او شادابي
وَسَطَهَا عَمُوْدٌ مِنْ حَدِيْدٍ أَسْفَلُهُ فِي الْأَرْضِ
ذکر وکړو او د هغه باغ په منځ کې د اوسپني یوه ستن وه چې د هغې لاندې سر په ځمکه کې دننه
وَأَعْلَاهُ فِي السَّمَاءِ فِيْ أَعْلَاهُ عُرْوَةٌ فَقِيْلَ لِيَ ارْقَهْ
دی او د هغه بره سر آسمان کې دی او د هغه ستني بره یوه حلقه ده بیا ما ته وویل شو چې پورته
فَقُلْتُ لَا أَسْتَطِيْعُ فَأَتَانِيْ مِنْصَفٌ فَرَفَعَ ثِيَابِيْ مِنْ
وخیژه ما ورته وویل زه د ختلو طاقت نه لرم بیا یو خادم ما ته راغلي چې هغه د روسته نه ځما کپړې

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| خَلْفِيْ | فَرَقِيْتُ | حَتّٰى | كُنْتُ | فِيْ | أَعْلَاهُ | فَأَخَذْتُ | |

پورته کړي او زه پورته وختم تردې پورې چې د هغه ستني آخري بلندۍ ته ورسیدم او هغه حلقه مي

بِالْعُرْوَةِ فَقِيْلَ اسْتَمْسِكْ فَاسْتَيْقَظْتُ

ونیوله بیا ماته وویل شوه چې دا حلقه مضبوطه ونیسه بیا څما سترګي وغړیدي په داسي حال کې چې

وَإِنَّهَا لَفِيْ يَدِيْ فَقَصَصْتُهَا عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

هغه حلقه څما په لاس کې وه هرکله چې د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مخکې ما دا خوب بیان کړونو حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

فَقَالَ تِلْكَ الرَّوْضَةُ اَلْإِسْلَامُ وَذٰلِكَ الْعَمُوْدُ عَمُوْدُ الْإِسْلَامِ

راته وفرمائیل هغه باغ دین اسلام دی د هغه خوب تعبیر او هغه ستن د اسلام ستن ده او هغه حلقه چې

وَتِلْكَ الْعُرْوَةُ عُرْوَةُ الْوُثْقٰى فَأَنْتَ عَلَى

تا ولیده او ودي نیوله عروه وثقی ده نو په دې خوب کې دي طرف ته اشاره ده چې ته به د خپل ژوند آخري لمحې

الْإِسْلَامِ حَتّٰى تَمُوْتَ وَذٰلِكَ الرَّجُلُ عَبْدُ اللهِ بْنُ سَلَامٍ . مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

پورې په اسلام ثابت یې او قیس بن عباد وایي چې هغه صاحب حضرت عبد الله بن سلام رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وو. [بخاري مسلم]

**توضیح**: اثر الخشوع: یعني د تقوی او د خوف خدا اثر ښکاره وو.

**تجوز فیها**: یعني په اختصار سره یې دوه رکعته لمونځ ژر ژر وکړو.

**ماینبغي**: یعني د هیچا لپاره دا مناسبه نه ده چې د آخرت په باره کې کومه قطعی فیصله وکړي چې فلانی شخص جنتی دی یا دوزخي دی، دا د هغه د علم نه بهر دی.

**عروة**: حلقې ته ویل کیږي یعني د هغې ستنې په آخر کې یوه حلقه وه.

**ارقه**: یعني په دې ستنې باندې وخیژه، دا د **سمع یسمع** نه د امر صیغه ده او هاء د سکتې لپاره ده، یا هاء د ضمیر ده چې عمود ته راجع کیږي.

**منصف**: په میم باندې زیر دی نون ساکن او په صاد باندې زور دی نوعمر او ځوان غلام ته ویل کیږي.

## دخطیب صحابه ثابت بن قیس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فضیلت

﴿۱۶﴾ وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ كَانَ ثَابِتُ بْنُ قَيْسِ بْنِ شَمَّاسٍ خَطِيْبَ الْأَنْصَارِ

او حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ بیان کوي چې ثابت بن قیس بن شماس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د انصارو خطیب وو هرکله

فَلَمَّا نَزَلَتْ (يَا أَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَرْفَعُوْا أَصْوَاتَكُمْ فَوْقَ صَوْتِ النَّبِيِّ)

چې دا آیت نازل شو يَا أَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا الاية ای ایمان والاوو خپل اوازونه د نبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په اواز باندې

إِلَى آخِرِ الْآيَةِ جَلَسَ ثَابِتٌ فِي بَيْتِهِ وَاخْتَبَسَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ
مه پورته کوئ الخ نو ثابت رضي الله عنه خپل کورکې کې ناسته او د نبي صلی الله علیه وسلم په خدمت کې تلل راتلل

فَسَأَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَعْدَ بْنَ مُعَاذٍ فَقَالَ
يې بند کړل رسول الله صلی الله علیه وسلم يوه ورځ سعد بن معاذ رضي الله عنه نه وکړه ثابت رضي الله عنه ته څه شوي دي آيا

مَا شَأْنُ ثَابِتٍ أَيَشْتَكِي فَأَتَاهُ سَعْدٌ فَذَكَرَ لَهُ قَوْلَ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ
هغه ناجوړه دی؟ سعد رضي الله عنه چې ثابت رضي الله عنه ته ورسيده او د هغه مخکې يې د رسول الله صلی الله علیه وسلم

فَقَالَ ثَابِتٌ أُنْزِلَتْ هٰذِهِ الْآيَةُ وَلَقَدْ
الفاظ نقل کړل نو ثابت رضي الله عنه وويل دا آيات: يٰأَيُّهَا الَّذِينَ اٰمَنُوا الخ نازل شوی دي چې د حضور صلی الله علیه وسلم

عَلِمْتُمْ أَنِّي مِنْ أَرْفَعِكُمْ صَوْتًا عَلَى
مخکې بلند اواز خبرو اترو نه منع کوي او ته پوهيږې چې په تاسو کې د ټولو نه زيات ځما اواز د

رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَنَا مِنْ أَهْلِ النَّارِ فَذَكَرَ ذٰلِكَ سَعْدٌ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ
رسول الله صلی الله علیه وسلم د اواز نه پورته دی نو زه خو دوزخي يم سعد رضي الله عنه راتلو سره رسول الله صلی الله علیه وسلم

فَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَلْ هُوَ مِنْ أَهْلِ الْجَنَّةِ . رَوَاهُ مُسْلِمٌ.
ته د ثابت رضي الله عنه الفاظ نقل کړل نو نبي صلی الله علیه وسلم وفرمائيل داسي نه ده بلکه ثابت رضي الله عنه خو جنتي دی. [مسلم]

**توضيح**: ثابت بن قيس رضي الله عنه د صحابو خطيب ؤ طبعي طور باندې د هغه آواز اوچت وو لهجه يې هم درنه وه په دغه وجه هغه ددې آيت د نزول نه وروسته ويريده او په کور کښيناسته چې زه خو تباه شوم، په دې باندې حضور صلی الله علیه وسلم هغه ته د جنت بشارت واورولو . په حديث کې په ظاهره دا اشکال دی چې حضرت معاذ رضي الله عنه چې ددې حديث راوی دی په سنه ۵ ه کې وفات شوی وو او دا آيت په سنه ۹ ه کې نازل شوی دی نو دغه واقعه هغه څنګه بيانوي ؟ ددې جواب دا دی چې د آيت دغه حصه مخکې نازله شوې وه او د ﴿يا ايها الذين امنوا لاتقدموا الخ﴾ چې کومه حصه ده هغه وروسته په نهمه هجری کې نازله شوې ده.

## د حضرت سلمان فارسي رضي الله عنه فضيلت

﴿۱۷﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ كُنَّا جُلُوْسًا عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذْ نَزَلَتْ
او حضرت ابو هريره رضي الله عنه بيان وکړو مونږ رسول الله صلی الله علیه وسلم سره ناست وو چې اچانک سورة جمعه

سُوْرَةُ الْجُمُعَةِ فَلَمَّا نَزَلَتْ وَآخَرِيْنَ مِنْهُمْ لَمَّا
نازل شو او کوم وقت چې دا آيت راغی : ( وَاٰخَرِيْنَ مِنْهُمْ لَمَّا يَلْحَقُوْا بِهِمْ ) او په هغوئ کې څه نور خلق

يَلْحَقُوْا بِهِمْ قَالُوْا مَنْ هٰؤُلَآءِ يَا رَسُوْلَ اللهِ قَالَ

هغه دي چې اوس لا هغوئ سره نه دي يو ځاي شوي نو صحابو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ پوښتنه وکړه يارسول الله!

وَفِيْنَا سَلْمَانُ الْفَارِسِيُّ قَالَ

هغه کوم خلق دي چې اوس لا هغوئ سره نه دي يو ځاي شوي او حضرت ابوهريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي هغه

فَوَضَعَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَدَهُ عَلَى سَلْمَانَ

وقت ځمونږ په منځ کې سلمان فارسي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هم وو رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د صحابو دې سوال اوريدو

ثُمَّ قَالَ لَوْ كَانَ الْإِيْمَانُ عِنْدَ الثُّرَيَّا

سره خپل لاس مبارک په سلمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ باندې کيخوده او بيايي وفرمائيل که ايمان ثريّا ستورى

لَنَالَهُ رِجَالٌ مِّنْ هٰؤُلَآءِ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

باندې هم وي نو بلا شبه په دې خلقو کې به ډيرو هغه پيدا کړي او حاصل کړي وو. [بخاري مسلم]

**توضيح**: **اذا نزلت**: يعنې د سورة جمعه آيت نمبر ۳ چې کله نازل شو چې په دې کې آينده راتلونکي خلک د صحابه کرامو په صفاتو کې شامل کړى شوي دي، ټول آيت داسې دى ﴿**وَآخَرِينَ مِنْهُمْ لَمَّا يَلْحَقُوا بِهِمْ وَهُوَ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ**﴾ په دې باره کې صحابه کرامو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ پوښتنه وکړه چې يارسول الله! دا کوم خلک دي چې هغوى زمونږ په صفاتو کې شامل کړى شوي دي؟ حضور ﷺ د حضرت سلمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ طرفته اشاره وفرمايله چې دده د اولاد ځخه به دغه خلک وي.

**الثريا**: کهکشان ستورو ته ثريا ويل کيږي په اوچتوالى کې د هغو سره تشبيه ورکولى کيږي.

حضرت سلمان فارسى رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د فارس د يو ښار (رامهرمز) د اوسيدونکو سره تعلق لرلو، مذهبا مجوسى وو د هغه پلار لوى جاګيردار او د ايران د آتشکده ساتونکى وو، د هغه اسلامى نوم سلمان دى او کنيت يې ابوعبدالله دى، د پلار د مذهب سره يې نفرت وو و تښتيده او يهودى شو بيا عيسائى شو، د حق په تلاش کې به يې د خپل استاد نه معلومات حاصلولو هغه ده ته وويل چې اوس هدايت د دنيا نه رخصت شوى دى، د هدايت نوې مناره به د حجاز ځخه روښانه کيږي، ته مدينې ته لاړ شه او هلته د نبى آخرزمان د راتګ انتظار کوه. د هغه د نبوت نښه يوه خو د ختم نبوت مهر دى او دويمه علامه يې دا ده چې هغه به صدقه نه قبلوي. مدينې ته روان شو په لاره کې ځو ظالمانو هغه ونيوه او غلام يې جوړ کړلو او د مدينې په يهودو باندې يې خرڅ کړو، په خپله فرمايي چې زه د لسو بادارانو په لاسونو کې خرڅ شوى يمه. حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغه په اهل بيتو کې شامل کړلو، هغه به خپل ځان ته سلمان الاسلام ويلو، حضور اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته راغى صدقه يې راوړه، حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغه پخپله ونخوړه صحابو ته يې ورکړه دويمه ورځ يې تحفه راوړه حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ پخپله هم وخوړه او په نورو يې هم وخوړه، سلمان فارسى رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مهر نبوت هم وکتلو نو مسلمان شو، د هغه مولى يهودى هغه مکاتب وګرځولو مګر بدل د کتابت

يې دا كيښودلو چې د كجورو سل ونې كښينوه چې كله په هغو كې ميوه راشي ته به آزاد شې. په دې خو ډيره زمانه لګيدله په دغه وجه حضور صَلَّی اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خپل لاس سره ونې ولګولې نو په يو كال كې يې ميوه وركړه او سلمان آزاده شو، وايي د هغه ټول عمر درې سوه كاله ؤ، هغه د حضرت عيسى عليه السلام يو صحابي حواري هم ليدلى دى، بعضې وايي چې دوه نيم سوه كلو په عمر په مدائن كې وفات شوى دى.

## د حضرت ابوهريره رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ په حق كې محبوبيت دُعا

﴿۱۸﴾ وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَللّٰهُمَّ حَبِّبْ عُبَيْدَكَ هٰذَا يَعْنِيْ

او حضرت ابوهريره رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وايي حضور صَلَّی اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دعا وفرمائيله اى الله! خپل كوچنى بنده يعني

أَبَا هُرَيْرَةَ وَأُمَّهُ إِلٰى عِبَادِكَ الْمُؤْمِنِيْنَ وَحَبِّبْ إِلَيْهِمُ الْمُؤْمِنِيْنَ . رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

ابوهريره رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ او د ده مور د خپلو مؤمنانو بندګانو محبوب جوړ كړې او اهل ايمان د دوئ محبوب جوړ كړې. [مسلم]

## د كمزورو مسلمانانو شان

﴿۱۹﴾ وَ عَنْ عَائِذِ بْنِ عَمْرٍو أَنَّ أَبَا سُفْيَانَ أَتٰى عَلٰى سَلْمَانَ

او حضرت عائذ بن عمرو رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ نه روايت دى چې ابوسفيان صحابو رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمْ يو جماعت سلمان فارسي رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ

وَ صُهَيْبٍ وَّ بِلَالٍ فِيْ نَفَرٍ فَقَالُوْا

صُهيب رومي او بلال حبشي رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا مخكې تيرشو نو هغه دريواړو حضراتو ابو سفيان ليدو سره وويل

مَا أَخَذَتْ سُيُوْفُ اللهِ مِنْ عُنُقِ عَدُوِّ اللهِ

آيا د الله! د هغه بندګانو تورو چې د الله په تعميل كې سركرم او سيرې ادائې حق كې د دې دښمن خدا څټ

مَأْخَذَهَا فَقَالَ أَبُوْبَكْرٍ

لاترا او سه پورې نه دى الوځولى حضرت ابوبكر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ چې دا واوريدل نو هغه دريواړه حضرات مخاطب كولو

أَتَقُوْلُوْنَ هٰذَا لِشَيْخِ قُرَيْشٍ وَسَيِّدِهِمْ

سره يې ورته وويل تاسو د قريشو د دې لوى سړې باره كښې داسې خبره كوئ چې د خپل قوم سردار هم دى

فَأَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَخْبَرَهُ

بيا حضرت ابوبكر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ د رسول الله صَلَّی اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خدمت كې راغى او حضور صَلَّی اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته يې د دې واقعې اطلاع

فَقَالَ يَا أَبَا بَكْرٍ لَعَلَّكَ أَغْضَبْتَهُمْ

وركړه حضور صَلَّی اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ټول تفصيل اوريدو سره وفرمائيل اى ابوبكر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ! تاشايد هغه دريواړه خفه كړي وي

لَئِنْ كُنْتَ أَغْضَبْتَهُمْ لَقَدْ أَغْضَبْتَ رَبَّكَ فَأَتَاهُمْ فَقَالَ

او كه تا دغوي ناراضه كړي وي نو قسم په الله تا خپل پروردګار ناراضه كړو حضرت ابوبكر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ هغو دريواړو

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| إِخْوَتَاهُ | أَغْضَبْتُكُمْ | قَالُوْا | لَا | يَغْفِرُ | اللّٰهُ |

ېل ای ځما ورونو! آیا تا سو زما نه ناراضه شوي خونه يې هغو درې واړو جواب ورکړو نه ای

لَكَ يَا أَخِيْ. رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

زمونږ وروره! الله دې تا معاف کړي.

یح: ما اخذت سیوف الله: یعني د مسلمانانو په لاسونو کې چې د الله تعالی تورې د جهاد لپاره
ې دي آیا تر اوسه پورې دغو تورو د الله تعالی د دښمن ابوسفیان غاړه وهلې نه ده؟ صحابه کرامو
ﷺ دغه خبره په هغه وخت کې وکړه چې کله ابوسفیان د مکې مکرمې نه د صلح حدیبیه د تجدید
مدینې منورې ته راغلی وو، په دغه وخت کې ابوسفیان مسلمان شوی نه وو، په دغه وخت کې دغو
رانو جهاد د جذبې لاندې دغه جمله وویله، په دې باندې حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د ناراضګۍ اظهار
ه او بیا لاړو حضور اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته یې د دې تذکره وکړه، حضور اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل چې
غه غریبان او فقیران ناراضه کړي دي، ته یاد ساته چې تا خپل رب ناراضه کړی دی، په دې باندې
لیق اکبر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د هغوی خواته لاړو او په معذرت کولو سره یې معافي وغوښته، هغوی د زړه په
ن سره معاف کړلو، په دې سره د دغو فقیرانو شان واضحه شو! ښتیا ده:

اس دور میں کچھ خاک نشینوں کی بدولت باقی اسلام کی عظمت کا نشان ہے

## په څو احادیثو کې د انصارو فضیلت

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۲۰﴾ وَعَنْ | أَنَسٍ | عَنِ | النَّبِيِّ | صَلَّى | اللّٰهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ | قَالَ | آيَةُ الْإِيْمَانِ |

حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه روایت کوي رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمائیل د ایمان یعني د

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| حُبُّ الْأَنْصَارِ | وَآيَةُ | النِّفَاقِ | بُغْضُ | الْأَنْصَارِ. | مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. |

کامل ایمان نښه تمام انصارو سره محبت ساتل دي او د نفاق نښه انصارو سره بغض او دشمني ساتل دي. [بخاري ومسلم]

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۲۱﴾ وَعَنِ | الْبَرَاءِ | قَالَ | سَمِعْتُ | رَسُوْلَ | اللّٰهِ | صَلَّى اللّٰهُ | عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. |

حضرت براء بن عازب انصاري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي ما د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه واورېدل انصارو سره هغه

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| يَقُوْلُ | لِلْأَنْصَارِ | لَا | يُحِبُّهُمْ | إِلَّا | مُؤْمِنٌ | وَلَا يُبْغِضُهُمْ |

څوک محبت ساتي چې کامل مؤمن وي او انصار سره هغه سړی دښمني ساتي چې منافق وی کوم

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| إِلَّا | مُنَافِقٌ | فَمَنْ | أَحَبَّهُمْ | أَحَبَّهُ | اللّٰهُ | وَمَنْ أَبْغَضَهُمْ |

سړي چې انصار محبوب لري الله! هغه محبوب لري او کوم سړی چې انصارو سره دښمني ساتي

أَبْغَضَهُ اللّٰهُ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ

الله! هغه سره دښمني ساتي. [بخاري مسلم]

﴿۲۲﴾ وَ عَنْ أَنَسٍ قَالَ إِنَّ نَاسًا مِّنَ الْأَنْصَارِ قَالُوْا حِيْنَ

او حضرت انس رضي الله عنه وايي د انصارو بعضو خلقو هغه وقت د شکايت اظهار وکړو هر کله چې

أَفَاءَ اللّٰهُ عَلٰى رَسُوْلِهٖ مِنْ أَمْوَالِ هَوَازِنَ مَا أَفَاءَ فَطَفِقَ

الله خپل رسول ته د قبيله هوازن هغه مال غنيمت ورکړو کوم چې عطاء کول وو او حضور صلى الله عليه وسلم

يُعْطِيْ رِجَالًا مِّنْ قُرَيْشٍ اَلْمِائَةَ مِنَ الْإِبِلِ فَقَالُوْا

قريشو کې څو څو خلقو ته سل سل اوښان ورکول شروع کړل نو په انصارو کې هغه بعضې خلقو ووېل

يَغْفِرُ اللّٰهُ لِرَسُوْلِ اللّٰهِ يُعْطِيْ قُرَيْشًا

الله دې رسول الله صلى الله عليه وسلم و بخښي حضور صلى الله عليه وسلم قريشو ته خو دومره زيات عطاء کوي او

وَيَدَعُنَا وَسُيُوْفُنَا تَقْطُرُ مِنْ دِمَائِهِمْ فَحُدِّثَ لِرَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

مونږ ته زيات نه راکوي حالانکه څمونږ د تورو نه د دښمن وينه څاڅي هر کله چې د رسول الله صلى الله عليه وسلم

بِمَقَالَتِهِمْ فَأَرْسَلَ إِلَى الْأَنْصَارِ فَجَمَعَهُمْ فِيْ قُبَّةٍ مِّنْ

په علم کې د دې خلقو شکايت راغی نو حضور صلى الله عليه وسلم تمام انصار راوغوښتل او خپلې هغه خيمه کې

أَدَمٍ وَلَمْ يَدَعْ مَعَهُمْ أَحَدًا غَيْرَهُمْ فَلَمَّا اجْتَمَعُوْا

يې راجمع کړل کومه چې د څرمن نه جوړه شوې وه هغوئ سره يې نور خلق راونه بلل هر کله چې ټول

جَاءَهُمْ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ مَا

انصار راجمع شول نو رسول الله صلى الله عليه وسلم هغوئ ته تشريف راوړو او ورته يې وفرمائيل څه خبره ده

حَدِيْثٌ بَلَغَنِيْ عَنْكُمْ فَقَالَ فُقَهَا ؤُهُمْ أَمَّا ذَوُوْ

کومه چې ستاسو د طرف نه ماته رارسول شوې ده هغه انصارو کې چې کوم عقلمند او دانا خلق وو

رَأْيِنَا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ فَلَمْ يَقُوْلُوْا شَيْئًا وَأَمَّا أُنَاسًا مِّنَّا

هغوئ ووېل يا رسول الله! په مونږ کې عقلمند او ذي رايي خلقو هيڅ نه دي ويلي هو په مونږ کې څه

حَدِيْثَةٌ أَسْنَانُهُمْ قَالُوْا يَغْفِرُ اللّٰهُ لِرَسُوْلِ

نو عمر او ځوانانو ناپوهۍ سره دا خبره ضرور کړې ده چې الله دې رسول الله صلى الله عليه وسلم و بخښي چې

اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُعْطِيْ قُرَيْشًا وَيَدَعُ الْأَنْصَارَ

قريشو ته خو دومره زيات عطا کوي او مونږ انصارو ته زيات نه راکوي حالانکه څمونږ د تورو نه د

وَسُيُوْفُنَا تَقْطُرُ مِنْ دِمَائِهِمْ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

دښمن وينه څاڅي بيا رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمائيل حقيقت دا دې چې کوم خلق اوس اوس لږ ورځې

| | | | |
|---|---|---|---|
| ...ني | أُعْطِيْ | رِجَالًا | حَدِيْثِيْ |

نوي خلکي کفر نه وو، هغوئ ته زه دي مال نه ورکوم دي دپاره چي د هغوئ زړونه اسلام ته رامائل کړم

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| عَنْهُمْ | بِكُفْرٍ | أَتَأَلَّفُهُمْ | أَمَا تَرْضَوْنَ | أَنْ | يَذْهَبَ |

دي نه علاوه بل هيڅ مقصد نه نشته او ای انصارو! آيا تاسو په دي راضي نه يي چي ستاسو نه

النَّاسُ بِالْأَمْوَالِ وَتَرْجِعُوْنَ إِلٰى رِحَالِكُمْ بِرَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

علاوه هغه خلق چي مؤلفة القلوب دي مال او اسباب اخستو سره بيرته ځي او تاسو خلق رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

| | | | |
|---|---|---|---|
| قَالُوْا | بَلٰى | يَا | رَسُوْلَ اللهِ |

اخستو سره خپلو ځايونو ته بيرته ولاړ شئ انصارو د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دي پر اثر ارشاد اوريدو

قَدْ رَضِيْنَا. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

سره وويل هو يارسول الله! مونږ په دي راضي يو.

**توضيح**: په جنګ حنين کي په مال غنيمت کي د نغد مالونو نه علاوه شپږ زره ګډي هم راغلي وې او يا څلوېښت زره اوښان لاسته راغلي وو، او شپږ زره کسان قيديان شوي وو، د جعرانه مقام باندي چي کله حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دغه مال تقسيم کړلو نو بعضي نومسلم قريشو ته يې ډير مال ورکړو، ابوسفيان ته يې سل اوښان ورکړل، هغه د خپل ځوی معاويه لپاره وغوښتل نو سل نور يې ورکړل، بيا هغه د خپل بل ځوی لپاره وغوښتل نو سل اوښان يې نور ورکړل، چي کله د انصارو نوجوان مجاهدينو دغه شفقت او مهرباني وکتله نو حيرانه پاتې شول چي د کومو خلکو په تورو باندي زمونږ توري رنګيني دي تر اوسه وچي شوي نه دي او حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مونږ پريږدي او په هغوی باندي احسان کوي، دا شکايت حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته ورسيدو نو هغه ټول په يو ځای کي راجمع کړل او يوه بليغه خطبه يې وفرمايله او حقيقت حال يې واضح کړلو، په دي باندي انصارو سخت وژړل، حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغو ته دا هم وويل چي په تاسو باندي به په آينده کي هم نورو ته ترجيح ورکولی کيږي مګر تاسي صبر وکړئ تر څو زما سره په حوض کوثر باندي ملاقات وکړئ، د انصارو متعلق احاديثو کي به ددي خطبی څو څو جملي وروسته راځي، عجيبه خطبه ده.

## د انصارو فضيلت

﴿۲۲﴾ وَ عَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ

او حضرت ابوهريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چي رسول کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمائيل که هجرت نه وی نو زه به

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| لَوْلَا | الْهِجْرَةُ | لَكُنْتُ | امْرَأً | مِّنَ | الْأَنْصَارِ | وَلَوْ سَلَكَ |

هم انصارو کي يو سړی وم که خلق يو وادي کي ځي او انصار به بله لار باندي ځي نو زه به په هغه

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| النَّاسُ | وَادِيًا | وَسَلَكَتِ | الْأَنْصَارُ | وَادِيًا | أَوْ | شِعْبًا | لَسَلَكْتُ |

لاره باندې ځم ګومه چې د جماعت انصار لاره ده انصار خو د (شعار) لاندې کپړې په شان دی او

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَادِيَ | الْأَنْصَارِ | وَشِعْبَهَا | آ | لْأَ | نْصَارُ | شِعَارٌ | وَالنَّاسُ دِثَارٌ |

نور خلق د دثار پورته کپړې په شان دي ای انصارو تاسو به زمانه روسته وينئ چې داسي امراء به

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| إِنَّكُمْ | سَتَرَوْنَ | بَعْدِيْ | أُثْرَةً | فَاصْبِرُوْا |

راشي چې نورو خلقو ته به د دنيا او مال باره کښې پر تاسو باندې ترجيح ورکوي، نو تاسو صبر کوئ

حَتّٰى تَلْقَوْنِيْ عَلَى الْحَوْضِ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ

تر دې پورې چې ما سره په حوض کوثر يو ځاي شئ. (بخاری)

**توضیح**: په دې حديث کې د دغې بليغې خطبې څو جملې دي.

**شعبا**: شيلې او درې ته ويل کيږي، د دې جمع **شعوب** ده.

**شعار**: دا د **شعر** څخه ده ويښتانو ته ويل کيږي، د جسم د ويښتانو سره لګيدلې کپړه مراد ده چې عموما زيرپيراني يا قميص وي.

**دثار**: دا د **دثر** څخه ده د بلې کپړې ته ويل کيږي چې عام طور د کپړو د پاسه اغوستلې کيږي لکه کورتي، واسکټ، څادر وغيره، د دې کلام مقصد دا دی چې انصار د قرب او منزلت په اعتبار سره حضور ﷺ ته تر ټولو زيات نزدې دي ګويا انصار د حضور ﷺ زړه او ګردې دي او باقی خلک د ظاهری اعضاؤ پشان دي.

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۲۴﴾ | وَعَنْهُ | قَالَ | كُنَّا | مَعَ | رَسُوْلِ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |

او حضرت ابو هريره رضي الله عنه وايي د مکې د فتح په ورځ مونږ خلق د رسول الله ﷺ ملګرتيا کې وو

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| يَوْمَ | الْفَتْحِ | فَقَالَ | مَنْ | دَخَلَ | دَارَ | أَبِيْ | سُفْيَانَ |

په هغه ورځ حضور ﷺ اعلان کړی وو چې مشرکې نو کې کوم سړی د ابو سفيان په کور کې داخل شي

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فَهُوَ | آمِنٌ | وَمَنْ | أَلْقَى | السِّلَاحَ | فَهُوَ | آمِنٌ | فَقَالَتِ | الْأَنْصَارُ |

هغه په امن کې دی او مشرکې نو کې چا چې اسلحه وغورځوله هغه په امن کې دی بعضې انصارو دې اعلان

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| أَمَّا | الرَّجُلُ | فَقَدْ | أَخَذَتْهُ | رَأْفَةٌ |

اوريدو سره خپلو کې وويل چې دې سړي يعني حضور ﷺ باندې د خپل قوم په حقله

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| بِعَشِيْرَتِهِ | وَرَغْبَةٌ | فِيْ | قَرْيَتِهِ | وَنَزَلَ | الْوَحْيُ | عَلَى |

مروت او مهرباني او خپل کلي والاو يعني د اهل مکو په حقله د رغبت او شوق جذبه طبعي طور سره

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| اللهِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ | قَالَ |
| غالبه راغلي ده نو رسول الله صلی الله علیه وسلم باندې وحي نازله شوه چې د هغه په ذریعه حضور صلی الله علیه وسلم | | | | | |
| قُلْتُمْ | أَمَّا | رَسُوْلِ | الرَّجُلُ | فَقَدْ | أَخَذَتْهُ |
| خبر شو چې انصار داسې وايي په دې حضور صلی الله علیه وسلم انصار را وبلل او هغوئ ته يې وفرمائيل | | | | | |
| رَأْفَةٌ | بِعَشِيْرَتِهِ | وَ | رَغْبَةٌ | فِيْ | قَرْيَتِهِ |
| تاسو داسې ويلي دي چې دې سړي باندې د خپل قوم د مروت مهرباني او د خپلو کلي د او په حقله د رغبت او شوق | | | | | |
| كَلَّا إِنِّيْ عَبْدُ | اللهِ | وَ رَسُوْلُهُ | هَاجَرْتُ | إِلَى اللهِ | وَإِلَيْكُمْ |
| جذبه غالب راغلي ده نه داسې نه ده حقيقت دا دی چې زه د الله بنده او د الله! رسول يم ما د الله طرف ته او ستاسو طرف ته هجرت | | | | | |
| اَلْمَحْيَا | مَحْيَاكُمْ | | وَالْمَمَاتُ | | مَمَاتُكُمْ |
| کړی دی او س خو ځما ژوند ستاسو ژوند سره دی او ځما مرګ هم ستاسو مرګ سره دی په دې او ريدو | | | | | |
| قَالُوْا | وَاللهِ | مَا قُلْنَا | إِلَّا | ضِنًّا | بِاللهِ وَرَسُوْلِهِ |
| سره انصارو عرض وکړو په الله قسم چې مونږ دا خبره صرف ځکه وکړه چې الله او د الله رسول مونږ ته بخل وو | | | | | |
| قَالَ | فَإِنَّ | اللهَ | وَ | رَسُوْلَهُ | يُصَدِّقَانِكُمْ |
| حضور صلی الله علیه وسلم وفرمائيل الله او د هغه رسول ستاسو تصديق کوي او تاسو درست ګڼي او | | | | | |
| وَ يُعْذِرَانِكُمْ. رَوَاهُ مُسْلِمٌ. | | | | | |
| ستاسو دا معذرت قبلوي. [مسلم] | | | | | |

**توضيح**: **يوم الفتح**: د دينه د فتح مكه ورځ مراد ده.

**دار ابي سفيان**: په سنه ۸ هـ کې نبي اکرم صلی الله علیه وسلم د خپل لس زره مجاهدينو صحابه کرامو سره د مکې د فتحه کولو لپاره تشريف يوړو ، ابوسفيان ته اندازه وه چې اهل مکه مقابله کولې نشي نو ځکه هغه د صلحې په غرض د مذاکراتو لپاره او د خپل قوم قريشو د بچ کولو لپاره د حضور صلی الله علیه وسلم په طرف روان شول . حضرت عباس رضي الله عنه هغه د رسول الله صلی الله علیه وسلم په اوښه باندې سور کړلو او مکې ته قريب يو خاې مرالظهران پورې يې بوتللو چيرته چې حضور صلی الله علیه وسلم پړاؤ اچولی وو ، چې کله ابوسفيان زباني طور باندې اسلام قبول کړلو نو حضرت عباس رضي الله عنه وويل چې يا رسول الله ! دا سړی رتبه پسند دی د قوم مشر هم دی ده ته څه اعزاز ورکړه تر څو دا خپل قوم ته وويلی شي چې د هغوی د بچ کولو لپاره د غه کارنامه ابوسفيان سرته ورسوله ، په د غه موقع باندې حضور صلی الله علیه وسلم وفرمايل **(من دخل دار ابي سفيان فهو آمن)** يعني چې څوک د ابوسفيان کور ته داخل شو هغه به په امن کې وي ،

ابو سفیان وویل دا امن کافی نه دی زما په کور کې زما ټول قوم چیرته ځاییږي، حضور اکرم ﷺ وفرمایل چې کوم شخص په مسجد حرام کې داخل شو هغه په امن کې دی ، ابو سفیان وویل چې مسجد حرام کې هم ټول خلک راتللی نشي ، نو دغه وخت کې حضور ﷺ وفرمایل **(من اغلق علیه الباب فهو آمن)** یعنې چا چې د کور دروازه بنده کړه هغه په امن کې دی ، چا چې توره وغورځوله هغه په امن کې دی نو په دې وخت کې ابو سفیان وویل چې هو دا امن مکمل دی ، په دې باندې انصارو وویل چې حضور خپل قومي او خانداني او معاشرتي محبت ونیولو ، اوس مونږ پاتې شو ، حضور اکرم ﷺ په خپلو کې لاړو . په دې باندې حضور ﷺ جواب ورکړو چې زما ژوند او زما مرګ د نن نه بعد ستاسو سره دی ، ژوند به هم ستاسو سره تیروم او مرګ به مې هم ستاسو سره راځي .

الا ضنا بالله : یعنې مونږ دغه جمله د کوم دنیوی مقصد یا خود غرضۍ لپاره ونه ویله ، بلکه د دې حرص لاندې مو وویله چې ته زمونږ څخه جدا نشې او د دې عظیم رحمت نه مونږ محرومه نشو .

یصدقانکم: یعنې الله او د هغه رسول ستاسو تصدیق کوي او په دې مقصد کې تاسو معذور ګڼي .

| |
|---|
| ﴿۲۵﴾ وَعَنْ أَنَسٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَآى |
| او حضرت انس رضی الله عنه نه روایت دی یوه ورځ رسول الله ﷺ د انصارو ماشومان او ښځې د یو |
| صِبْيَانًا وَنِسَاءً مُقْبِلِيْنَ مِنْ عُرْسٍ فَقَامَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| دعوت طعام نه روسته راتلونکې ولیدل نو نبي ﷺ اودریدلو او هغوئ مخاطب کولو سره یې |
| فَقَالَ اَللّٰهُمَّ أَنْتُمْ مِنْ أَحَبِّ النَّاسِ إِلَيَّ |
| وفرمائیل خداونده! زه تا ګواه کولو سره د انصارو دې ښځو او بچوته وایم چې ای انصارو! په تمامو |
| اَللّٰهُمَّ أَنْتُمْ مِنْ أَحَبِّ النَّاسِ إِلَيَّ |
| خلقو کې تاسو ځما په نزد محبوب ترین یې خداونده! په ټولو خلقو کې تاسو ځما په نزد محبوب ترین |
| يَعْنِي الْأَنْصَارَ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. |
| یې د حضور ﷺ مراد تمام انصار وو. |

**توضیح** : من عرس: د واده د دعوت نه د انصارو ماشومان او ښځې راتللې، حضور اکرم ﷺ مخې ته ودریده او ویې فرمایل : **اللّٰهم انتم** . په دې جمله کې التفات دی اصل عبارت داسې دی **(اللّٰهم انت تعلم صدق فیما اقول فی حق الانصار)** د دې جملې نه بعد حضور ﷺ په طور د التفات انصار مخاطب کړل او ویې فرمایل : **انتم من احب الناس الیّ**.

## د حبیب ﷺ په فراق باندې د انصارو ژړا

﴿۲۶﴾ وَ عَنْهُ قَالَ مَرَّ اَبُوْ بَكْرٍ وَ الْعَبَّاسُ بِمَجْلِسٍ مِّنْ مَّجَالِسِ

او حضرت انس رضي الله عنه بیان کوي د حضور ﷺ د مرضِ وفات په ورځو کې يو ورځ حضرت ابوبکر او عباس رضي الله عنهما

الْأَنْصَارِ وَ هُمْ يَبْكُوْنَ

د انصارو يو مجلس باندې تېر شول نو وې ليدل چې هغه اهل مجلس والا ناست وو ژړل يې هغه

فَقَالَا مَا يُبْكِيْكُمْ قَالُوْا ذَكَرْنَا مَجْلِسَ

دواړو حضراتو د هغوئ نه پوښتنه وکړه تاسو ولې ژاړئ هغوئ وويل ځمونږ په منځ کې د رسول الله ﷺ

النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنَّا فَدَخَلَ أَحَدُهُمَا

مجلس مونږ ته را یاد شو په دې اوریدو سره هغه دواړو کې يو د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضر شو

عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَخْبَرَهُ بِذٰلِكَ

او حضور ﷺ یې دې خبرې نه خبر کړو چې د انصارو جماعت ستاسو مجلس مبارک یادولو سره ژاړي

فَخَرَجَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَقَدْ عَصَبَ عَلَى رَأْسِهِ

نو رسول الله ﷺ په دې حالت کې حجرې مبارکې نه بهر تشریف راوړو چې د سر درد د کمولو د پاره

حَاشِيَةَ بُرْدٍ فَصَعِدَ الْمِنْبَرَ

د څادر يو څاک د پټۍ په طور سر مبارک باندې تړلې وو تړلی وو بیا خطبې ورکولو د پاره منبر باندې کې ناسته

وَلَمْ يَصْعَدْ بَعْدَ ذٰلِكَ الْيَوْمِ

چې د هغه ورځې نه روسته بیا حضور ﷺ ته منبر ته ختل نصیب نه شو مخکې حضور ﷺ

فَحَمِدَ اللهَ وَأَثْنٰى عَلَيْهِ ثُمَّ قَالَ أُوْصِيْكُمْ بِالْأَنْصَارِ

د الله! حمد او د هغه ثناء بیان کړه بیا یې وفرمائیل اې مهاجرو! زه تاسو ته د انصارو باره کښې وصیت

فَإِنَّهُمْ كَرِشِيْ وَعَيْبَتِيْ وَقَدْ قَضَوُا الَّذِيْ عَلَيْهِمْ وَبَقِيَ الَّذِيْ لَهُمْ

کوم ځکه چې په هغوئ کوم حق وو هغه هغوئ ادا کړی دی او څه چې د هغوئ حق دی هغه د الله سره باقي دی

فَاقْبَلُوْا مِنْ مُّحْسِنِهِمْ وَتَجَاوَزُوْا عَنْ مُّسِيْئِهِمْ . رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

نو د هغوئ د نیکو خلقو قبلوئ او د هغوئ د خرابو خلقو د خرابو کارونو نه درګذر (معافي) کوئ. [بخاري]

**توضیح** : **ذکرنا مجلس النبي:** یعني چې کله حضور ﷺ مریض نه وو موږ به ټول يو ځای کیناستلو اوس د بیمارۍ په وجه حضور ﷺ بهر راتللی نشي ، د هغه مجلس چې موږ ته یاد شو

نو ژړل راغله.

**عصب:** په سر باندې پټۍ تړلو او کپړې تاوولو ته ویل کیږي.

**حاشیة بردة:** یعني د خپل څادر څنډه یې په طور د پټۍ په سر باندې تړلې وه.

**کرشي:** په کاف باندې زور دی په راء باندې زیر دی په یوه نسخه کې په کاف باندې کسره ده او راء ساکنه ده ای بطانتي یعني انصار زما باطن دی چې په دې کې زړه، ګرده، کولمې ټول راځي، دا د عربی محاورې لاندې خاص الخاص، رازدار او قریب ته اشاره وي.

**وعیبتي:** عیبة په اصل کې صندقچې ته ویل کیږي چې په هغه کې ضروری سامان اېښودل کیږي، عرب خلک د عیبة په ویلو سره زړه او سینه مرادوي چې په دې سره رازدارۍ ته اشاره وي ځکه د انسان راز د هغه په زړه او سینه کې وي.

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۲۷﴾ وَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ خَرَجَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ فِيْ مَرَضِهِ | | | | | | |
| او حضرت ابن عباس رضي الله عنه بیان کوي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم د خپلې بیمارۍ په دوران کې چې په | | | | | | |
| الَّذِيْ | مَاتَ | فِيْهِ | حَتّٰى | جَلَسَ | عَلَى | الْمِنْبَرِ |
| هغه کې ورته وفات راغلو یوه ورځ حجرې مبارکې نه بهر راووتلو منبر باندې تشریف فرما شو اول | | | | | | |
| فَحَمِدَ اللّٰهَ وَاَثْنٰى عَلَيْهِ ثُمَّ قَالَ اَمَّا بَعْدُ فَاِنَّ النَّاسَ | | | | | | |
| حضور صلی الله علیه وسلم د الله ! حمد او ثنا بیان کړل بیا یې وفرمائیل پوهه شئ د خلقو یعني مسلمانانو | | | | | | |
| يَكْثُرُوْنَ وَيَقِلُّ الْاَنْصَارُ حَتّٰى يَكُوْنُوْا فِي النَّاسِ | | | | | | |
| تعداد ورځ په ورځ زیاتیږي او د انصارو تعداد به کم شي تر دې پورې چې په نورو خلقو کې به د انصارو | | | | | | |
| بِمَنْزِلَةِ الْمِلْحِ فِي الطَّعَامِ فَمَنْ وَّلِيَ مِنْكُمْ | | | | | | |
| تناسب طعام کې د مالګې برابر پاتې شي نو ای مهاجرینو په تاسو کې چې کوم سړی د څه اقتدار | | | | | | |
| شَيْئًا يَضُرُّ فِيْهِ قَوْمًا وَّيَنْفَعُ فِيْهِ | | | | | | |
| مالک جوړ شي او د هغه په سبب څه خلقو ته (یعني نیکو کارو خلقو ته) فائده رسولو او څه خلقو ته | | | | | | |
| آخَرِيْنَ فَلْيَقْبَلْ مِنْ مُّحْسِنِهِمْ | | | | | | |
| (یعني بدکارو خلقو ته) د نقصان رسولو اختیار لري نو هغه سړي ته پکار دی چې د انصارو د نیکو کارو | | | | | | |
| وَيَتَجَاوَزْ عَنْ مُّسِيْئِهِمْ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ. | | | | | | |
| نیکي قبوله کړي او د هغوئ د بدکارو د بدۍ نه درګذر معافي وکړي. | | | | | | |

**توضیح: ویقل الانصار:** چونکې انصار د نصرت څخه دی او د نصرت څخه د محمد عربي صلی الله علیه وسلم

او مهاجرینو نصرت مراد دی نو انصار کیدل داسې وصف دی چې چا ته دا حاصل شو بس هماغه ته حاصل شو ، کومو خلک و چې د حضور ﷺ نصرت کړی وو هغه خلک تر هغې زمانې پورې خاص وو د کوم بل چا په نصرت سره د انصار وصف نه حاصلیږي ، نو ځکه د انصارو ښځه چې څوک مړ کیږي د هغوی جماعت کمیږي ، یو وخت داسې راځي چې د انصارو نه هیڅوک نه پاتې کیږي . دا هم ممکنه ده چې په دې حدیث کې د انصارو د خلک و ښځه په جهاد کې د زیاتو شهید کیدلو طرفته اشاره وي او واقعي انصار په هره معرکه کې زیات شهیدان شوي دی ، پاتې شو مهاجرین نو هجرت تر کومې زمانې پورې خاص نه دی لهذا مهاجرین نه ختمیږي تر قیامته پورې چې څوک هجرت کوي هغه به د مهاجر په وصف سره متصف کیږي .

**فمن ولی:** یعنې ستاسو نه کچیرې کوم کس صاحب د اقتدار وي او هغه د نفع او نقصان په حیثیت کې راشي هغه ته پکار دي چې د انصارو سره ښه سلوک وکړي هغو ته عفوه وکړي .

| |
|---|
| ﴿۲۸﴾ وَعَنْ زَيْدِ بْنِ أَرْقَمَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَللّٰهُمَّ اغْفِرْ لِلْأَنْصَارِ |
| او زید بن ارقم رضی الله عنه وایي چې رسول الله ﷺ دعا و فرمائیله ای الله! انصار او د انصارو |
| وَلِاَبْنَاءِ الْأَنْصَارِ وَلِاَبْنَاءِ أَبْنَاءِ الْأَنْصَارِ . رَوَاهُ مُسْلِمٌ. |
| ځامن او د انصارو لمسي وبخښې . [مسلم] |
| ﴿۲۹﴾ وَعَنْ أَبِيْ أُسَيْدٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَيْرُ دُوْرِ الْأَنْصَارِ بَنُوْ |
| او حضرت ابو اسید رضی الله عنه وایي چې رسول کریم ﷺ وفرمائیل د انصارو بهترین کور یعنې د هغوئ افضل قبائل |
| النَّجَّارِ ثُمَّ بَنُوْ عَبْدِ الْأَشْهَلِ ثُمَّ بَنُو الْحَارِثِ بْنِ الْخَزْرَجِ ثُمَّ بَنُوْ سَاعِدَةَ وَفِيْ كُلِّ دُوْرِ الْأَنْصَارِ خَيْرٌ . مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. |
| بنو نجار بیا بنو عبد الاشهل بیا بنو حارث بن خزرج بیا بنو ساعده دي او د انصارو تمامو قبیلو کې خیر او نیکي ده. |

## د حاطب بن ابي بلتعه رضی الله عنه فضیلت او قصه

| |
|---|
| ﴿۳۰﴾ وَعَنْ عَلِيٍّ قَالَ بَعَثَنِيْ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَا وَالزُّبَيْرَ وَالْمِقْدَادَ وَفِيْ رِوَايَةٍ |
| او حضرت علي کرم الله وجهه بیان کوي چې رسول الله ﷺ ما ته زبیر ته او مقداد ته او په یوه روایت |
| وَأَبَا مَرْثَدٍ بَدَلَ الْمِقْدَادِ فَقَالَ انْطَلِقُوْا حَتّٰى تَأْتُوْا رَوْضَةَ خَاخٍ |
| کې د مقداد په ځای د ابو مرثد ذکر وو کړو د روانګي حکم وکړو چې تاسو روضه خاخ ته ورشئ |
| فَإِنَّ بِهَا ظَعِيْنَةً مَعَهَا كِتَابٌ فَخُذُوْهُ مِنْهَا |
| هلته به یوه ښځه بیا مومئ چې د اوښ په سورلۍ په کجاوه به ناسته وي هغې سره یو خط دی تاسو |

فَانْطَلَقْنَا تَعَادٰی بِنَا خَيْلُنَا حَتّٰی اَتَيْنَا

هغه خط د هغې نه واخلی او راپې وړئ نو مونږ فورًا روان شو او خپل آسونه په تیز رفتارۍ سره

اِلَى الرَّوْضَةِ فَاِذَا نَحْنُ بِالظَّعِيْنَةِ فَقُلْنَا اُخْرِجِي

زغلولو سره روضه خاخ ته ورسیدو او هغه ښځه مو را لاندې کړه مونږ هغه ښځې ته وویل راوړه هغه

الْكِتَابَ قَالَتْ مَا مَعِيَ مِنْ كِتَابٍ فَقُلْنَا

خط را اوباسه او مونږ ته یې حواله کړه هغه ښځې وویل ما سره هیڅ خط مط نشته مونږ ورته وویل

لَتُخْرِجِنَّ الْكِتَابَ اَوْ لَنُلْقِيَنَّ الثِّيَابَ فَاَخْرَجَتْهُ مِنْ عِقَاصِهَا

ته خط را اوباسه یا به مونږ ستا نه کپړې اوباسو بیا هغه ښځې هغه خط د خپلې کوڅۍ نه راوېسته

فَاَتَيْنَا بِهِ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاِذَا

مونږ ته یې حواله کړو او مونږ هغه خط اخستو سره رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته راغلو هغه خط خلاصولو سره

فِيْهِ مِنْ حَاطِبِ بْنِ اَبِيْ بَلْتَعَةَ اِلٰى نَاسٍ مِّنَ الْمُشْرِكِيْنَ

وکتل شو نو په هغه کې لیکلي وو د حاطب بن ابي بلتعه د طرف نه اهل مکو کې د مشرکینو په نوم

مِنْ اَهْلِ مَكَّةَ يُخْبِرُهُمْ بِبَعْضِ اَمْرِ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

بیا مخکې حاطب د مکې مشرکینو ته د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د بعضې اقداماتو او منصوبو باره کې

فَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَا حَاطِبُ

معلومات فراهم کړي وو رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حاطب طلب کړو او هغه ته یې وفرمائیل ای حاطب! دا څه

مَا هٰذَا فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللهِ لَا تَعْجَلْ عَلَيَّ

دي؟ حاطب وویل یا رسول الله! څما باره کښې تادی مه کوئ (یعنې څما پوره خبرو اورېدو نه بغیر

اِنِّيْ كُنْتُ امْرَءًا مُّلْصَقًا

د دې حرکت په بدله کې څما متعلق د کفر او سزا فیصله مه کوئ) دراصل زه یو داسې سړی یم چې

فِيْ قُرَيْشٍ وَّلَمْ اَكُنْ مِّنْ اَنْفُسِهِمْ وَكَانَ مَنْ مَّعَكَ مِنَ الْمُهَاجِرِيْنَ

د قریشو خلقو سره د بهر نه راتلو سره یو ځاې شوی یم هر کله چې ستاسو سره کوم نور مهاجرین دي

لَهُمْ قَرَابَةٌ يَحْمُوْنَ بِهَا اَمْوَالَهُمْ وَاَهْلِيْهِمْ بِمَكَّةَ

هغوئ مکې والاو سره قرابت لري او د مکې مشرکین د هغه قرابت لحاظ کولو سره په مکه کې د

فَاَحْبَبْتُ إِذْ فَاتَنِيْ ذٰلِكَ
هغه مهاجرينو د مال وجائيداد او د هغوئ د اهل او عيال حفاظت کوي نو په دې بناء چې ځما او د مکې
مِنَ النَّسَبِ فِيْهِمْ أَنْ اَتَّخِذَ
د مشرکې نو په منځ کې نسبي او قرابتي تعلق نشته دی ما وغوښتل چې د هغوئ د پاره څه داسي
فِيْهِمْ يَدًا يَحْمُوْنَ بِهَا قَرَابَتِيْ
کارنامه و کړم چې د هغه په بدله کې هغوئ په مکه کې ځما د قرابتدارو حفاظت کوي تاسو ته د
وَمَا فَعَلْتُ كُفْرًا وَّلَا ارْتِدَادًا عَنْ دِيْنِيْ
زړه په صدق سره يقين درکوم چې ما دا حرکت په دې وجه نه دی کړی چې زه د سره په دائره ايمان او
وَلَا رِضًى بِالْكُفْرِ بَعْدَ الْإِسْلَامِ
اسلام کې داخل شوی نه يم او کافريم او نه په دې وجه چې د اسلام نه روسته اوس کفر ماته ښه لګي
فَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّهُ قَدْ
رسول الله ﷺ و فرمائيل په دې کې شک نشته چې حاطب ستاسو مخکې بالکل ريښتيا
صَدَقَكُمْ فَقَالَ عُمَرُ دَعْنِيْ يَا رَسُوْلَ اللهِ
بيان کړی دی حقيقت حال هغه دی چې هغه خو دلی ليکن عمر فاروق رضي الله عنه وويل يارسول الله!
أَضْرِبْ عُنُقَ هٰذَا الْمُنَافِقِ فَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ
ماته اجازت راکړئ چې زه د دې منافق څټ ووهم رسول الله ﷺ ورته وفرمائيل دې حقيقت نظر
إِنَّهُ قَدْ شَهِدَ بَدْرًا وَّمَا يُدْرِيْكَ لَعَلَّ
لره چې حاطب غزوه بدر کې شريک شوی دی بيا ورته نبی ﷺ و فرمائيل او تاته د حقيقت حال
اللهَ اِطَّلَعَ عَلٰى أَهْلِ بَدْرٍ فَقَالَ
څه علم دی ممکنه ده الله ! اهل بدر خپل خصوصي نظر کرم او مغفرت سره نازولي وي د بدر د غازيانو
اعْمَلُوْا مَا شِئْتُمْ فَقَدْ وَجَبَتْ لَكُمُ الْجَنَّةُ
په حقله الله ! فرمائيلي دي تاسو چې څه غواړئ کوئ حقيقت خو دادی چې جنت ستاسو د پاره
وَفِيْ رِوَايَةٍ فَقَدْ غَفَرْتُ لَكُمْ فَأَنْزَلَ
واجب شوی دی او په يوه روايت کې دي چې ستاسو د پاره جنت واجب شوی دی په ځاي دادی چې تاسو

| اللهُ | تَعَالٰى | يَا | أَيُّهَا | الَّذِيْنَ | اٰمَنُوْا | لَا | تَتَّخِذُوْا | عَدُوِّیْ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| مي بخښلي يې دي نه روسته الله ! دا آيت نازل کړو چې د هغه ترجمه داده اى ايمان والاوو ځما او | | | | | | | | |
| وَعَدُوَّكُمْ | أَوْلِيَاءَ . | مُتَّفَقٌ | عَلَيْهِ. | | | | | |
| خپل دښمنان دوستان مه جوړوئ الخ. [بخاري مسلم] | | | | | | | | |

**توضيح :ابامرثد الغنوی:** په يو روايت کې دي چې حضور ﷺ حضرت مقداد وليږلو ، په بل روايت کې دي چې حضور ﷺ ابو مرثد وليږلو ، نو دا په ظاهره تعارض دی، ددې جواب دا دی چې حضور ﷺ څلور کسان ليږلي وو يعني حضرت علی ، حضرت زبير، حضرت مقداد ، او حضرت ابو مرثد رضی الله عنهم اجمعين نو په بعضو رواياتو کې د ابو مرثد ذکر دی د مقداد نشته او په بعضو کې د مقداد ذکر دی د ابو مرثد نشته دا تعارض نه دی ، روايت بيانولو والاؤ کله يو ذکر کړی دی او کله يې ذکر کړی نه دی .

**روضة خاخ:** مدينې منورې ته نزدې د يو ځای نوم دی چې د مکې په لاره کې واقع دی .

**ظعينة:** کومه ښځه چې په اوښ سفره شي په سفر وو ځي هغې ته ظعينه ويل کيږي ، ددغې ښځې نوم ساره وو يا ام ساره وه د قريشو د آزاد کړه ښځو څخه يوه وه .

**يتعادی:** د منډو وهلو او ځغلولو په معنی سره راغلی دی .

**لتلقين:** دغې ښځې د خط د وجود څخه انکار وکړو نو صحابو هغې ته وويل چې خط را اوباسه او که نه نو مونږ به تا بربنډه وو ځکه چې د حضور ﷺ فرمان دروغ کيدلی نشي ، ته دروغ وايې، ددېنه معلوميږي چې د صحابه کرامو ايمان دومره مضبوط وو چې د حضور ﷺ د فرمان په مقابل کې د هيڅ شی قبلولو ته تيار نه وو .

**من عقاصها:** عقاص د عقيصة جمع ده د سر د ويښتانو کوڅۍ ته ويل کيږي ، امرأ القيس د خپلې محبوبې په باره کې ويلي دي :

**غدائرها مستشزرات الی العلی      تضل العقاص فی مثنی و مرسل**

په يو روايت کې دي چې **(اخرجته من حجزتها)** يعنې د خپلې وروسته حصې د دبر خواته د کمربند څخه خط راوېسته ، په دواړو رواياتو کې تطبيق دا دی چې د دغې ښځې ويښته اوږده وو ، هغې اول خط د ويښتانو په کوڅۍ کې وتړه او بيا يې هغه د کمربند لاندې کړو ، نو دواړه اطلاقه صحيح دي که **عقاصها** ووايې او که **عجزتها** ووايې .

**ببعض امر رسول الله:** د مکې د فتحې په موقع باندې حضور ﷺ خپله اراده دومره پټه وساتله چې حضرت عائشې رضي الله عنها ته هم پته نه وه چې حضور ﷺ چيرته د جهاد لپاره ځي ؟ بلکه د

مدينې په لارو باندې پيرې ودرولی شوې وې ترڅو کوم کس د اهل مکه په مخ کې د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د مهم سره متعلق راز افشاء نکړي، ځکه که قریشو ته مخکې پته لګیده نو هغو به ښه تیاري کولو نو ښه جنګ به کیده او زیاته وینه به بهیدله. حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وغوښتل چې په بې خبرۍ کې په قریشو باندې حمله وشي ترڅو د کم نه کمه وینه وبهیږي او د حرم شریف تقدس برقراره پاتې شي، د امر رسول الله نه مراد دا دی چې حضرت حاطب د اندازې نه وویل چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ کوم مهم ته روان دی کیدای شي په مکه باندې حمله وي نو یاد ساتئ چې تاسې د حق دغه سیلاب بندولی نشئ مګر زه تاسو خبروم چې د خپل ځان د حفاظت انتظام وکړئ.

**يدا:** ددې جمع ایادی ده احسان او انعام ته ویل کیږي.

**ومايدريک:** ای ای شيءٍ يعلمک انه مستحق للقتل.

**على اهل بدر:** یعنې حاطب بدري صحابي نه دی او شاید الله تعالی د مخکې نه معلومه کړې وې چې د اهل بدر اعمال ګمراه کن کیدلی نشي نو الله تعالی وفرمایل چې ما تاسو وبخښلئ چې څه غواړئ کوئ يې، الله تعالی ته معلومه وه چې دوی به کوم غلط کار نه کوي، د جواب خلاصه دا ده چې اهل بدر داسې شهزادګان دي چې الله تعالی د هغوی هر ناز و انداز بخښي بس د هغوی د محبوبیت په مخ کې زر ګناهونه معاف دي. شاعر ددې مکمل تصویر داسې ویستلی:

**واذا الحبيب اتى بذنب واحد جاءت محاسنه بالف شفيع**

ترجمه: چې کله معشوق د عاشق په مخ کې یوه جرم وکړي نو د هغه محاسن زر سفارشګر راولي د هغه جرم معافوي.

## په بدر کې د شریکو صحابو شان

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۲۱﴾ وَعَنْ رِفَاعَةَ بْنِ رَافِعٍ قَالَ جَاءَ جِبْرَئِيْلُ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ | | | | | |
| رفاعه بن رافع رَضِيَ اللهُ عَنْهُ بیان کوي چې جبرائیل عَلَيْهِ السَّلَامُ رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته راغي او پوښتنه يې | | | | | |
| فَقَالَ | مَا | تَعُدُّوْنَ | أَهْلَ | بَدْرٍ | فِيْكُمْ قَالَ |
| وکړه چې غزوه بدر کې شریکې دونکی تاسو په خپل منځ کې د کومې طبقې خلقو نه شمیر کوئ | | | | | |
| مِنْ | أَفْضَلِ | الْمُسْلِمِيْنَ | أَوْ | كَلِمَةً | نَحْوَهَا |
| حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ورته وفرمائیل مونږ هغوئ د ټولو نه اعلی او د ټولو نه ښه مسلمانانو کې شمیرو یا | | | | | |
| قَالَ | وَكَذٰلِكَ | مَنْ | شَهِدَ | بَدْرًا | |
| حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د غه شان څه نورو الفاظو سره جواب ورکړو حضرت جبرائیل) وویل دغه شان د | | | | | |
| مِنَ | الْمَلَائِكَةِ. | رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ | | | |
| هغه فرشتو مقام اوچت دی کومې چې په غزوه بدر کې شریکې شوې وې. | | | | | |

## دبیعت الرضوان فضیلت

﴿۳۲﴾ وَ عَنْ حَفْصَةَ قَالَتْ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ

او ام المؤمنین بي بي حفصه رضي الله عنها بیان کوي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمائیل زه امید لرم چې کوم

إِنِّيْ لَأَرْجُوْ أَنْ لَا يَدْخُلَ النَّارَ إِنْ شَآءَ اللهُ أَحَدٌ

سړی بدر او حدیبیه کې شریک شوی دی هغه به انشاء الله د دوزخ په اور کې نه داخلیږي ما دي

شَهِدَ بَدْرًا وَ الْحُدَيْبِيَةَ قُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللهِ

خبري اوریدوسره عرض وکړو یارسول الله! آیا الله ! دانه دي فرمائیلي چې په تا سو کې هیڅ

أَلَيْسَ قَدْ قَالَ اللهُ تَعَالٰى وَإِنْ مِّنْكُمْ إِلَّا

سړی داسي نشته چې په دوزخ به نه وارد کیږي حضور صلی الله علیه وسلم وفرمائیل آیا تا دا نه دي اوریدلي چې

وَارِدُهَا قَالَ فَلَمْ تَسْمَعِيْهِ يَقُوْلُ ثُمَّ نُنَجِّي

الله ! دي نه روسته داهم فرمائیلي دي چې بیابه مونږ هغه خلق دوزخ ته تلو نه بچ کړو چې هغوئ

الَّذِيْنَ اتَّقَوْا وَفِيْ رِوَايَةٍ لَا يَدْخُلُ النَّارَ

تقوی اختیار کړه او په یوه روایت کې داسي دي چې حضور صلی الله علیه وسلم وفرمائیل اصحاب شجره کې به

إِنْ شَآءَ اللهُ مِنْ أَصْحَابِ الشَّجَرَةِ أَحَدٌ الَّذِيْنَ

هیڅ سړی انشاء الله د دوزخ په اور کې نه داخلیږي او اصحاب شجره نه مراد هغه خلق دي کومو چې

بَايَعُوْا تَحْتَهَا. رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

د وني لاندي بیعت کړی وو. [بخاري مسلم]

**توضیح : اصحاب الشجرة:** د حدیبیه د صلحې په موقع باندې بیعت رضوان چې د کومې ونې لاندې شوی وو هغه د کیکر ونه وه ، د کیکر دغه ونه په قرآن کریم کې د تحت الشجرة په نوم سره یاده شوې ده ، لته د همدې بیعت او بیعت کونکو ذکر دی ، دا بیعت په هغه وخت کې واخیستلی شو چې کله حضور صلی الله علیه وسلم ته وویلی شو چې اهل مکو حضرت عثمان رضي الله عنه بندي کړی دی او بیا یې قتل کړی دی ، حضور صلی الله علیه وسلم د انتقام اخیستلو او د کفارو سره د جنګ کولو لپاره د صحابو څخه بیعت واخیستلو ، وروسته معلومه شوه چې حضرت عثمان صحیح سالم دی .

ددې بیعت لوی فضیلت دی حضرت ابن مسعود رضي الله عنه فرمایې چې (بایعناه علی الموت) یعنې مونږ په دې باندې بیعت کړی وو چې د حضرت عثمان بدله به اخلو او که نه نو د ځان نه به تیریږو .

﴿۲۳﴾ وَ عَنْ جَابِرٍ قَالَ كُنَّا يَوْمَ الْحُدَيْبِيَةِ أَلْفًا وَ أَرْبَعَ مِائَةٍ

او حضرت جابر رضي الله عنه وايي د حديبيه په ورځ څمونږ تعداد يو زر او څلورسوه ۱۴۰۰ وو او څمونږ

قَالَ لَنَا النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْتُمُ الْيَوْمَ خَيْرُ أَهْلِ الْأَرْضِ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

متعلق رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمائيلي وو نن ورځ تاسو په ځمکې والوکې د ټولو نه ښه خلق ياست. [بخاري مسلم]

﴿۲۴﴾ وَ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ يَصْعَدُ

او حضرت جابر رضي الله عنه بيان کوي د حديبيه د سفر په دوران کې رسول الله صلى الله عليه وسلم چې دا وفرمائيل

الثَّنِيَّةَ ثَنِيَّةَ الْمُرَارِ فَإِنَّهُ يُحَطُّ عَنْهُ مَا حُطَّ

چې ټولو نه مخکې چې کوم خلق هغه ثنية المرار باندې وختل نو د هغه به د ومره ګناهونه معاف شي

عَنْ بَنِيْ إِسْرَائِيْلَ وَ كَانَ أَوَّلَ مَنْ صَعِدَهَا

څومره چې د بني اسرائيلو ګناهونه معاف شوي وي نو د ټولو نه مخکې چې کوم خلق هغه ثنية

خَيْلُنَا خَيْلُ بَنِي الْخَزْرَجِ ثُمَّ تَتَامَّ النَّاسُ

المرار باندې وختل هغه څمونږ آسونه يعني د قبيله خزرج آس سواره وو هغوئ نه روسته مخکې

فَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كُلُّكُمْ

روسته ټول خلق وختل نو رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمائيل تاسو ټول وبخښل شوئ علاوه د هغه سړي نه

مَغْفُوْرٌ لَهُ إِلَّا صَاحِبَ الْجَمَلِ الْأَحْمَرِ فَأَتَيْنَاهُ

چې سور اوښ والا دی يعني د منافقانو سردار عبد الله بن ابي د حضور صلى الله عليه وسلم دي ارشاد اوريدو سره

فَقُلْنَا تَعَالَ يَسْتَغْفِرْ لَكَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

مونږ هغه سور اوښ والا سړي ته ورغلو او هغه ته مو وويل زمونږ سره راځه چې مونږ رسول الله صلى الله عليه وسلم

قَالَ لَأَنْ أَجِدَ ضَالَّتِيْ أَحَبُّ إِلَيَّ مِنْ أَنْ

ته ستا په حق کې هم د بخښش او مغفرت درخواست وکړو خو هغه بدبخت وويل حقيقت دادی چې

يَسْتَغْفِرَ لِيْ صَاحِبُكُمْ.

زه خپل ورک شوی شی پيدا کړم نو دا ځما په نزد د هغه خبرې نه زيات پسنديده او عزيز دی چې ستاسو

رَوَاهُ مُسْلِمٌ. وَذُكِرَ حَدِيْثُ أَنَسٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

صاحب زما د پاره بخښش او مغفرت وغواړي. [مسلم] او د حضرت انس رضي الله عنه حديث: قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

| عَلَيْكَ | أَقْرَأَ | أَنْ | أَمَرَنِيْ | اللّٰهَ | إِنَّ | كَعْبٍ | بْنِ | لِأُبَيِّ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| لِاُبَيِّ بِنِ كَعْبٍ اِنَّ اللّٰهَ اَمَرَنِيْ اَنْ اَقْرَءَ عَلَيْكَ فضائل قرآن نه روسته والا باب كې نقل شوى دى يعني صاحب مصابيح | | | | | | | | |
| الْقُرْآنِ. | فَضَآئِلِ | | بَعْدَ | | بَابِ | | | فِيْ |
| دا حديث هلته دې باب کې نقل کړې وو ليکن دې حديث کې د قرآن کريم ذکر وو ځکه مؤلف مشکوٰة دا هلته نقل کړو | | | | | | | | |

**توضیح : من يصعد:** دا د صعود څخه دى د ختلو په معنى سره دى.

**الثنية:** د دوو غرونو په مينځ کې غونډۍ ته ثنية ويل کيږي او مرار د يو ځاى نوم دى چې د مکې او حديبيه په مينځ کې دى، دا غونډۍ همدغه ځاى ته منسوبه ده په دغه وجه ثنية المرار ويل شوى دى، په ٦ﻫ کې حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د عمرې لپاره مکې ته روان شو يو نيم زر صحابه کرام ورسره وو ليکن چې کله هغه د حديبيه مقام ته ورسيدو نو د قريشو کفارو هغه د عمرې کولو څخه منع کړلو ، يوه ځانته تفصيل طلبه قصه ده ليکن په زير بحث حديث کې چې کومه تذکره ده هغه دا ده چې ثنية المرار يوه سخته او اوچته غونډۍ وه ، حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته دا انديښنه پيدا شوه چې چيرته ددې شاته د قريشو کفارو مورچې جوړه کړې نه وي او ناڅاپه حملې کولو سره نقصان ونه رسوي نو ځکه يې په طور د ترغيب او په طور د انعام يې دا وفرمايل چې په دې غونډۍ باندې که کوم شخص وخيژي او د دښمن احوال معلوم کړي نو د هغه به دومره ګناه ساقطه شي لکه څومره ګناه چې د بنى اسرائيلو معاف شوې وه ، او س سوال دا دى چې د بنى اسرائيلو ګناه چيرته معاف شوې وه ؟ په تاريخ کې ددې لپاره کومه پته نشته نو علماؤ جواب ورکړى چې بنى اسرائيلو ته الله تعالى د اريحا ښار ته د اخليدو حکم کړى وو او فرمايلي يې وو چې کچيرې تاسو په عجز او انکسارۍ او توبې کولو سره او د حطة نعرې لګولو سره سرټيټي داخل شوى نو وعده ده چې ستاسې ګناه به معاف کړم ، بنى اسرائيلو په دې وعده باندې عمل ونکړو او اريحا ته د داخليدو په وخت د سجدې په ځاى په کناټو ښنبيدلو سره داخل شول او د حطة په ځاى د حنطة الفاظ ويل يې شروع کړل ، الله تعالى هغوى ته سزا ورکړله.

دلته حضور اکرم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د **(ماحط عن بنى اسرائيل)** الفاظو سره د هغوى د ګناه معاف کولو وعدې ته اشاره وفرمايله چې کچيرې بنى اسرائيلو دغه وعده پوره کړې واى نو د هغې ټوله ګناه معاف کيدله مګر هغوى داسې ونکړل او وعده خلافي يې وکړه لهٰذا ستاسو نه چې کوم کس په ثنية المرار باندې وخيژي او د دښمن حال معلوم کړي نو د هغه ګناه به ټوله معاف شي.

**خيل بنى الخزرج:** حضرت جابر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ په خپله د بنو الخزرج سره تعلق لري هغه فرمايي چې په ثنية المرار باندې د ختلو سعادت د ټولو نه مخکې زمونږ د قبيلې شهسوارو حاصل کړو.

**ثم تتآمّ الناس:** دا صيغه د تمام په معنى سره ده اى تتابع يعني ددينه وروسته خلک په کثرت سره لاړل، حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بشارت واوروه چې څوک په دې کې تللي وي هغوى ټول د ګناه څخه پاک شول.

(الا صاحب الجمل الاحمر) د سره اوښ د مالک مغفرت نه کيږي، د سره اوښ د مالک نه رئيس المنافقين عبدالله بن ابی ابن سلول مراد دی، حضرت جابر رضی الله عنه فرمايي چې مونږ هغه ته ووېل چې راشه او د حضور صلی الله علیه وسلم څخه د استغفار دعاء وغواړه، په جواب کې عبدالله بن ابی بن سلول ووېل چې زما اوښه ورکه شوې ده، زه د هغه په تلاش کې روان یم کچیرې ما ته زما ورکه اوښه ملاؤ شوه نو هغه به زما لپاره د دينه زيات بهتره وي چې ستاسو نبی زما لپاره استغفار وغواړي.

د صاحبکم کومه اصطلاح چې په هغه وخت کې وه دا به کفارو استعمالوله، هغوی به مسلمانانو ته ووېل چې دا نبی ستاسو ملګری او مشر دی زمونږ نه دی، دغه منافق هم د کفارو والا اصطلاح استعمال کړه.

# اَلْفَصْلُ الثَّانِيْ

## د شیخینو رضی الله عنهما د ابن مسعود رضی الله عنه فضیلت

| |
|---|
| ﴿۳۵﴾ عَنِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| حضرت عبد الله ابن مسعود رضی الله عنه د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه روايت کوي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمائيل |
| قَالَ اِقْتَدُوْا بِالَّذَيْنَ مِنْ بَعْدِيْ مِنْ اَصْحَابِيْ |
| تاسو د هغه دواړو تابعداري کوئ چې څما د صحابو رضی الله عنهم نه دي او زما نه روسته به خلفاء وي |
| اَبِيْ بَكْرٍ وَعُمَرَ وَاهْتَدُوْا بِهَدْيِ عَمَّارٍ وَتَمَسَّكُوْا |
| او هغه ابوبکر رضی الله عنه او عمر رضی الله عنه دی د عمار بن یاسر رضی الله عنه سيرت او د هغه نقش قدم اختيار ولو سره |
| بِعَهْدِ ابْنِ اُمِّ عَبْدٍ وَ فِيْ رِوَايَةِ حُذَيْفَةَ |
| سيده لاري باندې ځئ او د ام عبد د ځوی عبد الله ابن مسعود رضی الله عنه عهد مضبوط ونيسئ او په يوه |
| مَا حَدَّثَكُمْ ابْنُ مَسْعُوْدٍ فَصَدِّقُوْهُ |
| دوهم روايت کې چې حضرت حذيفه رضی الله عنه نه روايت دی د ام عبد د ځوی عهد مضبوط ونيسئ په ځای |
| بَدَلَ وَ تَمَسَّكُوْا بِعَهْدِ ابْنِ اُمِّ عَبْدٍ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ |
| دا الفاظ دي چې: ابن مسعود رضی الله عنه تاسو ته کوم حديث بيان کړي په هغه کې هغه رېښتني ګڼئ. [ترمذي] |

**توضیح**: اقتدوا: يعني زما نه روسته د شيخينو اقتداء وکړئ، معلومه شوه چې حضور صلی الله علیه وسلم په ډېرو اشاراتو او بعضو تصريحاتو کې د حضرت صديق او حضرت عمر خلافت بيان کړی دی، په دې حديث کې هم واضحه اشاره ده.

**بعهد ابن ام عبد**: د عهد څخه وصيت او نصيحت او ديني احکام او مسائل مراد دي، په يو بل حديث

کړي دي : ماحدثکم ابن ام عبد فصدقوه ، په یو روایت کې دي چې حضور ﷺ وفرمایل:

رضیت لامتي ما رضی به ابن ام عبد.

د زیر بحث حدیث او دغه قسم نورو روایاتو په وجه حضرت امام اعظم ابو حنیفة رحمه الله د خپل اجتهادي مسائلو او فقهي بنیاد د حضرت ابن مسعود رضي الله عنه په روایاتو او د هغه په ترجیحاتو باندې ایخی دی، حضرت ابن مسعود رضي الله عنه د شیخینو خلافت بلاچون و چرا قبول کړی وو.

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۳۶﴾ | وَعَنْ | عَلِيٍّ | قَالَ | رَسُوْلُ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ |
| او حضرت علي کرم الله وجهه بیان کوي چې په یوه موقعه رسول الله ﷺ فرمائیلي وو که ما د | | | | | | | | | |
| لَوْ | كُنْتُ | مُؤَمِّرًا | أَحَدًا مِّنْ | غَيْرِ | مَشُوْرَةٍ | لَأَمَّرْتُ | عَلَيْهِمْ | | |
| مشورې نه بغیر څوک امیر او حاکم جوړولای نو پر خلقو امیر او حاکم به مې د اُمِ عبد ځوی یعنې | | | | | | | | | |
| ابْنَ أُمِّ عَبْدٍ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَابْنُ مَاجَةَ. | | | | | | | | | |
| عبد الله ابن مسعود ,جوړ کړی وو. [ترمذي ابن ماجه] | | | | | | | | | |

**توضیح : مؤمرا:** د امیر جوړولو په معنی سره دی، یعنې کچیرې د کومې عامې مشورې نه بغیر ما څوک په کوم کار باندې مقررولی نو د ابن مسعود رضي الله عنه کمالاتو او صفاتو په پیش نظر سره ما هغه امیر جوړولو، اوس سوال دا دی چې د حضور ﷺ د وفات نه بعد خلفاء اربعه امیران جوړ شوي دي حضرت ابن مسعود رضي الله عنه کله هم امیر جوړ شوی نه دی نو د زیر بحث حدیث مطلب څه دی؟ ددې جواب دا دی چې حضور ﷺ د خپل وفات نه بعد امارت ته اشاره کړې نه ده بلکه په دې کې د امیر عام په ځای کوم بل امارت ته اشاره ده لکه څنګه چې په جهادي مهماتو او د غزواتو په تشکیلاتو کې څوک امیر ګرځولی کیږي، مطلب دا دی چې که عامه مشوره نه وای نو زما رأیه به دا وه چې ابن مسعود رضي الله عنه همیشه د جماعت امیر جوړ کړی شي.

## دیو څو صحابو رضي الله عنهم مخصوص فضائل

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۳۷﴾ | وَ | عَنْ | خَيْثَمَةَ | بْنِ | أَبِيْ | سَبْرَةَ | قَالَ | أَتَيْتُ | الْمَدِيْنَةَ |
| او حضرت خیثمه بن ابي سبرة رحمه الله بیان کوي چې زه کله مدینې ته راغلم نو ما د الله نه دعا وغوښتله | | | | | | | | | |
| فَسَأَلْتُ | اللهَ | أَنْ | يُّيَسِّرَ | لِيْ | | | | | |
| چې ماته یو نیک هم نشین میسر حاصل شي یعنې ماته یو داسي نیک کس حاصل شي چې د هم نشین | | | | | | | | | |
| جَلِيْسًا | صَالِحًا | فَيَسَّرَ لِيْ | | | | | | | |
| جوړیدو کامل استعداد او صلاحیت لري او د هغه د هم نشینی نه استفاده کیدی شي نو حق تعالی | | | | | | | | | |

أَبَا هُرَيْرَةَ فَجَلَسْتُ إِلَيْهِ

دحضرت ابو هريره په شان هستي زما دپاره ميسر وفرمائيله چې د هغه صحبت او هم نشيني ما اختيار کړه

فَقُلْتُ إِنِّيْ سَأَلْتُ اللهَ أَنْ يُيَسِّرَ لِيْ

هغه ته عرض وکړو چې ما د الله تعالى نه دعا غوښتي وه چې ماته يو هم نشين حاصل شي او الله تعالى

جَلِيْسًا صَالِحًا فَوُفِّقْتَ لِيْ فَقَالَ

ځما دعا قبلولو سره ستاسو په شان همنشين ماته عطا کړو حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ زما نه پوښتنه

مِنْ أَيْنَ أَنْتَ قُلْتُ مِنْ أَهْلِ الْكُوْفَةِ

وکړه ته د کوم ځای اوسيدونکى يې ما عرض وکړو زه د کوفي اوسيدونکى يم دلته ځکه راغلى يم د

جِئْتُ أَلْتَمِسُ الْخَيْرَ وَأَطْلُبُهُ فَقَالَ

خير لټونکي او خپل نفس د پاره د خير طلبګار يم ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمائيل ايا ستاسو په منځ کې

أَلَيْسَ فِيْكُمْ سَعْدُ بْنُ مَالِكٍ مُجَابُ الدَّعْوَةِ

يعني ستاسو په ښار کې سعد بن مالک رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نشته چې مستجاب الدعوات دى آيا ستاسو په منځ

وَابْنُ مَسْعُوْدٍ صَاحِبُ طَهُوْرِ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَنَعْلَيْهِ

کې عبد الله ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نشته چې د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د ځان سره ساتل آيا په تاسو کې

وَحُذَيْفَةُ صَاحِبُ سِرِّ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَعَمَّارُ الَّذِيْ

حذيفه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نشته چې د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صاحب رازوو آيا په تاسو کې د عمار رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په شان

أَجَارَهُ اللهُ مِنَ الشَّيْطَانِ عَلَى لِسَانِ نَبِيِّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ

هستي نشته چې الله د خپل رسول صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د ژبې مبارکې په ذريعه د شيطان نه امن او تحفظ ورته

وَسَلْمَانُ صَاحِبُ الْكِتَابَيْنِ يَعْنِي الْإِنْجِيْلَ

عطاء کړي وو او آيا ستاسو په منځ کې سلمان فارسي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نشته چې د دوو کتابونو يعني انجيل

وَالْقُرْآنَ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ

او قرآن منونکى دى . [ترمذي]

﴿۳۸﴾ وَعَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نِعْمَ الرَّجُلُ أَبُوْ بَكْرٍ

او حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې رسول کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمائيل ابو بکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هم ډير ښه سړى

نِعْمَ الرَّجُلُ عُمَرُ نِعْمَ الرَّجُلُ أَبُو عُبَيْدَةَ بْنُ الْجَرَّاحِ نِعْمَ الرَّجُلُ أُسَيْدُ بْنُ حُضَيْرٍ

دى عمر رضي الله عنه هم ډير ښه سړى دى ابو عبيده بن الجراح رضي الله عنه هم ډير ښه سړى دى اسيد بن حضير رضي الله عنه

نِعْمَ الرَّجُلُ ثَابِتُ بْنُ قَيْسِ بْنِ شَمَّاسٍ نِعْمَ الرَّجُلُ مُعَاذُ بْنُ جَبَلٍ نِعْمَ الرَّجُلُ

هم ډير ښه سړى دى ثابت بن قيس بن شماس هم ډير ښه سړى دى معاذ بن جبل رضي الله عنه هم ډير ښه سړى دى

مُعَاذُ بْنُ عَمْرِو بْنِ الْجَمُوحِ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ هٰذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ

عمرو بن الجموح هم ډير ښه سړى دى دا روايت ترمذي نقل كړى دى او ويلي يي دي چې دا حديث غريب دى.

## هغه دري صحابه چې جنت د هغوى مشتاق دى

﴿۳۹﴾ وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ الْجَنَّةَ تَشْتَاقُ إِلٰى ثَلَاثَةٍ

او حضرت انس رضي الله عنه بيان كوي چې رسول كريم صلى الله عليه وسلم و فرمائيل حقيقت دا دى چې جنت د دريو

عَلِيٍّ وَ عَمَّارٍ وَ سَلْمَانَ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

سړو ډير مشتاق دى او هغه علي رضي الله عنه عمار رضي الله عنه سلمان فارسي رضي الله عنه دى. [ترمذي]

## د حضرت عمار رضي الله عنه فضيلت

﴿۴۰﴾ وَعَنْ عَلِيٍّ قَالَ اِسْتَأْذَنَ عَمَّارٌ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

او حضرت علي كرم الله وجهه بيان كوي چې يوه ورځ عمار رضي الله عنه د حضور صلى الله عليه وسلم خدمت اقدس كې

فَقَالَ ائْذَنُوْا لَهٗ مَرْحَبًا بِالطَّيِّبِ

د حاضري اجازه طلب كړه نو رسول الله صلى الله عليه وسلم و فرمائيل دا دننه راولئ پاك او پاكې زه شخصته

الْمُطَيَّبِ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

پخير راغلى دى. [ترمذي]

**توضيح:** الطيب: د ذات په اعتبار سره پاكيزه مراد دى.

المطيب: د صفاتو او عاداتو او اخلاقو په اعتبار سره پاكيزه مراد دى، مطلب دا دى چې حضرت عمار رضي الله عنه ظاهرًا او باطنًا پاكيزه انسان دى.

## د حضرت عمار رضي الله عنه فضيلت

﴿۴۱﴾ وَ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ مَا خُيِّرَ عَمَّارٌ بَيْنَ

او بي بي عائشه رضي الله عنها بيان كوي چې رسول كريم صلى الله عليه وسلم و فرمائيل عمار رضي الله عنه ته چې كله

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| الْأَمْرَيْنِ | إِلَّا | اخْتَارَ | أَشَدَّهُمَا | . | رَوَاهُ | التِّرْمِذِيُّ. |

دوو كارونو كې د يو كار اختيار وركړل شو نو هغه هميشه به سخت ترين او مشكل كار اختيار كړو. [ترمذي]

**توضيح**: اشدهما: په يو روايت كې **أيسرهما** دى يعنې آسانه كار به يې اختيار ولو. په دې دواړو روايتونو كې په ظاهره تعارض معلوميږي نو ددې جواب دا دى چې د اشدهما تعلق د حضرت عمار د ذات سره دى چې هغه به د زيات ثواب د حصول لپاره سخترينه كار د خپل ذات لپاره غوره كولو ليكن د نورو اشخاصو په اعتبار سره به يې آسانه كار غوره كولو تر څو د نورو خلكو لپاره هغه كار باعث د مشقت و نه ګرځي.

## د حضرت سعد بن معاذ رضي الله عنه جنازې ته فريشتې راغلې وې

(۴۲) وَ عَنْ أَنَسٍ قَالَ لَمَّا حُمِلَتْ جَنَازَةُ سَعْدِ بْنِ مُعَاذٍ

او حضرت انس رضي الله عنه بيان كوي چې هركله چې د حضرت سعد بن معاذ رضي الله عنه جنازه اوچتولو

قَالَ الْمُنَافِقُوْنَ مَا أَخَفَّ جَنَازَتَهُ وَ ذٰلِكَ لِحُكْمِهِ فِيْ بَنِيْ

سره خلق روان شول نو منافقانو وويل چې د ده جنازه څومره سپكه ده دا د هغه فيصلې په وجه چې

قُرَيْظَةَ فَبَلَغَ ذٰلِكَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ إِنَّ

هغه د بنو قريظو په باره كې كړې وه د منافقانو دا خبره چې رسول الله صلى الله عليه وسلم ته ورسيده نو

الْمَلَائِكَةَ كَانَتْ تَحْمِلُهُ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ

رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمائيل د هغه جنازه فرشتو پورته كړې وه. [ترمذي]

**توضيح**: لحكمه في بني قريظة: بنو قريظة په مدينه كې د اوسيدونكو بااثره يهوديانو د يوې قبيلې نوم دى د حضرت سعد بن معاذ رضي الله عنه هغو خلكو سره مخكنى تعلقات وو، د جنګ خندق نه وروسته چې كله د دغو يهودو محاصره وشوه نو هغوى حضرت سعد بن معاذ رضي الله عنه خپل حكم ومنلو چې هغه كومه فيصله وكړي نو هغه مونږ ته قبوله ده، هغه راغى او د تورات مطابق يې فيصله واوروله چې ښځې، بوډاګان او ماشومان دې غلامان وګرځولى شي او جنګيدونكي ځوانان دې قتل كړى شي، چې كله دغه فيصله نافذه شوه نو منافقين ډير ناراضه شول، چې كله د حضرت سعد رضي الله عنه انتقال وشو او جنازه يې پورته كړى شوه نو منافقينو وويل چې د سعد جنازه درنه نه ده سپكه ده ګويا د هغه په ايمان كې فرق راغلى دى ځكه هغه چې د بنو قريظه په باره كې كومه فيصله كړې وه هغه ظالمانه فيصله وه، ددې خبرې د اطلاع په جواب كې حضور صلى الله عليه وسلم وفرمايل چې جنازه ددې لپاره سپكه معلوميږي چې ملائكو جنازه پورته كړې ده، وايې چې د هغه د جنازې په لمانځه كې اويا زره ملائكې راغلې وې.

## د حضرت ابوذر رضي الله عنه فضيلت

﴿۴۳﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

او حضرت عبد الله بن عمرو رضي الله عنه وايي ما د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه واوريدل د ابوذر رضي الله عنه نه زيات د

يَقُوْلُ مَا أَظَلَّتِ الْخَضْرَآءُ وَلَآ أَقَلَّتِ الْغَبْرَآءُ

رېښتني ژبې سړي باندې نه شين آسمان سورى کړى دى او نه غبار الود ځمکې د هغه نه زيات]

أَصْدَقَ مِنْ أَبِيْ ذَرٍّ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ

رېښتنى سړى پورته کړى. [ترمذي]

**توضيح**: اصدق: زيات رېښتيني ته اصدق ويل کيږي.

**اظلت**: د سورى کولو په معنى سره دى.

**الخضراء**: شين (نيله) آسمان ته خضراء ويل کيږي.

**الغبراء**: ګردآلود ځمکې ته غبراء ويل کيږي، ابوذر غفارى ددې امت د ټولو نه زيات زاهد او تارک الدنيا انسان وو، هغه د يو وخت نه د بل وخت لپاره خوراک ايښودل جائز نه ګڼل، په دې باندې به يې خلک په آمسا باندې وهل، د اسلام نه مخکې د حنفاؤ شخه وو، د حضرت امير معاويه رضي الله عنه سره په شام کې څه وخت پاتې شو، حضرت امير معاويه رضي الله عنه حضرت عثمان رضي الله عنه ته درخواست وکړو چې هغه مدينې ته وغواړي، چې کله حضرت ابوذر غفارى رضي الله عنه مدينې ته راغى نو د حضراتو صحابو او تابعينو سره يې شور کولو، حضرت عثمان رضي الله عنه هغه ته د مدينې نه څو ميله بهر د (زبده) مقام ته د تللو وويل، هغه لاړو او هلته يې انتقال وشو او هلته دفن دى، هغه په زهد کې د حضرت عيسى عليه السلام سره مشابه وو.

﴿۴۴﴾ وَعَنْ أَبِيْ ذَرٍّ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا أَظَلَّتِ

او حضرت ابوذر رضي الله عنه وايي چې رسول کريم صلى الله عليه وسلم وفرمائيل څه داسې ويونکې باندې نه خو شين

الْخَضْرَآءُ وَلَا أَقَلَّتِ الْغَبْرَآءُ مِنْ ذِيْ لَهْجَةٍ أَصْدَقَ

آسمان سورى وکړه او نه ځمکې هغه پورته کړى چې ابوذر نه زيات رېښتني وي او الله او د رسول الله صلى الله عليه وسلم

وَلَا أَوْفٰى مِنْ أَبِيْ ذَرٍّ شِبْهِ عِيْسٰى بْنِ مَرْيَمَ

د حق د ابوذر رضي الله عنه نه زيات اداکونکى وي هغه ابوذر رضي الله عنه چې د عيسى بن مريم مشابه دى

يَعْنِيْ فِي الزُّهْدِ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ

يعني په زُهد کې. [ترمذي]

**توضيح**: اقلت: پورته کولو ته اقلال ويل کيږي دا د باب **افعال** څخه دى په قرآن کې **حتى اذا اقلت سحاباً**

همدې شخه دی .

## دعلم څلور او چتې منارې

| |
|---|
| ﴿۴۵﴾ وَعَنْ مُعَاذِبْنِ جَبَلٍ لَمَّا حَضَرَهُ الْمَوْتُ قَالَ اَلْتَمِسُوا الْعِلْمَ |
| او حضرت معاذ بن جبل رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی د هغه د مرګ وخت چې قريب شو نو وصيت يې وکړو |
| عِنْدَ أَرْبَعَةٍ عِنْدَ عُوَيْمِرٍ أَبِي الدَّرْدَآءِ وَعِنْدَ سَلْمَانَ |
| چې علم څلورو سړو نه حاصلوئ عويمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه چې د هغه کنيت ابو درداء رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دی سلمان |
| وَعِنْدَ ابْنِ مَسْعُوْدٍ وَعِنْدَ عَبْدِ اللهِ بْنِ سَلَامٍ اَلَّذِيْ كَانَ يَهُوْدِيًّا |
| فارسي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه او عبد الله بن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه او عبد الله بن سلام رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه چې مخکې يهودي |
| فَأَسْلَمَ فَإِنِّيْ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ |
| وو او بيا اسلام يې قبول کړو ما رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه اوريدلي دي چې هغه عبد الله بن سلام د |
| إِنَّهُ عَاشِرُ عَشَرَةٍ فِي الْجَنَّةِ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ |
| جنت د لس سړو نه لسم سړی دی. [ترمذي] |

**توضيح : عاشر عشرة:** د لسو اشخاصو څخه لسم شخص دی . ددې جملې مطلب دا دی چې عبد الله بن سلام ګويا د لسو اشخاصو څخه چې عشره مبشره دي د هغو څخه د يو پشان دی ، دويم مطلب دا بيان کړی شوی دی چې عبد الله بن سلام په جنت کې د داخليدونکو کسانو څخه لسم کس دی ، يا دا مطلب دی چې د يهودو څخه چې کوم لوی لوی سرداران جنت ته ځي د هغوی نه به يو عبد الله بن سلام وي .

## د حذيفه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فضيلت

| |
|---|
| ﴿۴۶﴾ وَعَنْ حُذَيْفَةَ قَالَ قَالُوْا يَا رَسُوْلَ اللهِ |
| او حضرت حذيفه بن اليمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ بيان کوي چې يوه ورځ صحابو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ وويل يا رسول الله ! |
| لَوِاسْتَخْلَفْتَ قَالَ إِنِ اسْتَخْلَفْتُ |
| که تاسو پخپله صحابو نه څوک خپل خليفه مقرر کړی وی نو ښه به وو حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ورته وفرمائيل |
| عَلَيْكُمْ فَعَصَيْتُمُوْهُ عُذِّبْتُمْ وَلٰكِنْ مَا حَدَّثَكُمْ |
| که زه څوک په تاسو باندې خپل خليفه مقرر کړم او بيا تاسو د هغه نافرماني وکړئ نو په عذاب کې |
| حُذَيْفَةُ فَصَدِّقُوْهُ وَمَا أَقْرَئَكُمْ |
| به ونيول شئ بيا هم زه تاسو ته وصيت کوم چې حذيفه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ تاسو ته څه وايي يا کوم حديث بيان |

| |
|---|
| عَبْدُ اللهِ فَاقْرَءُوْهُ . رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ. |
| کړي نو هغه رېښتني وګڼئ او عبد الله بن مسعود رضي الله عنه چې تاسو ته څه ولولي هغه لولئ. |

**توضیح** : لو استخلفت: ای لو جعلت احدا بعدک خلیفة لکان حسناً ، یعنې صحابو سوال وکړو چې یارسول الله! کچیرې ته یو څوک د خپل ځان نه وروسته خلیفه مقرر کړې نو دا به ښه وي ، حضور صلی الله علیه وسلم د اسلوب حکیم لاندې جواب ورکړو چې ستاسو دا سوال ښه نه دی او نه تاسو ته په دې کې د پریوتلو ضرورت دی ، دا د الله تعالی په لاس کې ده هغه په مناسب وخت کې چې څوک مقرروي تاسې به هغه منئ او ستاسو به په هغه باندې اتفاق راځي لیکن فرض کړه کچیرې زه د اوس نه څوک خلیفه مقرر کړم او وروسته ستاسو رأیه د دینه مخالفه شوه نو تاسې به په سخت عذاب کې مبتلاء شئ، نو ځکه په دې سوال کې مه پریوځئ او مه د خلافت خبره کوئ بلکه د الله تعالی کتاب او سنت مضبوطې سره ونیسئ، د کتاب او سنت په خپلولو کې د حذیفه رضي الله عنه او عبد الله بن مسعود رضي الله عنه اقتداء وکړئ. د دې دواړو تخصیص د دې لپاره وشو چې حضرت حذیفه صاحب سر رسول الله وو او حضرت ابن مسعود په احکامو د شریعت کې ممتاز حیثیت لرلو ، په دې کې د دواړو د فضیلت ذکر دی.

## د حضرت محمد بن مسلمه رضي الله عنه فضیلت

| |
|---|
| ﴿۴۷﴾ وَ عَنْهُ قَالَ مَا أَحَدٌ مِّنَ النَّاسِ تُدْرِكُهُ الْفِتْنَةُ |
| او حضرت حذیفه رضي الله عنه وایي هر کله چې فتنه خلق راګیر کړي نو ما سره خوف دی چې هیڅ سړی به |
| إِلَّا أَنَا أَخَافُهَا عَلَيْهِ إِلَّا مُحَمَّدَ بْنَ مَسْلَمَةَ فَإِنِّيْ سَمِعْتُ |
| د هغه د اثر نه محفوظ پاتې نشي علاوه د محمد بن مسلمه رضي الله عنه نه ځکه چې ما د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه |
| رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ لَا تَضُرُّكَ الْفِتْنَةُ. |
| محمد بن مسلمه ته دا فرمائیل اوریدلي دي چې فتنه به تا ته ضرر نه رسوي دا روایت ابو داود نقل کړی دی او په |
| رَوَاهُ أَبُوْ دَاوُدَ وَسَكَتَ عَنْهُ وَأَقَرَّهُ عَبْدُ الْعَظِيْمِ الْمُنْذِرِيُّ. |
| دې باره کې سکوت یې اختیار کړی دی یا هم محدث عبد العظیم منذري رحمه الله دا حدیث ثابت کړی دی. |

## د حضرت عبد الله بن زبیر رضي الله عنه فضیلت

| |
|---|
| ﴿۴۸﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَآى |
| او بي بي عائشه رضي الله عنها بیان کوي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم د زبیر په کور کې څراغ بل اولیدلو نو وي |
| فِيْ بَيْتِ الزُّبَيْرِ مِصْبَاحًا فَقَالَ يَا عَائِشَةُ مَا أُرَى |
| فرمائیل ای عائشې رضي الله عنها څما خیال کې د بي بي اسماء رضي الله عنها بچی پیدا شوی دی ځکه چې د |

| تُسَمُّوْهُ | وَلَا | نُفِسَتْ | قَدْ | إِلَّا | أَسْمَاءَ |
|---|---|---|---|---|---|

هغه په نزد ولادت قريب وو او دا وقت خلاف معمول د ثراغ بليدل د دي خبري علامه ده تاسو خلق د

| وَحَنَّكَهُ | اللهِ | عَبْدَ | فَسَمَّاهُ | أُسَمِّيَهُ | حَتّٰى |
|---|---|---|---|---|---|

دې بچي نوم مه ږدئ تردې پورې چې زه يې نوم كيږدم نو حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د هغه بچي نوم عبد الله كيخود و

بِتَمْرَةٍ بِيَدِهٖ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

او د كجورو په ذريعه يې د هغه تحنيک وکړو.

## حضرت معاويه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فضيلت

﴿۴۹﴾ وَعَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ أَبِيْ عَمِيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

او حضرت عبد الرحمٰن بن ابي عميره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه روايت كوي چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د

| هَادِيًا | اجْعَلْهُ | اَللّٰهُمَّ | لِمُعَاوِيَةَ | قَالَ | أَنَّهُ |
|---|---|---|---|---|---|

حضرت معاويه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په حق كې داسې دعا وكړه اې الله دا سيده لار ښوونكى او سيده لار پيدا

مَهْدِيًّا وَاهْدِ بِهٖ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

كوونكى جوړ كړې او د ده په ذريعه خلقو ته هدايت وكړې. [ترمذي]

## د حضرت عمرو بن العاص رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فضيلت

﴿۵۰﴾ وَعَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَسْلَمَ النَّاسُ

او حضرت عقبه بن عامر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمائيل خلقو خو اسلام قبول كړو او

| وَقَالَ | التِّرْمِذِيُّ | رَوَاهُ | الْعَاصِ. | بْنُ | عَمْرُو | وَآمَنَ |
|---|---|---|---|---|---|---|

عمرو بن العاص رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ايمان راوړى دى دا روايت ترمذي نقل كړى دى او ويلي يې دي چې

هٰذَا حَدِيْثٌ غَرِيْبٌ وَلَيْسَ إِسْنَادُهُ بِالْقَوِيِّ.

دا حديث غريب دى او د دې اسناد قوي نه دى.

**توضيح**: اسلم الناس و آمن عمرو بن العاص: ددې كلام يو مطلب دا دى چې د نور خلكو سره خو جنګونه وشول نو بيا مسلمانان شول ليكن عمرو بن العاص رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خو په رضا او رغبت سره پخپله مسلمان شو. ددې كلام دويم مطلب دا دى چې نورو خلكو ته د اسلام او ايمان دعوت وركړى شو نو هغوى مسلمانان شول ليكن عمرو بن العاص رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د اسلام د حقانيت او د محمد عربي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د نبوت ادراک وكړو او په زړه كې يې د قبوليت او ايمان يوه جذبه پيدا شوه او په منډه مدينې ته راغى او ايمان يې قبول كړلو. ويل كيږي چې د حبشې نجاشي هغه ته وويل چې تعجب دى اى عمر!

محمد صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ستاسو د تره ځوی دی او ته د هغه د حقیقت او حقانیت څخه بی خبره یې؟ د مکې کفارو حضرت عمرو بن العاص رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د سفیر په توګه حبشې ته لیږلی وو چې د مکې نه حبشې ته تښتیدلي مسلمانان واپس راوله، هلته چې کله عمرو بن العاص په خپل کار کې ناکامه شو نو د الله تعالی له طرفه د هغه په زړه کې د ایمان نور داخل شو او هغه ایمان راوړو، په دې طریقه هغه علی وجه البصیرة په زړه او جان سره ایمان قبول کړلو او په ډېر عمده طریقې سره یې د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره د اسلام په باره کې خبرې ز کړې، شاید همدیته اشاره وي چې نورو خلکو اسلام قبول کړو مګر عمرو بن العاص رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ایمان راوړو.

## د حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د شهید والد فضیلت

| |
|---|
| ﴿۵۱﴾ وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ لَقِيَنِيْ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ |
| او حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ بیان کوي چې د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره ځما ملاقات وشو نو هغه راته وفرمائیل |
| يَا جَابِرُ مَالِيْ أَرَاكَ مُنْكَسِرًا قُلْتُ أُسْتُشْهِدَ |
| ای جابر! څه وجه ده چې زه تا غمجن وینم؟ ما عرض وکړو یا رسول الله! ځما پلار غزوه احد کې شهید |
| أَبِيْ وَ تَرَكَ عِيَالًا وَ دَيْنًا |
| شوی دی او هغه یوه لویه کورنۍ او قرضه پریښې ده ګویا ځما د پریشانۍ څو اسباب پیدا شوي دي |
| قَالَ: أَفَلَا أُبَشِّرُكَ بِمَا لَقِيَ اللهُ بِهِ أَبَاكَ |
| حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمائیل آیا زه تا ته د هغه معاملې خبر درکولو سره تا خوشحاله نه کړم چې الله! |
| قُلْتُ بَلٰى يَا رَسُوْلَ اللهِ قَالَ مَا كَلَّمَ اللهُ |
| ستا پلار سره کړیده ما عرض وکړو ولې نه یا رسول الله! حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمائیل الله چې کله هم |
| أَحَدًا قَطُّ إِلَّا مِنْ وَّرَآءِ حِجَابٍ وَّأَحْيٰى أَبَاكَ |
| چا سره کلام کړی دی د پردې حجاب د شا نه یې کړی دی خو ستا پلار الله! ژوندی کړو او بیا هغه |
| فَكَلَّمَهُ كِفَاحًا قَالَ يَا عَبْدِيْ تَمَنَّ عَلَيَّ أُعْطِيْكَ |
| سره یې روبرو کلام وفرمایلو او ورته یې وفرمائیل ای ځما خاص بنده! ځما د فضل او کرم په تکیا |
| قَالَ يَا رَبِّ تُحْيِيْنِيْ فَأُقْتَلَ فِيْكَ ثَانِيَةً |
| ارزو وکړه زه به یې تا ته درکړم، ستا پلار ګویا شو ای ځما ربه! زه خو بس دا غواړم چې ما ژوندی کړه |
| قَالَ الرَّبُّ تَبَارَكَ وَتَعَالٰى |
| دنیا ته مې بیا ولیږه چې ستا په لار کې جهاد کولو سره یو وار بیا ووژل شم الله تعالی ورته وفرمائیل |

| إِنَّهُ | قَدْ | سَبَقَ | مِنِّيْ | أَنَّهُمْ | لَا | يَرْجِعُوْنَ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| په دي باره کې دا حقيقت ياد ساتل پکار دي چې ځما دا حکم د مخکې نه نافذ دي چې څوک مړه شوي | | | | | | |
| فَنَزَلَتْ | | وَلَا | | تَحْسَبَنَّ | | الَّذِيْنَ |
| دي دنيا ته به بيرته نه راځي دا آيت نازل شو چې د هغه ترجمه داده او کوم خلق چې د الله ! په لار کې | | | | | | |
| قُتِلُوْ فِيْ سَبِيْلِ اللهِ أَمْوَاتًا. اَلْآيَةَ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ. | | | | | | |
| قتل شوي دي هغوئ باندې د مړو خيال مه کوئ الخ. [ترمذي] | | | | | | |

**توضیح** : منكسرا: يعني غمگينه او خپه وو ، ددې څه وجه ده ؟ **كفاحا**: په كاف باندې زير دى مخامخ خبرو كولو ته ويل كيږي يعني ستا ابا جان عبد الله چې په احد كې شهيد شوى دى الله تعالى هغه ژوندى كړلو او بلا واسطه او بلا قاصد يې د هغه سره خبرې وكړې ، معلومه شوه چې د احد د شهيدانو سره الله تعالى خبرې وكړې مگر د پردې شاته يې وكړې صرف د حضرت جابر رضي الله عنه والد عبد الله رضي الله عنه سره يې د پردې د ننه او مخامخ خبرې وكړې .

| ﴿۵۲﴾ وَعَنْهُ قَالَ اسْتَغْفَرَلِيْ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَمْسًا وَّعِشْرِيْنَ مَرَّةً. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ. |
|---|
| او حضرت جابر رضي الله عنه وايي نبي صلى الله عليه وسلم ځما د پاره پنځويشت واره د مغفرت دعا غوښتلې ده. [ترمذي] |

## د حضرت براء بن مالک رضي الله عنه فضيلت

| ﴿۵۳﴾ | وَعَنْ | أَنَسٍ | قَالَ | قَالَ | رَسُوْلُ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ | كَمْ | مِنْ | أَشْعَثَ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| او حضرت انس رضي الله عنه وايي چې رسول کريم صلى الله عليه وسلم وفرمائيل څومره خلق دي چې په ظاهره خو ببر | | | | | | | | | | | | | |
| أَغْبَرَ | | | ذِيْ | | | طِمْرَيْنِ | | | | | | | لَايُؤْبَهُ |
| سري په گرځ لړلي او دوي زړې کپړې اغوستونکي وي او نه څوک د هغوئ پروا کوي او نه هغوئ | | | | | | | | | | | | | |
| لَهُ | | لَوْ | | أَقْسَمَ | | عَلَى | | اللهِ | | لَأَبَرَّهُ | | | مِنْهُمْ |
| طرف ته توجه کوي ليکن د هغوئ د باطن داحال وي که هغوئ د الله په بهروسه قسم وکړو نو الله ! | | | | | | | | | | | | | |
| اَلْبَرَآءُ | | | بْنُ | | | مَالِكٍ. | | | رَوَاهُ | | | | التِّرْمِذِيُّ |
| د هغوئ قسم رېښتيا کوي او داسي خلقو نه يو براء بن مالک رضي الله عنه هم دی دا روايت ترمذي او | | | | | | | | | | | | | |
| وَالْبَيْهَقِيُّ فِيْ دَلَائِلِ النُّبُوَّةِ. | | | | | | | | | | | | | |
| دلائل النبوت کې بيهقي نقل کړی دی. | | | | | | | | | | | | | |

**توضیح** : **اشعث**: د تيت او پرک ويښتانو والا ته اشعث ويل كيږي . **اغبر**: غبار آلود بدن ته اغبر ويل كيږي، ددې ماده غبار ده . **ذى طمرين**: په طاء باندې زير دى ، ثوب طمر شكيدلي زړې كپړې ته ويل كيږي

دی. لایؤبه: په یاء باندې ضمه ده او واو ساکن ، میم ساکن دی دلته د دوو زړو کپړو نه قمیص او ازار مراد دی، په یو لغت کې همزه ساکنه ده په آخر کې باء دی، وبه یوبه وبها د فتح باب څخه د لایبالی په معنی سره دی، (مصباح اللغات) ، یعني داسې شخص ده چې مفتوحه ده په دې صورت کې دا د باب افعال څخه کیږي ، کمنامه وي په هیڅ شی کې نه شمیرل کیږي وي چې په معاشره کې هیڅوک هغه ته اهمیت نه ورکوي ، هغه دومره لوی مقام وي کچیرې هغه په خپله قسم وخوري نو الله تعالی هغه په مگر د الله تعالی په نزد د هغه دومره لوی مقام وي کچیرې هغه په خپله قسم وخوري نو الله تعالی هغه په دغه قسم کې رېښتینی او بری الذمه گرځوي ، د همدې افرادو څخه یو براء بن مالک دی .حضرت براء بن مالک د حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حقیقی ورور دی ، د فضلاؤ صحابو څخه دی ، د عربو د نامورو دلاورانو او پهلوانانو څخه هغه شمیرل کیږي ، په احد او د هغه نه وروسته ټولو غزواتو کې د حضور ﷺ سره شریک پاتې شوی دی ، الله تعالی هغه ته دومره شجاعت او طاقت عطاء کړی وو چې په یو جنګ کې هغه تنها سل کفار واصل جهنم گرځولي وو . په جنګ یمامه کې د مهمې قلعه د فتح کولو لپاره هغه خپل ځان مسلح کړلو او د مالوچو په بوجۍ کې ځان وتړلو او د منجنیق په ذریعه صحابو هغه قلعه ته دننه وغورځوه هغه دننه جنګ وکړو او قلعه یې فتحه کړه هغه په ۲۰هـ کې شهید شوی.

## اهل بیتو او انصارو فضیلت

﴿۵۴﴾ وَعَنْ أَبِيْ سَعِيْدٍ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَلَا إِنَّ عَيْبَتِيَ

او حضرت ابو سعید خدري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمائیل پوه شئ ځما خاص خلق او

الَّتِيْ آوِيْ إِلَيْهَا أَهْلُ بَيْتِيْ وَإِنَّ كَرِشِيَ

ځما صاحبِ راز او امین چې د هغوئ په منځ کې زه تیکانه حاصلوم ځما اهل بیت دي او ځما ولي او

الْأَنْصَارُ فَاعْفُوْا عَنْ مُسِيْئِهِمْ وَاقْبَلُوْا عَنْ

دوست انصار دي نو تا سو د دي انصارو خطاکارو د خطاګانو نه چشم پوشي کوئ او د هغوئ د

مُحْسِنِهِمْ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ هٰذَا حَدِيْثٌ حَسَنٌ.

نیکو کارو عذر قبلوئ دا روایت ترمذي نقل کړی دی او ویلي یې دي چې دا حدیث حسن صحیح دی.

**توضیح** : آوی: د ټکانې نیولو په معنی سره دی .کرشي: په کاف باندې زور او زیر دواړه جائز دي، راء ساکنه هم ده او کسره هم جائز ده ، د باقی الفاظو تشریح تیره شوې ده .

﴿۵۵﴾ وَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ قَالَ

او حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی چې رسول کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمائیل ځوک چې په الله او د

لَا يُبْغِضُ الْأَنْصَارَ أَحَدٌ يُؤْمِنُ بِاللهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ

قیامت په ورځ باندې ایمان لري هغه انصارو سره بغض او عداوت نه لري دا روایت ترمذي نقل کړی دی

وَقَالَ هٰذَا حَدِيْثٌ حَسَنٌ صَحِيْحٌ.

او ويلي يې دي چې دا حديث حسن صحيح دی.

﴿۵٦﴾ وَعَنْ أَنَسٍ عَنْ أَبِيْ طَلْحَةَ قَالَ قَالَ لِيْ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

او حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ابو طلحه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت کوي د هغه بيان دی چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ماته

أَقْرَأْ قَوْمَكَ السَّلَامَ فَإِنَّهُمْ مَّا عَلِمْتُ

فرمائيلي وو چې ته خپل قوم ته ځما سلام ورسوه ځکه چې ترڅوپوري ماته علم دی هغوئ پاکباز

أَعِفَّةٌ صُبُرٌ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

او صابر خلق دي. [ترمذي]

**توضيح**: اقرأ: د اقراء څخه دی د سلام ويلو او سلام رسولو په معنی سره دی، په عامو نسخو کې اقرأ د مجردو ابوابو څخه راغلی دی.

اعفة: د عفيف جمع ده پاکيزه خلک مراد دي چې د هر قسم سوال او فاحشی نه پاک وي.

صبر: دا د صابر جمع ده د ميدان جهاد وغيره مشکلاتو کې ثابت قدم او صبر کونکي خلک مراد دي. د ماعلمت په جمله کې ما موصوله دی او دا جمله معترضه ده په انهم کې ضمير جمع دی، دا د حرف د ان لپاره اسم دی او اعفة يې خبر دی.

## د اهل بدر حديبيه فضيلت

﴿۵۷﴾ وَعَنْ جَابِرٍ أَنَّ عَبْدًا لِحَاطِبٍ جَاءَ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

او حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دی چې يو ورځ د حاطب بن ابي بلتعه غلام د نبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خدمت

يَشْكُوْ حَاطِبًا إِلَيْهِ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللهِ لَيَدْخُلَنَّ

کې راغلي او حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته يې د حاطب خلاف سخت شکايت وکړو او هغه وويل يارسول الله!

حَاطِبٌ النَّارَ فَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

حاطب په ماډيره سختي کوي ځکه هغه به ضرور دوزخ ته ځي رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په دې اوريدو سره

كَذَبْتَ لَا يَدْخُلُهَا فَإِنَّهُ شَهِدَ بَدْرًا

ورته وفرمائيل ته دې خپله خبر: کې دروغجن يې حاطب به دوزخ ته نه ځي ځکه چې هغه بدر او

وَ الْحُدَيْبِيَةَ. رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

حديبيه کې شريک شوی دی.

## د سلمان فارسي رَضِيَ اللهُ عَنهُ فضيلت

| |
|---|
| ﴿۵۸﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَلَا هٰذِهِ الْآيَةَ وَإِنْ تَتَوَلَّوْا يَسْتَبْدِلْ |
| او حضرت ابوهريره رَضِيَ اللهُ عَنهُ راوي دي وايي رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دا آيت : وَإِنْ تَتَوَلَّوْا يَسْتَبْدِلْ |
| قَوْمًا غَيْرَكُمْ قَالُوْا يَا رَسُوْلَ اللهِ مَنْ هٰؤُلَاءِ الَّذِيْنَ |
| قَوْمًا غَيْرَكُمْ تلاوت کړو نو بعضي صحابو وويل چې: يارسول الله! هغه کوم خلق دي چې د |
| ذَكَرَ اللهُ إِنْ تَوَلَّيْنَا اسْتُبْدِلُوْا بِنَا ثُمَّ لَا يَكُوْنُوْا |
| هغوئ باره کښې الله ! فرمائيلي دي که مونږ روګرداني وکړه نو هغوئ به څمونږ په ځاي ودرول شي |
| أَمْثَالَنَا فَضَرَبَ عَلَى فَخِذِ سَلْمَانَ الْفَارِسِيِّ ثُمَّ |
| او هغوئ به څمونږ په شان نه وي په دي اوريدو سره حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د سلمان فارسي رَضِيَ اللهُ عَنهُ په |
| قَالَ هٰذَا وَ قَوْمُهُ وَ لَوْ كَانَ الدِّيْنُ عِنْدَ الثُّرَيَّا |
| ورون خپل لاس مبارک ووهه او وي فرمائيل که دين د ثريا بلندۍ سره هم وي نو د فارس خلک |
| لَتَنَاوَلَهُ رِجَالٌ مِّنَ الْفُرْسِ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ |
| به يې د هغه ځاى نه حاصل کړي. [ترمذي] |

**توضيح** : په دې حديث کې د امام ابوحنيفه رَحِمَهُ اللهُ فضيلت ثابتيږي ځکه امام صاحب د اهل فارس څخه ؤ

## د اهل عجمو فضيلت

| |
|---|
| ﴿۵۹﴾ وَعَنْهُ قَالَ ذُكِرَتِ الْأَعَاجِمُ عِنْدَ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| او حضرت ابوهريره رَضِيَ اللهُ عَنهُ وايي يوه موقع باندې د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مخکې د عجمي خلقو ذکر وشو |
| فَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَأَنَا بِهِمْ أَوْ بِبَعْضِهِمْ |
| نو رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمائيل چې ددي عجمي خلقو يا په دوئ کې په بعضي خلقو باندې تاسو اهل |
| أَوْثَقُ مِنِّيْ بِكُمْ أَوْ بِبَعْضِكُمْ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ. |
| عربو نه يا ستاسو د بعضي خلقو نه زيات اعتماد او بهروسه لرم. [ترمذي] |

**توضيح** : او ببعضهم: أو د شک لپاره دى ، راوى ته شک دى چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ کوم لفظ استعمال کړی وو ؟ مطلب دا دی چې زه د ټول اهل عجمو د ايمان په باره کې يا د بعضو په باره کې دومره اميدواره يم او په هغوی باندې ما ته دومره اعتماد او اطمينان شته چې په تاسو عربو باندې دومره نشته . علامه طيبی رَحِمَهُ اللهُ فرمايي چې د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د دې کلام مخاطبين بعضې عرب وو چې د يوې خاصې

قبیلې سره یې تعلق ساته، حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د جهاد په یو موقع باندې هغوی ته په جهاد کې د مال خرچ کولو حکم وکړو نو دغو خلکو د مال په خرچ کولو کې سستي وکړه په دې باندې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دغه کلام وفرمایلو لهذا دا کلام د عامو صحابو کرامو په باره کې نه دی بلکه د یوې خاصې طبقې په باره کې دی، د عامو صحابو شان بل دی، هغوی په حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ باندې فدا وو د هغوی په مقابله کې د کوم بل چا څه تصور کیدلی شي:

چه نسبت خاک را با عالم پاک

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نجباء او رفقاء

| |
|---|
| ﴿۶۰﴾ عَنْ عَلِيٍّ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ لِكُلِّ نَبِيٍّ سَبْعَةً |
| حضرت علي کرم الله وجهه بیان کوي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل د هر نبي اووه ډیر مخصوص او |
| نُجَبَآءَ وَ رُقَبَآءَ أُعْطِيْتُ |
| برګزیده ترین خلق او د هغه په هر حالت کې نګهباني او حفاظت کوونکي ورته ورکیدل لیکن ماته دا سې |
| أَنَا أَرْبَعَةَ عَشَرَ |
| څوارلس راکړی شویدي (راوي وایي چې حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مونږ ته د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دا ارشاد نقل |
| قُلْنَا مَنْ هُمْ قَالَ |
| کړونو مونږ ترینه پوښتنه وکړه چې هغه څوارلس کوم کوم دي حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ جواب راکړو یو |
| أَنَا وَابْنَايَ وَ جَعْفَرُ وَ حَمْزَةُ |
| خو زه یم او څما دواړه ځامن حسن او حسین رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا دي جعفر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دي حمزه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دي |
| وَ أَبُوْ بَكْرٍ وَ عُمَرُ وَ مُصْعَبُ بْنُ عُمَيْرٍ وَ بِلَالٌ وَسَلْمَانُ |
| ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دي عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دي مصعب بن عمیر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دي بلال رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دي سلمان فارسي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ |
| وَ عَمَّارٌ وَ عَبْدُ اللهِ بْنُ مَسْعُوْدٍ وَأَبُوْ ذَرٍّ. وَالْمِقْدَادُ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ |
| دي عمار دي عبد الله ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دي ابوذر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دي او مقداد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دي. [ترمذي] |

**توضیح:** نجباء د نجیب جمع ده برګزیده او خاص خاص خلقو ته ویل کیږي. رقباء. د رقیب جمع ده نګران او محافظ ته ویل کیږي

## د حضرت عمار بن یاسر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ شان

﴿۶۱﴾ وَعَنْ خَالِدِ بْنِ الْوَلِيْدِ قَالَ كَانَ بَيْنِيْ وَبَيْنَ عَمَّارِ بْنِ يَاسِرٍ
او حضرت خالد بن ولید رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي څما او عمار بن یاسر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په منځ کې خبري وشوي ماد هغه خلاف

كَلَامٌ فَأَغْلَظْتُ لَهُ فِي الْقَوْلِ فَانْطَلَقَ عَمَّارٌ يَشْكُوْنِيْ إِلَى رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ
سخته خبره وکړه نو حضرت عمار رَضِيَ اللهُ عَنْهُ څما خلاف شکایت وړلو سره د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خدمت کې ورسیدو

فَجَآءَ خَالِدٌ وَهُوَ يَشْكُوْهُ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ فَجَعَلَ يُغْلِظُ لَهُ
او هغه حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته شکایت کوه چې خالد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هم راورسیدو د راوي بیان دي چې خالد په غوسه شو او

وَلَا يَزِيْدُهُ إِلَّا غِلْظَةً وَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ
هغه عمار ته بد رد ویل شروع کړل او د هغه سخت کلامي کې اضافه کیدله ، هغه وخت رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

سَاكِتٌ لَا يَتَكَلَّمُ فَبَكَى
چپ ناست وو او ریدلي یې یو حرف یې د ژبې نه نه او بنکلو دي عمار رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د غوسې نه د صبر لمن پریښو دله

عَمَّارٌ وَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللهِ أَلَا تَرَاهُ فَرَفَعَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ
او بې اختیاره په ژړا شو او وویل چې : یارسول الله! آیا تاسو نه وینئ رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خپل سر مبارک پورته

رَأْسَهُ قَالَ مَنْ عَادٰى عَمَّارًا عَادَاهُ اللهُ وَمَنْ أَبْغَضَ
کړو او وي فرمائیل کوم سړي چې عمار سره د ښمني ساتي الله تعالی به هغه د ښمن لري او کوم سړي چې

عَمَّارًا أَبْغَضَهُ اللهُ قَالَ خَالِدٌ
عمار رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره د بغض لري الله به د هغه سره بغض لري حضرت خالد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي او زما دي فیصلې کولو

فَخَرَجْتُ فَمَا كَانَ شَيْءٌ أَحَبَّ إِلَيَّ
سر د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د مجلس نه بهر راووتم ، هغه وخت هیڅ شي څما په نظر کې د عمار رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راضي کولو

مِنْ رِضَا عَمَّارٍ فَلَقِيْتُهُ
او خوشحالولو نه زیات بنه نه وو ، بیا د اسې وشوه چې ما د عمار د خوشحالولو د پاره هغه سره د اسې

بِمَا رَضِيَ فَرَضِيَ .
سلوک او رویه اختیار کړله چې هغه زما نه راضي او خوشحاله شو

## د حضرت خالد سيف الله رَضِيَ اللهُ عَنْهُ شان

﴿۶۲﴾ وَعَنْ أَبِي عُبَيْدَةَ أَنَّهُ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ خَالِدٌ

او حضرت ابو عبيده رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دي هغه وايي ما د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه واوريدل خالد د الله تعالى د

سَيْفٌ مِّنْ سُيُوْفِ اللهِ عَزَّ وَجَلَّ وَنِعْمَ فَتَى الْعَشِيْرَةِ . رَوَاهُمَا أَحْمَدُ.

تورو نه يوه توره ده هغه د خپلې قبيلې بهترين ځوان دي دا دواړه روايتونه احمد نقل کړي دي.

﴿۶۳﴾ وَعَنْ بُرَيْدَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ اللهَ تَبَارَكَ وَتَعَالَى

او حضرت بريده رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې رسول کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمائيل الله تعالى ماته څلور سړو سره د

أَمَرَنِي بِحُبِّ أَرْبَعَةٍ وَأَخْبَرَنِي أَنَّهُ يُحِبُّهُمْ

محبت کولو حکم کړی دي او دايي راته خودلي دي چې الله سبحانه وتعالى هم دي څلورو سړو سره محبت کوي،

قِيْلَ يَا رَسُوْلَ اللهِ سَمِّهِمْ لَنَا قَالَ

صحابه کرامو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ عرض وکړو: يارسول الله! مونږ ته د هغه څلورو نومونه وښايي حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمائيل

عَلِيٌّ مِّنْهُمْ يَقُوْلُ ذٰلِكَ ثَلَاثًا وَأَبُوْ ذَرٍّ

په هغوئ کې يو حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دي، دا الفاظ حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ درې واره و فرمائيل يو ابوذر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ

وَّ الْمِقْدَادُ وَ سَلْمَانُ أَمَرَنِي بِحُبِّهِمْ

دي يو حضرت مقداد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دي او يو سلمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دي الله! ماته حکم کړی دي چې زه دي څلورو سړو

وَأَخْبَرَنِي أَنَّهُ يُحِبُّهُمْ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ

سره محبت ساتم او دايي راته خودلي دي چې هغه هم دي څلورو سره محبت ساتي، دا روايت ترمذي نقل کړی

وَقَالَ هٰذَا حَدِيْثٌ حَسَنٌ غَرِيْبٌ.

کړی دي او ويلي يي دي چې دا حديث حسن غريب دي.

﴿۶۴﴾ وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ كَانَ عُمَرُ يَقُوْلُ أَبُوْبَكْرٍ سَيِّدُنَا وَأَعْتَقَ

او حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ بيان کوي چې حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ به فرمائيل ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ځمونږ

سَيِّدَنَا يعنى بِلَالًا. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

سردار دي او هغه ځمونږ سردار آزاد کړی دي يعني بلال رَضِيَ اللهُ عَنْهُ.

## د حضرت بلال رضي الله عنه فضيلت

| |
|---|
| ﴿۶۵﴾ وَعَنْ قَيْسِ بْنِ أَبِي حَازِمٍ أَنَّ بِلَالًا قَالَ لِأَبِي بَكْرٍ |
| او حضرت قيس بن ابي حازم نه روايت دي چې حضرت بلال رضي الله عنه حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه |
| إِنْ كُنْتَ إِنَّمَا اشْتَرَيْتَنِي لِنَفْسِكَ فَأَمْسِكْنِي وَ إِنْ كُنْتَ |
| ته ويلي وو که تاسو د خپل ځان د پاره زه آخستی يم نو ما د ځان سره ليکن که تاسو محض د الله! |
| إِنَّمَا اشْتَرَيْتَنِي لِلّٰهِ فَدَعْنِي وَ عَمَلَ اللّٰهِ . رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ |
| د رضا او خوشحالۍ د پاره زه خريد کړی يم نو بيا ما د الله د کار د پاره آزاد پريږده. [بخاري] |

**توضيح : نفسك:** د دې حديث پوهه کې راتلو د پاره يو پس منظر او مختصره قصه باندې پوهه کې دل ضروري دي حضرت بلال رضي الله عنه په مکه کې يو غلام وو کله چې هغه مسلمان شو نو د هغه بادارانو هغه ته ډيرې سزاګانې ورکړې. اميه بن خلف به هغه تپوله شپه وهلو او د ورځې به يې هغه په ګرمو شګو ځملولو او په سينه به يې ورته يو لوئ کانی ايښودو او چار چاپيره به يې ورته اور بلولو سره ترينه دا مطالبه کوله چې اسلام پريږده حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه د څو غلامانو په بدل کې حضرت بلال رضي الله عنه د خپلو بادارانو نه واخستلو او آزاد ئې کړلو حضرت بلال د حضور عليه السلام په خدمت کې ولګيدو او په مسجد نبوي کې په آذان باندې مامور شولو کله چې حضور صلی الله عليه وسلم رحلت وکړلو نو حضرت بلال رضي الله عنه وويل چې د محبوب په ښار کې د محبوب نه بغير او سيدل سخت دي له دې وجې د مدينې منورې د دراو ديوار نه لري چرته زندګې تيرول پکار دي په دې غرض سره هغه د شام تلو اراده وکړه چې هلته به جهاد روان وو جهاد به هم کوم او زندګي به هم تيره و مه بلخوا هغه صديق اکبر د شام تلو نه منع کولو ځکه د اذان د پاره د هغه په شان بل څوک موزون نه وو او د رسول الله صلی الله عليه وسلم مؤذن هم وو په دې موقع حضرت بلال حضرت رضي الله عنه ابوبکر صديق رضي الله عنه ته وويل چې که تا زه د خپل ځان لپاره اخستي يم نو ما د لته په مدينه کې وساته او که د الله د رضا لپاره دې اخستي يم نو ما د الله د کارونو د سرته رسول لپاره ازاد پريږده چې چرته ځم هلته لاړ شم د الله تعالی په زمکه جهاد وکړم حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه اجازت ورکړو او د لشکر اسلام سره د يو ځای کې دو سره د شام طرف ته لاړو او په سنه ۱۸ هجري يا سنه ۲۰ هجري کې انتقال شولو

## د حضرت ابو طلحه رضي الله عنه او دهغه د ښځې عجيبه قرباني

| |
|---|
| ﴿۶۶﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ جَاءَ رَجُلٌ إِلَى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ |
| او حضرت ابو هريره رضي الله عنه وايي چې د رسول الله صلی الله عليه وسلم په خدمت کې يو سړي راغی او هغه وويل زه |
| إِنِّي مَجْهُوْدٌ فَأَرْسَلَ إِلَى بَعْضِ نِسَائِهِ |
| ډير پريشانه حال او تکليف او مشقت کې ګرفتاريم حضور صلی الله عليه وسلم يو سړي خپلي يوې بي بي ته وليږلو |

فَقَالَتْ وَالَّذِيْ بَعَثَكَ بِالْحَقِّ مَا عِنْدِيْ إِلَّا

هغوئ جواب ورکړو چې قسم دي په هغه ذات چې تاسو يي په حق سره پيغمبر راليږلي يي ما سره د

مَاءٌ ثُمَّ أَرْسَلَ إِلَى أُخْرٰي فَقَالَتْ مِثْلَ

اوبو نه ماسوا د خوراک څکاک نور هیڅ نشته بیا حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دوهمې بي بي کره سړي وليږه هغه هم

ذٰلِكَ وَقُلْنَ كُلُّهُنَّ مِثْلَ ذٰلِكَ

هغه جواب ورکړو کوم چې مخکې بي بي ورکړې وو او دغه شان حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خپلو تمامو بيبيانو ته

فَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

سړي وليږه او ټولو نه دغه شان جواب راغی بیا رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حاضرين مجلس مخاطب کولو سره

مَنْ يُضِيْفُهُ يَرْحَمُهُ اللهُ فَقَامَ رَجُلٌ مِّنَ

وفرمائيل څوک چې دا سړي ميلمه کړي په هغه به الله خپل خاص رحمت نازل کړي انصاروکې يو سړي بيا

الْأَنْصَارِ يُقَالُ. لَهُ أَبُوْ طَلْحَةَ فَقَالَ أَنَا يَا رَسُوْلَ اللهِ

ابو طلحه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ اودريدلو او ووېل يا رسول الله! دا سړي زه خپل ميلمه کوم ابو طلحه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هغه

فَانْطَلَقَ بِهِ إِلٰي رَحْلِهِ فَقَالَ لِامْرَأَتِهِ هَلْ عِنْدَكِ شَيْءٌ

سړي ځان سره کورته بوتلو کورته رسيدو سره هغه خپلې ښځې نه پوښتنه وکړه ستا سره څه طعام شته

قَالَتْ لَا إِلَّا قُوْتُ صِبْيَانِيْ

د هغه ښځې ووېل بس دومره دي چې د بچو ضرورت به يو حده پورې پوره کړي ابو طلحه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هغې

قَالَ فَعَلِّلِيْهِمْ بِشَيْءٍ وَنَوِّمِيْهِمْ فَإِذَا دَخَلَ ضَيْفُنَا

ته ووېل بچې په څه طريقه اوده وساته او هرکله چې ځمونږ ميلمه طعام د پاره کورته راشي او

فَأَرِيْهِ أَنَّا نَأْكُلُ فَإِذَا أَهْوٰي بِيَدِهِ

دسترخوان باندې کې ني نو ته داسې ښکاره کړه چې ګويا مونږ هغه سره هغه طعام خورو او څرنګه چې

لِيَأْكُلَ فَقُوْمِيْ إِلَى السِّرَاجِ كَيْ تُصْلِحِيْهِ فَأَطْفِئِيْهِ

ځمونږ ميلمه مړې او چتولو د پاره خپل لاس مخکې کړي نو ته دي ظاهرولو سره لکه چې د څراغ پلته

فَفَعَلَتْ فَقَعَدُوْا وَأَكَلَ الضَّيْفُ

ټيک کولو د پاره او دهغه دړنا زياتولو اراده ده څراغ طرف ته ورشه او پوکې ورکولو سره څراغ مړ کړه

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَ | بَاتَا | طَاوِيَيْنِ | فَلَمَّا | أَصْبَحَ |
| هغه ښځې د غه شان وکړل او داسې وشوه چې دسترخوان باندې کيناستل نو هغه دريواړه ليکن طعام | | | | |
| غَدَا إِلَى رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ | | | | |
| صرف ميلمه وخوړلو هغه دواړو ښځې او خاوند په لوږه شپه تيره کړه بيا چې سهار شو او ابو طلحه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ | | | | |
| فَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَقَدْ | | | | |
| د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خدمت کې حاضر شو نو حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمائيل د فلانې سړي او | | | | |
| عَجِبَ اللهُ أَوْ ضَحِكَ اللهُ مِنْ فُلَانٍ وَفُلَانَةٍ | | | | |
| د فلانې ښځې دا کار الله تعالى ډير خوښ کړو يا دا يې وفرمائيل چې د هغه دواړو دې کار باندې الله! ته خندا | | | | |
| وَفِيْ رِوَايَةٍ مِثْلَهُ وَلَمْ يُسَمِّ أَبَا طَلْحَةَ وَفِيْ آخِرِهَا | | | | |
| ورغله د ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په يو دوهم روايت کې د هغه روايت په اخر کې دا هم دي ويؤثرون على | | | | |
| فَأَنْزَلَ اللهُ تَعَالَى وَيُؤْثِرُوْنَ عَلَى أَنْفُسِهِمْ وَلَوْ كَانَ | | | | |
| انفسهم ولو کان بهم خصاصة او هغه خلق خپل ځان باندې نورو ته ترجيح ورکوي که څه هم هغوئ خپله | | | | |
| بِهِمْ خَصَاصَةٌ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ | | | | |
| حاجتمند او اوږي وي الخ. | | | | |

**توضيح**: **اني مجهود**: يعنې زه بې وسه او مجبور، مصيبت زده فقير يم (**فعلليهم**) يعنې خپل ورې بچې اوده کړه او روټې ميلمه له ورکړه او بيا د اصلاح په خاطر چراغ مړ کړه او روټې په ميلمه او خوره چنانچې داسې وشول (طاويين) يعنې ميړه او ښځه وږې اوده شول ميلمه ته په تياره کې څه پته هم اونه لګيده چې دوي يو لقمه روټې او خوړه او کنه.

**عجب الله او ضحك**: دا دواړه الفاظ د متشابهاتو نه دي له دينه د الله تعالى خوشحالي مراد ده له دينه معلوميږي چې دا زمانه د حجاب د حکم راتلو نه مخکې زمانه وه چې دا قصه مخې ته راغله.

| | | |
|---|---|---|
| ﴿۶۷﴾ وَ عَنْهُ قَالَ نَزَلْنَا مَعَ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ مَنْزِلًا | | |
| او حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې مونږ خلکو د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره يو مقام باندې پړاو وکړو نو هغه | | |
| فَجَعَلَ | النَّاسُ | يَمُرُّوْنَ |
| وقت چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خپله خيمه کې دننه آرام فرمائيلې وو خلق به د هغه د خيمې نه بهر اخوا ديخوا | | |

يَقُوْلُ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَ سَلَّمَ مَنْ هٰذَا يَا أَبَا هُرَيْرَةَ
ل راتلل رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به پوښتنه به يې كوله اې ابوهريره! تيريدونكې سړي څوك دي نو ما به
أَقُوْلُ فُلَانٌ فَيَقُوْلُ نِعْمَ عَبْدُ اللهِ هٰذَا
حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته ښودلو چې فلانې سړې دى بيا به حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمائيل دې د الله نيک بنده دي او
وَيَقُوْلُ مَنْ هٰذَا فَأَقُوْلُ فُلَانٌ فَيَقُوْلُ بِئْسَ عَبْدُ اللهِ هٰذَا حَتّٰى
ديو چابارہ يې به وويل چې دا بد سړې دي دا سلسله دغه شان جاري وه تر دې پورې چې كوم وقت
مَرَّ خَالِدُ بْنُ الْوَلِيْدِ فَقَالَ مَنْ هٰذَا فَقُلْتُ خَالِدُ بْنُ الْوَلِيْدِ
خالد بن وليد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ تير شو او حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ پوښتنه وكړه چې دا څوک دى؟ ما وويل چې خالد دي
فَقَالَ نِعْمَ عَبْدُ اللهِ خَالِدُ بْنُ الْوَلِيْدِ سَيْفٌ مِّنْ سُيُوْفِ اللهِ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.
رسول صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمائيل خالد بن وليد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د الله نيک بنده دى د الله د تورو نه يوه توره ده. [ترمذي]

﴿۶۸﴾ وَعَنْ زَيْدِ بْنِ أَرْقَمَ قَالَ قَالَتِ الْأَنْصَارُ يَا نَبِيَّ اللهِ لِكُلِّ نَبِيٍّ
او زيد بن ارقم، وايي په يوه موقع باندې انصارو عرض وكړو يا رسول الله! څرنگه چې دهر نبي
أَتْبَاعٌ وَإِنَّا قَدِ اتَّبَعْنَاكَ فَادْعُ اللهَ أَنْ يَجْعَلَ
څه تابعدار وي پس دغه شان مونږ خلق ستاسو ريښتني او پاخه تابعدار يو تاسو دعا وكړئ چې
أَتْبَاعَنَا مِنَّا فَدَعَا بِهِ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ
الله! څمونږ تابعدار هم څمونږ نه كړي نو حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغوئ د پاره دعا وكړله. [بخاري]

## دټولو نه زيات شهيدان د انصارووو

﴿۶۹﴾ وَعَنْ قَتَادَةَ قَالَ مَا نَعْلَمُ حَيًّا مِّنْ أَحْيَاءِ الْعَرَبِ
او حضرت قتاده نه روايت دي هغه وفرمائيل د عربو قبائلو نه د يوې قبيلې يا قام باره يې مونږ ته دا
أَكْثَرَ شَهِيْدًا أَعَزَّ يَوْمَ الْقِيَامَةِ مِنَ الْأَنْصَارِ قَالَ
علم نسته چې د هغوئ د شهيدانو تعداد د انصارو د شهيدانو نه زيات وي او د قيامت په ورځ به انصار
وَقَالَ أَنَسٌ قُتِلَ مِنْهُمْ يَوْمَ أُحُدٍ سَبْعُوْنَ وَيَوْمَ بِئْرِ
دټولو نه زيات باعزته منلې شي د حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ بيان دي چې د احد په جنگ كې اويا انصار
مَعُوْنَةَ سَبْعُوْنَ وَيَوْمَ الْيَمَامَةِ عَلٰى عَهْدِ أَبِي بَكْرٍ
شهيدان شول بير معونه كې اويا انصار شهيدان شول او د يمامه جنگ كې چې د عهد ابوبكر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ

سَبْعُوْنَ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ

په خلافت کې د مسيلمه كذاب خلاف وشو اويا انصار شيهدان شول.

## د بدر والاو عطايا

﴿۷۰﴾ وَعَنْ قَيْسِ بْنِ حَازِمٍ قَالَ كَانَ عَطَاءُ الْبَدْرِيِّيْنَ خَمْسَةَ آلَافٍ وَقَالَ عُمَرُ لَأُفَضِّلَنَّهُمْ عَلٰى مَنْ بَعْدَهُمْ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ

او حضرت قيس بن ابي حازم وايي كوم خلق چې د بدر په جنګ کې شريک وه هغوئ کې د هر سړي وظيفه پنځه پنځه زره درهم وه چې بيت المال نه به ورته اداء کيده او حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمائيلي وو زه د بدر جنګ کې شريکيدونکو ته مرتبه کې په نورو خلقو باندې ترجيح ورکوم. [بخاري]

**توضيح: عطاء البدريين:** صديق اكبر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هغه صحابه كرامو ته چې په بدر کې شريک شوي وو د بيت المال نه پنځه زره درهم سالانه مقرر کړې وو دا وظيفه د نورو نه زياته وه چې د اهل بدر فضيلت ثابت شي همدارنګه حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هم دا وظيفه برقرار پريخودې وه بلکه په قولي طريقې سره به اعلان کولو او عزم ئې کولو چې دا وظيفه به برقرار ساتم.

### تسمية من سُمّي مِنْ اَهْلِ بَدْرٍ فِي الْجَامِعِ الْبُخَارِي

## د اهل بدر د څو صحابه کرامو نومونه چې په بخاري شريف کې ذکر دي

قال الله تعالى: {وَلَقَدْ نَصَرَكُمُ اللهُ بِبَدْرٍ وَأَنْتُمْ أَذِلَّةٌ}.

په سنه ۲ هـ کې د بدر واقعه مخې ته راغله، د قريشو يوه قافله د شام مکې مکرمي طرف ته واپس راتله. پيغمبر صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ۳۱۳ صحابه کرام له ځان سره ملګري کړل او دد‌ې قافلې د نيولو لپاره د بدر طرف ته روان شول د تلوار په وجه د صحابه کرامو جنګي سامان د نيشت برابر وو باقاعده د جنګ صورت نه وو له دې وجه نه د جنګي سامان اهتمام نه وو شوي فقط د قافلې نيول وو ليکن قافلې چالاکې کولو سره خپل ځان بچ کړو او کفار قريشو ته ئې يو خوفناک پيغام واستولو چې قافله لوټ شوله که خلاصون غواړئ نو زر تر زره ځانونه ورسوئ مسلمانانو زمونږ لاره نيولې ده. ابوجهل اعلان وکړو او زر ۱۰۰۰ کسه لښکر ئې تيار کړو سره د ساز او سامان نه او د بدر په طرف روان شولو د دواړو فوجونه مخامخ شول او قافله په بله لاره لاړه او خلاصون ئې اومندو اوس ددې مسلح لښکر سره د يو څو بې سره او سامانه صحابه کرامو مقابله راغله کله چې مقابله شوه نو الله تعالى مسلمانانو نصرت فرمايلو سره هغوى ته غلبه ورکړه اويا کفار مردار شول او اويا نور اسيران شول څو صحابه کرام هم شهيدان شول کومو صحابه کرامو چې په جنګ بدر کې يې حصه اخستې وه هغوى ته اهل بدر ويلې شي د دوي ډير لوي شان دي

ددې وجې محدثین د ډیر اهتمام سره له دوي نه د څو نومونه یا د ټولو نومونه په خپلو کتابونو کې درج کوي صاحب د مشکوة هم داسې کړي دي

**د اهل بدر تعداد**: په جنگ بدر کې د شریکو صحابه کرامو په تعداد کې څه اختلاف شته بعض علماؤ د دوي تعداد ۳۱۵ خودلي دی په بعضو روایاتو کې ۳۱۷ تعداد ویلي شوي دی بعضو علماؤ ۳۶۵ تعداد خودلي دی بعضو روایاتو کې ۳۱۴ تعداد خودلي شوي دی مگر په استیعاب کې لیکل شوي چې راجح قول دادی چې د اصحاب بدر تعداد ۳۱۳ دي امام بخاري رَحِمَهُ اللهُ په صحیح بخاري کې د اصحاب بدر د جملې نه صرف د ۴۵ صحابه کرامو نومونه ذکر کړي دي . حضرت عثمان بن عفان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په اصحاب بدر کې شامل فرمایلي دي د حضور عَلَيْهِ السَّلَامُ د لور د مراقبت لپاره په مدینه منوره کې پاتې شوي وو .

## د اصحاب بدر د نومونو خواص

الله تعالی د اصحاب بدر په نومونو کې عجیبه خاصیت او عجیبه برکت فرمایلی دی ویل کیږي چې ددې نومونو د ذکر نه پس الله تعالی دُعا قبولوي . بعضې علماء لیکي چې څومره اولیاء کرامو ته الله تعالی د اسماء بدر په برکت سره د ولایت مرتبه ورکړې ده دا هم یو حقیقت دي چې د اهل بدر د نومونو په برکت سره چې کومو مریضانو دُعا غوښتي ده الله تعالی هغه دعا قبوله کړې ده او هغوی ته ئې صحت ورکړی دی له دینه علاوه نور برکات هم شته صاحب د مظاهر حق د دُعا په انداز کې د اصحاب بدر ۳۱۴ نومونه ذکر کړي دي او بیائې په آخر کې یو علاهیده دُعا هم ذکر فرمایلې ده د اصحاب بدر په نومونو مشتملې وړې وړې رسالې هم شائع شوې دې .

## اسمآءُ بعض بدریین

النَّبِي مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ الْهَاشِمِي صلی الله علیه وسلم ، عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ عُثْمَانَ أَبُو بَكْرٍ الصِّدِّيقُ الْقُرَشِيُّ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ الْعَدَوِي ، عُثْمَانُ بْنُ عَفَّانَ الْقُرَشِي خَلَّفَهُ النَّبِي صلی الله علیه وسلم عَلَى ابْنَتِهِ وَضَرَبَ لَهُ بِسَهْمِهِ ، عَلِي بْنُ أَبِي طَالِبِ الْهَاشِمِي ، إِيَاسُ بْنُ الْبُكَيْرِ ، بِلَالُ بْنُ رَبَاحٍ مَوْلَى أَبِي بَكْرِ الْقُرَشِي ، حَمْزَةُ بْنُ عَبْدِ الْمُطَّلِبِ الْهَاشِمِي ، حَاطِبُ بْنُ أَبِي بَلْتَعَةَ حَلِيفٌ لِقُرَيْشٍ ، أَبُو حُذَيْفَةَ بْنُ عُتْبَةَ بْنِ رَبِيعَةَ الْقُرَشِي ، حَارِثَةُ بْنُ الرَّبِيعِ الأَنْصَارِي قُتِلَ يَوْمَ بَدْرٍ وَهُوَ حَارِثَةُ بْنُ سُرَاقَةَ كَانَ فِي النَّظَّارَةِ ، خُبَيْبُ بْنُ عَدِي الأَنْصَارِي ، خُنَيْسُ بْنُ حُذَافَةَ السَّهْمِي ، رِفَاعَةُ بْنُ رَافِعِ الأَنْصَارِي ، رِفَاعَةُ بْنُ عَبْدِ الْمُنْذِرِ أَبُو لُبَابَةَ الأَنْصَارِي ، الزُّبَيْرُ بْنُ الْعَوَّامِ الْقُرَشِي ، زَيْدُ بْنُ سَهْلٍ أَبُو طَلْحَةَ الأَنْصَارِي أَبُو زَيْدِ الأَنْصَارِي سَعْدُ بْنُ مَالِكِ الزُّهْرِي ، سَعْدُ ابْنُ خَوْلَةَ الْقُرَشِي ، سَعِيدُ بْنُ زَيْدِ بْنِ عَمْرِو بْنِ نُفَيْلِ الْقُرَشِي ، سَهْلُ بْنُ

حُنَيْفٍ الأَنْصَارِي ، ظُهَيْرُ بْنُ رَافِعٍ الأَنْصَارِي وَأَخُوهُ ، عَبْدُ اللهِ بْنُ مَسْعُودٍ الْهُذَلِي ، عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ عَوْفٍ الزُّهْرِي ، عُبَيْدَةُ بْنُ الْحَارِثِ الْقُرَشِي ، عُبَادَةُ بْنُ الصَّامِتِ الأَنْصَارِي ، عَمْرُو بْنُ عَوْفٍ حَلِيفُ بَنِي عَامِرِ بْنِ لُؤَيٍّ ، عُقْبَةُ بْنُ عَمْرٍو الأَنْصَارِي ، عَامِرُ بْنُ رَبِيعَةَ الْعَنَزِي عَاصِمُ بْنُ ثَابِتٍ الأَنْصَارِي ، عُوَيْمُ بْنُ سَاعِدَةَ الأَنْصَارِي ، عِتْبَانُ بْنُ مَالِكٍ الأَنْصَارِي ، قُدَامَةُ بْنُ مَظْعُونٍ ، قَتَادَةُ بْنُ النُّعْمَانِ الأَنْصَارِي ، مُعَاذُ بْنُ عَمْرِو بْنِ الْجَمُوحِ ، مُعَوِّذُ ابْنُ عَفْرَاءَ وَأَخُوهُ ، مَالِكُ بْنُ رَبِيعَةَ أَبُو أُسَيْدٍ الأَنْصَارِي ، مِسْطَحُ بْنُ أُثَاثَةَ بْنِ عَبَّادِ بْنِ الْمُطَّلِبِ بْنِ عَبْدِ مَنَافٍ ، مُرَارَةُ بْنُ الرَّبِيعِ الأَنْصَارِي ، مَعْنُ بْنُ عَدِي الأَنْصَارِي ، مِقْدَادُ بْنُ عَمْرٍو الْكِنْدِي حَلِيفُ بَنِي زُهْرَةَ ، هِلَالُ بْنُ أُمَيَّةَ الأَنْصَارِي

رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ.

## دغو مخصوصو بدرييبنو نومونه

نبي محمد بن عبد الله الهاشمي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عبد الله بن عثمان أبو بكر الصديق القرشي عمر بن الخطاب العدوي عثمان بن عفان القرشي كوم چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د خپلي لور د خدمت لپاره شاته پرېښي وو او دهغه لپاره ئې علاهيده حصه ساتلې وه علي بن أبي طالب الهاشمي بلال بن رباح يعني د أبي بكر غلام. حمزة بن عبد المطلب الهاشمي إياس بن البكير حاطب بن أبي بلتعة كوم چې د قريشو حليف وو ابو حذيفه ابن عقبه ابن ربيعه قريشي حارثة بن الربيع الأنصاري كوم چې د بدر په ورځ شهيد شوي دي او هغه حارثة بن سراقة دي چې په نگرانۍ مقرر وو خبيب بن عدي الأنصاري، خنيس بن حذافة السهمي، رفاعة بن رافع الأنصاري، رفاعة بن عبد المنذر أبو لبابة الأنصاري، الزبير بن العوام القريشي، زيد بن سهل أبو طلحة الأنصاري، أبو زيد الأنصاري، سعد بن مالک الزهري، سعد بن خولة القرشي. سعيد بن زيد بن عمرو بن نفيل القرشي ،سهل بن حنيف الأنصاري، ظهير بن رافع الأنصاري، او دهغه ورور عبد الله بن مسعود الهذلي ، عبد الرحمن بن عوف الزهري، عبيدة بن الحارث القرشي، عبادة بن الصامت الأنصاري ، عمرو بن عوف كوم چې د بني عامر بن لؤي حليف وو . عقبة بن عمرو الأنصاري، عامر بن ربيعة العنزي ،عاصم بن ثابت الأنصاري، عويم بن ساعدة الأنصاري، عتبان بن مالک الأنصاري ، قدامة بن مظعون قتادة بن النعمان الأنصاري ، معاذ بن عمرو بن الجموح ،معوذ بن عفراء او دهغه ورور مالک بن ربيعة أبو أسيد الأنصاري، مسطح بن أثاثة بن عباد المطلب بن عبد مناف ، مرارة بن الربيع الأنصاري، معن بن عدي الأنصاري ، مقداد بن عمرو الكندي كوم چې د بني زهرة حليف وو هلال بن أمية الأنصاري رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ.



۵ رجب ۱٤۱۸هـ

# باب ذکر الیمن والشام وذکر اویس القرني

## دیمن او شام او د اویس قرني بیان

**الیمن:** یمن هغه ښاورنو او کلیو ته ویل کیږي چې دمکې کرمي په ښي خوا کې دي نن سبا یمن د یو مستقل ملک په حیث پیژندلی شي چې د عربو د جزیري په جنوب خوا کې واقع دی اگرچې یمن په هغه حدودو باندې مشتمل ندي کوم چې په عهد قدیم کې یمن محیط وو لکن د عهد قدیم څه حصي اوس هم د موجوده یمن په حدودو کې شاملې دي دیمن طرف ته چې کله د کوم څیز نسبت کیږي نو ویل کیږي . یمني . یمان . یماني .

**الشام :** شام په هغو ښارونو او کلیو باندې مشتمل دي چې دبیت الله چپ طرف ته واقع دی چې نن سبا ورته سوریه یا سوریا ویل کیږي د دنیا د کفارو کوشش دي چې د اسلام د تاریخي ځایونو او مقاماتو نام او نشان دمسلمانانو له ذهنونه اوباسي لکه چې د شام . د جبل الطارق نوم یې . جبرالټر . او د قسطنطینیه نوم ئې استنبول کې ښودو .

**قرن:** قرن یمن کې د یو یا کلي نوم دي د **نون** او **راء** په زبر سره دا قریه د حضرت اویس قرني د نیکونو نه یو شخص د **قرن بن رومان** آباده کړی ده اویس قرني دي کلي طرف ته منسوب دي یو ځای په نوم د **قرن المنازل** په نوم طائف کې هم دي چې د اهل نجد دپاره میقات دي د قاف په زبر او د راء په سکون سره د اویس قرني ددې ځای سره هیڅ تعلق نشته . که چا لیکلي وي نو دا غلط فهمي ده .

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

## د حضرت اویس قرني رَحِمَهُ اللهُ فضیلت او شخصیت

| |
|---|
| ﴿۱﴾ عَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِنَّ رَجُلًا يَّأْتِيْكُمْ مِنَ الْيَمَنِ |
| عمر بن خطاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دي رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمائیل یو سړي به یمن نه تاسو ته راشي |
| يُقَالُ لَهُ أُوَيْسٌ لَا يَدَعُ |
| دهغه نوم به اویس وي هغه به یمن کې د مور نه ماسوا بل هیڅوک پرې نږدي د هغه په بدن کې به سفیدي |
| بِالْيَمَنِ غَيْرَ أُمٍّ لَهُ قَدْ كَانَ بِهِ بَيَاضٌ فَدَعَى |
| یعنې د برص بیماري وي هغه الله ! نه دعا وغوښته نو الله ! د هغه د بدن نه سفیدي ختم کړه هو |
| اللهَ فَأَذْهَبَهُ إِلَّا مَوْضِعَ الدِّيْنَارِ أَوِ الدِّرْهَمِ فَمَنْ لَقِيَهُ |
| صرف د یو درهم یا د یو دینار په قدر سفیدي باقي پاتې وه په تاسو کې چې کوم سړي هغه اویس رَحِمَهُ اللهُ |

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| مِنْكُمْ | فَلْيَسْتَغْفِرْ | لَكُمْ | وَفِيْ | رِوَايَةٍ | قَالَ | سَمِعْتُ | |
| سره یو ځای شي نو هغه ته پکار دي چې هغه نه د ځان د پاره د مغفرت دعا وغواړي او په یوه روایت کې | | | | | | | |
| رَسُوْلَ | اللهِ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ | يَقُوْلُ | إِنَّ خَيْرَ التَّابِعِيْنَ |
| داسې دي حضرت عمر رضی الله عنه بیان وکړو چې ما د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه واورېدل په تابعینو کې ښه سړي | | | | | | | |
| رَجُلٌ | يُقَالُ | لَهُ | أُوَيْسٌ | وَلَهُ | وَالِدَةٌ | وَكَانَ | بِهِ بَيَاضٌ |
| هغه دي چې د هغه نوم اویس رحمه الله دي د هغه یوه مورده او د هغه بدن باندې د برص یوه نښه ده نو تاسو | | | | | | | |
| فَمُرُوْهُ فَلْيَسْتَغْفِرْ لَكُمْ . رَوَاهُ مُسْلِمٌ . | | | | | | | |
| د هغه نه ځان د پاره دعائې مغفرت وغواړئ. | | | | | | | |

**توضیح:** غیر امر له: یعني په یمن کې د هغه د اهل او عیال نه هیڅ رشته دار نشته فقط یوه مور يې ده د هغې خدمت کوي له دي وجې زما زیارت له رانغی. بیاض. یعني د هغه په جسم برص یعني برګي مرض وو ټول بدن یې سپین وو هغه د الله تعالی نه دُعا غوښتله نو د یو دینار یا درهم په اندازه ځای پاتې شو ترڅو د الله تعالی شکر ګزاري مدنظر وي یا د دې لپاره چې د هغه د تعارف لپاره نشاني پاتې شي چنانچې د آنحضرت صلی الله علیه وسلم په نشان دهی سره حضرت عمر رضی الله عنه هغه د هغه سپین نشان په لید و سره وپیژندو.

**خیر التابعین:** آنحضرت صلی الله علیه وسلم په تابعینو کې هغه ترټولو بهتر بللي دی ځکه دا داسې تابعي دي چې د آنحضرت صلی الله علیه وسلم په زمانه کې مسلمان شوي دي د عذر په وجه حاضر شوي نه وو همداشان علماء کرام لیکي آنحضرت صلی الله علیه وسلم خپله جبه هغه لره د هدیې په طور باندې لیږلي وه. علامه جامي رحمه الله په خپل نعتیه کلام کې فرمائي

تو جامه رسانیدي اویس قرني را — قرني را قرني را قرني را.

بعض واعظین علماء په خپلو وعظونو کې فرمائي چې په احد کې د آنحضرت صلی الله علیه وسلم غاښونه شهیدان شول نو حضرت قرني رحمه الله کاني سره خپل د مخې غاښونه مات کړل ترڅو د آنحضرت صلی الله علیه وسلم سره د محبت اظهار وشي.

دا هم کې داشي چې آنحضرت صلی الله علیه وسلم حضرت اویس قرني د زیات عبادت او فضیلت د وجې نه بهترین د تابعینو ګرځولي وي او سعید بن المسیب کوم چې بهترین تابعي دي هغه د کثرت علم په وجه بهترین تابعي وي.

**فمروه.** یعني هغه وویل چې هغه دې ستاسو د پاره استغفار وکړي او د الله تعالی نه دُعا وغواړي. جلال الدین سیوطي رحمه الله په جمع الجوامع کې د اویس بن عامر قرني متعلق ډیر څه لیکلي دي بعضې ښې

ښې خبرې دلته ليكو ددې حديث پيش نظر حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ مسلسل په دې تلاش كې وو چې د ويس قرني سره ملاقات وكړي يوځل د حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ او اويس قرني رَحِمَهُ اللَّهُ ملاقات اوشو او سوال او جواب وشو .

حضرت عمر :آيا ته اويس بن عامر يې ؟ هغه وويل هو . حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ او فرمايل آيا ته د مراد قبيلې سره تعلق لرې او قرني يې ؟ هغه وويل هو . حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ او فرمايل آيا تا ته د برص مرض رسيدلى وو ؟ هغه اوويل هو ددې نه بعد حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د آنحضرت صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ټول هغه حديث چې د اويس قرني په باره كې وو چې په هغه كې د دُعا كولو خبره وه ، حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ چې كله د دعا مغفرت غوښتنه وكړه نو اويس قرني رَحِمَهُ اللَّهُ وويل اې امير المؤمنين تاسو څه فرمايې ؟ زما غوتته كس ستاسو د پاره دعا وغواړې ؟ حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وويل هو يقينًا ته ماته دُعا اوغواړه . اويس قرني د حضرت فاروق اعظم لپاره دُعا اوغوښتله ددې نه بعد حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ او فرمايل اويس ته اوس چرته تلل غواړې ؟ هغه وويل زه كوفې ته تلل غواړم . حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وويل آيا ستا په باره كې د كوفې حاكم ته څه وليكم ؟ حضرت اويس قرني رَحِمَهُ اللَّهُ وويل اې امير المؤمنين ما په خپل ګوم نامې حالت باندې پرېږده په يو روايت كې راځي چې آنحضرت صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يوځل ماته اواز وكړو . زه حاضر شوم آنحضرت صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ او فرمايل . اې عمر . زما په امت كې به يو كس وي چې د هغه نوم اويس دى كله چې ته هغه ووينې نو الله به درياد شي ته چې كله هغه ووينې نو زما سلام پرې وايه او د ځان لپاره د هغه نه د مغفرت دُعا اوغواړه هغه به د الله نه د دومره خلكو شفاعت كوي څومره خلك چې د ربيعه او مضر دي .
حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وايي ددې اوريدو نه پس د هغه تلاش جاري ساتلو لكن په عهد نبوي كې ماته هغه ملاؤ نشو بيا د حضرت ابوبكر صديق دور خلافت راغلو ما تلاش جاري ساتلو لكن ماته ملاؤ نشو بيا زما دور خلاف راغلو ما د هغه تلاش نور هم زيات كړو تر دې پورې چې ما په مختلفو ښارونو او د قافلو نه تپوسونه اوكړل چې په تاسو كې چرته داسې شخص چې د مراد قبيلې نه وي او اويس نوم يې وي او د قرن سره يې تعلق وي په دې دوران كې يو كس ماته وويل اې امير المؤمنين ته چې د كوم شخص تپوس كوي هغه زما د تره ځوي دي لكن هغه ډير كمزورى حال او د كمې درجې او بې حيثيته كس دي ستاسو غوتته عظيم انسان لره د هغه تپوس كول ستاسو شان سره نه ښائي . حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ او فرمايل چې ته كومې د حقارت كلمات د هغه په حق كې استعمالوي دا ستا د پاره د هلاكت سبب دي حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وائي چې زه ددې سړي سره په خبرو كې وم چې د لرې نه يو كس په اوښ باندې سور ښكاره شو د هغه د جسم په څه حصه باندې زړه كپړه وه او څه جسم يې خالي وو ما فكر اوكړو چې دا به اويس قرني وي ما منډې كړې چې ور ورسيدم ترينه مې تپوس اوكړو آيا ته اويس قرني يې ؟ هغه جواب راكړو هو زه يم ما ورته وويل آنحضرت صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تا ته سلام ويلو هغه شخص وويل په رسول د الله او په تا دې سلام وي

اي امير المؤمنين . له دينه وروسته ما وویل د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حکم دي چې ته ما ته د مغفرت دُعا او غواړه د الله تعالى نه له دينه وروسته زما دا معمول جوړ شولو چې هر کال به د حج په موقعه باندې دهغه سره ملاقات کولو خپل حال او اسرار به مې هغه ته بيانول او هغه به خپل حال او اسرار ما ته بيانول

له دې روايت څخه معلوميږي چې حضرت اويس قرني د تکوينياتو د خلکو نه وو لکه حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د رجال التكون څخه وو دا وجه ده چې آنحضرت صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د هغوی د ملاقات ترغيب ورکړی وو دا رجال الغيب يو ځاله نظام دي .

په يو روايت کې دي چې حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ډير کوشش وکړو چې حضرت اويس قرني ته څه هديه ورکړي لکن حضرت اويس قرني بلکل انکار وکړو البته دا درخواست يې اوکړو چې زما احوال پټ او ساته يو ځل حضرت عمر فاروق خلکو ته وويل چې په اويس قرني باندې ځانله دعا وکړئ هغوی په ډير مشکل سره په يوه ويرانه کې اويس قرني پيدا کړو او ټوله قصه يې ورته وکړه هغه ورته وويل حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ زما حال خلکو ته بيانوي دې ويلو سره ځنګل طرف ته لاړو او غيب شو .

له حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په صف کې اوريدو سره هغه شهيد کړی شوي وو په بل روايت کې دي چې په جنګ صفين کې شهيد شوي وو . د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د هديې نه په انکار کولو سره هغه وويل زما سره دا دوه جوړه زړي جامې او پخواني پيزار دي چې پيوند شوي دي او له ما سره څلور درهمه هم دي چې دا ختم شي بيا به راشم او له تا نه به دا هديه واخلم بيا يې اوفرمايل چې د انسان حالت داسې دي چې کله د يوې هفتې ارزو کوي نو دهغه ارزو يوې مياشتې پورې اوګده شي او چې د مياشتې ارزو کوي نو هغه کال ته اورسي مطلب دا چې له قناعت سره انسان بنه زندګي تيرولي شي او له حرص نه څه نه جوړيږي .

## د اهلِ يمن فضيلت

| ﴿۲﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صلى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ |
|---|
| ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه روايت کوي چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ورته وفرمائيل تاسو ته |
| أَتَاكُمْ أَهْلُ الْيَمَنِ هُمْ أَرَقُّ أَفْئِدَةً وَأَلْيَنُ قُلُوبًا اَلْإِيمَانُ يَمَانٍ |
| د يمن خلق راغلي دي چې زيات رقيق القلب او زيات نرم دل دي ايمان د يمن دي او حکمت هم يمني |
| وَالْحِكْمَةُ يَمَانِيَةٌ وَالْفَخْرُ وَالْخُيَلَاءُ فِي أَصْحَابِ الْإِبِلِ |
| دي او فخر يعني د خپل مال او منصب په ذريعه خپله لويي کول او تکبر کول په اوښانو والاو کې دي |
| وَ السَّكِينَةُ وَ الْوَقَارُ فِي أَهْلِ الْغَنَمِ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. |
| او اطمينان او تحمل او وقار په چيلو والاؤ کې دي . [بخاري مسلم] |

**توضيح** : باب بدء الخلق او باب وفات النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ کې او په نورو مواضعو کې ددې حديث

توضیح و تشریح شوې ده.

ارق: د رقیق ته دی د نرم، شفیق، نری او لطیف په معنی دی.

افئدة: د دې مفرد فؤاد دی د زړه په د ننه حصه د دې اطلاق کیږي د حمکت نه مراد علم دی، یعنې د هغه زمانې اهل یمن همداسې وو، د قیامته پورې یمن والاو ته دا فضیلت نشته، بعض کم کسان اوس هم په دې صفاتو سره متصف کیږي

## د کفر (مشري) مشرق طرف ته ده

| |
|---|
| ﴿۲﴾ وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَأْسُ |
| او حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي چې رسول کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمائیل د کفر سر مشرق طرف ته دي فخر |
| الْكُفْرِ نَحْوَ الْمَشْرِقِ وَالْفَخْرُ وَالْخُيَلَاءُ فِيْ أَهْلِ الْخَيْلِ |
| او تکبراسونو والاو او اوښانو والاؤ او زمیدارو کې دي چې د اوښ د ویښتانو په خیمو کې اوسیږي |
| وَالْإِبِلِ وَالْفَدَادِيْنَ أَهْلِ الْوَبَرِ وَالسَّكِيْنَةُ |
| او داسې خلق به هغه زمانه کې زیات تر د اوښانو د ویښتانو نه جوړ شوو خیمو کې اوسیدل او نرمي |
| فِيْ أَهْلِ الْغَنَمِ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. |
| او مسکېني بزو والاؤ کې وي. |

**توضیح**: راس الکفر. یعنې د کفر سر او لیډر او مشري په مشرق کې ده د مدینې منورې نه په مشرق طرف کې چې کومه علاقه ده هغه ایران. فارس. او روس وغیره دې دا علاقې د یاجوج او ماجوجو مرکز دي او له دې علاقو نه به د دجال خروج کیږي.

الفدادین. صحرائې ځنګلي خلک ترینه مراد دې. اهل الوبر. یعنې د اوښانو د ویښتانو نه په جوړو شویو خیمو کې اوسیدونکې جې خلک وي له دینه هم هغه د صحرا ځنګلي خلک مراد دې

## د فتنو ځای مشرق دي

| |
|---|
| ﴿۳﴾ وَعَنْ أَبِي مَسْعُوْدِنِ الْأَنْصَارِي عَنِ النَّبِي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| او ابو مسعود انصاري رَحِمَهُ اللهُ د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه روایت کوي چې یو ورځ حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| قَالَ مِنْ هٰهُنَا جَاءَتِ الْفِتَنُ نَحْوَ الْمَشْرِقِ وَالْجَفَاءُ |
| مشرق طرف ته د لاس مبارک اشاري کولو سره وفرمایل چې فتنې دې ځای نه راغلي دي او بد زباني |
| وَغِلَظُ الْقُلُوْبِ فِي الْفَدَادِيْنَ أَهْلِ الْوَبَرِ عِنْدَ أُصُوْلِ أَذْنَابِ الْإِبِلِ |
| او سنګدلي زمیدارو او خیمو نشینو کې وه چې خپل څاروي څرولو د پاره د اوښانو او غواګانو لکو |

| وَالْبَقَرِ فِيْ رَبِيْعَةَ وَمُضَرَ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. |
|---|
| پسي لګيدلي دي داخلق ربيعه او مضر قبائلو کې دي. [بخاري مسلم] |

**توضيح**: **الجفاء**. جهل او بد تميزۍ ته ويلی شي. غلظ القلب. د تعليم او تهذيب نه کې دو د وجې نه ددوي زړونه سخت شوي وي دا دهغه زميدارانو صفت دي چې چغو والا وي او په ځناورو باندې چيغې چلوي او د اوښانو د ويښتانو نه جوړو شويو خيمو کې اوسيږي.

## سنګدلي او بدزباني مشرق والو کې ده

| ﴿۵﴾ وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ غِلَظُ الْقُلُوْبِ |
|---|
| او حضرت جابر رضي الله عنه وايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم و فرمائيل سنګدلي او سخت ګوئي مشرق |
| وَالْجَفَاءُ فِي الْمَشْرِقِ وَالْإِيْمَانُ فِيْ أَهْلِ الْحِجَازِ. رَوَاهُ مُسْلِمٌ. |
| کې ده او ايمان حجاز والو کې دي. [روايت کړي دي مسلم] |

## د شام او يمن لپاره دعاء

| ﴿۶﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَللّٰهُمَّ بَارِكْ |
|---|
| حضرت ابن عمر رضي الله عنه وايي يوه ورځ رسول الله صلى الله عليه وسلم داسې دعا وکړه خدايه! ځمونږ ملک شام کې |
| لَنَا فِيْ شَامِنَا اَللّٰهُمَّ بَارِكْ لَنَا فِيْ يَمَنِنَا |
| برکت واچوي او خدايه! ځمونږ ملک يمن کې برکت عطاء کړی په دي اوريدو سره صحابو رضي الله عنهم |
| قَالُوْا يَا رَسُوْلَ اللهِ وَفِيْ نَجْدِنَا قَالَ اَللّٰهُمَّ |
| عرض وکړو يارسول الله! ځمونږ نجد باره کې يې هم دعا وفرمايه چې مونږ ته د دي علاقي د طرف نه |
| بَارِكْ لَنَا فِيْ شَامِنَا اَللّٰهُمَّ بَارِكْ لَنَا |
| هم برکت عطاء کړي رسول الله صلى الله عليه وسلم بيا وفرمايل خدايه ځمونږ ملک شام کې برکت واچوي ځمونږ |
| فِيْ يَمَنِنَا قَالُوْا يَا رَسُوْلَ اللهِ |
| يمن کې برکت عطاء کړي صحابو رضي الله عنهم دوباره عرض وکړو يا رسول الله! او ځمونږ نجد باره کې |
| وَفِيْ نَجْدِنَا قَالَ فَأَظُنُّهُ فِي الثَّالِثَةِ هُنَاكَ |
| هم دادعا وفرمايي راوي وايي ځما ګمان دادی چې په دريم وار حضور صلى الله عليه وسلم بيا هغه الفاظو سره |
| الزَّلَازِلُ وَالْفِتَنُ وَبِهَا يَطْلَعُ قَرْنُ |
| دعا وکړه او د نجد باره کې يې وفرمائيل هلته به زلزلي وي فتني وي او د هغه ځای نه به د شيطان |

﴿۱۰﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ

او عبد الله بن عمرو بن العاص رضي الله عنه وايي ما د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه واوريدل د هجرت نه وروسته

إِنَّهَا سَتَكُوْنُ هِجْرَةٌ بَعْدَ هِجْرَةٍ فَخِيَارُ النَّاسِ إِلَى مُهَاجَرِ إِبْرَاهِيْمَ

به هجرت وي نو بهترين سړي به هغه وي چې هغه ځای ته هجرت وکړي چيرته چې حضرت ابراهيم)

وَفِيْ رِوَايَةٍ فَخِيَارُ أَهْلِ الْأَرْضِ

هجرت کړی وو او په يو روايت کې دا الفاظ دي چې د روئي زمين بهترين خلق هغه دي چې دي ځای

أَلْزَمُهُمْ مُهَاجَرَ إِبْرَاهِيْمَ وَيَبْقَى فِي الْأَرْضِ

ته هجرت کول په ځان ښه لازم ونيسي چيرته چې حضرت ابراهيم) هجرت کړی وو او په روئي زمين

شِرَارُ أَهْلِهَا تَلْفِظُهُمْ أَرْضُوْهُمْ تَقْذِرُهُمْ

باندي به هغه بدترخلق يعني کفار او فجار پاتې شي چې هغوئ به د هغوئ د ملک نه اوباسي د الله

نَفْسُ اللهِ تَحْشُرُهُمُ النَّارُ مَعَ الْقِرَدَةِ وَالْخَنَازِيْرِ

ذات به هغوئ پليت ګڼي او اور به هغوئ د خنزيرانو او بيزوګانو سره يوځای کولو سره شړي او هغه

تَبِيْتُ مَعَهُمْ إِذَا بَاتُوْا وَتَقِيْلُ مَعَهُمْ

اور به د هغه سره شپه تيروي چيرته چې د هغوئ شپه راشي او هغوئ سره به قيلوله آرام کوي چيرته

إِذَا قَالُوْا. رَوَاهُ أَبُوْ دَاوُدَ.

چې هغوئ قيلوله کوي. [ابوداؤد]

**توضيح**: تلفظهم: دا صيغه د ضرب يضرب ښځه ده ددې ماده لفظ ده چې د ويشتلو په معني سره ده.

ارضوهم. دا جمع ده ددې مفرد ارض دي په معني د زمکې سره دي يعني زمکه به دي خلکو له ځای نه ورکوي.

تقذرهم: د سمع يسمع نه په معني د کراهت او قباحت باندې دي.

نفس الله: دا د تقذر فاعل دي او دا د متشابهاتو نه دي مراد ددې نه د الله پاک ذات دي يعني الله تعالی به دا خلک نه خوښه وي بلکه د دوي نه به نفرت فرمائي. ددې حديث معنی داده چې عنقريب به د حق او باطل په معرکو کې مسلسل حجرتونه وي، ښه خلک به هغه وي چې د شام په طرف حجرت وکړی چرته چې ابراهيم عليه السلام د شام نه حجرت فرمايلی وو د ښو خلکو د تللو نه پس به له کفارو سره شرير بدترين خلک پاتې شي هغوی به نه د حق د پاره اودريږي او نه به د حق د پاره جهاد کوي بلکه ذليل کې د

سره به له كفارو سره او سيږي زمكه دهغوى ذليل كې دو سره يو بل خواته غورزوي او د الله تعالى ذات به دهغوى نه نفرت كوي. بيا به يو اور روښانه شي كفار چې خنزيران او شادوګان دي له دي سره به منافقين او شرير خلق خلط شي. تبيت. د شپې تيره ولو په معني سره ده.

تقيل: دا د قيلولي نه جوړ شوي دي قيلوله كولو ته ويل كيږي مطلب داذى چې ددې خلكو د فتني او فساد اور كې دوي هم راګير شي كه شپه وي او كه ورځ وي د فتني د اور نه مراد فتنه ده كله چې دا منافق خلك ددې كفارو اخلاق خپل كړي نو له كفارو سره به په فتنه كې مبتلا شي ددې به دا خيال وي چې فتنه په ملك كې ده بهر نشته نو د جلا وطن كې دو دپاره به ووځې مگر دا فتنه به دوي نه پريږدې بلكه د دوي سره به ځي د خنزيرانو او شادوګانو نه مراد كفار دي.

## په شام، عراق، او يمن كې د او سيدو دپاره كوم ځاى بهتر دي

| |
|---|
| ﴿۱۱﴾وَعَنِ ابْنِ حَوَالَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| ابن حواله رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې رسول كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمائيل هغه زمانه قريب ده چې د دين او |
| سَيَصِيْرُ الْاَمْرُ اَنْ تَكُوْنُوْا جُنُوْدًا مُجَنَّدَةً جُنْدٌ بِالشَّامِ |
| ملت به دا نظام وي چې ستاسو د مسلمانانو به جدا جدا لښكرې جوړې شي يو لښكر به په شام كې وي |
| وَجُنْدٌ بِالْيَمَنِ وَجُنْدٌ بِالْعِرَاقِ فَقَالَ ابْنُ حَوَالَةَ |
| يو لښكر به په يمن كې او يو لښكر په عراق كې ابن حواله عرض وكړو يا رسول الله! زه كوم لښكر اختيار |
| خِرْلِي يَارَسُوْلَ اللهِ اِنْ اَدْرَكْتُ ذٰلِكَ فَقَالَ عَلَيْكَ بِالشَّامِ |
| كړم حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ورته وفرمائيل ته شام اختيار كړه ځكه چې د شام سرزمين د الله د ځمكو نه ښه ځمكه |
| فَاِنَّهَا خِيَرَةُ اللهِ مِنْ اَرْضِهٖ يَجْتَبِي اِلَيْهَا خِيَرَتُهٗ مِنْ |
| ده الله! د دیندارو او سيدو د پاره د شام سرزمين خوښ كړى دي بيا كه ته شام اختيارول قبول نه كړې |
| عِبَادِهٖ فَاَمَّا اِنْ اَبَيْتُمْ فَعَلَيْكُمْ بِيَمَنِكُمْ وَاسْقُوْا |
| نو خپل يمن اختيار كړه او ګوره چې تاسو د خپلو حوضونو نه او به څښوي حقيقت دادى چې الله! |
| مِنْ غُدُرِكُمْ فَاِنَّ اللهَ عَزَّ وَجَلَّ تَوَ كَّلَ لِيْ بِالشَّامِ |
| محض ځما په وجه ځما د امت په حق كې دا ذمه اخستي ده چې شام او اهلِ شام مامون او محفوظ |
| وَ اَهْلِهٖ . رَوَاهُ اَحْمَدُ رَوَاهُ اَبُوْ دَاوُدَ. |
| ساتي. [روايت كړي دي احمد ابوداود] |

توضيح: الامر: يعني دا مر اسلام يا د جنګ انجام او نتيجه دا را وځي چې تاسو مسلمانان به په دريو حصو

او لښکرو کې تقسیم شئ یو په شام کې بل په عراق کې او بل به په یمن وي. حضرت حواله رضي الله عنه پوښتنه وکړه یا رسول الله زه کوم لښکر ته لاړ شم؟. یجتبي. اجتباء د ټولو یا چن کولو په معني سره دلته ترینه جمع کول مراد دي یعني الله پاک به نیک خلک د شام طرف جمع فرمائي.

**فاما ان ابیتم**: یعني که ته د شام تلو نه انکاري شئ نو بیا یمن ته لاړ شئ دا جمله معترضه په مابین کې واقع شوي ده.

**علیك بالشام**: او د واسقوا من غدرکم. په مابین کې واقع شوي مطلب دا دی چې د شام په طرف هجرت وکړئ او د هغې حوضونو نه اوبه اوڅکی. توکل. تکفل په معني سره ده یعني الله تعالی به د شام او د هغه ځای د اوسیدونکو حفاظت فرمائي. خلاصه دا چې د هجرت کولو لپاره د ټولو نه شام بهرت دی بیا یمن او د عراق نوم یې وانه خستلو. غدر. جمع ده د دې مفرد غدیر ده حوض ته وائي

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

### په شام باندې لعنت مه وائي دا د ابدالو مسکن دی

| |
|---|
| ﴿۱۲﴾ عَنْ شُرَيْحِ بْنِ عُبَيْدٍ قَالَ ذُكِرَ أَهْلُ الشَّامِ عِنْدَ عَلِيٍّ |
| شریح بن عُبید رحمه الله روایت کوي چې یوه موقع باندې د سیدنا علي رضي الله عنه مخکې د اهل شام |
| وَقِيلَ الْعَنْهُمْ يَا أَمِيرَ الْمُؤْمِنِينَ قَالَ: لَا، إِنِّي سَمِعْتُ |
| ذکر وشو او هغوئ ته وویل شو اي امیر المؤمنین! شام والو باندې لعنت ووایه حضرت علي رضي الله عنه |
| رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ: اَلْاَبْدَالُ يَكُوْنُوْنَ |
| ورته وویل نه زه اهلِ شام باندې لعنت نشم ویلي حقیقت خو دا دی ما د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه اوریدلي |
| بِالشَّامِ وَهُمْ أَرْبَعُوْنَ رَجُلًا كُلَّمَا مَاتَ رَجُلٌ أَبْدَلَ |
| دي آبدال په شام کې دي او هغه څلویښت سړي دي هرکله چې په هغوئ کې یو سړي وفات شي نو |
| اللهُ مَكَانَهُ رَجُلًا يُسْقَى بِهِمُ الْغَيْثُ وَيُنْتَصَرُ بِهِمْ |
| الله ! د هغه په ځای دوهم سړي مقرروي د دې ابدالو د وجود له برکته باران کیږي د دوئ مدد سره |
| عَلَى الْأَعْدَآءِ وَيُصْرَفُ عَنْ أَهْلِ الشَّامِ بِهِمُ الْعَذَابُ. |
| د دین د دښمنانو نه بدله اخستي شي او د دوئ له برکته اهلِ شامو نه سخت عذاب دفع کولي شي. |

**توضیح : الابدال یکولون بالشام**: ابدال جمع ده د دې مفرد بدل دي لکه چې ابرار جمع دي د دې مفرد بر دي چونکه دا خلک یو د بل په رتبو باندې بدلیږي له دي وجه نه دیته ابدال ویل کیږي.

الحتم : د حضرت علي او حضرت معاويه يو او ګډ جنګ وو . حضرت علي په حق باندې وو او حضرت معاويه
په اجتهادي غلطي سره وو حضرت معاويه ډير وخته پورې د ملک شام والي او ګورنر وو هغه د حضرت علي
رضي الله عنه نه مطالبه کوله چې د حضرت عثمان رضي الله عنه قاتلين مونږ ته حواله کړی ترڅو مونږ ترينه قصاص واخلو
حضرت علي رضي الله عنه ويل چې تاسو اول بيعت وکړی بيا د قصاص مطالبه وکړی د حضرت علي رضي الله عنه بعض
ملګرو هغه د اهل شام دپاره د بد دعا کولو وويل ترڅو ټول هلاک شي حضرت علي رضي الله عنه د بد دعا کولو نه
انکار وکړو او بيا ئې د شام په باره يو حديث نقل کړو په کوم کې چې د ابدال ذکر راغلي دی .

## ابدال څوک دي او ددوي حقيقت څه دي

په زير بحث حديث کې آنحضرت صلی الله علیه وسلم د ابدال د حقيقت طرف ته اشاره کړې ده اول آنحضرت
صلی الله علیه وسلم د هغوی د اوسيدو ځای طرف ته اشاره کړې ده چې دا خلک به په شام کې وي خو مطلب دا
ندی چې بل ځای به نه وي بلکه مطلب دادی چې د دوی مرکزي استوګن ځای به شام وي دا د الله تعالی د
غيبي نظام خلک دي د دوی زياتر تعلق له تکوين يا نو سره وي له خلکو نه ګوشه اوسيږي له دي وجې
نه دوی ته رجال غيب ويل کيږي . حضرت خضر عليه السلام ددې نظام مشر دی آنحضرت صلی الله علیه وسلم
د دوی جماعتې نظم او نسق ته اشاره کړيده چې دا څلويښت کسان دي کله چې له دوي نه يو مړې نو الله
تعالی د عامو اولياؤ نه يو بدل جوړولو سره دا څلويښت کسيزه تعداد پوره کړی ددوی د نفوس قديسه
په ذريعه د الله تعالی نه د باران دُعا غوښتل کيږي او په دوښمن د کاميابي دُعا غوښتل کيږي او الله
تعالی مدد فرمائي . د دوی په برکت سره د شام نه لوئي لوئي فتني دفعه کيږي دا حديث امام احمد په
مسند احمد کې نقل فرمايلی دی . ابن عساکر سره نقل کړی ده په هغه کې د ابدالو پوره
ملاعلی قاري په مرقات کې يو بل حديث په حواله د
تنصيل دي . ترجمه ملاحظه کړی . چې مرفوع حديث دي چې الله
ابن عساکر د عبد الله ابن مسعود رضي الله عنه نه يو روايت نقل کړی ده چې مرفوع حديث دي چې الله
خپلو انسانانو کې دری سوه داسې خلک پيدا کړی دي چې دهغوی زړونه د حضرت موسی عليه السـ
زړه په صفت دي همدا شان الله تعالی اووه داسې کسان پيدا کړی دی چې د هغوی زړونه د حضرت ابراه
عليه السلام د زړه په صفت دی بيا الله تعالی پنځه داسې کسان پيدا کړی دي چې د هغوی زړه د حضرت
جبرائيل عليه السلام د زړه په صفت سره دی بيا الله تعالی دری داسې کسان پيدا کړی دی چې دهغوی زړونه
د حضرت ميکائيل عليه السلام د زړه په صفت سره دی بيا الله تعالی يو داسې کس پيدا کړی دی چې دهغه
زړه د حضرت اسرافيل عليه السلام د زړه په صفت سره دی (يعنې د ټولو آمير وي) کله چې دا يو کس مړ شي
نو الله تعالی له دريو جماعتونو نه يو کس ته ترقي ورکړي او دهغه يو کس په ځای ئې مقرر کړی او د دريو
نو د پنځو کسانو نه يو کس ته ترقي ورکړي او د هغه دريو په جماعت کې ئ

راولي او د پنځو د جماعت نه چې یو کس وفات شي نو الله تعالى هغه د اوو کسانو د جماعت نه یو کس ته ترقۍ ورکړي او د پنځو په جماعت کې ئي راولي او اوو کسانو د جماعت نه چې کله یو کس وفات شي نو د څلویښتو جماعت نه یو کس ته ترقۍ ورکړي او د اوو په جماعت کې داخل شي او کله چې د څلویښتو د جماعت نه یو کس وفات شي نو الله تعالى د دري سوو د جماعت یو کس ته ترقۍ ورکړي او د څلویښتو کسانو په جماعت کې داخل شي او کله چې په دې دري سوو کسانو کې یو وفات شي نو الله تعالى د عامو اولیاؤ کرامو نه یو کس ته ترقۍ ورکړي او په دري سوو کسانو کې داخل کړي . مرقات جلد ۱۰ ص ۶۴۶ .

د ابدالو متعلق د حضرت عمر حدیث هم دي . لہ دي وجې نه ددې نه انکار مناسب ندی . ویل کیږي چې په کال کې یو ځل د دوي اجتماع په حجاز کې کیږي او ددوي نمائده گان د دنیا په مختلفو حصو کې د خدمت خلق دپاره مقرر کیږي دا د عامو انسانانو په شان یو انسان وي خو د دوی نظام جدا نظام دی .

## د دمشق ذکر

| |
|---|
| ﴿۱۳﴾وَعَنْ رَجُلٍ مِّنَ الصَّحَابَةِ أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ سَتُفْتَحُ |
| اصحابو کې یو سړي نه روایت دي رسول الله صَلَّی اللهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ وفرمائیل هغه زمانه قریبه ده هر کله |
| الشَّامُ فَإِذَا خُيِّرْتُمُ الْمَنَازِلَ فِيْهَا |
| چې د شام د ملک ښارونه او علاقې فتحه شي، نو کله چې تاسو ته د کورونو جوړولو او رهائش |
| فَعَلَيْكُمْ بِمَدِيْنَةٍ يُّقَالُ لَهَا دِمَشْقُ فَإِنَّهَا |
| پذیر کې دو اختیار درکړل شي نو تاسو هغه ښار اختیارول په ځان لازم وګرځئ چې هغه ته دمشق ویل |
| مَعْقِلُ الْمُسْلِمِيْنَ مِنَ الْمَلَاحِمِ |
| کیږي ځکه چې دمشق ښار مسلمانانو دپاره د جنگونو نه د پناه ځای دي او د مشق یو جامع ښار دي |
| وَفُسْطَاطُهَا وَمِنْهَا أَرْضٌ يُقَالُ |
| او د دمشق په ځمکو یعنې علاقو کې یوه ځمکه او علاقه ده چې هغې ته غوطه ویل کیږي دا دواړه |
| لَهَا الْغُوْطَةُ. رَوَاهُمَا أَحْمَدُ |
| روایتونه امام احمد نقل کړي دي. |

**توضیح : دمشق**: په دال باندې زیر او په میم باندې زبر او شین ساکن دی همدا شان دا لفظ د دال په زبر او د میم په زیر سره هم ویل کیږي او س وخت دا ښار د شام پایتخت دي . معقل. دا فوجي چوني او مظبوطي قلعه په معنې سره دی دلته د پناه گاه په معنې سره استعمالیږي دیته قریب یو ځای دي چې ورته غوطه ویل کیږي بعض علماء وائي چې د دمشق شاه او خوا کې چې کوم باغونه او فصلونه وني دي دیته غوطه ویل کیږي.

علامه زمحشري ويلي دي چي . **جنان الدنيا اربع . غوطة و مشعر نهر الايل و شعب كدان وسمرقند .** يعنې په دنيا کې څلور جنته دي . يو غوطه . بل نهرايل دي دريم اشعب كدان او څلورم سمرقند دې . علامه ابن جوزي رَحِمَهُ اللهُ فرمائي . ما دا څلور واړه ځايونه کتلي دي په دوي باندې د غوطه برترې داسې ده لکه چې ددې څلورو برتري په نوره دنيا .

## خلافت په مدينه کې او ملوکيت په شام کې

| |
|---|
| ﴿۱۴﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. |
| او حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې رسول کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمائيل خلافت په مدينه کې دي او |
| اَلْخِلَافَةُ بِالْمَدِيْنَةِ وَالْمُلْكُ بِالشَّامِ |
| ملوکيت يعنې بادشاهي په شام کې . |

**توضيح : والملك بالشام** : له ملك نه په ظاهره د خلافت نه بعد د ملوکيت طرف ته اشاره ده يعنې د حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دور خلافت دي او حضرت معاويه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دور د ملوکيت دي.دا تشريح بعض علماء نه خوښه وي بلکه دي حديث لره د يو بل حديث دوجې نه اساني پوهه کې راځي .
د خصائص النبوة متعلق په يو حديث کې دي د آنحضرت صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د پيدائش ځای مکه او دهجرت ځای مدينه منوره ده او دهغه ملک يعنې د بادشاهت مقام په شام کې دي مطلب دادی چې د آنحضرت صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نبوت په مدينه کې دی لکن د نبوت مظبوطي او استحکام په شام کې دی چې جهاد به په شام کې وي چې په دي سره د نبوت تحفظ راځي يعنې د ملک نه مراد ملکوکيت ندی بلکه مراد ترينه استحکام او مظبوطي ده په ورسره حديث کې هم د نبوت عموميت او خپريدو ته اشاره ده .

| |
|---|
| ﴿۱۵﴾ وَعَنْ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَأَيْتُ |
| حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې رسول کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمائيل ما په خوب کې وليدل چې د نور يوه |
| عُمُوْدًا مِنْ نُوْرٍ خَرَجَ مِنْ تَحْتِ رَأْسِيْ سَاطِعًا حَتَّى اسْتَقَرَّ |
| ستن ځما د سر د لاندې نه راپورته شوه او بيا ملک شام ته تلو سره نصب شو دا دواړه روايتونه |
| بِالشَّامِ . رَوَاهُمَا الْبَيْهَقِيُّ فِيْ دَلَائِلِ النُّبُوَّةِ. |
| بيهقي دلائل النبوت کې نقل کړي دي . |

**توضيح : عمود** : د نور ستن او پايه ده . هم هغه نور نبوت او نور هدايت ده چې په دتيزی سره به خپور شي او شام پور رسيدو سره به قرار ونيسي . ددې حديث هم تائيد دی چې په وخت د ولادت کې حضرت آمنه يو نور ليدلی وو چې دشام محلونه ترينه روښانه شوي وو .

## ملحة الکبری به په دمشق او غوطه کې قائميږي

| |
|---|
| ﴿۱۶﴾ وَعَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِنَّ فُسْطَاطَ |
| حضرت ابو درداء رضي الله عنه روايت کوي چې رسول کريم صلى الله عليه وسلم وفرمائيل د فوجې کاروايي او جنګ |
| الْمُسْلِمِيْنَ يَوْمَ الْمَلْحَمَةِ بِالْغُوْطَةِ إِلَى جَانِبِ مَدِيْنَةٍ يُقَالُ لَهَا دِمَشْقُ |
| اوجدال په ورځو کې د مسلمانانو د جمع کې دو ځای غوطه دي چې د شام د هغه ښار نواحي علاقه |
| مِنْ خَيْرِ مَدَائِنِ الشَّامِ. رَوَاهُ أَبُوْ دَاوُدَ. |
| ده چې هغه ته دمشق ويل کيږي او دمشق د شام د ښارونو نه ښه ښار دي . [ابوداؤد] |

**توضيح** : قسطاط المسلمين . يعنې فوجې قيام ګان او چوڼۍ او کيمپ .محلة الکبري . به غوطه کې قائميږي لکن په يو روايت کې د دمشق ذکر دی چې له دينه تضاد معلوميږي لکن دا خبره معلومه ده چې غوطه د دمشق ګرد نحوا زرخيزه باغاتو نوم دی ګويا غوطه په دمشق کې ددنه دی اوس تضاد نشي پاتې کيدی

## يوه غير معلومه پيشنګوئي

| |
|---|
| ﴿۱۷﴾ وَعَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ سُلَيْمَانَ قَالَ سَيَأْتِيْ مَلِكٌ مِّنْ |
| او حضرت عبد الرحمٰن بن سليمان رضي الله عنه نه منقول دي هغه وويل هغه زمانه راتلونکې ده هرکله |
| مُّلُوْكِ الْعَجَمِ فَيَظْهَرُ عَلَى الْمَدَائِنِ كُلِّهَا |
| چې د عجمو حکمرانانو نه به يو حکمران حمله وکړي هغه به تمام ښارونو باندي غلبه حاصله کړي |
| إِلَّا دِمَشْقَ . رَوَاهُ أَبُوْ دَاوُدَ . |
| ماسوا د دمشق نه . [ابو داؤد ] |

**توضيح** : من ملوك العجم ددې بادشاه تعين ندی شوی چې دا به څوک وي له وقائع روزګار نه به يوه واقعه وي چې د هغې د ظهور نه وروسته به معلوميږي چې د حديث دا مخفي اشاره څومره واضح فرمان وه .



۸ رجب ۱٤۱۸هـ

# باب ثواب هذه الامة
## ددې امت د فضیلت بیان

قال الله تعالیٰ: ﴿كُنْتُمْ خَيْرَ أُمَّةٍ أُخْرِجَتْ لِلنَّاسِ الخ﴾ (آل عمران ۱۱)

وقال الله تعالیٰ: ﴿وَكَذٰلِكَ جَعَلْنَاكُمْ أُمَّةً وَسَطًا لِتَكُونُوا شُهَدَاءَ عَلَى النَّاسِ﴾ (البقرة: ۱۴۳)

یو د اجابت امت دی یو دعوت امت دی د اجابت امت هغه دی چې چا د اسلام دین قبول کړی وي او د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په طریقو د تلو التزام ئي کړی وي علماء کرام لیکې چې اهل بدعت امت اجابت نه خارج دی ځکه هغوی دین اسلام اګرچې قبول کړی دی لکن دهغه متابعت یې نه دی کړی بلکه نوې نوې طریقې ئي جوړې کړي . لکه آغاخاني،قادیاني ، روافض او بعض بریلوي ، منکرین حدیث ذکري ، بهائې او معتزله او خوارج ، دا باطلي فرقي د امت اجابت څخه خارج دي لکن په امت دعوت کې داخل دي امت دعوت هغه دي چې هغوی دین اسلام قبول کړی نه وي لهذا دوی ته دعوت ورکولي شي کنه نو دوي سره به جنګ کولی شي چنانچې د اسلام تربیت داسې دی چې اول به کفارو ته دعوت د دین اسلام ورکولی شي که هغوی دعوت قبول نکړو بیا به د جزئي دعوت ورکولی شي که نه نو د جنګ اعلان به کیږي . دلته عنوان **ثواب هذه الامة** د لفظ دی لکن مخکې د فضیلت ددې امت بیان شوی دی لهذا دلته به د ثواب نه فضیلت مراد اخستلی شي .

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

| |
|---|
| ﴿۱﴾ عَنِ ابْنِ عُمَرَ عَنْ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِنَّمَا |
| حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه روایت کوي چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمائیل د نورو امتونو د |
| أَجَلُكُمْ فِيْ أَجَلِ مَنْ خَلَا مِنَ الْأُمَمِ مَا بَيْنَ صَلَاةِ الْعَصْرِ |
| خلقو په مقابله کې ستاسو د ژوند موده دومره ده څومره چې د ټولي دنیا په مقابله کې د مازیګر د مانځه |
| إِلَى مَغْرِبِ الشَّمْسِ وَإِنَّمَا مَثَلُكُمْ وَمَثَلُ الْيَهُوْدِ وَالنَّصَارٰى |
| نه روسته د نمر ډوبیدو پورې درمیاني وقت دې نه علاوه ستاسو معامله او د یهودو او نصاری وو |
| كَرَجُلٍ اسْتَعْمَلَ عُمَّالًا فَقَالَ مَنْ يَعْمَلُ لِيْ إِلَى نِصْفِ |
| معامله داسې ده لکه څرنګه چې یو سړي په اجرت کار کولو د پاره څه مزدوران طلب کړي او هغوئ ته وواییې |

النَّهَارِ نِصْفِ إِلٰي الْيَهُوْدُ فَعَمِلَتِ قِيْرَاطٍ قِيْرَاطٍ عَلٰي لنَّهَارِ
وک شته چې غرمې پورې څما کار وکړي او زه به هر سړي ته يو يو قيراط ورکړم نو هغه اجرت منظور ولو

النَّهَارِ نِصْفِ مِنْ لِيْ يَعْمَلُ مَنْ قَالَ ثُمَّ قِيْرَاطٍ قِيْرَاطٍ عَلٰي
سره يهودو غرمې پورې يو يو قيراط باندې کار وکړو بيا هغه سړي وويل څوک شته چې غرمې نه

فَعَمِلَتِ قِيْرَاطٍ قِيْرَاطٍ عَلٰي الْعَصْرِ صَلَاةِ إِلٰي
مازيګره پورې څما کار وکړي زه به هر سړي ته يو يو قيراط ورکړم نو يهودو نه روسته د حضرت

قَالَ ثُمَّ قِيْرَاطٍ قِيْرَاطٍ عَلٰي الْعَصْرِ صَلَاةِ إِلٰي النَّهَارِ نِصْفِ مِنْ النَّصَارٰي
عيسٰي منونکو خلقو يعنې نصارىٰ غرمې نه مازيګره پورې يو يو قيراط باندې کار وکړې بيا هغه سړي وويل

قِيْرَاطَيْنِ عَلٰي الشَّمْسِ مَغْرِبِ إِلٰي الْعَصْرِ صَلَاةِ مِنْ لِيْ يَعْمَلُ مَنْ
څوک شته چې مازيګر نه روسته ماښام پورې څما کار وکړي او زه به هر سړي ته دوه دوه قيراطه

الْعَصْرِ صَلَاةِ مِنْ تَعْمَلُوْنَ الَّذِيْنَ فَأَنْتُمُ أَلَا قِيْرَاطَيْنِ
ورکړم دې نه روسته حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمائيل پوهه شئ دې مثال کې تاسو هغه خلق يئ چې مازيګر نه

لَكُمُ أَلَا الشَّمْسِ مَغْرِبِ إِلٰي
لمر لويدو پورې کار کونکې يئ ياد لرئ ستاسو اجر دوچنده دې او په دې وجه چې ستاسو د کار

فَقَالُوْا وَالنَّصَارٰي الْيَهُوْدُ فَغَضِبَتِ مَرَّتَيْنِ الْأَجْرُ
موده خو کمه ده ليکن مستحق د دو چنده اجر ګرځول شوي يئ نو په دې باندې يهود او نصارىٰ په

هَلْ اللهُ قَالَ عَطَاءً وَأَقَلُّ عَمَلًا أَكْثَرُ نَحْنُ
غوصه شول او هغوي يهودو او نصارىٰ وو وويل د عمل د اعتبار نه خو مونږ زيات شو ليکن اجر او ثواب

قَالُوْا شَيْئًا حَقِّكُمْ مِنْ ظَلَمْتُكُمْ
کې څمونږ حصه ډيره کمه ده الله! هغوئ ته جواب ورکړو آيا ما تاسو سره څه ظلم کړې دې يهودو

فَضْلِيْ فَإِنَّهُ تَعَالٰي اللهُ قَالَ لَا
او نصارا وويل څمونږ په حق کې خو تاڅه کمې نه دې کړې پروردګار وفرمائيل حقيقت دا دې چې

الْبُخَارِيُّ رَوَاهُ شِئْتُ. مَنْ أُعْطِيْهِ
دا زيات اجر ورکول څما فضل او احسان دې چاته چې غواړم زيات ورکوم . [بخاري]

**توضيح**: د دې امت عمر کم دې لکن د دوي يوه نيکې په لس چنده يا د دې نه اضافه وعده شوي ده دوي ته
ليلة القدر ورکړي شوې ده چې له دينه د عمرونو کمې لرې کيږي د دوی سره د عبادانو او طاعات ميدا

ډیر فراخه دی ددوی عمل کم او ثواب ئې ډیر دی له دي وجه دا کم خرچ بالا نشین اُمت دي . اجلکم . یعنې ستاسو مرګ او مقرره زندګي د مخکنو خلکو په نسبت دومره کمه ده لکه د مازدیګر د وخت نه تر ماښام پورې په سابقه امتونو کې د یهودو عمر د سحر نه تر ماسپښین پورې او د عیسایانو عمرونه له ماسپښین نه تر مازدیګر پورې او ګډه ول ستاسو عمر ګویا له مازدیګر نه تر ماښام پورې مختصر دي مګر په معنوي اعتبار سره دا ډیر کامیاب عمر دي بشرطیکه څوک ددې قدر او پیژني .

## د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د زماني نه روسته د اهل ایمانو فضیلت

| |
|---|
| ﴿۲﴾ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِنَّ مِنْ |
| او حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي چې رسول کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمائیل حقیقت خو دا دی چې ځما په |
| اَشَدِّ أُمَّتِي لِي حُبًّا نَاسٌ يَكُوْنُوْنَ بَعْدِي |
| امت کې ما سره ډیر زیات محبت ساتونکي هغه خلق دي چې ځما د وفات نه روسته به پیدا کیږي |
| يَوَدُّ أَحَدُهُمْ لَوْ رَآنِي بِأَهْلِهِ |
| هغوئ کې به څوک دا ارزو کوي چې آرمان هغوئ ما ووینې او خپل اهل او عیال او اثاثه هر څه په |
| وَمَالِهِ . رَوَاهُ مُسْلِمٌ . |
| ما قربان کړي . [مسلم] |

**توضیح** : رَآنِي . یعنې راتلونکي خلکو کې څه داسې عاشقان هم شته چې د ځان او مال په قرباني لګولو کې او زما لیدو کې زما زیارت ترجیح و کړی ده ددې حدیث تشریح او توضیح مخکې شوي ده دلته به په یوبل انداز د پوهه ولو کوشش کوم تر څو ددې باب اکثر احادیثو باندې په پوهیدو کې اساني وي

له رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره چې کوم صابه کرام وو هغوی ددې امت امامان او پیشوایان او ټولو مسلمانانو مقتدي او ددې امت افضل ترین خلک وو . مطلقا دوي ته برتري حاصله وه او وروسته راتلو والا ټول خلک د دوی د مرحمت او علومو نه خوشحاله دي په دې اعتبار سره که او کتلی شي چې په بدر او احد او نورو غزواتو کې د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره چې کوم خلک خوا پخوا ولاړ وو که له رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه پوښتنه وکړی شي چې تاته محبوب ترین څوک دي نو هغه به او فرمائې چې په بدر او احد کې کومو خلکو خپل مالونه او ځانونه ډال جوړولو سره خپل ځانونه قربان کړي ما ته تر ټولو زیات هغه محبوب دي او که له حضور اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه پوښتنه و شي چې په مکه مکرمه زیات تکلیفونه برداشت کولو والا او فقر غربت برداشت کولو والا صحابه کرام درته ډیر زیات محبوب دي او که راتلونکې خلک درته ډیر محبوب دي نو هغه صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صحابه کرامو ته ترجیح ورکوي . ځکه هغوی د آنحضرت صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره په غم پریشاني کې شریک وو چنانچې حضرت حسان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د انصارو د قربانو په باره

کې فرمائي

**وکُنَّا مَتي یغزو النبي قبیلة نصل جانبیه بالقنا والقنابل**
**وببیر بدر اذ یکف مطیهم جبریل تحت لواء نا ومحمد**

او صحابه کرامو رضي الله عنهم د امت محمدي یو طرف دادی لکن که بل طرف ته ئې او کتلی شي چې آنحضرت صلی الله علیه وسلم او کتلی نو د الله تعالی د طرف نه په نبې دور کې د اسمان نه داسې اواز نه راځي چې او ویلی شي چې داحق دي نه پس د هدایت نظام او دین اسلام قیام څنګه ممکن شوی دی که په غور سره او کتلی او داباطل دي پرښتي هم نه راکوزیږي چې کوم باندې ښودنه او کړی آنحضرت صلی الله علیه وسلم هم لاړو او صحابه کرام رضي الله عنهم لاړو له دنیا څخه قرآن کریم هم اواز نشي کولی چې زما حکم دارنګه دی او زما مطلب دادی حدیث هم کلام نشي کولی اوس د حق او هدایت چې کوم نظام قائم دی دا د دې امت صلحاء او خاص طور سره علماء او طلباؤ باندې قائم دی چې خلکو ته قرآن او حدیث ښائې په دې اعتبار سره د راتلونکو خلکو ډیر فضیلت دی مثلا د آنحضرت صلی الله علیه وسلم کوم ځای ته نشي راتلای چې د جمعي یاد اخترونو لمونځ او کړي ځکه د هغه صلی الله علیه وسلم انتقال شوی دی اوس که آنحضرت صلی الله علیه وسلم کوم عالم باعمل مونځ کولو یا قرآن یا حدیث درس کولو باندې اوګوري نو هغه به څومره خوشحاله شي ! که په دې وخت کې د هغه صلی الله علیه وسلم نه څوک پوښتنه او کړي چې تاته څوک او کوم خلک ډیر محبوب دي ؟ نو هغه به جواب ورکړي چې هغه خلک چې زمانه روستو زما کار سنبالولو والا دي . په دې طرف دا اشاره ده.

إِنَّ الْعُلَمَاءَ هُمْ وَرَثَةُ الْأَنْبِيَاءِ ، او دیته طرف ته هم اشاره ده چې پیغمبر صلی الله علیه وسلم فرمائي چې د دې امت مثال د باران په شان دی معلوم ندی چې د فصل پاره د باران کومه حصه بهتره ده او له حصه یا درمیان حصه یا آخره حصه ! ؟ معلومه شوه چې دا امت یو زرخیزه امت دی چې زنده تابنده دی .

## یو جماعت به په حق باندې تر قیامت پورې قائم وي

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۳﴾ | وَعَنْ | مُعَاوِيَةَ | قَالَ | سَمِعْتُ | النَّبِيَّ | صَلَّى | اللهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ |
| او حضرت معاویه رضي الله عنه وایي ما د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه واوریدل ځما په امت کې به یوه ډله همیشه | | | | | | | | | |
| يَقُوْلُ | لَا | يَزَالُ | مِنْ | أُمَّتِيْ | أُمَّةٌ | قَائِمَةٌ | بِأَمْرِ | اللهِ | |
| داسې وي چې د الله ! په حکم به قائمه وي دې ډلې ته سرې نقصان رسولي شي چې د هغه تائید | | | | | | | | | |
| مَا | يَضُرُّهُمْ | مَنْ | خَذَلَهُمْ | وَلَا | مَنْ | | | | |
| او اعانت یې ترک کړی وي او نه هغه سړي ورته ضرر رسولي شي چې د موافقت په ځای د هغه مخالفت | | | | | | | | | |
| خَالَفَهُمْ | حَتّٰى | يَأْتِيَ | أَمْرُ | اللهِ | وَهُمْ | | | | |
| وي تر دې پورې چې د الله حکم راورسي او هغه په خپله دې لاره یعنې د احکام خداوندي اطاعت او | | | | | | | | | |

| عَلي ذٰلِكَ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. وَذُكِرَ حَدِيْثُ أَنَسٍ |
|---|
| د دين خدمت او اعانت باندي قائم وي. [بخاري مسلم] او د حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روايت كرده حديث: |
| إِنَّ مِنْ عِبَادِ اللهِ فِيْ كِتَابِ الْقِصَاصِ. |
| ان من عباد الله لو اقسم علي الله لابره كتاب القصاص كي نقل شوى دى. |

**توضيح**: په دي حديث كې چې د كومو خلكو ذكر دى دا ان شاء الله د نن سبا هغه د مجاهدينو ډله ده چې د طائفه منصوره او جماعت ناجيه په نوم ياديږي او تر نن پورې د باطل په مقابل كې په حق قائم دي ټولي دنيا هغوى يو اځي پريخې دي مگر دا مجاهدين د ملا محمد عمر مجاهد رحمه الله په قيادت كې او د اسامه بن لادن په قيادت كې د جهاد په ميدان كې د حق جنډه اوچتولو سره د دنيا مقابله كوي ددې جماعت تعلق د كوم خاص قوم يا خاص علاقي سره ندى بلكه د دنيا لپاره عام دي دا خلك خواه كه په مشرق كې وي او كه په مغرب كې وي په حق باندې به وي.

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

## د اُمت محمديه مثال د زرخيزه باران په شان دى

| ﴿۴﴾ عَنْ أَنَسٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَثَلُ أُمَّتِيْ مَثَلُ الْمَطَرِ |
|---|
| حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ بيان كوې چې رسول كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمائيل ځما د امت حال د باران د حال په شان |
| لَا يُدْرٰي أَوَّلُهُ خَيْرٌ أَمْ آخِرُهُ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ. |
| دي د هغه باره يې ى معلومه نه ده چې د هغه اول ښه دي او كه د هغه آخر ښه دي. |

**توضيح**: له دينه مخكې حديث لمبر ۲ په تشريح او توضيح كې ددې حديث تشريح هم شوي هغه يو بهتر كلام دى چې بار بار ويلى كيږي په زير بحث حديث د راتلونكو خلكو فضيلت په صحابه كرامو باندې ندى وركړى شوى بلكه د دَور اول د خوبيانو پشان ئې د دور دوم او دور دريم د خوبيانو بيان كړى لهذا په دي حديث كې چې د خير كوم صيغه استعمال شوي ده هغه د اسم تفضيل صيغه نده بلكه د تفضيل نفس فعل په معنى كې استعمال شوي. الصَّيف احدُّ من الشِّتَاءِ. واعَسلُ اَحْلٰي من الخِلِ. او كه لفظ د خير په اسم تفضيل استعمال هم شي بيا هم څه حرج نشته ځكه د دور اول د فضيلت ځاله حيثيت دي د دور ثاني د افضليت ځان له حيثيت دى د دور ثالث ځاله حيثيت دى او ځاله اعتبار دى لكه چې د حديث لمبر ۲ په تفصيل كې ذكر شوي دي خلاصه دا چې آنحضرت صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د امت محمديه ښيگړه او نيكي عام خودلې ده چې دا داسې آباد امت دى چې ددې هر طرف په خير او ښيگړه باندې مشتمل دى، ددې اول او آخر ټول برابر دى. يو شاعر څه ښه ويلي دي:

كأن الحب دائرة بقلبي    فأوبله و آخر له سواء

دغه شان فارسي شاعر ويلي دي:

زفرق تابقدم هر کجا که مي نگرم    کرشمه دامن دل کشد که جا اين جا است

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## د امت محمديه حال

| |
|---|
| ﴿۵﴾ عَنْ جَعْفَرٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| حضرت امام جعفر صادق رَحِمَهُ اللهُ خپل پلار نه او هغه د امام جعفر د نيکه نه روايت کوي چې رسول کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| أَبْشِرُوْا وَأَبْشِرُوْا إِنَّمَا مَثَلُ أُمَّتِيْ مَثَلُ الْغَيْثِ لَا يُدْرٰي |
| وفرمائيل خوشحاله شئ او خوشحاله شئ خبره داده چې ځما د امت اجابت د افرادو حال د باران د |
| آخِرُهُ خَيْرٌ أَمْ أَوَّلُهُ أَوْ كَحَدِيْقَةٍ أُطْعِمَ مِنْهَا فَوْجٌ |
| حال په شان دي د هغه باره يي ى معلومه نه ده چې د هغه آخر ښه دي او که د هغه اول ښه دي يا |
| عَامًا ثُمَّ أُطْعِمَ مِنْهَا فَوْجٌ عَامًا لَّعَلَّ آخِرَهَا فَوْجًا |
| ځما د امت مثال د يو باغ په شان دي چې د هغې نه يو کال يو جماعت خوراک وکړي او د هغه نه په |
| أَنْ يَّكُوْنَ أَعْرَضَهَا عَرْضًا وَّأَعْمَقَهَا عُمْقًا |
| دوهم کال يو بل جماعت وخوړلي شايد چې د مخکني جماعت په مقابله کې وروستني جماعت په |
| وَّأَحْسَنَهَا حُسْنًا كَيْفَ تَهْلِكُ أُمَّةٌ أَنَا أَوَّلُهَا |
| سور او ژور والي کې زيات وي او په خوبيو کې هم د هغه نه ښه وي نو هغه امت دې ولې نيست |
| وَالْمَهْدِيُّ وَسْطُهَا وَالْمَسِيْحُ آخِرُهَا |
| اونابود شي چې د هغه اول کې زه يم د هغه په منځ کې مهدي وي او د هغه په آخر کې مسيح عيسي |
| وَلٰكِنْ بَيْنَ ذٰلِكَ فَيْجٌ أَعْوَجُ لَيْسُوْا |
| وي هو د دې زمانو په منځ کې يو کږ رو جماعت به پيدا شي د هغه جماعت خلق به ځما په لاره او |
| مِنِّيْ وَلَا أَنَا مِنْهُمْ. رَوَاهُ رَزِيْنٌ |
| طريقه تلونکي نه وي او زما د متبعينو نه نه دي او نه زه د هغوی نه يم. |

**توضيح**: اطعم: حديقه لوئ باغ ته وائي او اطعم د مجهول صيغه ده او فوج د هغه نائب فاعل دې مراد له فوج نه جماعت دی. **عامًا** کال ته عام وائي.

اعرضها عرضا : عرض پلن والي ته وائي شاید اولنۍ جماعت نه وروستو راتلونکی جماعت په پلن والي خوبیانو کې بهتر وي دلته مراد له پلن والي او ژور والي د جماعت نه کثرت د جماعت مراد دی

**سوال :** په دې مثال کې د اُمت دپاره دوه مثالونه ذکر شوي دي په دواړو کې څه فرق دی

**جواب :** فرق دادی چې په اول مثال کې د اُمت تشبیه د باران سره ورکړی شوي ده چې دا اُمت د نورو خلکو دپاره د علم او عرفان او په خدمت او راهنمائي کې د باران په شان فائده ورکونکی دی . او په دویم مثال کې د اُمت مثال د باغ او ګلانو سره ورکړی شوي ده چې دا اُمت هم د ګلانو په شان دی ددې له صفاتو او کمالاتو او هدایاتو نه عام خلک بهرمند دې ګویا دا اُمت د انسانانو لپاره په دنیا او آخرت کې فائده ورکونکی دی لکه په راتلونکې حدیث شریف کې **کنتم خیر امة اخرجت للناس** په تفصیل کې راځي .

په دې حدیث اُمت په **طول عرض عمق** باندې ځکه متصف شوی چې ددې تشبیه د باغ سره ورکړی شوه نو باغ دپاره **طول عرض** او **عمق** وي نو ددې ذکر ضروري شو بهر حال په دې حدیث کې د اُمت خوبیاني او فضیلت بیان کړی شوي دي . ورسره ورسره ددې حدیث په مابین کې د څه خلکو ګمراهي او کج روۍ ته هم اشاره شوي ده

**فیج :** په فاء باندې زبر دی او یاء ساکنه ده په آخر کې جیم دی دا مفرد دی ددې جمع افیاج او فیوج ده دا دفوج په معنی سره ده دلته ددې نه مراد جماعت دی یعنې ددې په مابین کې به یو ګمراه جماعت راځي دهغوی زما سره هیڅ تعلق نه وي او نه زما هغوی سره څه تعلق شته له معتزله او خوارج او مرجیه . او د دوی پیروان .

## د ایمان بالغیب په اعتبار سره د امت فضیلت

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۶﴾ وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ | | | | | |
| او حضرت عمرو بن شعیب د خپل پلار نه او هغه د خپل نیکه نه روایت کوي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ یوه ورځ | | | | | |
| أَيُّ | الْخَلْقِ | أَعْجَبُ | إِلَيْكُمْ | إِيمَانًا | قَالُوا |
| پوښتنه وکړه چې او ښائي د ایمان په اعتبار سره تاسو مخلوق کې څوک زیات خوښوئ بعض صحابو | | | | | |
| اَلْمَلَائِكَةُ | قَالَ | وَمَالَهُمْ | لَا يُؤْمِنُوْنَ | | |
| جواب ورکړو مونږ خو د فرشتو ایمان ډیر ښه او قوي ګڼو حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمائیل د فرشتو په ایمان کې | | | | | |
| وَهُمْ | عِنْدَ | رَبِّهِمْ | قَالُوا | فَالنَّبِيُّوْنَ | |
| څه عجیبه والي دي هغوئ خو خپل پروردګار سره او سیږي هغه اصحابو یا بعض نورو عرض وکړو | | | | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| قَالَ | وَ | مَالَهُمْ | لَا | يُؤْمِنُوْنَ |

نو بیا هغه پیغمبران دي چې ځمونږ په نزد د هغوئ ایمان ډیر ښه او قوي دي حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمائیل بلا

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَالْوَحْيُ | يَنْزِلُ | عَلَيْهِمْ | قَالُوْا | فَنَحْنُ | قَالَ |

د شک او شبهې نه لرې هغوی به د قوي ایمان حامل وي آسمان نه وحي ورباندې راځي اوس صحابو

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وَمَالَكُمْ | لَا | تُؤْمِنُوْنَ | وَأَنَا | بَيْنَ | أَظْهُرِكُمْ | قَالَ |

وویل نو بیا مونږ خلق یو، رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمائیل ستاسو په ایمان کې څه عجیبه والې دي هر کله

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فَقَالَ | رَسُوْلُ | اللّٰهِ | صَلَّى | اللّٰهُ | عَلَيْهِ | وَ | سَلَّمَ | إِنَّ |

چې ستاسو په منځ کې زه موجود یم راوي وایي دي نه روسته رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمائیل حقیقت دا دی

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| أَعْجَبَ | الْخَلْقِ | إِلَيَّ | إِيْمَانًا | لَقَوْمٌ | يَكُوْنُوْنَ |

چې ځما په نزد د ایمان په اعتبار سره د تمام مخلوق نه ډیر ښه خلق هغه دي چې ځما د زمانه حیات نه

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| مِنْ | بَعْدِيْ | يَجِدُوْنَ | صُحُفًا | فِيْهَا | كِتَابٌ |

روسته پیدا شي هغه خلق به د دین مجموعه مصحف بیا مومي او په هغه کې چې څه مذکور دي په

يُؤْمِنُوْنَ بِمَا فِيْهَا.

ټولو باندې به ایمان راوړي.

## د یو جماعت باره کې پیشنګوئي

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ﴿۷﴾ | وَعَنْ | عَبْدِ | الرَّحْمٰنِ | بْنِ | الْعَلَاءِ | الْحَضْرَمِيِّ | قَالَ | حَدَّثَنِيْ |

او حضرت عبد الرحمٰن بن علاء حضرمي رَحِمَهُ اللّٰهُ وایي ما ته هغه سړي دا حدیث بیان کړو چې هغه د

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| مَنْ | سَمِعَ | النَّبِيَّ | صَلَّى | اللّٰهُ | عَلَيْهِ | وَسَلَّمَ | يَقُوْلُ |

رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اوریدلي وو حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمائیل حقیقت دا دی چې هغه زمانه راتلونکې ده کله چې

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| إِنَّهُ | سَيَكُوْنُ | فِيْ | آخِرِ | هٰذِهِ | الْأُمَّةِ | قَوْمٌ | لَهُمْ | مِثْلُ |

د دې امت آخري دور کې به یو جماعت پیدا شي چې د هغه ثواب به د دې امت د ابتدائي دور د خلقو د

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| أَجْرِ | أَوَّلِهِمْ | يَأْمُرُوْنَ | بِالْمَعْرُوْفِ | وَيَنْهَوْنَ |

ثواب په شان وي د هغه جماعت خلق به مخلوق خدا ته د هغه شرعي امورو تلقین او تبلیغ کوي او هغه

| | | | |
|---|---|---|---|
| عَنِ | الْمُنْكَرِ | وَ | يُقَاتِلُوْنَ |

خبرونه د منع کولو کوشش به کوي کومې چې خلاف شرع دي او د کوم چې دین سره څه واسطه او تعلق

| أَهْلَ الْفِتَنِ . رَوَاهُمَا الْبَيْهَقِي فِيْ دَلَائِلِ النُّبُوَّةِ. |
|---|
| نښته او هغه خلق به فتنه خورونکو سره جنګيږي. دا دواړه روايتونه بيهقي دلائل النبوت کې نقل کړي دي. |

**توضيح**: يقاتلون اهل الفتن. هر طمعه لرونکی په دې طمعه ناست دی چې ددې حديث په مصداق کې به وي لکن ياد ساتی چې آنحضرت ﷺ ددې حديث په مصداق کې د داسې خلکو نشاندهي کړې ده چې په دين حق باندې قائم وي او د باطل مقابله کونکی وي بلکه د هغوی سره قتال کوي نو اُس ظاهره ده چې د باطل مقابله کونکې مجاهدين دي ددې حديث اولني مصداق مجاهدين دي له دينه بعد بيا چې څوک وي هغه دي.

## د هغه اُمتيانو فضيلت چې ناديده هغوئ په حضور ﷺ ايمان راوړي وو

| ﴿۸﴾ وَعَنْ أَبِي أُمَامَةَ أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ |
|---|
| او د حضرت ابو امامه رضي الله عنه نه روايت دي چې رسول کريم ﷺ وفرمائيل مبارک بادي ده هغه |
| طُوْبىٰ لِمَنْ رَآنِيْ وَطُوْبىٰ سَبْعَ مَرَّاتٍ لِمَنْ |
| سړي ته چا چې زه وليدم او په مايي ايمان راوړو او اووه واره مبارک بادي ده هغه سړي ته چې هغه |
| لَمْ يَرَنِيْ وَ آمَنَ بِيْ. رَوَاهُ أَحْمَدُ. |
| زه نه يم ليدلی او په مايي ايمان راوړو او ځما د نبوت تصديق يې وکړو. |
| ﴿۹﴾ وَعَنِ ابْنِ مُحَيْرِيْزٍ قَالَ قُلْتُ لِأَبِيْ جُمُعَةَ رَجُلٌ مِنَ الصَّحَابَةِ |
| او حضرت ابن محيريز بيان کوي ما ابو جمعه ته [چې صحابو رضي الله عنهم نه يو سړي دي] درخواست |
| حَدِّثْنَا حَدِيْثًا سَمِعْتَهُ مِنْ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| وکړو چې ځمونږ په مخکې څه داسې حديث بيان کې چې تاسو خپله د رسول الله ﷺ د ژبې مبارکې |
| قَالَ نَعَمْ أُحَدِّثُكُمْ حَدِيْثًا جَيِّدًا |
| نه اوريدلی وي حضرت ابو جمعه رضي الله عنه وويل هو زه ستاسو مخکې يو ډير ښه حديث بيانوم يو ورځ |
| تَغَدَّيْنَا مَعَ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَمَعَنَا |
| مونږ د سهار طعام باندې رسول الله ﷺ سره وو ځمونږ په منځ کې مشهور صحابي |
| أَبُوْ عُبَيْدَةَ بْنُ الْجَرَّاحِ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللهِ أَحَدٌ خَيْرٌ مِنَّا |
| حضرت ابو عبيده بن الجراح رضي الله عنه هم وو ابو عبيده رضي الله عنه وويل يا رسول الله! آيا يو سړي زمونږ نه ښه کيدي |
| أَسْلَمْنَا وَ جَاهَدْنَا مَعَكَ |
| شي مونږ خو هغه خلق يو چې هغوئ اسلام مو قبول کړو او ستاسو سره اوږه په اوږه د دين د دښمنانو |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| قَالَ | نَعَمْ | قَوْمٌ | يَكُوْنُوْنَ | مِنْ | بَعْدِكُمْ |

خلاف مو جهاد وکړو حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمائيل: هو شته، او هغوئ هغه خلق دي چې ستاسو نه روسته

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| يُؤْمِنُوْنَ | بِيْ | وَلَمْ | يَرَوْنِيْ. | رَوَاهُ | أَحْمَدُ | وَ | الدَّارِمِي. |

پيدا کيږي او په ما باندي ايمان راوړي کله چې هغوئ به زه ليدلي هم نه يم دا روايت احمد او دارمي

وَرَوٰى رَزِيْنٌ عَنْ أَبِي عُبَيْدَةَ مِنْ قَوْلِهِ قَالَ يَا رَسُوْلَ اللهِ أَحَدٌ خَيْرٌ مِنَّا إِلَى آخِرِهِ.

نقل کړی دي او رزين دا روايت د حضرت ابو عبيده نه د هغه خپلو الفاظو سره تر آخر پوري نقل کړی دي

## د طائفه منصوره فضيلت

﴿۱۰﴾ وَعَنْ مُعَاوِيَةَ بْنِ قُرَّةَ عَنْ أَبِيهِ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

او د حضرت معاويه بن قره رَحِمَهُ اللهُ نه روايت دي چې هغه د خپل پلار نه نقل کوي هغه وويل

إِذَا فَسَدَ أَهْلُ الشَّامِ فَلَا خَيْرَ فِيْكُمْ وَلَا يَزَالُ طَائِفَةٌ

رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمائيل هر کله چې اهل شام تباه شي نو بيا به په تاسو کي خير نه وي او ځما په امت کي به

مِنْ أُمَّتِيْ مَنْصُوْرِيْنَ لَا يَضُرُّهُمْ مَنْ خَذَلَهُمْ

يو جماعت داسي وي چې د دين دښمنانو باندي غالب کي دو د پاره هغوئ ته به د الله نصرت او تائيد

حَتّٰى تَقُوْمَ السَّاعَةُ قَالَ ابْنُ الْمَدِيْنِيْ

حاصل وي دي جماعت ته هغه سړي هيڅ نقصان او ضرر نشي رسولي چې د هغوی تائيد او اعانت

هُمْ أَصْحَابُ الْحَدِيْثِ.

ترک کړي تر دي پوري چې قيامت قائم شي او ابن مديني رَحِمَهُ اللهُ وايي د دي جماعت نه مراد ارباب

رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ هٰذَا حَدِيْثٌ حَسَنٌ صَحِيْحٌ.

حديث دي دا روايت ترمذي نقل کړی دي او ويلي يي دي چې دا حديث حسن صحيح دي.

**توضيح: فسد اهل الشام:** د علم او عمل او عقيدي په اعتبار سره چې کله اهل شام برباد شي بيا ستاسو د هيڅ يو کس بهلائي نشته يا دا مطلب چې کله اهل شام برباد شي بيا د هغوی طرف ته هجرت کول او هلته سکونت کولو کې هيڅ خوبي نشته. نن سبا په شام باندې د شعيه نصيري جماعت حکومت کوي اهل اسلام د هغه ځای نه تښتي شايد دا پيشنگوئي اوس پوره شوي وي چې شام فاسد شوی دی.

**تقوم الساعة:** يعني تر قرب قيامت پورې دا د اهل حق طائفه منصوره به قائمه اوسي ملا علي القاري ليکلي دي چې دا ضروري نده چې دا طائفه منصوره به په شام کې وي بلکه دا د مجاهدينو طائفه ده چې

دنیا په مختلفو برخو کې د الله د دین د سربلندي لپاره جنګیږي دا تر کوم وطن پورې خاص نه دي.

هم اصحاب الحديث . علي بن المديني ډیر لوي محدث دي هغه فرمائي مراد له دي طائفي نه اصحاب حدیث دي له دي لفظ نه شاید غیر مقلدین ډیر خوشحاله شي چې دا مونږ یو مګر دا خیال صحیح ندی ځکه دا اصطلاح د محدثینو په نزد ډیره پخوانۍ ده هغه وخت غیر مقلدین په اهل ظواهر باندې مشهور وو د اهل حدیث په نوم دا هیچا نه پیږندل . کوم وخت چې د کوم جماعت تصور هم نه وي بیا علي بن المدیني څنګه د هغوی تصویر کشي فرمائي . عجیبه خبره داده چې د اهل حدیث لفظ غیر مقلدینو ته په هندوستان کې د برتانیه حکومت هغه وخت ورکړی وو چې مولانا محمد حسین بټالوي د جهاد خلاف او د انګریز سره د نه جنګیدلو په حمایت کې یو کتاب ولیکلو چې د هغه نوم . الاقتصاد في مسائل الجهاد . کیښود او دې په صله د یو سرکولیشن په ذریعه . اهل حدیث . نوم غیر مقلدینو ته ډالي کړی شو همدارنګه دا خبره هم یاد ساتئ چې په زیر بحث حدیث کې د اصحاب الحدیث الفاظ دي د اهل حدیث الفاظ ندي اصحاب حدیث د محدثینو د جماعت نوم دي ملا علي القاري رحمه الله فرمائي چې مراد د اصحاب الحدیث نه اهل حق دي چې هغوی د حدیثو تعلیم او تعلم او کړو او په درس او تدریس سره ئې د حدیثو خدمت او کړو هغوی ټول عمر په دي کې صرف کړو او په کتاب او سنت باندې ئې عمل او کړو چې اهل السنت والجماعت په نوم سره یادیږي ګویا ملا علي القاري . اهل الحدیث نه اهل السنت والجماعت مراد اخلي .

## دي امت ته خطا او نسیان معاف دي

| |
|---|
| ﴿۱۱﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِنَّ اللهَ تَجَاوَزَ |
| او د حضرت ابن عباس رضي الله عنه نه روایت دي چې رسول کریم صلی الله علیه وسلم وفرمائیل الله ! ځما امت ته |
| عَنْ أُمَّتِيَ الْخَطَأَ وَالنِّسْيَانَ وَمَا اسْتُكْرِهُوْا عَلَيْهِ |
| خطاء او نسیان معاف کړي دي او د هغه ګناه نه یې هم ورته معافي عطا کړي ده چې په هغه کې په |
| رَوَاهُ ابْنُ مَاجَةَ وَالْبَيْهَقِي. |
| زبردستۍ مبتلا شوي وي . ابن ماجه او بیهقي |

**توضیح** : تجاوز د معاف کیدو په معني سره ده . امتي نه مراد امت اجابت دي امت دعوت مراد ندي .

الخطاء په غیر ارادي طریقه سره د یو کس نه یو نادرست کار او شي دیته خطاء ویلی شي خطا نادرست دي چې ضد ئې په درست سره نامداره کیږي یعنې یو کس صحیح کار کولو چې په غلطي سره په غیر صحیح کار کې واقع شو هغه معاف دي بعض علماء لیکي چې په غیر ارادي طور سره یو کار انجام شي دیته خطاء نه بلکه اخطاء ویلی شي دا صیغه د باب افعال نه استعمالیږي د مثال په طور سره یو کس ښکار ویشتلو لکن ګولی یا مردکی لاړو او یو انسان او لګیدو یا یو کس تهوپک صفا کولو چې

او چلیدو او یو کس او لګیدو او مړ شو دا خطا ده په دي کې چې کوم معاملات په حق الله کې راځي هغه په دنیا او آخرت کې معاف دي مواخذه پري نشته لکن کوم معاملات چې په حقوق العباد پوري متعلق دي هغوی په دنیا کې مواخذ او معاوضه شته معاف کیږي نه لکه په قتل خطاء کې دیت ددې تول تفصیل د اصول الفقه په کتابونو کې وګوری.

نسیان : په نسیان کې هم تفصیل دي په بعض مقاماتو کې نسیان معاف دی لکه په روژه کې څه خوراک یا څکاک وکړی معاف دي لکن دا نسیان په مانځه کې معاف ندی لهذا دلته له نسیان نه مطلق نسیان مراد ندی.

**وما استکر هوا** : یعنې چا په چا باندې زور زبردستي اوکړه نو دا معاف دي په چا چې زبردستي شوي اګر چې هغه ته د قتل او سخت وهلو دمکي نه وي ورکړی شوي بیا هم د زبردستي په نتیجه کې چې کومه ګناه صادره شي هغه معاف ده دلته هم علماؤ لیکلي دي چې په استکراه هم په حقوق الله او حقوق العباد کې فرق دي څانله څانله قسمونه او صورتونه او حیثیتونه دي لهذا په دي کې هم د اصول الفقه تفصیلات مدنظر کړی شي . نن سبا د استکراه تول صورتونه په مجاهدینو باندې تپلی شي دوی د کفارو د هغوی د مزدورانو د طرف نه په قسم قسم تکلیفونو کې ساتلی شي اغزن تار ترینه تاوولی شي او ګیسورباندې راخلاص کړي ترڅو اقرار ترینه واخلي اوګوري . فلسطین . افغانستان . پاکستان . کشمیر . او دچیچنیا عقوبت خاني دمظلومانو په وینو رنګینه او غمزده دي له کلونو کلونو راهیسي په هغوی باندې جبر او استبداد کیږي او استکراه وحشت ناک واقعاتو لاندې د هغوی د کفارو او دهغوی د مزدورانو د مرضي مطابق بیانات اخستلي کیږي او په دي طریقه سره خپلي غلطي پالیسي ته جواز ورکوي الله تعالی دي ددې مظلومانو مدد اوکړي او د ظالمانو لاس دي الله مات کړی او د مجاهدینو د وینو په برکت سره په دنیا باندې د اسلام جنډه رپانده کړی.

آمین یا رب العالمین وصلی الله تعالی علی حبیبه الکریم محمد واله و اصحابه اجمعین.

وَذٰلِكَ فِيْ ذَاتِ الْاِلٰهِ وَاِنْ يَّشَاءُ . يُبَارِكْ عَلٰى اَوْصَالِ شِلْوٍ مُمَزَّعٍ

## دا امت محمدیه لوی فضیلت

| |
|---|
| ﴿۱۲﴾ وَعَنْ بَهْزِ بْنِ حَكِيْمٍ عَنْ أَبِيْهِ عَنْ جَدِّهٖ أَنَّهُ سَمِعَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ |
| او حضرت بهز بن حکیم بن معاویه بن حیده قشیري بصري رَحِمَهُ اللّٰهُ د خپل پلار نه او هغه د بهز نیکه نه |
| يَقُوْلُ فِيْ قَوْلِهٖ تَعَالٰى كُنْتُمْ خَيْرَ أُمَّةٍ أُخْرِجَتْ لِلنَّاسِ |
| او د خپل پلار حضرت معاویه نه روایت کوي هغه د رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه د الله ! د دي ارشاد : (کُنْتُم |

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| قَالَ | أَنْتُمْ | تُتِمُّوْنَ | سَبْعِيْنَ | أُمَّةً | أَنْتُمْ | خَيْرُهَا | وَأَكْرَمُهَا |
| خَيْرَ أُمَّةٍ أُخْرِجَتْ لِلنَّاسِ) په تفسير كې دا فرمائيل واوريدل چې اي اهلِ اسلامو! تاسو اويا امتونه | | | | | | | |
| عَلَى | اللهِ | تَعَالٰي، | رَوَاهُ | التِّرْمِذِيُّ | وَابْنُ | مَاجَةَ | |
| پوره کوئ او د الله! په نزد تاسو د هغه ټولو امتونو نه بهتر او قدرمن يې، دا روايت ترمذي ابن ماجه | | | | | | | |
| وَالدَّارِمِيُّ وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ هٰذَا حَدِيْثٌ حَسَنٌ. | | | | | | | |
| او دارمي نقل کړی دي او ترمذي ويلي دي چې دا حديث حسن دي. | | | | | | | |

**توضيح : كُنْتُمْ خَيْرَ أُمَّةٍ:** د امت دوه قسمونه دي يو امت دعوت دي بل امت اجابت دي په امت دعوت کې ټول هغه کفار داخل دي چې هغوی ته د اسلام دعوت ورکول لازمي په مسلمانانو لازم دي او امت اجابت هغه ټول مسلمانان دي چې هغوی اسلام قبول کړی وي او په اسلام قائم وي. په زير بحث حديث کې د امت اجابت صفات بيان کړی شوي. **كُنْتُمْ خَيْرَ أُمَّةٍ**. ددې لفظ ترجمه داده. تاسو بهترين امت ياست چې د خلکو د بهترۍ لپاره راويستلی شوي ياست. اوس سوال دا دی چې ددې خطاب تعلق دکومي زماني سره دی د زمان ماضي سره يا د حال يا د استمرار سره. ملا علي قاري رحمه الله ددې په شرحه کې څو احتمالات بيان کړی دي يو احتمال او مطلب دادی چې دعلم قديم مطابق له اولې ورځې نه الله تعالی دا امت د رشد او هدايت په خصوصي صفاتو سره پيدا شوي چې دهغوی ظهور د آنحضرت صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د راتګ نه ورسته شوی ګويا ددې خطاب تعلق د زماني ماضي سره دي صيغه هم د ماضي مطلب دا شو چې د الله تعالی په پخوانۍ فيصلې کې تاسو اول بهترين امت ياست. ملا علي القاري رحمه الله وائي چې دويم احتمال دادی چې په لوح محفوظ کې ددې اُمت د بهترۍ ذکر موجود وو دارنګ بهتر صفت والا اُمت په آينده کې راتلونکی ده.

دريم احتمال دادی چې په تيرو شويو امتونو کې هميشه د امت محمديه ذکر خير کيدو هغه مراد دی مطلب دادی چې صيغه د ماضي بعيد استعمال کړی شوي ده په دې کې دوام او استمرار دي انقطاع ندي لکه. **وَكَانَ اللهُ غَفُوْرًا رَحِيْمًا**. کې دوام او استمرار دي انقطاع نشته په دې وجه بعض مفسرينو په. **كُنْتُمْ**. کې كان د صار په معني اخستي ده او بعضو. **كُنْتُمْ**. د انتم په معني سره اخستی دی بهر حال په دې آيت مذکوره کې د امت قديم تاريخ ته اشاره شوي ده او د الله تعالی په نزد ددې امت قديم تقرر بيان کړی ده چې په دې کې ددې اُمت عليشان اهتمام ظاهر کړی شوی دی چې د الله تعالی په علم ازلي کې يا په لوح محفوظ کې په ټولو امتونو کې ددې اُمت ذکر خير چليږي.

اوس پاتې شوه دا خبره چې په. **كُنْتُمْ خَيْرَ أُمَّةٍ**. کې کوم خطاب شوي ده دا دکومې طبقې د اُمت سره

وابسته دی او د امت کومه طبقه ددې مصداق دي په دي کې هم څو اقوال دي يو قول دادی چې ددې اعزازي خطاب مصداق دټول امت مسلمانان دي يعنې ددې اُمت ټول مسلمانان په . **خَيْرَ اُمَّةٍ** . کې داخل دي د زير بحث حديث مفهوم په همدي دلالت کوي . دويم قول دادی مصداق صرف مهاجرين دي . دريم قول دادی چې ددې مصداق دأمت علماء او شهيدان او خوصي صالح خلک دي .

حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمائي . **ان هذه الاية تكون لاوّ لنا ولاتكون لآخرنا** . يعنې ددې آيت تعلق ددې امت د اولي حصي صحابه کرامو سره دی له دي نه وروسته سره ئي تعلق نشته چنانچې د يو سرکاري فرمان مطابق حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ددې آيت خير او بهلائې د جهاد او ايمان سره مشروط فرمائيلي . حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ددې آيت مفهوم . ( **خَيْرُ الْقُرُونِ قَرْنِي ، ثُمَّ الَّذِينَ يَلُونَهُمْ ، ثُمَّ الَّذِينَ يَلُونَهُمْ** .. حديث په روښني کې بيان فرمايلي چې د اُمت دا خير او فضيلت د صحابه کرامو سره خاص دی تر ټولو پورې عام ندی بهر حال شارحينو ددې حديث عموم خوښ کړی او اختيار کړی او ويلي دي چې صحيح ايمان او صحيح عقيده او په صالحو اعمالو باندې قائم ټول مسلمانان ددې حديث مصداق دي ګويا د فضيلت عام شرط دادی چې اُمت په خپل اصل ذمه داری باندې قائم وي او کامل ايمان او مکمل جهاد وي .

**اُخْرِجَتْ لِلنَّاسِ** . يعنې د خلکو د خير دپاره دا اُمت را وړلی شوي دي ملا علي قاري په مرقات کې نقل کړی دی چې حضرت ابوهريرة ددې جملي تفسير داسې فرمايلي ده . معناه **كُنْتُمْ خَيْرَ النَّاسِ تَجِيئُونَ بِهِمْ فِي السَّلَاسِلِ فتُدخِلونَهُمْ فِي الاسْلَامِ** . امام بخاري د حضرت ابوهريره او حضرت ابن عباس نه ددې آيت په تفسير کې داسې حديث نقل کړی .. **قَالَ معناه خَيْرَ النَّاسِ تَأْتُونَ بِهِمْ فِي السَّلَاسِلِ فِيْ اَعْنَاقِهِمْ حَتّٰى يَدْخِلوا فِي الاسْلَامِ** . ( ابن كثير )

دحضرت ابوهريرة رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه په يو روايت کې دا نقل دي چې . **نَحْنُ خَيْرَ النَّاسِ لِلنَّاسِ نَسُوْقُهُمْ بِالسَّلَاسِلِ اِلَي الاسْلَامِ** . ( تفسير قرطبي ) ددې ټولو روايتونو خلاصه داشوه چې د اُمت دخير او فضيلت مطلب دادی چې د کافرانو سره جهاد وکړی شي کافران د جهاد په ميدان په زنجيرونو باندې تړلو سره د اسلام طرف راښکلی شي چنانچې لکونو کافران په ميدان جنګ کې د ګرفتاری نه بعد مسلمان شوي چې په دي باندې د اسلافو تاريخ ګواه دی زره ملاحظه کړی چې د حسن بصري او ابن سيرين ابا او اجداد ګرفتار کړلی شوي راوستلی شوي چې د دوی په اولادونو کې د حسن بصري او ابن سيرين په شان فقهاء او مفسرين پيدا شوي وو او دأمت سرخيل جوړشول شيخ

قتاده ددې آیت په تفسیر کښې فرمائي . هُمْ اُمَّةُ مُحَمَّدٍ صلی الله علیه وسلم لَمْ یُؤْمَرْ نَبِيٌّ قَبْلَهُ بِالْقِتَالِ .اي مثل هذا . فَهُمْ يُقَاتِلُوْنَ الْكُفَّارَ فَيُدْخِلُوْنَهُمْ فِي دِيْنِهِمْ فَهُمْ خَيْرُ اُمَّةٍ لِلنَّاسِ . مرقات .

بهر حال د نبي کریم ﷺ د عظیم جهاد او د اُمت د بهترینو معرکو نه دا امت بهرین امت جوړ شولو د د آنحضرت ﷺ د نبوت د برکت نه دا امت افضل امت او منلې شو علامه بوصیري په قصیده برده کښې فرمائي

لَمَّا دَعَا اللهُ دَاعِيْنَا لِطَاعَتِهِ ۝ بِاَكْرَمِ الرُّسُلِ كُنَّا اَكْرَمُ الْاُمَمِ

سَبْعِيْنَ اُمَّةً: د اویا وو عدد د تحدید لپاره ندي بلکه د کثرت لپاره دي مطلب دا شو چې تاسو د بې شماره سابقه امتونو د تکمیل لپاره رالیږلې شوي یاست یعنې لکه څنګه چې د ټولو انبیاء کرامو دپاره آنحضرت ﷺ خاتم النبیین دي همدا شان تاسو دټولو امتونو دپاره خاتم امم یاست .

په یو بل حدیث شریف کښې آنحضرت ﷺ فرمائي اَنَا خَاتَمُ النَّبِيِّيْنَ لَانَبِيَ بَعْدِي وَ لَا اُمَّةَ بَعْدَكُمْ . ملا علي قاري فرمائي . وَفِيْهِ ايماءٌ اِلَي اَنَّ خِتَامُهُ مِسْكٌ فِي الْاِخْتِتَامِ .

یعنې په دې حدیث کښې ددې امت په هدایت د خاتمي طرف ته اشاره شوي ده چې ورته حسن خاتمه ویل کیږي او د نورو تکمیل دپاره په منزله د مهر ده یعنې د تمامو امتونو لره سر بمهر کولو دپاره الله تعالی دا اُمت رالیږلې ده .

علامه بغوي رحمه الله سره دسند نه یو حدیث مرفوع نقل کړی ده چې پکښې دا الفاظ دي .

اِنَّ الْجَنَّةَ حُرِمَتْ عَلَي الْاَنْبِيَاءِ كُلِّهِمْ حَتّٰي اَدْخَلَهَا وَحُرِمَتْ عَلَي الْاُمَمِ حَتّٰي تَدْخُلَهَا اُمَّتِي . مرقات .

داویا عدد په باره کښې ملا علي القاري رحمه الله فرمائي که له دینه اویا امتونه مراد وي نو اویا لوی لوئ اُمتونه ترینه مراد دي چې دهغوی په ضمن کښې واړه واړه امتونه داخل دي یعنې د لویو امتونو ذکر ئي اوکړو او واړه اومتونه ئي پریښول . بهر حال په دې ورستني حدیث کښې د امت حسن ابتداء او حسن خاتمه دواړو طرف ته اشاره شوي ده شاید صاحب د مشکاة هم د خپل کتاب خاتمه په دې حدیث ددې مقصد لپاره کړی وي چې دکتاب حسن خاتمي طرف ته اشاره شي .



# ختامه مسك

دمشكاة شريف په آخري حديث كې چې كوم حديث ذكر دي ما په نورو ځايونو كې تفسيرونو كتلو سره ددې آيت تفسير او تفصيل ليكلى دى چونكه په دې تفصيل كې ددې آخري حديث توضيح او تشريح هم شته او دآيت مكمل تفسير او تفصيل هم له دې وجه ختامه مسک دې تفصيل لره دخپل كتاب توضيحات په آخر كې شامل كوم انشاءالله فائده به وي.

كُنْتُمْ خَيْرَ أُمَّةٍ أُخْرِجَتْ لِلنَّاسِ تَأْمُرُونَ بِالْمَعْرُوفِ وَتَنْهَوْنَ عَنِ الْمُنْكَرِ وَتُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ. (سورة آل عمران آيت ۱۱۰)

په دې آيت كې د سياق او سباق په لحاظ سره په اهل كتابو او مسلمانانو كې تقابلي نقشه پيش كړې شوې ده چې اهل كتابو خپل كار ريخى دى او مسلمانو لره د دو د فريضې متعلق همت ساتل پكار دي چې ستاسو حيثيت كوم د الله په نزد دى هغه او پيژنئ او حق ئې اداء كړئ ستاسو حيثيت وقتي ندى ټول وقتي دى تاسو لره د امر بالامعروف دپاره انتخاب شوې ياست چې ورسره نهي عن المنكر لازمي جز دى دا ستاسو مستقل كار دى د حالاتو د عارضي تبديلۍ د وجې تاسو دخپل مستقل كار نه مه پشا كيږئ.

الغرض په دې آيت كې د اُمت محمديه على صاحبها الف الف سلام وتحية فضيلت بيان شوى دى او خيرت او فضيلت هغه اسباب بيان شوي دي چې دكوم د وجې نه چې دا اُمت خير امم جوړ شوي دي . اول سبب امر بالمعروف . دويم سبب نهي عن المنكر دي دريم سبب ايمان بالله دى او دا چونكه هغه ممتاز ايمان دى چې د مخكنو دوه سببونه په كوم اُمت كې ځومره مؤثر اوسي هغو مره به ددې اُمت ايمان قوي وي ددې وجې ايمان بالتبع دريمه درجه وركړى شوه اوس دوه ځيزونه قابل د كتو دى .

اول دا چې امر بالمعروف او نهي عن المنكر څه شئ دي دويم دا چې ددې آيت مصداق څوک دي . د اولې خبرې متعلق په مخكنو اوراقو كې تفصيلي بيان او شو دلته ورته اشاره كوو چې امر بالمعروف هر هغه كار دى چې د شريعت اسلاميه د رو نه معروف او پسنديده وي . او منكر هر هغه كار دى چې د شرع شريف له مخې هغه ناپسنديده وي په امر بالمعروف كې ادني نه ادنى او د اعلى اعلىٰ نيكۍ داخل دي او همداشان په نهي عن المنكر كې دبدۍ نه بد او د وركوټې نه وركوټې ګناه داخل ده په دې كې هيڅ تخصيص نشته .

يو د شريعت ايجابي طرف دى او بل د شريعت سلبي طرف دى اول ته امر او مامورات او دويم ته نهي او منهيات نوم ايښودى شوى . اوس معروف . سنن او مستحباتو ته هم شامل دى او فرائض او واجباتو ته هم شامل دى همداشان منكر . مكروهاتو ته هم شامل دى او حرامو ته هم شامل دى مثلا د لارې نه اغزى لرې كول او د ملاقات په وخت كې خندرو ملاقي كې دل هم په معروف كې راځي او د توحيد كليمي ته د كفارو دعوت كول هم په امر بالمعروف كې راځي همداشان په كنړ لاس باندې خوراک څکاک دا هم په

منکر کې راځي او ددې نه منع کول هم نهي عن المنکر ده کفر او شرک منکر دي او ددې منع کول هم نهي عن المنکر دي

يعنې يو ابتدائي او ادنی درجه او بل انتهائي او اعلي درجه ده نو چا چې ځان په کومه درجه کې مشغول کړو هم هغه درجه به ورته ميلاو يږي . مثلا يو کس سنن او مستحباتو ته دعوت ورکوي او د مکروهاتو نه منع کوي هغه به ددې مناسب درجه پيدا کوي او يو شخص ايمان او اسلام ته دعوت ورکوي او د کفر او شرک نه منع کوي دا به همدغه درجه پيدا کوي د دواړو درجې جدا جدا شوي ظاهره خبره ده چې څومره غټ کار وکړی هغومره غټه درجه به ورته ميلاو يږي او څوک چې کار وړوکی وکړي او دعوي د غټ او ډير ثواب لري دا ددې شخص ناپوهی ده

دلته دا خبره په ذهن کې ساتئ چې کوم کس په دې دواړو کارونو کې يو اوکړی او بل پريږدي يعنې امر بالمعروف وکړی او نهي عن المنکر پريږدي دا کس ددې آيت مصداق نشي جوړيدی . د امر بالمعروف ثواب به دته ميلاو يږي لکن د خير الامم مکمل مصداق نشي جوړيداي ليکن سيدنا حضرت عمر بن الخطاب په صفا الفاظو کې ذکر کړی دي

**مَنْ فَعَلَ فِعْلَهُمْ كَانَ مِثْلَهُمْ** . يعنې کومو خلکو چې دصحابه کرامو په شان کار وکړو نو دوی هم دهغوی په شان دی :

أن عمر بن الخطاب رأي من الناس دعة في حجة حجها فقرأ هذه الآية. **كُنْتُمْ خَيْرَ أُمَّةٍ أُخْرِجَتْ لِلنَّاسِ** ، ثم قال : من سره أن يكون من هذه الأمة فليؤد شرط الله فيها في الامر والنّهي » ،

يعنې حضرت عمر رض چې کله دحج په موقع خلک ارام کونکې اوليدل نو دا آيت ئي اولوستو او وي فرمايل دچا چې خوښه وي چې خير امت جوړ شي نو د الله شرط دي پوره کړی يعنې امر بالمعروف او نهي عن المنکر دي وکړی حاصل دادی چې دخير الامم د فضيلت حاصلولو دپاره ضروري ده چې امر بالمعروف او نهي عن المنکر سره سره زندګي تيره وي .

دويم څيز چې ددې آيت مفهوم او تفسير څه دي او ددې مصداق څوک دی نو ددې لپاره مونږ د سلف الصالحين او معتمدو مفسرينو د تشريحاتو طرف ته رجوع کول دي ځکه د آيت د مصداق معلومه ولو لپاره په مفسرينو اعتماد کول دي ورنه هر سړي به د خپل عمل پورې يو آيت چسپه وي نو وا خلئ د ابن کثير حواله حاضره ده .

﴿۱﴾ قال ابن الكثير رحمه الله قال البخاري: بسنده عن أبي هريرة: { **كُنْتُمْ خَيْرَ أُمَّةٍ أُخْرِجَتْ لِلنَّاسِ** } قال: خَيْرَ الناس للناس، تأتون بهم في السلاسل في أعناقهم حتى يدخلوا في الإسلام وهكذا قال ابن عباس، ومُجاهد، وعِكْرِمة، رحمهم الله . ابن كثير ج ۱ صـ۱۹۱ .

ابن کثير رحمه الله وائي چې امام بخاري رحمه الله په خپل سند سره د حضرت ابو هريرة رض نه د { كُنْتُمْ خَيْرَ أُمَّةٍ أُخْرِجَتْ لِلنَّاسِ } تفسير دا رنګه بيان کوي ابو هريرة رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمائي تاسو بهترين امت خيرخواه اُمت ياست راولی دوی لره په زنځيرونو کې ددوي په غاړو کې ترڅو داخل شي په اسلام کې

﴿۲﴾ وقال القرطبي : قَالَ اَبُوهُرَيْرَةَ نَحْنُ خَيْرُ النَّاسِ لِلنَّاسِ نَسُوْقُهُمْ بِالسَّلَاسِلِ اِلَى الْاِسْلَامِ . .

رواه الترمذي .

قَالَ اِبْن عَبَّاسٍ هُمُ الَّذِيْنَ هَاجَرُوا مِنْ مَكَّةَ إِلَي الْمَدِيْنَةَ وَشَهِدُوْا بَدْر وَ الْحُدَيْبِيَّةَ . . جلد ۴ ص ۱۷۰.

يعنې علامه قرطبي رحمه الله فرمائي چې حضرت ابو هريرة رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او فرمائيل چې مونږ بهترين امت يو . دوي په زنځيرونو کې بند وو د اسلام طرف ته ئي کش کوو . ترمذي . ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمائي چې خير الناس هغه خلک دي چې هغوی د مکې نه مدينې طرف ته هجرت کړی دی او په جنګ بدر او جنګ احد کې په جهاد کې شريک شوي دي .

قَالَ الْقُرْطَبِي اَيْضًا : وَرَوي سُفْيَانُ ، عَنْ مَيْسَرَةَ الأَشْجَعِيِّ ، عَنْ أَبِي حَازِمٍ ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ { خَيْرَ أُمَّةٍ أُخْرِجَتْ لِلنَّاسِ } قَالَ تَجُرُّوْنَ النَّاسَ بِالسَّلَاسِلِ إِلَي الإِسْلَامِ .

يعنې ابو هريرة رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمائي چې تاسو څکه بهتر امت يي چې تاسو خلکو لره په زنځيرونو باندې تړلو سره د اسلام طرف ته را کش کوئ . . جلد ۴ ص ۱۷۰ .

قَالَ الْقُرْطَبِي اَيْضًا : فجعل تعالي الأمر بالمعروف والنهي عن المنكر فرقا بين المؤمنين والمنافقين ؛ فدل علي أن أخص أوصاف المؤمن الأمر بالمعروف والنهي عن المنكر ، ورأسها الدعاء إلي الإسلام والقتال عليه . . جلد ۴ ص ۴۷ .

ديو بل آيت په تشريح کې امام قرطبي رَحِمَهُ اللهُ داسې فرمائي چې الله تعالی د منافقينو او مؤمنانو په مابين کې مابه الامتياز فرق . امر بالمعروف او نهي عن المنکر . کرځولی دی . پس صفا ظاهره خبره ده چې دمؤمن صفت خاص امر بالمعروف او نهي عن المنکر دی او په دې بنياد اسلام دعوت ورکوي او جنګيږي جهاد کوي .

علامه قرطبي رحمه الله مزيد فرمائلي دي :

فالمنكر إذا أمكنت إزالته باللسان للناهي فليفعله ، وإن لم يمكنه إلا بالعقوبة أو بالقتل فليفعل ، فإن زال بدون القتل لم يجز القتل ؛ . جلد ۴ ص ۴۹ .

يعنې که منع کولو والا ته په ژبه سره د هغه منع کول ممکن وو نو په ژبه سره دې منع کړی او د منکر ازاله په بغير د سزا او قتل ممکن نه وه بيا دې داسې وکړی او که بغير د قتل نه ازاله ممکنه وه بيا قتل جائز نه دی .

علامه قرطبي رحمه الله په يو مقام کې داسې ليکلي دي .

**قال ابن عطية : والإجماع منعقد علي أن النهي عن المنكر فرض لمن أطاقه وأمن الضرر علي نفسه وعلي المسلمين ؛ فإن خاف فينكر بقلبه ويهجر ذا المنكر ولا يخالطه. وقال حذاق أهل العلم : وليس من شرط الناهي أن يكون سليما عن معصية بل ينهي العصاة بعضهم بعضا.**

يعنې ابن عطيه رحمه الله فرمايلي دي چې په دي باندې اجماع منعقده ده چې نهي عن المنكر فرض ده په هغه کس باندې چې دا طاقت لري او د نهي عن المنكر په صورت کې نورو مسلمانانو ته د ضرر رسولو نه بې خوفه وي او که د ځان خطره وي بيا دي په زړه سره بد ګڼي او د منکر کونکې سره دي تعلق قطع کړي او هيڅ قسم اختلاط دي ورسره نکوي او د نهي عن المنكر د پاره معصوم کې دل شرط نه دی بکله ګنهګار هم نورو ګنهګارانو لره د ګناه نه منع کولي شي . علامه قرطبي رحمه الله مزيد فرمائلي دي :

**وقال مجاهد : ﴿كُنتُمْ خَيْرَ أُمَّةٍ أُخْرِجَتْ لِلنَّاسِ﴾ على الشرائط المذكورة في الآية.**

يعنې مجاهد فرمايلي دي . تاسو بهترين أمت ياست لكن دا بهتري مشروطه ده په هغه شرطونو چې په آيت کې ذکر دی يعنې امر بالمعروف او نهي عن المنكر.

| |
|---|
| **﴿۱﴾عَنْ وفي روح المعاني : والخطاب قيل : لأصحاب رسول الله صلى الله تعالى عليه وسلم** |
| او په روح المعاني کې دي چې . او په روح المعاني کې د ضحاک رحمه الله خيال دادی چې . کنتم خير |
| **خاصة وإليه ذهب الضحاك ، وقيل :للمهاجرين من بينهم وهو أحد** |
| امة . دا خطاب خاص ده تر صحابه کرامو پورې او بعض ويلي دي چې دا تر مهاجرينو پورې خاص دی |
| **خبرين عن ابن عباس، وفي آخر أنه عام لأمة** |
| او دا د ابن عباس يو روايت دی او دده دويم روايت دادی چې دا آيت تر ټول امت ته عام دي لکن ظاهره |
| **محمد صلى الله تعالى عليه وسلم، واظاهر ان الخطاب** |
| او واضح خبره داده چې دا آيت او خطاب اګرچې د هغه مؤمنانو د پاره دي چې هغوی د وحي مشاهده |
| **وان كان بمن شاهد الوحي من المؤمنين او ببعضهم** |
| کړي ده يا په ديکې د بعض د پاره دی مګر د دې خطاب حکم دا صلاحيت لري چې دا فضيلت د ټول امت |
| **لكن حكمه ان يكون عاما للكل.** |
| د پاره شي او ابن منذر وغيره د ابن عباس نه نقل کړی كُنتُمْ خَيْرَ أُمَّةٍ أُخْرِجَتْ لِلنَّاسِ تَأْمُرُونَ بِالْمَعْرُوفِ |

تَأْمُرُونَ بِالْمَعْرُوفِ وَتَنْهَوْنَ عَنِ الْمُنْكَرِ . اخرج ابن المنذر وغيره عن ابن عباس

وَتَنْهَوْنَ عَنِ الْمُنْكَرِ معنی دا چې تاسو خلکو ته حکم ورکړی چې کلمه د توحید او کلمه دشهادت

ان المعنى تامرونهم ان يشهدوا ان لا اله الا الله

اومنی . اوددې ګواهي ورکړي او څه چې الله تعالی نازل کړی دی دهغه اقرار وکړي . د انکار په

ويقرّوا بما انزل الله تعالى وتقاتلونهم عليها ولا اله الا الله

صورت کې . تاسو دهغوی سره وجنګیږي او لااله الا الله تر ټولو لوي معروف او نیکي ده او دآیت د

هو اعظم المعروف وتنهون عن المنكر والمنكر هو التكذيب

دویم شق مطلب دادی چې تاسو خلک د بدو نه منع کړی او تر ټولو لویه بدي او منکر دادی چې د

وهو انكر المنكر وكانّه رضي الله عنه حمل المطلق على الفرد

حق دین تکذیب وکړی شي صاحب د روح المعاني فرمائي چې ابن عباس معروف او منکر اطلاق

الكامل والا فلا قرينة على هذا التخصيص . جلد ۴ ص ۲۸

دهغوی په فرد کامل باندې کړی دي ورنه ددې تخصیص هیڅ قرینه نشته .

**فائده.** ددې بحث نتیجه دا راووتله چې دآیت اولی مصداق خو جهاد دی بیا ددې په ضمن کې نوري نیکیاني هم داخل دي بیا دآیت اولین مخاطبین خو صحابه کرام دي بیا ددې بعد ټول امت مخاطب دي تفسیر کبیر یو سوال کړی دی چې ددې آیت متعلق دی او بیا ئي جواب ورکړی دی . سوال او جواب او بیا ددې ترجمه ملاحظه کړئ.

## وفي التفسير الكبير

(۱) السوال الاول " مِنْ أَيِّ وَجْهٍ يَقْتَضِي الْأَمْرُ بِالْمَعْرُوفِ وَالنَّهْيُ عَنِ الْمُنْكَرِ وَالْإِيمَانُ بِاللَّهِ كَوْنَ

السوال . د څه وجې نه امر بالعمروف او نهي عن النمكر او ایمان بالله تقاضا ده چې دا امت د ټولو

هَذِهِ الْأُمَّةِ خَيْرَ الْأُمَمِ مَعَ أَنَّ هَذِهِ الصِّفَاتِ كَانَتْ حَاصِلَةً فِي سَائِرِ الْأُمَمِ ؟

امتونو نه افضل او بهتر دي حالانکه دا دري واړه اوصاف په مخکې نو امتونو کې هم موجود وو .؟

وَالْجَوَابُ : قَالَ الْقَفَّالُ : تَفْضِيلُهُمْ عَلَى الْأُمَمِ الَّذِينَ كَانُوا قَبْلَهُمْ

جواب . قفال علیه الرحمة فرمائي ددې اُمت فضیلت په [illegible] امتونو باندې ځکه دی چې دې امت

إِنَّمَا حَصَلَ لِأَجْلِ أَنَّهُمْ يَأْمُرُونَ بِالْمَعْرُوفِ وَيَنْهَوْنَ عَنِ الْمُنْكَرِ بِآكَدِ

د امر بالعمروف او نهي عن المنكر ټولو وجوهاتو نه د مظبوط ترینې وجهې سره کوی او هغه دی

الْوُجُوهِ وَهُوَ الْقِتَالُ ؛ لِأَنَّ الْأَمْرَ بِالْمَعْرُوفِ قَدْ يَكُونُ بِالْقَلْبِ وَبِاللِّسَانِ

قتال او جهاد بالسیف . ځکه امر بالمعروف کله په زړه سره کیږي او کله په ژبې سره کیږي او کله په

وَبِالْيَدِ وَأَقْوَاهَا مَا يَكُونُ بِالْقِتَالِ لِأَنَّهُ إِلْقَاءُ النَّفْسِ فِي خَطَرِ

لاس سره کیږي د لاس قوي ترینه درجه قتال او جهاد بالسیف دی ځکه په جهاد کې خپل نفس په

الْقَتْلِ، وَأَعْرَفُ الْمَعْرُوفَاتِ الدِّينُ الْحَقُّ وَالْإِيمَانُ بِالتَّوْحِيدِ

خطره کې اچول دي او په نکې انو کې قوي نیکې په دین حق او توحید او نبوت باندې ایمان راوړل

وَالنُّبُوَّةِ ، وَأَنْكَرُ الْمُنْكَرَاتِ الْكُفْرُ بِاللهِ، فَكَانَ الْجِهَادُ فِي الدِّينِ

دي او ترټولو لویه بدي کفر دی . پس په جهاد کولو سره یو لوی مصیبت او خطره برداشت کول دي

مَحْمَلًا لِأَعْظَمِ الْمَضَارِّ لِغَرَضِ إِيصَالِ الْغَيْرِ إِلَى أَعْظَمِ الْمَنَافِعِ

ترڅو انسانان لوئي نفع ته ورسولی شي .او د کفر له لوی مصیبت نه ئه په آمان کړي نو ثابته شوه چې

وَتَخْلِيصِهِ مِنْ أَعْظَمِ الْمَضَارِّ ، فَوَجَبَ أَنْ يَكُونَ الْجِهَادُ أَعْظَمَ الْعِبَادَاتِ.

جهاد ترټولو لوئ عبادت دي چونکه زمونږ په شریعت کې جهاد ټولو شرائعو ته په نسبت قوي او

وَلَمَّا كَانَ أَمْرُ الْجِهَادِ فِي شَرْعِنَا أَقْوَى مِنْهُ فِي سَائِرِ الشَّرَائِعِ لَا جَرَمَ صَارَ

زیات دی نو ددې نتیجه دا ووتله چې جهاد په ټولو امتونو باندې د فضیلت او برتري سبب

ذَلِكَ مُوجِبًا لِفَضْلِ هَذِهِ الْأُمَّةِ عَلَى سَائِرِ الْأُمَمِ .

دی .تفسیر کبیر ج ۸ ص ۱۹۱ - ۱۹۲

وفي أحكام القرآن للجصاص . اَلْجَهَادُ ضَرْبٌ مِنَ الْأَمْرِ بِالْمَعْرُوفِ وَالنَّهِيِ عَنِ الْمُنْكَرِ . ج ۲ ص ۱۱۹

او جصاص په احکام القرآن کې فرمائیلي دي چې جهاد د امر بالعمروف او نهي عن المنکر یو اعلی قسم دی .

حضرت مفتي تقي عثماني په معارف القرآن کې لیکي : اګر چې د امر بالمعروف او نهي عن المنکر فریضه په مخکې نو امتونو باندې هم عائد وه چې تفصیل ئي په صحیحو احادیثو کې ذکر دی لکن اول دا چې په مخکې نو امتونو باندې د جهاد حکم نه وو له دې وجې دهغوی امر باالمعروف صرف په ژبه باندې وو په امت محمدیه کې د دې دریمه درجه دلاس په قوت سره امر بالمعروف چې په هغه کې د جهاد

تمام اقسام داخل دی او داسلامي حکومت په زور سره د اسلامي قوانینو تنفیذ هم ددې جزء دی (معارف القرآن ج ۲ ص ۱۰۴)

شاه عبد القادر رحمه الله ددې آیت په فوائدو کې ددې تشریح داسې کړې ده:

یعنې دا امت د هر امت نه بهتر دی داسې دوه صفتونو کې امر بالمعروف یعنې جهاد او ایمان یعنې د توحید تقید دومره په نورو دینینو کې نشته (موضح القرآن ص ۱۰۳) له دې آیت نه مخکې آیت (وَلْتَكُنْ مِنْكُمْ أُمَّةٌ يَدْعُونَ إِلَى الْخَيْرِ) په تشریح کې شاه عبد القادر رحمه الله فرمائي: معلومه شوه په مسلمانانو باندې فرض ده یو جماعت تیار لپاره د جهاد او لپاره د تقید د دین ترڅو خلاف د دین هیڅوک ونکړی څوک چې په دې قائم دی هغه کامیاب دی او دا چې څوک په چا باندې تعرض ونکړی. موسی بدین خود .عیسی بدین خود. دا د مسلمانی لاره نده (موضح القرآن ص ۱۰۱)

بهر حال په دې آیت کې د اُمت محمدیه امت مرحومه ډیر فضیلت بیان شوی دی الله تعالی مونږ ټول ددې مستحق او ګرځوي آمین یارب العالمین. وصلی الله تعالی علی نبیه الکریم.

## په مکه مکرمه کې د توضیحات د تکمیل اختتامي کلمات

زه عاجز بنده فضل محمد بن نور محمد یوسف ئي هم د جمعې په ورځ ۲۳. رمضان ۱۴۲۸هـ وقت یولس بجې ورځ د جمعې د نمانځه په انتظار کې ناست یم. بلد الله الحرام الرحاب الطاهرة مکة المکرمة. کې ددې حدیث تشریح او توضیح ددې لپاره لیکم چې ترڅو د مشکوة شریف شرح توضیحات خاتمه هم په خیر باندې اوشي او برکت او قبولیت پکې راشي چونکه ما ددې شرحي شروع هم په ۱۳ رمضان ۱۴۲۱. کې له یو آیت نه په مکه مکرمه کې کړې وه لهذا اوس تاریخ ۲۳. رمضان ۱۴۲۸ د توضیحات شرح آته جلده د تحریر په سلسله کې ددې آخري حدیث تشریح سره په مکه مکرمه کې فارغیږم. مولی کریم! ستا لاک لاک حمد او ثناء او شکر دې چې زما غونته ناقص بنده ته ددې عظیم کار په تکمیل سره کامیابي ورکړه او فرمایو اوس په کومه ژبه او کوم قلم ستا شکر اداء کړم. مولا کریم. زه فقط دومره ویلی شم.

اللَّهُمَّ لَكَ الْحَمْدُ كَمَا يَنْبَغِي لِجَلَالِ وَجْهِكَ ، وَعَظِيمِ سُلْطَانِكَ ، وَبَاهِرِ بُرْهَانِكَ أَنْتَ الْأَحَدُ الصَّمَدُ الَّذِي لَمْ يَلِدْ وَلَمْ يُولَدْ وَلَمْ يَكُنْ لَهُ كُفُوًا أَحَدٌ لَا إِلَهَ إِلَّا أَنْتَ الْكَرِيمُ الْعَظِيمُ الْحَلِيمُ رَبُّ الْعَرْشِ الْعَظِيمُ وَالْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِي بِنِعْمَتِهِ تَتِمُّ الصَّالِحَاتِ وبِشُكْرِهِ تَزِيدُ الْبَرَكَاتُ وَالْخَيْرَاتُ اللَّهُمَّ لَا مَانِعَ لِمَا أَعْطَيْتَ ، وَلَا مُعْطِيَ لِمَا مَنَعْتَ ،زِدْنَا وَلَا تَنْقُصْنَا وَأَكْرِمْنَا وَلَا تُهِنَّا وَأَعْطِنَا وَلَا تَحْرِمْنَا أَسْأَلُكَ مِنْ خَيْرِ مَا سَأَلَكَ مِنْهُ نَبِيُّكَ مُحَمَّدٌ صلى الله عليه وسلم وَنَعُوذُ بِكَ مِنْ شَرِّ مَا اسْتَعَاذَكَ مِنْهُ نَبِيُّكَ مُحَمَّدٌ

نَبِيِّكَ الْكَرِيْمِ السَّيِّدِ الْاَمِيْنِ جَيْشِ الْاَنْبِيَاءِ وَالْمُرْسَلِيْنَ وَعَلٰى اٰلِهٖ وَاَصْحَابِهِ الْغُرِّ الْمَيَامِيْنِ وَعَلٰى مَنْ تَبِعَهُمْ اِلٰى يَوْمِ الدِّيْنِ . اٰمين .

فضل محمد يوسف زئي غفرله

حال نزيل مكة المكرمة ( ۲۳ رمضان ۱۴۲۸)

## د صاحب مشكوة اختتامي كلمات

د صاحب المشكوة مؤلف ابو عبد الله ولي الدين العراقي رحمه الله كله چې د مشكوة شريف د احاديثو د جمع كولو نه فارغ شولو نو هغه په طريقه د شكر سره تاريخ د فارغت وليكلو او وې فرمائيل

قال مؤلف الكتاب . شَكَرَ اللهُ سَعْيَهُ وَاَتَمَّ عَلَيْهِ نِعْمَتَهُ . وَقَعَ الْفَرَاغُ مِنْ جَمْعِ الْاَحَادِيْثِ النَّبَوِيَّةِ صلى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ آخِرَ يَوْمِ الْجُمُعَةِ مِنْ رَمَضَانَ سنة ۷۳۷ . عِنْدَ رُؤْيَةِ هِلَالِ شَوَّالِ سَنَةَ سَبْعٍ وَثَلَاثِيْنَ وَسَبْعِ مِائَةٍ بِحَمْدِ اللهِ وَحُسْنِ تَوْفِيْقِهِ وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِيْنَ وَالصَّلٰوةُ وَالسَّلَامُ عَلٰى مُحَمَّدٍ وَآلِهِ وَصَحْبِهِ وَاَتْبَاعِهِ اَجْمَعِيْنَ .

## د صاحب مرقات ملا علي قاري رحمه الله اختتامي كلمات

اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِي بِنِعْمَتِهِ تَتِمُّ الصَّالِحَاتُ ، وَبِشُكْرِهِ تَزِيْدُ الْبَرَكَاتُ وَالْخَيْرَاتُ ، وَقَدْ فَرَغْتُ مِنْ تَسْوِيْدِ هٰذَا الشَّرْحِ اَنَامِلَ الْعَبْدِ الْمُفْتَقِرِ اِلٰى كَرَمِ رَبِّهِ الْغَنِيِّ الْبَارِي ، عَلِيِّ بْنِ سُلْطَانَ مُحَمَّدٍ الْهَرَوِيِّ الْقَارِي . اَلْمُلْتَجِي اِلَى الْحَرَمِ الْمُحْتَرَمِ الْمَكِّي خَادِمُ الْكِتَابِ الْقَدِيْمِ وَالْحَدِيْثِ النبوي ، عَامَلَهُ اللهُ بِلُطْفِهِ الْخَفِيِّ وَكَرَمِهِ الْوَفِيِّ ، وَعَفَا عَمَّا زَلَّ قَدَمُهُ اَوْ خَلَّ قَلَمُهُ ، وَخَتَمَ لَهُ بِالْحُسْنٰى وَبَلَغَهُ الْمُقَامَ الاسنٰى مَعَ الَّذِيْنَ اَنْعَمَ اللهُ عَلَيْهِمْ مِنَ النَّبِيِّيْنَ وَالصِّدِّيْقِيْنَ وَالشُّهَدَاءِ وَالصَّالِحِيْنَ وَحَسُنَ اُولٰئِكَ رَفِيْقًا ذٰلِكَ الْفَضْلُ مِنَ اللهِ وَكَفٰى بِاللهِ عَلِيْمًا وَذٰلِكَ عَاشِرَ رَبِيْعِ الثَّانِي عَامَ ثَمَانٍ وَاَلْفٍ بَعْدَ الْهِجْرَةِ النَّبَوِيَّةِ عَلٰى صَاحِبِهَا اُلُوْفٌ مِنَ الصَّلَاةِ وَآلَافٍ مِنَ التَّحِيَّةِ .

( ۱۰ ربيع الثاني سنة ۱۰۰۸هـ)

# ترجمة الاكمال في اسماء الرجال

## يعني حالات صحابه وصحابيات رَضِيَ اللهُ عَنْهُم

صاحب د مشكوة شيخ ولي الدين بن عبد الله الخطيب رحمه الله په آخر د مشكوة كښې . اكمال في اسماء الرجال . په نوم سره يوه عمده ګلدسته شامله كړې ده چې په هغې كښې يې د هغه ټولو اشخاصو مختصر حالات ذكر كړې دي چې د چا نه يې په مشكوة شريف كښې حديث روايت كړى دى په دوى كښې د صحابه كرامو او صحابياتو نومونه او تابعين او تابعياتو نومونه هم روايات دي دا ټول نومونه هغه د حروف هجاء په ترتيب سره په عربي ژبه كښې ذكر كړې دي .ماچې كله توضيحات آتم جلد مكمل كړو او د الله په فضل سره له دينه فارغ شوم نو ماته شوق پيدا شو چې الاكمال في اسماء الرجال ترجمه كړم او د آتم جلد سره ئې يوځاى كړم نو د موقوف عليه طلبهٔ كرامو د پاره به ډيره فائده وي مګر په دې كښې دا مشكل مخې ته راغى چې د آتم جلد صفحات ډير زيات شولو د دې مجبورئ له وجه نه ما الاكمال في اسماء الرجال نه د تابعينو او تابعياتو ترجمه لرې كړه او صحابه او صحابيات ددوى نومونه مې مكمل ذكر كړل له مانه مخكښې بعض شارحينو د اكمال في اسماء الرجال ترجمه كړې لكن هغه نامكمل وه او بعض حضراتو ډير طويل حالات ذكر كړى دى چنانچې ما او زما رفقاؤ مختلف تراجم وكتل د معتدلې ترجمې قارئينو ته مو پيش كړل اميد دې چې د موقوف عليه طلبه كرام د دې عظيمې طبقې د حالاتو نه واقف شي صاحب د مشكوة ددې علمي ګلدستې كښې د آئمه اربعه حالات هم ليكلي دي چې ډير عمده دې لكن د كتاب د حجم د زياتيدو د ويرې نه ما هغه پرېښودل نو ما چې څه وليكل هغه دې الله تعالى قبول كړى

**مَا كُلُّ مَا يَتَمَنَّى الْمَرْءُ يُدْرِكُهُ ، تَجْرِي الرِّيَاحُ بِمَا لَا تَشْتَهِي السُّفُنُ**

فضل محمد غفرله يوسف زئي

## باب الألف

### حالات صحابه رَضِيَ اللهُ عَنْهُم

**۱ - أنس بن مالك** : دهغه نوم انس بن مالک بن نضر ده كنية يې ابوحمزه ده دقبيلې د خروج څخه دى د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خاص خادم وو كله چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مدينې منورې ته تشريف راوړو نو دده عمر لس كاله وو په زمانه د خلافت د حضرت عمر رضي الله تعالى عنه كښې يې په بصره كښې قيام اوكړو ترڅو دهغه ځاى خلكو ته دين اوښائي او په صحابو كښې تر ټولو آخر په سنه ۹۱ كښې په بصره كښې ديوسل او درى كالو په عمر كښې انتقال وفرمايه داهم ويلې شوي چې عمر يې نه نوي (۹۹) كاله وو او ابن عبد البر وايي چې دا قول ډير صحيح دى ويلى كيږي چې د اولادونو شميري سل دى ديو قول مطابق اتيا دى په شغوى كښې اته او يا نارينه وو او دوه ښځينه وې له هغه ډيرو خلكو روايت كړى دى.

**۲ - أنس بن مالك الكعبي** : دده نوم انس بن مالک الكعبي دى دده كنيت ابو امامه ده دده نوم صرف په يو حديث كښې ذكر دى په باره د روژې د مسافر او حاملې او مرضعې كښې مروي دى ده په بصره كښې سكونت اختيار كړى وو او له دده نه ابو قلابه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روايت كړى دى.

**۳۔آنس بن النضر** : دا آنس بن نضر انصاري د نجار قبيلي نه دی د احد په ورځ د ډيرشو نه زيات د تورو او غشو زخمونو خوړلو نه شهيد شو دده متعلق دا آيت کريمه نازل شولو . مِنَ الْمُؤْمِنِينَ رِجَالٌ صَدَقُوا مَا عَاهَدُوا اللَّهَ عَلَيْهِ فَمِنْهُمْ مَنْ قَضَىٰ نَحْبَهُ وَمِنْهُمْ مَنْ يَنْتَظِرُ وَمَا بَدَّلُوا تَبْدِيلًا ، الخ

**۴۔آنس بن مرثد** : دا انس بن مرثد بن ابي مرثد دی يو قول دادی چې دده نوم انيس وو ابن عبد البر دې قول ته ترجيح ورکړی ده او ويلی شي چې دا هغه انيس دي چې دمکې په فتح او د حنين په موقع حاضر وو دا ويلی شي چې حضور صلی الله عليه وسلم ورته وفرمايل ای انسه ددې زه د هغه ښځي سره ملاقات وکړه که هغې اقرار د زنا وکړو نو سنګساريې کړه . هغه په سنه ۲۰ کې وفات شوی هغه ځپله او د هغه ورور او والده او نيکه ټول صحابو . د هغه نه سهل ابن حنظله او حکم بن مسعود روايات کړي دي .

**۵۔اسيد بن خضير** : دا اسيد بن حضير انصاری دی . قبيله اوس نه دی . دهغو اصحابو نه دی چې دعقبه ثانيه په موقع حاضر وو . او هغه نقيبانو نه دی او ددواړو بيعتونو د عقبې درمياني فاصله يو کال وه بدري او هغی نه پس نورو غزواتو ي هم حاضر وو . ده نه دصحابو رضی الله عنهم يو جماعت روايت کړی دی مدينه ي سنه ۲۰ ه کې وفات شو . اوبقيع کې دفن شو رضی الله تعالی عنه .

**۶۔ابواسيد** : دا ابو اسيد دمالک بن ربيعه انصاری ساعدی ځوی دی . ټولو غزاګانو ي حاضر وو . دی خپل کنيت سره زيات مشهور دی . ده نه يو کثير مخلوق روايت کړی دی . سنه ۶۰ کې وفات شو هرکله چې عمر ئی اته اويا کاله وو . او بينايي يې زائل شوی وه . اودبدر صحابه کرامو رضی الله عنهم دی دټولو نه آخري وفات شو . اسيد ي همزه مضموم او سين مهمله مفتوح اوياساکنه ده .

**۷۔اسلم** : دا دده کنيت ابو رافع دی . دحضور صلی الله عليه وسلم آزاد کرده وو . دده ذکر به حرف راء ي راشی .

**۸۔اسمر** . دا اسمر بن مضر طائي دی دا هم جليل القدر صحابي دی

**۹۔اشعث بن قيس** : دا اشعث دقيس بن معدی کرب ځوی دی دده کنيت ابو محمد کندی دی د کنده وفد سره دحضور صلی الله عليه وسلم خدمت ي دا واقعه سنه ۱۰ ھ کې وه . دا د اسلام نه مخکې دخپلې قبيلې ډير معزز او ممتاز سړی وو . اسلام ي هم ډير وجيه سړی وو . حضور صلی الله چې وفات شو . نو دا مرتد شو بيا د ابوبکر رضی الله عنه په خلافت کې مسلمان شو . اوکوفه کي سنه ۴۰ ي وفات شو . حضرت حسن رضی الله عنه بن علی رضی الله عنه ئی دجنازی مونځ ورکړلو . اويو جماعت تری روايت کړی دی .

**۱۰۔اشج** : دده نوم منذر بن عائذه دی . عبدي دی . دخپل قوم سردار اودهغوی اسلام طرف ته راوستونکی دی . وفد عبد القيس ي شامليدو سره دحضور صلی الله عليه وسلم خدمت ي حاضر شو . داعراب اهل مدينه نه شميرلی شی . ده نه يو جماعت روايت کړی دی . دده ذکر باب الحذر والتانی ي دی .

**۱۱۔اشيم الضبابی** : هغه قبيله صنبابي ابن کلاب د اولاد نه دی د هغه نه دعلم فرائض صرف يو حديث نقل دی

**۱۲ ـ ابراهیم بن رسول الله** صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : دا ابراهیم دی چې دنبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرزند وو. دماریه قبطیه دخیټې نه چې دحضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مملوکه وه. مدینه ي ذی الحجه سنه ۸ ھ کې پیدا شو. اودشپاړس ۱۶میاشتو په عمر ي وفات شو. اودیو قول مطابق د اتلس۱۸میاشتی ژوندی وو. بقیع ي دفن شو.

**۱۳ ـ الاغر المازني** : دا اغر مزنی دی صحابی دی ابن عمیر او معاویه بن قره ده نه روایت کړی دی.

**۱۴ ـ ابیض** : دحمال ځوی دی دحضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خدمت کي یو وفد سره حاضر شو او صحبت نه مشرف شو یمن کي اوسیدلو. ده نه کم حدیثونه روایت دی هغه ذ مارب اوسیدونکی دی کوم چې د یمن یو ښار دی صنعاء ته نزدې.

**۱۵ ـ الاقوع بن حابس** : دا اقرع بن حابس تمیمی دی وفد بنی تمیم سره دمکی دفتح نه پس دحضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خدمت کې حاضر شو. اودی داسلام نه قبل دواړو زمانو ي معزز وو. دا د عبد الله بن عامر د لښکر حاکم وو او د افغانستان په صوبه جوزجان کې له خپلو ملګرو سره شهید شوی دی.

**۱۶ ـ ابوالازهر** : دا صحابی انماری دی په شام کې اوسیدو له هغه خالد ابن معدان وغیره روایات کړی دی.

**۱۷ ـ اکیدر دومة** : دا کیدر دعبد المالک ځوی دی او صاحب دومة الجندل سره مشهور دی ده ته نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ (خط مبارک) لیږلی وو. اوده دحضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خدمت ي هدیه راولیږله. دده ذکر باب الجزیه کې دی. اکیدر داکدر تصغیر دی دشام او حجاز مینځ ي دیو ښار نوم دی.

**۱۸ ـ اوس بن اوس** :هغه ته اوس بن ابی اوس هم ویل کیږي دثقیف دقبیلې نه دی،د عمرو بن اوس پلار دی.

**۱۹ ـ ایاس بن بکیر** : دا ایاس بن بکیر لیثی دی غزوه بدر ي اوهغې نه وروسته نور غزواتو ي حاضر وو. کله چې پیغمبر صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دار ارقم کې وو نو ده اسلام راوړو سنه ۳۴ ھ کې وفات شو.

**۲۰ ـ ایاس بن عبدالله** : دا ایاس بن عبد الله دوسی مدنی دی دده صحابی کیدو ي اختلاف دی ده نه دښځو دوهلو باره ي صرف یو حدیث روایت شوی دی.

**۲۱ ـ اسامه بن زید** : دا اسامه دی دزید بن حارثه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ځوی وو. دبنی قضاعه د قبیلې نه دی دده د مور نوم برکة وو اودا دحضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دوالد ماجد جناب عبد الله بن عبدالمطلب وینزه وه. او اسامه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دحضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دغلام حضرت زید رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ځوی وو. اودحضور محبوب اودمحبوب ځوی وو. هرکله چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفات شو. نوداسامه عمر شل ۲۰ کاله وو. اوبعضی اقوال ددې خلاف هم دي. اودی وادی القری ي اوسیدلو. اوهغه دحضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دشهادت نه بس وفات شولو. اویو قول دادی چې سنه ۵۴ ھ کې وفات شو. او ابن عبد البر رحمه الله وائی، ځما په نزد داصحیح دی ده نه یو جماعت روایت کړی دی.

**۲۲ ـ اسامه بن شریک** : دا اسامه بن شریک زیباني حلبي دی. اهل کوفه ي دده احادیث زیات خواره شول. او کوفیانو ي شمیرلی شی.

**۲۳ - ابی بن کعب** : دا انصاری خزرجي دی . دی دحضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دوحی کاتب وو . اوهغی شپږ اصحابو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ نه وو چې هغوی دحضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زمانه ي پوره قرآن حفظ کړی وو . اوهغی فقهاؤ نه دی چې دحضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زمانه ي به ئي فتوی ورکولی . او اصحابو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ ي دکتاب الله لوی قاری تسلیمولی شو . دی حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دابو منذر کنیت ورکړی وو او حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ، دابو الطفیل خطاب فرمائیلی وو . او حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ورته دسید الانصار خطاب ورکړی وو . او حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ورته دسید المسلمین مدینه طیبه ي سنه ۱۹ هـ کی وفات شو . کثیر مخلوق تری روایات کړی دی .

**۲۴ - افلح** : دا افلح درسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ غلام وو . او داهم وئیلی شوي دي چې دام سلمه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا غلام دی .

**۲۵ - ایقع بن ناکور** :دا د ذوالکلاع په نوم سره مشهور وو دا ایقع بن ناکور دیمن اوسیدونکی وو . دخپل قوم رئیس وو چې دهغه اطاعت او اتباع کولی شوه ده اسلام قبول کړی وو . نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د اسود عنسی مقابلې او دهغه دقتل دپاره داسلام امداد په باره کې ورته تحریر فرمایلی وو . جنګ صفین سنه ۳۷ هـ کې دامیر معاویه د اشتر نخعي په لاس قتل شولو .

**۲۶ - انجشه** : دا انجشه یو حبشي غلام وو، خوش اواز (حدی خوان) وو . دحضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خدمت کې اوسیده یو ځل ورته پیغمبر صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل چې انجشه ! خپل الحان (خوش اوازي) بند کړه ماسره څه شیشې دي ، دهغه نه څه صحابو روایت کړی دی .

**۲۷ - ابوامامه الباهلی** : دا ابوامامه چې نوم یې صدی دی دعجلان باهلی ځوی دی مصري اوسیدلو . بیا حمص ته منتقل شوی وو .

اوهلته وفات شو هغو اصحابو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ نه دی چې کثرت سره تري روایت کیږی . داهل شام په نزد دده مرویا زیات دي . ډیرو خلقو تري روایات کړي دي سنه ۸۶ هـ کې وفات شو . اويو قول دا دی چې شام ي دټولو نه وروستو عبد الله بن بشر وفات شو . صدی ي صاد باندی فتحه او دال مهمله مفتوح اويا مشدد دی .

**۲۸ - ابوامامه انصاری** : دا ابوامامه سعد دی . دسهل بن حنیف انصاری اوسی ځوی دی خپل کنیت سره زیات مشهور دی دحضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دوفات نه دوه کاله مخې پیدا شو . وئیلی شی چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دده نوم سعد او دده کنیت ابو امامه کړی وو . ده دکم عمری په وجه حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه هیڅ وانه وریدی شو . ځکه بعضو دده ذکر صحابه رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ نه پس خلقوي کړی دی . او ابن عبدالبر دا منجمله دصحابو نه ثابتولو دپاره فرمائیلي دي چې دا مدینه کې دلویو تابعینو نه دلویو علماؤ نه وو . خپل پلار او ابوسعید خدري وغیره نه ئي احادیث واوریدل . او ډیرو خلقو تری روایات کړی دی سنه ۱۰۰ هـ کې وفات شو . او عمر ئې ۹۲ کاله وو .

**۲۹ - ابوایوب انصاری** : دده نوم خالد بن زید انصاری خزرجي دی او دا حضرت علی بن ابی طالب رضی الله عنه سره تمامو جنګونو شریک وو . قسطنطنیه ي سنه ۵۱ هـ کې وفات شو . اودی هغه وخت یزید بن معاویه

رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره وو. هر کله چې دهغه پلار حضرت معاویه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قسطنطنیه ي جهاد کولو. نو هغوی سره جهاد کې
شریکیدو دپاره اووتلو، اوبیمار شولو. بیا چې دبیماری بوج پری زیات شو. وصیت یې وکړو، چې زه وفات شوم،
نو ځما جنازه اوچته کړی بیا چې تاسو ددشمن مخی ته صف بسته شی نو ما دخپلو قدمونو لاندې دفن کړی نو خلقو
دغسی اوکړل قبر یې دقسطنطنیه دچار دیواری قریب دی چې تر ننه پورې مشهور دی چې احترام یې کیږی دهغه
ډیرو خلکو روایات نقل کړی دي.

**۳۰ـ ابوامیه المخزومی** : دا ابوامیة مخزومی صحابی دی دده شمیر اهل حجاز و نه دی ده نه ابو منذر روایت
کوی د زندګۍ نور حالات یې معلوم نه دي.

**۳۱ـ امیه بن مخشی** : دا د بني خزاعه نه دی د هغه شمار د بصرې والا و نه شوی دی. دده شمیر په اهل حجاز و
کې شوی دی. دطعام باره ي ده نه حدیث روایت دی دده وراره مثنی بن عبدالرحمن ده نه روایت کوی.

**۳۲ـ امیه بن صفوان** : دا امیه بن صفوان دی چې دامیه بن خلف جهمی نمسی دی دا دځپل پلار صفون نه
روایت کوی.

**۳۳ـ ابواسرائیل** : دابو اسرائیل صحابه نه یوسړی وو هغه دانذر منلی وو. چې چاسره کلام به نه کوی اوروژه
ي به نمر ي ولاړ وو. اوځان دپاسه به سوري (سایه) نه کوی نو نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغه ته حکم ورکړلو، چې
کینی دی هم سوری (سایه) ي دی هم اوسی، اوخبری دې هم کوی. ابن عباس او جابر بن عبد الله ددنه احادیث
اخستي دي.

**۳۴ـ آبی اللحم** : داخلف بن عبدالملک الغفاری دی آبی اللحم نوم سره مشهور دی (آبي اللحم معنی ده
،غوښې نه انکار کونکی) او آبی اللحم لقب سره ځکه مشهور شو، چې غوښه به ئي مطلقا نه خوړله. یا د جاهلیت
په زمانه کې د بتانو په نومونو ذبیحه یې یوم حنین ي شهید شولو.

## صحابیاتي

**۱ـ اسماء بنت ابی بکر** : دا اسماء ده، دحضرت ابوبکر صدیق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ لورده او دی ته ذات النطاقین وئیلی
شی ځکه چې په کومه شپه چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هجرت کړی وو. خپل کمربند (دملاتړلو پټی) شلولو سره دوه
حصی کړی وو. دهغی یوه حصه ي ئی توشه دان اوتړلو. اودویمه حصه ئي مشکیزه باندی وتړله. یا دهغی ئی
خپل کمربند جوړ کړی وو. اوداد حضرت عبد الله بن زبیر والده ده. مکه ي ئی اسلام راوړی وو. وئیلی شی، چې
هغه وخته پورې صرف اوولس ۱۷ سړو اسلام قبول کړی وو. دادخپلې خور عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا نه لس ۱۰ کاله مشره وه
. د هغې د ځوی عبد الله بن زبیر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دشهادت نه لس ۱۰ ورځی پس د ۱۰۰ کالو عمر ي مکه ي وفات شو. هغه
وخت سنه ۷۳ هـ وو. دی نه ډیرو خلقو احادیث روایت کړی دی.

**۲ـ اسماء بنت عمیس** : دا اسماء بنت عمیس ده دی خپل خاوند حضرت جعفر بن ابی طالب سره یې حبشې ته
هجرت اوکړو. هلته تری محمد او عبد الله اوعون پیدا شول. بیا مدینی ته ئی هجرت اوکړو. کوم وخت چې
حضرت جعفر شهید شو. نو ابوبکر صدیق ورسره نکاح اوکړله او محمد بن ابي بکر تری پیدا شو. بیا حضرت

ابوبکر رضی الله عنه چې وفات شو . نو حضرت علی ابن ابی طالب ورسره نکاح اوکړه . او یحیی تری پیدا شو . دی نه دیر جلیل القدر صحابو رضی الله عنهم روایات کړی دی .

**۳- انیسه رضی الله عنها بنت خبیب** : دا انیسه رضی الله عنها انصاریه صحابیه ده ددې شمیر داهل بصره نه دی دی نه ددې خور ئی خبیب بن عبد الرحمن روایات نقل کړي دي .

**۴- امیمه بنت رقیقه** : دا امیمه ده ، ددې دوالد نوم عبدالله دی او د هغې مور رقیقه بنت خویلد دبي بي خدیجې رضی الله عنها خور ده ددې شمیر داهل مدینه نه دی .

**۵- امامه بنت ابی العاص** : دا امامه ده دابو العاص بن ربیع لور ده ددې والدہ (مور) زینب ده . چې د رسول الله صلی الله علیه وسلم لور وه . دبی بی فاطمې رضی الله عنها خورزه وه . حضرت علی رضی الله عنه ته ئي ددې وصیت کړی وو . دامامه نکاح حضرت علی رضی الله عنه سره زبیر بن العوام اوکړله .

## ب : صحابه کرام رضی الله عنهم

**۱- ابوبکر الصدیق** رضی الله عنه : دا ابوبکر صدیق رضی الله عنه دی نوم ئي عبدالله دی دعثمان ځوی دی ابو قحافه دعامر ځوی وو . او هغه دعمرو او هغه دکعب او هغه د سعد او هغه دتمیم او هغه دمره دغسی او وم ۷ پشت باندی دهغه نسب حضور صلی الله علیه وسلم سره یو ځاي شو . دهغه لقب صدیق هم دی او عتیق هم په عتیق سره ځکه موسوم شوی دی چې حضور صلی الله علیه وسلم ارشاد اوفرمائیلو : من اراد ان ینظر الی عتیق من النار فلینظر الی ابی بکر : ځوک چې داسې سړی لیدل غواړی ، چې دجهنم داورنه آزاد اوبې خطرې شوی وی ، هغه دی ابوبکر ته اوګوری حضور صلی الله علیه وسلم سره هری غزا ي شریک وو . او هیڅ کله تری جدا نه شو . نه داسلام نه قبل اونه داسلام نه وروستو سړوي دټولو نه مخې یې اسلام راوړی وو . رنګ ئي سپین وو ، لاغراندام وو . رخسار پتیل (نری) وو ، په مخ ئي غوښه ډیره کمه وه . سترګې ئي دننه وی تندی ئي راپورته وو . دګوتو جرړی ئي دغوښې نه خالی وی . نکریزو او وسمی سره به ئي خضاب کولو . هغه ته ، والدین (مور وپلار) ته ئي او اولاد ته ئي او نمسو ته ئي دحضور صلی الله علیه وسلم شرف صحبت حاصل شو . دومره لوئي نعمت تمامو صحابو رضی الله عنهم کې بل هیچاته حاصل نه شو . لکه چې د یوسف علیه السلام څلور پشته انبیاء وو په انبیآء کې صرف هغه ته دا شرف حاصل وو په صحابه کرامو کې صرف دا دی چې څلور پشته یې صحابه دی . دفیل دواقعی نه دوه کاله او څلور میاشتې وروسته پیدا شو . اومدینه کې دنهی (منګل) په شپه د ماسختن اومابنام مینځ ي چې جمادی الاخری سنه ۱۳ ھ کې اته ۸ ورځې لاباقی وی چې وفات شولو . عمر ئي ۶۳ کاله وو . داوصیت ئي کړی وو . چې د هغه زوجه اسماء بن عمیس دی غسل ورکړی ځکه هغې غسل ورکړو اوعمر بن خطاب دجنازې مونځ ورکړلو . دخلافت زمانه ئي دوه کاله او څلور میاشتې وه . دصحابو رضی الله عنهم اوتابعینو یو کثیر جماعت تری روایت کړی دی . ډیر کم حدیثونه تری روایت شوی دی ځکه چې حضور صلی الله علیه وسلم نه پس لږه موده ژوندی وو او په روضة الرسول کې دفن شولو .

**۲- ابوبکره** : دا ابوبکره نفیع بن حارث بن کلده دی د حارث بن کلده ثقفی وو بیا هغه خپل اهل یعني ځوی ئي

دهغه ددې کنیت وجه دا بیانیږی چې یوم طائف کې چې حضور ﷺ دطائف محاصره کړی وه د کوهي درسی په تعاون سره د نګلي وو او دحضور اکرم ﷺ خدمت ي جاضرید و سره اسلام ئي قبول کړو نو حضور ﷺ دابوبکره کنیت سره مخاطب کړلو . اوازاد ئي کړلو . ځکه دحضور ﷺ د موالو نه دی یعنی آزاد کرده غلام دی دبصری باشنده کیدو سره هلته سنه ۴۹ هـ کې وفات شولو .

**۳ ـ ابو برزه** : دا ابوبرزه فضله بن عبید اسلمی دی شروع زمانه ي ئي اسلام قبول کړو . او دا هغه دی ، چې عبدالله بن خطل ئي قتل کړی وو . او دحضور ﷺ وفات پورې تمامو غزواتو ي ورسره شریک وو بیا بصري ته راتلو سره مقیم شو بیا دخراسان غزائي او کړله . او مروي سنه ۶۰ هـ کې وفات شولو .

**۴ ـ ابوبرده** : دا ابوبرده هانی بن نیار دی اویا (۷۰) اصحابو سره عقبه ثانیه ي حاضر وو او دې نه پس جنګونو کې هم شریک وو او دی دبراء بن عازب ماما دی دده اولاد اونه شولو . دمعاویه شروع زمانه ي تمامو جنګونو دحضرت علی رضي الله عنه په ملګرتیا کې وو .

**۵ ـ ابوبصر** : دا ابوبصیر عتبه بن اسید ثقفی دی ابتدائی زمانه ي اسلام راوړونکو صحابه رضي الله عنهم دی . دده ذکر غزوه حدیبیه ي راځي . دحضور ﷺ زمانه ي وفات شو .

**۶ ـ ابوبصره** : دده نوم حمیل بن بصره غفاری دی .

**۷ ـ ابوبشیر** : دا ابوبشیر قیس دی دعبید انصاری مازنی ځوی دی . ابن عبدالبر صاحب استیعاب کې وائی . دده صحیح نوم باندی واقفیت اونه کړی شو . دا صحابي دی دهغه نه یو جماعت آحادیث نقل کړې دي ډیر اوږد عمر والا وو . د حره د جنګ نه وروسته وفات شو .

**۸ ـ ابو البداح** : دا ابو البداح دی نوم کې اختلاف دی وئیلی شی ، چې دده نوم عاصم بن عدی دی اویو قول دادی چې دا دعاصم بن عدی ځوی دی او دده کنیت عمر ابوعمرو دی بعضو ده ته تابعی ویلی دی لیکن صحیح داده چې دا صحابي دی ، په سنه ۱۱۷۰ هـ کې وفات دی په عمر د ۸۴ کالو کې .

**۹ ـ البراء بن عازب** : دابراء بن عازب ابو عماره انصاری حارثی دی کوفې ته راغی او سنه ۲۴ هـ کې او جنګ جمل او صفین او نهروان ي حضرت علی رضي الله عنه سره وو . او دمصعب بن زبیر زمانه ي کوفه کې وفات شو .

**۱۰ ـ بلال بن رباح** : دا بلال بن رباح دحضرت ابوبکر صدیق آزاد کرده غلام دی شروع زمانه ي اسلام راوړلو . دا وړومبنی سړی وو ، چې مکه کې یې خپل اسلام ظاهر کړو غزوه بدر کې او هغې نه پس تمامو غزاګانو ي شریک وو . او آخر وخته پوری شام ي اوسیدلو . هیڅ اولاد ئي اونه شولو ده نه دصحابو او تابعینو یو جماعت روایت کړی دی عمر ئي ۶۳ کاله وو . سنه ۲۰ هـ کې دمشق کې وفات شولو او باب الصغیر کې دفن شو . او یو قول دادی چې حلب کې وفات شو . او باب الاربعین کې دفن شو صاحب کشاف وائی چې وړومبنی قول صحیح دی او دی دهغی خلقو نه وو ، چې اهل مکه دا اسلام قبلولو په وجه سخت تکلیفونه ورته ورسول او د بلال سخت تکلیفونو ي مبتلا کولو ي امیه بن خلف جحمی بذات خود حصه اخستله . او دا تقدیر الهی وو چې دا ملعون دحضرت بلال رضي الله عنه

دلاسه دبدر په ورځ قتل شو . جابر وائي ، حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ به وئيل ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ځمونږ سردار دی او ځمونږ دسردار بلال آزاد کونکی دی .

**۱۱ـ بلال بن حارث** : دا بلال بن حارث ابوعبدالرحمن مزنی دی . د مدينې سره اشعر مقام کې اوسيدلو . سنه ۶۰هـ کې داتيا کالو په عمري وفات شو .

**۱۲ـ بريده بن الحصيب** : دابريده بن الحصيب اسلمی دی بدرنه مخې ئې اسلام راوړی وو خوهغې کې حاضر نه شو اوبيعت رضوان کې شريک وو دمدينې اوسيدونکو نه وو بيا بصرې ته لاړو هلته نه خراسان ته جهاد کولو سره ورسيدو اومرو کې ديزيد بن معاويه زمانه ې سنه ۶۲هـ کې وفات شو . او مرو کې يې قبر دی .

**۱۳ـ بشر بن معبد** : دابشر بن معبد دی ابن الخصاصية نوم سره مشهور دی خصاصيه دهغه والده (مور) ده اودهغې نوم کبشه وو . خلقو دهغه دوالدی (مور) نوم طرف ته منسوب کړو . اودحضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ آزاد کړده وو . اودهغه شمير بصری والو ې دی .

**۱۴ـ بسر بن ابی ارطاة** : دابسر بن ابی ارطاة ابوعبدالرحمن دی اودابوارطاة نوم عمير عامری قرشي وو . وئيلی شی دکم عمری په وجه ده دحضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه هيڅ وانه وريدی شو . اواهل شام دده آوريدل ثابتوی . دواقدی قول دی چې دا دحضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دوفات نه دوه کاله قبل پيدا شوی وو .

وئيلی شی ، چې آخر عمر کې ئې دماغ صحيح نه وو پاتې شوې . دحضرت معاويه زمانه کې وفات شو اويو قول دادی چې دعبدالملک زمانه کې وفات شو .

**۱۵ـ بديل بن ورقا** : دابديل بن ورقا خزاعی دی قديم الاسلام دی ده نه دده دواړو ځامنو عبدالله اوسلمه وغيرهما روايت کړی دی . دحضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زمانه کې شهيد شولو . اويو قول دادی ، چې يوم صفين ې شهيد شولو . اويوقول دادی ، چې يوم صفين ې چا دا قتل کړو . هغه دده ځوی عبدالله وو .

**۱۶ـ ابنا بسر** : يعني دبسر دواړه ځامن . دی نه مراد عطيه او عبدالله دی دده ذکر به حرف عين ې راشی . ددې دواړو يو حديث دی دقجورو اوکوچو خوړلو باره ې ، چې هغې ې دواړه نومونه يوځائي کولو سره (ابنا بسر) يعنی دبسر دواړه ځامن وئيلی شوی دی . اودهغوی نومونه نه دی ذکر شوی .

**۱۷ـ البياضی** : دا د بياضه ابن عامر په اولاد کې دی اودده نوم عبدالله بن جابر الانصاری دی صحابی وو .

## صحابياتې

**۱ـ بريرة** : دادام المؤمنين عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا آزاد کړده دی . عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا او ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ اوعروه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ابن زبير رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت کوی .

**۲ـ بسرة** : دابسره دصفوان بن نوفل لوروه . نسلا قريشيه اسديه وه اودورقه بن نوفل خورزه وه .

**۳ـ بهيسه** : دابهيسه فزاريه ده . صحابيه ده دادخپل پلار نه روايت کوی ،

**۴ـ ام بجيد رضی الله عنها** : داام بجيد حواء ده ديزيد بن سکن لور انصاريه ده . دا اسماء بنت يزيد خورده .

دا د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره بيعت كړى وو. ددې شهرت كنيت سره زيات شو دهغى ښځو نه ده، چې هغوى

## ت:

## صحابه رضى الله عنهم

**۱ ـ تميم دارى**: داتميم بن اوس دارى دى مخې نصرانى وو. بيا سنه ۹ هـ كې يې اسلام قبول كړو. ده به يو ركعت ي پوره قرآن ختمولو. اوكله به ئي يو آيت ټوله شپه باربار لوستو سره سحر كولو. محمد بن منكدر بيان وكړو. يو ځل دارى دشپې سحر پورى اوده وو. اوتهجد دپاره پانه سيدى شو. نو خپل نفس له ددې غفلت سزا وركولو دپاره يو كال پورې ټوله شپه به ئي نفلونه كول، اوبالكل اوده نه شو. مدينه كي اوسيدو، بيا دحضرت عثمان دشهادت نه پس شام كي پاتې كيده. اووفات پورى هلته وو، اودټولو نه مخې جومات (مسجد) ي ده ډيوه بله كړه. نبى كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه ده ددجال او د جساسه قصه بيان كړى ده.

## ث:

## صحابه كرام رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ

**۱ ـ ثابت بن قيس بن شماس**: داثابت بن قيس بن شماس انصارى خزرجى دى غزوه احد اوهغى نه پس چې څومره غزاګانى اوشوى ټولو ي حاضر وو. او دا د اكابرو اصحابونه اودانصارو دلويو علماء نه وو. حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ورته دجنت بشارت وركړى وو. اودا درسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خطيب وو. اويوم يمامه يعنى په كومه ورځ چې مسيلمة الكذاب سره جنګ شوى وو هغى ي سنه ۱۱۲ هـ كې شهيد شو ده نه انس بن مالک وغيره روايت كړى دى.

**۲ ـ ثابت بن ضحاک**: داثابت بن ضحاک ابوزيد انصارى خزرجى دى دى په ماشوم والې كې يې پيغمبر صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دونې لاندې بيعت رضوان كړى وو د حضرت عبد الله بن زبير په واقعه كې شهيد شو

**۳ ـ ثابت بن دحداح**: دا انصاري دى، دا په غزوه احد كې د خالد بن وليد په برچې سره شهيد شو د بعضو مؤرخينو قول دى: چې هغه په بستره باندې وفات شوى دى.

**۴ ـ ثوبان**: داثوبان بن بجدد دى. دده كنيت ابوعبدالله دى رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اخستلو سره آزاد كړى دا دحضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفات پورې سفر اوحضر ي هميشه حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره وو. بيا شام رمله ته راغى دى نه پس حمص كې مقيم شو، اوهلته سنه ۵۴هـ كې وفات شو ده نه ډيرو خلقو روايت كړى دى.

**۵ ـ ثمامه بن اُثال** رَضِيَ اللهُ عَنْهُ: داثمامه بن اثال حنفى دى. داهل يمامه سردار وو. دا قيد شوى وو. حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ورته آزادې اوبښله. دى نه پس لاړلو. خپلې كپړى ئي اووينزلې اوغسل كولو سره بيا دحضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خدمت ي حاضريدو سره اسلام ئي قبول كړلو.

**۶ ـ ابو ثعلبه** رَضِيَ اللهُ عَنْهُ: دا ابوثعلبه جرهم بن ناشب خشني دى اودا خپل كنيت سره مشهور دى بيعة الرضوان واله

بیعت ئي د حضور ﷺ سره او کړو حضور ﷺ د قوم خلقو ته (تبلیغ اسلام دپاره) اولیږلو . چې ټول قوم اسلام راوړلو . ابو ثعلبه شامي راغلی وو . آخر کې په شام کې اوسیده په سنه ۷۵ کې هلته وفات شو

## ج :

## صحابه کرام رضي الله عنهم

**۱ـ جابر بن عبد الله** . دده کنیت ابو عبد الله دی انصاري دی سلمی ذی له هغه نه ډیر احادیث روایت شوي دي هغه په بدر وغیره . ۱۸ . غزواتو کې شریک شوی دی د حضور ﷺ د وفات نه بعد هغه مصر او شام ته لاړ په آخر کې نابینا شو دده عمر . ۹۴ . کاله وو په کال . ۷۴ هـ کې په مدینه منوره کې وفات شولو دا آخری صحابی وو چې وفات شولو او مدینه منوره د صحابه نه خالي شوله .

**۲ـ جابر بن سمره** . دهغه کنیت ابو عبد الله عامری دی د حضرت سعد بن ابی وقاص ورارہ دی په کوفه کې مقیم وو او په سنه . ۷۴ . کې وفات شولو یو جماعت له دنه روایات کړی .

**۳ـ جابر بن عتیک** . دهغه کنیت عبد الله دی انصاری دی په بدر وغیر ټولو غزواتو کې شریک شوی دی په . ۹۱ . کاله عمر کې په سنه . ۶۱ . هـ کې وفات شولو

**۴ـ جابر بن حضر** . دا انصاری سلمي دی . په بیعت عقبه او بدر وغیره عزواتو کې شامل شوی وو په بیعت عقبه کې هغه اویا و کسانو نه یو کس دی .

**۵ـ جریر ا بن عبد الله** . دهغه کنیت ابو عمرو دی د حضور انور د وفات په کال هغه ایمان راوړی وو خپله فرمائی چې ما د وفات نه څلویښت ورځی مخکی ایمان راوړی وو آخر کې په کوفه کې اوسیدو بیا قرقیسیا ته منتقل شو او هلته په سنه . ۵۱ . وفات شولو .

**۶ـ جندب بن عبد الله** . دا د عبد الله ابن سفیان ځوی دی بجلي علقی دی دا یو خاندان دی له واقعی د عبد الله بن زبیر نه څلور کاله وروسته وفات شوی

**۷ـ جبیر بن مطعم** . دهغه کنیت ابو محمد دی قریشی نوفلی دی له فتح مکه نه ئي مخکی ایمان راوړی دی په مدینه منوره کې اوسیدو په سنه . ۵۴ . هـ کې په مدینه منوره کې وفات شولو .

**۸ـ جرهد ابن خویلد** . دا اسلمی مدنی دی . له اصحاب صفه نه دی . په کال ۶۱ کې وفات شوی .

**۹ـ جعفر بن ابی طالب** . هغه هاشمی مطلبي دی د حضرت علی المرتضی مشر ورور دی دهغه لقب ذوجناحین هم دی یعنی د دوو وزرو والا او طیار هم دی یعنی الوتلو والا هغه د یو دیرش کسانو نه بعد ایمان راوړی دی یعنی دوه دیرشم مؤمن دی د حضرت علی رضي الله عنه نه لس کاله مشر دی په صورت او سیرت کې د حضور انور ﷺ سره مشابه وو حضرت علی رضي الله عنه فرمائي یو ځل مونږ د حضور انور ﷺ سره د ابو طالب په باغ کې وو هغه راغی حضور انور ﷺ ورته او فرمایل راشه زمونږ سره مونځ او کړه ابو طالب او فرمایل

ستا دين بر حق دی لکن زه ستاسو سره مونځ نه شم کولی البته جعفر به ستاسو سره مونځ اوکړی چنانچې جعفر د حضور انور صَلَّی اللّٰہُ عَلَیْہِ وَسَلَّمَ په خوا کې لمونځ اداء کړو حضور انور صَلَّی اللّٰہُ عَلَیْہِ وَسَلَّمَ او فرمايل الله دی تاله په جنت کې دوه بازوګان درکړی چې پرې الوزې له هغې ورځې نه دده لقب ذو الجناحين شو له هغه نه عبد الله بن جعفر او نورو صحابو روايت کړی دی يو ايا کاله عمر ئې وو په غزوه موته کې په داسې حال کې شهيد شولو چې دهغه جسم مبارک باندې .۹۰. زخمونه وو د تورو او نيزو .

**۱۰ ـ جارود** . دهغه نوم بشر ابن عمرو وو جارود دهغه لقب وو عبدی دی په سنه . ۹ . کې د حضور انور په خدمت کې په وفد عبد القيس کې حاضر شو او له هغه ورسته په مصر کې اوسيدو او د فارس په علاقه کې . په سنه . ۲۱. کې په خلافت فاروقي کې دهغه شهادت واقع شو .

**۱۱ ـ جبلة ابن حارثة** هغه کلبی دی او ديزيد بن حارثه ورور دی له زيد مشرزيد حضور انور ځوی جوړ کړی وو

**۱۲ ـ ابو جهيم** . دده نوم ابو جهيم و بعضو ويلی دی چې عبد الله بن حارث بن صمه دی صحابی دی انصاری دی

**۱۳ ـ ابو جحيفه** . دهغه نوم وهب بن عبد الله دی عامری دی په کوفه کې اوسيدو د نو عمره صحابو نه دی دهغه د بلوغ نه مخکې د حضور انور وفات وشولو په . ۷۴ .ه کې په کوفه کې وفات شو صحابی دی ځکه حضور انور ئې په حالت د هوش او تميز کې ليدلی .

**۱۴ ـ ابو جمعة** . هغه انصاری دی دهغه په نوم کې اختلاف دی چې حبيب ابن سباع دی او که جنيد ابن سباع دی يا بل څه اهل شام کې دهغوی شمار دی صحابی دی .

**۱۵ ـ ابو جعد** . بعضو فرمائيلی دی چې دهغه نوم ابو جعد دی بعض ويلی چې نوم ئې وهب دی .

**۱۶ ـ ابو جندل** . هغه د سهيل بن عمر قرشی عامری ځوئ دی په مکه معظمه کې ئې ايمان راوړی دی پلار ورته په پخو کې کړی اچولې وې هغه په صلح حديبيه کې په هغه کړيو کې ځان حضور انور ته ورسوه بيا دهغه عجيبه واقعات اوشولو په خلافت فاروقيه کې وفات شولو .

**۱۷ ـ ابو جهم** . دهغه نوم عامر بن حذيفه دی عدوی قريشی دی حضور انور صَلَّی اللّٰہُ عَلَیْہِ وَسَلَّمَ د هغه نه جبه طلب کړی وه په خپل کنيت باندې مشهور دی .

**۱۸ ـ ابو جری** . دده نوم جابر ابن سليم دی تميمی دی بصره کې اوسيده ډير کم روايتونه له هغه نه نقل شوی دي .

## صحابياتي

**۱ ـ جويريه ام المؤمنين** : هغه بنت حارث ده . په سنه ه کې په غزوه مريسع کې چې ورته غزوه بنی مصطلق هم ويلی شي ګرفتار ولو سره راغله د حضرت ثابت بن قيس په حصه کې راغله هغه هغې لره مکاتبه کړه حضور صَلَّی اللّٰہُ عَلَیْہِ وَسَلَّمَ هغه د کتابت روپۍ خلاصی کړی هغه ازاده کړه او نکاح ئې ورسره وکړه ځکه هغه ام المؤمنين ده د هغې اولنی نوم بره وو حضور صَلَّی اللّٰہُ عَلَیْہِ وَسَلَّمَ هغه نوم بدل کړو په جويريه سره هغه د . ۶۵ . کالو په عمر کې وفات شوه د هغې ډير فضائيل دی .

**۲ ـ جدامة** . هغه جدامه بن وهب ده اسدیه ده په مکه معظمه کې ئي ایمان راوړی وو حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره یې په بیعت کولو ټول قوم پریښود و د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خدمت کې وه.

## ح :

## صحابه کرام رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ

**۱ ـ حمزه بن عبد المطلب** : دا دعبد المطلب ځوی دی د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تره دی او رضاعی وررور هم ځکه ثویبه حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته هم پی ورکړې او هغه یې ته هم دهغه کنیت ابو عماره دی . لقب ئې اسد الله دی دنبوت په دویم کال ئي ایمان راوړی دهغه په ایمان سره اسلام ته ډیر قوت ملاؤ شوی دی په غزوه بدر کې شریک شوی او په غزوه احد کې شریک شوی وحشی ابن حرب هغه لره شهید کړو . حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه په عمر کې څلور کاله زیات وو په مختلفو زمانو کې هغه او حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته ثویبه پی ورکړې دي له دی وجې رضاعت ثابت شو . حضرت علی عباس او زید بن حارثه رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ له هغه نه احادیث روایت کړی دی

**۲ ـ حمزه بن عمرو** : دا اسلمی دی د اهل حجاز نه دی عمر ئي ۸۰ کاله دی په سنه ۶۱ کې وفات شوی دی

**۳ ـ حذیفه بن یمان** : دده کنیه ابو عبد الله ده . دده د پلار نوم حسیل دی ایمان یې لقب دی او حذیفه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دحضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ راز دار دعثمان دشهادت نه څلویښت ورځې پس په مدائن کې وفات شو هلته یي قبر دی .

**۴ ـ حسن ابن علي** : دهغه کنیت ابو محمد دی . سبط الرسول . ریحانه رسول . سید شباب اهل الجنة . دهغه القاب دي په سنه ۳ هـ . ۱۵ رمضان کې دهغه ولادت وشو او په سنه ۵۰ کې وفات شولو په جنت البقیع کې دفن دی هغه دخپل والد ماجد د وفات نه بعد خلیفه شولو د څلویښتو زرو نه زیاتو کسانو په مرګ باندې د هغه سره بیعت اوکړو لکن هغه د مسلمانانو د خون ریزی د دفع کولو په خاطر دحضرت معاویه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په حق کې د خلافت نه دست بردار شولو دا واقعه په ۱۵ جمادی الاولی سنه ۴۱ هـ کې ده تقریبا شپر میاشتې ئي خلافت اوکړو دهغه وفات د زهرو ورکولو په وجه وشولو په ۲۹ د صفر یا ۴ ربیع الاول د شنبې په شپه وفات شولو په دی باب نور کې اقوال هم شته لکن دا قول د څلورم ربیع الاول قوی قول دی .

**۵ ـ حضرت حسین بن علي** : دهغه کنیت ابو عبد الله دی . سبط الرسول . ریحانه رسول . سید شباب اهل الجنة دهغه القاب دی هغه په سنه . ۴ هـ کې د حضرت فاطمې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا د پاکې خیټې نه پیدا شو هغه د حسن د ولادت نه پنځوس شپې بعد حسین حامله شوله د حضرت حسین شهادت ۱۰ محرم سنه ۶۱ کې د جمعې د ورځ د زوال نه پس په کربلا مقام کې واقع شوی کربلا د عراق د کوفې او دجلې په مابین کې یوه مشهور ځائ دی هغه سنان ابن انس یا شمر ذی الجوشن شهید کړلو . خولی ابن یزید اصبحی دهغه سر له تنی مبارکې نه جدا کړو بیا دی خولی عبید الله بن زیاد د کوفې ګورنر ته اولیږلو او څه اشعار ویلو سره د انعام طلب ګار شو

اوقر رکابي فضة وذهبا . انی قتلتُ الملك المحجبا .

قتلت خیر الناس امًا وابًا . وخیر هم اذ ینسبون نسبًا .

ځما اوبن د سرو او سپينو زرو نه ډک کړئ ،ځکه چې ما يو داسې بادشاه قتل کړی دی چې دچا سره يوځای کې دونکی نه وو. ماداسې سړی قتل کړی دی چې دمور پلار دواړو دطرف نه بهتر دی .اوکله چې خلک نسب بيانوی نو هغه د ټولو نه بهتر دی .د حضرت حسين بن علی سره د هغه دخاندان . ۲۳ . کسان شهيدان شول هغه د شهادت په وخت د . ۵۸ . کالو په عمر وو د هغه نه حضرت ابوهريره . امام زين العابدين . فاطمې . سکې نه بنت حسين احاديث نقل کړی دی د الله شان دی په عين . ۶۷ . سنه کې عين د عاشورا په ورځ عبيد الله بن زياد قتل کړی شو هغه مالک بن اشتر نخعی قتل کړو . دهغه سرئي مختار ته وليږلو هغه عبد الله بن زبير ته هغه امام زين العابدين ته وليږلو .

**۶ ـ حسان بن ثابت** : دهغه کنيت ابو الوليد دی انصاری خدرجي دی هغه د حضور ﷺ خاص شاعرانو د سرتاج دی . ابو عبيده وائي اهل عرب په دی متفق دی چې په شاعرانو کې افضل شاعر حسان دی هغه د سنه . ۴۰ . نه مخکی د حضرت علی المرتضی په خلافت کې وفات شولو . ۱۲۰ . کاله عمر ئي وو شپيته کاله په جاهليت کې او شپيته کاله په اسلام کې .

**۷ـ حکم بن سفيان** : هغه ثقفي وو د سفيان يا د حکم ځوی وو يعنی يا حکم بن سفيان دی يا ابن حکم دی بعض محدثين وائي چې تابعی دی لکن قوی خبره داده چې هغه صحابی دی . ابن عبد البر صحابی منلی دی .

**۸ ـ حکم بن عمرو** : هغه ته غفاری ويلی شي له دی وجې نه چې هغه د بنی غفار د قبيلی نه دی بلکه هغه د غفار بن مليل د ورور د اولاد نه دی په بصره کې اوسيدو او مرو مقام کې وفات شوی دی د بعضو په نزد په بصره کې پنځه کاله اوسيدو او هم هلته وفات شوی لکن په مقام مرو کې د حضرت بريده اسلمی سره خوا کې دفن شوی دی .

**۹ ـ حنظله ابن الربيع** : هغه تميمی دی هغه ته کاتب ويل کې دو ځکه هغه د وحی کاتب وو د حضور ﷺ نه وروسته هغه قرقيسيا نومی ځای ته لاړو هلته اوسيدو او د امير معاويه په زمانه کې وفات شولو دهغه نه ابوعثمان . يزيد ابن شخير احاديث نقل کړی دی .

**۱۰ ـ حاطب ابن ابی بلتعة** : دهغه د الد نوم عمرو دی يا راشد دی ابو بلتعه دهغه کنيت دی په بدر او خندق وغير غزاګانو کې شريک شوی . ۶۵ . کاله عمر ئي وو او په سنه . ۳۰ .هـ کې وفات شوی .

**۱۱ ـ حويصة**: هغه د سعود ابن کعب ځوی دی انصاري حارثی دی د محيصه مشر ورور دی مګر هغه د کشر ورور محيصه نه وروستو ايمان راوړی په غزوه احد ، خندق او نورو ټولو غزاګانو کې شريک شوی

**۱۲ ـ حبيش ابن خالد** : هغه خزاعی دی د فتح مکه په ورځ د حضرت خالد سره وو ا وشهيد شولو د هغه زوئ هشام له هغه نه روايات نقل کړې دي .

**۱۳ ـ جبيب ابن مسلمة**: هغه قريشي فهري دی هغه ته حبيب الروم ويلی شي ځکه هغه په روم باندې ډير جهادونه کړې دي هغه مقبول الدعاء وو هغه په ملک شام کې په سنه . ۴۲ . هـ کې وفات شولو .

**۱۴ ـ حکيم ابن هزام**: دهغه کنيت ابوخالد دی قريشی اسدی دی د حضرت خديجة الکبری وراره دی په کعبه شريفه کې يې ولادت شوی د واقعه فيل نه ۱۳ کاله مخکی پيدا شوی په زمانه د جاهليت او اسلام کې د

قریشو سردار و د فتح مکه په کال ئي ایمان راوړو او په سنه ۵۴ . کې وفات شولو په مدینه منوره کې په جاهلیت کې شپیته . کاله تیر کړي دي او په اسلام کې ئي هم شپیته کاله تیر کړي دي اول د مؤلفة القلوب نه وو بیا پوخ مسلمان شو د اسلام نه مخکې هغه سل غلامان آزاد کړي او سل اوښان ئي د الله په لاره کې خیرات کړي دي

**۱۵ ـ حکیم ابن معاویه :** هغه نمیری دی امام بخاری فرمائي دهغه په صحابیت کې شک دی د هغه وروراو قتاده د هغه نه روایات نقل کړی دی .

**۱۶ ـ حصین بن وحوح :** هغه انصاری صحابی دی دهغه احادیث په مدینه منوره کې مشهور دی هغه په ډیر آزیت نه ډکې طریقې سره قتل کړی شوی .

**۱۷ ـ حُبشی ابن جُنادة :** هغه رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په حجة الوداع کې کتلی وو هغه صحابی دی او دهغه شمار د اهل کوفه نه دی خلکو دهغه نه احادیث نقل کړی دی .

**۱۸ ـ حجاج ابن عمرو :** هغه انصاري مازنی دی د اهل مدینو نه د هغوی شمار دی په اهل حجاز کې دهغوی احادیث مشهور دی .

**۱۹ ـ حارثة ابن سراقة :** هغه انصاري دی د هغه د مور نوم رُبَيِّع دی دا د انس بن مالک ترور ده ، هغه په بدر کې شریک او شهید شوی دی هغه د انصارو نه اولنی شهید دی چې په عزوه بدر کې شهید شولو .

**۲۰ ـ حارثة ابن وهب :** هغه خزاعي دی د عبید الله بن عمر ابن خطاب اخیافی ورور دی . دهغه شمار په اهل کوفه کې دی .

**۲۱ ـ حارثة ابن نعمان :** هغه د فضلاء صحابو نه دی . په غزوه بدر . احد او ټولو غزاګانو کې شریک شوی دی . دهغه دا واقعه ده چې یو ځل رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په هغه باندې تیریده د هغه صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره یو بل کس هم موجود وو سلام ئي پرې واچولو او هغه جواب ورکړو حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اوفرمایل ایا تا زما سره دا بل کس ولیدو . ما وویل هو . هغه اوفرمایل دا جبریل وو هغه ستا سلام ته جواب ووایه په آخر کې هغه نابینا شولو هغه مشهور صحابی دی .

**۲۲ ـ حارث ابن الحارث :** هغه اشعری دی د اهل شامو نه هغه شمارلی شي .

**۲۳ ـ الحارث ابن هشام :** هغه مخزوی دی . د ابو جهل ابن هشام ورور دی ، په حجاز کې ډیر شریف شمارل کې ده د فتح مکه په ورځ ئي ایمان راوړو هغه ته ام هانی بنت ابی طالب د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه آمان غوښتی وو حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ آمان روکړو او هغه سل اوښان ورته عطا کړل هغه د مکی معظمی نه شام ته لاړو د جهاد په شوق کې هلته اوسید و په جنګ یرموک کې په خلافت فاروقی کې په سنه ۱۵ کې شهید شولو

**۲۴ ـ الحارث ابن کلدة :** هغه ثقفی دی طبیب وو دی د حضرت ابوبکر الصدیق آزاد کرده غلام دی حقه خبره داده چې هغه صحابی دی .

**۲۵ ـ ابو حبة :** دهغه نوم ثابت بن نعمان دی انصاری بدری دی دهغه په نوم کې اختلاف دی په بدر کې شریک

شوی او په احد کې شهید شو .

**۲۶-ابو حمید** : دهغه نوم عبد الرحمن بن سعد دی انصاري خزرجي ساعدي دی . د هغه نه يو جماعت احاديث روايت کړي . دهغه وفات د امير معاويه په آخر دور کې وشو .

**۲۷-ابو حذيفه** : دهغه نوم مهشم يا هشيم يا هاشم دی د عقتبه بن ربيعه زوئ دی . عزوه بدر، احد او په ټولو غزواتو کې شريک شوی دهغه عمر . ۵۳ . کاله وو په غزوه يمامه کې شهيد شولو په دور خلافت صديقی کې .

**۲۸-ابو حنظلية** : دهغه نوم سهل بن عبد الله حنظليه دی حنظليه د هغه د نيا نوم دی په هغه سره مشهور وو .

## صحابياتي

**۱-حفصة بنت عمر** : هغه ام المؤمنين ده . د حضرت عمر لور ده دهغی د مور نوم زينب بنت مظعون دی د حضور ﷺ نه مخکی خنيس ابن حذافه سهمی په نکاح کې وه دهغه سره ئي هجرت اوکړو . د غزوه بدر نه وروسته خنيس وفات شولو . حضرت عمر حضرت ابوبکر الصديق ته عرض اوکړو چې د حفصې سره نکاح اوکړه، حضرت عثمان هم دا وويل ددې نه وروسته حضور انور ﷺ پيغام ورکړو چنانچې په سنه ۳۰. هـ کې د حضور ﷺ په نکاح کې راغله يو ځل حضور انور ﷺ هغی ته يو طلاق ورکړی وو بيا يې ورته رجوع کړی ده ځکه فرمان الهی راغلو چې حفصه ستا بی بی ده او په جنت کې به هم ستا بی بی وی، هغه ډيره مونځګذاره او قائم الليل وه دهغی نه يو جماعت دصحابو او تابعينو روايات نقل کړې دي

**۲-** حليمة بنت ابی ذويب : هغه دحضور انور ﷺ د پيو ورکولو والده ده د حضرت ثويبه نه وروستو هغی نبي عليه السلام ته تر آخره پورې پی . ورکول په دی وخت کې د هغی مشره لور شيما چې حضور ﷺ دهغی په غيږ کې به خوړل کول . دوه کاله دوه مياشتی يا پنځه کاله وروسته حليمې بی بی حضور ﷺ خپلې مور ته واپس کړو عبد الله بن جعفر د هغې نه روايت کړی ابواب البر والصلة کې دهغې تذکره ده .

**۳-** ام حبيبه : دهغی نوم رمله دی د ابوسفيان ابن صخر ابن حرب لور ده دمور نوم ئي صفيه بنت عاص دی د حضرت عثمان د ترور لور ده په دی کې اختلاف دی چې د هغی نکاح د حضور ﷺ سره کله او چرته شوی ده قوی روايت دادی چې په سنه . ۶ . هـ کې نجاشی اصحمه شاه حبشه په حبشه کې د هغی نکاح وکړه او څلور سوه دينار يا څلور زره درهم ئي له خپل طرف نه ادا کړل حضور ﷺ شرحبيل ابن حسنه وليږو چې هغه مدينې منورې ته راولي بعضو ويلي دي چې مدينې منورې ته راتلو نه پس نکاح شوې ده چې عثمان غنی کړې ده په سنه . ۴۴ . هـ کې په مدينه منوره کې وفات شوه له هغی نه ډيرو حضراتو ډير روايات نقل کړی دی

**۴-ام الحصين** : دا د اسحاق لور ده احمسی ده په حجة الوداع کې له حضور ﷺ سره شريکه شوه ددې زوئ حصين د هغی نه روايت کړی .

**۵-ام حرام** : دا د ملحان بن خالد لور ده انصاريه نجاريه ده د جناب ام سليم خور ده . د حضور ﷺ په لاس ئي ايمان راوړو او بيعت ئي وکړو د عباده بن صامت زوجه حضور ﷺ به د هغی په کور کې قيلوله

کوله . ځکه دا د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رضاعي خاله وه . له خپل خاوند سره غازیه مجاهده کې دو سره هلته وفات شوله د هغې قبر په مقام قرنس کې دی د هغې نه د هغې خوریځ حضرت انس او دهغې خاوند عباده ابن صامت روایات کړی دی دهغې وفات په خلافت عثمانیه کې شوی دی

**۶ ـ حمنة** : هغه د جحش لور ده او د بي بي زینب چې په ازواج مطهراتو کې ده خور ده . دبني اسد دقبیلې نه ده د مصعب بن عمیر زوجه ده چې په غزوه احد کې شهیده شوې وه بیا دا د عبید الله په نکاح کې راغله .

## خ :

## صحابه کرام رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ

**۱ ـ** خالد بن ولید رَضِيَ اللهُ عَنْهُ : دا خالد دولید قرشي ځوی دی چې مخزومي دی دده والده لبابه صغری ده چې دام المؤمنین بي بي میمونه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا خور ده . دا سلام دزماني نه مخې دخالد شمیر اشراف قریش کې کیدلو . حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ورته دسیف الله ( دالله توره ) خطاب عطاء کړی و . سنه ۲۱ هـ کې وفات شو . عمربن خطاب ته ئي ځه وصیت وکړو . ده نه دده خاله زاد (دترور ځوئي ) ابن عباس او علقمه او جهیربن نفیر د حدیث روایت کوی . دشام په مشهور ښار حمص کې دهغه مزار دی دمشق کې یو سرکې د خالدبن ولید په نوم سره دی عظیم الشان شخصیت دی .

**۲ ـ** خالدبن هوزه : دا دهوزه عامری ځوئي دا خپله او دده ورور حرمله دنبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خدمت کې حاضر شو . دا دواړه د مؤلفة القلوب نه وو . دا خالدبن هوزه هغه دی ، چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ورنه یوه ونیزه (باندی) خرید کړې وه . او هغوی دپاره ئي عهد نامه لیکلی وه .

**۳ ـ** خلادبن سائب : دا خلاد دسائب بن الخلاد ځوئي دی خزرجی دی دا دخپل پلار او زید بن خالد نه روایت کوی .

**۴ ـ** خباب بن الآرت : دده کنیت ابوعبید الله تمیمي دی زمانه د جاهلیت کې قید کړی شوی وو دی نه پس یوې خزاعیه ښځې آخستلو سره آزاد کړی وو دحضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دارارقم کې داخلیدو نه مخې ده اسلام راوړی وو او دا حباب دهغې صحابه حضارتو نه دی چه دا سلام راوړلو په وجه الله تعالی دپاره ډیر تکلیفونه ورته رسول شوې دي . خوده پری صبر او کړو . کوفه کې مقیم شوی وو او هلته سنه ۳۷ هـ کې وفات شو . عمرئي ۷۳ کاله وو .

**۵ ـ** خارجه بن حذافه : دا دحذافه قریشي عدوی ځوی دی . دا دقریشو دماهر سورو نه یو سور (سوار) دی دده متعلق دا مشهوره ده چې دا دزرو سورو برابر دی دده شمیر مصریانو کې کیږی . په ده باندې یو ځاې د عمربن العاص خیال وکړو او مړیې کړو . او یو خارجي سړی عمربن عاص ګڼرلو سره قتل کړی وو . او دا خارجي هغې دریو کې یو سړی دی ، چې هغوی دحضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او حضرت معاویه او عمروبن عاص قتل باندی اتفاق کړی وو . اودوی ي هر یو هغو دریو اصحابو ي دهر یو دقتل کوشش ي وو . نو دالله تعالی فیصله دحضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ باره کې پوره شوه . اونور دوه اصحاب بچ شول او دخارجه قتل سنه ۴۰ هـ کې واقع شو .

**۶ ـ** خزیمه بن ثابت : دا خزیمه بن ثابت دی دده کنیت ابوعماره دی دا انصاری اوسی دی ذو الشها دتین لقب سره معروف دی د بدر جنګ او مابعد غزواتو ي حاضر وو . دصفین جنګ ي دحضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ملګری وو . هر کله

چې عماربن ياسر شهيد شو . نو ده توره را وښكله او مقابله ئې اوكړه تر دې چې شهيد شو لو ده نه دده ځوى عبدالله او عماره او جابر بن عبدالله روايات كړى دى .

۷ ـ خزيمه بن جزء : دا خزيمه د جزء ځوئي دى دده كنيت ابو عبدالله سلمي دى . ده نه دده ورور حبان بن جزء روايت كوى د عربو يكتا خلقو ي شميرلى شى .

۸ ـ خريم بن ابو خرم : دا خريم دا خرم ځوى دى دشداد بن عمرو بن فاتک اسدى نمسى دى ليكن دا خپل نيكه (دادا) طرف ته منسوب كيږى او ده ته خزيم بن فاتک وئيلى شى . دى شاميانو ي شميرلى شى . او د بعضو په نزد كوفيانو ي ده نه يو لوئي جماعت روايت كړى دى .

۹ ـ خبيب بن عدى : دعدى انصاري اوسي ځوئى دى غزوه بدر ي حاضر شو او غزوه رجيع ي سنه ۳ هـ كې قيد كړى شو . بيا مكې ته راوستى شو . او دحارث ابن عامر آولاد وا خستلو او دى خبيب دبدر په ورځ حارث دكفر حالت ي قتل كړى وو . اوس دحارث ځامنو دى اخستي وو چې دخپل پلار بدله ي ئي قتل كړى دى قيدى جوړيدو سره هغوى سره وو . بيا هغو خلقو مقام تنعيم كې په سولئ وخيژولو . او دا اسلام كې اولنى سړى دى چې دالله تعالى لار كې سولئ وركړى شوى ده . صحيح بخارى كې روايت دى ، چې حضرت خبيب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دحارث دلورنه چاړه او غوښتله ، چې د نوم نه لاندى ويښته پرى صاف كړى . بيا حضرت خبيب دهغى وړوكى ځوى اوچتولو سره په خپل ورون كينولو . هركله چې چاړه دهغه لاس ي وه ، دبچى مور د هغې كار وائى نه بالكل بى خبره وه . مور چې دا اوليدل ، نو سخته اويريدله هغه ويره خبيب دهغى دمخ نه محسوس كړه نو ورته ئي او وئيل ته دې نه ويريږې چې زه به دا معصوم بچى قتل كړم هيڅ كله زه داسې نشم كولى . دبچى مور او وئيل ، ما خپل ژوند ي د خبيب نه بهتر قيدې هيڅ كله نه دى ليدلى . په خدائې قسم چې ما خبيب دقيد زمانه ي يوه ورځ اوليدلو . چې دهغه لاس ي دتازه انګورو غنچک وو چې هغه ئې خوړلو . هركله چې هغه داوسپني زنځيرونو كې تړلى وو او مكه ي څه ميوه هم نه وه او ده وئيل . دا دالله تعالى عطاكړى رزق دى چې ماته راكړى شوى دى بيا چې خبيب ئى حرم نه حل طرف ته قتل دپاره بوتلو . نو حضرت خبيب اوفرمائيل ماته دومره مهلت راكړئ ، چې زه دوه ركعاته مونځ ادا كړم خلقو موقع وركړه او خبيب دوه ركعاته مونځ ادا كړو او وې فرمائيل قسم په خدائې كه كفارو دا خيال نه كولو ، چې دى دخوف په وجه ځان بچ كولو دپاره مونځ كوي نو ما به نور هم مونځ كړى وى بيا حضرت خبيب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دا دعا او غوښتله اى الله ! دوى يو يو شميرلو سره قتل كړى ، چې دوى ي يو هم باقى بچ نشى .

| | |
|---|---|
| فلست ابالى حين اقتل مسلما | على اى شق كان في الله مضجعي |
| وذلک في ذات الاله وان يشأ | يبارک على اوصال شلو ممزع |

هركله چې دا اسلام په حالت كې زه په سولئ كولى شم . نو ماته ددې هيڅ پروانشته ، چې زه دالله تعالى لاري يم كه هغه غواړى نو ځما د اعضاؤ جوړ جوړ به بركت نه ډک كړى . خبيب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هغه سړى دى ، چې دالله لاري زنځيرونو كې ګير سرور كولو وخت كې يې ددوه ركعاته مونځ كولو طريقه ئي قائمه كړه .

۱۰ ـ خنيس بن حذافه : دا خنيس بن حذافه سهمى قريشي دى . چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه مخې د بې بې حفصې

بنت عمر خاوند وو غزوه بدر کې یې آ غزوه احد کې حاضر شو . هغې کې ورته یو زخم اولګیدلو . او دهغې په وجه مدینې ته رسید و سره ساه یې ورکړله . دهغه د وفات نه بعد حفصې رضي الله عنها د حضور صلی الله علیه وسلم سره نکاح وکړه

**۱۱ـ** ابو خراش : دده نوم حداد دی اسلمی دی صحابی دی .

**۱۲ـ** ابو خلاد : دده نوم او دنسب پته نشته صرف دومره معلومه ده چې یو صحابي دی دهغه نه یو حدیث نقل دی

## صحابیاتې

**۱ـ** خدیجه بنت خویلد رضی الله عنها : دا خدیجه دخویلد ابن اسد لورده . قریشیه ده امهات المؤمنین نه ده . دټولو نه مخې دابوهاله بن زراره ښځه وه . بیا ورسره عتیق بن عائذ نکاح اوکړله هغه نه پس ئې حضور صلی الله علیه وسلم سره نکاح اوشوله . هغه وخت ددې عمر څه دپاسه څلویښت کاله وو . او دحضور صلی الله علیه وسلم الله عمر پنځویشت کاله وو . دی نه مخې حضور صلی الله علیه وسلم چا ښځی سره نکاح نه وه کړی . اونه دحضرت خدیجه تر وفات پوری پیغمبر صلی الله علیه وسلم د بلې ښځې سره نکاح نه وه کړې . دا خدیجه هغه بی بی ده چې دټولو نه مخې ئې په حضور صلی الله علیه وسلم ایمان راوړو . هغه وخت نه سړوي چا ایمان راوړی وو . اونه ښځو ي دحضور صلی الله علیه وسلم تمام آولاد سوا دابراهیم نه چې هغه دماریه قبطیه نه پیدادی دبی بی خدیجې رضي الله عنها نه دی . د هجرت نه پنځه (۵) کاله مخې مکه ي وفات شوه . بعضو څلور کاله قبل وئیلی دی . اوبعضو ولی دي چې دری کاله قبل هغه وخت دنبوت لس کاله تیر شوی و عمر ئې ۶۵ کاله وو . مقام جیحون کې دفن شوی یعنې صنت المعلی کې

**۲ـ** خوله بنت حکیم : دا خوله بنت حکیم ده دعثمان مظعون ښځه ده صحابیه ده ډیره صالحه او فاضله بی بی وه یو جماعت ترې روایات کړې دي .

**۳ـ** خوله بنت ثامر : دا خوله بنت ثامر دقبیله انصار نه ده ددې حدیث اهل مدیه ي زیات دی دی نه نعمان ابن ابی العیاش زرقی روایت کړی دی اوبعضو وئیلی دی چې دا خوله دقیس بن ملک بن النجار لور ده او ثامر دقیس لقب دی او صحیح خبره داده چې دواړه جدا جدا ښځې دی .

**۴ـ** خوله بنت قیس : دا خوله دقیس لور ده دقبیله جهینه او سیدونکې ده . ددې حدیث اهل مدینو کې مروج دی دی نه نعمان بن خربوذ دحدیث روایت کړی دی .

**۵ـ** خنساء بنت خذام : دا خنساء دخذام بن خالد لور ده . انصاریه اسدیه ده . ددې نه حضرت عائشې او ابوهریرة رضي الله عنهما دا رنګ صحابو احادیث نقل کړي دي .

**۶ـ** ام خالد بن سعید بن العاص الامویه : دا ام خالد امویه ده دخالد بن سعید بن عاص لور ده خپل کنیت سره مشهوره ده ملک حبشه ي پیدا شوه . هر کله چې مدینې ته راوستی شوه ، نو عمر ئې کم وو بیا زبیر بن العوام ورسره نکاح اوکړله . دی نه څو خلقو روایت کړی دی

## د : صحابه رضي الله عنهم

**۱ـ** دحیة الکلبی : دا دحیة دخلفیه حوی دی بلند مرتبې صحابو رضي الله عنهم نه دی حضور صلی الله علیه وسلم سنه ۶ هـ کې

قیصر بادشاه روم ته د خط ورکولو سره ولیږلو قیصر په حضور ﷺ ایمان راوړل او غوښتل خو دهغه درباریانو پرې ایمان رانه وړلو . نو هغه هم مسلمان نه شولو . دا دحیه هغه صحابی دی چې حضرت جبرائیل آمین به ده صورت ي حضور ﷺ باندې وحی راوړله . دا دشام ملک ته تلی وو او امیر معاویه زمانې پورې هلته وو دمتعددو خلکو ددنه روایت اوکړو .

**۲ ـ ابودرداء :** دده نوم عویمر دا دی دعامر انصاری خزرجی ځوئي دی خپل کنیت سره مشهور دی او درداء لورده . د خپل خاندان سره یې اسلام راوړلو کې دا لوئي پوهه عالم وو شام کې ئي قیام وکړو . او سنه ۳۲ھ کې دمشق کې وفات شو .

## صحابیاتي

**ام الدرداء :** دام الدرداء نوم خیره دی . دا دابوحدرد لورده دقبیله اسلم ده دا دحضرت ابودرداء ښځه ده لویه عالمه زاهده فاضله صحابیه ده .په عباداتو کې مشهوره وه حضرت ابودرداء نه دوه کاله مخکې وفات شوې وه . دشام ملک ي دحضرت عثمان رضی الله عنه دخلافت دوري وفات شوه .

## ذ :

## صحابه کرام رضی الله عنهم

**۱ ـ ابوذر غفاری :** دابوذر نوم جندب دی دده پلار جنازه دی داد بلند مرتبې ، مکه کې شروع اسلام راوړونکو نه دی وئیلی شی چې دا ایمان راوړونکو ي پنځم ۵ صحابی دی بیا خپل قوم ته واپس تلی وو . یوې مودې پورې هغوی سره وو تردې چې دغزوه خندق نه پس دحضور ﷺ خدمت کې مدینه منوره کې حاضر شو .بیا مقام ربذه کې ئي قیام وکړو . اوربذه کي سنه ۳۲ھ کې دعثمان رضی الله عنه دخلافت زمانه کي وفات شو دحضور ﷺ دبعثت نه مخکي به ئي عبادت کولو ده نه ډیرو صحابو او تابعینو روایات کړی دی .

**۲ ـ ذومخبر :** دا دنجاشی وراره دی دنبی کریم ﷺ خادم دی جبیر بن نفیر و غیره ده نه روایت کړی دی شامیانو ي شمیرلی شی . او دده حدیثونه هغوی نه حاصلیږی .

**۳ ـ ذوالیدین :** دده نوم خرباق بن ساریه دی لقب یې ذو الیدین دی حجازي دی کله چې پیغمبر ﷺ یو ځل مانځه کې سهوه شو نو ده ورته خبرداری ورکړو د بنو سلیم سره یې تعلق دی .

## ر :

## صحابه کرام رضی الله عنهم

**۱ ـ رافع بن خدیج :** دده کنیت ابوعبدالله دی جنګ احد ي په تیر اولګیدلو ، چې په هغې سره حضور ﷺ وفرمائیل زه به د قیامت په ورځ ستا ددې تیر ګواه یم ،دهغه دا زخم دعبدالملک بن مروان زمانه کې رااوچت شو .سنه ۷۳ھ کې مدینه طیبه کې وفات شو .عمر ئي ۸۶ کاله وو یو لوي جماعت تری روایت کړی دی .

**۱-رافع بن عمرو** : دا رافع بن عمرو غفاري دی . دده شمير بصريانو ي كيږي ده نه عبدالله بن الصامت روايت
ړی دی.

**۲-رافع بن مكيث** : دا رافع بن مكيث دقبيله جهينه اوسيدونكی دی د حديبي دصلح په موقع حاضر وو . ډيرو
لكو روايت كړی دی

**۳-رفاعة بن رافع** : دده كنيت ابو معاذ دی دی زرقي انصاري دی غزوه بدر ، غزوه احد بلكه تمامو غزواتو ي
ضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره حاضر وو اودحضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ملګرتيا چې جنګ جمل اوجنګ صفين كې هم
وجود وو دحضرت معاويه دورامارت كې وفات شو دده دواړه ځامنو عبيد او معاذ اودده وراره يحيى بن خلاد ده
روايت كوی.

**۵-رفاعه بن سموال** : دسموال قرظي ځوئي دی . داهغه دی چې خپلې ښځې له ئي دری طلاقه وركړی وو بيا
بدالرحمن بن زبير هغې سره نكاح كړې وه .

**۶-رفاعه بن عبد المنذر** : دارفاعه بن عبد المنذر انصارو نه دی كنيت ئي ابولبابه دی دده ذكر به حرف لام كې
اشي.

**۷-رويفع بن ثابت** : دارويفع دثابت بن سكن ځوئ دی انصاري دی مصريانو ي شميرلی شي امير معاويه
سنه ۴۶ هـ كې طرابلس مغرب باندی امير مقرر كړی وو برقه ي وفات شو اوبعضو وئيلي دی ، چې شام كې وفات
شو ده نه حنش بن عبدالله اونورحضرات روايت كوی خيال دې وي چې افريقه امير معاويه په سنه ۳۷ هـ كې فتحه
كړه.

**۸-ركانة بن عبد يزيد** : داركانه دعبد يزيد بن هاشم بن عبد المطلب قرشي ځوی دی ډير طاقتور وو
دحضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ زماني پوری ژوندی وو اوبعضو وئيلي دی . سنه ۴۲ هـ كې وفات شو . ده نه يو جماعت
روايت كړی دی .

**۹-رباح بن الربيع** : دارباح بن الربيع اسيدی دی دده احاديث بصريانو ي مشهور دي.

**۱۰-ربيعه بن كعب** : داربيعه دكعب ځوی دی كنيت ئي ابوفراس اسلمي دی اهل مدينو كې شميرلی شي .
او دا د اهل صفه نه وو اووئيلي شي چې دی دحضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خادم پاتې شوی دی او دقديمو اصحابو نه دی
حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره به سفر او حضر ي وو . سنه ۶۳ هـ كې وفات شو .

**۱۱-ربيعه بن الحارث** : داربيعه دحارث بن عبد المطلب بن هاشم ځوئي دی چې دحضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تره
(چچا) دی ده ته شرف صحبت دولت حاصل دی دحضرت عمر خلافت كې سنه ۲۳ هـ كې وفات شو.
داهغه دی ، چې دده باره ي حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دمكې دفتحې په ورځ فرمائيلي وو .
وړومبنی خون چې زه ئي معاف كوم ، دربيعه ابن الحارث خون دی . اوځكه ئي وفرمايل چې دجاهليت زمانه ي
دربيعه يو ځوی چې دهغه نوم آدم وو ، قتل كړی شوی وو نو حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اسلام ي دهغه مطالبه پريښوده .

**۱۲-ربيعه بن عمر** : دا دشام دعلاقې جرش سره تعلق لرې علامه واقدي وايي چې دا په وجه راهط کې شهید شوی وو.

**۱۳-ابورافع اسلم** : دده نوم اسلم دی دنبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ آزاد کرده غلام دی دده دنوم نه دده کنیت زیات مشهور دی دی قبطی وو مخې دعباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ غلام وو هغه حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته بطور هدیه ورکړی وو بیا چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته دحضرت عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د اسلام بشارت ورکړی شو نو حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دی خوشحالی کې آزاد کړو. دده اسلام د غزوه بدر نه مخکې وو دحضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه څوورځې مخې وفات شولو.

**۱۴-ابورمثه** : دا ابورمثه درفاعه بن یثربی ځوی دی تمیمی دی القیس بن زید بن مناة بن تمیم داولاد نه دی دده نوم کې ډیر اختلاف دی بعضو هغه نوم بیان کړی دی چې مونږ پورته ذکر کړی دی او بعضو عماره بن یثربی وئیلی دی. اوبعضو دویم نوم ذکر کړی دی. دحضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خدمت کې خپل پلار سره حاضر شو. کوفیانو کې شمیرلی شي.

**۱۵-الورزين** : دا ابورزین دی دده نوم لقیط دی دعامر بن صبره ځوئي دی دده ذکر به حرف لام ي راشي.

**۱۶-ابوريحانه** : دا ابوریحانه دشمعون بن یزید ځوی وو بنو قریظو نه انصاري دی یعنی دانصارو حلیف دا حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خادم وو دده لور ریحانه ده، چې لویه فاضله، عابده، اودنیا نه کناره کشه وه. په آخر کې په شام کې مقیم شوې وه.

## صحابياتي

**۱-ربيع بنت معوذ** : دا ربیع دمعوذ لور ده صحابیه ده انصارو نه ده لوئي قدر اوعظمت واله ده ددې حدیث مدینې او بصره والو ي رائج او مشهور دی

**۲-ربيع بنت النضر** : دا ربیع بنت نضر دحضرت انس بن مالک (ترور، دپلار خور) ده. او دحارثه بن سراقه والده مور ده او صحیح بخاری دی، چې دحضرت انس بن مالک دربیع بنت نضر والده (مور) ده.

**۳-رميصاء** : رمیصاء نوم دی دهغې کنیت ام سلیم او ام سلیم د انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مور ده ددې ذکر به د سین د تختې لاندې راشي.

## ز:

## صحابه كرام رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ

**۱-زيد بن ثابت** : دا زید بن ثابت انصاری دحضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ کاتب دی. حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ چې مدینې ته تشریف راوړی وو. نو دده عمر یوولس کاله وو دده شمیر داسې جلیل القدر فقهاء صحابو رَضِيَ اللهُ عَنْهُ کې دی، چې په هغوی دفرائضو مدار دی د صحابو دهغه جماعت امیر دی چې کومو قرآن کریم جمع کړی وو، دابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په دور خلافت کې

منوره ي سنه ۴۵ ه کې وفات شو . او عمر ئي ۵۰ پنځوس کاله وو .

**۲-زید بن ارقم** : دازید بن ارقم دی کنیت ئي ابوعمرو دی . انصاری خزرجی دی کوفیینو کې شمیرلی شی کوفه کې سکونت اختیار کړو . او هلته سنه ۶۶ ه کې وفات شو . دده نسب دارنګه دی زید بن ارقم بن زید بن قیس بن نعمان دده په ذریعه د عبد الله بن ابی منافقت ښکاره شو ، دده په تصدیق کې سورة المنافقون نازل شو ، د مختار بن عبد الملک بن مروان په زمانه کې وفات شو .

**۳-زید بن خالد** : دازید بن خالد دقبیله جهینه نه دی دی کوفي ته راغلی وو او هلته سنه ۷۸ ه کې وفات شو عمر ئي ۸۵ کاله وو .

**۴-زیدبن حارثه** : دازید بن حارثه دی دده کنیت او ابن اسامه دی دده والده سعدی بنت ثعلبه ده ، چې دبنی معن نه ده . زید بن حارثه دهغه مور دخپل قوم سره یو ځائي کولو دپاره راوستلو . نودبنی معن بن ابي الجرعه یو لښکر دجاهلیت زمانه کي پری لوټ مار اوکړلو . بیا هغه لښکر په هغې کورونو تیر شو ، چې زید بن حارثه یې اوتښتولو . دهغه عمر هغه وخت اته کاله ښودلی شی . دا نوعمر هلک وو . بازار عکازته ئي بوتلو . اوخرڅولو دپاره ئي پیش کړو . نوحکیم بن حزام بن خویلد خپلي ترور (پهوپهی) خدیجه بنت خویلد دپاره دڅلور سوره (۴۰۰) درهمو عوض کي واخیستو . بیاچې حضور صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغی سره نکاح وکړه . نوبی بی خدیجې رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا د حضور صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خدمت ته ورکړو ددې تمامې واقعې پته دزید بن حارثه خاندان ته اولګیده . نودهغه پلار حارثه اوتره کعب ، حضور صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته راغلل اوفدیې ورکولو سره یې ځان سره بوتلل غوښتل . حضور صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زید بن حارثه ته کلی اختیار ورکړلو . که خپل کورته تلل غواړې اوکه غواړې نوماسره دې اوسي . زیدبن حارثه حضور صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته خپل کوروالو باندی ترجیح ورکړله . اوپلار اوتره (چچا) سره لانړلو . ځکه چې دحضور صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ احسانات اواخلاق کریمانه دهغه زړه کې کور کړی وو دی واقعې نه پس حضور صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغه مقام حجر ته بوتلو . اوحاضرینو ته خطاب کولو سره ئي اوفرمائیل . خلقو ! ګواه اوسئ مازید خپل ځوئي جوړ کړی دی دا ځما وارث دی اوزه دده وارث یم دی نه پس هغه ته زیدبن محمد وئیلی شو . تردی چې دالله تعالی شریعت راغی اودا آیت نازل شولو چې ﴿ادْعُوهُمْ لِآبَائِهِمْ﴾ هلکان دهغوی والدینو طرف ته منسوب کولو سره بلئ . داخبره دالله په نزد ډیره دانصاف اوراستئ ده . نوبیا هغه ته زید بن حارثه وئیلی شو . دازید بن حارثه سړو ي دټولو نه مخي اسلام راوړونکو ي دی دیو قول په اعتبار سره حضور صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ده نه لس کاله مشر دی اودویم قول مطابق شل کاله حضور صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دده نکاح ام ایمن خپلې آزاد کړده وینزې سره اوکړله . هغی نه اسامه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ هلک پیداشو ددې نه پس زینب بنت جحش سره دده نکاح اوشوه . اوزید بن حارثه ته به محبوب رسول خدا وئیلی شو . اوالله تعالی دهیڅ صحابی نوم قرآن پاک کي سوا دده نه ، نه دی اخستی داهغه آیت دی : ﴿فلما قضی زید منها وطرا زوجنکها﴾ ده نه دده ځوئي اسامه اونورو خلقو روایت کړی دی غزوه موته ي هرکله چې دی دلښکر امیر وو جمادی الاول سنه (۸) ي شهید کړی شو . هرکله چې عمر ئي ۵۵ کاله وو .

**۵-زید بن الخطاب** : دازید بن خطاب عدوی قریشی دحضرت عمر بن خطاب وروردی دا دحضرت عمر رضي الله عنه نه عمر يې لوئي وو اولینو مهاجرینو کښې دی اودحضرت عمر رضي الله عنه نه ئي مخې ایمان راوړی دی جنګ بدراوهغې نه پس تمام غزواتو ي حاضروو . جنګ یمامه ي شهید شولو چې خلافت حضرت ابوبکر رضي الله عنه کې.

**۶-زیدبن سهل** : دازید دسهل ځوئي دی خپل کنیت ابو طلحه سره مشهوردی دده ذکر به حرف طاء ي راشی.

**۷-زبیر بن العوام** رضي الله عنه: دده کنیت ابوعبد الله قریشی دی دده مور صفیه دعبدالمطلب لور اودحضور صلی الله علیه وسلم ترور ده دده او دده مور شروع ي اسلام راوړی وو هرکله چې دده عمر شپاړس (۱۶) کاله وو دده تره دده تره ته لوګی وکړو دې دپاره چې اسلام پرېږدي خوده داسی اونه کړل. اوټولو غزاګانو ي حضور صلی الله علیه وسلم سره موجود وو . اودحضور صلی الله علیه وسلم ملګرتیا کي جنګ احد کي ثابت قدم پاتې و اوعشره مبشره نه یودا هم دی. مقام سفوان چې دبصری سرزمین کې واقعی دی عمروبن جرموز سنه ۳۶ھ کې شهید کړو . دده عمر ۶۴ کاله وو اول وادی سباع ي دفن کړی شو . بیا بصری ته منتقل کړی شو اوهلته دده قبر مشهور دی.

**۸-زیادبن لبید** رضي الله عنه: دازیاد دلبید ځوئی دی کنیت ئي ابوعبدالله دی انصاری زرقی دی تمامو غزاګانو کې حضور صلی الله علیه وسلم سره ملګری وو دحضرت موت ګورنر یې هم جوړ کړی وو دحضرت معاویه رضي الله عنه زمانه کې وفات شو .

**۹-زیادبن الحارث** رضي الله عنه: دازیاد دحارث صدائی ځوی دی دحضور صلی الله علیه وسلم په لاس مبارک ئي بیعت اوکړو اومؤذن هم ورسره پاتی شوی وو . بصریانو ي شمیرلی شي ،

**۱۰-زاهربن الاسود** : دا زاهربن اسود اسلمی دی هغی صحابو رضي الله عنهم نه دی کومو چې داونې لاندې بیعت کړی وو کوفه ي مقیم وو . اوکوفه والو ي شمیرلی شی .

**زراع بن عامر** : دازارع دي دعامر بن عبد القیس ځوئي دی دعبدالقیس وفد کي شاملیدو سره د حضور صلی الله علیه وسلم خدمت کي حاضر شوی دی بصریانو کي شمیرلی شي . دده حدیث اهل بصره کي رائج دی.

**۱۱-زراره بن ابی اوفی** رضي الله عنه: دا صحابو ؤ نه دی دحضرت عثمان رضي الله عنه زمانه کي وفات شو .

**۱۲-ابوزید الانصاری** : دده په نوم کې اختلاف دی سعید بن عمر دی او یا قیس بن سکن ، ده د پیغمبر صلی الله علیه وسلم په زمانه کې قرآن حفظ کړی وو .

**۱۳-ابوزهیر نمیری** : دا دنمیر قبیلې نه دی آخر کې شام کې اوسیده .

**۱۴-الزبیدی** : دده نسبت زبید طرف ته کیږی . دده نوم منبه بن سعد ښودلی شی . خلک وایې چې دا صحابي وو .

## صحابیاتې

**۱-زینب بنت جحش رضی الله عنها** : دازینب بنت جحش رضي الله عنها د امهات المؤمنین نه ده . ددې دمور

نوم امیه دی چې دعبدالمطلب لور ده اودحضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ترور ده . دادزیدبن حارثه چې دحضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ آزاد کرده غلام وو ، دهغه ښځه وه ، بیا حضرت زید رَضِيَ اللهُ عَنْهُ طلاق ورکړی وو دی نه پس حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ورسره سنه ۵ھ کې نکاح اوکړله دازینب تمامو ازواجو مطهراتو کې دحضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دوفات نه پس دټولو نه مخکې وفات شوه . ددې اولنی نوم ((بره)) وو . حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ددې نوم زینب رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ایخی وو . بی بی عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ددې شان کې فرمائي هیڅ ښځه دی زینب نه دین کې بهتره نشته . دادټولو نه زیاته الله نه ویریدونکې ده اودټولو زیاته رېښتیا ویونکې ده . دټولو نه زیاته قرابت لرونکې ده دټولو نه زیاته صدقه ورکونکې ده او هغو تمامو کارونو ي چې هغو کې دالله قرب حاصلولو دپاره ځان په کار راتلی شی دټولو نه زیات ځان قربانی کونکی ده سنه ۲۰ھ کې مدینه کې وفات شوه او په مدینه منوره کې دفن شوه

**۲-زینب رضی الله عنها بنت عبدالله** : دازینب دعبدالله بن معاویه لور ده . دبنو ثقیف اوسیدونکې ده دعبدالله بن مسعود ښځه وه دې نه ددې خاوند ابن مسعود اوابوسعید خدري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ اوبی بی عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا دحدیث روایت کوي .

**۳-زینب بنت ابی سلمه** : دادحضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د بي بي اود ام سلمه لور ده ددې نوم هم بره وو . حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بدلولو سره زینب کیښودلو . ملک حبشه ي پیدا شوه دعبدالله بن زمعه زوجیت ي وه دخپلې زمانې ښځو ي دټولو نه زیاته فقیه او عالمه وه ، د حرې د واقعې نه وروسته وفات شوه .

## س :

## صحابه کرام رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ

**۱- سعدبن ابی وقاص** رَضِيَ اللهُ عَنْهُ : دده کنیت ابواسحاق دی دده دپلار ابووقاص نوم مالک بن وهیب دی زهری دی دقریشو دقبیلې نه دی هغو لسو نه یو دی چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ورته دجنت بشارت ورکړی وو داسلام شروع ي ئی ایمان راوړی وو کله چې عمرېې اوولس کاله وو دده بیان دی زه اسلام راوړونکو ي دریم سړی یم .اوزه وړومبنی سړی یم چې دالله تعالی لارې مې تیر اندازی اوکړه ټولو غزواتو ي حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره برابر شریک وو ډیر مستجاب الدعوات وو . ددې خبری خلقو ي لوی شهرت وو دبدی دعاء نه ئي خلق ویریدل اودعائي خیر آرزو ئی تری لرله اوداخبره ځکه وه ، چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دده حق ي دادعا کړی وه چې (اللَّهُمَّ سَدِّدْ سَهْمَهُ ، وَأَجِبْ دَعْوَتَهُ.) ای الله دده تیر نیغ اورسوی اودده دعا قبوله کړی ده دپاره اوزبیر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دپاره حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خپل مور وپلار دواړه جمع کولو سره داسې فرمائیلي وو (ارْمِ فِدَاكَ أَبِي وَأُمِّي.) ارم فداک ابی وامی : داسې الفاظ دی داوړو نه علاوه بل چا دپاره ئی نه دې فرمائیلی . مقام عقیق کې چې مدینې ته قریب دی وفات شولو اودخلقو په اوږو مدینې ته اورسولی شو مروان بن الحکم دده دجنازی مونځ ورکړلو . مروان هغه زمانه ي دمدینې گورنر وو مقام بقیع کې دفن کړی شو دا واقعه سنه ۵۵ھ کې پېښه شوه . عمر ئی څه دپاسه ۷۰ کاله

وو د عشره مبشره نه دی دده مرګ دټولو نه آخر کښې واقع شو حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دکوفې ګورنر جوړ کړی وو ده نه يولوی جماعت صحابه او تابعين روايت کوی.

**۲ ـ سعدبن معاذ** رَضِيَ اللهُ عَنْهُ: دمعاذ ځوئي دی انصاری اشهلی اوسی دی مدينه کښې ايمان راوړی وو عقبه اولی اوثانيه مينځ کښې يې اسلام راوړلو. دده په اسلام باندې د اشهل قبيلې ډيرو خلکو اسلام راوړلو. دانصارو په تمامو خاوندانو نو ي دا وړومبنی خاندان وو چې اسلام ئې راوړلو. حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دده ته دسيد الانصار خطاب عطا کړی وو ذی خپل قوم کې لوئی بزرګ اوسردار تسليمولی شو. جليل القدر اواکابر اواخيارو صحابو نه دی حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره جنګ بدر اواحد ي شريک وو اوبهادرانه مقابله ئی اوکړله جنګ احد ي ئی شا رګ په تير اولګيدلو وينه يې بنده نه شوه تردې چې يوه مياشت پس وفات شولو. داواقعه دذی القعدې سنه ۵هده. هغه وخت ئی عمر ۳۷ کاله وو جنت البقيع ي خاوروته اوسپارلی شو دصحابو يو جماعت ده نه روايت کوی.

**۳ ـ سعدبن خوله**: غزوه بدر کې يې شرکت اوکړو اوحجة الوداع واله کال نه وروسته مکه ي وفات شولو.

**۴ ـ سعدبن عباده**: دده کنيت اوبثابت انصاری دی ساعدی خزرجی دی دا د لسو نقباؤ نه يودی دانصارو سردارانو ي شميرلی شو. اوشان اوشوکت کې دټولو نه زيات وو. رياست اوسرداری ئی داسی بيامونديء وه چې دهغه اعتراف ئی قوم هم کولو سنه (۱۵) هـ کې د شام د حوران په علاقه کې. په دی خبره دټولو اتفاق دی چې دا خپلې غسل خانه ي مړ پيا موندی شوی دی چې اوليدی شو نوټول جسم ئي شين شوی وو تمام خلقو دده دمرګ وجه معلومه نه کړی شوه تردې چې ديو ويونکی آواز د خلقو غوږونو ته راغی چاته ښکاريده نه اودائي وئيل.

نحن قتلنا سيد الخزرج سعد بن عبادة    رمينا بسهمين فلم نخطاء فؤادة

يعنی مونږ د خزرجو سردار سعدبن عباده قتل کړو اومونږ دوه تيرونه دده په زړه اوچلول چې نښه خطاء نه شوه. په دی وجه مشهوره شوه چې کو جنې (پيری) قتل کړلو.

**۵ ـ سعيدبن الربيع**: داسعيد بن الربيع دانصارو د خزرج قبيلې نه دی جنګ احد کې شهيد شوو حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دده او عبدالرحمن بن عوف رَضِيَ اللهُ عَنْهُ تعلق قائم کړی وو دی او خارجه بن زيد يو قبر کې دفن کړی شو

**۶ـ سعيدبن الاطول**: دا د قبيله جهينه نه دی ده نه دده ځامن عبدالله او ابونضره روايت کوی.

**۷ ـ سعيد بن زيد**: داسعيد دزيد ځوی دی دده کنيت ابو الاعور دی عدوی قريشی دی عشره مبشرو نه دی شروع نه ورته شرف اسلام حاصل شو اوتمامو غزواتو ي سوا دغزوه بدر نه حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره شريک وو ځکه چې داسعيد بن زيد طلحه بن عبدالله سره وو. د ابو سفيان د قافلې په تالاش کې وو حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ غنيمت ي ددوی حصه مقرره کړې وه. اودحضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خور فاطمه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا دده نکاح کی وه. اوداهغه فاطمه ده چې دهغې په وجه حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مسلمان شو. سنه (۵۱) کې مقام عقيق کې وفات شو. اوهلتعه نه مدينی ته راوړی شو. اوجنت البقيع ي دفن کړی شو. څه دپاسه ۷۰ کاله عمر ئی وو ده نه يو جماعت روايت کوی.

**۸ ـ سعيد بن حريث**: داسعيد بن حريث قريشی مخزومی دی دمکې فتح کې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره

شریک وو هغه وخت ئی عمر ۱۵ کاله وو بیا کوفه ي اقامت پذیر شو او هلته وفات شو. او هلته ئی قبر دی. حافظ ابن عبدالبر رَحِمَهُ اللّٰهُ ویلي دي دهغه قبر جزیره ي دی هیڅ اولاد ئی نه وو دهغه ورور عمرو بن حریث ترې روایت کوی

**۹- سعید بن العاص رضی الله عنه**: قریشی دی دهجرت په کال پیدا شو دقریشو سردارانو ي وو کومو صحابه کرامو رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمْ چې دحضرت عثمان رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ حکم سره دقرآن پاک کتابت او کړو. هغوی کې یو دا هم دی حضرت عثمان رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ دکوفی گورنر جوړ کړی وو ده اهل طبرستان سره جنګ او کړو. هغې کې یې فتحه ومندله په سنه ۵۹ ه کې وفات شو.

**۱۰- سعید بن زید** رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ: دسعد بن عباده ځوی دی انصاری دی وئیلی شی چې دنبی کریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دصحبت نه مشرف شو خپل پلار نه روایت کوی او دده ځوی شرحبیل او ابو امامه بن سهل ده نه روایت کوی واقدی وغیره وئیلی دی دده صحابی کیدل صحیح دی حضرت علی رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ دجانب نه دیمن گورنر وو.

**۱۱- سبره بن معبد** رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ: جهنی دی دمدینې او سیدونکی دی دده شمیر دمصر محدثینو کې کیږی.

**۱۲- سهل بن سعد** رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ: دا ساعدی انصاری دی ابو عباس ئی کنیت دی دده نوم ((حزن)) وو بیا رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ئی نوم سهل سره کیښودلو حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ چې وفات شو، نو دده عمر ۱۵ کاله وو سهل مدینه کی سنه ۹۱ ه کې وفات شو او بعضو سنه ۸۸ ه بیان کړی دی دا ټولو نه آخری صحابي دی چې مدینه ي وفات شو دده په مرګ سره مدینه دصحابو نه خالي شوه.

**۱۳- سهل بن ابی حثمه**: کنیت ئی ابو محمد دی ابو عماره انصاری اوسی هم ورته وئیلی شی سنه (۳) ه کې پیدا شو. او کوفه ي اقامت گزین شو او مدینې والو ي شمیرلی شي. او مدینه ي دمصعب بن زبیر زمانه ي وفات شو. یوه لویه ډله تری دحدیث روایت کوی.

**۱۴- سهیل بن حنیف انصاری**: اوسی دی جنګ بدر، احد او تمامو غزواتو ي شریک وو. داحد جنګ ي رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره ثابت قدم پاتې شو او دنبی کریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دوفات نه پس دحضرت علی رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ ملګری او هم نشین وو حضرت علی رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ مدینه ي خپل قائم مقام جوړ کړلو. او هغې نه پس ئي دفارس حاکم جوړ کړلو. سنه ۳۸ ه کې په کوفه کې وفات شو.

**۱۵- سهل بن بیضاء** رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ: دده ورور سهیل وو بیضاء دې دواړو مور وه چې دهغې نوم رعد وو او دپلار نوم ئی وهب بن ربیعه وو او سهل هغی مسلمانانو ي دی، چې دهغوی اسلام مکه ي ظاهر شو او دا هم وئیلی شي چې ده مکه ي خپل اسلام پټولو. او مشرکینو سره بدر ته اورسیدو. هغه زمانه ي یوه ورځ گرفتار کړی شو نو عبدالله بن مسعود رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ دده متعلق گواهی ورکړه چې ما دی مکه ي په مونځ کولو لیدلی دی نو دا پریښودی شو بیا مدینه کي وفات شو او آنحضرت صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دده او دده دورور دجنازی مونځ جومات کي ورکړو. ددواړو ورونو ذکر دجنازی دمونځ بیان کي راغلی دی.

**۱۶- سهل بن الحنظلیه**: حنظلیه دده دنیا نوم وو او بعضی وائی دده مور نوم وو او هغه جانب ته دا منسوب

کیږي او دی نوم سره متعارف دی دده دپلار نوم ربیع بن عمرو او سهل هغې خلقونه وو چې د ونې لاندې ئې بیعت کړې وو لوی فاضل وو ډیر خلوت پسند ذکر او مونځ کې بې کچې مشغول وو څه اولاد ئې نه وو دشام ملک کې ئې سکونت وو او دامیر معاویه رضي الله عنه د خلافت زمانه کې دمشق کې وفات شو.

**۱۷ـ سهیل بن عمرو** رضي الله عنه: داسهیل بن عمرو قرشي عامري دی د قریشو سردار دی. بدر جنګ کې د کفر په حالت کې ګرفتار شو حضرت عمر رضي الله عنه رسول الله صلی الله علیه وسلم ته خواست او کړو یارسول الله! دده غابنونه وباسه چې ... چیرته ستاسو خلاف خطبه ورنکړی شی رسول الله صلی الله علیه وسلم او فرمائیل پریږده ئې شاید دی چرته داسی مرتبې ته اورسی چې ته ئې هم تعریف اوکړې اودا صلح حدیبیه کې د کفارو نماینده حاضر شو اودرسول الله صلی الله علیه وسلم دوفات نه پس چې څوک مرتد کیدل نو ده په د ارتداد نه منع کول په سنه ۱۸ھ کې طاعون عمواس کې وفات شو. اوداهم وئیلی شی چې ((یرموک)) کې شهید کړی شوي وه دده فضائل زیات دي

**۱۸ـ سهیل بن بیضاء**: قریشي دی پخوانی مسلمان دی دوه هجرتونو والا دی مکې معظمې نه یې جبشي ته هجرت کړی وو بیا د هغه ځای نه مدینې منورې ته یې هجرت وکړو په ټولو غزاګانو کې شریک وو په سنه ۹ھ کې دحضور صلی الله علیه وسلم ژوند مبارک ي چې تبوک نه ئې تشریف راوړلو دی وفات شولو ځان پس یې څه اولاد ئې نه دی پریښی.

**۱۰ـ سمره بن جندب** رضي الله عنه: هغه فزاري دی دقبیله انصار حلیف وو حافظ وو اورسول الله صلی الله علیه وسلم نه ئې ډیر روایت کولو اوده نه یو جماعت روایت کوی بصره کی دسنه ۵۹ھ آخیر کې وفات شو.

**۲۰ـ سلیمان بن حر**: دده کنیه ابو المطرف ده خزاعی دی عالم او عابد دی، په کوفه کې اوسیده د دری نوی ۹۳ کالو عمر والا وو

**۲۱ـ سلیمان بن بریده**: اسلمی دی د ډیرو صحابو نه یې روایات آخستې دي په سنه ۱۵ھ کې وفات شو

**۲۲ـ سلمه بن اکوع**: کنیت ئې ابو مسلم دی اسلمی مدنی دی داونې لاندې بیعت کونکو نه دی پیاده جنګ کونکو ي دټولو نه زیات بهادر اوقوی وو سنه ۷۴ ھ کې مدینه ي وفات شو عمر ئې ۸۰ کاله وو. ده نه ډیر خلق روایت کوی.

**۲۳ـ مسلمة بن هشام** رضي الله عنه: دا قرشي مخزومي دحبشې دمهاجرینو نه دی بنه او صاحب فضل صحابی دی دابو جهل ورور دی شروع زمانه کې ئې اسلام راوړی وو دالله تعالی لار کې یې ډیر تکلیفونه اوچت کړل مکه ي نظر بند کړی شو رسول الله صلی الله علیه وسلم چې به کوم کمزورو او ضعیفانو دپاره قنوت ي دعا کوله دا په یې هم هغوی کې شریکولو. دا مکه کې دقید کیدو په وجه بدر ي شریک نه شو. سنه ۱۴ھ کې چې د حضرت عمر رضي الله عنه خلافت وو، جنګ مرج الصغر کې شهید شو.

**۲۴ـ مسلمة بن صخر**: انصاري بیاضي دی وئیلي شی چې دده نوم سلیمان وو داهغه کس دی چې خپلې ښځې سره دظهار کولو نه پس ئي جماع کړې وه. ژړا زاری کونکو نه دی هم وو بخاری رحمه الله فرمائیلی دی چې

دده روایت معتبر نه دي.

**۲۵ـ سلمه بن المحبق**: ابوسنان دده کنیت دی دمحبق نوم صخر بن عتبه الهذلی وو بصریانو ي شمیرلی شو

**۲۶ـ سلمه بن قیس**: اشجعی دی ابوعاصم ورته شامی وائی اودکوفی اوسیدونکو کښ شمیرلی شی هلال بن یسار وغیره ده نه روایت کوی.

**۲۷ـ سلمان فارسي** رَضِيَ اللهُ عَنْهُ: کنیت ئی ابوعبدالله دی درسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ آزاد کرده دی فارسی الاصل د رامهرمز د اولادې نه دی اوبعضی داوائی چې داصفهان اوسیدونکی دی دديې ن طلب ي ئی سفر اوکړو دټولونه مخې نصرانی مذهب ئی اختیار کړو دهغی کتابونه ئی اولوستل اوپه هغه دین کښ یې پرله پسی مشقتونه برداشت کول بیاقوم عرب گرفتار کړلو اودیهودیانو په لاس ئی خرڅ کړلو. بیا هغه یهودیانو سره مکاتبت وکړو. رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بدل کتابت ي دهغه مدد وکړو وئیلی شی، سلمان فارسی څه دپاسه لسو آقاګانو غلام پاتی شوی دی حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته چې مدینی ته راورسیدو نو مسلمان شو حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمائیل سلمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ځمونږ داهل بیتو نه دی اودی هم دهغی کسانو نه دی چې دهغوی دقدوم جنت الفردوس متمنی دی عمر ئی ډیر زیات وو وئیلی شی چې ددوه نیم سوه کالو وو اوبعضی روایتونو ي دري نیم سوه کاله عمر ئی دی لیکن وړومبنی قول صحیح دی دخپل لاس ګټه به ئی خوړله او صدقه کوله سنه ۵۳ هـ کښ شهر مدائن کي وفات شو هلته قبر دی.

**۲۸ـ سلمان بن عامر**: ضبی دیّ بصریانو ي شمیرلی شی کم عمره صحابي دی د صنب په قبیله کښ یوائې ده د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه یې حدیث نقل کړي دي.

**۲۹ـ سفینه** رَضِيَ اللهُ عَنْهُ: دا درسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ آزاد کرده دی بعضی وائی دام سلمه آزاد کرده دی اوتاحیات ئی ترې دنبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دخدمت عهد اخستی وو وائی، چې سفینه دهغه لقب وو اودهغه دنوم باره کی اختلاف دی بعضو روته رباح وئیلی دی اوبعضو مهران اوبعضورومان عربی النسل وو بعضوورته فارس الاصل وئیلی دی. بیان کیږی چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ یوسفري وو هرکله چې څوک به ستړی شو. نوخپله توره، ډهال، نیزه به ئی په ده اچوله. تردې چې ډیر څیزونه پری واچولی شو حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اوفرمائیل دبار خو سفینه (یعنی کشتی) ده.

**۳۰ـ سالم بن معقل**: دابوحذیفه بن عتبه بن ربیعه آزاد کرده دی دفارس اصطرخ اوسیدونکی وو بهترین صحابي دی خاص قراء کښ شمیرلی شو ځکه حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اوفرمائیل، څلور سړو نه قرآن زده کړی (۱) ابن ام عبد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه (۲) ابی بن کعب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه (۳) سالم بن معقل رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه (۴) اومعاذبن جبل نه دی بدرکی شریک شوی.

**۳۱ـ سالم بن عبید**: اشجعی دی اهل صفو نه دی اهل کوفه ي شمیرلی شی ده نه بلال بن یساف روایت کوی.

**۳۲ـ سراقه بن مالک**: داسراقه بن مالک بن جعشم مدلجی کنانی دی قدید ته به تلو راتلو او اهل مدینه کښ

میرلی شو . یولوئی جماعت تری روایت کوی دډیری اوچتی درجی دشاعرانو نه وو سنه ۲۴ھ کې وفات شو . په جرت کې د هغه هغه واقعه وه چې د حضور دنیولو لپاره وتلی وو چې ایمان یې وربانديې راوړو حضور هغه ته فرمایل چې زه ستا په لاسونو کې د فارس باد شاه بنګړي کورم.

**۳۳ - سفیان بن اسید** : دا سفیان بن اسید الحضرمی الشامی دی جبیر وغیره ترې روایت کړی دی.

**۳۴ - سفیان بن عبدالله** : دا ازدي د بنو شنو ونه دی او د حجاز محدث دی.

**۳۵ - سفیان بن عبد الله** : دا دعبد الله بن ربیعه ځوی دی ، کنیت یې او عمرو دی ، سقفي، د طائف والا و نه دی ، دعمر فاروق د طرف نه د طائف حاکم وو.

**۳۶ - سخبره** : دده کنیت ابو عبد الله ازدی دی ده نه دده ځوی عبد الله کتاب العلم کي ددی خبرې روایت کوي

**۳۷ - السائب بن یزید** : دده کنیت ابویزید کندی دی سنه (۲) ھ کې پیدا شو . داوو (۷) کالو په عمري خپل والد ماجد سره حجة الوداع ي حاضر شو . ده نه زهری او محمد بن یوسف روایت کوی سنه (۸۰) ھ کې وفات شو.

**۳۸ - السائب بن خلاد** : دده کنیت ابوسهله دی انصاری خزرجی دی سنه (۹۱) ھ کې وفات شو . ده نه دده ځوی او عطاء بن یسار روایت کوی.

**۳۹ - سوید بن قیس** : دده کنیت ابوصفوان دی ده نه سماک بن حرب روایت کوی او کوفیانو کي شمیرلی شی

**۴۰ - ابوسیف القین** : دحضور صلی الله علیه وسلم دځوی ابراهیم رضی الله عنه رضاعی پلار وو د ده نوم براء بن اوس انصاری دی خپل کنیت سره زیات مشهور دی دده ښځه ام برده ده چې ابراهیم رضی الله عنه ته ئی پی ورکړې وو.

**۴۱ - ابوسعید الخدري** : انصاری خدری دی خپل کنیت سره مشهور شولو حافظ حدیث دی دصحابه او تابعینو یولوئی جماعت ده نه دحدیث روایت کوی سنه ۷۴ھ کې وفات شو او جنت البقیع کي خاورو ته اوسپارلی شو ۸۴ کاله ئی عمر وو.

**۴۲ - ابوسعید بن المعلی** : دا ابوسعید حارث بن معلی انصاری زرقی دی ۶۴ کاله عمر ئی وو سنه ۶۴ھ کې وفات شو.

**۴۳ - ابوسعیدبن ابی فضاله** : حارثی انصاری دی دده کنیت دده نوم دی اهل مدینه ي شمیرلی شی.

**۴۴ - ابوسلمه** : دا دعبدالله بن عبدالاسد ځوی دی مخزومی قرشي دی دحضور صلی الله علیه وسلم دترور ځوی یعني دبره بنت عبد المطلب ځوی دی د حضور صلی الله علیه وسلم نه مخکې د ام سلمه رضی الله عنها خاوند وو ، دهغه د مرګ نه وروسته ام سلمه رض د حضور صلی الله علیه وسلم په نکاح کې راغله په ټولو غزاګانو کې د حضور صلی الله علیه وسلم سره شریکه وو ، مدینه منوره کې په سنه ۴ ھ کې وفات شو په نوم یې کنیت غالب وو.

**۴۵ - ابوسفیان ابن حرب** رضی الله عنه: دا د صخر بن امیه ځوی دی اموی قریشي دی دا امیر معاویه والد دی، د فیل د واقعې نه لس کاله مخکې پیدا شوی وو ، د جاهلیت په زمانه کې د قریشو د سردارانو مشر وو ، د فتح مکې

په ورځ یې ایمان راوړلو د مؤلفة القلوب نه وو په غزوه حنین کې د حضور ﷺ سره وو حضور ﷺ په دغه غزوه کې هغه سل اوښان او څلوېښت اوقیې سره زر ورکړل، د طائف په جنګ کې د هغه یوه ستر ګه ختمه شوې وه، په غزوه یرموک یعنی عهد فاروقي کې یې دویمه ستر ګه شهیده شوه په کاڼي لګیدو سره، دده نه عبد الله بن عباس رض احادیث نقل کړي دي په سنه ۳۴ ه کې په مدینه منوره کې وفات شو، جنت البقیع کې دفن کړی شو. ام المؤمنین ام حبیبه دده لور وه یعني دا د حضور ﷺ سخر وو.

**۴۶ - ابوسفیان بن حارث** : دا د حارث بن عبد المطلب ځوی دی یعنی د رسول الله ﷺ د تره ځوی دی او د حضور ﷺ رضاعي ورور دی حلیمه سعدیه بن ابي ذویب ده ته هم پې ورکړې وي، بعضو ویلي دي چې دده نوم مغیره وو او بعضو ویلي دي چې مغیره دده ورور وو او دده نوم دده کنیت دی د جاهلیت په زمانه کې د اچتو شاعرانو کې وو، د حضور ﷺ په هجوه کې به یې اشعار لیکل حسان بن ثابت رضي الله عنه به په اشعارو کې د هغه د اشعارو جواب کولو، کله چې مسلمان شو د شرم د وجې نه یې پیغمبر ﷺ ته نیغ نشو کتلی، د فتح مکې په ورځ مسلمان شو حضرت علي رضي الله عنه ورته وویل ابوسفیانه! ته لاړ شه د حضور ﷺ په دربار عالیه کې داسې ووایه (**تالله لقد اثرك الله علینا - وان كنا لخاطئین**) یعنی الله تا ته لوې عزت درکړی دی او مونږ خطاکاریو هغه داسې وکړل، پیغمبر ﷺ هغه ته د رحمت په نظر وکتل او وې ویل (لاتثریب علیکم الیوم یغفر الله لکم) تاسو باندې نن څه ملامتیا نشته الله دې تاسو معاف کړي، او اسلام یې قبول کړو، د رحمت په لم کې یې ورله ځای کړو د هغه د مرګ واقعه داسې وه چې حج ته لاړ و یا یې د سر خریلو په وخت کې د هغه د سر دانې کټ کړې ددې وجې نه بیمار شو کله چې مدینې ته واپس راغی نو وفات شو، د عقیل ابن ابي طالب په کور کې دفن شو، عمر فاروق رض د هغه جنازه وکړه، وفات یې په سنه ۲۰ ه کې وشو

**۴۷ - ابو السمع** : دده نوم ایاد دی د حضور ﷺ خاص خادم یا ازاد کرده غلام دی په کنیت باندې مشهور دی معلومه نده چې کله او په کوم ځای کې وفات شوی دی.

**۴۸ - ابو سهله** : دده نوم سائب ابن خلاد دی دده ذکر تیر شوی دی

## صحابیاتې

**۱ - سوده** : دا سوده رضي الله عنه بنت زمعه ام المؤمنین ده شروع زمانه ېې ئی اسلام راوړی وو د خپل تره (چچا) ځوی سکران بن عمرو نکاح کې وه. چې خاوند ئی وفات شو نو رسول الله ﷺ ورسره نکاح وکړه او دی سره مکه کې خلوت وشو دا نکاح د بی بی خدیجی رضی الله عنها د وفات نه پس او د بی بی عائشی رضی الله عنها د نکاح نه مخکې وشوه هغې مدینې ته ئې هجرت وکړو. هر کله چې بوډۍ شوه، نو حضور ﷺ او غوښتل، چې طلاق ورکړي خو هغې حضور ﷺ ته خواست او کړو چې طلاق نه ورکوی او هغې د خپل وار ورځ بی بی عائشې ته ورکړه نو حضور ﷺ خپله نکاح کې و ساتله شوال سنه (۵۴) ه کې مدینه کې وفات شوه.

**۲ - ام سلمه رضی الله عنها** : دا ام سلمه رضی الله عنها ام المؤمنین هند بنت ابی امیه ده جناب رسول الله

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه مخکې دابوسلمه نکاح کې وه ابوسلمه سنه (۴)ھ کې وفات شو . نوهغې حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره په دغه کال کې د شوال په میاشت کې نکاح او کړله عمرېې ۸۴ څلور اتیا کاله وو بیا په سنه ۵۹ ھ کې وفات شوه د هغې نه دهغې لور زینب او بی بی عائشې صدیقه وغیره روایت کوی .

**۳ــ ام سلیم رضی الله عنها** : د دملحان لورده ددې نوم سهله یا رمله یا ملیکه یا غمیصه یا میصایان دی ددې نکاح د مالک بن نضر سره شوی وه کوم چې د انس بن مالک پلار دی . حضرت انس رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ د مالک بن نضر ځوی دی بیا دامالک بن نضر دکفر په حالت ي قتل کړی شو دی دی اسلام راوړلو ابو طلحه دی ته دنکاح پیغام ورکړو هغې ورته وویل که اسلام دې راوړلو نو نکاح در سره کوم او د اسلام نه سوا در نه هیڅ مهر نه غوارم نو ابوطلحه ایمان راوړلو او نکاح یې ورسره وکړه څه خلک د هغې نه روایت کړی دی .

**۴ــ سبعیه بنت حارث** : دا اسلمیه ده د سعد بن خوله په نکاح کې وه د خاوند وفات یې په حجة الوداع شوی دی ددې د کوفې والاو د هغې نه روایات نقل کړې دي .

**۵ــ سهیمه بنت عمیر** : دا د مزینه قبیلې نه وه د رکانة بن عبد زید په نکاح کې وه په باب الطلاق کې یې ذکر راغلی دی .

**۶ــ سلامة بنت حر** : دا ازدیه ده یا فزاریه ده کوفې والاو ددینه حدیث نقل کړي دي .

**۷ــ سلمی** : دا درافع مور او دابورافع زوجه صحابیه ده . دابراهیم ابن رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رضاعي مور ده حضرت فاطمې ته یې د بنت عمیس په ملګر تیا غسل ورکړی وو .

## ش :

## صحابه رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمْ

**۱ــ شداد بن اوس** : دده کنیت ئی ابولیلی انصاری دی دحسان بن ثابت د تره ځوی دی په آخر کې په بیت المقدس کې اوسیده په سنه ۵۸ کې د ۷۵ کالو په عمر کې وفات شو په شام کې یې مزار دی .
عباده بن صامت او ابودرداء رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا وائي چې علم او حکمت ورکړی شوی وو .

**۲ــ شریح بن هانی** : دده کنیت ابو المقدم حارثی دی ده حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دده د پلار کنیه ابو شریح ایخې وه لهذا د هاني بن یزید کنیه او شریح ده د حضرت علی رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ د ملګرو نه دی .

**۳ــ شریدبن سوید** : دا ثقفي دی دحضرموت اوسیدونکی دی دا په بنو ثقیف کې شمیرل شوی دی ، دبعضو خلکو په نزد طائف والاو کې شمار شوی دی حجاز والاو سره دده احادیث شته .

**۴ــ شکل بن حمید** : دا عبسي دی ، دده نه دده ځوی شتیر احادیث نقل کړې دي ، کوفې والاو کې شمار شوی دی .

**۵ــ شریک بن سحماء** : خیال کول پکار دی چې سحماء دده مور ده دده د پلار نوم عبده بن مغیث دی هغه په

خپلې ښځې باندې د بلال بن اميه سره د زما تهمت ولګولو ، بيايې لعان وکړو ، دا د خپل پلار عبده سره د احد په جنګ کې شريک شوی وو .

**۶ ـ ابوشبرمة** : خيال کوی چې شيرمه د شين په پيښ او دباء په سکون سره دی ، دا صحابي دی د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په زمانه کې وفات شو ، په حج کې د دغه ذکر راغلی دی .

**۷ ـ ابوشريح** : دده نوم خويلد بن عمرو دی ، کعبي عدوي خزاعي دی ، د فتح مکې نه مخکې يې اسلام راوړی دی او په سنه . ۶۸ هـ کې په مدينه منوره کې وفات شوی دی په خپلې کنيې سره مشهور دی .

## صحابياتي

**۱ ـ الشفاء بنت عبد الله** : دا قريشيه عدويه ده نوم يې ليلی دی ، شفاء يې لقب دی ، د هجرت نه مخکې يې ايمان راوړی دی ، د لوی عقل او پوهې والا وه ، حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به ددې په کور کې آرام کولو ، دې به د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لپاره ځانله بستره او تهبند ( ازار ) ايخی وو ، د آرام کولو لپاره حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته اول پی دې ورکړې دي .

**۲ ـ ام شريک غزنة** رَضِيَ اللهُ عَنْهَا : ددې پوره نوم عزيه بنت دودان دی ، د قريشو سره يې تعلق دی او صايبه ده .

**۱ ـ ام شريک انصاريه** : دا انصاريه ده ، د فاطمې بنت قيس د عدت په بيان کې ددې ذکر راغلی دی ، کله چې پيغمبر صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل ( اعتدي في بيت أم شريک ) بعضې خلک وايې چې ام شريک د عتبه انصاري ښځه ده ، خيال کول پکار دي چې يو ام شريک قريشيه هم شته کومه چې د لؤي بن غالب په اولاد کې ده دا انصاريه ده .

## ص :

## صحابه کرام رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ

**۱ ـ صفوان بن عسال** : دا مرادی دی د مراد قبيلې سره يې تعلق دی په کوفه کې اوسيدو د کوفې والاو سره احاديث شته .

**۲ ـ صفوان بن معطل** : دده کنيت ابو عمرو دی سلمي دی او په ټولو غزاګانو کې شريک شوی وو د حضرت ام المؤمنين د تهمت واقعه دده سره تعلق لري لوی متقي او بهادر وو ، د ارمنيا په جنګ کې شهيد شو د شپيتو کال نه يې عمر زيات وو ، مشهور صحابي دی .

**۳ ـ صفوان بن اميه** : دا اميه بن خلف ځوی دی جمحی قريشي دی د فتح مکې په ورځ تختيدلی وو عمر بن وهب او دهغه ځوی وهب دهغه لپاره آمان حاصل کړی وو ، پيغمبر صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خپلې لمن کې ورته ځای ورکړو ، چونکه عمر بن وهب دهغه تلاش وکړو او د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خدمت کې يې حاضر کړو وې ويل چې وهب بن عمير ماته وويل چې تاسو به ماته پدې شرط آمان کړی دی چې زه به دوه مياشتې په سفر کې تيروم ،

پیغمبر ﷺ ورته څلور میاشتې امان ورکړو صفوان د حضور ﷺ سره د کفر په حالت کې د حنین او دطائف په موقع شریک وو، پیغمبر ﷺ ورته دمال غنیمت نه ډیر مال ورکړه، صفوان په طائف کې اسلام قبول کړو بیا یې هجرت وکړو مدینې منورې ته راغی دهغه ښځې د هغه نه یوه میاشت مخکې اسلام راوړی وو دده د اسلام په راوړلو سره پیغمبر ﷺ دده نکاح بر قرار وساتله، حضرت صفوان مکه کې په سنه ۴۲ کې وفات شو، ده په غزوه طائف کې ایمان راوړی وو.

**۴ـ صخر بن وداعه**: دا غامدي ازدي دی طائف کې اوسیده او د حجاز والاو کې شمار دی، د عمرو بن عبد الله څوی دی.

**۵ـ صخر بن حرب**: دده کنیه ابوسفیان دی د معاویه رضي الله عنه پلار دی دده ذکر د سین په تخته کې شوی دی.

**۶ـ صهیب بن سنان**: دا دعبدالله بن جدعان آزاد کرده دی دده کنیت ابویحی دی دده وطن د موصل په علاقه کې وو، رومیانو وربانډې حمله وکړه او خپل غلام یې کړو، دهغه وخت کې د ماشوم وو، په رومیانو کې یې پرورش کیدو تردې چې عبد الله بن جدعان واخستلو او آزاد یې کړو، ده او عمار بن یاسر په مکه کې په یوه ورځ ایمان راوړی دی، حضور ﷺ دار ارقم کې وو او څه دپاسه دیرشو کسانو رایمان راوړی وو، په مکه کې هغه ته د ایمان په وجه ډیر تکلیفونه ورسول شول، بیا یې مدینې ته هجرت وکړو دده په باره کې دا روایت نازل شوی دی، وَمِنَ النَّاسِ مَنْ يَشْرِي نَفْسَهُ ابْتِغَاءَ مَرْضَاتِ اللَّهِ. په سنه (۸۰) هـ کې مدینه ي وفات شو. او جنت البقیع کې دفن شو.

**۷ـ الصعب بن جثامه**: دا لیثی دی ودان او ابواء مقام کې اوسیده د حجاز یانو نه وو، خلافت صدیقي کې وفات شوی دی.

**۸ـ الصنابحی**: دا په دې نوم سره مشهور دی څکه دا دصنابح بن زاهر بن عامر د قبیلې نه دی کوم چې د مراد د خاندان نه دی دده اصلی نوم عبد الله دی، د عین په تختي کې به دده نوم راشي

**۹ـ ابوصرمه**: دده نوم مالک بن قیس دی، مازني دی، په بدر وغیره ټولو غزاګانو کې شریک شوی وو.

## صحابیاتي

**۱ـ صفیه**: دا صفیه دحیئ بن اخطب لورده چې بنی اسرائیلو نه ده او دهارون بن عمران علی نبینا علیه السلام د اولاد نه ده. اول کې د کنانه بن ابی الحقیق یهودي په نکاح کې وه کوم چې د خیبر په جنګ کې وفات شو یعني محرم سنه ۷ هـ کې قید کې راوستی شوه او دحیة بن خلیفه کلبي په حصه کې راغله حضور ﷺ هغه ته اوو غلامان ورکړل او صفیه یې ترینه واخستله ازاده یې کړه او حضور ﷺ ورسره نکاح وکړه، یعني دا ام المؤمنین ده، په سنه ۵۰ هـ کې په مدینه منوره کې وفات شوه په جنة البقیع کې دفن شوه، ددې نه حضرت انس او عبد الله بن عمرو رضي الله عنهما احادیث روایت کړي دي

**۱ـ صفیه بنت عبد المطلب** رضي الله عنه: دا دحضور رضي الله عنها ترور ده مخکې د حارث بن حرب په نکاح کې وه د

هغه د مرګ نه وروسته د خویلد په نکاح کې راغله د هغې نه دې زبیر پیدا شو ډیر عمر والا وو، په خلافت فاروقي کې په سنه ۲۰ هـ کې وفات شوه، د ری اویا ۷۳ کاله عمر یې وو مدینه منوره کې په جنت البقیع کې دفن شوه.

**۱ـ صفیه بنت ابی عبید** : دا ثقفیه ده، د مختار بن ابي عبید خور ده د عبد الله بن عمر ښځه ده، او د حضور ﷺ صحبت یې موندلی دی د حضور ﷺ خبرې یې اوریدلي دي لیکن کوم حدیث یې ترې نه دلی نقل کړی د حضرت عائشې او حفصې رضي الله عنهما نه یې روایات نقل کړي دي

**۱ـ صفیه بنت شیبة** : دا دشیبه حجبي لور ده، دې حضور ﷺ یې لیدلی دی او که نه؟ په دې کې اختلاف دی حقه خبره داده چې د حضور ﷺ نه یې روایت ندی کړی

**۱ـ الصماء بنت بسر** : دا مازنیه ده صحابیه ده، د دې نوم بُهیه دی صحاء یې لقب دی.

## ض:

## صحابه رضي الله عنهم

**۱ـ ضماد بن ثعلبه** : د ازدي قبیلې د ازد شنوءة نه دی. داسلام نه مخکې د پیغمبر ﷺ بهترین دوست وو، دا طبیب هم وو او د مونه به یې هم کول، د اسلام په ابتداء کې مسلمان شوی وو، کله چې ورته حضور ﷺ قرآنکریم واورولو نو وې ویل (لقد بلغت کلماتک هذه قاموس البحر) چې دا کلمات د سمندر بیخ ته رسیږي، حضرت ابن عباس وغیره و ترینه روایات نقل کړي

**۲ـ الضحاک بن سفیان** : دا د کلاب عامري دی اهل مدینه والاو کې شمار دی، نجد ته به تلو، حضور ﷺ د خپل قوم حاکم جوړ کړو، د سلو پهلوانانو برابر وو، د بهادرۍ د وجې نه به یې توره راویسته او د حضور ﷺ سر سره به ولاړ وو، د حفاظت کولو لپاره.

## ط:

## صحابه کرام رضي الله عنهم

**۱ـ طلحه بن عبید الله** : د ده کنیت ابو محمد قریشي دی عشره مبشره نه دی پخوانی مؤمن دی تمامو غزواتو کې سوا د بدر نه شریک وو د عدم شرکت وجه ئی داوه چې حضور ﷺ د بدر په ورځ د دعید بن زید سره دابوسفیان د قافلې لپاره لیږلی وو د عین بدر په ورځ راغی، د احد په ورځ یې د حضور ﷺ حفاظت په خپله کړی وو، څلیرویشت زخمونه یې خوړلي وو، د لاس ګوتې یې شلې شوې وې بعضو روایاتو کې دي چې د نیزو او تورو یې اویا زخمونه خوړلي وو، د جنګ جمل په واقعه کې د جمعرات په ورځ په سنه ۳۰ هـ کې په شلم د جمادی الاولی شهید شو ۶۴ کاله عمر یې وو او بصره کې دفن شو.

**۲ـ طلحه بن البراء** : دا انصاری دی د حضور ﷺ په زمانه کې وفات شوی حضور ﷺ ئی

دجنازې مونځ ورکړلو او داسې یې وویل (اَللّٰهُمَّ الْقَ طَلْحَةَ تَضْحَكُ إِلَيْهِ وَيَضْحَكُ إِلَيْكَ) ای الله! ده سره په خندا ملاقات اوکړې او دی هم دې خندا سره ستا خدمت کې حاضر شي، په حجاز والاو کې وو.

**۳ - طلق بن علي** : کنیت ئې ابو علي حنفي یمامي دی ده ته طلق بن ثمامه هم وئیلی شی ده نه دده وی قیس روایت کوی.

**۴ - طارق بن شهاب** : دده کنیت ابو عبد الله دی بجلي کوفي دی، د حضور ﷺ سره یې ملاقات شوی دی، لیکن د هغه ﷺ نه یې احادیث ډیر کم دي، په خلافت صدیقي او فاروقي کې یې ۳۳ جهادونه کړي دي په سنه ۸۲ هـ کې وفات شوی دی.

**۵ - طارق بن سوید** : دا صحابي دی د شرابو متعلق ترینه یو حدیث نقل دی.

**۶ - الطفیل بن عمرو** رضي الله عنه: دا طفیل بن عمرو دا دوسی دی مکه کې یې ایمان راوړی وو بیا خپل قوم ته تللی وو او د حضور ﷺ د هجرت کولو نه بعد مدینې منورې ته راغی د حضور ﷺ تر وفات پورې هلته وو، خبره داده چې په خلافت صدیقي کې د یمامې په جنګ کې شهید شو، دده شمار د حجاز والاو کې دی

**۷ - ابو الطفیل** : دده نوم عامر دی دواثله ځوی دی لیثی او کنانی دی د حضور ﷺ په خدمت کې اته کاله وو، په سنه ۱۰۲ هـ کې وفات شو دا آخري صحابي وو چې په مرګ سره یې ځمکه د صحابو نه خالي شوه

**۸ - ابو طیبه** : دده نوم نافع دی مشهور صحابی دی محیصه بن مسعود انصاري غلام وو او حجام وو یعنی رګ کولا وولو والا جراح، ده د پیغمبر ﷺ رګ کولا کړی وو،

**۹ - ابو طلحه** : دده نوم زید بن سهل دی انصاري بخاري په خپلې کنیې سره مشهور دی د حضرت انس بن پلندر وو د اعلی درجې تیر (ننبه) ویشتونکی وو، حضور ﷺ وفرمائیل په لښکر کې د ابو طلحه رضي الله عنه آواز د لوی جماعت نه بهتر دی ۷۷ کاله عمر یې وو په سنه ۳۱ هـ کې وفات شو په بیعت عقبه کې د اویا ۷۰ انصارو سره راغلی وو، بیا غزوه بدر او نورو ټولو غزاګانو کې شریک شو دده نه یو جماعت روایت کړی دی

## ظ : صحابه رضي الله عنهم

**۱ - ظهیر بن رافع** : داظهیر بن رافع دا حارثی انصاري اوسي دی په دویم بیعت عقبه کې شریک شوی وو بیا د بدر وغیره غزواتو کې شامل شو خپال کول پکار دي چې د ظهیر والد رافع دا بل یو دی رافع بن خدیج نه دی.

## ع:

## صحابه کرام رضي الله عنهم

**﴿۱﴾ عمر بن الخطاب** : دده لقب فاروق دی دده کنیت ابو حفصه دی عدوی قریشی دی د نبوت په پنځم یا شپږم کال ئې اسلام راوړلو دده نه مخکې څلویښت سړو او یوولس (۱۱) ښځو اسلام راوړی وو. بعضو ویلي دي چې په دده سره څلویښت مؤمنان پوره شول

دده د ایمان راوړلو په ورځ مکه کې اسلام وېرقیدو دده نه دری ورځې مخکښې حضرت همزه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مسلمان شوی وو دده خور فاطمه بنت خطاب دده د ایمان ذریعه جوړه شوه په دغه ورځ حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دار ارقم کې وو د صفا غرته چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ راغی نو حضرت همزه ورسره وو ، دده دروازه ووهله د بارگاه نه حاضرین بهر راغلو ، همزه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ تپوس وکړو څوک دی ؟ خلکو وویل عمر دی حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بهر ته ووتلو هغه یې د لمن نه ونیولو جټکه یې ورکړه دا په دواړو زنګونانو کیناستو حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ورته وویل ایاستا د ایمان راوړلو وخت لاندی راغلی ؟ هغه سمدستې کلمه وویله ، حاضرو خلکو د خوشحالی نه د تکبیر چغې ووهلې چې حرم کې واوریدل شوې ، هغه عرض وکړو یا رسول الله ! آیا مونږ په حق او کفار په باطل باندې ندي ؟ حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل : قسم په الله تاسو په حق یاستئ ، عرض یې وکړو بیا ولې مونږ غلي یو ؟ مسلمانان د حرم طرف ته په دوو صفونو کې ووتل ، یو صف کې همزه وو او په بل صف زه (عمر) کله چې زه او همزه د مؤمنانو په صفونو کې کفارو اولیدو نو ډیر غمژن شول په هغه ورځ ماته حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د فاروق لقب راکړو ، الله زما په ذریعه حق او باطل جدا کړل ، داود بن حصین نه روایت دی چې کله دده (عمر) اسلام راوړو نو جبریل راغی وې ویل : نن د حضرت عمر په اسلام راوړلو فرشتو مبارکیانې سره ورکړې .حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمائي : که د تمامې دنیا والاو علمو په یوه پله کې کیخودی شي او د حضرت عمر په بله پله کې نو د حضرت عمر علم به وزني شي ، د حضرت عمر په وفات سره نهه حصې علم او چت شولو لسمه حصه پاتې شو ، د پیغمبر صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره ټولو غزواتو کې شریک شوی وو د ټولو نه اول امیر المؤمنین دده لقب وو ، د ابوبکر صدیق نه وروسته خلیفه وو ، دا په سنه ۲۳ هـ کې د چهار شنبې په ورځ یو یهودي غلام ابو لؤلؤ په خنجر باندې د سحر په مونځ کې د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په محراب کې ووهلو او شهید یې کړو د محرم په اول د یک شنبې په ورځ د پیغمبر په خواکې ګنبد خضرا کې دفن کړی شو لس نیم کاله خلافت یې وکړو ، ۶۳ کاله عمر یې وو ، حضرت صهیب د هغه جنازه وکړه ، ډیرو خلکو د هغه روایات نقل کړی دي ، عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د اوګد قد والا سور سپین رنګ والا سړی وو ، د هغه ستر کې نسبتًا وړې وې او سرې وې : بعض وایې غنم رنګ وو د سر او د ګیرې ویخته یې سپین وو ، د سر ویختان یې مینځ نه الوتې وو ، خیال پکار دی چې دده نه پنځه سوه نه دیرش ۵۳۹ احادیث نقل شوې دي ، لس احادیث متفق علیه دي . نه ۹ آحادیث صرف په بخاري کې دي پنځلس آحادیث په مسلم کې دي ، د عمر معنی ده آبادي کولو والا ، هغه اسلام آباد کړو ، ګویا چې د هغه په شهادت سره اسلام شهید شو .

﴿۲﴾ **عمر بن ابی سلمه** : دده د پلار ابوسلمه نوم عبد الله عبد الاسد دی دا مخزومي قریشي دی د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ پرکتی وو یعني د ام سلمه ځوی دی چې په حبشه کې پیدا شوی دی په سنه ۲ هـ کې د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د وفات په وخت کې یې عمر نه ۹ کاله وو د عبد الملک بن مروان په حکومت کې په سنه ۸۳ هـ کې وفات شو .

﴿۳﴾ **عثمان بن عفان** : دده کنیت ابو عبد الله دی اموي قریشي دی د ابوبکر صدیق په دعوت سره یې د اسلام په شروع کې ایمان راوړو . د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره په دار ارقم ته تلی نه وو بلکه حبشې ته یې دوه هجرتونه کړي

وو ، د بدر غزا کې شریک شوی نه وو ځکه دده بي بي رقيه د رسول الله ﷺ لور بیماره وه د حضور ﷺ په حکم سره په مدینه منوره کې وو . پیغمبر ﷺ ورته د بدر په غنیمت کې حصه ورکړه همدارنګه په د صلح حدیبیه په موقع جسمًا په بیعت الرضوان کې شریک شوی نه وو ، ځکه چې پیغمبر ﷺ هغه خپله نمائیده مقرر کړی وو او اهل مکو ته یې د صلحې د خبرو کولو لپاره لیږلی وو او دا بیعت الرضوان په غیر موجودګی کې شوی وو ، په دې خبره چې مکې وا لاو حضرت عثمان شهید کړی دی ، پیغمبر ﷺ د خپل چپ لاس باره کې وویل چې دا د عثمان لاس دی او د خپل نبی لاس باره کې یې وفرمایل چې دا د محمد مصطفی ﷺ لاس دی او بیعت یې وکړو چونکه د حضور ﷺ دوه لوګاني یوه د بلي پسي د عثمان رضي الله عنه په نکاح کې راغلي وې نو دغه وجه ورته ذي نورین لقب ورکړی شوی دی ، د محرم په اول په سنه ۲۴ هـ کې خلیفه شو ، ۸۲ کاله عمر یې وو ، دولس کاله یې خلافت وکړو دده لره اسود تجیبي مصري یا کوم بل کس شهید کړو ، او په جنت البقیع کې دفن شو ، په اتلسم ۱۸ د ذي الحجې د جمعې په ورځ سنه ۳۵ هـ کې وفات شو .

﴿۴﴾ **عثمان بن عامر** : دده کنیه ابو قافه ده ، د حضرت ابوبکر صدیق والد محترم دی ، قریشي تیمي دی ، دفتح مکې په ورځ یې ایمان راوړی دی ، په خلافت فاروقي پورې ژوندی وو په سنه ۱۴ هـ کې وفات شو اوه نوی ۹۷ کاله عمر یې وو ددنه ابوبکر صدیق او سماء بنت ابوبکر صدیق روایت کړی دی .

﴿۵﴾ **عثمان بن مظعون** : دده کنیه ابوسائب ده حجمي قریشي دی د. دیارلس (۱۳سړ ونه پس یې اسلام راوړی وو دوه هجرتونه ئی کړی دی غزوه بدر کی شریک وو د جاهلیت په زمانه کی یې هم شراب نه څکل دی په مدینه منوره کې اولنی مهاجر وو چې وفات ئی مدینه طیبه کی دشعبان میاشت کی هجرت پوره دیرش(۳۰) میاشتی تیری شوی وی واقع شو حضور ﷺ د مرګ نه پس په تندی ښکل کړ بیا یې دفن کړو او وې فرمایل ته زمونږ نه مخکې بهترین تلونکی یې . په جنت البقیع کې دفن کړی شو ، لوئی عابد او زاهد وو ، دده نه دده ځوی سائب او دده ورور قدامه بن مظعون روایت کړی دی .

﴿۶﴾ **عثمان بن طلحه** : دا عبدری قریشي حجمي دی ، په سنه (۴۲) هـ کی وفات شو .

﴿۷﴾ **عثمان بن حنیف** : دا دانصاري دی دسهل ورور دی د جبانیه حاکم وو هلته د هغه ځای په کفارو باندې جزیه مقرره کړی وه او حضرت علی رضي الله عنه دبصری حاکم جوړ کړی وو بیا حضرت طلحه او زبیر او ښکلو په کوفه کې اوسیدلو ځکه هغه دواړه جنګ جمل ته راغلې وو ، د امیر حضرت معاویه رضي الله عنه په زمانه کې وفات شو لو ډیر خلکو ترینه روایات نقل کړی دی .

﴿۸﴾ **عثمان بن ابی العاص** : دا ثقفی دی حضور ﷺ د طائف حاکم مقرر کړی وو هلته د حضرت عمر رضي الله عنه تر درو خلافت کې دوه کاله د طائف حاکم وو دی نه پس حضرت عمر رضي الله عنه د طائف نه لری کولو سره د عمان او بحرین عامل ئی جوړ کړو دا په وفد ثقیف کی د حضور ﷺ خدمت ته راغلی وو هغه وخت دده عمر ۲۹ کاله وو په سنه ۲ هـ کې راغلی وو په آخر کې په بصره کې اوسیده او هلته په سنه (۵۱) هـ کی وفات شو

دحضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د وفات نه پس کله چې قبیله ثقیف دمرتد کیدو اراده اوکړله نو ده ورته وویل ای زما قومه ! تاسو د ټولو نه وروسته اسلام قبول کړی دی اوس اولني مرتدان نه جوړیږئ نو هغه خلک دد ې حرکت نه منع شول ، ډیرو تابعینو غیره ترینه روایت کړی دی .

﴿۸﴾ **علی ابن ابی طالب** : دده کنیه ابو الحسن او ابو تراب هم ده قریشي هاشمي دحضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د تره ځوی او زوم دی بعضو ویلي دي چې په سړو کې د ټولو نه اول ده ایمان راوړی دی هغه وخت دده عمر ۱۰ لس کاله یا آته کاله وو بغیر د تبوک نه نورو ټولو غزواتو کې د پیغمبر صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره شریک وو ، غزوه تبوک په وخت کې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د خپل کور انتظام برابرولو دپاره مدینه کې پریخودو ، او وې فرمایل ستا ما سره داسې نسبت دی کوم چې د حضرت هارون عَلَيْهِ السَّلَامُ د موسی عَلَيْهِ السَّلَامُ سره وو ، حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ غنم رنګی غټو سترګو والا وو ، او قد کې یې کموالی وو اتلسم ۱۸ د ذو الحجې د جمعې په ورځ یعنی عین د عثمان غني د شهادت په ورځ عبد الرحمن بن ملجم مرادي په کوفه کې په سنه ۴۰ کې په ده حمله وکړه دری ورځې وروسته وفات شولو ، ده ته حسنینو او عبد الله بن جعفر غسل ورکړو ، امام حسن یې جنازه وکړه د سحر په وخت کې دفن کړی شو ، عمر یې دری شپیته ۶۳ کاله وو خلافت یې څلور کاله نهه میاشتې او یو څو ورځې وو ، دده فضائل بې شماره دي ، دده په کور کې د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ او دحضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په کور کې دده پرورش شوی دی ، دده نسل د مصطفی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اصل دی ، کوفې ته نزدې نجف کې یې مزار دی ، د حضرت علی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه ۸۶ احادیث نقل دي په دې کې شل ۲۰ متفق علیه دي نهه په بخاري کې دي او پنځلس په مسلم کې دي .

**۹ ـ علی بن شیبان** : دا حنفی یمامی دی دده ځوی عبد الرحمن روایات نقل کړي دي .

**۱۰ ـ علی بن طلق** : دا حنفی یمامی دی ده نه سلم بن سلام روایات نقل کړي دي .

**۱۱ ـ عبدالرحمن بن عوف** : دده کنیت ابومحمد دی زهري قریشي دي دی هم عشره مبشره نه یودی دحضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په دعوت ئی اسلام راوړی دی دوه هجرتونو والا دی ټولو غزاګانو کی حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره شریک شوی وو . اوغزوه احد کی ثابت قدم وو په غزوه تبوک کې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په مدینه منوره کې پریخی وو په غزوه احد کې د شلونه زیات زخمونه خوړلي وو ، د خپو د زخمونو د وجې نه ګوډ شوی وو او د فیل د اقعې نه لس کاله وروسته پیدا شوی وو ، او په سنه ۳۲ هـ کې وفات شو دوه اویا ۷۲ کاله عمر یې وو په جنت البقیع کې دفن شو ، ددنه نه وروسته حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ یو رکعات مونځ کړی وو سادګۍ والا وو سپین رنګ یې وو او چتې پوزې والا او مضبوطو اوګو والا وو .

**۱۲ ـ عبد الرحمن بن ابزی** : دا خزاعې دی دنافع بن عبدالحارث آزاد شوی غلام دی په کوفه کې اوسیده اوکړو حضرت علی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دخراسان حاکم مقرر کړی وو په حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ پسې ئی مونځونه کړیوو په کوفه کې وفات شو او هلته دفن شو .

**۱۳ ـ عبدالرحمن بن ازهر** : دا قریشي دعبد الرحمن بن عوف وراره دی د حنین په جنګ کې شریک شوی وو ده نه دده ځوی عبد الحمید دده نه روایات نقل کړی .

**۱۳ ـ عبدالرحمن بن ابی بکر** : دابوبکر صدیق رَضِیَ اللّٰہُ عَنْہُ ځوی دی د بي بي عائشي رَضِیَ اللّٰہُ عَنْہَا خپلورور دی د دواړو مور ام رومان ده دصلح حدیبیه په کال ئی اسلام راوړي وو دحضرت ابوبکر رَضِیَ اللّٰہُ عَنْہُ د ټولو نه مشر ځوی وو . په سنه ۵۳ هـ کې وفات شو ، په مکه مکرمه کې دفن شو .

**۱۴ ـ عبدالرحمن بن حسنه** : دده د مور نوم حسنه دی ، د پلار عبدالله بن مسطاع دی مور ته نسبت سره مشهور دی .

**۱۵ ـ عبد الرحمن بن شرحبیل** : دا د شرحبیل بن حسنه ځوی دی یعني دعبدالرحمن بن حسنه وراره دی صحابي دی دمصر په فتحه کې شریک شوی وو .

**۱۶ ـ عبدالرحمن بن یزید** : دا د یزید بن خطاب ځوی یعني د عمر فاروق وراره دی عدوي قریشي دی دی ده لره دده نیکه ابو لبابه د حضور صَلَّی اللّٰہُ عَلَیْہِ وَسَلَّمَ په خدمت کې حاضر کړی وو پیغمبر صَلَّی اللّٰہُ عَلَیْہِ وَسَلَّمَ د هغه تحنیک وکړو ، (خوږ شئ یې ورکړو ) او دهغه په سر یې لاس ووهلو او د برکت دعاء یې ورته وکړه کله چې دا د شپږو کالو شو نو حضور صَلَّی اللّٰہُ عَلَیْہِ وَسَلَّمَ وفات شولو د حضرت عمر رَضِیَ اللّٰہُ عَنْہُ نه یې روایت کړی دي د عبد الله بن زبیر په زمانه کې وفات شو ، د عبد الله بن عمر رَضِیَ اللّٰہُ عَنْہُ نه مخکې .

**۱۷ ـ عبدالرحمن بن سرمة** : دا قریشی دی دمکی دفتحې په ورځ ئی ایمان راوړلو اودحضور صَلَّی اللّٰہُ عَلَیْہِ وَسَلَّمَ سره اوسیده دده شمار په بصري والاو کې شوی ده ، هلته وفات شو په سنه (۵۱۹ هـ کې . څه خلکو دهغه نه روایت کړی دی .

**۱۸ ـ عبدالرحمن بن سهل** : انصاری دی غزوه خیبر کی شهید شوی د قسامت واقعه دده سره تعلق لري بعض خلک وایې دا په غزوه بدر کې شریک وو ، لوی علم او فاضل وو ، سهل بن ابي حثمه دده نه روایت کوي

**۱۹ ـ عبدالرحمن بن شبل** : داعبدالرحمن ابن شبل انصاري دی اهل مدینه کې شمار دی .

**۲۰ ـ عبدالرحمن بن عثمان** : دا تیمي قریشي دی دطلحه بن عبید الله رَضِیَ اللّٰہُ عَنْہُ ورراره دی صحابي دی ددنه کوم روایت ندی نقل شوی .

**۲۱ ـ عبدالرحمن بن ابی قراد** : اسلمي دی اهل حجازو کې شمیرلی شي .

**۲۲ ـ عبدالرحمن بن کعب** : کنیت ئی ابولیلی دی مازني انصاري دی غزوه بدر کی شریک شوی دی په سنه (۲۴)هـ کی وفات شو . دده باره کې داآیت نازل شوی ﴿ **تَوَلَّوْا وَّأَعْيُنُهُمْ تَفِيضُ مِنَ الدَّمْعِ حَزَنًا أَلَّا يَجِدُوا مَا يُنفِقُونَ** ﴾.

**۲۳ ـ عبدالرحمن بن یعمر** : دا دیلمي دی صحابي دی خراسان ته تللی وو او په کوفه کې اوسیده

**۲۴ ـ عبدالرحمن عائش** : داحضرمي دی شامیانو کې شمیرلی شی دده صحابی کیدو کې اختلاف دی حقه خبره داده چې دده هیڅ مرفوع حدیث نقل ندی دده روایات مرسل دي .

**۲۵ ـ عبدالرحمن بن ابی عمیره** : دا قريشي دی ، شامي دی دده صحابيت يقين سره ثابت ندی ، مصطرب الحديث دی .

**۲۶ ـ عبدالله بن ارقم**:دا زهري قريشي دی دمکی دفتحې په کال ئی.اسلام راوړی وو دحضور صَلَّى ٱللَّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ کاتب ودی نه پس دحضرت ابوبکرصديق رَضِيَ ٱللَّٰهُ عَنْهُ او حضرت عمرفاروق رَضِيَ ٱللَّٰهُ عَنْهُ کاتب و حضرت عمر رَضِيَ ٱللَّٰهُ عَنْهُ بيت المال باندی حاکم جوړ کړی وو او حضرت عمر رَضِيَ ٱللَّٰهُ عَنْهُ نه پس حضرت عثمان رَضِيَ ٱللَّٰهُ عَنْهُ هم بيا په خلافت عثماني کې يې استعفاء ورکړی وه او په همدې خلافت عثماني کې وفات شولو .

**۲۷ ـ عبدالله بن ابی اوفی** رَضِيَ ٱللَّٰهُ عَنْهُ: دده پلاره ابوفی نوم يې علقمه بن قيس اسلمي دی صلحه حديبيه او غزوه خيبر اودی نه وروستو غزواتو کې شريک شوی دی او د حضور صَلَّى ٱللَّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تر مگ پورې په مدينه کې اوسيده بيا کوفي ته لاړو په کوفه کې آخري صحابي وو چې کوفه يې په مرگ سره د صحابو نه خالي شوه او ه اتيا ۸۷ کاله عمر يې وو امام شعبي وغيره ترينه روايات کړي دي

**۲۸ ـ عبدالله بن انیس** : دا جهني انصاري دی غزوه احد اودی نه وروستو غزواتو کې شامل شوی وو په سنه(۵۴)ه کی په مدينه کې وفات شولو .

**۲۹ ـ عبدالله بن بسر** : سلمي مازني دی ده ته دده مور پلار ته اودده ورور عطيه ته اودده خور يي (صماد) ټول صحابه وو په شام کی اوسيده او مقام حمص کی په سنه(۸۸)ه کی وفات شولو . ناڅاپه د اودس کولو په حالت کې وفات شولو په شام کې آخري صحابي وو چې په مرگ سره شام د صحابو نه خالي شو ، بعضو ويلي دي چې هلته آخري صحابي ابو امامه وو

**۳۰ ـ عبدالله بن عدی** : دا قريشي زهري دی اهل حجازو نه شميرلی شي دقديه او عسفان مينځ کی اسيدو .

**۳۱ ـ عبدالله بن ابی بکر** : دا دابوبکر صديق رَضِيَ ٱللَّٰهُ عَنْهُ ځوی دی طائف کې حضور صَلَّى ٱللَّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره شريک شوی وو په دغه غزوه کې ابو محصن دی په تير ويشتلی وو ، دحضرت ابوبکر رَضِيَ ٱللَّٰهُ عَنْهُ په دور خلافت کې په سنه(۱۱)ه کی دشوال په مياشت کې شهيد شولو دی د اولنو الاسلام راوړونکو کې نه وو .

**۳۲ ـ عبدالله بن ثعلبه** : دا مازني عدوي دی د پيغمبر صَلَّى ٱللَّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د هجرت نه څلور کاله مخکې پيدا شو په سنه(۸۹)کی وفات شو دفتحې په کال يې د حضور صَلَّى ٱللَّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زيارت اوکړو حضور صَلَّى ٱللَّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دده په مخ لامبارک راښکلو .

**۳۳ ـ عبدالله بن جحش** : دا اسدي دی د د امر المؤنين زينب بنت جحش ورور وو ، دحضور صَلَّى ٱللَّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دار ارقم ته تلو نه مخکې يې ايمان راوړی وو .دوه هجرتونه يې کړي وو او مقبول الدعوات وو غزوه بدر کې شريک وو او احد کی شهيد کړی شو ،اول ده غنيمت په پنځو حصو کې تقسيم کړو يوه حصه د حضور صَلَّى ٱللَّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لپاره او څلور حصې د مجاهدينو لپاره ، په قرآن کې دده تائيد راغی ، (**وَاعْلَمُوا أَنَّمَا غَنِمْتُمْ مِنْ شَيْءٍ فَأَنَّ لِلَّهِ**

خُمُسَهُ الخ) دا چې په کومه سریه کې تللی دی په هغه کې یې د غنیمت پنځمه حصه د حضور صَلَّى ٱللَّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د پاره واخستله. ده لره ابو الحکم بن اخنس شهید کړی وو په داسې حال کې چې عمر یې د څلویښتو ۴۰ کالو نه زیات وو د احد په میدان کې د حضرت حمزه رَضِيَ ٱللَّٰهُ عَنْهُ په یو قبر کی دفن کړی شو.

**۳۴ـ عبدالله بن ابی الحمساء** : دا عامري دی صحابي دی او په بصریانو کې شمار دی.

**۳۵ـ عبدالله بن ابی الجدعا** : دا تمیمي دی عبد الله بن شقیق ترې روایات آخستې دي او په بصریانو کې شمار دی.

**۳۶ـ عبدالله بن جعفر** : دا د جعفر بن ابی طالب ځوی دی ده مور اسماء بنت عمیس ده، او په حبشه کې پیدا شوی دی. او په حبشه کې په مسلمانانو کې اول دا پیدا شوی دی ده عمر ۹۰ کاله وو په سنه (۸۰) هـ کې په مدینه کی وفات شو ډیر لوی سخی وو ده لقب بحر الجود وو، لوی خوش طبع او صبر ناک وو، بعضو ویلي دي چې په اسلام کې داسې سخې ندی پیدا شوی.

**۳۷ـ عبدالله بن جهم** : دا انصاري دی ده نه بسر بن سعید ترینه روایات کړي دي د ابی جهم په کنیه سره مشهور وو د جیم په تخته ده ذکر تیر شوی دی

**۳۹ـ عبدالله بن جزء** : ده کنیت ابو الحارث سهمي دی په غزوه بدر کې شریک شوی وو په آخر کې په مصر کې اوسیدو په سنه (۸۵) هـ کی په مصر کی وفات شو.

**۴۰ـ عبدالله بن حبشي** : دا حبشي خثعمي دی په اهل حجازو کې شمیرلی شی په مکه کې اوسیدو.

**۴۱ـ عبدالله بن ابی حدرد** : ده د پلار نوم سلامة بن عمرو دی کنیه یې ابو حداد سلمي ده، په صلح حدیبیه کې شریک شوی وو بیا په خیبر او نورو غرواتو کی شریک شوی وو، په سنه ۷۱ هـ کې وفات شو.

**۴۲ـ عبدالله بن حنظله** : دا انصاري دی ده والد غسیل الملائکه دی ده ته فرشتو غسل ورکړی وو، عبدالله د حضور صَلَّى ٱللَّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په زمانه کې پیدا شوی وو د حضور صَلَّى ٱللَّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د وفات په وخت کې د اوو کالو وو دا د انصارو سردار وو د یزید په مقابله د مدینه والاو ده سره بئعت وکړو په دي وجه د حري په فنه کې په سنه ۶۳ هـ کی شهید شو.

**۴۳ـ عبدالله بن حوله** : دا ازدي دی د شام کی اوسیدونکی دی په سنه (۸۰) هـ کی په شام کې وفات شو

**۴۴ـ عبدالله بن خبیب** : دا جهني دی د انصارو حلیف وو حجازي صحابي دی.

**۴۵ـ عبدالله بن رواحه** : دا خزرجي انصاري دی د انصارو مشر (نقیب) وو په بیعت عقبه کې شریک شوی وو، بیا نورو غزاګانو کې بدر، احد، خندق وغیره کې هم شریک شوی وو. د غزوه مؤته کې په سنه (۸) هـ کې امیر وو او شهید شو، دا لوئ شاعر وو، حضور صَلَّى ٱللَّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به ده اشعار په شوق سره اوریدل مشهور صحابي دی.

**۴۶ـ عبدالله بن الزبیر** : ده کنیت ابوبکر دی اسدي قریشي دی ده حضور صَلَّى ٱللَّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ده ته ده د نیکه

ابوبکرصدیق کنیه ورکړه ، او نوم یې ورله عبد الله کیخودو ، دا په مهاجرینو کې په اسلام کې د ټولو نه اولنی ماشوم پیدا شو په سنه ۱ هـ کې ابوبکر صدیق ورته په غوږ کې اذان وکړو په مقام قباء کې د اسماء بنت صدیق د خیټې نه پیدا شو هغه د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خدمت کې حاضر کړو په کجورو یې ورته تحنیک وکړو د هغه خیټې ته د ټولو نه مخکې د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لاړې ورسیدې او دبرکت دعا یې ورته وکړه ، دده په سر او مخ باندې ویختان نه وو ، د روژو او منځونو ډیر عادې وو ، دده پلار حضرت زبیر وو . مور یې بنت صدیق . نیکه صدیق . نیا صفیه د پیغمبر صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ترور او خاله حضرت عائشه صدیقه دې ، د ۶۴ کالو په عمر کې په سنه ۶۴ هـ کې دده په لاس خلکو بیعت وکړو ، حجاج بن یوسف په مکه کې ۱۷ د جمادي الآخر په سنه ۷۳ هـ کې شهید کړو ، په سنه ۶۴ کې ورسره د خلافت بیعت کړی وو د حجاز ، یمن ، عراق ، خراسان ، او غیره مسلمانانو دده سره بیعت کړی وو بغیر د شام د خلکو نه ، په خپل دور خلافت کې یې خلکو ته آته حجونه کړې وو .

**۴۷ـ عبدالله بن زمعه** : دا قریشي اسدي دی مدینی والو کې شمار دی .

**۴۹ـ عبدالله بن زید** : دا د زید بن عبدربه ځوی دی انصاري خزرجي دی بیّت عقبه ، بدر ، او دې نه وروسته په ټولو غزاګانو کې شریک شوی وو ، دده شمار په مدینې والاو کې دی : اسلامي اذان دده په خوب کې ورکړی وو د څلور شپیتو ۶۴ کالو په عمر په مدینه منوره کې وفات شو .

**۵۰ـ عبدالله بن زید بن عاصم رضی الله عنه** : دا انصاري دی مزنې دی په غزوه بدر کې شریک شوی نه وو غزوه احد کې شریک شو د وحشي بن حرب په ملګرتیا کې مسلیمة الکذاب قتل کړی وو ، دا په سنه ۶۳ هـ کې په حره کې شهید شوی دی .

**۵۱ـ عبدالله بن السائب** : دا قریشي مخزومي دی ده نه مکی والا و قرأت زده کړی دی دابن زبیر د شهادت نه مخکې په مکه کې وفات شولو او په مکه والاو کې شمار دی .

**۵۲ـ عبدالله بن السائب** : دا قریشي مخزومي دی ده نه مکی والا و قرأت زده کړی دی دابن زبیر د شهادت نه مخکې په مکه کې وفات شولو او په مکه والاو کې شمار دی .

**۵۳ـ عبدالله بن سرجس** : دا مزنې بصري دی دده احادیث په بصره والاو کې مشهور دی .

**۵۴ـ عبدالله بن سلام** : دده کنیت ابو یوسف دی اسرائیلي وو دیوسف بن یعقوب علیه السلام داولاد نه وو او دبني عوف بن خزرج حلیف وو د بني اسرائلو عالم وو حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دده دجنتې کیدو ګواهي کړې وه دده دوه ځامن یوسف او محمد او غیره دده نه روایت کوی په مدینه کې په سنه ۴۳ هـ کی وفات شو ، دده ډیر فضائل دي او دده په باره کې آیتونه هم نازل شوې دي .

**۵۵ـ عبدالله بن سهل** : انصاري حارثي دی دعبدالرحمن وْرور او دمحیصه وراره دی په خیبر کې قتل کړی شوی وو واقعه یې مشهور ده ، حدیث قسامة کې دده ذکر راغلی دی .

**۵۶ـ عبدالله بن اشخیر** : دا عامري دی دقبیله بني عامر په وفد کې دا هم وو کوم چې د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

په خدمت کې حاضر شوی وو

**۵۷ـ عبدالله بن الصنابحی** : دده نوم ابو عبد الله دی بعضو دا په صحابو کې شمار کړی دی لیکن قوي داده چې صنابحي صحابي دی لیکن دده ځوی عبد الله تابعي دی

**﴿۵۸﴾ عبدالله بن عامر** : دا دعبد الله بن کریز ځوی دی او قریشي دی د حضرت عثمان رضي الله عنه دماما ځوی دی دحضور صلی الله علیه وسلم زمانه کی پیدا شوي دی. حضور صلی الله علیه وسلم ورته خپلې لاړې لګولي وې او دعا یې ورته کړې وه. د حضور صلی الله علیه وسلم د وفات په وقت کې دا د دیارلسو ۱۳ کالو وو ، کوم حدیث ترینه نقل شوی نه دی حضرت عثمان د بصرې او خراسان حاکم مقرر کړی وو د عثمان د شهادت پورې هلته حاکم وو د امیر معاویه په وقت کې یې اتعفاء ورکړه لوئ سخي وو د خراسان فاتح همدا وو ، دده په ولایت (مشری) کې کسری قتل کړی شو ، ده دبصرې نهر کنستلی وو ، د فارس ډیر ښارونه لکه خراسان اصفهان خلوان کرمان د فارس اطراف او اکثر افغانستان ده فتح کړې وو په سنه (۵۹) هـ کې وفات شو دده ډیر فضائل دي.

**﴿۵۹﴾ عبدالله بن عباس** رضي الله عنه: دحضور صلی الله علیه وسلم د تره ځوی دی دده مور لبابه بنت حارث ده یعني دبی بی میمونه رضي الله عنها ام المؤمنین خور ده هجرت نبوي نه دری کاله مخکی پیدا شوی دحضور صلی الله علیه وسلم د وفات په وخت دده عمر دیارلس ۱۳ کاله وو پیغمبر صلی الله علیه وسلم ورته د علم او حکمت دعا کړې وه ، دده لقب حبر الامة دی یعني د مسلمانانو لوی عالم ، دا ډیر حسین او لوی عالم فقیه ، مجتهد وو د حضرت عمر رضي الله عنه خپل خاص مشیر جوړ کړی وو ، په خبره کې به یې د جلیل القدر صحابو سره دده نه هم مشهوره آخسته په آخر کې نابینا شو په سنه ۶۸ هـ کې په طائف کې وفات شو ، یو اویا ۷۱ کاله عمر یې وو دده نه ډیرو خلکو آحادیث آخستې دي

**﴿۶۰﴾ عبدالله بن عمر** رضي الله عنه: دا قریشي عدوي دی ، د عمر فاروق ځوی دی د خپل پلار سره یې په مکه معظمه کې ایمان راوړی وو ، په بدر کې د ماشوم والي په وجه شریک نه شو ، او حقه خبره داده چې په احد کې هم پیغمبر صلی الله علیه وسلم د ماشوم والي په وجه شریک نه کړو ، په غزوه خندق کې شریک شوی وو ، په غزوه احد کې څوارلس ۱۴ کلن وو ، لوی عابد زاهد او محتاط او متبع سنت وو ، جابر رضي الله عنه فرمایې مونږ خلک دنیا ځانته راغب کړو سیوا د عبد الله بن عمر نه ، میمون بن مهران وایې ، ما د ابن عمر پشان متقي او د ابن عباس په شان عالم ندی لیدلی ، حضرت نافع وایې ، ابن عمر دزرو ۱۰۰۰ نه زیات غلامان ازاد کړي وو ، د ظهور نبوت نه یو کال مخکې پیدا شو ، او په سنه ۷۳ هـ کې په د ابن زبیر دقتل نه دری میاشتې وروسته وفات شو ، دده وصیت دا وه چې په حل کې یې خښ کړئ لیکن حجاج داسې ونه کړل بلکه هغه یې په (ذي طوی) کې دفن کړو د مهاجرینو په قبرستان کې یې دفن کړو دده د وفات واقعه داسې ده چې یو ځل حجاج د جمعې خبطه اوګده کړه ده ورته وویل : چې نمر ستا انتظار نه کوي هغه ورته وویل زه غواړم ستا سر پرې کړم ده ورته وویل که ته داسې غواړې نو کولی یې شې ځکه ته یو احمق یې ، کوم چې په مونږ مسلط شوی یې ، همدارنګه د حج په موقع د عرفې په ورځ د حجاج نه مخکې لاړو او عرفات کې د حضور صلی الله علیه وسلم د ودریدو په ځای ودریدو ، پدې وجهاتو حجاج دده سره کینه وساتله ، ده یو کس ته وویل چې ابن عمر په زهریله نیزه باندې وهېپه لاره تلو چې ددې نه دده مرګ واقع شو ، څلوریا شپږ آتیا کاله

عمر يې وو، دده نور ډير فضائل هم شته.

**۶۱ـ عبدالله بن عمرو بن العاص** : دا سهمي قريشي دی ده خپل پلار نه مخکی اسلام راوړو. پلار تری دیارلس کاله مشر و دا لوی عابد، عالم او حافظ وو حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه ئی داحادیثو لیکلو اجازت او غوښتلو. نو اجازت ئې ورکړلو. دوفات باره کې لوی اختلاف دیچې دده وفات په سنه ۶۳ ه کې شوی دی یا په سنه ۷۳ ه کې شوی دی یا په سنه ۶۷ ه کې په مکه کې وفات شوی دی او که په سنه ۵۵ ه کې په طائف کې یا په سنه ۶۵ ه کې په مصر کې وفات شوی دی یعلی بن عطاء دخپلی مور نه روایت کړی دی چې ما به عبدالله بن عمرو بن العاص دپاره سرمه (رانجه) تیارول ددې دپاره چې وي لګوي او اوده شي هغه به چراغ مړه کړو او د الله د ویري به ئی ژړل تر دي چې سترګې به ئی اوپړسیدي یعني خرابې به شوې.

**۶۲ـ عبدالله بن مسعود** رَضِيَ اللهُ عَنْهُ: دده کنیت ابو عبدالرحمن دی هذلي دی د پخوانو مؤمنانو نه دی دحضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه يې لږ مخکې ایمان راوړی وو. دا شپږم صحابي دی د ده مخکې پنځه کسانو ایمان راوړی وو د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خاص خادم وو، دحضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صاحب سرّ وو په سفر کې به د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ پیزار، مسواک او د اودس اوبنی دده سره وو، بدر وغیره ټولو غزواتو کې شریک شوی وو، حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دده د جنتي کیدو ګواهي ورکړي وه، داسې يې ويلي وو (**رضيت لامتي مارضي لها ابن ام عبد وسخطت لها ما سخط لها ابن ام عبد**) يعني دابن مسعود زه د خپل امت لپاره هغه څیز خوښوم کوم چې ابن مسعود يې خوښوي، او هغه څیز ورله خوښوم کوم چې ورله ابن مسعود نه خوښوي، په اخلاقو عاداتو او کردار کې د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره مشابه وو ورکوټي قد والا وو او غنم رنګ وو، د حضرت عمر په زما نه کې بلکه خلافت عثماني کې هم د کوفي حاکم وو، بیا د بیت المال محافظ وو، بیا مدینې منورې ته راغی هلته په سنه ۳۲ ه کی وفات شولو. او عمر يې د شپیته ۶۰ کالو نه زیات وو، خلفاء راشدینو تري آحادیث نقل کړي دي

**۶۳ـ عبدالله بن قرط** : ازدي عثماني دی دده نوم مخکی شیطان وو حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دده نوم عبدالله کیښودلو. شامیانو کې شمیرلی شي دعبیده بن جراح دطرف نه دحمص امیر وو په سنه ۵۶ ه کې شهید کړی شو.

**۶۴ـ عبدالله بن غنام** : دا بیاضي دی په اهل حجاز کی شمیرلی شي.

**۶۵ـ عبدالله بن مغفل** رَضِيَ اللهُ عَنْهُ: دا مزني دی او په بیعت الرضوان کې شریک وو او په مدینه کې بیا په بصره کې اوسیده دا دهغه یو لسو کسانو نه وو چې حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ بصری ته د فقه د تعلیم لپاره لیږلي وو، دا په بصره کی سنه ۶۰ ه کې وفات شولو دده نه خواجه حسن بصری روایت اخستي دي حسن بصري فرمایې په بصره کی دده نه څوک افضل نه وو.

**۶۶ـ عبدالله بن هشام** : دا قریشي تمیمي دی په اهل حجاز شمارلی شي په ماشوم الي کې دده مور دی د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خدمت کې راوړی وو حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ پړی خپل لاس مبارک راښکلو او دعائی ورته او کړله او د ماشوم والي په وجه ئی بیعت ترنه وانه خستلو.

**۶۷ـ عبدالله بن يزيد** : دا خطمي انصاري دی په صلحه حديبيه کې (۱۷) کلن وو او پکې شريک هم وو. دحضرت عبدالله بن زبير رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په دور خلافت کی دکوفي ګورنر وو او دهغه زمانه کې په کوفه کې وفات شو امام شعبي دده کاتب وو .

**۶۸ـ عاصم بن ثابت** : دده کنيت ابوسليمان دی انصاري او بدري دی درجيع په جنګ کې چې کله بنو لحيان ده لره شهيد کړو نو په مچو باندې دده د جسد حفاظت وکړی شو ، دا د عاصم بن عمر بن خطاب نيکه دی ، دده د قتل مختصر واقعه داده ، حضور صلی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دلسو کسانو يو جماعت وليږلو . چې دهغې امير دا عاصم بن ثابت جوړ کړی شو دا کسان چې کله دمکې معظمې او غسفان ته شول نود بولحيان دوه سوه ۲۰۰ کسانو د کجورو د زړو نه د هغوی پته ولګوله و لکه چې دغه جماعت ته پته ولګيده چې مونږ راګير شو نو يو هوار ځای ته يې پناه وخسته کفارو ورته وويل مونږ ته ځان حواله کړئ تاسو ته آمان دی ، عاصم وويل زه د کفارو په آمان باندې مطمئن نه يم ، الله جَلَّ جَلَالُهُ حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زمونږ خبر کړه ! د کفارو په غشو سره عاصم د اوو ملګرو سره شهيد شو حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په مدينه منوري کې صحابه کينول او ددې واقعې نه يې خبر کړل : کله چې کفارو ته پته ولګيده چې عاصم شهيد شوی دی نو يو کس يې وليږلو چې د عاصم د بدن نه يوه حصه کټ کړي ، الله تعالی يې د حفاظت لپاره د شهدو مچې راوه ليږلې هيڅ کافر ورته رسيدی نه شو ، پوره واقعه په بخاري کې ده

**۶۹ـ عامر الرام** : حق دادی چې دا صحابي دی ، يونيم روايت نقل دی رام په اصل کې رامې دی د تير ويشتونکي په معنی سره دی.

**۷۰ـ عامر بن ربيعه** : دده کنيت ابوعبدالله ده غزي دی دوه هجرتونه يې کړي وو غزوه بدر او نورو تمامو غزاګانو کی شريک وو پخوانی مؤمن دی ، په سنه ۳۲ هـ کې وفات شولو .

**۷۱ـ عامر بن مسعود** : دا دمسعود بن اميه بن خلف حجمي ځوی دی يعني د اميه لمسی دی د صفوان بن اميه وراره دی . حق داده چې دا تابعې دی ترمذی ترينه يو مرسل حديث په كتاب الصوم کې نقل کړی او ابن منده او ابن عبدالبر دی صحابي منلی دی او ابن معين وايې چې دا تابعي دی .

**۷۲ـ عائذ بن عمرو** : دا مدني دی په بيعت الرضوان کې شريک شوی وو په آخر کې په بصره کې اوسيدو

**۷۳ـ عباد بن بشر** : دا انصاري دی دسعد بن معاذ اسلام راوړلو نه قبل ده مدينه کی اسلام راوړی او تمامو غزواتو کی شريک وو . دکعب بن اشرف يهودی په قتل کې شريک وو ، دفضلاؤ صحابو رضی الله عنهم نه دی .

**۷۴ـ عباد بن عبدالمطلب** : په غزوه بدر کې شريک شوی وو دده نه کوم حديث ندی نقل شوی .

**۷۵ـ عبادة بن صامت** : دده کنيت ابوالوليد دی انصاري سالمي دی دی د انصارو نقيب (مشر) وو دعقبې په دواړو بيعتونو کې شريک وو بيا د بدر وغيره ټولو غزواتو کې هم شريک وو بيا حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ شام کی قاضی او معلم مقرر کړلو .

په حمص کې مقيم وو دی نه پس ده فلسطين ته لاړو . په رمله او يا په بيت المقدس کی وفات شولو عمر ئې په سنه

۲۴ هـ کی ۷۲ کال وو . دا يو مشهور صحابي دی .

**۷۶ ـ عباس بن عبدالمطلب** رضي الله عنه: دا د حضور صلی الله علیه وسلم تره دی حضور صلی الله علیه وسلم نه دوه کاله مشر وو دده مور دنمر بن قاسط د قبيلي يوه ښځه وه ، دا اولیی هغه بي بي ده چې خانه کعبې ترې اعلی درجه غلافونه وغیره واغوستل ځکه چې يو ځل حضرت عباس ورک شوی وو دې نذر ومنلو خدايه ! که زما ځوی پيدا شو نو زه به خانه کعبې ته بهترین غلاف واغوندم ، د جاهلیت په زمانه کې عباس رضي الله عنه د خانه کعبې خادم وو ، حاجيانو ته يې د زمزم اوبه ورکولې او د کعبې آباد وونکی وو ، کوم کس چې به طواف کعبې لره راتلو نو د طهارت او تقوی بيعت به يې ترې آخستو ، ده د خپل وفات په وخت کې اويا ۷۰ غلامان آزاد کړې وو ، د فيل د واقعې نه مخکې پيدا شوی وو ، ۸۸ اته اتيا کاله عمرېې وو ، د جمعې په ورځ دولسم ۱۲ رجب په سنه ۳۲ هـ کی وفات شو . په جنت البقيع کې دفن شو ، دی پخوانی مسلمانان وو خو خپل اسلام ئی ساتلی وو ، دبدر معرکه کې کفارو په زور له ځان سره بولی وو حضور صلی الله علیه وسلم اعلان وکړو چې عباس قتل نه کړی هغه په زور راوستل شوی دی ، په دغه غزوه کې ابو اليسر يعني كعب بن عمر هغه قيد کړلو حضرت عباس رضي الله عنه دخپل نفس فديه ورکړله او مکی ته واپس شو دی نه پس يې مدينې ته مهاجر راغی . پيغمبر صلی الله علیه وسلم د مکې لپاره تلو او عباس مدينې ته راتلونکی وو په لاره کې يې ملاقات وشو ، حضور صلی الله علیه وسلم وفرمايل عباس خاتم المهاجرين يعنی آخري مهاجر دی ، په جنت البقيع کې يې قبر دی د فاطمة الزهراء سره .

**۷۷ ـ عباس بن مرداس** : دده کنيت ابو الهيثم دی سلمی دی لوئ شاعر وو ، دمکی دفتحی نه لږ مخې ئی ايمان راوړی وو ، اول په مؤلفة القلوب کې وو بيا پوره مؤمن شو ، د جاهليت په زمانه کې يې هم شراب ندی ځکلی

**۷۸ ـ عبدالمطلب بن ربيعه** : دا ربيعه بن الحارث بن عبد المطلب د هاشم ځوی دی قريشي دی مدينه کې اوسيدو ، بيا دمشق ته لاړلو . او هلته سنه ۶۲ هـ کې وفات شو .

**۷۹ ـ عبدالله بن محصن** : انصاري خطمي دی اهل مدينه کې شمار دی .

**۸۰ ـ عبيد بن خالد** : دا سلمي بهزي دی مهاجر دی په کوفه کې اوسيدلو .

**۸۱ ـ عتاب بن اسيد** : قرشي اموي دی دمکي دفتحي په ورځ يې اسلام راوړلو . حضور صلی الله علیه وسلم په دغه کال دمکې معظمې حاکم مقرر کړو ، يعني د حنين د روانګې په وخت کې . د حضور صلی الله علیه وسلم د وفات تروخته پورې د مکې حاکم وو خلافت صديقي هم په دغه عهد وو په سنه ۱۳ هـ کې خاص د ابوبکر صديق اکبر د وفات په ورځ ، په مکه معظمه کې وفات شو دا دقريشو د سردارانو نه وو .

**۸۲ ـ عتبه بن اسيد** رضي الله عنه: دده کنيت ابو بعير دی ثقفي دی دبني زهره حليف دی اولنی ايمان راوړونکی دی غزوه حديبيه کې دده ذکر راغلی دی حضور صلی الله علیه وسلم دده متعلق اوفرمائيل دا جنګ راپورته کونکی دی ، قصه يې مشهوره ده د حضور صلی الله علیه وسلم په زمانه کې وفات شو .

**۸۳ ـ عتبه بن عبد السلمی** : بعضو ويلي دي چې دده نوم عتبه بن نذر دی بعضو ويلي [illegible]

دي، دده نوم عقله وو حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ورباندې عقبه کیخودو د خیبر په غزوه کې شریک شوی څلور نوي ۹۴ کاله عمر یې وو په سنه ۷۸ هـ کې په حمص کې وفات شو دواقدي وایي دا په شام کې آخري صحابي وو چې په وفات یې شام د صحابو نه خالي شو.

**۸۴ـ عتبه بن غزوان** : دا مازني دی قدیم پخوانی مؤمن دی اول حبشې ته او بیا مدینې ته یې هجرت کړی وو، په جنګ بدري وغیره کې شریک وو دا اوم مسلمان دی حضرت عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ د بصري عامل مقرر کړی وو، ده د بصري بنیاد ایخی وو، بیا حضرت عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ ته راغی هغه واپس ولیږلو کورنریې جوړ کړو، لار کې وفات شو، او ه پنځوس ۵۷ کاله عمر یې وو، په سنه (۱۵) هـ کی د وفات شولو.

**۸۵ـ عداء بن خالد** : دا د خالد بن هوذه ځوی دی عامري دی د مکې د فتحی نه پس ئی ایمان راوړلو او په بانده کې اوسیده. د بصرې والا و کې دده احادیث مشهور دي.

**۸۶ـ عدی بن حاتم** : دا د حاتم طائي (مشهور سخې) ځوی دی په شعبان سنه ۷ هـ کی حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته راغی او په کوفه کې اوسیدلو جنګ جمل کې د حضرت علی رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ سره وو او په جنګ کې یې یوه سترګه هم تلې وه، د جنګ صفین او نهروان جنګونو کې هم شریک شوی وو د ۱۲۰ کالو په عمر په سنه ۶۷ هـ کې وفات شولو. بعضو ویلي دي چې فرفیسا مقام کې وفات شو.

**۸۷ـ عدی بن عمیر** : دا کندي حضرمي دی په کوفه کې ئی سکونت وو بیا جزیر ته منتقل شو او هلته وفات شو.

**۸۸ـ عرباض بن ساریه** : دده کنیت ابو نجیح سلمي دی اهل صفه نه وو شام کې په سنه ۷۵ هـ کې مشهور صحابي دی.

**۸۹ـ عرفجه بن اسعد** : دا هغه دی چې حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ورته ویلي وو چې د سپینو زرو پوزه ولګوه، بیا ورته وفرمایل د سرو زرو ولګوه د کلاب جنګ کې دده پوزه ضائع شوی وه.

**۹۰ـ عروفه بن ابی الجعد** : دا بارقي دی د باروق قبیلې سره یې تعلق دی حضرت عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ د کوفي حاکم مقرر کړی و.

**۹۱ـ عروه بن مسعود** : صلح حدیبیه کې د کفر په حالت کې د کافرو د طرف نه راغلی وو په سنه ۹ هـ کې کله چې حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د طائف نه واپس راغی نو د حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خدمت کې حاضر شو. ایمان یې راوړو د هغه په نکاح کې ډیرې ښځې وې حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ورته وویل د وی نه څلور ۴ ښځی ځان د پاره اختیار کړه نورې پریږده بیا یې د حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه د واپس تلو اجازت اوغوښتلو دی واپس شو او خپل قوم ته ئی د اسلام دعوت ورکړو لیکن قوم دده خبره و نه منله انکار یې وکړو هر کله چې د سحر د مونځ وخت شو. نو د خپل کور چت ته او ختلو او آذان ئی او کړو او کلمه د شهادت یې په اوچت اواز سره اویله نو یو ثقفي په تیر اوویشتلو. شهید ئی کړلو حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ چې کله ددې خبر ورکړی شو نو وې ویل عروه د سورة یاسین والا په شان دی هغه هم

د خپل قوم طرف ته دعوت کړی وو په دغه وجه قتل کړی وو.

**۹۲ـ عطیه بن قیس** : دا سعدي دی صحابي دی، په یمن او شام کې دده احادیث مشهور دي.

**۹۳ـ عطیه بن بسر** : دا مازني دی د عبدالله بن بسر ورور دی ده نه یو حدیث د کوچو او شهدو متعلق نقل دی حضرت مکحول دده نه روایت کړی دی.

**۹۴ـ عطیه القرظی** : دا د بنو قریضو د بندیانو نه دی دده د پلار نوم معلوم نه دی، او صحابي دی.

**۹۵ـ عقبه بن رافع** : دا قرشي دی افریقه کې شهید کړی شوی دی په سنه ۶۳ ه کې حریر ده لره قتل کړی دده ذکر د تعبیر الرؤیا په احادیثو کې راغلی دی.

**۹۶ـ عقبه بن عامر** : دا جهیني دی د حضرت معاویه د طرف نه د عتبه بن ابی سفیان نه پس د مصر امیر وو بیا حضرت معاویه معزول کړو په سنه ۸۵ ه کې په مصر کې وفات شولو ده نه یو څو صحابو او ډېر تابعینو احادیث نقل کړي دي.

**۹۷ـ عقبه بن الحارث** : دا قریشي دی د مکې د فتح په ورځ ئې ایمان راوړی مکی دا په مکې والاو کې شمار دی.

**۹۸ـ عقبة بن عمرو** : دده کنیه ابو مسعود ده دده ذکر به د میم په تخته کې راشي.

**۹۹ـ عکاشه بن محصن** : اسدی دی د بنی امیه حلیف وو جنګ بدر کې شریک شوی وو ډېر تکلیفونه یې برداشت کړي وو روسته په ټولو غزاګانو کې شریک شوی و په بدر کې یې توره ماته شوه نو د حضور ﷺ ده ته په لاس کې د کجورې لخته ورکړه د هغې نه توره جوړه شوه، په خلافت صدیقي کې په افضلو صحابو کې شمار وو، ۵۴ کاله عمر یې وو دده خور ام قیس او نورو ډېرو صحابو دده نه روایات نقل کړی دي، دده لوی ناشنا واقعات مشهور دي دا په هغه حضراتو کې دی چې جنت ته به بې حسابه ځي، د مسیلمة الکذاب مرتدینو دی شهید کړو.

**۱۰۰ـ عکرمه بن ابی جهل** رضي الله عنه : دا د عمرو بن هشام مخزومي قریشي یعني د ابو جهل ځوی دی دده او د ابو جهل د پیغمبر ﷺ سره سخت عداوت وو. او دی مشهور شهسوار وو د مکی د فتحی په ورځ یمن ته تښتیدلی و بیا دده ښځه ام حکم بنت حارث د حضور ﷺ خدمت کې حاضره کړو. حضور ﷺ چې اولیدلو نو ورته یې وویل په مهاجر سور باندې هر کلي وي ته ایمان راوستې، یعنې د فتح مکې په ورځ ستا ایمان ډېر مقبول دی. دیرمو جنګ کې په سنه ۱۳ ه کې شهید شو ۶۲ کاله عمر یې وو. حضور ﷺ ام سلمه ته وفرمایل، چې ما په جنت کې د ابو جهل یوه ونه لیده کله چې عکرمه ایمان راوړو نو حضور صلی الله وفرمائیل ای ام سلمه زما دا هغې خوب تعبیر دا وو، یو ځل عکرمه حضور ﷺ ته داشکایت اوکړو خلق ماته داد الله د دشمن ځوی وایي په دی حضور ﷺ خطبه کې خلقو ته کوم سړی چې په جاهلیت کې سردار وي هغه به اسلام کې هم سردار وي، شیخ عبد الحق په مدارج النبوة کې فرمائي، چې حضور صلی الله علیه وسلم حکم وکړو چې عکرمه په مخکې د ابو جهل بد مه وائي.

**۱۰۱ـ العلاء بن الحضرمی** : د حضرمی نوم عبد الله دی چونکه دا د حضرت الموت وو په دغه وجه ورته حضرمي ویلی شي دحضور ﷺ دطرف نه بحرین باندی حاکم و حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه او حضرت عمر رضی الله عنهم خپله دخلافت زمانه کښې دبحرین حاکم او ساتلو تردې چې داعلاء سنه ۱۴ ه کښې وفات شو.

**۱۰۲ـ علقمه بن وقاص** : دا لیثی دی دحضور ﷺ زمانه ي پیدا شو غزوه خندق کښې شریک وو دعبد الملک بن مروان دحکومت دور کښې وفات شوی وو.

**۱۰۳ـ عمار بن یاسر** : دا عنسی دی دبنی مخزوم آزاد کرده غلام دی حضرت یاسر دده پلار دی دوه ورونو حارث او مالک سره دده د یو ورک شوې ورور تالاش پسې مکې ته لاړل حارث او مالک وو یمن ته لاړل او یاسر مکې کښې پاتې شو، دابو حذیفه بن مغیره حلیف وکړو. ابو حذیفه د خپلی وینزی دده سمیه سره نکاح وکړه، د هغې نه عمار پیدا شو. ابو حذیفه حضرت عمار آزاد کړو، حضرت عمار د پخوانو مؤمنانو نه دی د اسلام راوړلو په وجه مکې والاو ورته ډیر تکلیفونه ورسولو دې دپاره یې د اسلام نه واوړي، یو ځل یې اورته ژوندی وغور ځولو حضور ﷺ چې به په هغه طرف تیریدلو نو وي فرمائیل ای اوره! ته عمار باندی یخ او سلامتي او عافیت والا جوړشه څنګه چې په حضرت ابراهیم علیه السلام باندی جوړشوی وی همد اسې وشول او داعمار داولینو مهاجرینو نه دی غزوه بدر او ټولو غزاګانو ي شریک وو حضور ﷺ دده نوم الطیب المطیب کیښودلو دادصفین په جنګ کښې دحضرت علي رضی الله عنه سره وو. او هلته سنه ۳۷ ه کښې شهید کړی شو د ۹۳ کاله عمر یې و.

**۱۰۴ـ عمرو بن الاحوص** : دا کلابی دی ده نه دده ځوی سلیمان احادیث نقل کړې دي.

**۱۰۵ـ عمرو بن الاخطب** : دده کنیت ابو زید ده پدې سره مشهور وو، انصاري دی او په ډیرو غزاګانو کښې شري شوی وو حضور ﷺ دده په سر خپل لاس مبارک راښکلی دی او حسن وجمال دعا یې هم ورته کړی وه عمر یې څه دپاسه سل کالو ته رسیدلی وو لیکن په سر او بیره کی ئی څو ویښتو نه زیات سپین نه وو ډیرو صحابو دده نه احادیث نقل کړي دي.

**۱۰۶ـ عمرو بن امیه** : دا ضمری دی بدر او احد ي دمشرکینو سره راغلی وو د غزوه احد نه پس مسلمان شو دعربو مشهور بهادر وو د مسلمانانو سره په اول ځل غزوه بیر معونه کښې شریک شوی وو په هغه جنګ کښې عامر بن طفیل قیدي کړو بیا یې پریخودو، په سنه ۶ کښې حضور صلی الله علیه وسلم حبشې ته د دعوت لپاره ولیږه، حضور ﷺ ته دحبشي د بادشاه لپاره دعوتي خط ورکړی وو چې هغه مسلمان شو، دا په حجازیانو کښې شمار دی د امیر معاویه په زمانه کښې په مدینه کښې وفات شو. بعضو ویلي دي چې په سنه ۶۰ کښې وفات شو.

**۱۰۷ـ عمرو بن الحارث** : دا خزاعی دی د ام المؤمنین جویریه رضی الله عنها ورور دی کوفه والاو کښې شمیر دی.

**۱۰۸ـ عمرو بن حریث** : دا قریشی مخزومي دی دحضور ﷺ یې لیدلی دی حضور ﷺ نه ئي حدیث آوریدلی دی. حضور ﷺ دده په سر خپل لاس مبارک راښکلی دی او دبرکت دعا ئی ورته کړی وه دحضور ﷺ دوفات په وخت دده عمر دولس ۱۲ کاله وو. دکوفې حاکم وو په اوسنه ۸۵ ه کښې

وفات شو او په كوفه كې دفن شو .

**۱۰۹ ـ عمروبن حزم** : دده كنيت ابو الضحاك دى انصاري دى په غزوه خندق كې شريک شوى وو هغه وخت يې عمر ۱۵ كاله وو حضور ﷺ نجران حاكم مقرر كړى وو او دده په نوم يې خط ليږلى وو په سنه ۵۳ھ كې په مدينه منوره كې وفات شو .

**۱۱۰ ـ عمروبن سعيد** : دا قريشى دى ده اولنى هجرت يې حبشې ته كړى وو بيا په مدينه كې اوسيده د جعفر بن ابى طالب ملګرتيا كې د خيبر په كال مدينې ته ورسيده په سنه ۱۳ھ كې شام ي شهيد كړى شو .

**۱۱۱ ـ عمروبن سلمه** : دا مخزومي دى د حضور ﷺ زمانه ئي بيا موندە د خپل قوم امامت يې كاوه ځكه چې هغوى ي دېټولو نه ښه قارى وو بعضو وئيلى دى چې دى د خپل پلار سره حضور ﷺ ته حاضر شوى وو . بصرى ته راتلو سره هلته اوسيدلو . د شپږو كالو په عمر يې د خپل قوم امامت كاوه .

**۱۱۲ ـ عمروبن العاص** : دا سهمي قريشى دى په سنه ۵ـ كې يې اسلام راوړى وو دا او خالد بن وليد اوعثمان بن طلحه يوځاى راغلل او مسلمان شول . حضور ﷺ دى دعمان حاكم جوړ كړى وو . د حضور ﷺ تر وفات پورې هلته حاكم وو ، بيا حضرت عمر ، عثمان ، معاويه حاكم كړو مصر ده فتح كړى دى او تر مرګ پورې د مصر حاكم وو بيا حضرت عثمان غنى رضي الله عنه څلور كالو پورې خپل عامل جوړ كړى وو دى نه پس ئى معزول كړلو بيا حضرت معاويه د خپل حكومت په وخت كې هلته حاكم كړو (۹۰) كالو په عمر كې په سنه ۴۳ ھ كې د وفات شولو او ده نه پس دده ځوى عبد الله ئى د مصر حاكم مقرر كړلو . بيا حضرت معاويه معزول كړلو ډيرو خلكو ترينه روايات نقل كړى دي لكه عبد الله بن عمر ، قيس ابن ابن حازم وغيره .

**۱۱۳ ـ عمروبن عبسه** : دده كنيت ابو نجيح دى سلمي دى د پخوانو ايمان راوړونكو نه دى تر دى چې بعضو ويلي دي چې دا څلورم اسلام راوړونكى دى بيا حضور ﷺ ورته وفرمايل د خپل قوم طرف لاړ شه ، كله چې تا ته زمونږ د غلبې خبر وشي بيا راشه كله چې خيبر فتح شو بيا راغى او د حضور ﷺ په خدمت كې حاضر شو او هلته اوسيدو دا په شاميانو كې شمارلى شي .

**۱۱۴ ـ عمروبن عوف** : دا انصاري دى غزوه بدر كې شريک وو او په مدينه منوره كې اوسيده .

**۱۱۵ ـ عمروبن عوف مزني** : دا دلويو او پخوانو ايمان ولاونه دى ، دده متعق دا آيت نازل شوى وو . (وَأَعْيُنُهُمْ تَفِيضُ مِنَ الدَّمْعِ) مدينه منوره كې اوسيده هلته دامير معاويه په زمانه كې وفات شو

**۱۱۶ ـ عمروبن الحمق** : خزاعى دى صحابي دى په سنه ۵۱ ھ كې شهيد كړى شو .

**۱۱۷ ـ عمروبن مره** : دده كنيت ابو مريم دى جهني دى يا ازدى دى دى اكثر غزاګانو شريک شوى دى شام كې اوسيده د امير معاويه په زمانه كې وفات شو .

**۱۱۸ ـ عمروبن قيس** : دا قرشي عامري دى دده بل نوم عبد الله دى . ده ته ابن مكتبوم ويلى شي نابينا وو د

مور نوم يې عاتکه دی ، د ام المؤمنين خديجې دماماځوی دی او يا يې د ترور ځوی وو ، مکه معظمه کې يې اول کې ايمان راوړی وو ، مدينه کې خپل نائب جوړ کړی وو . آخر ځل د حجة الوداع په موقع خپل نائب جوړ کړو ، په مدينه منوره کې وفات شوی دی بعضی وايي چې د قادسې په جنګ کې وفات شوی دی ، سورة عبس دده په باره کې نازل شوی دی ددې سورة د نزول نه وروسته به ورته حضور ﷺ خپل څادر خورولو .

**۱۱۹ ـ عمروبن تغلب** : دا عبدی دی يعنی د عبد القيس دقبيلې نه دی. دده نه خواجه بصري وغيره وغيره احاديث نقل کړي دي .

**۱۲۰ ـ عکراش بن ذويب** : دا تميمی دی ، دی بصرې والاو کې شمار دی ده د خپل قوم صدقات راجمع کړل او د حضور ﷺ په خدمت کې حاضر شو .

**۱۲۱ ـ عمران بن حصين** : دده کنيت ابونجيده دی خزاعي او کعبي دی دخيبر په کال ئی ايمان راوړی . تر مرګ پورې په بصره کې اوسيده په سنه ۵۳ھ کې وفات شو ، د فضلاؤ صحابو نه وو (حضرت عمر د علم ښودلو لپاره بصرې ته ليږلی وو ، ابن سرين وائي په بصره کې دده نه افضل صحابي نه وو ، ده ته به فرشتو سلام کولو ) .

**۱۲۲ ـ عمير مولی آبی اللحم** : دا د ابی اللحم آزاد کړده غلام دی ، غفاري حجازي دی ، په غزوه خيبر کې د خپل مولا سره حاضر شوی وو . پيغمبر عليه السلام يې ليدلی وو ، د حضور ﷺ آحاديث يې حفظ کړي وو ، يو جماعت ترې آحاديث نقل کړی دي

**۱۲۳ ـ عمير بن الحمام** : انصاري دی غزوه بدر کې شهيد شوی دی خالد ابن اعلم شهيد کړی دی . په انصارو کې دا اولنی شهيد چې د الله په لار کې شهيد شوی دی .

**۱۲۴ ـ عوف بن مالک** : دا اشجعی دی دخيبر غزوه او دهغې نه وروسته غزاګانو کې شريک شوی دی د بنواشجع بيرغ (جنډه ) دفتح مکې په ورځ دده سره وه په آخر کې په شام کې اوسيده په سنه ۷۳ ھ کې وفات شولو .

**۱۲۵ ـ عويم بن ساعده** : انصاري اوسی دی بيعت عقبه اوبيعت ثانيه غزوه بدر اوتمامو غزاګانوکې شريک وو قوی خبره داده چې په خلافت فاروقي کې وفات شوی دی ۶۵ کاله عمرئی وو ده نه حضرت عمر بن خطاب رضی الله عنه روايت کوی .

**۱۲۶ ـ عويمر بن عامر** : دده کنيت ابودرداء دی پدې کنيت سره مشهور دی دده ذکر حرف دال کې تير شوی دی .

**۱۲۷ ـ عويمر بن ابيض** : دا عجلانی او انصاري دی بعضو ويلي دي چې دا هغه عويمر دی دکوم ذکر چې دلعان واقعه کې راغلی دی د بعضو قول دی چې هغه بل عويمر دی دهغه نوم عويمر بن حارث بن زيد بن حارثه بن جعد عجلان دی .

**۱۲۸ ـ عياض بن حمار** : دا تيمي مجاشعی دی بصريانو ي شميرلی شی د حضور ﷺ په ده باندې ډير کرم وو او دوست يې وو .

**۱۲۹ ـ عصام مزني** : دا مزنی دی دا صحابي دی ډیر کم حدیث یې روایت کړي دي باب الجهاد ي دده ... روایت دی .

**۱۳۰ ـ عتبان بن مالک** : دا خزرجی سالمي دی دامیر معاویه زمانه کې وفات شو .

**۱۳۱ ـ عماره بن خزیمه** : دا د خزیمه بن ثابت ځوی دی انصاري دی دی خپل پلار نه روایت کوي

**۱۳۲ ـ عماره بن رویبه** : دا ثقفی دی دی کوفیانو کې شمیر دی ډیرو خلکو ترینه روایت نقل کړي دي .

**۱۳۳ ـ عرس بن عمیره** : دا کندی دی دده نه دده وراره روایت کوی عرس .

**۱۳۴ ـ عیاش بن ابی ربیعه** : دا مخزومي قریشي دی دی دابوجهل مور شریک ورور دی پخوانی مؤمن دی د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دار ارقم ته ددا خلیدو نه مخکې یې ایمان راوړو . دده اول حبشې طرف ته هجرت اوکړو . بیا ده مدیني طرف ته هجرت اوکړود هجرت نه چې راغلو ابوجهل او دهغه ورور حارث ورته راغلل . اوورته ئی اووئیل ، ستا مور قسم خوړلی دی چې څوپورې زه تا اونه وینم هغه وخته پورې به سورې ته نه کینم ته مکې ته لاړ شه چې ستا مور سورې ته کیني هغه د هغو دواړو سره مکې ته لاړو هغه یې هلته تلو سره بندې کړو او ډیر تکلیفونه یې ورته ورسول حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ورته په قنوت کې دعاګانې وکړې : ای الله عیاش ته نجات ورکړه جنګ یرموک ي شام ي شهید شو .

**۱۳۵ ـ عابس بن ربیعه** : دا غطیفی دی دمصر فتح کې شریک شوی . ده نه دده ځوی عبد الرحمن روایت نقل کوی .

**۱۳۶ ـ ابوعبیده بن الجراح** : دده نوم عامربن عبدالله بن جراح فهری قریشی دی عشره مبشره ي دی اوددې امت امین دی . حضرت عثمان بن عفان بن مظعون سره ئی ایمان راوړی وو . بیا دحبشې طرف هجرت اوکړو ټولو غزاګانو کې شریک وو جنګ احد ي هم ثابت قدم وو . د وسپني دوه کړی چې دحضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مخ مبارک کې ننوتی وی راښکلی دی چې دهغه په وجه دهغه دوه غاښونه ووتل ، دا واقعه په غزوه احد کې وه په سنه ۱۸ ه کې په طاعون مرض سره په عمواس مقام کې وفات شو . ۵۸ کاله عمرئی وو معاذ بن جبل رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دده جنازه وکړه او په بیسان مقام کې دفن شو دده . د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره په فهربن مالک کې یو ځای ملاویږي ( دا د اسلام لوئ جرنیل وو د شام فاتح همدا دی حضرت عمر د خپل وفات په وخت کې وفرمایل که ابو عبیده اوس ژوندی وي مابه خلیفه کړی و )

**۱۳۷ ـ ابوالعاص بن الربیع** : دده نوم مقسم اویا لقیط دی اودی دحضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زوم وو یعنی دحضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لور زینب دده نکاح کې وه د بدر په ورځ کې د کفارو د طرف نه راغلی مسلمانانو دقید کړی وو بیا یې پریخودو مکې ته لاړو بیا یې هجرت وکړو حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته راغلو حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره دده په وفا داري او وعدي پوره کولو ډیر خوشحاله وو ، په خلافت صدیقې کې د یمامې په جنګ شهید کړی شو ډیر صحابو دده نه روایت نقل کړی دی .

کال وفات شو.

**۱۳۸ ـ ابو عياش** : دده نوم زيد بن الصامت انصاري دی زرقي دی دهجرت په څلويښتم کال وفات شو.

**۱۳۹ ـ ابو عمرو بن حفص** : دا د حفص بن مغيره ځوی دی مخزومي دی دده نوم عبد المجيد دی.

**۱۴۰ ـ ابو عبس عبد الرحمن بن جبير** : دا ابن جبير ځوی دی انصاري حارثي دی جنګ بدر ي شريک وو مدينه منوره کې په سنه ۳۴ ھ کې وفات شو جنت البقيع ي دفن شو. اويا (۷۰) کاله عمر ئي وو.

**۱۴۱ ـ ابو عسيب** : دا د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ازاد کرده غلام دی دده نوم احمر دی.

## صحابياتي

**۱ ـ عائشه صديقه** رَضِيَ اللهُ عَنْهَا: دام المؤمنين ده دابوبکر صديق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ لورده. دا د ام رومان بنت عامر بن عويمر دی حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ورته دنکاح پيغام ورکړی وو. د نبوت په لسم ۱۰ کال يې ورسره مکه کې نکاح وکړه دهجرت نه دری کاله مخکې په سنه ۲ شوال کې په مدينه کې واده وشو. هغه وخت يې عمر نهه کاله وو نهه کاله د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره وه صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وصال اوشول هغه وخت بی بی عائشه رضی الله عنها د ۱۸ کالو وه حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دبی بی عائشې رضی الله عنها نه علاوه بلی پيغلی سره نکاح نه ده کړی بي مثاله فقيه، عالمه، فصيحه او فاضله وه حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه ئی کثرت سره روايات نقل کړی دی د عربو په تاريخ کې يې ډير علم لرلو د عربو په اشعارو يې هم نظر لرلو، مدينه منوره کې په سنه ۵۷ ھ کې په ۱۷ رمضان د شنبې يا خالی په شپه وفات شوه وصيت يې کړی وو چې دشپې دی دفن کړی بقيع کې دفن کړی شوه حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ يې جنازه کړي وه دحضرت معاويه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د خلافت په زمانه کې (صرف ددې په بستر کې به په حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ باندې وحې راتله) حضرت جبرائل ورته سلام کولو، په دې باندې بهتان ولګيده نو په برائت کې يې په سورت نور کې ۱۸ آياتونه نازل شول، په حضرت مريم او حضرت يوسف چې بهتان ولګيده نو ماشوم ګواهي ورکړه، ليکن درب العالمين د محبوب په محبوبي چې بهتان ولګيده نو خپله يې ګواهې ورکړه. خلاصة التهذيب کې دي چې حضرت عائشې نه دوه زره او دوه سوه لس ۲۲۱۰ احاديث نقل دي، پدې کې يو سل څلور اويا ۱۷۴ متفع عليه دي او څلور پنځوس ۵۴ صرف په بخاري کې دي او آته شپيته ۶۸ صرف په مسلم کې دي عروه فرمائي چې ما دحضرت عائشې نه لوی علم والا په اشعارو کې ندی ليدلی.

**۲ ـ عمره بنت رواحه** : انصارونه ده دنعمان بن بشير مورده دی نه ددې خاوند بشير بن سعد او ددې ځوی نعمان بن بشير روايت اوکړو.

**۳ ـ ام عماره** : ددې نوم نسيبه دکعب لورده انصارونه ده بيعت عقبه ي حضاره اوشريکه شوی وه. غزوه احد کې خپل خاوند زيد بن عاصم سره شريکه وه بيعت الرضوان کې بيا غزوه يمامه کې يې جهاد کړی دی تر دې پورې چې يو لاس ضائع شولو اودتوری اونيزد ولس زخمونه يې په جسم لګيدلي وو ډيرو خلکو ترينه روايات نقل کړي.

**۴ ـ ام العلاء** : دا انصاريه صحابيه خارجه بن زيد بن ثابت مور ده رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ددې په بيماری کې ددې تپوس کولو ته راغلی وو.

**۵ ـ ام عطيه** : ددې نوم نسيبه بنت کعب ده يا دحارث لور ده انصاريه ده ډيرو صحابو ترينه روايات نقل کړي دي دحضور صلی الله علیه وسلم سره په اکثرو غزواتو کې شريکه شوې وه د زخميانو مرهم پټي به ددې ډير فضائل دي.

## غ:

### صحابه:

**۱ ـ غضيف بن الحارث**: دادحارث ځوی دی ثمالي دی کنيه يې ابواسماء ده اوشامي دی دحضور صلی الله علیه وسلم زمانه کې پيدا شوی دی دحضور صلی الله علیه وسلم سره يې بيعت کړی دی بعضو خلکو ورته تابعي ويلي خو صحيح او قوي خبره داده چې دا صحابي دی.

**۲ ـ غيلان بن سلمه** : دا ثقفي دی د طائف د فتحې نه پس ئې ايمان راوړلو او هجرت ئې اونه کړلو دبنو ثقيف د سردارانو نه دی لوی شاعر او عابد وو، د عمر فاورق په خلافت کې وفات شو.

## ف:

### صحابه کرام رضي الله عنهم

**۱ ـ الفضل بن عباس** : دا دحضور صلی الله علیه وسلم دتره عباس ځوی دی حضور صلی الله علیه وسلم سره غزوه حنين شريک شوی وو او ثابت قدم وو. په حجة الوداع کې هم دحضرت صلی الله علیه وسلم سره وو، حضرت صلی الله علیه وسلم ته په غسل ورکونکو کې يو دا هم و اوبيا يې په شام کې جهاد کولو او اردن کې وفات شو. بعضو ويلي چې ديرموک کې شهيد شو صرف ۲۱ کاله عمر يې وو د خپل ورور عبدالله بن عباس رضی الله عنه او ابوهريره روايت کوی.

**۳ ـ فضاله بن عبيد** رضي الله عنه : دا انصاري اوسي دی په احد کې او داحد نه وروسته جنګونو کې شريک شوی وو په بيعت الرضوان کې شامل شوی وو. د معاويه د طرف نه د دمشق قاضي وو کله چې د صفين جنګ ته تللی وو په سنه ۵۳ هـ کې د معاويه په زمانه کې وفات شو.

**۴ ـ الفجيع بن عبدالله** : دا عامري دی دخپل قوم په نمائندګی حضور صلی الله علیه وسلم ته راغی او د حضور صلی الله عليه وسلم نه يې احاديث اوريدلي دي.

**۵ ـ فروه بن مسيک** : دا مرادي غطيفي او اهل يمن نه دی په سنه ۹ هـ کې حضور صلی الله علیه وسلم ته حاضر شو او ايمان يې راوړو د حضرت عمر رضی الله عنه په خلافت کې کوفي ته لاړو. شاعر، عابد، او زاهد وو.

**۶ ـ فروه بن عمرو** : دا بياضي او انصاري دی په بدر وغيرتولو غزواتو کې شريک شوی دی.

**۷ ـ فيروز الديلمی** : دا حميري فارسي دی په صنعا کې اوسيده، ده په يمن کې د نبوت مدعي اسود عنسي قتل کړو چې د حضور صلی الله عليه دژوند مبارک آخری ورځو کې دا واقعه شوې وه او خلافت عثمانې کې وفات شوی دی، دده نه ضحاک او عبد الله روايات آخستې دي.

## صحابياتي

**۱ـ فاطمة الكبرى** : دا د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كشره لور وه ددې، مور يې بي بي خديجة الكبرى ده لقب يې زهرا ده او سيد النساء العالمين ده. د نبوت د ظهور نه پنځه كاله مخكې په مكه كې پيدا شوې ده. په رمضان كې په سنه (۲) هـ كې يې نكاح د حضرت علي سره شوى ده او ذى الحجه كې واده شوى دى ددى نه درى ځامن حسن او حسين او محسن درى ځامن او زينب او كلثوم او رقيه درى لوګانې پيدا شوى. د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د مرګ نه شپږ مياشتى وروسته په دريم رمضان د سه شنبې په ورځ په سنه ۱۱ هـ كې وفات شوه عمر يې صرف ۲۸ كاله وو حضرت علي رضى الله عنه ورته غسل وركړلو . او حضرت عباس رضى الله عنه ئى د جنازى مونځ وكړو . د وصيت مطابق د شپې دفن كړى شوه دى نه حضرت علي او حضرت حسين او حضرت حسن او د صحابو يو جماعت ترينه روايات نقل كړي دي، وكړو، حضرت عائشه فرمايي چې ما د فاطمې نه رشتنې ښځه نده ليدلې.

**۲ـ فاطمه بنت ابى حبيش** : دا قرشيه اسديه ده دې ته به د استحاضې وينه ډيره راتله، د عبد الله بن حجش ښځه وه، عروة بن زبير او حضرت ام سلمه ترې روايات نقل كړې دي.

**۳ـ فاطمه بنت قيس** : دا قرشيه ده د حضرت ضحاك خور ده د اولنو مهاجرو زنانو نه ده، په ښايست او عقل كې يې كمال لره اول د ابو عمرو بن حفص په نكاح كې وه بيا يې طلاقه كړه، حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ورله د اسامه بن زيد سره نحاح وكړه.

**۴ـ الفريعة بنت مالك** : داد ابو سعيد خدرى خورده بيعت الرضوان كې شريكه شوې وه ددې نه زينب بنت كعب بن عجره روايات كړي دي.

**۵ـ ام الفضل** : دده نوم لبابة بنت حارث دى د حضرت عباس بن عبد المطلب ښځه ده، او عامريه ده، د ام المؤمنين ميمونې خور ده، مشهوره داده چې په زنانو كې د خديجة الكبرى نه بعد دې ايمان راوړى دى، ددې نه ډير آحاديث نقل دي د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د تره ښځه وه.

**۶ـ ام فروه** : دا انصاريه ده، د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره يې بيعت كړى وو ، قاسم ابن غنام ددې نه روايات آخستې دي.

## ق :

## صحابه كرام رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ

**۱ـ قبيضه بن ذويب** : دا خزاعې دى په اول هجري كې پيدا شوى دى حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خدمت كې راوستى شو او حضور صلى الله عليه وسلم ورته د فقاهت او د رفعت دعاګانې وكړې . ابو الزناد وائى څلور كسان فقهاء شمارلې شو :(۱)ابن مسيب (۲)عروه بن زبير (۳)عبد الملك بن مروان (۴)قبيصه بن ذويب .په سنه ۸۶ هـ كې وفات شوى دى د ابن عبد البر نه علاوه بل جا ورته صحابي نه دى ويلي بلكه تابيعينو كې يې شمار كړى دى.

**۲ـ قبيصه بن مخارق** : دا هلالي دى د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خدمت كې د وقد په شكل كې حاضر شوى وو په

بصريانو کې شمار دی او ابن قطن او عثمان نهدي وغيره ددنه روايات نقل کوي

**۳ـ قبيصه بن وقاص** : دا سلمي دی په بصره کې اوسيده او په دي خلکو کې شمار دی.

**۴ـ قتادة بن النعمان** : دا انصاري دی بيعت عقبه کې شريک شوی وو په غزوه بدر وغيره کې شريک شوی وو حضرت ابوسعيد خدری ورسره د مور شريکی وروردی پنځه شپيته ۶۵ کاله عمر يې وو په سنه ۲۳ هـ کې وفات شو په بهترينو صحابو کې وو حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ئی جنازه وکړه.

**۵ـ قدامه بن عبدالله** : دا کلابي يا عامري دی د اولنو مؤمنانو نه دی مکه معظمه کې اوسيد ، په حجة الوداع کې شريک شوی وو.

**۶ـ قدامه بن مظعون** : دا قرشي او حجمی دی دعبدالله بن عمر ماما دی د حبشې له مهاجرينو نه دی، په بدر او په نورو ټولو غزاګانو کې شريک وو ، دده نه عبد الله بن عمر او عبد الله بن عامر روايت نقل کړی دی ، اته شپيته ۶۸ کاله عمر يې وو ، په سنه ۳۶ هـ کې وفات شو . دده ډير فضائل

**۷ـ قطبه بن مالک** : دا ثعلبي کوفی دی د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خدمت کې وو د زياد بن علاقه روايات نقل کړی.

**۸ـ قيس بن ابی غرزه** : دا غفاری کوفي دی د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خدمت کې وو په کوفه والاو کې شميرلی شي دتجارت متعلق يو حديث ترينه نقل دی.

**۹ـ قيس بن سعد** : دده کنيت ابوعبدالله انصاري او خزرجی دی د بهترينو اصحابو نه وو . او جنګی تدبيرونو کې ډير ماهر وو ، د خپل قوم سردار وو حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په بارګاه کې ډير عزت والا وو د حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دجانب نه دمصر حاکم وو د حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ شهادت پورې ورسره ملګری وو په سنه ۶۰ هـ کې وفات شو يوجماعت دده نه روايات نقل کړي دي . دقيس بن سعد او عبدالله بن زبير ، قاضی شريح او د احنف ږير باندې ويختان نه وو ددې با وجود قيس ډير ښائسته وو .

**۱۰ـ قيس بن عاصم** : دده کنيت ابو قبيصه يا ابوعلی دی دا تميمي دی د بنو تميم په وفد کې دحضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په بارګاه کې حاضر شوی وو او سنه ۹ هـ کې ئی ايمان راوړی وو دا چې کله د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ن په خدمت کې حاضر شو نو حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ او فرمائيل چې دا د خيمې والاو سردار دی په علم او صبر کې مشهور و ، په بصرې والاو کې شمار دی.

**۱۱ـ قرظه بن کعب** : دا انصاري خزرجی دی غزوه احد وغيره جنګونو کې شريک وو حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دکوفی حاکم مقرر کړی وو هم دده په خلافت کې وفات شو . شعبی رحمه الله وغيره دده نه روايات نقل کړی دي .

**۱۲ـ قره بن اياس** : دا مزني بصري دی دده ځوی معاويه دده نه روايات آخستې دي نه علاوه بل چا دده نه

په مدینه منوره کې وفات شو اتیا کاله عمر یې وو په ټولو جنګونو کې شریک شوی وو.

**۱۴ - ابو قحافه** : دده نوم عثمان بن عامر دی، د ابوبکر صدیق رضي الله عنه والد دی د عین په تخته کې یې ذکر تیر شوی دی.

## صحابیاتې

**۱ - قیله بنت مخرمه** : دا صحابیه ده او تمیمه ده د دي نه ددې نمسو صفیه او حبیبه بنت علیبه روایات نقل کړې دي. غالبًا دا هغه قیله ده چې د جمې په ورځ به یې څه خوراک تیارولو صحابه کرامو به خوړلو صحابو به ویل د قیلې ددې خوراک دوجې نه مونږ د جمعې ورځې انتظار کوو، والله اعلم.

**۲ - ام قیس بنت محصن** : دا د عکاشة بن محصن خور ده په مکه معظمه کې د پخوانو مسلمانانو نه ده، بیا یې مدینې منورې ته هجرت وکړو.

## ک:

## صحابه کرام رضي الله عنهم

**۱ - کعب بن مالک** : دا انصاري خزرجی دی بیعت عقبه ثانیه کې شریک شوی وو د بدر په حاضری کې یې اختلاف دی تبوک نه علاوه نورو غزواتو کی هم شریک وو د دحضور صلی الله علیه وسلم د خاص شاعرانو نه وو. په غزوه تبوک کې دری کسان باقي پاتې وو د هغوی نه یو دا هم وو ددې دری واړو نومونه دادی دویم بلال بن امیه دریم مراره بن ربیعه ده، دده باره کې د توبې قبلیدو آیتونه نازل شول، دده نه یو جماعت روایت کړې دي او ۷۷ کاله عمر یې وو په سنه ۵۰ هـ کې وفات شولو، او په آخر کې نابینا شوی وو.

**۲ - کعب بن عجره** : دا بلوی دی کوفه کې اوسیده او په مدینه کې په سنه ۵۱ هـ کی وفات شو د ۷۵ کاله عمر یې وو.

**۳ - کعب بن عیاض** : دا اشعری دی په شامیانو کې شمار دی، دده نه جابر بن عبدالله او جبیر بن نفیر روایات اخستي دي.

**۴ - کعب بن عمرو** : دا انصاري سلمې دی بیعت عقبه او غزوه بدر کې حاضر وو غزوه بدر کې عباس بن عبدالمطلب قیدی کړی وو په سنه ۵۵ هـ کې په مدینه منوره کې وفات شو. عمار او حنظله دده نه روایات کړی دی

**۵ - کثیر بن صلت** : دا د معدی کرب ځوی دی او کندي دی د حضور صلی الله علیه وسلم ژوند کې پیدا شوي وو دد نوم قلیل وو حضور صلی الله علیه وسلم ورباندې کثیر کیخودو، دډیرو صحابو نه یې روایات نقل کړی دي.

**۶ - کرکرة** : ده به د حضور صلی الله علیه وسلم دسامان منظم ساتلو په سفرونو او غذا ګانو کې به د حضور صلی الله علیه وسلم سره وو، دده ذکر په غلول کې راغلی دی، په کرکرة کې دواړو کافونو ته فتحه ده.

**۷ - کلده بن حنبل** : دا اسلمې دی دصفوان بن امیه حجمی ناسکه وروردی دا غلام وو معمر بن حبیب

دعکاظ په بازار کې په یمن کې واخیست او حلیف یې جوړ کړلو او ترمګه پورې په مکه کې اوسیده.

**۸۔ابو کبشه** : نوم ئې عمرو بن سعد انماري دی په شام کې اوسیده نعیم او سالم دده نه روایت کوی

## صحابیاتې

**۱۔ کبشة بنت کعب بن مالک** : داد عبد الله بن ابي قتاده ښځه ده، دپیشو دخو ټې متعلق ددې حدیث مشهوردی.

**۲۔ کریمة بنت همام** : ددې نه د نکریزو (رنګ کولو) متعلق حدیث روایت دی، دا د حضرت عائشې رضی الله تعالی عنها نه روایت کوي، همام د میم په پیښن یا فتحې سره دی

**۳۔ام کرز** : دا خزاعیه ده څو احادیث ترې نقل دي خاصکر د عقیقې حدیث.

**۴۔ام کلثوم بنت عقبه** : دا دعقبه ابن ابي معیط لور ده مکه معظمه کې یې اسلام راوړی دی، پیدل یې هجرت کړی وو مکه کې یې واده وه بیا یې په مدینه منوره کې زید بن حارثه سره واده وکړو، کله چې زید د مؤته په جنګ کې شهید شو نو بیا یې زبیر بن عوام سره نکاح وکړه هغه ورله بیا طلاق ورکړو نو د عبدالرحمن بن عوف په نکاح کې راغله دهغه نه یې ابراهیم او حمید پیدا شول کله چې یې دا خاوند وفات شو نو بیا یې عمرو بن الصاص سره نکاح وکړه، دده په نکاح کې وفات شوه او دا د حضرت عثمان غني ناسکه خور وه،

## ل :

## صحابه کرام رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ

**۱۔لقیط بن عامر ابن صبرة** :دده کنیت ابو زرین ده عقیلي دی او مشهور صحابی دی طائف سره یې تعلق دی

**۲ ـ لبیدبن ربیعه**:داعامري دی شاعردی دخپل قوم بن جعفربن کلاب سره دوفدپه شکل کې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته راغلی وو، دجاهلیت زمانه کې او د اسلام په زمانه دواړو کې ډیر عزت والا وو په آخري عمر کې په کوفه کې اوسیده په سنه ۴۱ هـ کې وفات شوی دی، د ۱۴۰ کاله عمر یې وو، پدې کې نو اقوال هم شته.

**۳۔ابولبابه** : دده نوم رفاعة عبد المنذر دی، اوسي انصاري دی بیعت عقبه او غزوه بدر نورو غزواتو کې حا و بعضو ویلي دي چې غزوه بدر کې شریک شوی نه وو ځکه د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د حکم مطابق په مدینه کې انتظام لپاره پاتې شوی وو او په غنیمت کې یې حصه ورکړی شوې وه د حضرت علی رضی الله عنه په خلافت کې وفات شو.

**۴۔ابن اللتبیه** : دده نوم عبدالله دی دده ذکر په صدقاتو کې راغلی دی.

## صحابیاتې

**۱۔لبابه بنت حارث** : ددې کنیت ام الفضل دی ددې ذکر په حرف الفاء کې راغلی دی.

م :

## صحابه كرام رَضِيَ اللهُ عَنهُم

**۲ ـ مالک بن اوس** : دامالک بن اوس بن حدثان دی دا بصری دی دده صحابی کیدو کې اختلاف دی دده احادیث ډیر کم دی البته د صحابو اثار ترینه ډیر نقل دی په سنه ۵۹۲ هـ کې په مدینه کې وفات شو ی دی مشهور شخصیت دی .

**۳ ـ مالک بن حویرث** : دا لیثي دی دحضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خدمت کې یې وفد جوړ کړو او راغی او د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره یې شل ورځې وو ، په آخر کې په بصره کې اوسیده ، په سنه ۹۴هـ کې وفات شوی دی .

**۴ ـ مالک بن صعصعه** : دا انصاري زماني دی په بصره کې اوسیده احادیث یې کم روایت کړې دي.

**۵ ـ مالک بن هبیره** : داسکوني دی په شامیانو کې شمار دی د امیر معاویه د طرف نه د لښکرو سردار وو رومیانو سره یې جهاد کړی وو ، دا جهاد د امیر معاویه په زمانه کې شوی وو .

**۶ ـ مالک بن یسار** : دا سکوني او یا عوفي دی په شام کې اوسیده دده په صحابیت کې اختلاف دی .

**۷ ـ مالک بن تیهان** : دده کنیت ابو الهیثم دی انصاری دی بیعت عقبه کې شریک شوی دی دحضرت عمررضی الله عنه دور خلافت کې په سنه ۲۰هـ کی وفات شوی دی بعضو مؤرخینو ویلی دي چې په سنه۳۹ هـ کې جنګ صفین کې وفات شو دی .

**۸ ـ مالک بن قیس** : دده کنیت ابو صرمه دی کنیت سره مشهور دی دده ذکر صرف صاد ي راغلی دی .

**۹ ـ مالک بن ربیعه** : دده کنیت ابو سعید دی کنیت سره مشهور دی دده ذکر حرف الف کې راغلی دی .

**۱۰ ـ ماعزبن مالک** رَضِيَ اللهُ عَنهُ : دا اسلمي مدني دی ، دسنګسار شوی وو ، ده نه دده ځوی عبد الله یو حدیث نقل کړی دی .

**۱۱ ـ مطربن عکامس** : دا سلمي دی کوفه والا و نه دی دده نه صرف یو حدیث نقل دی .

**۱۲ ـ معاذبن انس** : دا جهني دی د مصر والا و نه دی دده ځوی دده نه احادیث آخستې دي .

**۱۳ ـ معاذ بن جبل** رَضِيَ اللهُ عَنهُ : دده کنیت ابو عبد الله دده دی انصاري خزرجي دی دی په بیعت عقبه کې په هغه اویا صحابوو کې دا هم وو بدر اونورو غزواتو کې حاضر وو حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بحیثیت قاضی او معلم یمن ته لیږلی وو . په اتلس کلنی کې یې ایمان راوړی وو د حضرت عمر او ابو عبیده بن جراح نه وروسته د شام حاکم دا مقرر کړی وو آته دیرش ۳۸ کاله عمر یې وو په سنه ۱۸ هـ کې په طاعون عمواس کې وفات شو .

**۱۴ ـ معاذبن عمرو بن جموح** : دا انصاري خزرجي دی بیعت عقبه او عزوه بدر کې دی شریک شوی وو ده خپل پلار عمر او خپل ورور معوذ بن عفراء یو ځای کړل او ابو جهل یې قتل کړو ، د عبد الرحمن ابن اسحاق زوی

روایت کوي چې معاذ دابوجهل پښه پریکړه او په مزکه یې راوغورزاوه عکرمه په ده باندې دتورې ګزار اوکړو او لاس یې ترینه جدا کړی وو دی نه پس معاذبن عفراء په ابوجهل دتورې وار اوکړو او هغه ختم کړو ابوجهل سلګی وهلې چې عبد الله بن مسعود ترینه سر جدا کړو حضور ﷺ د ابو جهل لاس تلاش کړو د هغه په قتل یې سجده شکر اداء کړه دا په خلاف عثماني کې وفات شوی دی ، یاد لرۍ چې معاذ او معوذ مور کې شریک وروڼه دی د مور نوم یې عفراء دی ، پلاران یې جدا جدا دي یو معاذ بن الحارث دی او د معوذ سکه ورور دی مګر دا د ابو جهل په قتل کې شریک نه وو .

**۱۵ ـ معاذبن حارث** : دا انصاري اوزرقي دی دده مور عفراء بنت عبید بن ثعلبه ده دا او رافع بن مالک انصاري او خزرجیان دي په خزرجو کې دا اولنی مؤمن دی ، معاذ او دده دواړه وروڼه عوف او معوذ په بدر کې شریک شوي وو دواړه وروڼه یې هلته شهیدان شول دده په باره کې اختلاف دی بعضو ویلي دي په بدر کې زخمي شو بیا څه وخت وروسته وفات شو ، او د بعضو رای ده چې خلافت عثماني کې وفات شوی دی دده نه ډیرو صحابو روایات نقل کړي دي ، یاد ساتې چې معاذ بن الحارث د ابو جهل په قتل کې شریک شوی نه وو .

**۱۶ ـ معوذبن حارث** : دده مور نوم عفراء ده بدر ي شریک شو دا معاذ بن عمرو سره ملګری شو ابو جهل یې قتل کړو دا د ځمکې او باغ والا وو وروستو په جنګونو جنګونو کې شهید شو ، .

**۱۷ ـ مسطح بن اثاثه** : دا ابن عباد بن عبد المطلب بن عبد مناف قریشي مطلبي دی غزوه بدر ، احد اونورو غزواتو کې شریک شوی وو ، د ام المؤمنین عائشې په تهمت لګولو کې دا شریک وو ، ده ته د تهمت لګولو ګوړې ورکړی شوې وې دده نوم عوف دی مسطح یې لقب دی شپږ پنځوس ۵٦ کاله عمر یې وو په سنه ۳۴ ھ کې وفات شو ، ابوبکر صدیق رضی الله عنه ورباندې د حضرت عائشې په تهمت لګولو کې وظیفه بنده کړې وه ددې په بارک کې دا آیت نازل شو (وَلَا يَأْتَلِ أُولُو الْفَضْلِ مِنكُمْ) بیا یې ورته وظیفه ورکول شروع کړل.

**۱۸ ـ مسور بن مخرمه** : دده کنیت ابو عبد الرحمن ده زهري او قرشي دی دعبد الرحمن بن عوف خورئی دی په سنه ۲ ھ کې په مکه معظمه کې پیدا شو . ذی الحجه سنه ۸ ھ کې مدینې منورې ته راوړل شو ، د ذو الحجې په میاشت کې د حضور ﷺ د وفات په وخت کې دده عمر آته ۸ کاله وو ، ددې باوجود ده د حضور ﷺ نه احادیث نقل کړي لوی فقیه او صاحب فضل او دیندار وو د حضرت عثمان رضي الله عنه شهادت پورې مدینه کې وو وو بیا مکې ته لاړ او د حضرت معاویه رضی الله عنه وفات پورې هلته وو . ده دیزید بیعت نه یې انکار وکړو : کله چې د یزید فوجیانو په مکه معظمه باندې حمله وکړه نو په منجنیق سره یې کاڼې اورول په دې وخت کې دا په حطیم کې وو نفل یې کول یو کاڼی ورباندې ولګیدل په هغه سره وفات شو دا واقعه په ربیع الاول سنه ۶۴ھ کې وه دده نه ډیر مخلوق روایت کړي دی

**۱۹ ـ المسیب بن حزن** : دده کنیت ابو سعید ده دا قرشي او مخزومي دی خپل پلار حزن سره ئی هجرت اوکړو په بیعت رضوان کې شریک وو دده نه دده ځوی سعید بن المسیب احادیث نقل کړي دي .

**۲۰ ـ مستورد بن شداد** : دا فهري قرشي دی د کوفي والا و نه دی په مصر کې اوسیده د حضور ﷺ

ثابته ده.

د وفات په وخت کې دې ماشوم وو ليکن د هغه نه يې سماع ثابته ده. يې هجرت وکړو مدينې منورې ته لاړو په آخر کې په کوفه کې اوسيدو او ۷۰ کاله عمر يې وو او په سنه ۵۰ ه کې وفات شو هغه وخت دې د حضرت معاويه د جانب نه حاکم وو دده مزار په کوفه کې دې او مشهور صحابي دې.

**۲۱- مغيره بن شعبه**: دا ثقفي دې او خندق په کال يې ايمان راوړې دې بيا يې هجرت وکړو مدينې منورې ته لاړو په آخر کې په کوفه کې اوسيدو او ۷۰ کاله عمر يې وو او په سنه ۵۰ ه کې وفات شو هغه وخت دې د حضرت معاويه د جانب نه حاکم وو دده مزار په کوفه کې دې او مشهور صحابي دې.

**۲۲- مقدام بن معديكرب**: دده کنيت ابو کريمه دې او کندي دې په شاميانو کې شمار دې د ۹۱ کاله عمر يې وو په سنه ۸۷ کې په شام کې وفات شو ډير احاديثو راوي دې او مشهور صحابي دې.

**۲۳- مقداد بن اسود**: دده پلار د کندې قبيلي حليف وو له دي وجه نه ورته کندي ويل کيږي، اسود دده پرورش کړې وو د دې وجې نه ورته ابن الاسود ويل کيږي دا شپږم مؤمن دې، دده نه حضرت علي او طارق بن شهاب احاديث آخستي دي او يا ۷۰ کاله عمر يې وو په سنه ۳۳ ه کې وفات شوی دی دده وفات د مدينې نه لرې د دريو ميلو په فاصله د جرف په مقام کې شوی دی، دلته نه راوړل شو او په بقيع کې دفن کړی شو.

**۲۴- مهاجر بن خالد**: دا ابن وليد بن مغيره دی مخزومي او قريشي دی دی د حضور ﷺ زمانه کې ماشوم وو په جنګ جمل او صفيين کې د حضرت علي رضي الله عنه ملګرې وو ملګر دده عبد الرحمن حضرت معاويه رضي الله عنه او عائشې رضي الله عنها سره وو عمر په جنګ جمل کې يې يوه سترګه وتلې وه زخمي شوی وه او بيکاره شوه او په جنګ صفين کې شهيد شولو.

**۲۵- مهاجر بن قنفذ**: دا قرشي او تميمي دی دده نوم عمرو بن خلف دی او لقب يې مهاجر دی د پلار لقب يې قنفذ دی قوي خبره داده چې د فتح مکې په ورځ يې اسلام راوړی دی، بعضو ويلي دي چې پخوا يې ايمان راوړی وو او هجرت يې کړی وو حضور ﷺ وويل چې دا رشتني مهاجر دی آخر کې په بصره کې اوسيده او هم هلته وفات شو.

**۲۶- معيقيب بن ابی فاطمه**: دا دوسی دی دسعيد بن ابی عاص آزاد کرده غلام وو په غزوه بدر کې شريک وو په مکه معظمه کې يې د اول نه يې ايمان راوړی وو، د حبشې هجرت يې هم کړی وو هلته اوسيده تر دې پورې چې حضور ﷺ مدينې ته هجرت وکړو، حضرت ابوبکر رضی الله عنه او عمر رضی الله عنه ديت المال افسر جوړ کړی وو په سنه ۴۰ ه کې وفات شو.

**۲۷- معقل بن يسار** رضي الله عنه: دا مزني دی بيعت الرضوان کې شريک شوی د معقل نهر دده طرف ته منسوب دی په سنه ۶۰ ه کې وفات شوی دی د عبيد الله بن زياد په حکومت کې.

**۲۸- معقل بن سنان**: دا اشجعی دی فتحه مکی حاضر شوی وو په کوفه کې اوسيده د حرې په جنګ کې قتل شوی دی.

**۲۹- معن بن عدی**: دا بلوی دی د خپل ورور عاصم سره په غزوه بدر او نورو غزواتو کې شريک شوی وو د يمامه په جنګ کې يعنی د حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه په دور خلافت کې شهيد شوی دی حضور ﷺ

دده اوزيد اوزيد بن خطاب مينځ کې ورور ولي جوړه کړې وه دواړه يوځای کې يو ځای شهيدان شول.

**۳۰ ـ معن بن يزيد بن اخنس السلمي** : دا سلمي دی دده پلار اونيکه هم صحابی وو دا په بدر کې هم شريک شوی وو او په کوفه والا وو شمار دی.

**۳۱ ـ مجمع بن جاريه** : دا انصاري اومدني دی دده پلار جاريه منافق وو مسجد ضرار جوړولو کې يو وو: مجمع لوی عالم او قاری وو مشهوره ده چې عبد الله بن مسعود رضی الله عنه نيم قرآن دده نه آخستی دحضرت معاويه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ آخری دور کی وفات شو.

**۳۲ ـ محجن بن ادرع** : دا اسلمی دی پخوانی مؤمن دی اوږد عمر والا وو د امير معاويه د امارت په آخر کې وفات شو په بصريانو کې شمار دی.

**۳۳ ـ مخنف بن سليم** : دا غامدی دی دحضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د اصفهان حاکم مقرر کړی وو په بصريانو کې شمار دی په ميم کسره ده او خاء ساکنه ده او په نوم فتحه ده.

**۳۴ ـ مدعم** : دا حبشی غلام وو درفاعه بن زيد غلام وو هغه دحضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خدمت کی پيش کړو، تر آخره پوري د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ غلام وو، دده ذکر په غلول کې راغلی دی دا مشهوره واقعه ده.

**۳۵ ـ مرداس بن مالک** : دا اسلمي دی په بيعت رضوان کې شريک وو په کوفيانو کې شمار دی دده نه صرف يو حديث نقل شوی.

**۳۶ ـ محيصه بن مسعود** : دا انصاري او حارثی دی. په مدينه والاوو کې شمار په احد او خندق او ددې نه وروسته په ټولو جنګونو کې شريک شوی وو.

**۳۷ ـ مخارق بن عبدالله** : دا اسلمي دی د صفر په مياشت کې په سنه ۳۶ هـ کې د جمل په ورځ قتل شوی دی

**۳۸ ـ مخرفه عبدی** : دده په نوم کې اختلاف دی چې مخرمه دی او مخرفة دی په کتاب اللباس کې د سويد په حديث کې د دده ذکر راغلی او په سنه ۵۶ هـ کې وفات شوی دی.

**۳۹ ـ مجاشع بن مسعود** : دا سلمي دی ده نه ابوعثمان نهدی روايت اوکړو دا د جمل په ورځ په سنه ۳۶ هـ کې شهيد شوی.

**۴۰ ـ مراره بن ربيع** رَضِيَ اللهُ عَنْهُ: دا عامري او انصاري دی غزوه بدر ي شريک شوی وو او کوم دری صحابه چې د غزوه تبوک نه دپاتې شوی وو په هغوی کې يو دا هم دی د کوموچې د توبې قبولو الی په سورة التوبه کې راغلی دی.

**۴۱ ـ مصعب بن عمير** : دا قرشي اوعذوي دی د جليل القدر صحابو نه دی اول يې هجرت ئی حبشې ته اوکړو بيا بدر ي شريک شوی وو دبيعت عقبه ثانيه نه پس مدينې ته دقرآن کريم دښودلو لپاره او دفقه د تعليم ورکولو لپاره ولېږه، د هجرت نه مخکې په مدينه منوره کې اول د جمعې مونځ د خپل اجتهاد په اساس ده قائم کړی وو د اسلام راوړلو نه مخکې ډير په ښه ژوند او عيش عشرت کې وو اعلی لباس به يې اغوستلو د اسلام راوړلو نه

وروسته دومره تارک الدنیا شو چې په غټ لباس به يې خپل جسم پټولو ، بعضو مؤرخينو ليکلي دي چې حضور صلی الله علیه وسلم اولنی بیعت عقبه نه وروسته مدينې منورې ته ليږلی وو دا به د انصارو کورونو ته تلو او تبليغ به يې کولو ، دده په هر تبليغ به يو يا دوه کسه مسلمانيدل تردي چې په انصارو کې اسلام خور شو کله چې دده د حضور صلی الله علیه وسلم نه د جمعې د مونځ د قائمولو اجازت وغوښتو نو ورته ملاو شو دا بيا دويم بيعت عقبې په وخت د اويا (۷۰) انصارو سره مکې معظمې ته راغی يوځو ورځې مکه کې وو بيا واپس مدينې ته لاړو دا واقعات د حضور صلی الله علیه وسلم د هجرت نه مخکنې دي څلويښت کاله عمر يې وو او د احد په جنګ کې شهيد شو دده په باره کې دا آيت نازل شو (مِنَ الْمُؤْمِنِينَ رِجَالٌ صَدَقُوا مَا عَاهَدُوا اللَّهَ عَلَيْهِ) په دې کې دا هم داخل دی د حضور صلی الله علیه وسلم دار ارقم ته تلو نه وروسته يې ايمان راوړی وو .

**۴۲ـ معاويه بن ابی سفيان** رضی الله عنه : دا قرشي او اموی دی دده د مور نوم هند بنت عتبه ده دی خپله او دده فتح مکې په ورځ يې ايمان راوړو او د مؤلفة القلوب نه وو د حضور صلی الله علیه وسلم کتابت کونکو کې دی بعضو مؤرخينو ويلي دي چې د وحي کاتب نه وو ، بلکه نور تحريرونه به يې د حضور صلی الله علیه وسلم د طرف نه ليکل ، دده نه عبد الله بن عباس او ابو سعيد خدري روايات آخستې دي . د خپل ورور يزيد نه وروسته د شام حاکم جوړ شو او بيا تر وفات پورې هلته حاکم وو خلافت فاروقي يې څلور کاله حکومت وکړو ، او په خلافت عثمانې کې يې دولس کاله حکومت وکړو او بيا په خلافت حيدري او د امام حسن په خلافت کې شل ۲۰ کاله حکومت وکړو بيا مستقل سلطان جوړ شو او شل کاله يې سلطنت وکړو ، په سنه ۴۱ ھ کی امام حسين ورته حکومت حواله کړو او ځان يې ترينه جدا کړو د رجب په مياشت کې په سنه ۶۰ ھ کی وفات شو او په دمشق کې دفن کړی شو ۷۸ کاله عمر يې وو په آخر عمر کې لقوه بيماری ورته ولګيده . د خپل ژوند آخری ورځو کې به ئې ويئيل . کاش چې زه يو قريشي وای او په ذی طوی کلی کې اوسيدای او په حکمت کې مې حصه نه آخستی . د حضور صلی الله علیه وسلم تبرکات ورسره وو : ويښته اونوکونه او ازار موجود وو وصيت يې کړی وو چې ماته دی د حضور صلی الله علیه وسلم په ازار کې تاؤ کړی او ځما پوزه او خوله د حضور صلی الله علیه وسلم د ويښتو مبارک اونوکونه کيږدی بيا ما ارحم الراحمين ته وسپاری .

**۴۳ـ معاويه بن حکم** : دا سلمي دی مدينه منورې ته به تلو راتلو په سنه ۱۱۷ ھ کې وفات شو دده نه کثير او عطاء روايات نقل کړی دی .

**۴۴ـ معاويه بن جاهمه** : دا اسلمي دی دا په حجازيانو کې شمار دی .

**۴۵ـ مروان بن الحکم** : دا دا قريشي اموي دی د عبد الملک والد دی او د عمر بن عبد العزيز نيکه دی دغزوه خندق په کال پيدا شوی دی د مروان پلار د مدينې منورې نه طائف ته جلا وطن کړی وو دا هم ورسره تللی وو لهذا دا صحابي ندی حضرت عثمان رضی الله عنه په خلافت کې مدينې منورې ته د راتلو اجازت ورکړی شو نو دا هم ورسره راغی په سنه ۶۵ ھ کې په دمشق کې وفات شو حضرت عثمان رضی الله عنه او حضرت علی رضی الله عنه نه يې روايت آخستي دده نه عروة بن زبير او امام زين العابدين روايات نقل کړی دی . ياد دې وي چې امام بخاري په مروان باندي اعتماد کړی .

**۴۶ ـ مره بن كعب** : دا بهزي دی په شاميانو کې شمار دی په سنه ۵۵ ه کې په اردن کې وفات شو.

**۴۷ ـ مزيده بن جابر** : دا بصري دی دده نه متعددو تابعينو روايات نقل کړي دي.

**۴۸ ـ مسلم قرشي بن عبدالله** : دا قرشي دی دا مسلم بن عبدالله او يا عبيد الله بن مسلم دی.

**۴۹ ـ مطلب بن ابی وداعه** : دده د والد ابو وداعة نوم حارث دی سهمي قريشي دی د فتح مکې په ورځ يې ايمان راوړی وو يا په کوفه کې او يا په مدينه منوره کې اوسيدو دده پلار د بدر په ورځ قيدی شوی وو ده د هغه فديه ورکړه (څلور زره ۴۰۰۰ درهم) او د رسالت بارګاه کې حاضر شو دده نه متعددو صحابو او تابيعينو روايات نقل کړي دي.

**۵۰ ـ مطلب بن ربيعه** : دا حارث بن عبد المطلب بن هاشم قرشي هاشمي دی د حضور ﷺ زمانه ي ماشوم وو په سنه ۲۹ کې د افريقه د فتح کولو لپاره تللی وو.

**۵۱ ـ محمدبن ابی بکر صديق** رضي الله عنه: دده کنيت ابو القاسم دی سنه (۸) ه کې په حجة الوداع کې په کال په ذوالحليفه مقام کې پيدا شوی. دده مور اسماء بنت عميس ده په نسنه کې ۳۸ ه کې د امير معاوية ساتونکو په مصر کې قتل کړو، او د خر په خرمن کې يې واچولو او وې سوځولو کې دده ځوی قاسم دده نه روايت نقل کړی دا صحابي نه دی تابعي دی.

**۵۲ ـ محمد بن حاطب** : دا قرشي او حجمی دی دا په خپله دده پلار مور ورو حارث او تره خطاب ټول صحابه دی او په حبشه کې پيدا شوی په سنه ۸۴ ه کې وفات شو اهل کوفه ي شميرلی شی. دټولو نه مخکې محمد نوم دده لپاره کيخودلی شوی.

**۵۳ ـ محمد بن عبدالله** : دا قرشي او اسدی دی هجرت نه پنځه کاله مخکې پيدا شوی او خپل پلار سره يې حبشې ته هجرت او کړو يا مکې معظمې ته راغی يا مدينې منورې ته راغی.

**۵۴ ـ محمد بن عمرو بن حزم** : دا او انصاري دی د حضور ﷺ د جانب نه د نجران حاکم وو دا هلته په سنه ۱۰ ه کې پيدا شوی دی حضور ﷺ دده پلار ته حکم کړوو چې دده کنيت ابو عبدالملک کيږدي دا لوی فقيه وو دده عمر ۵۳ کاله وو او په سنه ۶۳ ه کې د حره جنګ کې قتل کړی شو.

**۵۵ ـ محمد بن ابی عميره** : دا مزنی دی اهل شام کې شمير دی جبير بن نفير دده نه روايت کړی دی.

**۵۶ ـ محمد بن مسلمه** : دا انصاري او حارثي دی غزوه تبوک نه علاوه نورو ټولو غزواتو کې شريک وو حضرت عمربن خطاب او نور صحابه نه يې روايت نقل کړي په بهترينو صحابو کې دی دی په سنه ۴۳ ه کی د ۷۷ کالو په عمر کې وفات شولو.

**۵۷ ـ محمود بن لبيد** : دا انصاري او اشهلي دی د حضور ﷺ په زمانه کې پيدا شوی امام بخاری رحمه الله فرمائې دا صحابی دی. امام مسلم دی په تابعينو کې شميرلی دی په سنه ۹۶ ه کی وفات شو.

**۵۸ ـ معمر بن عبدالله** : دا قرشي او عدوي دی د پخوانیو مؤمنانو کې دی په مدینه والاوو کې شمار دی

**۵۹ ـ مغیث** : دا بریره دبی بی خاوند دی په خپله اوبی احمد آزاد کړه غلام دی ده ښځه د حضرت عائشې رضی الله عنها ازاد شده ده.

**۶۰ ـ المنذر بن ابی اسید** : دا ساعدي دی چې پیدا شو نو د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خدمت کې راوستی شو حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خپل غیږ کې کینوه او منذر نوم ورله کیخودو.

**۶۱ ـ ابوموسی الاشعري** : دده نوم عبدالله بن قیس دی او اشعری مکه کې ایمان راوړی دی او حبشې طرف ته یې هجرت اوکړو بیا اهل سفینه سره مدینې منورې ته را ورسیدو په لاره کې د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره د خیبر په موقعه ملاقات وشو په سنه ۲۰ کې حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د بصری حاکم مقرر کړلو ابوموسی اهواز علاقه فتح کړې وه. تر خلافت عثمان پورې د بصری حاکم وو بیا حضرت عثمان رضی الله عنه معزول کیدو سره د کوفې حاکم مقرر کړو. د حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د حضرت معاویه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په مقابله کې خپل حکم جوړ کړی وو، ددې نه وروسته مکې معظمې ته ته لاړلو او هلته په سنه (۵۲) ه کې وفات شو.

**۶۲ ـ ابومرثد بن حصین** : دده نوم کناز بن حصین دی دا غنوی دی په خپل کنیت سره مشهور دی دې او دده ځوی مرثد غزوه بدر کې شریک وو په سنه ۱۲ ه کې وفات شو.

**۶۳ ـ ابومسعود بن عمرو** : دده نوم عقبه بن عمرو دی انصاري او بدري دی بیعت عقبه ثانیه کې شریک وو او داکثره مؤرخین لیکی چې په بدر کې شریک نه وو: دا یو ځل د بدر کوهې سره تیرید و ځکه بدري ورته ویل کیږي په آخر کې په کوفه کې اوسیدو د حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په خلافت کي په سنه ۴۱ ه یا سنه ۴۲ ه کی وفات شولو.

**۶۴ ـ ابومالک اشعري** : دده نوم کعب بن عاصم دی او اشعري دی خلافت فاروقي کې وفات شوی دی.

**۶۵ ـ ابومحذوره** : دده نوم سمره بن معبره دی د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د طرف نه د مکی مؤذن وو سنه ۵۹ ه کې وفات شو ده هجرت او نه کړو او وفات پورې مکه کې وو.

**۶۶ ـ ابن مربع** : دده نوم یزید یا بن مربع دی په اهل حجازو کې شمار دی. مربع کې میم مکسور، راء ساکن باء موحده مفتوح او عین مهمله دی.

## صحابیاتې

**۱ ـ میمونه رضی الله عنها**: دا ام المؤمنین ده د بنو عامر قبیلي سره یې تعلق دی ویلی کیږي چې ددې نوم بره وو حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ورباندې میمونه کیخودو د جاهلیت پخوانی زمانه کې د مسعود بن عمرو په نکاح کې وه هغه نه د جدائي وروسته یې د ابورهم سره نکاح اوکړه د ابورهم د وفات نه وروسته حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ورسره نکاح وکړه. دا نکاح ذی قعده ذی قعدهٔ سنه ۷ ه کی د عمرة القضاء په موقع مکې نه لس (۱۰) میله لری صرف نومې یو ځائ کې اوشوه د الله تعالی کول داسې وو چې په همدغه مقام سرفه کې نکاح وشوه او په همدغه ځای کې په سنه ۶۱ ه کی یا په سنه ۵۱ ه کې وفات هم شوه. د جنازی مونځ ورباندی حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ کړی دا دام

الفضل او اسماء بنت عمیس خورده د حضور ﷺ بیبیانو کی تولو کې آخری زوجه ده یعنې د دېنه پس یې د چا سره نکاح نده کړې د دې د ابن عباس نه علاوه یو جماعت روایت وکړو.

**۲ ـ ام منذر بنت قیس** : دا انصاریه ده او د یو قول مطابق (عدویه) دا صحابیه ده دی نه یو حدیث یعقوب بن ابی یعقوب روایت آخستي.

**۳ ـ ام معبد بنت خالد** : د دې نوم عاتکه بنت خالد دی د بنو خزاعه سره یې تعلق دی د هجرت په وخت کې چې کله حضور ﷺ د دې طرف ته راغی هغه وخت مسلمانه شوه د دې حدیث د حدیث ام معبد نوم سره مشهور او معروف دی.

**۴ ـ ام معبد بنت کعب** : دا انصاریه ده دی دواړو قیبلو طرف یې ته مونځ کړی د دی نه د دې ځوی معبد روایات آخستي دي د ابن عبد البر د قول مطابق دا ام معبد د کعب بن مالک انصاري سلمي ښځه ده یعنې دا ام معبد : کعب بن مالک انصاري ښځه ده او تاریخ د بخاري په حواله سره د ابن عبد البر د دې قول تائید کوی دی دا ابن عبد البر د قول تائید کوی.

**۵ ـ ام مالک بهزیه** : دا قبیلې سره تعلق لري د دې نه طاؤس او مکحول روایات آخستي دي.

## ن :

## صحابه کرام رضي الله عنهم

**۱ ـ نعمان بن بشیر** : کنیت ئی ابو عبد الله او انصاري صحابي دی په ماشومانو کې اولنی ماشوم دی چې د اسلام په حالت کې پیدا شوی دی. د هجرت نه وروسته د حضور ﷺ د وفات په وخت کې یې عمر ۱۸ کاله او ۷ میاشتی وو د ده پلار صحابي دی په کوفه کې اوسیدو او د حضرت عمر عهد کې د کوفی حاکم وو بیا د حمص حاکم جوړ شو ده په سنه کې ۶۴ هـ کې یې د عبد الله بن زبیر په حمایت کې دعا وغوښتله نو حمس والاو قتل کړو ده نه یو جماعت ځوی روایات نقل کړي.

**۲ ـ نعمان بن عمرو بن مقرن** : دا مزني دی په یو روایت کې دي چې هغه مزینه قبیلې څلور سوه ۴۰۰ کسانو سره د حضور ﷺ خدمت کې حاضر شوی وو اول بصره کې اوسیدو بیا کوفي ته منتقل شو بیا د حضرت عمر رضي الله عنه مقرر شوی حاکم وو نهاوند په لښکر، بیا د نهاوند د فتحې په ورځ په سنه ۲۱ هـ کی شهید شولو د ده نه معقل بن یسار او محمد بن سیرین وغیره روایت اوکړو.

**۳ ـ نعیم بن اسود** : دا اشجعي دی حضور ﷺ ته راغلی وو او هجرت یې کړی وو او د غزوه خند په ورځ په اسلام مشرف شولو دی د بنو قریظه او ابو سفیان بن حرب په مینځ کې یې کوشش نه کړي وه که چې ابو سفیان بن حرب په غزوه احزاب کې د مشرکین سردار وو ده کفار رسوال کړل (شکست یې ورکړو). د ده قصه معلومه ده په مدینه کې اوسیده د ده ځوی سلمه د ده نه روایات کړي دي د حضرت عثمان رضي الله عنه په خلافت کې وفات شو دیو روایت مطابق چې په جنګ جمل کې د حضرت علي رضي الله عنه رسید و نه مخکې قتل کړی شو.

**۴ ـ نعیم بن حمار** : دا غطفاني دی ابو ادریس خولانی وغیره نه دده نه روایات کړي دي.

**۵ ـ نعیم بن عبدالله** : دا قرشي اوعدوي دی په نحام سره مشهور دی د یو روایت مطابق دا په مکه کښې ډیر پخوا په اسلام مشرف شوی وو دحضرت عمر رضي الله عنه د اسلام نه مخکې مسلمان شوی وو او خپل اسلام ئې پټ ساتلی وو خپل قوم دهجرت نه منع کړی ووسره د اسلام راوړلو نه په خپل قوم ډیر عزت او مرتبې والاوو ده به دخپل قوم دکنډو ښځو اویتیمانو باندې خرچه کوله په دې وجه خپل قوم منعه کړو بیا یې د حدیبیې په کال په سنه ۷ ھ کښې هجرت اوکړو او د اجنادین په جنګ کښې د حضرت ابوبکر رضي الله عنه په خلافت کښې شهید شو. دده نافع اومحمد بن ابراهیم تیمي روایت نقل کړي دي.

**۶ ـ ناجیه بن جندب** : دا اسلمي دی د یو قول مطابق دده نوم ناجیه بن عمرو دی کوم چې مدینې والاو کښې شمار دی اول یې نوم زکوان وو بیا وربانډې حضور صلی الله علیه وسلم ناجیه نوم کیخودو د قریشو نه د نجات موندلو په وجه او دده باره کښې دي چې حضور صلی الله علیه وسلم ورته تیر (غشی) ورکړو او کوهي ته خکته شو دده نه عروة بن زبیر وغیره روایات نقل کړي دي د حضرت معاویه په خلافت کښې په مدینه منوره کښې وفات شو.

**۷ ـ نبیشة الخیر** : دا هذیلي دی ابو الملیح او ابو قلابه دده نه روایات آخستي بصري والاو کښې شمار دی.

**۸ ـ نوفل بن معاویه** : دا دیلمي دی دده په باره کښې مشهوره ده چې دده عمر په جاهلیت کښې شپیته ۶۰ کاله او په زمانه د اسلام کښې یې هم شپیته ۶۰ کاله تیر کړې دي، دویم قول دا دی چې سل کاله عمر یې وو اسلام یې مخکښې راوړی وو لیکن په فتح مکه کښې یې خپل اسلام ښکاره کړو دا په حجازیانو کښې شمار دی د یزید بن معاویه په زمانه کښې په مدینه کښې وفات شو، یو جماعت ترینه روایات نقل کړي دي.

**۹ ـ نواس بن سمعان** : دا کلابي دی او په شام کښې اوسیدو او په شامیانو کښې شمار دی جبیر بن نفیر او ابو ادریس خولانی ترینه روایات نقل کړي دي.

**۱۰ ـ نفیع بن حارث** : دا ثقفي دی کنیت یې ابوبکر دی په حرف باء کښې یې تذکره تیره شوي دي.

**۱۱ ـ نافع بن عتبه** : دا عتبه بن ابی وقاص دی بنو زهره نه دی دحضرت سعد بن ابی وقاص رضي الله عنه وراره دی دده نه جابر بن سمره روایات ترینه نقل کړي دي. د فتحي مکې په ورځ مسلمان شوی په کوفیانو شمار دی.

**۱۲ ـ ابونجیح** : دده نوم عمرو بن عتبه دی حرف عین ي دده ذکر تیر شوی دی.

## واو : صحابه کرام رضي الله عنهم

**۱ ـ واثله بن الاسقع** : دا لیثي دی دی هغه وخت مسلمان شو کوم وخت چې حضور صلی الله علیه وسلم غزوه تبوک دپاره تیاري کوله وئیل کیږي چې ده دری کاله دحضور صلی الله علیه وسلم خدمت کړی وو دا د اهل صفو نه دی په بصره ک[illegible] اوسیدو بیا په شام کښې اودده کور د دمشق نه د دری فرسخو په فاصله باندې وو د بلاط په کلی کښې وو بیا بیت [illegible]س ته لاړو او هلته په سنه ۱۰۰ ھ کښې وفات شو یو جماعت ترینه روایات نقل کړي دي.

**۲ ـ وهب بن عمير وهب** : دا جمحي دی په بدر کښ قید شوی وو د کفر په حالت کښ دده پلار مدينې ته راغی او مسلمان شو حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغه د پلار په وجه دی آزاد کړلو او اسلام يې راوړلو د قدر او مرتبې والا وو دې وجهې نه حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د مکې د فتحې په ورځ دی صفوان بن اميه ته د اسلام دعوت لپاره ليږلو . دا شام کښ جهاد کولو کی وفات شولو .

**۳ ـ وابصه بن معبد**: دده کنيت ابو شداد دی اوس قبيلې سره يې تعلق دی په کوفه کښ اوسيدو بيا جزيرې طرف ته منتقل شو ، په رقه کښ وفات شو دده نه زياد بن ابی الجعد روايات نقل کړی .

**۴ ـ وائل بن حجر** : دا حضرمي دی د حضرموت سره يې تعلق دی دده پلار د هغې ځای سردار و د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خدمت کښ د وفد شکل کښ حاضر شو وئيلی شی چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ته دده دراتلو نه مخکې دده د راتلو بشارت ورکړی شوی وو او دا ارشاد ئې فرمائيلی وو چې تاسو ته ډير لرې حضرموت نه وائل بن حجر راځی . دهغه راتلل اطاعت ګزاری او د الله او د هغه د رسول مينه لري کله چې راغلو نو حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ورته هرکلی او وئيلو او خپل ځان ته ئې نزدې کړو او خپل څادر يې ورته وغوړولو . او په هغې ئې کينول او دعا يې ورته وکړه ای الله ! وائل او دده اولاد او دده د اولاد اولاد کی برکت واچوې ، د حضرت موت په سردارانو مقرر کړلو . دده نه دده ځامنو علقمه او عبد الجبار وغيره روايات نقل کړي دي . حجر په حاء باندې ضمه ده او جيم ساکن دی .

**۵ ـ وحشی بن حرب** : دا دحبشي سره تعلق لري او د جبير بن مطعم آزاد کرده غلام دی دا حد په جنګ کښ حضرت حمزه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ شهيد کړی وو غزوه طائف نه وروسته يې ايمان راوړی وو او جنګ يمامه کښ شريک شوی وو دده باره کښ دا وه چې مسيلمه کذاب ده قتل کړی دی او په خپله يې ويل چې ما د ټولو نه بهتر کس او د ټولو نه بدتر کس په دې خپلې نيزې سره قتل کړي دي او په شام کښ اوسيده او په حمص کی وفات شو ، دده نه دده زامنو اسحاق او حرب وغيره روايات اخستې دي .

**۶ ـ وليد بن عقبه** : دده کنيت ابو وهب دی د قريشو سره تعلق دی او د عثمان بن عفان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د مور د طرف نه ورور دی د فتحې د مکې په ورځ مسلمان شوی . حضرت عثمان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د کوفې والي مقرر کړی وو دی د قريشو د شاعرانو نه دی دده نه ابو موسی همداني وغيره روايات نقل کړی په رقه کښ وفات شو .

**۷ ـ وليد بن وليد**: دا قرشي او د بنو محزوم سره يې تعلق دی د خالد بن وليد ورور دی غزوه بدر کښ د کفارو د طرف نه راغلی وو او قيدې شو او دده ورور خالد فديه ورکړه ، او خلاص يې کړو د خلاصيدو نه وروسته يې اسلام قبول کړو کله چې ترينه تپوس وشو چې ولې د قيد په وخت کښ قبول نکړو نو جواب ئې ورکړو ما د اسې ځکه اونه کړل چې چرته تاسو ته دا بدګمانې او نشي چې قيد نه ويريدو اسلام يې قبول کړی د اسلام د اظهار نه وکړو . ددې قيد نه خلاص شو حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته راغی او قضاء عمره کښ شريک شو ، ده نه عبد الله بن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ او ابو هريره رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ روايات آخستې دي .

**۸ ـ ورقه بن نوفل** : دا قريشي دی په جاهليت کښ عيسوي وو او د تورات قاري وو او د بوډا والي په حالت کښ

وو وو دا د بی بی خدیجی رَضِيَ اللهُ عَنْهَا دتره ځوی وو د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د رسالت زمانه يې نده موندلې لیکن تمنائي کوله دې وجې نه په صحابو کې شمار دی.

**١٠ ـ ابو واقد**: دده نوم حارث بن عوف لیثي دی پخوانی مسلمان وو دده شمیر اهل مدینه نه دی یو کال مکې کې اوسیدلو او مکه کې سنه ۶۸ ھ کی په عمر د ۷۵ کالو وفات شو. او مقام (فخ) کې دفن کړی شو.

**١١ ـ ابو وهب**: دا جشمي دی دده نوم دده کنیت دی دده نه روایات نقل دی.

## هاء: صحابه کرام رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ

**١ ـ هشام بن حکیم**: دا هشام بن حکیم بن حزام دی قرشي او اسدي دی د مکې د فتحې په ورځ مسلمان شو صحابو کي صاحب خیر وفضل حضراتو نه وو امر بالمعروف او نهی عن المنکر کونکو کې شمار دی د خپل پلار وفات نه مخکی وفات شو دده پلار په سنه ۵۴ ھ کی وفات شوی.

**٢ ـ هشام بن عاص**: دا دعمر بن عاص ورور دی پخوانی مسلمان دی مکه کې په اسلام مشرف شوی دی حبشر ته يې هجرت کړی دی بیا مکې ته راغی کله چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مدینې منورې ته هجرت وکړو او دته پته ولګیده نو دخندق نه وروسته ده هم هجرت وکړو، دده وراره عبد الله دده نه روایات آخستې دي او دیرموک په جنګ کې په سنه ۱۲ کې شهید شو.

**٣ ـ هشام بن عامر**: دا انصاري دی بصره کې اوسیدلو او هلته وفات شو اهل بصره کی شمیر دی.

**۴ ـ هلال بن امیه**: دا واقضي انصاري دی په هغوی دریو کسانو کې یو دی کوم چې دغزوه تبوک نه پاتې شوی وو بیا الله تعالیٰ د هغوی توبه قبوله کړې وه د بدر جنګ کې شریک شوی وو، ده په خپله ښځه باندې تهمت لګولی وو، په باب اللعان کې يې ذکر دی حضرت جابر او ابن مسعود ترې روایات آخستې دي.

**۵ ـ هزال بن ذهاب**: دده کنیه ابو نعیم ده او دا اسلمي دی دده ځوی نعیم او محمد بن منکدر دده نه روایات آخستي دي د ماعز د حدیث او دهغه د رجم متعلق باب کې دده تذکره راغلې ده.

**۶ ـ ابو هریره** رَضِيَ اللهُ عَنْهُ: دده نوم او نسب کی ډیر اختلاف دی د مشهور روایت مطابق دده نوم د اسلام نه مخکې عبد الشمس وو یا عبد عمر وو او اسلام راوړلو نه پس عبد الله یا عبد الرحمن نوم ورله کیښودی شو دی دقبیله دوس سره يې تعلق وو د حاکم د قول مطابق ترټولو صحیح نوم يې عبد الرحمن په کوم چې کنیه غالبه راغلی ده او په دې وجه دا کنیه مشهوره شوه چې دده کوم نوم نه وو، د خیبر په ورځ يې ایمان راوړه او د خیبر په جنګ کې د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره شریک شوی وو، بیا مستقل طور باندې ځان يې د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وتړلو، د علب په رغبت او دعلم نه په خیټې ډکولو باندې راضي وو لوګې به يې برداشت کوله حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ چې به چیر ته وو نو دا به هم هلته وو په صحابو کې د ټولو نه لوی حافظ حدیث وو او ده د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په ملګرتیا د داسې شیانو مشاهده وکړه چې بل چا نه وه کړې ابو هریرة رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خپله وایي ما حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته وویل د الله رسوله! زه تا نه ډیرې خبرې واورم خو بیا راته یادې پاتې نه شي. حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ارشاد او فرمائیلو خپل څادر خور

کړه ماخپل ځادر خور کړلو بیا حضور صلی الله علیه وسلم ډیر حدیثونه بیان کړل هغه ټول راته یاد وو کم چې حضور صلی الله بیان کړل امام بخاری رحمه الله وای چې هغه داته سوه نه زیات صحابو او تابعینو روایات آخستي دي دده عمر ۷۸ اته اویا کاله وو په مدینه منوره کې په سنه ۵۷ یاسنه ۵۸ ه کې وفات شو دابو هریرة د نوم وجه کې دا خبره معلومه ده چې دده سره یوه وړه پشووه.

**۷ـ ابوالهثیم** : دده نوم مالک بن تیهان دی حرف میم کې یې تذکره تیره شوی ده.

**۸ـ ابوهاشم** : نوم یې شیبة بن عتبة بن ربیعة دی و دا قرشي دی دیو قول مطابق دده نوم هشام دی او دیو قول مطابق دده نوم دده کنیت ده او دا زیات مشهور دی دمعاویه بن ابوسفیان ماما دی د فتحې دمکې په ورځ مسلمان شو او شام کی اوسیدلو د حضرت عثمان رضی الله عنه دخلافت زمانه کې وفات شو دده نه ابوهریره وغیره روایات آخستي دي.

## صحابیاتي

**۱ـ هند بن عتبه بن ربیعة** : دا دابوسفیان ښځه ده او دمعاویه مورده دمکې دفتحې په ورځ دخپل خاوند د اسلام راوړلو نه پس مسلمانه شوه حضور صلی الله علیه وسلم ددې دواړو نکاح برقراره وساتله دا ډیره فصیحه او عاقله وه دحضور صلی الله علیه وسلم د نورو ښځو سره بیعت وکړو او ورته یې وویل دالله سره شریک مه جوړوی او غلامه کوی نو هندې عرض وکړو چې ابوسفیان کنجوس دی نو حضور صلی الله علیه وسلم ورته وفرمائیل ته دومره قدری آخله چې ستا اولاد دپاره کافی وی او حضور صلی الله علیه وسلم ورته وفرمائیل اوزنا مه کوی نو هنده عرض وکړو أیا اصیله ښځه زنا کولی شي؟ او حضور صلی الله علیه وسلم ورته ارشاد وفرمائیلو او خپل بچې مه قتلوی نو هنده عرض وکړو چې تاسو زمونږ بچې پریخودل؟ تاسو خو هغوی په بدر کې قتل کړل نو مونږ به په ماشوموالي کې پرورش ورکووا و تاسو یې په غټ والي کې قتل کړل، دا د حضرت عمر رضی الله عنه زمانه خلافت کې وفات شوه په هغه ورځ حضرت ابوقحافه د حضرت ابوبکر رضی الله عنه پلار وفات شوی وو، ددې نه بی بی عائشی رضی الله عنها روایات آخستي.

**۲ـ ام هانی** : ددې نوم فاخته دا بوطالب لور او د حضرت علي رضی الله عنه خورده حضور صلی الله علیه وسلم او هبیره بن ابو وهب د جاهلیت په زمانه کې د نکاح پیغام ورکړی و، ابوطالب یې ابوهبیره سره نکاح کړی وه وروستو دا مسلمانه شوه او د اسلام نه وروسته نبي علیه السلام ددې او ابوهبیرة په مینځ کې جدائي راوسته ددې نه وروسته حضور صلی الله علیه وسلم د نکاح پیغام ولیږلو نو هغې اووئیل زه په جاهلیت کې ده هغه خور وم نو اوس په اسلام کې څنګه کیدی شي لیکن زه بچو والا ښځه یم نو حضور صلی الله علیه وسلم خاموش شولو ددې نه ډیرو سړو روایات آخستي دي.

**۳ـ ام هشام** : دا ام هشام د حارثه بن نعمان لورده، دی نه یو جماعت روایت کوي.

## ي : صحابه کرام رضی الله عنهم:

**۴ـ یزید بن اسود** : دا سوائي دی ده نه دده ځوی جابر روایات آخستي دي دده شمیر په طائف والاوو کې دي په کوفه والاوو کې دده احادیث مشهور دي.

**۵ ـ یزید بن عامر** : دا سوايي حجازي دی غزوه حنین کې دمشرکانو سره شریک وو بیا یې وروسته ایمان راوړو ، دده نه سائب بن یزید وغیره روایات نقل کړي دي.

**۶ ـ یزید بن شیبان** : دا ازدي او صحابی دی تنها پسند خلکو کې شمار دی.

**۷ ـ یزید بن نعامة** : دا ضبی دی دده نه سعید بن سلمان روایات نقل کړي دي دا په غزوه حنین کې د شرک په حالت کې شریک شوی وو بیا یې ددینه وروسته ایمان راوړی دی دترمذی ارشاد دی چې دده دحضور ﷺ نه سماع معروفه نده.

**۸ ـ یحیی بن اسید بن حضیر** : دا انصارو نه دی دحضور ﷺ زمانه کی پیدا شو دده دپلار کنیت دده په نوم دی دده ذکر فضل القراءة والقاري کې دی ابن عبدالبر اووئیل دده عمر خود حدیث دسماعت لائق وو لیکن زما د علم مطابق دده نه کوم روایت نشته.

**۹ ـ یوسف بن عبدالله** : دده کنیت ابویعقوب دی دده تعلق په بني اسرائیلو کې د یوسف بن یعقوب علیهما السلام د اولادې سره داد حضور ﷺ ژوند کې پیدا شوی ؤ دحضور ﷺ خدمت کې راوړل شو ، حضور ﷺ خپله غیږه کې کیناوو او دده نوم ئې یوسف کیخودو او په سرئې ورله لاس را ښکلو دا په مدینې والاوو کې شمار دی دده نه په روایت کولو کې دوه قوله دي.

**۱۰ ـ یعلی بن امیه** : دا تمیمي او حنظلي دی دمکې دفتحې په ورځ یې اسلام راوړی دی او د حنین او طائف په غزاګانو کې شریک شوی دی ، دا په حجازیانو کې شمار دی حضرت صفوان ، عطاء ، وغیره دده نه روایات آخستي دي په جنګ صفین کې د حضرت علی رضي الله عنه په جماعت کې قتل شو.

**۱۱ ـ یعلی بن مرة** : دا ثقفي دی حدیبیه ، خیبر ، فتح مکه ، حنین ، طائف او دتبوک غزواتو کې شریک شوی وو ، یو جماعت ترې روایات نقل کړې دي دا په کوفې والاوو کې شمار دی

**۱۲ ـ ابوالیسر** : دده نوم کعب بن عمرو دی دده ذکر حرف کاف کې تیر شوی دی.

## صحابیاتي

**۱ ـ یسیرة** : ددې کنیت ام یاسر ده انصاریه ده دا د هجرت کونکو زنانو نه ده ، ددې نمسی حمیصه بنت یاسر ترینه روایات آخستي دي.

رَبَّنَا تَقَبَّلْ مِنَّا إِنَّكَ أَنْتَ السَّمِيعُ الْعَلِيمُ ، وَتُبْ عَلَيْنَا إِنَّكَ أَنْتَ التَّوَّابُ الرَّحِيمُ

وَصَلَّى اللهُ عَلَى نَبِيِّهِ الْكَرِيمِ وَعَلَى آلِهِ وَأَصْحَابِهِ أَجْمَعِينَ

## اعتذار او غوښتنه:

**الحمد لوليه والصلوٰة على نبيه والصلاة والسلام على عباده الذين اصطفى . أما بعد!**

ديني عالمانو سلفاً او خلفا په هر وخت کې د دين د نشر او اشاعت په غرض د خپل ذوق او استعداد او د وخت د ضرورت او مصلحت په اساس په مختلفو علومو کې ليکنې کړي دي او د ذي ربط خلکو ديني ضرورت او مشکل يې پوره کړي دي.

ډيرو محترمو کتونکو که څه هم انسان د خپل وس سره سم هغه څه ترسره کوي کوم چې شرعا ده ده مسؤليت او دنده وي خو بيا هم د زيات کوشش او محنت سره سره انسان کمزوري او د نسيان ښکار کيدلې شي

لهذا که تاسو په دغه کتاب کې کومه غلطي يا تيروتنه محسوس کړي نو د **تعاون على البر والتقوى** په اساس که ما عاجز بنده ته دهغې نشاندهي وکړی، ترڅو په آينده چاپ کې غلطي اصلاح او تاسو هم د يوې برخې ثواب مستحق وګرځي. **﴿واجركم على الله﴾**

محترمو ! مشکوة شريف چې د درسِ نظامي يو مهم او قيمت بها کتاب دي او په دې باندې ځان پوه کول ډير زيات ګران او مشکل کار دي، چونکې موجوده وخت کې طالب العلم د مختلف النوع مشکلاتو او پريشانو سره لاس او ګريوان دي، او څه د همتونو کمزورتيا ګانې دي، نو د مشکلاتو او د کم همتې د وجې نه په دې کتاب باندې پوهيدل ورته مشکل او سخت وي.

نو د دې وجې نه د بعضو ملګرو دا خواهش وو چې د مشکوة شريف د بهترينې شرحې: توضيحات په پښتو کې ترجمه وکړې شي چونکې توضيحات په اردو کې وه نو مونږ د دې اردو شرحې په پښتو کې ترجمه وکړه ترڅو علماء او طلباء د حديثو په دې عظيمې ذخيره باندې په ښه طريقې سره پوهه شي، نو د دې شرحې په ترجمه کولو باندې مو شروع وکړه. لله الحمد د الله تعالى په فضل او کرم او د مشفقو استاذانو د نيکو دعاګانو په برکت سره د توضيحات پښتو ترجمه يو څه وخت وروسته اختتام ته ورسيده:

**اين سعادت بزور بازو نيست ☆ تا نه بخشد خداى بخشنده**

زموږ د طالب علمي په زمانه کې به چې کله موږ د کوم کتاب پښتو يا اردو شرحه کتله نو استاذانو به د پښتو يا اردو شروحو د کتلو څخه منع کولو او زيات اصرار به يې په دې و چې تاسې عربي شروحات ګورئ او يا د دې کتاب دا حواشي ښه دقيق ګورئ نو تاسو ته به د نورو شروحاتو د کتلو ضرورت نه وي، خو په موجوده زمانه کې چې د «الطريقة العصرية» نه واخله تر بخاري شريف پورې په نصاب کې د شاملو کتابونو نه د هر يو کتاب شروحات په بازار کې ملاويږي او اکثر د يو کتاب بې شماره شروحات په اردو، پښتو او فارسي کې موجود وي، نو دا د پښتو ترجمه هم په دې سلسلې کې يوه اضافه ده.

د خپل استعداد او طاقت موافق مو د دې شرحې په ترجمې کې ښه کوشش او محنت کړي ترڅو چې غلطي او تيروتنه په کې رانه شي خو انسان کمزورې او د نسيان ښکار کيدلې شي نو په دې اساس که تاسو په دې مجموعه

کې څه کمی محسوس کړي نو مونږ ته یې نشاندهي کړئ ترڅو په آئنده ایډیشن کې اصلاح او اصلاح شده مجموعه محترمو طالبانو او مدرسینو ورونو لاس ته مخکې شي.
په آخر کې د ټولو لوستونکو نه ډیر امیدواریم چې ما عاجز بنده، زما والدین او زما مشفق استاذان په خپلو قیمتي دعاو کې یاد ولري.

این دعا از من واز جمله جهان آمین باد

غرض نقشے است کزما یاد ماند ✿ کہ ہستی را نمی بینم بقائے
مگر صاحبدلی روزے برحمت ✿ کند در حق این مسکین دعائے

وما من كاتبٍ إلا سيفني ✿ ويُبقي الدّهرَ ما كتبت يداهُ
فلا تكتب بخطك غير شيءٍ ✿ يَسُرّك في القيامة أن تراهُ

والله الموفق لكل خير وبه نستعين
محمد فیض الهادي "حقاني"

كان الله له ولوالديه ولمن أحسن إليهما وإليه

